# تفسیر خیر کثیر

پشتو ترجمه

# تفسیر ابن کثیر

مؤلف: حافظ عماد الدین اسماعیل بن عمر بن ابن کثیر الدمشقی المتوفی ۷۷۴ هجری

مترجمین: مولانا شاہ فیصل فاضل وفاق المدارس، امداد العلوم، وعبدالکریم صدیقی وقاری امیر نواز

## جلد نمبر ۴

**تسهیلات از شاه فیصل**

① د قرآنی آیاتونو ټکی په ټکی او روانه ترجمه

② د احادیثو تخریج

③ د فقهی مسئلو کښې مسلک حنفی وضاحت

④ مناسب عنوانات ورکول

خورونکی

فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور

موبائیل نمبر ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

دکتاب نوم : تفسیرخیرکثیرترجمه تفسیرابن کثیر
مؤلف: حافظ عمادالدین اسماعیل بن عمربن ابن کثیرالدمشقی المتوفی ۷۷۴ هجری
خورونکی : فیصل کتب خانه محله جنگی
موبائیل نمبر ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

د ملاویدو پتې:- د فیصل کتب خانې نه سوا
مکتبه روغانیول جلال آباد
مکتبه رحیمی خوست
نعمت کتب خانه کابل
انتشارات علامه تفتازانی هرات وکابل
صداقت کتب خانه قندهاروکابل
قدرت کتاب فروشی کابل بښار
علمی کتب خانه گردیز
مکتبه علمیه اکوړه ختك
دینی کتب خانه تیمرګره ره
فلاح کتب خانه جلال اباد
مکتبه فریدیه خوست
دیوبند کتب خانه خوست
جدید رشیدیه کتب خانه کابل
مکتبه خواجه عبدالله انصاری غزنی
مکتبه نعمانیه غزنی
مکتبه رحمانیه قندهار
امیرحمزه کتب خانه قندهار

| عنوانات | صفحه نمبر |
|---|---|

| عنوانات | صفحه نمبر |
|---|---|

| عنوانات | صفحه نمبر |
|---|---|
| دَ هر یو څیز خالق الله تعالی دی | ٦٧ |
| صرف هم الله تعالی دَ عبادت لائق دي | ٦٧ |
| دَ قرآن پاك دَ منكرانو تذكره | ٦٧ |
| حق او باطل داعی ته دخپل دعوت اوتابعینو ثواب او گناه ملاویږی | ٦٨ |
| دَ نمرودوغیره انجام | ٦٩ |
| دویم قول ، دې نه مراد بخت نصر دی | ٦٩ |
| دریم قول دا د عام كافرانو مثال دی | ٦٩ |
| قیامت كښې به هر عذاب سره دعذر جهنډا وی | ٦٩ |
| دَ مرگ په وخت كښې دَ ظالمانو كیفیت | ٧١ |
| د كافرانو دپاره خراب مقام | ٧١ |
| دَ نیكانو خلقو بهترین انجام | ٧١ |
| دآخرت كور ددنیا دكور نه ډیر زیات بهتر دی | ٧١ |
| مشركان دكوم څیز انتظار كوی | ٧٢ |
| دَ مشركانو دَ الله تعالی دَ منشانه غلط استدلال | ٧٤ |
| د كافرانو د استدلال جواب | ٧٤ |
| د نبی په اختیار كښې هدایت نه وی | ٧٤ |
| قیامت قایمول دَ الله تعالی دَ پاره ډیر آسان دی | ٧٦ |
| قیامت كښې به هر څه ښكاره شی | ٧٦ |
| الله ﷻ دپاره مرۀ كول او ژوندی كول یو شان دی | ٧٦ |
| الله ﷻ سره شریك جوړول الله ﷻ ته كنځل كول دی | ٧٦ |
| دَ الله تعالی په لاركښې دَ هجرت كولو فضیلت | ٧٧ |
| دد ایت مبارك د نازلیدو سبب | ٧٧ |
| مهاجرینو صفات | ٧٨ |
| دَ رسالت دَ منصب حقدار انسان | ٧٨ |
| داهل ذكر نه څوك مراد دی ؟ | ٧٨ |
| ټول انبیاء كرام په بنی آدم كښې وو | ٧٨ |
| دَ الله تعالی دَ غضب اوغصې بیان | ٨٠ |
| د الله تعالی نه څوك زیات صبار نشته | ٨٠ |
| دَ عرش نه دَ فرش پورې هر یو څیز الله تعالی ته سجده كوی | ٨٢ |
| د هر څیز سجده دهغه دشان مناسب وی | ٨٢ |
| ټول هر څه هم الله تعالی وركړی دی | ٨٢ |
| دمكې مشركانو به په سختئ كښې هم الله تعالی ته عاجزی كوله | ٨٢ |
| دَ مشركانو عجیبه دعوی او دَ افسوس قابل رویه | ٨٤ |
| دَ الله تعالی مهربانی ده چه په گناه كولوباندې زر رانیول نه كوی | ٨٥ |
| د عمر زیاتول په نیك اولاد سره كیږی | ٨٥ |
| دكافرانو ددروغو دعوی او د هغې جواب | ٨٥ |

| صفحه نمبر | عنوانات |
|---|---|

| عنوانات | صفحه نمبر |
|---|---|

| عنوانات | صفحه نمبر |
|---|---|

| تول آيتونه | | سورت الحجر مكية وهي تسع وتسعون اية وست ركوعات | | ركوع گانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | | |
| (٩٩) | | (شروع كوم) په نوم د الله چې بخښونكې مهربانه دې | | (٦) |

| |
|---|
| الٓرٰ تِلۡكَ اٰيٰتُ الۡكِتٰبِ وَقُرۡاٰنٍ مُّبِيۡنٍ ① |
| ال ر \| دا \| آيتونه دي \| د كتاب او د قرآن \| صفا صفا بيانونكې دی \| |
| الف لام را \| دا د يو (كامل) كتاب او واضح قرآن ايتونه دی \| |

دسورتونو په شروع كښې چه كوم حروف مقطعه راغلي دی دهغې بيان اول تيرشوې دې.په ايت كښې د قرآن د آيتونو واضح او دهر سړي په پوهه كښې د راتلو قابل كيدو بيان دې.

(اَلۡحَمۡدُ لِلّٰهِ) د ديارلسمې سپارې تفسير ختم شو.

| |
|---|
| رُبَمَا يَوَدُّ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا لَوۡ كَانُوۡا مُسۡلِمِيۡنَ ② |
| ډير خله به \| خوښوی \| هغه كسان \| چې كفر ئې كړې دې \| افسوس كه چرې وې هغوئ \| مسلمانان \| |
| ډيركرتي به كافران دا آرزو كوی \| كاش چې دوئ (يعني مونږ) مسلمانان وې |
| ذَرۡهُمۡ يَاۡكُلُوۡا وَيَتَمَتَّعُوۡا وَيُلۡهِهِمُ الۡاَمَلُ فَسَوۡفَ |
| پريږده دوئ \| چې خوراك كوی \| وفائدې اخلي \| اومشغول كړي دوئ لره \| دروغو اوميدونه \| روخت پس به |
| دوی پريږده چې خوری (څښي) اوفائده اخلی \| او (غلط) اميدونه ئې په غفلت كښې غورځوی \| ډير زر |
| يَعۡلَمُوۡنَ ③ وَمَاۤ اَهۡلَكۡنَا مِنۡ قَرۡيَةٍ اِلَّا وَلَهَا كِتٰبٌ |
| پوهه شي دوئ \| اونه دې هلاك كړي مونږه \| يوكلي \| مگر \| دپاره دهلاكت دهغې \| يوليكلې شوې وخت |
| به پوهه شي \| اومونږ چې كوم كلي هم هلاک كړي دې نو د هغې دپاره يوليكلې شوې |
| مَّعۡلُوۡمٌ ④ مَا تَسۡبِقُ مِنۡ اُمَّةٍ اَجَلَهَا وَمَا يَسۡتَاۡخِرُوۡنَ ⑤ |
| معلوم وو \| نه مخكښې كيږی \| يو امت \| دمقرروخت خپل نه \| اونه روستو كيږی \| |
| وخت مقرر وو \| يوقوم دخپلې نيتي نه نه خوورانډې تلې شي \| اونه روستو پاتې كيدې شي \| |

① **دعاموكافرانوارزو**:-كافربه پخپل كفربانډې ډيرزرپښيمانه اوستومانه شی اودمسلمان جوړيدواو ژوند تيرولو ارزو به كوی.

② **د بدر د كافرانو ارزو**:- دا هم روايت دې چه د بدر كافران كله دوزخ ته مخامخ كړې شی نو تمنا به كوی چه افسوس مونږ هم په دنيا كښې مؤمنان وو.

③ **دمرګ په وخت كښې ارزو** :- دا هم دی چه هريوكافر به خپل مرګ ليدو سره دا تمنا كوی

④ **د دوزخ په ليدو ارزو**:- اودغه شان به په قيامت كښې هم د هريوكافر زړه هم دغه غواړی. دوزخ سره په او دريدو به وانی چه افسوس مونږ واپس دنياته ليگلې شوې وې نو نه خو به دالله تعالى آياتونه دروغ گڼړو اونه به ايمان پريږدو.دوزخيان خلق چه نور خلق د دوزخ نه په وتو بانډې اووينی نود خپل مسلمان كيدو تمنا كوی.

**⑤ دګناهګارانومسلمانانو دجهنم نه د ازاديدوپه وخت دکافرانو ارزو:-** ابن عباس رضی الله عنه اوانس بن مالک رضی الله عنه فرمائی چه ګناهګاران مسلمانان الله تعالی د مشرکانوسره راجمع کړی نو مشرکان به دې مسلمانانو ته وائی دکوم الله تعالی چه تاسو په دنياکښې عبادت کولو هغه نن تاسوته څه فائده درکړه؟ په دې به د الله تعالی رحمت په جوش کښې راشی اودامسلمانان به د دوزخ نه راوباسی دغه وخت به کافران تمنا کوی چه ارمان اوافسوس چه مونږ هم په دنياکښې مسلمانان وو.(١)

**⑥ ديوې ذرې برابرايماندارد جهنم نه د راوتلوپه وخت د کافرانو ارزو:-** يوروايت کښې دی دمشرکانو په دې پيغوربه الله تعالی حکم اوکړی دچاپه زړه کښې چه ديوې ذرې برابر ايمان هم وی هغه ددوزخ نه آزادکړنی الخ.

**⑦ دمشرکانو ګناهګارانو مسلمانانو ته پيغور کول:-** طبرانی کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائی د لااله الا الله ويونکو کښې به بعضې خلق په سبب دخپلو ګناهونو دوزخ ته ځی نود لات او عزی عبادت کونکی به ورته وائی چه ستاسو لااله الاالله وئيلو تاسو ته څه فائده درکړه؟ تاسو خو زمونږ سره په دوزخ کښې سوزيږئی په دې باندې به د الله تعالی رحمت په جوش کښې راشی. الله تعالی به هغه ټول د دوزخ نه راوباسی او په نهرحيات کښې به غوپه ورکړی اوداسې به نې کړی لکه چه سپوږمئ د تندر نه راوتلې وی. بيابه دا ټول جنت ته لاړشی هلته به دوی ته دوزخيان وئيلې شی. دحضرت انس رضی الله عنه نه چا دا حديث اوريدو سره اووئيل چه آيا تا دا د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دې؟ هغوی ووئيل واوره ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلی دی چه په ما باندې په قصدسره دروغ ويونکې خپل ځای په دوزخ کښې جوړوی سره د دې چه دا وايم ما دا حديث پخپله د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دې(٢)بل روايت کښې دی چه مشرکان خلق به دقبله والا ته وائی تاسوخومسلمانان وئی تاسو ته اسلام څه فائده درکړه؟تاسو خو مونږ سره په دوزخ کښې سوزئی. هغوی به جواب ورکړی اوزمونږ ګناهونه وو دهغې په وجه مونږ راګيرکړې شو الخ. په دې کښې داهم دی چه ددوی دخلاصيدو په وخت کښې به مشرکان وائی چه افسوس مونږ مسلمانان وو اود دوی په شان د دوزخ نه خلاص شوې وې(٣)بيا حضور ﷺ ﴿اعوذبالله من الشيطن الرجيم﴾ لوستلو سره دسورت دشروع نه د ﴿مُسْلِمِينَ﴾پورې تلاوت اوفرمائيلو هم دا روايت په بل سند سره نقل دې په هغې کښې د ﴿بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ﴾ لوستلو په ځای د اعوذ ذکردې

**د ګناهګارانو دپاره د شفاعت اجازت:-** بل روايت کښې دی چه دې مسلمانانو ګناهګارانو ته به مشرکان وائی تاسوخو په دنياکښې دا خيال کولو چه تاسود الله تعالی دوستان ئی نو دا بيا مونږ سره دلته څنګه ئې؟ دې اوريدو سره به الله تعالی د هغوی د شفاعت اجازت اوکړی نو فرښتې انبياء او مؤمنان به شفاعت کوی او الله تعالی به هغوی د دوزخ نه راوباسی. هم دا معنی د دې آيت ده اوچه کله داخل جنت ته لاړشی نودهغوی په مخونوباندې به لږ شان توروالې وی پدې وجه به هغوی ته دوزخيان وئيلې شی. بيابه دوی دعاکوی چه ياالله زمونږ نه دا لقب هم لرې کړه.دجنت په يونهر کښې به دغسل کولوحکم اوشی اوهغه نوم به هم د دوی نه لرې کړې شی.(٤)

ابن ابی حاتم کښې دی رسول الله ﷺ فرمائي بعضې خلق به اُور د هغوی د زنګونونو پورې راګيرکړی بعضې د پنډو پورې او بعضې دستې پورې څنګه چه د هغوی ګناهونه وی اوڅنګه چه د هغوی عملونه

---

١) الطبری: ١٤/٣.

٢) المعجم الاوسط:٧٧٨٩.

٣) مجمع الزوائد:٤٥/٧، حاکم:٢٤٢/٢.

٤) المعجم الاوسط: ٨١٠٦ وهوحديث حسن.

بعضې به د يوې مياشت سزا تيرولونه پس راوځي اود ټولو نه د اوږدې مودې والا سزا تيرونکې به هغه دوزخي وي څومره موده چه د دنيا ده يعنې د دنيا د اولې ورځ نه واخله د دنياد آخرې ورځې پورې. كله چه الله ﷺ دهغوی دراوبستلواراده اوکړی هغه وخت به یهودیان اونصاری دنوروددینونووالا دوزخیان دې اهل توحيد ته به وائي تاسو په الله تعالى باندې دهغه په كتابونوباندې اودهغه په رسولانوباندې ايمان راوړې وو بياهم نن مونږ اوتاسو په دوزخ كښې يوشان يونو الله ﷺ ته به ډيره غصه ورشي دوی ته به په بل څيز دومره غصه نه وي ورغلې بيا به داموحدين د دوزخ نه راوباسي اودجنت يونهرله به ني راولي(١)دادې فرمان په(ربما يود)كښې .بيادغصې په توګه فرمائي چه دوی په خوراك څښاك كښې مزې كونكې پريږدئې آخردوی خائ دوزخ دې.تاسوخورئې څكئ ستاسو مجرم كيدل ثابت شوی دی. دوی خپلو لرې لرې خواهشاتو د توبې ويستلونه اود الله تعالى طرف ته د تيښېدلونه غافل ساتلې دی اوډير زربه ورته حقيقت معلوم شي.

مونږ يوكلې ته دليلونه رسول اودمقرروخت نه وراندې نه تباه كوواوچه كله مقرروخت راشي نوبيا روستوالې اووراندېوالې ناممكن دی. په دې كښې اهل مكه ته خبرداری دې چه هغوی دې د شرك او الحاد نه د پيغمبرﷺ د مخالفت نه منع شي گني د هلاكت حقداربه شي او په خپل وخت به تباه كړی شي.

| وَقَالُوا يٰٓاَيُّهَا الَّذِىْ | نُزِّلَ | عَلَيْهِ | الذِّكْرُ | اِنَّكَ | لَمَجْنُوْنٌ⑥ |
|---|---|---|---|---|---|
| اووايې دا خلق اے هغه سړيه اچې نازل شوی دی | په هغه باندې | | ذكر | بيشكه ته | اخامخا ليونې ئې |
| اواووايې اودوئ وائي چې ائې هغه سړيه! چې په تا قرآن نازل شوی دې!ته خو تيار ليونې يې!كه چرې ته رشتيني يې | | | | | |

| لَوْمَا تَاْتِيْنَا بِالْمَلٰٓئِكَةِ | اِنْ كُنْتَ | مِنَ الصّٰدِقِيْنَ⑦ | مَا نُنَزِّلُ | الْمَلٰٓئِكَةَ |
|---|---|---|---|---|
| ولې نه راولې ته فرښتې | كه چرې ئې ته | دصادقانو نه | نه نازلوو مونږ | فرښتې |
| نو مونږ ته فرښتې ولې نه راولې! .........(ورته اووايه) مونږ فرښتې صرف په حقې خبرې سره رالېږو | | | | |

| اِلَّا بِالْحَقِّ | وَمَا كَانُوْٓا | اِذًا | مُّنْظَرِيْنَ⑧ |
|---|---|---|---|
| مګر دحق سره | اونه به وی دا خلق | په دغه وخت كښې | مهلت وركړی شوی |
| | | | |
| اوهغه وخت به دوئ ته هيڅ مهلت نشي وركولې | | | |

قوله تعالى:- وَقَالُوا يٰٓاَيُّهَا الَّذِىْ نُزِّلَ عَلَيْهِ الذِّكْرُ

**دكافرانو سركشي ضداو كبر**:- دكافرانوكفرد هغوی سركشي اود ضدبيان كولې شي چه هغوی به د ټوقو مسخرو په توګه رسول الله ﷺ ته وئيل چه اې هغه سړيه چه د دې خبرې دعوی كونكې ئې چه په تاباندې قرآن كريم د الله تعالى كلام نازليږی مونږخو ګورو ته خو بالكل پاګل ئې چه د خپلې تابعدارئې د پاره مونږ رابلې اومونږ ته وائې چه دخپل پلار نيكه دين پريږدو.كه رښتونې ئې نو ته مونږ ته فرښتې ولې نه راولې؟ چه ستا صداقت مونږ ته بيان كړی. فرعون هم دا وئيلې وو﴿فَلَوْلَآ اُلْقِيَ عَلَيْهِ اَسْوِرَةٌ مِّنْ ذَهَبٍ﴾ چه په ده (موسى)باندې دسرو زرو بنګړی ولې نه دی راچولې شوې.ده سره يوځائ فرښتې ولې نه دی راغلې؟ درب دملاقات منكرانو آواز اوچت كړوچه په مونږ باندې فرښتې ولې نه نازليږی اوياكه داسې شوې وې چه مونږپخپله پروردګارليدلې وې. په حقيقت كښې دوی په كبر اولونې باندې راغله اوډيرسركشه شول.دفرښتود كتوچه كله ورځ راشي په هغه ورځ به دې ګناهګارانوته هيڅ خوشحالي نه ملاويږی.

---

(١) ابن ابی حاتم

دلته هم ارشاد دي چه مونږ فرښتې دحق سره نازلوو يعني رسالت ياعذاب سره خو بيا به كافرانو ته هيڅ مهلت نه ملاوېږي.

| اِنَّا نَحۡنُ نَزَّلۡنَا الذِّكۡرَ وَاِنَّا لَهٗ لَحٰفِظُوۡنَ ﴿٩﴾ |
|---|
| بيشكه مونږه \| نازل كړې دي \| دا ذكر او بيشكه مونږه \| هغه لره \| خامخا حفاظت كونكي يو \| |
| بيشكه دا قرآن مونږ نازل كړې دي اوهم مونږ د دې حفاظت كونكي يو \| |

**قوله تعالى:-** اِنَّا نَحۡنُ نَزَّلۡنَا الذِّكۡرَ وَاِنَّا لَهٗ لَحٰفِظُوۡنَ ﴿٩﴾
دا ذكر يعني قرآن پاك هم مونږ نازل كړې دې ددې دحفاظت ذمه واري هم زمونږ ده. هميشه به د بدلون رابدلون نه محفوظ وي.

**د ضمير دويمه مرجع:**-بعضې واني چه د(**له**)ضمير مرجع نبي كريم ﷺ دې يعني قرآن پاك هم دالله تعالى نازل كړې شوې دى اودنبي ﷺ حفاظت كونكې هم هغه دې. لكه چه ارشاد دې ﴿وَاللّٰهُ يَعۡصِمُكَ مِنَ النَّاسِ﴾ [1] تابه دخلقودتكليف رسولونه الله تعالى محفوظ ساتي خواولنني معنى اولى ده اودعبارت ظاهري رواني هم دې ته ترجيح وركوي.

| وَلَقَدۡ اَرۡسَلۡنَا مِنۡ قَبۡلِكَ |
|---|
| \| او بيشكه ليږلي دي مونږه \| مخكښې ستانه |
| اوبيشكه مونږ ستا نه وړاندې |
| فِيۡ شِيَعِ الۡاَوَّلِيۡنَ ﴿١٠﴾ وَمَا يَاۡتِيۡهِمۡ مِّنۡ رَّسُوۡلٍ اِلَّا كَانُوۡا بِهٖ |
| په ډلودرومبنو خلقو كښې\| اونۀ به راتلو هغوئ ته\| يو رسول \| مګر ووُبه هغوئ\| چې په هغه پورې به نې |
| پخوانو خلقو ته هم پيغمبران ليږلي وو\|هغوى ته چې به كوم پيغمبر هم راغلو نو هغوى به ورپورې |
| يَسۡتَهۡزِءُوۡنَ ﴿١١﴾ كَذٰلِكَ نَسۡلُكُهٗ فِيۡ قُلُوۡبِ الۡمُجۡرِمِيۡنَ ﴿١٢﴾ لَا يُؤۡمِنُوۡنَ |
| ټوقې كولې\| دارنګې \| ورننباسو مونږه داذكر\| په زړونو دمجرمانو كښې\| هغوئ ايمان نۀ راوړي |
| ټوقې كولې \| دغه شان مونږ دا(ټوقې) د هغه مجرمانو په زړونو كښې ورننباسو\| كوم چې په |
| بِهٖ وَقَدۡ خَلَتۡ سُنَّةُ الۡاَوَّلِيۡنَ ﴿١٣﴾ وَلَوۡ فَتَحۡنَا عَلَيۡهِمۡ بَابًا |
| په دې باند\|اوتيره شوى ده\| طريقه \| درومبنو خلقو\| اوكه پرانستې وې مونږه\| په هغوئ\| يو دروازه |
| (قرآن پاك) ايمان نه راوړي \| اودپخوانو خلقو ته سره داسې طريقه راروانه ده\| اوكه مونږ دوئ ته |
| مِّنَ السَّمَآءِ فَظَلُّوۡا فِيۡهِ يَعۡرُجُوۡنَ ﴿١٤﴾ لَقَالُوۡٓا |
| د آسمان نه\| اوشروع كړې وه هغوئ\| په هغې كښې\| چې بره ختلې\| نو خامخا به نې وئيلي وو\| بيشكه |
| د آسمان دروازې پرانيزو\| او دوئ په هغې كښې بره اوخيژي \| ...... .. ..نو بيا به هم دوى دا وائي چې |

[1] ٥/المائدة:٦٧.

| سُكِّرَتْ | | | | قَوْمٌ | مَّسْحُورُونَ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې تړلې شوي دي يعني دوكه كيږي | سترګې زمونږه | بلكه | مونږه | قوم يوا | چې جادو راباندشوي دي |
| زمونږ نظر بندي اوكړې شوه | | ..................بلكه په مونږ خو جادو شوي دي | | | |

**قوله تعالى:-وَمَا يَأْتِيهِم مِّن رَّسُولٍ إِلَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِءُونَ**

**انبياء كرام عليهم السلام پورې دټوقو ولو نتيجه:-** خپل نبي ﷺ ته تسلي وركوي چه څنګه داخلق تا دروغ ګڼړي دغه شان هغوي وړاندېني پيغمبران عليهم السلام هم دروغ ګڼړلي وو.دهرامت د رسول تكذيب شوي دي اوهغه پورې ټوقې مسخرې هم شوي دي.دضدي او كبرژنوخلقو په زړونو كښې د هغوي د حد نه زيات شوي ګناهونوپه سبب د رسول تكذيب كول خاڼ نيولې دي.

**مجرمان څوك دي؟** دلته د مجرمانونه مراد مشركان دي هغوي هډوحق نه قبلوي .دمخكنوخلقو سره زمونږعادت دهغوي په مخكې دې څنګه چه هغوي هلاك اوبرباد كړې شواود هغوي پيغمبرانو خلاصې بيا موندواوايماندارو عافيت حاصل كړو.هم هغه نتيجه دې دوي هم ياد اوساتي د دنيا اوآخرت ښيګړه د نبي كريم ﷺ په تابعدارئي اود دواړو جهانو رسوائي د نبي كريم ﷺ په مخالفت كښې ده

**قوله تعالى:-وَلَوْ فَتَحْنَا عَلَيْهِم بَابًا مِّنَ السَّمَاءِ**

**دايمان نه راوړو دپاره مختلفې بهانې كول:-** دهغوي د ضدسركښئ خان خودلواوباطل پرستئ خو دا حال دې كه فوض كړه دهغوي دپاره د آسمان دروازه كولاوكړې شي اودوي هلته اوخيژولې شي نوبيا به هم دوي حق ته حق اونه واني بلكه هغه وخت به هم اټكلې لګوي چه زمونږ نظر بندي كړې شوې وه،سترګې راله دهوكه كړې دي جادو نې كړې دې نظرئي رانه اخستې دې دهوكه كولې شي بې وقوفان مو جوړوي

| وَلَقَدْ جَعَلْنَا | فِي السَّمَاءِ | بُرُوجًا | وَزَيَّنَّاهَا | لِلنَّاظِرِينَ |
|---|---|---|---|---|
| اوخامخا جوړې كړې مونږه | په آسمان كښې | مضبوط قلاګانې | اوښائيسته كړې مونږه هغه | دپاره دكتونكو |
| اومونږ په آسمان كښې غټې غټې ستوري جوړكړي دي \| اوهغه مود كتونكو دپاره ښائسته كړې دي | | | | |

| وَحَفِظْنَاهَا | مِن كُلِّ شَيْطَانٍ | رَّجِيمٍ | إِلَّا مَنِ | اسْتَرَقَ السَّمْعَ |
|---|---|---|---|---|
| اومحفوظ كړې مونږه هغه | د هر شيطان | رټلي شوي نه | سوادهغه شيطان نه | چې غلا كړې \| خبره |
| اوهغه مود هررټلي شوي شيطان نه محفوظ كړې دي \| مګر څوك چې په غلا خبره آور بدل غواړي | | | | |

| فَأَتْبَعَهُ | شِهَابٌ | مُّبِينٌ | وَالْأَرْضَ | مَدَدْنَاهَا | وَأَلْقَيْنَا |
|---|---|---|---|---|---|
| نو وريسې شي په هغه پسې | شغله | روښانه | اوزمكه | خوره كړه مونږه هغه | اوغورزول مونږه |
| نو روښانه شغله وريسې شي \| اومونږ زمكه خوره كړې ده \| اومونږ به دې كښې | | | | | |

| فِيهَا رَوَاسِيَ | وَأَنبَتْنَا | فِيهَا | مِن كُلِّ شَيْءٍ | مَّوْزُونٍ |
|---|---|---|---|---|
| په هغې كښې غرونه | او رااوخيژول مونږه | په هغې كښې | د هر څيز | اندازه كړې شوي نه |
| غرونه پيدا كړې دي \| او په هغې كښې مو هرقسم څيزونه په اندازه اندازه راټوكولي دي | | | | |

| وَجَعَلْنَا | لَكُمْ | فِيهَا | مَعَايِشَ | وَمَن | لَّسْتُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوپيدا كړل مونږه | ستاسو دپاره | په هغې كښې | دژوند تيرولو سامانونه | اودهغه چا دپاره | چې نه يئ تاسو |
| اوپه هغې كښې موستاسو دپاره د ژوندتيرولو سامان پيدا كړې دي \| اوهغه چا دپاره هم چې تاسو د هغوي | | | | | |

| لَهٗ | بِرٰزِقِيْنَ ۝ |
| --- | --- |
| هغه لره | رزق ورکونکی |
| دپاره د روزئ انتظام نه کوئ | |

قوله تعالى:- وَلَقَدْ جَعَلْنَا فِي السَّمَاءِ بُرُوجًا وَزَيَّنَّاهَا لِلنَّاظِرِينَ ۝

**د آسماني برجونونه څه مراد دي ؟:-** دااوچت آسمان چه په ولاړو اوګرځيدونکو ستورو باندې ښائسته کړې شوې دې د دې پيداکونکې هم الله تعالىﷻ دې. ځوك هم چه دا په غور او فکر سره اوګوري نو هغه د قدرت د عجائباتو او د عبرت د نښو نه د خپل ځان د پاره ډير څه حاصلولې شي.

①د بروج نه مراد دلته ستوری دی.لکه چه بل آيت کښې ارشاد دې ﴿تَبٰرَكَ الَّذِيْ جَعَلَ فِي السَّمَآءِ بُرُوْجًا﴾ (١) د بعضووينا ده چه دې نه مراد دسپوږمنی او نمر منزلونه دي② عطيه رحمه الله وائی چه هغه ځايونه چرته چه څوکنې او پهرې دی اود کوم ځائ نه چه سرکښه شيطانان ويشتلې شی دې دپاره چه هغه داوچتو درجود فرښتو خبرې اترې وانوريدې شی. کله چه وړاندې کيږی نو شغله وريسې راتوپ وهی. کله دوی دلاندې والاپه غوږ کښې واچوی دې نه وړاندې د هغه کارختم شی اوکله ددې په خلاف هم کيږی.

**ددې قول تائيد په يوحديث سره:-** لکه چه د صحيح بخاری په حديث کښې صراحتًا روايت دې کله چه په آسمان کښې الله تعالی د څه څيز باره کښې فيصله کوی نو فرښتې په عاجزئی سره خپلې وزرې لاندې کوی لکه زنځير چې په کانړی وی. بيا چه کله د هغوی زړه په تسلّی شی نو تپوس کوی چه ستاسو د رب څه ارشاد اوشو؟ هغوی وائی چه څه ئی هم فرمائيلی دی حق دی او هم هغه ډير اوچت او ډير لوئ دې. د فرښتو خبرې په غلاوېته سره اوريدو له جنات بره ختل اودغه شان به د يود پاسه بل وو. د حديث راوی حضرت سفيانﷺ دلاس په اشاره سره داسې خودل چه دښې لاس ګوتې ارتې کړې اويوه ئی د بلې د پاسه کيخودې. د دې اوريدونکو دا سلسله خو به کله کله شغلې وړاندې نه ختم کړې چه هغه د خپل ملګری په غوږ کښې اووائی نو هغه هم په هغه وخت باندې لاړشی. اوکله داسې کيږی چه دې هغه ته اوهغه د خپل ځان نه لاندينې ته اودغه شان سلسله په سلسله اورسوی اوهغه خبره زمکې ته راشی اود جادوګر او کاهن غوږونه د هغې نه خبر شی نوبيا هغه کاهن دې سره سل دروغ يوځائ کړی اود خلقو نه فائدې اخلی. کله چه هغه يوه آسمانی خبره اتفاقی ده ته راورسی او صحيح معلومه شی نو په خلقو کښې د هغه دهوښيارتيا مشهورتيا کيږی چه ګوره فلانکی په فلانکنی ورځ داونيلی وو بالکل رښتيا راووتل.(٢)

**وړاندې عقلی دليل ذکر دې:-** بياالله تعالی د زمکې ذکر کوی چه هم هغه دا پيدا کړې ده خوره کړې ده په دې کښې ئې غرونه جوړکړی دی ځنګل او ميدان ئی په کښې قائم کړی دی. فصلونه او باغونه ئی راټوکولې دی او ټول څيزونه ئی په اندازه او په مناسب او په موزونوالی د هرې يوې زمکې د هر يو موسم اوهريوملك په لحاظ سره بالکل ټيك پيدا کړی دی کوم چه د بازار د ښائست او د خلقو د خوشحالئی څيزونه دی. په زمکه کښې قسم قسم پيدآوار هم هغه پيدا کړی دی او هغه ئی هم جوړکړی دی دکومو چه تاسو رزق رسونکې نه ئې يعنی ځاروی اوځناور وينځې غلامان وغيره. نو جدا جدا څيزونه او قسم قسم اسباب اود هرقسم آرام او راحت هغه تاسو له درکړل. د ګټې طريقې ئی تاسو ته

---

(١) ٢٥/الفرقان:٦١.

(٢)صحيح بخاری کتاب التفسير سورة الحجر باب ﴿إلا من استرق السمع فاتبعه شهاب مبين﴾ ٤٧٠١، ترمذی ٣٢٢٣، ابن ماجه ١٩٤، ابن حبان ١٣٦، مسندحميدی ١١٥١ الايمان لابن منده ٧٠٠.

اوخودلي.خناور تی ستاسو لاندې کړل چه خورنی هم سورلی هم کونی اووینخو او غلامانو د:کونو باندې آرام او مزه حاصله کړنی د هغوی رزق هم ستاسو په ذمه نه دې بلکه د هغوی رزق هم الله تعالی ورکوی. گټې تاسوکونی او رزق دې هغه ورکوی.فسبحانه مااعظم شانه.

وَاِنْ مِّنْ شَيْءٍ اِلَّا عِنْدَنَا خَزَآئِنُهٗ

| او نشته هیڅ څیز | مګر زمونږ سره | خزانې دهغې دی

| او هیڅ څیز داسې نشته چې د هغې خزانې مونږ سره نه وی

وَمَا نُنَزِّلُهٗٓ اِلَّا بِقَدَرٍ مَّعْلُوْمٍ ۞ وَاَرْسَلْنَا الرِّيٰحَ لَوَاقِحَ

اونهٔ نازلوؤمونږه هغه څیز| مګر| په اندازه | معلومې سره| اوراولیږلي مونږه| هواګانی| بار داری

اومونږ هغه په مناسب مقدار سره نازلوؤ| او مونږ د اوبو نه ډک بادونه رالیږو |

فَاَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَسْقَيْنٰكُمُوْهُ ۚ وَمَآ اَنْتُمْ لَهٗ

نو نازلې کړې مونږه| داسمان نه | اوبه| نوڅکوؤ مونږه په تاسودغه اوبه| اونهٔ یئ تاسو| دغه اوبولږ

او مونږ د اسمان نه اوبه راوروؤ | بیا مونږ په تاسو باندې هغه اوبه څکوؤ | او دغه اوبه تاسو پخپله

بِخٰزِنِيْنَ ۞ وَاِنَّا لَنَحْنُ نُحْيٖ وَنُمِيْتُ وَنَحْنُ الْوٰرِثُوْنَ ۞

خزانه کونکی | او بیشکه خامخا مونږه| ژوندی کول کوؤ| او مړه کول کوؤ| او مونږه وارثان یو

راجمع کولي نشئ | او بیشکه هم مونږ ژوندی کول کوو او مړه کول کوو| اوهم مونږ وارثان یو

وَلَقَدْ عَلِمْنَا الْمُسْتَقْدِمِيْنَ مِنْكُمْ وَلَقَدْ عَلِمْنَا الْمُسْتَاْخِرِيْنَ ۞

او معلوم دی مونږ ته | رومبنی خلق | ستاسو نه | او معلوم دی مونږه ته | روستو راتلونکی خلق

اومونږ په تاسو کښې هغه خلق پیژنوکوم چې وړاندې تیر شوی دی |او کوم چې روستو راتلونکی دی

وَاِنَّ رَبَّكَ هُوَ يَحْشُرُهُمْ ۭ اِنَّهٗ حَكِيْمٌ عَلِيْمٌ ۞

او بیشکه رب ستا | خاص هغه | به راجمع کړی دا خلق | بیشکه هغه | حکمت والا | او پوهه دې

اوبیشکه ستارب به د اټول راجمع کوی | هغه صاحب د حکمت دې | په هرڅه عالم دې

**قوله تعالی:- اِلَّا عِنْدَنَا خَزَآئِنُهٗ**

**هرقسم خزانې الله تعالی سره دی:-** دټولوڅیزونو هم الله تعالی یوازې مالك دې. هریوکار په هغه باندې آسان دی د هرقسم څیزونو خزانې هم هغه سره دی. څومره کله کوم خایٔ او چرته چه غواړې نازلوی د خپلو حکمتونو عالم هم هغه دې دبند یګانودمصلحت نه هم خبر دې.دا صرف د هغه مهربانی ده ګنی څوك دی چه په هغه باندې زور اوجبر اوکړی. حضرت عبدالله ﷛ فرمائی چه هرکال باران برابر وریږی او تقسیم د الله تعالی په قدرت کښې دې.بیا حضور ﷺ هم دا آیت تلاوت کړو.دحکم بن عیینه نه هم دا قول مروی دې.

**د باران قطرو سره فرښتې هم راځي:-** وائی چه باران سره دومره فرښتې راکوزیږی دکومو شمیرچه د ټولو انسانانواوپیریانونه ډیردې.دیوې یوې قطرې خیال ساتی چه هغه چرته اووریدواوپه دې سره څه راوټو کیدل.بزارکښې دی چه د الله تعالی سره د څه خزانې دی؟ صرف کلام او خبرې چه اووائی شه نو اوشی. د دې یوراوی هم قوی نه دې. هواچلولوسره مونږ اوریځې په اوبوسره درنه وو. دې نه اوبه راساځی. هم



دغه هواګاني الوتو ونې بارداري وي پاڼې او تيغونه ترې راتوکيږي.اودا وصف هم په خيال کښې ساتلی چه دلته ئې د جمع صيغه راوړلې ده.او ريح عقيمه کښې وصف په وحدت سره کړې دي د پاره چه د کثرت نتيجه راوځي. بار داره کيدل کم نه کم د دوو ځيزونونه بغير ناممکن دی. هوا روانه وی اود آسمان نه اوبه رااوڅتوی او اوريځې ډکوی.

**د هواګانو قسمونه:-** يوه هوا وی چه په زمکه کښې پيداواری قوت پيدا کوی يوه هوا اوريځې درنه وی يوه هواوی چه ميوه داري ونې د ميوود ډکولوقابل کوی. په ابن جريرکښې په ضعيف سند سره يو حديث نقل دې چه جنوبي هواګاني جنتی وی په دې کښې دخلقو ګټه وی اوددې ذکريه کتاب الله کښې دی[1] دمسندحميدی په حديث کښې دی د هواګانو نه اووه کاله پس الله تعالی په جنت کښې يوه هوا پيدا کړې ده چه په يوه دروازه باندې رابندکړې شوې ده هم ددغه بند دروازې نه تاسو ته هغه هوا درسی که هغه کولاوکړې شوه نو د زمکې او آسمان ټول ځيزونه به پرمخې راوړوی.دالله تعالی په نيزد د هغې نوم "زيب" دې تاسو هغې ته جنوبي هوا وائې.[2]

بيافرمائی چه دې نه پس مونږ په تاسو باندې خوږې اوبه راوروو چه تاسو ئې اوڅکئې اوبه کارئی راولئې که مونږ غواړو نودا به تروې او ترخې کړو لکه څنګه چه په سورت واقعه کښې بيان فرمائيلې شوی دی دا کومې خوږې چه تاسو څکئې دا د اوريځو نه راورونکی هم تاسوئې؟ که مونږ يو؟ که مونږ غواړو نودا به تره وې کړو د حيرانتياخبره ده چه تاسو زما شکريه نه ادا کوئی.[3] بل روايت کښې دی چه هم دې الله تعالی ستاسو د پاره د آسمان نه اوبه راکوزې کړې دی.[4] تاسو د هغې خازن يعنی مانع ياحافظ نه ئی هم مونږ ئې راوروو مونږ چه چرته غواړو رسوو چرته چه غواړو محفوظ کوو.که مونږ اوغوړو نو په زمکه کښې به ئې ورختبې کړو دا صرف زمونږ رحمت دې چه دا مو اووروليې بچ موکړې خوږې موکړې صفامو کړې چه تاسوئې اوڅکئ او په خپلو څناوروباندې اوڅکوئی خپل فصلونه او باغونه خروب کړئی خپل ضرورتونه پوره کړئی مونږ د مخلوق شروع او بيا د دې په واپس راګرځولو باندې قادريو. ټول مو د عدم نه په وجودکښې راوستل يعنی د نيشت نه مو شته کړل دا ټول به بيا هم مونږ معدوم کوو بيا به د قيامت په ورځ دا ټول راپاسوو کينوو به ئې د زمکې او د زمکې د خلقو وارث هم مونږ يو. ټول به هم زمونږ طرف ته راواپس کولې شی. زمونږ د علم هيڅ انتها نشته اول او آخرټول زمونږ په علم کښې دی نو د وړاندينونه مراد د دې زمانې نه مخکينی خلق دی. دآدم ﷺ پورې اود روستونونه مراد د دې زمانې او د راتلونکی وخت خلق دی. د مروان بن حکم ﷺ نه روايت دې چه بعضې خلق به د ښځو په وجه په روستنوصفونوکښې پاتې کيدل نو دا آيت نازل شو[5]په دې باره کښې يوغريب حديث هم وارد شوې دې ابن جريرکښې د ابن عباس ﷺ نه روايت دې چه يوه ډيره ښائسته ښځه به مانځه له راتله نو بعضې مسلمانان به د دې وجه چه چرته نظر ئې اوچت نه شی وړاندې تلل او بعضې به د دوی په خلاف باندې نور هم روستوکيدل اود سجدې په حالت کښې به ئې د خپلو لاسونو لاندې کتل نودا آيت نازل شو[6]خو په دې روايت کښې سخت نکارت دې دابوالجوزا قول ددې آيت

---

[1] الطبری ٨٨/١٧

[2] مسند حميدی.

[3] ٥٦ واقعه: ٦٨،٧٠.

[4] ١٦ النحل: ١٠.

[5] الطبری: ٢٦/١٤.

[6] ترمذی کتاب التفسير، باب ومن سورة الحجر ٣١٢٢، نسائی: ٨٧١، ابن ماجه: ١٠٤٦، مسند طيالسی: ١٢١٢، بيهقی: ٩٨/٣

باره کښې نقل دي چه دمانځه په صفونوکښې وړاندې کیدونکی اوروستوکیدونکی داصرف دهغه
قول دې دابن عباس رضی الله عنه په دې کښې ذکرنشته.امام ترمذی رحمه الله فرمائی چه هم دازیات مشابه دی والله اعلم
د محمد بن کعب رحمه الله په وړاندې چه به کله عون بن عبدالله رحمه الله دا ونیل نو هغوی به فرمائیل چه دا
مطلب نه دې بلکه د وړاندینونه مراد دا دې کوم چه مره شوی دی او روستونونه مراد دا اوس پیداشوی
او بیا پیدا کیدونکی دی. ستا رب به ټول راجمع کړی هغه د حکمت او علم مالك دې. دی اوریدو سره
حضرت عون رحمه الله اوفرمائیل الله تعالی دې تاله توفیق اوجزائې خیر درکړې.

وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ مِنْ صَلْصَالٍ مِّنْ حَمَاٍ مَّسْنُوْنٍ ۝ وَالْجَآنَّ
اوبه تحقیق سره جوړ کړو مونږه| انسانان| دوچ ټیکری نه| دختې نه| خمیره شوی نه|اوپیرې چې وو
اوبیشکه مونږ انسان د وچ ټنګیدلې خمبیرې ختې نه پیدا کړې دې | اوپیریان

خَلَقْنٰهُ مِنْ قَبْلُ مِنْ نَّارِ السَّمُوْمِ ۝ وَاِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلٰٓئِكَةِ
پیدا کړې ووْمونږ هغه| مخکښې ددې نه| د شغلې دوورنه| اوکله چې| اوونیل| رب ستا| فرښتو ته
موددې نه وړاندې د بې لوګی اور نه پیدا کړې وو| ..........اوکله چې ستا رب فرښتو ته اوونیل

اِنِّیْ خَالِقٌ بَشَرًا مِّنْ صَلْصَالٍ مِّنْ حَمَاٍ مَّسْنُوْنٍ ۝ فَاِذَا
چې بیشکه زهٔ| پیدا کونکې یم| یو بشرلره| دوچ ټیکری نه| توری ختې نه| خمیره شوی نه| نوکله چې
چې بیشکه زه کړنګیدونکې خمبیرې ختې نه انسان پیدا کوونکې یم | ...........نوکله چې زهٔ هغه

سَوَّیْتُهٗ وَنَفَخْتُ فِیْهِ مِنْ رُّوْحِیْ فَقَعُوْا لَهٗ سٰجِدِیْنَ ۝
ماپوره برابر کړو هغه | اوماپوك وهو| په هغه کښې| دروح خپل نه| نو پریوزئ تاسو| هغه ته | سجده کونکې
چې زهٔ هغه برابر جوړ کړم |اود خپل طرفنه په کښې روح پوك وهم| نو تاسو ورته په سجده پریوځئ

فَسَجَدَ الْمَلٰٓئِكَةُ كُلُّهُمْ اَجْمَعُوْنَ ۝ اِلَّآ اِبْلِیْسَ ؕ اَبٰٓی اَنْ یَّكُوْنَ
نوسجده اوکړو | فرښتو | ټولو | په جمع | مګر | ابلیس | هغه انکار اوکړو| چې شې
نو ټولو فرښتو په یو خل سجده اوکړه | خویو ابلیس اونه کړه | هغه سجده کونکو سره

مَعَ السّٰجِدِیْنَ ۝ قَالَ یٰٓاِبْلِیْسُ مَا لَكَ اَلَّا تَكُوْنَ
دسجده کونکو سره | نواوونیل الله | اے ابلیس | څه ووْ | تالره | چې نهٔ شوې ته ملګرې
دشاملیدو نه انکار اوکړو | الله ﷻ اوفرمائیل ابلیسه دا په تاڅه اوشول چې په سجده کوونکو

مَعَ السّٰجِدِیْنَ ۝ قَالَ لَمْ اَكُنْ لِّاَسْجُدَ لِبَشَرٍ خَلَقْتَهٗ
دسجده کونکوسره|اوونیل شیطان| نهٔ یم زهٔ| چې اوکړم سجده| داسې بشرته| چې تاپیدا کړې دې هغه
کښې شامل نه شوې |هغه اوونیل چې دانه شی کیدې چې زهٔ داسې انسان ته سجده اوکړم| چې هغه دې د

مِنْ صَلْصَالٍ مِّنْ حَمَاٍ مَّسْنُوْنٍ ۝
دټیکری نه | چې دختې | خمیره شوی نه |
دکړنګیدونکې خمبیرې ختې نه پیدا کړې دې |



**قوله تعالى:- وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنسَانَ ٧**

**د انسان د پیدائش ذکر:-** ﴿صَلْصَالٍ﴾ نه مراد اوچه خاوره ده هم ددې په شان آیت ﴿خَلَقَ الْإِنسَانَ مِن صَلْصَالٍ كَالْفَخَّارِ ۝ وَخَلَقَ الْجَانَّ مِن مَّارِجٍ مِّن نَّارٍ﴾[1] دې.دا هم روایت دې چه د بوټی والا خاورې ته حما وائی مسنون وائی متینې ته.ابن عباس ؓ وائی لمده خاوره.د نورو نه روایت دې چه بوټی ناکه خاوره او اخلې شوې خاوره.

**د پیری د پیدائش ذکر:-** د انسان نه وړاندې مونږ پیریان د سوزونکی اُور نه پیدا کړی دی. سموم وائی د اورګرموالی ته حرور وائی دورځې ګرموالی ته.داهم ونیلې شودی چه دګرمۍ راګیرول دهغې ګرموالی اویایمه حصه ده کوم نه چه پیریان پیدا کړې شوی دی. ابن عباس ؓ وائی چه پیریان د اُور د شغلو نه جوړکړې شوی دی یعنی د ډیر بهتر اُورنه. عمروبن دینار ؒ وائی چه د نمر د اُور نه. په صحیح کښې واقع دی چه فرښتې د نور نه پیداکړې شوی دی اوپیریان د شغلې والا اُور نه او آدم ؑ د دې نه کوم چه ستاسو په وړاندې بیان کړې شو.[2] د دې آیت نه مراد د حضرت آدم ؑ فضیلت او شرافت اود هغه د عنصرد پاکوالې او طهارت بیان دې.

**د فرښتو حضرت آدم ؑ ته سجده کول اود ابلیس انکارکول:-** الله تعالی بیان فرمانی چه د حضرت آدم ؑ د پیدائش نه وړاندې د هغه د پیدائش ذکر الله تعالی فرشتوکښې اوکړو اود پیداکولونه پس د هغه بزرګی ښکاره کولود پاره د هغه په وړاندې په فرښتو باندې سجده اوکړه. دا حکم ټولو خو اومنو ولې ابلیس لعین انکار اوکړو اوکفرحسدانکار کبرفخر اوغرور ئې اوکړو. صفائی اووئیل چه زه د اُور نه پیدا کړې شوې یم اودې د خاور نه. زه خود ده نه بهتریم د ده په وړاندې ولې ټیټ شم؟ داخو تاده له په ماباندې بزرګی ورکړه خوزه به دې ګمراه کوم نوپریږدم به ئې.ابن جریردلته یوډیر عجیبه او حیرانونکې اثر واردکړې دې چه ابن عباس ؓ فرمائی کله چه الله تعالی فرښتې پیداکړې نوهغوی ته ئې اوفرمائیل چه زه دخاورونه انسان جوړونکې یم تاسو هغه ته سجده اوکړئې هغوی ونیل مونږ به داسې نه کوو نو هم په هغه وخت اُور هغوی اوسوزولې. بیا نورې فرښتې راپیداکړې شوې هغوی ته هم دا اوونیلې شو نوهغوی جواب ورکړو چه مونږ واوریده او اومنل خو ابلیس چه داولنو منکرانونه ووېخپل انکار باندې کلك ولاړ وو،خود دې ثبوت دهغه نه نشته.په ظاهره معلومیږی چه دا اسرائیلی روایت دې. والله اعلم.

قَالَ فَاخْرُجْ مِنْهَا فَإِنَّكَ

| اوونیل الله | نواوخه ته | ددې خانې نه | بیشکه ته

| الله ﷻ اوفرمائیل چې (جنت نه) اوخه | بیشکه ته

رَجِيمٌ ۝ وَإِنَّ عَلَيْكَ اللَّعْنَةَ إِلَىٰ يَوْمِ الدِّينِ ۝ قَالَ رَبِّ

رټلې شوې ئې | او بیشکه | په تاباند | لعنت دې | دورځې | دجزا پورې | اوونیل شیطان | اے ربه زما

رټلې شوې یې | اوپه تابه ترقیامته پورې لعنت وی | ..........هغه اووئیل آئې ربه

فَأَنظِرْنِي إِلَىٰ يَوْمِ يُبْعَثُونَ ۝ قَالَ فَإِنَّكَ

پس مهلت راکړه ماته | دهغه ورځې پورې | چې دوباره راپورته کړې کیږی دا خلق | اوونیل الله | نوبیشکه ته

ماته د هغه ورځې پورې مهلت راکړه چې دوی به دوباره ژوندی کیږی | | الله ﷻ اوفرمائیل (بېه ده)

---

[1] ٥٥/الرحمن: ١٤-١٥.

[2] صحیح مسلم کتاب الزهد باب فی احادیث متفرقة:٢٩٩٦، بیهقی:٣/٩، مسنداحمد:١٥٣/٦،مسنداسحاق بن راهویه:٧٨٦، مسندعبدبن حمید:١٤٧٩ او شعب الایمان ١٤٣.

مِنَ الْمُنْظَرِيْنَ ۝ اِلٰى يَوْمِ الْوَقْتِ الْمَعْلُوْمِ ۝ قَالَ رَبِّ

دمهلت ورکړې شوونه ئي | دهغه ورځي دوختة پورې | چي معلوم دې | اوونيل شيطان | اے ربه زما

تاته ترهغه ورځ پورې مهلت دې چي د هغې وخت ماته معلوم دې | شيطان اوونيل انې زما ربه

بِمَآ اَغْوَيْتَنِيْ لَاُزَيِّنَنَّ لَهُمْ فِي الْاَرْضِ

په سبب دهغې | چي بې لارې کړوتامالره | نوخامخا به ښائسته والې پيدا کوم زهٔ | دپاره ددوئ | په زمکه کښې

لکه څنګه چي تازه ګمراه کړم | نوزه به هم دغسې دوئ ته د مزکې په مخ (ګناهونه)

وَلَاُغْوِيَنَّهُمْ اَجْمَعِيْنَ ۝ اِلَّا عِبَادَكَ مِنْهُمُ الْمُخْلَصِيْنَ ۝

اوخامخابه بې لارې کوم زهٔ دوئ | ټول | ماسواد بندګانوستا | چي دهغوئ نه | خالص کړې شوې وی

ښائسته ښکاره کوم | اوستا د مخلص بندګانو نه سوا بهٔ نور ټول خامخا ګمراه کوم

قَالَ هٰذَا صِرَاطٌ عَلَيَّ مُسْتَقِيْمٌ ۝ اِنَّ عِبَادِيْ لَيْسَ لَكَ

اوونيل الله | دالاره ده | چي رارسی ماته | نيغه | بيشکه | بندګان زماچي دی | نشته | تالره

الله ﷻ اوفرمائيل چي زماطرف ته درارسيدو دا نيغه لاره ده | زما په بندګانو به يقينا ستا څه غلبه

عَلَيْهِمْ سُلْطٰنٌ اِلَّا مَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْغٰوِيْنَ ۝ وَاِنَّ

په هغوئ باند | طاقت | ماسوا | دهغه چانه | چي پيروی ئي اوکړه ستا | دبې لارې خلقو نه | اوبيشکه

نه وی | مګر په هغه خلقو چي پخپله ستا تابعداری کوی | اوګمراه شوې وی (نوهغوی به ستا تابعدار وی)

جَهَنَّمَ لَمَوْعِدُهُمْ اَجْمَعِيْنَ ۝ لَهَا سَبْعَةُ اَبْوَابٍ لِكُلِّ بَابٍ

دوزخ | خانې دوعدې دهغوئ دې | دټولو | ادی دغه دوزخ لره | اوه | دروازې | ادپاره دهرې دروازې

او دوزخ يقينا ددې ټولو د وعدې ځائې دې | د هغې اووهٔ دروازې دی | د هرې دروازې دپاره

مِّنْهُمْ جُزْءٌ مَّقْسُوْمٌ ۝

ددې ګمراهانو نه | يو حصه ده | مخصوص کړې شوی |

په دوئ کښې جدا جدا حصه مقرر ده |

قوله تعالي:- قَالَ فَاخْرُجْ مِنْهَا فَاِنَّكَ رَجِيْمٌ ۝

**ابليس دَ الله تعالی دَ دربار نه شړلې شوې دې** :بيا الله تعالی د خپل حکومت امر اوکړو چه نه نی څوك راحصارکړی اونه نی څوك روستوکړې شی چه ته د دې بهترين اواعلی ډلې نه لرې شه. نو رټلې شوې دې د قيامته پورې به په تاباندې ابدی اوهميشه لعنت وريږی.ونيلې شی چه هم هغه وخت د هغه شکل بدل شو او هغه ژړا وينا شروع کړهٔ. په دنياکښې دا ټولې ژړاګانې هم د دې شروع نه دی. مردود او مطرود يعنی سپك او رټلې شوې بيا دحسد د اُور نه سوزيدلې تمنا کوی چه هغه له دې د قيامته پورې وخت ورکړې شی هم دې ته يوم البعث ونيلې شوې دې. نود هغه دا درخواست منظورکړې شو او مهلت ورکړې شو.

**دابلیس ناپاکه وعده:-** دابلیس سرکشی بیانولې شی هغه په الله تعالی ګمراه کولوقسم خوړلوسره اوویل دا هم کیدې شی چه هغه دا وئیلي وی تازه ګمراه کړم نوزه به هم د آدم ﷺ د اولاد د پاره په دنیا کښې ستا نافرمانئی دومره ښائسته کړم او هغوی له به رغبت ورکولو سره ستا په نافرمانوکښې اخته کړم. تر کومې چه کیدې شي کوشش به کوم چه ټول دهوکه کړم خو ستا اخلاص مند بندیګان به زما لاس له نه شی راتلي. په یوبل آیت کښې هم دی چه تا ده له په ما باندې اوچتوالي ورکړو خو اوس به زه هم د ده اولادپسې اولګم که څه لږ شان راڼه بچ شی خو باقی به ټول ډوب کړم([1]) په دې باندې جواب ملاو شو چه ستاسود ټولو واپس کیدل خو هم زما طرف ته دی د اعمالوبدله به زه ضرور ورکوم. نیکانو ته نیکه او بدو ته بده. لکه چه ارشاد دې چه ستارب په شیش کښې دې.([2]) غرض دا چه واپس کیدل اود واپس کیدو لار هم د الله طرف ته ده.د ﴿عَلَیَّ﴾ یو قراءت ﴿عَلِیٌّ﴾ هم دې لکه آیت ﴿وَاِنَّهٗ فِیْۤ اُمِّ الْكِتٰبِ لَدَیْنَا لَعَلِیٌّ حَكِیْمٌ﴾ ([3])کښې دی.یعنی اوچت خواولنې قراءت مشهور دې.کوم بندیګان چه ما په هدایت باندې لګولې دی په هغوی باندې ستاهیڅ زور نشته اودا ده چه ستازورستا په تابعدارانو باندې دې دااستثنا منقطع ده.

**د یو نبی او ابلیس سوال و جواب:-**ابن جریرکښې دی چه د کلونه بهریه د انبیاؤکرامو جماتونه وو کله چه به هغوی دخپل رب نه یوخاص خبره معلومول غوښتل نو هلته به تلل اوچه کوم مونځ به نی په مقدر کښې وو ادابه کړواوسوال به نی کولو.یوه ورځ دیونبی اودهغه د قبیلې په مینځ کښې شیطان کیناستو هغه نبی درې ځل اوونیل ﴿اعوذبالله من الشیطن الرجیم﴾شیطان اوونیل اې دالله تعالی نبی آخر ته به زماد وار نه څنګه بچ کیږې؟ نبی اوفرمائیل چه ته ماته دااوښایه چه ته په بنیادم باندې په کوم یو وارسره غالب کیږې؟ آخرلوظ اوشو چه یوبل ته به صحیح څیز ښایو نودالله تعالی نبی اوونیل چه واوره دالله تعالی فرمان دې چه زما په خاص بندیګانو باندې ستا هیڅ اثر نشته په هغوی باندې دې چه پخپله ګمراه وی اوستا تابعداروی.دې دالله تعالی دښمن ونیل داتاخه اوونیل داخو زه ستادپیدا کیدونه وړاندې صرف پیژنم. نبی ونیل چه واوره دالله تعالی فرمان دې چه کله شیطانی حرکت وی نود الله تعالی نه پناه غواړنې هغه اوریدونکې اوپیژندونکې هم دې([4])والله ستاپه کش کړپ پوهیدوسره زه دالله تعالی نه پناه غواړم هغه ونیل رښتیا دی پدې وجه ته زما په جال کښې نه راګیریږې. د الله تعالی نبی اوفرمائیل چه ښه اوس ته اوښایه ته په بنیادم باندې څنګه غالب کیږې. هغه ونیل زه دې د غصې اوخواهش په وخت کښې راتپنګوم. بیا فرمائی چه څوك هم د ابلیس تابعداری اوکړی هغه دوزخی دې. هم دا ارشاد د قرآن د انکارکونکو د پاره سبب دې. بیا ارشاد دې چه د جهنم دیرې دروازې دی په هره دروازه باندې تلونکی ابلیسی دله مقرر ده د خپلو خپلو عملونو مطابق د هغوی د پاره د دوازو تقسیم شوې دې.

**د (سَبْعَةُ اَبْوَابٍ)مطلب اودهغو مخونه:-**حضرت علی رضی الله عنه یوځل په خپله خطبه کښې اوفرمائیل د دوزخ دروازې داسې دی یعنی دیود پاسه بله او هغه اووه دی. د یوې نه پس به بله دروازه او دغه شان به اووه واړه دروازې ډکې شی. عکرمه رحمه الله فرمائی چه اووه طبقې دی. ابن جریر د اووه دروازو دا نومونه خودلې دی. جهنم، لظی، حطمه، سعیره، سقر، جحیم، هاویه.

---

[1] ١٧/الاسراء:٦٢.

[2] ٨٩/الفجر:١٤.

[3] ٤٣/الزخرف:٤.

[4] ٧/الاعراف:٢٠٠.

د ابن عباس نه هم داشان روایت دې قتاده‌رحمه الله وائی چه دا دهغوی د عملونو په اعتبار دی. ضحاک‌رحمه الله
وائی مثلاً یوه دروازه د یهودو یوه د انصاری یوه د صابیانو یوه د مشرکانو کافرانو یوه د مجوسیانو
یوه د منافقانو او یوه د اهل توحید خود توحید والا ته د خلاصې امید دې باقی ټول نااميده دی.
ترمذی کښې دی رسول الله ﷺ فرمانی د دوزخ اووه دروازې دی په کوم کښې چه یوه د هغوی د پاره ده
څوک چه زما په امت باندې توره اوچته کړی(١)ابن ابی حاتم کښې دی چه حضور ﷺ د دې آیت تفسیر
کښې فرمانی چه د بعضو دوزخیانو د ګیټو پورې به اور وی،دبعضو دملا پورې دبعضو د ستبونو
پورې غرض د ګناهونو په اندازه به وی(٢)

| |
|---|
| إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنّٰتٍ |
| بیشکه\| پرهیزګار خلق به\| په جنت کښې وی |
| بیشکه پرهیزګاران به په باغونو اوچینو |
| وَعُيُونٍ ۝ اُدْخُلُوهَا بِسَلٰمٍ اٰمِنِينَ ۝ وَنَزَعْنَا |
| او په چینو کښې به وی\| ننوځئ دې ته \| په سلامتیا سره \| په امن سره \| او اوبه باسو مونږه |
| کښې اوسیږی\| (اوبه وئیلې شی) چې تاسو دې ته په امن اوسلامتیا سره داخل شئ\| اومونږ به |
| مَا فِي صُدُورِهِمْ مِّنْ غِلٍّ اِخْوَانًا عَلٰى سُرُرٍ |
| هغه \| چې په زړونو دهغوئ کښې وی \| څه کینه \| رونړه به وی \| ناست به وی په تختونو باندې\| |
| د دوئ په زړونو کښې چې کومه کینه وی هغه اوباسو \| د رونړو په شان به یو بل ته مخامخ |
| مُّتَقٰبِلِينَ ۝ لَا يَمَسُّهُمْ فِيهَا نَصَبٌ وَّمَا هُمْ |
| یو بل ته مخامخ \| نۀ به رسیږی هغوئ ته \| په هغې کښې \| څه تکلیف \| اونۀ به وی\| هغوئ |
| په تختونو ناست وی \| هلته به دوی ته هیڅ تکلیف نه رسیږی \| .............. اونه بۀ د هغې نه |
| مِّنْهَا بِمُخْرَجِينَ ۝ نَبِّئْ عِبَادِيْٓ اَنِّيْٓ اَنَا الْغَفُورُ |
| دهغې نه\| ایستلی کیدونکی\| خبر ورکړه\| بندګانوزماته\| چې بیشکه زۀ\| هم زۀ \| بخښونکې |
| بهرته ویستلې شی \| ............(ائی نبی) زمابندګانو ته خبر ورکړه \| چې زۀ ډیر بخښونکې یم |
| الرَّحِيمُ ۝ وَاَنَّ عَذَابِيْ هُوَ الْعَذَابُ الْاَلِيمُ ۝ |
| رحم کونکی یم\| اوبیشکه\| عذاب زما\| هم هغه\| عذاب \| دردناك دی \| |
| زیات رحم کونکې یم\| اوزما عذاب هم ډیر دردناک عذاب دی \| |

**قوله تعالی:-عَلٰى سُرُرٍ مُّتَقٰبِلِينَ ۝**

**په جنت کښې د اسلامی رورولئی یوه نظاره:-** د دوزخیانو ذکر کولوسره اوس د جنتیانو ذکر کولې شی چه
هغوی به په باغونونهرونو او چینوکښې وی. هغوی ته به زیرې اوروليې شی چه اوس تاسو د هرقسم

(١) ترمذی کتاب تفسیرالقرآن باب ومن سورة الحجر:٣١٢٣.

(٢) داروایت ذ شیبان عن قتاده په طریق سره بغوة آیت صحیح مسلم، کتاب الجنة باب جهنم اعاذناالله منها:٢٨٤٥ ابی شیبه: ٣٤١٧٩،
مسنداحمد:١٠/٥، المعجم الکبیر:٦٩٦٩، شعب الایمان:٣١٧، والترغیب والترهیب:٥٦٠٩.



افت نه بچ كړې شوني د هرې ويرې خطرې نه مطمئن كړې شوني نه د نعمتونو د زوال ويره اونه د دې ځاىٔ نه د ويستلوخطره نه د فناكيدواونه دكمى.لكه چه دجنتيانوپه زړونوكښې دنياوى خفگانونه باقى پاتې وى خوجنت ته په تلوسره به يوبل سره ملاوشى اوټولې كينې اوخفگانونه به اووينځلې شى. ابو امامه باهلى ﷺ فرمائى جنت ته د داخليدونه اول به سينې دكينې نه خالى كړې شى.په يومرفوع حديث كښې هم دى چه رسول الله ﷺ فرمائى چه مؤمنان به ددوزخ نه خلاصې بيامومى نو د جنت او دوزخ په مينځ كښې يوپل باندې به راحصاركړې شى چه كوم خفگانونه اوظلمونه په خپل مينځ كښې وو د هغې وركړه راكړه به اوشى اوصفازړه او پاكه سينه به شى جنت ته به داخل شى.(١)

**د زړونو خفگانونه به جنت ته تلونه مخكښې ختم كړې شى:-**اشترد‌على ﷺ خواله دتلواجازت اوغوښتو هغه وخت هغوى سره دطلحه ﷺ ځوىٔ ناست وونوهغوى لږساعت پس هغه دننه راوغوښتو هغه ونيل كيدې شى دده په وجه نى ماته دلږوخت نه پس اجازت كړې وى؟هغوى اوفرمائيل رښتيادى ونى ونيل كه بيا تاسوسره دعثمان ﷺ ځوىٔ وى نو بيا به هم ته ماداسې راحصاروې؟ هغوى اوفرمائيل بې شكه زما خود الله تعالى نه دا اميد دې چه زه اوعثمان ﷺ به د هغه خلقو نه يو د چا په شان كښې چه دا دى. دهغوى په زړونوكښې چه كوم خفگان وو مونږلرې كړو اوورونړه رونړه جوړ شو يوبل ته مخامخ په شاهى تخت باندې به ناست وى. يوبل روايت كښې دى چه عمران بن طلحه ﷺ د حضرت على ﷺ داصحاب جمل نه فارغيدونه پس حضرت على ﷺ له راغلو هغوى ده ته مرحبا اووئيل او ونى فرمائيل چه زه اميد لرم چه زه اوستاپلارده‌غه كسانونه يودچاد زړونوغصې چه به الله تعالى لرې كړې اود رونړورونړو په شان به نى يوبل ته مخامخ په تختونو كينوى. يوبل روايت كښې دى چه د دې په اوريدو باندې يودوه كسان په زمكه ناست وو ونى ونيل د الله تعالى عدل د دې نه زيات شوې دې چه ځوك ته قتل كړې د هغه رور به جوړيږې؟هغوى په غصه كښې اوفرمائيل چه كه ددې آيت نه مرادزمااودطلحه ﷺ په شان خلق نه وى نو نور به ځوك وى. په يوبل روايت كښې دى چه د قبيله همدان يوسړى دا ونيلې وو او على ﷺ په دې دهمكئى او اوچت آوازسره جواب وركړې وو چه محل اوخوزيدو(٢)يوبل روايت كښې دى چه د ويونكى نوم حارث بن اعور وو اودهغه په دې خبره باندې هغوى غصه شو اوكوم څيز چه د هغوى په لاس كښې وو هغه نى د ده په سر راگذاركړې وو اوفرمائيلي وو ابن جرموزكوم چه دحضرت زبير ﷺ قاتل ووكله چه دعلى ﷺ دربار ته راغلونوهغوى د ډير ساعت پس نه هغه ته دداخلې اجازت وركړو هغه حضرت زبير ﷺ اود هغوى ملگروته حمله كونكى ونيلوسره بد يادول نو هغوى اوفرمائيل ستاپه خُله كښې خاورې. ونى فرمائيل چه زه طلحه ﷺ او زبير ﷺ خو به ان شاءالله د هغه خلقو نه يو دچا باره كښې چه د الله تعالى دا فرمان دې. حضرت على ﷺ په قسم سره دا اوفرمائيل چه هم زمونږ د بدر والا باره كښې دا آيت نازل شوې دې كثير النواء وائى زه ابوجعفر محمدبن على له لاړم اوورته مې اووئيل چه زما دوست ستا دوست دې اوماسره مصالحت ساتونكى هغوى سره مصالحت ساتونكى دى زما دښمنان د هغه دښمنان دى اوما سره جنگ كونكى هغه سره جنگ كونكى دى. والله زه د ابوبكر ﷺ اوعمر ﷺ نه خراب يم. دې وخت كښې حضرت جعفر ﷺ اوفرمائيل كه چرې زه داسې اوكړم نو يقينا ما نه به بل گمراه ځوك نه وى نامكن ده چه هغه وخت كښې زه په هدايت باندې پاتې شم. دې دواړو بزرگانو (ابوبكر ﷺ او عمر ﷺ) سره خود هغوى ډيره مينه ده كه تاته په دې كښې گناه وى زما په سټ باندې بيا هغه هم د دې آيت آخرى حصه تلاوت اوفرمائيله او ونى فرمائيل چه د هغه لسو كسانو

---

(١) صحيح بخارى كتاب الرقاق باب القصاص يوم القيامة:٦٥٣٥، ٢٤٤٠ تعليقًا، مسنداحمد:١٣/٣، حاكم:٣٥٤/٢، مسندابى يعلى ١١٨٦، الطبرى:٣٧/١٤، الادب المفرد:٤٨٦، الايمان لابن منده:٨٣٨، السنة لابن ابى عاصم:٨٥٧.

(٢) حاكم:٣٥٣/٢-٣٥٤ دې ته صحيح ونيلې اوامام ذهبى رحمه الله د دې موافقت كړې دې.

باره کښي دي ابوبکر،عمر عثمان علي طلحه زبير عبدالرحمن بن عوف سعدبن ابی وقاص سعیدبن زيد او عبدالله بن مسعود ژ. دوی به مخامخ وی چه دیو بل ته نی شانه شی.

**د جنت شان او صفت:-** حضور ﷺ دصحابه کرامو ژ یوې مجمع ته تشریف راوړو ددې دتلاوت فرمانیلو سره نی اوفرمائیل دوی به یویل ته ګوری. دلته به دوی ته هیڅ مشقت سزا او تکلیف نه وی. بخاری اومسلم کښې دی حضور ﷺ فرمانی ماته د الله تعالی حکم شوې دې چه زه حضرت خدیجه ﷺ ته د جنت د سرو زرو د محل زیرې واوروم په کوم کښې چه نه شور شته نه تکلیف نه مصیبت[1] دا جنتیان به هیڅ کله هم د جنت نه نه شی ویستلې.په حدیث کښې دی دوی ته به فرمانیلی شی اې جنتیانوتاسو به همیشه صحت مندئی کله به بیمار نه شئی همیشه به ژوندی نی مړه کیږئی به نه همیشه به خوانان نی بوډاګان کیږئی به نه اوهمیشه به هم دلته ئی ویستلې کیږئی به نه.[2] په یوبل آیت کښې دی چه هغوی به د مکان د بدلولو خواهش نه کوی نه به د هغوی ځایٔ د هغوی نه اخستې شی.اې نبی ﷺ ته زما بندیګانوته اووایه چه زه ارحم الراحمین یم اوزما عذابونه هم ډیر سخت دی. هم د دې په شان آیاتونه نور هم تیرشوی دی. د دې نه مراد دا دې چه مؤمنانوله د امیدسره ویره هم ساتل پکار دی. حضور ﷺ خپل صحابه کرام له راغی اوهغوی په خنداباندې لیدوسره فرمانی جنت اودوزخ یاد کړئی . دې وخت کښې دا آیاتونه نازل شو. دا مرسل حدیث په ابن ابی حاتم کښې دی حضور ﷺ د بنوشیبه په دروازه باندې صحابه کرامو ژ له راغی وانی زه خو تاسو په خندا وینم. دې ارشاد کولوسره واپس شو او د حطیم د خوانه په شاته قدمونو بیا مونږ له راغلو او ونی فرمانیل چه اوس زه روان ووم چه جبرانیل ﷺ راغلو ونی فرمائیل چه الله تعالی فرمائی چه ته زما بندیګان نااميده کوې؟ هغوی ته زما د غفور اورحیم کیدو اوزما د عذابونو المناك کیدو خبر ورکړه.[3]یو بل حدیث کښې دی رسول الله ﷺ فرمانی که بندیګان د الله تعالی معافی معلومه کړی نود حرامو بچ کیدل به پریږدی اوکه د الله تعالی عذابونه نی معلوم کړل نو خپل ځان به پخپله هلاك کړی. [4]

وَنَبِّئْهُمْ عَنْ ضَيْفِ إِبْرَٰهِيمَ ۝ إِذْ دَخَلُوا۟ عَلَيْهِ فَقَالُوا۟ سَلَٰمًا ط

اوخبرکړه دوئ دمیلمنو| دابراهیم ﷺ نه| کله چې| ورننوتل هغوی| په هغه باند| نواوونیل هغوی| سلام دوی په تا اودوئ ته د ابراهیم ﷺ د میلمنو قصه واوروه | څه وخت چې دوئ هغه ته ورغلل| نو دوئ سلام واچولو

قَالَ إِنَّا مِنكُمْ وَجِلُونَ ۝ قَالُوا۟ لَا تَوْجَلْ إِنَّا

اوونیل هغه | بیشکه مونږه | ستاسو نه | یریدونکی یو | اوونیل هغوئ | مهٔ یریږه تهٔ | بیشکه مونږه (ابراهیم ﷺ) اوونیل چې مونږ خو ستاسو نه ویریږو | دوئ اوونیل چې ته مه ویریږه | مونږ

نُبَشِّرُكَ بِغُلَٰمٍ عَلِيمٍ ۝ قَالَ أَبَشَّرْتُمُونِى عَلَىٰٓ أَن

زیرې درکوؤ تاته | په هلك پوهه سره | اوونیل هغه | ایا زیرې راکوئ تاسو مالره | سره ددې چې تا ته دیو هوښیار ځوئې د پیدا کیدو زیرې درکوو| ابراهیم ﷺ اوونیل چې تاسو ما ته

[1]) صحیح بخاری کتاب مناقب الانصار باب تزویج النبی ﷺ وفضلها:٣٨١٦، ٣٨٢٠ صحیح مسلم : ٢٤٣٢-٢٤٣٥، بیهقی: ٣٠٧/٧، المعجم الاوسط:٢٢٢١، المعجم الصغیر:١٩، مسندابی یعلی:٦٧٩٧.

[2])صحیح مسلم کتاب الجنة باب فی دوام نعیم اهل الجنة: ٢٨٣٧، ترمذی:٣٢٣٦، مسنداحمد:٣٨/٣، المعجم الصغیر:٢١٢، الترغیب والترهیب: ٥٧٦١، خو په بخاری او ترمذی کښې وان لکم ان تقیموا فلا تظعنوا ابدًا الفاظ نشته.

[3]) الطبری:٣٩/١٤،

[4]) الطبری:٣٩/١٤،

مَّسَّنِيَ الْكِبَرُ فَبِمَ تُبَشِّرُوْنَ۝ قَالُوْا بَشَّرْنٰكَ

رسيدلي دي ماته | بوډاوالي | نوپه کومه وجه | تاسو زيري راکوئ | اوونيل هغوئ | چي زيري درکوومونږتاته

په دې حال کښې زيرې راکوئ | چې زه بوډا يم | نود څه خبرې زيرې راکوئ | فرشتواوونيل چې مونږ د يوې

بِالْحَقِّ فَلَا تَكُنْ مِّنَ الْقٰنِطِيْنَ۝ قَالَ وَمَنْ يَّقْنَطُ

په حقه سره | نومه کيږه ته | دنااميده خلقو نه | اوونيل ابراهيم عليه السلام | او څوک به نااميده کيږي

ريښتيني خبرې زيرې درکوو | نو ته نااميده کيږه مه | ابراهيم اوونيل چې د ګمراهانو نه سوا بل هيڅ

مِنْ رَّحْمَةِ رَبِّهٖٓ اِلَّا الضَّآلُّوْنَ۝

درحمت درب خپل نه | مګر | ګمراهه خلق

څوک د خپل رب د رحمت نه نه نااميده کيږي |

قوله تعالى:- اِنَّا نُبَشِّرُكَ بِغُلٰمٍ عَلِيْمٍ۝

**حضرت ابراهيم عليه السلام ته دحضرت اسحاق عليه السلام زيري :-** لفظ(**ضيف**)په واحداو جمع دواړوکښې استعماليږي لکه ذوراوسفر دا فرښتې وې چه د ښائسته انسانانو په شکل کښې حضرت خليل الله عليه السلام له راغلي وې هغه سخي حلال کړو دهغه غوښه نی وريته کړه اودميلمنو په وړاندې کيخوده.کله چه نی اوکتل هغوی لاس نه وراوړی نو اوويريدلو او ونی فرمائيل چه ماته خوستاسو نه ويره لګی. فرښتو تسلی ورکړه چه ويريږه مه بيائی دحضرت اسحاق عليه السلام د کيدو زيرې ورکړو لکه چه په سورت هودکښې دی نو هغوی د خپل څان او بی بی د زوړوالی عذرمخې ته کړو او خپله حيرانتيا لرې کولودپاره اووعده ثابتولود پاره نی تپوس اوزړو چه په دې حال کښې به زمونږ بچې کيږی؟فرښتو په کلکو الفاظوسره وعده دوباره اوکړه اود نااميدئی نه د لرې کيدو تعليم نی ورکړو نو هغوی د خپلې عقيدې څرګندونه اوکړه چه زه نااميده نه يم يقين لرم زمارب د دې نه هم په لويو خبرو باندې قدرت کامله لرې.

قَالَ فَمَا خَطْبُكُمْ

| بيا اوونيل ابراهيم عليه السلام | نورڅه دی | مطلب ستاسو

| اداوونيل انې فرښتو تاسو څه دباره راغلی يئ |

اَيُّهَا الْمُرْسَلُوْنَ۝ قَالُوْٓا اِنَّآ اُرْسِلْنَآ اِلٰى قَوْمٍ مُّجْرِمِيْنَ۝ اِلَّآ

اے راليږلي شوو | اوونيل هغوئ | بيشکه راليږلي شوی يومونږه | قوم مجرم ته | مګرنه

...... .... ..........هغوی اوونيل چې مونږ د يو نافرمانه قوم طرفته راليږلي شوي يو | سوا

اٰلَ لُوْطٍ ؕ اِنَّا لَمُنَجُّوْهُمْ اَجْمَعِيْنَ۝ اِلَّا امْرَاَتَهٗ

آل دلوط ته | بيشکه مونږه | خامخا بچ کونکي يومونږدهغوئ | ټولو | بغير | دښځې دهغه نه

د لوط عليه السلام د کور والو نه مونږ به دوئ ټول بچ کړو | .... .. ...... ....... سوا د هغه د ښځې نه

قَدَّرْنَآ ۙ اِنَّهَا لَمِنَ الْغٰبِرِيْنَ۝ فَلَمَّا جَآءَ

چې اندازه کړې ده مونږه | چې بيشکه هغه | دروستو پاتې کيدونکو نه ده | نوکله چې راغلل

مونږ فيصله کړې ده چې هغه به په روستو پاتې کيدونکو خلقو کښې وی | کله چې

آلَ لُوْطِ الْمُرْسَلُوْنَ﴿٦١﴾ قَالَ اِنَّكُمْ قَوْمٌ مُّنْكَرُوْنَ﴿٦٢﴾

آل دلوط علیه السلام ته| رالیږلی شوی استاذی| اوونیل لوط علیه السلام | بیشکه چی تاسو|یو قوم یئ| ناآشنا

فرشتې د لوط علیه السلام کورنۍ ته راغلې | لوط علیه السلام ورته اوونیل چې تاسو خوناآشناخلق ښکاریږئ

قَالُوْا بَلْ جِئْنٰكَ بِمَا كَانُوْا فِيْهِ يَمْتَرُوْنَ﴿٦٣﴾

اوونیل هغوئ| بلکه | راغلی یو مونږ تاته| په هغه سره| چې وو دوئ| په هغې کښې | چې شک به ئې کولو

فرشتو ورته اوونیل نه| بلکه مونږ خو درته هغه څیز راوړې دې چې دوئ به په کښې شک کولو

وَاَتَيْنٰكَ بِالْحَقِّ وَاِنَّا لَصٰدِقُوْنَ﴿٦٤﴾ فَاَسْرِ

| او راغلی یو مونږ تاته | په حق سره | او بیشکه مونږه | خامخا رښتینی یو| نو بوځه .

اومونږ تاته یوه حق خبره راوړې ده | ..... ... اومونږ بالکل رښتونی یو | ..... .. نو د شپې

بِاَهْلِكَ بِقِطْعٍ مِّنَ الَّيْلِ وَاتَّبِعْ اَدْبَارَهُمْ وَلَا يَلْتَفِتْ

کور والا خپل | په لږ حصه دشپې کښې | او ځه | روستو په هغوئ پسې | اونه دې ګوری واپس

په یوه حصه کښې خپل کور والا اوباسه | اوته هغوی پسې روستو ځه | او په تاسو کښې دې

مِنْكُمْ اَحَدٌ وَّامْضُوْا حَيْثُ تُؤْمَرُوْنَ﴿٦٥﴾ وَقَضَيْنَآ

ستاسونه | هیڅوك | او ځئ | هغه ځائ ته | چې تاسو ته حکم کیږی دهغې | او فیصله اورسوله مونږه

هیڅوک شاته نه ګوری | اود کوم ځائې حکم چې درته شوې دې | هلته لاړشئ | اومونږ هغه (لوط)

اِلَيْهِ ذٰلِكَ الْاَمْرَ اَنَّ دَابِرَ هٰؤُلَآءِ مَقْطُوْعٌ مُّصْبِحِيْنَ﴿٦٦﴾

هغه ته ددې کار | چې بیشکه| جرړې| ددې خلقو| به پرې کړې کیږی| په صباصبا کښې|

ته د دې خبرې فیصله اولیږله| چې صبا راخیژی نو د دې خلقو به جرړې کټ کړې شوې وی |

**قوله تعالی:- اِنَّآ اَرْسِلْنَآ اِلٰى قَوْمٍ مُّجْرِمِيْنَ**

**د لوط علیه السلام په قوم باندې د الله تعالی د عذاب نازلیدل:-** دابراهیم علیه السلام نه چه کله ویره لاړه اوزیرې هم ورکړې شو نو بیانی د فرښتونه د هغوی د راتلود وجه تپوس اوکړو هغوی ونیل چه دلوطیانو کلی په هغوی باندې راالړولود پاره راغلې یوخودحضرت لوط علیه السلام آل به بچ خلاصې بیاموموی اوبه دې آل کښې دهغه ښځه بچ کیدې نه شی هغه به قوم سره پاتې شی او په هلاکت کښې به هغوی سره هلاکیږی.

**د فرښتو د هلکانو په شکل کښې راتلل:-** دافرښتې د ښکلې خوانانو هلکانو په شکل کښې حضرت لوط علیه السلام له لاړې نوحضرت لوط علیه السلام ونیل چه تاسوخو بالکل ناشنااوناپیژندګلوخلق ئې.نوفرښتو راز ښکاره کړو چه مونږ دالله تعالی عذاب راوړې دې کوم چه ستاقوم نه منلو اود کوم په راتلوکښې چه ئې شک شبه کوله. مونږ حق اوقطعی حکم راوړلې راغلې یواوفرښتې په حقه سره نازلیږی اومونږهم یو رښتونې کوم خبرچه تاته درکوو هغه به کیږی چه تاسو به خلاصې بیاموملی او ستادا کافر قوم به هلاك شی.

**سفر کښې د کمزورو خیال ساتل:-** حضرت لوط علیه السلام ته فرښتې وانی چه د شپې څه حصه په تیریدو باندې ته خپل کسان ځان سره واخله لاړشه. پخپله ته د هغه ټولونه روستو ځه د پاره چه د هغوی په ښه شان سره خیال اوکړې شی. هم دا سنت د رسول الله ﷺ وو چه حضور ﷺ به د لښکر نه په آخرکښې تلو چه د

كمزورواو پرتوخلقو خيال اوساتلې شي. بياني اوفرمائيل چه كله عذاب راشي اوهغوی چغې صورې واوري نو هغوی ته هيڅ كله هم مه ګوره هغوی هم په دغه عذاب كښې پريږده اوتاته : تلوحكم دې. لاړه شه لكه چه هغوی سره څوك ووچه هغوی ته نې لارخودله. مونږ د اول نه حضرت لوط ﷺ ته فرمائيلي وو چه د سحر په وخت كښې به داخلق ختم كړې شي لكه چه په دويم آيت كښې دى چه د هغوی د عذاب وخت سحردې چه ډيرزيات نيزدې دې. ( )

| وَجَآءَ اَهۡلُ الۡمَدِيۡنَةِ | يَسۡتَبۡشِرُوۡنَ۝ | قَالَ اِنَّ هٰٓؤُلَآءِ | ضَيۡفِىۡ |
|---|---|---|---|
| اوراغلل دښار خلق | چې زيرى ئې وركول يو بل ته | اوونيل لوط بيشكه دا كسان | ميلمانه زما دى |
| اود ښار خار خلق په خوشحالئ خوشحالئ راغلل | (لوط ﷺ) اوونيل دا خو زما ميلمانه دى | | |

| فَلَا تَفۡضَحُوۡنِ۝ | وَاتَّقُوا اللّٰهَ | وَلَا تُخۡزُوۡنِ۝ | قَالُوۡٓا | اَوَلَمۡ نَنۡهَكَ |
|---|---|---|---|---|
| نوبې عزتي مه كوئ زما | اواوارييږئ دالله نه | اومه شرمنده كوئ ما | هغوئ اوونيل | ايانه وې منع كړې مونږته |
| نو تاسو ما مه شرموئ | اودالله نه اوويرييږئ | اوزما بې عزتي مه كوئ | هغوی اوونيل ايا مونږ ته د خلقو د | |

| عَنِ الۡعٰلَمِيۡنَ۝ | قَالَ | هٰٓؤُلَآءِ | بَنٰتِىۡٓ | اِنۡ كُنۡتُمۡ | فٰعِلِيۡنَ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| دخلقو نه | اوونيل لوط ﷺ | دا | لونړه زما دى | كه يئ تاسو | كونكى |
| حمايت نه نه وې منع كړې | (لوط) اوونيل دا زمالونړه دى (دوئ واده كړئ) | كه تاسو خامخاځه كول غواړئ | | | |

| لَعَمۡرُكَ | اِنَّهُمۡ | لَفِىۡ سَكۡرَتِهِمۡ | يَعۡمَهُوۡنَ۝ |
|---|---|---|---|
| زمادې قسم وي په په ژوندستااے نبی | چې بيشكه هغوئ | خامخا په نشه خپله كښې | سرګردانه ګرزيدل |
| (ائې نبی ﷺ) ستا په ژوند مې دې قسم وی | چې هغوئ په خپله نشه كښې رانده كانړه شوی وو | | |

| فَاَخَذَتۡهُمُ | الصَّيۡحَةُ | مُشۡرِقِيۡنَ۝ | فَجَعَلۡنَا | عَالِيَهَا |
|---|---|---|---|---|
| نواونيول هغوئ لره | يوهيبتناك اواز | په وخت دنمر دختلو كښې | نوكړومونږه | پورته طرف دهغې ښار |
| نو د نمر ختلو سره په هغوی باندې يوه هيبتناكه چغه راغله | بيامونږ ددې كلوپورته طرف لاندې | | | |

| سَافِلَهَا | وَاَمۡطَرۡنَا | عَلَيۡهِمۡ | حِجَارَةً | مِّنۡ سِجِّيۡلٍ۝ | اِنَّ |
|---|---|---|---|---|---|
| لاند طرف دهغې | اواووروول مونږه | په هغوئ باند | كانړی | چې جوړوئ دپخې ختې نه | بيشكه |
| كړل | اومونږ په هغوی باندې د پخې ختې كانړی اووروول | ................................ | يقينا په دې | | |

| فِىۡ ذٰلِكَ | لَاٰيٰتٍ | لِّلۡمُتَوَسِّمِيۡنَ۝ | وَاِنَّهَا | لَبِسَبِيۡلٍ |
|---|---|---|---|---|
| په دې واقعه كښې | ډيرې نښې دى | دپاره دپوهې دخاوندانو | اوبيشكه هغه كلې | پروت دى په لاره |
| كښې د غور او فكر كونكو دپاره نخښې دی | او بيشكه هغه (كلې) په نيغه اباده لاره باندې | | | |

| مُّقِيۡمٍ۝ | اِنَّ | فِىۡ ذٰلِكَ | لَاٰيَةً | لِّلۡمُؤۡمِنِيۡنَ۝ |
|---|---|---|---|---|
| چلنده باند | بيشكه | په هغې كښې | خامخا نښه دعبرت ده | دپاره دمومنانو |
| پراته دى | بيشكه په دې كښې دايماندارو دپاره نخښې دی | | | |

**قوله تعالیٰ:- وَجَآءَ اَهۡلُ الۡمَدِيۡنَةِ يَسۡتَبۡشِرُوۡنَ۝**

---

[1] ١١/هود:٨١.

**د لوط ﷺ قوم غيراخلاقي اوغيرفطري حالت**:-کله چه قوم لوط ته معلومه شوه چه حضرت لوطﷺ کره ښانسته خوانان ميلمانه راغلي دي نوهغوی دخپلې بدې ارادې په پوره کولوکښې په خوشحالوسره راغله.دالله تعالی پيغمبر هغوی پوهه کول شروع کړه د الله تعالی نه اوويرېږئ زما د ميلمنوپه وړاندې ما مه رسواکوئ دې وخت کښې حضرت لوطﷺ ته پخپله هم معلومه نه وه چه دا فرښتې دی لکه څنګه چه په سورت هودکښې دی. دلته د هغې ذکر روستو دې اود فرښتو ښکاره کيدل اول ذکرشوې دی خو د دې نه ترتيب مقصود نه دې واو د ترتيب د پاره وی هم نه اوخاصکر په داسې ځائ کښې چرته چه د هغې خلاف دليل موجود وی. لوط ﷺ هغوی‌ته وائي چه زما بې عزتي مه کوئ خو هغوی جواب ورکوی چه کله ستا دا خيال وو نو دوی تا خپل ميلمانه ولې جوړکړل مونږ خو ته د دې نه منع کړې وې. بيا هغوی دوی نور هم پوهيولوسره اوفرمائيل چه ستاسو ښځې زما لونړه دی هغه د خواهش پوره کولو ځيزونه دی دا نه دی. د دې پوره بيان په ډير وضاحت سره مونږ اول بيان کړې دی په دې وجه د بيا سردوباره کولوحاجت نشته. دا خلق په خپله مستئ کښې وو اوکومه قضااو عذاب چه د هغوی په سرونوباندې زوړندوو هغې نه غافل وو. د دې د پاره الله تعالی د خپل نبی ﷺ د عمر قسم خوړی اود هغوی داحال بيانوی په دې کښې د نبی کريم ﷺ ډيرتکريم او عظمت دې. ابن عباسؓ فرمائي چه الله تعالی څومره مخلوق پيداکړې دې په هغې کښې دحضورﷺ نه بزرګ بل څوك نشته.الله تعالی د حضورﷺدحيات مبارك نه علاوه د بل چا د حيات قسم نه دې خوړلې(سکرة)نه مرادضلالت او ګمراهی ده هم په دې کښې هغوی لوبې کولې او په تردد کښې وو.

**دَ قوم لوط دَتباهئ ذکر**:-دنمرراختوپه وخت کښې دآسمان نه يوزړه درزونکې اوسينه شلونکې غرمبارآواز راغلو اودې سره د هغوی کلی پورته اوچت شو آسمان ته نيزدې اورسولې شو اود هغه ځائ نه راوغورزولې شو پاسنئ حصه لاندې اولاندينئ حصه پاس شوه اودې سره په هغوی باندې د آسمان نه کانړی راووريدل لکه چه د پخې خاورې ککرشوی کانړی (قوتکانړی) په سورت هودکښې د دې تفصيلی بيان شوې دې څوك چه هم د بصيرت بصارت نه کار واخلی اوګوری واوری سوچ اوکړی د هغوی د پاره خو په دې کلوکښې لوئ لوئ نښې موجود دی. داسې پاك او پرهيزګارخلق خو د ذره ذره ځيزونونه عبرت اونصيحت حاصلوی پنداخلی او په غورسره دا واقعات وينی او حقيقت عالم ته رسی. تامل او غور اوفکر کولوسره خپل حالت صحيح کوی

**د مخلص مؤمن علامت**:-ترمذی وغيره کښې حديث دې رسول اللهﷺ فرمائي د مؤمن دعقل مندئ اود لرې نظر ساتلو لحاظ اوساته هغوی د الله تعالی په نور سره ګوری([1])بيا هغوی هم دا آيت تلاوت کړو. په يوبل حديث کښې دی هغوی د الله تعالی په نور اود هغه په توفيق سره ګوری.([2])بل حديث کښې دی د الله تعالیٰ بنديګان خلق د هغوی د نښونه پيژنی([3])دا کلی په عام لارکښې موجود دی په کومو چه ظاهری او باطنی عذاب راغلو اولتپه نی کړل.کانړی نی اوخوړل اودعذاب نښه جوړشو اوس يوخراب او مرداره غونډې ډنډ جوړشوې دې تاسو شپه ورځ په هغې باندې څنې راځئ عجيبه ده چه بيا هم عقل مندئ نه کارنه اخلئ.غرض صفا واضحه د تلوراتلوپه لار باندې دا اولتپه کړې شوې کلی پراته دی. دا هم معنی کړې شوې ده چه هغه په کتاب مبين کښې دی خودا معنی څه ډيره ښه نه لګی.والله اعلم. په الله تعالی اود هغه په رسول ﷺ باندې د ايمان راوړونکوپاره دا يوکولاو دليل او ښکاره نښې دی چه

---

[1] ترمذی کتاب تفسير القرآن باب ومن سورة الحجر: ٣١٢٧.
[2] الطبری:١٢٢/١٧، حلية الاولياء:١١٨/٦.
[3] الطبری:١٢١/١٧،مجمع الزوائد: ٢٦٨/١٠، المعجم الاوسط:٢٩٥٦، مسندالشهاب:١٠٠٥.

ځنګه الله تعالی خپل منونکی خلاصوی او خپل دښمنان غرق کوی.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَإِنْ كَانَ | أَصْحٰبُ الْأَيْكَةِ | لَظٰلِمِيْنَ ۝ | فَانْتَقَمْنَا | مِنْهُمْ | |
| او بیشکه چې وو | خاوندان دایکې | خامخا ظالمان | نو بدله واغستله مونږه | دهغوی نه | |
| اود بنړو اوسیدونکی (قوم دشعیب ﷺ) ډیرظالمان وو | نومونږ د هغوی نه انتقام واخستل | | | | |
| وَإِنَّهُمَا | لَبِإِمَامٍ | مُّبِيْنٍ ۝ | وَلَقَدْ كَذَّبَ | أَصْحٰبُ الْحِجْرِ | |
| او بیشکه علاقې ددواړو | په لاره | ښکاره کښې دی | او دروغ ګڼړلی دی | اوسیدونکو دحجر | |
| اودا دواړه (هلاک شوی) کلی په لویه لار پراته دی | اودحجر اوسیدونکو خلقو پیغمبران | | | | |
| الْمُرْسَلِيْنَ ۝ | وَاٰتَيْنٰهُمْ | اٰيٰتِنَا | فَكَانُوْا | عَنْهَا | مُعْرِضِيْنَ ۝ |
| رسولانو لره | او ورکړل مونږه هغوئ ته | نښې خپلې | نو وو هغوئ | دهغې نه | مخ اړونکی |
| دروغژن ګڼړلی وو | اومونږ هغوی ته خپلې نخښې ورکړې | خوهغوی ترې مخونه اړوونکې وو | | | |
| وَكَانُوْا | يَنْحِتُوْنَ | مِنَ الْجِبَالِ | بُيُوْتًا | اٰمِنِيْنَ ۝ | فَأَخَذَتْهُمُ |
| اووو هغوئ | چې کنستل به ئې | دغرونو نه | کورونو | په امن کښې وو | نو اونیول هغوئ لره |
| اوهغوی به په غرونو کښې کورونه تراشل | او هغوی بې غمه وو | ............... نو په هغوی باندې | | | |
| الصَّيْحَةُ | مُصْبِحِيْنَ ۝ | فَمَآ | أَغْنٰى | عَنْهُمْ | مَّا كَانُوْا |
| یوهیبتناك آواز | په وخت دصبا کښې | نودفع نه کړوعذاب | دهغوئ نه | هغې کارونو | چې وو هغوئ |
| د سحر په وخت کښې یوه چغه اوشوه | نو هغوی چې څه کړی وو هغه ئې هیڅ په کار | | | | |
| يَكْسِبُوْنَ ۝ | | | | | |
| چې کول به ئې | | | | | |
| رانغلل | | | | | |

قوله تعالی:- وَإِنْ كَانَ أَصْحٰبُ الْأَيْكَةِ لَظٰلِمِيْنَ ۝

**دَ قوم شعیب ﷺ انجام:**-داصحاب ایکه نه مراد د حضرت شعیب ﷺ قوم دې.ایکه وانې د ونو جنګلې ته.دهغوی ظلم دشرك اوکفر نه علاوه ډاکې اوناپ تول کښې کمې هم وو دهغوی کلی لوطیانو سره نیزدې وو اود هغوی زمانه هم هغوی سره بالکل نیزدې وه په دوی باندې هم د دوی د شیطانو په وجه د الله تعالی عذاب راغلودادواړه کلی په عام غټو لاروکښې وو.حضرت شعیب ﷺ خپل قوم په ویرولو سره اوفرمانیل چه د لوط ﷺ قوم تاسو نه څه لرې نه وو. (¹)

وَلَقَدْ كَذَّبَ أَصْحٰبُ الْحِجْرِ الْمُرْسَلِيْنَ ۝

**دَ ثمودیانوالمناک انجام:**-دحجروالانه مرادثمودیان دی کومو چه خپل نبی حضرت صالح ﷺ دروغژن ګڼړلې وواودابښکاره خبره ده چه دیونبی دروغ ګڼړل لکه دټولوانبیاءکرامونه انکاردې.پدې وجه اوفرمائیلې شوچه هغوی نبیان دروغژن اوګڼړل هغوی له داسې معجزې راغلې په کوموسره چه د

¹) ١١/هود:٨٩.

حضرت صالح ﷺ صداقت په هغوی ښکاره شو لکه د یوسخت کانړی نه د اوښې زاوتل چه هم د هغوی په ښارونوکښې ګرځیدله اویوه ورځ به هغې اوبه څکلې او یوه ورځ د قوم څناورو.خو بیا هم دا خلق نافرمانه ووا و هغه اوښه ئې اووژله هغه وخت حضرت صالح ﷺ اوفرمانیل بس اوس به په دریو ورځو کښې دننه دننه په تاسو د الله تعالی قهر نازلیږی دا بالکل رښتوني وعده ده اواټل عذاب دی. دې خلقوداﷲ تعالی په لارخودلو سره هم په خپل روندتوب ترجیح ورکړه.دې خلقویه صرف دخپل طاقت دښکاره کولود پاره اود ریاکارئی کولو د پاره په کبر او لوئی سره په غرونوکښې کورونه جوړول. د څه ویرې یا ضرورت د پاره دا نه وو.

**په هلاک شوؤ قومونو باندې په ژړا تیریدل پکار دی:**-کله چه رسول الله ﷺ جنګ تبوک له تلو نو په لار کښې داکورونه اوکتل نو حضور ﷺ په سرباندې کپړا واچوله او سورلی تیزه کړه او خپلو ملګرو ته ئې اوفرمائیل په چا چه عذاب راغلې دې د هغوی په کلوباندې په ژړاسره تیریږئی که ژړا نه درځی نو د ژړا شکل جوړکړئی اوتیرشئی داسې نه چه هم دذې عذابونو تاسو هم ښکار شئی[1]آخر په څلورمه ورځ سحر په هغوی باندې د الله تعالی عذاب د یو چغې په شکل کښې راغلو هغه وخت د هغوی ګټې هیڅ په کار رانغلې دکومو فصلونو او میوو دحفاظت د پاره اود هغې د زیاتولود پاره د اوښې اوبه څکل نه خوښولوسره هغه قتل کړې وه هغه ټول نن بې فائدې ثابت شو اود رب امر خپل کار اوکړو.

| بَيْنَهُمَآ | وَمَا | وَالْاَرْضَ | السَّمٰوٰتِ | وَمَا خَلَقْنَا |
|---|---|---|---|---|
| چې په منځ ددې دواړو کښې دی | اوهغه څه | اوزمکه | آسمانونه | اونه دی پیداکړی مونږه |
| اومونږ آسمانونه او زمکه او د دې دواړو په مینځ کښې چې څه دی بې کاره | | | | |

| الْجَمِيْلَ ۝ | الصَّفْحَ | فَاصْفَحِ | لَاٰتِيَةٌ | السَّاعَةَ | وَاِنَّ | اِلَّا بِالْحَقِّ ؕ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ښکلې | څنګ | نوڅنګ کوه | خامخاراتلونکې دې | وخت دفیصلې | او بیشکه | مګرا په حقه |
| نه دی پیدا کړی \| اوبیشکه قیامت خامخا راتلونکې دې \| نو ته په ښکلې طریقه د دوئ نه ډډه اوکړه | | | | | | |

| الْعَلِيْمُ ۝ | الْخَلّٰقُ | هُوَ | رَبَّكَ | اِنَّ |
|---|---|---|---|---|
| او پوهه دې | ښه پیدا کونکې دې | هم هغه | رب ستا | بیشکه |
| بیشکه ستا رب د هر څیز خالق دې \| په هر څیز پوهه دې | | | | |

**قوله تعالی:- فَاصْفَحِ الصَّفْحَ الْجَمِیْلَ ۝**

**دمشرکانونه دسترګو پټولوحکم:**-الله تعالی ټول مخلوق په عدل سره جوړکړی دې. قیامت راتلونکې دې. بدو ته به بده او نیکانوته به نیکې بدلې ملاویدونکې دی.مخلوق په باطل سره نه دی پیداکړې شوې داسې د کافرانوګمان دې اود کافرانو دپاره ویل او دوزخ دې. بل آیت کښې دی آیا تاسو داګنړئی چه مونږ تاسو بې کاره پیداکړی ئې اوتاسو به زمونږ طرف ته واپس نه راګرځئ. اوچت دې الله او مالك د حق دې د چا نه بغیرچه بل څوك د عبادت لائق نشته اود عرش کریم مالك هم هغه دې.[2]

**داحکم دجهاد دحکم نه مخکښې وو:**-بیا خپل نبی ﷺ ته حکم ورکوی چه د مشرکانونه سترګې پټې کړه د هغوی تکلیف او دروغ ګڼړل او بده وینا برداشت کړه لکه چه په بل آیت کښې دی دوی نه سترګې پټې

[1] صحیح بخاری، کتاب المغازی، باب نزول النبی ﷺ الحجر:۴۴۱۹، صحیح مسلم: ۲۹۸۰، مسند حمیدی:۶۵۳، بیهقی: ۴۵۱/۲، السنن الکبری للنسائی:۱۱۲۷۴، ابن حبان: ۶۲۰۰، المعجم الکبیر:۱۳۵۴، مصنف عبدالرزاق: ۱۶۲۵، احمد:۵۸/۲، مسند عبدبن حمید:۷۹۸

[2] ۲۳/المؤمنون:۱۱۵-۱۱۶.

کړه او سلام ورته اووایه دوی ته به اوس معلومه شي([1]) داحکم د جهاد د حکم نه وړاندې وو دا ایت مکي دې او جهاد پس د هجرت نه مقرر او شروع شوي دې. ستا رب خالق دې اوخالق د وژلونه پس هم په پیداکولوباندې قادردې هغه د یوځیز باربار پیداکول سترې کولې نه شي. ذرې کومې چه خورې شي هغه راجمع کول او په هغې کښې ساچولې شي. لکه چه ارشاددې ﴿أَوَلَيْسَ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بِقَادِرٍ﴾ ([2]) د آسمان او زمکې خالق ولې د دې په شان دپیداکولوقدرت نه لري؟بې شکه هغه پیداکونکې او علم والا دې. هغه چه کله د یوځیز د کولواراده کوی نوهغې ته د کیدلو حکم فرمائی بس هغه کیږي. پاك ذات دې د هغه الله تعالی د چا په لاس کښې چه د هرځیز ملکیت دې اوهم د هغه طرف ته به تاسو ټول درواپس کولې شئ.

| |
|---|
| وَلَقَدْ آتَيْنَاكَ سَبْعًا |
| او درکړې دی مونږ تاته \| اووه |
| اومونږ تاته داسې اووهٔ |
| مِّنَ الْمَثَانِي وَالْقُرْآنَ الْعَظِيمَ ۝ لَا تَمُدَّنَّ عَيْنَيْكَ |
| دبار بار لوستونکو آیتونونه \| او درکړې مو دې قرآن \| چې لویٔ دې \| مهٔ اوږد وه \| سترګې خپلې |
| آیتونه درکړې دی \| چې دوه دوه خله لوستلې شي \| اولوئې قرآن (مو درکړې دې) ته خپلې سترګې |
| إِلَىٰ مَا مَتَّعْنَا بِهِ أَزْوَاجًا مِّنْهُمْ وَلَا تَحْزَنْ |
| هغه سامان ته \| چې نفع ورکړې ده مونږه \| په هغې سره \| مختلف قسم خلقوله \| ددویٔ نه \| اوخفګان مهٔ کوه |
| په هغه ځیزونو پسې مه پورته کوه \| کوم چې مونږ د دې کافارنو مختلفوقسمونو ته ورکړې دی |
| عَلَيْهِمْ وَاخْفِضْ جَنَاحَكَ لِلْمُؤْمِنِينَ ۝ |
| په هغویٔ باند \| اوښکته کړه \| وزر خپل \| دپاره دمومنانو \| |
| اوددویٔ په باره کښې غم مکوه \| اود ایماندارو سره نرمی کوه \| |

**قوله تعالی:-** ﴿وَلَقَدْ آتَيْنَاكَ سَبْعًا مِّنَ الْمَثَانِي وَالْقُرْآنَ الْعَظِيمَ﴾

**سبع مثاني نه څه مراد دی:-** اې نبی مونږ چه د قرآن پاك په شان عظیم اولازوال دولت تاته درنصیب کړو نوتاله نه دی په کارچه ته دکافرانو دنیاوی مال اوسامان ته شان اوشوکت ته دحسرت په نظر اوګورې. داټول خو فاني دی اوصرف د هغوی د ازمیښت د پاره د یوڅوورخود پاره هغوی ته ورکړې شوی دی او دې سره د هغوی ایمان نه راوړوباندې تاله خفګان او افسوس هیڅ ضرورت نشته. اوتاله پکار دی چه په نرمئی سره په اخلاقو سره عاجزئی او میلمه دوستئی سره مؤمنانوسره مخامخ کیږې.لکه چه ارشاد دې ﴿لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِّنْ أَنفُسِكُمْ﴾([3]) خلقو تاسوله هم ستاسو نه یورسول راغلې دې په چا باندې چه ستاسو تکلیف دیرګران پریوځی ستاسو دښیګړې د زړه نه خواهش کوی چه په مسلمانانوباندې په اوچته درجه شفیق او مهربان دې.

---

[1] ٤٣/الزخرف:٨٩.

[2] ٣٦/يس:٨١.

[3] ٩/التوبه:١٢٨.

**د سبع مثاني متعلق مختلف اقوال:**-د سبع مثاني په نسبت يوقول دا دي چه دي نه مراد د قرآن كريم د شروع اووه سورتونه دي.بقره، آلعمران، نساء، مائده، انعام، اعراف او يونس[1]دا ځكه چه په دې سورتونوكښې د فرائضو اوحدودو دقصواو احكامو په خاص طريق باندې بيان دې. دغه شان مثالونه خبرونه عبرتونه هم زيات دي.بعضود سورت اعراف پورې شپږ سورتونه شميرلي او اووم سورت ئې انفال اوبراءت خودلې دهغوى په نيزد دا دواړه سورتونه يوځائې يوسورت دې.د ابن عباس ﷺ قول دې چه صرف حضرت موسى ﷺ ته د دې نه دوه سورتونه ملاوشوې وو باقي يونبي ته بغير زمونږ د نبي كريم ﷺ داسورتونه نه دى ملاو. يوقول دادې چه اول حضرت موسى ﷺ ته شپږ ملاوشوي ووخوچه كله تختنې راګذاركړې نو دوه ترې اوچت كړې شو او څلور پاتې شو.يو قول دې د قرآن عظيم نه هم دا مراد دې. زياد ﷺ وائي ماتاته اووه اجزاء دركړي دي. حكم، منع، بشارت، ويره او مثالونه. د نعمتونو شمير او قرآني خبرونه دويم قول دا دې چه د سبع مثاني نه مراد سورت فاتحه ده د كوم چه اووه آياتونه دي دا اووه آياتونه د ﴿بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ﴾ سره دي. دي سره الله تعالى ته مخصوص كړې ني دا د كتاب شروع ده او په هريوركعت كښې ونيلې شي كه فرض مونځ وى اوكه نفل. ابن جرير ﷺ هم دا قول خوښوى. اوپه دې باره كښې كوم احاديث نقل دى د هغې نه په دې باندې استدلال كوي. مونږ هغه ټول احاديث د فضائل سورت فاتحه په بيان كښې خپل ددې تفسير په شروع كښې ليكلي دي. فالحمدلله. امام بخارى ﷺ په دې ځائې كښې دوه احاديث نقل كړي دى يو كښې ابوسعيدبن معلى ﷺ فرمائي چه ما مونځ كولوحضور ﷺ تشريف راوړزه نې راوغوښتم خو زه د حضور ﷺ خواته رانغلم مونځ مې ختم كړو راغلم حضور ﷺ تپوس اوكړو چه هغه وخت ولې رانغلې؟ ما وئيل يارسول الله ﷺ ما مونځ كولو نوحضور ﷺ اوفرمائيلو چه ولې دالله تعالى دافرمان نه دې﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱسۡتَجِيبُواْ لِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ إِذَا دَعَاكُمۡ﴾[2] يعني اې د ايماندارود الله اودهغه د رسول ﷺ خبره منئ كله هم چه هغه تاسو راوبلي واوره اوس زه تاته دجمات د وتلونه وړاندې وړاندې د قرآن كريم يو ډير لوئ سورت ښايم. لږ ساعت كښې چه كله حضور ﷺ تشريف يوړو نومادهغوى وعده وريادده كړه نو حضور ﷺ اوفرمائيل هغه سورت ﴿ٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ﴾ فاتحه دې هم دا سبع مثاني او هم دغه لوئ قرآن دې كوم چه ما دركړو[3] په دويم حديث كښې دحضور ﷺ فرمان دې چه ام القرآن يعني سورت فاتحه سبع مثاني او قرآن عظيم دې. [4] صفاثابت شوه چه سبع مثاني نه پس اود عظيم قرآن نه مراد سورت فاتحه ده .

**دې كښې بل قول دې چې مراد ترې ټول قران پاك دې:**- خودا هم خيال ساتل پكار دى چه دې نه علاوه نور هم دا دى دهغې خلاف داحديثونه نه دى او پدې كښې هم دا حقيقت موندلې شي لكه څنګه چه د پوره قرآن كريم وصف هم ددې خلاف نه دې لكه چه ارشاد دې﴿ٱللَّهُ نَزَّلَ أَحۡسَنَ ٱلۡحَدِيثِ كِتَٰبٗا مُّتَشَٰبِهٗا مَّثَانِيَ﴾[5]نو په دې آيت كښې ټول قرآن ته سبع مثاني ونيلې شوې دې او متشابه هم نو هغه په يوشان باندې مثاني دې او بل شان سره متشابه. او قرآن عظيم هم دا دې لكه چه د دې روايت نه ثابت دى. د حضور ﷺ نه سوال اوشوچه په تقوى باندې د كوم جمات بنياد دې هغه كوم يودې؟ نو حضور ﷺ د خپل جمات طرف ته اشاره اوكړه[6] دا هم ثابت دى چه دا آيت د مسجد قبا باره كښې نازل شوې دې. نو قاعده دا ده د

---

[1] حاكم: ٣٥٥/٢،.

[2] ٨/الانفال: ٢٤.

[3] صحيح بخارى كتاب التفسير باب ماجاء في فاتحة الكتاب:٤٤٧٤.

[4] صحيح بخارى كتاب التفسير باب قوله (ولقد اتينك سبعا من المثاني والقرآن العظيم) ٤٧٠٤، شعب الايمان:٢٣٥٢.

[5] ٣٩/الزمر:٢٣.

[6] صحيح مسلم كتاب الحج باب بيان المسجد الذى اسس على التقوى هومسجد النبى ﷺ بالمدينة: ١٣٩٨.

يوڅيز ذكر دبل څيز نه انكار نه دې خو چه هغه هم دغه صفت لري. والله اعلم. نوتاله د هغوی د ظاهري شان اوشوكت نه بې پرواه اوسيدل پكار دي.
هم د دې فرمان په وجه امام ابن عيينه رحمه الله يوصحيح حديث په كوم كښې چه حضور ﷺ فرمائيلي دي چه هغه زمونږ نه نه دې چه قرآن سره تغني نه كوي.(١)دا تفسيرليكې چه قرآن واخستلو اود دې نه د ماسوانه څوك لاس وانخلي بې پرواه نه شي هغه مسلمان نه دې.داتفسيربالكل صحيح دې خو د دې حديث نه دا مقصود نه دې دحديث صحيح مقصد زمونږ د دې تفسيرپه شروع كښې مونږ بيان كړې دې.ابن ابي حاتم كښې دي حضور ﷺ كره يوخل ميلمانه راغله د حضور ﷺ په كوركښې هيڅ هم نه وو. حضور ﷺ د يو يهودي نه درجب په وعده اوړه قرض واخستل خوهغه ونيل چه بغيرد څه څيز ګانړه كولوزه نه دركوم. دغه وخت حضور ﷺ اوفرمائيل والله زه د آسمان والا كښې امين يم اود زمكې والا كښې هم كه ده ماته قرض راكړې وې يانې زما په لاس خرڅ كړې وې نو ما به ضرور اداكول. نو آيت ﴿لاتمدن﴾ نازل شو(٢) نولكه چه د حضور ﷺ زړه ساتنه اوكړې شوه.ابن عباس رضي الله عنه فرمائي انسان له منع دي چه دچامال او سامان ته دحسرت په نظر سره اوګوري.دا كوم چه فرمائي د دوی خلقو ته چه كومه فائده مونږ وركړې ده د دې نه مراد د كافرانو مالداران خلق دي.

| | |
|---|---|
| وَقُلْ إِنِّيٓ أَنَا النَّذِيرُ | |
| اووايه چې بيشكه زه | هم زه | يرونكې يم |
| اودا اووايه چې زه ښكاره | |

| الَّذِينَ | عَلَى الْمُقْتَسِمِينَ | أَنزَلْنَا | كَمَآ | الْمُبِينُ |
|---|---|---|---|---|
| هغه | په ډله بازو باندې | چې نازل كړې وو مونږه | لكه څنګه | ښكاره |
| ويرونكې يم | لكه څنګه چې مونږ په هغه قسم خوړونكو باندې عذاب نازل كړو چا چې | | | |

| لَنَسْـَٔلَنَّهُمْ | فَوَرَبِّكَ | عِضِينَ | الْقُرْءَانَ | جَعَلُوا |
|---|---|---|---|---|
| چې خامخا به تپوس كوو مونږه دهغوی له | نوقسم دې په رب ستا | توټې توټې | قران | چې جوړكړو هغوی |
| چې مونږ به د ټولو نه | زما دې ستا په رب قسم وي | ....................... | | قران ټكړې ټكړې كړو |

| يَعْمَلُونَ | كَانُوا | عَمَّا | أَجْمَعِينَ |
|---|---|---|---|
| چې كول به ئې | چې وو هغوی | دهغه عملونو | دټولو نه |
| دهغه كارونو په باره كښې پښتنه كوو كوم چې دوی كول | | | |

**قوله تعالى:- لَنَسْـَٔلَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ**
**د قيامت په ورځ د انكاركونكونه سوال كولې شي:**-حكم كيږي چه اې پيغمبر ﷺ اعلان اوكړه چه زه ټول خلق دالله تعالى د عذاب نه صفاويرونكې يم. يادساتئ زما تكذيب كونكى به د وړاندينو په شان د پيغمبرانوتكذيب كونكى د الله تعالى دعذاب ښكاركيږي.
**د ﴿مُقْتَسِمِينَ﴾ مختلف معنې:-** ﴿مُقْتَسِمِينَ﴾نه مرادقسمونه خوړونكى دى چه دې خلقودالله تعالى قسمونه خوړلي اووعده ئې اوكړه چه شپه په شپه به مونږ صالح ﷺ اود هغه كورنې قتل كړو.دغه شان په قرآن

(١) صحيح بخاري كتاب التوحيد باب قول تعالى ﴿واسروا قولكم اواجهروابه..... الخ﴾٧٥٢٧،ابوداود:١٤٦٩،ابن حبان: ١٢٠، حاكم: ٥٦٩/١،احمد:١٧٥/١، مسندالشهاب:١١٩٢.
(٢) المعجم الكبير:٩٧٩ مسندالبزار: ٣٨٤٣، مجمع الزوائد: ١٢٦/٤.

کښې دی چه هغوی به قسمونه خوړل او وئیل به ئې مړی به بیا نه راژوندی کیږی([1])یوبل ځائې د هغوی ددې قسمونو ذکردې چه مسلمانانو ته کله هم څه رحمت نه شی ملاویدلې([2])غرض دا چه کوم څیز به ئې نه منلوپه هغې باندې قسم خوړل دهغوی عادت وو په دې وجه هغوی ته ﴿مُقْتَسِمِيْنَ﴾ اووئیلې شو.

**درسول کریم صلی الله علیه وسلم د هدایت مثال:-** بخاری اومسلم کښې رسول الله ﷺ فرمائی زما اود دې هدایت مثال کوم چه راکولوسره الله تعالی زه رالیګلې یم د هغه سړی په شان دې چه خپل قوم له راشی اووائی خلقو ما د دښمن لښکر په خپلو سترګو لیدلې دې ګورئی هوښیار اوسیږئی د بچ کیدلو او نه هلاکیدلوسامان اوکړئی اوس څه خلق دهغه خبره منی اوپه دې مهلت کښې روانیږی اود دښمن د پنجې نه بچ کیږی خوبعضې خلق هغه دروغ ګنړی اوهم هلته په بې فکرئی کښې پراته وی چه ناڅاپی د دښمن یولښکر راورسی او راګیرولوسره هغوی قتل کړی. نودا مثال زما د منونکو اونه منونکو دې. ([3]) دې خلقودالله تعالی کتابونه کوم چه دوی ته نازل شوې ووپانړې پانړې کړل کومه مسئله ئې چه زړه غوښتله ونی منله اودکوم نه چه ئې زړه اوویریدلو پریخوده. صحیح بخاری کښې دحضرت ابن عباس ﷺ نه روایت دې چه دې نه مراد اهل کتاب دی چه د کتاب بعضې حصې منی([4]) اوفرمائی چه دې نه مرادیهوداونصاری دی([5])اوبعضې به ئې نه منلې اودا هم روایت دې چه دې نه د کفارودکتاب الله په نسبت دا وئیل چه داجادودې داکهانت دې دا دوړاندینو قصې دی ددې لوستونکې جادوګر دې مجنون دې کاهن دې وغیره.

**دینه مراد د قریشو سرداران هم دی او ددوئ مشوره هم:-**سیرت ابن اسحاق کښې دی چه ولیدبن مغیره سره د قریشو سرداران راجمع شو د حج موسم نیزدې وو اوداسرې په هغوی کښې ډیرشریف اود رائې خاوند ګنړلې شو.ده دې ټولوته اووئیل ګورئی دحج موسم دې د لرې لرې نه ټول عرب راجمع کیږی او تاسو ګورئی چه ستاسو دې ملګری یوشور ساز کړې دې نود ده په نسبت د بهرخلقو ته څه وئیل پکاردی دا اوښائې او په یوه خبره باندې اجماع او غونډه اوکړئی چه ټول هم هغه خبره کوو چرته داسې نه وی چه څوک څه وائی او څوک څه دې سره خو به ستاسو اعتبار پاسی او هغه پردیسی خلق به تاسو دروغ ګنړی. هغوی وئیل چه اې ابوعبدالشمس هم ته یوه داسې خبره اوتړه هغه وئیل اول خو تاسو اووائې چه ماته د غوراوسوچ کولو موقعه ملاوشی هغوی وئیل چه بیازمونږ په رائې کښې خوچه هرسړې ده ته کاهن وائی هغه وئیل داخودواقعه خلاف دی نو خلقو وئیل چه بیا مجنون وئیل خو بالکل صحیح دی هغه وئیل دا هم غلط دی دوئ وئیل ښه ده شاعرهغه جواب ورکړو چه هغه شعر پیژنی نه نو وئیل ښه ده بیا ورته جادوګر وایو. هغه وئیل چه د ده جادو سره هم څه تعلق نشته. هغه وئیل واورئی د ده په وینا کښې عجیبه خوږوالې دې اود دې خبرو نه چه کومه هم وائې دنیا پوهیږی چه صرف غلط او سپین دروغ دی نو هیڅ خبره نه جوړیږی خو څه وئیل ضروری دی. وئیل ښه ده ټول ده ته جادوګر وائې. په دې امر باندې دا ټولې برخاست شو اوهم د دې ذکر په دې آیاتونوکښې دې.

**د الله تعالی سوال د بنده نه په قیامت کښې:-**دهغوی د عملونو سوال به دهغوی رب دهغوی نه خامخا کوی یعنی دکلمه لااله الا الله([6])ابن مسعود ﷺ فرمائی چه دهغه الله تعالی قسم د چانه بغیرچه بل څوک

---

[1]) ١٦/النحل:٣٨.

[2]) ٧/الاعراف:٤٩.

[3]) صحیح بخاری کتاب الاعتصام باب قول النبی ﷺ بعثت بجوامع الکلم:٧٢٧٢، ٦٤٧٢ صحیح مسلم: ٢٢٨٣، مسندابی یعلی:٧٣١٠.

[4]) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الحجر باب قوله عزوجل ﴿اللذین جعلوا القران عضین﴾: ٤٧٠٥.

[5]) صحیح بخاری حواله سابق:٤٧٠٦.

[6]) ترمذی کتاب تفسیر القرآن باب ومن سورة الحجر:٣١٢٦،

معبود نشته چه په تاسو کښې به هريوسړي د قيامت په ورځ خان له خان له د الله تعالى په وړاندې پيش کيږي.څنګه چه هريوسړي د څلوارلسمي سپوږمۍ خان خان له ګورى الله تعالى فرمانى انسانه ته مانه مغرورشوى څنګه وې تاپخپل علم باندې ترکومې پورې عمل کړې تازمارسولانوله څه جواب ورکړې؟

ابوالعاليه رحمه الله فرمانى د دوو څيزونو سوال به د هريونه کولې شى معبود دې څوک جوړکړې وو اود رسول الله ﷺ دې منلې وو که نه؟ ابن عيينه رحمه الله فرمائى د عمل او مال سوال به وى. حضرت معاذ رضي الله عنه ته رسول الله ﷺ اوفرمائيل اې معاذ د انسان نه به د قيامت په ورځ د هريوعمل تپوس کولې شى تردې چه د هغه د سترګې د رانجو اود لاس اخلې شوې خاورې باره کښې هم د ده نه سوال کيږي. ګوره معاذ داسې نه وى چه د قيامت په ورځ د الله تعالى د نعمتونوباره کښې ته د کمى والا پاتې نه شې.[1]

**يوسوال اودهغې جواب:**-په دې آيت کښې خودى چه د هريونه به د هغه د عمل باره کښې سوال کولې شى اود سورت رحمن په آيت کښې دى ﴿فَيَوْمَئِذٍ لَّا يُسْـَٔلُ عَنْ ذَنۢبِهٖۤ اِنْسٌ وَّلَا جَآنٌّ﴾[2]په هغه ورځ به د يوانسان يا پيرى نه دهغه دګناه سوال نه کيږي په دې دواړو آياتونوکښې د ابن عباس رضي الله عنه د قول مطابق دا تطبيق دې دا سوال به نه کيږي چه تا دا عمل کړې؟بلکه دا سوال به کيږي چه ولې دې کړې.

| |
|---|
| فَاصْدَعْ بِمَا |
| \| نو په ښکاره اووايه اے نبى \| هغه |
| \| ..............نوتاته چې دکوم کار |
| تُؤْمَرُ وَاَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿٩٤﴾ اِنَّا كَفَيْنٰكَ |
| چې حکم کيږي تاته دهغې \| او مخ اوګرځوه \| دمشرکانو نه \| بيشکه مونږه کافى يو ستادطرفنه |
| حکم شوې دې هغه ښکاره باره اوروه \| او دمشرکانو پرواه مکوه \| مونږ ستادپاره د ټوقوکونکو په مقابله |
| الْمُسْتَهْزِءِيْنَ ﴿٩٥﴾ الَّذِيْنَ يَجْعَلُوْنَ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ ۚ فَسَوْفَ |
| ټوقو کونکو خلقو لره \| هغه خلق \| چې جوړوى \| دالله سره \| معبود بل \| نو ډير زربه |
| کښې کافى يو \| اوکوم کسان چې د الله ﷻ سره نور معبودان جوړوى \| ...........نو ډير زر به |
| يَعْلَمُوْنَ ﴿٩٦﴾ وَلَقَدْ نَعْلَمُ اَنَّكَ يَضِيْقُ صَدْرُكَ بِمَا |
| پته اولږى دوئ ته \| او معلوم دى مونږ ته \| چې بيشکه ته چې نې \| تنګيږى \| سينه ستا \| په هغه خبرو |
| ورته معلومه شى \| اومونږ ښه پوهيږو چې ددوئ په ويناګانو باندې ستا زړه |
| يَقُوْلُوْنَ ﴿٩٧﴾ فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَكُنْ مِّنَ السّٰجِدِيْنَ ﴿٩٨﴾ |
| چې وائى نې هغوئ \| نو تسبيح وايه \| سره دحمد \| درب ستا \| اوشه \| دسجده کونکونه |
| تنګيږى \| نو ته د خپل رب تعريف سره پاکى بيانوه \| او سجده کونکو خلقو کښې شامل شه |
| وَاعْبُدْ رَبَّكَ حَتّٰى يَاْتِيَكَ الْيَقِيْنُ ﴿٩٩﴾ |
| اوبندګى کوه \| درب خپل \| دهغې وخته پورې \| چې راشى تاته \| هغه وخت چې دهغې راتلل يقينى دى |
| اوتر يقين (مرګه) پورې د خپل رب عبادت کوه |

[1] ابن ابى حاتم: ٧٣/٩.

[2] ٥٥/الرحمن:٣٩.

قوله‌تعالى:-إِنَّا كَفَيْنَٰكَ ٱلْمُسْتَهْزِءِينَ
**په رسول الله ﷺ د ټوقو کوونکو عبرتناک انجام:**-حکم کولې شی چه اې پیغمبر ﷺ ته د الله تعالى خبرې خلقوته صفاصفا او بې ویرې اورسوه مه د چالحاظ ساته اومه د چا نه ویرېږه د مشرکانوپه وړاندې توحید بالکل ښکاره بیان کړه. پخپله عمل کولوسره هم نوروته اورسوه. په مانځه کښې قرآن پاک په اوچت آواز سره تلاوت کوه. د دې آیت د نازلیدلونه وړاندې به حضور ﷺ پټ تبلیغ کولو خود دې نه پس حضور ﷺ اود هغه صحابه کرامو ﷺ په کولاوتوګه د دین اشاعت شروع کړو. دا ټوقې مسخرې کونکې مونږ ته پرېږده مونږ به پخپله دوی سره اوګورو ته د خپل تبلیغ په کار کښې کوتاهی مه کوه. دوی خو غواړي چه ستادطرف نه لږه شان سستي اووینې نوهم پخپله به لاس راکاږي.ته دوی نه بیخی مه ویرېږه. الله تعالى ستا حافظ اوناصر دې هغه به تا ددوی د شر نه بچ کړي لکه چه بل ځاۍ ارشاد دې اې رسول ﷺ کوم چه ستا طرف ته رانازل کړې شوی دی ته هغه اورسوه که چرته تا داسې اونه کړل نو تا د خپل رب رسالت اونه رسولو.
الله تعالى به پخپله دخلقو د بدونه تا بچ کړي.(١) یوه ورځ حضور ﷺ په لار روان وو نو بعضې مشرکانو هغوی اوچیړل هم هغه وخت حضرت جبرائیل ﷺ راغلو او هغوی نې اووهل په کومو سره چه د هغوی په بدنونو کښې داسې اوشولکه چه په نیزه نې زخمی کړې وی او هم په دې سره هغوی مړه شو. اودا خلق دمشراکانو لوئ لوئ مشران وو د ډیر عمر وو اوډیر شریفان به ګڼړلې شو دبنواسدد قبیلې نه خو اسودبن عبدالمطلب ابوزمعه دا دحضور ﷺ ډیر لوئ دښمن وو تکلیفونه به نې ورکول او ټوقې به نې ورپورې کولې حضور ﷺ ده نه تنګ راغلې وو اودده دپاره نې بددعاهم کړې وه چه اې الله دې ړوند کړې او بې اولاده ئې کړې د بنی زهره نه اسود وواود بنی مخزوم نه ولید وو او د بنی سهم نه عاص بن وائل وو اود بنی خزاعه نه حارث وو. دا خلق به هروخت د حضور ﷺ تکلیف رسولوکښې اخته وو اوخلق به نې د حضور ﷺ خلاف راپاسول اوچه کوم تکلیف به د هغوی په وس کښې وو نو حضور ﷺ ته به نې وررسولو.کله چه دوی پخپلوظلمونوکښې دحد نه زیات شواود حضور ﷺ پورې به نې خنداګانې کولې نو الله تعالى﴿فَٱصْدَعْ بِمَا تُؤْمَرُ وَأَعْرِضْ عَنِ ٱلْمُشْرِكِينَ ۝ إِنَّا كَفَيْنَٰكَ ٱلْمُسْتَهْزِءِينَ ۝ ٱلَّذِينَ يَجْعَلُونَ مَعَ ٱللَّهِ إِلَٰهًا ءَاخَرَ ۚ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ۝﴾ آیاتونه نازل کړل.
**ددوئ د هلاکت وضاحت:**-وانی چه حضور ﷺ طواف کولو نو حضرت جبرائیل ﷺ بیت الله ته راغلو او حضور ﷺ سره اودریدو په دې کښې اسودبن یغوث د حضور ﷺ خواکې تیرشو نو حضرت جبرائیل ﷺ د هغه د خیټې طرف ته اشاره اوکړه. ده ته دخیټې بیماری اولګیده او دې نه مردار شو.پدې کښې ولید بن مغیره تیرشو د هغه ګیټمنې دیو خزاعی سړی د غشی په سوکه هسې لږه شان پرې شوې وه اود هغې دوه کاله شوی وو حضرت جبرائیل ﷺ د هغې طرف ته اشاره اوکړه نو هغه اوپړسیده پخه شوه اوهم د دې نه مردار شو بیا عاص بن وائل تیرشو د هغه د توری طرف ته نې اشاره اوکړه ځوورځې پس هغه طائف ته په خپل خرباندې سور روان وو په لار کښې راپریوتلواو په تلی کښې میخ ننوتلو په کوم سره چه دې هم مردار شو. د حارث د سرطرف ته نې ارشاره اوکړه نود هغه نه وینه روانه شوه او هم دې کښې مردار شو.د دې ټولو موذیانو سردار ولید بن مغیره وو هم ده هغوی راجمع کړې وو. دا پنځه یا اووه کسان ووچه د شیطانئی جرړې وې اود دوی په اشارو به ذلیله خلقو نوردکمینه توب حرکتونه کول. دې خلقو به د دې فضول حرکت سره دا حرکت هم کولوچه الله تعالى سره به نې نورهم شریک کول. دوی ته به د خپلوحرکتونو مزه اوس لږ ساعت کښې راشی که نور هم د رسول الله ﷺ مخالف وی اوالله تعالى

(١) المائدة/٦٧.

سره شرك كوي نو د هغوی به هم دا حال وی. مونږ ته ښه معلومه ده اې نبی چه د دوی په فضول بكواس باندې تاته تكليف رسی او زړه دې تنګيږی خو ته د دوی خيال هم مه كوه الله تعالی ستا امدادی دې ته د خپل رب په ذكر تسبيح او حمد كښې لګيااوسه د هغه عبادت ښه ډير كوه د مانځه خيال ساته اود سجده كونكو سره سجده كوه.

**داشراق دمونځ فضيلت:**-مسنداحمدكښې دی چه حضور ﷺ فرمائی الله تعالی فرمائی د ورځې د شروع د څلورو ركعتونه مه عاجزه كيږه.زه به د آخر ورځې پورې ستا كفايت كوم[1] دحضور ﷺ عادت مبارك وو چه كله به د څه ويرې معامله وه نو هغوی به مونځ كولو.[2].

**دلته د يقين نه مراد مرګ دې:**-ديقين نه مراد ددې آخری آيت نه مرګ دې[3] ددې دليل د سورت مدثر هغه آياتونه دی په كوم كښې چه بيان دې چه دوزخيان به خپلې بدنی بيانولوسره وائی مونږ مونځ ګذار نه وو مسكينانو ته خوراك وركونكې نه وو خبرې به مو جوړولې قيامت به مو دروغ ګڼړلو تردې چه مرګ راغلو[4]دلته هم د مرګ په ځاې يقين دې. په يوصحيح حديث كښې هم دی د حضرت عثمان بن مظعون ﷺ دوفات نه پس كله چه حضور ﷺ هغه له لاړو نود انصارو يوه ښځه ام العلاء k اووئيل چه اې ابوالسائب په تادې دالله تعالی رحمتونه وی بې شكه الله تعالی ستا تكريم اوعزت اوكړو. حضور ﷺ تپوس اوكړو تا څنګه يقين اوكړو چه الله تعالی د ده اكرام اوكړو. هغې جواب وركړو په تادې زما مور پلار قربان شی بيا به څوك وی چه دهغه اكرام به اوشی؟ حضور ﷺ اوفرمائيل واوره ده له مرګ راغلې دې اوزما د ده د پاره د ښيګړې اميد شته[5]په دې حديث كښې هم د مرګ په ځاې د يقين لفظ دې.

**مونځ د عقل د وجود پورې فرض دې:**- ددې آيت نه استدلال كړې شوې دې چه مونځ وغيره عبادت په انسان باندې فرض دی تركومې پورې چه د ده عقل باقی وی او په هوش كښې وی. څنګه چه د ده حالت وی هم هغه شان دې مونځ كوی.دحضور ﷺ فرمان دې چه په ولاړه مونځ ادا كوه، كه نه شی كيدې نو په ناسته اوكه نه شې كيدلې نو په اړخ باندې په ملاسته.[6]

**دګمراهانو سرپرستو نظريه:**-بدمذهبوخلقو دې نه دخپل مطلب يوه خبره راويستې ده چه تركومې انسان د كمال درجې ته اونه رسی په ده باندې عبادت فرض وی خوچه كله د معرفت منزلونه تيركړی نود عبادت تكليف ترې نه ساقط كيږی.دا سراسركفر ضلالت او جهالت دې. دا خلق دومره نه پوهيږی چه انبياء ﷺاو خاص سردار انبياء ﷺ اود هغوی صحابه كرام ﷺ د معرفت ټولو درجوته رسيدلې وو او په علم اوعرفان كښې د ټولې دنيا نه كامل وو. د رب د صفاتو او ذات نی د ټولونه زيات علم لرلو د دې سره به ئی د ټولونه زيات د الله تعالی عبادت كولو.درب په اطاعت كښې د ټولې دنيا نه زيات مشغول وو اود دنياد آخری سا پورې په دې كښې اخته وو نو ثابته ده چه دلته مراد د يقين نه مرګ دې. د ټولو مفسرينو صحابه كرامو ﷺ وغيره هم دا مذهب دې. فالحمدلله.دالله تعالی شكر او احسان دې چه هغه مونږ ته دا كوم هدايت رانصيب كړې دې په دې باندې مونږ د هغه تعريف كوو هم په دې سره د هغه نه

---

[1] مسنداحمد٥/٢٨٦ ابوداؤد كتاب التطوع باب صلاة الضحی: ١٢٨٩ وهوصحيح.

[2] ابوداؤد كتاب التطوع باب وقت قيام النبی ﷺ:١٣١٩

[3] صحيح بخاری كتاب التفسيرسورة الحجر باب قوله ﴿واعبدربك حتی يأتيك اليقين﴾ تعليقاتحت رقم:٤٧٠٦.

[4] ٧٤/المدثر٤٣، ٤٧.

[5] صحيح بخاری كتاب الجنائزباب الدخول علی الميت بعد الموت اذا ادرج فی اكفانه:١٢٤٣، حاكم: ٥٣٤/١، السنن الكبری للنسائی: ٧٦٣٤، احمد: ٤٣٦/٦، المعجم الكبير:٣٣٦.

[6] حاكم:٥٣٩/٤، امام حاكم دې روايت ته دَ مسلم په شرط باندې صحيح وئيلې دې او امام ذهبی ﷬ دَ ده موافقت كړې دې وهوحديث حسن.

په نیکوکارونوکښې امداد غواړو. هم د هغه په پاك ذات زمونږ یقین دې مونږ د هغه مالك حاکم نه دعا غواړو چه هغه مونږ ته بهترین اوکامل اسلام ایمان او په نیکئی باندې مرګ راکړی هغه جواد دې اوکریم دې.

﴿الحمدلله﴾ د سورت حجر تفسیر ختم شو.

| رکوع ګانې | | سورة النحل مکیة وهی مائة وثمان وعشرون ایة وست عشر رکوعات | | ایا تونه |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ١٦ | | شروع کوم په نامه دالله چې بخښونکې مهربانه دې | | ١٢٨ |

| عَمَّا | وَتَعٰلٰى | سُبْحٰنَهٗ | فَلَا تَسْتَعْجِلُوْهُ ط | اَمْرُ اللّٰهِ | اَتٰى |
|---|---|---|---|---|---|
| دهغه(خبرو) نه | او لوئ دې | پاکي ده هغه لره | نو تاسو تلوار مۀ کوئ هغې ته | حکم دالله | راغې |

دالله ﷻ حکم راغلو | نو تاسو دې ته تلوار مه کوئ | هغه دپاره پاکي ده | اودوې چې ورسره څه شریکوی

يُشْرِكُوْنَ ①

چې داخلق ئې شریکوی دهغه سره |

د هغې نه اوچت دې |

قوله تعالى:- فَلَا تَسْتَعْجِلُوْهُ ط

**د قیامت د راتلوتندې مه کوئ** :- الله تعالى دقیامت د نیزدیوالی خبر ورکوی چه لکه هغه قایم شوې دې. په دې وجه ئې دماضی په لفظ سره بیان فرمائې.لکه چه ارشاد دې دخلقودحساب وخت نیزدې راغلو بیاهم هغوی په غفلت سره مخ اړولې دې[1] بل آیت کښې دی قیامت نیزدې راغلو سپوږمئ اوشلیده. ([2]) بیافرمائی چه د هغه نیزدې څیز د نور نیزدې کیدو خواهش مه کوئ د "ه" د ضمیر مرجع خو یالفظ الله دې یعنی د الله تعالی نه ئې په تندئ سره مه غواړئ یاعذاب دې یعنی د عذابونو تندی مه کوئ. که زمونږ دطرف نه د هغې وخت مقررنه وونو بې شکه په هغوی به عذاب راتلو خوعذاب به په هغوی مخامخ راځی اوهغه هم ناځاپی.دهغوی په غفلت کښې دوی په عذابونوکښې تندی کوی اودوزخ دا ټول کافران راګیرکړی دی.

**د امرالله مطلب**:- ضحاك رحمه الله د دې آیت یوعجیبه مطلب بیان کړې دې یعنی هغه وائی چه مراد دا دې د الله تعالى فرائض اوحدودنازل شوی دی.امام ابن جریر رحمه الله پدې باندې ښه ردکړې دی.فرمائی چه زمونږ په علم کښې یو هم داسې نشته چاچه د شریعت دوجود نه وړاندې دهغې په غوښتلوکښې د هغه تندی وی. دې نه مراد د عذابونوتندی کول دی کوم چه د کافرانو عادت وو ځکه چه هغوی دا د سرنه منل نه.لکه چه قرآن پاك فرمائی ﴿يَسْتَعْجِلُ بِهَا الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِهَا﴾ ([3])بې ایمانه خود دې تندی کوی او ایماندارد دې نه رچیږی اوپریشانه دی ځکه چه هغوی داحق ګڼړی.خبره داده چه دالله تعالی په عذابونو کښې شك کول د لرې ګمراهئ کښې پراته دی.

**قیامت ته نزدې د تورې وریځې راتلل**:-ابن ابی حاتم کښې دی حضورﷺ فرمائی قیامت سره نیزدې به د مغرب دطرف نه د ډهال په شان یوه توره اوریځ راښکاره شی اوهغه به ډیره زر په آسمان باندې خوره

[1] ٢١/الانبیاء:١.
[2] ٥٤/القمر:١.
[3] ٤٢/الشوری:١٨.

شی بیابه ددې نه یو اواز کونکې اعلان کوی خلق به په حیرانتیاسره یویل ته وائی تاڅه اوریدلی دی؟ بعضې به وائي او او بعضې به خبره هیره کړی بیا به په دویم ځل آواز کوی اووانی به اې خلقو نو بیا به ټول وائی چه آواز خوراغلوبیابه هغه په دریم ځل آوازکوی او وائی به اې خلقودالله تعالی امر راورسیدو اوس تندی مه کوئی د الله تعالی قسم دوه کسان چه یوه کپړه به نی خوره کړې وی راغونډه به نی هم نه کړی کله چه قیامت قایم شی څوك به خپل حوض ټيك کوی لااوس به نی ترې اوبه هم نه وی څکلې چه قیامت به راشی د پنیو لشلووالا به ئی اوهم نه څکلې شی چه قیامت به راشی هریوبه په خپل فکر کښې اخته شی([1])بیا الله تعالی دخپل نفس کریم نه دشرك اود غیرد عبادت نه د پاکوالی بیان فرمائی. په حقیقت کښې هغه د دې ټولوخبرونه پاك او ډیر لرې او ډیر اوچت دې. هم دغه مشرکان دی څوك چه د قیامت منکران هم دی اوالله تعالی سبحانه وتعالی د هغوی د شرك نه پاك دې.

| |
|---|
| يُنَزِّلُ الْمَلٰٓئِكَةَ بِالرُّوْحِ مِنْ اَمْرِهٖ عَلٰی مَنْ |
| \| نازلوی هغه\| فرښتې\| دروح سره\| په حکم خپل سره\|په هغه چاباندې |
| هغه فرښتې په وحی سره په خپلو بندګانو کښې هغه چا ته |
| يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖٓ اَنْ اَنْذِرُوْٓا اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا |
| چې غواړی هغه\| دبندګانوخپلونه\| چې اویروی داخلق\| چې بیشکه\| نشته لائق دعبادت\| مګر \| زۀ یم |
| رالیږی وې غواړی \| چې خلق اویروی چې زما نه سوا بل څوک معبود نشته \| نو هم خاص زما نه |
| فَاتَّقُوْنِ﴿٢﴾ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ؕ تَعٰلٰی عَمَّا |
| نو اویریږئ زمانه \| پیدا کړی دی هغه\| اسمانونه\| اوزمکه \| په حق سره\| اوچت دی هغه\| دهغې نه |
| اوویریږئی \|هغه اسمانونه او زمکه په مقصد سره پیدا کړی دی \| هغه د دوی د شریکانو نه ډیر اوچت |
| يُشْرِكُوْنَ﴿٣﴾ خَلَقَ الْاِنْسَانَ مِنْ نُّطْفَةٍ فَاِذَا هُوَ خَصِيْمٌ |
| چې داخلق نې شریکوی\| پیدا کړو هغه\| انسان \| دمنئ دڅاڅکی نه \| نو اوس هغه \| جګړه کونکې دی |
| دې\|..........هغه انسان د منئ دڅاڅکی نه پیدا کړې دې \| نوبیا هغه (د الله ﷻ په باره کښې) ښکاره |
| مُّبِيْنٌ﴿٤﴾ |
| ښکاره \| |
| جګړه کونکې دی\| |

**قوله تعالی:-يُنَزِّلُ الْمَلٰٓئِكَةَ بِالرُّوْحِ مِنْ اَمْرِهٖ** دروح نه مراددلته وحی ده.لکه آیت﴿وَكَذٰلِكَ اَوْحَيْنَآ **دالله تعالی وحی هم په انبیاءعلیهم السلام باندې کیږدی:-** اِلَيْكَ رُوْحًا مِّنْ اَمْرِنَا ؕ﴾([2])مونږ هم دغه شان په خپل حکم سره ستاطرف ته وحی نازل کړه حالانکه تاته خوداهم نه وه معلومه چه کتاب څه څیز دې اود ایمان ماهیت څه څیز دې؟ اومونږ دانورجوړکړو چاته چه موغوښتلوپه خپلوبندیګانوکښې دالاراوخودله.دلته داارشاد دې چه خپل کوم بندیګان مونږ غواړو پیغمبری ورکووهم مونږته ددې پوره علم دې چه ددې لائق څوك دې؟هم مونږ د فرښتونه هم د دې اعلی

[1])حاکم:٥٣٩/٤، امام حاکم دې روایت ته دَ مسلم په شرط باندې صحیح ونیلې دې او امام ذهبی ﷫ دَ ده موافقت کړې دې وهوحدیث حسن.

[2]) ٤٢/الشوری:٥٢.

منصب دپاره خوښوو اودانسانانونه هم.الله ﷻ خپله وحی په خپل حکم باندې په خپلو بندې ګانو کښې چاته چه غواړی نازلوی چه هغه د ملاقات د ورځې نه خلق خبردار کړی په کومه ورځ چه به ټول خلق دالله تعالی په وړاندې وی هیڅ څیز به دهغه نه پټ نه وی اوپه هغه ورځ به ملك دچا وی صرف هم د الله تعالی واحد چه قهار دې. دا د دې د پاره چه هغه په خلقو کښې د الله تعالی د وحدانیت اعلان اوکړی او په پرهیزګارنې سره د وخت مشرکان اوویروی او خلق پوهه کړی چه هغوی دې زما نه ویریږی.

**دَ انسان خپل پیدائش هیرول او خبري جوړول:-** دعالم علوی اوسفلی خالق هم الله کریم دې. اوچت آسمان اوخوره زمکه سره د ټول مخلوق هم د هغه پیداکړې شوې دې اودا ټول دحق په توګه دی نه چه په عبث توګه.نیکانوته به بدله وی اوبدانوته سزا.هغه دټولومعبودانواومشرکانو نه بری اوویزاره دې واحد لاشریك دې یوازې دې خالق کل دې په دې وجه خان له دعبادت لائق دې.هم هغه د انسان سلسله د نطفې نه جاری ساتلې ده چه یوذلیل اوحقیر اوبه دی چه کله دا ټیك ټاك جوړوی نو غرورکوی رب سره جګړه کوی د رسولانو په مخالفت باندې اودریږی. بنده وو پکار دې چه هم بندګنې کښې لګیاوو خوده خناورتوب شروع کړو.بل آیت کښې دی الله ﷻ انسان داوبونه جوړکړو دده نسب اوسخرګننې جوړه کړه.الله قادردې. درب نه سوا ده عبادت شروع کړو کوم چه بې فائدې او بې ضرردې د کافرانو هیڅ هم د الله ﷻ نه پټ نه دی([1])سورت یاسین کښې اوفرمائیل آیاانسان نه ګوری چه مونږ دې د نطفې نه پیدا کړونوبیاخو هغه دیرجګړالوشویه مونږ باندې هم خبرې جوړې کړې اوخپل پیدائش نی هیرکړو.وانی چه داسخاشوی هډوکی به بیاخوك ژوندی کړی؟اې نبی ﷺته دوی ته اووایه چه دوی به هغه اکبرخالق پیدا کوی چاچه په اول ځل پیداکړل هغه خودهرقسم دمخلوق په هرقسم پیدائش باندې پوره عالم دې. ([2])

**الله ﷻ لره څوك هم عاجز کولې نشي:-**مسنداحمد او ابن ماجه کښې دی حضورﷺ په خپل تلی مبارك باندې توکانړې واچولې وئې فرمائیل الله تعالی فرمائ چه اې انسانه آیا ته ماعاجز کولې شې سره د دې چه ما ته د داسې شان څیز نه پیدا کړې کله چه ته پوره شوې ټیك ټاك شوې لباس مکان درته ملاو شو نو ته په راغونډیدو شوې او زما د لار نه منع شوې. او چه کله دې سا په مرئی کښې اونخته نو ونیل دې چه اوس زه صدقه کوم د الله تعالی په لارکښې ورکوم. خواوس د صدقه خیرات وخت لاړو. ([3])

| وَمَنَافِعُ | دِفْءٌ | فِيهَا | لَكُمْ | وَالْأَنْعَامَ خَلَقَهَا |
|---|---|---|---|---|
| او فائدې | سامان دګرموالې | په هغې کښې | دې ستاسره دپاره | او خناور پیدا کړل هغه |

جګړه کونکې دې اوهغه څاروی پیدا کړل په هغې کښې ستاسو دپاره ګرمه جامه ده او نورې فائدې هم دی

| حِينَ | جَمَالٌ | فِيهَا | وَلَكُمْ | تَأْكُلُونَ | وَمِنْهَا |
|---|---|---|---|---|---|
| څه وخت چې ئې | ښائست | په هغې کښې | او دې ستاسو دپاره | تاسو خورئ | او دهغې نه |

اودهغې نه تاسو خوراکونه کوئ اوستاسو دپاره په دې څاروو کښې ښائست دې

| أَثْقَالَكُمْ | وَتَحْمِلُ | تَسْرَحُونَ | وَحِينَ | تُرِيحُونَ |
|---|---|---|---|---|
| درانه بارونه ستاسو | اووړی | په سحر کښې | اوڅه وخت چې ئې بهرته شړئ تاسو | مابنام واپس راولئ کورته |

څه وخت چې ئې مابنام کورته واپس راولئ اوڅه وخت چې ئې سحر څریدو ته بوځئ اوهغه ستاسو درانه

---

[1] ۲۵/الفرقان:۵٤-۵۵.

[2] ۳٦/یٰس:۷۷، ۷۹.

[3] احمد: ٤/۲۱۰، ابن ماجه کتاب الوصایا باب النهی عن الامساك فی الحیاة والتبذیر عندالموت: ۲۷۷۹، وسنده صحیح، حاکم: ۲/۵٤۵، المعجم الکبیر: ۱۱۹۳، شعب الایمان: ۳٤۷۳.

| إِنَّ | الْأَنفُسِ | بِشِقِّ | إِلَّا | بَٰلِغِيهِ | لَّمْ تَكُونُوا | إِلَىٰ بَلَدٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه | دنفسونو | په سخت مشقت | مګر | رسیدونکی هغې ته | چې نه وئ تاسو | هغه ښار ته |
| بوجونه هغه لرې ښارته اوړي چې تاسوورته د ډیرمشقت نه بغیر نشئ رسیدلې ...........بیشکه | | | | | | |
| رَّبَّكُمْ | لَرَءُوفٌ | رَّحِيمٌ | | | | |
| چې رب ستاسو | خامخا مهربانه دې | رحم کونکې دې | | | | |
| ستاسو رب مهربان رحم کونکې دې | | | | | | |

قوله‌تعالی:-وَالْأَنْعَامَ خَلَقَهَا لَكُمْ

**څاروی د انسان د فائدې پاره**:-کوم څاروی چه الله تعالی پیداکړی دی اوانسان دې نه مختلف فائدې اوچتوی.دا نعمت رب العلمین بیان فرمائی لکه اوښ، غوا، چیلئ دکوم چه تفصیلی بیان په سورت انعام کښې په اته قسمه بیان شوې دې.دهغوی ویښته وړئ صوف وغیره نه ګرم لباس وغیره جوړیږی. دې نه پئ څکی غوښه خوری ماښام چه کله هغوی دځرن نه واپس راګرځی د ډکو خیټو او ډکو سینو والا اوچتو قوبونووالا څومره ښه معلومیږی؟اوچه کله د څرن ځائ ته ځی څنګه ښکلې معلومیږی؟ بیا ستاسودرانه درانه بارونه دیوښارنه بل ښارته پخپلو شاګانوباندې بارکوی اوړی اوستاسو هلته رسیدل ډیرګران وو.دحج عمرې جهاد تجارت سفر اودغه شان نورسفرونه په دې باندې کوی تاسو اوړی او ستاسو بوج اوچتوی لکه آیت ﴿ وَإِنَّ لَكُمْ فِي الْأَنْعَامِ لَعِبْرَةً ﴾[1]کښې دی چه دا څاروی څناورهم ستاسو د عبرت سبب دې د دوی د خیټې نه مونږ تاسو ته پئ درکوو اود دې نه ډیر فائدې دررسوو د دې غوښه هم تاسو خورئ اوپه دې باندې سورلئ هم کوئ. د سمندر د سفرد پاره مونږ کشتئ جوړې کړی. بل آیت کښې دی﴿اللَّهُ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَنْعَامَ ﴾[2]الله تعالی ستاسو د پاره څاروی پیداکړی دی چه تاسو په دې سورلی اوکړئ دا اوخورئ دې نه نفع اوچته کړئ دزړه حاجتونه پوره کړئ اوتاسو ئې په کشتو باندې هم سواره کړئ او ډیر نښې درته اوخودلې نو تاسو به د کومې کومې نښې انکارکوئ. دلته ئې هم د خپلو نعمتونو په ذکر کولوسره یادګیرنه کولو سره اوفرمائیل چه ستاسو هغه رب چا چه دا څناور ستاسوتابعدار جوړکړه هغه په تاسو باندې ډیر رحمت او شفقت والا دې لکه چه سورت یسین کښې فرمائی چه آیا هغوی نه ګوری چه مونږ دهغوی دپاره په خپلو لاسونو څاروی جوړکړه اوهغوی ئې د دې مالکان کړل اوهغه ئې د دوی تابعدار کړه چه بعضې اوخوری او په بعضوباندې سورلی کوی.([3])

**کشتئ هم د فائدې دپاره دی** :-بل آیت کښې دی ﴿وَجَعَلَ لَكُم مِّنَ الْفُلْكِ وَالْأَنْعَامِ مَا تَرْكَبُونَ﴾([4])هم دغه الله تعالی ستاسودپاره کشتئ جوړې کړې اوڅاروی پیداکړل چه تاسو په هغې باندې سواره شئ اود خپل رب فضل او شکر اوکړئ او اووایه هغه پاك دې چا چه دا زمونږ ماتحت کړل سره د دې نه چه په مونږ کښې دا طاقت نه وو. مونږ منو چه مونږ به د هغه طرف ته واپس کیږو. ﴿دفء﴾ معنی کپړې او د منافع نه مراد خوراك څښاك، نسل حاصلول، سورلی کول، غوښه خوړل او پئ څکل دی.

---

[1]) ٢٣/المؤمنون: ٢١.

[2]) ١٦/ النحل:٧٩.

[3]) ٣٦/یٰس: ٧١-٧٢.

[4]) ٤٣/الزخرف:١٢.

| وَالْخَيْلَ | وَالْبِغَالَ | وَالْحَمِيْرَ |
|---|---|---|
| اوآسونه | او قچر | او خره |
| اوهغه اسونه ،قچري اوخرونه پيدا کړي دي | | |

| لِتَرْكَبُوْهَا | وَزِيْنَةً ط | وَيَخْلُقُ | مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ⑧ |
|---|---|---|---|
| دپاره ددې چې تاسو سوريږئ په هغې باند | اووي ښائست | او پيدا کوي هغه | هغه څه چې معلوم نه دي تاسو ته |
| چې تاسو پرې سورلئ کوئ | اوښائست هم دې | اوهغه داسې څيزونه پيدا کړي چې تې نه پيژنئ | |

**قوله تعالى:- وَالْخَيْلَ وَالْبِغَالَ وَالْحَمِيْرَ لِتَرْكَبُوْهَا وَزِيْنَةً ط**

**اختلاف د اس د حراموالي اوحلال والي مسئله:-** خپل يوبل نعمت بيانوي چه د ښائست او سورلئ د پاره ئي اسونه قچرې اوخره پيدا کړي دي.د دې ځناورو د پيداکولو لوئ مقصد هم د انسان فائده ده. دې له ئي په نورو ځناورو باندې فضيلت ورکړو اوجدا ئي ذکرکړل ځکه چه بعضو علماؤ د اس د غوښې د حرمت دليل ددې آيت نه اخستې دي.لکه چه امام ابوحنيفه رحمه الله اود هغه موافقت کونکي فقهاء وائي چه د قچر اوخر سره د اس ذکر دې اوړومبی دوه ځناور حرام دی په دې وجه دا هم حرام شو.دقچر او خرحرمت په احاديثوکښې راغلې دې اوداکثروعلماؤ مذهب هم دادې.د ابن عباس رضي الله عنه نه د دې درېواړو حرمت راغلې دې. هغوی فرمائي چه د دې آيت نه وړاندې آيت کښې د څاروو ذکر کولوسره الله تعالى فرمائي تاسو دا خورئي نودا خو شو د خوراك ځناور اود دې درېواړو ذکر کولوسره ئي فرمائيلي دي چه په دې باندې تاسو سورلی کوئی نودا شو د سورلئ ځناور. د مسندپه حديث کښې دی چه حضور صلى الله عليه وسلم د اسونو قچرو او خرو غوښه منع کړې ده(١) خوددې په راويانوکښې صالح بن يحيى بن مقدام دې په کوم کښې چه کلام دې. د مسندپه يوبل حديث کښې مقدام بن معديکرب رضي الله عنه نه نقل دی چه مونږ د خالدبن وليد رضي الله عنه سره د صائفه په جنګ کښې وو ماله زما ملګرو غوښه راوړه مانه ئي يوکاڼړې اوغوښتو ما ورکړو هغوی داپه دې کښې اوتړله ماوئيل اودريږئي زه دخالد رضي الله عنه نه تپوس کوم راځم. هغوی اوفرمائيل مونږ رسول الله صلى الله عليه وسلم سره په خيبرکښې وو خلقو د يهوديانو په پټوباندې حمله اوکړه حضور صلى الله عليه وسلم ماته حکم اوکړو چه دې خلقو ته اعلان اوکړه چه مانځه له راشئ اود مسلمانانونه بغيردې څوك هم نه راځي. بيائي اوفرمائيل چه اې خلقو تاسوديهوديانوپه باغونوکښې د ورننوتلود پاره ډيره تندی اوکړه. واورئي دمعاهد مال بغيردحق نه حلال نه دې اود ساتلي شوو خرو اسونواوقچرو غوښه اود هر سوکيدار غاښونوولا اوپه پنجه باندې دښکارکونکو مرغو غوښه حرام ده(٢) دحضور صلى الله عليه وسلم د منع کول د يهوديانود باغونونه کيدې شي داسې وخت کښې وو کله چه هغوی سره معاهده اوشوه. نوکه دا حديث صحيح وو نو بې شکه د اس دحرمت باره کښې نص وو خوپه دې کښې د بخاری اود مسلم د مقابلې طاقت نشته په کوم کښې چه د حضرت جابر رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم د ساتلي شوی خرونو غوښه منع فرمائيلې ده اود اس د غوښې اجازت ئي ورکړو(٣) بل حديث کښې دی چه مونږ د خيبر په ورځ اسونه قچرې او خره ذبح کړل نو مونږه حضور صلى الله عليه وسلم د قچر او خر د غوښې نه منع کړو خود اس د غوښې نه ئي منع نه کړو(٤) صحيح مسلم کښې دحضرت اسماء بنت ابی بکر رضي الله عنها نه روايت دې چه مونږ په مدينه

---

(١) احمد:٨٩/٤، ابوداؤد كتاب الاطعمه باب فى اكل لحوم الخيل: ٣٧٩٠، نسائى٤٣٣٧، دارقطنى:٢٨٧/٤، والسنن الكبرى للنسائى:٦٦٤٠
(٢) احمد:٨٩/٤.
(٣) صحيح بخارى كتاب المغازى باب غزوة خيبر:٤٢١٩، صحيح مسلم:١٩٤١، ابوداؤد: ٣٧٨٨، احمد:٣٦١/٣، ابن حبان:٥٢٧٣.
(٤) ابوداؤد كتاب الاطعمه باب فى اكل لحوم الخيل: ٣٧٨٩، وهوصحيح، احمد: ٣٥٦/٩، بيهقى: ١٩٤٢/٥، السنن الكبرى للنسائى: ٦٦٤١

کښې دحضورﷺ په موجودګئ کښې اس حلال کړاود هغې غوښه مو اوخوړله.(١)نو دا د ټولونه لوئ اختلاف د ټولونه زيات د ثبوت والا حديث دې اوهم دغه مذهب د جمهور علماؤ دې. مالك رحمه الله شافعي رحمه الله احمدرحمه الله اود دوی د ټولوملګرو او اکثر سلف اوخلف هم دا واني. والله اعلم.
دابن عباس رضي الله عنه بيان دې چه اول په اسونوکښې وحشيت او ځنګليت وو الله تعالى د حضرت اسماعيل عليه السلام د پلره دا تابعدار کړل. وهب په اسرائيلي رواياتوکښې بيان کړی دی چه د جنوبي هواګانونه اسونه پيدا کيږی. والله اعلم.د دې دريواړو ځناورو نه سورلي اخستلو جواز د قرآن پاك د الفاظونه ثابته ده. حضورﷺ ته يوقچر په هديه کښې ورکړې شوې وو په کوم به چه حضورﷺ سورلي کوله اودا حضورﷺ منع فرمائيلي دی چه اسونه خروسره ملاوکړې شی. دا ممانعت په دې وجه دې چه نسل منقطع نه شی. حضرت دحيه کلبي رضي الله عنه د حضورﷺ نه تپوس اوکړو که تاسو اجازت کوئی نو مونږ د اس او خرې د يو ځائ کولونه قچر حاصل کړو او تاسو په هغې سواره ئی حضورﷺ اوفرمائيل دا کار هغوی کوی چه د علم نه خالي وی.(٢)

### د اس د غوښې حکم

**مسلک حنفي:**-د صاحبينو په نيز د اس غوښهٔ بلاکراهته خوړل جائز دی اود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د دې خوړل خو حرام نه دی البته ګناه به وی. بيادَ دې حضراتو په مينځ کښې دا اختلاف دې چه کراهت تحريمي دې که تنزيهي. علامه عيني رحمه الله په عمدة القاري کښې دَ احنافو دواړه اقوال نقل کړی دی فخرالاسلام رحمه الله اوابومعين رحمه الله کراهت تنزيهي صحيح ګرځولي دې.(دروس ترمذی (٥٤١١)-

| وَعَلَى اللَّهِ | قَصْدُ السَّبِيلِ | وَمِنْهَا | جَآئِرٌ | وَلَوْ شَآءَ |
|---|---|---|---|---|
| او دالله ذمه ده | نيغه لار(ښودل) | او ځينې ددې لارونه | کږې (هم) دی | او که غوښتلي هغه |
| او نيغه لاره الله ﷻ ته رسيږی | او په دې کښې ځينې لارې کږې هم دی | او که هغه غوښتلي | | |
| لَهَدٰىكُمْ | أَجْمَعِينَ ⑨ | | | |
| نو خامخابه ئې هدايت کړې وې تاسوته | ټولوته | | | |
| نو تاسوټولوته به ئې هدايت کړې وو | | | | |

**قوله تعالى:- وَعَلَى اللَّهِ قَصْدُ السَّبِيلِ وَمِنْهَا جَآئِرٌ**

**دَ دين اودنيامثالونه:-** د دنياوی لاروباندې دتلواسباب بيانولوسره اوس ددين په لاردتلواسباب بيانوی. د محسوساتونه معنوياتوته رجوع کوی.په قرآن پاك کښې اکثر بيانونه داسې موجوددی دحج د توښې ذکرکولوسره ئې دتقوی د توښې ذکرکوم چه دآخرت کار ورکړې بيان شوه د ظاهری لباس ذکر فرمائيلو سره د تقوی د لباس ښه والې بيان کړو دغه شان دلته په ځناوروباندې ددنياوی سختولارو باندې تيريدلواودلرې لرې سفرونه کولوبيان سره دآخرت لارې ديني دی بيان ئی کړلې چه حق لار د الله تعالى سره ملاويدونکې دی. د رب نيغه لار هم دغه ده هم په دې باندې ځې په نورو لارومه ځنې ګنې دهوکه به شنې. اود نيغې لار نه به جدا شنې. فرمائی زما طرف ته د رسيدلو نيغه لار هم دغه ده کومه چه ما

(١) صحيح بخاری کتاب الذبائح والصيد باب النحر والذبائح:٥٥١١، صحيح مسلم:١٩٤٢، ابن ماجه:٣١٩٠، احمد٣٤٥/٦، ابن حبان:٥٢٧١.

(٢)احمد:٣١١/٤، ابوداؤد کتاب الجهاد باب فی کراهية الحمر تنزی علی الخيل:٢٥٦٥، وسنده صحيح، مسندالبزار: ٨٨٩، الطحاوی: ٢٧١/٣، ابن حبان:٤٦٨٢، بيهقی:٢٢/١٠.

خودلې ده او الله تعالى سره يوځاى كونكې ده. الله تعالى ښكاره كړه چه هغه هم دين اسلام دې كوم چه الله تعالى واضح كړې دې اودې سره نى د نورو لارو ګمراهئى هم بيان كړلې. نو رښتونې لار هم يوه د، كومه چه د الله تعالى په كتاب او د رسول الله ﷺ سنتو سره ثابته ده. باقى نورې ټولې لارې غلطې لارې دى. د حق سره يوشان دى د خلقو خپل پيداكړې شوى دى لكه يهوديت نصرانيت مجوسيت وغيره. بيافرمائى چه هدايت د رب د قبضې خيز دې كه غواړى نو په مخ د زمكې باندې خلق به نيكه لار باندې واچوى اود زمكې ټول اوسيدونكى به مسلمانان شى ټول خلق به په يو دين باندې عمل كونكى شى خودا اختلاف به باقى وى خوچه په چا باندې الله تعالى رحم اوكړى. هم د دې د پاره ئى هغوى پيدا كړى دى. هم ستا د رب خبره به پوره كيږى. دوزخ او جنت به د انسانانو او پيريانو نه ډك شى.

| | | |
|---|---|---|
| أَنْزَلَ | الَّذِيٓ | هُوَ |
| چې نازلې ئې كړې | هغه ذات دې | هغه |
| الله ﷻ داسې ذات دې چې ستاسو د پاره د | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مِنَ السَّمَآءِ | مَآءً | لَّكُم | مِّنْهُ | شَرَابٌ | وَّمِنْهُ | شَجَرٌ |
| د آسمان نه | اوبه | دى ستاسو د پاره | د دغه اوبو نه | د څكلو اوبه | او د دغه اوبو نه | پيدا كيږى ونې |
| د آسمان نه اوبه راورى | تاسو د هغې نه څكاك كوئ | او په هغې اوبو سره ونې زرغونيږى | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فِيهِ | تُسِيمُونَ۝ | يُنۢبِتُ | لَكُم | بِهِ | الزَّرْعَ |
| چې په هغې كښې | تاسو څاروى څروئ | هغه زرغونوى | ستاسو د پاره | په دغه اوبو سره | فصل |
| چې تاسو په كښې څاروى څروئ | ...............اوددې اوبو په ذريعه تاسو د پاره فصلونه | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَالزَّيْتُونَ | وَالنَّخِيلَ | وَالْأَعْنَابَ | وَمِن كُلِّ الثَّمَرَٰتِ ط | إِنَّ | فِى ذَٰلِكَ | |
| اوزيتون | او كجورې | او انګور | او د هر قسم ميوونه | بيشكه | په دې كار كښې | |
| زيتون ، كهجورې ،انګور اوهرقسم نورې ميوې راټوكوى | ............ بيشكه په دې كښې | | | | | |

| | | |
|---|---|---|
| لَأٓيَةً | لِّقَوْمٍ | يَتَفَكَّرُونَ۝ |
| خامخا غټه نښه ده | د پاره د هغه خلقو | چې غور فكر كوى |
| د غور اوفكر كوؤنكو د پاره لويه نښه ده | | |

**قوله تعالى:- يُنۢبِتُ لَكُم بِهِ الزَّرْعَ**

**اوبه او ميوې د الله تعالى نعمتونه:-** د خاروو اوخناور پيداكولو احسان نه پس بل احسان بيان فرمائى چه د بره نه اوبه هم هغه وروى كوم نه چه تاسو پخپله هم فائده اوچتوى او ستاسو د فائدې خناور هم فائده اوچتوى. خوږې صفا سپينې مزيدارې د ښه خوند اوبه ستاسو د څكلو په كار راځى كه د هغه احسان نه ود نو هغه به تروې اوترخې كړې وې. هم دې د باران اوبو سره ونې راټوكيږى اوهغه ونې ستاسو د خناورو ګياه جوړيږى. دسوم معنى ده څرن. په دې وجه ابل سائمه څرن كونكى اوښانو ته وائى. دابن ماجه په حديث كښې رسول الله ﷺ دنمر دراختونه وراندې څرول منع فرمائيلې دى[1] بيا د هغه قدرت ته اوګوره

[1]) ابن ماجه كتاب التجارات باب السوم: ٢٢٠٦،

چه هم په يو اوبوسره دمختلف مزو، مختلف شکلونو صورتونو، دمختلفو خوشبوګانو قسم قسم ميوې ګلونه ستاسو دپاره پيداکړې دی نو بيادا تولې نښې د يوسرې دپاره دالله تعالی وحدانيت پيژندلو د پاره ناکافی دی.هم دابيان په نورو آياتونوکښې داسې شوې دې چه د آسمان اوزمکې خالق د اوريخونه اوبه راورونکې د هغې نه شنه او آباد باغونه پيداکونکې د کوم د پيدا کولو نه چه تاسو عاجزونی هم الله دې هغه سره بل څوک معبود نشته بياهم داخلق د حق نه اخوا ديخوا کيږي. (١)

| وَسَخَّرَ لَكُمُ |
|---|
| او تابع ئې کړل ستاسو دپاره |
| اوهغه ستاسو دپاره شپه او |
| الَّيْلَ وَالنَّهَارَ وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ وَالنُّجُومُ مُسَخَّرٰتٌ بِأَمْرِهِ |
| شپه \| او ورځ \| او نمر \| او سپوږمئ \| او ستوری هم اټول مسخر دی په حکم دهغه سره |
| ورځ اونمر اوسپوږمئ تابع کړي دی ..............اوستوری هم د هغه د حکم تابعدار دی |
| اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ |
| بيشکه \| په دې کار کښې \| ډيرې نښې دی \| دپاره دهغه خلقو \| چې هغوئ دعقل نه کار اخلی |
| بيشکه په دې کښې د علقمندو دپاره ډيرې نخښې دی (يعنی چې د عقل نه کار اخلی) |
| وَمَا ذَرَاَ لَكُمْ فِي الْاَرْضِ مُخْتَلِفًا اَلْوَانُهٗ |
| او هغه څيزونه \| چې پيداکړې دی هغه \| ستاسودپاره \| په زمکه کښې \| چې مختلف دی \| رنګونه دهغې |
| اوالله تعالی چې ستاسو دپاره کوم قسما قسم رنګونو والا څيزونه په زمکه کښې پيداکړې دی |
| اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّذَّكَّرُوْنَ وَهُوَ الَّذِيْ |
| بيشکه \| په دې کښې \| ضرورنښه ده \| دپاره دهغه خلقو \| چې سبق حاصلوی \| اوهغه \| هغه ذات دې |
| بيشکه په دې کښې دهغه خلقو دپاره نخښې دی چې سوچ فکر کوی \| اوالله هغه ذات دې چې |
| سَخَّرَ الْبَحْرَ لِتَاْكُلُوْا مِنْهُ لَحْمًا طَرِيًّا |
| چې مسخرئې کړو \| درياب \| دپاره ددې چې تاسواوخورئ \| ددغه درياب نه \| غوښه \| تازه |
| سمندر ئې تابع کړې دې \| ..............چې تاسوترې (دکبانو) تازه غوښئه اوخوری |
| وَتَسْتَخْرِجُوْا مِنْهُ حِلْيَةً تَلْبَسُوْنَهَا وَتَرَى الْفُلْكَ |
| اوتاسواوباسئ \| دهغې نه \| دښائست څيزونه \| چې تاسواغوندئ هغه \| اوته وينې کشتئ |
| اوتاسو د دې نه کالی راوباسئ \| چې تاسو ئې استمالوئ \| اوته ګورې چې بيړئ (ددرياب) اوبه |
| مَوَاخِرَ فِيْهِ وَلِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ |
| څيرونکې اوبولره \| په هغې کښې \| اودپاره ددې چې تلاش کړئ تاسو \| دفضل دالله نه |
| څيرې کوی او (رواني دی) \| او د دې دپاره چې تاسو (دسمندرې تجارت په ذريعه) د الله فضل لټوئ |

(١) ٢٧/النمل:٦٠.

| وَلَعَلَّكُمْ | تَشْكُرُوْنَ۝ | وَاَلْقٰى | فِي الْاَرْضِ | رَوَاسِيَ | اَنْ تَمِيْدَ |
|---|---|---|---|---|---|
| اودپاره ددې چې تاسو | شکراوباسئ | اووې غورزول | په زمکه کښې | دغرونوميخونه | چې اونهٔ خوزي |
| اوچې د هغه شکرادا کوئ \| او په زمکه کښې ئې دغرونو میخونه ښخ کړي دي \| چې تاسو باندې اونه خوزي | | | | | |
| بِكُمْ | وَاَنْهٰرًا | وَّسُبُلًا | لَّعَلَّكُمْ | تَهْتَدُوْنَ۝ | |
| په تاسوباند | اوجاري ئې کړل نهرونه | اوجوړې ئې کړې لارې | دپاره ددې چې تاسو | هدايت بيامومئ | |
| اودريابونه ئې روان کړي دي، اولارې ئې جوړې کړې \| د دې دپاره چې تاسو لاربيامومئ | | | | | |
| وَعَلٰمٰتٍ ؕ | وَبِالنَّجْمِ | هُمْ يَهْتَدُوْنَ۝ | اَفَمَنْ | يَّخْلُقُ | |
| اونښې هم پيداکړې | اوپه ذريعه دستورو | داخلق لار بيامومئ | آيا هغه څوك | چې پيدا کول کوي | |
| او ډيرې نخښې ئې هم جوړې کړې دي \| اود ستور په ذريعه دوی لارې معلوموي \| نوڅوک چې پيدا کول کوي | | | | | |
| كَمَنْ | لَّا يَخْلُقُ ؕ | اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ۝ | وَاِنْ تَعُدُّوْا | | |
| پشان دهغه چادې | چې پيدا کول نشي کولې | آيا نو تاسو نصيحت نهٔ قبلوئ | او که تاسو شمارئ | | |
| دهغه چا په شان کيديشي چې هيڅ نه نشي پيدا کولې \| نو تاسوولې نصيحت نه قبلوئ \| اوکه تاسو د الله ﷻ | | | | | |
| نِعْمَةَ اللّٰهِ | لَا تُحْصُوْهَا ؕ | اِنَّ اللّٰهَ | لَغَفُوْرٌ | رَّحِيْمٌ۝ | |
| نعمت دالله | نو نهٔ شئ شمارلې هغه | بيشكه چې الله | بښونكې | رحم كونكې دى | |
| نعمتونه شمیرل غواړئ \| نود هغې شميربه اونکړې شئ \| بیشکه الله بخښونکې ډير رحم کونکې دي | | | | | |

قوله تعالى:- وَسَخَّرَ لَكُمُ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ ۙ وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ ؕ

**سپوږمئی نمر اوستوری د الله تعالى د قدرت نخښې دي:-** الله تعالى خپل نورنعمتونه يادراګرځوی چه شپه ورځ برابرستاسودفائدې دپاره څې راخی نمرسپوږمئ په ګردش کښې دی ستوری په پرقيدو پرقيدو تاسو ته رڼا درکوی دهريوالله تعالى داسې صحيح اندازه مقررکړې ده دکوم نه چه هغوی نه اخوا ديخوا کيدې شی اونه تاسو ته څه نقصان درکوی. هريود رب په قدرت کښې اود هغه د غلبې لاندې دې. هغه په شپږو ورځو کښې زمکه او آسمان پيدا کړل بيا په عرش باندې د خپل قدرت د شان مطابق مستوی شو. ورځ او شپه برابر يوبل پسې څی راځی. نمر سپوږمئی اوستوری د هغه د حکم مطابق په کارکښې لګيا دی. د خلق او امر مالك هم هغه يوذات دې. هغه رب العلمين د لويو برکتونو خاونددې که تاسوعقل اوپوهه لرئی نوپدې کښې د الله تعالى دقدرت اوسلطنت لوئی نښې دی.د دې آسمانی څيزونونه پس اوس تاسو د زمکې څيزونه اوګورئی چه څناور، کانونه نباتات او جمادات وغيره په مختلف رنګونو او شکلونوکښې څيزونه د بې شميره فائدو څيزونه دی. هم هغه ستاسو د پاره په زمکه باندې پيداکړی دی چه تاسو په الله تعالى د نعمتونو غور اوکړئی او د دې قدر اوکړئی د هغوی د پاره خودا زبردست نښه ده.

**د سمندرنه د خلقو د پاره فائدې دی:-** الله تعالى دخپلې نورې مهربانئی يادګيرنه کوی چه په سمندراو درياب باندې هم هغه تاسو قابض کړئی سره د خپل زوروالی او خپلوموجونو هغه ستاسو تابع دې ستاسوکشتئ په هغې کښې روانې دی دغه شان د دې نه کبان راوباسئی او د هغې تازه غوښه خورئی، کب د حلت په حالت کښې د احرام په حالت کښې ژوندې وی که مړد الله تعالى د طرف نه حلال دې. هغه لؤلؤ او مرغلرې ستاسو د پاره په دې کښې پيداکړی دی. کوم چه تاسو په آسانئی سره راوباسئی

اودکالوپه توګه ئې په خپل کارراولئي.بیا په دې کښې کشتئي هواګانې اخواکوي اوبه خیرې اوپه خپلو سینوباندې د اوبود پاسه تیرېږي.

**د ټولونه مخکښې کشتئ نوح ﷺ جوړه کړې ده او په دې ئې سورلي کړې ده:**-د ټولونه اول حضرت نوح ﷺ په کشتئ کښې سورشواوهم هغه ته الله تعالى دکشتئ جوړولوچل اوخودلو.بیاخلقو دغه شان جوړولې اوپه دې باندې د لمدې لوئ لوئ سفرونه کول د هغه طرف نه څيزونه دې طرف ته اود دې طرف نه هغه طرف ته اوړل راوړل، هم د دې بیان په دې کښې دې چه تاسو د الله تعالى فضل یعنې خپل رزق دتجارت په ذریعه اولټوئې اودهغه نعمت اواحسان اومنئ اود هغه شکر او قدرداني اوکړئې.

**دریاب ته دالله تعالى خطاب:**-مسندبزار کښې دحضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دې چه الله تعالى مغربي دریاب ته اوونیل چه زه خپل بندیګان په تاکښې سوروَل غواړم ته به هغوی سره څه کوې؟ هغه اوونیل دوبوم به ئې.بیائې اوفرمائیل ستاتیزوالې ستاپه غاړوکښې دې هغه به زه په خپل لاس کښې واخلم نه ما د کالواو ښکار نه محروم کړې. بیائې مشرقي سمندر ته هم دا خبره اوکړه هغه ونیل چه زه به ئې په خپلولاسونو باندې اوچت کړم اوځنګه چه مور د خپل بچي خیال ساتي زه به هم د هغوی ساتم. نو ده ته الله تعالى کالې هم ورکړل او ښکارهم.(١)ددې حدیث راوي حضرت عبدالرحمن بن عبدالله دې اوهغه منکرالحدیث دې.د عبدالله بن عمرو ﷺ نه هم دا روایت مرفوعًا نقل دې.دې نه پس د زمکې ذکر کولې شي داودرولو او خوزیدلونه د بچ کولود پاره په دې باندې مضبوط او وزندار غرونه کلك کړل چه د دې په خوزیدوباندې په دې داوسیدونکوژوندون کښې مشکل نه وي. لکه چه فرمائي ﴿وَالْجِبَالَ أَرْسٰهَا﴾ (٢)

**په زمکه د غرونو ایخودلو حکمت:**-دحضرت حسن ﷫ قول دې کله چه الله تعالى زمکه جوړه کړه نو هغه خوزیده ترڅې چه فرښتواوونیل په دې خو څوك هډو اودریدې نه شي چه سحرګوري نوغرونه په دې کښې ورخښ کړې شوي دي اود دې خوزیدل ولاړدي نو فرښتوته دا هم معلومه نه شوه چه دا غرونه د څه څیز نه راپیداکړې شو.د قیس بن عباده ﷫ نه هم دا روایت دې. حضرت علي ﷺ فرمائي چه زمکې ونیل چه ته په ماباندې بنیادم میشته کوې چه زما په شا به ګناه کوي اوکه کندګیرئې به خوروي هغه ړچیدله نو الله تعالى په زمکه کښې غرونه ورخښ کړل کوم چه تاسو وینئي اوبعضې خو وینئي هم نه داهم دهغه کرم دې چه هغه نهرونه چینې اودریابونه د څلورو واړو طرفونو روان کړي دي څه تیز دي او څه رو څه اوږده دي اوڅه واړه.کله اوبه زیاتې دي کله کمې اوکله اوچ کلك.په غرونو ځنګلونو کښې شګه کښې کانړو کښې برابر داچینې بهیږي اورواني دي.دا ټول دهغه فضل کرم لطف اورحم دې نه د هغه نه بغیرڅوك پروردګار شته اونه څوك د عبادت لائق هم هغه رب دې او هم هغه معبود دې هم هغه لارې جوړې کړې دي په اوچه لمده غر ځنګل کښې کلوکښې بیابانونوکښې په هرځائ کښې د هغه لارې موجود دي. چه د یوخوانه بل خواته خلق ځي، څه تنګې لارې دي څه ارتې څه آساني او څه سختې نورهم ډیرې نښې هغه مقررکړې دي لکه غرونه غونډئې وغیره په کومو سره چه داوچې اولمدې مسافران لارمعلومه وي او بې لارې شوي په نیغه لارلګي.ستوري هم د لارخودنې دپاره دي د شپې په تیاره کښې هم د دې په ذریعه لار او رخ معلومیږي. د امام مالك نه روایت دې چه د نجوم نه مراد غرونه دي.

**الله تعالى دټولو خالق او مخلوق بې وسه دې:**-بیادخپل عظمت اولوئې یادګیرنې کولوسره فرمائي چه د عبادت لائق د هغه نه بغیرڅوك نشته.د الله ﷻ نه بغیر چه دکوموکوموچه خلق عبادت کوي هغه ټول بې

---

(١) هيثمي مجمع الزوائد:٥/٢٨٢

(٢) ٧٩/النازعات: ٣٢.

وسه دی دیوڅیز د پیداکولو په هغوی کښې طاقت نشته. اوالله تعالی د ټولوخالق دی ښکاره خبره ده
چه خالق او غیرخالق یو شان نه دی نو بیاد دواړو عبادت کول څومره د ظلم خبره ده؟ دومره بې هوښه
کیدل هم دانسانیت تقاضانه ده. بیادخپلو نعمتونو دزیاتوالی اوکثرت بیان فرمائي چه ستاسو په
شمیرکښې هم هغه نه شي راتلې دومره نعمتونه ماتاسوته درکړی دی دا هم ستاسو د طاقت نه بهر دی
چه زماد نعمتونو شمیراوکړې شئ.الله تعالی ستاسو خطاګانې معاف کوی نوکه د خپلو ټولو نعمتونو
شکرهم تاسونه غواړی نوستاسود وس کارنه دی که د دې نعمتونو په بدلی تاسو نه غواړی نو ستاسو
د طاقت نه بهر دی. واورئی که هغه تاسو ټول په عذاب کوی نو بیا هم هغه ظالم نه دې خوهغه غفور
او مهربانه او رحیم الله تعالی ستاسو غلطئی معاف کوی. ستاسو د خطاګانونه تجاوز کوی نوداد
اطاعت په رجوع اود رضامندئی په طلب سره کومه ګناه اوشی هغې نه سترګې پټوی. ډیر رحیم دې او
د توبه نه پس بیا عذاب نه کوی.

| وَاللّٰهُ | يَعْلَمُ |
|---|---|
| او الله | پوهیږی |
| اوالله ﷻ | |

| مَا | تُسِرُّوْنَ | وَمَا | تُعْلِنُوْنَ﴿١٩﴾ | وَالَّذِيْنَ | يَدْعُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| په هغه کارونو | چې تاسوئې پټوئ | اوپه هغه | چې تاسوئې ښکاره کوئ | اوهغه | چې رابلې ئې خلق |
| هغه څه پیژنی چې تاسو ئې پټوئ او څه چې تاسو ښکاره کوئ | .........اوکوم بتان چې دوئ دالله ﷻ | | | | |

| مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ | لَا يَخْلُقُوْنَ | شَيْـًٔا | وَّهُمْ | يُخْلَقُوْنَ﴿٢٠﴾ | اَمْوَاتٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| ماسوادالله نه | نه پیداکوی هغوئ | هیڅ څیز | بلکه هغوئ پخپله | پیداکړې کیږی | هغوئ مړه دی |
| نه سوا رابلی | هغوئ هیڅ نشی پیداکولې | بلکه هغوئ پخپله جوړولې شی | هغوی مړه دی | | |

| غَيْرُ اَحْيَاۗءٍ | وَمَا يَشْعُرُوْنَ | اَيَّانَ | يُبْعَثُوْنَ﴿٢١﴾ | اِلٰهُكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| نه دی ژوندی | اونه پوهیږی هغوئ | چې کله به | هغوئ راپوته کړې کیږی | معبود ستاسو |
| ژوندی نه دی | اوهغوی نه پوهیږی چې کله به دوباره راژوندی کولې شی | ستاسو معبود | | |

| اِلٰهٌ | وَّاحِدٌ | فَالَّذِيْنَ | لَا يُؤْمِنُوْنَ | بِالْاٰخِرَةِ | قُلُوْبُهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| معبود | یودې | نو هغه کسان | چې نه راوړی ایمان | په آخرت باند | زړونه دهغوئ |
| هم یو معبود دې | نو څوک چې په آخرت باندې ایمان نه راوړی | د هغوئ زړونه | | | |

| مُّنْكِرَةٌ | وَّهُمْ | مُّسْتَكْبِرُوْنَ﴿٢٢﴾ | لَا جَرَمَ | اَنَّ اللّٰهَ | يَعْلَمُ | مَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په انکار ټینګ دی | اوهغوئ | تکبیر کونکی دی | حقه ده داخبره | چې بیشکه الله | پیژنی | هغه څه |
| منکر دی | اوهغوئ تکبر کونکی دی | ............یقینی خبره ده | چې الله ﷻ په هغه څه | | | |

| يُسِرُّوْنَ | وَمَا | يُعْلِنُوْنَ | اِنَّهٗ | لَا يُحِبُّ | الْمُسْتَكْبِرِيْنَ﴿٢٣﴾ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې پټوی ئې دوئ | اوهغه څه | چې ښکاره کوی ئې دوئ | بیشکه چې هغه | نه خوښوی | تکبر کونکی خلق |
| چې دوی ئې پټوئ اوپه هغه څه چې دوی ئې ښکاره کوئ پوهیږی | بیشکه هغه تکبر کونکی نه خوښوی | | | | |

**قوله تعالى:-** وَهُمْ يُخْلَقُونَ۝

**دَ هريو څيزخالق الله تعالى دي:-** پټ او ښکاره هرڅه الله تعالى پيژني دواړه هغه ته يوشان دي. هريوعمل کونکي ته دهغه دعمل بدله به د قيامت په ورځ ورکوي نيکانوته بدله بدانوته سزا. د کومو باطلو معبودانونه خلق خپل حاجتونه غواړي هغوى د هيڅ څيز خالق نه دي بلکه هغوى پخپله مخلوق دي. لکه څنګه چه خليل الله حضرت ابراهيم عليه السلام خپل قوم ته فرمائيلي وو﴿قَالَ أَتَعْبُدُونَ مَا تَنْحِتُونَ ۝ وَاللَّهُ خَلَقَكُمْ وَمَا تَعْمَلُونَ۝﴾ [1]تاسو دهغې عبادت کوئ چه پخپله ئې جوړوئ.په حقيقت کښې ستاسو او ستاسو د کارونوخالق صرف الله سبحانه وتعالى دي.بلکه ستاسومعبودان کوم چه د الله تعالى نه بغير دي کاڼړي دي بې ساځيزونه دي نه اورې نه ګورې نه شعور لري. دوى ته خودا هم نه دي معلوم چه قيامت به کله راځي.تاسو د دوى نه د نفع اوثواب طمع څنګه لرئ؟داخود هغه الله تعالى نه کيدل پکاردي چه د هر څيز عالم اود ټول کائنات خالق دي.

**صرف هم الله تعالى دَ عبادت لائق دي:-** هم الله تعالى معبودبرحق دي دهغه نه بغيرڅوك هم دعبادت لائق نشته. واحددي احددي څان له دي صمددي دکافرانو په زړه ښه خبرې نه انکارى دي.هغوى دا حق کلمه اوريدوسره حيرانيږي د واحد ذکراوريدوسره مرژواندي شي اوکه دنورو ذکر وى نو بيا خاندي. دوى دالله ﷻ دعبادت نه مغروردي نه دهغوى په زړونوکښې ايمان دي اونه هغوى د عبادت عادت دي. داسې خلق به په ذلت سره دوزخ کښې داخليږي. يقيناً الله تعالى دهرپټ اوښکاره عالم دي په هر عمل به بدله او سزا ورکوي اوهغه د غرور کونکوخلق نه ويزاره دي.

| |
|---|
| وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ مَاذَا أَنْزَلَ رَبُّكُمْ قَالُوا أَسَاطِيرُ |
| او کله چې \| اووئيلې شي\| دوئ ته څه څيز\| نازل کړې دي\| رب ستاسو\| نووائي دوئ\| چې قيصې دي |
| اوکله چې ددوئ نه تپوس اوشي \| چې ستاسو رب څه نازل کړې دي \| نودوي وائي چې د پخوانو خلقو |
| الْأَوَّلِينَ۝ لِيَحْمِلُوا أَوْزَارَهُمْ كَامِلَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَمِنْ أَوْزَارِ |
| درومبنوخلقو \| دپاره ددې چې بارکړې دوئ\| پيټي خپل \| ټول \| په ورځ دقيامت \| او پيټي |
| قيصې دي \| (د دې انجام به داوي) چې دقيامت په ورځ به د خپلوګناهونو اود هغه خلقود ګناهونو |
| الَّذِينَ يُضِلُّونَهُمْ بِغَيْرِ عِلْمٍ أَلَا سَاءَ مَا |
| دهغه کسانو \| چې دوئ ګمراهه کوي هغوئ لره \| په وجه دناپوهئ\| خبردار واوريئ\| ډير بددي \| هغه |
| پيټي اوچتوي \| چې هغوى ئې بغير دعلم نه ګمراه کړې دي \| دوى چې کوم پيټي اوچتوى هغه ډير |
| يَزِرُونَ۝ |
| چې باروي ئې دوئ دوکه بازي کړې ده \| |
| خراب دي \| |

**قوله تعالى:-** وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ مَاذَا أَنْزَلَ رَبُّكُمْ

**دَ قرآن پاک دَ منکرانوتذکره:-** دې د قرآن پاك دمنکرانونه چه کله سوال کولې شي چه د الله تعالى په کلام کښې څه نازل شوى دي؟ نود اصل جواب نه اخوابکواس کوي چه بغيرد تيروشوقصونه په کښې څه

[1] ٣٧/الصافات:٩٥-٩٦

پراته دی؟هم هغه نی ليکلې دی اوسحرمابنام نی سردوباره کوی.نو په رسول الله ﷺ باندې دخان نه خبرې ترې کله څه وائی کله د هغه خلاف څه وائی په حقيقت کښې په يوه خبره اودريږی نه اودا ډير لوئ دليل دې دهغوی دټولو اقوالو باطل کيدو. هريوچه د حق نه اخوا شی هغه هم داسې سروهلې يوخوا بل خوا ګرځی.کله حضورﷺ ته جادوګر وائی کله شاعر کله کاهن اوکله مجنون. بيا د هغوی بوډا ګرو وليد بن مغيره مخزومی هغوی ته د ډير غور اوفکر نه پس اووئيل چه ټول په يوه خَله دې کلام ته اثرکونکې جادو وائې.دهغوی د دې قول نتيجه به بده وی او مونږ هغوی په دې وينا باندې خکه لګيا کړل چه دوی د خپلې پوره ګناه سره سره د هغه څه ګناه هم په خپل سرواخلی کوم چه د هغه مقلد دی او هغه پسې شاته شاته روان دی.

**حق او باطل داعی ته دخپل دعوت اوتابعينو ثواب او ګناه ملاويږی:**-په حديث شريف کښې دی چه د هدايت دعوت ورکونکی ته د خپل اجر سره د خپل تابعداروخلقو اجر هم ملاويږی اود هغوی اجرنه کميږی. اود بدئی طرف ته رابلونکی ته د هغه د منونکو ګناه هم ملاويږی خود منونکو ګناه نه کميږی([1]) د قرآن کريم په بل آيت کښې دی ﴿وَلَيَحْمِلُنَّ أَثْقَالَهُمْ وَأَثْقَالًا مَّعَ أَثْقَالِهِمْ﴾([2])دوی به د خپلې ګناه د بوج سره سره نور بوج هم اوچتوی اودهغوی د افترايعنی د څان نه خبروباره کښې به د قيامت په ورځ ضرور تپوس کيږی. نود منونکو بوج هم لکه د هغوی په ستونوباندې دې خوهغوی به سپکيږی هم نه.

| قَدْ مَكَرَ | الَّذِينَ | مِن قَبْلِهِمْ | فَأَتَى اللَّهُ |
|---|---|---|---|
| دوکه بازی کړی ده \| هغه کسانو \| چی مخکښې ددوئ نه وو \| نو راغي الله | | | |
| \| ددوئ نه وړاندې خلقو هم (دپيغمبرانو خلاف) سازشونه کړی وو \| دهغوی په ابادئ دالله | | | |

| بُنْيَانَهُم | مِّنَ الْقَوَاعِدِ | فَخَرَّ | عَلَيْهِمُ السَّقْفُ | مِن فَوْقِهِمْ | وَأَتَاهُمُ |
|---|---|---|---|---|---|
| آبادئ دهغوئ ته \| دبيخ نه \| نوراپريوت \| په هغوئ باند \| چت \| دپاسه دهغوئ نه \| اوراغي هغوئ ته | | | | | |
| (قهر) د بنيادونود طرفه راغلو \| نو په هغوی باندې د پورته نه چت راپريوتلو \| او په هغوی د هغه طرف نه عذاب | | | | | |

| الْعَذَابُ مِنْ حَيْثُ | لَا يَشْعُرُونَ | ثُمَّ | يَوْمَ الْقِيَامَةِ | يُخْزِيهِمْ |
|---|---|---|---|---|
| عذاب \| دهغه طرفنه \| چی هډو ګمان نه وؤ دهغوئ \| بيا \| په ورځ دقيامت \| به رسوا کړی هغوئ لره | | | | |
| راغلو \| چې دهغوی په ګمان کښې هم نه وو \| بيا د قيامت په ورځ به ئې الله ﷻ ذليله کړی | | | | |

| وَيَقُولُ | أَيْنَ | شُرَكَائِيَ | الَّذِينَ | كُنتُمْ | تُشَاقُّونَ |
|---|---|---|---|---|---|
| او ورته به وائی \| کوم خائې دی \| شريکان څما \| هغه \| چی وئ تاسو \| چی مخالفت به موکوؤ | | | | | |
| او ورته به اووائی اوښايئ زما هغه شريکان کوم خائې دی؟چې تاسو به دهغوئ دپاره (دمومنانوسره) جګړې | | | | | |

| فِيهِمْ ۚ | قَالَ | الَّذِينَ | أُوتُوا | الْعِلْمَ | إِنَّ | الْخِزْيَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په حق دهغوئ کښی \| اوبه وائی \| هغه کسان \| چی ورکړې شوې وؤ هغوئ ته \| علم \| بيشکه \| رسوائی ده | | | | | | |
| کولې \| نود علم خاوندان به اووائی \| چې د نن ورځې پوره رسوائی اوبدبختی د هغه کافرانو دپاره ده | | | | | | |

---

[1] صحيح مسلم كتاب الذكر والدعاء باب من سن حسنة اوسيئة ومن دعا الى هدى اوضلالة: ٢٦٧٤، ابوداؤد:٤٦٠٩، ترمذی: ٢٦٧٤ ابن ماجه:٢٠٦، دارمی:١/١٤١، احمد:٢/٣٩٧، مسندابی یعلی:٦٤٨٩، مسندابی عوانه:٥٨٢٣.

[2] ٢٩/العنكبوت:١٣.

| الْيَوْمَ | وَالسُّوْٓءَ | عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ﴿۲۷﴾ |
|---|---|---|
| نن ورځ | او بدبختي ده | په كافرانو باندې |

**قوله تعالى:- قَدْ مَكَرَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ**

**د نمرود وغيره انجام:**-بعضې خوواني چه د دې مكارنه مراد نمرود دې چا چه بالاخانه تياره كړې وه د ټولو نه اول د ټولونه زياته سركشي هم هغه په زمكه كړې وه. الله تعالى دهغه د هلاكت د پاره يو ماشې راوليگلو چه دهغه په پوزه كښې ننوتلواودځلوروسوو كالوپورې دهغه مازغه ستل.پدې موده كښې به هغه ته لږ شان آرام وو كله چه به ئې هغه په سر په چيترو وهلو. ښه د دوارو لاسونو په زور سره به د هغه په سرچيترې دانگولې شو هغه ځلورسووكالوپورې بادشاهي هم كړې وه او ښه فساد ئې خور كړې وو.

**دويم قول ، دې نه مراد بخت نصردې:**-بعضې واني چه دې نه مراد بخت نصردې دې هم ډير مكارو خو الله تعالى ته ځوك څه نقصان رسولې شى كه د هغه مكر د غرونو د خپل ځائ نه خوزونكې ولې نه وى.

**دريم قول دا د عام كافرانو مثال دې:**-بعضې وانى چه داخودكافرانو اومشركانو چه د غير عبادت ئې كولو د هغوى د عمل د بربادئى مثال دې لكه چه حضرت نوح ﷺ فرمائيلي وو﴿وَمَكَرُوْا مَكْرًا كُبَّارًا﴾[1] دې كافرانوډيرمكراوفريب اوكړو په هره يوه بهانه باندې ئې خلق گمراه كړل اوپه هره طريقه ئې خلق په شرك باندې تياركړل نودهغې تابعدار به د قيامت په ورځ هغوى ته وائى چه ستاسو د شپې ورځې مكر چه په مونږ باندې موكفر او شرك ونيلوالخ.[2] دهغوى دعمارت په جرړه او بنيادسره د الله تعالى عذاب راغلو يعنې بالكل ئې اوكنستلو د اصل نه ئې پريكړو. لكه چه ارشاددې چه كله د جنگ اُور تيزول غواړي نو الله تعالى هغه مړكوى[3] بل ځائ فرمان دې چه هغوى له الله تعالى د داسې ځائ نه راغلو چرته نادانسته چه د هغوى وهم اوگمان هم نه وو.د هغوى په زړونوكښې داسې رعب واچولو چه دوى په خپلو لاسونو باندې خپل مكانات تباه كول اوبل طرف ته د مؤمنانو د لاسه ختم شو. عقل مندو عبرت حاصل كړئى. [4] دلته فرمائى چه الله تعالى دهغوى دمكان د بنياد نه راغلو او په هغوى باندې د بره نه چت راغلو او هر ځائ نه په هغوى باندې عذاب راغلو. د قيامت د ورځې رسوائى او سپكاوې لا پاتې دې. هغه وخت به پټ ټول راښكاره شى. د دننه نه به ټول بهر راشى. هرڅه به راښكاره شى.

**قيامت كښې به هرعذاب سره دعذر جهنډا وى:**-حضورﷺ فرمائى چه هريوغداردپاره به هم هغه سره جهنډا خښه كړې شى چه دهغه د غدراو دهوكې مطابق به وى اومشهورولې به شى چه د فلانكى دا غدر دې كوم چه د فلانكى خوئ وو[5] دغه شان به داخلق هم دټولوبه وړاندې په ميدان حشركښې رسوا كولې شى.دهغوى نه به د هغوى پروردگار په غصه كښې تپوس فرمائى چه د چا په حمايت كښې تاسو زما بنديگانو سره اينختلې ئى هغه نن چرته دى؟ ستاسو امداد ولې نه كوى؟ نن بې يارومددگارولې ئى؟ دوى به چپ شى څه جواب به وركړې او عاجز به شى كوم يو د دروغو دليل پيش كړې شى؟ دغه وخت كښې به علماء كرام چه د الله تعالى اود هغه د مخلوق سره به عزت لرى جواب به وركړى چه رسوائى او عذاب نن كافران راگيركړى دى اود هغوى معبودانو د دې باطلانونه مخ اړولې دې.

---

[1] ٧١/نوح:٢٢.
[2] ٣٤/سبا:٣٣.
[3] ٥/المائدة:٦٤.
[4] ٥٩/الحشر:٢.
[5] صحيح بخارى باب مايدعى الناس باباٰئهم:٦١٧٧، صحيح مسلم:١٧٣٥، مسندابويعلى:٥٣٤٢.

الَّذِيْنَ تَتَوَفّٰهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ
| په هغه باندا | چې کله روح قبض کوي دهغوئ | فرښتې
چې فرشتې ئې په داسې حال کښې روحونه اخلي |

ظَالِمِيْٓ اَنْفُسِهِمْ‌ص فَاَلْقَوُا السَّلَمَ مَا كُنَّا
په دا حال چې ظلم کونکي دي | په خانونو خپلو باندې | نو وړاندې به کړي | صلحه | چې نهٔ وو مونږ
چې په خپلو ځانونو باندې ئې ظلم کولو | نو بیا به هغوئ د صلحې خبره پیش کړي | چې مونږ

نَعْمَلُ مِنْ سُوْٓءٍ‌ط بَلٰٓى اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌۢ بِمَا
| چې کول به مو څه بدي | ولې مونځ کوله | بیشکه الله | ښه خبر دی | په هغه کارونو
خو هیڅ بد عمل نه دي کړی | ........................ بیشکه الله ﷻ ستاسو د ټولو عملونو نه

كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ۝ فَادْخُلُوْٓا اَبْوَابَ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا‌ط
چې وئ تاسو | چې کول به تاسو | اوس ننوځئ | دروازو | ددوزخ ته | چې همیشه به اوسئ | په هغې کښې
خبر دي | نو اوس ددوزخ دروازو ته ورداخل شئ | تاسو به په دې کښې همیشه پراته یئ | د تکبر کونکو

فَلَبِئْسَ مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِيْنَ۝ وَقِيْلَ لِلَّذِيْنَ
نو ډیر خراب دی | ځاي داوسیدو | دتکبر کونکو خلقو | او چې اوونیلي شو | هغه کسانو ته
دپاره څومره خراب ځاي دی | ........................ او متقیانو ته (د تپوس په طور) اوونیلې شو

اتَّقَوْا مَاذَآ اَنْزَلَ رَبُّكُمْ‌ط قَالُوْا خَيْرًا‌ط
چې ځان ئې اوساتو دشرك نه | څه څیز | نازل کړی دی | رب ستاسو | نو اوونیل هغوئ | چې بهتره څیز
چې ستاسو رب څه رانازل کړی دی | نو جواب ورکوي چې ډیر ښه کلام یې نازل کړي دي

لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوْا فِيْ هٰذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةٌ‌ط وَلَدَارُ الْاٰخِرَةِ
دپاره دهغه کسانو | چې نیکي اوکړه هغوئ | په دې دنیا کښې | نیکه جزاده | او خامخا کورا داخرت ئې
د نیکو کارو دپاره په دې دنیا کښې نیکه بدله ده | او خامخا د اخرت کور (جنت) د ټولو نه

خَيْرٌ‌ط وَلَنِعْمَ دَارُ الْمُتَّقِيْنَ۝ جَنّٰتُ عَدْنٍ يَّدْخُلُوْنَهَا
ډیر غوره دی | او ډیر ښه دی | کور د متقیانو | باغونه | دهمیشه اوسیدو | چې ننوځي به هغې ته
بهتر دی | او دپرهیزګارو هغه کور ډیر ښهٔ کور دی | د همیشه اوسیدو باغونه دي | هغې ته به دوی

تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ لَهُمْ فِيْهَا مَا يَشَآءُوْنَ‌ط
بهیږي به | لاندې دهغې نه | نهرونه | وي به هغوئ لره | په هغې کښې | هغه چې | غواړي هغوئ
ورداخلیږي | ددې لاندې به نهرونه بهیږي | دوی چې هلته څه غواړي | هغه به ورته ملاویږي

كَذٰلِكَ يَجْزِي اللّٰهُ الْمُتَّقِيْنَ۝ الَّذِيْنَ تَتَوَفّٰهُمُ
دارنګې بدله ورکوي الله | پرهیزګاران | هغه پرهیزګاران ته | چې کله روحونه قبض کوي دهغوئ نه
پرهیزګارانو ته الله ﷻ دغه شان بدله ورکوي | دا هغه خلق دی چې فرښتې د دوی روحونه

| الْمَلٰٓئِكَةُ | طَيِّبِيْنَ | يَقُوْلُوْنَ | سَلٰمٌ | عَلَيْكُمُ | ادْخُلُوا | الْجَنَّةَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فرښتې \| په حالت د پاکیزګۍ کښې\| نووائي ورته\| سلام دوی\| په تاسو باندا\| ننوځئ تاسو\| جنت ته | | | | | | |
| په د اسې حال کښې قبض کوی \| چې پاکان وی\| فرښتې ورته اووائي چې په تاسو دې سلام وی او دخپلو نیکو | | | | | | |

| بِمَا | كُنْتُمْ | تَعْمَلُوْنَ |
|---|---|---|
| په سبب د هغې عملو نو\| چې وئ تاسو\| چې کوئ به تاسو \| | | |
| عملونو په بدله کښې جنت ته ورداخل شئ\| | | |

قوله تعالى:-الَّذِيْنَ تَتَوَفّٰهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ ظَالِمِيْٓ اَنْفُسِهِمْ
**دَ مرګ په وخت کښې دَ ظالمانو کیفیت:-** د مشرکانود مرګ په وخت کښې حال بیانیږی چه کله فرښتې د هغوی د روح ویستلود پاره راځی نودې هغه وخت کښې د اوریدلوعمل کولو او منلواقرار کوی او دې سره خپل کارونه پټوی اوخپله بې ګناهي بیانوی.د قیامت په ورځ به هم دالله تعالى په وړاندې قسمونه خوړلو سره خپل مشرك نه کیدل بیانوی څنګه چه په دنیاکښې دخلقو په وړاندې خپله بې ګناهۍ باندې قسمونه خوری.دوی ته به جواب ملاویږی چه دروغژن نی او په ښه کولاوزړه مو بدعملئ کړی دی الله تعالى غافل نه دې چه ستاسو په خبروکښې به راشی په هغه باندې هریوعمل ښکاره دې اود خپلوکړوسزا اوخورئ اود دوزخ دروازو ته لاړ شئ اودهمیشه دپاره دې خراب ځای کښې پراته اوسئ.
**د کافرانو دپاره خراب مقام:-**مقام خراب مکان خراب د ذلت او رسوائۍ والا دابدله د الله تعالى د آیاتونو تکذیب اود هغې نه کبر کونکو اود هغه د رسولانود تابعدارئ نه ځان پټولو. مړه کیدوسره د هغوی روحونه دوزخ ته اورسیدل اویه بدنونوباندې په قبرونوکښې د دوزخ ګرمی اود هغې لمبې راځی. د قیامت په ورځ به روحونه بدنونوسره یوځای شی او د دوزخ په اُورکښې به ورځی چه نه به مرګ وی او نه څه کمې.لکه چه دالله تعالى فرمان دې ﴿اَلَّذِيْنَ تَتَوَفّٰهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ ظَالِمِيْٓ اَنْفُسِهِمْ﴾[1] دوی د دوزخ اُور له هر سحر اوماښام راوړلې شی د قیامت قایم کیدو سره به اې آل فرعون تاسو سخت عذاب ته ورځئ.
**دَ نیکانوخلقو بهترین انجام:-** د بدانوحال بیانولو سره اوس دنیکانوحالات چه بالکل د هغوی نه بدل دی بیانولې شی. دبدانوخلقو جواب خودا وو چه د الله تعالى کتاب صرف د وړاندینوقصې نقل کول دی خو دانیکان خلق جواب ورکوی چه دا خو سراسر برکت او رحمت دې څوك هم چه دا اومنی په دې عمل اوکړی هغه به دبرکت اورحمت نه ډك شی.بیا فرمائی چه ماخپلورسولانوسره وعده کړې ده چه نیکانوته به د دواړو جهانونوخوشحالئ حاصلیږی. لکه چه ارشاد دې چه کوم سړې نیك عمل اُوکړی که هغه ښځه وی که سړې اوداضروری دی چه هغه مؤمن وی نومونږ به هغوی ته ډیر پاك ژوندون ورنصیب کړو اود هغوی د بهترین عملونویدله به هم ضرور ورکوو. ([2]) په دواړو جهانونوکښې به بدله بیاموی.
**دآخرت کور ددنیا دکور نه ډیر زیات بهتر دې:-**یادساتئ چه د آخرت کور د دنیاد کورنه ډیر غوره او ښه دې د هغه ځای بدله ډیره ښکلې او د همیشه د پاره ده. لکه چه د قارون د مال خواهش کونکوته علماؤ کرامو فرمائیلې وو چه د الله تعالى ثواب بهتردې الخ. د قرآن کریم ارشاد دې ﴿وَمَا عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرٌ لِّلْاَبْرَارِ﴾ ([3]) الله تعالى سره د نیکوکاروخلقو د پاره اعلى څیزونه دی بل ځای ارشاد دې آخرت خیر او باقی دې. خپل نبی ﷺ ته نې خطاب کولو سره اوفرمائیل ستاد پاره آخرت د دنیا نه بهتردې. بیافرمائی چه د

[1]) ٤٠/المؤمن:٤٦.
[2]) ١٦/النحل:٩٧.
[3]) ٣/آل عمران:١٩٨.

آخرت كوردمتقيانودپاره ډير ښه دي جنات عدن بدل دي د﴿دَارُ الْمُتَّقِيْنَ﴾ يعنى د دوى دپاره دآخرت په كور كښې جنت عدن دي كوم خاىٔ چه به هغوى اوسيږى دكومي دونواومحلونولاندي چه يوشان او هر وخت چينې رواني دى چه څه غواړى ملاويږى به د ستركوهريويخوالي به ملاويږى اوهغه هم د هميشه د پاره. په حديث شريف كښې دى چه جنتيان به ناست وى په سرياندي به نى اوريخي راوچتيږى اوچه دوى كوم يوخواهش كوى هغه به په دوى باندي راوروى تردي پورې چه كه څوك اووانى چه هم عمر پيغلي دي راووريږى نودا به هم كيږى.پرهيزګارو اوتقوى داروخلقو ته الله تعالى همداسې بدلې وركوى څوك چه ايماندارو وى ويريدونكي وى او نيك عمل وى د هغوى د وفات په وخت كښې دوى د شرك د ګندګى نه پاك وى. فرښتي راځى سلام كوى د جنت زيرې ورته اوروى چه د الله ﷻ ارشاد دي﴿ إِنَّ الَّذِيْنَ قَالُوْا رَبُّنَا اللّٰهُ ﴾ (١)كوم خلقوچه الله تعالى رب اومنلواوبياپه دي باندي قايم پاتې شوهغوى له فرښتې راځى او ورته وائي چه غم او ويره مه كوه د جنت زيرې واوره د كوم چه تاسره وعده وه مونږ په دنيا او آخرت كښې ستا خيال ساتونكي يو چه ته څه غواړى بياموميې به او چه څه غواړې ملاويږى به ته د الله تعالى چه ښيبونكې اومهربان دې ميلمه نى. د دې مضمون احاديث مونږ په آيت ﴿ يُثَبِّتُ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ﴾(٢) په تفسير كښې بيان كړى دى.

| |
|---|
| هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّآ |
| ايا انتظاركوى دوىٔ \| بس دي خبرى ته |
| ايا دا كافران صرف په دي انتظار كښي دى |
| اَنْ تَاْتِيَهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ اَوْيَاْتِيَ اَمْرُ رَبِّكَ ط كَذٰلِكَ فَعَلَ الَّذِيْنَ |
| چي راشي دوىٔ ته \| فرښتې \| يا راشي \| حكم \| درب ستا \| دارنګي \| كارونه كړي وو \| هغه كسانو |
| چې دوىٔ ته فرښتې راشى \| ياستا د رب حكم (چې عذاب ياقيامت دى) ورته راشى \| دغه شان د هغوخلقو |
| مِنْ قَبْلِهِمْ ط وَمَا ظَلَمَهُمُ اللّٰهُ وَلٰكِنْ كَانُوْٓا اَنْفُسَهُمْ |
| چي مخكښې ددوىٔ نه وو \| اونهٔ ووكړې ظلم په هغوىٔ باندالله \| وليكن \| ووهغوىٔ \| په خانونوخپلوباند |
| كردار هم ووا چې ددوىٔ نه وړاندې تيرشوى وو \| اوالله ﷻ په هغوى هيڅ ظلم نه وو كړى \| بلكه هغوى پخپله په |
| يَظْلِمُوْنَ۝ فَاَصَابَهُمْ سَيِّاٰتُ مَا عَمِلُوْا وَحَاقَ |
| چي ظلم به نې كوو \| نواورسيده هغوىٔ ته \| ناكاره بدله \| دهغې عملونو \| چې كړي ووهغوىٔ \| اوچاپيره شو |
| خپلوخانونو ظلم كولو \| نونتيجه دا شوه چې اخر هغوى ته د خپلو ګناهونو سزا اورسيده \| اوهغه عذاب ترې |
| بِهِمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ۝ ع |
| دهغوىٔ نه \| هغه عذاب \| چې ووُ هغوىٔ \| چې په هغې پورې به نې توقې كولې \| |
| راچاپيره شو \| چې دوىٔ به ورپورې توقې كولې \| |

**قوله تعالى:-هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّآ اَنْ تَاْتِيَهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ**

**مشركان دكوم څيز انتظار كوى:-**الله تعالى مشركانوته په غصه كښې فرمانى چه دوى ته خود هغه فرښتو انتظار دي چه د دوى روح قبض كولوله به راځى ياد قيامت انتظاردي اود دي د تباهو او بربادو. د

---

(١) ٤١/حٰم السجدة:٣٠.

(٢) ١٤/ابراهيم:٢٧.

دوی په شان د دوی نه د وړاندې مشرکانو هم دا طریقه وه تردې چه په هغوی د الله تعالی عذاب راغلو الله تعالی خپل حجت پوره کړو د هغوی عذرونه ئې ختم کړل کتابونه ئې نازل کړل رسولان ئې راولیګل نوبیاد هغوی دانکارپه اصرار باندې په هغوی عذاب نازل کړو. دالله ﷻ رسولانونه دهمکیانې اوهغوی پورې د توقومسخروکولوپه وبال او نقصان کښې راګیرکړې شو. الله تعالی په هغوی باندې ظلم نه دې کړې بلکه هغوی پخپله خپل کارخراب کړو. هم په دې وجه به هغوی ته د قیامت په ورځ وئیلې شی چه دادې هغه اُور کوم چه تاسو دروغ ګڼړلو.

| وَقَالَ الَّذِيْنَ | اَشْرَكُوْا | لَوْ | شَآءَ اللّٰهُ | مَا عَبَدْنَا |
|---|---|---|---|---|
| اواووئیل هغه کسانو | چې شرك ئې کړې ووّ | که چرې | غوښتلې الله | نو عبادت به نهٔ وو کړې مونږه |

اوهغه کسانو اووئیل چې شرك ئې کړې دې اکه چرې الله غوښتلې نو نه به مونږ دالله ﷻ نه سوا دبل چا عبادت کړې وې

| مِنْ دُوْنِهٖ | مِنْ شَيْءٍ | نَّحْنُ | وَلَآ اٰبَآؤُنَا | وَلَا حَرَّمْنَا |
|---|---|---|---|---|
| بغیر دهغه نه | دهیڅ خیز | مونږه هم | اونهٔ پلارانو زمونږه | اونهٔ به وو حرام کړې مونږه |

اونه زمونږ پلار نیکونو (دبل چا عبادت کړې وې) او نه به د هغه د حکم نه بغیر مونږ څهٔ خیز

| مِنْ دُوْنِهٖ | مِنْ شَيْءٍ ط | كَذٰلِكَ | فَعَلَ | الَّذِيْنَ | مِنْ قَبْلِهِمْ ج |
|---|---|---|---|---|---|
| بغیر دحکم دهغه نه | هیڅ خیز | همدارنګې | کارکړې ووّ | هغه کسانو | چې مخکښې ددویٔ نه ووّ |

حرام کړې وو اوهم دغسې بهانې هغې خلقو هم کړې وې اچې د دویٔ (اهل مکه) نه وړاندې تیر شوی وو

| فَهَلْ | عَلَى الرُّسُلِ | اِلَّا | الْبَلٰغُ | الْمُبِيْنُ ۝ | وَلَقَدْ بَعَثْنَا |
|---|---|---|---|---|---|
| نو آیا شته | په رسولانوباندبله ذمه واری | بغیر | درسونې | ښکاره نه | او بیشکه اولیږو مونږه |

دپیغمبر په ذمه خو بس (دالله احکام) ښکاره رسول دی ا............. اومونږ په هر قوم کښې یونه یو

| فِيْ كُلِّ اُمَّةٍ | رَّسُوْلًا | اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ | وَاجْتَنِبُوا | الطَّاغُوْتَ ج | فَمِنْهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| په هرامت کښې | یورسول | چې بندګی کویٔ دالله | اوځان اوساتې | دسرکشانونه | نوځینې دهغویٔ نه |

پیغمبر ضرور لیږلې دې ا (چې ائې خلقو) د الله ﷻ عبادت کویٔ ا او د بتانو دعبادت نه ځان بچ ساتئ

| مَّنْ | هَدَى اللّٰهُ | وَمِنْهُمْ | مَّنْ | حَقَّتْ | عَلَيْهِ |
|---|---|---|---|---|---|
| هغه خوك ووّ | چې ورته لاراوښودله الله | اوځینې دهغویٔ نه | هغه خوك ووّ | چې ثابته شوه | په هغه باند |

په دویٔ کښې بعضې داسې دی ا چې الله ﷻ ورته هدایت اوکړو ا اوبعضې داسې دی چې په هغوی

| الضَّلٰلَةُ ط | فَسِيْرُوْا | فِي الْاَرْضِ | فَانْظُرُوْا | كَيْفَ | كَانَ | عَاقِبَةُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ګمراهی | نو اوګرځئ | په زمکه کښې | پس اوګورئ | چې څرنګې | ووّ | انجام |

ګمراهی واقع شوې ده ا نو تاسو په زمکه کښې اوګرځئ ا اواوګورئ چې د دروغ ګڼړونکو

| الْمُكَذِّبِيْنَ ۝ | اِنْ تَحْرِصْ | عَلٰى هُدٰىهُمْ | فَاِنَّ اللّٰهَ | لَا يَهْدِيْ | مَنْ |
|---|---|---|---|---|---|
| ددروغ ګڼړونکوا | که تهٔ حرص اوکړې | په هدایت ددویٔ باند | نو بیشکه الله | نهٔ ښائی لار | هغه چانه |

خلقوانجام څهٔ شو؟ اکه ستاسو دا خواهش وی اچې دویٔ به په نیغه لار روان شی انو الله هغه خوک په نیغه لار

| يُّضِلُّ | وَمَا لَهُمْ | مِّنْ نّٰصِرِيْنَ ﴿٣٧﴾ |
|---|---|---|
| چې گمراهه کوي ئې الله | اونه وي هغوئ لره | دمددګارانو نه هیڅوك |

نه روانوي| چې يو ځل ئې ګمراه كړې وي|اوددا سې خلقو دپاره څوک مددګار نشته

قوله‌تعالی:- وَقَالَ الَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا

**دَ مشركانو دَ الله تعالى دَ منشانه غلط استدلال:-** دمشركانو اولته كهوپروته ګورني ګناه كوي په شرك باندې كلك ولاړدي حلال حرام كوي لكه څاروي د خپلو معبودانو په نوم كول تقدير حجت جوړكړې او وائي كه الله تعالى ته زمونږ او زمونږ د مشرانو دا كارونه بدمعلوميدل نوموږ ته به ئې هم هغه وخت سزا راكوله. دوي ته جواب وركولې شي چه دا زمونږ دستور نه دي زمونږ ستاسو دا كارونه ډير ناخوښه دي اود دي د ناخوښئي څرګندونه مونږ د خپلوپيغمبرانو په ژبه كړې ده په ډير سخت تاكيد سره مونږ تاسو د دې نه منع كړې ئې. په هركلي هره ډله او هريوښاركښې خپل پيغام رسونكي ليګلي دي خپل فرض ئې اداكړل د الله تعالى په بنديګانو كښې ئې د الله تعالى د احكامو تبليغ صفاصفا اوكړو ټولوته ئې اووئيل د يوالله تعالى عبادت كوئې د هغه نه بغيرد بل چا عبادت مه كوئې. د ټولونه اول چه په زمكه باندې شرك ښكاره شو نوالله تعالى حضرت نوح ﷺ ته د نبوت خلعت ورنصيب كړو اود ټولونه په آخر كښې دختم المرسلين خطاب وركولو سره رحمة اللعالمين ئې خپل نبي جوړكړو د چا دعوت چه د ټولو انسانانو او پيريانود پاره په مخ د زمكې د ګوټ ګوټ پورې وو لكه چه فرمائي ﴿وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا نُوْحِيْٓ اِلَيْهِ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا فَاعْبُدُوْنِ﴾ [1] يعني تانه وړاندې چه څومره رسولان ليګلي شوي وو هغوي ته وحي نازل كړې شوې وه چه زما نه بغيربل څوك معبود نشته نوتاسو صرف هم زما عبادت كوئې.بل آيت كښې دي چه تانه د وړاندې رسولانونه تپوس اوكړه آيامونږ دهغوي د پاره بغيرد خپل ځان نه بل معبودمقرر كړې وو د كوم چه هغوي عبادت كوي؟[2] دلته هم اوفرمائيلې شو چه د هرامت رسولانودعوت د توحيد تعليم او د شرك نه ويزاري وه نو مشركانو له په خپل شرك باندې د الله تعالى په خوښولوباندې دليل راوړل څنګه مناسب معلوميږي؟دالله تعالى خوښې خود هغه د شريعت نه معلوميږي او دهغه شروع د شرك ختمول اود توحيد د مضبوطولو نه ده.

**د كافرانو د استدلال جواب:-** دټولورسولانو په خُله هغه هم دا پيغام ليګلې اود هغوي شرك كول پريخودل دابله خبره ده كومه چه دحجت قابله نه ده.الله تعالى دوزخ اودوزخيان هم پيدا كړي دي شيطان كافرانو ټول هم هغه پيداكړي دي هغه د خپلو بنديګانونه د هغوي په كفركولو باندې راضي نه دې په دې كښې هم دهغه حكمت تامه او حجت بالغه دي. بيا فرمائي چه د رسولانودخبرولو نه پس دنياوي سزاګانې به هم په كافرانو اومشركانو باندې راځي بعضو ته هدايت هم اوشو اوبعضې په خپله ګمراهئي كښې لاهوشول.تاسودرسولانود مخالفت كونكو د الله تعالى سره دشرك كونكو انجام په زمكه كښې ګرځيدو سره پخپله اوګوره. د تيرو شوو واقعاتو چه چاته علم دې د هغوي نه تپوس اوكړه چه څنګه د الله تعالى عذابونو مشركان غرق كړل د هغه وخت په كافرانوكښې د دې وخت د كافرانود پاره مثالونه او عبرتونه موجود دي. ګوره د الله تعالى نه د انكار نتيجه څومره تباه كن شوه؟

**د نبي په اختيار كښې هدايت نه وي:-** بيا خپل رسول ﷺ ته فرمائي ته د دوي د هدايت څومره حرص كوې خوبې فائدې دي رب د دوي د ګمراهو په وجه دوي د رحمت د درنه لرې غورزولې دي. لكه چه ارشاد

[1] ٢١/الانبياء:٢٥.
[2] ٤٣/الزخرف:٤٥.

دي ﴿وَمَن يُرِدِ اللَّهُ فِتْنَتَهُ فَلَن تَمْلِكَ لَهُ مِنَ اللَّهِ شَيْئًا﴾[1] څوك چه الله تعالی په فتنه کښې اچول غواړی هغه ته څوك هم فائده نه شی رسولې.حضرت نوح ﷺ خپل قوم ته فرمائيلې وو که د الله ﷻ اراده ستاسو د خونيولو دی نوزما نصيحت او خيرخواهي ستاسو دپاره بې کاره څيز دې په دې آيت کښې هم فرمائي چه دالله ﷻ گمراه کړې شوی څوك هم په لارکولې نه شی. لکه چه بل آيت کښې دی چه الله ﷻ نی اوخونيوي نوهغه ته څوك هدايت نه شی ورکولې.هغوی خوورځ په ورځ په خپله سرکشنی کښې وړاندې کيږی ([2]) ارشاد دې په چا چه ستاد رب خبره ثابته شوې ده هغوی ته د ايمان نه نصيب کيدو لکه چه ټولې نښې راغلې وی اوتردې چه د دردناك عذاب مخ اووينی توالله ﷻ يعني دهغه شان اودهغه امرځکه چه هغه څه غواړی نوکيږی چه نه غواړی نونه کيږی نوفرمائي چه هغه خپل گمراه کړې شوی نه په لارکوی او نه بل څوك د هغوی لارخودنه کولې شی څوك دهغه دامداد دپاره پاسيدې شی چه دالله ﷻ عذاب نه نی بچ کړی خلق اوامرهم دالله ﷻ دې هغه رب العالمين دې دهغه ذات دبرکت دې هم هغه ربنتونی معبود دی

وَأَقْسَمُوا

| اودې خلقو قسمونه اوخوړل

| اودا خلق په الله

بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ ۙ لَا يَبْعَثُ اللَّهُ مَنْ يَمُوتُ ۚ بَلَىٰ

په الله باند | په سختو | قسمونو خپلوسره | چې ژوندی به نه کړی الله | هغه څوك | چې مری | ولې نه

سخت قسمونه خوری | چې الله به هغه څوک دوباره راژوندې نکړي څوک چې يوځل مړشي | ولې نه

وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٣٨﴾ لِيُبَيِّنَ

داوعده ده | په هغه باند | حقه | وليکن | زيات دخلقو نه | نه پوهيږی | دپاره ددې چې ښکاره کړی

داوعده خو دالله ﷻ په ذمه لازمه ده | خو زيات خلق نه پوهيږی | دې دپاره به نې ژوندی کوی چې دوی

لَهُمُ الَّذِي يَخْتَلِفُونَ فِيهِ وَلِيَعْلَمَ الَّذِينَ

هغوی ته | هغه حقيقت | چې دوی | اختلاف کوی | په هغې کښې | اودپاره ددې چې معلوم شی | هغه خلقوته

ته د هغه څيز حقيقيت ښکاره کړی | په کوم کښې چې دوی اختلاف کولو | اود دې دپاره به نې ژوندی کوی

كَفَرُوا أَنَّهُمْ كَانُوا كَاذِبِينَ ﴿٣٩﴾ إِنَّمَا قَوْلُنَا

چې دحق نه نې انکار کړې دی | چې بيشکه هغوی | وو | دروغژنان | بيشکه | چې خبره زمونږه

چې دکافرانو يقين راشي چې هم دوی دروغژن وو | ............ | مونږ چې د يو څيز د پيدا کولو

لِشَيْءٍ إِذَا أَرَدْنَاهُ أَنْ نَقُولَ لَهُ كُنْ فَيَكُونُ ﴿٤٠﴾

يو څيز ته | کله چې | اراده اوکړه مونږ | داده چې | اووايو مونږه | هغه څيزته | شه | نو هغه شی |

اراده اوکړو | نو دومره ورته اووايو | چې موجود شه | نو هغه موجود شی (بلکه دې ته هم ضرورت نه وی)

---

[1] ٥/المائدة:٤١.

[2] ٧/الاعراف:١٨٦.

**قوله تعالى:-** إِنَّمَا قَوْلُنَا لِشَيْءٍ إِذَا أَرَدْنَاهُ أَنْ نَقُولَ

**قيامت قايمول د الله تعالى دپاره ډير آسان دى:-** کافران د قيامت قائل نه دى په دې وجه هغوی د نورو خلقوهم ددې عقيدې نه داړولوپوره کوشش کوی.ايمان خرڅوی اودا الله تعالى کلك قسمونه خوړلو سره وائی چه الله تعالى به مړی نه ژوندی کوی. الله تعالى فرمائی چه قيامت په خامخاراځی اودا وعده حق ده خو اکثر خلق په وجه د خپل جهالت او ناپوهئی د رسولانومخالفت کوی. د الله تعالى خبرې نه منی اود کفر په کنده کښې پريوځی.

**قيامت کښې به هر څه ښکاره شی:-** بيا د قيامت د راتلواود بدنونو د بيا راژوندی کيدو بعضې حکمتونه ښکاره کوی فرمائی په کوم کښې چه يودا دې چه په دنياوی اختلافاتوکښې حق څه وو هغه به ښکاره شی بدانوته به سزا او نيکانو ته بدله ملاوشی د کافرانو په خپله عقيده او خپل قول کښې او په خپل قسم کښې دروغژن کيدل ښکاره شو. هغه وخت به ټول اووينی چه دوی له به ديکې ورکوی او دوزخ کښې به ئې ننه باسی او ورته به وئيلې شی چه دادې هغه دوزخ کوم نه چه انکار کولو اوس اوبنائې چه جادو دې که تاسو رانده ئی؟ په دې کښې اوس پراته اوسئ که صبر کوې اوکه چغې وهئ ټول يوشان دی.د عملونو بدله زغمل ډير ضروری دی. بيا دخپل بې اندازې طاقت بيان فرمائی چه هغه څه غواړی په هغې باندې قادر دې هيڅ خبره هغه عاجز کولې نه شی هيڅ يوڅيز د هغه د اختيار نه بهر نه دې هغه چه څه کول غواړی ورته فرمائی چه اوشه نو هم هغه وخت هغه کارکيږی. قيامت هم د هغه د فرمان عمل دې لکه چه فرمائی چه د يوې سترګې په رپ کښې به د هغه وينا والا کاراوشی.

**الله ﷻ دپاره مړۀکول او ژوندی کول يو شان دی:-** ستاسو ټولو پيداکول اودمرګ نه پس بيا راژوندی کول په هغه باندې داسې دی لکه ديو.اخوائی اووئيل چه اوشه ديخوا به اوشی هغه ته خود دوباره وينا کولو اوتاکيدکولوضرورت هم نشته.دهغه دارادې نه مراداومقصدجدانه دې.هيڅ څوك نشته چه دهغه خلاف اوکړې شی.څوك دې چه دهغه دحکم نه خلاف ژبه اوخوزولې شی هغه واحدقهاردې هغه د عظمتونو اوعزتونووالادې دسطلنت اوجبروت والادې دهغه نه بغيرنه څوك معبودنه رب نه حاکم اونه قادر

**الله ﷻ سره شريک جوړول الله ﷻ ته کنځل کول دی:-** حضرت ابوهريره ﷺ فرمائی دالله تعالى ارشاد دې چه بنيادم ماته کنځلې کوی داسې نه دی کول پکار. هغه ما دروغژن ګنړی داهم هغه سره ښه نه ښائی د هغه دروغ ګنړل خوداسې دی که تاکيدی قسمونه خوړلوسره وائی چه الله تعالى به بيا مړی نه راژوندی کوی. زه وايم چه يقينا به ژوندی کيږی داحق وعده ده خو اکثر خلق نه پوهيږی اود دوی مانه کنځل کول دا دی چه وائی الله تعالى په دريوکښې دريم دې حالانکه زه احد يم زه الله يم زه صمد يم د چا چه څوك هم جنس نشته.([1])ابن ابی حاتم کښې خودا حديث موقوفا روايت دې په بخاری او مسلم کښې په نورو الفاظوسره مرفوعا هم روايت راغلی دی.

| وَالَّذِينَ | هَاجَرُوا | فِي اللَّهِ | مِنْ بَعْدِ | مَا ظُلِمُوا |
|---|---|---|---|---|
| اوهغه کسان | چې هجرت ئې اوکړو | په لاره دالله کښې | روستو دهغې نه | چې ظلم اوکړې شو په هغوئ |
| او چا چې د الله ﷻ دپاره هجرت کړې دې | | د دې نه روسته چې ظلمونه پرې شوی وو | | |

| لَنُبَوِّئَنَّهُمْ | فِي الدُّنْيَا | حَسَنَةً | وَلَأَجْرُ الْآخِرَةِ | أَكْبَرُ |
|---|---|---|---|---|
| خامخا به ځائې ورکړومونږ هغوئ له | په دنيا کښې | ښه | او خامخا اجر داخرت | ډيرلوئ دې |
| نومونږ به ورته خامخا په دنيا کښې هم ډيره ښه تيکاؤنړه ورکړوا | | | اود آخرت بدله خو ډيره لويه ده | |

[1] صحيح بخاری کتاب التفسير سورت (قل هوالله):٤٩٧٤.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَوْ كَانُوْا | يَعْلَمُوْنَ ۝ | الَّذِيْنَ | صَبَرُوْا | وَعَلٰى رَبِّهِمْ | يَتَوَكَّلُوْنَ ۝ |
| كاش چي وي | چي پوهيدئ هغوئ | هغه | چي هغوئ صبر اوكړو | او په رب خپل باندي | بروسه كوي هغوئ |

كه (هغه هجرت نه پاتې كيدونكي) پوهيدلي | داهغه كسان دي چي صبر ئې كړې دي او بخپل رب توكل كوي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَآ اَرْسَلْنَا | مِنْ قَبْلِكَ | اِلَّا رِجَالًا | نُّوْحِيْٓ | اِلَيْهِمْ | فَسْئَلُوْٓا |
| او نۀ وو ليږلي مونږ | مخكښې ستانه | مګر سړي | وحي به كوله مونږ | هغوئ ته | نو تپوس اوكړئ |

او مونږ ستانه مخكښې صرف سړي پيغمبران ليږلي دي چي وحي به موورته كوله | نو د عالمانو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَهْلَ الذِّكْرِ | اِنْ كُنْتُمْ | لَا تَعْلَمُوْنَ ۝ | بِالْبَيِّنٰتِ | وَالزُّبُرِ |
| د عالمانو نه | كه يئ تاسو | چي نۀ پوهيږئ | دغه رسولان ليږلي وو مونږ د روښانه نښو | او كتابونو سره |

نه تپوس اوكړئ كه تاسو پخپله نه پوهيږئ (هغوئ مود) په ښكاره دليلونو او كتاسونو سره (ليږلي وو)

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَاَنْزَلْنَآ | اِلَيْكَ الذِّكْرَ | لِتُبَيِّنَ | لِلنَّاسِ | مَا | نُزِّلَ |
| او نازل كړو مونږه | تاته | ادا ذكر | دپاره ددې چي ته بيان كړې | خلقو ته | هغه | چي نازل كړې شوي دې |

او مونږ تا ته كتاب را نازل كړې دې | چي خلقو ته هغه كلام ښكاره كړې كوم چي د دوئ طرفته

| | |
|---|---|
| اِلَيْهِمْ | وَلَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُوْنَ ۝ |
| هغوئ ته | دپاره ددې چي هغوئ فكر اوكړي |

نازل شوي دي | او چي دوئ سوچ او فكر اوكړي

**قوله تعالی:-لَنُبَوِّئَنَّهُمْ فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً**

**د الله تعالی په لاركښې د هجرت كولو فضيلت:-** كوموخلقو چه د الله تعالی په لاركښې خپل وطن بريخې دوستان خپلوان رشته داران كار روزګار او تجارت ئې د الله تعالی په نوم پريخې دې او د الله تعالی د دين د ساتلو دپاره هجرت كوی د هغوی اجر بيانولې شی. په دواړه جهانه كښې دی د الله تعالی ميلمانه دی عزت مند او محترم دی.

**دد ايت مبارك د نازليدو سبب:-** ډير ممكن دی چه د نازليدلو سبب د دې مهاجرين حبش وی چه په مكه كښې دمشركانو سختې سزاګانې زغملونه پس حبشه ته هجرت اوكړو لاړل چه په آزادئی سره د الله تعالی په دين باندې عمل اوكړی. دهغوی بهترين خلق داوو. حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه اودوی سره ددوی بی بی حضرت رقيه k هم وه چه د رسول الله ﷺ لوربی بی وه او حضرت جعفر رضي الله عنه بن ابی طالب چه د رسول الله ﷺ د تره خوئ وو، حضرت ابوسلمه بن عبدالاسد رضي الله عنه وغيره تقريبًا اتيا كسان وو سړی هم وو اوښځې هم چه ټول په ټول صادقان وو. الله تعالی دې ددې ټولونه خوشحاله وی اودوی دې هم خوشحاله كړی. نو الله تعالی داسې رښتونوسره وعده فرمائی چه هغوی ته به ښه ځائ ورنصيب كوی لكه مدينه او پاك رزق. د مال هم بدله ملاوشوه اود وطن هم. حقيقت دا دې چه كوم سړې د الله تعالی د ويرې څنګه څيز پريږدی الله تعالی د هغې په شان بلكه د هغې نه زيات بهترپاك او حلال څيز وركوی. دې غريب الوطن مهاجروته اوګورئ چه الله تعالی دوی حاكمان اوبادشاهان كړل او په دنيا باندې د هغوی حكومت جوړ كړو. اوس لاد آخرت اجراوثواب باقی دې. كه دهجرت نه خان پټونكو اوباقی پاتې كيدونكو ته كه د هجرت د اجر او ثواب نه خبررو نو په هجرت كښې به ئې وړانديوالې كولو الله تعالی دې د

فاروق اعظم ﷺ نه خوشحاله وی هغوی به چه کله یومهاجر ته د غنیمت د مال حصه وغیره ورکوله واخله الله تعالی دې تاله برکت درکړی دا خود دنیاد الله تعالی وعده ده او اوس خو لاد آخرت اجر کوم چه ډیر لوئ عظیم الشان دې باقی دې بیا به ئې هم د دې آیت مبارك تلاوت کولو.

**مهاجرینوصفات:**-ددې پاکو خلقو نور صفتونه بیانولوسره فرمائی چه کوم تکلیفونه د الله تعالی په لارکښې دوی ته رسی دوی هغه برداشت کوی اوپه الله تعالی باندې چه د دوی کوم توکل اوبهروسه دے په هغې کښې هیڅ کله هم فرق نه راځی.په دې وجه د دواړو جهانونښیګړې په خپلو دواړو لاسونو سره راغونډوی.

**دَ رسالت دَ منصب حقدار انسان:**-حضرت عباس ﷺ فرمائی چه کله الله تعالی حضرت محمد ﷺ رسول جوړکړو راوئی لیګلو نوعربوصفاانکاراوکړواو وئی ونیل چه د الله تعالی شان د دې نه ډیر اوچت دې چه هغه څوك انسان خپل رسول جوړکړی د کوم ذکر چه په قرآن کښې هم دې فرمائی﴿لَنُبَوِّئَنَّهُمْ فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً﴾ (١)آیا خلقو ته په دې باندې حیرانتیامعلومه شوې ده چه یوانسان ته خپله وحی نازله کړه چه هغه خلق خبرکړی او فرمائی چه مونږ تانه اول څومره رسولان چه لیګلي وو هغه ټول هم انسانان وو په کومو چه به زمونږ وحی راتله. تاسو د رومبنو آسمانی کتابونو والا نه تپوس اوکړئی چه هغوی انسانان وو که فرښتې. که هغوی هم انسانان وو نوبیاد دې خپلې وینا نه واوړئی. اوکه ثابته وی چه د نبوت سلسله هم په فرښتوکښې راروانه ده نو بې شکه د دې نبی ﷺ انکار کولو سره به تاسو ښه ښکارئی. بل آیت کښې﴿لَنُبَوِّئَنَّهُمْ فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً﴾(٢)لفظ ئې هم اوفرمائیلو یعنی هغه رسولان هم د زمکې اوسیدونکی وو د آسمان نه نه وو.

**داهل ذکر نه څوک ک مراد دی ؟**:-ابن عباس ﷺ فرمائی چه د اهل ذکر نه مراد اهل کتاب دی. د مجاهد ﷺ هم دا وینا ده عبدالرحمن فرمائی چه د ذکر نه مراد قرآن پاك دې. لکه چه ارشاد دې ﴿إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ﴾(٣)کښې دی.دا قول په خپل ځائ ټیك دې خو په دې آیت کښې د ذکر نه مراد قرآن اخستل صحیح نه دی ځکه چه د قرآن پاك نه خو هغه خلق منکروو بیا د قرآن والا نه په تپوس کولو سره د هغوي تسلی څنګه کیدې شوه؟ دغه شان د امام ابوجعفر باقر ﷺ نه روایت دې چه مونږ اهل ذکر یو یعنی دا امت اودا قول هم په خپل ځائ صحیح دې. په حقیقت کښې دا امت د نورو ټولو وړاندینو امتونو نه په علم کښې زیات دی او اهل بیت علما د علماؤ نه په ډیرو درجولوئ دی. خوچه هغوی په سنت مستقیمه باندې کلك ولاړ وی لکه علی ابن عباس ﷺ حسن ﷺ حسین ﷺ محمدبن حنفیه ﷺ علی بن حسین زین العابدین ﷺ علی ﷺ عبدالله بن عباس ﷺ ابوجعفرباقر ﷺ یعنی محمدبن علی بن حسین اود هغوی خامن جعفر ﷺ اود هغوی په شان نور بزرګان حضرات د الله تعالی رحمت او رضادې دوی ته حاصله وی کومو چه د الله تعالی رسئی په مضبوطیاسره نیولي او په صراط مستقیم باندې کلك روان اود هریوحقدارحق ورکونکی.اوهریوکس په خپل اصلی ځائې باندې پیژندونکی اود هر یوعزت اوقدرکونکی وو. او پخپله هغوی د الله تعالی د ټولو مقبولوبندګانو په زړونوکښې ځائ لرونکی وو نودا بې شکه صحیح دی خو په دې آیت کښې دا مراد نه دی

**ټول انبیاء کرامو په بنی ادم کښې وو:**-دلته بیان کیږی چه حضور ﷺ هم انسان وو اود هغوی ﷺ نه

---

(١) ١٠/یونس:٢.

(٢) ١٢/یوسف:١٠٩

(٣) ١٥/الحجر:٩

وړاندې هم انبیاءکرام هم دبنیادمو نه وولکه چه قران کښې ارشاد دې ﴿قُلۡ سُبۡحَانَ رَبِّي هَلۡ كُنتُ إِلَّا بَشَرٗا رَّسُولٗا﴾ [1] اووایه چه زما رب پاك دې زه صرف یوانسان یم اود الله تعالی رسول یم خلق صرف دا بهانه جوړولو سره انکارکوی چه داځنګه ممکن دی چه الله ﷻ یوانسان له خپل رسالت ورکړی.بل آیت کښې دی تاته وړاندې چه ځومره رسولان مونږلیګلي ووهغه ټول خوراك څښناك کونکی اوبازارونوکښې ګرځیدونکی وو[2] بل آیت کښې دی چه هغوی مونږ داسې جوسې نه وو جوړکړی چه د خوراك څښناك نه بې پرواه وو یادا چه مړه کیدونکی نه وو[3] بل ځائ ارشاد دې ﴿ قُلۡ مَا كُنتُ بِدۡعٗا مِّنَ ٱلرُّسُلِ ﴾ [4] چه دا څه د شروع نه یا رومبې او نوې رسول خونه دې.

بل آیت کښې دی چه زه هم ستاسو په شان انسان یم زما طرف ته وحي نازلولې شی. [5] الخ نودلته هم ارشاداوشوچه دړومبو کتابونووالا نه تپوس اوکړئی چه انبیاء به انسانان ووکه غیرانسان؟بیا دلته فرمائی چه رسولانوته هغه دلیلونه ورکولوسره حجتونه ورکوی لیګی.په هغوی باندې کتابونه نازلیږې. صحیفې هغوی له ورکولې شی. د زبرنه مراد کتابونه دی لکه چه قرآن کښې بل ځائ ارشاد دې ﴿وَكُلُّ شَيۡءٖ فَعَلُوهُ فِي ٱلزُّبُرِ﴾ [6] کوم څه چه هغوی اوکړه په کتابونوکښې دی بل آیت کښې دی ﴿وَلَقَدۡ كَتَبۡنَا فِي ٱلزَّبُورِ﴾ [7] مونږ په زبورکښې لیکلي دی.بیافرمائی چه مونږ ستاطرف ته ذکر نازل کړو یعنی قرآن د دې د پاره چه ته د دې دمعنې مطلب نه ښه خبرئی. په دې خلق پوهه کړه. په حقیقت کښې اې نبیﷺ هم ته د دې خلقو نه ډیر حرص کونکې ئی اوهم تاسو د دی ډیر لوئ عالم ئی. او هم ته په دې باندې زیات عمل کونکې ئی.ځکه چه ستاسو اخلاق د ټولونه غوره دی د بنیادمو سردارئی کوم اجمال چه په دې کتاب کښې دی د دې تفصیل ستاسو په ذمه دې خلقو ته چه په دې کښې کوم مشکل وی په هغې باندې ئی پوهه کړه دې د پاره چه هغوی پوهه شی او سوچ اوکړی او لار بیامومی او بیا خلاصې اود دواړو جهانونیکړه حاصله کړی.

| |
|---|
| أَفَأَمِنَ ٱلَّذِينَ مَكَرُواْ |
| آیانوپه امن شوی دی\| هغه خلق\| چې تدبیرونه ئې اوکړل |
| \| آیا کوم خلق چې کوم چې خراب سازشونه |
| ٱلسَّيِّـَٔاتِ أَن يَخۡسِفَ ٱللَّهُ بِهِمُ ٱلۡأَرۡضَ أَوۡ يَأۡتِيَهُمُ ٱلۡعَذَابُ |
| ناکاره ادِدې خبری نه چې ډوب به کړی الله \| دوئ باندې\| په زمکه کښې \| یابه راشی دوئ ته \| عذاب |
| جوړوی بې ویرې شوی دی \| چې الله دوئ په زمکه کښې ننباسی\| یا دوئ باندې د هغه طرف نه عذاب راشی |
| مِنۡ حَيۡثُ لَا يَشۡعُرُونَ ۝٤٥ أَوۡ يَأۡخُذَهُمۡ فِي تَقَلُّبِهِمۡ فَمَا |
| دداسې طرفنه \| چې دوئ به نه پوهیږی \|یا به رااونیسی دوئ لره \| په ګرځیدو ددوئ کښې \| پس نهٔ دی |
| چې د دوی په وهم اوګمان کښې هم نه وی\| یاددوئ په تګ راتګ کښې (ناګهانه) ونیسی\|دوئ په هیڅ |

[1] ١٧/بنی اسرائیل:٩٣
[2] ٢٥/الفرقان: ٢٠
[3] ٢١/الانبیاء:٨
[4] ٤٦/الاحقاف:٩
[5] ١٨/الکهف: ١١٠
[6] ٥٤/القمر: ٥٢
[7] ٢١/الانبیاء:١٠٥

| لَرَءُوفٌ | فَإِنَّ رَبَّكُمْ | عَلَىٰ تَخَوُّفٍ | أَوْ يَأْخُذَهُمْ | بِمُعْجِزِينَ | هُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| خامخامهربان دي | پس بیشکه رب ستاسو | په یره باند | یابه اونیسي دوئ لره | عاجزه کونکي | دوئ |
| بیشکه ستارب ډیر مهربان | اویا د ویرې په حالت کښې یې اونیسي | | | عاجزه کولې نشي | صورت کښې الله ﷻ |

| رَّحِيمٌ |
|---|
| رحم کونکی دي |
| رحم کونکي دي |

**قوله تعالى:-أَفَأَمِنَ الَّذِينَ مَكَرُوا السَّيِّئَاتِ**

**دَ الله تعالى دَ غضب اوغصې بيان:**-الله تعالى دکائناتوخالق دې اود زمکې اوآسمانونو مالك دې د خپل حلم سره دعلم اوخپلې مهربانئ سره غصې بيان فرمائی که هغه اوغوارې نوخپل گناهگار بدکردار بنديگان په زمکه کښې خښولې شی په بې خبرې په هغوی باندې عذاب راوستې شی خود خپلې ډيرې مهربانو په وجه معافی کوی لکه چه په سورت تبارك کښې فرمائی الله تعالى چه په آسمان کښې دې آيا تاسو د هغه د غصې نه نه ويرېږئ چه زمکه به ترمه جوړه کړی او تاسو په هغې کښې ورخښ نه کړی او تاسو له جوتې درکوی.آيا تاسود آسمان والا د الله تعالى نه نه ويرېږئ چه هغه په تاسو باندې د آسمان نه کانړی راونه وروی. هغه وخت به تاسوته معلومه شی چه زماويرول څنگه وی؟(١)اوډا هم کيدې شی چه الله داسې مکاربدکردارخلق په تلوراتلوخوراك کولو گټه کولوکښې راگير کړی په سفر حضر کښې دشپې چه کوم وخت غوارې راگيرکړی لکه چه ارشاد دې ﴿أَفَأَمِنَ أَهْلُ الْقُرَىٰ﴾(٢) آيا کلی والا د هغه نه نه ويرېږی چه هغوی ته به زمونږ عذاب هم دشپې شپې اوده کيدو کښې راشی يا په رڼړا ورځ د هغوی د منډو تررو په وخت کښې راشی الله تعالى هيڅ کار يا هيڅ يوسړې عاجز کولې نه شی. هغه د بيللو والاسترې کيدلووالايانا کامه کيدلووالا نه دې.اوياډا هم ممکن دی چه سره د ويريدو هغوی راونيسی نودواړه عذابونه به يوځائ شی يعنی ويره اونيول.يومرشی بل اوويرېږی اوبيامرشی. خو اوچت رب د کائناتو رب ډير زيات رؤف اورحيم دې په دې وجه ئی زر نه راگيروی.

**د الله تعالى نه څوك زيات صبار نشته:**-بخاری اومسلم کښې دی د طبع نه خلاف خبرې اوريدوسره صبر کولوکښې څوك هم د الله تعالى نه زيات نشته. خلقو هغه له اولاد اوگرځولواوهغه دوی ته په عافيت سره رزق ورکوی (٣) بخاری اومسلم کښې دی الله تعالى ظالم ته مهلت ورکوی خو چه کله نيول نازلوی بيا ناخاپی تباه کيږی.بياحضور ﷺ آيت ﴿أَفَأَمِنَ أَهْلُ الْقُرَىٰ﴾(٤)اولوستلو(٥)آيت کښې دی﴿فَكَأَيِّن مِّن قَرْيَةٍ﴾ (٦) ډير کلی دی کوموته چه ما مهلت ورکړو خوآخر د هغوی د ظلم په وجه مو راگيرکړل واپس کيدل خو هم زما طرف ته دی.

---

(١) ٦٧/الملك:١٦-١٧.

(٢) ٧/الاعراف:٩٧.

(٣) صحيح بخاری کتاب التوحيدباب قول الله تعالى ﴿ان الله هوالرزاق.........الخ﴾:٧٣٧٨.

(٤) ١١/هود:١٠٢.

(٥) صحيح بخاری کتاب التفسير سورت هود باب قوله ﴿وكذلك اخذربك...... الخ﴾:٤٦٨٦، صحيح مسلم:٢٥٨٣، مسندابی يعلی:٧٣٢٢ السنن الكبرى للنسائی:٧٧٠٨، مسندالبزار:٣٠٠٦، احمد٤/٤٠٥

(٦) ٢٢/الحج:٤٨.

اَوَلَمْ يَرَوْا اِلٰى مَا خَلَقَ اللّٰهُ مِنْ شَيْءٍ يَّتَفَيَّؤُا ظِلٰلُهٗ

| ايانه گوری دا خلق | هغه ته | چې پيدا کړې دي الله | يو خيزته | چې گرځي | سوری دهغه

| ايا دوئ داسې خيزونه نه دي کتلی | چې الله ﷻ پيدا کړی دی او د هغې سيورې

عَنِ الْيَمِيْنِ وَالشَّمَآئِلِ سُجَّدًا لِّلّٰهِ وَهُمْ دٰخِرُوْنَ۝

ښي طرفته | او گس طرفته | سجده کونکی | الله ته | حال دا چې ټول خيزونه | عاجزی کونکی دی

ښي او گس طرفته گرځي | الله ته سجدې کوی | او دوئ فرمانبردار دی

وَلِلّٰهِ يَسْجُدُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ

او الله ته | سجده کوی | هغه څه | چې په اسمانونو کښې دی | او هغه څه | چې په زمکه کښې دی

اوپه زمکه او اسمانونو کښې چې څومره ساه لرونکي څيزونه دی ټول د الله ﷻ تابعدار دی |

مِنْ دَآبَّةٍ وَّالْمَلٰٓئِكَةُ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ۝ يَخَافُوْنَ رَبَّهُمْ

دگرځيدونکونه | او فرښتې هم | او هغوئ | تکبر نه کوی | يريږی هغوئ | د رب خپل نه

اوفرښتې هم او دوئ خپل ځان لوئې نه گڼړی | ..................دوی د خپل هغه رب نه ويريږی

مِّنْ فَوْقِهِمْ وَيَفْعَلُوْنَ مَا يُؤْمَرُوْنَ۝ وَقَالَ اللّٰهُ

دپاسه دهغوئ نه | او کوی هغوئ | هغه کارونه | چې دکوم ورته حکم کيدې شی | او اوونيل الله

چې د دوئ دپاسه دې | او د کوم کار چې ورته حکم کولې شی هغه کار کوی | او الله ﷻ فرمائی

لَا تَتَّخِذُوْٓا اِلٰهَيْنِ اثْنَيْنِ اِنَّمَا هُوَ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ

مه نيسئ | خدايان | دوه | بيشکه هم داخبره ده | چې بس هم هغه | معبود | يو دی

چې تاسو دوه معبودان مه جوړوئ | بيشکه صرف هغه يو معبود دی

فَاِيَّايَ فَارْهَبُوْنِ۝ وَلَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ

| پس خاص زمانه | اوويريږئ | او هغه لره دی | هغه څه | چې په اسمانونو کښې دی

نو خاص زما نه اوويريږئ | او په اسمانونو او زمکه کښې چې څه دی دا ټول د هغه

وَالْاَرْضِ وَلَهُ الدِّيْنُ وَاصِبًا اَفَغَيْرَ اللّٰهِ

او په زمکه کښې دی | او خاص دهغه | دين | هميشه چليدونکې دی | ايا بيا به هم بغير دالله نه

ملکيت دی | ..................اوهم د هغه دين هميشه قائم دی | ..................ايا تاسو د الله ﷻ نه سوا

تَتَّقُوْنَ۝ وَمَا بِكُمْ مِّنْ نِّعْمَةٍ فَمِنَ اللّٰهِ ثُمَّ اِذَا

تاسو يريږئ | او هغه چې حاصل دی تاسو ته | دنعمت نه | نو هغه دطرفه دالله نه دی | بيا چې کله

د نورو نه يريږئ | او تاسو باندې چې کوم يو نعمت هم دی نو هغه دالله ﷻ دطرفه دی | بيا چې کله

مَسَّكُمُ الضُّرُّ فَاِلَيْهِ تَجْئَرُوْنَ۝ ثُمَّ اِذَا كَشَفَ الضُّرَّ

اورسيږی تاسو ته | تکليف | نو هم هغه ته | فرياد کوئ تاسو | بيا | چې کله | لرې کړی | هغه تکليف

تاسوته څه مصيبت اورسيږی نو تاسو هم هغه ته فرياد کوئ | بيا چې کله ستاسو نه مصيبت لرې

| لِيَكْفُرُوْا | يُشْرِكُوْنَ | بِرَبِّهِمْ | مِّنْكُمْ | فَرِيْقٌ | اِذَا | عَنْكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چې ناشکرې اوکړي | دپاره ددې نه | شریکوي نورا | درب خپل سرها | ستاسو نه | يوه ډله | ستاسونه نوفورا |
| کړې اِنو په تاسوکښې څه خلق زرد خپل رب سره شريک جوړوی \| د دې دپاره چې کوم نعمتونه مونږ | | | | | | |

| فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ | فَتَمَتَّعُوْا | اٰتَيْنٰهُمْ | بِمَآ |
|---|---|---|---|
| ډير زربه معلوم شي حال تاسو ته | نو نفع واخلئ تاسو | چې ورکړي دي مونږ هغوئ ته | په هغه څيز |
| تاسو به زرپوهه شئ | نو (څو ورځې) مزې واخلئ | دي د هغې ناشكرى اوكړى | دوئ ته ورکړي |

قوله تعالى:- اَوَلَمْ يَرَوْا اِلٰى مَا خَلَقَ اللّٰهُ مِنْ شَيْءٍ

**دَ عرش نه دَ فرش پورې هريوڅيز الله تعالى ته سجده کوی:**-دالله تعالى ذوالجلال والاكرام عظمت جلالت لوئې بې مثالئى ته اوګورئى چه ټول مخلوق د عرش نه فرش پورې د هغه په وړاندې تابعدار او غلام،كانړی بوټی څناورانسانان پيريان فرښتې اوټول كائنات ټول د هغه حكم منونكی اوهرڅيز سحر ماښام د هغه په وړاندې خپله عاجزى او بې كسئى ثبوت پيش كولو سره په ټيټه ټيټه د هغه په وړاندې سجده كونكى دى.

**د هر څيز سجده دهغه دشان مناسب وی:**-مجاهد رحمه الله فرمائى چه د نمر پريوتوسره ټول څيزونه الله ﷻ ته په سجده راپريوځى.هريودرب العالمين په وړاندې خوار او ښكته دې عاجز او بې بس دې د ځرونو وغيره سجده د هغوی سورې دې د سمندر چپې د هغه مونځ دې لكه هغوى د عقل والا ګڼړلو سره د سجدې نسبت ئې دهغوی طرف ته اوكړو وئى فرمائيل دزمكې اواسمان ټول ساه لرونكى څيزونه د هغه په وړاندې په سجده كښې دى.لكه چه ارشاد دې ﴿وَلِلّٰهِ يَسْجُدُ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ طَوْعًا وَّكَرْهًا﴾[1] په خوشحالئ اوناخوشحالئى كښې هريوڅيزدالله ﷻ په وړاندې سربه سجده دې دهغوى سورى سحر ماښام سجده كوى فرښتې هم سره د خپل قدراومنزلت د الله تعالى په وړاندې ښكته دى. د هغه د عبادت نه مخ اړولې نه شى. د الله تعالى نه چه لوئى ذات دې رچيږى او لرزيږى اوچه كوم حكم ورته دې د هغې په پوره كولو كښې مشغولې دى نه نافرمانى كوى اونه سستى كوى.

**ټول هرڅه هم الله تعالى وركړى دى:**-دالله تعالى چه واحد ذات دې د هغه نه بغيرېل څوك د عبادت لائق نشته هغه لاشريك دې هغه دهرڅيزخالق دې اودهرڅيز پالونكې دى.دهغه عبادت خالص اودهميشه د پاره دې اوواجب دې.د نورودعبادت كولو طريقې نه دى اختيارول پكار.د زمكې او آسمان ټول مخلوق كه خوښ وی كه ناخوښ د هغه لاندې دې. د ټولو واپس ګرځيدل هم د هغه طرف ته دى. په خلوص سره د هغه عبادت كوه اود هغه سره د نورو شريك كولونه بچ شه. خالص دين صرف هم د الله ﷻ دې. د زمكې اوآسمان د هريوڅيز مالك هم يوازې الله ﷻ دې ګټه تاوان هم د هغه په اختياركښې دې. د بنديګانو په لاس كښې چه كوم نعمتونه دى دا ټول هم د هغه د طرف نه دى. رزق عافيت نصرت هم د هغه دطرفنه دى هم د هغه فضل اواحسان په بنديګانو باندې دې اواوس هم ددې نعمتونو يا د اختلو نه پس هم تاسو هم داسې د هغه محتاج ئى. مصيبتونه اوس هم په سرولاړ دى د سختئى په وخت كښې هم هغه يادېږى او په چغو چغو پوره عاجزئى سره د سختئى په وخت كښې هم د هغه طرف ته ټيټيږئى.

**دمكې مشركانو به په سختئ كښې هم الله تعالى ته عاجزى كوله:**-پخپله د مكې د مشركانو هم دا حال وو چه كله به په سمندركښې راګير شو او مخالفو هواګانوبه كشتئى دپانړې په شان زنګوله نو خپل د خان

---

[1] ١٣/الرعد:١٥.

نه جوړکړی خدایان بتان پیران فقیران ولیان نبیان ټول به نی هیرکړل اوخالص الله تعالی سره به نی سینه اوتړله او په خالص زړه سره به د دې نه بچ کیدل او خلاصي غوښتلو خود کشتني په غاړه لګیدو سره به نی خپل ټول زاړه خدایان راياد شواود حقیقي معبود سره به نی د هغوی عبادت شروع کړو دې نه زیاته ناشکری اوکفراود نعمتونو هیرول نور څه کیدې شی؟ دلته نی هم اوفرمائیل چه د مطلب پوره کیدلو نه پس ډیر خلق سترګې اړوی. د ﴿لیکفروا﴾ لام لام عاقبت دې او لام تعلیل هم ورته وائی. یعنی مونږ د هغوی دا خصلت په دې وجه کړې دې چه هغوی د الله تعالی په نعمت باندې پردې واچوی اود هغې نه انکار اوکړی او په حقیقت کښې د نعمتونو ورکونکې د مصیبتونو لرې کونکې د هغه نه بغیر بل څوك نشته. بیا هغوی ویروی چه ښه ده په دنیاکښې خو خپل کار اوچلوئی اوهم داسې غونډه فائده دلته اوچته کړئی خود دې انجام به درته هم اوس زر معلوم شی.

وَيَجْعَلُونَ لِمَا لَا يَعْلَمُونَ نَصِيبًا مِّمَّا رَزَقْنَٰهُمْ ۗ

اومقرروی دوی | دپاره دهغه چاچی | خبر نۀ دی دوی | حصه | دهغې رزق نه | چی ورکړې دې مونږ هغوی ته

اودوی زمونږ په ورکړی رزق کښې د هغه چادپاره چې دوی ئې پخپله هم نه پیژنی حصې مقرر کړې دی

تَاللَّهِ لَتُسْـَٔلُنَّ عَمَّا كُنتُمْ تَفْتَرُونَ ﴿٥٦﴾

قسم په الله | چی خامخا به تپوس کیږی ستاسو نه | دهغې دروغو | چی وئ تاسو | چی جوړول به مو

په الله قسم دې | چې تاسونه به خامخا د داسې بهتانونو په باره کښې تپوس کیږی

وَيَجْعَلُونَ لِلَّهِ الْبَنَٰتِ سُبْحَٰنَهُۥ ۙ وَلَهُم مَّا يَشْتَهُونَ ﴿٥٧﴾

او جوړوی دوئ | الله لره | لونړه | پاکي ده هغه لره | او دی دوئ لره | هغه | چی دوئ نې خوښوی

اودوئ دالله دپاره لونړه ګرځولی دی| هغه دپاره پاکی ده| اوځان دپاره هغه څامن غواړی چې دوئ نې خوښوی

وَإِذَا بُشِّرَ أَحَدُهُم بِالْأُنثَىٰ ظَلَّ وَجْهُهُۥ مُسْوَدًّا

او هر کله چی | زیری ورکړې شی | یو ددوئ ته | په لور سره | نو وګرځی | مخ دهغه | تك تور

حال دا چې کله دوئ کښې چاته دلور زیرې ورکړې شی| نو د هغه مخ تک تور شی

وَهُوَ كَظِيمٌ ﴿٥٨﴾ يَتَوَٰرَىٰ مِنَ الْقَوْمِ مِن سُوٓءِ مَا

او حال دا چی هغه | وی څکونکې دغم | پټ ګرځی هغه | دخلقو نه | دوجې دخراب خبر نه | هغه

اوهغه غمژن وی| ............ دکومې جینئ چې دۀ ته زیرې ورکړې شی|دهغې د شرم په وجه د قوم نه

بُشِّرَ بِهِۦٓ ۚ أَيُمْسِكُهُۥ عَلَىٰ هُونٍ أَمْ يَدُسُّهُۥ

چی زیرې ورکړې شوې دې| په هغې سره | چی ایا اوساتی دغه لورا دذلت سره| یاوربنخه کړی هغه

پټ ګرځی| او(سوچ کوی) چې ایا د ذلت سره دا (لور ژوندۍ) پریږدی | اوکه ژوندۍ نې په

فِى التُّرَابِ ۗ أَلَا سَآءَ مَا يَحْكُمُونَ ﴿٥٩﴾ لِلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ

په خاورو کښی | خبردار واورئ | چی بددې | هغه | چی حکم کوی دوئ | دهغه کسانو| چی ایمان نۀ لری

خاورو کښې ښخه کړی | یاد ساته چې د دوئ دا فیصله ډیره بده ده | کوم خلق چې په اخرت

| بِالْاٰخِرَةِ | مَثَلُ | السَّوْءِ | وَلِلّٰهِ | الْمَثَلُ | الْاَعْلٰى | وَهُوَ | الْعَزِيْزُ | الْحَكِيْمُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| په اخرت باند | مثال | دبدئ دي | اوالله لره دي | مثال | او چت | او هغه | غالب دي | او كامل حكمت والا دي |

ايمان نه راوړي د هغوئ مثال خراب دي او دالله شان ډير اوچت دي او هغه زبردست د صاحب د حكمت دي

قوله تعالى:- وَيَجْعَلُوْنَ لِمَا لَا يَعْلَمُوْنَ نَصِيْبًا مِّمَّا رَزَقْنٰهُمْ ؕ

**دَ مشركانو عجيبه دعوى او دَ افسوس قابل رويه:-** د مشركانو بې عقلى او بې وقوفتوب بيانولې شى چه وركونكې الله او هرڅه دهغه وركړې شوى اودوى د هغې نه د خپلو دروغو معبودانو په نوم كوى د كوم چه دوى ته صحيح علم هم نشته. بيا په دې كښې دومره سختى كوى چه كه د الله تعالى د نوم هغه د د دوى د معبودانو د نوم شى نوخيرده خوچه د دوى د معبودانوهغه د الله تعالى د نوم نه شى. د داسې خلقو نه به خامخا تپوس پوښتنه كولې شى. اود دې افترا يعنى د خان خبروبه دوى ته پوره پوره بدله وركولې شى چه د دوزخ اُور به وى اودوى به وى. بيا د دوى بله بې انصافى او بيوقوفتوب بيانولې شى چه د الله تعالى مقرب غلام فرښتې د الله تعالى لونړه دى په دې خطاكولوسره بيا د هغوى عبادت كوى چه د خطا د پاسه خطا ده. دلته د هغوى نه درې جرمونه اوشو اول د الله تعالى د پاره اولاد ګرځول چه دې نه بالكل پاك دې بيا داولاد نه هم هغه قسم هغه ته وركول چه پخپله نى هم د خان د پاره نه خوښوى يعنى جينكئى. څه اولته خبره ده چه دخپل خان دپاره خوهلكان اود الله تعالى د پاره جينكې. بيا د هغوى عبادت كول دادهغوى سراسر بهتان دې صرف دروغ دى څنګه ممكن دى چه د الله تعالى اولاد وى؟ اوبيااولاد هم هغه چه د هغوى په خيال كښې ردى او ذليل څيز دې څه بيوقوفتوب دې چه دوى نه الله ﷻ هلكان وركړى اود خان د پاره لونړه اوساتى؟الله تعالى د دې نه بلكه د اولاد نه پاك دې. دوى ته چه كله خبرملاوشى چه دوى كره جينئى پيدا شوه نود شرم او پښيمانتيا په وجه نى مخ تور شى. ژبه نى بند شى د غم نه نى ملاتيته شى د زهرو ګوټ اوڅكى چه خاموش شى د خلقو نه مخ پټ ګرځى بيا هم په دې سوچ كښې وى چه اوس څه اوكړى كه لورژوندنى پريږدم نو لويه رسوائى ده نه وارث جوړيږى نه په څه څيز پوهيږى خامنوله په دوى بانديې ترجيح وركړى كه ژوندنى ساتى نو په ډير ذلت سره ګنى صفاخبره ده چه ژوندنى په كنده كښې ورخښه كړى نوداحال خو نى خپل دې اود الله ﷻ د پاره هم دغه څيز ثابتوى. څنګه خرابې فيصلې كوى؟ څومره د بې حيايئى تقسيم كوى د الله ﷻ دپاره چه څه ثابت كړى دى هغه د خپل خان د پاره سخت توهين اوتذليل ګنړى. اصل دادې چه خراب مثال اونقصان هم ددې كافرانودپاره دې دالله ﷻ دپاره كمال دې هغه عزيزدې حكيم دې اوذوالجلال والاكرام دې

| وَلَوْ يُؤَاخِذُ | اللّٰهُ النَّاسَ | بِظُلْمِهِمْ | مَّا تَرَكَ | عَلَيْهَا |
|---|---|---|---|---|
| او كه چرې رانيولې | الله \| خلق | په سبب دظلم دهغوئ | نونه به نې وو پرېښې | په مخ دزمكې |

اوكه چرته الله خلق دهغوى د ظلم په وجه نيولې انو به مخ د زمكې به نې هيڅ ساه لرونكې نه وو پريښودې

| مِنْ دَآبَّةٍ | وَّلٰكِنْ | يُّؤَخِّرُهُمْ | اِلٰٓى اَجَلٍ | مُّسَمًّى | فَاِذَا | جَآءَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يو دساه څيز | وليكن | هغه روستو كوى هغوئ لره | دنيتې | مقررې پورې | نو كله چې | راغله |

ليكن هغه دوئ ته تريو مقررې نيتې پورې مهلت وركوى بيا كله چې ددوئ نيته راشى

| اَجَلُهُمْ | لَا يَسْتَاْخِرُوْنَ | سَاعَةً | وَّلَا يَسْتَقْدِمُوْنَ | وَيَجْعَلُوْنَ |
|---|---|---|---|---|
| نيته دهغوئ | نو نشى روستو كيدې هغوئ | يو ساعت | اونه مخكښى كيدې شى هغوئ | او مقرروى دا خلق |

نو نه به يو ګړئ روستو كيديشى ، ارنه به وړاندې كيديشى ...... او (نن) دوئ

| |
|---|
| لِلّٰهِ مَا يَكۡرَهُونَ وَتَصِفُ اَلۡسِنَتُهُمُ الۡكَذِبَ اَنَّ لَهُمُ |
| الله لره \| هغه چي دوئ ئې نه خوښوي\| او بيانوي \| ژبې ددوئ \| دروغ \| چي بيشکه \| دي دپاره ددوئ |
| الله ﷻ ته د هغه لونړو نسبت کوي\| چي خپل خان دپاره ئې نه خوښوي\| اوددوئ ژبې درغ واني چي ددوئ |
| الۡحُسۡنٰى ؕ لَا جَرَمَ اَنَّ لَهُمُ النَّارَ وَاَنَّهُمۡ مُّفۡرَطُوۡنَ ۝ |
| ښه انجام \| خامخا\| بيشکه دي دپاره ددوئ\| وورا\| اوبيشکه چي دوئ\| مخکښي ليږلي کيدونکي دي |
| دپاره ښکلي انجام دي \| دوئ دپاره بس يو څيز دي چي د دوزخ اور دي \|اودوئ به جهنم ته وړاندي ليږلي شي |

قوله تعالى:- وَلَوۡ يُؤَاخِذُ اللّٰهُ النَّاسَ بِظُلۡمِهِمۡ

**دَ الله تعالى مهرباني ده چه په ګناه کولوباندي زر رانيول نه کوي:**-دالله تعالى د حلم کرم لطف او رحم بيان کولي شي چه دبنديګانو ګناه ويني اوبيا هم هغوی ته مهلت ورکوي که زرني نيول کول نو نن به په زمکه باندي يوکس هم ګرځيدونکي راګرځيدونکي نه ښکاريدو.دانسانانوپه خطاکښي به ځناورهم هلاك شي غنموسره به سپګئ هم وړه شي.دبدانوسره به ښه خلق هم راګيرشي خوولي الله تعالى سبحانه وتعالى پخپل حلم کرم لطف اورحم سره پردي اچوي معافي کوي. د يو خاص وخت پوري مهلت ورکړي دي ګني چينجي وغيره به هم بچ نه شي. د بنيادمو د ګناهونو په کثرت سره به د الله تعالى عذاب داسي راتلو ټول به ئې غرق کول. حضرت ابوهريره ﷺ واوريده چه يوصاحب فرمائي ظالم هم خپل نقصان کوي هغوی اوفرمائيل چه نه نه بلکه مرغئي د هغه د ظلم په وجه په خپلو جالوکښي هلاك کيږي.

**د عمر زياتول په نيک اولاد سره کيږي:**-ابودرداء ﷺ فرمائي چه مونږ يوځل د حضور ﷺ په وړاندي څه ذکر کولوچه حضور ﷺ اوفرمائيل آلله تعالى يونفس ته وخت نه ورکوي دعمر زياتوالي په نيك اولاد سره کيږي کوم چه الله تعالى خپلو بنديګانوته ورکوي. بيا د دي بچو دعاګاني د هغوی قبرونوته رسي هم دا دهغوی دعمرزياتوالي دي.[1]دخپل خان د پاره دا ظالمان څينکئي ناخوښوي شرکت نه غواړي او د الله تعالى دپاره دا هرڅه روا لري بيادوی داخيال کوي چه په دنياکښي هم دوی نيکئي راغونډونکي دي اوکه قيامت قايم شو نوهلته به هم د دوی د پاره نيکي وي.

**دکافرانو ددروغو دعوی او د هغې جواب:**-دوی به ونيل چه د ګټي خو په دنياکښي هم مونږ حقدار يو او صحيح خبره خودا ده چه قيامت خو نه راځي اوفرض کړه که راغلونو هلته به هم زمونږ د پاره بهتري وي دا کافران به ډير زرسخت عذاب اوڅکي زمونږ د آياتونونه انکار اوبياهم دا خواهش کوي چه مونږ ته به مال اولاد هلته هم ملاويږي. په سورت کهف کښي د دوو ملګرو ذکر کولوسره قرآن پاك فرمائي چه هغه ظالم به خپل باغ ته تلو اوخپل نيك ملګری ته به ئې ونيل چه زه خو دا هلاك کيدونکي هډو . ګڼړم نه اونه د قيامت قائل يم اوفرض کړه که زه دوباره راژوندي کړي شوم نو هلته به د دي نه هم ښه څيز راکړي شي[2]کارونه خراب کوي او تمنا د نيکئ ساتي کري ازغي او غواړي ميوې. وائي چه کعبة الله دنوی سره د آبادولو دپاره راګذار کړي شوه نو په بنياد کښي يوکاڼړی راووتلو په کوم چه يوه تختئ وو په هغې کښي دا ليکلي شوي ووتاسويدی کوني او اميدد نيکئي ساتئي داخو داسي دی لکه چه ازغي کری اواميدد انګوروساتي نود دوی اميد وو چه په دنياکښي هم هغوی ته شان او شوکت وينځي غلامان به ملاويږي اوپه آخرت کښي هم. الله تعالى فرمائي په حقيقت کښي دهغوی دپاره ددوزخ

---

[1]) کتاب المجروحين لابن حبان.

[2]) سورة کهف.

اورتیاردې هلته به دوی درب درحمت نه هیرکړې شي اوضائع اوبرباد به کړې شي. نن دوی زمونږ احکام هیرکړي دي صبابه مونږدوی دخپلو نعمتونونه هیرکړو. دوی ډیر زر دوزخ ته رسیدونکي دي.

تَاللّٰهِ لَقَدْ اَرْسَلْنَآ اِلٰٓى اُمَمٍ مِّنْ قَبْلِكَ فَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ

قسم په الله | لیږلي دي مونږه رسولان | امتونوته | مخکښې ستانه | نوښانسته ښکاره کړل | هغوئ ته شیطان

په الله قسم چې مونږ ستا نه وړاندې هم امتونوته پیغمبران لیږلي وو | بیا شیطان هغوی ته د هغوی

اَعْمَالَهُمْ فَهُوَ وَلِيُّهُمُ الْيَوْمَ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝

عملونه د هغوئ | نو هغه | دوست ددوئ دې | نن ورځ | او دې دوئ لره | عذاب | دردناک

خراب عملونه ښائسته ښکاره کړل نونن هغه د دوئ دوست دې | اودوئ ټولو دپاره دردناک عذاب دې

وَمَآ اَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتٰبَ اِلَّا لِتُبَيِّنَ لَهُمُ الَّذِى

اونهٔ دې نازل کړې مونږه | په تاباند | داکتاب | مگر | دپاره ددې چې تهٔ حقیقت اوښائې | دوئ ته | هغه

اومونږ تاته دا کتاب صرف د دې دپاره نازل کړې دې | .........چې ته د دوئ اختلافي

اخْتَلَفُوْا فِيْهِ ۙ وَهُدًى وَّرَحْمَةً لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ۝

چې اختلاف اوکړودوئ | په هغې کښې | اولاربنودنکې دې | اورحمت دې | دپاره دهغه خلقو | چې ایمالن راوړي

خبرې دوئ ته په ښه تفصیل سره بیان کړې | او(دا کتاب) د مومنانو دپاره هدایت اورحمت دې

وَاللّٰهُ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَحْيَا بِهِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ؕ اِنَّ

اوالله | نازلې کړې | داسمان نه | اوبهٔ | نو ژوندئ ني کړه | په هغې سره | زمکه روستودمرګ دهغې نه | بیشکه

اوالله د پورته طرف نه اوبه راورولې | نود هغې په ذریعه ئې زمکه د اوچیدو نه پس بیا تروتازه کړه

فِىْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّسْمَعُوْنَ ۝ وَاِنَّ لَكُمْ فِى الْاَنْعَامِ

په دې کښې | نښه ده | دپاره دهغه قوم | چې اوري | اوبیشکه | دې ستا سو دپاره | په څناروئ کښې

په دې کښې هغه خلقودپاره لویه نخښه ده | چې خبرې ته غوږ نیسي | اوتاسو دپاره په څاروؤ

لَعِبْرَةً ؕ نُسْقِيْكُمْ مِّمَّا فِىْ بُطُوْنِهٖ مِنْۢ بَيْنِ

| یو عبرت | چې مونږ څکوؤ په تاسو باند | دهغې نه | چې په خیټو دهغوئ کښې دی | دمنځ

هم لوئې عبرت پروت دې | مونږ چې د هغوئ په خیټو کښې کومې سوټې او وینه وی د هغې د مینځ نه

فَرْثٍ وَّدَمٍ لَّبَنًا خَالِصًا سَآئِغًا لِّلشّٰرِبِيْنَ ۝

| دسوټونه | او د وینونه | پئ | خالص | چې آسان تیرونکې دی | دپاره دڅکونکو

درکوو خالص پئ د.کوم چې د څکلونو دپاره صفا او مزیدار وی.........

وَمِنْ ثَمَرٰتِ النَّخِيْلِ وَالْاَعْنَابِ تَتَّخِذُوْنَ مِنْهُ سَكَرًا

او دمیوؤ | دکجورونه | او دانګورونه | چې جوړوئ تاسو | دهغې نه | دنشې څیزونه

او د کهجورو او د انګورو د میوؤ نه تاسو د نشې څیزونه جوړوئ | اوښه رزق هم

| وَّرِزْقًا حَسَنًا ط | اِنَّ | فِيْ ذٰلِكَ | لَاٰيَةً | لِّقَوْمٍ | يَّعْقِلُوْنَ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| او رزق ښه پاك | بيشكه | په دې كښي | يوه نښه ده | د پاره د هغه خلقو | چې د عقل نه كارخلي |

حاصلوئ | بيشكه په دې كښې د هغه خلقو د پاره نښه ده كوم چې د عقل نه كار اخلي

**قوله تعالى:- تَاللّٰهِ لَقَدْ اَرْسَلْنَآ اِلٰٓى اُمَمٍ مِّنْ قَبْلِكَ**

**دَ هريونبي تكذيب شوي دي** :-اې نبي ﷺ ته تسلي ساته چه ستا د قوم تا دروغ ګڼړل څه عجيبه او نوي خبره نه ده.كوم يونبي راغلي چه تكذيب ئي نه دې شوي؟ باقي پاتې شو دروغ ګڼړونكي نو هغوی د شيطان مريدان دی. بدنی هغوی ته د شيطاني وسوسو په وجه ښانسته ښكاري دهغوی ولی شيطان دي هغه دوی ته دڅه نفع رسولو نه د هميشه د پاره د مصيبت نه ډكو عذابونوكښي پريږدی د هغوی نه به جدا شي.قرآن پاك په حق او باطل رښتيا اودروغوكښې فرق كونكې كتاب دې د هرې يوې جګړې اود هر اختلاف فيصله په دې كښې موجود ده.دا د زړونود پاره هدايت دې او كوم ايماندار چه په دې باندې عمل كونكی دی دهغوی دپاره رحمت دې. په دې قرآن پاك سره څنګه مړه زړونه راژوندی كيږی د دې مثال دهرې هغه زمكې اوباران دې. كوم خلق چه خبره واوری اوپوهه شی نوهغوی د دې نه ډير عبرت حاصلونكی دی.

**دَ ويني او سوتې دَ مينځ نه پاك صفا پئی دَ الله تعالی دَ قدرت نخښې دی**:-اوښ چيلئ غواګانې وغيره هم د خپل خالق د قدرت اوحكمت نښې دی(بطونه)كښې ياخوضمير دنعمت په معنی كښې ګرځولې دې يا په څاروی باندې. څاروی هم څناور دی د دې څناورو په خيټوكښې چه كوم الا بلا ډك شوي دی هم د دې نه پروردګار عالم ستاسود پاره ډير ښكلې مزيدار او خوندناك پئی راوباسي. په دويم آيات كښې (بطونها) (١)دې.دواړه خبرې جائز دی لكه آيت ﴿كَلَّآ اِنَّهَا تَذْكِرَةٌ۝ فَمَنْ شَآءَ ذَكَرَهٗ۝﴾ (٢)كښې دی.اولكه چه په آيت ﴿وَاِنِّيْ مُرْسِلَةٌ اِلَيْهِمْ بِهَدِيَّةٍ فَنٰظِرَةٌ بِمَ يَرْجِعُ الْمُرْسَلُوْنَ۝ فَلَمَّا جَآءَ سُلَيْمٰنَ﴾ (٣)كښې دی. نو په جاء كښې مذكر راوړلو دې نه مراد مال دې دڅناوربه خيټه كښې چه كومې سوتې اووينه وغيره ده دهغې نه بچ كيدوسره ستاسودپاره پئی راوباسی نه دهغې په سپينوالی كښې فرق راځی نه په خوږوالی كښې اونه په خوند كښې. معدې ته خوراك اورسی د هغه ځاى نه وينه د رګونو طرف ته روانه شی پئی د غولانځې طرف ته او متيازې د مثانې لار اونيسی اوسوتې د خپل ځاى طرف ته راجمع شی نه يو بل سره يوځاى كيږی اونه يوبل بدلوی. خالص پئی د څكونكی په حلق كښې په آرام سره كوزيږی د هغه خاص نعمت دې. د دې نعمت بيانولو سره بل نعمت بيان فرمائی چه دكهجورو اوانګورو د شيرې نه تاسو شراب جوړونی. دا د شرابود حراموالی نه وړاندې دی اود دې نه معلوميږی چه د دې دواړو څيزونو د شرابو هم يوحكم دې لكه څنګه چه د مالك رحمه الله شافعي رحمه الله او نورو جمهورو علماؤ مذهب دې اوهم دغه حكم دې د شرابو كوم د غنمو جوارو او شاتونه جوړكړې شی لكه چه په احاديثوكښې په تفصيل سره راغلی دی دا ځاى د هغې د وضاحت نه دې.

**د قجورو وغيره نه د جورو شوو شرابو حكم**

**مسلک حنفی**:-د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دانګورو شراب كه لږ وی كه ډير وی كه نشه پيدا كوی اوكه نه پيدا كوی په ټولو صورتونو كښې حرام دی البته د انګورو نه علاوه كه د قجورو وغيره نورو

(١) ٢٣/ المؤمنون:٢١.

(٢) ٧٤/المدثر:١١-١٢.

(٣) ٢٧/النمل:٣٥.

څیزونو نه شراب جوړ شي نو په هغې کښې لږه نرمي ده خو د جمهورو فقهاؤ په نیز دغه شان د امام محمدرحمه الله  په نیز شراب که د هرڅه نه جوړ شوې وي خو چې نشه پیدا کوي نو هغه حرام دی او داحنافو عالمانو فتوی دامام محمد رحمه الله په قول ده چه د هرڅیز شراب حرام دی په دې شرط چې نشته پیدا کوی (١)

ابن عباس ﷺ فرمائي چه شراب جوړوني نو حرام دی او که بل شان ئې خورئي څکئي نو حلال دی.(٢) امام حاکم او ذهبي دې روایت ته صحیح ونیلی دی. مثلاً اوچې کهجورې او اوسکې وغیره او د تازه میوو رس جوړول سرکه جوړول او په بله طریقه سره. نو چه کومو خلقو ته د عقل حصه ورکړې شوې ده هغه د الله تعالی قدرت او عظمت د دې څیزونو او دې نعمتونو نه هم پیژندې شي. په اصل کښې د انسانیت کالې هم عقل دې د دې د خیال ساتلود پاره شریعت مطهره د نشې والا شرابونه په امت باندې حرام کړی دی هم د دې نعمت بیان د سورت یٰس په دې آیت ﴿وَجَعَلْنَا فِيهَا جَنّٰتٍ مِّنْ نَّخِيلٍ﴾(٣) دې. یعني په زمکه کښې مونږ د کهجورو اوانګورو باغونه لګولی دی اوپه دې کښې د اوبوچینې بهیولې دی دې د پاره چه خلق د دې میوې اوخوری. دا د هغوی خپل جوړکړې شوی نه دی نو آیا بیا به هم دوی شکر نه اداکوی؟ پاك ذات دې هغه چاچه د زمکې په پیداوار کښې اوبخپله په انسانانو کښې او په هغه مخلوق کښې کوم چه دوی پیژني هم نه د هرقسم نه جوړه جوړه څیزونه پیدا کړی دی.

وَاَوْحٰی رَبُّكَ اِلَى النَّحْلِ اَنِ اتَّخِذِيْ مِنَ الْجِبَالِ بُيُوْتًا

او په زړه کښې واچوله | رب ستا | دشاتو مچۍ ته | چې جوړکړه | په غرونو کښې | کورونه

اوستارب د شاتو مچۍ ته حکم اوکړو| چې ته په غرونو کښې کورونوکښې ونو کښې او په

وَّمِنَ الشَّجَرِ وَمِمَّا يَعْرِشُوْنَ ۝ ثُمَّ كُلِيْ مِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ فَاسْلُكِيْ

اوپه ونوکښې| اوپه هغه کښې| چې خلق جوړوی | بیا | خوره | دهر قسم میوونه | اوځه

هغو اوچتو عمارتونو کښې چې خلق ئې جوړوی کور جوړوه | بیا د هرقسم میوو نه خوراک کوه

سُبُلَ رَبِّكِ ذُلُلًا ۚ يَخْرُجُ مِنْ بُطُوْنِهَا شَرَابٌ مُّخْتَلِفٌ

په لارو| درب خپل| چې آساني کړی دی الله| رااوځي| دخیټو ددغې مچونه | شربت | چې مختلف وی

اود خپل رب په اسانو لاروباندې روانه اوسه | ددوئ دخیټو نه د څکلو یو څیز(شات) راوځي

اَلْوَانُهٗ فِيْهِ شِفَآءٌ لِّلنَّاسِ ۚ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ

رنګونه دهغې| په هغې کښې| شفاده| دپاره دخلقو| بیشکه | په دې کار کښې | یوه نښه ده | دپاره دهغه خلقو

چې مختلف رنګونه ئې دی |په هغې کښې خلقو دپاره شفا ده|بیشکه په دې کښې سوچ او فکر کونکو

يَّتَفَكَّرُوْنَ ۝

چې غورفکر کوی|

دپاره نښه ده|

(١) (ماخوذ از حلال وحرام تالیف خالد سیف الله رحمانی صفحه ١٢٨).

(٢) حاکم: ٢/٣٥٥.

(٣) ٣٦/یٰس: ٣٤.

**قوله تعالى:-**

**دَ شاتومچئى دَ قدرت يوه نمونه اوشات دَ شفاقابل دى:-** د وحى نه مراد دلته الهام هدايت او ارشاددي. د شاتومچوته دالله ﷻ دطرفته داخبره خودلې شوې ده چه هغوى په غرونوكښې ونوكښې او چتونوكښې دشاتو ګبينونه جوړكړي.دغه شان د ضعيف اوكمزورى مخلوق دې كورته اوګوره څومره مضبوط څنګه ښائسته اوڅومره د استاذنى وى. بيا دې ته هدايت اوشو اود دې د پاره نى مقدر كړه چه دا د ميوو ګلونو اود وښوغيره نه رس راكاړى او چرته چه غواړى خى راځى خود واپس كيدو په وخت كښې نيغ خپل ګبين ته رسى. كه د اوچت غر سوكه وى كه بيابان ونه وى د آبادنى اوچت كورونه وى اود صحرا ورانې كنډرې وى دوى نه لار هيروى او نه دهوكه كيږى كه هرڅومره لرې ولې لاړې نه شى واپس خپل ګبين ته خپلو بچو اوهګو اوشاتو له راشى. په خپلو وزرو باندې موم جوړوى په خُلو باندې شات جمع كوى اودبل خائ نه بچى(﴿ذُلُلًا﴾تفسيرتابعداراومسخركولوسره هم كړې دې. نودا حال به وى د ﴿سالكة﴾. لكه چه په قرآن پاك كښې﴿وَذَلَّلْنَاهَا لَهُمْ﴾([1])كښې هم دا معنى مراد ده. د دې يودليل دا هم دې چه خلق د شاتو ګبين د يو ښار نه بل ښار ته هم اوړى. خو ړومبې قول ډير واضح دې يعنى دا حال دې د طريق. ابن جرير ﷫ دا دواړه قوله صحيح ګنړى. ابويعلى موصلى كښې دې رسول الله ﷺ فرمائيلى دى د مچې عمر څلويښت ورځې وى بغيرد شاتود مچونه نورې مچې په اوركښې دى. ([2]) د شاتورنګ مختلف وى سپين سره زيړ وغيره لكه څنګه چه ميوه ګل او زمكه. د دې ظاهرى خوبئي او د رنګ پرق سره په دې كښې شفا ده. الله ﷻ په دې سره ډيرې بيمارئى لرې كوى. دلته﴿فِيهِ شِفَآءٌ لِّلنَّاسِ﴾ نه دې فرمائيلې شوې ګنى نود هرې بيمارئى دارو به هم دا وو؟ بلكه اوفرمائيلې شو په دې كښې شفاده د خلقو د پاره نودا د يخو بيمارو دوائى ده. علاج هميشه د بيمارو خلاف وى شات ګرم دى د يخنئى په بيماروكښې فائده منددى.

**دلته فِيهِ شِفَآءٌ نه مراد قرآن پاك اخستل مناسب نه دى:-** د مجاهد ﷫ او ابن جرير ﷫ نه نقل دى دې نه مراد قرآن دې يعنى په قرآن كښې شفاده. دا قول په خپل خائ صحيح دې او واقعى قرآن شفاده خو په دې آيت كښې دامراداخستل د سياق مطابق نه دى.په دې كښې خود شاتوذكر دې په دې وجه د مجاهد ﷫ د دې قول اقتداء اونه كړې شوه. او د قرآن پاك د شفا كيدلو ذكر په آيت﴿وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْآنِ مَا هُوَ شِفَآءٌ﴾ ([3]) كښې دى بل آيت ﴿ وَشِفَآءٌ لِّمَا فِي الصُّدُورِ﴾ ([4]) كښې دى. په دې آيت كښې خومراد شات دى.

**د شاتو دَ شفاء متعلق حديث :-** د بخارى او مسلم په حديث كښې دى چه څوك راغله اود رسول الله ﷺ په خدمت كښې نى عرض اوكړو چه زما د رور خيټه خرابه شوې ده. حضورﷺ اوفرمائيل په هغه شات اوڅكه. هغه لاړو شات نى وركړه او بياراغلو وئيل نى حضورﷺ هغه بيمارى خوزياته شوه. حضورﷺ اوفرمائيل لاړشه نورشات وركړه هغه لاړو بيائى وركړه نوبياراغلو اوهم دغه عرض نى اوكړو چه دستونه نى نورهم زيات شو. حضورﷺ اوفرمائيل الله تعالى رښتونې دې او ستاد رور خيټه دروغژنه ده لاړشه نور شات وركړه. په دريم خل شاتو وركولوسره د الله تعالى په فضل ورته شفا حاصله شوه.([5])

---

[1] ٣٦/ يس:٧٢.

[2] ابويعلى:٤٢٣١، مجمع الزوائد٨/١٣٦، مسند الفردوس: ١٥٢٤.

[3] ١٧/بنى اسرائيل:٨٣.

[4] ١٠/يونس:٥٧.

[5] صحيح بخارى كتاب الطب باب الدواء بالعسل وقوله تعالى (فيه شفاء للناس):٥٦٨٣، صحيح مسلم:٢٢١٧، ترمذى:٢٠٨٢، احمد:١٩/٣، مسندابى يعلى: ١٢٦١، ابن ابى شيبه:٢٣٦٩، السنن الكبرى للنسائى:٦٧٠٥، مسندعبد بن حميد:٩٣٨.

بعضې طبيبانو ونيلي دي چه ممكن ده د هغه په خيټه كښې فضله زياتوالي وى شاتود خپلې ګرمئ په وجه هغه تحليل كړل فضله خارج كيدل شروع شو اودستونه نى زيات شو. اعرابى دا د مرض زياتول اوګڼړل حضورﷺ ته نى شكايت اوكړو حضورﷺ د نورو شاتووركولو د پاره اوفرمائيل په دې سره نوره په زور سره فضله خارج كيدل شروع شو بيانى شات وركړه خيټه نى صفاشوه بلا ترې اووتله او كامله شفا د الله تعالى په فضل سره حاصله شوه. د حضورﷺ مبارك خبره چه اشارة د الله تعالى وه پوره شوه. د بخارى اومسلم په يويل حديث كښې دى د رسولانو سردار ﷺ ته د خوږو اوشاتوسره ډيره مينه وه (١)

**په درې څيزونو كښې شفاء ده:**-د حضورﷺ ارشاد دې په دريو څيزونوكښې شفا ده ښكر لګولوكښې شاتو څكلوكښې او داغ لګولوكښې خوزه خپل امت د داغ لګولونه منع كوم(٢) دبخارى په حديث كښې دى كه ستاسو په دوايانوكښې په څه كښې شفاده نو ښكر لګولوكښې شات څكلوكښې او په اُور باندې داغلوكښې كوم چه د بيمارئى مناسب وى خو دازه نه خوښوم(٣)د مسنداحمد په حديث كښې دى زه دا نه خوښوم بلكه ناخوښوم ئى.(٤)

**د دوؤ شفا ګانو قدر پكاردې قران پاك او شات:**-ابن ماجه كښې دى تاسو د دې دواړو شفاګانو قدركوئى شاتو اوقرآن(٥) ابن جريركښې د حضرت على ﷺ فرمان دې چه كله تاسو نه څوك شفا غواړى نود قرآن كريم يوآيت دې په يوه پاڼړه اوليكى اوهغه دې د باران په اوبوكښې اووينځى اود خپلې ښځې د مال نه دې د هغې په رضاباندې پيسې واخلى اوشات دې واخلى هغه دې اوڅكې نو په دې كښې په څو وجوهوسره شفا راځى.د الله تعالى عزوجل فرمان دې﴿ وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْاٰنِ مَا هُوَ شِفَآءٌ وَّرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ ﴾(٦) يعنى مونږ په قرآن كښې هغه نازل فرمائيلى دى چه شفاده اود مؤمنانود پاره رحمت دې. بل آيت كښې دى﴿ وَنَزَّلْنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً مُّبٰرَكًا ﴾(٧)مونږ د آسمان نه د بركت اوبه نازلوو بل ارشاد دې ﴿فَاِنْ طِبْنَ لَكُمْ عَنْ شَيْءٍ مِّنْهُ نَفْسًا فَكُلُوْهُ هَنِيْٓـًٔا مَّرِيْٓـًٔا﴾(٨)يعنى كه ښځه د خپل مال مهرنه په خپله خوشحالئ سره دركړى نو بې شكه تاسو داخورئى څكئى اغوندئى. د شاتوپاره كښې د الله تعالى فرمان دې﴿ فِيْهِ شِفَآءٌ لِّلنَّاسِ ﴾په شاتوكښې د خلقو د پاره شفاده. ابن ماجه كښې دى حضورﷺ فرمائى كوم سړې چه دريو مياشتو پورې هرسحر شات اوڅتى هغه ته به څه لويه بلا نه رسى(٩) د دې يوراوى زبيربن سعيد متروك دې. ابن ماجه كښې په بل حديث شريف كښې حضورﷺ فرمائى تاسو د سنا او سنوت استعمال كوئى په دې كښې د هرې بيمارئى نه شفا ده بغيرد سام نه. خلقو تپوس اوكړو سام څه څيزدې؟ ونى فرمائيل مرګ. (١٠) سنا

---

(١) صحيح بخارى كتاب الاطعمة باب الحلوى والعسل:٥٤٣١، صحيح مسلم: ١٤٧٤، ابوداؤد:٣٧١٥،ترمذى: ١٨٣١، ابن ماجة:٣٣٢٣، احمد:٥٩/٦، مسندابى يعلى:٤٨٩٢، ابن حبان:٥٢٥٤، مسندابى عوانه:٤٥٥٥،دارمى:١٤٦/٢، السنن الكبرى للنسائى:٦٧٠٦، مسندعبدبن حميد:١٤٨٩، شعب الايمان:٥٩٢٩.

(٢) صحيح بخارى كتاب الطب باب الشفاء فى ثلاث: ٥٦٨٠-٥٦٨١، بيهقى:٣٤١/٩.

(٣) صحيح بخارى كتاب الطب باب الدواء بالعسل وقوله تعالى (فيه شفاء للناس) صحيح مسلم: ٢٢٠٥، ابن ابى شيبه: ٥٩/٥، شرح معانى الاثار:٣٢٠/٤،المعجم الاوسط:٩٢٣٧، احمد:٣٤٣/٣، مسندابى يعلى:٢١٠٠.

(٤) احمد:١٤٦/٤.

(٥) ابن ماجه كتاب الطب باب العسل:٣٤٥٢، حاكم: ٢٠٠/٤، بيهقى:٣٤٤/٩.

(٦) ١٧/بنى اسرائيل:٨٢.

(٧) ٥٠/ق:٩.

(٨) ٤/النساء:٤.

(٩) ابن ماجه كتاب الطب باب العسل: ٣٤٥٠، مسند ابى يعلى:٦٤١٥، التاريخ الكبير:٥٤/٦، تذكرة الحفاظ: ٩٨٧/٣.

(١٠) ابن ماجه كتاب الطب باب السنا والسنوت:٣٤٥٧، وهوحسن بالشواهد، حاكم:٢٠١/٤.

یوبوتي دي چه د دست دبیمارنی د پاره خورلي شي.د سنوت معنی ده شبت. او خلقو ونیل سنوت شات دی چه د غوړو په مشك کښې کیخودې شوی وی. د شاعر په شعرکښې هم دا لفظ هم په دې معنی کښې راغلې دې. بیافرمائي چه د مچې په شان بې طاقته څیز ستاسو د پاره شات اوموم جوړوی د هغوی داسې په آزادئی سره ګرځیدل خپل کورنه هیرول وغیره دا ټول څیزونه د غور اوفکر کونکودپاره زما د خالقیت د عظمت او مالکیت لوئې نښې دی هم د دې نه خلق د خپل رب الله تعالی په قادر حکیم علیم کریم رحیم کیدو باندې دلیل حاصلولې شي.

| |
|---|
| وَاللّٰهُ خَلَقَكُمْ ثُمَّ يَتَوَفّٰىكُمْ ۖ وَمِنْكُمْ مَّنْ |
| اوالله\| پیدا کړی تاسو\| بیا\| مرګ راولی تاسولره\|اوځینې ستاسونه\| هغه څوك دی |
| \| اوالله ﷻ تاسو پیدا کړی ئي\| بیا به مو وفات کوی\| اوپه تاسو کښې ځینې |
| يُّرَدُّ اِلٰٓى اَرْذَلِ الْعُمُرِ لِكَيْلَا يَعْلَمَ بَعْدَ عِلْمٍ شَيْـًٔا ؕ |
| چی واپس رسولې کیږی\| ناکاره عمرته \| دپاره ددې\| چی پوهه نه شی\| روستو دعلم نه\| په څه څیز |
| ناکاره عمر (سخت بوډاوالی) ته رسولې شی\| چې د پوهې نه پس بیا سره دوباره په څه نه پوهه نشی |
| اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌ قَدِيْرٌ ۝ وَاللّٰهُ فَضَّلَ بَعْضَكُمْ عَلٰى بَعْضٍ |
| بیشکه الله\| ښه پوهه دې\| ښه قادر دې\| اوالله\| فضلیت درکړې دې\|ځینې ستاسوته\|په ځینو باند |
| بیشکه الله ﷻ په هرڅه عالم او د قدرت خاوند دې\| اوالله ﷻ تاسو ته په یو بل په روزئ کښې |
| فِى الرِّزْقِ ۚ فَمَا الَّذِيْنَ فُضِّلُوْا بِرَآدِّيْ رِزْقِهِمْ |
| په رزق کښې\| نونه دی هغه کسان\| چی فضیلت ورکړې شوې دې\| ورکونکی \| درزق خپل |
| برتری درکړې ده\| نو چاته چې دا فضیلت ورکړې شوې دې\| هغوئ داسې نه کوی چې |
| عَلٰى مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ فَهُمْ فِيْهِ سَوَآءٌ ؕ |
| \| هغه چاته\| چی مالکان شوی دی\| ښئ لاسونه دهغوئ \| چی هغوئ\| په هغه رزق کښې\| برابرشی |
| د خپلې برخې مال خپلو مریانو ته ورکړی\| چې ټول په دې اعتبار سره برابر شی |
| اَفَبِنِعْمَةِ اللّٰهِ يَجْحَدُوْنَ ۝ |
| آیا نو په نعمت دالله باند\| دا خلق انکار کوی\| |
| نوآیا دوئ د الله ﷻ د نعمت نه انکار کوی\| |

**قوله تعالی:-وَمِنْكُمْ مَّنْ يُّرَدُّ اِلٰٓى اَرْذَلِ الْعُمُرِ**

**دَ بخیلتوب او سخت بوډاوالی نه دَ پناه غوښتلوحکم:**-په ټولوبندیګانوباندې د الله تعالی قبضه ده هم هغه دوی د عدم نه وجود ته راوستلي دی هم هغه به دوی مړه کوی. بعضې خلق ډیر اوږدعمر ته رسوی او هغوی بیاد ماشومانوغوندې کمزورې جوړیږی. حضرت علی ﷺ فرمائي چه د پنځه اویاؤ (٧٥) په کالو کښې عموماً انسان هم داسې کیږی. طاقت ئې ختم شی حافظه ئې کمزورې کیږی د علم کمې پیداشی د عالم کیدونه پس بې علم شي. صحیح بخاری‌کښې دی حضورﷺ به په خپله دعاکښې فرمائیل **﴿اللهم اعوذبك من البخل والكسل والهرم وارذل العمر وعذاب القبر وفتنة الدجال وفتنة المحيا والممات﴾** یاالله زه د بخیلتوب نه

عاجزئي نه پوړ اوالي نه ذليل عمر نه د قبرد عذاب نه د دجال د فتني نه د ژوند او مرګ د فتني نه ستا پناه غوارم([1])زهير بن ابی سلمی رحمه الله هم په خپل مشهور معلقه کښې داعمر دغم خفګان تکليف خزانه اوچينه ګرځولې.

**تاسو په خپل حق کښې شريک برداشت کولې نه شئ نو الله ﷻ به ولې برداشت کوي:-** دمشرکانود جهالت او دهغوی دکفر بيان کولې شی چه سره دخپلومعبودانودالله تعالی غلامان پيژندلوسره دهغوی عبادت کښې لګيادی.دحج په موقع به هغوی وئيل﴿لبيك لاشريك لك الا شريكا هولك تملكه وماملك﴾ يعنی ای الله زه تاته حاضريم ستا هيڅ څوك شريك نشته خو هغه چه پخپله ستاغلامان دی د هغوی اود هغوی لاندې څيزونو اصلی مالك هم ته نی.([2]) نو الله تعالی هغوی ته الزام ورکوی چه کله تاسو د خپلو غلامانو خپل ځان سره برابری او خپل مال کښې شرکت نه خوښوئی نو بيا زما غلامان زما په تصرف کښې څنګه شريك ګرځونی؟ هم دا مضمون په آيت ﴿ضَرَبَ لَكُم مَّثَلًا مِّنْ أَنفُسِكُمْ﴾([3])کښې بيانولې شی چه کله تاسوخپل غلامان په خپل مال اوخپلو ښځوکښې خپل شريك جوړولو نه نفرت کوئی نوبيا زما غلامان زماپه تصرف کښې څنګه شريك ګڼړئی؟هم داد الله تعالی دنعمتونونه انکاردې چه د الله تعالی د پاره هغه خوښول کوم چه ځان له هم نه خوښوی. دا دې مثال د معبودانو باطلانو. کله چه تاسو پخپله د دې نه جدا ئی نو بيا الله تعالی خود دې نه ډير ويزاره دې.د رب د نعمتونوبه نورکفر څنګه وی چه فصلونه اوڅاروی هم د يو الله تعالی پيداکړې شوی دی اوتاسو هغه د هغه نه بغيرد نورو په نوم کوئی.

**په مالونو په يو بل برترئ دالله تعالی دطرفنه ازميښت وی:-**حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه حضرت ابوموسی اشعری رضي الله عنه ته يوخط اوليګلو چه په خپل رزق باندې صبر اوکړه الله تعالی يو دبل نه مالدار کړې دې دا هم د هغه طرف نه يو ازميښت دې چه هغه اوګوری چه مالداران څنګه د الله تعالی شکر اداکوی اوکوم حقوق چه الله تعالی په هغوی باندې د نورو خلقو مقرر کړی دی ترکومې پورې اداکوی.

<table>
<tr><td colspan="4">وَاللَّهُ جَعَلَ لَكُم مِّنْ أَنفُسِكُمْ</td></tr>
<tr><td colspan="4">| او الله | پيداکړې| ستاسودپاره| دنفسونوستاسو نه</td></tr>
<tr><td colspan="4">|اوالله ﷻ ستاسود نفسونو نه ستاسودپاره جوړې پيداکړې</td></tr>
<tr><td colspan="4">أَزْوَاجًا وَجَعَلَ لَكُم مِّنْ أَزْوَاجِكُم بَنِينَ وَحَفَدَةً وَرَزَقَكُم</td></tr>
<tr><td colspan="4">| ښځې | او پيدا ئې کړل | ستاسو دپاره | دښځوستاسونه | ځامن | او نمسی | او درئې کړل تاسوته</td></tr>
<tr><td colspan="4">او ستاسو ښځو نه ئې ستاسو ځامن او نمسی پيداکړی دی| او تاسو ته ئې د پاکيزه څيزونو</td></tr>
<tr><td colspan="4">مِّنَ الطَّيِّبَاتِ ۚ أَفَبِالْبَاطِلِ يُؤْمِنُونَ وَبِنِعْمَتِ اللَّهِ هُمْ</td></tr>
<tr><td colspan="4">| دپاکو څيزونو نه | ايا نو داخلق په باطل باند| ايمان راوړی | اوپه نعمت دالله باند| دوئ</td></tr>
<tr><td colspan="4">روزی درکړې ده|............. نوايا دوئ په باطلو څيزونو يقين ساتی| او دالله ﷻ د نعمتونو</td></tr>
</table>

[1] صحيح بخاری کتاب التفسير سورة النحل باب قوله تعالى ﴿ومنكم من يردالى ارذل العمر﴾:٤٧٠٧، صحيح مسلم:٢٧٠٦، بدون (والهرم وفتنة الدجال).

[2] صحيح مسلم كتاب الحج باب التلبية وصفتها ووقتها:١١٨٥.

[3] ٣٠/الروم:٢٨.

| |
|---|
| يَكْفُرُوْنَ ﴿٧٢﴾ |
| انکاریان کیږی |
| نه انکار کوی |

قوله تعالی:- وَاللّٰهُ جَعَلَ لَكُمْ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ اَزْوَاجًا

**د الله تعالی یوبل احسان** :-الله تعالی په خپلو بندیگانو باندې خپل د یوبل احسان خودنه کوی چه هم د دوی د جنس نه هم د دوی په شکل خدوخال مونږ د دوی د پاره ښځې پیداکړې که چرته بدل جنس وی نو د زړه تعلق اومینه محبت به نه پاتې کیدو. خوپه خپل رحمت سره الله تعالی ښځې سړی هم جنس پیدا کړل بیانی د دې جوړې نه نسل زیات کړو اولاد نی خورکړو هلکان جینکئ پیدا شوی.

**د حفدة متعلق تفسیرونه**:-﴿حفدة﴾یوه معنی خو د نمسو ده بله معنی د خادم او نوکرده. نو خمن او نمسئ هم د یو قسم خدمت گارزوئ او په عربوکښې هم دا دستور وو. ابن عباس ﷺ وائی چه د انسان د ښځې د وړاندینی کور اولاد د هغې نه وی. ﴿حفدة﴾داسې سړی ته هم وائی چه د چا په وړاندې د هغه کارروزگارکوی.دا معنی هم کړې شوې ده چه دې نه مراد دخومولئ رشته ده. ددې معنې لاندې دا ټول داخل دی.په قنوت کښې جمله راځی ﴿والیک نسعی ونحفد﴾ زمونږ سعی کوشش او خدمت هم ستا د پاره دې. اودا ښکاره خبره ده چه ذ اولاد نه غلام نه سخرګنئ نه خدمت حاصلولې شی نود دې ټولونه د الله تعالی نعمت مونږ ته ملاویږی. اود چا په نیزد ﴿حفدة﴾ تعلق ﴿ازواجا﴾ سره دې د هغوی په نیزد خو اولاد اود اولاد اولاد اود خوم او ښځې اولاد دې. نودا ټول اکثروختونوکښې هم د دې سړی په حفاظت کښې د ده په غیر کښې اود ده په خدمت کښې وی اوممکن دی چه هم دا مطلب ئی مخې ته کړې وی اوحضورﷺ فرمائیلې وی چه اولادستاسو غلام دې. لکه څنگه چه په ابوداؤدکښې دی[1] باوجې چه ﴿حفدة﴾ نه مراد خادم اخستې دې دهغوی په نیزد دا معطوف دې دالله تعالی فرمان دې ﴿وَاللّٰهُ جَعَلَ لَكُمْ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ اَزْوَاجًا﴾ یعنی الله تعالی ستاسو ببیبانې اواولادستاسوخادمان جوړکړی دی اوتاسولنه د خوراک څښاک ښکلې اومزیدارځیزونه درکوی.نو په باطل باندې یقین اوساته د الله تعالی د نعمتونو ناشکری نه دی کول پکار چه د الله تعالی په نعمتونوباندې پرده واچوی اوهغه د بل چاطرف ته منسوب کړې شی.په صحیح حدیث کښې دی د قیامت په ورځ به الله تعالی بندیگانوباندې خپل احسان کولوسره اوفرمائی آیا ماتاته ښځه نه وه درکړې؟ ماتاله عزت نه وو درکړې؟ ماستا اوښان اواسونه تابع کړی نه وو؟ اوما ته په سردارئی او آرام کښې پریخې نه وی؟ ([2])

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَيَعْبُدُوْنَ | مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ | مَا | لَا يَمْلِكُ | لَهُمْ |
| اوعبادت کوی | ماسوادالله نه | دهغې | چې نه لری اختیار | دپاره ددوئ |

| |
|---|
| اودوئ دالله ﷻ نه بغیر د هغه څیزونو عبادت کوی چې د آسمانونو |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| رِزْقًا | مِّنَ السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ | شَيْـًٔا | وَّلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ ﴿٧٣﴾ |
| درزق ورکولو | دآسمانونو نه | او دزمکې نه | هیڅ قدرله | اونهٔ طاقت لری ددې کار |

| |
|---|
| اوزمکې نه ذوئ ته د رزق ورکولو هیڅ قدرت نه لری اونه د هغې معبودانو دوس خبره ده |

---

[1] ابوداؤد کتاب النکاح باب الرجل یتزوج المراة لیجدهاحبلی:٢١٣١.

[2] صحیح مسلم کتاب الزهد باب الدنیا سجن المؤمن وجنة الکافر:٢٩٦٨، ابن حبان:٧٣٦٧، باختلاف الالفاظ.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَلَا تَضْرِبُوْا | لِلّٰهِ | الْاَمْثَالَ | اِنَّ اللّٰهَ | يَعْلَمُ | وَاَنْتُمْ | لَا تَعْلَمُوْنَ |
| نومه بيانوئ | الله لره | مثالونه | بيشكه الله | پوهيږي | اوتاسو | نه پوهيږئ |

نوتاسو د الله دپاره مثالونه مه بيانوئ | بيشكه الله ﷻ په (هره خبره) پوهيږي | اوتاسو نه پوهيږئ

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ضَرَبَ اللّٰهُ | مَثَلًا | عَبْدًا | مَّمْلُوْكًا | لَّا يَقْدِرُ | عَلٰى شَيْءٍ | |
| بيانوي الله | يو مثال | دغلام | چي دبل په قبضه كښي دئ | چي اختيار نه لري | په هيڅ څيز باند | |

او الله ﷻ يو مثال بيانوي | چي يوغلام د بل په اختيار كښې دئ | او په هيڅ قدرت نه لري

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَّمَنْ | رَّزَقْنٰهُ | مِنَّا | رِزْقًا حَسَنًا | فَهُوَ | يُنْفِقُ |
| او بل هغه څوك | چي رزق وركړي دي موږ هغه ته | دطرفه زمونږنه | رزق ښه | نو هغه | خرچ كوي |

اويو هغه څوك دې چاته چې موږ د خپل طرفنه ښه رزق وركړي وي | نو هغه د هغې نه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مِنْهُ | سِرًّا | وَّجَهْرًا | هَلْ يَسْتَوٗنَ | اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ | بَلْ | اَكْثَرُهُمْ |
| دهغې نه | په پټه | او په ښكاره | آيا برابر دي هغوئ | ثنا ده الله لره | بلكه | زيات دهغوئ |

په پټه اوپه ښكاره خرڅ كوي | آيا دا دواړه برابر دي (نه دي) |ټول تعريفونه الله دپاره دي |خوپه دوئ كښي

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لَا يَعْلَمُوْنَ | وَضَرَبَ اللّٰهُ | مَثَلًا | رَّجُلَيْنِ | اَحَدُهُمَآ | اَبْكَمُ | لَا يَقْدِرُ | |
| نه پوهيږي | او بيانوي الله | يوبل مثال | ددووسړو | يودهغوئ نه | چاړادئ | چي نه قادريږي | |

زيات خلق نه پوهيږي ||او الله د دوو سړو يو بل مثال بيانوي|چي په دوئ كښي يو ګونګا وي| په هيڅ

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| عَلٰى شَيْءٍ | وَّهُوَ كَلٌّ | عَلٰى مَوْلٰىهُ | اَيْنَمَا | يُوَجِّهْهُّ | لَا يَاْتِ | بِخَيْرٍ |
| په هيڅ څيز باند | او هغه بوج وي | په مالك خپل باند | هرطرفته چي | اوليږي هغه | نه راوړي | څه څيز |

كارقادر نه وي ||اوپه خپل مالك باندې بوج وي| هغه چې كوم خوا هم دې ليږي| نوښيګړه نې دلاسه نه كيږي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| هَلْ يَسْتَوِيْ هُوَ | وَمَنْ | يَّاْمُرُ | بِالْعَدْلِ | وَهُوَ | عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ | |
| آيابرابردي | هغه | اوهغه څوك | چي حكم كوي | په انصاف سره | اوهغه | په لاره نيغه باندوي |

آيا دي اوڅوك چې د انصاف حكم كوي او په نيغه لار روان وي دواړه سره برابر كېدې شي (نشي)

**قوله تعالى:- وَيَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ**

**رازق صرف د الله تعالى ذات دې:-** نعمتونه وركونكي پيداكونكې رزق رسونكې صرف يوازې الله تعالى وحده لاشريك له دې.مشركانو هغه سره د نورو عبادت كوي چه نه د آسمان نه باران راورولې شي نه د زمكې نه فصل اوونې راټوكولې شي.كه هغوی ټول هم يوځائ شي اوغواړی بياهم نه په يوڅاڅكې باران باندې قادر دی اونه د يوې پاڼې پيداكولو په هغوی كښي طاقت شته. نوتاسو د الله تعالى د پاره مثالونه مه بيانوئ. اودهغه شريك اوبرابراود هغه په شان څوك مه ګڼرئ. الله تعالى عالم دې هغه د خپل علم په بنا باندې په خپل توحيد باندې ګواهي وركوي. تاسو جاهل ئې اود خپل جهالت په وجه نورد الله تعالى سره شريك ګرځوئ.

**قوله تعالى:- ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا**

**د كافر اومومن مثال:-** ابن عباس﷛ وغيره فرمائي دا د كافراومومن مثال دې . نو د ملكيت د غلام نه

مرادکافردیه رزق والا اوخرچ کونکی نه مراد مؤمن دی. مجاهد ﷺ فرمائی د دی مثال نه د بت او الله تعالی جدائی کول مقصود دی چه دا اوهغه برابر نه دی. د دې مثال فرق دومره واضح دی چه د دې د خودلو ضرورت نشته. هم په دې وجه فرمائی چه د تعریفونولائق هم الله تعالی دې. اکثرمشرکان په بې علمئی باندې کلک ولاړدی.

**دَ بتانومتعلق دَ یومثال ذکر:-** کیدې شی چه دا مثال هم د دې فرق خودلو وی کوم چه د الله تعالی او د مشرکانو د بتانو په مینځ کښې دې. دا بتان خو گونکیان دی نه خبره کولې شی اونه څه نه خبره کولې شی نه په څه څیز باندې قدرت لری. دقول اوفعل دواړونه خالی دی اوصرف پخپل مالک باندې بار شوی یوبوج دې. که چرته هم لاړشی هیڅ نیګړه نه راوړی. نو یوخودا اوبل هغه چه د عدل حکم کوی پخپله په نیغه لاروی یعنی د قول اوفعل دواړو په اعتبارسره بهتر دا دواړه به څنګه برابر شی. یو قول دې چه یوگونګاد حضرت عثمان ﷺ غلام وو اوکیدې شی چه دا مثال هم د کافراو مؤمن وی لکه چه دې نه وړاندې آیت کښې هم وو وائی چه دقریشو دیوسړی د غلام ذکر اول دې اودویم سړی نه مراد حضرت عثمان ﷺ دې. د گونګا غلام نه مراد د حضرت عثمان ﷺ هغه غلام دې په کوم چه به هغوی خرچ کولو اوهغوی ته به ئی تکلیف رسولو او هغوی دې د کارروزګارنه آزادکړې ووخویبا به هم دا اسلام سره چپ وومنکروواوهغه به ئی دصدقه کولونه اونیکوکولونه منع کولودهغه باره کښې دا آیت نازل شوی دی.

| وَلِلّٰهِ | غَيْبُ | السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ ؕ | وَمَآ | اَمْرُ السَّاعَةِ اِلَّا |
|---|---|---|---|---|---|
| اوخاص الله لره دی | دپټوحقیقتونوعلم | داسمانونو | اودزمکې | اونهٔ دی | حکم دقیامت بس دومره |

او داسمانونو اود زمکې د پټو خبرو علم الله ﷻ سره دې او د قیامت راتلل بالکل داسې دی

| كَلَمْحِ | الْبَصَرِ | اَوْ هُوَ | اَقْرَبُ ؕ | اِنَّ اللّٰهَ | عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ | قَدِيْرٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لکه رپ | دسترګې | یا هغه | ډیر نږدې دې | بیشکه الله | په هر څیز باندې | قادر دی |

لکه دسترګې رپیدل | یا ددې نه هم زیات نږدې | بیشکه الله ﷻ په هرڅیز قادر دی

| وَاللّٰهُ | اَخْرَجَكُمْ | مِّنْۢ بُطُوْنِ | اُمَّهٰتِكُمْ | لَا تَعْلَمُوْنَ | شَيْـًٔا |
|---|---|---|---|---|---|
| اوالله | راووېستې تاسو | دخیټونه | دمیندو ستاسو | حال دا چې نهٔ پوهیدئ تاسو | په هیڅ څیز |

اوالله ﷻ تاسوستاسو د میندو د خیټو نه راوېستې یې | په داسې حال کښې چې په هیڅ نه پوهیدئ

| وَّجَعَلَ | لَكُمُ | السَّمْعَ | وَالْاَبْصَارَ | وَالْاَفْـِٕدَةَ ۙ | لَعَلَّكُمْ | تَشْكُرُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوهغه درکړل | تاسولره | غوږونه | اوسترګې | اوزړونه | دپاره ددې چې تاسو | شکر اوباسئ |

او الله ﷻ ستاسو دپاره غوږونه سترګې او زړونه جوړ کړل | چې تاسو ددې شکر ادا کړئ

| اَلَمْ يَرَوْا اِلَى | الطَّيْرِ | مُسَخَّرٰتٍ | فِيْ جَوِّ | السَّمَآءِ ؕ | مَا يُمْسِكُهُنَّ |
|---|---|---|---|---|---|
| آیا نهٔ دی کتلی دې خلقو | مارغانوته | چې تابع دی | په فضا | دآسمان کښې | نهٔ ساتي دوئ لره |

آیا دوی مارغان نه دی لیدلی اچې داسمان په فضا کښې تابعدار دی | دوئ صرف الله ﷻ

| اِلَّا اللّٰهُ ؕ | اِنَّ | فِيْ ذٰلِكَ | لَاٰيٰتٍ | لِّقَوْمٍ | يُّؤْمِنُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| مګرالله | بیشکه | په دې کښې | ډیرې نښې دی | دپاره دهغه خلقو | چې ایمان راوړی |

راټینګ کړی دی | بیشکه په دې کښې دایماندارو دپاره نخښې دی |

**قوله تعالى:- وَلِلّٰهِ غَيْبُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ**

**د الله تعالى د علم او قدرت کمال:**-الله تعالى خپل د علم کمال اود قدرت کمال بيان فرمائى چه د زمکې اوآسمان غيب هم هغه پيژنى هيڅ څوك نشته چه غيبوباندې پوهيږى.الله تعالى چه چاته په کوم څيز باندې غوارې خبرورکوى هرڅيز دهغه په قدرت کښې دې نه څوك دهغې خلاف کولې شى اونه څوك هغه منع کولې شى.دکوم يوکارچه کله اراده اوکړى قادر دې پوره کيږى د سترګې بندولو او کولاوولو کښې خو وخت لګى ولې د الله تعالى حکم پوره کيدوکښې دومره هم وخت نه لګى. د قيامت راتلل هم په هغه باندې داسې آسان دى د هغه حکم کيدوسره به راشى.ديوپيداکول اود ټولو پيداکول هغه ته يو شان دى.دالله تعالى احسان اوګوره چه هغه خلق دمئيندودخيټونه راوويستل دوى په هيڅ نه پوهيدل بيائى دوى ته غوږونه ورکړل چه په دې واورى، سترګې ورکړې چه په دې ګورى، زړه ئى ورکړو چه په دې سوچ اوکړى دعقل په ځائ زړه دې اودماغ هم ورته وئيلې شى.هم په عقل سره ګټه تاوان معلوميږى دا طاقتونه اوداحواس انسان ته درجه په درجه لږلږملاويږى. د عمر سره سره د دې زياتوالې هم کيږى تر دې چه کمال ته اورسى. دا ټول د دې دپاره دى چه انسان دا ټول طاقتونه د الله تعالى په پيژندګلو اودهغه په عبادت کښې اولګوى.

**په عبادت سره انسان الله تعالى ته نزدې کيدې شى :**-صحيح بخارى کښې حديث قدسى دې چه څوك زما دوستانو سره دښمنى کوى هغه ماته د جنګ کولو اعلان کوى. زما د فريضې په ځائ راوړو سره بنده دومره ماته نيزدې کيدې شى چه دومره په بل څه سره نه شى کيدې. په نفلونو کولوکولو بنده زما طرف ته نيزدې کيږى او زما محبوب جوړيږى. کله چه زه هغه سره محبت کوم د هغه غوږونه جوړيږم په کومو چه هغه اورى د هغه سترګې جوړيږم په کومو سره چه هغه ګورى اود هغه لاس جوړيږم په کومو سره چه هغه نيول کوى اود هغه پښې جوړيږم په کومو سره چه هغه تګ کوى. که مانه اوغوارې نو زه ئى ورکوم که مانه دعااوکړى زه ئى قبلوم. که پناه غوارې نوزه پناه ورکوم اوماته په يوکونکى کارکښې دومره ترددنه وى څومره چه دمؤمن سړى د روح په قبض کولوکښې هغه مرګ نه خوښوى[1]زه هغه ناراض کول نه غوارم اومرګ داسې څيز هم نه دې دکوم نه چه يوسا لرونکى ته خلاصې ملاوشى. د دې حديث مطلب دې چه کله مؤمن په خپل اخلاص او اطاعت کښې کامل شى نود هغه ټول افعال صرف د الله تعالى دپاره شى. هغه اورى دالله تعالى د پاره ګورى دالله تعالى د پاره يعنى د شريعت خبرې اورى او شرع چه کوم څيز ته کتل جائز کړى دى هم هغې ته ګورى دغه شان د هغه لاس وراندې کول اود پښې روانول دالله ﷻ درضادکارونودپاره وى.په اللهﷻ باندې دهغه يقين وى هم دهغه نه امداد غوارې دهغه ټول کارونه هم د الله ﷻ درضا وى.په بعضې غيرصحيح احاديثوکښې دې نه پس دا هم راغلى دى چه هغه هم زما د پاره اورى اوهم زما د پاره ګورى اوزما د پاره نيول کوى اوهم زما دپاره ګرځى.

**غوږ سترګې دماغ دالله تعالى نعمت دى ددې شکر پکار دې:**-په آيت کښې بيان دې چه د مورد خيټې نه ئى راوباسې غوږ سترګه زړه اودماغ هغه ورکوى دې دپاره چه تاسو شکر اداکړئى. بل آيت کښې دى ﴿ هُوَ الَّذِيْٓ اَنْشَاَكُمْ وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْاَبْصَارَ ﴾[2]يعنى هم الله تعالى تاسو پيداکړى ئى اوستاسود پاره ئى غوږونه سترګې او زړه جوړکړې دې خوتاسو ډير کم شکر اداکوئى هم هغه تاسو په زمکه کښې خواره کړى ئى اوهم د هغه طرف ته به ستاسو حشر کولې شى. بيا الله تعالى خپلو بنديګانوته فرمائى چه دې مرغونه اوګورئى چه د زمکې او آسمان په مينځ کښې فضاکښې الوزى ګرځى. دوى هم پروردګار په خپل

[1] صحيح بخارى کتاب الرقاق باب التواضع:٦٥٠٢، بيهقى:٣٤٦/٣، کتاب الزهد:٢٦٩/٢.

[2] ٦٧/الملك:٢٣.

قدرت كامله سره نيولى دى دا د الوتلو طاقت دوى له هم الله تعالى وركړې دې اوهواګانې ئې د دوى تابع كړې دى.سورت ملك كښې هم دا فرمان دې آيا دوى په خپلو سرونوباندې الوتونكى مرغوته نه ګورى چه وزرې ئې خورې كړى دى اووزرې ئې بندكړې هم دى. دوى بغيرد الله تعالیٰ نه چه رحمن اورحيم دې بل څوك نيولى دى؟ هغه الله تعالى ټول مخلوق ته ډير ښه ګورى. (١) دلته ئې هم په خاتمه باندې اوفرمائيل چه په دې كښې د ايماندارو د پاره ډيرې نښې دى.

| وَاللّٰهُ جَعَلَ |
|---|
| ٠ \| اوالله\| جوړكړو |
| \| اوالله ﷻ تاسو |
| لَكُمْ مِّنْ بُيُوْتِكُمْ سَكَنًا وَّجَعَلَ لَكُمْ مِّنْ جُلُوْدِ الْاَنْعَامِ |
| ستاسودپاره\| دكورونو ستاسو نه \| ځائې دآرام \| اوپيدا ئې كړل \| ستاسو دپاره\| دڅرمنو \| دڅارووْ نه |
| دپاره ستاسو كورونه د آرام ذريعه ګرځولې ده\| اوستاسودپاره ئې د څاروؤ د څرمنو نه |
| بُيُوْتًا تَسْتَخِفُّوْنَهَا يَوْمَ ظَعْنِكُمْ وَيَوْمَ اِقَامَتِكُمْ ۙ |
| كورونه \| چې سپك موموئ تاسو هغه \| په ورځ \| دسفر ستاسو كښې \| اوپه ورځ \| دقيام ستاسو كښې |
| داسې كورونه جوړ كړى دى \| چې هغه د سفر په ورځ اود قيام په وخت كښې سپك بياموموئ |
| وَمِنْ اَصْوَافِهَا وَاَوْبَارِهَا وَاَشْعَارِهَآ اَثَاثًا وَّمَتَاعًا |
| اودوړئ دهغې نه \|اودوړئ داوښانونه\| اودويښتودهغې نه \| سامانونه داغوستلو \| او سامانونه داستعمالولو |
| او دهغو د وړئ نه او د پشم نه او د ويښتو نه ستاسو دكور سامان او دفائدې څيزونه جوړوئ اچې ترېو |
| اِلٰى حِيْنٍ۝ وَاللّٰهُ جَعَلَ لَكُمْ مِّمَّا خَلَقَ ظِلٰلًا |
| ديو خاص وخت پورې \| اوالله \| پيدا كړل \| ستاسو دپاره \| دهغې نه \| چې پيدا كړى دى هغه \| سورى |
| وخته پورې (ترې فائده اخلئ) \| او الله ﷻ ستاسو دپاره دخپلو پيدا كړو څيزونو سيورى جوړكړى دى |
| وَّجَعَلَ لَكُمْ مِّنَ الْجِبَالِ اَكْنَانًا وَّجَعَلَ لَكُمْ سَرَابِيْلَ |
| اوجوړ ئې كړل\| ستاسودپاره\| دغرونونه\| ځائې دپناه اغستلو\| اوجوړئې كړل\| ستاسودپاره \| قميصونه |
| اوستاسو دپاره ئې په غرونو كښې د پناه اخستلو ځايونه جوړ كړى دى\| اوستاسو دپاره ئې داسې جامې جوړې |
| تَقِيْكُمُ الْحَرَّ وَسَرَابِيْلَ تَقِيْكُمْ بَأْسَكُمْ ؕ كَذٰلِكَ |
| چې ساتى تاسو \| دګرمئ نه \| اوجامې \| چې حفاظت كوى ستاسو \| په جنګ ستاسو كښې \| دارنګې |
| دى چې تاسو دګرمئ نه بچ كړى\| اوځۀ داسې جامې چې په جنګونو كښې ستاسو حفاظت كوى\| دغه شان |

(١) الملك٦٧/١٩.

| يُتِمُّ | نِعْمَتَهٗ | عَلَيْكُمْ | لَعَلَّكُمْ | تُسْلِمُوْنَ۝ | فَاِنْ | تَوَلَّوْا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| پوره کوي | نعمت خپل | په تاسو باند | دپاره ددې | چي تاسو دالله حکم اومنئ | نو که چرې | مخ واړوؤ دوئ |

الله ﷻ خپل نعمتونه په تاسو پوره کوي| د دې دپاره چي تاسو تابعدار جوړ شئ| نو که دوئ مخ ګرځوي

| فَاِنَّمَا | عَلَيْكَ | الْبَلٰغُ | الْمُبِيْنُ۝ | يَعْرِفُوْنَ | نِعْمَتَ اللّٰهِ | ثُمَّ | يُنْكِرُوْنَهَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| نو بیشکه | په تا باند | رسول دی | ښکاره | پيژني دوئ | نعمت دالله | بيا | انکار کوي دهغي نه |

نوستا په ذمه صرف ښکاره خبره رسول دی| دوئ دالله ﷻ نعمتونه ښه پيژني| اوبيا تري انکار کوي

| وَاَكْثَرُهُمُ | الْكٰفِرُوْنَ۝ ع |
|---|---|
| او زيات خلق ددوئ | نکاريان دی |

اوپه دوی کښي زيات خلق ناشکره دی |

**قوله تعالى:- وَاللّٰهُ جَعَلَ لَكُمْ مِّنْ بُيُوْتِكُمْ سَكَنًا**

**دَ راحت او آرام والا نعمتونه** :-دپخوانو اوډيرو بې شميره احساناتو اوانعاماتو سره الله تعالی دخپلو نورو نعمتونو ځرګندونه فرمائي چه هم هغه د بنيادمو د آرام او راحت د حاصلولو د پاره د هغوی د اوسيدو کورونه ورکړی دی.دغه شان دځاروو څناورود څرمنوخيمې ډيرې تنبوان وغيره درکړی دی چه په سفرکښې په کارراشي نه په اوړلوکښې تکليف نه لګول ګران اونه په راويستلوغونډولوکښې څه تکليف، بيادچيلوويښته د اوښانو وبينسته دګډوګډانو وړنې دسوداګرئې اوتجارت دپاره دمال په شکل کښې هغه جوړکړی دی. هغه د کورد نوښو څيز هم دې دې نه کپړې هم جوړيږې قالين هم تياريږي د تجارت په توګه د تجارت مال دې د فائدې څيز دې په کومو سره چه خلق د مقرر وخت پورې فائدې اخلي.د ونو سوری هغه ستاسو دفائدې اوآرام د پاره جوړ کړی دی په غرونوکښې غارونه او قلعه ګانې هغه تاسو ته درکړی دی چه په دې کښې پناه حاصله کړئی د پټيدو اوسيدو ځائ جوړکړئی. ريښمنې او وړنې والا کپړې تاسو ته هغه درکړی دی چه په اغوستوکښې د ګرمئي يخنئي نه بچ کيدوسره خپله پرده اوکړئی او زيب اوزينت حاصل کړئی. هغه تاسو ته زغرې پخپله ئې مورچې درکړې چه د دښمن سره د جنګ او حملې په وخت کښې ستاسو په کار راشي. دغه شان هغه تاسو ته ستاسو د ضرورت مطابق پوره پوره نعمتونه درکوی چه تاسو راحت او آرام اوکړئی او په تسلئی سره د خپل منعم حقيقي په عبادت کښې اخته شئ.﴿تُسْلِمُوْنَ﴾ دويم قراءت﴿تَسْلَمُوْنَ﴾ هم دې يعنی تاسو سلامت اوسيږئی اود رومبی قراءت معنی دې د پاره چه تاسو فرمانبردار جوړشئی د دې سورت نوم سورت النعم هم دې د لام د زبروالا قراءت نه دا هم مراد دې چه تاسو ته په جنګ کښې په کارراتلونکی څيزنه هغه درکړی چه تاسو سلامت اوسئی اود دښمن د حملې نه بچ شئی. بې شکه په ځنګل کښې او بيابان کښې د الله تعالی ډير لوئ نعمت دې خودلته ئې د غرونو نعمت څکه بيان کړو چه چا سره کلام دې د هغوی هم د غرونو خلق وو. نود هغوی د معلوماتو مطابق هغوی سره کلام کولې شي. دغه شان هغوی د ګډو چيلو اوښانو والا وونو هغوی ته ئې هم دغه نعمتونه ورياد کړل. سره د دې اود دې نه زيات د الله تعالی نعمتونه د مخلوق په لاسونوکښې نور هم بې شماره دی اوهم دغه وجه ده چه د يخنئي د کوزولو احسان ئې اوفرمائيلو سره د دې چه د دې نه نور ډير لوئ احسانونه موجود دی خو دا د هغوی مخاطب اود هغوی د معلوماتوڅيز وو. دغه شان چه دوی د جنګ جنګړو اوجنګيالی خلق وو نود جنګ نه د بچ کيدو څيز ئې د هغوی په وړاندې د نعمت په توګه کيخودو سره د دې چه د دې نه په زرګونو د لوئ

درجو انعامونه او نعمتونه هم د مخلوق په لاس کښې موجود دی.دغه شان د هغوی ملک ګرم وونو وني فرمائیل چه په لباس باندې تاسو د ګرمئی سختئ لرې کونی ګنی نوهغه منعم حقیقی سره ددې نه ډیر ښه نعمتونه بندیګانو د پاره نه ووځه؟ په دې وجه د دې نعمتونو اورحمتونو د بیانولو نه پس فرمانی که اوس هم دا خلق زما د عبادت او توحید اوزما د بې پایانه احسانونو قائل نه وی نو تاسره د دوی دومره غم ولې دې؟ پریږده ئې په خپل کار کښې لګیاشه په تاباندې خوصرف تبلیغ دې هغه کوه دوی پخپله پوهیږی چه هم الله تعالی د نعمتونو ورکونکې دې اود هغه بې شمیره نعمتونه د هغوی په لاسونوکښې دی خوسره د علم نه منکر شوی دی اود هغه سره د نورو عبادت کوی بلکه دهغه نعمتونه د نورو طرف ته نسبت کوی او داګنړی چه فلانکې امدادی دې رزق ورکونکې فلانکې دې دا اکثر خلق کافران دی اود الله تعالی ناشکره دی.

**د یو اعرابی واقعه**:-ابن ابی حاتم کښې دی یوځل یواعرابی د رسول الله ﷺ په خامت کښې حاضر شو حضور ﷺ د هغه په وړاندې د دې آیت تلاوت اوکړو چه الله تعالی تاسو له د اوسیدو د پاره کورونه او مکانو نه درکړی هغه وئیل رښتیادی بیاحضور ﷺ اوفرمائیل چه الله تعالی تاسو له د ځاروو د څرمنو خیمې درکړی هغه وئیل چه دا رښتیادی دغه شان حضور ﷺ دا آیاتونه لوستل او هغه د هریونعمت اقرار کولو په آخره کښې حضور ﷺ اوفرمائیل د دې د پاره چه تاسومسلمانان او تابعدار شئ هغه وخت خو هغه شاکړه لاړو نو الله تعالی آخری آیت نازل کړو چه د اقرار نه پس انکارکوی کافران کیږی.

| |
|---|
| وَيَوْمَ نَبْعَثُ مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ شَهِيدًا |
| او په کومه ورځ \| چې راپورته کړو مونږه \| دهر امت نه \| یو ګواه |
| \| او په کومه ورځ چې به مونږ د هریو امت نه یوګواه راپاڅوو |
| ثُمَّ لَا يُؤْذَنُ لِلَّذِينَ كَفَرُوا وَلَا هُمْ |
| بیا \| به اجازت ورنکړې شي \| هغه کسانوته\| چې کافران شوی دی\| اونهٔ به دهغوئ نه |
| بیا به کافرانو ته د (حجت پیش کولو) اجازت ورکولې نشي \| اونه به ددوئ نه |
| يُسْتَعْتَبُونَ ﴿٨٤﴾ وَإِذَا رَأَى الَّذِينَ ظَلَمُوا الْعَذَابَ |
| طلب دتوبې ایستلواوکړې شي\| اوهرکله چې \|اووینی\| هغه کسان \| چې ظلم ئې کړې دې \| عذاب لره |
| عذر قبول کړې شی \|..................اوکله چې ظالمان خلق عذاب اووینی |
| فَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمْ وَلَا هُمْ يُنْظَرُونَ ﴿٨٥﴾ وَإِذَا رَأَى |
| \| نو سپك به نهٔ کړې شي \| دهغوئ نه \| اونهٔ به هغوئ ته \| انتظار اوکړې شي \| هر کله چې \| اووینی |
| نو نه خو به د هغوی نه سپکولې شی \| اونه به دوئ ته مهلت ورکولې شی \| او څه وخت چې مشرکان |
| الَّذِينَ أَشْرَكُوا شُرَكَاءَهُمْ قَالُوا رَبَّنَا هَؤُلَاءِ شُرَكَاؤُنَا |
| هغه کسان \|چې شرك ئې کړې دې \|شریکان خپل\| نواوبه وائي\| اے ربه زمونږه \|دادی شریکان زمونږه |
| خپل شریکان (معبودان) اووینی \| نو دا به اووائی ائې زمونږ ربه ! \| ..................دا زمونږ |
| الَّذِينَ كُنَّا نَدْعُوا مِنْ دُونِكَ فَأَلْقَوْا إِلَيْهِمُ الْقَوْلَ |
| هغه \| چې ووُمونږه\| چې رابلل به مونږه دوئ \| بې له تانه \| نواوبه غورزوئ\| دوئ ته خبره\| |
| هغه معبودان دی \| کوم چې به مونږ ستا نه سوا رابلل \| بیا به معبودان دوئ ته دا جواب ورکړی \| چې |

إِنَّكُمْ لَكَٰذِبُونَ ۝ وَأَلْقَوْا إِلَى اللَّهِ يَوْمَئِذٍ السَّلَمَ

چي بیشکه تاسو | خامخا دروغژن یئ | اواوبه غورزوي | الله ته | په دغه ورځ | صلحه

بیشکه تاسو دروغژن یئ| ...........اومشرکان به الله تعالی ته په دغه ورځ صلح پش کړي

وَضَلَّ عَنْهُم مَّا كَانُوا يَفْتَرُونَ ۝ الَّذِينَ كَفَرُوا

اوورك به شي|دهغوئ نه | هغه |چي وو هغوئ | چي دروغ به ئې تړل هغه کسان|چي دکفرپه لاره لاړل

اوخپل ټول دروغ به تري هیر شي |چا چي دکفر لاره اختیار کړه| او نور خلق ئې د الله تعالی د لاري

وَصَدُّوا عَن سَبِيلِ اللَّهِ زِدْنَاهُمْ عَذَابًا فَوْقَ الْعَذَابِ

|اومنع ئې کړل نورخلق| دلاري دالله نه | زیات به ورکوومونږهغوئ ته | عذاب| دپاسه دعذاب

نه منع کړل |هغوئ ته به مونږ د يوي دپاسه بله سزا زیاته کړو |ځکه چي هغوئ به په دنیا کښي فسادونه

بِمَا كَانُوا يُفْسِدُونَ ۝

په سبب دهغې| چي وو هغوئ| چي فسادبه ئې کوو|

کول |

**قوله تعالی:- وَيَوْمَ نَبْعَثُ مِن كُلِّ أُمَّةٍ**

**د قیامت په ورځ د کافرانو حالت** :-دقیامت په ورځ چه به د کافران کوم بد حال وی د هغې ذکر کولې شی په هغه ورځ به په هریوامت باندې دهغوی نبي ګواهي ورکوی چه هغه د الله ﷻ کلام هغوی ته رسولې وو بیابه کافرانو ته دهغوی عذر معذرت اجازت هم نه شی ورکولې ځکه چه دهغوی باطل کیدل او دروغ بالکل ښکاره دی.په سورت المرسلات کښې هم دغه فرمان دې چه په هغه ورځ به نه هغوی خبرې کوی نه به هغوی ته د عذراومعذرت اجازت ملاویږی[1]مشرکان به عذابونوته ګوری خوبیابه څه کمې نه وی.یوساعت به هم عذاب نه سپکیږی نه به هغوی ته څه مهلت ملاویږی ناڅاپی به راونیولې شی دوزخ به موجودشی چه د اویاوزرو واګو والا به وی د هغې په هره یوه واګه به اویا زره فرښتې وی.[2]دا دې نه به یوسټ راوځی هغه به چه داسې خوره کړې وی چه د محشر ټول مخلوق به اوویریږی اوبه زنګونوبه راپریوځی هغه وخت به دوزخ په خپله ژبه په اوچت آواز اعلان کوی چه زه د هریوسرکش ضدی د پاره مقرر کړې شوې یم چا چه الله تعالی سره پل څوک شریك کړې اوداسې داسې کارونه ئې کړې وی هغه به د ډیرو قسمونوګناهګارانو ذکر کوی.[3] لکه چه په حدیث کښې دی چه بیا به هغه دغه ټولوخلقو پورې اونخلی اود میدان حشر نه به ئې اوچت کړی لکه څنګه چه مرغئی دانه راغونډوی.د الله تعالی فرمان دې ﴿إِذَا رَأَتْهُم مِّن مَّكَانٍ بَعِيدٍ سَمِعُوا لَهَا تَغَيُّظًا وَزَفِيرًا ۝﴾[4] اوهغه به د لرې نه ښکاری دهغه شور ژوګ شغلې وهل به هغوی اوری اوچه کله دهغې په تیاروا و تنګوکورونوکښې ورننه باسی نو مرګ ته به چغې وهی خوکه نن څوك مرګ هم غواړی نو څه کیدې شی؟ بل آیت کښې دی ﴿وَرَأَى الْمُجْرِمُونَ النَّارَ﴾[5] ګناهګار چه

[1] ٧٧/المرسلات:٣٥-٣٦.

[2] صحیح مسلم کتاب الجنة باب جهنم اعاذنالله منها:٢٨٤٢، حاکم:٦٣٧/٤، مجمع الزوائد: ٣٨٨/١٠، ابن ابی شیبه:٤٨/٧، مسندالبزار:١٧٥٤، المعجم الکبیر:١٠٤٢٨.

[3] ترمذی کتاب صفة جهنم باب ماجاء فی صفة النار: ٢٥٧٤، باختلاف یسیر وهوحسن، احمد:٣٣٦/٢ شعب الایمان٦٣١٧.

[4] ٢٥/الفرقان:١٢.

[5] ١٨/الکهف:٥٣.

دوزخ اووینی نوپوهه به شي چه دوی به پدې کښې ورډوبولې شي خو هيڅ د بچ کيدو لار به نه ويني په يوبل آيت کښې دی ﴿لَوْيَعْلَمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾ ([1]) افسوس چه کافرانو هغه وخت معلوم کړې وې چه کله به هغوی د خپلومخونو اود خپلو شاګانونه اُور لرې نه کړې شي نه به څوك امداد موندې شي ناڅاپې به د الله تعالی عذاب هغوی حيران اوپريشان کړی نه به د هغوی د دې د لرې کولو طاقت وی نه به د يومنټ مهلت ملاويږی په هغه وخت کښې به د هغوی باطل معبودان د کومو چه ئې ټول عمر عبادتونه کړی اود هغوی نذرونه ئې منل بالکل به د هغوی نه ويزاره شي اود هغوی د حاجت په وخت کښې به بالکل د هغوی په هيڅ کار نه راځي هغوی ته به پټه کتو سره وائي چه اې الله هم دادی هغه کومو ته چه په دنياکښې مونږ عبادتونه کول نو هغوی به وائي دروغژن ئې مونږ کله تاسو ته ونيلې ووچه الله تعالی پريږدئي او زمونږ عبادت اوکړئي هم دا الله سبحانه وتبارك وتعالی فرمائي ﴿وَمَنْ أَضَلُّ مِمَّنْ يَدْعُوْا مِنْ دُوْنِ اللهِ مَنْ لَا يَسْتَجِيْبُ لَهٗ﴾ ([2]) يعني د دوی نه زيات څوك ګمراه نشته چه د الله تعالی نه بغير هغه چاته آواز کوی چه دقيامت پورې به هم هغوی ته جواب ورنه کړی بلکه هغوی د دوی د چغونه هم ناخبره دی. اود حشر په ورځ به د دوی دښمنان وی اود هغوی د عبادت نه به انکاريان وی. په نورو آياتونوکښې دی چه خپل حمايتی اودعزت سبب ئې څوك ګنړل اوچاته ئې چغې وهلې هغوی خوبه د دوی دعبادتونونه داسې منکرشی اودهغوی مخالفين به جوړشی ([3]) خليل الله ﷺ هم دافرمائيلی ﴿ثُمَّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ يَكْفُرُ بَعْضُكُمْ بِبَعْضٍ﴾ ([4]) يعني د قيامت په ورځ به د يوبل منکرشی. بل آيت کښې دی چه دوی ته به دقيامت په ورځ حکم وی چه خپل شريکان راوبلئی الخ ([5]) نور هم ددې مضمون آياتونه په کلام الله کښې موجود دی په دغه ورځ به ټول مسلمانان تابع فرمان شی کله چه ارشاد دې ﴿أَسْمِعْ بِهِمْ وَأَبْصِرْ يَوْمَ يَأْتُوْنَنَا﴾ ([6]) يعني په کومه ورځ چه دوی زمونږ خواله راشی په هغه ورځ به ښه اوری او ګوری.بل آيت کښې دی ﴿وَلَوْ تَرٰى إِذِ الْمُجْرِمُوْنَ نَاكِسُوْا رُءُوْسِهِمْ﴾ ([7]) ته به ګورې چه په دغه ورځ به ګناهګار خلقو سرونه ټيټ کړې وائي به چه اې الله مونږ واوريده مونږ اوکتل الخ. بل آيت کښې دی چه په دغه ورځ به ټول مخونه د الله تعالی چه حی ياقيوم دې مخکښې ټيټ شوې وی. ([8]) تابعدار او تابع فرمان به وی د حکم لاندې به وی د هغوی ټول بهتانونه اود ځان نه خبرې به ختمې شی ټولې چالاکئی به ئې ختمې شی هيڅ امدادی به ئې نه وی ولاړ. چاچه کفر کړې هغوی ته به د کفر سزا ورکولې شی او په خپل کښې به د نورو خلقو راښکلو دوچنده سزا خوری دا هم هغه وو چه پخپله به هم لرې تختيدل او نور به ئې هم د حق نه لرې تختول. په اصل کښې هغوی پخپله د تباهئی په بوخته کښې انختل خو وو دوی بې وقوف. د دې نه معلوميږی چه د کافرانو د عذابونو به هم درجې وی څنګه چه دمؤمنانو د بدله درجې وی.لکه چه دالله ﷻ ارشاد دې ﴿قَالَ لِكُلٍّ ضِعْفٌ وَّلٰكِنْ لَّا تَعْلَمُوْنَ﴾ ([9]) د هريوډپاره دوچند دې خوتاسوته علم نشته. ابويعلی کښې دحضرت عبدالله ﷺ نه روايت دې چه دجهنم د عذاب سره به دزهرژنو مارانو تکونه زياتيږی چه دومره لوئ لوئ به وی

---

[1] ٢١/الانبياء:٣٩.
[2] ٤٦/الاحقاف:٥.
[3] ١٩/مريم:٨١-٨٢.
[4] ٢٩/العنكبوت:٢٥.
[5] ١٨/الكهف:٥٢.
[6] ١١/مريم:٣٨.
[7] ٣٢/السجدة:١٢.
[8] ٢٠/طه:١١١.
[9] ٧/الاعراف:٣٨.

د عذاب سره به دزهرژنو مارانو تکونه زیاتیږي چه دومره لوئ لوئ به وی لکه خومره چه د لویو کهجورو ونې وی. (١) د ابن عباس ﷺ نه روایت دې چه د عرش لاندې به پنځه نهرونه وی په کوم چه به دوزخیانوته عذاب ورکولې شی د شپې هم اود ورځې هم.

| | |
|---|---|
| نَبْعَثُ | وَيَوْمَ |
| اوخبري نې كړه دهغه ورځ نه \| چې راپورته به كړومونږ | |
| \| چې مونږ به د هر يو امت نه يو يو ګواه هم د هغوئ د مینځ | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَجِئْنَا | مِّنْ أَنفُسِهِمْ | عَلَيْهِمْ | شَهِيدًا | فِي كُلِّ أُمَّةٍ |
| او رابه ولومونږ | دنفسونو دهغوئ نه | په هغوئ باند | يو ګواه | په هر امت کښې |
| نه راوچت (پيش) كړو \| اوتابه د دې خلقو په مقابله كښې ګواه را ړواندې كړو \| اومونږ په تاباندې | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| تِبْيَانًا | الْكِتَابَ | عَلَيْكَ | وَنَزَّلْنَا | عَلَىٰ هَٰؤُلَاءِ ط | بِكَ شَهِيدًا |
| چې وضاحت كونكې دې | داكتاب | په تاباند | اونازل كړې دې مونږه | په دې خلقوباند | تالره ګواه |
| داكتاب قرآن نازل كړې دې \| په دې كښې د هر (دينى ) څيز (حسب ضرورت) واضحه بيان موجود دې | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لِلْمُسْلِمِينَ ﴿٨٩﴾ ع | وَبُشْرَىٰ | وَرَحْمَةً | وَهُدًى | لِكُلِّ شَيْءٍ |
| دپاره دمسلمانانو | او زيرې دې | او رحمت دې | او هدايت دې | دپاره دهر څيز |
| او(دا قران) مسلمانانو دپاره هدايت اورحمت او زيرې دې........................................ | | | | |

**قوله تعالى:- وَيَوْمَ نَبْعَثُ فِي كُلِّ أُمَّةٍ شَهِيدًا عَلَيْهِمْ**

**په قيامت كښې ګواهان هم وی:-** الله تعالى خپل محترم او خوږ رسول ﷺ ته خطاب كولوسره فرمائى هغه ورځ ياده كړه اوهغه ورځ چه ستاعزت اوكرامت كيدونكې دې د هغې هم ذكر كوه.دا آيت هم داسې دې څنګه چه دسورت نساء په شروع كښې آيت﴿فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِن كُلِّ أُمَّةٍ بِشَهِيدٍ وَجِئْنَا بِكَ عَلَىٰ هَٰؤُلَاءِ شَهِيدًا﴾(٢)يعنى څنګه به تيريږي چه مونږ د هريو امت نه ګواهان راورو اوتا په دې ټولوباندې ګواه جوړكړو اودرو. حضورﷺيوځل په ابن مسعودﷺ باندې سورت نساءتلاوت كړوكله چه هغه دې آيت ته راورسيدو نو حضورﷺ اوفرمائيل بس كړه كافى دې. ابن مسعودﷺ فرمائى چې ما اوكتل چه هغه وخت د حضورﷺ سترګې مباركې د اوښكو نه ډكې وې(٣)بيا فرمائى چه زمونږ په دې نازل شوې كتاب كښې مونږ ستا په وړاندې هر څه بيان كړى دى. هريوعلم او هرڅيز په دې قرآن كښې دې. (٤)هريوحلال اوحرام هرنافع علم هره نيكى تيرې شوې خبرې راتلونكې واقعات د دين اودنيا كار روزګار ټول ضرورى احكام او احوال په دې كښې موجود دى. دا دزړونو هدايت دې رحمت دې زيرې دې. امام اوزاعى رحمه الله فرمائى چه دې كتاب كښې سره د سنت رسول ﷺ د هرڅيز بيان دې. د دې آيت سره د پورتنى آيت تعلق غالبا په دې وجه دې چه چا په تاباندې د دې كتاب تبليغ فرض كړې دې اودا نې نازل كړې دې هغه به د

---

(١) مجمع الزوائد:٤٨/٧، مسندابى يعلى:٢٦٥٩، الترغيب والترهيب:٥٥٨١،حاكم:٢/٢٥٥-٣٥٦.

(٢) ٤/النساء:٤١.

(٣) صحيح بخارى كتاب فضائل القرآن باب قول المقرى للقارى حسبك: ٥٠٥٠، صحيح مسلم:٨٠٠، بيهقى:٢٣١/١٠، المعجم الكبير : ٨٤٦٠ ، شعب الايمان:٤٨١/١.

(٤) الطبرى:٢٦٩/١٧.

قیامت په ورځ د دې باره کښې سوال کونکې دې لکه چه ارشاد دې چه د امتونو او رسولانو تپوس به تپوس کولې شي.والله! زمونږ د تپوس به د زمونږ د عملونو تپوس کولې شي رسولان به راجمع کولې شي او تپوس به ترې کیږی چه تاسو ته څه جواب ملاوشو؟ هغوی به وائی چه مونږ ته هیڅ علم نشته ته علام الغیوب ئې. بل آیت کښې دی ﴿إِنَّ الَّذِي فَرَضَ عَلَيْكَ الْقُرْآنَ لَرَادُّكَ إِلَى مَعَادٍ﴾[1] یعنی چا چه په تا باندې د قرآن تبلیغ فرض کړې دې هغه به د قیامت په ورځ تا خپل ځان ته واپس کړی اود خپلې درکړې شوې فریضې باره کښې درنه تپوس کونکې دې.دا یوقول هم د دې آیت په تفسیرکښې دې اودې هم معقول او ښکلې.

| إِنَّ اللَّهَ | يَأْمُرُ | بِالْعَدْلِ | وَالْإِحْسَانِ | وَإِيتَاءِ | ذِي الْقُرْبَىٰ |
|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه الله | حکم کوی | په عدل کولوسره | اوپه احسان کولو سره | او په ورکولو سره | رشته دارانو ته |
| الله تعالی یقینا تاسو ته دانصاف اود نیکئ اوخپلوانو ته د مال ورکولو حکم کوی | | | | | |
| وَيَنْهَىٰ | عَنِ الْفَحْشَاءِ | وَالْمُنْكَرِ | وَالْبَغْيِ | يَعِظُكُمْ | |
| اومنع کوی | دبې حیایئ دکارونونه | اودبدوکارونونه | اودظلم زیاتی نه | هغه نصیحت کوی تاسو ته | |
| او دبې حیایئ د بدوکارونو او د سرکشئ نه مو منع کوی | اوتاسو ته نصیحت کوی چې | | | | |
| لَعَلَّكُمْ | تَذَكَّرُونَ ۝ | | | | |
| دپاره ددې چې تاسو | نصیحت قبول کړئ | | | | |
| دې دپاره چې تاسو نصیحت حاصل کړئ | | | | | |

قوله تعالی:-إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالْإِحْسَانِ

**د عدل احسان صله رحمئ اوفحشااومنکر مطلب**:- الله ﷻ خپلو بندیګانو ته د عدل او انصاف حکم ورکوی اود سلوك اواحسان لارخودنه کوی اوبدله اخستل هم جائز دی.لکه چه آیت ﴿وَإِنْ عَاقَبْتُمْ فَعَاقِبُوا بِمِثْلِ مَا عُوقِبْتُمْ بِهِ ۖ وَلَئِنْ صَبَرْتُمْ لَهُوَ خَيْرٌ لِلصَّابِرِينَ ۝﴾[2] کښې اوفرمائیل که بدله اخلئ نوبرابره برابره بدله اخستې شئ خوکه صبر او برداشت اوکړئ نو څه به وائی چه دا لویه د بهادرئ خبره ده. بل آیت کښې دی چه د دې بدله به الله تعالی سره ملاویږی. بل آیت کښې دی د زخمونو قصاص دې خوچه څوك معافی اوکړی نو د هغه د ګناهونو معافی ده[3] نوعدل فرض اواحسان نفل.د توحید د کلمه شهادت هم عدل دې ظاهر او باطن په یورنګ کښې هم عدل دې اواحسان دا دې چه د باطن صفائی د ظاهر نه هم زیاته وی او فحشا اومنکر دادې چه په باطن کښې خرابی وی اوپه ظاهرکښې بناوټ. هغه د صله رحمې هم حکم ورکوی. لکه چه په صفاالفاظوکښې ارشاد دې ﴿فَآتِ ذَا الْقُرْبَىٰ حَقَّهُ وَالْمِسْكِينَ وَابْنَ السَّبِيلِ ۚ ذَٰلِكَ خَيْرٌ لِلَّذِينَ يُرِيدُونَ وَجْهَ اللَّهِ ۖ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ۝﴾[4] رشته دارانوته مسکینانوته مسافروته د هغوی حق ورکړه او اسراف او بې ځایه مه الوزوئ.دمحرماتونه هغه تاسو منع کوی د ګناهونونه هغه تاسومنع کوی ظاهری او باطنی ټول ګناهونه حرام دی. په خلقو ظلم اوزیاتې کول حرام دی.

[1] ۲۸/القصص:۸۵.
[2] ۱٦/النحل:۱۲٦.
[3] ٥/المائده:٤٥.
[4] ۱۷/بنی اسرائیل:۲٦

**دظلم سزا ډيره زر ملاوېږي:-** حديث شريف كښې دي چه د ظلم زياتي او خپلولي پريخودو نه زياته بله داسې ګناه نشته چه په دنياكښې به هم د هغې ډير زر بدله ملاوشي او په آخرت كښې به سخت نيول وي (١) د الله تعالى دا احكام اوبنديزونه ستاسو د نصيحت دپاره دي. ابن مسعود رضي الله عنه فرمائي د ټولو نه جامع آيت په ټول قرآن كښې دسورت نحل دا آيت دې (٢) حضرت قتاده رحمه الله فرمائي چه كوم ښه عادتونه دي د هغې حكم قرآن وركړې دې او پخلقو كښې چه كوم خراب خصلتونه دي د هغې نه الله تعالى منع كړې دى د بداخلاقئ نه اوبدئي نه هغه ممانعت كړې دې.په حديث كښې دي بهترين اخلاق الله تعالى ته خوښ دي اوبداخلاقي هغه مكروه ګڼړي.(٣)

**داكثم صيفي واقعه:-** اكثم بن صيفي ته چه كله د رسول الله ﷺ متعلق خبروركړې شو نو هغه د رسول الله ﷺ په خدمت كښې دحاضريدو كله اراده اوكړه خود هغه قوم هغه پسې شو او هغه نې منع كړو هغه وئيل چه ما نه پريږدئى نو ښه ده قاصد راولئى چه هغه اوليږو.دوه كسان د دې خدمت د پوره كولو د پاره تيار شودلته چه راغله نو هغوى اووئيل چه مونږ داكثم صيفي قاصدان يوهغه تاسو نه تپوس كوى چه تاسو څوك ئى؟اوڅه ئى؟ حضور ﷺ اوفرمائيل چه د اول سوال جواب خودادې چه زه محمد ﷺ بن عبدالله يم اود دويم سوال جواب دا دې زه د الله تعالى بنده اود هغه رسول يم. بياحضور ﷺ هغوى ته دا آيت تلاوت كړو.هغوى وئيل دوباره ئې اولولئي.حضور ﷺ بيا اولوستلو تردې چه هغوى يادكړو بياواپس لاړل او اكثم ته ئې پوره خبر وركړو او وئې وئيل په خپل نسب باندې هغه څه فخر اونه كړو صرف خپل اودخپل پلار نوم ئې واخستو خودې د لوئ نسب والا اود اوچت خاندان والا دې. بيائې مونږ ته دا كلمې اوخودلې چه د حضور ﷺ په ژبه مباركه مونږ واوريدې. دې اوريدو سره اكثم اووئيل چه هغه خو ډيرې ښه خبرې ښائي اود بدو او سفلي خبرونه منع كول كوي. زما د قبيلې خلقو تاسو د اسلام طرف ته وړانديوالې اوكړئى دې دپاره چه تاسو په نورو قبيلو باندې سردارى اوكړئى اود نورو خلقو په لاسونوكښې لكئى مه جوړيږئي.

**د عثمان بن مظعون واقعه:-** د دې آيت په شان نزول كښې يوحسن حديث مسنداحمدكښې واردشوې دې. ابن عباس رضي الله عنه فرمائي حضور ﷺ په خپل صحن كښې ناست وو چه عثمان بن مظعون رضي الله عنه حضور ﷺ سره تيريدو حضور ﷺ اوفرمائيل كيني نه؟ هغه كيناستو اوحضور ﷺ د هغه طرف ته متوجه شوخبرې ئې كولې چه حضور ﷺ ناڅاپي خپل نظرمبارك د آسمان طرف ته اوچت كړو لږ ساعت پورې ئې بره كتل بيائې سترګې په مزه مزه ښكته كړې اوخپل ښى طرف ته ئې په زمكه اوكتل او هم هغه طرف ته حضور ﷺ مخ هم كړو اوداسې ئې سر مبارك خوزولو لكه چه د چا نه څه زده كوى اوخوك حضور ﷺ ته څه وائى لږ ساعت پورې داحالت وو بياحضور ﷺ سترګې پورته كړې تردې چه د آسمان پورې د حضور ﷺ نظرمبارك اورسيدوبياحضور ﷺ ټيك ټاك شو اوهم هغه شان عثمان ته متوجه شو ناست ووهغه ټول ئې كتل د هغه صبر اونه شوتپوس ئې اوكړو حضور ﷺ تاسو سره ډير خل د ناستې موقع ملاوشوې ده خود نن په شان نظاره مې نه ده ليدلې. حضور ﷺ اوفرمائيل تا څه اوليدل؟ وئيل تاسو خپل نظرمبارك د آسمان طرف ته اوچت كړو بيامو لاندې اوكتل بيامو خپل ښى طرف ته اوكتل اوداسې تاوْ شوې كيناستې زه دې پريخودم بيامو داسې سرخوزولولكه چه څوك تاسو ته څه وائى اوتاسو په ښه شان سره هغه اورئى. حضور ﷺ اوفرمائيل چه ښه ده تا دا هر څه اوليدل هغه وئيل

(١) ابوداؤد كتاب الادب باب ل النهى عن البغى: ٤٩٠٢، وسنده صحيح، ترمذى: ٢٥١١، ابن ماجه: ٤٢١١، حاكم: ٣٥٦/٢، ابن حبان: ٢٠٣٩، احمد: ٣٦/٥.

(٢) حاكم: ٣٥٦/٢، وسنده صحيح امام حاكم m دا صحيح ګڼلې دى.

(٣) حاكم: ٤٨/١، طبرانى: ٥٩٢٨، وسنده حسن، حلية الاولياء: ٢٥٥/٣.

اوبرابرمې كتل. حضورﷺ اوفرمائيل ماله د الله تعالى فرښته وحې راوړلو سره راغلې وه هغه وئيل د الله تعالى نه راليګلې شوې؟ حضورﷺ اوفرمائيل او او د الله تعالى راليګلې شوې. تپوس ئې اوكړو بياهغې تاسوته څه اووئيل؟ حضورﷺ هم دا آيت تلاوت كړو. حضرت عثمان بن مظعون ﷺ فرمائي هم دغه وخت زما په زړه كښې ايمان كيناستو اود حضورﷺمحبت زما په زړه كښې ځائ اوكړو(١) بل روايت كښې دى د حضرت عثمان بن ابى العاص ﷺ نه روايت دې چه زه د حضورﷺ په خدمت كښې ناست ووم حضورﷺ خپل نظر پورته اوچت كړو وئې فرمائيل جبرائيل ﷺ ماله راغلواوماته ئې حكم راكړوچه زه دا آيت د دې سورت په دې ځاي كښې كيږدم. (٢) دا روايت هم صحيح دې. والله اعلم.

وَأَوْفُوا بِعَهْدِ اللَّهِ إِذَا عَاهَدْتُمْ

| او پوره كوئ | وعده دالله | كله چې | وعده اوكړئ تاسو

| اودالله تعالى وعده پوره كوئ | هركله چې تاسووعده اوكړئ

وَلَا تَنْقُضُوا الْأَيْمَانَ بَعْدَ تَوْكِيدِهَا وَقَدْ جَعَلْتُمُ اللَّهَ

او مه ماتوئ تاسو| قسمونه| روستو | دمحكم كولودهغې نه | حال دا چې جوړ كړې وى تاسو | الله

اود پخولو نه پس قسمونه مه ماتوئ | حال دادې چې تاسو په خپل خان باندې

عَلَيْكُمْ كَفِيلًا ۚ إِنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا تَفْعَلُونَ ﴿٩١﴾ وَلَا تَكُونُوا

په خانونوخپلوباند|ګواه | بيشكه الله| پوهيږي| په هغه عملونو| چې‌كوئ ئې تاسو| اومه كيږئ تاسو

الله تعالى ضامن جوړ كړې دې | بيشكه الله تعالى ستاسو په ټولو كارونو پوهيږي|اوتاسو د هغې

كَالَّتِي نَقَضَتْ غَزْلَهَا مِنْ بَعْدِ قُوَّةٍ أَنْكَاثًا ۖ

پشان دهغه ښځې | چې وې سپړدل | ريشلى تارونه خپل | روستو دمحكموالى نه | ټوټې ټوټې

ښځې په شان مه كيږئ |چې خپل تارونه به ئې دمضبوطولو نه پس بيا ريښه ريښه كړل| چې پخبل جل ول

تَتَّخِذُونَ أَيْمَانَكُمْ دَخَلًا بَيْنَكُمْ أَنْ تَكُونَ أُمَّةٌ هِيَ أَرْبَىٰ

نيسئ تاسو| قسمونه خپل| ذريعه دټګئ | په منځ خپل كښې| چې شي| يوه ډله هغه زياته ګټوره

تاسوهم خپل قسمونه د فساد ذريعه اوګرځوئ | په دې غرض چې يوه ډله د بلې ډلې نه زياته فائده

مِنْ أُمَّةٍ ۚ إِنَّمَا يَبْلُوكُمُ اللَّهُ بِهِ ۚ وَلَيُبَيِّنَنَّ لَكُمْ

دبلې ډلې نه | بيشكه | آزمائى تاسو لره الله | په دې وعده سره | اوخامخا به بيان كړى | تاسو ته

واخلى| الله تعالى هم دغه شان په تاسو امتحان كوى |او د قيامت په ورځ به درته هغه ټول

يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَا كُنْتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ ﴿٩٢﴾

په ورځ دقيامت| هغه څه| چې وئ تاسو| په هغې كښې| چې اختلاف به موكولوا

حقيقت ښكاره كړى | په كوم كښې چې تاسو اختلاف كولو |

(١) احمد:١/٣١٨، وسنده حسن، طبران:٨٣٢٢، مجمع الزوائد:٧/٤٨.
(٢) احمد:٤/٢١٨،

**قوله تعالى:- وَأَوْفُوا بِعَهْدِ اللَّهِ**

**دَ قسمونوعهدوپیمان دَحفاظت حکم:-** الله تعالى مسلمانانوته حکم ورکوی چه هغوی دې دوعدو حفاظت کوی قسمونه دې پوره کوی اوماتوی دې نه. دلته نی د قسمونونه ماتولوسختوالې اوکړو. بل آیت کښې فرمائیلی دی چه د خپلو قسمونو نښه الله تعالى مه جوړونی دې نه هم د قسمونو حفاظت کول مراد دی.یو بل آیت کښې دی د قسم ماتولوکفاره ده د قسمونوپوره کولوحفاظت کوئی.

**ددې ایت مبارک په مطلب کښې مختلف توجیهات او اصل مطلب:-** په آیاتونوکښې داحکم دې اوبخاری او مسلم په حدیث کښې حضورﷺ فرمائی والله‌چه کله زه دیوڅیز قسم اوخورم اوبیادهغې په خلاف کښې بهتری اووینم نوان شاء اللهﷻ ضروربه هغه کارپوره کوم او دخپل قسم کفاره به ورکوم.([1])دې پورتنی آیاتونوکښې اواحادیثوکښې فرق مه گنړئی.هغه قسمونه وعدې معاهدې چه پخپل مینځ کښې : معاهدې اووعدې په توگه وی دهغې پوره کول خوبې شکه ډیر ضروری دی اوکوم قسمونه چه د رغبت او منع کولود پاره د خلې نه اوځی هغه بې شکه کفاره ورکولوسره ماتیدې شی. نو په دې آیت کښې مراد د جاهلیت د زمانې په شان قسمونه دی([2])مسنداحمدکښې دی رسول الله ﷺ فرمائی په اسلام کښې د دوړلو په خپل مینځ د اوسیدو قسم هیڅ څیز نه دې. اوپه جاهلیت کښې چه د داسې اعانت او امداد کوم قسمونه خپل مینځ شوی دی اسلام هغه نور هم مضبوط کوی([3])د دې حدیث د اولنئی جمله دا معنی ده چه اسلام قبلولونه پس اوس د دې ضرورت نشته چه د یوې رورولنی والا بلې رورولنی والا نه وعدې اومعاهدې اوکړی چه تاسواومونږ یویو، په راحت او غم کښې شریك یووغیره خکه چه : اسلام رشته ټول مسلمانان په یوه رورولنی کښې راولی د مشرق نه ترمغرب پورې مسلمانان د یوبل په غم دردکښې شریك دی. د بخاری اومسلم یوحدیث کښې دی د حضرت انس ﷺ په کورکښې رسول الله ﷺ د انصارواومهاجرینو په مینځ کښې قسم اوکړو([4])د دې نه دا منع کړې شوی رورولی مراد نه ده دا خوررولی وه د کوم په وجه چه به خپل مینځ کښې د یوبل وارثان کیدل په آخره کښې داحکم منسوخ شو اووراثت نیزدې خپلوانوسره خاص کړې شو.وائی چه ددې فرمان الهی نه مطلب دغه مسلمانانو ته په اسلام باندې د کلك اودریدو حکم ورکول دی کومو چه دحضورﷺ په لاس باندې بیعت اوکړو او: اسلام د پابندئی اقرارئی کولو نو هغوی ته فرمائی چه د داسې کلك قسم او پورې معاهدې او وعدې نه پس چرته داسې نه وی د محمدیهﷺ د ډلې د کمې اود مشرکانود ډلې کثرت ته په کتو سره تاسودا ماته نه کړئی([5]) مسنداحمدکښې دی چه کله خلقو د یزیدبن معاویه‌ﷺ بیعت ماتولو نوحضرت عبدالله بن عمرﷺ د خپل کور ټول خلق راجمع کړل اود الله تعالى تعریف کولونه نی اما بعد اوفرمائیل چه مونږ د یزیدبیعت د الله اود هغه د رسول ﷺ په بیعت اوکړو او ما د رسول اللهﷺ نه اوریدلی دی چه د هریوغدار د پاره به د قیامت په ورخ یوه جهنډا ورخښولې شی او اعلان به کولې شی‌دا غدارډې فلانکې د فلانکی خوئ. د الله تعالى سره د شریك کولونه پس دا د ټولونه لوئ اود ټولونه خراب

---

[1]) صحیح بخاری کتاب الایمان والنذر، باب قوله تعالى ﴿لایؤاخذکم الله باللغو فی ایمانکم﴾:٦٦٢٣، صحیح مسلم :١٦٤٩، احمد:٤٠١/٤، مسندابی عوانه: ٣٣/٤، مسندالبزار:٣٠٣٨.

[2]) الطبری:٢٨٢/١٧.

[3]) احمد:٨٣/٤، صحیح مسلم کتاب فضائل الصحابه باب مؤاخاة النبیﷺ بین اصحابه: ٢٥٣٠، امواردالظمآن:٢٠٦١، دارمی: ٣١٨/٢، مصنف عبدالرزاق:١٩٢٠٠.

[4]) صحیح بخاری کتاب الکفالة باب قول الله تعالى ﴿والذین عاقدت ایمانکم فآتوهم نصیبهم﴾ :٢٢٩٤، صحیح مسلم کتاب فضائل الصحابة باب مؤاخاة النبی ﷺ بین اصحابه: ٢٥٢٩، ابوداؤد: ٢٩٦٦، احمد:١١١/٣، مسندابی یعلی:٤٠٢٣، بیهقی:٢٦٢/٦، الادب المفرد:٥٦٩.

[5]) الطبری: ٢٨١/١٧، والله اعلم.

غداری ده چه د الله تعالی اودهغه د رسول ﷺ بیعت دچاپه لاس باندې اوکړی او بیائی مات کړی یاد ساتئ تاسو کښې څوك هم داخراب کار اونه کړی او په دې باره کښې د حد نه وړاندې نه شئی گنی زما اود هغه په مینځ کښې جدائی ده[1] مسنداحمدکښې دی حضورﷺ فرمائی چه کوم سړې یومسلمان سره څه شرط اوکړی اودهغې د پوره کولو اراده نه لری نوهغه په مثال د هغه سړی دې چه خپل گاونډی ته د امن ورکولو نه پس بې اسرې پریږدی. [2]

**دمکې د بوډئی قصه او دهغوئ سره تمثیل**:-بیا هغوی ویروی چه څوك دعهدوپیمان حفاظت نه کوی د هغه د دې کارنه الله تعالی علیم اوخبیردې.په مکه کښې یوه ښځه وه چه د هغې په عقل کښې فتور وو د تار جوړولونه او تیك ټاك اومضبوطیدونه پس به بغیرد څه وجه مات رامات کړو او ټکړې ټکړې به ئی کړو.[3] نودامثال دې ددې مضبوطولونه پس وعده بیا ماتول. [4] هم دا خبره تیك ده اوس دا پریږده چه په واقعه کښې یوه داسې ښځه وه هم که نه وه چه داسې ئی کول دلته خو صرف مثال مقصد دې ﴿انکاثا﴾ معنی ټکړې ټکړې کول ممکن دی چه دا د ﴿نَقَضَتْ غَزْلَهَا﴾ اسم مصدر وی اوداهم کیدې شی چه بدل وی دکان د خبریعنی انکاث مه جوړیږه دجمع نکث دناکث نه بیافرمائی چه قسمونه د مکراوفریب ذریعه مه جوړوه چه د خپل خان نه لویوته په خپلو قسمونوباندې یقین ورکړې اوخپله ایمانداری او نیك نیتی اوښائې بیا بې ایمانی اوغداری اوکړې. د دې کثرت په لیدلوسره د دروغو وعدې کولوسره صلح اوکړې. او بیا موقعه بیاموندلو سره جنگ شروع کړې داسې مه کوئی. نو چه کله په داسې حالت کښې بې وعدگی حرام کړې شوه او د خپل کثرت او غلبې په وخت کښې خو په طریقه اولی حرامه شوه. الحمدلله مونږ په سورت انفال کښې دحضرت معاویه ؓ قصه لیکلې ده چه د هغوی او شاه روم په مینځ کښې د یوې مودې پورې صلح شوې وه. د دې مودې د ختمیدو سره نیزدې هغوی مجاهدین د روم سرحد طرف ته روان کړل چه هغوی دې په سرحدباندې پریوځی اود مودې په ختمیدو سره دې حمله اوکړی دې د پاره چه رومیانوته د تیاری موقع ملاونه شی. کله چه عمرو بن عبسه ؓ ته د دې خبر اوشو نو امیرالمؤمنین حضرت معاویه ؓ له راغلو او ورته ئی اووئیل الله اکبر اې معاویه!عهدپوره کړه غدر او بدوعدگئی نه بچ شه ماد رسول الله ﷺ نه اوریدلی دی چه کوم قوم سره وعده معاهده اوشی نو چه ترکومې پورې دصلح موده ختمه شوې نه وی د یوې غوټې دکولاوولو هم اجازت نشته. دې اوریدو سره امیرمعاویه ؓخپل لښکر راواپس کړو[5] ﴿اربی﴾ نه مراد اکثردې. ددې جمله دا هم مطلب دې چه اوگوری دښمن ډیر اوطاقتور دې صلح اوکړی اودا صلح د فریب ذریعه جوړه کړی هغوی غافل کړی او حمله اوکړی. اودا هم مطلب دې چه یوقوم سره معاهده اوکړې بیااوگوری چه بل قوم د هغوی نه قوی دې هغه سره ئی معامله اوکړه او مخکینئی معاهده ئی ماته کړه دا ټول منع دی. په دې کثرت سره الله تعالی تاسو ازمائی یادا چه په خپل حکم سره یعنی د وعدې د پابندئی په حکم سره الله تعالی ستاسو ازمیښت کوی او په تاسوکښې به صحیح فیصلې د قیامت په ورځ پخپله کوی. هریوته به د هغه د عملونو بدله ورکوی نیکانوته نیکه او بدانو ته بده. [6]

---

[1] احمد:٤٨/٢، صحیح بخاری کتاب الفتن باب اذاقال عندقوم شیئا ثم خرج فقال بخلافه:٧١١١، ٣١٨٨، صحیح مسلم:١٧٣٥.

[2] احمد: ٤٠٤/٥.

[3] الطبری:٢٨٥/١٧.

[4] ایضًا.

[5] ابوداؤد کتاب الجهاد باب فی الامام یکون بینه وبین العدو عهدفیسیرنحوه: ٢٧٥٩، وسنده صحیح، ترمذی:١٥٨٠، شعب الایمان:٤٣٥٩.

[6] الطبری:٢٨٧/١٧.

وَلَوْ شَآءَ

| اوكه چرې | غوښتلې

او كه الله تعالى غوښتلې

اللّٰهُ لَجَعَلَكُمْ اُمَّةً وَّاحِدَةً وَّلٰكِنْ يُّضِلُّ مَنْ

الله | نو خامخا به ئې جوړ كړي وئ تاسو | امت يو | وليكن | گمراهه كوي هغه | هغه څوك

نو تاسو ټول به ئې يو امت كړي وئ | خو هغه چې چا لره اوغواړي | نو هغه گمراه كړي | او چا لره

يَّشَآءُ وَيَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَلَتُسْـَٔلُنَّ

چې غواړي هغه | اونيغه لار ښائي | هغه چاته | چې غواړي هغه | او خامخا به تپوس كيږي ستاسو نه

اوغواړي نو هدايت ورته اوكړي | اوستاسو نه به ستاسو د عملونو خامخا تپوس كيږي

عَمَّا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۝ وَلَا تَتَّخِذُوْٓا اَيْمَانَكُمْ دَخَلًاۢ

دهغه كارونو | چې وئ تاسو | چې كول به مو | او مه جوړوئ تاسو | قسمونه خپل | ذريعه ددوكې

......اوتاسو خپل قسمونه په خپل مينځ كښې د دهوكې ذريعه مه جوړوئ | هسې نه چې د چا قدم

بَيْنَكُمْ فَتَزِلَّ قَدَمٌۢ بَعْدَ ثُبُوْتِهَا وَتَذُوْقُوا السُّوْٓءَ

په منځ خپل كښې | نواوبه خونيږي | قدم | روستو | دمحكموالي دهغې نه | اواوبه څكئ تاسو | خراب انجام

د مضبوطيا نه پس بيا اوخوئيږي | او تاسو ته په دې خبره تكليف اورسي | چې خلق به مو

بِمَا صَدَدْتُّمْ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۚ وَلَكُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ۝

په سبب دهغې | چې منع كړل تاسو خلق | دلارې دالله نه | اودې ستاسو دپاره | عذاب لوئ

د الله تعالى دلارې نه منع كول | اوستاسو دپاره ډير لوئې عذاب مقرردې (كه داسې مو اوكړو)

وَلَا تَشْتَرُوْا بِعَهْدِ اللّٰهِ ثَمَنًا قَلِيْلًا ؕ اِنَّمَا عِنْدَ اللّٰهِ هُوَ خَيْرٌ

اومه اخلئ تاسو | په وعده دالله باندې | قيمت | لږ | بيشكه هغه څه | چې دالله سره دې | هغه | بهتردې

اودالله تعالى په وعده ددنيا لږه فائده مه اخلئ | ...... ........ بيشكه كوم عوضونه چې الله تعالى

لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ۝ مَا عِنْدَكُمْ يَنْفَدُ وَمَا

ستاسو دپاره | كه چرې يئ تاسو | چې پوهيږئ | هغه څه | چې ستاسو سره دې | هغه ختميږي | اوهغه څه

سره دې | هغه ستاسو دپاره ډير بهتر دې | كه تاسو پرې پوهيږئ | چې څه تاسو سره دې | هغه ختميږي

عِنْدَ اللّٰهِ بَاقٍ ؕ وَلَنَجْزِيَنَّ الَّذِيْنَ صَبَرُوْٓا

چې دالله سره دې | هغه باقې دې | اوخامخا به بدله وركوو مونږ | هغه كسانوله | چې صبر ئې اوكړو

اوڅه چې الله تعالى سره دې هغه هميشه باقې پاتې كيدونكې دې | اوڅوك چې ثابت قدم شو هغوئ ته

| اَجۡرَهُمۡ | بِاَحۡسَنِ | مَا | كَانُوۡا | يَعۡمَلُوۡنَ۝ |
|---|---|---|---|---|
| اجر دهغوئ | مطابق دبهترهٔ | هغه عمل | چې وو هغوئ | چې كوو به ئې |
| به مونږ خامخا د هغه ښه كارونو په بدله كښې خپل اجرور كوو كوم چې هغوى كول | | | | |

قوله تعالى:- وَلٰكِنۡ يُّضِلُّ مَنۡ يَّشَآءُ وَيَهۡدِيۡ مَنۡ يَّشَآءُ

**هدايت او ګمراهي د الله ﷻ په اختيار كښې**:-كه الله تعالى غوښتل نود ټولې دنيابه هم يومذهب او مسلك وو لكه چه فرمائى ﴿وَلَوۡ شَآءَ اللّٰهُ لَجَعَلَكُمۡ اُمَّةً وَّاحِدَةً﴾[1] يعنى كه د الله تعالى غوښته وه نواږ خلقو تاسو ټول به نى يوه ډله كړې وني. بل آيت كښې دى كه ستارب غوښتل نود مخ د زمكې به ټول خلق به ايماندار وو. يعنى په دوى كښې به موافقت او يوشان والې وو اختلاف اوبغض به بالكل نه وو. ستارب قادر دې كه اوغواړى نوټول خلق به يوامت كړي خودوى به مختلف وى ولې په چا چه ستا د رب رحم وى هم هغه دوى پيداكړى دى هدايت او ضلالت يعنى ګمراهي هم دهغه په لاس كښې ده د قيامت په ورځ به هم هغه حساب اخلى تپوس پوښتنه په كوى وروكې لوئ نيك اوبد ټولواعمالو بهترينه بدله به وركوى.

**قسمونه وعدې د دهوكه ذريعه نه دى جوړول پكار**:-بيامسلمانانوته هدايت كوى چه قسمونه وعدې معاهدې د مكراو فريب ذريعه مه جوړوئي او نه د ثابت قدمئى نه پس خونيږئي. لكه چه څوك د نيغې لارې نه واوړى.اوستاسودا كار به دنوروخلقو داالله تعالى د لارې نه د بنديدو ذريعه جوړه شى. د كومې چه ډير خراب نقصان به هم په تاسو پريوځى. خكه چه كله كافران اوګورى چه مسلمانانو وعده ماته كړه د وعدې خلاف ئى اوكړل نود هغوى به دين سره اعتماد اويقين پاتې نه شى اوهغوى به د اسلام قبلولو نه منع شى اود دوى د دې بنديدو ذريعه به تاسوجوړشئى په دې وجه به تاسو ته لوئ عذاب كيږى او سخته سزا به دركولې شى. الله تعالى په مينځ كښې كولوسره چه كومې وعدې كوئى او دهغه قسمونه خوړلو سره كوم عهدوپيمان كوئى هغه په دنياوى لالچ سره ماتول اوبدلول په تاسو باندې حرام دى. كه ټوله دنيادرته حاصله شى خود دې حرمت مرتكب مه جوړيږئى خكه چه دنيابې كاره ده. الله تعالى سره چه څه دى هم هغه بهتردى د هغه بدله او ثواب اميدساته. څوك چه د الله تعالى په دې خبره باندې يقين اوساتى هم د دې غوښتونكې پاتې شى اود الله تعالى د حكم د پابندئى لاندې د خپلو وعدو ساتنه اوكړى نود ده د پاره چه الله تعالى سره كوم اجر اوثواب دې هغه د ټولې دنيانه ډير زيات اوډير بهتردې. په دې ښه شان سره پوهه شئى. په ناپوهئى كښې داسې مه كوئى چه د آخرت ثواب مو ضائع شى بلكه د اخستلو په خائ وركول شى. واورئى د دنيانعمتونه ختميدونكى دى اود آخرت نعمتونه لازوال اود هميشه دپاره دى.زما قسم دې چه كومو خلقو په دنياكښې صبراوكړو هغوى ته به د قيامت په ورځ د هغوى د بهترينواعمالوډيره ښكلې صله او بدله وركوم اوهغوى به ښښم.

| مَنۡ | عَمِلَ صَالِحًا | مِّنۡ ذَكَرٍ | اَوۡ اُنۡثٰى | وَهُوَ | مُؤۡمِنٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| هرچاچې | عمل اوكړو نيك | دنارينو نه | يادزنانونه | او هغه وى | مومن |
| هرچا چې نيک عمل اوكړو كه نارينه وى اوكه زنانه اخو چې هغه مومن وى انو مونږ به ورته ضرور په دنيا كښې | | | | | |

| فَلَنُحۡيِيَنَّهٗ | حَيٰوةً طَيِّبَةً | وَلَنَجۡزِيَنَّهُمۡ | اَجۡرَهُمۡ |
|---|---|---|---|
| نومونږبه ژوندون وركړوهغه له | ژوندون پاكيزه | او خامخا به وركړو مونږ هغوئ ته | اجر دهغوئ |
| پاک ژوند وركړو او په آخرت كښې به ورته خامخا د هغوئ د ښو كارونو په عوض كښې اجر وركړو | | | |

---

[1] ٥/المائدة:٤٨.

| بِأَحْسَنِ | مَا | كَانُوا يَعْمَلُونَ |
|---|---|---|
| مطابق دبهتره هغه عمل | چې وو هغوئ چې كوؤ به نې | |

قوله تعالى:- مَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِّنْ ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَى

**دَ نيكواعمالوبه بهتربدله ملاويږي:**-الله تبارك وتعالى جل شانه خپلو هغه بنديگانوسره چه په خپل زړه كښې په الله تعالى اودهغه په رسول ﷺ باندې كامل ايمان لرى اود كتاب او سنت دتابعدارئ لاندې نيك اعمال كوى وعده كوى چه هغه به دوى ته په دنياكښې هم صفااو بهترين ژوندوركوى او دوي په ښكلې طريقه سره به دهغوى عمرتيريږى كه هغه سړى وى اوكه هغه ښځې وى اودې سره به دخپل طرف نه په آخرت كښې هم د هغوى دنيكو اعمالوبهترين بدله وركوى. په دنياكښې پاك اوحلال رزق قناعت خوشحاله طبيعت نيك بختى پاكوالي د عبادت خوند د اطاعت مزه د زړه يخوالي دزړه كولاووالى داټول څرخه به دالله تعالى دطرفنه ايماندارانونيك عمل كونكوته وركولې شى.مسند احمد كښې رسول الله ﷺ ارشاد دې هغه خلاصې بياموندو چه مسلمان شو او پوره پوره رزق وركړې شو چه څه ملاوشو په هغې باندې صبر اوكړو[1] بل حديث كښې دى چاته د اسلام لار اوخودلې شوه اوچاته چه د خيټې ساتلو تكړه ملاوشوه اوالله تعالى د هغه زړه د قناعت اوصبر نه ډك كړو هغه خلاصې بيا موندو(ترمذى) ([2]) په صحيح مسلم شريف كښې دى رسول الله ﷺ فرمانى الله تبارك وتعالى په خپلو مؤمنانوبنديگانو باندې ظلم نه كوى بلكه د هغه د نيكئى بدله په دنيا كښې وركوى اود آخرت نيكئى هم هغه ته وركوى اوكافرخپلې نيكئى هم په دنياكښې خورى د آخرت د پاره د هغه په لاس كښې هيڅ نيكى باقى نه پاتې كيږى.([3])

| فَإِذَا | قَرَأْتَ الْقُرْآنَ | فَاسْتَعِذْ | بِاللَّهِ | مِنَ الشَّيْطَانِ |
|---|---|---|---|---|
| نو كله چې | لولې ته قرآن | نو پناه اوغواړه | په الله سره | دشيطان |
| نو هركله چې ته د قرآن پاك لوستلو اراده اوكړې ئنو د شيطان مردود د شرنه. | | | | |

| الرَّجِيمِ | إِنَّهُ | لَيْسَ | لَهُ سُلْطَانٌ | عَلَى الَّذِينَ | آمَنُوا |
|---|---|---|---|---|---|
| رټلي شوى نه | بيشكه دې چې دې | نشته | ده لره قدرت | په هغه كسانوباندې | چې ايمان ئې راوړې وى |
| پناه غواړه | د هغه وس په داسې خلقو نه چليږى | چې ايمان ئې راوړې وى | | | |

| وَعَلَى رَبِّهِمْ | يَتَوَكَّلُونَ | إِنَّمَا | سُلْطَانُهُ | عَلَى الَّذِينَ |
|---|---|---|---|---|
| اوپه رب خپل باند | توكل كوى | بيشكه | قدرت دهغه | په هغه كسانو باندې |
| او پخپل رب بهروسه كوى | ............د هغه وس خو بس په هغه چا چليږى | چې هغه | | |

[1] احمد:١٦٨/٢، صحيح مسلم كتاب الزكاة باب فى الكفاف والقناعة:١٠٥٣، ترمذى:٢٣٤٨، ابن ماجه ٤١٣٨، ابن حبان:٢٧٠، حاكم: ١٣٧/٣، المعجم الاوسط:٤٦٧٠، مسندعبدبن حميد:٣٤١، شعب الايمان:٢٩١/٧.

[2] حاكم:١٢٢/٤، ترمذى كتاب الزهد باب ماجاء فى الكفاف والصبرعليه:٢٣٤٩، وسنده حسن احمد:١٩/٦، ابن حبان:٧٠٥، حاكم: ٩٠/١، مواردالظمآن:٢٥٤١، المعجم الكبير:٧٨٦.

[3] صحيح مسلم كتاب صفات المنافقين باب جزاء المؤمن بحسناته فى الدنيا والآخرة وتعجيل حسنات الكافر فى الدنيا:٢٨٠٨، احمد:١٢٣/٣، ابن حبان:٣٧٧، مسندالطيالسى:٢٠١٣، مسندابى يعلى:٢٨٤٤.

| يَتَوَلَّوْنَهٗ | وَالَّذِيْنَ | هُمْ | بِهٖ | مُشْرِكُوْنَ ﴿١٠٠﴾ |
|---|---|---|---|---|
| چي هغوئ دوستي کوي دهغه سره | او په هغه کسانو باندې | چې هغوئ | دهغه په لمسه | شرك كونكي دي |
| خپل دوست گڼري \| او د (هغه په وسوسو) الله دپاره شريكان جوړوي | | | | |

قوله تعالى:- فَاِذَا قَرَاْتَ الْقُرْاٰنَ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ

**د قرآن پاك د تلاوت په شروع كښې د شيطان د شرنه د الله تعالى پناه غوښتلو حكمت:**-الله تعالىﷻ د خپل نبي كريمﷺ په خله مباركه باندې خپلو مومنانو بنديگانوته حكم وركوي چه د قرآن كريم د تلاوت نه وړاندې **(اعوذ)** لولئ.دا حكم دفرضيت په توگه نه دې. ابن جريرؒ وغيره په دې باندې اجماع نقل كړې ده.د **(اعوذ)** پوره بحث معنې وغيره مونږ دخپل تفسيرپه شروع كښې ليكلې دې فالحمدلله.ددې حكم مصلحت دادې چه قارى قرآن گډوډ كيدودغوراوفكر نه منع كيدواود شيطانى وسوسو راتلونه بچ شي.د دې د پاره جمهور وائي چه د تلاوت شروع كولونه وړاندې **(اعوذ)** وائې. د ځا قول داهم دې چه د قرآن پاك د ختميدو نه ئې هم وائې د دې دليل هم دا آيت دې خو صحيح قول هم ړومبې دې اود احاديثو دلالت هم په دې باندې دې. والله اعلم.

### د قراءت نه وړاندې د تعوذ وئيلو حكم

**مسلك حنفي:**-داحنافو په نيز هم د قراءت نه وړاندې تعوذ سنت دې واجب نه دې ځكه چه نبي كريم صلى الله عليه وسلم بعضې وختونو كښې بغير د تعوذ نه قراءت كړې دې دا د عدم وجوب دليل دې[1]

بيا فرمائي چه ايماندار متوكلين هغه په داسې گناهونوكښې نه شي راگيرولې چه د هغې نه توبه اونه كړي[2] دهغه هيڅ حجت دده په وړاندې نه شي چليږي.دامخلص بنديگان دهغه دژوروچالونونه محفوظ پاتې كيږي اودا ده چه څوك د هغه تابعدارى اوكړي [3] د هغه په وينا كښې راشي هغه خپل دوست او ملگرې اودروي هغه د الله تعالى په عبادتونوكښې شريك كړي په هغوى باندې خودې خوريږي. دا مطلب هم كيدې شي چه "ب" سببيه اوبنائي يعنى هغه دده دتابعدارئي په وجه د اللهﷻ سره شرك شروع كړي. دا معنى هم ده چه هغه دې په خپل مال كښې خپل اولادكښې د الله تعالى سره شريك اوگرځوي.

| وَاِذَا | بَدَّلْنَآ | اٰيَةً | مَّكَانَ | اٰيَةٍ | وَّاللّٰهُ | اَعْلَمُ | بِمَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| او كله چي | بدلوؤ مونږه | يو ايت | په ځاني | دبل ايت | او الله | ښه پوهيږي | په هغه څه |
| اوهركله چې مونږديوايت په بدل كښې بل ايت نازل كړو \| اوالله تعالى په هغې ښه پوهيږي \| څه چې | | | | | | | |

| يُنَزِّلُ | قَالُوْٓا | اِنَّمَآ | اَنْتَ | مُفْتَرٍ | بَلْ |
|---|---|---|---|---|---|
| چي نازلوي ئې هغه | وايئ دا خلق | بيشكه | چې ته | پخپله جوړونكې ئې (دقران) | بلكه خبره داده |
| راليږي \| نودا خلق اووائي چې ته خو بس صرف دروغ تړونكې يئ \| نه \| بلكه په دوئ كښې | | | | | |

| اَكْثَرُهُمْ | لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿١٠١﴾ | قُلْ | نَزَّلَهٗ | رُوْحُ الْقُدُسِ |
|---|---|---|---|---|
| چې زيات خلق ددوئ | ناخبره دي دحقيقت نه | اووايه | چې نازل كړي دي دا قران | پاك روح |
| زيات خلق نه پوهيږي \| ........ته اووايه چې دا جبريل عليه السلام امين ستا د رب | | | | |

[1] تفسيرمظهري (٢٢٧/٥، ٢٢٦)۔
[2] الطبري:٢٩٤/١٧.
[3] الطبري:٢٩٤/١٧.

| مِنْ رَّبِّكَ | بِالْحَقِّ | لِيُثَبِّتَ | الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا |
|---|---|---|---|---|
| د طرفه درب ستانه | په حقه سره | دپاره ددې چې محکم کړي | هغه کسان | چې ايمان ئې راوړو |

د طرفه په حق نازل کړي دي | چې دايماندارو خلقو ايمان پرې مضبوط کړي

| وَهُدًى | وَّبُشْرٰى | لِلْمُسْلِمِيْنَ۝ | وَلَقَدْ | نَعْلَمُ | اَنَّهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| اولاربښودونکې دي | اوزيرې دي | دپاره دفرمانبردارو خلقو | اوبې شکه | پوهيږو مونږه | چې بيشکه دوئ |

اودمسلمانانو دپاره هدايت او زيري دي | ............ اومونږ ته ښه معلومه ده چې دوئ وائي

| يَقُوْلُوْنَ | اِنَّمَا | يُعَلِّمُهٗ | بَشَرٌ | لِسَانُ | الَّذِيْ | يُلْحِدُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وائي | چې بيشکه | ښودنه کوي دهٔ ته | يو سړې | ژبه | دهغه سړي | چې اشاره کوي دوئ |

چې دهٔ ته خويو سړې خودنه کوي | (حال داچې) کوم سړي ته دوئ داسې غلط نسبت کوي

| اِلَيْهِ | اَعْجَمِيٌّ | وَّهٰذَا | لِسَانٌ | عَرَبِيٌّ | مُّبِيْنٌ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| هغه ته | عجمي ژبه ده | او داقران | ژبه ده | عربي | صفا |

د هغه ژبه عجمي ده | او دا قران خو په صفا عربئ ژبه کښې راغلې دې |

**قوله تعالى:-** وَاِذَا بَدَّلْنَآ اٰيَةً مَّكَانَ اٰيَةٍ

**د منسوخ کيدوحکمت مشرکان نه پيژني:-** دمشرکانو د کم عقلتوب بې سروسامانئی او بې يقينئی بيان کولې شي چه دوی ته به څنګه ايمان نصيب شي؟دا خوازلي بدبخت دی. په ناسخ اومنسوخ سره د احکامويدلون ته ګوري ښوغاپې چه ښه صيب چه ددوی بهتان کولاوشو.دومره نه پوهيږي چه قادر مطلق الله تعالى چه څه غواړي کوی کومه اراده چه اوکړي نو حکم ورکړي يوحکم اوچت کړي د هغې په ځائ بل حکم کيږدی.[1] لکه آيت ﴿مَا نَنْسَخْ مِنْ اٰيَةٍ اَوْ نُنْسِهَا نَاْتِ بِخَيْرٍ مِّنْهَآ اَوْ مِثْلِهَا ؕ اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ۝﴾[2] کښې فرمانی پاك روح يعني حضرت جبرائيل ﷺ دا د الله تعالى د طرف نه حقانيت صداقت عدل اوانصاف سره راوړی او ستا طرف ته راخی دې د پاره چه ايماندار ثابت قدم شي. اوس نازل شو وئی منه بيا نازل شو بيانی اومنه دهغوی زړونه د خپل رب طرف ته ټيټ دی دالله تعالى تازه تازه کلام اوری د مسلمانانو د پاره هدايت او زيری اوشی د الله اود رسول ﷺ منونکي لاربياموعي او خوشحاله شي.

**دکافرانو يوبهتان اودَ هغې رد:-** دکافرانو يوبهتان کول بيانولي شي هغوی وائی چه ده ته داقرآن يو انسان ښائی.د قريشود قبيلې يو عجمي غلام وو د صفاغرسره ئې اخستل اوخرڅول کول. حضورﷺ به کله کله هغه سره کيناستو اوڅه خبري اترې به ئې کولې. داسړې په صحيح عربی ژبه ونيلو باندې هم پوره قدرت نه لرلو. په ماته ګوده ژبه به ئې په ډيرمشکل سره خپل مطلب اداکولو. د دې افترا اوخان نه خبرې جواب الله تعالى ورکوی چه هغه به ورته څه اوښائي چه په خپله خبرې کول نه پيژني د عجمي ژبې سړې دې. اودا قرآن پاك خو په عربی ژبه کښې دې. بيا د فصاحت او بلاغت والا دې ښکلې پاك اوچت معنی مطلب الفاظ اوواقعاتو کښې د ټولونه جدا دې. د بنی اسرائيلو د آسمانی کتابونونه هم په درجوکښې اوچت وقعت اوعزت والا دې. که په تاسوکښې لږ ښان هم عقل وې نو داسې ډيوه په لاس به غلا له نه وتلې ئی داسې دروغ به مو نه ونيل چه بې وقوفانو سره هم نه شي چليدې.

---

[1] الطبری:۲۹۷/۱۷.

[2] ۲/البقرة:۱۰۶.

**د يو نصراني غلام سره درسول كريم صلى الله عليه وسلم د كيناستو واقعه:** سيرة ابن اسحاق كښې دي يو نصراني غلام كوم ته چه به ئې جبر وئيلو اود خضرمي قبيلې ديوسړي غلام وو هغه سره به رسول الله ﷺ د مروه په غونډئي باندې كيناستلو په دې باندې مشركانو داد دروغوخبرخوركړو چه دا قرآن د ده نه زده كوي. د دې په جواب كښې دا آيت نازل شو. وائي چه د هغه نوم يعيش وو. ابن عباس ﷺ وائي چه په مكه كښې يولوهاروو دهغه نوم بلعام وو داعجمي سړې وو ده ته به حضور ﷺ تعليم وركولو نو د حضور ﷺ د هغه سره تگ راتگ كتلوباندې قريشو دا مشهوره كړه چه هم دا سړې حضور ﷺ ته څه ښائي اودې هغه د كلام الله په نوم په خپلوملگروكښې ښائي(١)چا وئيل چه دې نه مراد سلمان فارسي ﷺ دې خوداقول خو ډير لنډې بوچې دې خكه چه حضرت سلمان فارسي ﷺ خو په مدينه كښې حضور ﷺ سره ملاو شوې وو اودا آيت په مكه كښې نازل شوې دې. عبيدالله بن مسلم ﷺ وائي زمونږ د كار يودوه سړي د روم اوسيدونكي وو چه په خپله ژبه كښې به ئې خپل كتاب لوستلو حضور ﷺ به هم تلوراتلو كله كله به هغوي سره اودريدو اوريدلوبه ئې په دې باندې مشركانو دروغ شروع كړل چه هم د دوی نه قرآن زده كوي. په دې باندې دا آيت نازل شوسعيدبن مسيب رحمه الله فرمائي دمشركانو نه يو سړي ووچه وحي به ئې ليكله دې نه پس هغه د اسلام نه مرتد شو اوداخبره ئې د خان اوكړه د الله تعالى لعنت دې په هغه وي.

| إِنَّ الَّذِينَ | لَا يُؤْمِنُونَ | بِآيَاتِ اللَّهِ ۙ | لَا يَهْدِيهِمُ اللَّهُ | وَلَهُمْ |
|---|---|---|---|---|
| بيشكه هغه كسان چې نه راوړي ايمان | په آيتونو دالله | نه كوي هدايت هغوئ ته الله | اومقردې دپاره د هغوئ | عذاب |
| څوك چې دالله تعالى په آيتونو ايمان نه راوړي | الله تعالى هغوئ په سمه لار نه روانوي | اوهغوئ دپاره | | |

| عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿١٠٤﴾ | إِنَّمَا | يَفْتَرِي الْكَذِبَ | الَّذِينَ | لَا يُؤْمِنُونَ | بِآيَاتِ اللَّهِ ۖ |
|---|---|---|---|---|---|
| دردناك | بيشكه | جوړوي \| دروغ | هغه كسان | چې نه راوړي ايمان | په ايتونو دالله باند |
| دردناك عذاب مقرر دې | درغ جوړونكي خو هغه خلق دی | چې دالله تعالى په ايتونو باندې ايمان نه راوړي | | | |

| وَأُولَٰئِكَ | هُمُ الْكَاذِبُونَ ﴿١٠٥﴾ | مَنْ كَفَرَ | بِاللَّهِ | مِنْ بَعْدِ | إِيمَانِهِ |
|---|---|---|---|---|---|
| اودغه كسان | هم هغوئ دروغژن دی | هغه څوك چې كفرئې اوكړو | په الله | روستو | دايمان خپل نه |
| اوهم دا خلق پوره درغژن دی | ....چا چې دايمان راوړلو نه پس بيا په الله تعالى باندې كفر اوكړو | | | | |

| إِلَّا | مَنْ | أُكْرِهَ | وَقَلْبُهُ | مُطْمَئِنٌّ | بِالْإِيمَانِ |
|---|---|---|---|---|---|
| مگر | هغه څوك | چې زور اوشو په هغه | او حال دا چې زړه دهغه | مطمئن وو | په ايمان سره |
| سوا د هغه چا نه چې مجبوره كړې شي | اود هغه زړه په ايمان باندې مطمئن وي | | | | |

| وَلَٰكِنْ مَنْ | شَرَحَ | بِالْكُفْرِ | صَدْرًا | فَعَلَيْهِمْ | غَضَبٌ | مِنَ اللَّهِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وليكن هغه څوك | چې فراخه كړی | په كفر سره | سينه | نوپه هغوئ باند | غضب دې | دطرفه دالله نه |
| نو داسې بنده مستثنی دې | اوخوچا چې خپله سينه كفر ته پرانستله | نو په هغوئ به دالله تعالى غضب وي | | | | |

---
(١) الطبري:١٧/٢٩٨.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلَهُمْ | عَذَابٌ عَظِيمٌ ۝ | ذٰلِكَ | بِأَنَّهُمُ | اسْتَحَبُّوا | الْحَيٰوةَ |
| او دي دپاره دهغوئ | عذاب | لوئ | دا | په سبب ددې چې هغوئ | خوښ کړوا ژوند |

اوهغوئ دپاره لوئي عذاب مقرر دې | دا ځکه چې دوئ د اخرت په مقابله کښې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الدُّنْيَا | عَلَى الْاٰخِرَةِ | وَاَنَّ اللّٰهَ | لَا يَهْدِي | الْقَوْمَ الْكٰفِرِيْنَ ۝ | |
| ددنيا | په اخرت باندې | او بيشکه چې الله | نه ښائي لار | قوم کافر ته | |

د دنيا ژوند خوښ کړو | اودا ځکه چې الله تعالى کافرانو ته (د نيغې لارې) هدايت نه کوي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اُولٰٓئِكَ | الَّذِيْنَ | طَبَعَ | اللّٰهُ | عَلٰى قُلُوْبِهِمْ | وَسَمْعِهِمْ |
| داکسان | هغه کسان دی | چې مهر وهلې دې | الله | په زړونو دهغوئ باند | اوپه غوږونو دهغوئ باند |

دا هغه خلق دی چې دکومو په زړونو غوږونو اوسترګو باندې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَاَبْصَارِهِمْ | وَاُولٰٓئِكَ | هُمُ | الْغٰفِلُوْنَ ۝ | لَا جَرَمَ | اَنَّهُمْ |
| اوپه سترګو دهغوئ باند | اوداکسان چې دی | هم دوئ | غافلان دی | لازمه ده داخبره | چې بيشکه دوئ |

چې الله ﷻ مهرلګولې دې | او دا خلق د خپل انجام نه بې خبره دی | دا يقينى خبره ده | چې په

| | | |
|---|---|---|
| فِي الْاٰخِرَةِ | هُمُ | الْخٰسِرُوْنَ ۝ |
| په آخرت کښې | هم دوئ | نقصانيان دی |

آخرت کښې به دا خلق په نقصان کښې وی |

قوله تعالى:- اِنَّ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ

**د آقائي نامدار سرور کونين د صداقت بيان او د مشرکانو ضد:-** خوک چه د الله تعالى د ذکر نه مخ واړوی او د الله تعالى دکتاب نه غفلت اوکړی اودالله تعالى په خبرو باندې دايمان راوړو اراده اونه کړی داسې خلق الله تعالى هم لرې غورزوی. هغوی ته د حق دين توفيق نه ورکوی د آخرت په سخت عذاب کښې راګيرېږی. بيا فرمائي چه دوی په رسول الله ﷺ باندې دخان نه خبرې او دروغ ويونکی نه دی دا کارخو بدترين مخلوق دې کوم چه ملحد اوکافر وی د هغوی دروغ په خلقو کښې مشهورېږی. حضور ﷺ خو ټول مخلوق نه بهترغوره او ديندار الله تعالى پيژندونکې د رښتونو رښتونې د ټولو نه زيات کمال علم ايمان عمل اونيکئی هم حضور ﷺ ته حاصلې دی. په صداقت کښې نيکئی کښې يقين کښې اومعرفت کښې د حضور ﷺ ثانى څوک نشته.دې کافرانونه تپوس اوکړئی دوی هم د حضور ﷺ د صداقت قائل دی د هغوی د امانت تعريف کوی. په دوی کښې محمد ﷺ د امين په لقب کښې مشهور اومعروف دې. د روم بادشاه چه کله د ابوسفيان نه د حضور ﷺ متعلق ډير سوالونه اوکړل په هغې کښې يو داهم وو چه د نبوت د دعوی نه وړاندې ستاسو کله د هغه دروغو طرفته نسبت کړې دې؟ ابوسفيان جواب ورکړو هيڅ کله هم نه. په دې باندې بادشاه اووئيل چه څنګه کيدې شی چه يوداسې سړې که هغه د دنياوی معاملاتوکښې د خلقو باره کښې چرې د دروغو په ګندګئی سره خپله ژبه نه وی خرابه کړې نو هغه به په الله تعالى باندې دروغ تړی؟ (١)

---

(١) صحيح بخاری کتاب بدءالوحی باب کيف کان بدء الوحی الى رسول الله ﷺ:٧، صحيح مسلم:١٧٧٣، ابن حبان:٦٥٥٤، مسندابی عوانه: ٦٧٢٦، بيهقی:١٧٨/٩، السنن الکبری للنسائی:٣٣٠/٦، مصنف عبدالرزاق٩٧٢٤، احمد:٢٦٢/١، مسندابی يعلی:٢٦١٧.

**مجبورا د کفر ارتکاب ناقص ایمان نه دې :-** الله سبحانه وتعالى فرمائي چه کوم خلق د ایمان نه پس کفر اوکړی ګوری اوړانده شی بیا په کفر باندې د هغوی سینه کولاوشی اویدې باندې تسلی اوکړې دوی د الله تعالى په غضب کښې راګیرشی چه د ایمان علم حاصلولونه پس بیا د دې نه واوړی او په دوی به په آخرت کښې ډیردرانه عذابونه وی. ځکه چه هغوی آخرت وران کړو اودنیاسره ئې مینه اوکړه او په اسلام باندې مرتدکیدو له ترجیح ورکړه اوداصرف ددنیاد غوښتلو په وجه سره.دهغوی زړه د حق د هدایت نه خالی وو دالله تعالى دطرفنه هغوی ته ثابت قدمی ملاونه شوه په زړونوباندې مهرونه اولګیدل د ګتې یوه خبره ئې هم په پوهه کښې نه راځی. غوږونه اوسترګې ئې هم بې کاره شوې نه حق اوریدې شی اونه حق لیدې شی. هیڅ څیز هغوی ته څه فائده اونه رسوله اود خپل انجام نه غافل شو یقیناً داسې خلق به د قیامت په ورځ خپل اود خپلوانو نقصان کونکی دی. په ړومبی آیت کښې چه د کوموخلقو استثناء کړې شوې ده یعنی هغه په چا چه جبر اوکړې شی اود هغوی زړونه په ایمان باندې کلك دی دې نه مراد هغه خلق دی چه په سبب د وهلوټکولو مجبوره شی اوپه ژبه باندې د مشرکانو موافقت اوکړی.خود هغوی زړه دا نه وائی بلکه په زړه باندې په الله تعالى اود هغه په رسول ﷺ باندې کامل تسلی سره پوره ایمان وی.

**د ایت إِلَّا مَنْ أُكْرِهَ شان نزول:-** ابن عباس رضي الله عنه فرمائي چه دا آیت د عماربن یاسر رضي الله عنه باره کښې نازل شوې دې کله چه هغوی ته مشرکانو عذاب ورکول شروع کړه چه ترکومې ته د حضور ﷺ نه کفر اونه کړې نو په نه زړه غوښتلو سره مجبوراً ئې اوکړو هغوی د دې کافرانو موافقت اوکړو بیا د الله تعالى نبی ﷺ له راغلو عذر ئې بیان کړو نو الله تعالى دا آیت نازل کړو[1] شعبی رحمه الله قتاده رحمه الله او ابومالك رحمه الله هم دا وائی[2] ابن جریرکښې دی چه مشرکانو هغه راګیرکړو اوسزا ورکول ئې شروع کړه تردې چه هغه د دوی د ارادو سره نیزدې شو بیا حضور ﷺ له راغلو اود هغوی شکایت ئې اوکړو نو حضور ﷺ تپوس اوکړو ته دخپل زړه حال څنګه ګورې؟جواب ملاوشو چه هغه خو په ایمان باندې مطمئن دې اوکلك دې حضور ﷺ اوفرمائیل چه که هغوی بیاخپلې مطالبې ته واپس شوته هم ورته واپس شه[3] بیهقی کښې د دې نه هم زیات تفصیل دې په دې کښې دی چه هغه حضور ﷺ ته بدې ردې اووئیل اود هغوی د معبودانو ذکر ئې په خیرسره اوکړو.بیاحضور ﷺ له راغلو اوخپل دا درداوغم ئې ورته بیان کړو چه یارسول الله ﷺ زه د عذابونونه خلاص نه شوم ترکومې چه ماتاسو پسې بدې ردې اونه وئیل اودهغوی د معبودانو ذکر مې په خیرسره اونه کړو. حضور ﷺ اوفرمائیل ته خپل زړه څنګه ګورې؟ جواب ملاوشو په ایمان باندې مطمئن. ونې فرمائیل که هغوی بیا اوکړی نوته هم بیا اوکړه[4] هم په دې دا آیت نازل شو.

**حالت دجبر کښې کلمه د کفر وئیل بالاجماع جائز دې:-** د علماء کرامو اتفاق دې چه په چاباندې جبر او ظلم اوکړې شی نوهغه له جائزدی چه دخپل ځان بچ کولودپاره د هغوی موافقت اوکړی او داهم جائزدی چه په داسې موقعه باندې هم د هغوی اونه منی لکه چه حضرت بلال رضي الله عنه کړې وو د مشرکانو ئې یوه هم نه وه منلې سره د دې چه هغوی به ده ته ډیر سخت تکلیفونه ورکوی تردې چه په سخته ګرمئی په پوره تیز نمر کښې به ئې هغه راسملولو اود هغه په سینه به ئې درونده کاڼې کیخودو چه اوس هم شرك اوکړه نو خلاصې به بیامومې. خوهغه بیا هم دهغوی اونه منل اوصفاانکارئې اوکړو او د الله تعالى توحیدئې په

---

[1] الطبری:۱۷/۳۰٤.

[2] ایضًا.

[3] الطبری: ۱۷/۳۰٤، حاکم:۲/۳۵۷، وسنده حسن امام حاکم رحمه الله او ذهبی رحمه الله دا روایت صحیح ګڼړی.

[4] بیهقی: ۸/۲۰۸-۲۰۹ وسنده حسن.

احد احد وئیلوسره بیانولو بلکه فرمائیل به ئې چه والله! که د دې نه هم زیات سخت لګیدونکې لفظ زما په علم کښې وو نو ما به هم هغه وئیلو الله ﷺ دې دهغه نه راضي شی اوهغه دې هم همیشه راضي اوساتی. دغه شان د حضرت حبیب بن زید انصاری ﷺ واقعه ده چه کله هغه ته مسیلمه کذاب اوونیل ته دحضرت محمد ﷺ د رسالت ګواهي ورکوې؟ هغه اوفرمائیل چه او.بیا هغه تپوس اوکړو چه آیا زما د رسول کیدوهم ګواهي ورکوې؟ نوهغه اوفرمائیل چه زه نه اورم. په دې باندې د نبوت دې دروغژن دعوی کونکی دهغه د بدن نه یواندام کټ کولو حکم اوکړو. بیا هم دا سوال جواب اوشو او دویم اندام ئې ترې کټ کړو.هم دغه شان کیدل اوهغوی ترآخره پورې په خپله خبره کلك ولاړوو الله ﷺ دې د هغه نه خوشحاله وی او هغه دې هم خوشحاله کړی. مسنداحمدکښې دی چه کوم یوڅوکسان مرتدشوې وو هغه علی ﷺ په اُورکښې اوسوزلو.کله چه حضرت ابن عباس ﷺ ته دا واقعه معلومه شوه نو هغوی اوفرمائیل چه ماخویه دوی په اُورکښې نه سوزول ځکه چه د رسول الله ﷺ فرمان دې د الله تعالی په عذاب سره تاسو عذابول مه کوئی او بې شکه ما به هغوی قتل کول. ځکه چه د رسول الله ﷺ فرمان دې چه څوك خپل دین بدل کړی هغه قتل کړئی. کله چه داخبرحضرت علی ﷺ ته اورسیدونوهغوی اوفرمائیل دابن عباس ﷺ په مور باندې افسوس([1])دا امام بخاری ﷺ هم وارد کړې دې. مسند احمد کښې دی چه حضرت ابوموسی ﷺ له یمن ته معاذبن جبل ﷺ تشریف یوړو وئی کتل چه یوسړې هغه سره دې. تپوس ئې اوکړو داڅه دی؟جواب ملاو شو چه دایویهودی وو بیا مسلمان شواوس بیا یهودی شوې دې مونږ تقریبا د دوو میاشتونه د ده د اسلام راوړلو په کوشش کښې یو نو هغوی اوفرمائیل والله زه به کینم هم نه ترکومې چه ته دې قتل نه کړې هم دا فیصله د الله تعالی اود هغه د رسول ﷺ ده. څوك چه د خپل دین نه واوړی هغه قتل کړئی یائی اوفرمائیل چه څوك خپل دین بدل کړی.([2]). دا واقعه په بخاری اومسلم کښې هم شته خوالفاظ نوردی نو غوره او اولی دا دی چه مسلمان په خپل دین باندې قایم او کلك ولاړ وی سره د دې که هغه قتل هم کړې شی. حافظ ابن عساکر ﷺ عبدالله بن حذافه سهمی صحابی ﷺ په ترجمه کښې راوړلی دی چه هغوی رومیانو کافرانو قیدکړو او خپل بادشاه له ئې اورسولو هغه ده ته اوونیل چه ته نصرانی جوړشه زه تا په خپله بادشاهئ کښې شریك کوم زه خپله لور شهزادګئ تاته په نکاح کښې درکوم صحابی ﷺ جواب ورکړو چه دا خو څه دی؟ که ته ماته خپله ټوله بادشاهی هم راکړې اود ټولو عربو باشاهی هم ماته راکړې اودا غواړې چه زه د یوې سترګې د رپ برابر هم د محمد ﷺ د دین نه واوړم نودا ناممکن دی.بادشاه وئیل بیابه زه تاقتل کوم حضرت عبدالله ﷺ جواب ورکړو چه اودا ستا اختیاردې هغه وخت بادشاه حکم اوکړو او هغه ئې په سولئ کړو او غشو ویشتونکو د نیزدې نه د بادشاه په حکم سره د هغه پښې لاسونه سوری کول شروع کړل باربار به ئې وئیل چه اوس هم نصرانیت قبولکړه خو هغه به پوره صبر او استقلال فرمائیلو چه هیڅ کله هم نه. آخر بادشاه اووئیلې دې د سولئ نه راکوزکړئی. بیائی حکم اوکړو د پیتلودیګ یاد پیتلو کړې به ګرم کړئی راوړئی. چه کله هغه پیش کړې شو نو یوبل مسلمان قیدی ئې په هغې کښې واچولو هم هغه وخت د عبدالله ﷺ په موجودګئ کښې د هغه د سترګو په وړاندې هغه مسلمان قیدی په دې کښې واچولواو هغه هم هغه وخت په دې کښې لولپه شو اومړشو، غوښه ئې اوسوزیده او هډوکی پرقیدل. بیا بادشاه حضرت عبدالله ﷺ ته اووئیل چه ګوره اوس هم زمونږ اومنه او زمونږ مذهب قبول کړه ګنې په دې اُور باندې په دې دیګ کښې به تاهم ورواچوم اوبه دې سوزوم. هغه بیا هم د خپل ایمانی جوش نه

---

[1]) احمد:۲۱۷/۱، صحیح بخاری کتاب الجهاد باب لایعذب بعذاب الله:۳۰۱۷-۲۹۲۲، ابوداؤد: ٤۲۵۱، ترمذی:۱٤۵۸، ابن ماجه: ۲۵۳۵، مختصرًا، دارقطنی:۱۰۸/۳.

[2]) احمد:۲۳۱/۵، صحیح بخاری کتاب استتابة المرتدین والمعاندین وقتالهم: ۶۹۲۳، صحیح مسلم:۱۷۳۳

کارواخستو او وئی چه ناممکن دی چه زه د الله تعالی دین پریږدم. هم هغه وخت بادشاه حکم اوکړو چه دې په ګړګړی باندې کینوئی او دې ورواچوئی کله چه دې په دې اور باندې دیګ کښې د اچولو پاره په ګړګړی باندې کینولو نو بادشاه اوکتل چه د هغه په سترګو کښې اوښکې راغلې هم هغه وخت بادشاه حکم اوکړو چه اودروئی هغه ئې خان له راوغوښتو خکه چه د ده امیدپیدا شوکیدې شی ددې عذاب په لیدو باندې د هغه خیالات بدل شوی وی زما به اومنی او زمونږ دین به قبول کړی اوزما په خوملئی کښې به راشی زماد د بادشاهت ملګرې به جوړشي خو د بادشاه داخیال او خواهش صرف د هغه بې فائدې سوچ راووتلو. حضرت عبدالله بن حذافه ﷺ اوفرمائيل چه ما صرف په دې وجه ژړلې ووچه افسوس زما صرف یوخان دې کوم چه په دې عذاب کښې د الله تعالی په لارکښې زه قربانی کوم که زماپه یویو ویښته کښې ساوې اوماهغه ټولې ساګانې نن دالله تعالی په لارکښې داسې یویوقربانې کړې وې. بعضې روایتونو کښې دی چه هغه په قیدخانه کښې بندکړې شوې وو خوراك څښاك ئې پرې بندکړې وو د یوڅو ورځو نه پس ئې شراب اود خنزیرغوښه ورکړه خوهغه په دې ولړه کښې هم د هغه طرف ته توجه اونه فرمائیله نوبادشاه هغه راوغوښتلو اود نه خوراك سبب تپوس ئې ترې اوکړو نو هغه جواب ورکړو چه په دې حالت کښې خودا زما د پاره حلال شوی دی خوزه ستاپه شان دښمن ته دخوشحالولو موقعه ورکول نه غوارم. بادشاه وئیل چه ښه ده ته زما سر ښکل کړه نوزه تا اوستاپه شان نور قیدکړې شوی ټول مسلمانان پریږدم. هغه دا قبلوله کړه اود هغه سرئی ښکل کړو او بادشاه هم خپله وعده پوره کړه هغه اود هغه ټول ملګری ئې پریخودل. کله چه حضرت عبدالله بن حذافه ﷺ دې خایٔ نه خلاص شو اود حضرت عمرفاروق ﷺ دربارته اورسیدو نو هغه اوفرمائيل چه په هریومسلمان باندې حق دې چه د حضرت عبدالله بن حذافهﷺ تندې ښکل کړی اوزه شروع کوم دې فرمائیلوسره اول هغوی د ده سر ښکل کړو. (١)

| ثُمَّ | اِنَّ | رَبَّكَ | لِلَّذِيْنَ |
|---|---|---|---|
| پس بیا | بیشکه | رب ستا | دپاره دهغه کسانو |
| اود دې په عکس ستا پروردګار د هغه خلقو دپاره | | | |

| هَاجَرُوْا | مِنْۢ بَعْدِ مَا | فُتِنُوْا | ثُمَّ جٰهَدُوْا | وَصَبَرُوْٓا |
|---|---|---|---|---|
| چې هجرت ئې اوکړو | روستو دهغې نه | چې تکلیفونه ورکړې شو | بیا ئې جهاد اوکړو | او صبر ئې اوکړو |
| چې د مظلومیت نه پس ئې هجرت کړې دی اوپه تکلیفونو باندې ئې صبر کړې دی | | | | |

| اِنَّ | رَبَّكَ | مِنْۢ بَعْدِهَا | لَغَفُوْرٌ | رَّحِيْمٌ | يَوْمَ |
|---|---|---|---|---|---|
| نو بیشکه | رب ستا | روستو ددغه کارنه | خامخا ښښونکې دی | مهربانه دی | په هغه ورځ |
| نو ستارب د دې کارونو نه پس بخښونکې مهربان دی ............................. په کومه ورځ | | | | | |

| تَاْتِيْ | كُلُّ نَفْسٍ | تُجَادِلُ | عَنْ نَّفْسِهَا |
|---|---|---|---|
| چې رابه شي | هر نفس | چې جګړه به کوی | په باره دبچکیدو دخان خپل کښې |
| چې به هر یو کس پیش شی | اود خپل طرفنه به جګړه کوی | | |

---

(١) ابن عساكر:٢٩/٢٤٤-٢٤٥.

وَتُوَفّٰى كُلُّ نَفْسٍ مَّا عَمِلَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿﴾

اوپوره به ورکړې کیږی| هرنفس ته | هغه څه| چی هغه کړی وی| اوپه هغوی به | هیڅ ظلم نه کیږی

اوهر چا ته به ددهٔ دعملونو پوره پوره بدله ورکولې شی | او په دوئ به هیڅ ظلم نشی کولې

قوله تعالى:- ثُمَّ اِنَّ رَبَّكَ لِلَّذِيْنَ هَاجَرُوْا

**دَ هجرت اوجهادبدله په خوښه ده:-** دا بل قسم خلق دی چه د خپلې کمزورنی او مسکین توب د ظلم ښکار وواوهروخت به تنګولې شو.آخرهغوی هجرت اوکړه مال اولاد ملك وطن هرڅه پریخودل اود الله تعالی په لارکښې د تلود پاره راپاسیده اودمسلمانانو په ټولی کښې یوځائ شو اوبیاد جهادد پاره اووتل اود صبر اوبرداشت سره د الله تعالی د کلمې اوچتولوکښې مشغول شو. هغوی الله تعالی ددې کارونویعنی فتنه دقبلولو نه پس هم ښنونکې اوپه هغوی باندې مهربانئی کونکې دې.د قیامت په ورځ به هریوسړې د خپل ځان د خلاصولولو په فکر کښې وی هیڅ څوك به نه وی چه خپل مور پلار رور ښځې طرف ته به دڅه وینا اوریدل اوکړی.په هغه ورځ به هریوسړی ته د هغه د اعمالو پوره پوره بدله ملاویږی په چا باندې به هیڅ ظلم نه وی نه به نې ثواب کمیږی اونه به نې ګناه زیاتیږی الله تعالی دظلم نه پاك دې.

وَضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا قَرْيَةً كَانَتْ اٰمِنَةً مُّطْمَئِنَّةً يَّاْتِيْهَا رِزْقُهَا

اوبیانوی الله| مثال| دیوکلی| چی ووُهغه| په امن| په اطمینان| راتلوبه هغه کلی ته| رزق دهغه کلی

اوالله ﷻ دیوکلی د خلقو مثال بیانوی | چې هغوئ په امن اواطمینان سره اوسیدل| د هر طرف نه به

رَغَدًا مِّنْ كُلِّ مَكَانٍ فَكَفَرَتْ بِاَنْعُمِ اللّٰهِ فَاَذَاقَهَا اللّٰهُ

فراخه | دهر ځائې نه |نو ناشکره شو هغه کلې | په نعمتونو دالله | نو اوڅکوله دغه کلی ته الله

ورته فراخه روزی راتله | ........خو هغوئ دالله ﷻ دنعمتونو ناشکری اوکړی | نو الله تعالی د هغوی

لِبَاسَ الْجُوْعِ وَالْخَوْفِ بِمَا كَانُوْا يَصْنَعُوْنَ ﴿﴾ وَلَقَدْ

جامه دلوږې| اودیرې | په سبب دهغې عمل| چی ووُهغوئ| چی کول به نې| اوپه تحقیق سره

د عملونو په وجه په هغوئ باندې لوئي قحط او ویره راوستله | ...... ........ ..........اوبیشکه

جَآءَهُمْ رَسُوْلٌ مِّنْهُمْ فَكَذَّبُوْهُ فَاَخَذَهُمُ

راغې هغوئ ته| یورسول| دهغوی دخپل قوم نه | نو دروغ اوګڼړو هغوئ هغه لره | نواونیول هغوئ لره

هغوئ ته هم د هغوئ د قوم نه یو پیغمبر راغلې وو|نو هغوئ دې دروغژن اوګڼړلو | نو په هغوی

الْعَذَابُ وَهُمْ ظٰلِمُوْنَ ﴿﴾

عذاب | او هغوئ| ظالمان وو |

باندې په داسې حالت کښې عذاب راغلو چی هغوی ظالمان وو

قوله تعالى:- فَاَذَاقَهَا اللّٰهُ لِبَاسَ الْجُوْعِ وَالْخَوْفِ

**دَ نعمتونو دَ ناشکرئی نتیجه:-** دې نه مراد اهل مکه دی دوی په امن او اطمینان کښې وو خواوشاکښې به جنګونه کیدل دې خوابه چا سترګې هم نه شوې پورته کولې څوك چه به دلته راتلوهغه به په امن کښې ګڼړلې شو لکه چه قرآن پاك فرمائیلی چه داخلق وائی که چرې مونږد هدایت ملګرتیااوکړو نود

خپلې زمکې نه به اوچت کړې شو ایامونږ هغوی ته د خپل امن اوامان حرم نه دې ورکړې؟ چرته چه زمونږ رزق د قسم قسم میوو په شکل کښې هغوی له د څلورو وارو طرفونه راښکلې کیږي راځي. دلته هم ارشاد کولې شي ښکلې او رسیدلې رزق د دې ښار د خلقو طرف ته د هرځائ نه راتلو خوپیا هم دوی د الله تعالی د نعمتونو منکر وو په کوم کښې چه د ټولو نه اوچت نعمت د حضورﷺ رالیګل وو لکه چه د الله تعالی ارشاد مبارك دې ﴿أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ بَدَّلُوا نِعْمَتَ اللَّهِ كُفْرًا وَأَحَلُّوا قَوْمَهُمْ دَارَ الْبَوَارِ ۝ جَهَنَّمَ يَصْلَوْنَهَا وَبِئْسَ الْقَرَارُ ۝﴾(١)آیا تاهغوی اولیدل؟ چا چه د الله ﷻ نعمت په کفرسره بدل کړو اوخپل قوم ئې د هلاکت کور ته اورسولوکوم چه دوزخ دې چرته چه به دوی داخلیږی اود اوسیدو ډیر خراب ځائ دې. د هغوی د سرکشئ په دې سزا کښې دواړه نعمتونه په دوو زحمتونو بدل کړې شو امن په ویره سره او اطمینان په ولړه اوویرې سره. هغوی د الله تعالی د رسول ﷺ اونه منل. د حضورﷺ په مخالفت کښې ئې ملا اوتړله نو حضورﷺ د هغوی د پاره د اوو کالو د قحط خیرې اوکړې لکه څنګه چه د حضرت یوسف ﷺ په زمانه کښې وو.په دې قحط کالئ کښې هغوی د اوښانو په وینوکښې لړلې شوی وینتو یوزې اوخوړل.دامن نه پس ویره راغله هروخت به درسول الله ﷺاود هغه د لښکر نه په ویره کښې وو. د هغوی په دوچنده ترقئې اود هغوی د لښکرو په زیاتیدوبه غلې کیدل تردې چه آخر د الله تعالی پیغمبرﷺ د هغوی په ښارمکه باندې حمله اوکړه اودائې فتح کړه اودلته ئې قبضه اوکړه. دا وه د هغوی د بدعملو بدله دوی په ظلم او زیاتی باندې کلك ولاړوو اود الله تعالی د رسول ﷺ تکذیب به ئې کولو کوم چه الله تعالی پخپله هم د هغوی نه رالیګلې وو.دکوم احسان بیان چه په ایت ﴿لَقَدْ مَنَّ اللَّهُ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ إِذْ بَعَثَ فِيهِمْ رَسُولًا مِّنْ أَنفُسِهِمْ يَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِهِ وَيُزَكِّيهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَإِن كَانُوا مِن قَبْلُ لَفِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ ۝﴾(٢)کښې فرمانیلی دی اوهم ددې بیان آیت ﴿فَاتَّقُوا اللَّهَ يَا أُولِي الْأَلْبَابِ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ۝﴾(٣) کښې دې اودغه شان د دې معنې آیت ﴿كَمَا أَرْسَلْنَا فِيكُمْ رَسُولًا مِّنكُمْ يَتْلُو عَلَيْكُمْ آيَاتِنَا وَيُزَكِّيكُمْ وَيُعَلِّمُكُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَيُعَلِّمُكُم مَّا لَمْ تَكُونُوا تَعْلَمُونَ ۝ فَاذْكُرُونِي أَذْكُرْكُمْ وَاشْكُرُوا لِي وَلَا تَكْفُرُونِ ۝﴾(٤)کښې دې (البقرة:- ١٥٢)پورې.دا لطیفه هم مه هیروئې لکه څنګه چه د کفرپه وجه د امن نه پس ویره راغله اوفراخئې نه پس ولړه راغله د ایمان په وجه د ویرې نه پس امن ملاوشو اود ولړې نه پس حکومت اوسرداری اوامارت ملاوشو.فسبحانه مااعظم شانه.

**د بی بی حفصې ارشاد**:-سلیم بن نمیرﷺ فرمائی چه مونږ ام المؤمنین حفصه سره دحج نه واپس راتلو دغه وخت مدینه منوره کښې خلیفة المؤمنین عثمان ﷺ ګیرشوې وو مور بی بی به اکثر په لاره تلونکونه تپوسونه کول. دوه سواره ئې په لاره تلونکی اوکتل نو سړې اولیګلو چه د هغوی نه د خلیفه رسول د حال تپوس اوکړه هغوی خبرورکړو چه افسوس هغوی شهید کړې شو.هغه وخت دوی اوفرمانیل داهم مدینه ده د کوم باره کښې الله تعالی فرمانیلی دی﴿وَضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا قَرْيَةً كَانَتْ آمِنَةً مُّطْمَئِنَّةً يَأْتِيهَا رِزْقُهَا رَغَدًا مِّن كُلِّ مَكَانٍ فَكَفَرَتْ بِأَنْعُمِ اللَّهِ فَأَذَاقَهَا اللَّهُ لِبَاسَ الْجُوعِ وَالْخَوْفِ بِمَا كَانُوا يَصْنَعُونَ ۝﴾.د عبدالله بن مغیره ﷺ د شیخ هم دغه قول دې.

| فَكُلُوا | مِمَّا | رَزَقَكُمُ اللَّهُ | حَلَالًا |
|---|---|---|---|
| نوخورئ | دهغې رزق نه | چې درکړې دې تاسوته الله | حلال |
| نو الله ﷻ چې تاسو ته څه درکړی دی له هغې نه | | | |

(١) ١٤/ابراهیم:٢٨.

(٢) ٣/آل عمران:١٦٤.

(٣) ٥/المائدة:١٠٠.

(٤) ٢/البقرة:١٥١.

| طَيِّبًا | وَّاشْكُرُوْا | نِعْمَتَ اللّٰهِ | اِنْ كُنْتُمْ | اِيَّاهُ | تَعْبُدُوْنَ | اِنَّمَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| پاك | او شكر اوباسئ | دنعمت دالله | كه يئ تاسو | چي خاص هغه لره | عبادت كوئ | بيشكه |

حلال پاكيزه څيزونه خورئ او د الله ﷻ د نعمتونو شكر ادا كوئ كه تاسو په رښتيا د هغه عبادت كوئ | بيشكه

| حَرَّمَ | عَلَيْكُمُ | الْمَيْتَةَ | وَالدَّمَ | وَلَحْمَ الْخِنْزِيْرِ | وَمَآ | اُهِلَّ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| حرام كړل الله | په تاسوباند | مرداره | اووينه | اوغوښه دخنزير | اوهغه حلال خناور | چي نوم اغستي شوي وي |

هغه په تاسوباندي مرداره او وينه اود خنزير غوښه اوكوم څيزونه چي د الله ﷻ

| لِغَيْرِ اللّٰهِ | بِهٖ | فَمَنِ | اضْطُرَّ | غَيْرَ بَاغٍ |
|---|---|---|---|---|
| دالله نه سوادبل چا | په هغه باند | نوهغه څوك | چي مجبور شو | په داحال كښي چي نۀ وي باغي دقانون دالله نه |

نه سوا د بل چا په نامه منلي شوي وي حرام كړي دي | نو څوك چي مجبوره شي | چي دالله د قانون نه تيريدونكي

| وَّلَا عَادٍ | فَاِنَّ اللّٰهَ | غَفُوْرٌ | رَّحِيْمٌ | وَلَا تَقُوْلُوْا |
|---|---|---|---|---|
| او نۀ زياتي كونكي وي | نو بيشكه الله | بښونكي دي | رحم كونكي دي | اومۀ وايئ تاسو |

نه وي او دحد نه تيريدونكي نه وي | نو بيشكه الله ﷻ بخښونكي مهربان دي | ..........اوتاسو

| لِمَا | تَصِفُ | اَلْسِنَتُكُمُ | الْكَذِبَ | هٰذَا | حَلٰلٌ | وَّهٰذَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په باره دهغه څيزونو كښي | چي بيانوی | ژبې ستاسو | دروغ لره | چي دا | حلال دی | او دا |

د هغه څيزونو په باره كښي چي ستاسو ژبي ئې په دروغ بيانوی دا مه وايي چي دا حلال دی اودا

| حَرَامٌ | لِّتَفْتَرُوْا | عَلَى اللّٰهِ | الْكَذِبَ | اِنَّ الَّذِيْنَ | يَفْتَرُوْنَ | عَلَى اللّٰهِ | الْكَذِبَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| حرام دی | چي جوړ كړئ | په الله باند | دروغ | بيشكه هغه كسان | چي جوړوی | په الله باند | دروغ |

حرام دی انتيجه به يي دا شي چي تاسو به په الله باندې دروغ اوتړئ بيشكه څوك چي په الله دروغ جوړوی

| لَا يُفْلِحُوْنَ | مَتَاعٌ قَلِيْلٌ | وَّلَهُمْ | عَذَابٌ اَلِيْمٌ |
|---|---|---|---|
| خلاصي به نۀ مومي هغوئ | نفعه ده لږه | اودې دهغوئ دپاره | عذاب دردناك |

هيڅكله به كامياب نشي (د دنيا) ژوند لږه شان فائده ده او هغوئ دپاره دردناك عذاب دي

**قوله تعالى:-اِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ**

**د بعضو حرام كړي شوو څيزونو ذكر:**-الله تعالى خپلو مؤمنانو بندګانوته وركړې شوی پاك رزق حلالوی اود شكركولوهدايت كوی د دې د پاره چه د نعمتونوركونكي هم هغه دی په دې وجه د عبادت لائق هم صرف هغه يودې دهغه څوك شريك اوملګرې نشته. بيادهغه څيزونوبيان فرمائي كوم چه هغه په مسلمانانو باندې حرام كړی دی په كوم كښې چه د هغوی د دين نقصان هم دې اود دنيانقصان هم دې لكه پخپله مړشوې خاروې، د حلالولو په وخت كښې بهيدونكې وينه، د خنزير غوښه او كوم خاروې چه د الله تعالى د نوم نه بغيرد بل چا په نوم باندې حلال كړې شی . خوچه كوم سرې د دې د خوراك طرف ته بې بس وی لاچاره وی عاجز وی محتاج وی بې قرار وی اودا اوخوری نوالله تعالى د ښنې او رحمت نه كاراخستونكې دې. سورة بقره كښې د دې په شان آيت تيرشوې دې اوهم هلته د هغې مكمل تفسيرهم بيان كړې شوې دې بياسردوباره كولو ضرورت نشته. فالحمدلله.

**په دين کښې دځانه حلال وحرام جوړول په الله تعالى دروغ جوړول دي** :-بياد کافرانود رويه نه مسلمانان بندوی لکه ځنګه چه هغوی د خپل خان نه حلال والي اوحراموالي قايم کړي دي تاسو داسې مه کونی په خپل مينځ کښې مقرره کړه چه د فلانکی دنوم ځناور دحرمت او عزت والا بحيره سائبه وصيله حام وغيره.ارشاددې چه په خپلو خلوباندې د دروغو مروغو د الله تعالى په ذمه الزام لګولوسره پخپله حلال اوحرام مه جوړونی. په دې کښې داهم داخل دی چه څوك د خپل طرف نه څه بدعت راوباسی د کوم چه څه شرعی دليل نه وی ياد الله تعالى حلال حرام کړی يامباح حرام اوګرځوی اوپه خپله رائې او تشبيه سره احکام راپيدا کړی.(**لماتصف**)کښې مامصدريه دې يعنی تاسوددروغو صفت پخپله ژبه باندې حلال اوحرام مه جوړوئی. داسې خلق د دنياد فلاح نه اود آخرت د خلاصی نه محروم کيږی. سره د دې که په دنياکښې هسې څه فائده شان واخلی خومره کيدو سره به د سختونو عذابونوږنی جوړيږی. که دلته نې څه دهوکه داکه اوکړه خو هغه ته به سخت عذاب په بې وسئ سره برداشت کول وی لکه چه دالله ﷻ ارشاددې په الله ﷻ باندې دروغ اود خان نه خبرې کونکی دخلاصی نه محروم دی په دنيا کښې به هسې څه فائده واخلی بيابه مونږ هغوی ته د هغوی دکفر په وجه دسخت عذاب مزه ورڅکو.([1])

| |
|---|
| وَعَلَى الَّذِينَ |
| اوپه هغه کسانوباندې |
| اوچا چې |
| هَادُوا حَرَّمْنَا مَا قَصَصْنَا عَلَيْكَ مِنْ قَبْلُ ۚ |
| چې يهوديان شوی ووُ \| حرام کړی ووُ مونږه \| هغه څيزونه \| چې بيان کړی دی مونږه \| تاته \| مخکښې د دې نه |
| يهوديت اختيار کړې دې\| مونږ په هغوی باندې هغه څيزونه حرام کړی وو کوم چې مووړاندې تاته بيان کړی دی |
| وَمَا ظَلَمْنَاهُمْ وَلَٰكِنْ كَانُوا أَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ﴿١١٨﴾ |
| اونه ووکړې ظلم مونږه په هغوئ باند\| وليکن \| ووُ هغوئ \| په ځانونو خپلو باند\| چې ظلم به نې کوو |
| او مونږ په هغوئ باندې هيڅ زياتې نه ووکړې \| بلکه هغوئ پخپله په ځانونو زياتې کولو |
| ثُمَّ إِنَّ رَبَّكَ لِلَّذِينَ عَمِلُوا السُّوءَ بِجَهَالَةٍ ثُمَّ تَابُوا |
| بيا\| بيشکه\| رب ستا\| دپاره دهغه کسانو\| چې وې کړو\| عمل بد\| په ناپوهتياسره\| بيانې\| توبه اوبنکله |
| بيا بيشکه ستارب هغو خلقو دپاره کومو چې په ناپوهئ سره بدعملونه کړی وی اد هغې |
| مِنْ بَعْدِ ذَٰلِكَ وَأَصْلَحُوا إِنَّ رَبَّكَ مِنْ بَعْدِهَا |
| روستو ددغې بدعمل نه \| اوعمل نې نيك کړو\| نو بيشکه \| رب ستا \| روستو دتوبې ايستلونه |
| نه پس هغوئ توبه اوباسی\| اود خپل حالت اصلاح اوکړی \| نو د دې نه پس ستارب يقينا |
| لَغَفُورٌ رَحِيمٌ ﴿١١٩﴾ |
| خامخا بښونکې \| مهربانه دی \| |
| بخښونکې مهربان دی \| |

[1] ١٠/يونس:٦٩-٧٠.

**قوله تعالى:-وَعَلَى الَّذِيْنَ هَادُوْا حَرَّمْنَا**

**په يهوديانو باندې د بعضو حرام كړې شوو څيزونو ذكر:**-پورته بيان تيرشو چه په دې امت باندې مردار، وينه دخنزير غوښه اودالله تعالى نه بغيرد نورو په نوم څيزونه حرام دى. بيا چه په دې كښې كومه آسانى وه هغه ئې ښكاره كړه اوكومه آسانى په دې امت باندې كړې شوې ده هغه ئې بيان كړه. په يهوديانو باندې چه دهغوى په شريعت كښې څه حرام وو اوكومه تنګى او تكليف په هغوى باندې وو هغه بيانوي چه مونږ د هغوى دحرمت څيزونه هم داول نه تاسوته خودلى دى.دسورت انعام آيت ﴿وَعَلَى الَّذِيْنَ هَادُوْا حَرَّمْنَا كُلَّ ذِيْ ظُفُرٍ﴾(١)كښې ددغه حرامو څيزونو ذكر شوې دې يعني په يهوديانو باندې مونږ دټولو نوكونو والا ځناور حرام كړې وو اود غوا او چيلئې وازګه بغيرد هغه وازګې نه كومه چه د هغې په ملا پورې لګيدلې وى يا په كولموباندې يا په هډوكوباندې لګيدلې وى دا بدله وه د هغوى د سركشئ مونږ په خپل فرمان كښې بالكل رښتونى يو. مونږ په هغوى باندې هيڅ ظلم نه وو كړې هغوى پخپله ناانصافه وو.دهغوى د ظلم په وجه مونږ په هغوى باندې هغه پاك څيزونه كوم چه په هغوى باندې حلال وو حرام كړل.دويمه وجه د هغوى د الله تعالى د لارې نه نور خلق بندول هم وو. بيا الله تعالى د هغه خپل رحم او كرم خبروركوى كوم چه هغه ګناهګارانو مؤمنانو سره كوى چه ديخوا هغه توبه اوكړه اوبل خواهغه ته د رحمت نه دكه غيرې خوره شوه. د بعضو سلفو قول دې چه څوك د الله تعالى نافرمانى كوى هغه هم جاهل وى. توبه وائى د ګناه نه اخواكيدوته او اصلاح وائى په تابعدارئى باندې ملا ترلو ته نوچه څوك دامې اوكړى د هغه ګناه او خطا نه پس هم الله تعالى هغه ببنى او په هغه باندې رحم كوى.

اِنَّ اِبْرٰهِيْمَ كَانَ اُمَّةً قَانِتًا

| بيشكه | ابراهيم عليه السلام | وو | يو امت | فرمان منونكې

| بيشكه ابراهيم عليه السلام دخلقو لوئې پيشوا دالله تعالى تابعدار

لِّلّٰهِ حَنِيْفًا ۭ وَلَمْ يَكُ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ۙ شَاكِرًا لِّاَنْعُمِهٖ ۭ

| الله لره | يو مخيزې | اونه وو هغه | دمشركانو نه | شكرايستونكې وو | دنعمتونو دالله

اوصرف حق طرفته مائل وو | اوهغه د مشركانو ځنى نه وو | دالله تعالى دنعمتونو شكر ګزار وو

اِجْتَبٰىهُ وَهَدٰىهُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ۝ وَاٰتَيْنٰهُ

| غوره كړو الله هغه لره | او ښودنه ئې اوكړه هغه ته | لارې نيغې ته | اوورکړه مونږ هغه ته

الله تعالى دې غوره كړې وو | او په نيغه لار ئې روان كړې وو | ........................ اومونږ هغه ته

فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً ۭ وَاِنَّهٗ فِي الْاٰخِرَةِ لَمِنَ الصّٰلِحِيْنَ ۝

| په دنيا كښې | نيك نامى | او بيشكه وى به هغه | په آخرت كښې | دصالحانو نه

په دنيا كښې نيک نامى وركړې وه | اوپه آخرت كښې خو په صالحانو كښې شمير دې

ثُمَّ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ اَنِ اتَّبِعْ مِلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ حَنِيْفًا ۭ وَمَا كَانَ

| بيا وحى اوكړه مونږه | تاته | چې پيروى اوكړه ته | په طريقه | دابراهيم عليه السلام | يو مخيزې | اونه وو هغه

| بيا مونږ تاته وحى اوكړه | چې دابراهيم په لاره روان اوسه | چې يو مخيز وو | او د مشركانو ځنى نه وو

(١) ٦/الانعام:١٤٦.

| مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿١٢٠﴾ |
| --- |
| دمشرکانونه |

**قوله تعالى:-اِنَّ اِبْرٰهِيْمَ كَانَ اُمَّةً قَانِتًا لِّلّٰهِ حَنِيْفًا ط**

**ابراهيم ﷺ درشد اوهدايت امام وو:-**امام حنفاء والدانبياء خليل الله رسول جل وعلا د حضرت ابراهيم ﷺ تعريف بيانولې شي اود مشركانو يهوديانواونصرانيانو نه هغه جدا كولې شي. ﴿امة﴾ معنى د امام ده د چاچه اقتداء اوكړې شي﴿قانت﴾ وانى تابعدار اوحكم منونكى ته.د حنيف معنى ده د شرك نه جدا د توحيدطرف ته راتلونكې. د دې د پاره اوفرمائيلې شو چه هغه د مشركانو نه ويزاره وو.

**د اُمَّةً قَانِتًا مطلب:-**ابن مسعود﷜ نه چه كله دامت قانت باره كښې تپوس اوكړې شونوونى فرمائيل خلقو ته نيكى خودونكې اود الله تعالى اورسول الله ﷺ تابعدارى كونكې. ابن عمر ﷜ فرمانى د امت معنى ده د خلقو د دين خودونكې. يوځل حضرت ابن مسعود﷜ اوفرمائيل چه حضرت معاذ امت قانت او حنيف وو په دې باندې چا په خپل زړه كښې سوچ اوكړو چه حضرت عبدالله﷜ غلطى اوكړه داسې خو په شهادت سره دقرآن پاك حضرت خليل الرحمن وو. بيانى زبانى اوفرمائيل چه الله تعالى حضرت ابراهيم ﷺ ته امت فرمائيلې دې نو هغوى اوفرمائيل چه پته درته شته چه : امت څه معنى ده؟ اود قانت څه معنى ده؟ امت وانى هغه ته چه خلقو ته دين اوښانى او قانت وانى هغه ته چه د الله تعالى اود هغه درسول ﷺپه تابعدارنى كښې لګياوى([1])بيشكه حضرت معاذ﷜ همداسې وو.مجاهد ﷫ فرمانى چه هغه خان له امت وو. اود فرمان تابع وو اوهغه په خپله زمانه كښې يوازې موحدمومن وو باقى ټول خلق هغه وخت كښې كافران وو. قتاده ﷫ فرمانى هغه د هدايت امام وو اود الله تعالى غلام وو د الله تعالى د نعمتونو قدردان او شكر كونكې وو اود رب په ټولواحكامويباندې عمل كونكې وو لكه چه الله تعالى پخپله ارشاد فرمانى ﴿وَاِبْرٰهِيْمَ الَّذِيْ وَفّٰٓى﴾([2]) هغه ابراهيم ﷺ چاچه پوره كړو يعنى د الله تعالى د ټولو احكامو منونكې او په ځائ راوړونكې. هغه الله تعالى غوره او مصطفې جوړكړو لكه چه ارشاد دې ﴿ وَلَقَدْ اٰتَيْنَآ اِبْرٰهِيْمَ رُشْدَهٗ مِنْ قَبْلُ وَكُنَّا بِهٖ عٰلِمِيْنَ﴾([3]) مونږ د اول نه حضرت ابراهيم ﷺ ته رشد اوهدايت وركړې وو اومونږ هغه ښه پيژندلو. هغه ته مونږ د نيغې لار خودنه كړې وه صرف د يوالله تعال وحده لاشريك له عبادت او تابعدارى به نې كوله اود الله تعالى په خوښ كړې شوى شريعت باندې قايم وو. مونږ هغه د دين اودنياد خير جامع جوړكړې وو.دخپل پاك صفا ژوند ټول صفتونه حميده په هغه كښې وو اودې سره په آخرت كښې هم د نيكو سره اود صلاحيت والا وو دهغه پاك ذكر په دنيا كښې هم باقى پاتې شو اوپه آخرت كښې هم ورته ډيرې لونى درجې ملاوشوې. د هغه كمال د هغه عظمت اود هغه محبت اوتوحيداودهغه په پاكه طريقه باندې بدې سره هم رنړاپريوخى چه اې ختم الرسل اې سيد الانبياء تاته هم زمونږحكم كيږى چه دملت ابراهيم﷤ حنيف تابعدارى اوكړه كوم چه دمشركانونه خلاص وو په سورت انعام كښې ارشاد دې ﴿قُلْ اِنَّنِيْ هَدٰىنِيْ رَبِّيْٓ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ۚ دِيْنًا قِيَمًا مِّلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ حَنِيْفًا ۚ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ﴾ ([4]) اووايه چه ماته زما رب د نيغې لار خودنه كړې ده د مضبوط او قايم دين ابراهيم حنيف كوم چه د مشركانو نه نه وو بيا په يهوديانوباندې انكاركولې شى اوفرمائيلې شى.

---

[1]) حاكم:٢/٣٥٨.

[2]) ٥٣/النجم:٣٧.

[3]) ٢١/الانبياء:٥١.

[4]) ٦/الانعام:١٦١.

| | | | |
|---|---|---|---|
| إِنَّمَا | جُعِلَ | السَّبْتُ | عَلَى الَّذِينَ |
| \| بیشکه\| مسلط کړې شوې وو \| قانون دخالی دورځې\| په هغه کسانوباند | | | |
| د خالی د ورځې احترام په هغه چا مقرر شو بدې \| چې په هغې کښې ئې اختلاف | | | |
| اخْتَلَفُوا | فِيهِ ط | وَإِنَّ | رَبَّكَ لَيَحْكُمُ |
| \|چې هغوئ اختلاف اوکړو\| په حکمونودهغې کښې\|اوبیشکه \| رب ستا \| خامخا به فیصله کوی | | | |
| کړې وو \| .................او بیشکه ستا رب به دقیامت په ورځ ددوئ په مینځ کښې | | | |
| بَيْنَهُمْ | يَوْمَ الْقِيٰمَةِ | فِيمَا | كَانُوا فِيهِ |
| \| په منځ دهغوئ کښې \| په ورځ دقیامت \| په هغه ټولو خبرو کښې \| چې وو هغوئ\| په هغې کښې | | | |
| فیصله اوکړی \| .....................په کومو خبرو کښې چې دوئ اختلاف کولو | | | |
| يَخْتَلِفُونَ ۝ | | | |
| چې اختلاف به ئې کوو\| | | | |

**قوله تعالی:- إِنَّمَا جُعِلَ السَّبْتُ عَلَى الَّذِينَ اخْتَلَفُوا فِيهِ ط**

**د هرامت د پاره د هفتې دبعضو ور ورځو د حرمت بیان:-** دهرامت دپاره په هفته کښې یوه ورځ داسې مقرر کړې ده په کوم کښې چه هغوی راجمع شی اودالله ﷻ د عبادت خوشحالی اوکړی. ددې امت دپاره هغه ورځ ورځ د جمعه مبارکه ده خکه چه دا شپږمه ورځ ده په کومه کښې چه الله تعالی د خپل مخلوق پوره والې اوکړو او ټول مخلوق پیداشو اوخپلوبندیګانوته ئې د هغوی د ضرورت خپل ټول نعمتونه ورکړل.

**په دین موسوی کښې د هفتې د ورځې تعظیم وو د اتوار روستو راغلې دې:-** روایت دې چه د حضرت موسی ؑ په ژبه هم دا ورځ د بنی اسرائیلو د پاره مقرر شوې وه خوهغوی د دې نه اخوا شو اود هفتې ورځ ئې واخستله په دې سوچ کولو سره چه په دې ورځ مخلوق پوره شوې دې د هفتې په ورځ الله تعالی هیڅ څیز نه دې پیداکړې. نو چه کله تورات نازل شو نو په هغوی باندې هم هغه د هفتې ورځ مقرر شوه او هغوی ته حکم ملاوشو چه دا کلکه اونیسئی اودائی ورته ضرورفرمانیلې وو چه حضرت محمد ﷺ کله هم راشی نو هغوی دې ټول هرڅه پریږدی اوصرف هم د هغه تابعداری دې اوکړی په دې خبره د هغوی نه وعده هم اخستې شوې وه. دهفتې ورځ هغوی د خپل ځان د پاره پخپله خوښه کړې وه او هم پخپله ئې جمعه پریخودې وه. ( ¹)

د حضرت عیسی بن مریم ؑد زمانې پورې دوی هم په دې باندې وو. وئیلې شی چه بیا هغوی دوی ته د اتوار د ورځې دعوت ورکړو. یوقول دې چه هغوی د تورات شریعت پریخودې نه ووبغیرد څه منسوخ احکاماتو نه اود هفتې د ورځې محافظت هم هغوی برابر اوساتلو.کله چه حضرت عیسی ؑ پورته اوخیژولې شونودهغوی نه پس دقسطنطین بادشاه په زمانه کښې صرف دیهودیانوسره په ضد بنې راتلوسره د صخره نه واخله ترمشرق پورې هغوی خپله قبله مقررکړه اود هفتې په ځائ د اتوار ورځ مقررکړه. د بخاری اومسلم شریف په حدیث کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی مونږ د ټولونه آخری یو اود قیامت په ورځ به د ټولونه ړومبی یو اوهغوی ته زمونږ نه وړاندې کتاب الله ورکړې شوې دې. دا ورځ

¹) الطبری:۱۷/۳۲۰

هم الله تعالى په هغوی باندې فرض کړه خود هغوی په اختلاف باندې د هغوی نه واخستې شوه اوالله سبحانه وتعالى مونږ ته ددې هدايت اوکړو نوداټول خلق زمونږ هم روستو روستو دی. يهوديان يوه ورځ روستو نصارى دوه ورځې. (١)

**د مسلمانانو دتعظيم دورځ جمعه ده** :-حضورﷺ فرمائی زمونږ نه وړاندې امتونه الله تعالى د دې ورځې نه محروم کړل يهوديانو د هفتې ورځ اونصارى د اتوار ورځ اوجمعه زمونږ شوه. نو چه څنګه هغوی زمونږ نه د ورځو په اعتبارسره روستو دی دغه شان د قيامت په ورځ به هم زمونږ نه روستووی مونږ د دنياپه اعتبارسره روستو يواود قيامت په اعتبارسره وړاندې.يعنی په ټول مخلوق کښې به د ټولونه وړاندې فيصلې زمونږ کيږی.. (٢)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اُدْعُ | اِلٰى سَبِيْلِ رَبِّكَ | بِالْحِكْمَةِ | وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ | |
| بلنه کوه | لارې درب خپل ته | په حکمت سره | اوپه نصيحت نيک سره | |
| ته د خپل رب دلارې طرف ته په حکمت او په ښه نصيحت سره بلنه کوه | | | | |
| وَجَادِلْهُمْ | بِالَّتِىْ | هِىَ | اَحْسَنُ ؕ | اِنَّ رَبَّكَ |
| اوبحث کوه دخلقو سره | په هغه طريقه | چې هغه | دټولونه ښۀ وی | بيشکه رب ستا چې دی |
| او دوئ سره په بهتره طريقه بحث کوه | ..........................بيشکه ستا رب | | | |
| هُوَ | اَعْلَمُ | بِمَنْ | ضَلَّ | عَنْ سَبِيْلِهٖ وَهُوَ |
| هغه | ښۀ پوهه دی | په هغه چا | چې بې لارې شوی دی | دلارې دهغه نه / اوهغه |
| هغه څوک ښه پيژنی | کوم چې د هغه د لارې نه ګمراه شوې دی | اوهغه څوک هم ښه پيژنی چې د هدايت | | |
| اَعْلَمُ | بِالْمُهْتَدِيْنَ ۝ | وَاِنْ | عَاقَبْتُمْ | فَعَاقِبُوْا بِمِثْلِ مَا |
| ښه پوهه دی | په لارموندونکو باند | اوکه چرې | سزا ورکوئ تاسو | نو سزا ورکړئ / په مثل دهغې |
| خاوندان دی | ..........اوکه تاسو بدله اخستل غواړئ نو بس دومره سزا ورته ورکړئ | | | |
| عُوْقِبْتُمْ | بِهٖ ؕ | وَلَئِنْ | صَبَرْتُمْ | لَهُوَ خَيْرٌ |
| چې سزا درکړې شوی ده تاسو ته | په هغې سره | اوکه چرې | صبر اوکړو تاسو | نو هغه / بهتر دی |
| څومره چې ئې تاسوته درکړې ده | اوکه صبر اوکړئ نو دا صبر کول به د صبر کونکو دپاره | | | |
| لِّلصّٰبِرِيْنَ ۝ | وَاصْبِرْ | وَمَا صَبْرُكَ | اِلَّا | بِاللّٰهِ وَلَا تَحْزَنْ |
| دپاره دصبر کونکو | او صبر کوه | اونۀ دی صبر ستا | مګر | په توفيق دالله دی / اوتۀ غم مۀ کوه |
| دير بهتر وی | اوړائې پيغمبره، ته صبر کوه او ستا صبر خو بس دالله ﷻ په توفيق دی | اوددوئ په حال غم مه کوه | | |
| عَلَيْهِمْ | وَلَا تَكُ | فِىْ ضَيْقٍ | مِّمَّا | يَمْكُرُوْنَ ۝ اِنَّ اللّٰهَ |
| په دوئ باند | اومۀ کيږه ته | په تنګی کښې | دهغه چلونونه | چې دوئ ئې کوی / بيشکه الله |
| اودوئ چې کوم سازشونه کوی په هغې باندې زړه مه تنګوه | بيشکه الله ﷻ | | | |

(١) صحيح بخارى كتاب الجمعة باب فرض الجمعة: ٨٧٦، صحيح مسلم:٨٥٥.

(٢) صحيح مسلم كتاب الجمعة باب هداية الامة ليوم الجمعة:٨٥٦.

| مَعَ الَّذِيْنَ | اتَّقَوْا | وَّالَّذِيْنَ | هُمْ | مُّحْسِنُوْنَ﴿۱۲۸﴾ |
|---|---|---|---|---|
| ملګري دي دهغه کسانو | چې پرهيزګاري کوي | او دهغه کسانو | چې هغوئ | نيکي کونکي دي |

د هغه چا سره ملګري دي | چې څوک پرهيزګاره وي اوڅوک نيکي کونکي وي

**قوله تعالى:- اُدْعُ اِلٰى سَبِيْلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ**

**د نصيحت او حکمت نه مراد:-** الله تعالى چه رب العالمين دې خپل رسول الله حضرت محمد ﷺ ته حکم فرمائي چه ته د الله تعالى مخلوق د هغه لارې ته رابله. د حکمت نه مراد د ابن جرير رحمه الله په قول کلام الله اوحديث رسول الله ﷺ دې اود ښه وعظ نه مراد چه په هغې کښې ويره دهمکى هم وى اوخلق د هغې نه نصيحت حاصل کړى اود الله تعالى د عذابونونه بچ کيدل اوغواړى.(١) اودا هم خيال ساتل پکار دى که چاسره د مناظرې ضرورت شى نوهغه دې په نرمئ او په خو الفاظوسره وي لکه چه ارشاد دې ﴿وَلَا تُجَادِلُوْٓا اَهْلَ الْكِتٰبِ اِلَّا بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ ۖ اِلَّا الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مِنْهُمْ وَقُوْلُوْٓا اٰمَنَّا بِالَّذِيْٓ اُنْزِلَ اِلَيْنَا وَاُنْزِلَ اِلَيْكُمْ وَاِلٰـهُنَا وَاِلٰـهُكُمْ وَاحِدٌ وَّنَحْنُ لَهٗ مُسْلِمُوْنَ﴾ (٢) اهل کتاب سره د مناظرې اومجادله بهترينه طريقه خپلوئى. دغه شان حضرت موسى ﷺ ته هم د نرمئ حکم شوې وو. دواړو رونړوته دا ونيلې شوى وو اود فرعون طرف ته ليګلې شوې وو چه هغه ته نرمه خبره کوئى دې د پاره چه عبرت حاصل کړى او هوښيارشي. د اخواشوې لار نه په نيغه لارشى تول د الله تعالى په علم کښې دى. بدبخت او نيک بخت تول هغه ته ښکاره دى هلته ليکلې شوى دى اود تولوکارونو د پوره کولونه فراغت شوې دې. تاسو د الله تعالى د لارې دعوت ورکوئى خود نامنونکو په وجه خپل ځان په هلاکت کښې مه اچوئى.تاسو د هدايت ورکولو ذمه وار نه ئى تاسو صرف د خبر ورکونکي ئې. په تاسو پيغام رسول دى حساب به مونږ پخپله اخلو هدايت ستاسو د وس کار نه دې چه څوک خوښ کړئى نو په هدايت به ئى راولئى اوبه ئى دروئى. د خلقو دهدايت ذمه وار تاسو نه ئى دا د الله تعالى د قبضې اود هغه د لاس څيز دې.

**دَ قصاص حاصلولواوصبربيان:-** په قصاص اوحق حاصلولوکښې د برابرئى او انصاف حکم ورکولې شى امام ابن سيرين رحمه الله وغيره فرمائى که يوسړې تانه څه څيز واخلى نو ته هم د هغه نه هم هغه هومره واخله(٣) ابن زيد رحمه الله فرمائى چه اول خودمشرکانوسره دمعاف کولوحکم وو. کله چه صاحب حيثيت خلق مسلمانان شونوهغوى ونيل چه که د الله تعالى د طرف نه لړ د بدلې اخستو رخصت اوشى نو مونږ به هم دې سپو سره اوګورو نو په دې باندې دا آيت نازل شو. آخردا حکم هم په جهادسره منسوخ شو(٤) حضرت عطاء بن يسار رحمه الله فرمائى چه سورت نحل پوره په مکه مکرمه کښې نازل شوې دې خود دې دا آخرى درې آياتونه په مدينه منوره کښې نازل شوى دى.

**ددې ايتونو مبارکو شان نزول:-** کله چه په جنګ احد کښې حضرت حمزه رضي الله عنه شهيدکړې شواود هغوى بدن اندامونه هم د هغوى د شهادت نه پس پرې کړې شو نو په دې د رسول الله ﷺ د خُلې مبارکې نه ناڅاپي اووتل چه اوس کله ماته الله تعالى په دې کافرانو باندې غلبه راکړى نو زه به د هغوى نه د ديرشو سړو دغه شان پښې لاسونه پرې کوم. د مسلمانانو په غوږ کښې چه د خپل خوږ نبى ﷺ دا الفاظ پريوتل نود هغوى جوش نور هم زيات شو. ونى ونيل چه والله مونږ به په دوى غالب راځو اود دوې دا مړى به داسې

---

(١) الطبرى:٣٢١/١٧.
(٢) ٢٩/العنکبوت:٤٦.
(٣) الطبرى:١٩٧/١٤.
(٤) الطبرى: ٣٢٤/١٧.

ټکړې ټکړې کړوچه عربوبه کله هم داسې نه وی لیدلې.پدې باندې دا ایاتونه نازل شو. دا روایت مرسل دې.(سیرت ابن اسحاق) خودا روایت مرسل دې او په دې کښې یو راوی داسې دې چه د هغه نوم نه دې اخستې شوې مبهم پریخودې شوې دې. او په دویم سند سره دا متصل هم روایت شوې دې. بزار کښې دی چه کله حضرت حمزه ﷺ بن عبدالمطلب شهید کړې شو حضورﷺ هغه له راغلو اودریدو کتل نی افسوس ددې نه به زیات د زړه درد ورکونکې منظر بل کوم یو وی چه د محترم تره ټکړې د سترګو په وړاندې پرتې دی.دحضورﷺ د ژبې مبارکې نه اووتل په تادې د الله تعالی رحمت وی ترکومې چه زما علم دې زه پیژنم چه ته د رشتې اوخپلولنی جوړونکې نیکوته د کولو د پاره ورتیوپ کونکې وې والله که د نورو خلقو د درد او غم خیال نه وو نو ماخویه ستا دا بدن هم داسې پریخودې وو تردې چه الله تعالی ته د ځناورو د ځیتونه راویستلې وې یانی بل څه داسې کلمه اوفرمائیله. کله چه دې مشرکانو داسې حرکت کړې دې نو والله زه به هم د هغوی نه د اویاؤ کسانو سره دا عمل کوم. هم هغه وخت حضرت جبرائیل ﷺ وحی راوړه راغلو دا آیاتونه نازل شو. نو حضورﷺ د خپل قسم د پوره کولونه منع شو اود قسم کفاره ئې اداکړه[1]خوسندد دې هم کمزورې دې د دې راوی صالح بن بشیر مری دې چه د آهل حدیث د آیمه په نیزد باندې ضعیف دې. بلکه امام بخاری ﷫ خوده ته منکر الحدیث وانی. شعبی ﷫ اوابن جریر ﷫ وانی چه د مسلمانانو د ژبې نه وتلې وو دې خلقو چه زمونږ د شهیدانو بې عزتی کړې ده اود هغوی د بدن اندامونه ئې پرې کړی دی والله مونږ به هم د هغوی نه دابدله اخلو اودلته به ئې پریږدو.نوالله تعالی دهغې باره کښې داآیاتونه نازل کړل.مسنداحمدکښې جنګ احدکښې شپیته انصار اوشپږ مهاجر زشهیدان شو.د رسول الله ﷺ د صحابه کرامو زد ځلو نه دا وتلې وو چه کله مونږ په دوی باندې غلبه اوکړو نو مونږ به هم ددوی د ټکړوکولو نه بغیرپاتې نه شو. د فتح مکه په ورځ باندې یو سړی وئیلې وو چه په نن ورځ به قریش پیژندلې هم نه شی. هم هغه وخت اعلان اوشو چه د الله تعالی رسول ﷺ ټولوخلقو ته پناه ورکوی بغیرد فلانکی فلانکی د هغوی نومونه ئې واخستل. په دې باندې الله تعالی دا آیاتونه نازل کړل. نبی کریم ﷺ هم هغه وخت اووئیل چه مونږ صبر کوو او بدله نه اخلو[2]دآیت مبارك مثالونه په قرآن کریم کښې نورهم ډیردی.پدې کښې دعدل مشروعیت بیان کړې شوې دې اود غوره طریقې طرف ته ئې اشاره کړې ده.آیت ﴿وَجَزٰٓؤُا سَيِّئَةٍ سَيِّئَةٌ مِّثْلُهَا ۚ فَمَنْ عَفَا وَأَصْلَحَ فَأَجْرُهُۥ عَلَى اللّٰهِ ۚ إِنَّهُۥ لَا يُحِبُّ الظّٰلِمِينَ﴾[3]کښې دبدئی بدله اخستلورخصت ورکولو سره بیافرمائی چه څوك معافی اوکړی اواصلاح اوکړی دهغه اجرالله تعالی سره دې.هم دا آیت ﴿وَالْجُرُوحَ قِصَاصٌ ۚ فَمَنْ تَصَدَّقَ بِهِۦ فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَّهُۥ ۚ﴾[4]کښې هم دزخمونوبدله اخستلواجازت ورکولوسره فرمانی چه څوك دصدقه په توګه معافی اوکړی نو دا معافی به دهغه د ګناهونو کفاره شی. دغه شان په دې آیت کښې هم د برابر برابر بدلې اخستلو جواز ذکر کولوسره بیا ارشاد اوشو که صبر اوکړی نو دا ډیر بهتر دی او بیانی د صبر نور تاکید هم اوکړو او ارشاد فرمائی چه دا د هر یو د وس کار نه دې هم د هغوی نه کیدې شی د چاسره چه د الله تعالی امداد وی اوچاته چه د هغه د طرف نه توفیق ورنصیب شوې وی.

**دکافرانو په مصیبتونو دیر غم ندی پکار**:-بیا إرشاد کولې شی دمخالفینوغم مه کوه د هغوی په قسمت کښې هم مخالفت لیکلې شوې دې اومه د هغوی د دهوکو باره کښې خپل خاطر درنه وه الله تعالی

---

[1]) مسندالبزرا:١٧٥٩،

[2]) ترمذی کتاب التفسیر قرآن باب ومن سورة النحل:٣١٢٩ باختلاف یسیر وسنده حسن، احمد:١٣٥/٥، زوائد عبدالله بن احمدبن حنبل، ابن حبان:٤٨٧، دلائل النبوة:٢٨٩/٢.

[3]) ٤٢/الشوری:٤٠.

[4]) ٥/المائدة:٤٥.

ستاد پاره کافي دي هم هغه ستا امداد کونکې دي هم هغه به تاپه دي تولو باندې غالب کونکې دي اود دوی د مکر اوچالاکونه بچ کونکې دي. د هغوی دښمنی اود هغوی خرابې ارادې ستا څه هم نه شي ولي.د الله تعالی امداد د هغه ملګرتیا هدایت اود هغه توفیق دهغه چا سره دي دچاز ړونه چه دالله تعالی د ویرې اودچا عملونه چه د احسان دکالی نه ډك دی.د جهاد په موقعه الله تعالی فرښتو ته وحی نازله کړې وه چه﴿أَنِّي مَعَكُمْ فَثَبِّتُوا الَّذِينَ آمَنُوا﴾(¹)زه تاسو سره یم ته ایماندارثابت قدم کړه.دغه شان حضرت موسی ﷺ اوهارون ﷺ ته ئې فرمانیلې وو﴿قَالَ لَا تَخَافَا إِنَّنِي مَعَكُمَا أَسْمَعُ وَأَرَىٰ﴾ (²) تاسو ویریږئې مه زه تاسو سره یم وینم اورم. په غارکښې رسول کریم ﷺ حضرت ابوبکر صدیق ﷺ ته فرمانیلې وو﴿ لَا تَحْزَنْ إِنَّ اللَّهَ مَعَنَا﴾ (³) غم مه کوه الله تعالی زمونږ سره دي (⁴) نودا ملګرتیاخو خاص وه اودې نه مراد د الله تعالی امداد اونصرت دی. د عام ملګرتیا بیان آیت ((وَهُوَ مَعَكُمْ أَيْنَ مَا كُنتُمْ ۚ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ)) (⁵)او آیت ((مَا يَكُونُ مِن نَّجْوَىٰ ثَلَاثَةٍ إِلَّا هُوَ رَابِعُهُمْ﴾ (⁶) اوآیت ﴿وَمَا تَكُونُ فِي شَأْنٍ﴾(⁷) کښې دی یعنی الله ﷻ تاسوسره دې چرته هم چه تاسو ئې اوستاسو اعمال وینی اوچه کله درې کسان په خپل مینځ کښې غوږایستنې کوی په هغوی کښې څلورم الله تعالی وی. پنځوکښې شپږم وی او دې نه کم زیاتوکښې چه هغوی کوم ځائ هم وی الله تعالی هغوی سره وی. اوکه ته په کوم یوحال کښې هم ئې د قرآن په تلاوت کښې ئې یا ته په څه بل څه کار کښې لګیائی نو مونږ په تاباندې ګواه یو. نو په دې آیاتونوکښې د ورسره کیدو مطلب اوریدلواولیدلو سره کیدل دی. د تقوی معنی ده حرام کارونه د الله تعالی په حکم باندې پریخودل.اود احسان معنی ده دالله تعالی تابعداری اوعبادت په ځائ راوړل.په کومو خلقو کښې چه دا دواړه صفتونه وی هغوی د الله تعالی په حفاظت او امان کښې وی. الله تعالی د هغوی ملګرتیااو امداد فرمائی د هغوی مخالفین اودښمنان د هغوی هیڅ نه شی کولې بلکه الله تعالی هغه تولو باندې کامیابی ورنصیب کوی. ابن ابی حاتم کښې د حضرت محمدبن حاطب ﷺ نه روایت دې چه حضرت عثمان ﷺ د هغه خلقو نه وو چه ایماندار پرهیزګاره او نیکان وو.

[الحمدلله]

د سورت نحل تفسیر ختم شو

اودې سره څوارلسمه سیپاره هم ختمه شوه.

---

(¹) ٨/الانفال:١٢.

(²) ٢٠/طه:٤٦.

(³) ٩/التوبة:٤٠.

(⁴) صحیح بخاری کتاب فضائل اصحاب النبی ﷺ باب مناقب المهاجرین والانصار:٣٦٥٢صحیح مسلم:٢٠٠٩.

(⁵) ٥٧/الحدید:٤٠.

(⁶) ٥٧/المجادلة:٧.

(⁷) ١٠/یونس:٦١.

| رکوع ګاني | سورة بني اسرآئيل مكية وهي مائة واحدى عشر اٰية واثناعشر ركوعات | اياتونه |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ⑫ | زيات رحم كونكي دې شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان | ⑪ |

| سُبْحٰنَ | الَّذِيْٓ | اَسْرٰى | بِعَبْدِهٖ | لَيْلًا | مِّنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ |
|---|---|---|---|---|---|
| پاك دې | هغه ذات | چې بوتلو | بنده خپل | يوه شپه | دمسجدحرام نه |

الله پاك ﷻ هغه ذات دې چې خپل بنده (محمد ﷺ) ئې شپه په شپه دمسجد حرام (خانه كعبې) نه

| اِلَى الْمَسْجِدِ الْاَقْصَا | الَّذِيْ بٰرَكْنَا | حَوْلَهٗ | لِنُرِيَهٗ |
|---|---|---|---|
| مسجداقصى ته | هغه چې بركت وركړې دې مونږ | چارچاپيره علاقې ته | دپاره دې چې مونږ اوښايو هغه نه |

مسجد اقصى (بيت المقدس) ته بوتلو چې دهغې ګيرچاپيره علاقه له مونږ بركتونه وركړې دى

| مِنْ اٰيٰتِنَا ؕ | اِنَّهٗ هُوَ | السَّمِيْعُ | الْبَصِيْرُ ① |
|---|---|---|---|
| څه نښې زمونږه | بيشكه هم هغه | ښه اوريدونكي | ښه ليدونكي دې |

چې مونږ دهٔ ته خپلې نخښې نه اوښايو بيشكه الله ﷻ اوريدونكي اوليدونكي دې

**د سورت بني اسرائيل فضيلت:**صحيح بخارى كښې دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دې چه سورت بني اسرائيل سورت كهف او سورت مريم د ټولونه اولنى ټولونه بهتر اوډيرفضيلت سورتونه دى.([1])مسنداحمد كښې دى حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائ چه رسول الله ﷺ به نفلي روژې كله داسې يوبل پسې ساتلې چه مونږ به په خپل زړه كښې وئيل چه حضور ﷺ به دا ټوله مياشت په روژوكښې تيروى اوكله كله به ئې بالكل نه ساتلې چه مونږ به وئيل حضور ﷺ به دې مياشت كښې هډوروژې نه ساتى. د حضور ﷺ عادت مبارك ووچه هره شپه به ئې سورت بني اسرائيل اوسورت زمر لوستلو.([2])

**د معراج د آيت تفسير:**-الله ﷻ دخپل پاك ذات عزت عظمت خپل پاكوالي او قدرت بيانوى چه هغه په هرڅيز باندې قادر دې يعنى حضرت محمد ﷺ ئې د يوې شپې په څه حصه كښې د مكې مكرمه نه د بيت المقدس جمات پورې بوتلوچه د حضرت ابراهيم عليه السلام د زمانې نه د انبياءٴ كرامو مركز پاتې شوې وو. ددې دپاره ټول انبياء كرام عليهم السلام هم هلته حضور ﷺ ته راجمع كړې شو او حضور ﷺ هم هلته د هغوى په دې ځاۍ كښې امامت اوكړو چه دليل دې د دې خبرې چه حضور ﷺ امام اعظم او رئيس مقدم دې(صلوات الله وسلامه عليه وعليهم اجمعين) د دې جمات نه چاپيره مونږ بركت وركړې دې په ميوو ګلونو فصلونو اوباغونوسره.دا د دې د پاره چه زمونږاراده خپل دې محترم رسول ﷺ ته خپلې زبردستې نښې خودل وو كومې چه په دې شپه كښې هغوى اوكتلې. الله ﷻ د خپل بنديګانو مؤمنانو كافرانو يقين كونكو اومنكرانو ټولو خبرې اوريدونكې دې او ټولوته ګورى.هرسړى ته به هغه وركوى چه د كوم مستحق وى په دنياكښې هم او په آخرت كښې هم.

**دمعراج متعلق احاديث:**-د معراج متعلق ډير احاديث دى چه اوس بيانولې شى. په صحيح بخارى كښې دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دې چه د معراج په شپه كله چه د كعبة الله شريف نه حضور ﷺ اوبللې شو نو حضور ﷺ له درې فرښتې راغلې دې نه وړاندې چه هغوى ته وحى اوكړى.هغه وخت حضور ﷺ بيت الله

[1] صحيح بخارى كتاب التفسير سورة بنى اسرائيل باب نمبر ١ حديث:٤٧٠٨.
[2] ترمذى كتاب فضائل القرآن باب قراءة سورة بنى اسرائيل والزمر قبل النوم: ٢٩٢٠، مختصرًا وسنده حسن، احمد:١٨٩/٦، حاكم:٤٣٤/٢.

کښې اوده شوې وو. په دوی کښې يو تپوس اوکړو چه دا په دې ټولوکښې څوك دې؟ مينځ والا جواب ورکړو دې په دې ټولوکښې بهتردې. نود ټولونه آخر والا اووئيل چه بيا خودې بوځئ. په دغه شپه څو بيا هم دومره اوشو بيا حضورﷺ هغوی اونه ليدلې. په دويمه شپه بيا دا درېواړه راغلي هغه وخت حضورﷺ اوده وو. څو د حضورﷺ اوده کيدل به داسې وو چه سترګې به ئې اودې وې اوزړه به ئې بيداروو اود ټولوانبياء کرامو عليهم السلام خوب هم داسې وی. په دې شپه هغوی حضورﷺ سره هيڅ خبره اونه کړه.حضورﷺ ئې اوچت کړو اود زمزم کوهی سره ئې سملولو اودهغه سينه ئې ترمرئی پورې پخپله جبرائيل ﷺپخپل لاس سره اوخيرله اودسينې اوخيتې نه ټول څيزونه راوويستل اوهغه ئې پخپل لاس دزمزم په اوبوسره اووينځل کله چه ئې ښه پاك صفاکړل نوهغوی له يودسروزروپليټ راوړلې شو په کوم کښې چه د سرو زرو يوه پيالې وه چه د حکمت او ايمان نه ډکه وه. د دې نه ئې د حضورﷺ سينه اود مرئی رګونه ټول ډك کړل. بيائې سينه ورله اوګنډله. بيائې د دنيا آسمان ته اوخيژولودهغه ځائ دروازوکښې ئې يوه دروازه اوټکوله فرښتو تپوس اوکړوڅوك دی؟هغوی اوفرمائيل جبرائيل. تپوس اوشو چه تاسره څوك دې؟ وئې فرمائيل ماسره محمدﷺ دې. تپوس اوکړې شوچه تاسو رابللې شوی ئې؟جواب ملاوشو اوټول ډيرخوشحاله شواوپه مرحباسره ئې خپل خان سره بوتلو.آسمانی ملائکو ته هم پته نه لګی چه په زمکه باندې الله ﷻ څه کول غواړی ترکومې چه هغوی ته اونه خودلې شي. حضورﷺ د دنيا په آسمان باندې حضرت آدم ﷺ اوليدلو. جبرائيل ﷺ د هغوی پيژندګلواوکړه چه دا ستا پلار (حضرت آدم ﷺ) دې سلام اوکړه. حضورﷺ سلام اوکړو حضرت آدم ﷺ جواب ورکړو هرکلې ورته اووئيل اووئې فرمائيل چه ته زما ډير ښه ځوئ ئې. هلته ئې دوه روان نهرونه اوکتل نو حضورﷺ د جبرائيل ﷺ نه تپوس اوکړو چه دا نهرونه څرته دی؟هغه جواب ورکړو چه ددرياب نيل او فرات عنصر دې.بيا ئې هغوی آسمان کښې بوتلل حضور ﷺيو بل نهر اوليدلو په کوم چه لوئ لوئ اود مرغلرو بالاخانې وې د کوم خاوره چه خالص مشك ووتپوس ئې اوکړو دا کوم يونهردې؟ وئې وئيل دا نهر کوثردې دا پروردګار ستاسو د پاره تيارکړې دې. بيائې بل آسمان ته بوتلو د هغې ځائ فرښتو سره هم دغه خبرې اوشوې. بيائې دريم آسمان ته بوتلود هغه ځائ فرښتو سره هم دغه سوال جواب اوشو چه په اول آسمان او دويم آسمان باندې شوی وو. بيا هغوی څلورم آسمان ته بوتلې شو او هلته هم فرښتو دغه شان تپوس پوښتنه اوکړه اوجواب ورکړې شو. بيا پنځم آسمان ته بوتلې شو اوهم دا خبرې اوشوې واوريدلې شوې. بيا شپږم او بيا اووم آسمان ته بوتلې شو او هم دغه خبرې اترې اوشوې. په هرآسمان باندې د هغه ځائ انبياء کرامو سره ملاقاتونه اوشو د کومو نومونه چه حضورﷺ واخستل په هغې کښې ماته دا ياد دی. په دويم آسمان کښې حضرت ادريس ﷺ څلورم آسمان کښې حضرت هارون ﷺ د پنځم والا نوم ماته ياد نه دې په شپږم باندې حضرت ابراهيم ﷺ او په اووم باندې حضرت موسی کليم الله ﷺ (عليه وعلى سائر الانبياء صلوات الله وسلامه) کله چه حضورﷺ ددې ځائ نه هم اوچت لاړونوحضرت موسی ﷺ اووئيل ياالله زماخودا خيال وو چه زمانه به بل څوك نه اوچتوې.اوس هغوی ﷺ هغه اوچتوالي ته لاړل دکوم علم چه صرف يو الله ﷻ ته دې ترڅو چه سدرة المنتهی ته اورسيدلو اوالله ﷻ حضورﷺ سره ډير نيزدې شو په اندازه د دوو کمانونو (ليندو) بلکه د دې نه هم کمه فاصله باندې. بيا د الله ﷻ د طرف نه حضورﷺ طرف ته وحی اوکړې شوه په کومه چه د حضورﷺ په امت باندې په هره ورځ او شپه کښې پنځوس مونځونه فرض کړې شو. کله چه حضورﷺ د هغه ځائ نه راکوز شو نو حضرت موسی ﷺ تپوس اوکړو چه څه حکم ملاوشو؟ وئې فرمائيل په شپه ورځ کښې پنځوس مونځونه. کليم الله ﷺ اوفرمائيل چه داستاد امت دطاقت نه بهر دی تاسو واپس لاړشئ او د کمې غوښتنه اوکړئ. حضورﷺ د حضرت جبرائيل ﷺ طرف ته اوکتل لکه چه مشوره اخلی د هغه اشاره هم ورته ملاوشوه که ستاسو

مرضی وی نو هیڅ بدی په کښې نشته. حضورﷺ بیا الله ﷻ له لاړو او په خپل ځایٔ اودریدو او دعائی اوکړه یاالله مونږ ته کمې راکړه زما امت د دې طاقت نه لری. الله ﷻ لس مونځونه کم کړل. واپس راغلو حضرت موسی ؑ بیا راحصارکړو اودې اوریدو سره ئی اوفرمائیل چه لاړشه او نور هم کم کړه. بیا لاړو او بیائی کم کړل تردې چه دا پنځه مونځونه پاتې شو. حضرت موسی ؑ اوفرمائیل چه ګوره ما په بنی اسرائیلوکښې وخت تیرکړې دې راغلې یم د دې نه هم د کمو حکم وو خوبیا هم هغوی بې طاقته ثابت شو او هغه ئی پریخودل. ستاسو امت خود هغوی نه هم کمزورې دې د بدن په اعتبارسره هم اود زړه غوږونو سترګو په اعتبارسره هم تاسو بیالاړشئ او ددې کمې اوغواړئی حضوربیا حضرت جبرائیل ؑ ته اوکتل نو هغوی بیا پورته بوتلو. حضورﷺ الله ﷻ ته عرض اوکړو چه یاالله زما امت په بدن زړه غوږونو اوسترګو کمزورې دې مونږ سره نور هم کمې اوکړه هم دغه وخت الله ﷻ اوفرمائیل اې محمد! هغوی جواب ورکړو لبیك وسعدیك. ونی فرمائیل واوره زما خبرې بدلیږی نه کوم چه ما اوس مقرر کړې دی داما په ام الکتاب کښې لیکلې دی.داپنځه دی داداکولو په اعتبارسره او پنځوس دی د ثواب په اعتبارسره. کله چه حضورﷺ واپس شونوحضرت موسی ؑ تپوس اوکړوسوال منظورشو؟ حضورﷺ اوفرمائیل او کمې اوشو یعنی په پنځو باندې د پنځوسو ثواب ملاوشو. د هرې نیکئی ثواب لس چنده ثواب راکړې کیدو وعده اوکړې شوه حضرت موسی ؑ بیا اوفرمائیل چه ما د بنی اسرائیلو تجربه کړې ده هغوی د دې نه هم کم احکام پریخودې وو تاسو بیا لاړشئی اود پروردګار نه کمې اوغواړئی رسول الله ﷺ جواب ورکړو اې کلیم الله ؑ زه لاړم راغلم اوس خوماته شرم شان ښکاری هغوی اوفرمائیل چه ښه ده اوس تشریف یوسه. بسم الله اوکړه. اوس چه کله حضورﷺ رابیدار شو نو هغوی په مسجدالحرام کښې وو.په صحیح بخاری کښې داحدیث په کتاب التوحیدکښې هم دې اوپه صفة النبیﷺ کښې هم دې[1]هم داروایت د شریك بن عبدالله بن ابونمرنه نقل دې خو هغه اضطراب کړې دې د خپلې حافظې د کمزورئی په وجه بالکل ټیك ضبط ئی نه دې ساتلې. د دې احادیثو په آخره کښې به د دې بیان ان شاء الله راشی.بعضې ددې واقعه ښه بیان کوی کیدې شی ددې جمله په وجه کومه چه د دې په آخره کښې ده. والله اعلم.

**آیاحضورﷺ معراج په شپه الله ﷻ اوکتلو؟**:-حافظ ابوبکربیهقی رحمه الله د دې حدیث دا جمله چه کومه کښې دی بیا الله ﷻ دومره نیزدې شو او راکوزشو اوپه اندازه د دووکمانونو یانور هم نیزدې شو. د شریك نومی راوی هغه زیاتې ښائی په کوم کښې چه هغه ځان له دې. د دې د پاره بعضې حضراتو ونیلې دی چه حضورﷺ په هغه شپه الله ﷻ اولیدلو. خو حضرت عائشه رضی الله عنها ابن مسعود رضی الله عنه او حضرت ابوهریره رضی الله عنه دا آیاتونه په دې باندې محمول کوی چه حضورﷺ حضرت جبرائیل ؑ اولیدلواو هم دا ډیر صحیح دی. اود امام بیهقی رحمه الله فرمان بالکل حق دې. بل روایت کښې دی چه کله د حضورﷺ نه حضرت ابوذر رضی الله عنه تپوس اوکړو چه تاسو الله ﷻ اولیدلو نوحضورﷺ اوفرمائیل هغه نور دې هغه زه څنګه لیدلې شم.بل روایت کښې دی چه مانوراوکتلو[2]کوم چه په سورت النجم کښې دې﴿ ثُمَّ دَنَا فَتَدَلَّىٰ ﴾ ([3])یعنی بیاهغه نیزدې شو اوراکوزشو دې نه مراد جبرائیل ؑ دې لکه څنګه چه د دې دریواړو صحابه کرامو رضی الله عنهم بیان دې. په صحابه کرامو کښې خو څوك هم د دې تفسیر د هغوی مخالف نه ښکاری.

**د معراج واقعه اود امام احمد رحمه الله نقل کړې شوې روایت**:-مسنداحمدکښې دی رسول الله ﷺ فرمائی ماله براق راوستلې شوچه دخرنه اوچت او قچر نه ټیټ وو اویویوقدم به ئی دومره لرې لرې کیخودلو څومره

---

[1]) صحیح بخاری کتاب التوحید باب ماجاء فی قوله تعالی (وکلم الله موسی تکلیما) :٧٥١٧، صحیح مسلم:١٥٢.

[2]) صحیح مسلم کتاب الایمان باب فی قولهؑ (نوراني اراه):١٧٨.

[3]) ٥٣/النجم:٨.

لرې چه به د هغه نظر رسیدلو.زه په هغه باندې سورشوم اولاړو. زه بیت المقدس ته لاړم او په هغه کښې
کښې مې اوتړلو په کومه کښې چه به انبیاء کرامو تړلو. بیا ما په جمات کښې دوه رکعته مونځ اداکړ
کله چه د هغه ځائ نه اووتلم نو حضرت جبرائیلؑ ماله یولوښی کښې شراب راوړل او په یوکښې پئ
راوړل.ماپئي خوښ کړل جبرائیلؑ اوفرمائیل چه ته فطرت ته اورسیدلې. بیا د پورتنی حدیث په شان
اول آسمان ته اورسیدلو د هغې کولاویدو د فرښتو معلومات کول جواب ورکول په هریوآسمان باندې
هم داسې اوشو. په اول آسمان باندې حضرت آدمؑ سره ملاقات اوشو هغه پخیرراغلې اوونیل او
دعائې خیرئې اوکړه. په دویم آسمان باندې دحضرت یحییؑ او حضرت عیسیؑ د ملاقات کیدو
ذکر اوشو چه دواړه په خپل مینځ کښې د ترور خامن وو. دې دواړو هم حضورﷺ ته پخیر راغلې اوونیل
اودخیر دعائی اوکړه.بیا په دریم آسمان باندې حضرت یوسفؑسره ملاقات اوشو چاته چه نیم حسن
ورکړې شوې وو هغوی هم پخیرراغلې اوونیل اودعائی اوکړه. په څلورم آسمان باندې حضرت ادریس
ؑ سره ملاقات اوشو دچا باره کښې چه د الله ﷻ فرمان دې﴿وَرَفَعْنٰهُ مَكَانًا عَلِيًّا﴾([1])مونږ هغه پورته ځائ
ته اوچت کړو.پنځم آسمان باندې حضرت هارونؑ سره ملاقات اوشو په شپږم آسمان باندې حضرت
موسیؑ سره ملاقات اوشو. په اووم آسمان باندې حضرت ابراهیمؑ بیت المعمور ته تکیه لګولې
ناست وو. بیت المعمور ته هره ورځ اویازره فرښتې راځی مګر چه نن کومې راشی د هغوی نمبر بیا نه
قیامت پورې نه راځی. بیا سدرة المنتهی ته اورسیدلو د کوم پاڼړې چه د هاتی د غوږونو برابرې وې
اود هغې میوې د منګی په شان. دا د الله ﷻ امر پټې کړې وې اود دې ښه والې څوك بیانولې نه شی.
بیا دوحی کیدو اودپنځوسو مونځونو فرض کیدو اودموسیؑپه مشوره سره واپس کیدل په کمی
کیدوکیدو سره دپنځو مونځونو پورې بیان دې. پدې کښې دهرځل په سوال باندې دپنځو مونځونو
کمې ذکردې.په دې کښې داهم دی چه په آخر کښې حضورﷺ اوفرمائیل چه څوك د نیکئی اراده اوکړی نو
که هغه دااونه کړې شی نوهم به ورته د یوې نیکئی ثواب ملاویږی.اوکه وئې کړی نود لسو نیکو ثواب به
ملاویږی اودګناه په صرف اراده به ګناه نه شی لیکلې اوبه کولوسره به یوه ګناه لیکلې کیږی([2]) (مسلم)

**څه رنګه چې اسرا حق دې دغه شان معراج همدې:**-د دې حدیث نه داهم معلومه شوه چه په کومه شپه
حضورﷺ ته اسراء دبیت الله نه بیت المقدس پورې اوشوه هم په هغه شپه معراج هم اوشواوهم داحق دی
په دې کښې هیڅ شك نشته. مسنداحمدکښې دی چه د براق واګې هم وې اوزین پرې هم وو. کله چه
هغه د سورلئ په وخت د قابونه بهرکیدلونو حضرت جبرائیلؑ اوونیل څه کوې والله په تاباندې د
حضورﷺنه ورلندې دهغوی نه زیات بزرګ سړې نه دې سورشوې.نو براق خولې خولې شو([3]) حضورﷺ
فرمائی چه کله زه خپل رب طرف ته اوخیژولې شوم نوزماتیریدل په داسې خلقو باندې اوشو د کوموچه
د تانبې نوکونه وو په کوموسره چه هغوی خپل مخونه اوسینې راشوکولې او غوسولې. ماتپوس اوکړو
داڅوك خلق دی؟ جواب راکړې شوداهغه خلق دی چه د خلقو غوښې به ئې خوړلې یعنی غیبت به ئې
کولو اود هغوی عزت پسې به لګیدلې وو. ([4])

**د معراج واقعه اود ابوداؤد نقل کړې شوې روایت:**-ابوداؤدکښې دی چه د معراج په شپه کله زه د حضرت
موسیؑ قبرسره تیرشوم نو هغه ماهلته په مانځه ولاړ اولیدو.([5])حضرت ابوبکرصدیقؓ د حضورﷺ

---

[1]) ١٩/مریم:٥٧.

[2]) صحیح مسلم کتاب الایمان باب الاسراء برسول الله ﷺالی السموات وفرض الصلوات:١٦٢، احمد:١٤٨/٣.

[3]) ترمذی کتاب تفسیرالقرآن باب ومن سورة بنی اسرائیل:٣١٣١، و احمد:١٦٤/٣، ابن حبان:٤٦، دلائل النبوة: ٣٦٢/٢.

[4]) ابوداؤد کتاب الادب باب فی الغیبة:٤٨٧٨ وسنده حسن، احمد:٢٢٤/٣.

[5]) صحیح مسلم کتاب الفضائل باب من فضائل موسیؑ:٢٣٧٥، احمد:١٢٠/٣، ابن حبان:٤٩.

نه د مسجد اقصی دننبوتپوس اوکړونو حضورﷺ خودل شروع کړلې چه صدیق اکبرؓ اوویل تاسو تیك ارشاد اوفرمائیلو او رښتونې نې.زما گواهي ده چه ته رسول الله ﷺ نې.حضرت ابوبکرؓ دا لیدلې وو([1])مسندبزارکښې دی چه حضورﷺ ارشادفرمائیلې دې زه اوده ووم چه حضرت جبرائیلؑ راغلو او زمادداوږو اوږوپه مینځ کښې ئې لاس کیخودونوزه اودریدم په یوه ونه کښې کیناستم په کوموکښې چه دمرغو کورونه شان ووېوه کښې حضرت جبرائیلؑ کیناستواوهغه ونه گل شوه او اوچته شوه اودتردې چه که ما غوښتلې نو آسمان سره لگیدلم. خپل څادر مې تیك کړلو خوما اوکتل چه حضرت جبرائیلؑ دسختې تواضع او عاجزئې په حال کښې دې نو زه پوهه شوم چه د الله ﷻ د معرفت په علم کښې دې مانه غوره دې.د آسمان یوه دروازه زماد پاره کولاوکړې شوه. مایوزبردست او عظیم الشان نوراوکتلوچه په پرده کښې وود هغې دې طرف ته یاقوت اومرغلرې وې بیازماطرفته ډېر څه وحی کړې شو. دلائل بیهقی کښې دی چه حضورﷺ د خپل صحابه کرامو په ډله کښې ناست وو چه کله جبرائیلؑ راغلو اودحضورﷺ ته په شاباندې په گوته اشاره اوکړه.حضورﷺ هغه سره د یوې ونې طرف ته روان شو په کومه کښې چه د مرغو په شان جالې وې الخ. په دې کښې داهم دی چه کله زمونږ طرف ته نور راکوز شو نو حضرت جبرائیلؑ خو بې هوشه شو راپریوتلو الخ. بیازما طرف ته وحی اوکړې شوه چه نبی اوبادشاه جوړیدل غواړې که نبی او بنده کیدل غواړې او جنتې؟ حضرت جبرائیلؑ دغه شان په تواضع سره پریوتوکښې په اشاره سره ماته اوفرمائیل چه عاجزی اختیارکړه. نو ماعرض اوکړو یاالله نبی اوبنده جوړیدل منظورکوم.که دا روایت صحیح شي نو ممکن دی چه دا واقعه د معراج علاوه بله وی ځکه چه په دې کښې نه د بیت المقدس ذکر دې اونه په آسمان باندې د ختلو. والله اعلم.

**د ابن جریر روایت**:-د بزار په یوروایت کښې دی چه حضورﷺ خپل رب اولیدلوخودا روایت غریب دې. ابن جریرکښې دی براق چه کله د حضرت جبرائیلؑ آواز واوریدو او بیاهغه دې سور کړو روان شونو هغه د لارې په یوه غاړه باندې یوه بوډئې اولیدله تپوس ئې اوکړو داڅوك ده؟ جواب ملاو شو چه زه نو بیا په تلوتلوکښې اوکتل چه څوك په لار باندې دې اوهغوی رابلې بیا هغه وړاندې شو نو چه ونې کتل چه د الله ﷻ یومخلوق دې چه په اوچت آوازسره وائی ﴿السلام علیك یااول السلام علیك یااخر السلام علیك یاحاشر﴾جبرائیلؑ اوفرمائیل جواب ورکړه حضورﷺدهغوی دسلام جواب ورکړو بیاپه دویم ځل داسې اوشوبیا په دریم ځل داسې ارشوتردې چه حضورﷺ بیت المقدس ته اورسیدل. هلته د هغوی په وړاندې شراب اوبه اوپې پیش کړې شو. حضورﷺ پئې واخستل جبرائیلؑ اوویل تاد فطرت راز بیاموندلو. که چرې ځاسو د اوبولوښې اخستې وو اوځکلې مو وې نو ستاسوامت به غرقیدو اوکه تاسو شراب ځکلې وې نوستاسو امت به دهوکه کیدو.بیا دحضورﷺ دپاره دحضرت آدمؑ نه واخله ترهغوی پورې چه څومره انبیاء دی راولیگلې شو. رسول الله ﷺ د هغوی امامت اوکړو او په دغه شپه ټولو مونځ د حضورﷺ په اقتداء کښې اداکړو. بیا حضرت جبرائیلؑ اوفرمائیل د لارې په غاړه چه کومه بوډئې تاسو اولیدله هغه ئې درته صرف دا خودل چه د دنیاعمر اوس دومره پاتې دې لکه چه د دې بوډئې عمر اودچا په آواز چه تاسو توجوکوله هغه د الله ﷻ دښمن ابلیس وو اود چا د سلام آوازونه چه تاسو اوریدل هغه ابراهیمؑ موسیؑ اوعیسیؑ وو([2])په دې کښې هم په بعضې الفاظوکښې غرابت اونکارت دې. والله اعلم.

**د یوبل روایت ذکر**:-یوبل روایت کښې دی چه کله زه په براق باندې د حضرت جبرائیلؑ په ملگرتیا کښې لاړم نو یوځائې کښې هغه ماته اوفرمائیل دلته کوز شه مونځ اداکړه. کله چه ما مونځ اوکړو نو

---

[1]) ابویعلی:٤٠٨٤، وسنده صحیح.

[2]) بیهقي ف الدلائل:٢/٣٦٢.

وني فرمائيل چه تاسو ته معلومه ده چه داكوم ځاۍ دې؟داطيبه يعنى مدينه ده. هم دغه ځاۍ د هجرت ځاۍ دې او بيائى په مايوبل ځاۍ مونځ اوكړو وني فرمائيل دا طورسينا ده كوم ځاۍ چه الله ﷻ حضرت موسى ﷺ سره خبرې كړې وې بيائى رابانديې يوبل ځاۍ مونځ اوكړو وني فرمائيل دا بيت اللحم دې كوم ځاۍ چه حضرت عيسى ﷺ پيداشوې وې وو.بيا زه بيت المقدس ته اورسيدم هلته ټول انبياء كرام راجمع شو حضرت جبرائيل ﷺ زه امام جوړكړم. مادهغوى امامت اوكړوبيائى زه د آسمان طرف ته اوخيژولم بيا هلته د هغوى يويو آسمان ته رسيدل اودهلته دپيغمبرانو سره ملاقات ذكر دې. فرماني چه كله زه سدرة المنتهى ته اورسيدم نو زه يونورانى اُوريځې راپټ كړم زه هم هغه وخت په سجده كنبې پريوتلم. بيا په هغوى باندې د پنځوسو مونځونو فرض كيدل اود هغې كميدلو وغيره بيان دې. په آخره كنبې دموسى ﷺ په بيان كنبې دى چه زما په امت خو صرف دوه مونځونه فرض كړې شوې وو خو هغوى دا هم پوره نه كړل. بيا هغوى د پنځونه هم د كمولو د پاره تلې ووم نو اوفرمائيلې شو چه ما خود زمكې او آسمان د پيداكيدو په ورځ په تابانديې اوستا په امت باندې دا پنځه مونځونه فرض كړې وو.داپه لوستلو كنبې پنځه او په ثواب كنبې پنځوس دى نوته او ستا امت د دې حفاظت كوه. هغوى فرمائيل چه اوس زما يقين اوشو چه د الله ﷻ هم دا آخرى حكم دې. بيا چه كله زه حضرت موسى ﷺ له راغلم نو هغوى ماته بيا د واپس كيدو مشوره اوكړه خوما معلومه كړې وه چه داد الله ﷻ آخرى حكم دې په دې وجه الله ﷻ له لاړ نه شوم.([1])

**د ابن ابى حاتم روايت** :-ابن ابى حاتم كنبې هم د معراج د واقعه يو اوږدحديث دې په دې كنبې داهم دى كله چه حضورﷺ د بيت المقدس د هغه جمات دروازې ته اورسيدو كوم ته چه باب محمدﷺ وائى هلته يوكانړې وو هغې له حضرت جبرائيل ﷺ گوته يوړه په هغې كنبې سورې اوشونوهغوى هلته براق اوتړلو او جمات ته وراوختل. كله چه مينځ ته اورسيدل نو حضرت جبرائيلﷺ حضورﷺ ته اوونيل چه تاد الله ﷻ نه دا غوښتنه كړې وه چه تاته حورې اوښائى؟ حضورﷺ اوفرمائيل چه او. راځئى هغه دادى سلام اوكړئى د صخره گس طرف ته ناستې دى. زه چه هلته اورسيدم نو هغوى ته مې سلام اوكړو ټولو زما د سلام جواب راكړو.ماتپوس اوكړو تاسو ټولې څوك ئى؟ هغوى وئيل مونږ نيك سيرت او ښائسته حورې يومونږ ببيبانې يود الله ﷻ د هغه پرهيزگارانو بنديگانو كوم چه نيك عملونه كوى.كوم چه د گناهونو د خيروميروند لرې دى اوچه پاكولې به شى اومونږ له به راوستلې شى بيابه نه شى ويستلې هم مونږ سره به وى هيڅ كله به نه جدا كيږى او هميشه به ژوندى وى كله به مړه كيږى نه.زه د هغوى نه لاړم هلته خلق راجمع كيدل شروع شو په لږ ساعت كنبې د ډيرو سړو يوه گڼره جوړه شوه. مؤذن اذان اوكړو تكبيراوشو مونږ ټول اودريدو په انتظار ووچه امامت به څوك كوى حضرت جبرائيلﷺ زما لاس اونيولو او زه نى وړاندې كړم. ما هغوى ته مونځ اوكړوچه كله فارغ شو نو حضرت جبرائيلﷺ اوونيل پوهيږې هم چه تا مونځ وركړو؟ وني فرمائيل تا پسې ستا ټول مقتديان د الله ﷻ پيغمبران وو كوم چه الله ﷻ مبعوث كړى دى بيائى زما لاس اونيولو اوآسمان طرف ته نى بوتلم.بيابيان دې چه د آسمانونو دروازې كولاوشوې.فرښتوسره د سوال جواب كولونه دروازې وغيره كولاوشوې. په اول آسمان باندې حضرت آدم ﷺ سره ملاقات اوشو هغوى اوفرمائيل زما ځوئ او نيك نبى ته پخيرراغلې. په دې كنبې په څلورم آسمان باندې دحضرت ادريس ﷺ سره دملاقات ذكرهم دې. په اووم آسمان باندې د حضرت ابراهيم ﷺ سره د ملاويدلو اود هغوى هم دغه فرمائيلوذكر دى كوم چه حضرت آدم ﷺ فرمائيلې وو. بيا د هغه ځاۍ نه هم زه اوچت بوتلې شوم. ما يونهراوليدو په كوم كنبې چه د لولو ياقوتو او زبرجدو جامونه وو اوښكلې مزيدار شين رنگې مرغئى وې ما وئيل چه داخوډيرې ښكلې مرغئى دى جبرائيل

[1] نسائي كتاب الصلاة باب فرض الصلاة وذكراختلاف الناقلين....٤٥١ وسنده حسن.

ﷺاوفرمائيل چه اوددې خوړونكى ددې نه هم ښه دى.بيا فرمائى معلومه هم ده چه دا كوم يو نهردې؟ ماوئيل نه نو وئى فرمائيل چه دا نهر كوثر دې چه الله ﷻ تاسو ته در كړې دې. په دې كښې د سرو زرو اوسپينو زرو لوټې وې په كومو چه ياقوت او زمرد وريللي شوى وو د دې اوبه د پئيو نه زياتې سپينې وې ما د سروزرو يوه پيالئى راواخستى داوبه نه مې ډكه كړه اومې څكله نوهغه دشاتونه هم زياتې خوږې وې اودمشكونه هم زياتې خوشبودارې وې. كله چه زه د دې نه هم اوچت لاړم نو يوښكلي رنګ اوريخ زه راګيركړم په كوم كښې چه مختلف رنګونه ووجبرائيل ﷺ خوزه پريخودم او زه الله ﷻ ته په سجده شوم.بيادپنځوسومونځونو بيان دې بياهغوى واپس شو.حضرت ابراهيم ﷺخو هيڅ اونه فرمائيل خو موسى ﷺ حضورﷺ يوه راپوه كړو اودكمې د غوښتودپاره ئى بيااوليګلو. غرض دا چه هم دغه شان د حضورﷺ باربارراتلل په اوريخ كښې پټيدل دعاغوښتل اوكمې كيدل.دحضرت ابراهيم ﷺ سره ملاويدل اوحضرت موسى ﷺ ته بيان كول اوتردې چه د پنځو مونځونو پاتې كيدلو بيان وغيره دې. حضورﷺ فرمائى چه جبرائيل ﷺ زه لاندې راكوز كړم نو ما هغه ته تپوس اوكړو چه كوم آسمان ته زه اورسيدم نود هغه ځائ فرښتو خوشحالى ښكاره كړه او په خنداخندا اومسكا ماسره ملاوشوې بغيرد يوې فرښتې چه هغې زماد سلام جواب خو راكړو ماته ئى پخير راغلې هم اووئيل خو مسكې نه شو دا څوك وو اود دې څه وجه ده؟جبرائيل ﷺ اووئيل هغه مالك دې د دوزخ داروغه دې د خپل پيداكيدونه تر ننه پورې هغه هډو خندلي نه دى اود قيامت پورې به خاندى هم نه څكه چه د هغه د خوشحالئى هم دايوه موقعه وه.په واپسئ كښې دقريشويوه قافله اوليدله چه غله ئى راباركړې وه روان وو.په هغې كښې يواوښ وو چه په هغه باندې نيم سپين اونيم توربوريا ووكله چه هغوى دې سره نيزدې تيرشونوهغه اوبرقيدو او واپس شوپريوتلواوګوډشو.حضورﷺدغه شان خپل ځائ ته اورسولې شو.

**ابو بكرصديق ﷺ ته دصديق ولې وئيلې كيږي؟:**-سحرحضورﷺخپل دمعراج داذكرخلقوته اوكړو. مشركانو چه داواوريده نو نيغ حضرت ابوبكر صديق ﷺ ته لاړل او وئې وئيل چه ستاسو پيغمبر صاحب خو وائى چه هغه هم په نن يوه شپه كښې د يوې مياشتې برابر د فاصلې مقام ته تلې اوواپس راغلې دې. صديق اكبرﷺ جواب وركړو كه په حقيقت كښې دا هغوى فرمائيلې وى نوهغوى رښتونى دى مونږ خود دې نه هم په لويه خبره كښې هغوى رښتونې ګڼړو مونږ دا منو چه هغوى له د آسمان نه په يوساعت كښې خبرې رارسى. مشركانو حضورﷺ ته اووئيل چه ته د خپل صداقت څه نښه هم پيش كولې شې؟ حضورﷺ اوفرمائيل چه او ما په فلانكى فلانكى ځائ كښې د قريشو قافله ليدلې ده په هغې يو اوښ چه په هغې باندې په سپين او تور رنګ كښې دوه بورې دى هغه مونږ ته اوكتل وران شو چكر ئى اوخوړلو او راپريوتلو اوبينه ئى ماته شوه. كله چه هغه قافله راغله نو دې خلقو ترې تپوس اوكړو چه په لاركښې خو څه نوې واقعه نه ده پيښه شوې؟ هغوى وئيل چه او پيښه شوې ده فلانكې اوښ په فلانكى ځائ كښې داسې راپريوتلې وو وغيره. وئيلې شى چه د حضرت ابوبكرﷺ په دې تصديق باندې هغوى ته صديق وئيلې شى بيا د حضورﷺ نه خلقو سوالونه كول چه تاحضرت عيسى ﷺ او حضرت موسى ﷺ سره هم ملاقات اوكړو د هغوى شكلونه خو بيان كړه. حضورﷺاوفرمائيل چه او موسى ﷺ غنم رنګې دې لكه چه ازدعمان خلق دى اوحضرت عيسى ﷺ درميانه قد او سوريخن رنګې دې اوداسې معلوميدل چه د ويښتونه ئى اوبه څڅيدلې. په دې سياق كښې هم عجائب او غرائب دى.

**د معراج متعلق بل روايت:**-مسنداحمدكښې دى چه زه په حطيم كښې او بل روايت كښې دى په حجركښې اوده ووم چه يوراتلونكې راغلو. يو مينځ والا ته اووئيل نو هغه ماله راغلو اود دې ځائ نه نى د دې ځائ پورې اوڅيرلم يعنى د مرئى نه د نوم پورې . بياد دې پورته بيان كړې شوو احاديثو په شان بيان دې. په دې كښې دى چه په شپږم آسمان باندې ما حضرت موسى ﷺ سره سلام اوكړې شو

هغه جواب اوکړو نیك رور او نیك نبی ته دې هرکلي وی کله چه زه دهغه نه وړاندې شوم نو هغه په ژړا شو ما د هغه نه تپوس اوکړو څنګه دې اوژړل؟ جواب ملاو شو چه ماشوم زما نه پس نبی جوړ کړې شو اولیګلې شودهغه امت به زمادامت په نسبت جنت ته په ډیر تعدادکښې خی. په دې کښې دی چه سدرة المنتهی سره ئی څلور نهرونه اولیدل دوه ښکاره او دوه پټ. ما د جبرائیل ﷺ نه تپوس اوکړو نوهغوی اوفرمائیل چه دا دوه پټ دجنت نهرونه دی او ښکاره د نیل او فرات دی. بیا زما طرف ته بیت المعمور اوچت کړې شو بیامالته دشرابوپیالو اوشاتولوښې راوړلې شو.مادپیالوښې واخستلو اوفرمائیلې شودافطرت دې په کوم باندې چه ته ئی اوستا امت دې. په دې کښې دی چه کله پنځه مونځونه پاتې شو او بیا هم کلیم الله ﷺ د واپس کیدو مشوره ورکړه نوحضورﷺ اوفرمائیل چه زه خو د خپل رب نه په سوال کولوکولو شرمیږم اوس زه راضی یم او دا تسلیم کوم.[1]

**د یوبل روایت ذکر:** بل روایت کښې دی چه زما د کورچت کولاوکړې شو زه هغه وخت په مکه کښې وم الخ. په دې کښې دی چه زه کله جبرائیلﷺ سره د دنیا آسمان ته اوختلم نو ما اوکتل چه یوصاحب ناست دې د چانه ښی طرف او ګس طرف ته چه ډیره ګڼره ده اوچه ښی طرف ته اوګوری نو مسکې شی اوخاندی اوچه کله ګس طرف ته سترګې اوچتې کړی نو ژاړی. ماد حضرت جبرائیل ﷺ نه تپوس اوکړوچه دا څوك دې؟ اود هغه ښی اوګس طرف ته څوك دی. وئی فرمائیل آدم ﷺ دې اودا د ده اولاد دې. د ښی طرف والا جنتیان اود ګس طرف والا دوزخیان دی هغوی چه اووینی نو خوشحاله شی اودوی چه اوګوری نو خفه شی. په دې روایت کښې دی چه په شپږم آسمان باندې حضرت ابراهیم ﷺ سره ملاقات اوشو. هم په دې کښې دی چه اووم آسمان نه نور اوچت اورسولې شوم. مستوی ته چه اورسیدم نو ما د قلمونو د لیکلوآواز واوریدو. په دې کښې دی چه زه کله موسی ﷺ سره د مشورې نه پس د کمې د پاره لاړم نو الله ﷻ نیم معاف کړل بیالاړم بیانیم معاف شو بیالاړم نو پنځه مقرر کړې شو. په دې کښې دی چه د سدرة المنتهی نه جنت ته اورسولې شوم چرته چه د ریښتیانود مرغلرو خیمې وې د کوم ځائې خاوره چه خالص مشك وو. دا پوره حدیث د صحیح بخاری کتاب الصلوة کښې دی او نور ذکر بنی اسرائیل کښې هم دې نوربیان حج کښې او نوراحادیث په سورت انبیاء کښې هم دی. امام مسلم ﷫ په صحیح مسلم کتاب الایمان کښې هم وارد کړی دی[2] مسنداحمدکښې دی حضرت عبدالله بن شقیق ﷫ حضرت ابوذر ﷜ ته اووئیل که مارسول الله ﷺ لیدلې وې نوکم نه کم یوه خبره خو به مې ترې ضرورتپوس کوله.هغوی تپوس اوکړوچه کوم خبره؟وئیل چه هم دا چه تاسو الله ﷻ اولیدلو؟ نو حضرت ابوذر ﷜ اوفرمائیل چه داخوماتپوس کړې دې حضورﷺ جواب راکړو چه مادهغه نور اولیدلوزه هغه څنګه لیدلې شم؟[3] یوبل روایت کښې دی چه هغه نور دې زه هغه دکوم ځائې نه لیدلې شم؟ په یوروایت کښې دی چه ما نور اوکتلو.[4]

**مشرکانود معراج د واقعه تصدیق اونه کړو:** بخاری اومسلم شریف کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائی کله چه مادمعراج دواقعه خلقوته ذکراوکړو اوقریشو زما تکذیب اوکړو هغه وخت زه په حطیم کښې ولاړوم الله ﷻ بیت المقدس زما د سترګو په وړاندې راوستلو اوهغه ئی بالکل ښکاره کړو. اوس چه هغوی زما نه دکومو نښو تپوسونه کول ما به ورته کتل او خودل به مې.[5] بیهقی کښې دی چه په بیت

---

[1] صحیح بخاری کتاب بدء الخلق باب ذکر الملائکة صلوات الله علیهم:٣٢٠٧، صحیح مسلم:١٦٤،احمد:٢٠٨/٤، ابن حبان:٤٨.

[2] صحیح بخاری کتاب الصلاة باب کیف فرضت الصلاة فی الاسراء:٣٤٩- ٣٣٤٢، صحیح مسلم ١٦٣.

[3] احمد:١٤٧/٥، ابوعوانه:٣٨٤، ورواه مسلم:١٧٨ وهوصحیح.

[4] صحیح مسلم کتاب الایمان باب فی قوله ﷺ((نوراني أراه))، احمد:١٧١/٥.

[5] صحیح بخاری کتاب مناقب الانصار باب حدیث الاسراء:٣٨٨٦، صحیح مسلم:٤١٧٠.

المقدس کښې حضور ﷺ حضرت ابراهیم علیه السلام سره حضرت موسی علیه السلام اوحضرت عیسی علیه السلام سره ملاقات اوکړو.پدې کښې دی چه کله واپس شو او خلقو ته ئې دا قصه بیانوله نو ډیر خلق په فتنه کښې پریوتل چاچه هغوی سره مونځ کړې وو د کفارو او قریشودلې خو هم هغه وخت منډې جوړې کړې اوتختیدل اوحضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه له اورسیدل او وئې وئیل چه راشه کنه نن خو ستا ملګرې یو عجیبه خبر اوروي وائي چه هم په یوه شپه کښې هغه بیت المقدس ته رسیدلې اوراغلې هم دې هغوی اوفرمائیل چه داحضور ﷺ فرمائي نو رښتیادي واقعي به داسې شوې وي. هغوی وئیل چه ښه ده ته دا هم منې چه دشپې لاړو اودسرح نه وړاندې دشام دملك نه واپس مکې ته راورسیدو.هغه اوفرمائیل چه د دې نه هم زیات لويه خبره زه د هغه د دې نه مخکې هم منونکې راروان یم یعني زه دا منم چه هغه له دآسمان خبر راځي اوهغه په دې ټولوکښې رښتونې دې.هم دهغه وخت نه دهغوی لقب حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه شو.

**د امام احمد رحمه الله یونقل کړې شوې بل روایت**:-مسنداحمد کښې حضرت زر بن حبیش رحمه الله فرمائي چه زه حضرت حذیفه رضی الله عنه له راغلم هغه وخت هغوی د معراج واقعه بیانوله چه حضور ﷺ فرمائیلي مونږ لاړو تر دې چه بیت المقدس ته اورسیدو. دواړه صاحبان دننه لاړنه شو. ما دې اوریدو سره اووئیل غلط دی رسول الله ﷺ دننه لاړو بلکه په هغه شپه هغوی هلته مونځ هم اوکړو. هغه وئیل ستا څه نوم دې تاخو زه پیژنم خو نوم دې راته یاد نه دې. ما وئیل زما نوم زربن حبیش دې وئې فرمائیل تا داخبره څنګه معلومه کړه؟ ماوئیل چه داخود قرآن پاك خبر دې وئې فرمائیل چه چاد قرآن نه خبره اوکړه هغه خلاصې بیاموندلواولوله کوم یوآیت دې ﴿سُبْحٰنَ الَّذِیٓ﴾ دا آیت ئې اولوستلو. وئې فرمائیل چه په دې کښې د کوم یولفظ دامعنی ده چه حضور ﷺ هلته مونځ اوکړو؟ ګنې حضور ﷺ هلته په هغه شپه مونځ نه دې کړې او که کړې وی نو په تاپسې به د هغه ځائ مونځ لیکلې کیږی څنګه چه د بیت الله دې. والله هغوی دواړه هم په براق باندې وو تردې چه د آسمان دروازې د هغوی د پاره کولاوشوې نو جنت دوزخ ئې اولیدلو اود آخرت وعدې اوکړې او ټول څیزونه بیا هم هغه شان واپس شو. بیا هغوی ښه اوخندل او وئې فرمائیل چه د مزې خبره خودا ده چه داخلق وائي هلته هغوی براق اوتړلو چه چرته اونه تختي سره د دې چه الله جل جلاله عالم الغیب والشهادة هغه د دوی د پاره مسخرکړې وو. ما تپوس اوکړو چه جناب دا براق څه څیزدې؟وئې فرمائیل یوخناوردې داوږدقد چه یویوقدم دومره لرې ایږدی څومره لرې چه نظرکار کوی.(۱) خودایادساتئ چه صرف د حضرت حذیفه رضی الله عنه په انکارباندې هغه روایتونه کوم کښې چه د بیت المقدس د مونځ ثبوت دې هغه مقدم دی. والله اعلم.

**د دلائل النبوت اوادړ روایت**:-دحافظ ابوبکر بیهقي رحمه الله کتاب دلائل النبوة کښې دی چه یوځل د رسول الله ﷺ صحابه کرامو دحضور ﷺ نه دمعراج د واقعه ذکرکولودرخواست اوکړو نو حضور ﷺ خواول دا آیت ﴿سُبْحٰنَ الَّذِیٓ﴾ تلاوت کړو او وئې فرمائیل چه زه د ماسخوتن نه پس په جمات کښې اوده ووم چه یوراتلونکې راغلو زه ئې راپاسولم زه کیناستم خو څه مې اونه لیدل هلته څه خناور شان په نظر راغلو ما په غورسره هغې ته کتل او برابر کتلوسره د جمات نه بهر لاړم. مایو عجیبه خناور اولیدلوزمونږ په خناوروکښې خود هغې په شان قچر دې خوزیدونکې او پورته اوچتیدو سره د غوږونو والا وو د هغې نوم براق دې مانه وړاندې انبیاء کرام هم په دې سواره شوی دی. زه په دې باندې سوریدو سره تلم چه زما ښې طرف ته چا آواز اوکړو چه محمد ﷺ زما طرف ته اوګوره زه تانه څه تپوس کوم. خو مانه جواب ورکړواونه زه حصارشوم. بیا چه لږ شان نوروړاندې شوم نودګس طرفنه آواز راغلو هلته هم نه اودریدم

(۱) ترمذی کتاب تفسیرالقرآن باب ومن سورة بنی اسرائیل:۳۱۴۷، وسنده صحیح، احمد:۳۸۷/۵، حاکم:۳۵۹/۲، ابـن حبـان:٤٥ ، دلائـل النبوة: ۳٦٤/۳.

اونه مې اوکتل نه مې جواب ورکړو. بیا لږ نور وړاندې لاړم یوه ښځه چه د دنیا سنګارونې کړې زلفې کولاوکړې ولاړه ده هغې ماته هم داسې آواز راکړو چه زه څه معلومات کول غواړم. خو ما نه د هغې طرف ته توجه ورکړه او نه اودریدم.بیادحضورﷺ بیت المقدسته رسیدل دپېښیدلو پښې اخستل او د حضرت جبرائیل ﷺ په فرمان کولوسره خوشحالیدل دوه ځل تکبیرونیل دی بیاحضرت جبرائیل ﷺ تپوس اوکړو چه ستاسو په مخ دا پریشانی د څه ده؟ ماد لارې هغه دواړه واقعات بیان کړل نو هغوی اوفرمائیل چه رومبې سړې خو یهودی وو که تاسو هغه له جواب ورکړې وو یا حصارشوې وئې نو ستاسوامت به یهودیان شوی وو.بل دنصرانیانو دعوت ورکونکې وو که هلته تاسو ولاړونی اوهغه سره موخبرې کړې وې نوستاسو امت به نصرانی شوې وواوهغه ښځه چه وه نوهغه دنیا وه که تاسوهغې ته جواب ورکړې وو یا ولاړونې اوهغې سره مو خبرې کړې وې نو ستاسو امت به دنیاله په آخرت باندې ترجیح ورکوله اوګمراه کیدلو به. بیا زه اوحضرت جبرائیلﷺ بیت المقدس ته لاړو مونږ دواړو دوه رکعتونه اداکړل بیازمونږ مخې ته معراج راوړلې شو په کوم چه دبنیادمو روحونه خیژی. هم دې پاوړې ته په کتو باندې په حیرانتیاسره دواړه پورته اوختلو ماد اسماعیل نومې فرښتې سره ملاقات اوکړو چه ددنیاد آسمان سرداره ده. دکومې دلاس دتلې لاندې چه اویازره فرښتې دی هرې یوې فرښتې سره د هغې د لښکر فرښتو تعداد یولاکه دې. د الله ﷻ فرمان دې چه ستا درب لښکرې صرف هم هغه پیژنی.[1]حضرت جبرائیل ﷺ د آسمان دروازه کولاوول غوښتل نوتپوس اوکړې شو څوك ئې؟ ونیل جبرائیل.تپوس اوکړې شو تاسره نور څوك دی؟ ونیل حضرت محمدﷺ دې. ونیل آیاد ده طرف ته لیګلې شوې وې؟ جواب ورکړې شو او. هلته ما حضرت آدم ﷺ په هغه شکل کښې اولیدو کوم کښې چه په هغه ورځ وو په کومه ورځ چه الله ﷻ هغه پیداکړې وودهغه په اصلی شکل باندې. د هغه په وړاندې د هغه د اولاد روحونه پیش کولې شی د نیکانو خلقوروحونوته په کتو سره فرمانی پاك روح دې او پاك بدن دې دا علیین ته یوسئی. اود بدکارو روحونوته چه اوګوری نو فرمائی دا خبیث روح دې بدن هم خبیث دې دا سجین ته یوسئی. لګ شان به تلې ووم چه ما اوکتل خوانچې لګیدلې وې په هغې باندې ډیره ښکلې اومزیداره غوښه سره کړې پرته وه او بل طرف ته نورې خوانچې لګیدلې وې په کوموکښې چه سخا مرداره بوئی والا غوښه پرته وه.څه خلق وو چه د هغه ښکلې غوښې خواته هم نه راتلل اوهغه مرداره سخا غوښه ئې خوړله. ماتپوس اوکړو جبرائیل ﷺ دا کوم خلق دی وئې فرمائیل چه ستاسودامت هغه خلق دی چه حلال پریږدی او حراموته رغبت کوی. بیازه لږ شان نور لاړم نو څه نور خلق مې اولیدل د هغوی شوندې لکه د اوښ په شان دی اودهغوی خلې په شلولوشلولوسره فرښتې هغوی له د دغه غوښې نورنی ورکوی اودهغوی په دویمه لار واپس راوځی. هغوی چغې صورې وهی الله ﷻ ته عاجزی کوی ماتپوس اوکړو جبرائیلﷺ داکوم خلق دی؟ فرمائی چه داستاد امت هغه خلق دی چه دیتیمانو مالونه به ئې په ناحقه سره خوړل. کوم خلق چه د یتیمانو مالونه په ناحقه سره خوری هغوی په خپلو خیټو کښې اور اچوی اوهغوی به خامخا په سور کړې شوی اورکښې د دوزخ وراچولې شی.زه لږ شان نور لاړم اومې کتل چه څه ښځې دی چه دخپلو سینو ته زوړندې شوی دی او افسوس او ژړاګانې کوی. زما په تپوس کولوباندې جواب راکړې شو چه دا ستاد امت زناکارې ښځې دی.زه بیا نورلږ شان لرې لاړم اومې کتل چه دڅه خلقو خیټې دغټو غټو منګویه شان دی کله چه هغوی اوچتیدل غواړی نو راپریوځی او باربار وائی چه یاالله قیامت مه قایموې فرعونی څناورو باندې هغوی چقړی کولې شی د الله ﷻ په وړاندې فریاد او زاری کوی. ماتپوس اوکړو دا کوم خلق دی حضرت جبرائیل ﷺ اوفرمائیل دا ستاد امت هغه خلق دی چه سود به ئې خوړلو. سودخواره به د هغه خلقو په شان ولاړ

[1]) ٧٤/المدثر:٣١.

وی کوم چه شیطان لیونی کړی دی.زه لږ شان نور لړې لاړم اومې کتل چه څه خلق دی دهغوی د اړخونو نه غوښې پریکولې شی او هم په هغوی خوړلې شی اوورته ونیلې شی چه څنګه دې په ژوندون د خپل رور غوښه خوړله اوس هم خوره. ماتپوس اوکړو جبرائیلﷺ دا کوم خلق دی؟ ونی فرمائیل دا ستا د امت عیبونه لټونکی او فضول ګرځیدونکی خلق دی.بیامونږ دویم آسمان ته اوختلونو ما هلته یو ښکلې اوښانسته سړې اولیدلوچه په نوروښکلوخلقوباندې هغه اهمیت لری کوم فضیلت چه سپوږمئ ته په ستورو باندې دې.ما تپوس اوکړو جبرائیلﷺ دا کوم خلق دی ونی فرمائیل ستاسو رور حضرت یوسف ﷺ دې اوورسره دهغه د قوم څه خلق دی.ما هغوی ته سلام اوکړو هغوی جواب راکړو.بیا مونږ دریم آسمان ته اوختلوهغه موکولاوکړوحضرت یحیی ﷺ اوحضرت عیسی ﷺ مو اولیدلو هغوی سره د هغوی دقوم څه خلق ووما هغوی ته سلام اوکړو هغوی جواب راکړو.بیازه څلورم آسمان ته اوختلم هلته مې حضرت ادریس ﷺ اولیدلو څوك چه الله ﷻ اوچت مقام ته اوچت کړې دې. ما سلام اوکړو هغه جواب راکړو بیا پنځم آسمان ته اوختلم هلته هارون ﷺ وو دهغه نیمه ږیره سپینه وه او نیمه توره وه اوږیره اوږده ږیره نی وه نیزدې نیزدې تر نامه پورې وه ما د حضرت جبرائیل ﷺ نه تپوس اوکړو هغوی ونیل دا د خپل قوم د هر زړه خوښ حضرت هارون بن عمران ﷺ دې. ده سره د ده د قوم ډله ده. هغوی هم زما د سلام جواب راکړو.بیا زه شپږم آسمان ته اوختلم هلته زما موسی ﷺ سره ملاقات اوشوهغه غنم رنګې غوندې وو ویښته نی ډیر زیات وو که چرې دوه قمیصونه نی هم اغوستې وې نو ویښته به نی د هغه نه تیریدل. هغوی ونیل خلق خیال کوی چه زما د الله ﷻ سره ډیره لویه مرتبه ده حالانکه دې زما نه د لوئ مرتبې والادې. د جبرائیل ﷺ نه په معلوملو سره پته اولګیدله چه دا حضرت موسی بن عمران ﷺ دې. هغوی سره هم د خپل قوم خلق وو هغوی هم زما د سلام جواب راکړو. بیازه اووم آسمان ته اوختلم ما خپل پلارحضرت ابراهیم ﷺ خلیل الله خپله شا بیت المعمور ته لګولې ناست اولیدلو.هغه ډیرښکلې سړې دې.په تپوس کولو باندې ماته دهغه نوم معلوم شو. ما سلام اوکړو هغه جواب اوکړو ما خپل نیم امت اولیدلو د نیم خو سپینې بطناکې کپړې وې اود نیم سختې تورې کپړې وې. زه بیت المعمور ته لاړم. ما سره ټول سپینو کپړو والا لاړل اونور د چا چه خړې کپړې وې هغه ټول رامنع کړې شو هغوی هم په خیردی. بیا ټول هلته مونځ اداکړو او بیا ټول بهر راغلل.دې بیت المعمورکښې هره ورځ اویازره فرښتې مونځ کوی خوچه چا یوه ورځ مونځ اداکړو د هغې د قیامت پورې نمبر نه راځی. بیا زه سدرة المنتهی ته اوچت کړې شوم د هغې هره یوه پاڼړه دومره وه چه زما ټول امت پټولې شی. دې نه یو نهر روان وو د هغې نوم سلسبیل دې بیا د دې نه دوه چینې راوځی یونهر کوثر او بل نهر رحمت. ما په دې کښې غسل اوکړو زما ټول وړاندې روستوګناهونه معاف کړې شو.بیازه جنت طرفته اوخیژولې شوم هلته ما یوه حوره اولیدله د هغې نه مې تپوس اوکړو ته دچا نې؟هغې وئیل زه دحضرت زید بن حارثه ﷺ.ماهلته نه خرابیدونکی اوبو او خوند نه بدلونکی پئیو بې نشې خوندناك شراب اود صفاستراشاتو نهر اولیدلو.د هغې انار د لویو لویو ډولچو برابر وو.دهغې مرغئی ستاسود دې بختی اوښانو په شان وې. بې شکه الله ﷻ د خپل نیکانو بندیګانو د پاره هغه نعمتونه تیارکړی دی چه نه یوې سترګې لیدلی نه یوغوږ اوریدلی اونه د یو انسان په زړه کښې د هغې خیال پورې تیرشوې. بیا زما په وړاندې دوزخ پیش کړې شو چرته چه د الله ﷻ غضب اود الله ﷻ ناراضګی وه که په دې کښې کاڼړی او اوسپنه واچولې شی نو هغه به دا هم اوخوری. بیا زما د مخې نه هغه بندکړې شو. زه بیا سدرة المنتهی ته اورسولې شوم او زه نی پټ کرم نو زما اود هغه په مینځ کښې صرف د دوو کمانونو په اندازه یاد دې نه هم کمه فاصله پاتې شوه. د سدرة المنتهی په هره یوه پاڼړه باندې فرښته راغله اوپه ماباندې پنځوس مونځونه فرض کړې شو او اوفرمائیلې شوچه ستا دپاره دهرې نیکئی په عوض لس درجې ثواب دې. چه ته کله د یوې نیکئی اراده هم اوکړې او کړې دې

نه وی خو بیابه هم نیکی لیکلې شی. اوکه اودې کړه نو د یوې په کولو به لس نیکنی لیکلې کیږي. اود بدنی صرف په اراده کولو به بغیرد کولو هیڅ نه شی لیکلې اوکه اودې کړه نو صرف هم یوه بدی به شمیرلې کیږی.بیاحضرت موسی ﷺ له راتلل هغه سره د مشورې کولواودکمې کیدلوذکر دې لکه څنګه چه بیان تیرشو.آخرچه کله پنځه پاتې شو نوفرښتې آواز اوکړو چه زمافریضه پوره شوه ما په خپلو بندیګانو باندې کمې اوکړو اوهغوی له په هره یوه نیکئی باندې داسې لس بدلې دی. حضرت موسی ﷺ دې خل هم ماته د بیا تلومشوره راکړه نو دې خل ما اوونیل چه اوس خو ماته بیاورتلوکښې څه شرم غوندې ښکاری.بیاحضور ﷺ سحرددې عجائباتو په مکه کښې ذکر اوکړو چه زه په دې شپه کښې بیت المقدس ته لاړم اوآسمانونوته اوختم اودا مې اوکتل اودامې اوکتل.په دې باندې ابوجهل بن هشام اوونیل ګوره دتعجب خبرې ته چه مونږ خو اوښان په وهلو وهلو بیت المقدس ته پوره میاشت کښې رسو او پوره میاشت په واپس کیدو کښې لګی اودې وائی چه دپوره دوو میاشتو فاصله نې په یوه شپه کښې طې کړې راغلې.حضور ﷺ اوفرمائیل چه واورئ دتلو په وخت کښې ماستاسو قافله فلانکی ځایٔ کښې لیدلې وه اودراتلوپه وخت کښې هغه ماته په عقبه کښې ملاوشوې وه. واورئ په دې کښې فلانکې فلانکې سړې دې اوفلانکې فلانکې رنګ کښې اوښانٔ دی اوهغوی سره داسامان دې. ابو جهل ونیل چه خبرې خو کوې ګورو چه څنګه به راوخی؟ په دې کښې یوسړی اوونیل زه تاسوټولونه د بیت المقدس حال ښه پیژنم دهغې دعمارت حال دهغې شکل اوصورت اودهغې غرسره نیزدیوالې وغیره اوښایه.درسول الله ﷺ نه حجابونه اخواکړې شو اولکه مونږ چه په کورکښې ناست یو د کور څیزونو ته ګورو دغه شان د هغوی په وړاندې بیت المقدس مخامخ کړې شو.حضور ﷺ اوفرمائیل د دې جوړخ په دې ډول دې د دې شکل داسې دې هغه غر سره دومره نیزدې دې وغیره. هغه ونیل بې شکه ته ریښتیاوائې. بیا هغه د کافرانو د ډلې طرف ته اوکتل او وئی ونیل محمد ﷺ په خپله خبره کښې ریښتونې دې یاڅه داسې الفاظ نې اوونیل. (١)

دا روایت په نورو کتابونوکښې هم دې. مونږ سره د دې د غربت اونکارت او ضعف د دې د پاره بیان کړو چه په دې کښې د نورو احادیثو ډیر شواهد دی اود دې د پاره هم چه په بیهقی کښې دې چه جابر بن ابی حکیم وائی چه ما په خوب کښې رسول الله ﷺ اوکتلو تپوس مې اوکړو چه حضور ﷺ ستاسو په امت کښې یوسړې دې کوم ته چه سفیان ثوری ونیلې شی په هغه کښې څه حرج خو نشته؟ هغوی اوفرمائیل هیڅ حرج نشته مابیادنورواویانو نومونه بیانولو سره عرض اوکړو چه هغوی ستاسو حدیث بیانوی چه تاسو فرمائیلی دی چه تاسو ته په یوه شپه کښې معراج شوې دې تاسو په آسمان کښې اوکتل الخ. هغوی اوفرمائیل او ټیک ده.ماونیل حضور ﷺ استاسو دامت خلق ستاسود طرف نه د معراج واقعه کښې ډیرې عجیبه او حیرانونکې خبرې بیانوی. هغوی اوفرمائیل اوهغه خبرې د قصې بیانونکو خلقو دی. (٢)

**د امام ترمذی رحمه الله روایت** :-ترمذی شریف کښې دی چه حضرت شدادبن اوس رضی الله عنه فرمائی چه مونږ د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو یارسول الله ﷺ د خپل معراج حالت خو بیان کړئی. حضور ﷺ اوفرمائیل واورئی ما خپلو ملګروته د ماسخوتن مونځ ناوخته اوکړو.بیاحضرت جبرائیل ﷺ ماله یود سپین رنګ څناور راوستلودخرنه اوچت او قچرنه ټیټ اوماته نې اوونیل چه په دې سورشه. هغه سختی شان اوکړه نوهغه د ده غوږ تاوکړو او زه نې په ده باندې سور کړم. په دې کښې په مدینه کښې د مونځ کولو اوپه مدین کښې هغه ونې سره د مونځ کولو ذکر دې کوم ځایٔ چه حضرت موسی ﷺ حصارشوې وو.

---

(١) دلائل النبوة:٢/٣٩٠، ٣٩٦.

(٢) بیهقی فی الدلائل:٢/٤٠٥،٤.



بيا په بيت اللحم كښې د مونځ كولوذكر دې كوم ځاىٔ چه حضرت عيسى ؑ پيداشوې وو. بيابيت المقدس كښې د مونځ كولو ذكر دې هلته د سختې تندې لګيدو او دپښو شاتو لوښې راتلل او په ډكه خيته دپښوڅكلو ذكر دې فرمائي چه هلته يوشيخ تكيه لګولې ناست وو هغه وئيل چه دې فطرت ته اورسيدو اولارموندونكې دې. بيا مونږ يو وادئى ته راغلو هلته ما دوزخ اوليدلو چه د سختې سرې كړې شوې سروټكې په شان وو بيا په واپس كيدوكښې مونږ دقريشو فلانكى ځاىٔ كښې قافله ملاو شوه چه د خپل ورك شوى اوښ په لټون كښې وو.ما هغوى ته سلام اوكړوبعضې خلقو زما آواز هم اوپيژندلواوخپل مينځ كښې اووئيل چه دا آواز خويالكل دمحمدﷺ په شان دې. بيا د سحر نه وړاندې زه د خپلو ملګروسره مكې مكرمې ته اورسيدم. ماله ابوبكرؓ راغلو وئي وئيل يارسول الله ﷺ تاسو د شپې چرته وئې؟ كوم كوم ځاىٔ كښې چه مې خيال وو هغه ټول مې اولټول خوتاسو ملاونه شوئې. ماوئيل چه زه خودشپې د بيت المقدس نه راغلم وئيل هغه خود دې ځاىٔ نه د يوې مياشت په فاصله دې. ښه ده د هغه ځاىٔ څه نښې راته بيان كړه. هم هغه وخت هغه زما مخې ته كړې شو لكه چه هغه ما ليدلو اوس چه مانه كوم يوهم سوال كيدلو ما به كتلو او جواب به مې وركولو. نو ابوبكرصديق ؓ اووئيل چه زما ګواهى ده ته د الله ﷻ رښتونې رسول ئى خودقريشو كافرانو خبرې جوړولې ابن ابى كبشه ته ګوره چه وائى اوګرخى چه په يوه شپه كښې دبيت المقدس نه راغلم.حضورﷺ اوفرمائيل واورئى زه تاسوته يوه نښه ښايم. ستاسو قافله ما په فلانكى ځاىٔ كښې اوليدله. د هغوى يواوښ ورك شوې وو كوم چه فلانكى سړى راوستلو. اوس هغوى په دومره فاصله باندې دى چه د هغوى يومنزل به په فلانكى ځاىٔ كښې وى اوبل فلانكى ځاىٔ كښې او هغوى به فلانكې ورځ باندې دلته راورسى. د هغوى په قافله كښې دټولونه وړاندې غنم رنګې اوښ دې په كوم چه تور ځل پروت دې او دوه تورې بورئى دواړو طرفوته بارشوى دى.كله چه هغوى راغله او كومه ورځ حضورﷺ د هغوى د قافلې راتلو خودلې وه نوغرمه خلقو دښارنه بهر ته منډې وهلې راغله چه اوګورى دا ټولې خبرې رښتيادى؟ چه وئى كتل نو قافله راروانه ده اوهم هغه اوښ ترې وړاندې دې[1]هم دغه روايت په نوروكتابونوكښې ډېر اوږد هم نقل دې اوپدې كښې ډيرې خبرې منكر هم دى.مثلاً بيت اللحم كښې دحضورﷺ مونځ اداكول دحضرت صديق اكبرؓ د بيت المقدس د نښنومعلومول وغيره. د ابن عباس ؓ په روايت كښې دى چه كله حضورﷺ د معراج په شپه جنت ته تشريف يوړلو نود يوطرف نه د پښو د كشارى آواز راغلو. حضورﷺ تپوس اوكړو جبرائيل ؑ دا څوك دى؟ جواب ملاؤ شو بلال ؓ مؤذن دې. حضورﷺ چه واپس راغلو نوونئى فرمائيل بلالؓ تاخلاصې بياموندو ما داسې داسې ليدلې نى. په دې كښې دى چه حضرت موسى ؑ دملاقات په وخت كښې اوفرمائيل نبى امى ته هركلې. حضرت موسى ؑ غنم رنګې اوږدقددغوږونو پورې يادغوږونونه لږشان اوچت ويښته ئى وو.پدې كښې دى چه هريونبى هغوى ته رومبې سلام كړې. د دوزخ د كتلوپه وخت كښې حضورﷺ اوكتل چه څه خلق د مردارې غوښه خورى. تپوس ئى اوكړو دا كوم خلق دى؟ جواب ملاوشو چه كومو خلقو به د خلقو غوښې خوړلې(يعنى غيبت كونكى وو) هم هلته حضورﷺ يوسړې اوليدو چه پخپله د اور په شان تك سور شوې وو سترګې ئى كړې شوې وې تپوس ئى اوكړو داڅوك دې؟جبرائيلؑ جواب وركړو چه هم دا هغه كس دې چه د صالح ؑ اوښه ئى وژلې وه[2]مسنداحمدكښې دى چه كله حضورﷺ بيت المقدس ته اورسولې شو د هغه ځاىٔ نه هم په يوه شپه كښې واپس مكې مكرمې ته راورسولو اوهغوى ﷺداخبر خلقو ته واورولو د بيت المقدس نښې اوخودلې د هغوى د قافلې خبرئى وركړونو بعضې خلقودې وينا كولوسره چه مونږ په

[1]) دلائل النبوة:٢/٣٥٥، ٣٥٧ وقال البيهقى هذااسنادصحيح، وسندحسن، المعجم الكبير:٧١٤٢، مجمع الزوائد:١/٧٣

[2]) احمد:١/٢٥٧،.

داسې خبروکښې هغه رښتوني نه شومنلې نود اسلام نه واوختل. بیادا ټول ابوجهل سره قتل کړې شو. ابوجهل وئیل چه دې مونږ د زقوم د ونې نه ویروی راخئی کهجورې اوکوچ راوړنی او یوځاۍ کړنی وئی خورئی. حضورﷺ په هغه شپه دجال د هغه په اصلی شکل کښې اولیدلو او په سترګوسره لیدل نه چه په خوب کښې لیدل.حضرت عیسیٰ حضرت موسیٰ او حضرت ابراهیم ئې هم اولیدلو. د د جال شکل حضورﷺ بیانولوسره اوفرمائیل خراب مردار کاڼړې یو سترګې دې اودهغه یوه سترګه داسې ده لکه ستورې اووینبته ئې داسې دی کله دیوې ونې ګنړښاخونه.دحضرت عیسیٰ صفت حضورﷺ داسې بیان کړو چه هغه سپین رنګ ګورګوچې ویښته درمیانه قد دې.اوحضرت موسیٰ غنم رنګې اومضبوط طاقتورسړې دې اوحضرت ابراهیم خو بالکل هوبهوهم زما په شان وو.الخ. ([1])

**د یوبل روایت ذکر**:-یوبل روایت کښې دی چه حضورﷺ مالك هم چه د د دوزخ داروغه دې اولیدلو په هغه نښوکښې کومې چه الله ﷻ هغوې ته خودلې وې. بیاحضرت ابن عباس د حضورﷺ د تره ځوئ د قرآن دا آیت ﴿ فَلَا تَكُنْ فِيْ مِرْيَةٍ مِّنْ لِّقَآىِٕهٖ ﴾ ([2])اولوستلودکوم تفسیرچه حضرت قتاده داسې کوی چه دموسیٰ په ملاقات کیدلوکښې خو شك مه کوه مونږ هغه یعنی موسیٰ د بنی اسرائیلو د هدایت د پاره لرلې وو([3])دا روایت صحیح مسلم کښې هم دې. بل سندسره روایت دې چه حضورﷺ فرمانی د معراج په شپه د یومقام نه ماته ډیره ښکلې او مسته خوشبو راغله. ماتپوس اوکړو دا خوشبوځنګه ده. جواب ملاوشو چه د فرعون د جینئی مشاطه اود هغې د بچی د محل ده. د فرعون د لور شهزادګئی وینبته ئی ګمنزولوکښې د لاس نه ګمنزه پریوتله نود هغې د خُلې نه ناځاپی بسم الله اووتله. په دې باندې شهزادګئی اووئیل چه الله خوزما پلار دې هغې جواب ورکړو چه نه الله ﷻ خوهغه دې چه ماته تاته او پخپله فرعون ته روزی ورکوی نو هغې وئیل چه ښه ده ته زما د پلارنه بغیربل څوك خپل رب ګنړې؟ هغې جواب ورکړو چه او زما ستا اوستاد پلار اوټولورب هم الله ﷻ دې. هغې خپل پلار ته اووئیل نو هغه ډیر غصه شو او هم هغه وخت کښې ئې هغه په ډك دربارکښې راوغوښتله ورته ئې اووئیل چه ته زما نه بغیربل څوك رب منې؟ هغې وئیل چه او زما اوستا رب هم الله ﷻ دې چه اوچت ذات دې اود بزرګئی والا دې. فرعون هم هغه وخت حکم اوکړو چه د تانبې کوم کړې جوړ شوې دې چه کله بالکل د اور په شان سور شی او ښه ګرم شی نود دې بچی یویو په دې کښې ورواچونی. په آخره کښې داپخپله هم دغه شان وراوغورزونی. هغه ګرم کړې شو اوچه کله د اور په شان شونو حکم اوشوچه د دې بچی په کښې یو یواچول شروع کړه. هغې وئیل بادشاه زما یودرخواست منظورکړه زما اوزما د بچوهډوکی په یوځاۍ باندې واچوه. هغه وئیل چه ښه ده ستا حقونه په ماباندې شته نو دا منظور شو. کله چه ټول بچی په دې کښې واچولې شو اوټول هیره کړې شو نود ټولونه د وړوکې نمبرراغلو کوم چه دمورسینې پورې وو او پئی ئی څکل. د فرعون سړو چه کله هغه راښکلونود دې نیکې بی بی د سترګولاندې تیاره خوره شوه. الله ﷻ هغه ماشوم ته هم هغه وخت ژبه ورکړه اوهغه په اوچت آوازسره اووئیل مورې افسوس مه کوه مورې هیڅ ډیل ډال مه کوه په حق باندې خپل خان قربانی کول د ټولونه لویه نیکی ده. هغې له صبرراغلو هغه ئی هم دې کړی کښې واچولو اوپه آخره کښې د دې بچومور هم داد خوشبونې بویونه هم د هغې د جنتی محل نه راځی. حضورﷺ د دې واقعه سره دا بیان اوفرمائیلو چه څلورو وړوماشومانو په زانګوکښې خبرې کړی یوخو دې ماشوم یوهغه ماشوم کوم چه د حضرت

---

[1]) احمد:١/٣٧٤، وسنده حسن السنن الكبرى للنسائی:١١٢٨٣، مسندابی یعلی:٢٧٢٠.

[2]) ٣٢/السجدة:٢٣.

[3]) صحیح مسلم كتاب الایمان باب الاسراء برسول الله ﷺ الی السموات وفرض الصلوات :١٦٥، دلائل النبوة:٢/٣٨٦، صحیح بخاری:٣٢٣٩ مختصراً.

يوسف ﷺ د بې ګناهئ ګواهي ورکړې وه اويوه هغه ماشوم کوم چه د حضرت جريج ولي الله د پاکې لمن ګواهي ورکړې وه او حضرت عيسى ﷺ بن مريم.[1] د دې روايت سندبې عيبه دې.

**يوبل روايت:**-يوبل روايت کښې دی چه د معراج والا د شپې په سحرياندې ماته دا يقين وو چه کله زه دا ذکر خلقو ته کوم نوهغوی به ما دروغ ګنړی نو حضورﷺ يوطرف ته غمژن کيناستو. هم هغه وخت د الله ﷻ دښمن ابوجهل حضورﷺ سره تيرشو او ورسره کيناستو او د ټوقومسخرو په توګه نې اوونيل چه وايه کنه څه نوې خبره ده؟ حضورﷺ اوفرمائيل او شته. هغه ونيل څه خبره ده؟ حضورﷺ ونيل د شپې په ماسيل اوکړې شو هغه تپوس اوکړوترکوم خاۍ؟ونې فرمائيل تربيت المقدس پورې. هغه ونيل چه اوس سحرته دلته بياهم موجود نې؟ حضورﷺ اوفرمائيل او.نو د دې موذی په زړه کښې دا خيال راغلوچه دې وخت کښې دې دروغ ګنړل ښه نه دی هسې نه چه د خلقو په ګنړه کښې دې بيا دا خبره اونه کړی. هغه اوونيل وايه کنه صيب که زه دا ټول خلق راجمع کړم نودهغوی په وړاندې به هم ته داخبره اوکړې؟حضورﷺ اوفرمائيل چه ولې نه ربښتياخبرې د پټولود پاره نه وی. هم هغه وخت هغه چغې جورې کړې چه اې دبنی کعب اوبن لوی اولاده راشئ. ټول خلق راپاسيده اوهغوی سره راجمع شو دې ملعون ونيل چه اوس د خپل قوم په وړاندې هغه خبره اوکړه کومه چه دې ماته کوله. حضورﷺ اوفرمائيل چه واورئ نن شپه په ماسيل اوکړې شو ټولوتپوس اوکړو ترکوم خاۍ پورې. حضورﷺ اوفرمائيل تربيت المقدس پورې خلقوونيل ښه اوبيا هم مونږ سره سحر موجودنې؟ حضورﷺ اوفرمائيل او.اوس څه خلقولاسونه پرقول شروع کړه چاخپل لاس په حيرانتياسره په تندی باندې کيخودو کيناستو او په ډيره سخته حيرانتياسره نې په اتفاق حضورﷺ دروغ اوګنړلو بيانئ لږ ساعت پس اوونيل چه ښه ده ته د هغه خاۍ څه نښې چه مونږ وايو خودلې شې؟په دې کښې هغه خلق هم وو چه د بيت المقدس نه راغلې ووادوهغه خاۍ يو يوخيز نه واقف وو.حضورﷺ اوفرمائيل وايه څه تپوس کوئې؟ هغوی تپوسونه کول اوحضورﷺ ورته خودل. فرمائې چه بعضو په کښې داسې باريك سوالونه اوکړل چه زه هم لږ شان اوويريدلم هم هغه وخت جمات زما په وړاندې کړې شو اوس ما کتل او خودل مې بس داسې اوګنړئې چه د عقيل د کورسره جمات وو يا د عقال د کورسره. دا د دې د پاره چه د جمات بعضې صفتونه ماته يادنه وو.دحضورﷺ د دې نښوخودلونه پس ټولواوونيل چه حضورﷺ خو اوصفا ټيك ټيك اوصفاصفا اوخودل په الله ﷻ باندې قسم چه يوخبره کښې هم غلطی نشته.[2]دا حديث په نسائی وغيره کښې هم موجود دې. په بيهقی کښې د حضرت عبدالله بن مسعودؓ په روايت سره دې کله چه حضورﷺ باندې معراج اوکړې شو نو هغوی سدرة المنتهی ته اورسيدل چه په اووم آسمان باندې دې کوم خيز چه خيژی نو هم د دې خاۍ پورې رسی بيا د دې خاۍ نه اوچتولې شی او کوم چه نازل شی نو هم دې خاۍ ته نازليږی بيا ددې خاۍ نه اخستې شی. په دې ونه باندې د سرو زرو ملخان خواره وو. حضورﷺ ته پنځه وخته مونځ او دسورت بقره آخری آياتونه ورکړې شواودا چه د حضورﷺ په امت کښې چه څوك شرك نه کوی د هغه به لوئ ګناهونه.هم ښښلې کيږی. په مسلم وغيره کښې هم دا روايت شته.[3]

**د جزء حسن بن عرفهؒ روايت:**-دحضرت ابن مسعودؓ نه د معراج اوږد حديث هم روايت دې په کوم کښې چه غرابت دې حسن بن عرفه ؒ دا په خپل مشهور جزء کښې واردکړې دې. حضرت ابوظبيان ؒوائی چه مونږ دحضرت عبدالله بن مسعودؓ دخوئ ابوعبيده ؒ سره ناست وو هغوی سره محمد بن سعد بن ابی وقاص ؒ هم وو نو حضرت محمدبن سعدؒ ابوعبيده ؒ ته اوونيل

---

[1] احمد: ٣٠٩/١-٣١٠ وسنده حسن، الطبراني: ١٢٢٨٠.

[2] احمد: ٣٠٩/١ وسنده صحيح السنن الكبرى للنسائي: ١١٢٨٥، المعجم الاوسط: ٢٤٦٨، بيهقي: ٣٦٣/٢ معجم الزوائد: ٦٤/١.

[3] صحيح مسلم كتاب الايمان باب فى ذكر سدرة المنتهى: ١٧٣، ودلائل النبوة: ٣٧٢/٢-٣٧٢.

تاچه د معراج باره کښې د خپل پلار نه څه اوريدلې وې هغه واوره وه. نو هغوی روايت بيانول شوې کړه. په دې کښې دا هم دی چه کله به براق په اوچت ځائ باندې ختلو د هغې پښې لاسونه به برابر شو دغه شان چه کله به لاندې راکوزيدلو نو بيابه هم برابر شو داځکه چه سور ته تکليف نه وی. مونږ يو صاحب سره تيرشو چه اوږد قد نيغ ويښته غنم رنګې وو داسې لکه چه د ازدشنوء قبيلې خلق وی. هغه په اوچت آوازسره اوونيل چه تاد ده اکرام اوکړو او دې ته دې فضيلت ورکړو مونږ هغه ته سلام اوکړو هغه جواب راکړو تپوس نې اوکړو چه حضرت جبرائيل ﷺدا تاسره څوك دې؟ جبرائيل ﷺ ونيل دا احمد دې. هغه اوفرمائيل نبی امی عربی ته دې مرحباوی چا چه د خپل رب رسالت اورسولو اود خپل امت خيرخواهی اوکړه. بيامونږ واپس شو نو ما تپوس اوکړو جبرائيل ﷺ دا څوك وو؟ هغه اوونيل داموسی ﷺ بن عمران دې. ما ونيل دا په داسې الفاظو کښې خبرې چاسره کولې؟ ونې فرمائيل الله ﷻ سره ستاسو باره کښې.ما ونيل الله ﷻ سره او په داسې آواز کښې؟ ونې فرمائيل او الله ﷻ ته د ده تيزی معلومه ده.بيا مونږ د يوې ونې سره تيرشو چه د هغې ميوې د چراغونو په شان وې. د هغې لاندې يوبزرګ سړې ناست وو کوم سره چه ډير واړه ماشومان وو. حضرت جبرائيل ﷺ ماته اوونيل چه ورشه خپل پلار ابراهيم ﷺ سره عليك سليك اوکړه. مونږ هلته لاړو سلام مو اوکړو جواب ملاوشو. د جبرائيل ﷺ نه هغه زماباره کښې تپوس اوکړو هغه جواب ورکړو دا ستا ځوئ احمد ﷺ دې نوهغوی اوفرمائيل مرحبا دې وی نبی امی ته چاچه د خپل رب پيغمبری پوره کړه اود خپل امت خيرخواهی اوکړه. زما خوش نصيب خويه نن شپه ستا ملاقات د خپل پروردګارسره کيدونکې دې. ستا امت د ټولونه آخری امت دې اود ټولو نه کمزورې هم خيال کوه چه داسې کارونه وی چه په هغوی باندې آسان وی. بيامونږ مسجد اقصی ته اورسيدو. زه راکوز شوم او براق مې هم په هغه حلقه کښې اوتړلو کوم کښې چه به انبياء کرامو تړل بيا جمات ته لاړم هلته ما انبياءکرام اوپيژندل څوك په مانځه ولاړ دی څوك په رکوع کښې او څوك په سجده کښې. بيا ماله د شاتو او پئيو پياله راوړلې شوه. ما د پئيو پياله اوځکله جبرائيل ﷺ زما په اوږه لاس کيخودلو ونې فرمائيل محمد ﷺ د رب قسم چه فطرت ته خواورسيدلې. بيا د مونځ تکبيراوشو او ما هغه ټولوته مونځ اوکړوبيا مونږ واپس شو. د دې اسناد غريب دی او په متن کښې هم غرابت دې مثلاً دانبياءکرامو دحضور ﷺ دپيژندګلو سوال بيا دهغوی د خوانه دحضور ﷺ د تلونه پس د هغوی د پيژندګلو سوال وغيره. په صحيح حديثونوکښې دی حضرت جبرائيل ﷺ به اول حضور ﷺ ته خودل چه دا فلانکې نبی دې چه سلام د پيژندګلونه پس وی. بيا په دې کښې د انبياءکرامو سره ملاقات دبيت المقدس په جمات کښې د داخليدو نه روستوشو حالاتکه په صحيح روايتونو کښې دی چه هغوی سره ملاقات په آسمانونوکښې اوشو.بيا هغه دوباره راکوزيدو کښې واپس بيت المقدس جمات ته راغلو اوهغه ټول هم حضور ﷺ سره وو اودلته نې هغوی ته مونځ اوکړو بيا په براق باندې سور شو مکه مکرمه ته لاړل. والله اعلم.

**د امام احمد يوبل روايت** :- مسنداحمد کښې د ابن مسعود ﷺ يوروايت دې چه د معراج په شپه حضرت ابراهيم ﷺ حضرت موسی ﷺ او حضرت عيسی ﷺ سره ملاوشو هلته د قيامت د قايم کيدو د خاص وخت باره کښې مذاکره اوشوه. حضرت ابراهيم ﷺ لاعلمی ښکاره کړه چه د موسی ﷺ نه تپوس اوکړه هغه هم بې خبری ښکاره کړه بيادامقرر شو چه د حضرت عيسی ﷺ نه تپوس اوکړنې هغوی اوفرمائيل چه د دې د صحيح وخت علم بغيرد الله ﷻ نه بل چاته نشته. اودا ماته فرمائيلې شوی دی چه دجال راوتونکې دې دغه وخت به ماسره دوه لختې وی هغه به زما کتلو سره لکه د سيسې ويلې کيږی. آخر زما په وجه به الله ﷻ هغه هلاك کړی. بيا خو به ونې اوکانړی وانې چه اې مسلمانه راشه زما لاندې کافر پټ شوې دې دې قتل کړه نوالله ﷻ به هغه ټول هلاك کړی. خلق به په يخو زړونوسره خپلو ښارونو

او وطنونوته لاړشي. هم په دغه زمانه کښې به یاجوج ماجوج راوځي چه د هریو اوچت ځائ نه به راتوپ وهي.کوم ځیز چه مومي هغه به غرق کوي. کومي اوبه چه ویني هغه به اوڅکي آخر به خلق تنګ شي ماته به شکایت اوکړي. زه به د الله ﷻ نه دعا اوکړم الله ﷻ به دا ټول په یوځل هلاك کړي. خو په زمکه به د دې مړو د بوئي د وجه نه تنګ راتګ ګران شي. هغه وخت به الله ﷻ باران اوکړي چه دا مړي به ټول اوبهیوي او سمندرکښې به اوغورزوي. ماته دا ښه معلومه ده چه د دې نه پس به قیامت راځي لکه چه د پوره ورځي د حمل والا ښځه وي چه معلومه نه وي چه سحر اوزګاریږي که مابنام. ([1])

**د یواوږد روایت ذکر:-** په یوبل حدیث کښې دي رسول الله ﷺ چه په کومه شپه د مسجدحرام نه د بیت المقدس جمات ته اورسولې شو په هغه شپه حضورﷺ دزمزم اومقام ابراهیم ﷺ په مینځ کښې وو. چه حضرت جبرائیل ﷺ د ښي طرف نه او میکائیل ﷺ دګس طرف نه والوزولو. تردې چه حضورﷺ د آسمان اوچتوالي ته اورسیدلو.واپس کیدلو سره هغوی دا تسبیحات سره د نورو تسبیحاتو واوریدل. دا روایت هم ددې سورت دآیت ﴿تُسَبِّحُ لَهُ السَّمٰوٰتُ السَّبْعُ﴾([2])په تفسیرکښې به راځي. مسندکښې دی چه امیر المؤمنین حضرت عمر بن خطابﷺ په جابیه کښې وو د بیت المقدس د فتح ذکر اوشو. هغوی د حضرت کعب ﷺ نه پتوس اوکړو ستا په خیال کښې ماله هلته په کوم ځائ مونځ کول پکاردي. هغه اووئیل چه که مانه تپوس کوې نو زه خو وایم چه تاسو د صخره نه شاته مونځ اوکړئي دې د پاره چه ټول بیت المقدس ستاسو په وړاندې راشي. هغه اوفرمائیل چه تا هم هغه د یهودیت مشابهت اوکړو زه به هغه ځائ مونځ کوم چرته چه رسول الله ﷺ کړي دې. نو هغه وړاندې شو او د قبله طرف ته ئې مونځ اوکړو پس دمونځ اداکولونه هغوی د صخره سره خواوشانه ئې ټول خس اوخشاك وغیره راغونډکړل خپل څادرکښې واچول او بهر ئې غورزول شروع کړه او نورو خلقو هم هغوی سره امداد اوکړو. ([3])نو هغوی خونه د صخره داسې تعظیم اوکړو لکه چه یهودیانوبه کولو چه مونځ به ئې هم د هغې نه شاته کولو اودا به ئې قبله هم ګڼرله. حضرت کعب ﷺ هم د اسلام نه وړاندې یهودی وو په دې وجه هغوی دا رائې پیش کړې وه کومه چه د مسلمانانو خلیفه ردکړې وه اونه هغوی د نصرانیانو په شان د صخره بې عزتي اوکړه چه هغوی صخره بالکل د ګندګیل غورزولو ځائ جوړکړې وو. بلکه هغوی پخپله د دې ځائ نه ډکی وغیره اوچت کړل وئی غورزول. دا بالکل د هغه حدیث په شان دې چه مه په قبرونو باندې کینئي اومه د دې طرف ته مونځ کوئی.([4])د ابوهریره ﷺ نه د معراج متعلق یو اوږد مګر غریب روایت هم نقل دې. په هغې کښې دی چه حضرت جبرائیل ﷺ او حضرت میکائیلﷺ حضورﷺ له راغلل. جبرائیلﷺ میکائیلﷺ ته اووئیل چه ماله د زمزم د اوبویولیټې ډك راوړه چه زه د ده زړه پاك کړم اود ده سینه صفاکولاوکړم. بیائې د حضورﷺ خیټه اوشلوله او هغه ئې درې ځل اووینځلو درېواړه ځل ئې دمیکائیلﷺدراوړلې شوو اوبوسره اووینځلو اود حضورﷺ سینه ئې کولاوکړه. ټول فضولیات ئې ترې لرې کړل د علم حلم ایمان او یقین نه ئې ډکه کړه. اسلام نه ډکه کړه او د حضورﷺ د دواړو اوږو په مینځ کښې د نبوت مهر اولګولو او په یو اس باندې کینولو حضرت جبرائیلﷺ هغه بوتلو. وئې کتل چه یوقوم دې هغوی فصل ریبی اودیخوا لوئیږي. د حضرت جبرائیل ﷺ نه حضورﷺ تپوس اوکړو دا څوك خلق دی؟ وئی فرمائیل چه دا د الله ﷻ د لارې مجاهدین دی د چا نیکئی چه د اووه اووه

---

[1] ) ابن ماجه کتاب الفتن باب فتنة الدجال وخروج عیسی بن مریم ﷺ:٤٠٨١، وسنده صحیح، احمد:٣٧٥/١، حاکم: ٤٨٨/٤.

[2] ) ١٧/بنی‌اسرائیل:٤٤.

[3] ) احمد: ٣٨/١.

[4] )صحیح مسلم کتاب الجنائز باب النهی عن الجلوس علی القبر والصلاة الیه:٩٧٢، ترمذی:١٠٥١، ابوداؤد: ٣٢٢٩، احمد:١٣٥/٤، ابن حبان:٢٣٢.

سوو پورې زياتيږي اوچه څه خرچ کړي د هغې بدله ورته ملاويږي. الله ﷻ بهترين رزق ورکونکې دی
بيا د حضورﷺ تيريدل په يوداسې قوم باندې اوشوچه د هغوی سرونه په کاڼو چقنړی کيدل اوهرڅل به بياجوړيدل او بيابه چقنړی کيدل. د يوساعت به هغوی ته مهلت نه شو ورکولې. ماتپوس اوکړو دا کوم خلق دی نو جبرائيلؑ اووئيل دا هغه خلق دی چه په فرض مونځونوکښې به ئې سرونه درانه کيدل.
بيا ما څه خلق اوليدل چه د هغوی وړاندې روستوټکړې زوړندوې او د اوښانو او څناورو غوندې از غني دوزخي ونو کښې څرن کولواود دوزخ کاڼړی او سروټکې خوړلې. ماوئيل داڅنګه خلق دی؟ونې فرمائيل چه د خپل مال نه زکوة نه ورکونکی دی. الله ﷻ په دوی باندې هيڅ ظلم نه وو کړې بلکه دوی په خپلو ځانونوباندې پخپله ظلم کړې وو. بيا ما څه داسې خلق اوليدل چه د هغوی مخې ته په کټونې کښې ښه صفا اوتازه غوښه پرته ده او بل طرف ته سخا مرداره غوښه پرته ده خودوی د دې ښې غوښې نه راممنع کړې شوی دی اوهغه بدبوداره سخا اوبې مزې غوښه خوری. ماتپوس اوکړو دا د کومې ګناه کونکی دی؟ اوفرمائيلې شو چه دا هغه سړی دی چه خپلې حلالې بيبيانې ئې پريښې وې او د حرامو ښځو سره به ئې شپه تيروله. او هغه ښځې دی چه خپل حلال خاوندان به ئې پريښودل او نورو سره به ئې شپې تيرولې. بيا حضورﷺ اوليدل چه په لارکښې يولرګې دې چه هره يوه کپړا شلوی او هريوڅيز زخمی کوی. تپوس مې اوکړوداڅه دی؟ ونې فرمائيل دا ستاسو د امت د هغه خلقو مثال دې چه لارې رابندې کړې وی ناست وی.
بيائی دا آيت اولوستلو﴿وَلَا تَقۡعُدُواْ بِكُلِّ صِرَٰطٖ تُوعِدُونَ﴾ (١)يعنی په هره يوه لار باندې خلق ويروی اود الله ﷻ د لارې نه بنديدلو د پاره مه کيننی. بيامې اوکتل چه يوسړې ډير لوئ ډيرې جمع کړې دې او اوچتولې نه شی خو بيا هم داډيرې نور هم زياتوی. تپوس مې اوکړوجبرائيلؑ دا څه دی؟ ونې فرمائيل دا ستا د امت هغه سړې دې چه په هغه باندې د خلقو حقونه وی او هغه اداکولې نه شی او نور هم په ځان بار کوی او امانتونه اخلی.بيا حضورﷺ يوه ډله اوليدله چه د هغوی ژبې د اوسپنې په قينچو باندې پريکولې شی يوځوا کټ کيږی بل ځوا جوړيږی او هم په دې حال کښې برابر اخته دی. تپوس مې اوکړودا څوک دی؟ ونيل دا د فتنې وعظ کونکی او خطيبان دی. بيا مې اوکتل يووړوکی سوری نه يو لوئ دروند غوايه راوخی بيا هغه واپس کيدل غواړی خو نه شې تلې تپوس مې اوکړو جبرائيلؑ دا څوک دې؟ ونې فرمائيل دا هغه سړې دې چه څه ډيره لويه خبره به ئې اوکړه نو پښيمانه خو به وو ولې واپس کيدې به نه شو. بيا هغوی يوې وادئی ته لاړل هلته ډيره مزيداره ښکلې يخه هوا زړه خوشحالونکې معطره خوشبوداره د راحت او سکون مبارك آوازونه مونږ واوريدل تپوس مې اوکړو دا څه دی؟ جبرائيلؑ ونيل دا جنت دې دا وائی ياربه ما سره خپله وعده پوره کړه زما بالاخانې به ريښمنې او مرغلرې وی سره زر سپين زرجامونه کټوری شات اوبه پئيی شراب وغيره وغيره نعمتونه به ډير زيات وی. ده ته جواب ورکولې شی چه هريومسلمان ښځې اوسړې چه په ما ايمان لری اوزما رسولان منی نيك عمل کوی نه ماسره څوك شريك ګنړی اونه زما برابر څوك ګنړی هغه ټول به تاکښې داخليږی. واوره د چا په زړه کښې چه زماويره ده هغه د هرې يوې ويرې نه محفوظ دې څوك چه ما نه سوال کوی هغه محروم کيږی نه څوك چه ماته قرض راکوی زه هغه ته بدله ورکوم څوك چه په ما توکل کوی زه د هغه کفايت کوم. زه رښتونې معبوديم زما نه بغيريل معبود نشته. زما وعدې خلاف نه وی. مؤمنان خلاصې بياموندونکی دی الله د برکت خاوندې چه د ټولونه بهترخالق دی دې اوريدو سره جنت اووئيل بس زه خوشحاله شوم. بيا هغوی بلې وادئی ته اورسيدل چرته چه ډير مکروه او ويرونکی آوازونه راتلل او سخته بدبوئی وه. حضورﷺ د دې باره کښې هم د حضرت جبرائيلؑ نه تپوس

(١) ٧/الاعراف:٨٦.

اوکړو ونی فرمائیل دا د دوزخ اواز دې وائی یاربه ما سره خپله وعده پوره کړه او ماته هغه راکړه زما
طوق اوزنځیرونه زما شغلې زما ګرمی ترخې اوبه وینې نوونه زماد عذاب او سزا سامان ډیر زیات
شوی دی زما ژوروالې ډیر زیات دې زما اور ډیر تیزدې ماته هغه راکړه د کوم چه ما سره وعده شوې
ده. الله ﷻ اوفرمائیل هرمشرك کافر خبیث منکر بې ایمانه سړی او ښځې ستاد پاره دی. دې اوریدو
سره دوزخ خپله رضامندی ښکاره کړه. هغوی بیالاړل او بیت المقدس ته اورسیدل او صخره سره نی
خپل اس اوتړلو دننه لاړو اوفرښتو سره نی مونځ اداکړو. چه اوزګارشو نو ونې فرمائیل جبرائیل ؑ دا
تاسره څوك دی؟ ونیل محمد ﷺ دې. هغوی ونیل ته د ده طرف ته لیګلې شوې وې؟ ما ونیل او ټول
مرحبااوونیل چه بهترین رور اوډیرښه خلیفه دې اوډیر په ښه طریقه او عزت سره راغلې دې بیا د
هغوی ملاقات د انبیاء کرامو روحونو سره اوشو ټولو د خپل پروردګار ثنا بیان کړه. حضرت ابراهیم
ؑ اوفرمائیل چه د الله ﷻ شکر دې چه زه نی خپل خلیل جوړکړم ماته نی ډیر لوئ ملك راکړو اوزه
نی فرمانبردار امام جوړکړم د چا چه اقتداء کولې شی هغه زه د اور نه بچ کړم اوهغه نی زما د پاره
یخوالې او سلامتی جوړه کړه. حضرت موسی ؑ اوفرمائیل چه هم د الله ﷻ مهربانی ده چه هغه
ماسره خبرې اوکړې هغه زما دښمنان اهل فرعون هلاك کړل. بنی اسرائیلو له زما سره نجات ورکړو
زما په ډله کښې داسې کسان پیداکړل چه د حق هدایت کونکی او په حق سره انصاف کونکی وو. بیا
حضرت داؤد ؑ د الله ﷻ ثناء خوانی شروع کړه الحمدالله الله ﷻ ماته عظیم الشان ملك راکړو ماته
نی د زبور علم راکړو زما د پاره نی اوسپنه نرمه کړه غرونه نی مسخر کړل او مرغویه هم زما سره د الله
ﷻ تسبیح کولې ماته نی حکمت او زورور کلام راکړو. بیا سلیمان ؑ ثناخوانی شروع کړه الحمدلله
الله ﷻ هواګانې زما تابع کړې او شیطانان هم چه هغوی زما په حکم باندې لوئ لوئ محلونه نقشې
لوښی وغیره جوړول اوهغه ماته د څناورو په خبروباندې د پوهیدلو علم راکړو په هریوڅیز باندې ماته
فضیلت راکړو. د انسانانو پیریانو مرغو لښکرې زما تابع کړې او په خپلو ډیرو زیاتو مؤمنانونی ماته
فضیلت راکړو. ماته نی هغه بادشاهی راکړه چه زما نه پس بل چاد پاره لائق نه ده اوهغه هم داسې چه
په هغې کښې پاکوالې او پاکوالې وو اوهیڅ حساب نه وو. بیا حضرت عیسی ؑ د الله ﷻ تعریف
بیانول شروع کړه چه هغه زه خپله کلمه جوړکړم اوزما مثال د حضرت آدم ؑ په شان دې څوك نی چه
د خاورې نه جوړکړو او ورته نی اوونیل چه شه نو بس شو. هغه ماته کتاب اوحکمت تورات او انجیل
اوخودلو. ما به د خاورې مرغئی جوړوله او بیابه مې په هغې کښې پوکې وهلو نو هغه به د الله ﷻ په
حکم سره ژوندنی مرغئی جوړه شوه وابه الوتله. ما به پیدائشی ړانده او د جذام بیماران د الله ﷻ په
حکم سره تیك کول مړی به د الله ﷻ په حکم سره ژوندی کیدل. زه هغه اوچت کړم زه هغه پاك صفا کړم
زه اوزما مورنی د شیطان نه بچ کړل. په مونږ باندې د شیطان هیڅ دخل نه وو. اوس جناب رسول
آخرزمان ﷺ اوفرمائیل تاسوټولوخود الله ﷻ تعریفونه بیان کړل اوس زه بیانوم. هم د هغه الله ﷻ د پاره
حمداوثناء ده چاچه زه د ټول عالم د پاره رحمة للعالمین جوړکړم اود ټول مخلوق د ویرولو او هغوی ته
زیرې ورکونکې جوړکړم ونی لیګلم. په ماباندې قرآن کریم نازل کړو په کوم کښې چه د هریو څیز بیان
دې. زما امت نی د ټولونورو امتونو نه غوره کړو چه کوم د نورو د نیکود پاره جوړکړې وو هغه نی
بهترین امت اوګرځولو هم دوی د اول اوآخر امت جوړکړو. زما سینه کولاوکړې شوه زما بوج لرې کړې
شو زما ذکر نی اوچت کړو زه نی شروع کونکې او ختمونکې جوړکړم. حضرت ابراهیم ؑ اوفرمائیل
هم په دې وجوهاتو حضوراکرم حضرت محمد ﷺ تاسو ټولونه غوره دې. (امام ابوجعفررازی ؒ
فرمائی) د شروع کونکې خو هغوی دی چه د قیامت په ورځ به شفاعت هم د هغوی نه شروع کیږی. بیا
د حضور ﷺ په وراندې درې پټ کړې شوی لوښی پیش کړې شو د اوبود لوښی نه نی لږې شان اوڅکلې
واپس نی کړو بیائی د پئیو لوښې واخستو او په ډکه خیټه نی پئیی اوڅکل. بیاد شرابو لوښې راوړلې

شو نو حضورﷺ د هغې نه انکار اوکړو چه زما خيټه مړه شوې ده. حضرت جبرائيل ؑ اوفرمائيل دا
ستا په امت باندې حرام کړې شوی دې اوکه تاسو دا څکلې وې نو ستاسو په امت کښې به ستاسو
تابعدار ډير کم خلق وو. بيا هغوی د آسمان طرف ته اوچت کړې شو دروازه ئې کولاوول غوښتل نو
تپوس اوشودا څوك دې؟ جبرائيل ؑ وئيل محمدﷺ دې. تپوس اوشو چه د ده طرف ته ليګلې شوی
وې؟وئيل او. هغوی وئيل الله ﷻ دې دا رور او خليفه خوشحاله اوساتی دا ډير ښه رور او ډير ښه خليفه
دې. هم هغه وخت دروازه کولاوکړې شوه حضورﷺ اوکتل يوسړې دې چه په پوره پيداکيدو باندې د
عامو خلقو په شان د هغه پيداکيدلوکښې هيڅ نقصان نشته. د هغه ښی طرف ته يوه دروازه ده چه د
هغې نه خوشبويانې راخی او ګس طرف ته يوه دروازه ده چه د هغې نه خبيثې هواګانې راخی. د ښی
طرف دروازې ته چه ګوری نو خاندی اوخوشحاليږی د ګس طرف دروازې ته چه اوګوری نو ژاړی او
خفه کيږی. ماوئيل جبرائيل ؑ دا شيخ د پوره پيداکيدو والا څوك دې؟ د چا په پيداکيدوکښې چه
هيڅ کمې نشته اودا دواړه دروازې څنګه دی؟ جواب ملاو شو دا ستا پلار حضرت آدم ؑ دې. ښی
طرف ته د جنت دروازه ده جنتی اولاد ته ګوری خوشحاليږی او خاندی. ګس طرف ته ددوزخ دروازه ده
خپل دوزخی اولاد ته په کتو سره ژاړی او خفه کيږی. بيا د دويم آسمان طرف ته لاړو او دغه شان سوال
جواب کولونه پس دروازه کولاوشوه. هلته هغوی دوه ځوانان اوليدل په تپوس کولو سره معلومه شوه
چه داحضرت عيسی ؑ بن مريم او حضرت يحيی بن زکريا ؑ دې دادواړه په خپل مينځ کښې د
ترور خامن دی. دغه شان دريم آسمان ته اورسيدو هلته حضرت يوسف ؑ وو د چا چه په حسن کښې
په نورو خلقو باندې هغه فضيلت وو کوم چه سپوږمئی ته په باقی ستورو باندې دې. بيا دغه شان
څلورم آسمان ته اورسيدو هلته کښې ادريس ؑ وو څوك چه الله ﷻ اوچت مکان ته خيژولې دې. بيا
هغوی پنځم آسمان ته هم د دغه سوال جواب نه پس اوختل يوصاحب ناست دې هغه سره چاپيره خلق
ناست دی هغه سره خبرې کوی تپوس مې اوکړو دا څوك دې جواب ملاوشو حضرت هارون ؑ دې په
خپل قوم کښې د هرچا خوښ وو اودا خلق بنی اسرائيل دی. بيا دغه شان شپږم آسمان ته اورسيدو
هلته حضرت موسی ؑ ښکاره شو د حضورﷺ د هغه نه وړاندې وتلوسره هغه په ژړا شو نو تپوس
کولو باندې سبب معلوم شو چه بنی اسرائيلو زما متعلق دا ګنړل چه د ادم ؑ په ټول اولاد کښې د
ټولونه بزرګ زه يم خودې دې زما خليفه چه په دنياکښې دې او زه په آخرت کښې يم. خيرکه صرف دا
وې نو بيا هم څه خبره نه وه خوهريونبی سره د هغه امت دې بيا هغوی دغه شان اووم آسمان ته
اورسيدل هلته ئې يوصاحب اوليدلو چه د هغه په ږيره کښې څه سپين وينښته وو هغه د جنت په دروازه
کښې کرسئی لګولې ناست وو هغه سره څه نور خلق هم وو. دبعضو مخونه ډير روښانه وو اوبعضې
لړشان کم روښانه وو بلکه څه بل رنګې هم وو. دا خلق پاسيدل او په نهرکښې غوپه اووهله په دې سره د
هغوی رنګونه لړشان ښکلې شو. بيانی په بل نهرکښې غسل اوکړو نو لږ نور هم ښکلې شو بيائی چه
دريم غسل اوکړو نو بالکل روښانه سپين مخونه ئی شو. راغله نوروسره يوځائ شو اود هغوی په شان
شو. د حضورﷺ په سوال کولو باندې حضرت جبرائيل ؑ اووئيل دا ستا پلار حضرت ابراهيم ؑ دې
په مخ دزمکې باندې سپين وينښته دټولونه وړاندې صرف د ده وو. دا د سپين مخونووالا هغه ايماندار
خلق دی کوم چه د بدونه بالکل بچ شوې وو اود چا په رنګونو کښې چه لږ شان فرق وو دا هغه خلق دی
چه د نيکو سره ترې لږې شان بدئی هم شوې وې د هغوی په توبه باندې الله ﷻ مهربان شو. اول نهر د
الله ﷻ رحمت دې دويم د الله ﷻ نعمت دې او دريم د شراب طهور نهر دې کوم چه د جنتيانو خاص
شراب دی. بيا حضورﷺ سدرة المنتهی ته اورسيدو نو هغه ته اوونيلې شو چه ستا په سنتوباندې څوك
پابندی کوی هغه دلته رارسولې شی د دې د جرړونه د پاکو صفا اوبو صفاپښيو خوندناك او بې نشې
شرابو اود صفاشاتو نهرونه روان وو. د دې ونې د سوری لاندې که يوسور اويا کاله پورې هم روان وی

نوبيا هم د دې سورې نه ختميږي. د دې يوه يوه پانړه دومره لويه ده چه يوېوامت به پټ کړي. د الله ﷻ عزوجل نور دا د هرطرف نه پټه کړې ده اود مرغوبه شان شکلونو فرښتو دا پټه کړې وه کومې چه د الله ﷻ په محبت کښې هلته وې. هغه وخت الله ﷻ جل شانه حضورﷺ سره خبرې اوکړې ونې فرمانيل غواړه څه غواړې؟ حضورﷺ عرض اوکړو چه ياالله تا حضرت ابراهيمؑ خپل خليل جوړکړو هغه ته دې لوئ ملك ورکړو،موسیٰؑ سره تا خبرې اوکړې، داؤدؑ له دې عظيم الشان بادشاهي ورکړه اود هغه د پاره دې اوسپنه نرمه کړه، سليمانؑ ته هم تا بادشاهي ورکړه پيريان انسانان شيطانان او هواګانې دې دهغه تابع کړې اوهغه بادشاهي دې ورکړه چه د هغه نه بغيريل چاله لائقه نه ده. عيسیٰ ؑ ته دې تورات او انجيل اوخودلو ستا به حکم باندې ړانده او شل بنه کونکې مړی ژوندی کول هغه او د هغه مور دې د شيطان نه بچ کړل د هغه په دوی باندې هيڅ دخل نه وو. زما په نسبت باندې فرمان اوکړه. رب العالمين عزوجل شانه اوفرمائيل ته زما خليل نې په تورات کښې ماتانه د خليل الرحمن لقب درکړې دې ته مې د ټولوخلقو طرف ته بشير او نذير جوړکړې ليګلې نې. ستاسينه مې کولاوکړې ده ستابوج مې کوزکړې دې ستاذکر مې اوچت کړې دې چرته چه زما ذکر وی هلته به ستاهم ذکر وی ستا امت مې د ټولو امتونونه بهتر کړې دې. چه د خلقو د پاره راغوښتې شی ستا امت ما بهترين امت جوړکړې دې ستا هم دا امت مې اولين او آخرين کړې دې د هغوې خطبه نه جائزکيږی ترکومې چه هغوی ستاد بنده کيدو اورسول کيدو ګواهي ورنه کړي. ما ستا په امت کښې داسې خلق پيداکړی دی چه د هغوی په زړونوکښې د هغوی کتاب دې. ته مې د پيدا کيدو په رو سره د ټولونه اول پيداکړې اود بعثت په روسره د ټولو نه آخر. اود فيصله په روسره هم د ټولونه اول تاته ما داسې اووه آياتونه درکړی دی چه هغه باربار ونيلې شی چه تانه وړاندې يونبی ته هم نه دی ورکړې شوی. تاته ما دخپل عرش لاندې د سورت بقره د خاتمه آياتونه درکړل چه تانه وړاندې يونبې ته هم نه دی ورکړې شوی. ماتاته کوثر درکړې او ما تاته د اسلام اته حصې درکړی دی، اسلام هجرت جهاد مونځ صدقه د رمضان روژې د نيکئی حکم د بدئی نه منع کول اوما ته شروع کونکې او ختم کونکې جوړکړې. نو حضورﷺ اوفرمائيل ماته زما رب د شپږو خبرو فضيلت راکړې. د کلام شروع اود هغې ختميدل جامع خبرې راکړې د ټولو خلقو طرف ته زيرې ورکونکې اوخبرونکې جوړول راليګل. زما دښمنان به زما نه د يوې مياشتې په فاصله وی د هغوی په زړه کښې زما رعب واچولو زما د پاره غنيمتونه حلال کړل چه زما نه اول د چا د پاره هم حلال نه وو. زما د پاره نې ټوله زمکه جمات او اودس جوړکړو بيا په هغوی باندې د پنځوسو مونځونو فرض کيدو اود حضرت موسیٰؑ په مشوره سره د کمې غوښتو او په آخره کښې د پنځو پاتې کيدو ذکر دې. لکه چه د دې نه وړاندې تيرشوی دی نو پنځه پاتې شو او ثواب د پنځوسو. کوم سره چه هغوی ډير خوشحاله شو د تلوپه وخت کښې حضرت موسیٰؑ ډير سخت او د راتلو په وخت کښې ډير نرم او د ټولونه بهتر.

د بل کتاب په دې حديث کښې داهم دی چه هم دا آيت ﴿ سُبْحٰنَ الَّذِيْٓ اَسْرٰى بِعَبْدِهٖ﴾ په تفسيرکښې هغوی دا واقعه بيان فرمائيلې.دادې هم واضحه وی چه ددې اوړد حديث يوراوی ابوجعفررازی په ظاهره د حافظې څه داسې بنه نه معلوميږی.د دې په بعضې الفاظوکښې سخت غرابت او ډير نکارت دې ده ته ضعيف هم ونيلې شوې دې اوصرف هم د ده د روايت والا حديث د نظرنه خالی نه دې.

يوه بله خبره داده چه د خوب والا د حديث څه حصه په دې کښې هم راغلې ده اودا هم ممکن دی چه دا د ډيرو احاديثو مجموعه وی ياخوب ياد معراج نه سوا د بلې واقعه په دې کښې روايت وی. والله اعلم. دبخاری اومسلم په يوروايت کښې دحضورﷺ دحضرت موسیٰؑ حضرت عيسیٰؑاوحضرت

ابراهيم ﷺ صورتونه وغيره هم بيان کول نقل دی.(١) دصحيح مسلم په حديث کښې په حطيم کښې د حضور ﷺ نه دبيت المقدس باره کښې د سوالونوکول او بيا د دې ښکاره کيدو واقعه هم ده په دې کښې هم ددې دريوارو نبيانو سره د ملاقات کولو اود هغوی د حليه بيان دې اودا هم چه حضور ﷺ هغوی په مانځه ولاړ اوليدل. حضور ﷺ مالك خازن دوزخ هم اوليدلو اوهغه حضور ﷺ سره په شروع کښې سلام اوکړو. (٢)په بيهقي وغيره کښې د يوڅو صحابه کرامو ﷺ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ د حضرت ام هانی ﷺ په کورکښې اوده ووحضور ﷺ د ماسخوتن د مانځه نه فارغ شوې وو هم د هغه ځاۍ نه د هغوی ﷺ معراج شوې وو. بيا امام حاکم ﷺ ډير اوږد حديث بيان کړې دې په کوم کښې چه د درجو اوفرښتو وغيره ذکر دې. د الله ﷻ د قدرت نه خو څه لرې نه دی په دې شرط چه هغه روايت صحيح ثابت شی.امام بيهقي ﷺ دې روايت بيانولو سره فرمائی چه د مکې مکرمې نه د بيت المقدس پورې تلل اود معراج باره کښې په دې حديث کښې پوره کفايت دې خودا روايت د احاديثو ډيرو ائمه حضراتو مرسل بيان کړې دې. والله اعلم.

**معراج د کوم ځائې نه شروع شوې وو دهغې متعلق د بيهقي روايت:-**اوس دعائشه صديقه ﷺ روايت واورئ بيهقي کښې دی کله چه سحر خلقو ته حضور ﷺ د دې خبرې ذکربيان کړو نو ډير خلق مرتدشو چه د اول نه ئې ايمان راوړې وو اوتصديق کونکی وو بياصديق اکبر ﷺ له تلل د هغوی رښتونی منل اود صديق لقب مونډل روايت دی.(٣).هم پخپله د حضرت ام هانی ﷺ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ ته معراج هم زما د کورنه شوې دې په دې شپه حضور ﷺ د ماسخوتن د مانځه نه پس هم زما په کورکښې آرام کولو.حضور ﷺ هم اوده شو اومونږ ټول هم. دسحر نه لږشان وړاندې مونږ حضور ﷺ رابيدارکړو بيا هم هغوی ﷺ سره مونږ د سحر مونځ اداکړو نوحضور ﷺ اوفرمائيل اې ام هانی! ما د ماسخوتن مونځ هم تاسو سره اداکړو او اوس د سحر مونځ کښې هم تاسو سره دلته يم په دې مينځ کښې الله ﷻ زه بيت المقدس ته اورسولوم اوما هلته مونځ هم اوکړو. د دې يوراوی کلبی متروك دې او بالکل ساقط دې خودا په بل سندسره په ابويعلی کښې په ښه وسعت سره روايت کړې دې. طبرانی کښې د حضرت ام هانی ﷺ نه روايت دې چه حضور ﷺ د معراج په شپه هم زما کره اوده وو. ما د شپې هغه ډير اولټولو خو ملاونه شو. ويره وه چه چرته قريشو څه دهوکه نه وی کړې خو حضور ﷺ اوفرمائيل جبرائيل ﷺ ماله راغلو زما لاس ئې اونيولو زه ئې بوتلم. په دروازه کښې يوځناور وو چه د قچر نه وړوکې اود خرنه اوچت ووزه ئې په دې باندې سورکړم. بيائې زه بيت المقدس ته اورسولم او حضرت ابراهيم ﷺ ئې راته اوخودلو هغه په اخلاق کښې صورت کښې او شکل کښې بالکل زما په شان وو. حضرت موسى ﷺ راته اوخودلې شو اوږد قد نيغ ويښته ئې داسې وولکه د ازدشنئوه قبيلې خلق چه وی. دغه شان ماته حضرت عيسى ﷺ هم اوخودلې شو درميانه قد سوريخن سپين رنګ ئې وو بالکل داسې لکه عروه بن مسعود ثقفی چه دې.دجال راته اوخودلې شو يوه ستړګه د هغه بالکل خاورې شوې وه. داسې وو لکه قطن بن عبدالعزی. ددومره ارشاد کولونه پس ئې اوفرمائيل چه ښه ده زه ځم او چه څه مې ليدلې دی هغه قريشو ته بيانوم. ماد حضور ﷺ پلو اونيولو او ورته مې عرض اوکړو د الله د پاره ته دا خپل قوم ته مه بيانوه هغوی به تا دروغ اوګڼړی اوستاسو خبره به هيڅ کله هم اونه منی اوکه وس ئې اوشو نو ستاسو بې ادبی به هم اوکړی. خو حضور ﷺ خپله لمن زمانه راښکله او زما

---

(١) صحيح بخاری کتاب احاديث الانبياء باب قول الله تعالى ﴿واذکرفی الکتاب مريم اذانتبذت من اهلها....﴾:٣٤٣٧، صحيح مسلم:١٦٨، ترمذی:٣١٣، احمد:٢/٢٨٢، دلائل النبوة:٢/٣٨٧، ابن حبان:٥١.

(٢) صحيح مسلم کتاب الايمان باب ذکر المسيح ابن مريم والمسيح الدجال:١٧٢، ودلائل النبوة:٢/٣٥٨.

(٣) حاکم:٣/٦٢ بيهقی فی الدلائل:٢/٣٦٠،



د لاس نه ئی خلاصه کړه اونیغ د قریشو ډلې له لاړو او ټولې خبرې ئی ورته اوخودلې. جبیر بن مطعم وئیل بس حضرت نن مونږ ته معلومه شوه که چرې تاسو ربښتونې وئی نو داسې خبرې به مو زمونږ په مینځ کښې نه کولې یوسړی وئیل حضرت په لارکښې زمونږ قافله ملاوشوې وه؟ حضورﷺ اوفرمائیل او خود هغوی نه یو اوښ ورك شوې وو د کوم لټون ئی چه کولو.چاپه کښې وئیل د فلانکې قبیلې اوښان هم په لارکښې ملاوشو؟حضورﷺ اوفرمائیل هغوی هم ملاوشوې ووفلانکی مقام کښې وو په دې کښې یود سور رنګ اوښه وه دکومې چه پښه ماته شوې وه. هغوی سره په یوه لویه پیاله کښې اوبه وې کومې چه ما څکلې هم وې. هغوی وئیل ښه ده د هغوی د اوښانو شمیر اوښایه. په هغې کښې ساربانان څوك څوك وو داهم اوښایه. هم هغه وخت الله ﷻ قافله د حضورﷺ په وړاندې کړه حضورﷺ ټول شمیرهم اوخودلو اود ساربانانو نومونه ئی هم اوخودل. یو ساربان په هغوی کښې ابن ابی قحافه وو اودانی هم اوفرمائیل چه صباسحر به هغوی ثنیه ته راورسی. نو هغه وخت د ازمېښت په توګه ثنیه ته اورسیدل. وئی کتل نو واقعی قافله راورسیده د هغوی نه ئی تپوس اوکړو چه ستاسو اوښ ورك شوې وو؟هغوی وئیل ټیك دی ورك شوې وو.دبلې قافلې والا نه ئی تپوس اوکړو چه د یوې سرې اوښې پښه ماته شوې وه؟ هغوی وئیل اودا هم صحیح دی. تپوس ئی اوکړو چه آیا تاسو سره د اوبو غټه پیاله هم وه؟ ابوبکرؓ قسم اوخوړلو چه دا خو ما پخپله ایخودې وه د هغې نه نه چااوبه اوڅکلې اونه هغه اوبه چا توئی کړې بې شکه محمدﷺ ربښتونې دې هغه دحضورﷺ تصدیق اوکړو اوهم د هغه ورځې نه د هغوی نوم صدیق کیخودې شو. (١)

**د ټولو احادیثو نچوړ او خلاصه**:-د دې ټولو احادیثونه د خبریدونه پس کوم کښې چه صحیح هم دی حسن هم دی ضعیف هم دې کم نه کم دومره ضرور معلومه شوه چه د حضورﷺ د مکې نه بیت المقدس ته تلل اوشو اوداهم معلومه شوه چه صرف هم یوځل شوی دی سره ددې چه د راویانو عبارتونه په دې باب کښې په مختلفو الفاظو سره دی اوپه دې کښې زیاتې اوکمې هم دې. دا هیڅ خبره نه ده څکه چه بغیرد انبیاء کرامو د خطا نه څوك پاك دی. بعضې خلقو هر یو روایت یوه خان له جدا واقعه وئیلې ده اوددې قائل شوی دی چه دا واقعه څوځل شوې ده خودا خلق ډیرلرې وتلی دی او ډیره عجیبه خبره ئی کړې ده اوپته نه لګی چه کوم خایٔ ته تلی دی اوپیانی هم مطلب نه دې حاصل شوې. په متاخرینوکښې بعضو دا توجیه پیش کړې ده اود هغوی په دې باندې ډیر فخر هم دې. هغه دا چه یوځل خو حضورﷺ ته دمکې نه دبیت المقدس پورې سیل اوکړې شو یوځل د مکې نه آسمانونوته اوچت کړې شو اویوځل دمکې نه بیت المقدس او د بیت المقدس نه آسمانونوته. خودا قول هم ډیرلرې او بالکل غریب دې. په سلفو کښې خو هیڅ څوك هم د دې قائل نه وو که چرې داسې وې نو پخپله به حضورﷺ د هغوی په وړاندې بیان کړې وو اوراویانویه دحضورﷺ نه د دې بار بار روایت کړې وو. د حضرت زهری رحمه الله په قول د معراج دا واقعه د هجرت نه یوکال وړاندې ده. عروه رضی الله عنه هم دا وائی سدی رحمه الله وائی چه شپږ میاشتې وړاندې ده. خو حق خبره دا ده چه حضورﷺ ته په ویښه نه چه په خوب کښې د مکې نه د بیت المقدس پورې سیل اوکړو هغه وخت حضورﷺ په براق باندې سور وو. د مسجد اقصی په دروازه باندې حضورﷺ براق اوتړلو هلته لاړو اود قبله طرف ته ئی تحیة المسجد دوه رکعته مونځ اوکړو. بیا معراج راوړلې شو چه د درجو والا وو اود پاوړنی په شان دې په دې سره حضورﷺ ددنیا آسمان ته اوخیژولې شو بیااووه واړو آسمانونو ته اورسولې شو.دهریو آسمان د الله ﷻ مقربینو سره ئی ملاقات اوکړو.انبیاء کرامو سره د هغوی د منازلو اودرجاتو مطابق سلام علیك اوشو. په شپږم آسمان کلیم الله علیه السلام او په اووم خلیل الله علیه السلام سره ملاوشو. بیا د هغوی نه هم وړاندې لاړو صلوات الله علیهم اجمعین.

---

(١) طبران: ٢٤/٤٣٢-٤٣٤، ١.

ترږي چه حضورﷺ مستوی ته اورسیدو چرته چه د قضی او قدر د قلمونو اوازونه حضورﷺ واوریدل سدرة المنتهی نی اولیدله په کومه چه د الله ﷻ عظمت راخور وو.دسرو زرو ملخان اوقسم قسم رنګونه په دې کښې ښکاریدل فرښتو د څلورو واړو طرفونه راګیره کړې وه. هم هلته حضورﷺ حضرت جبرائیل ﷺ په خپل اصلی شکل کښې اولیدلو شپږ سوه وزرې وې. هم هلته حضورﷺ رفرف د شین رنګ اولیدلو کوم چه د آسمان غاړې پټې کړې وې. د بیت المعمور زیارت نی اوکړو چه د خلیل الله ﷺ د زمکې د کعبه بالکل د پاسه په آسمانونو باندې دې یعنی آسمانی کعبه ده خلیل اللهﷺ دې ته ډډه وهلې ناست وو.دې ته هره ورځ اویازره فرښتې د الله ﷻ عبادت د پاره راځی خوچه کومې نن راغلې د هغوی وار د قیامته پورې هم بیا نه راځی. حضورﷺ جنت اودوزخ اوکتلو مونږ له د الله ﷻ د طرف نه پنځوس مونځونه فرض شو بیا کمې اوشو او پنځه کیخودې شو چه خاص د الله ﷻ رحمت دې. د دې نه د مانځه فضیلت او بزرګی صفا ښکاره کیږی بیاحضورﷺ واپس بیت المقدس طرف ته راکوز شو او هغوی سره ټول انبیاء کرامو هم راکوزشول هلته حضورﷺ دې ټولوته مونځ اوکړو کله چه د مانځه وخت شو. اود بعضې حضراتو داخیال دې چه دا امامت په آسمانونو باندې شوې خو د صحیح روایت نه په ظاهره دا واقعه د بیت المقدس معلومیږی. سره د دې چه په بعضې روایتونوکښې داهم راغلی چه په تلوکښې حضورﷺ دا مونځ کړې وو خو ظاهره دا ده چه هغوی په واپسئی کښې دا امامت کړې. د دې یودلیل خودا دې چه کله په آسمانونو باندې انبیاء کرامو سره ملاقات کیږی نو حضورﷺ د هریوباره کښې د حضرت جبرائیل ﷺ نه تپوس کوی چه دا څوك دې نوکه په بیت المقدس کښې دا مونځ شوی وونو اوس به ددې سوال کولو حاجت نه وو. بل دا چه د ټولو نه لوئ غرض او اوچتوالی باندې د الله ﷻ په حضور کښې حاضریدل وو نو په ظاهره هم دا خبره په ټولو باندې مقدم وه نوچه کله دا اوشوه اوبه حضورﷺ باندې اود هغه په امت باندې کومه د مونځونو فریضه مقرریدل وو هغه هم اوشوه اوس حضورﷺ ته د خپلورونړوسره دیوځائ کیدو موقعه ملاوشوه اوددې ټولو په وړاندې د هغوی فضیلت او بزرګی ښکاره کولود پاره د حضرت جبرائیل ﷺ په اشاره باندې حضورﷺ امام شو او هغوی ته نی مونځ اداکړو. بیا د بیت المقدس نه په براق سور د شپې په تیاره کښې واپس د سحر نه څه رنړا په وخت کښې حضورﷺ مکې مکرمې ته راورسیدو. والله سبحانه وتعالی اعلم.

**د پئیواو شاتو وضاحت:**-اوس چه داکوم نقل دی چه د حضورﷺ په وړاندې پئیی او شات، یا پئیی او شراب یاپئیی او اوبه پیش کړې شوې اویاهم څلور واړه څیزونه.ددې بابت کښې په روایتونوکښې داهم دی چه دا واقعه د بیت المقدس ده اودا هم دی چه دا واقعه د آسمانونوده خودا کیدې شی چه هم په دواړوځایونوکښې دا څیز دحضورﷺ مخې ته پیش شوې وی ځکه چه لکه د یو راتلونکی مخې ته د میلمستیاپه توګه څه څیز کیخودې شی دغه شان دا هم وی.

**د حضورﷺ معراج بدنی وو که روحانی؟**:-بیا په دې کښې هم خلقو اختلاف کړې دې چه معراج په هغوی باندې د بدن او روح سره کړې شوې وویا صرف په روحانی توګه باندې؟ د اکثرو علما کرامو خو هم دا قول دې چه معراج هغوی ته د بدن او روح سره کړې شوې وو او شوې هم وو په ویښه نه چه په خوب کښې. اود دې خبرې انکارنه دې چه حضورﷺ ته اول په خوب کښې دا څیزونه خودلې شوی ود حضورﷺ چه به په خوب کښې کوم یوڅیز اوکتلو نوهغه به نی هم هغه شان په ویښه هم کتلو. د دې د ټولونه لوئ یودلیل خودا دې چه د دې واقعه بیانولو نه وړاندې الله ﷻ خپل پاکوالې بیان کړو. د دې قسم بیانولو تقاضا داده چه د دې نه پس کومه خبره وی هغه ډیره اهمه ده که چرې دا واقعه د خوب اوګنړلې شی نو په خوب کښې داسې خبرې کتل دومره اهم نه وی چه د هغې بیان فرمائیلو نه وړاندې الله ﷻ د خپل احسان او قدرت د اظهار کولو د پاره خپل تسبیح بیان کړی. بیا که چرې دا واقعه د

خوب وه نوکافرانو به دومره زردحضورﷺ تکذیب نه کولو چه یوسړې خپل خوب او په خوب کښې
عجیبه څیزونه بیان کوی دې هیڅ وجه نه وه چه هغوی داسې په منډه منډه راغله او اوریدو سره ئې په
سختئې سره انکار اوکړو. بیا چه کومو خلقو اول په حضورﷺ باندې ایمان راوړلې وو اود هغویﷺ
رسالت ئې قبول کړې ووڅه وجه ده چه هغوی د معراج واقعه اوریدلوسره د اسلام نه اوړی دې نه هم
معلومیږی چه حضورﷺ دخوب واقعه بیان کړې نه وه. بیا د قرآن په لفظ ﴿بِعَبْدِهٖ﴾ باندې غور اوکړئ د
عبد اطلاق په روح اوبدن دواړو باندې راځی. بیا﴿أَسْرٰى بِعَبْدِهٖ﴾ فرمانیل دا څیز نور هم صفاکوی چه هغه
خپل بنده د شپې په لړه شان حصه کښې بوتلو. د دې کتلوسبب د خلقود ازمیښت دسبب آیت ﴿وَمَا
جَعَلْنَا الرُّءْيَا الَّتِيْٓ اَرَيْنٰكَ اِلَّا فِتْنَةً لِّلنَّاسِ﴾(١)فرمانیلې شوې دې. که داهم خوب وو نو په دې کښې د خلقو داسې
کوم یوازمیښت وو کوم چه په مستقل توګه باندې بیان فرمانیلې شو. حضرت ابن عباس ؓ د دې آیت
په تفسیرکښې فرمائی چه دا د سترګو لیدل وو کوم چه رسول الله ﷺ ته اوخودلې شو (بخاری) (٢)پخپله
قرآن پاك فرمائی ﴿مَا زَاغَ الْبَصَرُ وَمَا طَغٰى﴾(٣)نه خوئی نظر دهوکه شوې نه بل خوا شوې. ښکاره خبره بصر
یعنی لیدل د انسان د ذات یولوئ صفت دې دا نه چه صرف د روح. بیا د براق سورلی راوستل او دې
سپین پرقیدونکی ښناور باندې حضورﷺ سوروول اوبوتلل هم ددې خبرې دلیل دې چه دا واقعه د ویښې
اوبدنی ده ګنی نو صرف د روح د پاره د سورلئی څه ضرورت .والله اعلم. نور خلق وائی چه دا معراج
صرف روحی وو بدنی نه وو.

محمدبن اسحاق لیکی دحضرت معاویه ؓ بن ابوسفیان ؓ دا قول نقل دې چه حضرت عائشه ؓ
فرمائی چه بدن غالب شوې نه وو بلکه صرف روحانی معراج وو. د دې قول انکار نه دې کړې شوې
ځکه چه حسن ؒ فرمائی ﴿وَمَا جَعَلْنَا الرُّءْيَا الَّتِيْٓ اَرَيْنٰكَ اِلَّا فِتْنَةً لِّلنَّاسِ وَالشَّجَرَةَ الْمَلْعُوْنَةَ فِي الْقُرْاٰنِ ۭ وَنُخَوِّفُهُمْ ۙ فَمَا يَزِيْدُهُمْ اِلَّا
طُغْيَانًا كَبِيْرًا﴾ (٤)آیت نازل شوې دې اود حضرت ابراهیم خلیل الله ؑ په نسبت خبرورکړې شوې دې چه
هغوی اوفرمائیل چه ما په خوب کښې ستا حلالول لیدلی دی اوس ته سوچ اوکړه چه څه ګورې؟ بیا هم
داحال پاتې وو نو ښکاره خبره ده چه په انبیاء کرامو باندې وحی په ویښه هم راځی او په خوب کښې هم.
حضورﷺ به فرمائیل چه زما سترګې اودې وی او زړه مې ویښ او بیدار وی. (٥)والله اعلم. په دې کښې
کومه یوه خبره رښتیاده؟ حضور ﷺ لاړو او ډیرې خبرې اولیدلې په کوم یو حال کښې چه هم هغویﷺ
وو په ویښه یا په خوب کښې ټول حق او رښتیادی. داخوو د محمد بن اسحاق قول. امام ابن جریر ؒ
د دې ډیر زیات تردیدکړې دې او په هرقسم باندې ئې دا رد کړې دې اودائی خلاف ظاهر ګرځولې چه د
قرآنی الفاظو دا قول سراسر خلاف دې. بیائی د دې خلاف ډیر دلیلونه قایم کړی دی. په کوموکښې چه
مونږ هم یوڅو پورته بیان کړی دی. والله اعلم.

**د ابونعیم په روایت کښې یوه فائده:-** یوډیره ښکلې او زبردسته فائده ده په دې بیان کښې چه په دې
روایت کښې کولې شی کوم چه حافظ ابونعیم اصبهانی ؒ کتاب دلائل النبوة کښې راوړلې دې چه
کله دحیه بن خلیفه ؓ رسول الله ﷺ قیصر روم له د قاصد په توګه اولیګلو او عرب سوداګر چه د شام
په ملك کښې ووهرقل راجمع کړل په هغوی کښې ابوسفیان صخر بن حرب وو اودهغه ملګری د مکې

---

١) ١٧/بنی اسرائیل:٦٠.

٢) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة بنی اسرائیل باب ﴿وماجعلنا الرؤیاالتی اریناك الا فتنة للناس.....﴾:٤٧١٦.

٣) ٥٣/النجم:١٧.

٤) ١٧/بنی اسرائیل:٦٠.

٥) صحیح بخاری کتاب الوضوء باب التخفیف فی الوضوء:١٣٨٠، ابن خزیمه:١٥٢٤، ابوعوانه:٢/٣١٧، مسندحمیدی٤٧٢، احمد:١/٢٢٠.

نورکافران هم وو بیا هغه د دوی نه ډیر سوالونه اوکړل کوم چه په بخاری اومسلم کښې ذکر دی[۱]
ابوسفیان د اول نه ترآخره پورې دا کوشش وو چه څنګه د حضورﷺ بدی او سپکاوې د هغه په وړاندې
اوکړې دې دپاره چه د بادشاه د زړه رخ دحضورﷺ طرف ته نه وی. هغه پخپله وائي چه ماصرف د دې
ویرې غلطې خبرې کولواو تهمتونه لګولونه منع شوم چه چرته زما دروغ په هغه باندې ښکاره نه شي
بیاخویه دې زما خبره دروغ ګڼړی اوډیره پښیمانتیا به وی.هم په زړه کښې داخیال راغلوماوئیل بادشاه
سلامت واورئی زه یوه واقعه بیانوم په کوم سره به تاسوته خبره ښکاره شي.محمدﷺ ډیر دروغژن سړې
دې(نعوذبالله) واورئی یوه ورځ هغه وئیل چه هغه د شپې مکې نه لاړواوستاسو په دې جمات یعنی بیت
المقدس مسجد قدس ته راغلو اوبیا واپس د سحر نه وړاندې مکې ته اورسیدو.

**الفضل ما شهدت به الاعداء**:-زما دې خبرې اوریدو سره د بیت المقدس لاټ پادری کوم چه د روم بادشاه
سره په دې مجلس کښې ډیر په عزت سره ناست وو ډیر زر اووئیل چه دا بالکل رښتیادی ماته د دغه
شپې علم دې. قیصر ډیر په حیرانتیا سره د هغه طرف ته اوکتل او په ډیر ادب نی تپوس اوکړو جناب
تاته څنګه معلومه شوه؟ هغه وئیل واورئی زما عادت وو اوداکار ما د ځان د پاره کړې وو چه ترکومې
د جمات ټولې دروازې په خپل لاس بند نه کړم اوده کیدم به نه. په دغه شپه زه د دروازو بندولو د پاره
راپاسیدم ټولې دروازې مې په ښه شان سره بندې کړې خویوه دروازه مانه بنده نه شوه. ما ډیر زور
اولګولو خو زنځیر د خپل ځایٔ نه اونه خوزیدو. ما هم هغه وخت خپلو سړو له آواز ورکړو هغوی راغله
مونږ ټولو پوره طاقت استعمال کړو خو ټول ناکامه شو اوداسې معلومیدله لکه چه مونږ یو غر د خپل
ځایٔ نه اخواکول غواړو خو هغه یوه ذره هم اونه خوزیدو. مالوهار راوغوښتو هغه مختلف چلونه اوکړل
کوشش نی اوکړو خو هغه هم ماتې اوخوړله اووئی وئیل چه سحر به ګورو. هغه دروازه ټوله شپه هم
داسې پاتې شوه او دواړه زنځیرونه بالکل کولاو پاتې شو.زه سحر هغه دروازې له لاړم چه اومې کتل نو
هغې سره چه په ګوټ کښې کوم کاڼړې دې په هغې کښې سورې وواوداسې معلومیدله لکه چا چه په
کښې څه څناور تړلې وی د هغې اثراونښه موجود وه. زه پوهه شوم اوماهغه وخت خپلو ملګروته اووئیل
چه نن شپه دازمونږ جمات د یونبی د پاره کولاوکړې شوې دې اوهغه دلته ضرور مونځ اداکړې دې. دا
حدیث ډیر اوږد دې.

**د معراج حدیث متواتر دې**:-حضرت ابوالخطاب عمربن دحیه ﷫ خپل کتاب التنویر فی مولد السراج
المنیر کښې د حضرت انس ﷛ په روایت سره د معراج حدیث واردکولو سره د دې متعلق ډیر ښکلې
کلام کولونه پس فرمائی د معراج حدیث متواتردې. حضرت عمر بن الخطاب﷛ حضرت علی ﷛
حضرت ابن مسعود﷛ حضرت ابوذر﷛ حضرت مالك بن صعصعه﷛ حضرت ابوهریره ﷛ حضرت ابو
سعید﷛ حضرت ابن عباس﷛، حضرت شداد بن اوس ﷫ حضرت ابی کعب ﷫ حضرت عبدالرحمن
بن قرظ ﷫ حضرت ابو حبه ﷫ حضرت ابولیلی ﷫ حضرت عبدالله بن عمرو﷛ حضرت جابر﷛
حضرت حذیفه﷛ حضرت بریده﷛ حضرت ابوایوب﷛ حضرت ابوامامه ﷛ حضرت سمره بن جندب﷛
حضرت ابوالحمراء ﷛ حضرت صهیب رومی ﷫ حضرت ام هانی ﷞ حضرت عائشه ﷞ حضرت
اسماء ﷞ وغیره نه روایت دې.

په دوی کښې خو بعضو اوږدبیان کړې دې اوبعضو مختصر. سره د دې چه په دې کښې بعضې
روایتونه سنداً صحیح نه دی خوبیا هم بالجمله په صحت سره د معراج واقعه ثابته ده اومسلمانان په
اجماعی توګه د دې قائل دی او بې شکه زندیق اوملحدخلق د دې نه منکر دی هغوی د الله ﷻ نورانی

[۱] صحیح بخاری کتاب بدء الخلق باب کیف کان بدء الوحی الی رسول الله ﷺ:۷، صحیح مسلم:۱۷۷۳.

چراغ په خپلو پوکویاندې مړه کول غواړي خوهغه به په پوره رڼا سره هم پرقیدونکې وی که کافرانو باندې بدلګی نو هم.

وَاٰتَيۡنَا مُوۡسَى

اوورکړې وو مونږ | موسی ته

او مونږ موسی ﷺ ته

الۡكِتٰبَ وَجَعَلۡنٰهُ هُدًى لِّبَنِىۡۤ اِسۡرَآءِيۡلَ اَلَّا

کتاب | اوګرځولې وو مونږ هغه | ذریعه دهدایت | دپاره دبنی اسراءیلو | چی

کتاب ورکړواو دا کتاب مونږ بنی اسرائیلو دپاره دهدایت ذریعه ګرځولې وه چې خبردار

تَتَّخِذُوۡا مِنۡ دُوۡنِىۡ وَكِيۡلًا ؕ ذُرِّيَّةَ مَنۡ حَمَلۡنَا

مه نیسئ تاسو | بغیر زمانه | خوك وكیل | اولادي | دهغه چا | چی سواره کړي وو مونږ

زما نه بغیر بل هیڅوک خپل کارساز اونه ګنړئ اني دهغه چا اولاده چې مونږ دنوح ﷺ

مَعَ نُوۡحٍ ؕ اِنَّهٗ كَانَ عَبۡدًا شَكُوۡرًا ۞ وَقَضَيۡنَاۤ

دنوح سره | بیشکه هغه | وو | بنده شکرایستونکې | اوخبرداري ورکړې وو مونږه

سره په (کشتئ کښې) سوارۀ کړې وي بیشکه نوح ﷺ یو شکرګزار بنده وو او مونږ بنی

اِلٰى بَنِىۡۤ اِسۡرَآءِيۡلَ فِى الۡكِتٰبِ لَـتُفۡسِدُنَّ فِى الۡاَرۡضِ مَرَّتَيۡنِ

بنی اسراءیلوته | په کتاب کښې | چې خامخابه تاسوفسادکوئ | په زمکه کښې | دوه خله

اسرائیلو ته په خپل کتاب کښې داخبره په ګوته کړې وه چې تاسو به په ملک کښې دوه ځله فسادکوئ

وَلَتَعۡلُنَّ عُلُوًّا كَبِيۡرًا ۞ فَاِذَا جَآءَ وَعۡدُ

او خامخا به تاسو سرکشئ کوئ | سرکشي | لویه | نوهرکله چې | راغله | وعده

اوډیره سرکشي به کوئ پس هر کله چې په دوؤ کښې د ړومبنئ

اُوۡلٰٮهُمَا بَعَثۡنَا عَلَيۡكُمۡ عِبَادًا لَّـنَاۤ

داولنئ سرکشئ په هغه دواړو کښې | نو راپورته کړل مونږه | ستاسو خلاف | داسې بندګان زمونږه

وعدې (دپوره کیدو) وخت راغلو نومونږ په تاسو باندې خپل داسې بندیان

اُولِىۡ بَاۡسٍ شَدِيۡدٍ فَجَاسُوۡا خِلٰلَ الدِّيَارِ ؕ وَكَانَ

چې خاوندان | دجنګ سخت وؤ | نو ننوتل هغوئ | په منځ دکورونو ستاسو کښې | اووه

اوګومارل چې ډیر جنګیالي وونو ستاسو په کورونو درننوتل او دایوه داسې وعده وه

وَعۡدًا مَّفۡعُوۡلًا ۞ ثُمَّ رَدَدۡنَا لَـكُمُ الۡكَرَّةَ عَلَيۡهِمۡ

دایوه وعده | چې خامخابه کیدله | بیا | اواپس درکړه مونږه | تاسو له | موقع دغلبې | په هغوئ باند

چې خامخا به پوره کیدله بیا مونږ دوباره تاسو له په هغوئ باندې غلبه درکړله او په مالونو او په

| وَأَمْدَدْنٰكُمْ | بِأَمْوَالٍ | وَّبَنِيْنَ | وَجَعَلْنٰكُمْ | أَكْثَرَ |
|---|---|---|---|---|
| اوامدادمواوکړوستاسو | په مالونوسره | اوپه اولادسره | اوکړئ مونږه تاسو | زيات |

خامنو ستاسومدداوکړو اوتاسو نه مویرلوئي تولې

| نَفِيْرًا⑥ | إِنْ أَحْسَنْتُمْ | أَحْسَنْتُمْ | لِأَنْفُسِكُمْ |
|---|---|---|---|
| په لحاظ دافرادو سره | كه نيكئ اوكړئ تاسو | نو نيكئ كوئ تاسو | دپاره دخانونو ستاسو |

جوړ کړو که تاسو ښه کوئ نو خپل خان دپاره ښه کوئي

| وَإِنْ أَسَأْتُمْ | فَلَهَا | فَإِذَا | جَآءَ | وَعْدُ | الْاٰخِرَةِ |
|---|---|---|---|---|---|
| او كه بدئ اوكړه تاسو | نويدئ ده دغه نفس لره | نو كله چي | راغي | وخت دوعدي | روستنئ |

اوکه بد کوئ نو خان سره بد کوني نو خان سره بد کوني نو بياچې د ددويمې نيتې وخت راغلو

| لِيَسُوْٓءُا | وُجُوْهَكُمْ | وَلِيَدْخُلُوا | الْمَسْجِدَ | كَمَا |
|---|---|---|---|---|
| دپاره ددې چي وراني کړي | اگوني دمخونوستاسو | اودپاره ددې چي ننوخي | مسجدته | لكه څنگه چي |

چې هغه(دښمن) ستاسو مخونه وران کړی او هغوئ په مسجد اقصی کښې ورننوخي لکه چې

| دَخَلُوْهُ | أَوَّلَ مَرَّةٍ | وَّلِيُتَبِّرُوْا | مَا | عَلَوْا |
|---|---|---|---|---|
| ننوتي ووهغي ته | په اول خل | اوچي تباه کړي | هغه څه | چي غالب شي پرهغوئ |

هغوئ په اول ځل ورنوتي وو او داچي کوم ځائي غلبه بیاموميٰ هغه پوره

| تَتْبِيْرًا⑦ | عَسٰى | رَبُّكُمْ | أَنْ يَّرْحَمَكُمْ | وَإِنْ |
|---|---|---|---|---|
| په کامل تباه کولوسره | کيدي شي | چي رب ستاسو | رحم اوکړي په تاسو | او که |

برباد کړی امید دې چې ستاسو رب په تاسو رحم اوکړی اوکه

| عُدْتُّمْ | عُدْنَا | وَجَعَلْنَا | جَهَنَّمَ | لِلْكٰفِرِيْنَ |
|---|---|---|---|---|
| واپس اوگرزيدئ تاسو | نومونږ به هم واپس اوگرزوا | او جوړکړي دي مونږه | دوزخ | دپاره دکافرانو |

تاسو بیاهغه څه اوکړل نومونږ به هم هغه کوؤ اومونږ دوزخ کافرانو دپاره قيدخانه

| حَصِيْرًا⑧ |
|---|
| قيدخانه |

جوړه کړې ده

قوله تعالى:- وَاٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ

**د معراج دواقعه نه پس د موسی ﷺ ذکر:-** دحضور ﷺ د معراج د واقعه نه پس د خپل پيغمبر حضرت کليم الله ﷺ ذکر فرمائي په قرآن کريم کښې عمومًا دا دواړه بيانونه په يوځائ راغلي دي دغه شان د تورات او قرآن کريم بيان هم نيزدې نيزدې دې. د حضرت موسی ﷺ د کتاب نوم تورات دې هغه کتاب د بني اسرائيلو د پاره د هدايت وو هغوی ته حکم شوې وو چه د الله ﷻ نه بغير بل څوک ولی امدادی اومعبود مه گڼرئ. هريو نبی د الله ﷻ توحيدسره راغلې دې. بيا هغوی ته وئيلې شی چه اې د هغه بزرگانو

اولاده کوم چه مونږ په خپل احسان سره مشرف کړې وو چه د نوح ﷺ د تباه کونکی طوفان نه مونږ هغوی بچ ساتلي وو اوخپل خوړ پیغمبرحضرت نوحﷺ سره مو په کشتئ کښې سواره کړي وو. تاسو له د خپلومشرانو په شان زمونږ شکر کول پکاردي. ګورئ ماستاسو طرف ته خپل آخري رسول محمدﷺ درلیګلي دي. روایت دي چه حضرت نوح ﷺ په خوراك څښاك اواغوستلو غرض په هر وخت کښې د الله ﷻ حمد او ثناء بیانوله په دې وجه هغه ته شکر کونکي بنده اوونیلي شو (١)داهم روایت دې چه هغوی به په هرحال کښې د الله ﷻ شکر کولو. دشفاعت والا اوږدحدیث کوم چه په بخاری وغیره کښې دې په دې کښې دی چه ګله خلق د شفاعت د غوښتلو د پاره حضرت نوح ﷺ له راشي نو هغه ته به اوونیلي شی چه د زمکې د خلقو د پاره تاسو ړومبې رسول وئی چه الله ﷻ ستاسو نوم شکر کونکي بنده کیخودو تاسو د خپل رب نه زمونږ د پاره سفارش اوکړئی الخ. (٢)

**د بنی اسرائیلو دوه ځل سرکشی:-** کوم کتاب چه په بنی اسرائیلو باندې نازل شوې ووهم په هغې کښې الله ﷻ هغوی ته اول خبرورکړې وو چه هغوی به په زمکه باندې دوه ځل سرکشي کوی اوسخت فساد به کوی نودلته د﴿ قَضَيْنَآ ﴾معنی مقررکول اود اول نه خبر ورکول دی. لکه چه آیت ﴿ وَقَضَيْنَآ إِلَيْهِ ذَٰلِكَ ٱلْأَمْرَ أَنَّ دَابِرَ هَٰٓؤُلَآءِ مَقْطُوعٌ مُّصْبِحِينَ ﴾ (٣)کښې هم دا معنی ده.

**اوله سرکشی اود هغې انجام:-** نودهغوی د ړومبی فساد په وخت کښې مونږ د خپل مخلوق نه هغه خلق په هغوی باندې مسلط کړل چه ډیرزیات جنګ کونکی سخت بدنونو والا په سازوسامان اووسله باندې پوره وو. هغوی په دوی باندې قبضه اوکړه د هغوی ښارونه ئې واخستل په لوټ مارکولو سره ئی د هغوی دکورونو پورې خالي کړل اوبې ویرې اوبې خطرې لاړل. دالله ﷻ وعده خو پوره کیدل وو. وائی چه دادجالوت لښکر وو بیا الله ﷻ د بنی اسرائیلو امداد اوکړو اود حضرت طالوت په بادشاهئ کښې بیا اوجنګیدل اوحضرت داؤد ﷺ جالوت قتل کړو. داهم وئیلې شوی دی چه دموصل بادشاه سخاریب اود هغه لښکر په هغوی باندې حمله کړې وه. بعضې وائی چه د بابل بادشاه بخت نصر حمله کړې وه. ابن ابی حاتم دلته یو ډیره عجیبه قصه نقل کړې ده چه دې سړې څنګه درجه په درجه ترقی کړې وه. په اول کښې دا یوفقیر وو پروت به وو او خیرغوښتلو باندې به ئې ګذاره کوله. بیا هغه د بیت المقدس پورې فتح اوکړه اوهلته ئې بنی اسرائیل په بې دردئی سره قتل کړل. ابن جریر رحمه الله دلته ددې آیت په تفسیر کښې یواوږدمرفوعی قول نقل کړې دې چه صرف موضوعی دې اوددې په موضوعی کیدوکښې د چاهم شك نه شی کیدې. حیرانتیاده چه سره د دومره لوئ علم امام صاحب رحمه الله داحدیث نقل کړې دې. زمونږ استاذ شیخ حافظ علامه ابوالحجاج مزی رحمه الله ددې موضوعی کیدو وضاحت کړې دې اود کتاب په حاشیه باندې هم لیکلي دی. په دې باره کښې د بنی اسرائیلو هم ډیر روایتونه دی خو مود هغې په ذکر کولو سره هسې بې فائدې خپل کتاب نه اوږدول غوارو. ځکه چه په دې کښې بعضې خو موضوعی دی او بعضې به داسې نه وی خوالحمدلله مونږ ته د دغه روایتونو هیڅ ضرورت نشته د الله ﷻ کتاب مونږ د ټولوکتابونونه د بې نیازه کولو والا کتاب دې د الله ﷻ کتاب اود هغه د رسول ﷺ احادیثو مونږ د داسې څیزونو محتاج کړې نه یو.

**بیت المقدس باندې قبضه:** حرف دومره ده چه دبنی اسرائیلو دسرکشئ په وخت الله ﷻ د هغوی دښمنان په هغوی باندې مسلط کړل چا چه هغوی ته ښه مزه وراوڅکله ډیره خرابه سزائی ورکړه دهغوی بال بچ

---

(١) الطبری: ٢٥٤/١٧، حاکم: ٣٦٠/٢، وسنده ضعیف.

(٢)صحیح مسلم کتاب الذکر والدعاء، باب استحباب حمدالله تعالی بعد الاکل والشرب: ٢٧٣٤، سورة بنی اسرائیل باب ﴿ذریة من حملنا مع نوح انه کان عبدا شکورا....﴾: ٤٧١٢، صحیح مسلم: ١٩٤.

(٣) ١٥/الحجر: ٦٦.

نې د تیغ نه اوویستل هغوی دومره ذلیل اوخوارکړل چه د هغوی په کورونوکښې ورننوتل او تباه ئې کړل اود هغوی دسرکشئ پوره سزا ئې ورکړه. هغوی په زور ظلم کښې څه کمې نه وو پریخې عام خلق خو عام چه هغوی د انبیاؤ مرئې پرې کړې وې.علماء ئې په رنړا ورځ قتل کړې وو بخت نصر د شام په ملك باندې غالب راغلو بیت المقدس ئې وران کړودهغه ځائ اوسیدونکی ئې قتل کړل بیادمشق ته اورسیدو. دلته ئې اوکتل چه په یوسخت کانړی باندې وینه ټپوونه وهی تپوس ئې اوکړو داڅه دی؟ خلقو ونیل چه مونږ خود خپل پلار نیکه نه هم داسې ګورو داوینه یوشان راخوټکیږی اودریږی نه. هغه هم هلته قتل عام شروع کړو اویازره مسلمانان د هغه د لاسه دغه ځائ کښې قتل شو نو هغه وینه اودریده([1])هغه عالمان حافظان اوټول شریفان اوعزت داره خلق ډیر په بې دردئ سره قتل کړل په هغوی کښې دتورات یوحافظ هم بچ پاتې نه شو. بیائې قید کول شروع کړه او په دې قیدیانوکښې د انبیاء کرامو ځامن هم وو غرض دا چه یوه ډیره خطرناکه هنګامه اوشوه. د صحیح روایتونونه څه بلکه صحیحوالی ته نیزدې روایتونونه هم تفصیلات نه ملاویږی پدې وجه مونږ داپریخودل.والله اعلم. بیا فرمائی چه دنیکئ کونکی په اصل کښې هم خپله ښیګړه کوی اوبدی کونکې په اصل کښې هم خپل نقصان کوی لکه چه ارشاددې ﴿مَنْ عَمِلَ صَالِحًا فَلِنَفْسِهٖ ۚ وَمَنْ اَسَآءَ فَعَلَيْهَا ۗ وَمَا رَبُّكَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ﴾([2])څوك چه نیك کاراوکړی هغه دهغه د خپل ځان دپاره دې اوچه څوك بدی اوکړی دهغې بوج به هم په هغه باندې وی

**دویمه سرکشی او دهغې انجام**:-بیاچه کله دویمه وعده راغله اوبنی اسرائیلودالله ﷻ په نافرمانو باندې ښه په ښکاره ملااوتړله او په بې باکئ او بې حیائ سره ئې ظلم کول شروع کړو نوبیا د هغوی دښمنان راغله چه د هغوی شکلونه وران کړی اود بیت المقدس جمات چه څنګه اول هغوی په خپله قبضه کښې کړې وو اوس بیا ئې په قبضه کښې کړی او چه ترکومې وس وی هرڅیز تباه کړی داهم اوشو. ستا رب خودې د رحم اوکرم والا اود هغه نه نااميدی کول ښه نه دی ډیرممکن دی چه بیا دښمن رانښکته کړی. اودا یادساتئ چه دیخوا تاسو سراوچت کړو اخوا مونږ ستاسو سرونه چقنړی کړل یوخواتاسو فساد جوړکړو بل خوامونږ تاسو تباه کړئ. داخوشوه دنیاوی سزا اوس لاد آخرت زبردست اونه فناکیدونکې سزا باقی ده. دوزخ د کافرانو قیدخانه ده د کوم ځائ نه چه به هغوی نه اوتختیدې شی اونه وتې شی. دهمیشه دپاره به د هغوی استوګنه هم دلته وی([3])حضرت قتاده رحمه الله فرمائی چه بیاهم هغوی سر اوچت کړو او یوشان ئې د الله ﷻ فرمان پریخودو اومسلمانانو سره اونختل. الله ﷻ امت محمدیه ﷺ په هغوی باندې غالب کړو اوهغوی ئې خوارکړل او جزیه ورکول ورته پریوتل. ([4])

| اِنَّ | هٰذَا الْقُرْاٰنَ | يَهْدِیْ | لِلَّتِیْ | هِیَ اَقْوَمُ |
|---|---|---|---|---|
| بیشکه | چې دا قران | ښائی | هغه لار | چې هغه بلکل نیغه ده |
| بیشکه داقران پاک هغه لاره ښائی چې کومه بالکل نیغه ده | | | | |

| وَيُبَشِّرُ | الْمُؤْمِنِيْنَ | الَّذِيْنَ | يَعْمَلُوْنَ | الصّٰلِحٰتِ | اَنَّ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوزیری ورکوی | منونکوته | هغه منونکی | چې هغوئ عمل کوی | نیك | چې بیشکه |
| اوکوم ایماندار چې نیك کارونه کوی هغوئ ته زیری ورکوی چې دهغوئ | | | | | |

[1]) الطبری:٣٢٩/١٧.

[2]) ٤١/حمٓ السجدة:٤٦.

[3]) الطبری:٣٩٠/١٧.

[4]) الطبری: ٣٨٩/١٧.

لَهُمْ أَجْرًا كَبِيرًا ۝ وَّأَنَّ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ

دي دهغوئ دپاره | اجر | لوئ | اوبيشکه | هغه کسان | چي نۀ مني | اخرت لره |

دپاره ډير لوئي اجر مقرر دي او دا چي کوم خلق په اخرت باندي ايمان نه راوړي

أَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ۝

تيارکړي دي مونږه | دپاره دهغوئ | عذاب | دردناک |

مونږ هغوئ دپاره دردناک عذاب تيار کړي دي

**قوله تعالى:-** إِنَّ هَٰذَا الْقُرْآنَ يَهْدِي

**ترغيب الى القران او بشارت:-** الله ﷻ د خپل پاک کتاب په تعريف کښي فرمائي چه دا قرآن د بهترينې لارې طرف ته لارخودنه کوي. ايماندار چه د نبيکريم ﷺ د فرمان مطابق عمل هم اوکړي هغوی ته دا زيري اوروی چه دهغوی دپاره الله ﷻ سره ډير لوئ اجر دي او بې شماره ثوابونه دي. اوچه څوک د ايمان نه خالي دی د هغوی دپاره دا قرآن د قيامت په ورځ د سختوعذابونو خبرورکوی لکه چه ارشاد دې ﴿فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ۝﴾ (1) دوی ته د دردناك عذابونو خبر اورسوه.

وَيَدْعُ الْإِنسَانُ بِالشَّرِّ

| اوغواړي | انسان | شرلره

اوخيني انسانان دعذاب دپاره داسې دعا غواړي

دُعَاءَهُ بِالْخَيْرِ ۚ وَكَانَ الْإِنسَانُ عَجُولًا ۝ وَجَعَلْنَا

پشان دغوښتلودهغه | خيرلره | اودي انسان | تلوارکونکي | اوجوړې کړې دی مونږه

لکه چي دنيکئ دعا غواړي او انسان ډير تلوار کوؤنکي دي اومونږ

اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ آيَتَيْنِ ۖ فَمَحَوْنَا آيَةَ اللَّيْلِ وَجَعَلْنَا آيَةَ النَّهَارِ

شپې | او ورځي لره | دوه نښې | نوبې رڼړا کړه مونږه | نښه دشپې | اوجوړه کړه مونږا نښه د ورځي

دشپې اودورځي نه دوه نخښې جوړې کړې دی اود ورځي نخښه مو

مُبْصِرَةً لِّتَبْتَغُوا فَضْلًا مِّن رَّبِّكُمْ وَلِتَعْلَمُوا

روښانه جوړه کړيده | دپاره ددې چي تلاش کړئ تاسو | فضل | ادرب خپل نه | اودپاره ددې چي معلومه کړئ تاسو

روښانه کړې ده چي تاسو په کښې دخپل رب فضل لټولې شئ او چي دکلونو

عَدَدَ السِّنِينَ وَالْحِسَابَ ۚ وَكُلَّ شَيْءٍ فَصَّلْنَاهُ تَفْصِيلًا ۝

شمار دکلونو | اودحساب | | اوهر څيز | واضحه بيان کړې دي مونږه | په وضاحت سره

شمير او نور حساب درته معلوميږي او هر څيز مونږ په تفصيل سره بيان کړې دي

**قوله تعالى:-** وَيَدْعُ الْإِنسَانُ بِالشَّرِّ دُعَاءَهُ بِالْخَيْرِ

**د انسان د بې صبرئ بيان:-** يعنى انسان کله کله خفه شي نااميده شي او د سختئ غلطئ په وجه د خپل ځان د پاره بدې دعاګانې غواړي کله د خپل مال اولاد د پاره خيرې کوی کله د مرګ کله د

(1) ٣/آل عمران: ٢١.

هلاکت اوکله د بربادني او لعنت. خود ده الله ﷻ پخپله د ده نه زيات مهربان دې که يوخوا بددعا اوکړی اوبل خوانی الله ﷻ قبوله کړی نو بس هم اوس به هلاك شی([1])په حديث کښې هم دی د خپل خان او مال د پاره خيرې مه کوئی هسې نه چه د قبوليت په يووخت کښې دې داسې بده کلمه د ژبې نه اوخی([2])د دې وجه د انسان بې قرارې او جلدبازی ده ځکه چه دې خودې جلدباز. حضرت سلمان فارسی ﷺ اوحضرت ابن عباس ﷺ په دې موقعه باندې د حضرت آدم ﷺ واقعه ذکر کړې ده چه لاتراوسه پورې نی پښوته روح نه وو رسيدلې چه هغوی د اودريدو اراده اوکړه. روح د سرد طرف نه راروان وو چه کله پوزې ته اورسيدو نو اتروشې راغلو هغوی اووئيل الحمدلله نو الله ﷻ اوفرمائيل ﴿يرحمك ربك ياآدم﴾ اې آدم ﷺ په تادې خپل رب رحم اوکړی.کله چه سترګوته اورسيدو نو سترګې کولاوکړې ونی کتل چه کله نورلاندې اندامونوته اورسيدو نو د خوشحالئی نه خپل خان ته اوکتل اوس لاترپښوپورې نه وو رسيدلې چه د روانيدو اراده ئی اوکړه خو روان نه شو نو دعائی اوکړه چه اې الله ﷻ د شپې نه وړاندې دې روح راشی([3])

**شپه ورځ د الله ﷻ د قدرت دليل:-** الله ﷻ د خپلو لويو لويونښو نه دلته د دوو بيان فرمائی چه شپه ورځ هغه بيل بيل قسم جوړې کړې. شپه د آرام د پاره او ورځ د روزګاردپاره په دې کښې کار روزګار کوئی صنعت اوحرفت کوئی سيل اوسفرونه کوی.د شپې ورځې په اختلاف باندې د دواړو په يوځای کولو د مياشتو اوکالونو شميرمعلومولې شئی دی د پاره چه په لين دين کښې معاملاتوکښې د قرض په موده کښې د عبادت په کارونو کښې آسانی او پيژندګلواوشی. که هم يووخت وې نو ډيره به ګرانه وه. رښتيادی که الله ﷻ غوښتل نو هم شپه به وه د چا دومره قدرت نه وو چه ورځ کړې به نی وه. اوکه هغه هميشه هم ورځ ساتله نو د چا مجال وو چه شپه نی راوستې وه؟د قدرت دانښې د اوريدلو اوکتلو دی داهم دهغه رحمت دې چه شپه نی د آرام د پاره جوړه کړه او ورځ د معاش د لټون د پاره.دا دواړه نی يو بل پسې يوشان راتلونکی جوړې کړې چه د شکر اونصيحت اراده لرونکی کامياب کړې شی. هم د هغه په لاس کښې د شپې ورځې اختلاف دې هغه د شپې پرده په ورځ اود ورځې په شپه باندې خيژوی. نمر سپوږمئی هم د دې په ماتحتئی کښې دی هريويه خپل مقرر وخت باندې ځی راځی. هغه الله ﷻ غالب اوغفاردې هغه دسحر راويستونکې دې هم هغه شپه د آرام والا جوړه کړې ده اونمر سپوږمئی نی مقرر کړی دی دا د الله ﷻ چه عزيز اوعليم دې مقررکړې شوې اندازه ده. شپه د خپلې تيارې نه د سپوږمئی نه پيژندلې شی او ورځ د رڼا اونمر د راختلونه معلوميږی. نمر سپوږمئی دواړه روښانه اومنور دی خو په دوی کښې نی هم پوره لرې والې ايخودې دې چه هريو اوپيژندلې شی. نمر ډير پرقيدونکی او سپوږمئی نورانی هم هغه کړی دی. منزلونه هم هغه مقررکړی دی دې د پاره چه حساب اوکال معلوم وی. د الله ﷻ دا پيدائش حق دې. الخ.

**د سپوږمئی باره کښې يوسوال:-** قرآن پاك کښې دی خلق تانه د سپوږمئی باره کښې تپوس کوی اووايه چه هغه د خلقو د پاره وختونه دی اود حج د پاره هم الخ. د شپې تياره اخواکيږی اود ورځې رڼا راځی. نمر د ورځې علامت دې او سپوږمئی د شپه نښه ده([4])الله ﷻ سپوږمئی لکه شان توره پيداکړې ده اود شپې نښه سپوږمئی نی په نسبت دنمرتته جوړه کړه په دې کښې نی يوقسم داغ کيخودو.ابن الکواء د حضرت امير المؤمنين حضرت علی ﷺ نه تپوس اوکړو چه په سپوږمئی کښې داسورې ځنګه دې؟

[1]) الطبری:١٧/٣٩٣-٣٩٤.

[2]) صحيح مسلم كتاب الزهد باب حديث جابر الطويل وقصة ابی السير:٣٠٠٩، ابن حبان:٥٧٤٢.

[3]) الطبری:١٧/٣٩٤-٣٠٥.

[4]) الطبری:١٧/٣٩٦.

هغوی اوفرمائیل ددې بیان پدې ایت کښې دې چه مونږ دشپې نښه یعنی سپوږمئی ککوړې تت غوندې کړو اود ورځې نښه مو ښه روښانه کړه. داد سپوږمئی نه ډیر روښانه او ډیر لوئ دې. د شپې ورځې نې دوه نښې مقررکړې د دوی پیدائش هم په دې شان سره دی. (١)

| وَكُلَّ إِنسَانٍ | أَلْزَمْنَٰهُ | طَٰٓئِرَهُۥ | فِى عُنُقِهِۦ ۖ |
|---|---|---|---|
| اوهرانسان چې دې | الازم کړې دې مونږه دهغه سره | قسمت دهغه | په غاړه دهغه کښې |
| اومونږ دهر چا عملنامه دهغه دغاړې امیل کړې دې | | | |

| وَنُخْرِجُ | لَهُۥ | يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ | كِتَٰبًا | يَلْقَىٰهُ |
|---|---|---|---|---|
| او را اوباسو مونږه | دپاره دهغه | په ورځ دقیامت | لیکلې شوې کاغذ | چې اوبه وینی هغه کاغذ |
| اودقیامت په ورځ به ورته یو عملنامه مخامخ کیږدو چې سپړلې | | | | |

| مَنشُورًا ۝ | ٱقْرَأْ | كِتَٰبَكَ ۖ | كَفَىٰ | بِنَفْسِكَ | ٱلْيَوْمَ | عَلَيْكَ | حَسِيبًا ۝ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| غوړیدلې | او لوله | عملنامه خپله | کافي دې | نفس ستا | نن ورځ | په تاباندې | حساب کونکې |
| به ئې اووینې (اوبه وئیلې شی) خپله عملنامه اولوله نن ته دخپلې عملنامې دحساب دپاره په خپله کافې یې | | | | | | | |

**قوله تعالی:- وَكُلَّ إِنسَانٍ أَلْزَمْنَٰهُ**

**هریوبه خپله عمل نامه اووینی:-** پورتنوآیاتونوکښې نی دزمانې ذکراوکړو په کومه کښې چه دانسان اعمال وی. اوس نی دلته اوفرمائیل چه د ده کوم عمل وی ښه وی که بد هغه ده پورې اینخلی د نیکنی بدله به نیکه ملاویږی اودبدئی بدله بده که په هرڅومره کم مقدارکښې ولې نه وی (٢)لکه چه فرمان دې د ذرې هومره برابر خیر او هم دومره شر به هرسړې د قیامت په ورځ اووینی(٣) اوبل خائ ارشاد دې نبی اوګس طرف ته هغوی ناستې دی کومه خبره چه د خُلې نه اوځی هغه هم هغه وخت وراولیکی.(٤) بل خائ ارشاد دی﴿وَإِنَّ عَلَيْكُمْ لَحَٰفِظِينَ ۝﴾(٥)په تاسویاندې خیال ساتونکی دی بزرګې دی لیکونکی دی ستاسوپه هرکارباندې خبردی.بل آیت کښې دی تاسوته به صرف ستاسودکړې شوی عمل بدله ملاویږی.بل خائ ارشاد دې هربدی کونکی ته به سزا ملاویږی(٦)مقصددادې چه د بنیادم لوئ واړه پټ اوښکاره نیك اوبد ټول عملونه سحر مابنام شپه ورځ برابر لیکلې کیږی.مسند احمد کښې رسول الله ﷺ فرمائی دهریوانسان د عمل بدی دهغه په مرئی کښې ده.ابن لهیعه رحمه الله فرمائی ترډې چه شګون اخستل هم.(٧)د هغه اعمالو د مجموعې کتاب به د قیامت په ورځ یا د هغه په ښی لاس کښې ورکولې شی او یا په ګس لاس کښې.دنیکانو به په ښی لاس کښې اود بدانو په ګس لاس کښې کولاوشوې وی چه هغوی نی هم اولولی اودوی نی هم. د هغه د ټول عمر اعمال به په دې کښې لیکلې شوې وی. لکه چه د الله ﷻ فرمان دې﴿ يُنَبَّؤُا۟ ٱلْإِنسَٰنُ يَوْمَئِذٍۭ بِمَا قَدَّمَ وَأَخَّرَ ۝ ﴾(٨) په هغه ورځ به انسان د خپلو ټولو وړاندې

---

(١) الطبری: ٣٩٧/١٧.
(٢) الطبری:٣٩٨/١٧.
(٣) ٩٩/الزلزال:٥-٦.
(٤) ٥٢/الطور:١٦.
(٥) ٨٢/الانفطار:١٠.
(٦) ٥٠/ق:١٧.
(٧) احمد:٣٦٠/٣.
(٨) ٧٥/القيامة:١٣.

روستو عملونو نه خبرولې شي انسان خو په خپله معامله کښې هم پخپله حجت دې که هغه په خپله بې گناهئ کښې هرڅومره بهانې پيش کړي. هغه وخت به ده ته فرمانيلې شي چه ته ښه پوهيږې چه به تابه ظلم نه شي کولې په دې کښې هم هغه ليکلې شوي دي تا چه کوم کړي دي. هغه وخت به هيرکړې شوي څيزونه هم وريادشي د دې د پاره چه په حقيقت کښې د هيڅ عذر پيش کولوګنجائش به پاتې نه شي. بيامخې ته ئې کتاب دې سره د دې که په دنياکښې ليک لوستل نه وي کړي خو نن به هرسړې دا لوستلې شي.د سټ ذکرئې په خاص توګه د دې د پاره چه هغه يوه خاص حصه ده په دې کښې چه کوم څيززوړندکړې شي هغه اونخلي خامخابه کيږي. داخيال شاعرانوهم ښکاره کړې دې.رسول الله ﷺ ارشاد مبارك دې چه دبيمارئ يوبل ته لګيدل هيڅ څيز نه دي فال هيڅ څيز نه دې د هريوانسان عمل د هغه د غاړې هاردې. بل روايت کښې دي چه فال د هريوانسان د هغه د غاړې هاردې. [1]

**د لفظ طائرمعنى:**-قتاده رحمه الله فرمائي چه په دې آيت کښې د طائر نه مراد عمل دې حضرت حسن بصري رحمه الله فرمائي اې بنيادمه ستا ښي اوګس طرف ته فرښتې ناستې دي کتابونه ئې کولاوکړي دي د ښي طرف والا نيکئي او د ګس طرف والا بدئي ليکي اوس ستااختياردې که ډيره نيکي کوې که ډيره بدي کوې. ستا په مرګ به دا کتاب راغونډ کړې شي اوستاپه قبرکښې به ستا په سټ کښې زوړند کړې شي دقيامت په ورځ به کولاو ستا په وړاندې پيش کړې شي اوتاته به اوونيلې شي واخله خپله عمل نامه دې اوپخپله ئې اولوله اوهم ته حساب او انصاف اوکړه.د الله ﷻ قسم هغه ډير عدل کونکې دې چه ستا معامله هم تاته حواله کوي. [2]

| مَنِ | اهْتَدٰى | فَاِنَّمَا | يَهْتَدِيْ | لِنَفْسِهٖ | وَمَنْ |
|---|---|---|---|---|---|
| څوك چې\|په نيغه لارروان شو\|نوبيشكه\| هغه نيغه لارنيسي\|دپاره دفائدې دځان خپل\|اوڅوك چې | | | | | |
| څوك چې په سمه لار ځي نو يقينا د خپلې فائدې دپاره ځي اوڅوك | | | | | |

| ضَلَّ | فَاِنَّمَا | يَضِلُّ | عَلَيْهَا | وَلَا تَزِرُ |
|---|---|---|---|---|
| بې لارې شو\|نو بيشكه \| هغه وبال دګمراهئ ړدي \| په دغه نفس باند\| اونۀ به اوچتوی \| | | | | |
| چې بې لارې شي نو هغه دخپل نقصان دپاره بې لارې شي او هيڅوك به | | | | |

| وَازِرَةٌ | وِّزْرَ | اُخْرٰى | وَمَا كُنَّا | مُعَذِّبِيْنَ | حَتّٰى |
|---|---|---|---|---|---|
| يو بار اچتونكې\| بار \|دبل نفس نه\|اونۀ يومونږه \|عذاب وركونكى\| ترهغې پورې\| | | | | | |
| د بل پيټې نه اوچتوي او مونږ عذاب نه ورکوو تر څو | | | | | |

| نَبْعَثَ | رَسُوْلًا |
|---|---|
| چې راوليږومونږه\| يورسول \| | |
| چې يو پيغمبر اونه ليږو | |

**قوله تعالى:-مَنِ اهْتَدٰى فَاِنَّمَا يَهْتَدِيْ لِنَفْسِهٖ**

**په حكم منلوكښې د انسان هم خپله فائده ده:-** چاچه نيغه لار اختيارکړه دحق تابعداري ئې اوکړه د پيغمبرئې اومنل دهغه هم په خپل حق کښې ښيګړه ده اوچه څوك د حق نه واوختل د صحيح لارې نه بې لارې شول بيادهغه بوج هم په هغه دې هيڅ څوك به دبل چا په ګناه کښې نه شي نيولې. د هرچاعمل

[1] احمد:٤/١٤٦.

[2] الطبرى:١٧/٤٠٠.

هم هغه سره دي هيڅ څوك به نه وي چه د بل بوج به اوچت كړي. بل ځاي قران پاك كښې ارشاد دي ﴿وَلَيَحْمِلُنَّ أَثْقَالَهُمْ وَأَثْقَالًا مَّعَ أَثْقَالِهِمْ﴾[1] بل آيت كښې دى ﴿وَمِنْ أَوْزَارِ الَّذِينَ يُضِلُّونَهُم بِغَيْرِ عِلْمٍ ۗ أَلَا سَاءَ مَا يَزِرُونَ﴾[2] يعنى خپل بوج سره به دوى دهغوى بوج هم اوچتوى كوم چه دوى دهوكه كړي وو.پدې دواړو مضمونونوكښې څه منافات مه ګڼړئ خكه چه په ګمراه كونكو باندې به د هغوى د ګمراه كولو بوج وي سره د دې چه د هغوى ګمراه شوؤ بوج به هم نه شي سپكولې او په هغوى باندې به راباركولې شي. چه د بل دګناه بوج په چا راوړې وي. زمونږ انصاف كونكې الله ﷻ داسې نه كوي. بيا خپل يوبل رحمت بيانوى چه هغه د رسول د ليګولو نه وړاندې څوك قوم نه په عذاب كوى. په سورت تبارك كښې دى چه د دوزخيانونه به داروغه ګان تپوس كوى چه آيا تاسوله ويرونكى نه وو راغلى؟ هغوى به جواب وركړى بې شكه راغلې وو خومونږ هغوى رښتونې نه وو ګڼړلې هغوى مو دروغ ګڼړلې وو اوصفاوينا مو ورته كړې وه چه تاسو خو هسې دهوكه شوې ئې د سر نه داخبره كيدونكې نه ده چه الله ﷻ په چا څه نازل كړى.[3] دغه شان چه دا خلق دوزخ ته په زور او رابنكلو رسولې شي هغه وخت به داروغه ګان د هغوى نه تپوس كوى چه تاسو ته رسولان نه وو راغلى؟ چه ستاسو د رب آياتونه ئى تاسو ته لوستلې وې او تاسو ئى د دې ورځې دملاقات نه ويرولې وني؟دوي به جواب وركوى چه او يقينًا راغلې وو خود عذاب كلمه به په كافرانو ښه صحيح نازله شوې وى[4] بل آيت كښې دى چه كافران به په دوزخ كښې پراته چغې وهى ياالله ته مونږ ددې نه اوباسې نو مونږ به خپل زاړه شرارتونه پريږدو اونيك عملونه به كوو.نو هغوى ته به اووئيلې شى چه ولې ماتاسوته دومره عمر نه وو دركړې؟چه كه نصيحت مو حاصلول غوښتل نوحاصلولې موشو.اوماتاسو ته خپل رسولان هم راليګلي ووكومو چه تاسو ښه خبركړې وني اوس به عذاب برداشت كونى دظالمانوهيڅ څوك امدادى نشته.[5] غرض دا چه د نورو هم ډيرو آياتونونه ثابته ده چه الله ﷻ بغيرد رسول ليګلونه څوك دوزخ ته نه رسوى.

**د الله ﷻ درحمت او عذاب متعلق حديث:**-صحيح بخارى[6] كښې آيت ﴿إِنَّ رَحْمَتَ اللَّهِ قَرِيبٌ مِّنَ الْمُحْسِنِينَ﴾[7] په تفسيركښې يواوږد حديث نقل دې په كوم كښې چه د جنت اودوزخ بيان دې. بيادى چه د جنت باره كښې به الله ﷻ په خپل مخلوق كښې په چاباندې ظلم نه كوى اوهغه به د دوزخ د پاره يونوې مخلوق راپيداكړى چه په هغې كښې به وراچولې شى. هغه به وائى چه آيا نورهم شته؟ددې باره كښې د علماؤ يوې ډلې ډيركلام كړې دې په حقيقت كښې دادجنت باره كښې دې ځكه چه هغه دفضل كوردې او دوزخ دعدل كور دې په دې كښې به بغيرد عذر نه اوبغيرد حجت ښكاره كولونه څوك نه شى داخلولې. په دې وجه د حديث د حافظانو داخيال دې چه راويانوته په دې كښې هسې ګډوې شوې ده اود دې دليل د بخارى او مسلم هغه روايت دې په كوم كښې چه هم د دې حديث په آخركښې دى چه دوزخ به ډك نه شى تركومې پورې چه الله ﷻ د خپل قدرت قدم كيښږدى. دې وخت كښې به هغه وائى بس بس اوهم په دې وخت كښې به هغه ډك شى اودځلورواړوطرفونه به راغونډكړې شى. الله ﷻ به په چاباندې

---

[1] ٢٩/العنكبوت:١٣.
[2] ١٦/النحل:٢٥.
[3] ٦٧/الملك:٨-٩.
[4] ٣٩/الزمر:٧١.
[5] ٣٥/فاطر:٣٧.
[6] صحيح بخارى كتاب التوحيد باب ماجاء فى قول الله تعالى﴿ان رحمت الله قريب من المحسنين﴾:٧٤٤٩.
[7] ٧/الاعراف:٥٦.

ظلم نه کوی اود جنت د پاره به الله ﷻ یونوې مخلوق راپیدا کړي. (١)

**د کافرانو د ماشومانو اود لیونو او کنړو وغیره حکم:**-باقي پاتې شوه دامسئله چه د کافرانو دانابالغ ماشومان په وړوکوالی کښې مړه کیږي اوچه کوم لیوني خلق دی اوکاڼړه اوکوم چه په داسې زمانه کښې تیرشوی دی په کوم وخت چه په زمکه یورسول یاد دین صحیح تعلیم نه وو اوهغوی ته د اسلام دعوت نه وی رسیدلې او چه بالکل بوډاګان او پښولاسونونی کارېریخې وی د هغوی د پاره څه حکم دی؟په دې باره کښې د شروع نه اختلاف راروان دی. د دوی باره کښې چه کوم احادیث دی هغه زه تاسو ته بیانوم بیابه د ائمه کلام هم په اخلاص سره ذکر کوم الله ﷻ دې امداداوکړي.اول حدیث مسند احمد کښې دی څلور قسم خلق به د قیامت په ورځ الله ﷻ سره خبرې اترې کوی. یوبالکل کوڼړ سړې چه هیڅ هم نه اوري بل بالکل بې وقوف او لیونې سړې چه په هیڅ هم نه پوهیږی بل بالکل بوډا پړس سړې چه پښو لاسونو نی کارېریخې وی څلورم هغه خلق چه په داسې زمانوکښې تیرشوی وی په کوم کښې چه یوپیغمبریاد هغه تعلیم موجودنه ووکنړ به وائی چه اسلام راغلو خو زما غوږ ته هیڅ آواز اونه رسیدو.لیونې به وائی اسلام راغلوخو زما حالت داسې وو چه ماشومانوبه په کاڼړو ویشتلم اوبالکل بوډا بدحواس سړې به وائی چه اسلام راغلوخو زما ذهن او عقل صحیح نه وو چه زه پوهه شوې ووم. د رسولانو د زمانو اود هغوی تعلیم نه موجودکیدونکو قول به وی چه نه رسول راغلې نه ما حق لیدلی بیا به ما څنګه عمل کولو؟ الله ﷻ به دوی له پیغام راولیګی چه بنه ده څئی دوزخ ته وردانګئی. د الله ﷻ قسم د چا په لاس کښې چه زما خان دې که هغوی حکم اومنی او دوزخ ته وراودانګی نود دوزخ اور به په هغوی باندې یخ او د سلامتیاوالا شی. (٢) بل روایت کښې دی چه څوك ورټوپ کړی په هغوی به سلامتیا او یخ شی اوچه څوك رامنع شی هغوی به د حکم نه منلو په وجه په رابنکلو دوزخ ته غورزولې شی(٣) ابن جریرکښې ددې حدیث نه پس د حضرت ابوهریره ﷺ دا فرمان هم دې که تاسو غواړئی نود دې په تصدیق کښې د کلام الله دا آیت ﴿ وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِينَ ﴾ اولولئی.

**دویم حدیث:**-په ابوداؤدطیالسی کښې دې چه مونږ د حضرت انس ﷺ نه سوال اوکړو ابوحمزه د مشرکانو د بچوباره کښې تاسوڅه فرمائې؟هغوی اوفرمائیل مادرسول الله ﷺنه اوریدلی دی هغوی ګناهګارنه دی چه په دوزخ کښې په عذاب کړې شی اونیکان هم نه دی چه جنت ورله بدله کښې ورکړی(٤)

**دریم حدیث:**-په مسند ابویعلی کښې دې چه د دې څلورو واړو عذر واوری نو الله ﷻ به اوفرمائی چه نورو ته خو ما خپل رسول لیګلې وو خوتاسو ته زه پخپله وایم چه ورځئی دوزخ ته. ددوزخ نه به هم د الله ﷻ فرمان سره به یوه غړانګه راوچته وی ددې فرمان اوریدوسره چه کوم خلق نیك طبع دی زرور منډې کړی په هغې کښې به وراودانګی اوکوم چه باطل دی هغوئ به وائی چه اې الله پاکه مونږ خوهم د دې نه د بچ کیدو د پاره دا عذرکړې وو. الله ﷻ به فرمائی چه تاسو زماپخپله حکم نه منئی نو زما د رسولانو به مو څه منلی وو. اوس ستاسو د پاره فیصله هم دا ده چه تاسو دوزخیان ئی اودې حکم منونکوته به اوونیلې شی چه تاسو بې شکه جنتیان ئی تاسو حکم اومنو. (٥)

**څلورم حدیث** :-مسندابویعلی موصلی کښې دی د رسول الله ﷺ نه د مسلمانانود اولادباره کښې سوال

---

(١) صحیح بخاری کتاب التفسیرسورت "ق" باب قوله ﴿وتقول هل من مزید﴾:٤٨٥٠، صحیح مسلم: ٢٨٤٦.
(٢) احمد:٤/٢٤ مسندالبزار:٢١٧٤، مجمع الزوائد:٢١٦/٧.
(٣) احمد:٤/٢٤ طبرانی:٨٤١ مجمع الزوائد:٢١٦/٧.
(٤) مسندالطیالسی:٢١١١ مسندابی یعلی مختصراً:٤٠٩٠.
(٥) مسند ابویعلی:٤٢٢٤.

اوشو نوحضورﷺ اوفرمائيل هغوی د خپلو پلارانو سره دی. بيائی د مشرکانود اولادباره کښې سوال اوکړو نو حضورﷺاوفرمائيل چه هغوی د خپلو پلارانوسره دی نواوونيلې شو چه يارسول اللهﷺ هغوی خو څه عمل نه دې کړې حضورﷺاوفرمائيل چه اوخو الله ﷻ ته پوره علم دې. ابويعلى كما فى اتحاف الخيرة (١٠٢٩٠).

**پنځم حديث:**-حافظ ابوبكر احمدبن عمروبن عبدالخالق بزار رحمه الله په خپل مسند کښې روايت کوی چه د قيامت په ورځ د جاهليت د زمانې خلق خپل بوج په خپلوشاګانو باندې راوړې رابه شی. د الله ﷻ په وړاندې به عذر کوی چه نه مونږ له ستارسول رارسيدلې نه مونږ ته ستا يوحکم رسيدلې که چرې داسې وه نو مونږ به په کولاؤ زړه سره منلې وې. الله ﷻ به ورته اوفرمائی ښه ده که اوس حکم اوکړو نو اوبه منئی هغوی به وائی چه اوبې شکه او بغيرد څه وينا. الله ﷻ سبحانه وتعالى به ورته حکم اوکړی چه ځنی لاړشئی دوزخ ته ورشئی. دوی به لاړشی تردې چه هغې ته به وراورسی اوس چه د دې عذاب اوآواز اوګوری نوواپس به راشی او وائی به اې الله مونږ ته د دې نه بچ کړه. الله ﷻ به فرمائی چه ګورئی تاسو اقرار کړې دې چه زما حکم به منئی بيا دانافرمانی ولې؟ هغوی به وائی چه ښه ده دې ځل به ئی اومنو او اوبه ئی کړو. دوی نه به کلك عهد اووعده اخستې شی بيابه داحکم کيږی. دوی به لاړشی اوبيا به اوويريږی واپس به راشی وائی به اې الله مونږ خو ويريږو اوزمونږ نه دا حکم په ځائ نه راوړلې کيږی.اوس به الله ﷻحکم اوکړی چه تاسونافرمانی اوکړه اوځئی دوزخيان جوړ شئی. حضورﷺ فرمائی چه که په رومبی ځل دوی د الله ﷻ په حکم باندې وردانګلې وې نود دوزخ اُور به په هغوی باندې يخ شوې وو اود هغوی يوويښته به ئی هم نه سيزلو.[١] امام بزار رحمه الله فرمائی د دې حديث متن معروف نه دې د ايوب نه صرف عباد روايت کوی اود عبادنه صرف هم ريحان بن سعيد روايت کوی. زه خووايم چه دې ته ابن حبان ثقه وئيلې. يحيى بن معين اونسائی وائی په دې کښې هيڅ د ويرې خبره نشته.ابوداؤد د هغه نه روايت نه دې کړې. ابوحاتم وائی دا شيخ دې په دې کښې هيڅ حرج نشته د هغه احاديث ليکلې کيږی اود ده نه دليل نه شی اخستې.

**شپږم حديث:**- امام محمدبن يحيى ذهلی رحمه الله روايت راوړلې دې چه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی د خالی زمانې والاليونې اوماشوم به دالله ﷻ مخې ته راشی يوبه وائی چه ماته ستاکتاب دسر نه رسيدلې نه دې، مجنون اوليونې به وائی چه زه خو په ښه اوبد پوهيدلم نه. ماشوم به وائی چه ما د عقل پوهې اوبلوغت زمانه هډو ليدلې نه ده. هم هغه وخت به د هغوی مخې ته اُور شغلې وهی. الله ﷻ به فرمائی دا اخواکړئی. نو چه کوم وړاندې تلونکو سره نيکی کونکې وو نوهغوی خو به حکم اومنی اوچه څوك د دې عذر د اخواکيدونه پس هم نافرمانی کونکی وو هغوی به منع شی نو الله ﷻ به اوفرمائی چه ته کله زما مخامخ حکم نه منې نوزما د پيغمبرانو به دې څه منلی وو. [٢]

**اووم حديث:**-هم ددې درېواړو کسانوباره کښې د پورتنواحاديثو په شان دې. په دې کښې داهم دی چه کله دوی دوزخ ته اورسی نود هغې نه به داسې شغلې اوچتيږی چه دوی به وائی دا خو به ټوله دنيا او سوزوی اوايره به ئی کړی.په منډه به واپس راشی،بيا به په دويم ځل هم داسې وی.الله ﷻ به ورته اوفرمائی چه ستاسودپيداکولو نه وړاندې ماته ستاسوعمل معلوم وو.ماته علم ووچه تاسوما پيدا کړی وئی هم د هغه علم مطابق تاسو ئې. اې دوزخ! دوی راونيسه. نوهم هغه وخت به اُور هغوی يوه نوړئی کړی. [٣]

---

[١] حاكم:٤/٤٤٩–٤٥٠وسنده حسن، مسند البزار:٣٤٣٣، مجمع الزوائد:١٠/٣٤٧.

[٢] مسندالبزار:٢١٦٦.

[٣] طبران:٢٠/٨٣، مجمع الزوائد:٧/٢١٦.

**اتم حدیث**:-دحضرت ابوهریره ﷺ روایت د هغه د خپل قول سره اول تیرشوې دې. به صحیحین کښې د دهغوی نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل هرماشوم په دین اسلام باندې پیداکیږی بیا دهغه مور پلار یهودی نصرانی اومجوسی جوړوی.لکه څنګه چه د چیلئ د صحیح سالم بچی غوږ پریکولې شی. خلقو ونیل حضورﷺ! که هغه په وړوکوالی کښې وفات شی نو؟حضورﷺ اوفرمائیل چه الله ﷻ نه دهغه د عملونوصحیح او پوره خبروو[1] د مسندپه حدیث کښې دی چه د مسلمانانو بچوکفالت په جنت کښې حضرت ابراهیم ﷺ ته حواله دې[2]په صحیح مسلم کښې حدیث قدسی دې ماخپل بندګان موحد یوطرف ته خالص جوړ کړی دی.[3]یوروایت کښې دې سره د مسلمان لفظ هم دې.

## دمشرکانود بچوانجام به څه وی؟

**نهم حدیث**:-حافظ ابوبکر برقانی خپل کتاب المستخرج علی البخاری کښې روایت راوړې دې چه حضورﷺ فرمائیلی دی هرماشوم په فطرت باندې پیداکولې شی. خلقو په اوچت آوازسره تپوس اوکړو دمشرکانوبچی هم؟حضورﷺاوفرمائیل دمشرکانوبچی هم[4]دطبرانی په حدیث کښې دی چه : مشرکانو بچی به د جنتیانوخادمان جوړولې شی. [5]

**لسم حدیث**:-مسنداحمدکښې دی یوصحابی ﷺ تپوس اوکړویارسول اللهﷺ!جنت ته به څوک ځوك ځی. حضورﷺ اوفرمائیل نبی شهیداو ماشومان او ژوندی خښ شوی ماشومان[6]په علماؤکښې څو بعضومسلك دادې چه د دوی باره کښې مونږ توقف کوو چپ یو د دې دلیل هم تیرشو. بعضې وائی دا جنتیان دی اود دې دلیل د معراج والا دوه احادیث دی کوم چه په صحیح بخاری کښې د حضرت سمره بن جندب ﷺ نه روایت دی چه هغوی په خپل دې خوب کښې یوسړې دجنتي ونې لاندې اولیدو چاسره چه ډیرماشومان وو. په تپوس باندې حضرت جبرائیلﷺ اوفرمائیل داحضرت ابراهیمﷺ دې اوده سره داماشومان دمسلمانانواومشرکانوبچی دی.خلقووئیل حضورﷺدمشرکانواولادهم.حضورﷺ اوفرمائیل اودمشرکانواولاد هم.[7]بعضې علماء فرمائی دا دوزخیان دی څکه چه په یوحدیث کښې دی چه هغوی به خپلو پلارانوسره وی. بعضې علماء کرام وائی د دوی امتحان به د قیامت په میدانونوکښې اوشی تابعدار به جنت ته لاړشی او الله ﷻ به د خپل مخکینی علم اظهارکولوسره بیا هغوی جنت ته اورسوی اوبعضې به دخپلې نافرمانئ په وجه کوم چه د دغه امتحان په وخت کښې د دوی نه کیږی او الله ﷻ به خپل اولنی علم راښکاره کړی په هغه وخت به د هغوی د پاره د دوزخ حکم اوشی دې مذهب سره د ټولواحادیثو اومختلفودلیلونو راجمع کیږی او اولنی حدیثونه چه یو بل له تقویت ورکوی د دې معنی ډیر دی. شیخ ابوالحسن علی ابن اسماعیل اشعری رحمه الله دا مذهب د اهل سنت والجماعت نقل کړې دې اوددې تائیدامام بیهقی رحمه الله په کتاب الاعتقادکښې کړې دې. او نوروهم ډیرو محققینو علماؤ اوډ پوهې حافظانو هم دافرمائیلی دی.

**ابن عبدالبراح وائی چې امتحان والا حدیث قوی نه دې**:-شیخ ابوعمربن عبدالبرنمری امتحان والا او بعضې روایتونه نی بیان کولوسره لیکلې دی چه د دې باره کښې احادیث قوی نه دی اود دې نه حجت

[1] صحیح بخاری کتاب القدر باب الله اعلم بماکانواعاملین:٦٥٩٩، صحیح مسلم:٢٦٥٨، ترمذی:٢١٣٨، احمد:٢٥٣/٢،
[2] احمد:٣٢٦/٢، وسنده حسن، وصححه الحاکم:٣٧٠/٢، ووافقه اللذهبی، مجمع الزوائد:٢١٩/٧.
[3] صحیح مسلم کتاب الجنة باب الصفات التی یعرف بها فی الدنیااهل الجنة:٢٨٦٥.
[4] صحیح بخاری کتاب التعبیرباب تعبیرالرؤیا بعدصلاة الصبح:٨٠٤٧.
[5] مسندالبزار:٢١٧٢، المعجم الکبیر:٦٩٩٣.
[6] ابوداؤد کتاب الجهاد باب فی فضل الشهادة:٢٥٢١ بیهقی:١٦٣/٩، احمد:٥٨/٥، ابن ابی شیبه:٣٣٩/٥، معرفة الصحابة:٨٦٤
[7] صحیح بخاری کتاب التعبیر باب تعبیرالرؤیا بعدصلاة الصبح:٧٠٤٧.



نه ثابتيږي اواهل علم دي نه انکار کوي خکه چه اخرت د جزاء کوردي اود عمل کورنه دي اونه د امتحان کوردي. اود دوزخ ته د تلوحکم هم د انساني طاقت نه بهرحکم دي اود الله ﷻ داعادت نه دي.

**د علامه ابن ابی کثیر رحمة الله علیه رائي او د ابن عبدالبرد اولي خبري جواب:** - دامام صاحب رحمه الله د دې قول جواب هم واورئي په دې باره کښې چه کوم احادیث دی په دې کښې بعضې خو بالکل صحیح دی لکه چه ائمه علماؤ تصریح کړې ده بعضې حسن دی اوبعضې ضعیف دی خوهغه د صحیح او حسن احادیثو په وجه قوی کیږی اودا خو ښکاره خبره ده چه دا احادیث د حجت اودلیل قابل شو.

اوس پاتې شوه د امام صاحب رحمه الله دا فرمان چه آخرت د عمل او امتحان کور نه دې د جزاء اوبدله کور دې دا بې شکه صحیح دی خود دې نه د دې نفی څنګه اوشوه چه د قیامت د مختلفومیدانونو په پیشوکښې د جنت او دوزخ د داخلیدونه وړاندې څه احکام ورنه کړې شی. شیخ ابوالحسن اشعری رحمه الله خود اهل سنت والجماعة د مذهب په عقاندوکښې د ماشومانوامتحان داخل کړې دې. دې نه علاوه د قرآن پاك آیت ﴿يَوْمَ يُكْشَفُ عَنْ سَاقٍ﴾[1] د دې ښکاره دلیل دې چه منافق او مؤمن د فرق د پاره به پنډنۍ کولاوولې شي اود سجدې حکم به کولې شي. د صحاح په حدیثونوکښې دی چه مؤمن خو به سجده اوکړی اومنافقان به پرمخې شاته راپریوځي. ([2])صحیحین کښې د هغه سړی قصه هم ده چه د ټولونه په آخره کښې به د دوزخ نه راوځی هغه به الله ﷻ سره وعده کوي چې بیا به څه سوال به نه کوي بغیرد دې سوال نه چه د هغې د پوره کیدونه پس به د خپل قول او اقرار نه واوړی او یوبل سوال به اوکړي وغیره. په آخره کښې به الله ﷻ اوفرمائی چه بنیادمه ته ډیر وعده ماتونکې ئی ښه ده څه جنت ته لاړشه. ([3])

**د ابن عبدالبر د دویمې خبرې جواب:**- بیاد امام صاحب رحمه الله دا فرمائیل د هغوی د طاقت نه بهر خبره یعنی په دوزخ کښې دوردانګلوحکم به څنګه وی؟ الله ﷻ چاته دهغه دوس نه زیات تکلیف نه ورکوی. دا هم په صحیح حدیث کښې څه بندیز نه شي پیداکولې.پخپله امام صاحب رحمه الله اوټول مسلمانان منی چه په پل صراط باندې د تیریدلو حکم به ټولوته وی چه د دوزخ په شاباندې به وی د تورې نه زیات تیره او ویښته نه زیات نرۍ به وی.مؤمن به دخپلو نیکو په اندازه په دې باندې تیریږی.بعضې د بجلئی په مثال بعضې داسونو بعضې د اوښانو بعضې د منډې وهونکو په شان بعضې د پیدل تلونکو په شان بعضې په زنګونونو باندې بعضې په پریکیدوسره په دوزخ کښې پریوځي. نو چه دا خیزونه هلته دی نو هغوی ته دوزخ ته د دانګلوحکم څه د دې نه خو لوئ نه دې بلکه دا د هغې نه ډیر دروند او لوئ دې. واورئي په حدیث کښې دی دجال سره به باغ او اور وی. شارع ﷺ مؤمنانوته حکم ورکړې دې هغوی چه په کوم خیزکښې اُور وینی هم د هغې نه اوڅکي د هغوی د پاره د یخوالي اوسلامتیاخیزدې. ([4]) نودا صفامثال دې د دې واقعه. ګورئي چه کله بنواسرائیلود سخې عبادت اوکړو د هغې په سزا کښې الله ﷻ حکم ورکړو چه په خپل مینځ کښې یوبل قتل کړئي یوې اُوریخې هغوی پټ کړل. اوس چه کله توره اوچلیده نو سحر سحر د اُوریخې د شلیدونه وړاندې وړاندې په هغوی‌کښې اویازره کسان قتل شوي وو. خوئ پلار اوپلار خوئ قتل کړو ولې دا حکم د دغه حکم نه کم وو؟ ولې د دې کارکول په نفس باندې سخت وو بیاخود دې په نسبت هم ونیل پکاروو چه الله ﷻ یو نفس باندې د هغه د برداشت نه زیات تکلیف نه اچوی.

---

[1] ٦٨/القلم:٤٢.

[2] صحیح بخاری کتاب التفسیرسورت "ن" والقلم باب ﴿یوم یکشف عن ساق﴾:٤٩١٩،صحیح مسلم:١٨٣

[3] صحیح بخاری کتاب الاذان باب فضل السجود:٨٠٦، صحیح مسلم:١٨٢.

[4] صحیح بخاری کتاب احادیث الانبیاء باب ماذکرعن بنی اسرائیل:٣٤٥٠، صحیح مسلم:٢٩٣٤.

په ذکرشوې مسئله کښې **دحافظ ابن کثیر** رحمه الله **وضاحت**:-ددې تولو بحثونود صفاکیدونه پس اوس واورئ د مشرکانود مړو شوو بچوباره کښې هم ګڼراقوال دی.

**اول قول**:-یوداچه دا ټول جنتیان دی د دې دلیل هم هغه په معراج کښې دحضرت ابراهیم علیه السلام سره د مشرکانواومسلمانانو د بچو حضور ﷺ لیدل دی اود دې دلیل د مسند هغه روایت دې کوم چه وړاندې تیرشوې دې چه حضور ﷺ اوفرمائیل ماشومان به په جنت کښې وی. اود امتحان کیدو چه کوم حدیث تیرشو هغه د دې نه مخصوص دې. نود چا په نسبت چه رب العالمین ته معلومه ده چه هغه تابعدار او حکم منونکې دې د هغوی روحونه په عالم برزخ کښې دحضرت ابراهیم علیه السلام سره دی اودمسلمانانو ماشومانو روحونه هم اود چاباره کښې چه الله ﷻ ته معلومه ده چه هغه د قبلولووالا نه دې د هغوی کار الله ﷻ سره دې. هغوی به د قیامت په ورځ دوزخیان وی لکه چه د امتحان والا د حدیث نه ښکاره ده. امام اشعری رحمه الله دا د اهل سنت نه نقل کړې ده. اوس څوك وائی چه دا په مستقل توګه باندې جنتیان دی اوڅوك وائی چه دوی د اهل جنت خادمان دی. داسې حدیث په ابوداؤد طیالسی کښې دې خود دې سندضعیف دې والله اعلم.

**دویم قول**:- دادې چه د مشرکانواولاد به هم خپل پلار نیکه سره دوزخ ته ځی لکه چه د مسندوغیره په حدیث کښې دی چه هغوی دخپل پلارانونیکونوتابع دی. دې اوریدو سره حضرت عائشه رضي الله عنها تپوس اوکړو سره دبې عمل کیدو؟ وئی فرمائیل چه هغوی څه عمل کونکی وو الله ﷻ ته ښه معلومه ده.(١) ابوداؤدکښې دی حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها فرمائی ماد رسول الله ﷺ نه دمسلمانانود اولادباره کښې سوال اوکړو نوحضور ﷺ اوفرمائیل چه هغوی د خپلو پلارانونیکونوسره دی. ماوئیل د مشرکانواولاد؟ وئی فرمائیل چه هغوی د خپلو پلارانو نیکونوسره دی. ماتپوس اوکړو چه بغیرد څه عمل کولو نه؟ حضور ﷺ اوفرمائیل هغوی به څه کول دا الله ﷻ ته ښه معلوم دی(٢)د مسندپه حدیث کښې دی چه حضور ﷺ اوفرمائیل که ته غواړې نوزه به د هغوی ژړا انګولاچغې صورې هم تاته واوروم(٣) د امام احمد رحمه الله خوئ روایت راوړې دې چه حضرت خدیجه رضي الله عنها دخپلو دوو هغه ماشومانوباره کښې تپوس اوکړو کوم چه د جاهلیت په زمانه کښې مړه شوی وو حضور ﷺ اوفرمائیل چه هغه دواړه په دوزخ کښې دی کله چه حضور ﷺ اوکتل چه دا خبره خوپه دې ډیره سخته اولګیدله نو حضور ﷺ اوفرمائیل چه که تاد هغوی ځائ لیدلې وو نو ته به پخپله د هغوی نه ویزاره شوې وې. حضرت خدیجه رضي الله عنها عرض اوکړو اوچه کوم بچې ستانه شوې وو؟حضور ﷺ اوفرمائیل واوره مؤمن اود هغه اولاد جنتی دې او مشرك اود هغه اولاد دوزخی دې. بیاحضور ﷺ دا آیت اولوستلو ﴿وَالَّذِينَ آمَنُوا وَاتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُمْ بِإِيمَانٍ أَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ﴾(٤) کومو خلقو چه ایمان راوړ اود هغوی اولاد د ایمان سره د هغوی تابعداری اوکړه مونږ به د هغوی اولاد هم هغوی سره ملاؤکړو(٥)داحدیث غریب دې ددې په اسنادوکښې محمدبن عثمان راوی مجهول الحال دې اود هغه شیخ زاذان حضرت علی رضي الله عنه نه دې لیدلې. والله اعلم. ابوداؤدکښې حدیث دې چه ژوندی خښ کړې شوی او ژوندی ښخوونکی ښځه دوزخیان دی. (٦)حضرت سلمه بن قیس اشجعی رضي الله عنه فرمائی ماخپل رور د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر کړو اواومې وئیل حضور ﷺ زمونږ مور د جاهلیت په

---

(١) احمد: ٨٤/٦ وسنده حسن.

(٢) ابوداؤد کتاب السنة باب فی ذراری المشرکین:٤٧١٢.

(٣) احمد:٨٤/٦

(٤) ٥٢/الطور:٢١.

(٥) احمد:١٣٤/١-١٣٥.

(٦) ابوداؤد کتاب السنة باب فی ذراری المشرکین:٤٧١٧، وهوصحیح.

زمانه کښې مړه شوې ده هغه صله رحمي کونکې اومیلمه دوسته وه.زمونږ یوه نابالغه خورهغې ژوندۍ خښه کړې وه نبیﷺ اوفرمائیل داسې کونکې او چاسره چه شوی دی هغه دواړه دوزخیان دی دا یوه بله خبره ده چه په اسلام کښې راشي او قبول ئې کړي. (١)

**دریم قول:**-دادې چه د دوی باره کښې توقف کول پکار دی یوه فیصله کونکې خبره یوطرف ته نه دی کول پکار. د هغوی اعتماد دحضورﷺ په دې فرمان باندې دې چه د هغوی د اعمالوصحیح او پوره علم الله ﷻ ته دې. بخاری کښې دی چه دمشرکانو د اولاد باره کښې کله دحضورﷺ نه تپوس اوکړې شو نوحضورﷺ هم په دې الفاظوسره جواب ورکړو.(٢)بعضې بزرګان وای چه دوی به اعراف کښې کیخودې شی د دې قول نتیجه هم دا ده چه دا جنتیان دی ځکه چه اعراف هم څه د استوګنې ځائ نه دې د دې ځائ والا به هم آخر جنت ته ځي. لکه چه د سورت اعراف په تفسیرکښې مونږ د دې تقریرکړې دې. والله اعلم.

**د مؤمنانو مړهٔ شوی بچی به چرته وی؟**:-دا خواختلاف د مشرکانواولادباره کښې خود مؤمنانو د نابالغه بچو باره کښې خود علماؤ بغیرد څه اختلاف دا قول دې چه هغه جنتیان دی. لکه څنګه چه د امام احمد رحمه الله قول دې اوهم دا په خلقو کښې مشهوره هم ده اوان شاء الله ﷻ زمونږ هم دغه امیدې خود بعضې علماؤ نه نقل دی چه هغوی د دوی باره کښې توقف کوی اووائی چه ټول ربنتونی د الله ﷻ د مرضئ اود هغه د خوښې ماتحت دی. اهل فقه اواهل حدیثو یوه ډله دې طرف ته هم تلې ده. موطا امام مالك په ابواب القدر په احادیثوکښې هم څه داسې دی لکه چه د امام مالك رحمه الله فیصله په دې کښې نشته خود بعضو متاخرینو قول دې چه مسلمانان ماشومان خو جنتی دی اود مشرکانو اولاد د الله ﷻ د رضا ماتحت دی. ابن عبدالبر رحمه الله دا خبره داسې وضاحت سره بیان کړې ده خودا قول غریب دې. کتاب التذکره کښې امام قرطبی رحمه الله هم دا فرمائیلی دی. والله اعلم. د دې باره کښې دې بزرګانو یوحدیث دا هم نقل کړې دې چه د انصارو د یوماشوم په جنازه کښې حضورﷺ راوغوښتلې شو نوام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها اوفرمائیل دې ماشوم ته خودې مرحبا وی دا خود جنت مرغئ ده نه ئې د بدئي څه کارکړې اونه هغه وخت ته رسیدلې حضورﷺ اوفرمائیل دې نه علاوه نور هم څه وائې.اې عائشه! واوره الله ﷻ جنت اوجنتیان مقررکړی دی سره ددې چه هغه دخپل پلار په شاکښې وو دغه شان هغه دوزخ پیداکړې دې اوپه دې کښې سوزیدونکی پیداکړی دی داسې حال کښې چه هغوی اوس هم لاد پلارانو په شاګانوکښې دی. د مسلم اوسنن داحدیث دې. (٣)

دامسئله د صحیح دلیل نه بغیر ثابتیدې نه شی اوخلق د خپلې بې علمئ په وجه بغیرد شارع د ثبوت نه په دې کښې کلام کړې دې په دې وجه د علماؤ ډلې په دې کلام کول ناخوښ کړی دی. ابن عباس رضی الله عنه قاسم بن محمدبن ابی بکر صدیق او محمدبن حنفیه رحمهم الله مذهب هم دا دې. حضرت ابن عباس رضی الله عنه خو په منبرباندې په خطبه کښې فرمائیلې وو چه د حضورﷺ ارشاد دې چه د هغه امت کار به ټیك ټاك وی ترکومې چه دوی دماشومانوباره کښې څه کلام اونه کړی(٤) (ابن حبان) امام ابن حبان رحمه الله وائی مراد دې نه د مشرکانو د بچو باره کښې کلام نه کول دی. په نورو کتابونوکښې دا روایت د حضرت عبدالله رضی الله عنه په خپل قول باندې موقوفا نقل دې.

---

(١) احمد:٤٧٨/٣.

(٢) صحیح بخاری کتاب القدر باب الله اعلم بماکانواعاملین.......:٦٦٠٠، صحیح مسلم:٢٦٦٠.

(٣) صحیح مسلم کتاب القدر باب معنی کل مولود یولدعلی الفطرة:٢٦٦٢، ابوداؤد:٤٧١٣، ابن ماجه:٨٢، احمد:٤١/٦، ابن حبان:١٣٨

(٤) حاکم:٣٣/١، ابن حبان:٦٧٢٤ وسنده حسن، مسندالبزار:٢١٨٠، مجمع الزوائد:١٢٣/٧.

| قَرۡيَةً | نُّهۡلِكَ | اَنۡ | اَرَدۡنَآ | وَاِذَآ |
|---|---|---|---|---|
| یو کلي | هلاك کړو مونږه | چي | اراده اوکړه مونږه | اوکله چي |

او هرکله چي مونږ اراده اوکړو چي یو کلي دې هلاک شي

| فِيۡهَا | فَفَسَقُوۡا | مُتۡرَفِيۡهَا | اَمَرۡنَا |
|---|---|---|---|
| په هغې کښې | نو نافرماني شروع کړه هغوئ | مالدارو خلقو دهغه کلي ته | نو حکم اوکړو مونږه |

نو دهغه ځائي مالدارو خلقو ته حکم اوکړو نو دحکمونو منلو په ځائي هغوئ په کښې وراني

| تَدۡمِيۡرًا | فَدَمَّرۡنٰهَا | الۡقَوۡلُ | عَلَيۡهَا | فَحَقَّ |
|---|---|---|---|---|
| په هلاکولوسره | نوهلاك کړومونږه هغه کلې | خبره دعذاب | په هغه کلي باندې | نو ثابته شوه |

شروع کړې نو د عذاب تاپه پرې اولګی نو مونږ ئې تباه اوبرباد کړو

| بِرَبِّكَ | وَكَفٰى | مِنۡۢ بَعۡدِ نُوۡحٍ ؕ | مِنَ الۡقُرُوۡنِ | وَكَمۡ اَهۡلَكۡنَا |
|---|---|---|---|---|
| رب ستا | اوکافی دی | روستو دنوح نه | نسلونو نه | اوځومره ډیرهلاك کړل مونږه د |

او مونږ څومره ډیر امتونه دنوح ﷺ نه پس هلاک کړي دی اودا کافی ده چي ستا رب

| بَصِيۡرًا | خَبِيۡرًۢا | عِبَادِهٖ | بِذُنُوۡبِ |
|---|---|---|---|
| په لحاظ دليدولو سره | په لحاظ دخبرداري سره | دبندګانوخپلو | په ګناهونو |

دخپلو بندګانو دګناهونو نه خبردار دې اوهرڅه ويني ګوری

**قوله‌تعالی:- فِيۡهَا فَحَقَّ عَلَيۡهَا الۡقَوۡلُ**

**د الله ﷻ د حکم راتلومفهوم:-** مشهورقراءت خو ﴿امرنا﴾ دې دې نه مراد تقدیری امر دې لکه چه بل آیت کښې دی﴿اَتٰهَاۤ اَمۡرُنَا لَيۡلًا اَوۡ نَهَارًا﴾ ([1])یعنی هلته زمونږ مقررکړې شوي امر راغی د شپې یاد ورځې. یادساتئ چه الله ﷻ دبدئی حکم نه کوی. مطلب دا چه هغوی په فحش کارونوکښې اخته کیږی او په دې وجه د عذاب مستحق کیږی. داهم معنی کړې شوي ده چه مونږ هغوی ته د خپل اطاعت د کار امر کوو هغوی په بدوکښې لګیاکیږی بیازمونږ([2])د سزا قول په هغوی باندې راست راځی دکوم قراءت ﴿امرنا﴾دې هغه وائی چه مطلب دادې چه د هغه ځائ سرداران مونږ بدکاران جوړوو هغوی هلته د الله ﷻ نافرمانیانې کوی تردې چه د الله ﷻ عذاب هغوی د هغه کلی سره تباه بربادکړی. لکه چه ارشاد دې ﴿ وَكَذٰلِكَ جَعَلۡنَا فِىۡ كُلِّ قَرۡيَةٍ اَكٰبِرَ مُجۡرِمِيۡهَا لِيَمۡكُرُوۡا فِيۡهَا ؕ﴾ ([3])مونږ په هریوکلی کښې لوئ لوئ مجرمان ساتلی دی([4])ابن عباس ؓ فرمانی یعنی مونږدهغوی دښمنان زیاتوو هلته دسرکشانو زیاتوالې کوو([5])دمسنداحمد په یوحدیث کښې دی بهترمال څناور دی کوم چه زیات بچی ورکوی یالار ده چه د کهجورو په ونوباندې راګیروی. ([6]) بعضې خلق وائی چه داتناسب دې لکه څنګه چه د حضور ﷺ قول دې نه ګناه کونکی اونه اجر

---

[1] ۱۰/یونس:۲٤.
[2] الطبری:۱۷/٤۰۳.
[3] ٦/الانعام:۱۲۳.
[4] الطبری:۱۷/٤۰۳.
[5] الطبری:۱۷/٤۰۳.
[6] احمد:۳/٤٦۸.

**الله ﷻ ښه کتونکې دې** :- اې قریشو په هوش کښې شئ زمادې بزرګ رسول په تکذیب کولو بې ویرې کیږئ مه د خپل ځان نه وړاندې د حضرت نوح ﷺ خلقوته اوګورئ چه د رسولانو تکذیب کونکو نوم اونښه ئې ختمه کړه.دې نه داهم معلومیږی چه د نوح ﷺ نه وړاندې د حضرت آدم ﷺ نه پس خلق په دین اسلام باندې وو نو اې قریشو تاسودهغوی نه زیات سازوسامان والا شمیراوطاقت والا نه ئې سره د دې چه تاسو اشرف الرسل خاتم النبیین ﷺ دروغ ګڼړئ نوتاسو د عذابونو او سزاګانوډیر لائق ئې. د الله ﷻ نه د خپل یوبنده عمل هم پټ نه دې. خیراوشر ټول هغه ته ښکاره دی پټ اوښکاره ټول هغه پیژنی. هرعمل پخپله وینی ګوری.

مَنْ كَانَ يُرِيْدُ | الْعَاجِلَةَ | عَجَّلْنَا | لَهٗ | فِيْهَا | مَا
ځوک چې وی چې غواړی | زر حاصلیدونکی دنیا | نو زر به ورکړو مونږه | هغه ته | په هغې کښې | هغه ځه
ځوک چې په تندئ د دنیا د ګټلو خواهش لری مونږ به ورله په تندئ په دنیا کښې ورکړو

نَشَآءُ | لِمَنْ | نُّرِيْدُ | ثُمَّ | جَعَلْنَا | لَهٗ | جَهَنَّمَ
چې غواړومونږه | دپاره دهغه چا | چې غواړو مونږ | بیا | جوړکړومونږه | دپاره دهغه | دوزخ
ځومره چې اوغواړو او دچا په حقله چې اوغواړو خوبیا به ورله دوزخ تیار کړو

يَصْلٰهَا | مَذْمُوْمًا | مَّدْحُوْرًا ۝ | وَمَنْ | اَرَادَ | الْاٰخِرَةَ
چې سوزی به په هغې کښې | ملامته | درحمت نه محرومه | او چاچې | اراده اوکړه | داخرت
چې په هغې کښې به بدحاله او بدچاله ورننوځئ اوځوک چې داخرت خواهش ساتی

وَسَعٰى | لَهَا | سَعْيَهَا | وَهُوَ | مُؤْمِنٌ
او کوشش ئې اوکړو | دپاره دهغې | لکه څنګه چې حق دې دکوشش دهغې | او هغه | مومن وی
اوهغې له دهغې په مناسب کوشش کوی اومومن وی

فَاُولٰٓئِكَ | كَانَ | سَعْيُهُمْ | مَّشْكُوْرًا ۝ | كُلًّا | نُّمِدُّ
نو دغه کسان چې دی | وی به | کوشش دهغوئ | قبول کړې شوې | دهر یوسره | امداد کوو مونږه
نو دداسې خلقو کوششونه به مقبول وی مونږ دهر چا امداد کوو

هٰٓؤُلَآءِ | وَهٰٓؤُلَآءِ | مِنْ عَطَآءِ رَبِّكَ ؕ | وَمَا كَانَ | عَطَآءُ | رَبِّكَ
ددوئ سره | اودهغوئ سره | دبخښ د رب ستانه | او نه دې | بخښ | درب ستا
ددوئ هم او دهغوئ هم چې داستا درب ورکړه ده اوستا درب ورکړه په

مَحْظُوْرًا ۝ | اُنْظُرْ | كَيْفَ | فَضَّلْنَا | بَعْضَهُمْ | عَلٰى بَعْضٍ ؕ
منع کړې شوې | اوګوره | چې څرنګې | فضلیت ورکړې دې مونږه | خینودهغوئ لره | په خینوباندې
چا بنده نه ده ته اوګوره چې مونږ څنګه دوئ ته په دنیا کښې یوبل باندې فضیلت ورکړې دې

| وَلَلْاٰخِرَةُ اَكْبَرُ | دَرَجٰتٍ | وَّاَكْبَرُ | تَفْضِيْلًا ۝ |
|---|---|---|---|
| او خامخا اخرت ډير لوئ دي | په لحاظ د درجو سره | او ډير لوئ دي | په لحاظ دغوره والي سره |

او البته د آخرت درجې د ټولو نه لوئې او په فضيلت کښې ټولونه زياتې دي

**قوله تعالى:- مَنْ كَانَ يُرِيْدُ الْعَاجِلَةَ عَجَّلْنَا لَهٗ**

**د دنياو داخرت د طالب انجام:-** هيڅ ضروری نه ده چه د دنيا د طلب کونکی هره يوه خبره به الله ﷻ پوره کوی. د چاچه کومه اراده الله ﷻ پوره کول غواړی پوره کوی به خود داسې خلق به په آخرت کښې خالی لاس پاتې شی. دوی خويه هلته د دوزخ په کنده کښې غورزيدونکی وی. ډير په خراب حالت ذلت او خوارئی کښې به وی ځکه چه دلته هغوی هم دا ونيلی وو فانی له ئې په باقی باندې ترجيح ورکړې وه په دې وجه هلته د الله ﷻ د رحمت نه لرې دی. مسند احمد کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی دنيا دهغه کور دې د چا چه په آخرت کښې کور نه وی داد هغه مال دې د چا چه په آخرت کښې مال نه وی. دا خو هغه راجمع کوی چه دهغه سره څېل عقل نه وی.(¹) او چه څوك د آخرت د ديدار طالب شی او په صحيح طريقه باندې داخرت په کار راتلونکې نيکئې دسنتو مطابق اوکړی اود هغه په زړه کښې ايمان تصديق او يقين وی د عذاب او ثواب وعدې صحيح ګنړی الله ﷻ او رسول الله ﷺ منی د هغه کوشش ته به قدر په سترګه کتلې شی اونيکه بدله به ورته ملاويږی.

يعنی دا دواړه قسم يوهغه د چا مطلب چه صرف دنياده او بل هغه چه د آخرت طلبګار وی دا دواړه قسم خلق مونږ زياتوو په کوم کښې چه دا شته دا ستاد رب ورکړه ده. هغه داسې متصرف او حاکم دې چه هيڅ کله هم ظلم نه کوی. د نيك بختئی مستحق ته نيك بختی او د بدبختئی مستحق ته بدبختی ورکوی. د هغه احکام څوك رد کولې نه شی اود هغه نه بند کړې شوی له څوك ورکولې نه شی. د هغه ارادې څوك زنډولې نه شی. ستاد رب نعمتونه عام دی نه د چاپه منع کولو سره منع کيږی اونه د چا په اخواکولو سره اخواکيږی. هغه نه په شمير کښې کميږی اونه په مقدار کښې کميږی.

**په آخرت کښې به دخلقو مختلفې درجې وی:-** ګورئې مونږ په دنيا کښې دانسانانو مختلفې درجې مقرر کړې دی دوی کښې مالدار هم شته غريب هم شته اودرميانه حالت والاهم شته، بنه هم شته خراب هم شته اوددرميانه درجې والاهم. څوك په وروکوالی کښې مری څوك لوئې شی مړشي اوڅوك په دې مينځ کښې. آخرت د درجو په اعتبار سره د دنيانه ډير زيات دې. څه به د دوزخ په کندو کښې وی طوقونه او زنځيرونه به ئې اچولې وی څوك به دجنت په درجو کښې وی اوچت به وی بالاخانو کښې په نعمتونو او مزو کښې. بيا پخپله په جنتيانو کښې هم د درجو تفاوت دې په يوه يوه درجه کښې د زمکې او آسمان هومره لريوالی دې. په جنت کښې داسې يوسل درجې دی د اوچتو درجو والا اهل عليين به داسې ګوری لکه تاسو چه پړقيدونکې ستورې د آسمان په اوچتوالی کښې ګورئې. (²) نوآخرت د درجو او فضيلتونو په اعتبار سره ډير لوئ دې. طبرانی کښې دی کوم بنده چه په دنيا کښې کومه درجه زياتول غواړی اوپه خپله غوښتنه کښې کامياب شی نو هغه د آخرت درجه کموی او په خپله غوښتنه کښې به کامياب شی او د آخرت درجه به کمه کړی کومه چه د دې نه ډيره زياته لويه ده. بيا حضور ﷺ هم دا آيت تلاوت کړو(³)

¹) احمد:۷۱/٦.
²) صحيح بخاری کتاب بدء الخلق باب ماجاء فی صفة الجنة وانها مخلوقة:۳٦٥٦، صحيح مسلم:۲۸۳۱.
³) طبرانی:٦۱۰۱ حلية الاولياء:۲۰٤/٤.

لَا تَجْعَلْ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ فَتَقْعُدَ مَذْمُوْمًا مَّخْذُوْلًا ﴿۲۲﴾
مه جوړوه ته | دالله سره | معبود بل | کنې نوته به کینې | ملامته | بې امداده پرینبودې شوې
الله ﷻ سره څوک شریک مه جوړوئ کنې بدحاله بې مددگاره به ناست پاتې شئ

وَقَضٰى رَبُّكَ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّآ اِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ
او فیصله کړې ده | رب ستا | چې تاسو عبادت مه کوئ دهیچا | مگر | صرف دهغه | اوکوئ دمور او پلار سره
اوستارب داحکم کړې دې چې بې دهغه نه دبل هیچا عبادت مه کوئ او مورپلار سره

اِحْسَانًا ۭ اِمَّا يَبْلُغَنَّ عِنْدَكَ الْكِبَرَ اَحَدُهُمَآ اَوْ كِلٰهُمَا
احسان | که چرې | اورسیږې ایه موجودگې ستا کښې | بوډاوالی ته | یو دهغوئ نه | یاهغوئ دواړه
احسان کوئ که په دوئ کښې یو یا هغه دواړه ستاپه وړاندې بوډاوالی ته اورسی

فَلَا تَقُلْ لَّهُمَآ اُفٍّ وَّلَا تَنْهَرْهُمَا وَقُلْ لَّهُمَا قَوْلًا
نومه وایه ته | هغوئ دواړوته | کلمه داف | اومه رټه هغوئ دواړه | اووایه دواړوته | خبره نرمه
نو تاسو دوئ ته اوف قدرله هم اونه کړئ اودوئ مه رټئ اودوئ سره په نرمئ سره

كَرِيْمًا ﴿۲۳﴾ وَاخْفِضْ لَهُمَا جَنَاحَ الذُّلِّ مِنَ الرَّحْمَةِ وَقُلْ رَّبِّ
اونبکته لره | دپاره | ددواړو | او وزر د عاجزئ | د رحمت نه | اووایه چې اے ربه
خبرې کوئ او دهغوئ په وړاندې په مینه محبت سره دعاجزئ نه ټیټ اوسیږئ اوداسې وائې چې اے زما ربه

ارْحَمْهُمَا كَمَا رَبَّيٰنِيْ صَغِيْرًا ﴿۲۴﴾
رحم اوکړه په دواړوباندې | الکه چې | هغوئ پالنه کړې ده زما | په وړوکوالې (زما) کښې |
په دوئ دواړو باندې رحم اوکړه لکه څنګه چې دوئ په وړوکوالی کښې زما پالنه کړې وه

**قوله تعالی:- لَا تَجْعَلْ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ**

**الله ﷻ وحده لاشریک دې:-** داخطاب هریومکلف ته دې دحضور ﷺ ټول امت ته الله تبارك وتعالی فرمانی چه د خپل رب په عبادت کښې څوك مه شریکه وئی که داسې کوئی نو ذلیل کیږئی به د الله ﷻ امداد به درنه اخواشی. دچا عبادت چه کوئی هم هغوی ته به حواله شئی اودا ښکاره خبره ده چه د الله ﷻ نه علاوه بل څوك د نفع نقصان والا نشته هغه وحده لاشریك دې.مسنداحمدکښې دی رسول الله ﷺ فرمائی چاته چه ولږه اورسی او دخلقو په ذریعه هغه بندول غواړی د هغه ولږه به بنده نه شی اوڅوك چه الله ﷻ نه ددې باره کښې دعااوکړی نو الله ﷻ به هغه له مالداری راولیگی که زر او که پس. داحدیث ابوداوٗد او ترمذی کښې دې.([1])دا ترمذی حسن صحیح غریب بنائی.

**د مورپلارمقام اوهغوی سره دحسن سلوك حکم:-**دلته قضی په معنی کښې د حکم فرمائیلې شوې. تاکیدی حکم د الله ﷻ چه نه اخواکیدونکې وی هم دغه وجه ده چه عبادت هم د الله ﷻ وی اود والدینو په تابعدارئی کښې یو ذره فرق رانه شی. ابی بن کعب او ابن مسعود رضی الله عنه اوضحاك بن مزاحم رحمه الله په قراءت کښې قضی په بدله کښې وصی دې.([2])دا دواړه حکمونه لکه چه یوشان دلته دی داسې په نورو

[1] ابوداوٗد کتاب الزکاة باب ل الاستعفاف:۱٦٤٥، وسنده حسن ترمذی:۲۳۲٦، احمد:۱/٤۰۷،مسندابی یعلی: ۵۳۱۸، حاکم:۲/٤۰۸
[2] الطبری:۱۷/٤۱۳.

ډيرو آياتونو كښې دى لكه چه ارشاددي ﴿أَنِ اشْكُرْ لِي وَلِوَالِدَيْكَ إِلَيَّ الْمَصِيرُ﴾([1])زما شكر كوئي اود خپل مور پلارهم احسان منداوسيږئ خاص كردهغوى دبوډاوالي په زمانه كښې دهغوى پوره ادب كول څه خواږه خبره د خُلې نه نه ويستل ترڅو چه د هغوى په وړاندې اف هم نه كول نه څه داسې كار كول چه هغوى ته بد معلوم شي خپل لاس دهغوى طرف ته په بې ادبئ سره نه وړاندې كول بلكه په ادب عزت او احترام سره هغوى سره خبرې كول په نرمئ اوپه تهذيب سره خبرې اترې كول د هغوى د رضامندئ كارونه كول هغوى له تكليف نه وركول او هغوى نه تنګول د هغوى په وړاندې عاجزئ تواضع سره اوډير په ادب سره اوسيدل د هغوى د پاره د بوډاوالى نه پس د مرګه دعاګانې كول اوخاص كر دا دعا كول چه ياالله په هغوى باندې رحم اوكړه لكه څنګه چه هغوى زما د وړوكوالي په زمانه كښې پالنه كړې وه. او د ايمان دخاوندانو دپاره دكافرانو دعا كول منع كړې شوى دى كه هغه مورپلار ولې نه وى([2])د مور پلار سره سلوك او داحسان كولو د احكامو ډيراحاديث دى. يو روايت كښې دى حضورﷺ منبر ته د ختو په وخت كښې درې ځل امين اوفرمائيلو. كله چه د حضورﷺ نه د دې وجه تپوس اوكړې شو نو حضورﷺ اوفرمائيل چه ماله جبرائيل عليه السلام راغلو او وئې فرمائيل چه اې نبيﷺ د هغه سړى پوزه دې په خاورو ككړه كړې شى چاسره چه ستاذكر اوشى اوهغه په تاسوباندې درود شريف نه وى لوستلې. اووايه چه امين نو ما وئيل امين.بيا اوفرمائيل چه د هغه سړى پوزه دې هم الله ﷻ په خاورو ككړه كړې شى د چا په ژوندكښې چه د رمضان مياشت راغله او لاړه اود هغه سړى بښنه اونه شوه. امين اووائې نوما پدې باندې هم امين اووئيل. بيائې اوفرمائيل الله ﷻ دې هغه سړې هم بربادكړى چا سره چه د ده مورپلاروويا په دوى كښې يو وو اوبيائې هم د هغوى په خدمت كولوسره جنت ته ځان داخل نه كړې شو. وائې امين نو ما امين اووئيل.([3])د مسنداحمد حديث شريف كښې دى چاچه ديومسلمان مورپلار يتيم بچى پالنه اوكړه اوخوراك څښاك ئې پرې اوكړو ترڅو چه هغه بې پرواه شو د هغه د پاره يقيناً جنت واجب دې.اوچاچه يومسلمان غلام آزادكړوالله ﷻ به هغه ددوزخ نه آزادكړى.دهغه ديو يو اندام په بدله كښې به يو يواندام د دوزخ نه آزادكړې شى.([4])د دې حديث په يوسندكښې دى چا چه خپل مور پلار دواړه يا په دوى كښې يو اوليدلو اوبيا هم دوزخ ته لاړو الله ﷻ به هغه د خپل رحمت نه لرې كړى.([5])

**د مور پلار اويتيم پالونكى به جنتي وى :-** د مسنداحمدپه يو روايت كښې دادرېواړه څيزونه په يوځاى بيان شوى دى يعنى آزادكړې شوې غاړه د مور پلار خدمت اود يتيم پالنه. ([6])په يورروايت كښې د مور پلار په نسبت داهم دى چه الله ﷻ به هغه لرې كړى او هغه به بربادكړى([7])په يورروايت كښې درې ځل د هغه د پاره دا بددعاده. ([8])په يورروايت كښې د حضورﷺ نوم اوريدوسره درودنه لوستونكي په رمضان كښې د الله ﷻ د بښنې نه محروم پاتې كيدونكي اود مور پلار په رضامندئ او خدمت سره جنت ته نه رسيدونكى د پاره پخپله حضورﷺ دا بددعاكول نقل دى([9])يوانصارى دحضورﷺ نه سوال اوكړو چه

---

[1]) ٣١/لقمان:١٤.

[2]) الطبري:١٧/٣٢١.

[3]) مجمع الزوائد:١٠/١٦٦ترمذى كتاب الدعوات باب رغم انف رجل ذكرت عنده.....:٣٥٤٥، وسنده حسن الادب المفرد:٦٤٦، ابن حبان:٩٠٧، عن ابي هريرةرضي الله عنه.

[4]) احمد:٥/٢٩.

[5]) احمد:٤/٣٤٤ وسنده صحيح.

[6]) احمد:٤/٣٤٤.

[7]) احمد:٤/٣٤٤ وسنده صحيح. الخ.

[8]) صحيح مسلم كتاب البروالصلة باب رغم من ادرك ابويه اواحدهما....:٢٥٥١، احمد:٢/٣٤٦.

[9]) ترمذى كتاب الدعوات باب رغم انف رجل ذكرت عنده......٣٥٤٥ وسنده حسن، احمد:٢/٢٥٤، ابن حبان:٩٠٨.

زما دمور پلار د وفات نه پس زه هغوی سره څه احسان او سلوك كولې شم؟ حضورﷺ اوفرمائيل چه او خلور سلوك د هغوی د جنازه مونځ د هغوی د پاره د استغفاردعاګانې غوښتل د هغوی وعدې پوره كول اود هغوی د دوستانو عزت كول اوهغه خپلولې چه صرف هم د هغوی په وجه وی دا دی هغه سلوك كوم چه د هغوی د مرګ نه پس هم هغوی سره كولې شې. ([1])(ابوداوٗد، ابن ماجه)

**د مور حق:-** يوسړې راغلو حضورﷺ ته نې اووئيل يارسول الله ﷺ زه دجهاد په اراده ستاسو په خدمت كښې زيرې راوړلو له راغلې يم. حضورﷺ اوفرمائيل ستا مور شته؟هغه وئيل او نو وئې فرمائيل څه د هغې په خدمت كښې لګياوسه جنت د هغې دپښوسره دې. دويم ځل دريم ځل هغه په مختلفو موقعوباندې خپله خبره سردوباره كړه اوحضورﷺ هم دغه جواب وراوګرځولو. ([2])(نسائی ابن ماجه وغيره) فرمائی چه الله ﷻ تاسوته ستاسودپلارانوبابت كښې وصيت كوی اوالله ﷻ ستاسو د ميندوباره كښې وصيت فرمائی روستوئنې خبره نې درې ځل بيانولوسره اوفرمائيل الله ﷻ تاسوته ستاسود خپلوانو باره كښې وصيت فرمائی چه د ټولونه زيات نيزدې بياهغه سره چه څوك وی ([3])(ابن ماجه، مسنداحمد) فرمائی د وركونكی لاس اوچت دې خپلې مور سره نيكی كوه خپل پلار سره خپل رورسره خپلې خورسره بياچه دهغوی نه پس څوك نيزدې وی دغه شان درجه په درجه([4]) (مسنداحمد) د بزار ﷫ په مسندكښې په ضعيف سندسره روايت دې چه يو صاحب خپله موراوچته كړې وه طواف نې كولو نوحضورﷺ نه نې تپوس اوكړو چه اوس خو ما د خپلې مور حق اداكړو؟ حضورﷺ اوفرمائيل لږ هم نه.([5]) والله اعلم.

| رَبُّكُمْ | اَعْلَمُ | بِمَا | فِيْ نُفُوْسِكُمْ ط | اِنْ تَكُوْنُوْا | صٰلِحِيْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| رب ستاسو | ښه خبر دې | په هغه څه | اچې په زړونوستاسوكښې دی | كه جوړشوئ تاسو | نيكان |

څه چې ستاسو په زړونو كښې دی ستاسو رب ته هغه ښه معلوم دی كه تاسو نيكان يئ

| فَاِنَّهٗ | كَانَ | لِلْاَوَّابِيْنَ | غَفُوْرًا۝ |
|---|---|---|---|
| نويېشكه الله | دې | دپاره دتوبه ايستونكو | ابښونكې |

نوهغه دتوبې ويستونكو دپاره بخښونكې دې

**قوله تعالى:- اِنْ تَكُوْنُوْا صٰلِحِيْنَ**

**توبه كونكود پاره د الله ﷻ حكم:-** دې نه مراد هغه خلق دی چه د چانه په تندئی كښې د مور پلار سره يو خبره كيږی څوك چه هغه په خپل نيزد د عيب ياګناه خبره نه ګڼړی اود هغه نيت د خيروی په دې وجه الله ﷻ په هغه باندې رحمت كوی څوك چه د مور پلار تابعدار اومونځ ګذار وی د هغه خطاګانې د الله ﷻ په دركښې معاف دی. ([6])وائی چه ﴿اوابين﴾ هغه خلق دی څوك چه د ماښام او ماسخوتن په مينځ كښې نفلونه كوی. بعضې وائی چه د ضحی مونځ كوی چه د هرې ګناه نه پس توبه كوی څوك چه په

---

[1]) ابوداوٗد كتاب الادب باب فی برالوالدين:٥١٤٢، وسنده حسن، ابن ماجه:٣٦٦٤، احمد: ٤٩٨/٣.
[2]) نسائی كتاب الجهاد باب الرخصة فی التخلف لمن له والدة:٣١٠٦، ابن ماجه:٢٧٨١، احمد:٤٢٩/٣.
[3]) ابن ماجه كتاب الادب باب برالوالدين:٣٦٦١ وهوحسن، احمد:١٢٣/٤.
[4]) احمد:٦٤/٤، وسنده صحيح، مجمع الزوائد:٩٨/٣.
[5]) المعجم الصغير:٩٢/١-٩٣، البزار:١٨٧٢،.
[6]) الطبرى:٤٢٢/١٧.

تندنی سره د نیکنی طرف ته راګرځی.(١)په خان له خایٔ کښې خپل ګناهونه یادولوسره د زړه به اخلاص استغفارکوه(٢)عبیده رحمه الله فرمائی چه څوك برابر دهریومجلس نه پاسیدو کښې دادعا وائی **(اللهم اغفرلی مااصبت فی مجلسی هذا)** ابن جریر رحمه الله فرمائی چه اولی قول دا دې چه د ګناه نه توبه اوکړی د معصیت نه د طاعت طرف ته راشی دالله ﷻ د ناخوښئی کارونه پریږدی اودهغه درضااوخوښئ کارونه اوکړی.(٣)هم داقول ډیر صحیح دې ځکه چه أوّاب مشتق دې د أوبٌ نه اود دې معنی رجوع کول دی. لکه چه عرب وائی(اب فلان)اولکه چه په قرآن کښې دی**(إِنَّ إِلَيْنَا إِيَابَهُمْ)**(٤)د دوی واپس کیدل هم زمونږ طرف ته دی. صحیح حدیث کښې دی حضورﷺ چه به کله د سفرنه واپس کیدو نوفرمائیل به نې **(ائبون تائبون عابدون لربنا حامدون)** واپس کیدونکی توبه کونکی عبادت کونکی اوهم د خپل رب تعریف کونکی. (٥)

وَآتِ ذَا الْقُرْبَىٰ حَقَّهُ وَالْمِسْكِينَ وَابْنَ السَّبِيلِ وَلَا تُبَذِّرْ

اوورکوه | خپلوانوته | حق دهغه | اومسکینانوته | اومسافروته | اواسراف مه کوه

اورشته دار محتاج اومسافر ته دهغوئ حق ورکړه او مال بې ځایه مه خرچ کوه بیشکه

تَبْذِيرًا ۝ إِنَّ الْمُبَذِّرِينَ كَانُوا إِخْوَانَ الشَّيَاطِينِ ۖ وَكَانَ الشَّيْطَانُ

په اسراف کولو سره | بیشکه اسراف کونکی خلق | دی | رونړه د شیطانانو | او دی | شیطان

فضول خرچ خلق دشیطانانو رونړه دی اوشیطان دخپل رب ډیر زیات

لِرَبِّهِ كَفُورًا ۝ وَإِمَّا تُعْرِضَنَّ عَنْهُمُ ابْتِغَاءَ رَحْمَةٍ مِنْ

دپاره درب خپل | ناشکره | او که چری | تهٔ مخ اړوې | ددغو حقدارانونه | دپاره دتلاش | درحمت | د طرفه

ناشکره دې اوکه ته چرته ددوئ نه څنګ کوې دپاره ددې چې ستا درب له طرفنه هغه

رَبِّكَ تَرْجُوهَا فَقُلْ لَهُمْ قَوْلًا مَيْسُورًا ۝

درب ستانه | چې تهٔ امیدلرې دهغې | نواووایه هغوئ ته | خبره نرمه |

فراخي راشي چې ستا ورته امیدونه دی نوهغوئ ته په نرمئ سره جواب ورکوه

**قوله تعالی:- وَآتِ ذَا الْقُرْبَىٰ حَقَّهُ وَالْمِسْكِينَ**

**د صله رحمئی حکم:-** دمور پلارسره دسلوك حکم ورکولو سره اوس د خپلوانوسره د صله رحمئی حکم ورکولې شی. حدیث کښې دی خپلې مور سره ښه سلوك کوه بیا خپل پلارسره بیاچه څوك ډیر نیزدې وی اوبیاچه دې ته څوك ډیر نیزدې وی(٦)بل حدیث کښې دی څوك چه د خپل رزق او خپل عمر ترقی

(١) الطبری:١٧/٤٢٣.

(٢) الطبری:١٧/٤٢٣.

(٣) الطبری:١٧/٤٢٥.

(٤) ٨٨/الغاشیه:٢٥.

(٥)صحیح بخاری کتاب العمرة باب مایقول الراجع من الحج اوالعمرة اوالغزوه:١٧٩٧،صحیح مسلم:١٣٤٤، ابوداؤد:٢٧٧٠، احمد:٢/٦٣، ابن حبان:٢٧٠٧.

(٦) صحیح مسلم کتاب البر والصلة باب برالوالدین وایهما احق به: ٢٥٤٨.

غواړي نو هغه له صله رحمی کول پکار دی.[١] بزارکښې دی چه د دې ايت په نازليدوسره رسول الله ﷺ خپله لور بی بی فاطمه رضي الله عنها راوغوښتله او فدك (باغ) ئی ورکړو.[٢] د دې حديث سند صحيح نه دې او واقعه هم څه صحيح نه معلوميږی څکه چه دا آيت مکی دې اودغه وخت پورې د فدك باغ د حضور ﷺ په قبضه کښې نه وو. ٧هجری کښې خيبر فتح شو نو هله د فدك باغ د حضور ﷺ په قبضه کښې راغلو. نودا خبر صحيح کيږی نه. د مساکين اومسافرين پوره تفسير په سورت براءت کښې تيرشوې دې دلته د دوباره کولو ضرورت نشته.

**د اسراف او فضول خرچئی نه د بچ کيدلو حکم:**-د خرچ کولوحکم نه پس بيا د اسراف نه منع فرمائی. نه انسان له بخيل کيدل پکار دی نه اسراف کول بلکه اعتدال اختيارول پکاردی. لکه چه بل آيت کښې ارشاد باری تعالی دې ﴿وَالَّذِينَ إِذَا أَنفَقُوا لَمْ يُسْرِفُوا وَلَمْ يَقْتُرُوا وَكَانَ بَيْنَ ذَٰلِكَ قَوَامًا﴾[٣] يعنی ايماندار په خپل خرچ کولوکښې نه دحد نه تيريږی اونه بالکل لاس رامنع کوی. بيا د اسراف بدنی بيانوی چه داسې خلق د شيطان په شان دی. تبذير وائی په غيرحق کښې خرچ کولوته.[٤] که خپل ټول مال دې د الله ﷻ په لارکښې ورکړو نودا تبذير اواسراف نه دې اوکه په غيرحق کښې دې لږ شان هم ورکړونومبذر دې.[٥] د بنوتميم يوسړی حضور ﷺ ته اووئيل يارسول الله ﷺ! زه مالدارسړې يم اود اهل اوعيال او تبرقبيلې والايم نو ماته اوښايه چه زه څه طريقه اختيارکړم؟ حضور ﷺ اوفرمائيل د خپل مال زکوة جداکړه نوپاك صفايه شې. خپلو رشته دارانوسره ښه سلوك کوه دسوال کونکوحق اوپيژنه اود ګاونډی او مسکين هم.هغه وئيل حضور ﷺ په لږونورولفاظوکښې مې په خبره پوهه کړه.حضور ﷺاوفرمائيل نيزدې خپلوانو مسکينانواومسافرو حق اداکړه او بې ځايه خرچ مه کوه. هغه وئيل(حسبي الله) هغه وئيل ښه ده حضور ﷺ کله چه ستاسوقاصدته زکوة ورکړم نودالله ﷻاورسول ﷺپه نيز به زه خلاص شم؟حضور ﷺ اوفرمائيل اوچه ته کله زماقاصدته زکوة ورکړې نوته خلاص شوې اوستاد پاره اجرثابت شو. اوس چه دا څوك بدل کړی دهغه ګناه د هغه په ذمه ده.[٦] دلته فرمان دې چه اسراف او بې وقوفی اود الله ﷻ تابعداری پريخودل اود نافرمانئی په ارتکاب کولوسره اسراف کونکی د شيطان رونړه جوړيږی. په شيطان کښې داخراب خوئ شته چه هغه د رب د نعمتونو ناشکره او د هغه د تابعدارئی پريخودونکې او د نافرمانئ او مخالفت عمل کونکې دې. بياارشاددې چه د دې خپلوانو مسکينانو مسافرانو نه چه څوك هم تانه څه سوال اوکړی اوهغه وخت ستا په لاس کښې څه نه وی او په دې وجه تاته مخ ګرځول پريوځی نو بياهم نرم جواب ورکړه چه روره کله چه الله ﷻ مونږته راکړی ان شاء الله مونږ به ستاسو حق نه هيروو. وغيره.

| وَلَا تَجْعَلْ | يَدَكَ |
|---|---|
| او مه ګرځوه | لاس خپل |
| او خپل لاس | |

[١] صحيح بخاری کتاب الادب من بسط له فی الرزق لصلة الرحم:٥٩٨٦، صحيح مسلم: ٢٥٥٧، احمد:٢٢٩/٣ابن حبان:٤٣٨.
[٢] مسندابی يعلی:١٠٧٥،
[٣] ٢٥/الفرقان:٦٧.
[٤] الطبری:٤٢٨/١٧، حاکم:٣٦١/٢،
[٥] الطبری:٤٢٩/١٧.
[٦] احمد:١٣٦/٣.

| مَغْلُوْلَةً | اِلٰى عُنُقِكَ | وَلَا تَبْسُطْهَا | كُلَّ الْبَسْطِ | فَتَقْعُدَ | مَلُوْمًا |
|---|---|---|---|---|---|
| تړلي شوي \| په خټ پوري | او مه ئي خورپرېږده | په كامل خورولوسره | چي كيني ته | ملامته | |

خپل خټ پوري تړلي مه ساته(يعني شوم مه جوړيږه) او نه ئي بالكل پرانستئ چلوه گني ملاته تش

| مَّحْسُوْرًا | اِنَّ | رَبَّكَ | يَبْسُطُ | الرِّزْقَ | لِمَنْ | يَّشَآءُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| افسوس كونكي | بيشكه | رب ستا | فراخوي | رزق | دپاره دهغه چا | چي غواړي هغه |

طور به پاتي شي بيشكه ستارب چا دپاره چي غواړي رزق فراخه كوي

| وَيَقْدِرُ | اِنَّهٗ | كَانَ | بِعِبَادِهٖ | خَبِيْرًا | بَصِيْرًا |
|---|---|---|---|---|---|
| او په اندازه كوي رزق دچا | بيشكه هغه | دي | په بندگانو خپلو باندې | ښه خبردار | ليدونكي |

(اوچادپاره چي اوغواړي) تنگوي يقينا هغه له خپلو بندگانو نه ښه خبر دي اوهرڅه ويني گوري

**قوله تعالى:-وَلَا تَجْعَلْ يَدَكَ مَغْلُوْلَةً اِلٰى عُنُقِكَ**

**په خرچ كولوكښي درميانه لار اختيارکړئ:**-حكم كولي شى چه په خپل ژوندكښي درميانه لار اختيار كړئي مه بخيل جوړيږئ مه اسراف كونكي، لاس سټ سره مه تړئ يعني بخيلان مه جوړيږئ چه چانه هڅو وركونئ نه. يهوديانوهم دا متل استعمال كړي دي اوونيلي دي چه د الله ﷻ لاسونه تړلي شوي دي. په هغوي دې د الله ﷻ لعنتونه نازل شي دوي به الله ﷻ د بخل طرف ته منسوب كولو د څه نه چه الله ﷻ كريم وهاب پاك او ډير لري دي. د بخل نه منع كولونه پس بيا د اسراف نه هم منع كول كوي چه دومره هم مه كوئي چه د خپل طاقت نه زيات ورواچوئي. بيا د دې دواړو حكمونوسبب بيانوي چه بخل توب سره خو ملامته جوړيږي د هرچا گوته به اوچتيږي چه دا ډير بخيل دي هريويه تري لرې كيږي اوصرف يو بي فيض سړي دي. لكه چه زهير په خپله معلقه كښي ونيلي دي**(ومن كان ذامال ويبخل عاله على قومه يستغن عنه ويذمم)** يعني چه څوك مالدارشي او بخل كوي خلق د هغه نه بې پرواه كيږي د هغه بدى كوي. نود بخل په وجه انسان خرابيږي اودخلقو دنظر نه پريوځي هريوهغه ملامت كوي او چه څوك دحدنه زيات خرچ كوي هغه ستړي شي اوكيني.دهغه په لاس كښي هيڅ نه پاتي كيږي او ضعيف او عاجزپاتي كيږي لكه چه څناورپه تلوتلوكښي ستړي شي اوپه لاركښي اړي شروع كړي.**(حسير)**په سورت تبارك كښي راغلي دي خودا د لف اونشر په توگه دي.

**د بخيل او د سخي مثال:**-د صحيحين په حديث كښي دى د بخيل او سخى مثال د هغه دوو سړو په شان دي په چاباندې چه د اوسپنې دوه چغې ترسينې او مرئي پورې وي. سخى خو چه څنگه څنگه خرچ كوي د هغې كړئي سستيږي اودهغه لاسونه كولاويږي اوهغه چغه لوئيږي تردې چه دهغه گيټو ته اورسي اود هغې اثر ختمېږي. اوبخيل چه كله دخرچ كولواراده كوي نودهغه چغه كړئي نورې هم راغونډيږي كه هغه هرڅومره هغه كولاوول غواړي خوپه هغې كښي هيڅ گنجائش نه راوځي.(١)

**په خرچ نه كولو وعيدونه:**-بخاري اومسلم كښي دي حضور ﷺ حضرت اسماء بنت ابى بكر رضي الله عنه ته اوفرمائيل اخوادېخواد الله ﷻ په لاركښي خرچ كوه جمع كول مه كوه گني الله ﷻ به هم دركول بندكړي بندونوتړلوسره منع كول مه كوه گني نو الله ﷻ به هم سربندكړي.په يوبل روايت كښي دى شميرل كولوسره ني كيخودل مه كوه گني الله ﷻ به هم شميراوكړي منع به كړي.(٢) صحيح مسلم كښي دى

١) صحيح بخارى كتاب الزكاة باب مثل البخيل والمتصدق:١٤٤٣،صحيح مسلم:١٠٢١.

٢) صحيح بخارى كتاب الهبة باب هبة المراة لغير زوجها:٢٥٨٩، صحيح مسلم ١٠٢٩، احمد:٣٤٥/٦، ابن حبان:٣٢٠٩.

رسول الله ﷺ حضرت ابوهریره ﷺ ته اوفرمائیل ته د الله ﷻ په لارکښې خرچ کوه الله ﷻ به تاله درکوی. (١) بخاري اومسلم کښې دی حضورفرمائیلی چه هرسحر دوه فرښتې د اسمان نه راکوزیږی یوه دعا کوی چه اې الله سخی ته بدله ورکړې او دویمه دعاکوی د بخیل مال ختم کړې(٢)مسلم شریف کښې دی چه په صدقه خیرات سره د چامال کمیږی نه او سخاوت کونکی ته الله ﷻ عزت ورکوی اوکوم سړې چه د الله ﷻ د حکم په وجه سره نورو سره عاجزانه سلوك کوی الله ﷻ ته اوچتې درجې ورکوی (٣)

**د طمع نه بچ شئ:** په یوبل حدیث شریف کښې دی د طمع نه بچ شئ هم دې تاسو نه وړاندې خلق تباه کړی دی. د طمع ړومبې حکم داکولې شی چه بخل کوه نو هغه بخل اوکړو بیائی هغه ته د صله رحمئ ماتولو اووئیل هغه دا هم اوکړه بیائی د فسق او فجور حکم ورکړو هغه ئې هم اوکړه(٤)بیهقی کښې دی کله چه انسان خیرات کوی د اویاوشیطانانو جامې ماتیږی(٥)دمسندپه حدیث کښې دی درمیانه خرچ کونکې به کله هم فقیر نه شی. (٦)

**غریبي اومالداری د الله ﷻ په لاس کښې ده:** بیافرمائی رزق ورکونکې وسعت ورکونکې تنګی اچونکې په خپل مخلوق کښې د خپلې رضا مطابق وړاندې والې روستووالې کونکې څوك چه غواړی غنی او څوك چه غواړی فقیرکونکې هم یوالله دې.په هره خبره کښې دهغه حکمت دې هم هغه د خپلوحکمتونو علیم دې هغه ښه پوهیږی او ګوری چه د مالدارئی حقدار څوك دې د فقیرئی حقدار څوك دې. حدیث قدسی دې چه زما بعضې بندیګان هغه دی چه هم د فقیرئی قابل دی که ماهغه مالدار کړل نود هغوی دین به تباه شی اوزما بعضې بندیګان داسې هم دی کوم چه د مالدارئی لائق دی که چرې زه هغوی فقیران کړم نودهغوی دین به تباه شی(٧)هیثمی وائی ددې په سند کښې یوجماعت دمجهول راویانو دې. اودا هم یادساتئی چه د بعضو خلقو په حق کښې مالداری د الله ﷻ د طرف نه دمهلت په توګه وی اود بعضو د پاره فقیری د عذاب په توګه باندې وی. الله ﷻ دې مونږ د دې دواړونه بچ کړی.

| وَإِيَّاكُمْ | نَرْزُقُهُمْ | نَحْنُ | خَشْيَةَ إِمْلَاقٍ | أَوْلَادَكُمْ | وَلَا تَقْتُلُوٓا |
|---|---|---|---|---|---|
| اوتاسوله هم | رزق ورکوؤدوئ له | مونږه | د غریبئ نه | اولاد خپل دیرې | اومه وژنئ تاسو |
| اوخپل اولاد دغریبئ دویرې نه مه وژنئ مونږ هغوئ له هم رزق ورکوؤ | | | | | |

| الزِّنَىٰٓ | وَلَا تَقْرَبُوا | كَبِيرًا | خِطْـًٔا | كَانَ | قَتْلَهُمْ | إِنَّ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| زنا ته | اومه نزدې کیږئ تاسو | لوئ | خطا | دې | قتلول دهغوئ | بیشکه |
| اوتاسو له هم بیشکه ددوئ وژل ډیر غټ جرم دې اود زنا | | | | | | |

| وَسَآءَ سَبِيلًا | فَاحِشَةً | كَانَ | إِنَّهُۥ |
|---|---|---|---|
| او ډیره ناکاره لاره ده | کارقبیحه | دې | بیشکه دا |
| خواته هم مه ورنزدې کیږئ داغټه بې شرمی ده اوډیره خرابه لار ده | | | |

١) صحیح مسلم باب کتاب الزکاة باب الحث علی النفقة وتبشیر المنفق بالخلف:٩٩٣.
٢) صحیح بخاری کتاب الزکاة باب قوله تعالی ﴿فامامن اعطی واتقی....﴾:١٤٤٢، صحیح مسلم:١٠١٠.
٣) صحیح مسلم کتاب البروالصلة باب استحباب العفو و التواضع:٢٥٨٨،ترمذی:٢٠٢٩، احمد:٢/٢٣٥، ابن حبان:٣٢٤٨.
٤) ابوداؤد کتاب الزکاة باب فی الشح:١٦٩٨، وسنده صحیح، احمد:٢/١٥٩، حاکم:١/١١،ابن حبان: ٥١٧٦، بیهقی ١٠/٢٤٣
٥) احمد:٥/٣٥٠، بیهقی:٤/١٨٧، حاکم:١/٤١٧.
٦) احمد:١/٤٤٧، طبرانی:١٠١١٨،شعب الایمان:٦٥٥٩.
٧) مجمع الزوائد:١٠/٢٧٠.

قوله تعالى:-وَلَا تَقۡتُلُوٓاْ أَوۡلَٰدَكُمۡ خَشۡيَةَ إِمۡلَٰقٖ
اې خلقو ستاسو اوستاسو د اولاد رازق الله ﷻ دې :- -گورئي الله ﷻ په خپلو بندیګانوباندې د خپل مور پلاردنسبت نه هم زیات مهربان دې.یوطرف ته مورپلارته حکم ورکوی چه خپل مال خپلو بچوته د وراثت په توګه ورکړئی او بل طرف ته فرمانی چه دوی وژنئی مه. په جاهلیت کښې به نه خلقو جینکوته میراث ورکولو اونه به ئې هغوی ژوندنی ساتل خوښولې. بلکه لونړه وژل دهغوی دقوم یوعام رواج وو. قرآن د دې خراب رواج تردیدکوی چه داځومره خراب اوښکته خیال دې چه په دوی به د کوم ځای نه خورو؟ د چا رزق د چا په ذمه نه دې د ټولو روزی رسان صرف هم الله ﷻ دې. سورت انعام کښې ارشاد دې ﴿وَلَا تَقۡتُلُوٓاْ أَوۡلَٰدَكُم مِّنۡ إِمۡلَٰقٖ﴾(١)د فقیرئی اولاس تنګ والي په وجه د خپلو بچو قتلونه مه کوئی. تاسو ته اودوی ته رزق ورکونکی هم مونږ یو د دوی قتل جرم عظیم او کبیره ګناه ده. د خطا دویم قراءت هم خطادې د دواړو یوه معنی ده. بخاری اومسلم شریف کښې دی چه حضرت عبدالله بن مسعودﷺ تپوس اوکړویارسول اللهﷺ د الله ﷻ په نیز باندې د ټولونه لویه ګناه کومه یوه ده. حضورﷺ اوفرمائیل دا چه ته د الله ﷻ سره څوك شریك اوګرځوې سره د دې چه هم هغه یوذات ته پیدا کړې ئې. ماتپوس اوکړو دې نه پس؟ونې فرمائیل چه ته خپل اولاد د دې ویرې نه قتل کړې چه هغوی به تاسره خوراك کوی. ماونیل دې نه پس ونې فرمائیل چه ته خپلې ګاونډئی سره زناکاری اوکړې. (٢)

**د زنا اراده کوونکی ته د رسول کریم صلی الله علیه وسلم ښکلې نصیحت**

**زناکبیره ګناه ده:**-زناکارئی نه اودې سره تاوراتاو ټول ګناهونونه قرآن منع فرمائیلې. زنا شریعت کبیره اوډیره سخته ګناه ګرځولې ده.هغه ډیره زیاته خرابه طریقه او ډیره خرابه لارده. مسنداحمدکښې دی چه یوځوان د زناکارئی اجازت اوغوښتو خلق په هغه راغونډشو چه چپ شه دا څه وائې اوڅه کوې. حضورﷺ هغه خپل خان له نیزدې راوستلو اوونې فرمائیل کینه. کله چه هغه کیناستو نو حضورﷺ اوفرمائیل آیاته دا کار د خپلې مور د پاره خوښوې؟ هغه ونیل نه په الله ﷻ قسم مادې الله ﷻ په تاسوباندې قربان کړی هیڅ کله نه.حضورﷺ اوفرمائیل بیا سوچ اوکړه چه بل څوك به ئې څنګه خوښ کړی؟ حضورﷺ اوفرمائیل ښه ده ته به دادخپلې لورد پاره خوښ کړې؟هغه هم په داسې تاکیدسره انکاراوکړو. حضورﷺ اوفرمائیل چه هم دغه شان بل څوك هم دا د خپلې لورد پاره نه خوښوی. ښه ده د خپلې خورد پاره به ته داخوښ کړې؟هغه هم دغه شان انکاراوکړو حضورﷺ اوفرمائیل دغه شان نور هم د خپلې خورد پاره دا بدګنړی. ونې فرمائیل چه ښه ده دا اووایه چه ته به د خپلې ترور د پاره دا خوښ کړې؟ هغه هم په دې سختئی سره انکاراوکړو.حضورﷺ اوفرمائیل داسې بل څوك هم دا د خپلې ترور د پاره نه خوښوی. ښه ده د خپلې ماسی دپاره؟هغه ونیل هیڅ کله هم نه. ونې فرمائیل دغه شان نور ټول هم. بیاحضورﷺ خپل لاس مبارك د هغه په سرکیخودو اودعائې اوکړه یاالله د ده ګناه معاف کړې د ده زړه پاك کړې اودې د عصمت والا جوړکړې.بیاخوئې داحالت ووچه دې خوان به چاته په اوچت نظر کتل هم نه. (٣)ابن ابی الدنیاکښې دی رسول اللهﷺ فرمائی د شرك نه پس بله یوه ګناه هم د زناکارئی نه لویه نه ده چه سړې خپله نطفه په داسې رحم کښې واچوی چه د هغه د پاره حلال نه وی.

(١) ٦/الانعام:١٥١.

(٢) صحيح بخاری کتاب التوحيد باب قول الله تعالى ﴿فلاتجعلوالله اندادا﴾: ٧٥٢٠، صحيح مسلم:٨٦، احمد:٤٣٤/١، ترمذی :٣١٨٢، ابن حبان:٤٤١٤.

(٣) احمد: ٢٥٦/٥، وسنده صحيح، مجمع الزوائد:١٢٩/١.

وَلَا تَقۡتُلُوا النَّفۡسَ الَّتِيۡ

| اومه وژنئ تاسو | نفس هغه لره

اوهغه نفس مه وژنئ

حَرَّمَ اللّٰهُ اِلَّا بِالۡحَقِّ ؕ وَمَنۡ قُتِلَ مَظۡلُوۡمًا

چې حرام کړې دې | الله | مګر | په حقه سره | اوهغه څوك | چې قتل کړې شو | په ظلم سره

دکوم وژل چې الله ﷻ حرام کړی دی مګر په جائزه او څوک چې برناحقه اووژلې شي

فَقَدۡ جَعَلۡنَا لِوَلِيِّهٖ سُلۡطٰنًا فَلَا يُسۡرِفۡ

نوپه تحقیق ورکړې دې مونږ | ولی دهغه ته | دقصاص دمطالبې حق | نو اسراف دنهٔ کوی

نومونږ دهغه وارث ته اختیار دقصاص ورکړې دې نو دهٔ له پکار دی چې دقاتل

فِّی الۡقَتۡلِ ؕ اِنَّهٗ كَانَ مَنۡصُوۡرًا ۝

په قتل کښې | بیشکه چې هغه | دې مدد کړې شوې |

په وژلو کښې زیاتې اونه کړی ولې چې دهٔ ته مدد ورکړې شوې دې

**قوله تعالی:-وَلَا تَقۡتُلُوا النَّفۡسَ الَّتِيۡ حَرَّمَ اللّٰهُ اِلَّا بِالۡحَقِّ ؕ**

**ناحق قتل حرام دې:-** بغیرد شرعی حق نه دچاقتل کول حرام دی.بخاری اومسلم کښې دی چه کوم مسلمان دالله ﷻ دیووالی اود محمد ﷺ د الله ﷻ د رسول کیدو ګواهی ورکوی د هغه قتل کول په دریو خبروکښې دیوې نه بغیرحلال نه دې یاخوهغه څوك قتل کړې وی یاواده کړې اوزناني کړی وی یائی دین پریخودې او (د مسلمانانو) ډله ئې پریخې وی.[1] سنن کښې دی چه د ټولې دنیافناکیدل د الله ﷻ په نیزد یومؤمن د قتل نه زیاته آسانه ده. [2]که یوسړې د بل د لاسه ناحقه قتل کړې شوې دې نود هغه وارثان الله ﷻ په قاتل باندې غالب کړی دی هغه ته د قصاص اخستو اودیت اخستو بالکل معاف کولوکښې د یواختیار دې.

**د حضرت عثمان رضی الله عنه د قاتلانومعامله:-**یوه عجیبه خبره داده چه حضرت ابن عباس رضی الله عنه د دې آیت د عموم نه د حضرت معاویه رضی الله عنه په سلطنت باندې استدلال کړې دې چه هغه به بادشاه جوړیږی ځکه چه د حضرت عثمان رضی الله عنه ولی هم هغه وو اوحضرت عثمان رضی الله عنه په ډیر مظلومیت سره شهیدکړې شوې وو. حضرت معاویه رضی الله عنه به دحضرت عثمان رضی الله عنه قاتلان د حضرت علی رضی الله عنه نه غوښتل چه د دوی نه قصاص واخله ځکه چه دې هم اموی وو اوحضرت عثمان رضی الله عنه هم اموی وو. حضرت علی رضی الله عنه په دې کښې لږه سستی کوله. بل خوادحضرت علی رضی الله عنه مطالبه د حضرت معاویه رضی الله عنه نه داوه چه دشام ملك هغه ته حواله کړی. حضرت معاویه رضی الله عنه فرمائیل چه ترهغه وخته پورې ترکومې چه دې د حضرت عثمان رضی الله عنه قاتلان حواله کړی نه وی د شام حکومت په درته حواله نه کړم. نو هغه سره د ټول شام د خلقو سره د حضرت علی رضی الله عنه د بیعت نه انکاراوکړو.داجنګ اوږدشواوحضرت معاویه رضی الله عنه دشام بادشاه جوړشو.په معجم طبرانی کښې دا روایت دې چه حضرت ابن عباس رضی الله عنه د شپې په خبرو اتروکښې یوځل اوفرمائیل چه نن زه تاسو ته یوه خبره ښایم هغه نه داسې پټه ده اونه ښکاره. حضرت عثمان رضی الله عنه سره چه څه اوکړې شو هغه وخت ما حضرت

---

[1] صحیح بخاری کتاب الدیات باب قول الله تعالی ﴿ان النفس بالنفس والعین بالعین.....﴾:٦٩٧٨، صحیح مسلم:١٦٧٦.

[2] ترمذی کتاب الدیات باب ماجاء فی تشدید قتل المؤمن:١٣٩٥، وهوحسن، نسائی:٣٩٩٢، ابن ماجه:٢٦١٩.

علی ﷺ ته مشورد ورکړه چه ته یوطرف ته شه والله! که چرې په یوکانړی کښې هم پټ شې نوراوبه ویستې شي خوهغه زما اونه منل اوس یوه بله واورئي په الله ﷻ قسم چه معاویه ﷺ به په تاسو بادشاه وی ځکه چه د الله ﷻ فرمان دې چه کوم مظلوم اووژلې شی مونږ د هغه وارثانوته غلبه اوطاقت ورکوو بیادهغوی نه د قتل په بدل کښې د قتل نه زیاتې نه دی کول پکار الخ. واورئی دا قریشیان خو به تاسو د فارس او روم په طریقوباندې راځی کوی او واورئی په تاسو به نصاری یهود او مجوسیان اودریږی هغه وخت چه چا دا اونیولو کوم چه معروف دې هغه خلاصې بیاموندو او چا چه دا پریخوده اوافسوس چه هم تاسو پریخودونکی ئی نو تاسو به د یوزمانې والا په مثال شئی چه هغوی هم په هلاك کیدونکو کښې هلاك کړې شو. اوس ئی اوفرمائیل چه د ولی د قتل په بدل کښې د حدنه تیریدل نه دی پکار چه دهغه دقتل سره دې مثله هم اوکړی یعني غوږ پوزه ترې پرې کړی یاد قاتل نه بغیرد بل نه بدله واخلی. د ولی مقتول شریعت غلبه اومقدرت په لحاظ سره په هرشان امداد کړې دې.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَا تَقْرَبُوا | | مَالَ الْيَتِيمِ | | | | |
| اومه نزدې کیږئ تاسو | | مال دیتیم ته | | | | |
| اود یتیم مال ته نزدې هم مه ورځئ | | | | | | |
| إِلَّا | بِالَّتِي | هِيَ | أَحْسَنُ | حَتَّىٰ | يَبْلُغَ | أَشُدَّهُ |
| مګر | په هغه طریقې سره | چې هغه | ډیره ښه ده | ترهغې پورې | چې اورسیږی هغه | حدبلوغ خپل ته |
| مګر صرف په هغه طریقه چې دده په حق کښې غوره وی تردې چې هغه پوخ عمر ته اورسی | | | | | | |
| وَأَوْفُوا | بِالْعَهْدِ | إِنَّ الْعَهْدَ كَانَ | مَسْئُولًا | وَأَوْفُوا | | |
| اووفا کوئ | په وعده باندې | بیشکه وعده چې ده | ده تپوسلې شوی | اوپوره ورکوئ | | |
| اود وعدې پابندی کوئ بیشکه دوعدې په حقله به تپوس پوښتنه کیږی او چې څه | | | | | | |
| الْكَيْلَ | إِذَا | كِلْتُمْ | وَزِنُوا | بِالْقِسْطَاسِ الْمُسْتَقِيمِ | ذَٰلِكَ | |
| پیمانه | کله چې | پیمانه کوئ تاسو | اوتول کوئ | په تله | نیغه باند | دا طریقه |
| پیمانه کوئ نوپوره پوره ئې پیمانه کوئ او چې تول کوئ نو په سمه برابره تله ئې کوئ دا | | | | | | |
| خَيْرٌ | وَأَحْسَنُ | تَأْوِيلًا | | | | |
| بهتره ده | او ډیره ښه ده | په لحاظ دانجام سره | | | | |
| ډیر غوره دی اودانجام په لحاظ سره ډیر ښه دی | | | | | | |

**قوله تعالی:- وَلَا تَقْرَبُوا مَالَ الْيَتِيمِ إِلَّا بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ**

**د یتیم مال مه خورئی:-** دیتیم په مال کښې په بدنیتئی سره اخوادیخوا مه کوئی دهغوی مال د هغوی د بالغ کیدونه وراندې د قبضه کولوناپاکه ارادې کولونه بچ شئی.د چا په پالنه کښې چه یتیمان بچې وی که هغه پخپله مالداروی نوبیاخودې ددې یتیمانودمال نه بالکل جداکیدل پکاردی اوکه هغه فقیر او محتاج وی نودضرورت مطابق دې ترې خوری.صحیح مسلم کښې حضورﷺحضرت ابوذر ﷺ ته اوفرمائیل زه تاډیر کمزورې وینم اوستادپاره هغه خوښوم کوم چه دخپل ځان دپاره خوښوم خیال کوه

کله هم د دووکسانو والی مه جوړیږه اومه دیتیم د مال متولی جوړیږه[1] بیافرمانی وعده پوره کوئ چه کوم وعده وعیدونه اولین دین اوشی دهغې ساتنه کوه ددې متعلق به دقیامت په ورځ تپوس کولې شی **په ناپ تول کښې کمې مه کوه**:ناپ اوپیمانه پوره ډکه وه نوورکوه د خلقو څیز کمولوسره مه ورکوه. د **(قِسطاس)**دویم قراءت**(قُسطاس)** هم دې.بیاحکم کیږی بغیردپارسنګ نه صحیح وزن خودونکې نیغه تله بغیرد ډنډې وهلونه تول کوه، په دواړوجهانوکښې ستاسودتولودپاره بهتری ده په دنیاکښې هم ستاسودلین دین رونق دې اوپه آخرت کښې هم ستاسودخلاصی دلیل دې[2]ابن عباس ﷺ فرمائی اې سوداګرواتاسوته نی دادوه څیزونه درکړی دی دځه په وجه چه تاسونه وړاندې خلق تباه کړې شوی یعنی ناپ تول. نبی کریمﷺ فرمائی کوم سړې چه په یوحرام باندې قدرت لرونکې وی اوصرف د الله ﷻ د ویرې نه هغه پریږدی نو الله ﷻ به هغه ته د دې نه ښه څیز ورکړی.[3]

| |
|---|
| وَلَا تَقْفُ مَا لَيْسَ |
| او پیروی مهٔ کوه \| دهغه څیز \| چی نهٔ وی |
| اوپه هغه خبرې پسې مه ځه |
| لَكَ بِهِ عِلْمٌ إِنَّ السَّمْعَ وَالْبَصَرَ وَالْفُؤَادَ كُلُّ أُولَئِكَ كَانَ |
| تالره \| په هغې باند\| علم \| بیشکه \| غوږ \| او سترګې \| اوزړهٔ \| دا ټول چی دی \| دې \| |
| دکومې چې تاته پوخ علم نه وی بیشکه د غوږونو ، سترګو ، او دزړهٔ ددې ټولو څیزونو |
| عَنْهُ مَسْئُولًا ۝ وَلَا تَمْشِ فِي الْأَرْضِ مَرَحًا إِنَّكَ |
| په باره ددې کښې تپوس کیدونکې \| اومهٔ ګرزه تهٔ\| په زمکه کښې\| په غرور سره\| بیشکه تهٔ\| |
| په حقله به پوښتنه کیږی اود زمکې په سر ایغ نیغ مه ګرځه بیشکه ته |
| لَنْ تَخْرِقَ الْأَرْضَ وَلَنْ تَبْلُغَ الْجِبَالَ طُولًا ۝ كُلُّ ذَلِكَ |
| هرګزنشې شلولې\| زمکه\| اوهرګزنه شې رسیدې \|غرونوته\| په لحاظ داوچتوالی سره\| داټول چی دی |
| خو نه زمکه شلولې شې اونه په اوږدوالی کښې غرونو ته رسیدلې شې داټول |
| كَانَ سَيِّئُهُ عِنْدَ رَبِّكَ مَكْرُوهًا ۝ |
| ده بدی ددې \| په نز درب ستا \| نا خوښه دا \| |
| خراب کارونه ستادرب په نزد بالکل ناخوښه دی |

**قوله تعالی:-وَلَا تَقْفُ مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ**

**بغیردعلم نه ګواهی مه ورکوئ**:-یعنی د کومې خبرې چه درته علم نه وی د هغې باره کښې ژبه مه خوزوه.بې دعلم د چا عیب لټول او بهتان تړل مه کوئ.د دروغوګواهنی مه ورکوئ بغیرکتنې مه وائې چه ما کتلې دې نه بغیرد اوریدو اوریدونکې بیانوه. مه په بې علمئ باندې خپل پیژندل بیانوه. ځکه

---

[1] صحیح مسلم کتاب الامارة باب کراهة الامارة بغیر ضرورة:١٨٢٦، ابوداؤد:٢٨٦٨، ابن حبان:٥٥٦٤.
[2] الطبری:١٧/٤٤٦.
[3] الطبری:١٧/٤٤٦.

چه د دې ټولو خبرو تپوس به د الله ﷻ په نیز کولې شي.(١)غرض د وهم خیال او گمان په توګه څه ویناً کول منع کیږي.لکه چه دالله ﷻ ارشاددې ﴿اجْتَنِبُوا كَثِيرًا مِّنَ الظَّنِّ﴾(٢)ډیر گمان نه بچ شئ ځکه چه بعضې گمان گناه ده.

**په چاپد گمانانې کول نه دي ښکار**:-حدیث شریف کښې دی د گمان نه بچ شئی ځکه چه گمان ډیر خراب دروغ دی(٣)د ابوداؤد په حدیث کښې دی د انسان دا دخبرو انداز ډیرخراب دې چه د خلقوخیال دې.(٤)بل حدیث کښې دی چه ډیرخراب بهتان دادې چه انسان د دروغ یوخوب د ځان نه جوړکړي.(٥)او په صحیح حدیث کښې دی چه یوسړې داسې خوب د ځان نه بیان کړي د قیامت په ورځ به ده ته دا تکلیف ورکولې شي چه هغه د دوو اوربشو په مینځ کښې غوټه اولګوی اودا به د هغه نه هیڅ کله هم اونه شي.(٦) د قیامت په ورځ به د غوږ سترګې زړه هرڅه نه تپوس کیږي ټول به جواب ورکوی. دلته ﴿تلك﴾په ځائې باندې د﴿اولئك﴾استعمال دې په عربوکښې دااستعمال برابرجاری دې تردې چه د شاعرانو په شعرونوکښې هم.

**تکبرسره تګ کول منع دي**:-اوچت اوچت ځان خودلو سره په کبر باندې تګ کولونه الله ﷻ خپل بندګان منع کړي دی داعادت دسرکشه اومغروره خلقو دې. بیادهغوی دښکته خودلو د پاره فرمائی چه هر څومره سر اوچت کړې اوخې خود غرونو د اوچتوالی نه به ښکته ئې اوکه هرڅومره په ناز او نخرو قدمونه ایږدی اوخې خو زمکه شلولې نه شې بلکه دداسې خلقوحال برعکس وی لکه چه په حدیث کښې راغلی دی یوسړی ځادر جوړه کښې په کبر سره روان وو چه هم هلته په زمکه کښې ورخښ کړې شو چه ترننه پورې ورخښ روان دې.(٧)په قرآن کښې دقارون قصه موجودده چه هغه د خپلو محلونوسره په زمکه کښې ورخښ کړې شو.

**د عاجزئې فضیلت او لوئې قباحت**:-تواضع نرمی عاجزی کونکی ته الله ﷻاوچه درجه اولوړمقام ورکوی. په حدیث کښې دی چه ټیټیدونکی الله ﷻ اوچتوی. هغه خپل ځان حقیرګنړی اوخلق هغه داوچت شان اوقدروالا ګنړی اوکبرکونکې خپل ځان لوئ سړې ګنړی خودخلقو په نظرکښې هغه خواراوذلیل وی تر دې چه هغوی دې د سپو او خنزیرانو نه هم زیات سپک ګنړی.(٨) امام ابوبکر ابن ابی الدنیا رحمه الله په خپل کتاب الخمول والتواضع کښې راوړی دی چه ابن الاهیم دربارمنصورته تلو رښمینه چغه ئې اغوستې وه اود پښود پاسه ئې هغه ډبل ګنډلې وه چه د لاندې نه قباهم ښکاری اوپه ډیر فخر سره روان وو.

حسن رحمه الله هغه په دې حال کښې اولیدونوئی فرمائیل اوهو پوزه تره وه کړې مخ پرسولې خپل لاسونه وهلوته ګوری اوخپل ځان تلی د نعمتونو ذکر اوشکر ئې هیرکړې د رب احکام ئې پریخی د الله ﷻ حق ئې مات کړې د لیونیه شان روان دې په بیل بیل اندام باندې د چا ورکړې شوې نعمت پروت دې اود شیطان لعنت وهلې ګوره روان دې. ابن اهیم واوریده او هم هغه وخت واپس شواو عذر معذرت ئې اوکړو.هغوی اوفرمائیل مانه څه معذرت کوې الله ﷻ ته توبه اوباسه اودا پریږده اودا د الله ﷻ دا فرمان

---

(١) الطبری:١٧/٤٤٦-٤٤٧.

(٢) ٤٩/الحجرات:١٢.

(٣) صحیح بخاری کتاب الادب باب ماینهی عن التحاسد والتدابر:٦٠٦٦، صحیح مسلم:٢٥٦٣، احمد:٢/٤٦٥،ابن حبان :٥٦٨٧.

(٤) ابوداؤد کتاب الادب باب فی قول الرجل زعموا:٤٩٧٢،،الادب المفرد:٧٦٢، احمد:٥/٤٠١، الزهد:٣٧٧

(٥) صحیح بخاری کتاب التعبیر باب من کذب فی حلمه:٧٠٤٣.

(٦) صحیح بخاری حواله سابق:٧٠٤٢،احمد:١/٢١٦،ابن حبان:٥٦٨٦.

(٧) صحیح بخاری کتاب اللباس باب من جرثوبه من الخیلاء:٥٧٨٩، صحیح مسلم٢٠٨٨، احمد:٢/٣١٥، مسندابی یعلی:٦٣٣٤.

(٨) مشکوة المصابیح کتاب الادب باب الغضب والکبر:٥٠٤٦، شعب الایمان:٨١٤٠.

نه دي اوريدلي ﴿وَلَا تَمۡشِ فِي ٱلۡأَرۡضِ مَرَحًاۖ﴾ عابدبختری د آل علی نه يوسړي داسي په کبرسره تلونکي اوليدو نو وئی فرمائيل ای هغه سړيه چاته چه الله ﷻ دا اکرام درکړي ددي خودا لارنه وه هغه هغه وخت توبه اوکړه.

ابن عمر ﷺ يوسړي داسي اوليده نو وئی فرمائيل چه د شيطان هم داسي رونړه وی. حضرت خالد بن معدان رحمه الله فرمائي خلقو دا کاږه کاږه تلل پريږدئی ځکه چه انسان ....(په اصل کښې دغه شان بياض پاتې دي)؟ د هغه لاس د باقی بدن نه (ابن ابی الدنيا) ابن ابی الدنياکښي حديث دي چه کله زما امت دکبر اولوني په طريقه روان شي اوفارس والا او روم والا به په خپل خدمت کښي اولګوی نو الله ﷻ به په يوبانديې بل مسلط کړی. (١)

﴿سيئه﴾ دويم قراءت ﴿سيئة﴾ دي نومعنی دا شوه چه د کومو کارونونه مونږ تاسو منع کړی ئی دا ټول کارونه ډير خراب دی اود الله ﷻ ناخوښ دی. يعنی خپل اولاد مه قتل کوئی نه واخلئی تر کاږه کاږه تللو پورې ټول کارونه.﴿ سيئه﴾ په قراءت باندي مطلب دا دي چه ﴿وقضى ربك﴾ نه تردې ځای پورې چه حکم احکام کوم بنديزونه اومنع والي بيان شوي دي او په دي کښي چه د کومو خرابوکارونو ذکر دي هغه ټول د الله ﷻ په نيز مکروه کارونه دی. امام ابن جرير رحمه الله هم دا توجيه بيان کړي ده.

ذَٰلِكَ مِمَّآ أَوۡحَىٰٓ إِلَيۡكَ رَبُّكَ مِنَ ٱلۡحِكۡمَةِۗ وَلَا تَجۡعَلۡ

دهغه خبرونه دی | چي وحی اوکړه | تاته | رب ستا | دحکمت دخبرونه | اومه جوړوه

داټولي خبرې په هغه حکمت کښې شمير دی چې ستا پروردګار تاته راليږلي دي او دالله ﷻ

مَعَ ٱللَّهِ إِلَٰهًا ءَاخَرَ فَتُلۡقَىٰ فِي جَهَنَّمَ مَلُومًا مَّدۡحُورًا ۝

دالله سره | بل معبود | کنئ نواوبه غورزولي شي ته | په دوزخ کښي | ملامته | رټلي شوي

سره بل معبود مه شريکوه ګنی په دوزخ کښي به ملامته او ذليل اوغورزولي شي

**قوله تعالى:-** ذَٰلِكَ مِمَّآ أَوۡحَىٰٓ إِلَيۡكَ رَبُّكَ مِنَ ٱلۡحِكۡمَةِۗ

**د وحی دليل:-** دااحکام مونږ درکړی دی ټول بهترين اوصاف دی اود کوموکارونونه چه مونږ منع کړی نی هغه ډير خراب خصلتونه دی. مونږ دا ټول څيزونه ستا طرف ته د وحی په ذريعه نازلوو چه ته خلقوته حکم اوکړي او منع نی کړي. ګوره ماسره څوك معبود مه ګرځوه ګنی هغه وخت به راشی چه پخپله به خپل ځان ملامت کوئی اود الله ﷻ د طرف نه به هم ملامتياوی بلکه د نور ټول مخلوق د طرف نه به هم وی اوته به د هرې ښيګړې نه لرې کړې شې. په دې آيت کښې د رسول الله ﷺ په واسطه سره د هغه امت ته خطاب دي ځکه چه حضور ﷺ خو معصوم دي.

أَفَأَصۡفَىٰكُمۡ رَبُّكُم بِٱلۡبَنِينَ

| آيانوغوره کړئ تاسولره | رب ستاسو | په ځامنوسره

(ائي مشرکانو) آيا ستاسورب تاسوله خو ځامن درکړل

وَٱتَّخَذَ مِنَ ٱلۡمَلَٰٓئِكَةِ إِنَٰثًاۚ إِنَّكُمۡ لَتَقُولُونَ قَوۡلًا عَظِيمًا ۝

اووې نيولي | د فرښتو نه | لونړه | بيشکه تاسوچي يئ | خامخاوايئ تاسو خبره | لويه |

اوپخپله هغه ځان له فرښتې لونړه جوړې کړی دی بيشکه تاسو ډيره سخته خبره کوئ

(١) ابن ابي الدنيا ل التواضع: ٢٣٩.

وَلَقَدْ صَرَّفْنَا فِيْ هٰذَا الْقُرْاٰنِ لِيَذَّكَّرُوْا ؕ

اوپه تحقیق سره | بار بار پوهه کړل مونږه | په دې قرآن کښې | دپاره ددې چې عبرت حاصل کړي

او مونږ په دې قران پاک کښې (دتوحيد مضمون) په رنګ رنګ بيان کړې دې چې دوئ پرې ښه پوهه شي

وَمَا يَزِيْدُهُمْ اِلَّا نُفُوْرًا ۝ قُلْ لَّوْ كَانَ مَعَهٗۤ اٰلِهَةٌ

اونه زياتوی دوئ لره | مګر | تيښته دحق نه | اووايه | که چرې وې | دهغه سره | نور معبودان |

مګر (ددې نه خو) ددوئ (کفارو) نفرت نور زياتيږي ورته اووايه که چرې الله ﷻ سره نور معبودان هم وې

كَمَا يَقُوْلُوْنَ اِذًا لَّابْتَغَوْا اِلٰى ذِى الْعَرْشِ سَبِيْلًا ۝

لکه څنګه چې اوائي دوئ | نوبيابه | خامخاتلاش کړې وه هغوئ | مالك دعرش ته | يوه لار

لکه چې دوئ وائي نو پدې صورت کښې به دوئ دعرش دمالک طرفته ضرور څه لار لټولې وه

سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰى عَمَّا يَقُوْلُوْنَ عُلُوًّا كَبِيْرًا ۝

پاك دې هغه |اواوچت دې| دهغه خبرونه| چې وائي داخلق| په اوچت والي ډيرسره|

هغه دداسې خبرونه پاک دې او څه چې دا خلق وائي د هغې نه هغه زيات اوچت اولوئې دې

**قوله تعالى:-** اَفَاَصْفٰىكُمْ رَبُّكُمْ بِالْبَنِيْنَ وَاتَّخَذَ مِنَ الْمَلٰٓئِكَةِ اِنَاثًا ؕ

**د الله ﷻ هيڅ اولادنشته:**-دملعونومشرکانو ترديدکيږي چه داخوتاسوبنه تقسيم کړې دې چه خامخ ستاسو اولونږه دالله ﷻ کومې چه ستاسوناخوښه په کومو چه تاسو سوزنې اوژندتې خښوئې هغه د الله ﷻ د پاره ثابتوئې. په نورو آياتونوکښې هم د هغوی دا غلط خيال بيانولې شي چه دوی وائی د رب چه رحمن دې د هغه اولاد دې. په حقيقت کښې دهغوی دا قول ډير خراب دې ډير ممکن دی چه په دې سره آسمان اوشليږی زمکه اوشليږی غرونه ذره ذره شي چه دا دوی درب رحمن اولادګرخوی څکه چه الله ﷻ لره دا په هيڅ شان سره لائق نه دی. د زمکې اوآسمان ټول مخلوق د هغه غلام دې ټول د هغه په شمير کښې دی او يويو د هغه په وړاندې د قيامت په ورځ خان له پيش کيدونکې دې. (١)

**د حق دلائل واضحه دی:**-په دې پاك كتاب كښې مونږ ټول مثالونه صفاصفا بيان فرمائيلي دی وعدې وعيدونه په صفا توګه ذکر کړې شوی دی دې دپاره چه خلق د بدو نه اود الله ﷻ د ناراضګتې نه بچ شي. خو داظالمان خلق خودحق نه نفرت کوی اودې نه لرې تختيدوکښې نوره هم زياتيږی.کوم مشرکان چه د الله ﷻ سره د نورو هم عبادت کوی اوهغوی د الله ﷻ سره شريك مني اودا ګڼري چه هم د دې په وجه به مونږ الله ﷻ ته نيزديکت حاصلولې شو.دوی ته اووايه که ستاسو دا فاسد ګمان کښې لره هم ساه وې او الله ﷻ سره په واقعي داسې څوك معبود وې چه هغه چاله غواړې د الله ﷻ نيزديکت ورکړي اوچاله چه غواړی سفارش اوکړی نوپخپله به هغه معبودهم دالله ﷻعبادت کولودهغه نيزديکت به ئې لټولو نو تاسو له صرف هم د هغه عبادت کول پکار دی اونه د هغه نه سوا د بل چا عبادت اونه د بل معبود څه ضرورت چه د الله ﷻ او ستاسو په مينځ کښې هغه واسطه جوړه شي. الله ﷻ ته دا واسطې سختې ناخوښه دی اودې نه هغه انکارکوی دخپلو ټولو انبياواورسولانو په ژبه ئې د دې نه منع فرمائيلې ده.

---

(١) ١٩/مريم:٨٨، ٩٥.

د هغه ذات دظالمانود بيان كړې شوې صفت نه بالكل پاك دې اودهغه نه بغيربل څوك معبودنشته.د دې كندګونه زمونږ مولاپاك دې هغه واحددې صمددې. هغه دمور پلاراولاد نه پاك دې د هغه د جنس نه هيڅ څوك نشته.

| تُسَبِّحُ لَهُ | السَّمٰوٰتُ | السَّبۡعُ | وَالۡاَرۡضُ | وَمَنۡ | فِيۡهِنَّ ط |
|---|---|---|---|---|---|
| تسبيح وائي هغه لره | آسمانونه | اووه | اوزمكه | اوهغه څوك | چې په دې كښې دي |
| اووه آسمانونه او زمكه اوهغه ټول څيزونه چې په دې كښې اباد دى دهغه پاكي بيانوى | | | | | |

| وَاِنۡ مِّنۡ شَيۡءٍ | اِلَّا | يُسَبِّحُ | بِحَمۡدِهٖ | وَلٰكِنۡ | لَّا تَفۡقَهُوۡنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| اونشته هيڅ يوڅيز | مګر | تسبيح وائي هغه | دحمد دهغه سره | وليكن | نه پوهيږئ تاسو |
| اوداسې څيز نشته چې هغه دالله ﷻ دتعريف سره دهغه پاكي نه بيانوى خو تاسودهغه په | | | | | |

| تَسۡبِيۡحَهُمۡ ط | اِنَّهٗ | كَانَ | حَلِيۡمًا | غَفُوۡرًا ۝ |
|---|---|---|---|---|
| په تسبيح دهغوئ باندې | بيشكه | هغه دې | صبرناك | ابنبونكې |
| تسبيح نه پوهيږئ بيشكه هغه ډير حليم او بخنبونكې دې | | | | |

قوله تعالى:- وَاِنۡ مِّنۡ شَيۡءٍ اِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمۡدِهٖ

**هريو څيز د الله ﷻ تسبيح بيانوي:-** اووه واړه آسمانونه زمكې اوپه دې كښې اوسيدونكى ټول مخلوقات د هغه تسبيح پاكوالې تعظيم جلالت بزرګى لوئى پاكى اوتعريف بيانوى او مشركانو چه كوم خوشې او باطل اوصاف دالله ﷻ دذات د پاره منى دهغې نه دا ټول مخلوق د براءت څرګندونه كوى اود هغه په الوهيت اوربوبيت كښې هغه واحدلاشريك منى.هره يوه هستى دالله ﷻ دتوحيديوژوندې مثال او ګواهى دهـ.[ففي كل شئ له اية :- تدل على انه واحد]ددې نالاتقه خلقوداقوالونه مخلوق په تكليف كښې دې نيزدې ده چه آسمان اوشليږى زمكه ډوبه شي غرونه مات شي. طبرانى كښې دى چه رسول الله ﷺ د مقام ابراهيم اوزمزم دمينځ نه حضرت جبرائيل ؑ اوحضرت ميكائيل ؑ دمسجداقصى پورې د معراج په شپه بوتلو.حضرت جبرائيل ؑ د حضور ﷺ نه ښى طرف ته وو او حضرت ميكائيل ؑ كس طرف ته. حضور ﷺ نى د اووه آسمانونوپورې والوزولواودهغه ځاى نه نى واپس كړو.حضور ﷺ فرمانى چه ما په اوچتو آسمانونوكښې د ډيرو زياتو تسبيحاتوسره دا تسبيح هم واوريده(سبحت السموت العلى من ذي المهابة مشفقات لذوي العلوبما علا. سبحن العلى الاعلى. سبحانه وتعالى)په مخلوق كښې هريوڅيز د هغه پاكوالې او تعريف بيانوى.خواې خلقو تاسو دهغوى تسبيح باندې نه پوهيږئ خكه چه هغه ستاسو په ژبه كښې نه دى.حيوانات نباتات او جمادات ټول د هغه تسبيح وائى[1]دحضرت ابن مسعود ؓ نه په صحيح بخارى كښې ثابت دى د خوراك په وخت كښې مونږ به د خوراك تسبيح اوريدله[2]دحضرت ابوذر ؓ په حديث كښې دى چه حضور ﷺ په موټى كښې يوڅوكاڼې واخستل ماپخپله واوريدل چه هغوى د شاتود مچو په شان بنراړې كولو سره دالله ﷻ تسبيح كوله[3]دغه شان دحضرت ابوبكر ؓ حضرت عمر ؓ اوحضرت عثمان ؓ په لاس كښې هم.دا حديث په صحيح كښې اومسندونوكښې مشهوردې.

---

[1] مجمع الزوائد:٧٨/١، المعجم الاوسط:٣٧٥٤.
[2] صحيح بخارى كتاب المناقب باب علامات النبوة فى الاسلام:٣٥٧٩، ترمذى:٣٦٣٣، ابن حبان:٦٤٩٣.
[3] مسندالبزار:٤١٣ ٢، المعجم الاوسط:١٢٦٦.

څه خلقوسره حضورﷺ په خپلواوښو باندې او څناورو باندې سواره ولاړ اوليدلو فرمائيل نی چه سورلی په سلامتياسره واخلئ او په ښه طريقه سره ئې پريږدئی په لارو اوبازارونوکښې دخلقوسره خبرې کولودپاره سورلئی خپلې کرسئی مه جوړوئ. واورئ ډيرې سورلئی د خپلو سورونه هم د الله ﷻ زيات ذکرکونکی وی اودهغوی نه هم بهتراوغوره وی( )(مسنداحمد)سنن نسائی کښې دی چه حضورﷺ د چيندخې د مړې کولونه منع فرمائيلې ده اوئی فرمائيل چه د دې وينا د الله ﷻ تسبيح ده. ([2]) يو بل حديث شريف کښې دی چه د لااله‌الاالله کلمه په اخلاص سره ونيلو نه پس د هغه نيکی د قبليدو قابل کيږی.الحمدلله کلمه د شکر ده د دې نه ويونکې دالله ﷻ ناشکره دې. الله اکبر د زمکې او آسمان نضا ډکوی.دسبحان الله کلمه دمخلوق تسبيح ده.الله ﷻ يومخلوق هم د تسبيح او مونځ د کولونه باقی نه دې پريخودې. کله چه څوک لاحول ولاقوة الا بالله لولی نوالله ﷻفرمائی زمابنده تابعدارشو اومانه اوسپارلې شو. ([3])

**د نوح عليه السلام وصيت او: کلمې شان اود تسبيح اهميت:**-مسنداحمدکښې دی چه يواعرابی طيالسی چغه اغوستې وه چه په هغې کښې ريښمی لستونی او ريښمی کونډې وې حضورﷺ له راغلواو ونی وئيل چه د دې سړی اراده د دې نه سوا بل هيڅ نه ده چه د مالونو څرونکو هلکان اوچت او د سردارانو هلکان ذليل کړی. حضورﷺ له غصه راغله اود هغه لمن ئی رانښکلوسره اوفرمائيل چه په تاکښې د څناورو لباس اغوستونکې نه وينم؟ بيا حضورﷺ واپس راغلو کيناستو ونی فرمائيل حضرت نوح ﷺ د خپل وفات په وخت کښې خپل ځامن راوغوښتل او ورته ئی اوفرمائيل چه زه تاسو ته د وصيت په توګه دوه احکام درکوم.يو لااله‌الاالله وائې ځکه چه که آسمان او زمکه او په دې کښې چه کوم څيزونه دی هغه د تلې په يوچاړی کښې کيخودې شی او په بل چاړی کښې صرف هم دا کلمه وی نو دا به درنه وی. واورئی که دا ټول زمکې او آسمانونه يوه حلقه جوړه کړې شی او دا په هغې باندې کيخودې شی نو هغه به ذره ذره کړی. زمادويم حکم (سبحان‌الله‌وبحمده) لوستلودې ځکه چه دا د هرڅيز مونځ دې او هم د دې په وجه هريوته رزق ورکولې شی([4])ابن جريرکښې دی چه حضورﷺ اوفرمائيل راشئی چه زه تاسو ته اوښايم چه حضرت نوح ﷺ خپل خوئ ته څه حکم ورکړې وو چه زما خوږه بچيه زه تاته حکم درکوم سبحان الله وايه دا د ټول مخلوق تسبيح ده او هم په دې سره مخلقو ته رزق ورکولې شی. الله ﷻ فرمائی چه هريوڅيز د هغه تسبيح او تحميدبيانوی.ددې اسنادد نصربن عبدالرحمن الاودی راوی په وجه ضعيف دی.عکرمه ﷫ فرمائی چه ستنې ونې ددروازو چوڼرونه د هغې د وراندې کيدو کولاويدو آوازونه د اوبو ګړيدل داټولې دالله ﷻ تسبيح دی.الله ﷻ فرمائی چه هريوڅيزدهغه په حمداو ثنا بيانولو کښې مشغول دې. ابراهيم ﷫ فرمائی چه خوراك هم د الله ﷻ تسبيح وائی. دسورت حج آيت هم ددې ګواهی ورکوی اومفسرين وائی چه ژوندې څيز تسبيح وائی لکه څناور او ونې بوټی.

**کټ کيدلو اوچيدلو نه مخکښې شنه بوټی تسبيح وائی:**-يوځل حضرت حسن ﷫ له يوه خوانچه راغله نو ابويزيدرقاشی اوونيل اې ابوسعيد! آيا دا خوانچه هم تسبيح وائی. هغوی اوفرمائيل چه هو، مطلب دا چه کله دا شين لرګې وونو هغه وخت کښې تسبيح ونيله اوچه کله کټ شوه اوچه شوه نو تسبيح لاړه. د دې قول په تائيدکښې د دې حديث نه هم امدادا خستلې شی چه حضورﷺ د دوو قبرونوسره تيريدلو نو

---

[1] احمد:٣/٤٣٩.
[2] المعجم الاوسط:٣٧٢٨،.
[3] الطبری:١٧/٤٥٦.
[4] احمد:٢/٢٢٥.

فرمائیل ئی چه دوی په عذاب کولې شی اود څه لوئ څیز په وجه نه بلکه د متیازو په وخت کښې به ئی دپردې خیال نه ساتلو اوبل چغلی کوله.بیا حضورﷺ یو دوه شنې لختې راواخستې او دوه ځایه ئی کړې یو یوه ټکړه ئی په قبرونوباندې خښه کړه. ونې فرمائیل چه کیدې شی ترکومې دا اوچې نه وی هغه وخت پورې به ددوی په عذاب کښې کمې وی.(١)(بخاری اومسلم) په دې وجه بعضې علماؤ ونیلی دی ترکومې چه داشنې وی تسبیح به وائی اوکله اوچې شی نو تسبیح به بندشی. والله اعلم. الله ﷻ حکیم اوغفوردې گناهگارانوته په سزا ورکولوکښې تندی نه کوی وخت ورکوی خوچه بیا هم په کفر اوفسق باندې کلك ولاړوی نو بې پناه نیول رانازلوی.

**د الله ﷻ نیول ډیر سخت دې:-** بخاری اومسلم کښې دی الله ﷻ ظالم ته مهلت ورکوی بیاچه کله رانیسی نو پریږدی ئی نه. اوگوره په قرآن پاك کښې دی چه کله ستا رب د یوکلی خلق د هغوی د ظلم په وجه رانیسی نوبیاهم داسې رانیول وی.الخ.بل آیت کښې دی چه ډیرو ظالمانو کلیوالوته مونږ مهلت ورکړو بیامو آخر راگیرکړل. (٢)بل آیت کښې دی ﴿فَكَأَيِّنْ مِّنْ قَرْيَةٍ أَهْلَكْنَاهَا وَهِيَ ظَالِمَةٌ﴾ (٣)اوچه څوك د گناهونونه منع شی د هغې نه اخواشی توبه اوکړی نو الله ﷻ هم په هغه باندې رحم او مهربانی کوی لکه چه د قرآن پاك ارشاد دې کوم سړې چه بدی اوکړی یا په خپل ځان باندې ظلم اوکړی بیا استغفار اوکړی نو الله ﷻ به بښونکې او مهربان بیاموی. (٤)د سورت فاطر په آخری آیاتونوکښې هم دا بیان دی.

وَإِذَا قَرَأْتَ

اوهرکله چې | الولې تهٔ

اوهرکله چې ته قرآن پاك

الْقُرْآنَ | جَعَلْنَا | بَيْنَكَ | وَبَيْنَ | الَّذِينَ | لَا يُؤْمِنُونَ

قرآن | نوجوړووٴمونږه | په منځ ستا کښې | اوپه منځ | دهغه کسانوکښې | چې ایمان نهٔ راوړی

لولې نومونږ ستا اودهغه خلقو ترمینځه چې په اخرت باندې ایمان

بِالْآخِرَةِ | حِجَابًا | مَّسْتُورًا | وَجَعَلْنَا | عَلَى قُلُوبِهِمْ | أَكِنَّةً

په آخرت باند | پرده | پټه | اوجوړووٴمونږه | په زړونودهغوئ باند | پرده

نه راوړی یوه پټه پرده راواچوؤ اومونږ دهغوئ په زړونو کښې داسې پردې واچوؤ

أَنْ | يَفْقَهُوهُ | وَفِي آذَانِهِمْ | وَقْرًا | وَإِذَا | ذَكَرْتَ

دې خبرې نه چې پوهه شی په قران | اوپه غوږونودهغوئ کښې | درون والي دې | اوکله چې | یاد کړې تهٔ

چې هغوئ پرې پوهه نشی اودهغوئ په غوږونو کښې درونډوالئ پیدا کوؤ اوهرکله چې ته

---

(١) صحیح بخاری کتاب الجنائز باب عذاب القبر من الغیبة والبول: ١٣٧٨، صحیح مسلم:٢٩٢، ابوداؤد:٢٠، ترمذی:٧٠، ابن ماجه:٣٤٧، احمد:٢٢٥/١، ابن حبان:٣١٢٨.

(٢) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة هود باب قوله ﴿وكذلك اخذربك اذااخذ القری وهی ظالمة...﴾:٤٦٨٦، صحیح مسلم: ٦٥٨٣، ترمذی:٣١١٠، ابن ماجه:٤٠١٨، ابن حبان:٥١٧٥، بیهقی:٩٤/٦.

(٣) ٢٢/حج:٤٥.

(٤) ٤/النساء:١١٠.

| رَبَّكَ | فِي الْقُرْاٰنِ | وَحْدَهٗ | وَلَّوْا | عَلٰٓى اَدْبَارِهِمْ | نُفُوْرًا ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| رب خپل | په قران کښې | يوازې هغه لره | نو گرځي دوئ | په شاگانو خپلوا | په نفرت سره |

په قران کښې يوازې دخپل رب ذکر کوې نو هغوئ ورته شاکړې او په نفرت سره ترې نه روان شي

قوله تعالى:- وَجَعَلْنَا عَلٰى قُلُوْبِهِمْ اَكِنَّةً اَنْ يَّفْقَهُوْهُ وَفِيْٓ اٰذَانِهِمْ وَقْرًا

**په زړونباندې د پردې مفهوم:**-فرمائي چه دقرآن دتلاوت په وخت کښې دهغوی په زړونو باندې پردې پريوځي اودهغوی زړونوته هيڅ اثرنه رسي اوهغه پردې هغوی پټوی.دلته مستورد ساتر په معنی کښې دې لکه ميمون يا مشوّم چه ديامن اوشائم په معنی کښې دې.هغه پردې په ظاهر په نظرنه راځي خوبه هدايت کښې هغوی په مينځ کښې فاصله زياتوی.مسندابی يعلی موصلی کښې دی چه سورت (تبت يدا)نازليدو باندې عوراء ام جميل شورجوړکړو اويوتيره کاڼړې ئې په لاس کښې اخستې وو اودې ويل کولوسره راغله چه دا مذمم مونږ نه منو. زمونږ دده دين خوښ نه دې مونږ د ده د فرمان مخالف يو. هغه وخت رسول الله ﷺ ناست وو حضرت ابوبکر ﷺ د حضورﷺ سره وو وئې ويل حضورﷺ! دا راروانه ده اوتاسو به اووينی حضورﷺ اوفرمائيل بې فکر شه داما نه شی ليدلې. حضورﷺ دهغې نه د بچ کيدو د پاره د قرآن پاك تلاوت شروع کړو اوهم دا آيت ئې تلاوت کړو. هغه راغله او صديق اکبر ﷺ نه ئې تپوس اوکړو ماواوريدلی دی چه ستاسو پيغمبر زما بې عزتی کړې. هغوی اوفرمائيل نه د کعبه د رب قسم حضورﷺ خو ستاسو هيڅ بې عزتی نه ده کړې. هغې وئيل چه ټولوقريشوته معلومه ده چه زه د هغوی د سردار لوريم.[1] (اكنة) دکنان جمع ده دې پردې د هغوی زړونه پټ کړې دی په کوم سره چه دوی په قرآن نه پوهيږی.دهغوی په غوږونوکښې بوج دې په هغې وجه هغوی قرآن داسې نه شی اوريدې چه دوی ته فائده اورسولې شي. اوچه کله ته په قرآن کښې دالله ﷻ دوحدانيت ذکرلولې نودوی بې شانه منډې وهی.نفور جمع د نافر لکه څنګه چه قاعد جمع د قعود راځي اوکيدې شی چه دا مصدر وی د بغيرفعل. والله اعلم.

لکه چه په بل آيت کښې دی د الله ﷻ چه واحد ذات دې په ذکر اوريدو سره د بې ايمانه خلقو زړه مړکيږي[2] د مسلمانانو لااله الاالله به په مشرکانو باندې ډيرګران تيريدل. ابليس اود هغه لښکرو به په دې سره ډير چيړکولو د دې د ښکته کولوبه ئې پوره کوشش کولو خود الله ﷻ اراده دهغوی په خلاف د دې د اوچتولو عزت ورکولو او د خورولو وه. هم داهغه کلمه ده چه د دې ويونکې خلاصې بياموميٰ او په دې عمل کونکی ته امدادورکولې شي. اوګورئ د دې جزيرې حالات ستاسو په وړاندې دی تر هغه ځائ پورې دا کلمه خوره شوه[3] دا هم وئيلې شوی دی چه دې نه مرادشيطان تختيدل دی لکه دا خبره تياك ده چه د الله ﷻ د ذکر نه اذان نه د قرآن د تلاوت نه شيطان تختي. خود دې آيت تفسيرکول د غرابت نه خالي نه دی.

| نَحْنُ اَعْلَمُ | بِمَا | يَسْتَمِعُوْنَ | بِهٖٓ | اِذْ | يَسْتَمِعُوْنَ | اِلَيْكَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مونږه ښه پوهيږو | په هغه غرض | چې اوري هغوئ | په سبب دهغې سره | کله چې | هغوئ غوږ ږدي | تاته |

مونږ ته ښه معلومه ده چې دکوم غرض دپاره داخلق اوريدنه کوی څه وخت چې دوئ تاته غوږونه نيسی

---

[1] مسندابی يعلی:٢٥، حاکم:٣٦١/٢.

[2] ٣٩/زمر:٤٥.

[3] الطبری:٤٥٨/١٧.

وَإِذْ هُمْ نَجْوَىٰ إِذْ يَقُولُ الظَّالِمُونَ إِنْ تَتَّبِعُونَ

اوکله چي | هغوئ | پټې دغوږخبرې کوي | اکله چي | وائي | ظالمان | اچي پیروي نۀ کوئ تاسو

اوڅه چي دوئ خپل مینځ کښې پټې پټې صلاح ګانې کوي کوم وخت چي دا ظالمان وائي چي تاسوهم

إِلَّا رَجُلًا مَسْحُورًا انْظُرْ كَيْفَ ضَرَبُوا لَكَ

مګر | اداسې سړی | چي جادو پرشوې دې | اوګوره | څه رنګې | بیانوي دا خلق | اتاله

په یو داسې سړي پسې روان یئ چي دجادو عمل پرې شوې دې ګوره کنه چي داخلق تا دپاره څنګه څنګه

الْأَمْثَالَ فَضَلُّوا فَلَا يَسْتَطِيعُونَ سَبِيلًا

مثالونه | انو بې لارې شول دوئ | نو طاقت نۀ لري دوئ | دلارې نیغې دموندولو |

مثالونه بیانوي نو دوئ پخپله ګمراه شوي دي او سمه لار موندلې نشي

قوله تعالی:- نَحْنُ أَعْلَمُ بِمَا يَسْتَمِعُونَ بِهِ

**د قریشوسردارانو به درسول الله ﷺ قرآن په پټه اوریدلو:-** د کافرانوسردارانوچه به په خپل مینځ کښې خبرې کولې هغه حضورﷺ ته رسولې شی چه تاسوخویه تلاوت کښې مشغول نی اودوی پټ پټ وائی چه په ده باندې چاجادوکړې دې یاکیدې شی چه دامطلب وی داخوانسان دې چه دخوراك څښاك محتاج دې دالفظ په دې معنی کښې په شعرکښې هم دې اوامام ابن جریر ﷫ داتیك هم ګڼړی خودا غورغوارې.دهغوی اراده په دې موقع باندې د دې وینا داوه چه پخپله دې په جادوکښې راګیردې څوك شته چه په دې موقع ده ته څه اولولی. کافرانوخلقو به قسم قسم وهمونه د حضورﷺ په نسبت کښې ښکاره کول. چا به وئیل شاعر دې چابه وئیل کاهن دې چا به وئیل لیونې دې او چا به جادوګروئیل وغیره. د دې د پاره فرمانې چه ګورتې دوی څنګه دهوکه کیږی چه د حق طرف ته راتلې نه شی.

په سیرة محمدبن اسحاق کښې دی چه ابوسفیان بن حرب ابوجهل بن هشام اخنس بن شریق به د شپې د خپلوخپلوکورونونه د الله ﷻ کلام دحضورﷺ په ژبه مبارکه باندې د اوریدود پاره راوتل. حضورﷺ په خپل کور کښې د شپې مونځ کولو داخلق به راغله او چپ چاپ پټ راپټ به کیناستل د یو بل نه به ناخبره وو. شپې به ئې اوریدلوسحرکیدو سره به د دې ځائ نه تلل اتفاقی د ټولو په لاره ملاقات اوشو یوبل نی ملامت کړو او وئې وئیل چه اوس داحرکت اونه کړنی ګنی نور خلق خوبه بالکل د ده شی خود شپې بیادا درېواړه راغله او خپل خپل ځائ کښې کیناستل په قرآن اوریدوکښې نی شپه تیره کړه. سحرواپس شونو په لاره کښې ملاقات اوشو بیانی پرونئی خبرې سردوباره کړې اود اوس نه ئی کلکه اراده اوکړه چه بیابه داسې کارهیڅ کله څوك هم نه کوی په دریمه شپه بیا هم داسې اوشو. دې ځل هغوی وئیل چه راځنی وعده کوو چه بیابه نه راځو قول او وعدې کولونه دوی جداشوسحر اخنس خپله لختـه راواخستـه او د ابوسفیان کورته لاړو وئی وئیل ابوحنظله ماته اوښایه ستا خپله رائې د حضورﷺ باره کښې څه ده؟ هغه وئیل ابوثعلبه د قرآن پاك چه کوم آیاتونه مااوریدلی دی په هغې کښې خود ډیرو ایاتونو معنی اومطلب باندې خوزه پوهه شوې یم خودډیرو آیاتونو مطلب باندې نه پوهیږم. اخنس وئیل والله زما هم دا حال دې. دې ځاې نه اخنس د ابوجهل کره لاړو د هغه نه ئی هم دغه تپوس اوکړو هغه وئیل واورئی په شرافت او سردارئی کښې خو زمونږ بیله بنوعبدمناف د مودو نه په جګړو راروانه ده هغوی وینا اوکړه مونږ هم اوکړه. هغوی سورلنی ورکړې مونږ هم هغوی ته د سورلوخناور ورکړل هغوی خلقو سره سلوك اوکړو خلقو ته ئی انعامونه ورکړل مونږ هم د هغوی نه روستوپاتې کیدل خوښ

نه کړل.اوس چه په دې ټولوخبرو کښې هغوی اومونږ برابریو چه په دې منډه کښې هغوی نمبریونړلي شو نوهغوی زر اوونیل چه په مونږ کښې پیغمبری ده په مونږ کښې یوسړې دې چه هغه له آسمانی وحی راځی اوس اوښایه مونږ دا څنګه اومنو؟ والله نه به مونږ په ده ایمان راوړو او نه به چرې ده ته رښتونې اووایو. هغه وخت اخنس دې پریخودو اولاړو.

| وَقَالُوٓا ءَاِذَا | كُنَّا | عِظَامًا | وَّرُفَاتًا | ءَاِنَّا | لَمَبۡعُوۡثُوۡنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| اووانی دوئ آیا چې کله | شومونږه | هډوکی | اوخاوره میده شوی | آیامونږبه | خامخا راپاسولې شوا |
| اودوئ وائی آیاهرکله مونږ هډوکی اوبیا چوره شو نودنوی سری به بیا راپیدا کیږو | | | | | |

| خَلۡقًا | جَدِيۡدًا۝ | قُلۡ | كُوۡنُوۡا | حِجَارَةً | اَوۡحَدِيۡدًا۝ | اَوۡخَلۡقًا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په پیدا کولو | نوی سره | ورته اووایه | چې شئ تاسوا | کاڼړی | یااوسپنه | یابل قسم مخلوق |
| اوبیا به راټولیږو ورته اووایه چې تاسوکاڼړی شئ یا اوسپینه شئ یاڅه بل څیز ستاسو | | | | | | |

| مِّمَّا | يَكۡبُرُ | فِيۡ صُدُوۡرِكُمۡ | فَسَيَقُوۡلُوۡنَ | مَنۡ |
|---|---|---|---|---|
| دهغې نه | چې لوئ اوسخت ښکاری | په سینو ستاسو کښې | نووائی به هغوئ | څوك به |
| په خیال کښې دهغې ژوندی کیدل ډیرګران وی نو دوئ به ضرور اووائی چې ښه نو مونږ به څوك | | | | |

| يُّعِيۡدُنَا | قُلِ | الَّذِيۡ فَطَرَكُمۡ | اَوَّلَ مَرَّةٍ |
|---|---|---|---|
| ژوندی کړی واپس مونږه | ورته اووایه | هغه ذات چې پیدائې کړئ تاسو | اول ځل |
| بیا راژوندی کوی ورته اووایه چې چا تاسو په ړومبی ځل پیدا کړی وی | | | |

| فَسَيُنۡغِضُوۡنَ | اِلَيۡكَ | رُءُوۡسَهُمۡ | وَيَقُوۡلُوۡنَ | مَتٰى | هُوَ | قُلۡ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نوبه خوزوی هغوئ | تاته | سرونه خپل | اووائی به | چې کله به وی | داکار | ورته اووایه |
| نو په تعجب سره ستاسو په مخکښې به سرونه اوخوزوی اوتپوس به اوکړی چې داسې به کله وی ورته اووایه | | | | | | |

| عَسٰۤى | اَنۡ يَّكُوۡنَ | قَرِيۡبًا۝ | يَوۡمَ | يَدۡعُوۡكُمۡ |
|---|---|---|---|---|
| کیدې شی | چې وی | نزدې | په هغه ورځ | چې رااوبلی تاسو (الله) |
| چې کیدیشی چې هغه وخت نزدې راغلې وی دابه په هغه ورځ وی چې الله ﷻ به تاسو راوغواړی | | | | |

| فَتَسۡتَجِيۡبُوۡنَ | بِحَمۡدِهٖ | وَتَظُنُّوۡنَ | اِنۡ لَّبِثۡتُمۡ | اِلَّا قَلِيۡلًا۝ |
|---|---|---|---|---|
| نوقبول به کړئ تاسو | دحمد دهغه سره | اوګمان به کوئ تاسوا | چې نه دې تیر کړی وخت تاسوا | مګر لږ |
| نوتاسو به دهغه تعریفونه کوئ اودهغه حکم به منئ اودا خیال به کوئ چې تاسو خو ډیر لږ ساعت په دنیا کښې پاتې شوی وی | | | | |

**قوله تعالی:-وَقَالُوٓا ءَاِذَا كُنَّا عِظَامًا وَّرُفَاتًا**

**د مرګ نه پس راژوندی کیدلو نه ددوئ انکار او دهغې جواب:**-کافران چه د قیامت قائل نه وواود مرګ نه پس ئې ژوندون محال ګڼړلو هغوی به دانکارپه توګه تپوس کولوچه کله مونږ هډوکی اوخاوره شو[1] دوړې به جوړې شوهیڅ به پاتې نه شو بالکل به ختم شونو بیابه په نوی پیدا کیدوسره پیدا کیږو؟ په

[1] الطبری:١٧/٤٦٤

سورت نازعات کښې د دې منکرانو قول بیان شوې دې. چه ایا مونږ به د مرګ نه پس بیا واپس راپیدا کولېشو؟اوهغه هم په داسې حال کښې چه زمونږ هډوکی سخااو خاوری شوی وی؟داخوپوره د خسارې خبره ده.([1])په سورت یس کښې دی چه دوی زمونږ په وړاندې مثالونه بیانول شروع کړه اوخپل پیدائښ ئی هیرکړو([2])نو دوی ته جواب ورکولې شي چه هډوکی خو څه چه که تاسو کاڼړی هم جوړشئ اویا د دې نه هم سخت څیز جوړشئ مثلاً غر زمکه یا آسمان بلکه تاسو پخپله مرګ ولې جوړنه شئ الله ﷻ ته ستاسو سوزل ګران نه دی چه څه کیدل غواړئ اوشئ خو بیابه ضرور راژوندی کیږئ.([3]) په حدیث کښې دی چه د ګډ په صورت کښې به مرګ د دوزخ او جنت په مینځ راوستلې شي او دواړوډلو ته به ونیلې شي چه دا پیژنئ؟ ټول به وائی چه او بیا به هم هغه ځائ کښې حلال کړې شي او اعلان به کولې شي چه اې جنتیانو اوس د همیشه د پاره ژوند دې مرګ نشته او اې دوزخیانو اوس همیشه والې دې مرګ نشته.([4]) دلته ارشاددې چه دوی تپوس کوی چه ښه کله مونږ هډوکی شو او ذره ذره شو یاکاڼړې یااوسپنه شو یا چه کوم څیز مونږ غواړو د لوئ نه لوئ سخت څیز وی هغه مونږ شو نو دا اوښایه چه د چا په اختیارکښې دی چه مونږ بیادې خپل ژوندون طرف ته واپس راوګرځولې شو؟ د هغوی ددې سوال اوبې ځایه اعتراض په جواب کښې ته دوی په دې پوهه کړه چه ستاسو واپس راګرځونکې ستاسو ربښتونې خالق الله ﷻ دې چا چه تاسو په اول ځل پیداکړی ئی په هغه وخت کښې چه تاسو هیڅ هم نه وئی نو بیا هغه ته په دویم ځل پیداکول څه ګران دی بلکه ډیر آسان دی که تاسو هرڅه جوړشئ.دا جواب خولاجوابه دې غلې خوبه شي ولې بیا هم د خپل شیطانت نه نه منع کیږی بده عقیده به پرینږدی اودټوقو مسخرو په توګه به سر خوزوی وانی به ښه ده دا به کله کیږی؟ که ربښتونې ئی نو وخت اوښایه.

د بې ایمانه خلقو دا طریقه ده چه هغوی تندی کوی اودې خو هغه وخت نیزدې تاسود هغې انتظار کوئې غفلت مه کوئی د هغې په راتلو کښې هیڅ شك نشته راتلونکې څیز هم راغلې اوګڼړئ.د الله ﷻ په یوآوازسره به تاسودزمکې نه بهر راوځئ.دسترګې دیوځل رپولو وخت به اونه لګی.دالله ﷻ دارشاد سره به تاسویه میدان محشرکښې موجودشئ.دقبرونو نه به راوځئ دالله ﷻ تعریفونه کولوسره به د هغه داحکامو په ځائ راوړلو د پاره اودریږئ.دحمد لائق هم هغه دې تاسودهغه دحکم او ارادې نه بهر نه ئی.

**کلمه ویونکې باندې به قبرکښې ویره نه وی:-** په حدیث کښې دی لااله الا الله ویونکو باندې به د هغوی په قبرونوکښې هیڅ ویره نه وی لکه چه زه هغوی وینم چه هغوی د قبرونونه راپاسی د خپل سر نه به خاوره سنډی لااله الاالله ونیلوسره اودریږی اووائی به د الله ﷻ حمداوثناده چا چه زمونږ نه غم لرې کړو.دسورت فاطر په تفسیرکښې دا بیان راروان دې.ان شاءالله.هغه وخت به ستاسویقین اوشی چه تاسوډیره کمه موده په دنیاکښې پاتې شوی ئی لکه سحر یاماښام څوك به وائی لس ورځې څوك به وائی یوه ورځ اوڅوك به وائی یوساعت. په سوال کولو باندې به هم دا وائی چه یوه ورځ یاځه حصه او په دې به قسمونه خوری. دغه شان به په دنیاکښې هم په خپلو دروغو باندې قسمونه خوړل.

| وَقُل | لِّعِبَادِى | يَقُولُوا | الَّتِى | هِىَ | أَحْسَنُ ط | إِنَّ الشَّيْطَٰنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اواووایه | بندګانو زماته | چې وائی هغوئ | هغه خبره | چې هغه | ډیره ښه وی | بیشکه چې شیطان |

اوزما بندګانو ته اووایه چې هغه خبره کوئ چې ډیره زیاته ښه وی بیشکه شیطان

[1] ٧٩/نازعات:١٠-١٢.

[2] ٣٢/یس:٧٨. الخ.

[3] الطبری:١٧/٤٦٤.

[4] صحیح بخاری کتاب التفسیر باب قوله عزوجل ﴿وانذرهم یوم الحسرة﴾:٤٧٣٠.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يَنۡزَغُ | بَيۡنَهُمۡ ؕ | اِنَّ الشَّيۡطٰنَ | كَانَ | لِلۡاِنۡسَانِ | عَدُوًّا | |
| فساد اچوي | په منځ دهغوئ كښې | بيشكه چې شيطان | دې | دپاره دانسان | دشمن | |
| ددوئ ترمينځه فساد اچوي بيشكه شيطان دانسان ښكاره دښمن | | | | | | |
| مُّبِيۡنًا ۞ | | | | | | |
| ښكاره | | | | | | |

**قوله تعالى:-** وَقُلۡ لِّعِبَادِيۡ يَقُوۡلُوا الَّتِيۡ هِيَ اَحۡسَنُ ؕ

**خبرې اترې په طريقه كول پكاردي:**-الله ﷻ خپلو خوږ نبي كريم ﷺ ته فرمائي چه ته مؤمنانو بنديگانو ته اووايه چه هغوى دې په خولفظونوښكلې فقرو او ښه طريقه سره خبرې اترې كوى گنې شيطان به د دوى په مينځ كښې شك او بدى واچوى جنگ جگړې به شروع شي. هغه د انسان دښمن دې په شيش كښې ناست دې. په دې وجه د يومسلمان رور طرف ته په وسلّه سره اشاره كول هم حرام دي چه چرته شيطان دې اونه لگوى او دوزخي جوړ نه شي. اوگورئى[1]مسنداحمد. حضوراكرم ﷺ د خلقو په گنړه كښې يوځل اوفرمائيل چه ټول مسلمانان په خپل مينځ كښې رونړه رونړه دى څوك دې په چا باندې ظلم زياتې نه كوى څوك مه بې عزته كوئى.بيا حضورﷺدخپلې سينې مباركې طرف ته اشاره اوفرمائيله ارشاد ئى اوفرمائيلو تقوى دلته ده چه كله دوه سرى په خپل مينځ كښې دينى دوستان وى بيا په هغوى كښې بيلتون راشى په دې دا جدائى چه څوك بيانوى هغه بيان كونكې خراب دې ډير خراب دې او ډير شيطان دې.(مسند) ([2])

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| رَبُّكُمۡ | اَعۡلَمُ | بِكُمۡ ؕ | اِنۡ يَّشَاۡ | يَرۡحَمۡكُمۡ |
| ارب ستاسو | ښه خبردې | په حال ستاسو | كه اوغواړي هغه | نو رحم به اوكړي په تاسو |
| ستاسو رب ته ستاسو حال ښه معلوم دې كه چرې هغه اوغواړي نو په تاسو به رحم اوكړي | | | | |
| اَوۡ اِنۡ يَّشَاۡ | يُعَذِّبۡكُمۡ ؕ | وَمَاۤ اَرۡسَلۡنٰكَ | عَلَيۡهِمۡ | |
| يا كه اوغواړي هغه | نوعذاب به دركړي تاسو له | اونۀ ني ليږلې مونږه تۀ | په دې خلقو باند | |
| ياكه هغه اوغواړي نو تاسو له به عذاب دركړي اومونږ ته ددوئ دپاسه څه ذمه دار | | | | |
| وَكِيۡلًا ۞ | وَرَبُّكَ | اَعۡلَمُ | بِمَنۡ | فِي السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ ؕ |
| ذمه وار | او رب ستا | ښه خبر دې | په هغه مخلوق اچې په اسمانونو كښې دى | اوپه زمكه كښې دى |
| راليږلې نه يئ اوستارب ته ښۀ معلومه دى چې څه په اسمانونو او زمكه كښې دى | | | | |
| وَلَقَدۡ فَضَّلۡنَا | بَعۡضَ النَّبِيّٖنَ | عَلٰى بَعۡضٍ | وَّاٰتَيۡنَا | دَاوٗدَ |
| او فضيلت وركړې وۀ مونږه | اخينو پيغمبرانو لره | په خينو باند | اووركړې وۀ مونږه | داود ته |
| او مونږ خينې نبيانو له په خينو باندې فضيلت وركړي دې اومونږ داود ﷺ ته | | | | |

[1] صحيح بخارى كتاب الفتن باب قول النبيﷺ((من حمل علينا السلاح فليس منا)):٧٠٧٢، صحيح مسلم:٢٦١٧، احمد: ٣١٧/٢، ابن حبان:٥٩٤٨.
[2] احمد:٧١/٥.

| زَبُوْرًا ۝ |
|---|
| زبور ا |
| زبور ورکړې وو دوئ ته |

**قوله تعالى: ـ رَبُّكُمْ اَعْلَمُ بِكُمْ ـ**

**د درجو فرق:**- ستاسو رب تاسو نه ښه خبردې هغه د هدايت مستحق خلق ښه پيژني هغه چه په چا باندې غواړي رحم کوي دخپلې تابعدارئ توفيق ورکوي اوخپل خان ته ئې راتيتوي. دغه شان چه څوک غواړي په بدوعملونوباندې راګيروي سزا ورکوي چه مونږ ته د دې ذمه وار نه وې جوړ کړې ستاکار صرف خبر ورکول دی ستا منونکي به جنتيان وي اونه منونکي به دوزخيان وي. دزمکې او آسمان د ټولوانسانانواو پيريانوفرښتو هغه ته علم دې دهريو د درجو هغه ته علم دې يو له په بل باندې فضيلت دې په انبياؤکرامو کښې هم درجې دی څوک کليم الله دې څوک د اوچتو درجو دې. په يوحديث کښې دی چه په انبياؤکرامو کښې فضيلتونه مه قايم کوئی. ([1]) د دې نه مطلب صرف تعصب او نفس پرستئ نه په خپله توګه فضيلت قايمول دی اونه دا چه د قرآن او حديث نه ثابت شوې فضيلت نه انکار دې کوم فضيلت چه د کوم يو نبی د پاره د دليل په رنړا کښې ثابت شی د هغې منل واجب دی.

**اولوالعزم پيغمبرانو ذکر:**- منلې شوې خبره ده چه د ټولو انبياؤکرامو نه زمونږ آخري رسول افضل او غوره دې او په رسولانوکښې بيا پنځه اولوالعزم رسولان د دې ټولونه غوره دی د کومو نومونه چه په سورت احزاب کښې دی. يعنی محمد ﷺ، نوح ﷺ، ابراهيم ﷺ، موسی ﷺ، اوعيسی ﷺ. د سورت شوری په آيت ﴿شَرَعَ لَكُمْ مِّنَ الدِّيْنِ مَا وَصّٰى بِهٖ نُوْحًا وَّالَّذِيْٓ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ وَمَا وَصَّيْنَا بِهٖٓ اِبْرٰهِيْمَ وَمُوْسٰى وَعِيْسٰٓى اَنْ اَقِيْمُوا الدِّيْنَ وَلَا تَتَفَرَّقُوْا فِيْهِ ۭ كَبُرَ عَلَى الْمُشْرِكِيْنَ مَا تَدْعُوْهُمْ اِلَيْهِ ۭ اَللّٰهُ يَجْتَبِيْٓ اِلَيْهِ مَنْ يَّشَاۗءُ وَيَهْدِيْٓ اِلَيْهِ مَنْ يُّنِيْبُ﴾ ([2]) کښې هم ددې پنځوتومونه موجود دی. لکه څنګه چه دا ټول څيزونه امت منی دغه شان بغيرد څه اختلاف نه دا هم ثابت دی چه په دوی کښې هم بيا حضرت محمد ﷺ دې. بيا حضرت ابراهيم ﷺ بياموسی ﷺ څنګه چه مشهوره ده. مونږ د دې دلائل بل ځائ کښې په وضاحت سره بيان کړی دی. والله الموافق.

بيافرمائی چه مونږ حضرت داؤد ﷺ له زبورورکړې. دا هم د هغوی د فضيلت او شرف دليل دې. صحيح بخاری کښې حضرت رسول الله ﷺ فرمائی چه په حضرت داؤد ﷺ باندې زبور دومره آسان کړې شوې وو چه په څاروی باندې به ئې زين اچولو نو دومره وخت کښې به ئې زبور لوستلو ([3])

| قُلِ | ادْعُوا | الَّذِيْنَ | زَعَمْتُمْ | مِّنْ دُوْنِهٖ |
|---|---|---|---|---|
| اووايه | چې رااوبلئ | هغه معبودان | چې ګمان پرکوئ تاسو | بغير دالله نه |
| دوئ ته اووايه چې تاسو دالله ﷻ نه سوا نور څومره معبودان جوړ کړی دی | | | | |
| فَلَا يَمْلِكُوْنَ | كَشْفَ الضُّرِّ | عَنْكُمْ | وَلَا تَحْوِيْلًا ۝ | |
| نو نه لري اختيار هغوئ | دلرې کولو دنقصان | ستاسو نه | او د کرځولو | |
| هغوئ خولږ رااوبلئ هغوئ نه خو ستاسو څه تکليف لرې کولې شی اونه يو مصيبت بدلولې شي | | | | |

---

[1] صحيح بخاری کتاب احاديث الانبياء باب قوله تعالى ﴿وان يونس لمن المرسلين﴾:۲۴۱۴، صحيح مسلم:۲۳۷۳.

[2] ۴۲/الشوری:۱۳.

[3] صحيح بخاری کتاب احاديث الانبياء باب قوله تعالى ﴿وآتينا داؤدزبورا﴾:۳۴۱۷.

| أُولَٰٓئِكَ | الَّذِينَ | يَدْعُونَ | يَبْتَغُونَ | إِلَىٰ رَبِّهِمُ | الْوَسِيلَةَ |
|---|---|---|---|---|---|
| دا معبودان | هغه كسان دي | چي رابلي ني دوئ | هغوئ پخپله لټوي | رب خپل ته | وسيله دنزديكت |

دوئ چي څوك په خدائي باندې بلي هغوئ پخپله دخان پحقله دخپل رب نزديكت لټوي

| أَيُّهُمْ | أَقْرَبُ | وَيَرْجُونَ | رَحْمَتَهُ | وَيَخَافُونَ | عَذَابَهُ |
|---|---|---|---|---|---|
| چي كوم يوبه دهغوئ نه | زيات نزدې شي | او اميد لري | درحمت دهغه | اويريږي | دعذاب دهغه نه |

چي (اوګورو) چي څوك الله ﷻ ته ډيرنزدې كيږي اودهغه درحمت اميدوار دي اودهغه دعذاب نه ويريږي

| إِنَّ | عَذَابَ | رَبِّكَ | كَانَ | مَحْذُورًا |
|---|---|---|---|---|
| بيشكه | عذاب | درب ستا | دې | لائق ديريدلو |

بيشكه ستا درب عذاب نه ويره پكار ده

**قوله تعالى:- أُولَٰٓئِكَ الَّذِينَ يَدْعُونَ يَبْتَغُونَ**

**كوم چه خلق معبودان ګڼرې هغوى پخپله د الله ﷻ عبادت كوى:-** د الله ﷻ نه بغيرد نورو عبادت كونكوته اروايه چه تاسودوى ته ښه چغې اووهئى هغوى ستاسو په هيڅ كارنه شى راتلې. نه دهغوى دطاقت خبره ده چه ارتوالې راولى نه داسې څه خبره شته چه په بل چاباندې واچوى هغوى خو بې وسه دى او د طاقت او قدرت والا خو صرف هم هغه يو الله ﷻ دې د مخلوق خالق اود ټولو بادشاه دې. دې مشركانو په ونيل چه مونږ دفرښتو حضرت مسيح ﷺ اوحضرت عزير ﷺ عبادت كوو ددوى معبودان خو پخپله د الله ﷻ دنيزديكت كوشش كوى.[1] صحيح بخارى‌كښې دى چه د كوموپيريانو دې مشركانو عبادت كولو هغوى پخپله مسلمانان شوې وو خودوى تراوسه پورې په خپل كفرباندې كلك ولاړدى.[2] په دې وجه دوى ته خبروركړې شوچه ستاسو معبودان پخپله د الله ﷻ طرف ته ټيټ شو. ابن مسعود ؓ فرمائى چه داپيريان دفرښتود يوقسم نه وو. حضرت عيسى ﷺ حضرت مريم ﷺ حضرت عزير ﷺ نمر سپوږمئى او فرښتې ټول د الله ﷻ د نيزديكت په لټون كښې وو. ابن جرير رحمه الله فرمائى چه صحيح مطلب هم دا دې چه د كومو پيريانودوى عبادت كولو په آيت كښې هم هغه مراد دى ځكه چه د حضرت عيسى ﷺ زمانه خو تيره شوې وه اوفرښتې خود اول نه د الله ﷻ عبادت كونكې وې نو دلته هم مراد پيريان دى.

**دوسيلې معنى قرب اونزديكت دې:-** دوسيلې معنى قربت اونيزدې والې دې لكه څنګه چه دحضرت قتاده رحمه الله قول دې. دا ټول بزرګان هم په دې خيال كښې دى چه څوك به الله ﷻ سره ډير زيات نيزديكت حاصل كړى؟ هغوى د الله ﷻ د رحمت طلبګار او د عذاب نه ويريدونكى دى. په حقيقت كښې بغيرد دې دواړو خبرونه عبادت نامكمل دې. ويره د ګناهونونه منع كول كوى او اميد او طمع په اطاعت باندې آماده كول كوى. په واقع كښې هم د هغه عذاب دې د ويرې الله ﷻ دې مونږ بچ كړى.

| وَإِن مِّن قَرْيَةٍ | إِلَّا | نَحْنُ |
|---|---|---|
| اونشته هيڅ يو كلې | مګر | مونږه |

او (د كافرانو) داسې يو كلې نشته چې كوم مونږ

[1] الطبرى: ١٧/٤٧١.
[2] صحيح بخارى كتاب التفسير سورت بنى اسرائيل باب (قل ادعوا الذين زعمتم من دونه): ٤٧١٤، صحيح مسلم: ٣٠٣٠.

| عَذَابًا | اَوْ مُعَذِّبُوْهَا | يَوْمِ الْقِيٰمَةِ | قَبْلَ | مُهْلِكُوْهَا |
|---|---|---|---|---|
| په عذاب | يا عذابونکي يو هغې لره | دورځې دقيامت نه | مخکښې | هلاکونکي يو هغې لره |

دقيامت نه وړاندې وړاندې هلاک نه کړو يا دهغې کلي اوسيدونکو خلقو ته سخت عذاب

| وَمَا مَنَعَنَآ | مَسْطُوْرًا | فِي الْكِتٰبِ | ذٰلِكَ | كَانَ | شَدِيْدًا |
|---|---|---|---|---|---|
| اونه يومنع کړې مونږه هيڅ څيز | ليکلې شوې | په کتاب کښې | د احکم | دې | سخت سره |

ورنکړو دا دالله ﷻ په کتاب کښې ليکلې پراته دي اومونږ نخښې

| الْاَوَّلُوْنَ | بِهَا | اَنْ كَذَّبَ | اِلَّآ | بِالْاٰيٰتِ | اَنْ نُّرْسِلَ |
|---|---|---|---|---|---|
| ړومبنو خلقو | هغه نښې | چې دروغ ګنړلې وې | مگر دې خبرې | نښې | له دې نه چې اوليږو |

ليږل څکه منع کړې چې وړاندينو خلقو دا دروغژني ګنړلې وې

| وَمَا | بِهَا | فَظَلَمُوْا | مُبْصِرَةً | النَّاقَةَ | ثَمُوْدَ | وَاٰتَيْنَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اونه | په هغې باندې | نو ظلم اوکړو هغوئ | ښکاره | اوښه | ثموديانوله | اوورکړه مونږه |

اومونږ ثموديانو ته اوښه د (صالح دنبوت) ښکاره نخښه ورکړه نو هغوئ په دې ظلم اوکړو

| اِلَّا تَخْوِيْفًا | بِالْاٰيٰتِ | نُرْسِلُ |
|---|---|---|
| مگر دپاره ديرولو | نښې | ليږو مونږه |

او مونږ خو داسې معجزې ويرولو دپاره راليږو

قوله تعالى:- وَاِنْ مِّنْ قَرْيَةٍ اِلَّا نَحْنُ مُهْلِكُوْهَا قَبْلَ يَوْمِ الْقِيٰمَةِ

**د منکرانو اخرى انجام تباهى ده:-** هغه ليکل کوم چه په لوح محفوظ کښې شوى دى هغه حکم کوم چه جارى کړې شوې دې دهغې بيان په دې آيت کښې دې چه دګناهګارانو کلې يقينًا اوران کړې شوى دى. يا د تباهئ سره د هغوى د ګناهونوپه وجه رانيزدې شى. په دې کښې به زمونږ د طرف نه هيڅ ظلم نه وى بلکه دهغوى دخپلو عملونو بدله به وى د هغوى د عملونونقصان به وى.د رب د آياتونو او د هغه د رسولانو نه د سرکشئ ميوه به وى.

**د نخښوکتلونه پس ايمان نه راوړل د عذاب وجه ده:-** درسول الله ﷺ په زمانه کښې کافرانوحضورﷺ ته اووئيل تاسونه وړاندې په انبياؤکرامو کښې دبعضو هواتابع شوې وه بعضو به مړى ژوندى کوى وغيره. اوس که چرته ته غوارې چه مونږ هم په تاسو باندې ايمان راوړو نوتاسو دا دصفاغونډئى د سرو زرو کړئى نو مونږ به ستاسو دصداقت قائل شو.په دې کښې وحى راغله که چرې ستا هم دا خواهش وى نودا دصفاغونډئى به دسرو زروکرم خودا خيال ساته که دوى بياهم ايمان راونړو نو بيابه دوى ته مهلت نه ملاويږى فورًا به عذاب راشى اودوى به تباه کړى.اوکه ستادوى ته دتاخير ورکولو او سوچ موقع ورکول منظور وى نو زه به داسې نه کوم. حضورﷺ اوفرمائيل ياالله زه د دوى باقى پاتې کيدو کښې خوشحاله يم. ([1])په مسندکښې دومره نور هم دى چه هغوى داهم وئيلې وو چه باقى نور غرونه دې د دې خائ نه اخواشى چه مونږ دلته زمينداره اوکړې شو الخ. په دې باندې دا آيت نازل شو.([2])

---

[1]) الطبرى:١٧/٤٧٧.

[2]) احمد:١/٢٥٨، حاكم:٢/٣٦٢.

بل روايت كښې دي حضور ﷺ دعا او غوښتله حضرت جبرائيل ؈ راغلو اووئې وئيل چه ستاسو پروردګار تاسو ته سلام وائي او فرمائي كه چرې تاسو غواړئي نو ترسحره پورې به دا غرد سرو زروشي خو كه بيا هم په دوى كښې چا ايمان راونړلو نو هغوى ته به هغه سزا وركولې شي چه تراوسه پورې به چاته هم نه وى شوې او كه ستاسو اراده وى نو زه په دوى باندې د رحمت او توبه دروازه كولاؤ پرېږدم؟ حضور ﷺ دادويمه خبره خوښه كړه([1])مسندابى يعلى كښې دى ﴿وَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ﴾ ([2])كله نازل شونود ارشاد د پوره كولود پاره حضور ﷺ په جبل ابى قبيس باندې اوختلو اووئې فرمائيل اې بنوعبدمناف زه تاسوويرونكې يم. قريش دې آواز اوريدو سره راجمع شو بيائې وئيل واورئې حضور ﷺ د نبوت دعوى كونكې دې. د سليمان ؈ تابع هوا وه د موسى ؈ درياب تابع شوې وو عيسى ؈ نبى به مړى ژوندى كول ته هم نبى ئې الله ﷻ ته اووايه چه دا غر اخواكړې اودا زمكه د زميندارئې قابله كړې دې د پاره چه مونږ فصلونه اوكرو. كه دا نه وى نو زمونږ د مړو د ژوندى كولو دعاد الله ﷻ نه اوكړه چه مونږ اوهغوى يوځائ كينو خبرې اوكړو اوكه داهم نه وى نو دا غرد سرو زرو جوړكړه چه مونږ د ژمى او اوړى د سفر نه خلاص شو. هم هغه وخت په حضور ﷺ باندې وحى نازليدل شروع شو د دې په ختميدو باندې حضور ﷺ اوفرمائيل د هغه ذات قسم د چا په قبضه كښې چه زما ځان دې تاسو چه څه اوغوښتل ماته د هغې په كيدو كښې او په دې خبره كښې چه د رحمت دروازې ته لاړشم اختيار راكړې شو چه د ايمان او اسلام نه پس تاسو د الله ﷻ رحمت راغوندكړئې ياكه تاسو دا نښې اوكتلې اوبيامو اونه منله نو تاسو ګمراه شئى اود رحمت دروازې به په تاسو بندكړې شى نوزه اوويريدلم اود رحمت دروازه مې كولاو پاتې كيدل خوښ كړل څكه چه په دويم صورت كښې خو به ستاسو په ايمان نه راوړو باندې به په تاسو هغه عذاب نازليدلوكوم چه به په چا نه وو نازل شوې. په دې باندې آيت نازل شو اوبل آيت ﴿ وَلَوْ أَنَّ قُرْآنًا سُيِّرَتْ بِهِ الْجِبَالُ أَوْ قُطِّعَتْ بِهِ الْأَرْضُ أَوْ كُلِّمَ بِهِ الْمَوْتَىٰ ۗ بَل لِّلَّهِ الْأَمْرُ جَمِيعًا ۗ أَفَلَمْ يَيْأَسِ الَّذِينَ آمَنُوا أَن لَّوْ يَشَاءُ اللَّهُ لَهَدَى النَّاسَ جَمِيعًا ۗ وَلَا يَزَالُ الَّذِينَ كَفَرُوا تُصِيبُهُم بِمَا صَنَعُوا قَارِعَةٌ أَوْ تَحُلُّ قَرِيبًا مِّن دَارِهِمْ حَتَّىٰ يَأْتِيَ وَعْدُ اللَّهِ ۚ إِنَّ اللَّهَ لَا يُخْلِفُ الْمِيعَادَ﴾([3]) نازل شو

**نخښې نخښانې دخلقودويرولودپاره وى:**-يعنى دآياتونود ليګلواوبخپله څله باندې غوښتلې شوو معجزو خودلو نه مونږ عاجز نه يو بلكه دا مونږ ته ډير آسان دى كوم چه ستا قوم غواړې مونږ به ئې دوى ته اوخايوخو په دې صورت كښې به د دوى په نه منلوسره به بيا زمونږ عذاب نه اخواكيږى وراندې خلقو ته اوګوره هم په دې كښې برباد كړې شو. په سورت مائده كښې دى چه زه به تاسو دسترخوان نازلوم خودې نه پس چه څوك كفر كوى هغه ته به داسې سزا وركولې شى چه دې نه وړاندې به چاته نه وى وركړې شوې([4])ثمود يانو ته اوګوره چه هغوى د يوخاص كانړى نه د اوښې راوتل غوښتې وو.دحضرت صالح ؈ پدعاسره هغه راووتله خو هغوى اونه منل بلكه د هغه اوښې پښې پنډئې كټ كړې رسول ئې دروغ ګڼړلو په دې باندې هغوى ته درې ورځې مهلت ملاوشو او بيا هلاك كړې شو.د هغوى دا اوښه هم د الله ﷻ د وحدانيت يوه نښه وه اود هغه د رسول د صداقت علامت وو. خودې خلقو بيا هم كفر اوكړو د هغې اوبه ئې بندكړې او آخر ئې هغه قتل كړه د كوم په بدله كښې چه د اول نه واخله ترآخره پورې ټول مړه كړې شواود الله ﷻ چه غالب ذات دې په نيولوكښې راغله. آياتونه خو صرف د ويرولود پاره وى چه

[1] احمد:٢٤٢/١ وهوحديث صحيح مسندعبدبن حميد:٧٠٠، دلائل النبوة للبيهقى:٢٧٢/٢.
[2] ٢٦/الشعراء:٢١٤.
[3] ١٣/الرعد:٣١.
[4] ٥/المائده:١١٥.

هغوی نصیحت حاصل کړی.
روایت دی چه دابن مسعود﷛ په زمانه کښې په کوفه کښې زلزله راغله نو هغوی اوفرمائیل چه الله ﷻ غواړی تاسو هغه ته ټیټ شئی تاسو له ډیر زر د هغه طرف ته متوجه کیدل پکاردی. (١)د حضرت عمر ﷛ په زمانه کښې څوځل په مدینه منوره کښې جټکې محسوس کړې شوې نو هغوی اوفرمائیل چه والله تاسو ضرور څه نوې خبره کړې ده.ګورئی که بیا داسې اوشو نو زه به تاسو ته سخته سزا درکړم. متفق علیه حدیث کښې دی حضور ﷺ فرمائیل چه نمر اوسپوږمئی د الله ﷻ د نښونه دوه نښې دی دا د چا په مرګ او ژوندبانډې په تندر کښې نه راځی بلکه الله ﷻ په دې سره خپل بندیګان ویروی. کله چه تاسو دا اووینئی نود الله ﷻ د ذکر دعا اواستغفارطرف ته ټیټ شئی. ای د محمد ﷺ امته! والله د الله ﷻ نه زیات غیرتی بل څوك نشته چه د هغه وینځې غلامان دې زنا کاری کوی. ای د محمد ﷺ امته! کوم څه چه زه پیژنم که چرې تاسو پیژندل نوډیر کم به مو خندل اوډیر زیات به مو ژړل. (٢)

| |
|---|
| وَإِذْ قُلْنَا لَكَ إِنَّ رَبَّكَ |
| اکله چې \| اووئیل مونږه \| تاته \| بیشکه رب ستا |
| او(ائې نبی ﷺ)هغه وخت یاد کړه چې مونږ تاته اووئیل |
| أَحَاطَ بِالنَّاسِ ۚ وَمَا جَعَلْنَا الرُّؤْيَا الَّتِي أَرَيْنَاكَ |
| راګیرکړی دی \| خلق \| اونۀ ده جوړه کړې مونږه \| نظاره \| هغه \| چې ښودلې ده مونږ تاته |
| چې ستارب دټولوخلقو نه راچاپیره دې اودامونږ چې تاته کومه نظاره خودلې ده هغه مو |
| إِلَّا فِتْنَةً لِلنَّاسِ وَالشَّجَرَةَ الْمَلْعُونَةَ فِي الْقُرْآنِ ۚ |
| مګر \| یود فتنه \| دپاره دخلقو \| اوونه \| لعنت کړې شوې \| په قران کښې |
| دخلقو دپاره دازمیښت سبب اوګرځولو اوهغه ونه هم چې قران پاک کښې پرې لعنت راغلې دې |
| وَنُخَوِّفُهُمْ ۙ فَمَا يَزِيدُهُمْ إِلَّا طُغْيَانًا كَبِيرًا ﴿٦٠﴾ |
| اوېروومونږ دې خلقولره \| خونۀ زیاتوی دا یرول دوئ لره \| مګر \| سرکشئ \| لویه \| |
| اومونږ خو دا خلق بیابیا ویروو خو په هغې بانډې ددوئ سرکشی نوره هم زیاتیږی |

قوله تعالی:-وَمَا جَعَلْنَا الرُّؤْيَا الَّتِي أَرَيْنَاكَ

**د معراج ټولې نظارې حضور ﷺ په خپلو سترګواولیدلې**:-الله سبحانه وتعالی خپل رسول کریم ﷺ ته د دین د تبلیغ رغبت ورکوی اود هغوی د حفاظت ذمه اخلی چه ټول خلق د غه د قدرت لاندې دی هغه په ټولو بانډې غالب دې ټول دهغه لاندې دی اوهغه به ددې ټولونه تابع ساتی. کوم څه چه مونږ تاته اوخودل هغه دخلقو دپاره یو کولاو ازمیښت دې.داخودل دمعراج په شپه ووچه حضور ﷺ په خپلو سترګو اولیدل.د نفرتی ونې نه مراد د زقوم ونه ده.(٣) د معراج احادیث په پوره تفصیل سره د دې سورت په شروع کښې بیان شوی دی.
داهم تیرشوی دی چه د معراج واقعه اوریدوسره ډیر مسلمانان مرتد شو اود حق نه اوګرځیدل ځکه چه

١) الطبری:١٧/٤٧٨.
٢) صحیح بخاری کتاب الکسوف باب الصدقة فی الکسوف:١٠٤٤، صحیح مسلم:٩٠١، ابوداؤد:١١٩١، بیهقی:٣/٣٣٨.
٣) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة بنی اسرائیل باب ﴿وماجعلنا الرؤیاالتی اریناك الا فتنة للناس﴾:٤٧١٦...

د هغوی په عقل کښې دا رانغله او دخپل جهالت په وجه ئې دادروغ اوګڼړل او دین ئې پرېښودو د دوی په خلاف د کامل ایمان والا په خپل یقین کښې نور هم زیات شو اود هغوی ایمان نور هم مضبوط شو او په ثابت قدمئ او استقلال کښې نور هم زیات شو. نودا واقعه الله ﷻ سبحانه وتعالی د خلقو د ازمیښت اوامتحان ذریعه اوګرځوله. حضور ﷺ چه کله خبرورکړو او په قرآن پاك کښې آیت نازل شوچه دوزخیانوباندې به د زقوم ونه خوړلې شی او حضور ﷺ دا پخپله کتلې هم وه نوکافرانودا اونه منله او ابوجهل ملعون خو په ټوقومسخروکښې ونیل راوړنې کهجورې او کوچ راوړنې اودا زقوم اوکړنې یعنې دا یوځای کړنې او په ښه مزه سره ئې اوخورئې بس هم دا زقوم دې بیاد دې خوراك د خوړلو نه ویره د څه خبرې؟ یوقول دا هم دې چه دې نه مراد بنوامیه دی خودا قول بالکل غریب او ضعیف دې. هم د رومبی قول قائل هغه مفسرین دی چه دا آیت د معراج په واقعه کښې منی. لکه ابن عباس ﷺ مسروق ابومالك رحمه الله حسن بصری رحمه الله وغیره سهل بن سعید رحمه الله وائی چه حضور ﷺ د فلانکې قبیلې خلق په خپل منبرباندې لکه د بیزوګانو غوندې په ټوپونو اوګډاګانو اولیدل او حضور ﷺ دې سره ډېر خفه شو. بیا تروفات پورې بیا حضور ﷺ په پوره خندا سره خندیدونکې اونه لیدلې شو په دې کښې هم دې آیت طرف ته اشاره ده (١)(ابن جریر)خوداسندبالکل ضعیف دې. محمدبن حسن بن زباله متروك دې اود هغه استاذ هم بالکل ضعیف دې. پخپله د امام ابن جریر رحمه الله خوښ کړې شوې قول هم دا دې دې نه مراد د معراج شپه ده او د زقوم ونه ده ځکه چه د مفسرینویه دې باندې اتفاق دی. مونږ کافران د خپلو عذابونونه ویروو خوهغوی په خپل ضد کبر لوئی او بې ایمانئ کښې نور هم وړاندې کیږی.

| وَاِذْ | قُلْنَا | لِلْمَلٰٓئِكَةِ | اسْجُدُوْا | لِاٰدَمَ | فَسَجَدُوْٓا | اِلَّآ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوکله چې | اوونیل مونږه | فرښتو ته | چې سجده اوکړئ | ادم ته | نوسجده اوکړه هغوئ | مګر اونه کړه |

او هرکله چې مونږ فرښتو ته اوونیل چې تاسو ادم ﷺ ته سجده اوکړئ نو بغیر د

| اِبْلِيْسَ ؕ | قَالَ | ءَاَسْجُدُ | لِمَنْ | خَلَقْتَ | طِيْنًا ۚ | قَالَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ابلیس | وې ونیل | ایا زه سجده اوکړم | هغه چاته | چې پیدا کړې دې تا | دختې نه | اوونیل |

ابلیس نه ټولو سجده اوکړه هغه اوونیل ایا زه دۀ ته سجده اوکړم چې تا دختې نه پیدا کړې دې ابلیس اوونیل

| اَرَءَيْتَكَ | هٰذَا الَّذِيْ | كَرَّمْتَ | عَلَيَّ ز | لَئِنْ | اَخَّرْتَنِ |
|---|---|---|---|---|---|
| ایا کتلې دی تا | دا هغه دې | چې فضیلت ورکړوتا | په ماباندې | که چرې | مهلت راکړو تامالره |

چې ته خو دې سرې ته لږ اوګوره چې تا په ماپه باندې اوچت کړې دې که چرې ته

| اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ | لَاَحْتَنِكَنَّ | ذُرِّيَّتَهٗٓ | اِلَّا | قَلِيْلًا |
|---|---|---|---|---|
| دورخې دقیامت پورې | خامخا به زۀ دبیخه رااوباسم | اولاد دۀ | مګرنۀ | لږ |

ترقیامته پورې ماله مهلت راکړې نو زه به دیو څو تنو نه بغیر دۀ ټول اولاد پخپل قابو کښې راولم

| قَالَ | اذْهَبْ | فَمَنْ | تَبِعَكَ | مِنْهُمْ | فَاِنَّ | جَهَنَّمَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوونیل (الله) | ځه | پس چاچې | پیروی اوکړه ستا | ددوئ نه | نو بیشکه | دوزخ |

حکم اوشو چې ځه ! څوك چې له دوئ نه ستا پیروی اوکړی نو بیشکه دوزخ ستاسو

(١) الطبری:١٧/٤٨٤، ٤٨٦.

| جَزَآؤُكُمْ | جَزَآءً | مَّوْفُوْرًا۝ | وَاسْتَفْزِزْ | مَنِ |
|---|---|---|---|---|
| بدله ده ستاسو | بدله | پوره | او دوكه كړه په خوږو پستو خبرو | هغه څوك |
| دټولو دپاره پوره پوره سزا ده اوپه دوئ كښې چې ستا په چا وس رسي | | | | |

| اسْتَطَعْتَ | مِنْهُمْ | بِصَوْتِكَ | وَاَجْلِبْ | عَلَيْهِمْ |
|---|---|---|---|---|
| چې طاقت رسيږي ستا | ددوئ نه | په دعوت ستاسره | اوپه جمع راوله | په هغوئ باند |
| نو هغوئ پخپل اواز سره اوغولوه اوپه دوئ باندې (دخپلو فوجونو) | | | | |

| بِخَيْلِكَ | وَرَجِلِكَ | وَشَارِكْهُمْ | فِي الْاَمْوَالِ | وَالْاَوْلَادِ |
|---|---|---|---|---|
| سوارهٔ خپل | اوپياده خپل | اوشريك شه دهغوئ سره | په مالونو كښې | اوپه اولاد كښې |
| سوارهٔ اوپياده راوخيژه وه اوهغوئ سره په مالونو او په اولاد كښې څان له برخه اونيسه | | | | |

| وَعِدْهُمْ ط | وَمَا يَعِدُهُمُ | الشَّيْطٰنُ | اِلَّا | غُرُوْرًا۝ |
|---|---|---|---|---|
| اووعدې اوكړه دهغوئ سره | اووعده نهٔ كوی دهغوئ سره | شيطان | مگر | ددوكې |
| او هغوئ سره وعده كوه او كومې وعدې چې شيطان هغوئ سره كوی هغه ټوله دهوكه ده | | | | |

| اِنَّ | عِبَادِيْ | لَيْسَ لَكَ | عَلَيْهِمْ | سُلْطٰنٌ ط | وَكَفٰى | بِرَبِّكَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بيشكه | بندگان زما چې دی | نشته | تالره | په هغوئ باند | څه غلبه | او كافي دې | رب ستا |
| بيشكه زماپه مخلصانو بندگانو به ستازور نه چليږي اوستا رب كافي | | | | | | |

| وَكِيْلًا۝ |
|---|
| په حيثيت دركيل |
| كارساز دې |

قوله تعالى:-وَاِذْ قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ فَسَجَدُوْٓا اِلَّآ اِبْلِيْسَ ط

**د ابليس ددښمنۍ تذكره او دهغه خبره نه منل:-** دابليس دزړنې دښمنۍ نه انسان خبرولې شی چه هغه ستاسو دپلارآدم عليه السلام ښكاره دښمن وو دهغه اولاد برابر هم دغه شان ستاسو دښمن دې. د سجدې حكم اوريدو سره خو ټولوفرښتو سرټيټ كړوخو هغه كبر اوكړوهغه ئې سپك اوگڼړلواوصفاانكارئې اوكړو چه ناممكن دی زما سر د خاورې د يوجوړشوی مخې ته ټيټ شی. زه د ده نه ډير غوره يم زه اوريم اودا خاوره ده.بيا دهغه زړورتياته اوگوره چه دالله جل جلاله په درباركښې د گستاخئى په اندازسره وائى چه ښه ده كه تاده له په ما باندې فضيلت وركړو نو څه اوشو زه به هم د ده اولاد ټول برباد كړم ټول به خپل تابعدارجوړكړم او دهوكه به ئى كړم كه څه لږ شان زماد جال نه بچ شى گنى باقى به ټول غرق كړم.

**شيطان ته مهلت وركړې شو:-** ابليس د الله جل جلاله نه مهلت اوغوښتلو الله جل جلاله منظوركړواو ارشاد اوشو چه د معلوم وخت پورې مهلت دې[1]ستا اوستاد تابعدارانو د بدو بدله به د دوزخ اور وی چه پوره سزا ده. په خپل آوازسره چه ته څوك دهوكه كولې شې دهوكه ئى كړه يعنى په سندرو او تماشوياندې هغوی

[1] ١٥/الحجر:٣٧.

دهوکه کوه گرځه.(١)کوم هم چه دالله ﷻ نافرمانئ طرف ته رابلونکې اوازوی هغه شیطانی اوازدی.(٢) دغه شان ته خپل پیاده او سواره واخله او په کومو چه ته حمله کولې شې اوکړه ﴿رجل﴾ جمع ده ﴿راجل﴾ لکه چه ﴿رکب﴾ جمع د ﴿راکب﴾ او﴿صحب﴾ جمع ده ﴿صاحب﴾ مطلب دادې چه څنګه تانه کيدې شي په هغوی باندې خپل تسلط او طاقت استعمال کړه. دا نه د قدرت امر دې نه حکم. د شیطانانو هم دا خصلت دې چه هغوی د الله ﷻ بندیګان غولوی او دهوکه کوی ګرځی هغوی په ګناهونو اخته کوی د الله ﷻ نه چه څوك په معصیت کښې وی هغه که سور وی که پیدل شیطانی لښکر کښې دې.(٣)داسې پیریان هم دی اوانسانان هم دی چه د هغه تابعداردی.(٤). کله چه په چا باندې آوازونه اوچت کړې شی نو عرب وائی((اجلب فلان علی فلان))هم دې نه دا ماخوذ دې د حضورﷺ دا فرمان چه داسونوپه زغلولو کښې جلب نشته.(٥) هغه هم دې نه ماخوذ دې. د جلبه اشتقاق هم دې نه دې یعنی د آوازونو اوچتیدل.

**په مال اولادکښې د شرکت مفهوم**:-د هغوی په مالونو او اولادکښې هم ته شریك اوسه. یعنی د الله ﷻ په نافرمانوکښې دهغوی مال خرچ کوه(٦)سودخوری په هغوی کوه بدنی سره مال راجمع کړی او په حرامو کارونوکښې خرچ کړی حلال څناورد خپل خواهش نه په ځان حرام کړی وغیره. په اولادکښې شرکت دا دې چه زناکاری اوکړی اود هغې نه اولاد وی(٧)کوم اولاد نی چه په وړوکوالی کښې د بې وقوفتیا نه دهغوی موریلار قتل کړې وی یا نې ژوندی خښ کړې وی هغه نې یهودی نصرانی یا مجوسی جوړکړې وی(٨)داولاد نوم عبدالحارث اوعبدشمس او عبدفلانکې کیخودې وی. غرض دا چه په هرقسم نې شیطان په دې کښې داخل کړې وی یانې دا ورسره کړې وی هم دغه د شیطان شرکت دې. د صحیح مسلم په حدیث کښې دی چه الله ﷻ فرمائی ماخپل بنده یوطرف ته موحد پیداکړې دې بیا شیطان راغلو دې نې دهوکه کړو اوحلال څیزونه نې پرې حرام کړل(٩)

بخاری اومسلم کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی چه په تاسوکښې څوك خپلې بی بی له د تلواراده اوکړی دادې لولی ﴿اللهم جنبنا الشیطن وجنب الشیطن مارزقتنا﴾یعنی یاالله ته مونږ د شیطان نه بچ کړې اولرې کړې شیطان د هغه نه چه ته مونږ ته راکوې. نوکه په دې کښې د الله ﷻ د طرف نه بچې اوشی نو هغه ته به هیڅ کله هم شیطان څه ضرراونه رسولې شی.(١٠)بیافرمائی چه زه ته هغوی له د دهوکې د دروغو وعدې ورکوه. دقیامت په ورځ به دې پخپله وائی چه د الله ﷻ وعدې خو ټولې رښتیاوې اوزما ټولې وعدې غلطې وې.بیا فرمائی زما مؤمن بندیګان زما په حفاظت کښې دی. زه به هغوی د شیطان ولې شوی نه بچ کوم. د الله ﷻ وکالت حفاظت نصرت اود هغه تائیدد بندیګانود پاره کافی دې. مسنداحمدکښې رسول الله ﷺ فرمائی مؤمن په خپل شیطان باندې داسې قابوموعی لکه څنګه چه

(١) الطبری:١٧/٤٩٠.

(٢) الطبری:١٧/٤٩١.

(٣) الطبری:١٧/٤٩٢.

(٤) الطبری:١٧/٤٩١

(٥) ابوداؤد کتاب الجهاد باب فی الجلب علی الخیل فی السباق:٢٥٨١ وهوحسن: ترمذی:١١٢٣، نسائی:٣٣٣٧.

(٦) الطبری:١٧/٤٩٣.

(٧) الطبری:١٧/٤٩٤.

(٨) الطبری: ١٧/٤٩٤-٤٩٥.

(٩) صحیح مسلم کتاب الجنة باب الصفات التی یعرف بها فی الدنیااهل الجنة واهل النار:٢٨٦٥.

(١٠) صحیح بخاری کتاب الوضوء باب التسمیة علی کل حال وعندالوقاع:١٤١، صحیح مسلم:١٤٣٤، ابوداؤد:٢١١٦، ترمذی: ١٠٩٢، ابن ماجه:١٩١٩، احمد:١/٢١٧.

یوسرې خپل ځاروي ته واګه اچولې وي. (١)

رَبُّكُمُ الَّذِي يُزْجِي لَكُمُ الْفُلْكَ فِي الْبَحْرِ

ارب ستاسو | هغه ذات دې | چې چلوي | دپاره ستاسو | کشتۍ | په دریاب کښې

ستاسو رب هغه ذات دې چې ستاسو دپاره ئې په سمندر کښې کشتۍ چلوي

لِتَبْتَغُوا مِنْ فَضْلِهِ ۚ إِنَّهُ كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا ﴿٦٦﴾

دپاره ددې چې تاسو تلاش کړئ | دفضل دهغه نه | بیشکه هغه | دې | په تاسو باندې | مهربانه |

چې تاسو دهغه فضل (روزي) اولټوئ بیشکه هغه په تاسو ډیر مهربان دې

**قوله تعالى:- رَبُّكُمُ الَّذِي يُزْجِي لَكُمُ الْفُلْكَ**

**کشتۍ د تجارت ذریعه ده:-** الله ﷻ خپل احسان ښائي چه هغه د خپلو بندګانو د آسانۍ او سهولت دپاره دهغوی دتجارت او سفر د پاره په دریابونو کښې کشتۍ رواني کړي دی. دهغه د فضل او کرم لطف او رحم یو نښه دا هم ده چه تاسو لرې لرې ملکونو ته تلې شئ او د الله ﷻ فضل یعنی رزق حاصلولې شئ.

وَإِذَا مَسَّكُمُ الضُّرُّ فِي الْبَحْرِ ضَلَّ مَنْ تَدْعُونَ

اوکله چې | اورسیږي تاسو ته | تکلیف | په دریاب کښې | ورک شي | هغه څوک | چې رابلې ئې تاسو

او هرکله چې په سمندر کښې تاسو ته څه تکلیف رسیږي نو د الله ﷻ نه سوا

إِلَّا إِيَّاهُ ۖ فَلَمَّا نَجَّاكُمْ إِلَى الْبَرِّ أَعْرَضْتُمْ ۚ وَكَانَ

سوا دخاص هغه نه | نو هرکله چې | هغه بچ کړئ تاسو | وچې ته | نو مخ واړوو تاسو | او دې |

کوم کوم چې تاسو بلئ هغه تاسو نه هیر شي بیا هرکله چې تاسو او چې طرفته رابچ کړي نو تاسو مخ واړوئ

الْإِنْسَانُ كَفُورًا ﴿٦٧﴾ أَفَأَمِنْتُمْ أَنْ يَخْسِفَ بِكُمْ

انسان | ناشکره | آیا نو په امن کښې یئ تاسو | ددې نه چې | ډوب کړي | تاسو |

او انسان ډیر ناشکره دې آیا تاسو ددې خبرې نه بې غمه شوي یئ چې تاسو او چې طرفته راولي او په زمکه کښې

جَانِبَ الْبَرِّ أَوْ يُرْسِلَ عَلَيْكُمْ حَاصِبًا ثُمَّ لَا تَجِدُوا

په طرف دوچې | یا را اولیږي | په تاسو باند | د کاڼو باران | بیا به | او نه مومئ تاسو |

مو ښخ کړي یا در باندې د کاڼو شګو سیلۍ راولي بیا تاسو دخپل ځان دپاره

لَكُمْ وَكِيلًا ﴿٦٨﴾

دپاره دخپل ځان | حمایتي |

څوک کارساز نه مومئ

**قوله تعالى:- وَإِذَا مَسَّكُمُ الضُّرُّ فِي الْبَحْرِ ضَلَّ مَنْ تَدْعُونَ إِلَّا إِيَّاهُ**

**په سمندرونو کښې هم کارساز الله ﷻ دې:-** دالله ﷻ ارشاد کیږي چه بندګان خود مصیبت په وخت کښې په خلوص سره خپل پروردګار ته تیتیږي او دهغه نه دزړه دعاګانې کوي او چه کله الله ﷻ هغه مصیبت

---

(١) احمد:٢/٣٨٠.

اخواکړي دي سترګې اړوي.

**دعکرمه بن ابو جهل د ایمان واقعه**:-دمکي د فتح په وخت کښي کله دابوجهل ځوئ عکرمه د حبشه د تلوپه اراده سره اوتختیدواوپه کشتئ کښي کیناستو لاړونو اتفاقي توګه باندي کشتئ په طوفان کښي راګیره شوه دمخالف طرف هوا هغه لکه د پاڼي غوندي خوزوله.هغه وخت چه په کشتئ کښي ځومره کافران ووهغوی ټولوپه خپل مینځ کښي اوویل چه دي وخت کښي د الله ﷻ نه بغیربل ځوک هم زمونږ هیڅ په کارنه شی راتلي نو هم هغه ته آواز اوکړئ. عکرمه ته هغه وخت دا خیال راغلو چه کله په اوبو کښي صرف هم هغه په کارراتلي شی نو په اوچه باندي هم هغه په کارراتلي شی.اې الله زه نذر منم که تازه ددې مصیبت نه خلاص کړم نونیغ به ځم اودحضرت محمد ﷺپه لاس کښي به خپل لاس ورکوم. یقینا هغه به په ما باندي رحم او کرم او مهرباني اوکړي. د سمندر پوریوتلوسره هغه نیغ د حضور ﷺ په خدمت کښي حاضر شو اواسلام ئې قبول کړو اود اسلام یوپهلوان ثابت شو[1]نوفرمائي چه دسمندر ددې مصیبت په وخت کښي خود الله ﷻ نه علاوه ټول هیروئی خوبیا د هغې په اخواکیدوسره د الله ﷻ توحید پریږدئی اونوروته سوالونه کوئی. انسان دي داسي ناشکره چه نعمتونه هیروی بلکه منکرکیږی مګر چه ځوك الله ﷻ بچ کړی اود خیرتوفیق ورکړی.

**په سمندرکښي غرق کونکي په اوچه کښي هم ورخښولي شي**:-رب العالمین خلق ویروی چه ځوک په اوبو کښي ډوبول کولي شي نو هغه په اوچه باندي هم د ورننه ویستلو طاقت لری.بیا خوهلته صرف هم هغه ته چغې وهل اودلته هغه سره نورشریك کول داځومره بې انصافي ده؟ هغه خوپه تاسوباندي د کاڼو باران هم کولي شی اوهلاك کولي موشی[2] لکه څنګه چه په لوطیانو باندي شوی ووډکوم بیان چه پخپله قرآن کښي په څو ځایونوکښي دي.سورت تبارك کښي الله ﷻفرمائي آیا ستاسود هغه الله ﷻ نه ویره نشته کوم چه په آسمانونوکښي دي چه هغه چرته تاسو په زمکه کښي ورخښ نه کړی چه ناڅاپي زمکه په رقیدو شی.آیاستاسو د آسمانونووالا الله ﷻ نه ویره نشته چه هغه چرته په تاسو باندي کاڼي راونه وره وی بیاپوهه شئی چه د ویرولوانجام څه کیدلي شي[3]بیافرمائي چه په هغه وخت کښي به نه تاسو سره خپل ځوك امدادی وی نه لاس کونکي نه وکیل نه کارساز نه ساتونکي اونه خیال لرونکي.

| | | |
|---|---|---|
| اَمْ اَمِنْتُمْ | اَنْ | يُّعِيْدَكُمْ فِيْهِ |
| یابه امن کښي یئ تاسو | ددې نه چي | اوايس بوځي تاسو دریاب ته |
| یاتاسو بې فکره شوی یئ چي هغه دوباره تاسو دي | | |
| تَارَةً اُخْرٰى فَيُرْسِلَ عَلَيْكُمْ قَاصِفًا مِّنَ الرِّيْحِ فَيُغْرِقَكُمْ | | |
| یو خل بیا \| اوراولیږی \| په تاسو باند \| طوفان \| د هوا نه \| اوډوب کړی تاسولره | | |
| دریاب ته بوځي بیا په تاسو باندي دهوا سخت طوفان راولیږی بیاتاسو د | | |
| بِمَا كَفَرْتُمْ | ثُمَّ لَا تَجِدُوْا | لَكُمْ عَلَيْنَا |
| په سبب دهغې چي ناشکری اوکړه تاسو | بیا اونه مومئ تاسو | دپاره دخان خپل په مونږ باندا |
| ناشکرئ په بدله کښي غرق کړی نوبیا به هیڅوک زمونږ نه دتپوس پوښتني | | |

---

[1] [illegible]

[2] [illegible] ۱۷: ۶۸

[3] ۶۷: ملك ۱۶-۱۷.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِهٖ | تَبِيعًا ﴿٦٩﴾ | وَلَقَدْ | كَرَّمْنَا | بَنِيٓ اٰدَمَ |
| ددي انجام | روستو تپوس كونكي | او په تحقيق سره | عزت وركړو مونږ | اولاد د ادم ته |
| قابل هم بيا نه مومئ او بيشكه مونږ دادم ﷺ اولاد ته عزت وركړي دي | | | | |
| وَحَمَلْنٰهُمْ | فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ | وَرَزَقْنٰهُمْ | مِّنَ الطَّيِّبٰتِ | |
| او سورلئ وركړي مونږ دوئ ته | په وچه كښي او په درياب كښي | اورزق وركړومونږ دوئ ته | د پاكو څيزونو | |
| اومونږ دوئ په اوچه او درياب دواړو كښي سوارۀ كرځوؤ او مونږ دوئ له د پاكيزه څيزونو رزق وركړو | | | | |
| وَفَضَّلْنٰهُمْ | عَلٰى كَثِيْرٍ | مِّمَّنْ | خَلَقْنَا | تَفْضِيْلًا ﴿٧٠﴾ |
| اوغوره كړل مونږه دوئ لره | په ډيرو باندي | دهغه چانه | چي پيدا كړي دي مونږه | په غوره كولو سره |
| اوپه خپل ډير مخلوق باندې مو ورله ښكاره فضيلت وركړي دي | | | | |

**قوله تعالى:-** ثُمَّ لَا تَجِدُوْا لَكُمْ وَكِيْلًا ﴿٦٨﴾

ارشاددي چه اې منكرانو دسمندرنه تاسوزماد توحيدقائل كيدوسره بهرشوني نوبيامو انكار اوكړونوآبا داسې نه شي كيدې چه تاسو به بياد اوبوسفراوكړئ اود تيزې هواڅپيړې به ستاسو كشتئ ګډه وډه كړي اوآخربه ئي ډوبه كړي[1] او تاسوله ستاسود كفر مزه او خوند درشي نوبيا خوبه ستاسوهيڅ څوك امدادى نه وى نه به څوك داسې ملاوشي چه زمونږ نه ستاسوبدله واخلي مونږ پسې څوك نه شي رسيدلې اودچا څه مجال چه زمونږ په كارګوته اوچته كړي.[2]

**په ټولومخلوقاتوباندې د انسان فضيلت:-** دټولونه ښه پيدانښ دانسان دې لكه چه ارشاددې ﴿لَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ فِيْٓ اَحْسَنِ تَقْوِيْمٍ﴾[3] مونږ انسان په ډيرښكلې جوړخ سره پيداكړې دې هغه په خپلو پښوباندې نيغ اودريږى اوصحيح رواڼ وى پخپلو لاسونوباندې په ښه طريقه خپل خوراك كوى اوخناور په پښو لاسونو باندې روان وى په خلې سره د ګياخرن كوى.بيا ده ته پوهه وركړې ده په كوم سره چه ګټه تاوان ښه او بد پيژنى.دينى اودنياوى فائده معلوموى.د ده دسورلئى دپاره په اوچه باندې څناوراوڅاروى اسونه قچرې اوښان وغيره اودلمدې دسفردپاره كشتئ جوړول خودلى.ده ته ښكلې مزيدارخوند ناك د خوراك څښاك څيزونه وركړى فصلونه دى ميوې دى غوښه ده پښيى دى او ډير بهترين خوندناك مزيدار څيزونه دى. بيا د اوسيدو د پاره ښكلې كوروته د اغوستلود پاره ښائسته لباس اود قسم قسم رنګار نګ د دې خائ څيزونه هغه خائ او د هغه خائ څيزونه دلته د اوړلو راوړلو اسباب د هغه د پاره پيدا كړى دى او په مخلوق كښې په هريوباندې ده له فضيلت وركړې دې.

**انسان د فرښتونه هم غوره دې:-** ددې آيت مبارك نه د دې امر استدلال كړې شوې دې چه انسان د فرښتو نه هم غوره دې. حضرت زيدبن اسلم رحمه الله وائى فرښتو اووئيل اې الله تا بنيادمو ته دنياوركړې ده هغوى خورى څكى اومزې كوى ته مونږ له د دې په بدله كښې په آخرت كښې راكړه څكه چه په مونږ د دې دنيانه محروم يو. د دې په جواب كښې الله ﷻ ارشاد اوفرمائيلو چه زما دې په خپل عزت او جلال باندې قسم وى د ده د نيك اولاد كوم چه ما په خپل لاس باندې پيداكړى د هغوى برابر به زه هيڅ كله هم نه كړم كوم چه ما د كن په كلمه سره پيداكړى دى. دا روايت مرسل دې خوبه بل سندسره متصل هم نقل

[1] الطبري:١٧/٥٠٠.
[2] الطبري:١٧/٥٠٠.
[3] ٩٨/التين:٤.

دي.ابن عساکر کښې دی فرښتو اوونيل اې زمونږ پروردګاره مونږ هم تا پيداکړي يو اود بنيادمو خلق هم ته نی هغوی ته ته خوراك څښاك ورکوې کېړې جامې هغوی اغوندی نکاح او ودونه هغوی کوي سورلنی دهغوی دپاره دی راحت او آرام هغوی ته حاصل دې. په دې کښې مونږ د يوې حصې هم حصه دارنه يو. خيرکه په دنياکښې د هغوی د پاره دی نو په آخرت کښې دا څيزونه زمونږ دپاره کړې د دې په جواب کښې الله ﷻ اوفرمائيل کوم چه ما په خپل لاس جوړکړو او خپل روح مې په کښې واچولو زه به هغه د هغې په شان نه کړم کوم ته چه ما ونيلی اوشه نو هغه اوشو. طبراني کښې دی د قيام په ورځ به د بنيادم نه بزرګ هيڅ څوك هم نه وی. تپوس اوکړې شو چه فرښتې هم نه؟ وئی فرمائيل چه فرښتې هم نه هغه خو مجبوره دی لکه نمر سپوږمئی. (١)دا روايت ډير غريب دی.

| يَوْمَ | نَدْعُوْا | كُلَّ أُنَاسٍ | بِاِمَامِهِمْ | فَمَنْ |
|---|---|---|---|---|
| اوياده کړه هغه ورځ | چې رااوبه غواړو مونږ | هره ډله دانسانانو | دپيشوا دهغوئ سره | نو هغه چاته |

هغه ورځ رایاده کړه چې مونږ به ټول خلق دخپلو خپلو پيشوايانو سره راوغواړو نودچا

| اُوْتِيَ | كِتٰبَهٗ | بِيَمِيْنِهٖ | فَاُولٰٓئِكَ | يَقْرَءُوْنَ |
|---|---|---|---|---|
| چې ورکړې شوه | اعملنامه دهغه | په ښي لاس دهغه کښې | نو دغه کسان چې دي | لولي به هغوئ |

عمل نامه چې دهغوئ ښي لاس کښې ورکړې شوه نو هغوئ به خپله عمل نامه

| كِتٰبَهُمْ | وَلَا يُظْلَمُوْنَ | فَتِيْلًا ﴿۷۱﴾ | وَمَنْ | كَانَ |
|---|---|---|---|---|
| عملنامه خپله | او ظلم به نه کيږي په هغوئ باندې | د قد تاردخرما | اوهغه څوك | چې وي |

لوستل شروع کړي او په هغوئ به دتار برابر هم ظلم نه کيږي اوڅوک چې پدې

| فِيْ هٰذِهٖٓ | اَعْمٰى | فَهُوَ | فِي الْاٰخِرَةِ | اَعْمٰى | وَاَضَلُّ | سَبِيْلًا ﴿۷۲﴾ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په دې دنياکښې | ړوند | نوهغه به وي | په اخرت کښې هم | ړوند | اوزيات ورك کونکي به وي | لارې لره |

دنيا کښې ړوندشو پس هغه به په اخرت کښې هم ړوند وی اودخلاصئ لارې به نه بې لارې وی

**قوله تعالى:- يَوْمَ نَدْعُوْا كُلَّ اُنَاسٍ بِاِمَامِهِمْ**

**د قيامت په ورځ د امام نه څه مراد دي؟:-** دامام نه مراددلته نبی دی.هرامت به د قيامت په ورځ دخپل نبی سره راغوښتلې شی لکه چه پدې آيت کښې دی(وَلِكُلِّ اُمَّةٍ رَّسُوْلٌ ۚ فَاِذَا جَآءَ رَسُوْلُهُمْ قُضِيَ بَيْنَهُمْ بِالْقِسْطِ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ)(٢) دهرامت رسول دې بياچه کله رسول راځی نودهغوی په مينځ کښې به په انصاف سره فيصله کولې شی.

**د محدثينو فضيلت:-** د بعضې سلفو وينا ده چه په دې کښې د اهل حديث ډير لوئ فضيلت دې ځکه چه د هغوی امام حضور ﷺ دی. ابن زيدر وائی چه دلته د امام نه مراد د الله ﷻ کتاب دې کوم چه د هغوی دشريعت باره کښې نازل شوې وو.ابن جرير رحمه الله داتفسير ډيرزيات خوښوی اوهم دې ته مختاروائی. مجاهد رحمه الله وائی چه دې نه مراد د هغوی کتابونه دی. ممکن دی چه د کتاب نه مراد دالله ﷻ د احکامو کتاب وی يا عمل نامه اوابن عباس دې نه عمل نامه مراد اخلی(٣)ابو العاليه رحمه الله حسن رحمه الله او

---

(١) الطبراني.
(٢) ١٠/يونس:٤٧.
(٣) الطبري:٥٠٢/١٧.

ضحاك رحمه الله هم دا وائي([1])اوهم داد ډيري ترجيح قول هم دې لكه چه د الله ﷻ ارشاددي ﴿وَكُلَّ شَيْءٍ أَحْصَيْنَٰهُ فِيٓ إِمَامٖ مُّبِينٖ﴾([2])دهرڅيز ښكاره مونږ په كتاب كښې احاطه كړې ده بل آيت كښې دی ﴿وَوُضِعَ ٱلۡكِتَٰبُ فَتَرَى ٱلۡمُجۡرِمِينَ مُشۡفِقِينَ مِمَّا فِيهِ وَيَقُولُونَ يَٰوَيۡلَتَنَا مَالِ هَٰذَا ٱلۡكِتَٰبِ لَا يُغَادِرُ صَغِيرَةٗ وَلَا كَبِيرَةً إِلَّآ أَحۡصَىٰهَاۚ وَوَجَدُواْ مَا عَمِلُواْ حَاضِرٗاۗ وَلَا يَظۡلِمُ رَبُّكَ أَحَدٗا﴾([3])يعنى عمل نامه به په مينځ كښې كيخودې شى هغه وخت به ته ګورې چه ګناهګاران به ددې په كتو سره اوويريږى الخ. يوبل آيت كښې دى هرامت به په زنګونوباندې پريوتې وى ګورى به.هرامت به د خپل كتاب طرف ته راغوښتې شى. نن به تاسو ته ستاسو د كړو عملونويدله دركولې شي.دا دې زمونږ كتاب چه په تاسوبه په حقه اوانصاف سره وينا كوى. څه چه تاسوكول مونږ برابر ليكل([4])دا ياد ساتئ چه دا تفسيرد اولنى تفسيرخلاف نه دې يو طرفته به په لاس كښې عمل نامه وى بل طرف ته به پخپله نبى مخامخ موجود وى.لكه چه ارشاد دې ﴿وَأَشۡرَقَتِ ٱلۡأَرۡضُ بِنُورِ رَبِّهَا وَوُضِعَ ٱلۡكِتَٰبُ وَجِاْيٓءَ بِٱلنَّبِيِّـۧنَ وَٱلشُّهَدَآءِ وَقُضِيَ بَيۡنَهُم بِٱلۡحَقِّ وَهُمۡ لَا يُظۡلَمُونَ﴾([5])زمكه به د خپل رب د نورنه اوبرقيږى عمل نامه به كيخودې شى نبيان اوګواهان به راموجودكړې شي.يوبل آيت كښې دى﴿فَكَيۡفَ إِذَا جِئۡنَا مِن كُلِّ أُمَّةِۭ بِشَهِيدٖ وَجِئۡنَا بِكَ عَلَىٰ هَٰٓؤُلَآءِ شَهِيدٗا﴾([6])يعنى هغه وخت به څه حالت وى كله چه د هريوامت مونږ ګواهان راولو اوتابه په دې خپل امت باندې ګواه جوړوو راولويه دې. خودلته د امام نه مراد عمل نامه ده په دې وجه د دې نه پس فرمائى چه د چا په ښى لاس كښې وركړې شى نو هغوى خو به خپلې نيكئى په خوشحالئى مزه خوند او راحت سره لولى بلكه نورو ته به ئى ښائى او لولى به ئى پرې او ګرځيږى به. د دې نور بيان په سورت الحاقة كښې دې. د فتيل نه مراد اوږد تار دې كوم چه د كهجورې د ګټكې په مينځ كښې وى. بزاركښې دى نبى كريم ﷺ د دې آيت په تفسيركښې فرمائى يوسړې به راوغوښتلې شى اود هغه عمل نامه به هغه ته په ښى لاس كښې وركړې شى د هغه بدن به لوئ شى د هغه مخ به اوبرقيږى په سريه ورته د پرقيدونكو مرغلروتاج كيخودې شى. دې به خپلې ډلې ته ورإندې شى دې چه په دې حال كښې اووينى نوټول به خواهش كوى چه اې الله ﷻ مونږ ته هم داراكړه او مونږ له پدې كښې بركت راكړه. هغه به راتلوسره وائى چه خوشحاله شئى په تاسو كښې هريوته هم دا ملاويدونكى دى.

**كافران به دقيامت په ورځ رانده وى:-** خودكافرانو مخونه به تك تورشى دهغه بدن به غټ شى دهغه ملګرى چه ده ته ګورى نو وائى به د ده نه د الله ﷻ پناه غواړو ياد ده د بدو نه دالله ﷻ پناه.اې الله ﷻ دې مونږ له مه راولِه هغه به راشى دوى به وائى الله ﷻ دې رسوا كړو.دې به جواب وركړى الله ﷻ دې تاسو هلاك كړى په تاسوكښې د هرنو دپاره دالله ﷻ هم دا وهل دى([7])په دې دنياكښې چه چاد الله ﷻ د آياتونونه اود هغه دكتاب نه د هغه د هدايت د لارې نه سترګې پټې كړى دى هغه به په آخرت كښې په ريښتياسره ړوند وى اود دنيابه هم ډيره لار هيرونكى. عياذا بالله.([8])

---

[1] الطبرى:١٧/٥٠٢-٥٠٣.
[2] ٣٦/يونس:١٢.
[3] ١٧/الكهف:٤٩.
[4] ٤٥/الجاثية:٢٨-٢٩.
[5] ٣٩/الزمر:٦٩
[6] ٤/النساء:٤١.
[7] ترمذى كتاب تفسيرالقرآن باب ومن سورة بنى اسرائيل: ٣١٣٦ وسنده حسن، حاكم:٢/٢٤٢-٢٤٣، ابن حبان:٧٣٤٩.
[8] الطبرى:١٧/٥٠٤-٥٠٥.

وَاِنْ كَادُوْا لَيَفْتِنُوْنَكَ عَنِ الَّذِيْٓ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ

او بيشکه چي نزدي وو | چي په فتنه کښي واچوي تا | دهغه وحي نه | چي درليږلې ده مونږ | تاته

او اې نبي ﷺ! دوئ په دې خبره کښې ډير کوشش کړې دې چي تادهغه وحي نه چي مونږ درته درليږلي ده

لِتَفْتَرِيَ عَلَيْنَا غَيْرَهٗ ۖ وَاِذًا

د پاره ددې چې دروغ جوړ کړې ته | په مونږ باندې | غير د دغه وحي نه | او که داسې کړې وې تانو بيا به

ورغړوې په دې شان چې ته په مونږ باندې خانه دروغ اوتړې او که دغسې دې کړې وې نو

لَّاتَّخَذُوْكَ خَلِيْلًا ۝ وَلَوْلَآ اَنْ ثَبَّتْنٰكَ لَقَدْ كِدْتَّ

خامخا نيولې وې دوئ تا لره | دوست | او که نه وې | مضبوط ساتلي مونږ ته | نو بيشکه | نزدې وه

دوئ به خپل خان سره خوږ | اشنا کړې وې او که مونږ ستا قدم کلک کړې نه وې نو دا خبره بعيده نه وه

تَرْكَنُ اِلَيْهِمْ شَيْـًٔا قَلِيْلًا ۝ اِذًا لَّاَذَقْنٰكَ

چې ميلان دکړې وې | دوئ ته | لږ | خه | که داسې دې کړې وې تانو بيابه | خامخا څکولي وې مونږ تاته

چې ته ورته لږ شان مائله شوې وې په دې صورت کښې به مونږ تا له په ژوندې کښې

ضِعْفَ الْحَيٰوةِ وَضِعْفَ الْمَمَاتِ ثُمَّ لَا تَجِدُ لَكَ عَلَيْنَا

دوچند عذاب | د ژوند | او دوچند عذاب | د مرګ | بيا به | نه موندو تا | د پاره دخان | په مونږ باند

او د مرګ نه پس د غبرګې سزا مزه څکولې وه نو بيا به تا زمونږ په مقابله کښې هيڅوک مددګار

نَصِيْرًا ۝

مددګار |

موندلي نه وو

**قوله تعالى:- وَلَوْلَآ اَنْ ثَبَّتْنٰكَ لَقَدْ كِدْتَّ تَرْكَنُ اِلَيْهِمْ شَيْـًٔا قَلِيْلًا ۝**

**هم الله ﷻ پيغمبر ﷺ په دين باندې قايم ساتي:-** دمكارواوفاجرانو د چالاكونه الله ﷻ هميشه خپل رسول ﷺ بچ ساتلې.حضور ﷺ نې معصوم او ثابت قدم ساتلې هم پخپله د هغوی ﷺ ولي او ناصر پاتې دې په خپل حفاظت اوساتنه کښې نې هميشه ساتلې دې.دحضور ﷺ تائيد اونصرت نې برابر کړېدې.د حضور ﷺ دين نې د دنيا په ټولو دينونو باندې غالب کړې دې.دحضور ﷺ د مخالفينو اوچتې ارادې يې ښکته کړې دې دمشرق نه ترمغرب پورې نې دحضور ﷺ کلمه خوره کړه.هم ددې بيان په دې آياتونو کښې دې. الله ﷻ دې د قيامته پورې په حضور ﷺ باندې بې شميره درود اوليګي. آمين.

وَاِنْ كَادُوْا لَيَسْتَفِزُّوْنَكَ مِنَ الْاَرْضِ لِيُخْرِجُوْكَ

| او بيشکه نزدې وه | چې خامخا اوخوزوي تا | د زمکې نه | د پاره ددې چې اوشړي تا

اونزدې وه چې دوئ کافران دې زمکې (دمکې نه) ستا قدمونه خوېولې وې چې تا ددې (ملک) نه بهر اوباسي

مِنْهَا وَاِذًا لَّا يَلْبَثُوْنَ خِلٰفَكَ اِلَّا قَلِيْلًا ۝

د دغه خائې نه | او که دوئ داسې اوکړل نو بيابه | تيرنه کړې وخت دوئ | روستوستا نه | مګر | لږ

خو په دې حال کښې به هم ستا د وتلو نه پس دوئ ډير لږ دلته پاتې شي

| وَلَا تَجِدُ | مِنْ رُّسُلِنَا | قَدْ اَرْسَلْنَا قَبْلَكَ | مَنْ | سُنَّةَ |
|---|---|---|---|---|
| او اويه نۀ مومې تۀ | د رسولانو زمونږ نه | چې ليږلي وو مونږ مخکښې ستانه | د هرهغه چاسره | داطريقه ده |

«دا زمونږ پخواني دستور دې، لکه څنګه چې زمونږ دستور دهغې پيغمبرانو په حقله راغلې دې چې له تانه وړاندې مولېږلي وو اوزمونږ په

| تَحْوِيلًا | لِسُنَّتِنَا |
|---|---|
| بدلون | طريقې زمونږ لره |

دستورکښې به هيڅ تبديلي نه بيامومې

**قوله تعالى:- وَاِنْ كَادُوْا لَيَسْتَفِزُّوْنَكَ مِنَ الْاَرْضِ**

**کله چه يهوديانونبئ کريم ﷺ ته د شام د تلومشوره ورکړه:** وائي چه حضورﷺ ته يهوديانو مشوره ورکړه چه تاسو له شام ته تلل پکاردي څکه چه هم هغه د انبياؤکرامو وطن دې.د مدينې دا ښار پريخودل پکاردی نو په دې باندې دا آيت نازل شو خودا قول ضعيف دې څکه چه دا آيت مکی دې او په مدينه کښې دحضورﷺ استوګنه روستو شوې ده.وائي چه دتبوك باره کښې دا آيت نازل شوې دی. د يهوديانو په وينا کولوسره چه شام د نبيانو او محشر زمکه ده هغوی له هم هلته اوسيدل پکار دی که چرې ته په رښتياؤ پيغمبر ئې نو هلته لاړشه هغوی ديوحد پورې حضورﷺ رښتونې ګڼړلو.دغزوه تبوك نه د حضورﷺ نيت هم دا ووخو تبوك ته په رسيدو باندې د بنې اسرائيل آياتونه نازل شو دې نه پس سورت ختم کړې شوې وو. ددې ﴿وَاِنْ كَادُوْا لَيَسْتَفِزُّوْنَكَ مِنَ الْاَرْضِ لِيُخْرِجُوْكَ مِنْهَا وَاِذًا لَّا يَلْبَثُوْنَ خِلٰفَكَ اِلَّا قَلِيْلًا ۝ سُنَّةَ مَنْ قَدْ اَرْسَلْنَا قَبْلَكَ مِنْ رُّسُلِنَا وَلَا تَجِدُ لِسُنَّتِنَا تَحْوِيْلًا ۝﴾ آيت پورې اوالله ﷻ حضورﷺ ته د مدينې د واپس تلو حکم ورکړو اوونې فرمائيل چه هم هلته ستامرګ اوژوند دې اوبيارا پاسيدل او اودريدل دی.خوددې سندهم د نظرنه خالی نه دې او صفاښکاره دی چه دا واقعه هم ټيك نه ده. د تبوك غزوه د يهوديانو په وينا سره نه وه بلکه دالله ﷻ فرمان موجود دې﴿ قَاتِلُوا الَّذِيْنَ يَلُوْنَكُمْ مِّنَ الْكُفَّارِ وَلْيَجِدُوْا فِيْكُمْ غِلْظَةً ۚ وَاعْلَمُوْۤا اَنَّ اللّٰهَ مَعَ الْمُتَّقِيْنَ ۝﴾[1] کوم کافران چه ستا خواوشادی دوی سره جهاد اوکړه. بل آيت کښې دی چه څوك په الله ﷻ او قيامت باندې ايمان نه لری د الله ﷻ اود هغه د رسول ﷺ حرام کړې شوی حرام نه ګڼړی اوحق نه قبلوی نود داسې اهل کتابوسره دالله ﷻ په لارکښې جهاد اوکړه تردې چه هغوی دذلت سره جزيه ورکول منظور کړی.[2]
اوجه ددې غزوه داوه چه د حضورﷺ کوم صحابه کرام ﷡ په جنګ موته کښې شهيدان کړې شوې وو د هغوی بدله واخستلې شی. والله اعلم. که داپورتنئ واقعه صحيح شی نوهم پدې باندې به هغه حديث محمول کولې شی په کوم کښې چه حضورﷺ فرمائي مکه مدينه او شام کښې قرآن پاك نازل شوې دې.
[3] وليد ﷫ خو د دې په شرح کښې ليکی چه د شام نه مراد بيت المقدس دې خود شام نه مراد تبوك ولې وانخستلې شی چه بالکل صفا او ډير صحيح دې. والله اعلم.
يوقول داهم دې چه دې نه مراد د کافرانو هغه قول دې کوم چه د مکې نه د ويستلو باره کښې کړې وو او هم داسې اوشو چه کله هغوی حضورﷺ اوويستلو نو بيا دوی هم هلته ډيره موده پاتې نه شو الله ﷻ ډير زر په هغوی باندې غالب کړو. دوه نيم کاله تيرشوې وو چه د بدر جنګ بغير د څه تياری او اطلاع نه ناڅاپي اوشوه هم هلته دکافرانو اود کفر زور مات شو. دهغوی شريفان او رئيسان د تيغ نه اووتل او

[1] ٨/التوبة:١٢٣.
[2] ٩/التوبة:٢٩.
[3] الطبری:١٧/٧٧.

د هغوی شان اوشوکت په خاور کښې خاورې شو.دهغوی سرداران قید کړې شو.نوفرمانی چه هم دا عادت د اول نه جاری دې د وړاندینو رسولانو سره هم داسې شوې چه کافرانو کله هغوی تنګ کړی اود وطن نه نی ویستلی نو بیا هغوی هم نه دی بچ شوی د الله ﷻ عذابونوهغوی غرق او بې نشانه کړی دی.او زمونږ پیغمبر ﷺ خود رحمت رسول وو په دې وجه څه عام آسمانی عذاب په دې کافرانو باندې رانغلو لکه چه فرمانی﴿ وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَأَنْتَ فِيهِمْ ۚ وَمَا كَانَ اللّٰهُ مُعَذِّبَهُمْ وَهُمْ يَسْتَغْفِرُونَ ﴾[1] یعنی ستا په موجودګئی کښې به الله ﷻ هغوی نه په عذاب کوی.

| أَقِمِ الصَّلٰوةَ لِدُلُوكِ الشَّمْسِ إِلٰى غَسَقِ اللَّيْلِ |
|---|
| قائموه | مونځ | دزواله | دنمر نه | دتیارې دشپې پورې |
| ته خپل مونځ کوه دنمر راختلو نه پس دشپې ترتیارې خوریدو پورې |
| وَقُرْاٰنَ الْفَجْرِ ۖ إِنَّ قُرْاٰنَ الْفَجْرِ كَانَ مَشْهُودًا ۝ |
| اوپابندی کوه دقران دسحر | بیشکه | قران د سحر | وی چې حاضریږی ورته فرښتې |
| اودې نه علاوه د سحرمونځ هم کوه بیشکه د صبا مونځ کول دفرښتو دحاضرۍ وخت دې |
| وَمِنَ اللَّيْلِ فَتَهَجَّدْ بِهٖ نَافِلَةً لَّكَ ۖ عَسٰى أَنْ يَّبْعَثَكَ |
| اودشپې دیوې حصې نه | تهجد کوه | په دې سره | نفل دی | تالره | قریبه ده | چې اوبه رسوی تا |
| اودشپې په یو برخه کښې د تهجدو مونځ هم کوه چې دا ستادپاره زیاتی مونځ دې امید دې چې |
| رَبُّكَ مَقَامًا مَّحْمُودًا ۝ |
| رب ستا | ځاني | ستائیلې شوی ته |
| ستارب تاله په مقام محمود کښې ځائې درکړی |

**قوله تعالى:- أَقِمِ الصَّلٰوةَ لِدُلُوكِ الشَّمْسِ**

**په قرآن کښې دپنځو واړو مونځونوذکر:**-دمونځونوپه خپل وخت باندې داداکولوحکم کولې شی. ﴿دلوك﴾ نه مراد غروب دې یا زوال دې[2]امام ابن جریر رحمه الله د زوال قول خوښ کړې دې اود اکثرو مفسرینو قول هم دادې.حضرت جابر رضی الله عنه فرمانی چه مادحضور ﷺ اودهغوی سره دهغه صحابه کرامو رضی الله عنهم کوم چه هغوی غوښتل دعوت اوکړو د خوراك کولو سره د نمرد ډوبیدلونه پس زمونږ د کورنه لاړل. حضرت ابوبکر رضی الله عنه ته نی اوفرمائیل څه هم داوخت دلوك شمس دې.([3]) نود پنځو واړو مونځونو وخت په دې آیت کښې بیان شو﴿غسق﴾نه مرادتیاره ده چه څوك وائی ددلوك نه مرادغروب دې دهغوی په نیزخود ماسپښین مازیګرماښام اوماسخوتن بیان خوهم په دې کښې دې اودسحربیان په﴿وَقُرْاٰنَ الْفَجْرِ﴾کښې دې. د حدیث نه په تواتر اقوال اوافعال د حضور ﷺ نه د پنځو مونځونو د وختونه ثابت دی او الحمدلله مسلمانان په دې باندې دی د هرې روستنئی زمانې خلق ئی د وړاندینئی زمانې د خلقو نه برابراخلی راروان دی لکه چه د دې مسئلود بیان په مقام کښې د دې پوره تفصیل موجود دې.

[1] ٨/الانفال: ٣٣.
[2] الطبرى: ٥١٤/١٧.
[3] الطبرى: ٥١٨/١٧.

والحمدلله.د سحر د قران په تلاوت د شپې او ورځې فرښتې راځي[1]صحيح بخاري كښې دي چه د خان له سړي په مونځ باندې د جمع مونځ پنځه ويشت (٢٥) درجې زيات فضيلت لري. د سحر د مانځه په وخت د ورځې او شپې فرښتې يوځاى كيږي. دابيان كولوسره د حديث راوى حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمائي. ته د قران دا آيت اولوله ﴿ وَقُرْآنَ الْفَجْرِ ﴾ [2]

**د قُرْآنَ الْفَجْرِ معنى:**-بخاري اومسلم كښې دي دشپې اوورځې فرښتې تاسوله برابرراځي.دسحراو مازيګر دمانځه په وخت كښې د دوى اجتماع كيږي تاسو سره چه كوموفرښتو شپه تيركړي وى هغه كله خيژي نو الله ﷻ د هغوى نه معلومول كوى سره د دې چه هغه د دوى نه زيات پيژندونكې دې چه تاسو زما بنديګان په كوم حال كښې پريخوده؟ هغوى جواب وركوى هغوى وائي چه مونږ هغوى له اورسيدو نو په مانځه كښې وو او چه واپس راغلو نو هم په مانځه كښې موپريخودل[3]حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائي چه دا څوكيداري فرښتې دسحر په مانځه كښې راجمع كيږي بيادوى خيژي اوهغوى پاتې كيږي[4]د ابن جرير په يوحديث كښې د الله ﷻ د نزول او د دې ارشاد فرمائيلوذكر كړې دې چه څوك شته چه مانه ښښنه اوغواړي او زه هغه اوبښم. څوك شته چه مانه سوال اوكړي اوزه هغه ته وركړم. څوك شته چه مانه دعا اوغواړي او زه د هغه دعا قبوله كړم. تردې چه سحر راوخيژي نو په دغه وخت الله ﷻ موجود وى اود شپې فرښتې اود ورځې فرښتې جمع كيږي.

**پيغمبر ﷺ ته د تهجدد مونځ حكم:**-بيا الله ﷻ خپل پيغمبر ﷺ ته د تهجد د مونځ حكم وركوى اود فرضو خوحكم دې. صحيح مسلم كښې دي چه دحضور ﷺ نه تپوس اوكړې شو چه د فرض مونځ نه پس كوم يو مونځ غوره دې؟ حضور ﷺ اوفرمائيل د شپې مونځ[5]تهجد وائي د خوب نه پس مونځ ته. لغت كښې د مفسرينوپه تفسيرونوكښې او حديث كښې موجود دي چه د حضور ﷺ عادت مبارك هم دا وو چه اوده كيدونه پس به ئې تهجد كول[6]لكه چه په خپل ځاى باندې بيان موجود دې. اود حسن بصري رحمه الله قول دې چه كوم مونځ د ماسخوتن د مانځه نه پس وى.[7] ممكن دى چه دې نه هم مراد د اوده كيدونه پس مونځ وى.بيافرمائي چه دا زياتوالې صرف ستاد پاره دې.بعضې خووائي چه دتهجد مونځ د نورو په خلاف صرف په حضور ﷺ باندې فرض وو.بعضې وائي دا خصوصيت په دې وجه دې چه د حضور ﷺ ټول وراندې روستو ګناهونه معاف وو اودامتيانو د دې مونځ په وجه ګناهونه معاف كيږي.[8] زمونږ د دې حكم په ځاى راوړلو سره به مونږ تا په داسې ځاىٔ اودروو چه چرته په اودريدو باندې ټول مخلوق به ستا تعريفونه كوى او پخپله خالق اكبر هم وائي چه مقام محمود باندې به ته د قيامت په ورځ د خپل امت د شفاعت د پاره ځې چه د دغه ورځې د ويرې نه ته هغوى ته راحت وركړې.[9].

**مقام محمود اودحضوراكرم ﷺ فضيلت:**-حضرت حذيفه رضي الله عنه فرمائي چه خلق به هم په يوميدان كښې راجمع كولې شي. آواز كونكې به خپل آوازهغوى ته اوروى ستركې به كولاوشى پښې ابله او بربنډ بدن به وى

[1] الطبری:۱۷/۵۲۰، ترمذی: کتاب تفسیرالقرآن باب ومن سورة بنی اسرائیل:۳۱۳۵، وهوصحیح، ابن ماجه:۶۷۰، احمد:۲/۴۷٤
[2] صحیح بخاری کتاب التفسیرسورة بنی‌اسرائیل باب قوله(ان قرآن الفجرکان مشهودا....):٤٧١٧، صحیح مسلم:٦٤٩.
[3] صحیح بخاری کتاب مواقیت الصلاة باب فضل صلاة العصر:٥٥٥،صحیح مسلم:٦٣٢، احمد:٢/٤٨٦، ابن حبان:١٧٣٧.
[4] الطبری:١٧/٥٢١.
[5] صحیح مسلم کتاب الصیام باب فضل صوم المحرم:١١٦، ابوداؤد:٢٤٢٩، ابن ماجه:١٧٤٢،احمد:٢/٣٠٣، مسندابی یعلی:٦٣٩٢.
[6] صحیح بخاری کتاب التهجد باب من نام اول اللیل واحیا اخره:١١٤٦، صحیح مسلم: ٧٣٩.
[7] الطبری:١٧/٥٢٤.
[8] الطبری:١٧/٥٦٥، احمد:٥/٢٥٥.
[9] الطبری:١٧/٥٢٦

لکه څنګه چه پیداکړې شوی وو. ټول به ولاړوی اوځوك به هم د الله ﷻ د اجازت نه بغیرخبره نه شی کولې.آواز به راشی اې محمد ﷺ حضورﷺ به وائی (لبیك وسعدیك) اې الله ټولې ښیګړې هم ستا په لاس کښې دی اوبدی ستادطرف نه نه ده. لارموندونکی هم هغه دی چاته چه ته هدایت اوکړې.ستاغلام ستا په وړاندې موجود دې هغه هم ستا په امدادباندې قایم دې اوهم ستاطرف ته ټیتیدونکې دې. ستا د نیولونه بغیرستاد دربار بل هیڅ ځایْ د پناه نشته. ته د برکتونو والا نی ته دلویووالا نی رب البیت نه پاك ئی.دادې مقام محموددکوم ذکر چه الله ﷻ په دې آیت کښې کړې دې[1]نودامقام مقام شفاعت دې.قتاده رحمه الله فرمائی چه دټولونه اول به حضورﷺ دزمکې نه رابهرکیږی اودټولونه وړاندې به شفاعت هم حضورﷺ کوی[2]اهل علم وائی چه هم دا مقام محمود دې د کوم وعده چه الله ﷻ کریم ذات خپل رسول مقبول ﷺ سره کړې ده. بې شکه ډیرې بزرګئی به د قیامت په ورځ داسې وی په کومو چه به نور ځوك د هغوی سره شریك نه وی اوډیرې بزرګئی به داسې ملاویږی په کوموکښې چه به ځوك د حضورﷺ برابرنه وی. د ټولونه اول به هم د حضورﷺ د قبر زمکه شلیږی اوحضورﷺ به په سورلئی سور د محشر میدان ته ځی. دحضورﷺ به یوه جهنډا وی د حضرت آدم ﷺ نه واخله ټول په ټول به د هغې لاندې وی. حضورﷺ ته به حوض کوثر ملاویږی. په کوم چه به د ټولونه زیات خلق موجود وی. ډیر لوئ شفاعت به د حضورﷺ وی چه الله ﷻ به د مخلوق د فیصلود پاره راشی اودا به د هغې نه پس وی چه خلق به حضرت آدم ﷺ حضرت نوح ﷺ حضرت ابراهیم ﷺ حضرت موسی ﷺ او حضرت عیسی ﷺ له راشی او ټول به انکار اوکړی. بیا به حضورﷺ له راشی او هغوی به د دې د پاره تیار شی لکه څنګه چه د دې احادیث په تفصیل سره راروان دی. ان شاء الله.

**د شفاعت بیان:**-حضور ﷺ به د هغه خلقو شفاعت کوی د کوموباره کښې چه حکم شوې وی چه دوی دوزخ طرف ته بوځنی بیا به هغوی د حضورﷺ په شفاعت سره راواپس کړې شی. د ټولو نه وړاندې به هم د حضورﷺ د امت فیصلې کیږی. هم هغوی ﷺ به سره د خپل امت نه د ټولونه وړاندې په پل صراط باندې تیریږی. هم حضورﷺ به جنت ته د تلوړومبې سفارشی وی لکه څنګه چه د صحیح مسلم د حدیث نه ثابت دی[3] صور په حدیث کښې دی چه ټول مؤمنان به هم د حضورﷺ په شفاعت سره جنت ته ځی. د ټولونه اول به حضورﷺ جنت ته ځی اود حضورﷺ امت به د ټولوامتونونه اول ځی. دحضورﷺ په شفاعت سره به د کمې درجې جنتی اوچتې درجې ته رسی. هم حضورﷺ د وسیله خاوند دې کوم چه د جنت د ټولونه اعلی منزل دې اود حضورﷺ نه علاوه به بل چاته نه شی ملاویدې. داصحیح دی چه د الله ﷻ په حکم به دګناهګارانوشفاعت فرښتې هم کوی خودحضورﷺ شفاعت د ځومره خلقو باره کښې وی د هغې دشمیر بغیرد الله ﷻ نه چاته پته اوعلم نشته په دې کښې د حضورﷺ په شان اود هغه برابر ځوك نشته. دکتاب السیرة په آخرکښې باب الخصائص کښې ما دا ټنه په وضاحت سره بیان کړی دی. والحمدلله.

**دمقام محمود متعلق نور احادیث:**-اوس دمقام محمودباره کښې احادیث واورئی،الله ﷻ دې زمونږ امداد اوکړی.بخاری کښې دی حضرت ابن عمر رضی الله عنه فرمائی خلق به د قیامت په ورځ د زنګونونوپه مخ پریوتې وی هر یوامت به د خپل نبی شاته وی اې فلانکیه زمونږ شفاعت اوکړه تردې چه د شفاعت انتهابه دحضرت محمدﷺ طرف ته شی نو هم دا هغه خبره ده چه الله ﷻ به حضورﷺ په مقام محمود باندې

---

[1] الطبری:١٧/٥٢٦.

[2] الطبری:١٧/٥٢٨.

[3] صحیح مسلم کتاب الایمان باب فی قول النبیﷺ ((اناأول الناس یشفع فی الجنة انا اکثرالانبیاء تبعا)):١٩٦.



اودروی.[1] ابن جریر کښې دی حضورﷺ فرمائی نمربه ډیر نیزدې وی تردې چه خوله به د غوږونو نیمئی ته اورسیږی. په دې حال کښې به خلق حضرت آدمؑ ته فریاد اوکړی هغه به صفاانکارکوی بیا به حضرت موسیؑ ته وانی هغوی به هم دغه جواب ورکوی چه زه د دې قابل نه یم بیابه حضرت محمدﷺ ته وانی. حضورﷺ به د مخلوق د شفاعت د پاره روانیږی تردې چه د جنت د دروازې کونډه به اونیسی. په هغه ورځ به الله ﷻ حضورﷺ مقام محمودته اورسوی.([2])

دبخاری شریف د دې آیت په آخرکښې داهم دی چه اهل محشر به ټول په ټول دحضورﷺ تعریفونه کوی.[3] بخاری شریف کښې دی کوم سړې چه اذان واوری او ((اللهمرب هذه الدعوة التامة)) اولولی د هغه د پاره د قیامت په ورځ زماشفاعت حلال دې.([4]) مسنداحمدکښې دی حضورﷺ فرمائی د قیامت په ورځ به زه د نبیانو امام دهغوی خطیب اودهغوی سفارشی یم او زه دادځه فخر نه نه وایم.([5]) دا ترمذی شریف کښې هم راوړې دې او دې ته ئی حسن صحیح ونیلې دې. ابن ماجه کښې هم دا دې. د حضرت ابی بن کعبؓ نه هغه حدیث شریف تیرشوې دې په کوم کښې چه قرآن پاك په اووه قراءتونو باندې قرآن لوستل بیان دی د دې په آخر کښې دی ما ونیل اې الله زما امت اوبښه یا الله زما امت اوبښه. دریمه دعامادهغه ورځ دپاره ساتلې ده په کومه ورځ چه به ټول مخلوق زماطرف ته رغبت کوی تر دې چه حضرت ابراهیمؑ هم.([6])

**شفاعت اوږد حدیث او مقام محمود:** مسنداحمدکښې دی چه مؤمنان به د قیامت په ورځ راجمع کیږی بیا به د هغوی په زړه کښې خیال اچولې شی چه مونږ چاته اووایو زمونږ سفارش اوکړی اومونږ ته د دې ځائې نه آرام راکړی نو ټول به حضرت آدمؑ له راشی او وانی به اې آدمؑ ته خود ټولوانسانانو پلارئی الله ﷻ ته په خپل لاس باندې جوړکړې ئی ستاد پاره ئی په خپلو فرښتوباندې سجده اوکړه او تاته ئی د ټولوځیزونو نومونه اوخودل. تاسو زمونږ سفارش خپل رب له یوسه دې د پاره چه مونږ ته د دې ځائې نه آرام ملاوشی. حضرت آدمؑ به وائی چه زه د دې قابل نه یم هغوی ته به خپله خطا وریاده شی اود الله ﷻ نه به اوشرمیږی. فرمائی به تاسو حضرت نوحؑ له لاړشئی دالله ﷻ رومبی رسول دې څوك چه د زمکې والا طرف ته الله ﷻ اولیګلو. دوی به راشی اود دې ځائې نه به هم ورته داسې جواب ملاوشی چه زه د دې لائق نه یم هغه ته به هم خپله خطا وریاده شی دالله ﷻ نه مې داسې سوال کړې چه د هغې ماته علم نه وو. دخپل پروردګار نه به شرمیږی او وائی به حضرت ابراهیم خلیل اللهؑ له لاړشئی هغوی له به راشی هغوی به هم فرمائی چه زه د دې قابل نه یم حضرت موسیؑ له لاړ شئ هغه سره الله ﷻ خبرې کړی دی او هغه ته ئی تورات ورکړې وو. خلق به حضرت موسیؑ له راشی خو هغه به هم وائی چه په ماکښې دومره قابلیت چرته دې؟ بیا به د هغه قتل ذکر اوکړی چه بغیر د مقتول د بدله نه هغوی کړې وو نو په دې وجه به د الله ﷻ نه شرمیږی او وائی به تاسو حضرت عیسیؑ له لاړشئی چه د الله ﷻ بنده د هغه کلمه اود هغه روح دې. هغوی به دلته راشی نو هغه به هم وائی چه زه د دې قابل نه یم تاسو حضرت محمد ﷺ له لاړشئی د چا چه اولنئی او آخری ګناهونه ټول ښنلې شوی

[1] صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة بنی اسرائیل باب قوله (عسی ان یبعثك ربك .....):٤٧١٨
[2] الطبری:١٧/٥٢٩.
[3] صحیح بخاری کتاب الزکاة باب من سال الناس تکثرا:١٤٧٥، ابوداؤد:٥٢٩،ترمذی:٢١١، احمد:٣/٣٥٤، ابن حبان : ١٦٨٩.
[4] صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة بنی اسرائیل باب قوله (عسی ان یبعثك ربك.........):٤٧١٩.
[5] احمد:٥/١٣٧، ترمذی: کتاب المناقب باب ((سلوالله لي الوسیلة....)):٣٦١٣، وهوحسن، ابن ماجه: ٤٣١٤.
[6] صحیح مسلم کتاب صلاة المسافرین باب بیان ان القرآن انزل علی سبعة احرف: ٨٢٠.

دی نو هغه ټول به ماله راشي زه به اودريږم د خپل رب نه به اجازت غواړم کله چه هغه اووينم نو به سجده کښې به راپريوځم ترکومې چه الله ﷻ ته منظوروی په سجده کښې به پروت يم. بيا اوفرمائيلې شی ای محمد ﷺ سر اوچت کړه وايه اوريدې به شی شفاعت کوه قبلولې به شی غواړنی درکولې به شی.زه به سراوچت کړم اود الله ﷻ به هغه تعريفونه اوکړم چه هغه به نی ماته ښانی. بيابه زه سفارش کوم. زما د پاره به يوحد مقرر کړې شی زه به هغه جنت ته اورسوم. بيابه په دويم ځل خپل رب ته په کتوياندې سجده اوکړم ترکومې چه هغه غواړی زه به په سجده کښې يم بيا به اووئيلې شی ای محمدﷺ سراوچت کړه وايه اوريدې به شی سوال کوه درکولې به شی شفاعت کوه قبلولې به شی نوزه به سر اوچت کړم اود رب به هغه حمد بيان کړم کوم چه هغه ماته ښانی. زه به شفاعت کوم نوزما د پاره به يوحدمقررکړې شی زه به هغه هم جنت ته اورسوم.

بيابه په دريم ځل راواپس شم خپل رب ته په کتوبه په سجده راپريوځم ترکومې چه الله ﷻ غواړی هم په دې حالت کښې به پروت يم بيابه اوفرمائيلې شی ای محمدﷺ سراوچت کړه خبره کوه ستا خبره به اوريدې شی سوال کوه درکولې به شی سفارش کوه قبلولې به شی.زه به سراوچت کړم او حمدبه بيان کړم کوم چه به ماته هغه ښانی سفارش به اوکړم خوزما د پاره به حد مقررکولې شی زه به هغه هم جنت ته اورسوم بيا به په څلورم ځل راځم او وايم به چه پروردګار اوس خو صرف هغه پاتې شوکوم چه قرآن رامنع کړی دی. فرمائی چه د دوزخ نه به هرهغه سړې راوځی چا چه ﴿لااله‌الاالله﴾ ونيلې وی اود هغه په زړه کښې د يوې ذرې برابر هم ايمان وی. داحديث په بخاری او مسلم کښې هم دې. (١)

مسند احمدکښې دی حضورﷺ فرمائی زما امت به په پل صراط باندې تيريږی زه به هلته ولاړ يم ګورم به چه ماله به حضرت عيسیٰ ﷺ راشی اوفرمائی به ای محمدﷺ د انبياؤ کرامو ډله تاسو نه څه غواړی هغوی ټول ستاسو دپاره راجمع دی اود الله ﷻ نه دعاکوی چه ټول مخلوق چرته هم غواړی جداجدا کړې دې وخت کښې هغوی په سخت غم کښې دی.ټول مخلوق ته لکه چه په خولوکښې واګې اچولې شوی دی.په مؤمنانوخودزکام په شان دی ولې په کافرانو باندې دمرګ په شان دی. حضورﷺ به فرمائی چه اودريږنی هم هلته درځم. نو حضورﷺ به لاړشی اود عرش لاندې به اودريږی هغه عزت او قدر به ورته ملاوشی چه هيڅ يو اوچتې فرښتې او نه يو ليګلې شوی نبی يارسول ته به ملاوشوې وی. بيا به الله ﷻ د حضرت جبرائيل ﷺ طرف ته وحی اوکړی چه محمدﷺ له لاړشه او ورته اووايه ته سراوچت کړه غواړه ملاويږی به سفارش کوه قبليږی به نو ماته به دخپل امت شفاعت ملاوشی چه د هرو يوکم سلو نه يو راوباسه زه به باربار د خپل رب عزوجل طرف ته ځم راځم اوهرځل به سفارش کوم تردې چه الله ﷻ به ماته ارشاد اوفرمائی چه ای محمدﷺ لاړشه او په مخلوق کښې چه چا يوځل هم په خلوص سره د﴿لااله‌الاالله﴾ ګواهی ورکړې ده او هم په دې باندې مړشوې دې هغه هم جنت ته اورسوه. (٢)

مسنداحمدکښې دی حضرت بريده ﷺ حضرت معاويه ﷺ له لاړو هغه وخت يوسړی څه ونيل هغه هم د څه ونيلواجازت اوغوښتلو حضرت معاويه ﷺ اجازت ورکړو د هغوی خيال دا وو چه کوم څه دا رومبې سړې وائی هغه به بريده ﷺ هم وائی.حضرت بريده ﷺ اوفرمائيل مادرسول الله ﷺ نه اوريدلی دی حضورﷺ فرمائی زما د الله ﷻ نه دا اميدې چه په زمکه باندې خومره ونې دی اوکانړی دی د دې د شميربرابر به زه د خلقو شفاعت کوم نواې معاويه ﷺتاته خودې د دې اميدوی او حضرت علی ﷺ دې نااميده وی؟ (٣)

---

(١) صحيح بخاری کتاب التوحيد باب قول الله تعالی ﴿لماخلقت بيدی﴾:٧٤١٠، صحيح مسلم:١٩٣، احمد:١١٦/٢، ابن حبان:٦٤٦٤.
(٢) احمد:١٧٨/٣ وسنده صحيح، مجمع الزوائد:٣٧٣/١٠.
(٣) احمد:٣٤٧/٥.

بل حديث: مسنداحمدکښې دی چه د ملیکه دواړه خامن د حضورﷺ په خدمت کښې حاضر شو ونی ونیل زمونږ مور به زمونږ د پلار ډیر زیات عزت کولو په ماشومانو باندې ډیره مهربانه او شفقت به نی کولو په میلمستیا کښې به هیڅ کمې نه راوستلو اوهغې د جاهلیت په زمانه کښې خپلې ژوندئی لونړه خښې کړې وې حضورﷺ اوفرمائیل بیاهغه دوزخ ته اورسیده.هغوی دواړه خفه غمگین شوواپس لاړل. حضورﷺ حکم اوکړو چه هغوی واپس راولئی هغوی واپس شواودهغوی په مخونوباندې خوشحالی وه چه کیدې شی اوس حضورﷺ څه ښکلې خبر واوروی. حضور ﷺ اوفرمائیل واورئی زما مور او ستاسو مور دواړه یوځاۍ دی. یومنافق دا واوریده نو ونی ونیل چه د ده نه د ده مور ته څه فائده؟ مونږ ده پسې خو.یوانصاری چه دحضورﷺ نه به نی د ټولونه زیات سوالونه کولوعادت وو هغه اوونیل یارسول اللهﷺده باره کښې یا د دې دواړو باره کښې الله ﷻ تاسو سره څه وعده کړې ده؟ حضورﷺ ته معلومه شوه چه ده خو څه اوریدلی دی ونی فرمائیل نه زما رب غوښتلې دی نه ما دې باره کښې څه طمع کړې ده. واوره زه به د قیامت په ورځ مقام محمود ته اورسولې شم. انصاری اوونیل هغه کوم مقام دې؟ حضورﷺ اوفرمائیل چه دا به هغه وخت وی چه کله به تاسو بربنډ بدن او ناسونته راوستلې شئی. د ټولونه اول به حضرت ابراهیم ﷺ ته کپړې اچولې شی. الله ﷻ به ارشاد اوفرمائی زما خلیل ته کپړې واچوئی نو دوه د سپین رنګ څادرونه به ورته واغوندی اوهغه به د عرش طرف ته مخ کړې ناست وی بیابه زما لباس راوړلې شی. زه به د هغه نه ښی طرف ته داسې ځاۍ کښې ولاړیم چه ټول اولنی او آخری خلق به په ما باندې غبطه کوی اود کوثر نه واخله ترحوض پورې به د هغه د پاره کولاوکړې شی. منافق ونیل چه د اوبود روانولوډپاره خود خاورې او کانړو کیدل ضروری دی. حضورﷺ اوفرمائیل چه او د هغې خاوره مشك او کانړی مرغلرې دی. هغه ونیل چه مونږ خو چرته داسې نه دی اوریدلی ښه ده د اوبوپه غاړه ونې هم کیدل پکار دی. انصاری ونیل یارسول الله ﷺ هلته به ونې هم وی؟ حضورﷺ اوفرمائیل اود سرو زرو د ښاخونو ونې. منافق ونیل د نن په شان خبرې خو مونږ کله هم نه دی اوریدلی ښه ده په ونوکښې میوې او پانړې هم پکار دی. انصاری ونیل یارسول الله ﷺ په دې ونوکښې به میوې اوپانړې هم وی؟حضورﷺ اوفرمائیل او قسم قسم جواهر د دې اوبه به د پئیونه زیاتې سپینې وی اود شاتو نه ډیرې خوږې وی. دې نه چه چا یوګوټ هم اوڅکلې هغه به هیڅ کله هم تګې نه شی او چه څوك دې نه محروم شو هغه به هیڅ کله هم موړ نه شی(١)دا حدیث مبارك ضعیف دې (حاشیه ابن کثیر)

ابوداؤدطیالسی کښې دی بیا به الله ﷻ د شفاعت اجازت ورکړی.نو روح القدس جبرائیل ﷺ به اودریږی بیا به ابراهیم خلیل الله ﷺ اودریږی اوبیاحضرت عیسی ﷺ اوبیا حضرت موسی ﷺ بیا به ستاسونبی حضرت محمدﷺ اودریږی. د حضورﷺ نه به د چا شفاعت زیات نه وی. هم دا مقام محمود دې د کوم ذکر چه په دې آیت کښې دې(٢)مسنداحمد کښې دی خلق به د قیامت په ورځ اوچتولې شی زه به د خپل امت سره په یوه غونډئی باندې ولاړیم. ماته به الله ﷻ د شین رنګ حله راواغوندوی بیا به ماته اجازت راکولې شی اوچه څه ونیل غواړم وایم به، هم دغه مقام محمود دې. (٣)

مسنداحمدکښې دی د قیامت په ورځ به د ټولونه وړاندې ماته د سجدې اجازت راکولې شی اوهم ماته به دټولونه اول د سر اوچتولواجازت راکولې شی. زه به خپل وړاندې روستو ښی او گس طرف ته اوګورم خپل امت به په نورو امتونوکښې اوپیژنم. چاتپوس اوکړو چه حضورﷺ نور ټول امتونه چه د حضرت نوح ﷺ د وخت پورې وی په دې ټولوکښې به تاسو خاص خپل امت څنګه اوپیژنئی؟ حضورﷺ ارشاد

١) احمد:١/٣٩٨-٣٩٩
٢) مسندطیالسی:٣٨٩.
٣) احمد:٣/٤٥٦..

اوفرمائیلو چه داودس د اثرپه وجه به د هغوی پښې لاسونه اومخونه پرقیږی د هغوی نه بغیربه بل هیڅ خوك داسې نه وی اوزه به هغوی داسې اوپیژنم چه د هغوی عمل نامه به د هغوی په ښی لاس کښې وی. اوښې به نی دا وی چه د هغوی اولاد به د هغوی نه وړاندې وړاندې ګرځی. (١)

**د شفاعت متعلق بل اوږد حدیث مبارك:-** مسنداحمد کښې چه حضورﷺ غوښه راوړلې شوه اودملا غوښه د حضورﷺ ډیره خوښه وه هم هغه حضورﷺ ته ورکړې شوه حضورﷺ دې نه غوښه پرېکوله اوخوړله نی او وئی فرمائیل چه د قیامت په ورځ به د ټولو خلقو سردار زه یم. الله ﷻ به ټول وړاندینی او روستونی په یومیدان کښې راجمع کوی.آواز کونکې به هغوی ته واوروی سترګې به نی پورته اوچتې شی نمر به بالکل نیزدې شی اوخلق به په داسې سختنی غم او خفګان کښې اخته شی چه د برداشت نه به بهر وی هغه وخت به دوی په خپل مینځ کښې وائی چه ګورنی مونږ ټول څنګه په مصیبت کښې اخته یو راځئ چه چاته اووایو او څوك سفارشی جوړکړو الله ﷻ ته نی اولیګو نو په مشوره باندې به خلق حضرت آدم ؑ له راشی او وائی به تاسو دټولوانسانانوپلارنی الله ﷻ ته په خپل لاس سره پیداکړې نی تاکښې خپل روح دربوك وهلې او په خپلو فرښتو سره تاته د سجدې حکم کړې دې تاته نی سجده کړې ده. آیاتاسو زمونږ دا تکلیف نه وینئی؟ تاسو پروردګارته شفاعت اوکړئی حضرت آدم ؑ به جواب ورکړی چه زما رب نن دومره په غصه دې چه دې نه وړاندې داسې نه دې په غصه شوې اونه به د دې نه پس وی. الله ﷻ زه دیوې ونې نه منع کړې ووم خومانه نافرمانی اوشوه. نن خو ماته خپل خیال دې نفسی نفسی به وائی تاسو بل چاله لاړشئی. خلق به د هغه ځایه حضرت نوح ؑ له لاړشی او وائی به ای نوح ؑ تاسو الله ﷻ د زمکې والا ته د ټولونه اول رسول جوړکړې لیګلې وې ستاسو نوم هغه شکر ګذار بنده کیخودې وو تاسو زمونږ د پاره الله ﷻ ته شفاعت اوکړی. ګورئی نه چه مونږ په کوم قسم مصیبت کښې اخته یو؟ حضرت نوح ؑ به جواب ورکړی ګورئی نه چه نن زما پروردګار څومره غضبناك دې چه نه د دې نه وړاندې داسې په غصه شوې دې نه به دې نه پس داسې غصه وی. زما یوه دعاوه چه دقوم خلاف مې غوښتې وه ماته خودخپل ځان فکر دې نفسی نفسی به وائی تاسو بل چاله لاړشئی. حضرت ابراهیم ؑ له لاړشئی. خلق به د حضرت ابراهیم ؑ خواله لاړشی او وائی به تاسو د الله ﷻ نبی نی د الله ﷻ خلیل نی آیاتاسو زمونږ دا تکلیف نه ګورئی؟ حضرت ابراهیم ؑ به اوفرمائی چه نن زما رب ډیر غصه دې چه نه د دې نه وړاندې دومره غصه وو اونه به دې نه پس وی. بیا به هغوی خپل دروغ رایادکړی او نفسی نفسی به وائی.هغه به وائی چه زمانه بغیرچرته بل چاله لاړشئ حضرت موسی ؑ له لاړشئی. خلق به حضرت موسی ؑ له لاړشی او وائی به ای موسی ؑ ته د الله ﷻ رسول نی او الله ﷻ تاسره کلام کړې دې تاسو زمونږ پروردګار له زمونږ شفاعت یوسئی اوګورئی چه په څنګه سخت آفت کښې یو؟ هغوی به فرمائی چه نن خو زمونږ رب سخت خفه دې داسې چه دومره کله هم نه دې خفه شوې اونه به دې نه پس داسې خفه شی.ما دالله ﷻ د حکم نه بغیریوانسان وژلې وونفسی نفسی تاسو ماپرېږدئی بل چاته اووائې حضرت عیسی ؑ له لاړشئی. خلق به حضرت عیسی ؑ له راشی او وائی به ای عیسی ؑ ته رسول الله کلیم الله او روح الله نی کوم چه حضرت مریم له لیګلې شوې وو. په ووړوکوالی کښې تا په زانګوکښې خبرې شروع کړې وې. لاړشه زمونږ رب ته زمونږ شفاعت اوکړه. خیال خو اوکړه چه مونږ څومره بې آرامه یو؟ حضرت عیسی ؑ به فرمائی چه د نن په شان غصه خو نه مخکې وو اونه به دې نه پس وی نفسی نفسی. هغوی به د یوې ګناه ذکر هم او نه کړی وائی به تاسو بل چاله لاړشئی. ګورئی زه درته ښایم حضرت محمد ﷺ له لاړشئی نو هغوی ټول به حضورﷺ له راشی او وائی به ای محمدﷺ تاسو رسول الله نی تاسو خاتم الانبیاء نی الله ﷻ ستاسو

---

(١) احمد:١٩٩/٥.

ټول مخکی روستی ګناهونه معاف کړخولی تاسو زمونږ شفاعت اوکړئی اوګورئی مونږ څومره په سختوکښې راګیر یو، زه به اودریږم اود عرش لاندې به لاړشم او د خپل رب په وړاندې به سجده کښې راپریوځم. بیا به الله ﷻ په ماباندې هغه د حمد اوثناء الفاظ کولاوکړی چه مانه وړاندې به په چا باندې نه وی کولاوشوی. بیا به ماته اوفرمائیلې شی ای محمد ﷺ خپل سر اوچت کړه غواړه تاته به ملاویږی شفاعت کوه منظورکیږی به زه به خپل سر د سجدې نه اوچت کړم اووایم به ای زما پروردګار زما امت زماامت زما ربه زماامت ای الله زما امت. اوبه فرمائیلې شی چه لاړشه خپل امت کښې چه په چاباندې څه حساب نه وی جنت ته ئې بوزه هغوی د جنت د ښی طرف دروازې ته اورسوه د نورو ټولودروازو نه هم هغه ته منع نشته. د الله ﷻ قسم دچا په لاس کښې چه دمحمد (ﷺ)خان دې دجنت په دوو چوکاټونو کښې دومره فاصله ده څومره چه په مکه اوحمیر کښې یا مکه او بصره کښې. داحدیث په بخاری اومسلم کښې هم شته.([1])مسلم کښې دی چه د قیامت په ورځ به د آدم ﷺ د اولاد سردار زه یم. په هغه وخت به د ټولو نه وړاندې زما د قبرزمکه شلیږی.هم زه ړومبې شفاعت کونکې یم اوهم زما به ړومبې شفاعت قبلیږی.([2])ابن جریرکښې دی چه دحضور ﷺ نه ددې آیت د مطلب تپوس اوکړې شو نو حضور ﷺ اوفرمائیل دا شفاعت دې. ([3]) مسنداحمدکښې دی چه مقام محمودهغه مقام دې په کوم کښې چه به زه د خپل امت شفاعت کوم. ([4])

عبدالرزاق کښې دی د قیامت په ورځ به الله ﷻ د څرمنې په شان دا زمکه راکاږی. تردې چه د هر سړی د دوو قدمونود کیخودو ځاې به پاتې شی. د ټولونه اول به زه راوغوښتې شم حضرت جبرائیل ﷺ به د الله ﷻ ښی طرف ته وی د الله ﷻ قسم دې نه وړاندې هغه دې نه وو لیدلې زه به وایم ای الله ﷻ دې فرښتې ماته وئیلې وو چه تا دې زما طرف ته رالیګلې وو الله ﷻ به اوفرمائی ده ریښتیا وئیلې وو. اوس به زه دې وینا کولو سره شفاعت کوم ای الله ستا بندیګانو دزمکې په مختلفو حصو باندې ستا عبادت کړې دی. حضور ﷺ فرمائی چه هم دا مقام محمود دې.([5]) داحدیث مرسل دې.

| مُدْخَلَ | اَدْخِلْنِیْ | رَّبِّ | وَقُلْ |
|---|---|---|---|
| په داخلیدو | داخل کړې ما | چې اے ربه زما | اواووایه |
| او اووایه چې ائې زما ربه! ما ‹په مدینه کښې› | | | |

| مِنْ لَّدُنْكَ | وَّاجْعَلْ لِّیْ | صِدْقٍ | مُخْرَجَ | وَّاَخْرِجْنِیْ | صِدْقٍ |
|---|---|---|---|---|---|
| طرف خپل نه | اوجوړ کړه مالره | ریښتیاؤ سره | په ایستلو | اواوباسې ما | ریښتیاوؤ سره |
| په ښه شان داخل کړه او‹له مکې نه› ما په عزت سره اوباسه او ماله دخپل طرفنه غلبه | | | | | |

| كَانَ | اِنَّ الْبَاطِلَ | وَزَهَقَ الْبَاطِلُ | جَآءَ الْحَقُّ | وَقُلْ | نَّصِیْرًا۝ | سُلْطٰنًا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دې | بیشکه باطل | او ختم شو باطل | چې راغې حق | اووایه | مددګار | یواقتدار |
| اومدد راکړه او دا اعلان اوکړه چې حق؛ بس دادې چې‹ راغلو اوباطل لاړو ورک شو بیشکه باطل خو ‹هسې هم› | | | | | | |

[1] صحیح بخاری کتاب التفسیر سورت بنی اسرائیل باب ﴿ذریة من حملنا مع نوح انه کان عبداشکورا....﴾:٤٧١٢،صحیح مسلم:١٩٤،
[2] صحیح مسلم کتاب الفضائل باب تفضیل نبینا ﷺ علی جمیع الخلائق:٢٢٧٨.
[3] الطبری:٥٢٩/١٧.
[4] احمد:٤٤١/٢.
[5] حاکم:٥٧٠/٤.

| زَهُوۡقًا﴿۸۱﴾ |
|---|
| ځيزدختميدوا |
| د وركيدو ځيز دي |

**قوله تعالى:- وَقُلْ رَّبِّ اَدْخِلْنِیْ مُدْخَلَ**

**حضورﷺ ته دهجرت حكم:-** مسنداحمدكښې د حضرت ابن عباس ﷛ نه روايت دې چه نبى كريم ﷺ په مكه مكرمه كښې وو بيا هغوى ته دهجرت حكم اوشو اودا آياتونه نازل شو.امام ترمذى ﷫ فرمائى داحديث حسن صحيح دې[1] حضرت حسن ﷫ فرمائى دمكې كافرانو مشوره اوكړه چه حضورﷺ قتل كړى يانى اوباسى يانى قيدكړى نود الله ﷻ هم دا اراده اوشوه چه د مكې والا ته دهغوى د بدعملو مزه وراوڅكى. هغه خپل پيغمبر ته دمدينې دتلو حكم اوفرمائيلوهم داپه دې آيت كښې بيانيږى[2] قتاده ﷫ فرمائى دمكې نه وتل او مدينې ته داخليدل هم دا قول د ټولونه زيات مشهور دې[3] د ابن عباس ﷛ نه روايت دې دصداقت دداخلې نه مرادمرګ دې اود صداقت نه د وتلو مراد د مرګ نه پس ژوندون دې.نوراقوال هم دى خوډير صحيح هم ړومبې قول دې.امام ابن جرير ﷫ هم دا اختياروى.

**غلبه د دين په حكم سره ممكن ده:-** بيا حكم اوشو چه د غلبه او امداد دعاهم زمونږ نه كوه. په دې دعا باندې الله ﷻ دروم ملك فارس اود عزت وركولو وعده نى اوفرمائيله. دومره خوحضورﷺ هم معلومه كړې وه چه بغيرد غلبه نه د دين خورول او زور ناممكن دې د دې د پاره نى د الله ﷻ نه امداد اوغلبه اوغوښتله دې دپاره چه دالله ﷻ دكتاب اودالله ﷻ دحدودو دشريعت فرائض اوددين قايمول اوكړې شى دا غلبه هم د الله ﷻ يوزبردست رحمت دې كه چرې دا نه وه نويوبل به نى خوړلې وې هريوزورور به د كمزورى ښكاركولو[4] دسلطان نصير نه مراد ښكاره دليل هم دې خو ړومبې قول اولى دې څكه چه حق سره غلبه اوطاقت هم ضرورى ځيز دې چه دحق مخالفين دباؤ وى ددې دپاره الله ﷻ د اوسپنې نازلولو احسان په قرآن پاك كښې په خاص توګه ذكركړو.يوحديث كښې دى دبادشاهئى په وجه الله ﷻ ډير بدكارونه رابندكړې وى چه صرف په قرآن سره نه شورابنديدلې. دابالكل واقعه ده ډير خلق دى چه د قرآن پاك نصيحتونه دهغې وعدې وعيدونه هغوى دبدوكارونونه نه شى اخواكولې خوداسلامى طاقت نه په رعب كښې شى اود بدو نه منع كيږى.

**حق قايم پاتې كيدونكې او باطل ختمدونكې:-** بيا د كافرانو غوړونه راښكلې شى چه د الله ﷻ د طرف نه حق راغلې دې رښتياراكوزشوى دى په كوم كښې چه هيڅ شك شبه نشته. قرآن ايمان نفع وركونكې رښتونې عمل د الله ﷻ د طرف نه راغلو كفر تباه برباد او بې نوم اونښې شو هغه د حق په مقابله كښې بغير پښواولاسونوثابت شو حق د باطل دماغ ذره ذره كړل اوهغه نابود اوبې وجودشو.په صحيح بخارى شريف كښې دى رسول الله ﷺ مكې ته راغلو بيت الله كښې خواوشا درې سوه شپيته بتان وو حضورﷺ د خپل لاس په لرګى باندې هغې له ديكې وركولې اوهم دا آيت به نى لوستلو او فرمائيلوبه نى حق راغلوباطل نه دوباره راتلې شى او نه واپس كيدې شى[5] ابويعلى كښې دى چه مونږ دحضورﷺ سره

---

[1] ترمذى كتاب تفسيرالقرآن باب ومن سورت بنى اسرائيل:٣١٣٩.
[2] الطبرى:٥٣٣/١٧.
[3] الطبرى:٥٣٥/١٧.
[4] الطبرى:٥٣٦/١٧.
[5] صحيح بخارى كتاب التفسيرسورة بنى اسرائيل باب ﴿وقل جاء الحق وزهق الباطل﴾:٤٧٢٠، صحيح مسلم:١٧٨١، ترمذى: ٣١٣٨،

مکې ته راغلو د بیت الله نه چاپیره درې سوه شپیته بتان وو د کومو چه عبادت کېدلو حضورﷺ زر حکم ورکړو چه دا ټول پرمخې راګذار کړنې بیا حضورﷺ دا آیت تلاوت اوفرمائیلو.

| وَنُنَزِّلُ | مِنَ الْقُرْاٰنِ | مَا هُوَ | شِفَآءٌ | وَّرَحْمَةٌ |
|---|---|---|---|---|
| اونازلوؤ مونږه | د قرآن نه | هغه څیز | چې هغه شفاده | او رحمت دې |
| اومونږ په قران کښې داسې څیزونه رالیږو چې دمومنانو دپاره شفا | | | | |

| لِّلْمُؤْمِنِيْنَ | وَلَا يَزِيْدُ | الظّٰلِمِيْنَ | اِلَّا | خَسَارًا۝ |
|---|---|---|---|---|
| دپاره دمومنانو | او نۀ زیاتوي | ظالمانو لره | مګر | خساره |
| او رحمت دې اوظالمانو په حق کښې له دې نه هم نقصان زیاتیږي | | | | |

**قوله تعالى:- وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْاٰنِ مَا هُوَ شِفَآءٌ**

**قرآن د مؤمنانود پاره شفاده:-** الله ﷻ دخپل کتاب باره کښې کوم چه دباطل یوه شبه هم نشته فرمائي چه هغه دایماندارانودزړونودټولوبیمارو دپاره شفاده.شك نفاق شرك کوږوالې اوباطل سره مینه ټول پهدې سره لرې کیږي.ایمان حکمت ښیګړه رحمت او دنیکوطرف ته رغبت دې سره حاصلیږي څوك هم چه په دې باندې ایمان اویقین راوړي داربښتیااوکړي ددې تابعداري اوکړي نوداهغه د الله ﷻ درحمت لاندې راولي اودروي.اوچه څوك ظالم او جابر وي اودې نه انکاري وي هغه دالله ﷻ نه نورهم لرې کیږي قرآن اوریدو سره د هغه کفر نورهم زیاتیږي.نودا آفت د کافر دخپل طرف نه دهغه دکفر په وجه سره کیږي نه چه د قرآن د طرف نه ځکه چه هغه خو سراسر رحمت او شفاده.دقرآن پاك په یو بل آیت کښې دي ﴿قُلْ هُوَ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا هُدًى وَّشِفَآءٌ ۖ وَالَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ فِيْٓ اٰذَانِهِمْ وَقْرٌ وَّهُوَ عَلَيْهِمْ عَمًى ۖ اُولٰٓئِكَ يُنَادَوْنَ مِنْ مَّكَانٍۭ بَعِيْدٍ۝﴾[1] اووایه دا د ایماندارودپاره هدایت اوشفاده اودبې ایمانانوپه غوږونوکښې کونړوالې دې اودهغوی په سترګو کښې ړندوالې دې هغوی له دلرې لرې نه آوازونه ورکولې شي.بل آیت کښې ارشاد دې ﴿وَاِذَا مَآ اُنْزِلَتْ سُوْرَةٌ فَمِنْهُمْ مَّنْ يَّقُوْلُ اَيُّكُمْ زَادَتْهُ هٰذِهٖٓ اِيْمَانًا ۚ فَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا فَزَادَتْهُمْ اِيْمَانًا وَّهُمْ يَسْتَبْشِرُوْنَ۝﴾[2] چه کله هم یو سورت نازل شو یو ډلې تپوسونه کول شروع کړه چه په تاسوکښې چادا په ایمان کښې زیات کړل؟ واورئې دایماندارو ایمان خو زیاتیږي اوهغوی ښه تازه کیږي اودچاپه زړونوکښې چه بیماري ده د هغوی په ګندګوباندې نورې ګندګئې زیاتیږي اوترمرګه پورې په کفر باندې قایم وي. د دې مضمون نورهم ډیرآیاتونه دي.غرض دا چه مؤمن ددې کتاب په اوریدوباندې نفع اوچتوي داپه یادوباندې یادوي ددې خیال ساتي. بې انصاف خلق نه دې نه نفع حاصلولې شي نه دا یادوي نه د دې خیال ساتي.الله ﷻ داشفا اورحمت صرف د مؤمنانو د پاره جوړکړې دې.

| وَاِذَآ | اَنْعَمْنَا |
|---|---|
| اوکله چې | انعمت اوکړو مونږه |
| اوهرکله چې مونږ یو | |

[1] ٤١/فصلت:٤٤.

[2] ٩/التوبه:١٢٤.

| عَلَى الْإِنْسَانِ | أَعْرَضَ | وَنَا بِجَانِبِهٖ | وَإِذَا | مَسَّهُ | الشَّرُّ |
|---|---|---|---|---|---|
| په انسان باند | نو مخ ني واړوي او | تاؤ ني کړو اړخ | او کله چي | اورسيدو هغه ته | مصيبت |

انسان له نعمتونه ورکړو (نوبيا زمونږ د حکمونو) نه هغه مخ اړوي او ډډه کوي او چي لږ تکليف ورته اورسيږي

| كَانَ | يَئُوسًا ۝ | قُلْ | كُلٌّ يَّعْمَلُ | عَلٰى شَاكِلَتِهٖ | فَرَبُّكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| نوشو | نااميده | ورته اووايه | هر څوك عمل كوي | په طريقه خپله باند | نو رب ستاسو |

نو زړ نااميده شی ائي نبي ﷺ ! دوئ ته اووايه چي هرڅوک په خپله طريقه باندې عمل كوي بيشكه ستا رب

| أَعْلَمُ | بِمَنْ | هُوَ | أَهْدٰى | سَبِيْلًا ۝ |
|---|---|---|---|---|
| ښه پوهيږي | په هغه | چا چي هغه | زيات صحيح روان دې | په نيغه لار |

هغه څوک ښه پيژني کوم چي د ټولو نه زيات په سمه لار باندې دي

**قوله تعالى:- وَإِذَآ أَنْعَمْنَا عَلَى الْإِنْسَانِ أَعْرَضَ**

**د انسان خودغرضي:-** خيراوشر نيکی بدی کښې په عام توګه د انسان کوم عادت دې هغه قرآن کريم بيانوی.مال عافيت فتح رزق نصرت تائيد كولاووالي آرام ليدلو سره سترګې اړوی.د الله ﷻ نه لرې كيږی لكه چه ده ته هډو بدی رسی نه. د الله ﷻ نه اړخ بدلوی لكه چه هډو څه پيژند ګلونی نه وی اوچه كوم ځائ مصيبت تكليف درد آفت حادثه راورسی اودې نااميده شی نوپوهيږی چه اوس نيكی خلاصې آرام راحت هډو ملاويږی نه.

په قرآن ک يم كښې بل ځائ ارشادباری تعالى دی﴿وَلَئِنْ أَذَقْنَا الْإِنْسَانَ مِنَّا رَحْمَةً ثُمَّ نَزَعْنٰهَا مِنْهُ ۚ إِنَّهٗ لَيَئُوْسٌ كَفُوْرٌ ۝ وَلَئِنْ أَذَقْنٰهُ نَعْمَآءَ بَعْدَ ضَرَّآءَ مَسَّتْهُ لَيَقُوْلَنَّ ذَهَبَ السَّيِّاٰتُ عَنِّيْ ۚ إِنَّهٗ لَفَرِحٌ فَخُوْرٌ ۝ إِلَّا الَّذِيْنَ صَبَرُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ۚ أُولٰٓئِكَ لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّأَجْرٌ كَبِيْرٌ﴾ ([1]) انسان له راحتونه وركولوسره هغه مونږ بياواخلو نو چه دې صرف مايوس نااميده او ناشكره جوړ شی اوچه كله مونږ د ده نه مصيبتونه لرې كړل نواسوده شو اوغروركښې راغلو اوداخيال ني كوچه بس اوس خو بدی مانه لرې شوه.فرمائی چه هرسړې په خپل خپل طريقه په خپل طبيعت او په خپل نيت خپله طريقه او خپل دين باندې عمل كونكې دې او لګيادې. ([2])د دې علم چه حقيقت كښې په نيغه لار څوک دې صرف يو الله ﷻ ته دې. په دې كښې مشركانو ته تنبيه ده چه كه هغوی په خپل مسلك باندې كلك ولاړ وی اوهغه ښه ګڼړی خو چه الله ﷻ له لارښی نو ښكاره به شی چه هغوی څومره په خطرناكه لار باندې وو.لكه چه ارشاد دې چه دې بې ايمانانوته اووايه چه ښه ده په خپل ځائ كاركونی. ([3]) بدلې وخت دا نه دې دقيامت ورځ ده د نيكئ او بدنی فرق به په هغه ورځ وی ټولو ته به بدله ملاويږی دالله ﷻ نه هيڅ يو كاريټ نه دې.

| وَيَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الرُّوْحِ | قُلِ الرُّوْحُ | مِنْ أَمْرِ رَبِّيْ | وَمَآ أُوْتِيْتُمْ |
|---|---|---|---|
| او تپوس كوي دا خلق ستا نه په باره د روح كښې | اووايه اچي روح | په حكم سره درب زما دې | اونه دې دركړې شوې تاسو ته |

او خلق له تاته د روح په حقله تپوس كوی (دوئ ته) اووايه چې روح زما درب د حكم نه پيدا دې او تاسو ته

---

[1] ١١/هود:١٠-١١.
[2] الطبری:٥٤١/١٧.
[3] ١١/هود:١٢١.الخ

| مِّنَ الْعِلْمِ | اِلَّا | قَلِيْلًا۞ |
|---|---|---|
| دعلم نه | مګر | لږ |

خو ډير لږ علم درکړې شوې دې

**قوله تعالى: - وَيَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الرُّوْحِ**

**کله چه د حضورﷺ نه د روح باره کښې تپوس اوشو:** بخاري وغيره کښې د ابن مسعود ﷛ نه روايت دې چه حضورﷺ دمدينې په پټوکښې روان وو دحضورﷺ په لاس کښې لرګې وو زه هم حضورﷺ سره ووم. د يهوديانو يوې ډلې حضورﷺ اوليدلو نو پټې پټې خبرې شروع کړې چه راځئ چه د ده نه د روح باره کښې تپوس اوکړو. چا تپوس اوکړوبنه ده که خوک بندکړې چاونيل ستاسوبه دې څه؟چاونيل چه کيدې شي څه داسې جواب راکړې چه ستاسو خلاف وي، پريږدئ تپوس ترې مه کوئ. آخر هغوى راغله اود حضورﷺ نه ئې تپوس اوکړو حضورﷺ په خپل لرګي باندې ډډه اووهله اودريدو. زه پوهه شوم چه وحى نازليږې چپ اودريدم. دې نه پس حضورﷺ د دې آيت تلاوت اوکړو[1] دې نه خودا ښکاره معلوميږى چه دا آيت مدنى دې اوسره د دې چه ټول سورت مکى دې.خو دا هم کيدې شى چه په مکه کښې نازل شوى آيت سره په دې موقع دمدينه يهوديانوته د جواب ورکولو وحى نازل شوې وى. يادا چه په دويم ځل دا آيت نازل شوى وى. دمسنداحمدپه روايت سره هم د دې آيت هم مکه کښې نازليدل معلوميږى.

ابن عباس ﷛ فرمائى چه قريشو يهوديانوته درخواست اوکړوچه څه ګران شان سوال اوښائې چه مونږ د ده نه تپوس اوکړو نو هغوى داسوال اوخودلوادوې په جواب کښې دا آيت نازل شو نودې سرکشو ونيل مونږ ته ډير علم دې تورات مونږ ته ملاوشوې دې اوچاسره چه تورات وى هغه ته ډير زيات خير ملاو شو. الله ﷻ دا آيت نازل کړو ﴿ قُلْ لَّوْ كَانَ الْبَحْرُ مِدَادًا لِّكَلِمٰتِ رَبِّيْ لَنَفِدَ الْبَحْرُ قَبْلَ اَنْ تَنْفَدَ كَلِمٰتُ رَبِّيْ وَلَوْ جِئْنَا بِمِثْلِهٖ مَدَدًا۞﴾ ([2])يعنى که دټولو سمندرونو سياهى ملاوشى اودې سره د الله ﷻ کلمات ليکل شروع شى نودا سياهى به ټوله ختمه شى اود الله ﷻ کلمات به باقى پاتې شى. سره ددې که تاسو د دې د امدادد پاره داسې نورهم راوړنى([3])عکرمه ﷺ د يهوديانويه دې سوال باندې ددې آيت نازليدل اود هغوى په مکروه قول باندې دويم آيت ﴿ وَلَوْ اَنَّ مَا فِي الْاَرْضِ مِنْ شَجَرَةٍ اَقْلَامٌ وَّالْبَحْرُ يَمُدُّهٗ مِنْۢ بَعْدِهٖ سَبْعَةُ اَبْحُرٍ مَّا نَفِدَتْ كَلِمٰتُ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ۞﴾ ([4]) نازلول بيان کړى دى. يعنى د مخ د زمکې د ونوقلمونه اود مخ د زمکې د سمندرونو سياهى اوچه دې سره سره داسې نور سمندرونه هم وى خوبياهم دالله ﷻ کلمات پوره کيدې نه شى. په دې کښې شک نشته چه د تورات علم کوم چه د دوزخ نه بچ کونکې دې لوئ څيز دې خود الله ﷻ د علم په مقابله کښې ډير لږ څيز دې. ([5])

امام محمدبن اسحاق ﷺ ذکر کړى دې چه په مکه کښې دا آيت نازل شوې دې چه تاسو ته ډير لږ علم درکړې شوې دې. کله چه حضورﷺ هجرت اوکړو مدينې ته لاړو نود مدينې يهوديان عالمان حضورﷺ له راغله او وئې ونيل چه مونږ اوريدلى دى تاسو داسې وائې چه تاسوته ډير کم علم درکړې شوې دې دې نه مراد ستاسوقوم دې که مونږ؟ حضورﷺ اوفرمائيل چه تاسو هم اوهغوى هم. هغوى ونيل واوره

[1]) صحيح بخارى کتاب التفسير سورة بنى اسرائيل باب ﴿ ويسئلونك عن الروح....﴾:٤٧٢١، صحيح مسلم:٢٧٩٤.
[2]) ١٨/الکهف:١٠٩.
[3]) ترمذى کتاب تفسير القرآن باب ومن سورة بنى اسرائيل:٣١٤٠ وسنده صحيح، احمد:٢٥٥/١، مسندابى يعلى:٢٥٠١.
[4]) ٣١/لقمان:٢٧.
[5]) الطبرى:٥٤٢/١٧.

ته ېخپله قران لولې چه مونږ ته تورات ملاوشوې دې اوداهم په قران پاك كښې دی چه په دې كښې د هرخيز علم دې. رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه د الله ﷻ د علم په مقابله كښې داهم ډير كم دې. اوبې شكه تاسو ته الله ﷻ دومره علم دركړې دې كه تاسوپدې باندې عمل اوكړونوتاسو ته به ډيره نفع دركړی اودا آيت نازل شو ﴿وَلَوْ أَنَّمَا فِي الْأَرْضِ مِن شَجَرَةٍ أَقْلَامٌ وَالْبَحْرُ يَمُدُّهُ مِن بَعْدِهِ سَبْعَةُ أَبْحُرٍ مَّا نَفِدَتْ كَلِمَاتُ اللَّهِ ۗ إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ﴾ ([1])

دحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه نقل دی چه يهوديانود حضور ﷺ نه دروح باره كښې سوال اوكړوچه دې سره بدن ته ولې عذاب وركولې شي؟هغه خودالله ﷻ د طرف نه دې. دې باره كښې په حضور ﷺ باندې وحی نه وه نازل شوې حضور ﷺ هغوی ته څه اوفرمائيل نو هم دې وخت كښې حضرت جبرائيل عليه السلام تشريف راوړو اودا آيت ئې نازل كړو.دې اوريدو سره يهوديانووئيل تاته ددې خبرچادركړو؟حضور ﷺ اوفرمائيل جبرائيل عليه السلام د الله ﷻ د طرف نه دا فرمان راوړو. هغوی وئيل هغه خوزمونږ دښمن دې. په دې باندې دا آيت ﴿قُلْ مَن كَانَ عَدُوًّا لِّجِبْرِيلَ فَإِنَّهُ نَزَّلَهُ عَلَىٰ قَلْبِكَ بِإِذْنِ اللَّهِ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ وَهُدًى وَبُشْرَىٰ لِلْمُؤْمِنِينَ﴾ ([2])نازل شو يعنی د جبرائيل عليه السلام دښمن الله ﷻ دښمن دې اوداسې سړې كافردې. ([3])

**د روح متعلق اقوال:**-يوقول دا هم دې چه دلته د روح نه مراد حضرت جبرائيل عليه السلام دې.يوقول داهم دې چه دې نه مراد يوداسې عظيم الشان فرښته ده چه د ټول مخلوق برابر ده يوحديث كښې دی چه د الله ﷻ يوه فرښته داسې هم ده كه هغه ته اووه واړه آسمانونه او اووه واړه زمكې يوه نوړئی كول اووئيلې شی نو هغه به ئې جوړكړی. د هغې تسبيح دا دی(سبحانك حيث كنت)ياالله ته پاك ئې چرته چه هم ئې. دا حديث غريب دې بلكه منكر دې. د حضرت علی رضي الله عنه نه روايت دې چه دا يوه فرښته ده د كومې چه اويا زره خُلې دی او په هره خُله كښې اويا زره ژبې دی او په هره يوه ژبه باندې اويا زره لغته دی هغه به دې ټولو ژبو باندې په هرقسم ژبه كښې د الله ﷻ تسبيح كوی. د هغې د هرې يوې تسبيح نه الله ﷻ يوه فرښته پيداكوی چه د نورو فرښتو سره د الله ﷻ په عبادت كښې د قيامت پورې لګياوی. دا اثر هم عجيبه او غريب دې. والله اعلم.

د سهيلی په روايت كښې دی چه د هغې يولاكه سرونه دی او په هريوسر كښې يولاكه خُلې دی او په هره خُله كښې يو لاكه ژبې دی. په كومو سره چه په مختلفو ژبوكښې دالله ﷻ پاكی بيانوی. دا هم وئيلې شوی دی چه دې نه مراد د فرښتو هغه ډله ده كوم چه په انسانی صورت كښې دی. يوقول داهم دې چه دا هغه فرښتې دی چه نورو فرښتو ته خو هغوی ګورې ولې نورې دوی ته نه ګوری نو هغوی د فرښتودپاره بس داسې دی لكه زمونږ د پاره دا فرښتې.

**د روح حقيقت صرف الله ﷻ ته معلوم دې:**-بيافرمائی چه دوی ته جواب وركړه روح د الله ﷻ امر دې يعنی د هغه د شان نه دې. د دې علم صرف هغه ته دې تاسو كښې چاته هم نشته. تاسو سره چه كوم علم دې هغه هم د الله ﷻ دركړې شوې دې. نو هغه خو ډير كم دې مخلوق ته خو صرف هم هغه معلوم دی كوم چه ورته هغه معلوم كړی دی.د خضر عليه السلام او حضرت موسی عليه السلام په قصه كښې راروان دی چه كله دا دواړه بزرګان په كشتئی كښې سوريدل هغه وخت يوه مرغئی د كشتئ په تخته باندې كيناسته او خپل مښوكه ئې په اوبوباندې لمده كړه اولاړه. نو حضرت خضر عليه السلام اوفرمائيل اې موسی عليه السلام زما ستا اود ټول مخلوق علم د الله ﷻ د علم په مقابله كښې دومره دې خومره چه دې مرغئی د سمندر نه اوبه يوړې والوته. (اوكماقال)

---

[1] ٣١/لقمان:٢٧.

[2] ٢/البقره:٩٧.

[3] الطبری:١٧/٥٤٢.

د سهیلي په قول بعضې خلق وائي چه د هغوی د سوال کولو جواب ئې ورنه کړوځکه چه د هغوی سوال کول د ضد اونه منلو په توګه وو. داهم ونیلي شوي دي چه جواب ئې اوشو. مطلب دا چه روح د الله ﷻ د شریعت نه دې تاسو له په دې کښې نه دی تلل پکار تاسو ته پته ده چه د دې د پیژندګلو څه طبعي او فلسفي لار نشته بلکه هغه د شریعت د طرف نه دې نوتاسو شریعت قبول کړئ خو مونږ له خودا طریقه د خطرې نه خالي نه ښکاري. والله اعلم.

**روح کښې د علماء کرامو اختلاف دې:-** بیاسهیلي د علماو اختلاف بیان کړې دې چه روح نفس دې یاد دې نه سوا ئې نوره داخبره ثابته کړې ده چه روح په بدن کښې په مثال دهوا جاري دې. اوډیر لطیف څیز دې لکه چه د ونو په رګونوکښې اوبه پورته خیژي. اوکوم روح چه فرښته د مور په خیټه کښې په ماشوم کښې پوك وهي هغه بدن سره ملاویدلو کښې نفس جوړیږي اود کوم په مدد سره چه هغه ښه اوبد صفتونه په خپل ځان کښې حاصلوي. یاخو الله ﷻ سره مطمئن کیدونکې جوړشي یاد بدو حکم کونکې جوړشي. مثلاً اوبه د ونو ژوند دې. د دې ونې سره ملاویدلوکښې هغه په ځان کښې یو خاص خبره پیداکوي. انګورپیداشو بیا ئې د دې نه اوبه اوویستلې یاترې شراب جوړکړې شو نو هغه اصلي اوبه چه په کوم صورت کښې راغلې اوس هغې ته اصلي اوبه نه شي ونیلې. دغه شان اوس د بدن د یوځائ کیدو نه پس روح ته اعلی روح نه شي ونیلې. دغه شان دې ته نفس هم نه شي ونیلې دا وینا کوم هم انجام ته د رسولو په توګه ده. د کلام حاصل دا شو چه روح د نفس اومادې اصل دې اونفس د دې نه اود دې بدن سره ملاویدلو نه مرکب دې نو روح نفس دې خو په یوه وجه سره نه چه په ټولو وجو سره، داخبرد خو زړه ته لګي خود حقیت علم صرف الله ﷻ ته دې[1]خلقو د دې باره کښې ډیر کلام کړې دې او لوئ لوئ مستقل کتابونه ئې په دې باندې لیکلي دي. په دې مضمون باندې بهترین کتاب د حافظ ابن منده کتاب الروح دې.

<table>
<tr><td colspan="4">وَلَئِنْ شِئْنَا لَنَذْهَبَنَّ بِالَّذِيٓ</td></tr>
<tr><td colspan="4">| اوکه چرې | اوغواړومونږ | نو وابه خلو | هغه (څیز)</td></tr>
<tr><td colspan="4">اوکه چرې مونږاوغواړو</td></tr>
<tr><td colspan="4">أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ ثُمَّ لَا تَجِدُ لَكَ بِهٖ</td></tr>
<tr><td colspan="4">چې وحی کړې دې مونږ | تاته | بیا به نهٔ مومې ته | دپاره دځان خپل | په هغه څیز باندې|</td></tr>
<tr><td colspan="4">نوکومه وحی چې مو تاته درکړې ده هغه به درنه واپس کړو بیا به درته د دې پحقله زمونږ</td></tr>
<tr><td colspan="4">عَلَيْنَا وَكِيلًا ﴿٨٦﴾ إِلَّا رَحْمَةً مِّن رَّبِّكَ ط</td></tr>
<tr><td colspan="4">په مقابله زمونږکښې|څوك مددګار| مګرڅه چې ملاودی تاته|په وجه درحمت دې|دطرفه درب ستانه</td></tr>
<tr><td colspan="4">په مقابله کښې هیڅوك مددګار پیدانشي خو دا په تاباندې دخپل رب ډیري لوئي رحم دې</td></tr>
<tr><td colspan="4">إِنَّ فَضْلَهٗ كَانَ عَلَيْكَ كَبِيرًا ﴿٨٧﴾ قُل لَّئِنِ اجْتَمَعَتِ</td></tr>
<tr><td colspan="4">حقیقت دادې چې فضل دهغه| دې | په تاباندې| ډیر لوئ| ورته اووایه | که چرې | راجمع شي</td></tr>
<tr><td colspan="4">(چې تاته ئې وحی کړې ده) بیشکه په تادهغه فضل ډیر لوئي دې(ائې نبي ﷺ) ته اووایه که ټول</td></tr>
</table>

[1]) الطبری:١٧/٥٤٣.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| الْإِنْسُ | وَالْجِنُّ | عَلَىٰٓ أَنْ | يَّأْتُوْا | بِمِثْلِ | هٰذَا الْقُرْاٰنِ | لَا يَأْتُوْنَ | |
| ټول انسانان | او پیریان | په دې کارباند | چې راوړي | پشان | ددې قرآن | نو رابه نوړي | |

بنیادم او پیریان رایوځائي شي چې ددې قرآن پاک پشان یو بل قرآن جوړ کړي نو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بِمِثْلِهٖ | وَلَوْ كَانَ | بَعْضُهُمْ | لِبَعْضٍ | ظَهِيْرًا | وَلَقَدْ صَرَّفْنَا |
| پشان ددې | اگر که وي | خیني دهغوئ | دپاره دخینو | مددگاران | او بار بار بیان کړل مونږه |

هیچرې ددې په شان جوړولي نشي اگر که دوئ ټول دیو بل مددگاروی او مونږ خلقو ته

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لِلنَّاسِ | فِيْ هٰذَا الْقُرْاٰنِ | مِنْ كُلِّ مَثَلٍ | فَأَبٰىٓ | أَكْثَرُ النَّاسِ |
| دپاره دخلقو | په دې قرآن کښې | ادهر قسم مثال نه | خوغاړه کینښوده | زیاتوخلقو |

په دې قرآن کښې هر قسم ښه ښه مضمونونه په رنگ رنگ بیان کړي دي خو بیاهم اکثر خلق ترې نه

| | |
|---|---|
| إِلَّا | كُفُوْرًا |
| مگرا په ناشکرئ اوانکارباند | |

بغیر دانکار کولونه پاتي نه شول

قوله تعالى: وَلَئِنْ شِئْنَا لَنَذْهَبَنَّ بِالَّذِيْٓ أَوْحَيْنَا

**قرآن پاک یقیناً معجزه او د الله ﷻ ډیره لویه مهرباني ده:**-الله ﷻ خپل یوزبردست احسان او یولوئی نعمت بیانوی کوم چه هغه په خپل حبیب سرورکائنات حضرت محمدمصطفی ﷺ باندې کړې دې. یعنې په هغوی باندې هغه پاك کتاب نازل کړې دې په کوم کښې چه په یووخت کښې هم د باطل د گډوډکیدل ناممکن دی که هغه اوغواړي نو دا وحی سلب کیدې هم شی.ابن مسعود ؓ فرمائی په آخره زمانه کښې به یوه سره هواچلیږی د شام د طرف نه به دا راوچتیږی هغه وخت به د قرآن پاك د پاڼونه اودحافظانود زړونونه قرآن ختم شی یوټکې به هم باقي پاتې نه شی بیا هغوی د دې آیت [1] تلاوت اوکړو.بیا خپل فضل کرم او احسان بیانوی چه ددې قرآن پاك یوه بزرگی داهم ده چه ټول مخلوق د دې د مقابله کولونه عاجزدې د هیچ چا په وس کښې د دې په شان کلام نشته. څنگه چه الله ﷻ بې مثله بې مثاله او بې شریك دې دغه شان د هغه کلام هم د خپل ځان په شان د کیدونکی کلام نه پاك دې. ابن اسحاق وارد کړی دی یهودیان راغلې وو او هغوی وئیلې وو چه مونږ هم د دې په شان کلام جوړوو راوړو نودا آیت نازل شو خومونږ ته د دې په منلوکښې لږتامل شته څکه چه دا مکی سورت دی اود دې ټول بیان قریښوته دې هم هغوی مخاطب دی اود یهودیانوسره د حضور ﷺ یوځای کیدل په مکه کښې نه دی شوی مدینه کښې هغوی سره یوځایٔ شوی وو. والله اعلم.مونږ په دې پاك کتاب کښې هرقسم دلیلونه بیانولوسره حق واضحه کړلو اوهره خبره ښه په وضاحت سره بیان کړه. سره د دې هم ډیر خلق د حق مخالفت کوی اوحق له دیکې ورکوی اود الله ﷻ په ناشکرئی کښې لگیادی.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَقَالُوْا | لَنْ نُّؤْمِنَ | لَكَ | حَتّٰى |
| اووې وئیل | هرگزایمان نه راوړومونږ | په تا | ترهغې پورې |

اودوئ وائی چې مونږ په تاهیچرې ایمان نه راوړو ترڅو

[1] الطبری:١٧/٥٤٦.

تَفۡجُرَ لَنَا مِنَ الۡاَرۡضِ يَنۡۢبُوۡعًا ﴿۹۰﴾ اَوۡ تَكُوۡنَ لَكَ جَنَّةٌ

چي جاري كړې ته | دپاره زمونږ | د زمكي نه | چينه | ياوي | تالره | يو باغ

چې ته مونږ له دزمكې دتل نه يوه چينه راونه باسې يا ستا د

مِّنۡ نَّخِيۡلٍ وَّعِنَبٍ فَتُفَجِّرَ الۡاَنۡهٰرَ خِلٰلَهَا تَفۡجِيۡرًا ﴿۹۱﴾

دكجورو | اودانګورو | او روان كړې ته | نهرونه په منځ دهغې كنبې | په روانولو سره

كهجورو اوانګورو باغ وى اوته دهغې په مينځ كنبې ځائې په ځائې نهرونه اوبهيوې

اَوۡ تُسۡقِطَ السَّمَآءَ كَمَا زَعَمۡتَ عَلَيۡنَا كِسَفًا اَوۡ تَاۡتِىَ

ياراا وغورزوې ته | اسمان | لكه څنګه چې | ګمان كوې ته | په مونږباند | ټوټې | يارا اولې ته

يا څنګه چې ته وائې چې په مونږ باندې داسمان نه ټكړې راوغورزوې يا

بِاللّٰهِ وَالۡمَلٰٓئِكَةِ قَبِيۡلًا ﴿۹۲﴾ اَوۡ يَكُوۡنَ لَكَ بَيۡتٌ مِّنۡ زُخۡرُفٍ

الله | او فرښتې | مخامخ | يا | وي | تالره | يوكور | د سروزرو

الله ﷻ او فرښتې مونږ ته مخامخ راولې يا داچې د سرو زرو يو كور وى

اَوۡ تَرۡقٰى فِى السَّمَآءِ ؕ وَلَنۡ نُّؤۡمِنَ لِرُقِيِّكَ حَتّٰى

يااوخيژې ته | په اسمان كنبې | اوهرګز ايمان نه راوړومونږ | په ختلوستا | ترهغې پورې

يا دا چې ته بره اسمان ته اوخيژې او مونږ به ستا اسمان ته ختل هم نه منو

حَتّٰى تُنَزِّلَ عَلَيۡنَا كِتٰبًا نَّقۡرَؤُهٗ ؕ قُلۡ سُبۡحَانَ رَبِّىۡ

چې نازل كړې ته | په مونږ باند | يو كتاب | چې اولولو مونږ هغه | اورته اووايه | پاك دى | رب زما

ترڅو چې ته په مونږ يو كتاب راونه ليږې كوم چې مونږ اولولو ته ورته اووايه چې زما رب پاك دې

هَلۡ كُنۡتُ اِلَّا بَشَرًا رَّسُوۡلًا ﴿۹۳﴾

نه يم زه | مګر | يو انسان | پيغام راوړونكي يم

زه خو صرف يو پيغام رسوونكې انسان يم

**قوله تعالى:- وَقَالُوۡا لَنۡ نُّؤۡمِنَ لَكَ**

**دمشركانو عجيبه غوښتنې او درسول كريم ﷺ جوابونه:**-حضرت ابن عباس ﷠ فرمائى چه د ربيعه دواړه خامن عتبه او شيبه او ابوسفيان بن حرب او د بنى عبدالدار قبيلې دوه سړى اوابوالبخترى بن اسد او اسودبن مطلب بن اسد او زمعه بن اسود او وليدبن مغيره ابوجهل بن هشام عبدالله بن ابى اميه بن خلف او عاص بن وائل او نبيه او منبه سهمى دحجاج خامن دا ټول يا د دوى نه څه كسان د نمر د ډوبيدونه پس د كعبة الله نه شاته راجمع شو او وئى وئيل ځوك اوليګئى اومحمد ﷺ راوغواړئى او هغه ته اووائې چه نن فيصله كوو چه بيا څه عذر پاتې نه شى. قاصد لاړو او خبرئى وركړوچه ستاسو د قوم شريفان خلق راجمع شوى دى اوتاسو ئى يادكړى ئى.دحضور ﷺ به هروخت د دې خلقو خيال وو نود حضور ﷺ په زړه كنبې راغله چه ممكن ده الله ﷻ هغوى ته صحيح پوهه وركړې وى او هغوى په نيغه لار راشى نوزر ئى تشريف راوړو. قريشو چه حضور ﷺ اوليدلو نو وئى وئيل واوره نن مونږ په تاباندې

حجت پوره کوودې د پاره چه په مونږ باندې بیاځه قسم الزام رانه شي په دې وجه مونږ ته راوغوښتي والله چابه هم خپل قوم په داسې مصیبت کښې نه وی اچولې کوم مصیبت چه تاپه مونږ باندې راوستلې دې. ته زمونږ پلارانو نیکونوته کنځلې کوې، زمونږ دین ته بد وائې.زمونږ برزګانوته بې وقوفان وائې، زمونږ معبودانو ته بد وائې تا په مونږ کښې جدائي اچولې ده.جنګونه دې راپیدا کړل. والله تامونږ ته د یوې بدئي نه رسولوکښې هیڅ کمې نه دې پریخې. اوس صفاصفا واوره او ښه په سوچ اوفکر سره جواب راکړه. که ستا اراده د دې ټولوخبرونه د مال جمع کول دی نومونږ موجود یو او پخپله به تاته دومره مال راجمع کړو چه ستا برابر به په مونږ کښې یومالدارهم نه وی. اوکه ستا اراده د دې نه داوی چه ته په مونږ باندې سرداری اوکړې نومونږ د دې د پاره هم تیاریو اوستا سرداری منو او ستا تابعداری منظور کوو. که ته د بادشاهت غوښتنه کوې نو په خدائی چه مونږ ستا د بادشاهت اعلان کوو اوکه په حقیقت کښې ستا په دماغوکښې څه فرق وی کوم یوپیرې چه تا تنګوی نو مونږ موجود یو د زړه د اخلاصه به مال دولت خرچ کړو اوستا علاج به اوکړو ترهغه وخته پورې چه تاته شفا حاصله شي یا مونږ مجبوره پاتې شو. د دې ټولو خبرو اوریدو سره د رسولانو سردار او شفیع پیغمبرﷺ جواب ورکړو چه واورئی د الله ﷻ په حکم ماته هیڅ دماغی بیماری نشته یاځه خلل یا غوټه وغیره نه په دې خپل رسالت باندې مالداریدل غواړم نه د سردارئی څه طمع لرم نه بادشاه جوړیدل غواړم بلکه زه الله ﷻ د ټولوطرف ته په حقه سره رسول جوړکړې رالیګلې یم او په ماباندې ئی خپل کتاب نازل کړې دې اوماته ئی حکم راکړې چه زه تاسوته زیری واوروم اوتاسو اوویروم.مادخپل رب پیغامونه تاسوته رسولی ستاسو مې ریښتونې خیرخواهي کړې که تاسوئی قبلوئی نوپه دواړه جهانه کښې به دنصیب خاوندان جوړشئ اوکه نه ئی منظوره وئی نوزه به صبراوکړم ترهغه وخته پورې چه الله ﷻ زما اوستاسو په مینځ کښې ریښتونې فیصله اوکړی.(اوکماقال). اوس د قوم سردارانو اوونیل محمدﷺ که تاته زمونږ په دې خبروکښې یوه هم منظورنه وی نواوس نور هم واوره دا خوتاته پخپله معلومه ده چه زمونږ نه زیات تنګ ښار دچانشته زمونږ نه د ډیرکم مال والا قوم نشته اوډیرزیات خیته خیته یادولوسره ډیر کم رزق حاصلونکې قوم هم نشته. نو ته دخپل رب نه چا چه ته خپل رسول رالیګلې ئی دعا اوکړه چه داغرونه ددې ځاې نه اخواکړی چه زمونږ داعلاقه ارته شي زمونږ ښارونه کولاوشي په دې کښې نهرونه چینې دریابونه روان شي لکه چه په شام اوعراق کښې دی اودا هم دعااوکړه چه زمونږ پلاران نیکونه راژوندی شي اوپه هغوی کښې قصي بن کلاب خامخا وی چه په مونږ کښې یوبزرګ سړې وو مونږ به د هغه نه تپوس اوکړو اوچه ستا باره کښې څه اووائی زمونږ به تسلي اوشي.که چرې تاداسې اوکړه نو زمونږ به ستا په رسالت یقین راشي اومونږ به د زړه نه ستا تصدیق اوکړو اوستاد بزرګئی به منونکی شو. حضورﷺ اوفرمائیل زه دې څیزونو سره نه یم رالیګلې شوې په دې کښې یوکار هم زما د وس نه دې زه خو د الله ﷻ خبرې تاسو ته د رسولود پاره راغلې یم که تاسو قبولې کړې نو په دواړه جهانه کښې به خوشحاله شئ. که نه ئی قبلوئی نو زه به صبراوکړم اود الله ﷻ حکم ته به په انتظار یم ترهغه وخت پورې چه پروردګار عالم تاسو او زما په مینځ کښې فیصله اوکړی. هغوی ونیل چه ښه ده دا هم نه سهی مونږ پخپله ستاد پاره دا تجویزکوو چه ته د الله ﷻ نه دعااوکړه چه هغه یوه فرښته تاله راولیګی چه هغه ستا د خبرو تصدیق اوکړی ستاد طرف نه دې مونږ له جواب راکړی او هغې ته اووایه چه هم ستا دپاره دې باغونه خزانې دسرو اوسپینو زرو محلونه جوړکړی دې دپاره چه پخپله خو ستا حالات ښه شي په بازارونوکښې ګرځیدل زمونږ په شان درزق لټون کښې وتلونه خوخلاص شئ.که چرته داهم اوشي نو مونږ به اومنو چه واقعي الله ﷻ سره ستا عزت شته اوته واقعي د الله ﷻ رسول ئې. د دې په جواب کښې حضورﷺ اوفرمائیل چه نه زه دا کوم اونه د خپل رب نه دا غواړم نه دې سره زه رالیګلې شوې یم زه خو الله ﷻ بشیراونذیر جوړکړې یم بس نورهیڅ هم نه که تاسو ئی منئ نو به

دواړه جهانه کښې به خپله ښیګړه اوکړنی اوکه نه منئی نومه نی منئی زه ګورم چه زما پروردګار ستاسو اوزماپه مینځ کښې څه فیصله کوی. هغوی وئیل چه ښه ده بیامونږ وایوچه لاړشه او خپل پروردګارته اووایه چه په مونږ باندې آسمان راګذار کړه او ته خوداسې وائی هم چه که الله غواړی نو داسې به اوکړی نواوس خو هم مونږ وایوچه نور مهلت مه راکوه. حضورﷺ اوفرمائیل چه دا د الله ﷻ د اختیارخبره ده چه څه غواړی کوی به که نه غواړی نو نه به کوی. مشرکانو وئیل چه الله ﷻ ته دا معلومه نه وه چه دې وخت کښې به مونږ تاسره کینو اوتانه به داخیزونه غواړو اوچه کله مونږ ستا اونه منو نو هغه به مونږ سره څه کوی. واوره مونږ خو اوریدلی دی چه تاته د ټول هرڅه د یمامه یوسړې رحمان نومې ښائی په الله ﷻ قسم مونږ خو په رحمان باندې ایمان نه راوړو دا ناممکن دی چه مونږ هغه اومنو مونږ تانه خلاص یو چه څه مو اوریدل او وئیل هغه مو واوریدل او تا زمونږ واجبی اود انصاف خبرې واونه ریدلې اوس غوړونه کولاوکړه ښه هوښیارشه واوره تا په دې حالت کښې آزاد نه شو پریخودې اوس خو به یا مونږ تا هلاك کوو یا ته مونږ تباه کړه. چا په کښې وئیل چه مونږ خود فرښتو عبادت کوو چه د الله ﷻ لونړه دی چا وئیل چه ترکومې ته الله ﷻ اود هغه فرښتې مونږ له ښه په ښکاره رانه ولې مونږ به ایمان نه راوړو بیا مجلس ختم کړې شو. عبدالله بن ابی، امیه بن مغیره بن عبدالله بن مخزوم چه د حضورﷺ د ترور عاتکه رضي الله عنها بنت عبدالمطلب خوئ وو حضورﷺ سره شو او وئی وئیل چه داخوډیره د بې انصافئی خبره ده چه قوم څه اووئیل هغه هم تامنظور نه کړل بیائی چه څه اوغوښتل هغه هم تا پوره نه کړل بیا چه د کوم څیز نه تا هغوی ویرول هغه نی اوغوښتل نو هغه هم تا اونه کړل. اوس خو به زه د الله ﷻ قسم په تاباندې ایمان راونړم ترکومې چه ته یوه پاوړنی اونه لګوې او د آسمان نه څه کتاب راونړئی او څلور فرښتې خپل خان سره ګواه رانه ولې. حضورﷺ په دې خبرو باندې ډیر زیات خفه شو په دې شوق سره راغلې وو چه کیدې شی د قوم سرداران زما څه خبره اومنی خو چه کله د هغوی سرکشئی اود ایمان نه لریوالې نی اولیدو نوډیر زیات خفه شو اوخپل کورته واپس لاړو([1])

**د مشرکانو دا ټولې پوښتنې په بغض اوعناد منبی وې:-** خبره داده چه د هغوی داټولې خبرې دکفرعناد او د حضورﷺ دښکته کولو په توګه اوبې جوابه کولو دپاره وې ګنی که دایمان راوړلودپاره نی په نیك نیتئی سره داسوالونه وې نوډیر ممکن ووچه الله ﷻ هغوی ته دامعجزې خودلې وې.حضورﷺ ته اوفرمائیلې شو چه که ستاسودا غوښتنه وی کوم چه دوی غواړی نوزه به ئی اوښایم خودا یادساته که بیائی هم ایمان راونړلو نوهغوی ته به هغه عبرت ورکونکې سزاګانې ورکړم چه بل چاته به نه وی ورکړې شوی. اوکه ته غواړې نو زه به د هغوی د پاره د توبه د قبلیدو او رحمت دروازه کولاواوساتم نو حضورﷺ دویمه خبره خوښه کړه([2])الله ﷻ دې پخپل نبی رحمت او نبی توبه باندې درود اوسلام ډیر ډیر نازل کړی هم د دې خبرې اود دې حکمت ذکر په دې آیت ﴿وَمَا مَنَعَنَآ أَن نُّرْسِلَ بِالْآيَاتِ إِلَّآ أَن كَذَّبَ بِهَا الْأَوَّلُونَ ۚ وَآتَيْنَا ثَمُودَ النَّاقَةَ مُبْصِرَةً فَظَلَمُوا بِهَا ۚ وَمَا نُرْسِلُ بِالْآيَاتِ إِلَّا تَخْوِيفًا﴾([3])اوآیت ﴿وَقَالُوا مَالِ هَٰذَا الرَّسُولِ يَأْكُلُ الطَّعَامَ وَيَمْشِي فِي الْأَسْوَاقِ ۙ لَوْلَا أُنزِلَ إِلَيْهِ مَلَكٌ فَيَكُونَ مَعَهُ نَذِيرًا﴾([4]).کښې هم دې چه داټول څیزونه زمونږ په قدرت کښې دی اودا ټول ممکن دی خود دې وجه نه چه د هغې د ښکاره کیدونه پس ایمان نه راوړونکی بیامونږ نه پریږدو. مونږ

---

[1] الطبری:١٧/٥٥٧.

[2] احمد:١/٢٤٢ مسندعبدبن حمید:٧٠٠، دلائل النبوة:٢/٢٧٢ وهوحدیث صحیح.

[3] ١٧/بنی اسرائیل:٥٩.

[4] ٢٥/الفرقان:٧

دا نښې رامنع کړې دی اودې کافرانو ته مو مهلت ورکړې دې اود هغوی اخری ځایٔ مو دوزخ جوړکړې دی. نود هغوی سوال وو چه د عربو په شکوکښې دې نهرونه روان شی دریابونه راوخوټکیږی وغیره. ښکاره خبره ده چه په دې کښې یوکار هم په هغه قادر اوقیوم الله ﷻ باندې ګران نه وو ټول هرڅه د هغه د قدرت لاندې اود هغه د حکم لاندې دی خوهغه ښه پیژنی چه دا ازلی کافران د معجزو په کتوسره هم ایمان نه راوړی لکه چه ارشاددې ﴿إِنَّ الَّذِينَ حَقَّتْ عَلَيْهِمْ كَلِمَةُ رَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ﴾([1])یعنی په چاباندې چه ستا د رب دا خبره ثابته شوې ده هغوی ته سره دټولومعجزود کتلوهم ایمان نه نصیب کیږی تردې چه هغوی د سختوعذابونو کتل اونه کړی ﴿وَلَوْ أَنَّنَا نَزَّلْنَا إِلَيْهِمُ الْمَلَائِكَةَ وَكَلَّمَهُمُ الْمَوْتَىٰ وَحَشَرْنَا عَلَيْهِمْ كُلَّ شَيْءٍ قُبُلًا مَا كَانُوا لِيُؤْمِنُوا إِلَّا أَنْ يَشَاءَ اللَّهُ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ يَجْهَلُونَ﴾([2])کښې فرمائی ای نبیﷺ ددوی دخواهش مطابق که مونږبه دوی باندې فرښتې هم نازل کړو اومړی هم دوی سره خبرې اوکړی اودا هم نه که د غیبو ټول څیزونه دوی ته ښه ښکاره مخامخ کړې شی نو بیاهم دا کافران بغیرد الله ﷻ د رضا نه ایمان راوړونکی نه دی دوی کښې اکثر د جهالت ښکلونه دی. د خپل ځان د پاره دریاب غوښتلونه پس هغوی اووئیل چه ښه ده ستاد پاره باغونه اونهرونه دې اوبهیږی بیانی اووئیل چه ښه ده دا هم نه سهی ته خووائې چه د قیامت په ورځ به آسمان شلیږی ټکړې ټکړې کیږی به نو ته هم نن په مونږ باندې د هغه ټکړې راګذار کړه اوهغوی پخپله هم د الله تعای نه دا دعااوکړه چه یاالله که دا هرڅه هم ستا د طرف نه په حقه دی نو په مونږ باندې د آسمان نه کاڼړی راووره وه. الخ. ([3])

د شعیب ﷺ قوم هم داخواهش کړې وود کوم په وجه چه په هغوی باندې د سائبان د ورځې عذاب نازل شو. زمونږ نبی کریم ﷺ رحمة للعالمین وو اونبی التوبه وو حضورﷺ د الله ﷻ نه دعااوکړه چه هغوی د هلاکت نه بچ کړی ممکن ده که دوی نه وی نود دوی اولاد به ایمان قبول کړی توحید به اختیارکړی اوشرك به پریږدی.دحضورﷺدا خواهش پوره شو عذاب نازل نه شوپخپله هم په هغوی کښې ډیرو ته د ایمان دولت نصیب شو تردې چه عبدالله بن ابی امیه چا چه په آخره کښې حضورﷺ ته خبرې اورولې وې اود ایمان نه راوړو قسم ئې خوړلې وو هغه هم د اسلام د جهنډې لاندې راغلوﷺ. د زخرف نه مراد سره زر دی([4])بلکه د ابن مسعودﷺ په قراءت کښې لفظ ﴿من ذهب﴾ دې([5])د کافرانو یود غوښتنه دا وه چه ستادې د سروزرو کور وی یا زمونږ د سترګو په وړاندې ته پاوړئی اولګوې آسمان ته اورسې اود هغه ځایٔ نه یوکتاب راوړې چه د هر یود نوم جدا جدا وی. هم په شپه شپه د هغوی سر ته دا پرچې راورسی او په هغې باندې د دوی نومونه لیکلې وی.د دې په جواب کښې حکم اوشوچه دوی ته اووایه چه د الله سبحانه وتعالی په وړاندې د هیڅ چا څه هم نه چلیږی.هغه دخپل سلطنت او مملکت ځان له مالك دې چه څه غواړی کوی چه څه نه غواړی نه کوی ستاسو د خُلې غوښتلې شوې څیز ښکاره کړی که نه داد هغه د اختیارخبره ده زه خو صرف د الله ﷻ پیغام رسونکې رسول یم ما خپل فرض اداکړل یادالله ﷻ احکام مې تاسو ته دراورسول اوس چه څه تاسو غوښتې هغه د الله ﷻ د قدرت کاردې نه چه زما د وس. مسنداحمد کښې دی حضورﷺ فرمائی د بطحامکه بابت ماته اوفرمائیلې شو که ته غواړې نودا زه د سرو زرو جوړکړم؟ ماوئیل نه یاالله زما خوداخواهش دې چه یوه ورځ په خیټه موړ یم اودویمه ورځ وګې یم په ولګه کښې تاته تیټ شم. تضرع او زاری اوکړم او په کثرت سره ستا یاد اوکړم. که په

---

[1]) ١٠/یونس:٩٦-٩٧.

[2]) ٦/الانعام:١١١.

[3]) سورة انفال.

[4]) الطبری:٥٥٣/١٧.

[5]) الطبری:٥٥٣/١٧

مړه خیټه شم نو چه ستا حمداوکړم اوستا شکر په ځای راوړم. (١)په ترمذی کښې هم داحدیث شته دې اوامام ترمذي رحمه الله دې ته ضعیف ونیلي دې.

وَمَا مَنَعَ النَّاسَ أَنْ يُؤْمِنُوْا

او منع نه کړل | خلقو لره | چې ایمان راوړي

اودوئ څه بلې غښې خبرې دایمان نه راوړلو نه منع نه کړه

إِذْ جَآءَهُمُ الْهُدٰى إِلَّا أَنْ قَالُوْا أَبَعَثَ اللّٰهُ

کله چې | راغې هغوئ ته | هدایت | مګردې خبرې | چې اووئیل هغوئ | آیاراوليږلو | الله

څه وخت چې هدایت ورته راغلو خو بس دې خبرې چې دوئ اووئیل آیاالله ﷻ

بَشَرًا رَّسُوْلًا قُلْ لَّوْ كَانَ فِي الْأَرْضِ مَلٰٓئِكَةٌ يَّمْشُوْنَ

یوانسان | رسول | ورته اووایه | که چرې وې | په زمکه کښې | فرښتې | چې ګرځیدلې

یوبنیادم پیغمبر راولیږلو؟ ته ورته اووایه چې که په زمکه باندفرښتې ګرځیدلې

مُطْمَئِنِّيْنَ لَنَزَّلْنَا عَلَيْهِمْ مِّنَ السَّمَآءِ مَلَكًا

په اطمینان سره | نوخامخابه مونږ نازل کړې وه | په دوئ باندې | دآسمان نه | یوه فرښته

اوارام سره اوسیدلې نو مونږ به ضرور فرښته رسول

رَّسُوْلًا قُلْ كَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًا بَيْنِيْ وَبَيْنَكُمْ

په حیثیت درسول | اووایه | کافي دې | الله | په حیثیت دګواه | په منځ زما | او په منځ ستاسو کښې

راکوز کړې وو ته ورته اووایه چې زما اوستاسو ترمینځه الله ﷻ دګواهئ دپاره کافی دې

إِنَّهٗ كَانَ بِعِبَادِهٖ خَبِيْرًا بَصِيْرًا

بیشکه هغه(الله) | دې | په بندګانو خپلو | خبردارا | لیدونکې |

الله ﷻ دخپلو بندګانو په حال ښه خبر دې هرڅه وینی ګوری څوک چې

**قوله تعالى:- وَمَا مَنَعَ النَّاسَ أَنْ يُؤْمِنُوْا**

**اکثروخلقو دپیغمبر د بشرکیدو په وجه ایمان راوړلو:-** اکثرخلق دایمان نه اودرسولانو د تابعدارئی نه په دې وجه منع شوچه دهغوی په پوهه کښې دارانغله چه یوانسان هم رسول جوړیدې شی هغوی په دې باندې ډیرزیات حیران شواوآخرئی انکاراوکړواوصفائی اووئیل چه آیایوانسان به زمونږلارخودنه کوی؟ فرعون اود هغه قوم هم دا ونیلي وو چه مونږ دخپل خان په شان په دوو انسانانو باندې ایمان څنګه راوړوخاص کر په داسې صورت کښې چه دهغوی ټول قوم زمونږ ماتحت وی.دوی اونورو امتونو په خپله زمانه کښې نبیانو ته ونیلي ووچه تاسوخو هم زمونږ په شان انسانان ئی دې نه علاوه هیڅ نه ئی تاسومونږ دخپل مشرانود خدایانونه دهوکه کونی.ښه ده راوړه یوه زبردسته غلبه پیش کړه.نورهم د دې مضمون آیاتونه شته.

**د پیغمبر بشریت په انسانیت باندې د الله ﷻ یولوئ احسان دې:-** دې نه پس الله ﷻ خپل لطف اوکرم اود

---

(١) ترمذی کتاب الزهد باب ماجاء فی الكفاف والصبرعليه:٢٣٤٧.

انسانانونه د رسول ليکلو وجه بيان فرمائي اودا حکمت ظاهره وی که چرې فرښتود رسالت دا کار پوره کولې نونه تاسو هغوی سره کيناستې شوئی اونه تاسو د هغوی خبرو باندې پوره پوهيدې شوئی. انساني رسول خو هم ستاسودجنس نه وی تاسو هغوی سره ملاويدې راملاويدې شئی د هغوی عادتو نه اوطريقې ليدلې شئی او په يوځائ کيدوسره دهغه نه په خپله ژبه کښې تعليم حاصلولې شئی. د هغوی په عمل ليدوباندې پخپله زده کولې شئی لکه چه ارشاد دې ﴿لَقَدۡ مَنَّ اللّٰهُ عَلَى الۡمُؤۡمِنِيۡنَ اِذۡ بَعَثَ فِيۡهِمۡ رَسُوۡلًا مِّنۡ اَنۡفُسِهِمۡ يَتۡلُوۡا عَلَيۡهِمۡ اٰيٰتِهٖ وَيُزَكِّيۡهِمۡ وَيُعَلِّمُهُمُ الۡكِتٰبَ وَالۡحِكۡمَةَ ۚ وَاِنۡ كَانُوۡا مِنۡ قَبۡلُ لَفِىۡ ضَلٰلٍ مُّبِيۡنٍ﴾([1]) بل آيت کښې دی﴿ لَقَدۡ جَآءَكُمۡ رَسُوۡلٌ مِّنۡ اَنۡفُسِكُمۡ عَزِيۡزٌ عَلَيۡهِ مَا عَنِتُّمۡ حَرِيۡصٌ عَلَيۡكُمۡ بِالۡمُؤۡمِنِيۡنَ رَءُوۡفٌ رَّحِيۡمٌ﴾([2])په يوبل آيت کښې دی ﴿كَمَاۤ اَرۡسَلۡنَا فِيۡكُمۡ رَسُوۡلًا مِّنۡكُمۡ يَتۡلُوۡا عَلَيۡكُمۡ اٰيٰتِنَا وَيُزَكِّيۡكُمۡ وَيُعَلِّمُكُمُ الۡكِتٰبَ وَالۡحِكۡمَةَ وَيُعَلِّمُكُمۡ مَّا لَمۡ تَكُوۡنُوۡا تَعۡلَمُوۡنَ﴾([3]) مطلب د ټولوهم دا دې چه داخود الله ﷻ يوزبردست احسان دې چه هغه هم تاسو نه خپل رسول راوليږی چه هغوی د الله ﷻ آياتونه تاسو ته تلاوت کړی ستاسو پاکوالې اوکړی اوتاسوته کتاب اوحکمت اوښائی اود کومو څيزونو چه تاسو ناخبره وئی په هغې تاسو عالمان کړی. نو تاسو له زما يادول ډير په کاردی دې د پاره چه زه هم تاسو يادکړم. تاسو له زما شکر کول پکار دی اوزما د ناشکرئی نه بچ کيدل پکاردی. دلته فرمائی که چرته د زمکې آبادی د فرښتو وه نو بې شکه مونږ به يوه آسماني فرښته هغوی کښې رسول جوړکړې ليګلې وو.تاسو پخپله انسانان ئی نو مونږ هم په دې مصلحت تاسو انسانانو نه رسول جوړ کړو او تاسو ته مو اوليګلو.

**د پيغمبرانو عليهم السلام د ټولولونه لوئی ګواه هم الله ﷻ پخپله دې**:په خپل صداقت باندې زه نور ګواهان ولې اولټوم؟ هم د الله ﷻ ګواهي کافي ده.که زه د هغه په پاک ذات باندې تهمت اولګوم نو هغه به پخپله ما نه انتقام واخلی.دقرآن پاک په سورت الحاقة کښې بيان دې که چرې داپيغمبر يوه خبره په زبردستئی سره زمونږ په سر راتپله نو مونږ به د ده ښې لاس نيولې وو اود هغه نه به مود سټ کټ کړې وو او مونږ به دې نه چا هم نه وو رابندکړې.([4]) بيا فرمائی چه د يوبنده حال د الله ﷻ نه پټ نه دې هغه د احسان او انعام هدايت او مهرباني قابل خلق اود ګمراهئی او بدبختئی قابل خلق ښه پيژنی.

| وَمَنۡ | يَّهۡدِ | | | |
|---|---|---|---|---|
| او چاته چې | لاره اوښائی | | | |
| | څوک چې | | | |
| اللّٰهُ | فَهُوَ | الۡمُهۡتَدِ ۚ | وَمَنۡ يُّضۡلِلۡ | فَلَنۡ تَجِدَ |
| الله | نوهغه | هدايت موندونکې دې | اوڅوک چې ګمراهه کړی هغه | نوهرګزبه ته بيانهٔ مومې |
| الله ﷻ په سمه لار روان کړی نوهغه سمه لار بيا مومی او څوک چې بې لارې کړی نو هيڅوک به | | | | |
| لَهُمۡ | اَوۡلِيَآءَ | مِنۡ دُوۡنِهٖ ؕ | وَنَحۡشُرُهُمۡ | يَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ |
| دپاره د هغوئ | دوستان | ماسوا دهغه نه | او راجمع به کړو مونږ هغوئ لره | په ورځ دقيامت |
| دالله ﷻ نه بغير دهغوئ مددګار بيانه مومې اومونږ به دوئ دقيامت په ورځ پرمخې | | | | |

[1] ٣/آل عمران:١٦٤،
[2] ٩/التوبة:١٢٨.
[3] ٢/البقرة:١٥١.
[4] ٢٩/الحاقة:٤٤-٤٦.

عَلٰى وُجُوۡهِهِمۡ عُمۡيًا وَّبُكۡمًا وَّصُمًّا ؕ مَاۡوٰٮهُمۡ جَهَنَّمُ ؕ

په مخونو دهغوئ باندا رانده | اوګونګيان | او کانړه | خاني دهغوئ | دوزخ دي

رانده ، ګونګيان ، اوکانړه راپاڅوو ددوئ ټيکاونړه جهنم ده

كُلَّمَا خَبَتۡ زِدۡنٰهُمۡ سَعِيۡرًا ﴿۹۷﴾ ذٰلِكَ جَزَآؤُهُمۡ

هركله چي | كمي شي لمبي ددوزخ | زيات به كړو هغوئ ته مونږ | اور | دا بدله دهغوئ ده

اوهركله چي دهغي لمبي په كميدو راشي نو مونږ به ئي نوري زياتي غرغرندي كړو دادهغوئ سزاده

بِاَنَّهُمۡ كَفَرُوۡا بِاٰيٰتِنَا وَقَالُوۡۤا ءَاِذَا كُنَّا عِظَامًا

په سبب ددې چي هغوئ | انكاراوكړو | دايتونوزمونږنه | اووې وئيل | اياهركله چي | شومونږه | هډوكي

خكه چي هغوئ زمونږ دايتونو نه انكار كړي وو اودا بهٔ ئي وئيل چي هركله مونږ هډوكي

وَّرُفَاتًا ءَاِنَّا لَمَبۡعُوۡثُوۡنَ خَلۡقًا جَدِيۡدًا ﴿۹۸﴾ اَوَلَمۡ يَرَوۡا

اوخاوري ذره ذره | اياموږ به بيا | خامخاراپورته كړي كيږو | په پيداوښت | نوي سره | اياڼه ويني دوئ

اوريزه ريزه شو نو ايا بيا به دنوي سره راپيدا كيږو ايادوئ دي خبري ته نه ګوري

اَنَّ اللّٰهَ الَّذِىۡ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضَ قَادِرٌ عَلٰٓى

چي بيشكه الله | هغه | چي پيدا كړي ني دى | آسمانونه | او زمكه | قادردي | په دې باندا

چي هغه الله ﷻ تول آسمانونه اوزمكه پيدا كړي دى په دې هم قادر دي

اَنۡ يَّخۡلُقَ مِثۡلَهُمۡ وَجَعَلَ لَهُمۡ اَجَلًا لَّا رَيۡبَ

چي پيدا كړي | مثل ددوئ | اوهغه مقرركړي دي | دپاره ددوئ | يووخت | چي نشته شك |

چي ددوئ غوندي خلق پيدا كړي هغه دوئ له يوه نيته مقرر كړي ده چي هيڅ شك په

فِيۡهِ ؕ فَاَبَى الظّٰلِمُوۡنَ اِلَّا كُفُوۡرًا ﴿۹۹﴾

په هغې كښې | نومنع اوكړه | ظالمانو | مګرمنع ني اونهٔ كړه | دانكارنه |

كښي نشته نوظالمانو دانكار نه سوا بل هيڅ قبول نه كړل

**قوله تعالي:-وَمَنۡ يَّهۡدِ اللّٰهُ فَهُوَ الۡمُهۡتَدِ ۚ**

**هدايت كول او ګمراه كول د الله ﷻ اختيار كښي دي:-** الله ﷻ داخبره بيانوى چه په ټول مخلوق كښې د تصرف اختيارصرف هغه ته دې د هغه يوحكم هم روستوكيدې نه شي دهغه لارخودلې شوي څوك بې لارې كولې نه شي.نه دهغه بې لارې كړې شوي څوك په لاركولې شي دهغه ولي اومرشدڅوك هم نه شي جوړيدې. مونږ به هغه پرمخې دقيامت ميدان كښې د محشر ګنړې ته راولو. دحضور ﷺ نه سوال اوكړې

شو چه دا څنګه کيدې شي؟ حضور ﷺ اوفرمائيل چه هغه پښوسره روان کړې دی هغه نی د سرپه طرف هم روانولې شي. داحديث بخاری اومسلم کښې هم دې. (١).

**قيامت کښې به خلق درې قسمه وی:**-مسندکښې دی ابوذر ﷺ اودريدو ونی فرمائيل اې بنی غفار (دقبيلې خلقو)وائی اوقسمونه مه خورنی صادق مصدق پيغمبر ﷺ ماته دا حديث اورولې دې چه خلق به درې قسمه سره کولې شی اومحشرته به راوستلې شي يوفوځ خوبه دخوراك څښاك اغوستلو والا،بو تللو اومنډې وهلووالا يوهغه کوم چه به فرښتې پرمخې راکاږی اود دوزخ مخې ته به نی راجمع کوی. خلقو ونيل دا دود قسمه خو مو په پوهه کښې راغلل خودا تلونکی او منډې وهونکې په پوهه کښې نه راخی. هغوی اوفرمائيل چه په سورلوباندې آفت راشي تردې چه يوانسان به خپل تك شين باغ ورکړی د کجاوې والا اوبنه به اخلې خونه به ملاويږی(٢) دې به هغه وخت نابينا وی ګونګ به وی هيڅ به هم نه اوری. غرض مختلف احوال به وی د ګناهونو په شان به د ګناهونو مطابق راګيروی. په دنياکښې د حق نه ګانړه ړانده او ګونګيان وو نن دسختې محتاجئی په ورځ به ربښتيا ړانده ګانړه او ګونګيان به جوړولې شی.دهغوی د اوسيدوهروخت د تلوراتلو اغوستو سملاستو حصاريدو ځائ دوزخ ګرځولې شوې دې. د هغه ځائ اُورکله چه په سړيدوراغلولمبه کړې شواوسورکړې شو لکه چه ارشاددې ﴿فَذُوقُوا فَلَنْ نَزِيدَكُمْ إِلَّا عَذَابًا﴾(٣)يعنی اوس سزابرداشت کړئی دعذاب نه علاوه بل هيڅ څيز به نه شی زياتولې.

**کافران د بياراژوندی کيدو قائل نه وو:**-ارشاد دې چه پورته د کومو منکرانو د کومې سزاذکر اوشو هغوی هم د دې قابل وو هغوی به زمونږ دليلونه دروغ ګڼړل اود قيامت هډو قائل نه وو او صفا به نی ونيل چه سخا هډوکی کيدو نه پس اود خاورې ذروسره ملاويدونه پس د هلاکت او بربادیدونه پس بيا راژوندی کيدل خود عقل نه بهر خبره ده.نود هغوی په جواب کښې قرآن پاك د هغې يودليل دا پيش کړو چه دهغه زبردست قدرت مالك چه زمکه او آسمان بغيرد څه څيز نه اول ځل بغيرڅه نمونې پيدا کړی دی دچاقدرت چه دا اوچت اولوئ لوئ کولاو اوسخت مخلوق په اول ځل پيداکولونه عاجز نه کړی شو هغه به تاسو په دويم ځل پيداکولو باندې عاجز شی؟دآسمان اوزمکې پيداکول خو ستاسو د پيدا کولونه ډير زيات لوئ دی هغه د دې په پيداکولوکښې ستړې نه شو آيا هغه به د مړو په ژوندی کولو باندې بې قدرته شی؟ آيا د زمکې اوآسمانونو خالق د انسانانو په شان نور پيداکولې نه شی؟ بې شکه کولې شی دهغه صفت دې چه هغه خلاق يعنی پيداکونکې دې هغه عليم دې هغه د قدرتونومالك دې. د کوم څيز متعلق چه اووانی شه نو هغه هم هغه وخت کيږی. د هغه حکم کول د يوڅيز د پيدا کيدو د پاره کافی وافی دې.هغه به د قيامت په ورځ هغوی خامخا په دويم ځل پيداکولوسره قطعاً راپيداکوی. هغه د دوی د دوباره ژوندی کولو اود هغوی د قبرونو نه د راوتلو او اودريدلو وخت مقرر کړې دې هغه وخت به داهرڅه کيږی. د دې ځائ دالږ شان تاخيرصرف د هغه وخت د پوره کولود پاره دې. افسوس د څومره واضحه دليلونو نه پس هم خلق کفر اوضلالت نه پريږدی.

| قُلْ | لَوْ | أَنْتُمْ | تَمْلِكُونَ | خَزَآئِنَ رَحْمَةِ | رَبِّيٓ | إِذًا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دوئ ته اووايه | که چری | تاسو | مالکان وئ | دخزانو درحمت | درب زما | نو بيابه |
| اووايه چې که تاسوزمادرب درحمت دخزانو مالکان شوی وې نوبيا به تاسو | | | | | | |

---

(١) صحيح بخاری کتاب التفسيرسورة الفرقان باب قوله ﴿الذين يحشرون على وجوههم الى جهنم﴾: ٤٧٦٠،صحيح مسلم:٢٨٠٦، احمد:١٦٧/٣، ابن حبان:٧٣٢٣

(٢) نسائی کتاب الجنائز باب البعث:٢٠٨٨ وسنده حسن، احمد:١٦٥/٥، حاکم:٣٦٧/٢.

(٣) ٧٨/النباء:٣.

| قَتُوْرًا | وَكَانَ الْإِنْسَانُ | الْإِنْفَاقِ | خَشْيَةَ | لَّأَمْسَكْتُمْ |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| زړه تنګي | اودي انسان | دخرج کيدونه | ديري | خامخا بندي کړي وي تاسو |
| دهغې دختميدو دويرې نه لاسونه نيولي وو او انسان ډير زړه تنګي دي | | | | |

**قوله تعالى:- قُلْ لَّوْ اَنْتُمْ تَمْلِكُوْنَ**

**الله ﷻ د خزانو مالک يوانسان ولې نه دې جوړ کړې:-** د انساني طبيعت خاصه بيانولې شي که د الله ﷻ د رحمت غونډې نه کميدونکې خيز باندې هم دوى قابض شي نو هلته به هم خپل بخل او زړه تنګى نه پريږدى لکه چه بل آيت کښې ارشاد دې که د ملک د يوې حصې دوى مالکان شي نو چاته به يوه پيسه هم ورنه کړى([1])نودا انساني طبيعت دې اوداده چه چاله دالله ﷻ دطرف نه هدايت ورکړې شى او د خير توفيق ورکړې شى نوهغوى د دې بد خوئى نه نفرت اوکړکه کوى. هغه سخى اود خلقو ښيګړه کونکې وى. انسان ډير سخت تندى کونکې دې اود تکليف په وخت کښې په جنګ باندې اودريږى اود راحت اوخوشحالئى په وخت کښې مخ اړوى اودنورو نه رابنديږى.اومونځ ګذارخلق دې نه خلاص دى([2]) داسې آياتونه په قرآن پاک کښې نور هم ډير دى. د دې نه د الله ﷻ فضل اوکرم د هغه د ښښې او رحم پته هم لګى. د بخارى اومسلم په حديث کښې دى چه د الله ﷻ دواړه لاسونه دى د ورځې او شپې خرچ په دې کښې څه کمې نه راولى د شروع نه واخله تراوسه پورې خرچ هم د هغه خزانو کښې څه کمې رانه وستو.([3])

| فَسْئَلْ | بَيِّنٰتٍ | تِسْعَ اٰيٰتٍ | مُوْسٰى | وَلَقَدْ اٰتَيْنَا |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| نو تپوس اوکړه ته | ښکاره | نهه نښې | موسى ته | اوورکړي وي مونږه |
| اوبيشکه مونږ موسى ﷺ ته نهه څرګنده نخښې ورکړي وې نو بنى اسرائيلو نه | | | | |

| فِرْعَوْنُ | لَهٗ | فَقَالَ | اِذْ جَآءَهُمْ | بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| فرعون | هغه ته | نواووئيل | کله چې راغې (موسى) هغوئ ته | دبنى اسرءيلو نه |
| پوښتنه اوکړه هرکله چې موسى ﷺ دوئ ته راغلو نو فرعون دۀ ته اووئيل | | | | |

| قَالَ | مَسْحُوْرًا | يٰمُوْسٰى | لَاَظُنُّكَ | اِنِّيْ |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| اووئيل موسى | چې په تاجادو شوې دې | اے موسى | خامخا ګمان کوم په تا | چې بيشکه زۀ |
| اني موسى ﷺ ! زما خيال دې چې په تاباندې چا جادو کړي دې (موسى ﷺ) اووئيل | | | | |

| رَبُّ السَّمٰوٰتِ | اِلَّا | هٰٓؤُلَآءِ | مَآ اَنْزَلَ | لَقَدْ عَلِمْتَ |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| رب دآسمانونو | امګر نازلې کړى دى | دانښې | چې نۀ دى نازل کړي | معلومه ده تاته |
| چې تاته ښه معلومه ده چې دآسمانونو او زمکې دپروردګار نه سوا دا نخښې بل چا نه دى نازلې کړې | | | | |

---

[1] ٤/النساء:٥٣.

[2] ٧٠/المعارج:١٩-٢٢،الخ

[3] صحيح بخارى كتاب التوحيد باب قول الله تعالى (لماخلقت بيدى): ٧٤١١، صحيح مسلم:٩٩٣.

وَالْاَرْضِ بَصَآئِرَۚ وَاِنِّیْ لَاَظُنُّكَ یٰفِرْعَوْنُ مَثْبُوْرًا۝

اودزمکي | ښکاره | نوبیشکه زه | خامخا گمان کوم په تا | اے فرعونه | دهلاك شوی

دا (تاسو دپاره) دپوهې خبرې دي او زه ای فرعونه بیشکه څه خیال کوم چې ته به هلاک شې

فَاَرَادَ اَنْ یَّسْتَفِزَّهُمْ مِّنَ الْاَرْضِ فَاَغْرَقْنٰهُ وَمَنْ

نو اراده اوکړه فرعون | چې اوباسي دوی | د زمکې نه | انو غرق کړو مونږ هغه | اوهغه څوك

فرعون اراده اوکړه چې هغوئ دمصر دملك نه اوباسي نو مونږ هغه اودهغه ټول

مَّعَهٗ جَمِیْعًا۝ وَّقُلْنَا مِنْۢ بَعْدِهٖ لِبَنِیْٓ اِسْرَآءِیْلَ اسْكُنُوا

چې دهغه سره وو | ټول | اواووئیل مونږه | روستو ددې نه بنی اسراءیلو ته | اچې اوسیږئ تاسو

ملګرې په یو ځائې غرق کړل اودهغه نه پس مونږ بني اسرائیلو ته اووئیل چې په دې

الْاَرْضَ فَاِذَا جَآءَ وَعْدُ الْاٰخِرَةِ جِئْنَا بِكُمْ لَفِیْفًا۝

(په دې) زمکه کښې | نو کله چې | راشي | وعده داخرت | رابه ولومونږ | تاسولره | په جمع

ملك کښې اوسیږئ نو هرکله چې داخرت دوعدې وخت راشي نو مونږ به تاسو ټول راغونډ کړو

**قوله تعالی:- وَلَقَدْ اٰتَیْنَا مُوْسٰی تِسْعَ اٰیٰتٍۭ بَیِّنٰتٍ**

**دحضرت موسی ؑ نهه معجزې:-** حضرت موسی ؑ ته داسې نهه معجزې ملاو شوې چه دهغه د نبوت دصداقت او په نبوت باندې ښکاره دلیل وو.همسا سپین ،لاس قحط کالی دریاب طوفان ملخان سپګې چینډخې او وینه.دا وو تفصیل وار آیاتونه (١)د محمدبن کعب قول دې چه دامعجزې دی د لاس پړقیدو،دلرګی نه مارجوړیدل او پنځه هغه د کومو ذکر چه په سورت اعراف کښې دې اود مالونو ختمیدل اوکانړې(٢) حضرت ابن عباس رضی الله عنه وغیره نه روایت دې چه دا معجزې د هغه لاس د هغه همسا د قحط کالونه د میووکمې طوفان ملخان سپګې چینډخې او وینې دی(٣)داقول ډیرښکاره صفا بهتر او قوی دې. حسن بصری رحمه الله دې نه قحط او د میوو کمې یوشمیرلې دې او نهمه معجزه ئې د هغوی د همسا نه د جادوګرو ماران خوړل بیان کړی دی خود دې ټولومعجزو باوجود فرعونیانو کبر اوکړو او د خپل ګناه په کارونو باندې کلك ولاړ وو سره د دې چه د زړه یقین ئې راغلې وو خو ظلم او زیاتې کولوسره په کفر انکار باندې کلك ولاړ وو.د وړاندینو آیاتونوسره د دې آیاتونو ربط دادې چه څنګه ستا قوم تانه معجزې غواړی دغه شان د موسی ؑ نه هم فرعونیانو معجزې غوښتې وې چه ښکاره شوې خوهغوی ته ایمان نصیب نه شو اوآخر هلاك کړې شو. هم دغه شان که چرې ستا قوم هم د معجزو ښکارد کیدو نه کافران پاتې شو نو بیابه مهلت نه ملاویږی اوډیر زر به تباه برباد کړې شي. پخپله فرعون معجزې لیدلونه پس حضرت موسی ؑ ته جادوګر اووئیلو اوخان ئې ترې خلاصولو. نودا دلته چه د کومو نهو نښوذکردې دا هم هغه دی اود دې بیان ﴿وَاَلْقِ عَصَاكَ ۚ فَلَمَّا رَاٰهَا تَهْتَزُّ كَاَنَّهَا جَآنٌّ وَّلّٰی مُدْبِرًا وَّلَمْ یُعَقِّبْ﴾

(١) الطبری:١٧/٥٦٤.

(٢) الطبری:١٧/٥٦٥.

(٣) الطبری:١٧/٥٦٥-٥٦٦.



يٰمُوسٰى لَا تَخَفْ اِنِّيْ لَا يَخَافُ لَدَيَّ الْمُرْسَلُوْنَ ۝ اِلَّا مَنْ ظَلَمَ ثُمَّ بَدَّلَ حُسْنًا بَعْدَ سُوْٓءٍ فَاِنِّيْ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝ وَاَدْخِلْ يَدَكَ فِيْ جَيْبِكَ تَخْرُجْ بَيْضَآءَ مِنْ غَيْرِ سُوْٓءٍ فِيْ تِسْعِ اٰيٰتٍ اِلٰى فِرْعَوْنَ وَقَوْمِهٖ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمًا فٰسِقِيْنَ ۝ ([1]) پوري دي. په دې آياتونو كښې د همسا او لاس ذكر موجود دې اود باقى آياتونو بيان په سورت اعراف كښې دې.د دې نه علاوه هم الله ﷻ حضرت موسى ﷺ ته ډيرې معجزې وركړې وې مثلاً دهغوى همسا لګيدو باندې په يوكانړي دولس چينې رانبكاره كيدل ياد آوريخوسورې كول من اوسلوانازليدل وغيره وغيره دا ټول نعمتونه بنى اسرائيلو ته دمصر ښار پريخودو نه پس ملاوشو. دامعجزې دلته ځكه بيان نه كړې شوې چه هغه فرعونيانونه وې ليدلې. دلته صرف دهغه نهه معجزو ذكر دې كومې چه فرعونيانو ليدلې وې او دروغ نې ګڼړلې وې.

**د يهوديانو دضداود دروغ وئيلو واقعه اود تسع ايات نه مراد:** مسنداحمد كښې دى چه يويهودى خپل ملګرى ته اووئيل څه چه لاړشو اود دغه نبى نه دهغه دقرآن ددې آيت باره كښې تپوس كوو چه حضرت موسى ﷺ ته هغه نهه نښې څه ملاوشوې وې؟ بل وئيل نبى مه وايه اورى نو د هغه سترګې به څلور شى. اوس دې دواړو د حضورﷺ نه سوال اوكړو حضورﷺ اوفرمائيل الله ﷻ سره څوك مه شريك كوئى غلا مه كوئى زنا مه كوئى څوك ناحقه قتل كوئى مه جادو مه كوئى سود مه خورئى بې ګناه خلق په نيولو سره د بادشاه دربار ته مه بوځئى چه دې قتل كړې اوپه پاكو ښځو باندې بهتانونه مه تړئى وئى فرمائيل د جهاد نه مه تختئى اواې يهوديانو په تاسو خو خاص داحكم هم وو چه د هفتې په ورځ زياتې مه كوئى.اوس خوهغوى دنه غوبنتوباوجود دحضورﷺپښې لاسونه ښكلول او وئى وئيل چه زمونږ ګواهى ده چه تاسودالله ﷻ نبى ئى.حضور ﷺ اوفرمائيل بياتاسو زماتابعدارى ولې نه كوئى؟وئيل داؤد ﷺ دعاكړې وه چه نبى به ضرور زما په نسل كښې وى اومونږ ويريږو چه ستاسو تابعدارى كولوسره به يهوديان مونږ ژوندى پرېنږدى.ترمذى نسائى او ابن ماجه كښې هم دا حديث دې([2])امام ترمذى دې ته حسن صحيح وائى خودې لږ شان ګران كار ځكه چه د دې راوى عبدالله بن سلمه په حافظه كښې لږشان قصور دې او په هغه باندې جرح هم ده. ممكن دى چه د نهه كلماتو شك نهه آياتونو سره ده ته شوې وى ځكه چه دا د تورات احكام دى په فرعون باندې حجت قايمونكى څيزونه دا نه دى. والله اعلم.

ددې دپاره فرعون ته حضرت موسى ﷺ اوفرمائيل اې فرعونه دا خوتاته هم معلوم دى چه دا ټولې معجزې رښتيادى اودې نه يوه يوه زما د صداقت ژوندې اوښكاره دليل دې. زما خيال دې چه ته هلاك كيدل غواړې د الله ﷻ لعنت په تاباندې راكوزيدل غواړې ته به مغلوب شې او تباهئى ته به اورسې.

([3])د مثبور معنى د هلاك كيدونكى ده چه په دې شعركښې هم ده :-

اذاجاري الشيطان فى سنن الغى ومن مال ميله مثبور

يعنى د شيطان دوستان هلاك كيدونكى دى د ﴿عَلِمْتَ﴾ دويم قراءت ﴿عَلِمْتُ﴾ د "ت" د زبر په بدله كښې د "ت" پيش سره هم دې خود جمهورو قراءت هم د "ت" په زبر سره دې. اودا معنى ئى په دې آيت كښې په وضاحت سره بيان كړې ده. ﴿وَجَحَدُوْا بِهَا وَاسْتَيْقَنَتْهَآ اَنْفُسُهُمْ ظُلْمًا وَّعُلُوًّا فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِيْنَ ۝﴾ ([4]) يعنى چه كله هغوى ته زمونږ ښكاره اودپوهې نه ډكې نښې وراورسيدې نوهغوى اووئيل چه داخو ښكاره جادو دې. دې ويناكولو سره منكران كيناستل سره د دې چه د هغوى زړه ته يقين راغلې وو خوصرف په ظلم اوزياتى سره ئى دالار اونه منله الخ. غرض دا چه صفا خبره ده د كومو نهو نښو ذكر چه اوشو دا همسا لاس قحط د ميوو كمې ملخان سپګې چيندخې وينې وې چه د فرعون اود هغه د قوم د پاره د الله ﷻ د

---

[1]) ٢٨/القصص:٣١-٣٢.
[2]) احمد:٢٢٩/٤ كتاب تفسير القرآن باب ومن سورة بنى اسرائيل:٣١٤٤ وهوحسن، نسائى:٤٠٨٣، ابن ماجه٣٧٠٥ وسنده حسن
[3]) الطبرى:٥٧٠/١٧-٥٧١.
[4]) ٢٧/النمل:١٤.

طرف نه دلیل او ثبوت وو اود هغه معجزې وې چه د هغوی په صداقت اود الله ﷻ په وجودباندې دلائل وو. د دې نهو نښونه مراد هغه احکام نه دی کوم چه پورته په حدیث کښې بیان شو ځکه چه هغه په فرعون اوفرعونیانو باندې حجت نه وو بلکه په هغوی باندې حجت کیدل اود هغوی احکام بیانیدلو په مینځ کښې څه مناسبت نشته. دا وهم صرف د عبدالله بن سلمه د حدیث راوی په وجه سره خلقو ته پیدا شوې دې.دهغه بعضې خبرې واقعی دانکار قابلې دی.والله اعلم.

ډیر ممکن دی چه دې دواړو یهودیانو د لسو کلمو سوال کړې وی اوراوی ته د نهو آیاتونو وهم شوې وی. فرعون اراده اوکړه چه دوی د وطن نه اوشړی خو مونږ پخپله هغه د کبانو خوراك جوړ کړو اود هغه ټول ملګری هم. دې نه پس مونږ بنی اسرائیلو ته اوفرمائیل چه اوس زمکه ستاسو ده خورنی ځکنی او اوسیږئ.په دې آیت کښې حضور ﷺ ته هم یوزبردست بشارت ورکړې شوې دې چه مکه به هم ستا په لاس فتح کیږی. سره د دې چه سورت مکی دې د هجرت نه اول نازل شوې دې. په واقعه کښې اوشو همداسې.دمکې خلقو حضور ﷺ دمکه شریفې نه ویستل غوښتل لکه چه قرآن په آیت ﴿وَإِن كَادُوا لَيَسْتَفِزُّونَكَ مِنَ الْأَرْضِ لِيُخْرِجُوكَ مِنْهَا وَإِذًا لَّا يَلْبَثُونَ خِلَافَكَ إِلَّا قَلِيلًا﴾ ([1])کښې بیان فرمائیلی دی. بیا الله ﷻ خپل نبی کریم ﷺ غالب کړواود مکې مالك نی جوړ کړو اوفاتحانه حیثیت سره مکې ته راغلو دلته نی خپله قبضه واخسته اوبیاد خپل حلم اوکرم نه کاراخستو د مکې مجرمان اوخپل خانی دښمنانوته نی په عام توګه معافی ورکړه.الله ﷻ سبحانه وتعالی د بنی اسرائیلو غوندې کمزورې اوضعیف قوم په زمکه د مشرق او مغرب وارثان جوړ کړې وو اود فرعون په شان سخت او متکبره بادشاه مال زمکه میوې فصلونه اود خزانو مالکان نی جوړ کړل.لکه چه آیت ﴿ وَأَوْرَثْنَاهَا بَنِي إِسْرَائِيلَ ﴾([2]) کښې بیان فرمائیلې دې دلته هم فرمائی چه د فرعون د هلاکت نه پس مونږ بنی اسرائیلوته اوفرمائیل اوس تاسو دلته اوسیږئ د قیامت د وعدې په ورځ تاسو اوستاسو دښمنان ټول به زمونږ په وړاندې راجمع کړې شی مونږ به تاسو ټول راجمع کوو.

| وَمَآ | نَزَلَ | وَبِالْحَقِّ | أَنزَلْنَٰهُ | وَبِالْحَقِّ |
|---|---|---|---|---|
| اونه نی | نازل شوې دې | اوهم دحق سره | نازل کړې دې مونږه داقرآن | اودحق سره |

اومونږ داکلام په حقه نازل کړې دې اودا په حقه نازل شوې دې اومونږ

| فَرَقْنَٰهُ | وَقُرْءَانًا | وَنَذِيرًا | مُبَشِّرًا | إِلَّا | أَرْسَلْنَٰكَ |
|---|---|---|---|---|---|
| لرلږنازل کړې دې مونږ دا | اوداقرآن چې دې | اویرونکې | زیرې ورکونکې | مګر | لیږلې مونږ ته |

نه زیرې ورکونکې اوویرونکې جوړ کړې رالیږلې یې اوداقرآن چې دې نو دامونږ جدا جدا برخې کړې دې

| تَنزِيلًا | وَنَزَّلْنَٰهُ | عَلَىٰ مُكْثٍ | عَلَى النَّاسِ | لِتَقْرَأَهُ |
|---|---|---|---|---|
| په نازلولوسره | اونازل کړې دې مونږداقرآن | په ارام سره | په خلقوباند | دپاره ددې چې اولولې ته داقرآن |

چې ته نبي خلقوته په قلاره قلاره اولولې اومونږ رالیږلې هم لږلږ دې

---

[1] ١٧/بنی اسرائیل:٧٦.

[2] ٢٦/الشعراء:٥٩.

| قُلْ | اٰمِنُوْا | بِهٖٓ | اَوْلَا تُؤْمِنُوْا | اِنَّ الَّذِيْنَ |
|---|---|---|---|---|
| اووايه اې نبي \| كه ايمان راوړئ تاسو \| په دې قران \| او كه نه راوړئ \| بيشكه هغه كسان | | | | |
| راتې نبي ﷺ دې خلقوته اووايه چې كه تاسو پرې ايمان راوړئ اوكه نه راوړئ بيشكه كومو خلقوله | | | | |
| اُوْتُوا | الْعِلْمَ | مِنْ قَبْلِهٖٓ | اِذَا | يُتْلٰى عَلَيْهِمْ |
| چې وركړې شوې دې \| علم \| مخكښې ددې نه \| كله چې \| لوستلې كيږي \| په هغوئ باند(دا قران) \| | | | | |
| چې له دې نه وړاندې علم دكتاب وركړې شوې دې هركله چې دهغوئ په وړاندې اولوستلې شي | | | | |
| يَخِرُّوْنَ | لِلْاَذْقَانِ | سُجَّدًا | وَّيَقُوْلُوْنَ | سُبْحٰنَ رَبِّنَآ |
| نوپريوزي هغوئ \| په زنوباندپرمخې \| سجده كونكې \| اووائي هغوئ \| پاك دې \| رب زمونږ | | | | |
| نو هغوئ ورته پرمخې په سجده پريوزي اوداوائي چې زمونږ رب پاک دې | | | | |
| اِنْ كَانَ | وَعْدُ رَبِّنَا | لَمَفْعُوْلًا | وَيَخِرُّوْنَ | لِلْاَذْقَانِ |
| بيشكه ده \| وعده درب زمونږ \| خامخاكيدونكې \| او پريوزي هغوئ \| په زنواندې پرمخې \| | | | | |
| بيشكه زمونږ درب وعده پوره كيدونكې ده او هغوئ پرمخې پريوزي | | | | |
| يَبْكُوْنَ | وَيَزِيْدُهُمْ | خُشُوْعًا | | |
| ژاړي هغوئ \| او زياتوي هغوئ ته \| عاجزي \| | | | | |
| او ددې قران په اوريدو دهغوئ عاجزي نوره هم زياته شي | | | | |

**قوله تعالى:- وَبِالْحَقِّ اَنْزَلْنٰهُ وَبِالْحَقِّ نَزَلَ**

**قرآن حق دې:**-ارشاددې چه قرآن پاك په حقه سره نازل شوې دې داسراسر هم حق دې الله ﷻ د خپل علم سره نازل كړې دې ددې په حق كيدوباندې هغه پخپله كواه دې اوفرښتې هم كواه دى په دې كښې هم هغه دى كوم چه دخپلې پوهې سره نازل كړى دى ددې ټول حكم احكام نهى اوممانعت هم د هغه د طرفنه دى حق سره نى نازل كړو او په حق سره نى تاته دراورسولو. نه په لاركښې څه باطل ملاو شواونه د باطل داشان دې چه دې سره يوځاې شى. دا بالكل محفوظ دې اود كمى زياتى نه بالكل پاك دې. د پوره طاقت والا امانت داره فرښتې په ذريعه نازل شوې دې چه په آسمانونوكښې د عزت خاوند او د هغه ځاې سردار دې.ستا كار مومنانوته خوشحالى اوزيرې اورول دى اوكافران ويرول دى. دا قرآن پاك مونږ د لوح محفوظ نه بيت العزت ته نازل كړو چه په اول آسمان كښې دې د هغه ځاې نه لږ لږ او جدا جدا كولوسره د واقعاتو مطابق ٢٣كاله كښې دنياته نازل كړو([1]) ددې دويم قراءت ﴿فرقناه﴾ دې يعنى يويوآيت كولوسره په تفسير تفصيل اوبيانولوسره نازل كړو([2])چه ته نى خلقو ته په آسانتى سره اورسوې او په مزه مزه نى هغوى ته واوروې. مونږ دا لږ لږ كولوسره نازل كړې دې

**د قرآن پاك اوريدوسره د مومنانو كيفيت څه وى؟**:-ارشاد دې چه ستاسوپه ايمان باندې دقرآن پاك صداقت موقوف نه دې كه تاسو منئ اوكه نه منئ خوقرآن پاك فى نفسه د الله ﷻ كتاب دې او بې شكه حق

[1]) الطبرى:١٧/٥٧٤.
[2]) الطبرى:١٧/٥٧٣.

دي.ددي ذکر خود همیشه نه په پخوانوکتابونوکښې هم راروان دي.کوم اهل کتاب چه صالح او عامل د الله ﷻ د کتابونودی اوچا په وړاندینوکتابونوکښې څه تحریف او تبدیل نه دې کړې هغوی خود قرآن پاك اوریدو سره بې آرامه شی اود شکریه سجده کوی چه یاالله شکر دې چه تازمونږ په موجودګئ‌کښې رسول راولیګلو او کتاب دې نازل کړو.د رب خپل په کامل قدرت باندې د هغې تعظیم او درانوی کوی. پیژندل ئی چه د الله ﷻ وعده ربښتونې ده غلطه نه ده. نن دا پوره کیدونکې وینی نو خوشحالیږی. د خپل رب تسبیح بیانوی اود هغه د وعدې د صداقت اقرار کوی. په خشوع خضوع انکسارنی عاجزئی سره په ژړا اوزارئی سره د الله ﷻ په وړاندې په د خپل خنو په مخ په سجده کښې پراته دی.د ایمان اوتصدیق کلام الله اورسول الله په وجه په دین اواسلام کښې هدایت تقوی کښې ویره کښې نور هم وړاندې کیږی. دا عطف د صفت په صفت باندې دې د ذات په ذات باندې نه دې.

| |
|---|
| قُلِ ادْعُوا اللّٰهَ |
| \| اوو‌ایه \| که رااوبلئ تاسو \| الله \| |
| اوو‌ایه چې که تاسو د الله ﷻ په نوم |
| أَوِ ادْعُوا الرَّحْمٰنَ ۖ أَيًّا مَّا تَدْعُوا فَلَهُ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنٰى ۚ |
| یا رااوبلئ تاسو \| رحمان \| په کوم نوم چې\| رابلئ تاسوهغه \| نودی هغه لره\| نومونه \| ښه \| |
| بلنه اوکړئ اوکه د رحمان په نوم بلنه اوکړئ په کوم نوم چې ئې اوبلئ نو دهغه ټول نومونه ښائسته دی |
| وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ وَلَا تُخَافِتْ بِهَا وَابْتَغِ |
| اوډیرپه اوچت اوازمه وایه \| مونځ خپل\| اومه ډیرپه رواوازسره وایه\| دې مانځه لره\| اولټوه \| |
| اوته خپل مونځ ډیر په اوچت آواز هم مه لوله او بالکل چپ ئې هم مه لوله بلکه ددې |
| بَيْنَ ذٰلِكَ سَبِيلًا ﴿١١٠﴾ وَقُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي لَمْ يَتَّخِذْ |
| په منځ ددې کښې\| یوه لار \| اواووایه\| چې ثناه ده \| الله لره\| هغه الله \| چې نه ئې دې نیولې څوک |
| ترمینځه طریقه اختیار کړه اوته اووایه چې ټول تعریفونه دالله ﷻ دپاره دی کوم چې نه خو |
| وَلَدًا وَّلَمْ يَكُنْ لَّهُ شَرِيكٌ فِي الْمُلْكِ وَلَمْ يَكُنْ لَّهُ |
| ولد \| اونشته \| دهغه سره \| څوک شریك\| په بادشاهئ کښې \| اونهٔ شته \| هغه لره \| |
| څوک خونې جوړ کړې دې او نه ددهٔ په بادشاهئ کښې څوک شریک شته اونه هغه |
| وَلِيٌّ مِّنَ الذُّلِّ وَكَبِّرْهُ تَكْبِيرًا ﴿١١١﴾ |
| څوک دوست \| دوجې دعاجزئ نه \| اولوئی بیانوه دهغه \| په لوئې کاملې سره \| |
| کمزورې دې چې څوک ئې مددګار شی اودهغه لوئې ډیرډیره بیانوه |

**قوله تعالی:- قُلِ ادْعُوا اللّٰهَ أَوِ ادْعُوا الرَّحْمٰنَ**

**د الله ﷻ د اسماء حسنی په واسطه سره دعاکوئی:**-کافران د الله ﷻ درحمت د صفت نه منکر وود هغه نوم په نی رحمن نه ګنړلونو الله ﷻ د خپل خان دپاره دا نوم ثابتوی اوفرمائی صرف هم دانه چه د الله ﷻ نوم الله وی رحمن وی ددې نه سوا نور هم ډیر ښکلې اواحسن نومونه دی. په کوم یوپاك نوم سره چه غواړې د هغه نه دعاکوه.د سورت حشر په آخره کښې هم د هغه ډیرنومونه بیان شوی دی. یومشرك د حضورﷺنه دسجدې په حال کښې یارحمن یارحیم واوریدو نوونی ونیل ګوره داموحددې اودوه خدایان

رابلې په دې باندې دا ایت نازل شو.(١) بیافرمائي چه خپل مونځ دومره په اوچت اواز سره مه وائې. د دې آیت دنازلیدو په وخت کښې حضور ﷺ په مکه کښې پټ وو کله چه به نې صحابه کرام رضي الله عنهم ته مونځ ورکولونو په اوچت آواز سره به نې په دې کښې قراءت کولو نو مشرکانو به قرآن ته اورسول الله ﷺ ته کنځلې کولې په دې وجه حکم اوشوچه دومره په اوچت آوازسره د لوستلوضرورت نشته چه مشرکان نې واورې اوکنځلې اوکړي. اوداسې په مزه نې هم مه لوله چه ستا ملګرې نې هم اونه اورېدې شي بلکه په درمیانه آوازسره تلاوت کوه.(٢) بیاچه کله حضور ﷺ هجرت اوکړو مدینې ته راغلونودا تکلیف لاړو او چه اوس ئې څنګه غواړې لوله.(٣) مشرکانو به چه چرته هم د قرآن پاك تلاوت شروع کیدو تیخته کوله. که چا به اوریدل هم غوښتل نو پټ پټ به خیال خیال سره به نې څه اوریدلوخو چه کوم ځائ مشرکانو ته معلومه شوه نوهغوی به دوی ته سخته سزا ورکوله. اوس که ډیر په تیزه آواز اوکړې نود هغوی چیړ اود هغوی دکنځلوخیال اوکه ډیر ئې په مزه کړې نو چه څوك نې په پټه اوري هغوی محروم. په دې وجه د درمیانه قراءت کولو حکم اوشو(٤) غرض دا چه د مانځه د قراءت باره کښې دا آیت نازل شوې دې.(٥)

**د ابوبکرصدیق رضي الله عنه اود عمرفاروق رضي الله عنه د قراءت باره کښې د رسول کریم ﷺ هدایت:**-روایت دې چه حضرت ابوبکرصدیق رضي الله عنه به په خپل مونځ کښې په رو آوازسره قراءت کولو اوحضرت عمر رضي الله عنه به په اوچت آواز سره قرآن لوستلو نودحضرت صدیق اکبر رضي الله عنه نه تپوس اوشو چه تاسو ئې ولې په مزه لولئ؟ هغوی ونیل دخپل رب سره غوږایستنې دی هغه زمادحاجتونونه خبردې. نواوفرمائیلې شو چه دا ډیر ښه دی. د حضرت عمر رضي الله عنه نه تپوس اوشو چه تاسوئې ولې په تیز آواز سره لولئ؟ هغوی اوفرمائیل چه شیطان تختوم او اوده راویښوم. نو هغوی ته هم اوفرمائیلې شو چه ډیرښه. خوچه کله دا آیت نازل شو نو ابوبکر رضي الله عنه ته لږ شان په تیزه اوعمر رضي الله عنه ته لږ شان په مزه آوازسره تلاوت کولوله اوفرمائیلې شو.(٦)

**دا ایت د مانځه باره کښې دې اوکه دعاء باره کښې؟** ابن عباس رضي الله عنه فرمائي دا آیت د دعا باره کښې نازل شوې دې دغه شان ثوری رحمه الله مالك رحمه الله هشام بن عروه رحمه الله نه او هغه د خپل پلار نه اوهغه د حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها نه روایت کوی هغوی فرمائي چه دا آیت د دعاباره کښې نازل شوې دی(٧)هم دا قول دحضرت مجاهد رحمه الله حضرت سعیدبن جبیر رحمه الله حضرت ابوعیاض رحمه الله حضرت مکحول رحمه الله او حضرت عروه بن زبیر رضي الله عنه هم دې. روایت دې چه د بنو تمیم قبیلې یو اعرابی کله هم چه حضور ﷺ د مانځه نه سلام ګرځولو دا دعاکوله چه اې الله ماته اوښ راکړې ماته اولاد راکړې نو بیادا آیت نازل شو.

یوبل قول داهم دې چه دا آیت د تشهدباره کښې نازل شوې دې(٨)داهم ونیلې شوی دی چه دې نه مراددا دې چه مه ریاکاری کوئی اومه عمل پربردئی داهم مه کوئی چه په ښکاره باندې خونې ښه کوئی اویټ نې خراب اداکړئی اهل کتابوبه بت ونیلو او په دې مینځ کښې به ئې یوه فقره په ډیر اوچت آواز سره په چغه د ژبې نه ویستله په دې باندې به تول یوځائ شو اوشور به ئې کولو نوددوی دمنافقت نه ممانعت اوشو اوچه څنګه به نورو خلقو ښوالې کولودې نه هم منع کړې شوبیا ددې دمینځ والا لار

---

(١) الطبری:١٧/٥٨٠.
(٢) صحیح بخاری کتاب التفسیرسورت بنی اسرائیل باب ﴿ولاتجهربصلاتك ولاتخافت بها﴾ :٤٧٢٢، صحیح مسلم: 446، ترمذی:٣١٤٦
(٣) الطبری:١٧/٥٨٤.
(٤) الطبری:١٧/٥٨٥.
(٥) الطبری:١٧/٥٨٧.
(٦) ابوداؤد كتاب التطوع باب رفع الصوت بالقراءة في صلاة الليل:١٣٢٩ وسنده حسن، ترمذی:٤٤٧ مختصراً.
(٧) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة بنی اسرائیل باب﴿ولاتجهر بصلاتك ولاتخافت بها﴾:٤٧٢٣
(٨) حاکم:١/٢٣٠.

حضرت جبرائیل علیه السلام اوخودله نوحضورﷺ مسنون اوفرمانیله.د الله ﷻ حمد کونی په کوم کښې چه د هغه تول کمالات او پاك صفتونه دی د چاچه تول نومونه ډیر بهترین دی د ټولونقصانونونه پاك دې د هغه اولاد نشته د هغه شریك نشته. هغه واحد دې هغه احد دې هغه صمد دې نه د هغه پلارشته نه مور نه اولاد نه د هغه په شان څوك شته اونه هغه دومره سپك چه د چاد حمایت محتاج وی یاد وزیراومشیر هغه ته حاجت وی بلکه د ټولو څیزنو خالق اومالك هم هغه یو ذات دې. د ټولو مدبر اومقتدر هم هغه دې هم د هغه رضا په ټول مخلوق کښې چلیږی هغه وحده لاشریك له دې نه هغه د چاسره رورولی کړې ده اونه د چا د امداد طلب ګار دې([1]) ته هروخت د هغه لویٔ پاکی عظمت او جلالت بیانوه او مشرکان چه کوم تهمتونه په هغه باندې تړی ته د هغوی نه د هغه زیاته لویٔ او بزرګی بیانوه. یهودیانو اونصاری خویه وئیل چه دالله ﷻ اولاددې مشرکانو به وئیل ((لبيك لاشريك لك الاشريكا هولك تملكه وماملك))یعنی مونږ حاضر غلامان یویاالله ستا څوك شریك نشته خو هغه چه ستا په ملکیت کښې دی هم ته د هغوی اود هغوی دملکیت مالك ئې. صابی اومجوسیانو به وئیل که اولیاء الله نه وې نو الله ﷻ ټول انتظام نه شی کولې. په دې باندې دا آیت نازل شو اود ټولو باطلانو تردید اوکړې شو. ([2])

**هرمسلمان ته دا آیت زده کول پکاردي:**-نبی کریم ﷺ به دخپل کور ټولولویوړوته داآیت خودلو حضورﷺ د دې آیت نوم آیت العز یعنی دعزت والا آیت کیخودې دی([3])په بعضې آثارو کښې دی په کوم کور کښې چه د شپې دا آیت اولوستلې شی په هغه کور کښې به څه آفت یا غلا نه شی کیدې. والله اعلم.

حضرت ابوهریره رضی الله عنه فرمائی زه حضورﷺ سره وتلې ووم زمالاس دحضورﷺ په لاس کښې وو دحضورﷺ لاس زما په لاس کښې وو په لار روان یوسړې حضورﷺ اولیدو ډیر په بد حال کښې وو هغه نه ئې تپوس اوکړو څه خبره ده؟هغه وئیل حضورﷺ بیمارو اونقصانونو زماداحال کړې دې. حضورﷺ اوفرمائیل چه زه تاته څه وظیفه اوښایم چه دا تکلیف اوبیماری هرڅه درنه لاړشی؟ هغه وئیل او او یارسول الله ﷺ خامخا اوښائې په احد او بدرکښې ستاسود ملګرتیانه کولو افسوس به زمانه لرې شی. په دې باندې حضورﷺ مسکې شوونی فرمائیل ته د بدر او احد د صحابه کرامو رضی الله عنهم مرتبه ته چرته رسیدې شې ته د هغوی په مقابله کښې خالی لاس او بې سرمایه ئې. حضرت ابوهریره رضی الله عنه عرض اوکړو یارسول الله ﷺ دې پریږده ماته ئې اوښائې حضورﷺ اوفرمائیل ابوهریره رضی الله عنه داسې وایه ((توکلت علی الحی الذی لایموت الحمدلله الذی لم یتخذ ولدا))ماداوظیفه کول شروع کړو یوڅو ورځې تیرې وې چه زما حالت ډیر ښه شو.حضورﷺ زه اولیدم نو وئې فرمائیل ابوهریره رضی الله عنه داڅه دی؟ ماوئیل د هغه کلمو په وجه د الله ﷻ د طرف نه برکت دې کومې چه تاسو ماته خودلې وې. ([4])د دې سندضعیف دې اود دې په متن کښې هم نکارت دې دا حافظ ابویعلی رحمه الله په خپل کتاب کښې راوړې دې. والله اعلم.

**(الحمدلله)** د سورت بنی اسرائیل تفسیرختم شو.

..........................

**د دې سورت دفضیلت بیان خاص کر د اول لسو آیاتونو د فضیلت بیان:**-بله داخبره چه دا سورت د دجال د فتنې نه محفوظ ساتونکې دې.

---

[1]) الطبری: ١٧/٥٩٠.

[2]) الطبری: ١٧/٥٩٠.

[3]) احمد:٣/٤٣٩، ٤٤٥.

[4]) مسندابی یعلی: ٦٦٧١.

**د سورت کهف د فضیلت بیان:** مسنداحمد کښې دی یوصحابی ﷺ ددې سورت تلاوت شروع کړو د هغه په کور کښې یواس وو هغه ټوپونه شروع کړه. صحابی ﷺ چه کله اوکتل نوهغه ته د تنبوغوندې یوه اوریخ ښکاره شوه کومې چه په هغه باندې سورې کړې وو.هغه حضورﷺ ته ذکر اوکړو حضورﷺ اوفرمائیل لوله دا هغه سکینه ده چه د الله ﷻ د طرف نه د قرآن پاك په تلاوت کولو باندې نازلیږی. [1] بخاری اومسلم کښې هم دا روایت شته.دا صحابی اسید بن حضیر ﷺ وو لکه څنګه چه د سورة بقره په تفسیر کښې مونږ بیان کړې دې.[2] مسنداحمد کښې دی کوم سړی چه د سورت کهف د شروع لس آیاتونه یادکړل هغه د دجال د فتنه نه بچ شو. په ترمذی شریف کښې د دریوآیاتونو بیان دې[3]په مسلم کښې دلسوآخری آیاتونوذکردې. [4] نسائی کښې د لسو آیاتونو مطلق بیان دې. [5]

مسنداحمدکښې دی چه څوك د دې سورت کهف اول اوآخر اولولی د هغه د پاره به د پښونه ترسره پورې نور وی اوچه څوك دا ټول سورت اولولی دهغه دپاره د زمکې نه ترآسمانه پورې نور به وی. [6] په یوغریب سندسره په ابن مردویه کښې دی چه د جمعه په ورځ څوك داسورت کهف اولولی دهغه د پښود تلونه واخله دآسمان داوچتوالی پورې به نور وی چه دقیامت په ورځ به ښه روښانه وی اود دویمې جمعه پورې به د هغه ټول ګناهونه معاف کیږی. [7]د دې حدیث په مرفوع کیدوکښې نظر دې اوډیر ښه د دې موقوف کیدل دی. د حضرت ابوسعیدخدری ﷺ نه روایت دې چاچه سورت کهف د جمعه په ورځ اولوستلو دهغه د خوانه د خوانه واخله تربیت الله شریف پورې به نورانیت وی.

مستدرك حاکم کښې مرفوعاً روایت دې چاچه د جمعه په ورځ سورت کهف اولوستلو د هغه د پاره به د دوو جمعود مینځ پورې د نوررڼا وی[8]بیهقی کښې دی چا چه سورت کهف داسې اولوستلو څنګه چه نازل شوې دې د هغه د پاره دقیامت په ورځ به نور وی[9]دحافظ ضیا مقدسی رحمه الله کتاب المختاره کښې دی چه کوم سړې د جمعه په ورځ د سورت کهف تلاوت کوی هغه به اتو (٨) ورځوپورې د هرقسم فتنونه محفوظ وی تردې که چرې دجال هم په دې زمانه کښې راوخې نود هغه نه به هم بچ کولې شی.

| آیاتونه | | سورة الکهف مکیة وهی مائة وعشرایات واثناعشررکوعات | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ | | |
| ⓵ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دی | | ١٢ |

| اَلْحَمْدُ | لِلّٰهِ | الَّذِیْٓ | اَنْزَلَ | عَلٰی عَبْدِهِ | الْکِتٰبَ |
|---|---|---|---|---|---|
| هره ثناء | الله لره ده | هغه(الله) | چې نازل ئې کړوا | به بنده خپل باندې | دا کتاب |

تول تعریفونه الله ﷻ دپاره دی چې پخپل خاص بنده ئې داکتاب رانازل کړو

---

[1]) صحیح بخاری کتاب المناقب باب علامات النبوة فی الاسلام:٣٦١٤،صحیح مسلم:٦٧٩٥، احمد: ٢٣١/٤، ترمذی: ٢٨٨٥،

[2])صحیح مسلم کتاب صلاة المسافرین، باب فضل سورة الکهف وآیة الکرسی:٨٠٩، احمد:١٩٦/٥، ابوداؤد:٤٣٢٣ عمل الیوم واللیلة للنسائی:٩٥١.

[3]) ترمذی کتاب فضائل القرآن باب ماجاء فی فضل سورة الکهف:٢٨٨٦.

[4]) صحیح مسلم:٩٠٩.

[5]) السنن الکبری للنسائی:١٠٧٨٥، وسنده صحیح.

[6]) احمد:٤٣٩/٣.

[7]) ابن مردویه،

[8]) حاکم:٣٦٨/٢ وسنده حسن: بیهقی:٢٣٩/٣.

[9]) حاکم:٥٦٤/١ وسنده حسن، شعب الایمان:٢٤٤٦، المعجم الاوسط:١٤٧٨.

وَلَمْ يَجْعَلْ لَّهٗ عِوَجًا ۜ قَيِّمًا لِّيُنْذِرَ

او جوړنې نه کړو | ادې کتاب لره | کوږوالې | صحیح خبره کونکې کتاب دی | دپاره ددې چې خبردار کړي خلق

او په هغې ئې دذرې هومره کږلیچ پرې نخودو سمه نیغه لاره خودونکې کتاب

بَاْسًا شَدِيْدًا مِّنْ لَّدُنْهُ وَيُبَشِّرَ الْمُؤْمِنِيْنَ الَّذِيْنَ

دعذاب | سخت نه | دطرفه دالله نه | اوزیري ورکړي | مومنانولره | هغه |

چې دهغې سخت عذاب نه خلق وویرږي چې دالله ﷻ دطرفنه دې او هغه مومنانو له زیرور کړي

يَعْمَلُوْنَ الصّٰلِحٰتِ اَنَّ لَهُمْ اَجْرًا حَسَنًا ۙ

چې هغوئ عمل کوی | نیک | اچې بیشکه | ده هغوئ لره | بدله | ښه |

څوک چې نیک کارونه کوی چې دهغوئ دپاره ډیر ښه اجرمقرر دې

مّٰكِثِيْنَ فِيْهِ اَبَدًا ۙ وَّيُنْذِرَ الَّذِيْنَ قَالُوا

چې اوسیدونکې به وی | په هغې کښې | همیشه | او چې اویروی | هغه خلق | چې وائی

چې تل عمرى به په کښې اوسیږی اوچې هغه کسان دالله ﷻ دنیوکې نه اوویروی چې داوائی

اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا ۝ مَا لَهُمْ بِهٖ مِنْ عِلْمٍ وَّلَا لِاٰبَآئِهِمْ ۭ

چې نیولې دې الله | خوئې | نشته دې دوئ لره | په دې خبره | هیڅ علم | اونه پلارانو ددوئ لره

چې الله ﷻ خان له یوځوئې جوړ کړې دې ذدې خبرې نه دوئ ته علم شته او نه ددوئ پلار نیکه ته

كَبُرَتْ كَلِمَةً تَخْرُجُ مِنْ اَفْوَاهِهِمْ ۭ اِنْ يَّقُوْلُوْنَ اِلَّا كَذِبًا ۝

لویه ده | هغه خبره | چې رااوځی | دخلو ددوئ نه | نه وائی دوئ | مگر | دروغ

دا ډیره سخته خبره ده چې ددوئ دخلو نه اوځی یقینا داخلق سراسر دروغ وائی

**قوله تعالى:- وَيُبَشِّرَ الْمُؤْمِنِيْنَ**

**الله ﷻ قرآن پاک د نور ذریعه جوړ کړې دې:-** مونږ اول دا بیان کړی چه الله ﷻ د هرامر د شروع کولونه او دهغې په ختمولوباندې خپل حمد اوثنا بیانوی. په هرحال کښې هغه دحمدوثنااوتعریف لائق دې. اول اوآخر هم د هغه ذات والاصفات دحمدوثنا مستحق دې.هغه په خپل رسول کریم ﷺ باندې قرآن پاک نازل کړو چه دهغه ډیر لوئ نعمت دې د څه په ذریعه چه د الله ﷻ ټول بندیگان د تیارو نه راوخی او د نور طرف راتلې شی.هغه داکتاب ټیک ټاک سیدا او نیغ ساتلې دې په کوم کښې چه هیڅ کوګوالې کسر او کمې نشته.د صراط مستقیم طرف ته لارخودونه صفااوښکاره ده. بدکاران ویرونکې نیکانوته خوشخبرې اوزیرې اوررونکې معتدل نیغ مخالفینو اومنکرینوته خطرناك عذابونو خبرورکونکې دا کتاب دې. کوم عذابونه چه د دې طرف نه دی په دنیاکښې هم او په آخرت کښې هم داسې عذابونه دی چه نه د دې په شان څوك په عذاب شوی دی اونه د دې په شان د چا نیول شوی دی. اوچه څوك په دې باندې یقین اوکړی نیك عمل اوکړی ایمان راوړی هغه له داکتاب یوعظیم خوشحالی ورکوی. کوم ثواب له چه همیشه والې او دوام دې هغه جنت به ورته ملاویږی په کوم کښې چه کله هم فنانشته اود هغې نعمتونه غیرفانی دی. اوهغوی هم دهغه عذابونونه خبروی څوك چه د الله ﷻ د پاره اولاد ګرځوی

لكه د مكې مشركان چه هغوى به فرښتې د الله ﷻ لونړه ګڼرلې. (١)په بې علمنى او جهالت نه د خلې نه راوباسى اودا خوبه دهغوى مشرانو هم په بې علمنى كښې كولې د(كلمة) نصب دتميز په وجه دې. تقدير د عبارت داسې دې (كبرت كلمتهم هذه كلمة) اوونيلې شوى دى چه دادحيرانتياپه توګه دې تقديرعبارت دا دې(اعظم كلمتهم كلمة) لكه چه ونيلى شى (اكرم بزيد رجلا) د بعضې بصريانو هم دا قول دې. بعضې قاريانودا (كلمة)لوستلې دې لكه چه وانى (عظم قولك وكبر شانك) د جمهورو په قراءت خو معنى بالكل ښكاره ده چه د هغوى د دې كلمه بد او ډيره خرابه كلمه كيدل بيانيږى چه بالكل بې دليل ده صرف دروغ او د ځان نه خبره ده. د دې د پاره نى اوفرمانيل چه صرف دورغ وانى.

**د سورت كهف شان نزول:-** ددې سورت شان نزول دابيان كړې شوې دې چه قريشو نضربن حارث او عقبه بن ابى معيط د مدينې د يهوديانو علماؤله اوليږل چه تاسو لاړشنى او د محمد ﷺ باره كښې ټول حالات هغوى ته بيان كړنى هغوى سره د مخكينو پيغمبرانو علم دې د هغوى نه تپوس اوكړنى چه د هغوى دده باره كښې څه رائې ده؟دا دواړه مدينې ته لاړل اومدينې احبارسره ملاوشو د حضور حالات اوصاف نى بيان كړل د حضور ﷺ د تعليم ذكر نى اوكړو او ونى ونيل چه تاسو د علم خاوندان نى مونږ ته اوښانې چه د ده متعلق ستاسو څه خيال دې؟ هغوى ونيل ګورنى مونږ تاسو ته يوفيصله كړې شوې خبره ښايو.تاسو لاړشنى دهغه نه ددريو سوالونو تپوس اوكړنى كه جواب نى دركړونودهغه په رښتونى كيدو كښې هيڅ شك نشته بې شكه هغه د الله ﷻ نبى اورسول دې اوكه جواب نى درنه كړونود هغه په دروغژن كيدو كښې هم څه شك نشته بياچه تاسو څه كول غواړنى كونى. هغه نه تپوس اوكړنى چه پخوانى زمانه كښې كوم خوانان تلى وو هغه واقعه بيان كړنى ډيره عجيبه واقعه ده اود هغه سړى حالات معلوم كړنى چاچه د ټولې زمكې ګشت لګولې وو او مشرق اومغرب ته تلې راغلې وو اود روح اصليت ترې معلوم كړنى كه ونى خودل نودې نبى اومننى او د ده تابعدارى اوكړنى كه ونى نه خودل نو هغه سړې بيادروغژن دې چه څه غواړنى كونى. دادواړه واپس راغلل اوقريشوته نى اوونيل چه روره آخرى او د انتهائى فيصله خبره هغوى اوخودله اوس راځنى چه د حضور ﷺ نه تپوسونه اوكړو. دا ټول حضور ﷺ له راغله او د دې دريو سوالونوتپوسونه نى ترې اوكړه. حضور ﷺ اوفرمانيل چه تاسو صباله راشنى زه به جوابونه دركړم. خوان شاء الله ترې هير شو پنځلس ورځې تيرې شوې نه وحى راغله اونه د الله ﷻ د طرف نه د دې سوالونو جوابونه معلوم كړې شو. د مكې خلق لاړل اوونى ونيل ګوره صاحبه د صباوعده وه اونن پنځلسمه ورځ ده خوهغه دې اونه خودلې شو.بل خواهغوى په ډېل غم كښې راګير شوپه جواب نه ملاويدلو د هغوى د خبرو اوريدلو اود وحى بنديدلو. بياحضرت جبرائيل ﷺ راغلو سورت كهف نازل شو هم په دې كښې ان شاء الله نه ونيلو باندې حضور ﷺ ته زورنه وركړه د هغه خوانانو قصه نى بيان كړه اود هغه سيلانى ذكر اوكړې شو او په آيت ﴿وَيَسْـَٔلُونَكَ عَنِ الرُّوحِ ۖ قُلِ الرُّوحُ مِنْ أَمْرِ رَبِّي وَمَا أُوتِيتُم مِّنَ الْعِلْمِ إِلَّا قَلِيلًا﴾ (٢)كښې د روح باره كښې جواب وركړې شو. (٣)

| إِن لَّمْ يُؤْمِنُوا | عَلَىٰ آثَارِهِمْ | نَّفْسَكَ | بَاخِعٌ | فَلَعَلَّكَ |
|---|---|---|---|---|
| كه ايمان رانوړى دوى | | | | نوشايدچې تهٔ هلاكونكې نې خان خپل لره روستوپه دوئ پسې |
| (ائې پيغمبره) كه چرې دوئ په دې كلام ايمان نه راوړى نو شايد چې ته ددوئ په | | | | |

---

(١) الطبرى:١٧/٥٩٥.

(٢) ١٧/بنى اسرائيل:٨٥.

(٣) الطبرى:١٧/٥٩٢.

| بِهٰذَا الْحَدِيْثِ | اَسَفًا۝ | اِنَّا جَعَلْنَا | مَا | عَلَى |
|---|---|---|---|---|
| په دې خبره باندې | دوجې دافسوس نه | بيشكه جوړ كړې دې مونږه | هغه څه | چې په |
| غم كښې خان هلاك كړې بيشكه څه چې په زمكه دي | | | | |

| الْاَرْضِ | زِيْنَةً | لَّهَا | لِنَبْلُوَهُمْ | اَيُّهُمْ |
|---|---|---|---|---|
| زمكه باندې دي | ښائست | دې زمكې لره | دپاره ددې چې وازمايو مونږ دوئ لره | چې كوم يو دوئ لره |
| مونږ هغه دزمكې دپاره ښائست جوړ كړې دې دپاره ددې چې مونږ په هغه خلقوازميښت اوكړو | | | | |

| اَحْسَنُ | عَمَلًا۝ | وَاِنَّا | لَجٰعِلُوْنَ | مَا | عَلَيْهَا |
|---|---|---|---|---|---|
| زيات بهتر دې | په لحاظ دعمل سره | او بيشكه مونږه | خامخا جوړونكي يو | هغه څه لره | چې په زمكه دي |
| چې څوك ښه عمل كوونكى دى او (هغه وخت به راشي چې) مونږ به ددې زمكې په مخ موجود ټول څيزونه | | | | | |

| صَعِيْدًا | جُرُزًا۝ |
|---|---|
| داګ | خالى |
| په سپينه ډاګه پريږدو | |

**قوله تعالى:-فَلَعَلَّكَ بَاخِعٌ نَّفْسَكَ**

**نبى كريم ﷺ ته تسلى:**-مشركان چه د حضورﷺ نه به لرې تختيدل په هغوى باندې د ايمان نه راوړو چه كوم غم اوخفګان په حضورﷺ باندې وو په هغې باندې الله ﷻ حضورﷺ ته تسلى وركوى لكه چه په بل آيت كښې دى چه په دوى باندې دومره خفګان مه كوه([1]) بل ځائ دى چه په دوى باندې دومره غمګين كيږه مه([2])بل ځائ دى چه د دوى په ايمان نه راوړو باندې خپل خان په تكليف كښې مه اچوه. ([3]) دلته نى هم دا اوفرمائيل كه دوى په دې قرآن پاك باندې ايمان راونړو نو ته خپل زړه مه خوره اودومره غم خفګان غصه افسوس مه كوه مه ويريږه اومه زړه تنګه وه خپل كاركوه([4])په تبليغ كښې كوتاهى مه كوه خپله ښه كاركوه ګمراه به خپل بدكاركوى د هريوعمل هم هغه سره دې.

**د دنيادا زينتونه ختميدونكي دي:**-بيافرمائى دنيافانى ده د دې دا ښائست د زوال والا دې آخرت باقى دې د دې نعمتونه د هميشه دپاره دى.رسول الله ﷺ فرمائى دنياخوږ او شين رنګ دې په دې كښې الله ﷻ تاسوخليفه جوړوى اوګتل غواړى چه تاسوڅنګه عملونه كوئ؟ نود دنيانه ښځو نه بچ شئ. په بنى اسرائيلوكښې رومبنئ فتنه هم د ښځو وه([5])دا دنياختميدونكې ده اودادنيا خرابيدونكې ده. تباه برباد كيدونې ده زمكه به صفاهواره شي او په كومه چه به هيڅ قسم پيداوارنه كيږى كله چه په بل آيت كښې دى آيا داخلق نه ګورى چه مونږه غيرآبادې شاړې زمكې ته اوبه بوځو اود دې نه فصل پيداكوو كوم چه هغوى پخپله هم خورى اود هغوى څاروى هم. آيابياهم د هغوى سترګې نه كولاويږى([6])زمكه

---

[1]) ٣٥/فاطر:٨.

[2]) ١٦/النحل:١٢٧.

[3]) ٢٦/الشعراء:٣.

[4]) الطبرى:١٧/٥٩٧-٥٩٨.

[5])صحيح مسلم كتاب الرقاق باب اكثر اهل الجنة الفقراء:٢٧٤٢، ترمذى:٢١٩١، ابن ماجه: ٤٠٠٠، احمد:١٩/٣، مسندابى يعلى:١١٠١،

[6]) ٣٢/السجدة:٢٧.

او په زمکه چه څه دي ټول فناکیدونکي دي اوخپل حقیقي مالك ته پیش کیدونکي دي. نوکه ته د هغوی نه څه هم واوري هغوی په کوم حال کښې هم ګوري خو افسوس او خفګان مه کوه.

| |
|---|
| أَمْ حَسِبْتَ أَنَّ أَصْحٰبَ الْكَهْفِ |
| آيا ګمان کوې ته \| چې بیشکه \| ملګري دغار \| |
| آيا ستا دا خيال دې چې دغار اودليکلي تختئ خاوندان |
| وَالرَّقِيْمِ ۙ كَانُوْا مِنْ اٰيٰتِنَا عَجَبًا ۝ إِذْ أَوَى |
| او دليکلي شوی تختئ \| وو \| دنښو زمونږ نه \| ډيرعجيبه \| کله چې \| پناه واغستله |
| زمونږ (دقدرت) په نخښو کښې یوه ډیره عجیبه نخښه وو؟ څه وخت چې دغې |
| الْفِتْيَةُ إِلَى الْكَهْفِ فَقَالُوْا رَبَّنَآ اٰتِنَا مِنْ لَّدُنْكَ |
| يو څوخوانانو \| غارته \| نو وې وئيل \| اے ربه زمونږه \| راکړه مونږ ته \| دطرفه خپل نه |
| خلمو په غار کښې پناه واخسته نو وې وئيل چې ائي زمونږ ربه! مونږ ته دخپل طرفنه |
| رَحْمَةً وَّهَيِّئْ لَنَا مِنْ أَمْرِنَا رَشَدًا ۝ فَضَرَبْنَا عَلٰٓى |
| رحمت \| او تيار کړه \| مونږ لره \| دکار زمونږ نه \| صحيح والي \| نوکيښنوده مونږه \| په |
| رحمت راکړه اوزمونږ دې کار له دسمون خوروسامان راپیدا کړه نومونږ دهغوئ په غوږونو باندې |
| اٰذَانِهِمْ فِى الْكَهْفِ سِنِيْنَ عَدَدًا ۙ ثُمَّ بَعَثْنٰهُمْ |
| غوږونو دهغوئ باندې دخوب پرده \| په غار کښې \| څوکلونه \| په شمار \| بيا \| راپورته کړل مونږ هغوئ |
| په دغه غار کښې ډیرو کلونو دخوب پرده واچوله بیامو راپاڅول |
| لِنَعْلَمَ أَيُّ الْحِزْبَيْنِ أَحْصٰى لِمَا |
| چې معلوم کړو مونږه \| چې کومه يوه ددووډلو نه \| ښه حساب کونکې ده \| هغه |
| چې په دغه دوارو ټولو کښې کوم یو ټولې په دې حالت کښې دپاتې کیدو |
| لَبِثُوْٓا أَمَدًا ۝ |
| چې تیره کړه هغوئ \| موده \| |
| دمودې نه زيات واقف دې |

**قوله تعالى:- أَمْ حَسِبْتَ أَنَّ أَصْحٰبَ الْكَهْفِ وَالرَّقِيْمِ ۙ**

**د اصحاب کهف پیژندګلو اوقصه:-** داصحاب کهف قصه په اجمال سره بیانیږی بیاپه تفصیل سره بیانیږی فرمائی چه داواقعه زمونږ د قدرت د بې شمیره واقعاتونه یوه ډیره معمولی واقعه ده د دې نه لوئ لوئ نښې هره ورځ ستاسو په وړاندې وی. دزمکې اوآسمان پیداکول دشپې ورځې اوریدل راوریدل نمر سپوږمئ اطاعت کول وغیره د قدرت بې شمیره نښې کوم چه ښائی د الله ﷻ قدرت بې اندازې شته او هغه په هریوڅیز باندې قادر دې هغه ته یوکار هم ګران نه دې. داصحاب کهف نه خو ډیر زیات

حيرانونکي او اهم نښه د قدرت ستاسو په وړاندې د شپې ورځې ده[١] دکتاب او سنت کوم علم ما تاته درکړې دې هغه د اصحاب کهف د شان نه ډېرزيات دې[٢] ډېر حجتونه ماپخپلو بنديګانو باندې د اصحاب کهف نه ډېرواضحه کړې دي[٣] کهف وائی د غر غارته هلته دا ځوانان پټ شوي وو.

**درقيم حقيقت څه شئ دې:-** رقيم خويادايله سره خواکې د وادئی نوم دې يادهغوی د ځائ ددې عمارت نوم دې[٤] ياد يوې آبادئی نوم دې يادغه غر نوم دې ددغه غر نوم نجلوس هم راغلی دې. د غارنوم ته خيروم ونيلې شوې دې اود هغوی د سپی نوم ئی حمران خودلې دې. حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه ټول قرآن زه پيژنم خو لفظ حنان اواه او لفظ رقيم ماته نه دې معلوم چه رقيم د يوکتاب نوم دې يادآبادئی. په يوبل روايت کښې دهغوی نه نقل دی چه داکتاب دې. سعيد رحمه الله وائی چه دا د کاڼړی يوه تختئی ده په کوم چه د اصحاب کهف قصه ليکلې وه اود غارپه دروازه کښې ئی لګولې وه.[٥] عبدالرحمن رحمه الله وائي قرآن کښې دي(﴿كِتَٰبٞ مَّرۡقُومٞ﴾)[٦] د آيت ظاهری الفاظ خود دې تائيدکوی او هم دا د امام ابن جرير رحمه الله مختار قول دې چه رقيم د فعيل په وزن باندې د مرقوم په معنی کښې دې لکه مقتول قتيل اومجروح جريح. والله اعلم.

داځوانان دخپل دين دبچ کولودپاره دخپل قوم نه تختيدلي وو چه هغوی چرته دوی ددين نه وانړوی .د يوغر په غار کښې ننوتل اود الله ﷻ نه ئی دعااوکړه ياالله مونږ له د خپل حضور نه خپل رحمت راکړه. مونږ دخپل قوم نه پټ کړه زمونږپه دې کارکښې انجام ښه کړه. دحديث په يوه دعاکښې دی اې ربه ته چه کومه فيصله زمونږ په حق کښې اوکړې هغه د انجام لحاظ سره ښه اوکړه[٧] مسند کښې رسول الله ﷺ په خپله دعاکښې عرض کوی اې ربه زمونږ د ټولو کارونو انجام ښه کړه اومونږ د دنيا د رسوائی اود آخرت دعذابونونه بچ کړه.[٨] دوی چه غارته لاړل او اوده شو نوکالونه پرې تيرشو بيا مونږ هغوی بيدارکړل. يوصاحب درهم راواخستو او بازارته ئی سودا اخستلوله لاړو لکه چه راروان دی. دا د دې د پاره چه هغوی دلته څومره موده تيره کړه هغه په دواړو ډلوکښې څوک ډېر زيات يادونکې دې؟ هغوی ته به مونږ هم معلوم کړو(امدا) معنی شمير ده اوونيلې شوی دی چه د غايت په معنی کښې هم دا لفظ راغلې دې لکه چه د عربوشاعرانو په خپلوشعرونوکښې د غايت معنی ترلې ده.

| نَحْنُ | نَقُصُّ | عَلَيْكَ | نَبَأَهُم | بِالْحَقِّ ط |
|---|---|---|---|---|
| مونږه | بيانوو | په تاباندې | قيصه دهغوئ | په حقه سره |
| مونږ تاته ددوئ حالت صحيح صحيح بيانوو | | | | |
| إِنَّهُمْ | فِتْيَةٌ | آمَنُوا | بِرَبِّهِمْ | وَزِدْنَاهُمْ |
| بيشکه هغوئ | يوڅوځوانان ووچې | ايمان ئي راوړي ووپه | رب خپل باندا | اوزيات کړي وو مونږ هغوئ |
| بيشکه دايو څو ځوانان وو چې په خپل رب باندې ئي ايمان راوړي وو اومونږ دوئ ته | | | | |

---

[١] الطبری:١٧/٦٠١.
[٢] الطبری:١٧/٦٠١.
[٣] الطبری:١٧/٦٠١.
[٤] الطبری:١٧/٦٠٧.
[٥] الطبری:١٧/٦٠٣.
[٦] ٨٣/المطففين:٩.
[٧] ابن ماجه كتاب الدعاء باب الجوامع من الدعاء:٣٨٤٦، وسنده صحيح، احمد:٦/١٤٧.
[٨] احمد:٤/١٨١ وسنده حسن، طبرانی:١١٩٦، ابن حبان:٩٤٩، مجمع الزوائد:١٠/١٧٨.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| هُدًى ۝ | وَّرَبَطْنَا | عَلٰى قُلُوْبِهِمْ | اِذْ | قَامُوْا | فَقَالُوْا | |
| په لحاظ دهدايت سره | اومضبوط كړل مونږه | ازړونه دهغوئ | اكله چې | اراپاسيدل هغوئ | نووې وئيل | |

نورزيات هدايت وركړې ووا ومونږ ددوئ زړونه (په صبر) سره مضبوط كړي وو څه وخت چې دوئ تيارشواو وې وئيل

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| رَبُّنَا | رَبُّ السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ | لَنْ نَّدْعُوَا | مِنْ دُوْنِهٖ |
| رب زمونږه | رب د اسمانونو | اودزمكې دې | هركز به اوازنه كړومونږ | ماسوادهغه نه |

چې زمونږ رب داسمانونو او زمكې رب دې مونږ به هيڅكله بې دهغه نه بل څوك

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اِلٰهًا | لَّقَدْ قُلْنَآ | اِذًا | شَطَطًا ۝ | هٰٓؤُلَآءِ | قَوْمُنَا |
| بل معبودته | نووئيلې به وى مونږ | بيا | بې خايه خبره | داخلق | چې قوم زمونږدې |

په معبودكيدو نه بلو كنى ډيره بې ځايه خبره به مو كړى وى دې خلقو زمونږ خپل قوم

| | | | |
|---|---|---|---|
| اتَّخَذُوْا | مِنْ دُوْنِهٖٓ اٰلِهَةً ؕ | لَوْلَا يَاْتُوْنَ | عَلَيْهِمْ |
| نيولى دى دوئ | ماسواد الله نه نورخدايان | ولې نۀ راوړى دوئ | په معبوديت دهغوئ باندې |

دالله ﷻ نه سوا نورخلق ځان له معبودان نيولى دى دوئ په دغه فرضى معبودانو باندې ولې

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| بِسُلْطٰنٍۢ | بَيِّنٍ ؕ | فَمَنْ | اَظْلَمُ | مِمَّنِ | افْتَرٰى | عَلَى اللّٰهِ | كَذِبًا ۝ |
| يو دليل | ښكاره | نوڅوك دې | ډيرظالم | ادهغه چانه | چې تړى | په الله پورې | دروغ |

يوڅرګند دليل نه وړاندې كوى اودهغه چا نه زيات ظالم څوك كيديشى چې په الله ﷻ باندې د دروغو تهمت لګوى

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَاِذِ | اعْتَزَلْتُمُوْهُمْ | وَمَا | يَعْبُدُوْنَ |
| اواوس چې كله | اتعلق ختم كړو تاسو دهغوئ سره | اودهغه معبودانوسره | چې عبادت ئې كوى دوئ |

اوهركله چې تاسو هغوئ(مشركان) اودكومو چې هغوئ دالله ﷻ نه سوا

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اِلَّا اللّٰهَ | فَاْوٗٓا | اِلَى الْكَهْفِ | يَنْشُرْ لَكُمْ | رَبُّكُمْ |
| بې دالله نه | نوپناه واخلئ | غار ته | راخوبه كړى تاسو لره | رب ستاسو |

عبادت كوى پريځو دل نو په غار كښې پناه واخلئ ستاسو رب به تاسو دپاره

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِّنْ رَّحْمَتِهٖ | وَيُهَيِّئْ | لَكُمْ | مِّنْ اَمْرِكُمْ | مِّرْفَقًا ۝ |
| درحمت خپل نه | او پيدا به كړى | دپاره ستاسو | دكار ستاسو نه | اسباب دګزران |

خپل رحمت خور كړى اوستاسو كارونو كښې به داسانئ(سامان) پيدا كړى

**قوله تعالى:-** نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ نَبَاَهُمْ بِالْحَقِّ

**د اصحاب كهف تفصيلي واقعه:-** د دې ځائ نه په تفصيل سره د اصحاب كهف قصه شروع كيږى چه دا يو څو خوانان وو چه د حق دين طرف ته مائل شو اوپه هدايت باندې راغله. په قريشوكښې هم داسې شوې وو چه خوانانو خود حق په آواز باندې لبيك وئيلې وو خوبغيرد يوڅو بوډاګانونه نور پوره د اسلام طرف ته مائل نه شو. وائى چه په دوى كښې د بعضو په غوږونوكښې والئى وې. دا د متقى او لارمونډونكو ډلې خوانان وو د خپل رب وحدانيت ئې منلو د هغه د توحيد قائل شوى وو او ورځ په ورځ په ايمان كښې وړاندې كيدل. د دې اود دې په شان نورو آياتونو نه استدلال كولو سره د امام بخارى رحمه الله وغيره

محدثينو کرامو مذهب دادې چه په ايمان کښې زياتوالې کيږی په دې کښې درجې دی دا کم او زياتيږی[1] د دې ځای نه مونږ هغوی په هدايت کښې زيات کړل بل ځای ارشاد دې ﴿وَالَّذِينَ اهْتَدَوْا زَادَهُمْ هُدًى وَآتَاهُمْ تَقْوَاهُمْ﴾[2] د هدايت والاهدايت زياتيږی الخ. بل ارشاددې ﴿فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا فَزَادَتْهُمْ إِيمَانًا﴾[3] دايمان والاايمان زياتوی الخ. بل آيت کښې دی ﴿لِيَزْدَادُوا إِيمَانًا مَعَ إِيمَانِهِمْ﴾[4] د دې د پاره چه هغوی د خپل ايمان سره په ايمان کښې نور هم زيات شی. هم د دې مضمون نور هم ډير آياتونه دی.

**د اصحاب کهف زمانه:-** ذکر دې چه داخلق د حضرت مسيح عيسی بن مريم ﷺ په دين باندې وو. والله اعلم. خودا ښکاره معلوميږی چه دا د مسيح ﷺ د زمانې نه وړاندې واقعه ده د دې يودليل داهم دې که چرې داخلق نصرانيان وو نو يهوديانوبه نه د دوی دومره په توجه سره د هغوی حالات معلومول اونه به نی د معلومولو هدايت کولو. حالانکه دا بيان تيرشوې دې چه قريشو خپله جرګه د يهوديانوعلماؤ له ليګلې وه چه تاسو مونږ ته څه داسې خبرې اوښائې چه مونږ رسول الله ﷺ ازميښت کړو هغوی اووئيل چه تاسو د اصحاب کهف او ذوالقرنين قصه د هغه نه معلومه کړئی اود روح متعلق سوال ترې اوکړئی نو معلومه شوه چه د يهودو په کتابونوکښې د دې ذکر وو اوهغوی ته د دې واقعه علم وو چه کله دا ثابته شوه نودا خو ښکاره خبره ده چه د يهودو کتاب د نصرانيت نه وړاندې دې. والله اعلم. بيا فرمائی چه مونږ هغوی ته د قوم په مخالفت باندې صبر ورکړو اوهغوی د قوم هيڅ پرواه اونه کړه بلکه وطن راحت او آرام ئی هم پريخودو.

**ددې ځوانانو د ايمان واقعه:-** د بعضې سلفوويناده چه داخلق د روم د بادشاه اولاد اود روم سرداران وو. يوځل قوم سره اختر کولو د پاره تلې وو د هغه زمانې د بادشاه نوم دقيانوس وو ډير سرکشه او سخت سړې وو ټولوته به نی د شرک تعليم کولو او په ټولوبه نی د بتانو عبادت کولو. دا ځوانان چه د خپلو پلارانو اونيکونوسره دې ميلې ته تلې وو هغوی چه کله هلته داتماشه اوليدله نو د هغوی په زړه کښې داخيال راغلو چه دابت پرستی خو يوفضول اوبې کاره څيز دی. عبادتونه اوحلالې خوصرف د يو الله ﷻ په نوم باندې کيدل پکار دی چه د آسمان او زمکې خالق اومالك دې. نو دا خلق يو يوشو اود دې ځای نه لاړل ديوې ونې لاندې يوصاحب کيناستو نور هم دلته راغله دريم هم راغلو څلورم هم راغلو غرض داچه يو يو ټول دلته راجمع شو سره ددې چه يوبل نی نه پيژندلو خود ايمان رڼا يوبل سره يو ځای کړل. حديث شريف کښې دی چه روحونه هم يوجمع شوې لښکردې په روز ازل کښې د هغوی پيژندګلوشوې ده هغوی دلته هم يوځای اوسيږی اوکوم هلته نابلده دی دلته هم په هغوی کښې اختلاف دی[5] (بخاری ومسلم) عرب وائی چه په جنس کښې کيدل ديوځای کيدو علت دې. ټول خاموش وو يود بل نه ويريدوکه زه خپل دضميرراز اوښايم نو دې به مې دښمن شی ديوبل نه خبرنه وو هغه هم د دوی په شان د قوم د دې بې وقوفتوب اومشرکانه رسم نه ويزاره وو. آخر يوهوښيار او تکړه ځوان اووئيل دوستانو څه نه څه خبره خوخامخا شته چه د خلقو د دې عام شغل نه ځان له تاسو راغلې ئی جدا ناست ئی زما خو زړه غواړی چه هرسړې دې خپله خبره ښکاره کړی د څه په وجه چه هغه قوم پريخې وی. په دې باندې يوکس وئيل زوره خبره دا ده چه زما خود خپل قوم دا رسم يوذره هم نه دې خوښ چه کله زمونږ

[1] صحيح بخاری کتاب الايمان باب قول النبی ﷺ بنی الاسلام علی خمس قبل حديث:٨.
[2] ٤٧/محمد:١٧.
[3] ٩/التوبه:١٢٤.
[4] ٤٨/الفتح:٤.
[5] صحيح بخاری کتاب احاديث الانبياء باب الارواح جنود مجندة:٣٣٣٦، صحيح مسلم:٢٦٣٧، الادب المفرد:٩٠١، ابوداؤد:٤٨٣٤، احمد:٥٢٧/٢، ابن حبان:٦١٦٨.

اوستاسو د زمکې اواسمان خالق او مالك صرف هم يوالله دې نوبيا مونږدهغه نه بغيرد نوړ چا عبادت ولې اوکړو؟دې اوريدو سره بل کس اووئيل په الله ﷻ مې دې قسم وی چه دې نفرت زه دلته راوستلې يم دريم هم دا اووئيل چه کله ټولوهم داوجه بيان کړه نود هريو په زړه کښې د خوشحالئي او مينې يوه چپه راغله اودا ټول روشن خيال او موحد په خپل مينځ کښې رښتونې دوستان اود يوې مور نه پيدا شوی رونړو نه زيات د يويل خيرخواه جوړشو او په خپل مينځ کښې اتحاد او اتفاق اوکړو. اوس هغوی يوځائ مقررکړو اوهم هلته به ئې د يو الله ﷻ عبادت کولو. په مزه مزه هغه قوم ته هم پته اولګيده او دوی ئې راونيول اوهغه ظالم بادشاه ته ئې پيش کړل اوشکايت ئې اوکړو. بادشاه د هغوی نه تپوس اوکړو اوهغوی په ډيره بهادرئې سره د خپل توحيد او خپل مسلك بيان اوکړو بلکه بادشاه ته درباريانو ته او ټولې دنياته ئې د دې دعوت ورکړو زړه ئې مضبوط کړو اوصفائي اووئيل زمونږ رب هم هغه دې چه د زمکې او آسمانونومالك اوخالق دې.دانا‌ممکن دی چه مونږ د هغه نه بغيريل څوك معبود جوړکړو. مونږ نه به داچرې هم اونه شي چه د هغه نه بغيربل څوك رأبلو څکه چه شرك ډير باطل څيز دې مونږ هيڅ کله هم د دې کارکونکی نه يو.دا ډيره بې ځايه فضول خبره او ګګه لارده. دا زمونږ قوم مشرك دې د الله ﷻ په ځائ نورو ته چغې وهی د نورو په عبادت کښې مشغول دی د څه چه دوی هيڅ دليل نه شي پيش کولې نودوی ظالمان اودروغژن دی.وائی چه ددوی په دې صفا خبروکولو سره بادشاه ډير وران شو هغوی ئې اوويرول او حکم ئې ورکړو چه د دوی جامې اوباسئي اوکه دوی منع نه شو نو زه به دوی ته سخته سزا ورکړم. اوس د دې خلقو زړونه نور هم مضبوط شوځوهغوی ته دامعلومه شوه چه دلته په اوسيدوباندې مونږ په ديندارئي باندې قايم نه شو پاتې کيدې په دې وجه هغوی قوم وطن رشتې اوخاندان پريخودو پوره پخه اراده اوکړه. هم دا حکم هم دې چه انسان دې د دين د ويرې په وخت کښې هجرت اوکړې. حديث شريف کښې دی چه د انسان بهترين مال ممکن ده چه چيلئې وی کومې چه هغه واخلې اوغره لمن کښې په شينګو کښې اوسيږی اوخپل دين دبچ کولوپه خاطر منډې وهی (په داسې حال کښې دخلقو نه جدا اوخان له اوسيدل مشروع امر دې. اوکه چرې داسې حالت نه وی د زبردستئ اوبريادئي ويره نه وی نوبيا ځنګلونوته وتل مشروع نه دی ځکه چه د جمعه او جمع فضيلت د لاس نه ځی. کله چه داخلق د دين په خاطر د دومره قربانئي ورکولود پاره تيارشو نوپه هغوی باندې درب رحمت نازل شو. اوفرمائيلې شو چه ټيك ده کله ته ددوی د دين نه جداشوې نوبهترده چه بدنی توګه باندې هم د دوی نه جداشې. لاړشئي تاسو په يوغرکښې چرته په غارکښې پناه واخلئي په تاسوبه د رب د رحمت سورې وی. هغه به تاسو ستاسود دبنمن د ستړګونه پټ کړی او ستاسو په کارکښې به آسانی اوراحت راپيداکړی.دې خلقو موقع بيامونډوسره دې ځائ نه تيختنه اوکړه اودغرپه يوه کښې ئې پناه واخستله .بادشاه اوقوم ډير لټون اوکړو خو پته اونه لګيده.الله ﷻ په هغوی باندې ړوندتوب واچولو.

**د اصحاب کهف په پشان زمونږدنبی ﷺ واقعه هم ده:**-اوګورئې هم دابلکه د دې نه ډيره حيرانونکې واقعه زمونږ نبی حضرت محمد ﷺ سره پيښنه شوه. حضور ﷺ سره د خپل رفيق خاص او رفيق غار ابوبکر صديق ﷺ په غارثورکښې پټ شول مشرکانو ډيرې منډې ترړې او هلې ځلې کولوکښې هيڅ کمې پرينخودو خوحضور ﷺ هغوی ته سرد پوره کوشش کولو ملاوئنه شو. الله ﷻ د هغوی نظرواخستو خواوشاکښې به تيريدل سترګې به ئې برندې کړې کتل حضور ﷺ موجود دې اوهغوی ته نه ښکاری. صديق اکبر ﷺ پريشانه شو او عرض ئې اوکړو چه حضور ﷺ که چرې څوك خپلو پښوته هم اوګوری نو

[1] صحيح بخاری کتاب الايمان باب من الدين الفرار من الفتن:١٩، ابوداؤد:٤٢٦٧، احمد:٤٣/٣، مسندابي يعلى:٩٨٣، السنن الكبرى للنسائي:١١٧٦٧، ابن ماجه:٣٩٨، ابن ابي شيبه:٤٤٨/٧.

مونږ به ورته ښكاره شو.حضورﷺ ډير په تسلئ سره جواب وركړو ابوبكر ددې دوو باره كښې ستاسو خيال دې د چا چه دريم پخپله الله ﷻ دې؟([1])قرآن كريم فرمائي كه تاسو زما د نبي امدادنه كوئ نو څه اوشو؟ كله چه كافرانو هغوى اوويستل نو ما پخپله د هغوى امداد اوكړو كله چه هغه په دوو كښې دويم وو اوهغه دواړه په غاركښې وو كله چه هغه خپل ملګرى ته وئيل خفه كيږه مه الله ﷻ زمونږ سره دې نو الله ﷻ د خپل طرف نه په هغوى سكنيت نازل كړواو په داسې لښكر سره ئې د هغوى امداد اوكړو كوم چه تاسو نه شوليدلې. آخرهغه د كافرانو خبره ښكته كړه او خپله كلمه ئې اوچته كړه الله ﷻ د عزت اوحكمت والا دې([2])رښتيا خودادې چه داواقعه داصحاب كهف دواقعه نه هم زياته حيرانونكې او عجيبه ده.يوقول داهم دې چه داخوانان بادشاه او قوم اوليدل.كله چه ئې په غاركښې اوليدل نو هغوى وئيل چه بس مونږ خو هم داغوښتل. هغوى د دې ځله په يوديوال وهلوسره بنده كړه چه هم دلته مړه شي خودا قول تامل طلب دې.د قرآن پاك فرمان دې چه سحر مابنام په هغوى باندې نمر خې راخي. والله اعلم.

| وَتَرَى | الشَّمْسَ | إِذَا | طَلَعَتْ | تَّزٰوَرُ | عَنْ كَهْفِهِمْ | ذَاتَ الْيَمِيْنِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوته به وينې | نمر | كله چې | راخيژى | نوبيچ بچ راخيژى | دغاردهغوئ نه | ښي طرفته |

اوچې نمر راخيژى نو ته به ئې ګورې چې دهغوئ غار نه ښي اړخ ته بچ كيږى

| وَإِذَا غَرَبَتْ | تَّقْرِضُهُمْ | ذَاتَ الشِّمَالِ | وَهُمْ | فِيْ فَجْوَةٍ |
|---|---|---|---|---|
| اوكله چې پريوزى | نوبيچ بچ پريوزى دهغوئ نه | ګس طرفته | اوهغوئ | په فراښه ځائې كښې دى |

او چې ډوبيږى نو دهغوئ نه ګس اړخ ته ډډه كوى او هغوئ د غار په ارت بيرت ځائې كښې

| مِّنْهُ | ذٰلِكَ | مِنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ | مَنْ | يَّهْدِ اللّٰهُ | فَهُوَ | الْمُهْتَدِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ددغه غار | دا | دنښو د الله نه | چاته چې | لاره اوښودله الله | نو هغه | لارمندونكې دې |

وو دا دالله ﷻ دنخښو نه يوه نخښهٔ ده څوګ چې الله ﷻ په سمه لار واچوى نو هغه په سمه لار روان شى

| وَمَنْ يُّضْلِلْ | فَلَنْ تَجِدَ | لَهٗ | وَلِيًّا | مُّرْشِدًا |
|---|---|---|---|---|
| او څوك چې بې لارې كړى الله | نوهرګز به ته اونهٔ مومې | دپاره دهغه | څوك دوست | لارښودونكې |

او څوك بې لارې كړى نو هيڅوك دهغه مددګار لاره خودونكې بيا نه مومې

**قوله تعالى:- وَتَرَى الشَّمْسَ إِذَا طَلَعَتْ تَّزٰوَرُ**

**څه د غار متعلق:-** -دادليل دې د دې خبرې چه ددې غار خُله د شمال طرف ته وه د نمر د راختلو په وخت د دوى ښي طرفته به دنمر سورې تيتيدلواودغرمې په وخت كښې به هلته بالكل نمرنه وودنمر اوچتيدو په وخت كښې به دداسې ځائ نه د نمر شغلې كميدلې اود نمر د ډوبيدو په وخت كښې به نمر د هغوى د غارطرف ته د هغې د دروازې شمالي طرف ته خې.د مشرق طرف نه د علم هيئت پيژندونكي په دې ښه پوهيږى چاته چه د نمرسپوږمئى او ستورو د چال علم دې. كه چرې دغار د دروازې مخ مشرق طرف ته وونود نمر د ډوبيدو په وخت كښې به نمر بالكل نه تلو اوكه د قبله طرف ته وو نود نمر د راختلو په وخت كښې به نمر نه رسيدلو اونه به د ډوبيدو وخت كښې رسيدلو او نه به

[1] صحيح بخارى كتاب فضائل النبي باب مناقب المهاجرين وفضلهم:٣٦٥٣، صحيح مسلم:٢٣٨١.

[2] ٩/التوبه: ٤٠.

سوري ښي یاګس طرف ته تېتېدو اوكه دروازه د مغرب طرف ته وه نو بیابه هم د نمر د راختلوپه وخت كښې دننه تپ نه شو تلې بلكه د زوال نه پس به دننه تلو اوبیابه برابر ترماښام پورې وو. نو ټیك خبره هم هغه ده كومه چه مونږ بیان كړه.فلله الحمد(تقرضهم)معنی حضرت ابن عباس ﷺ د ترك كولو او پريخودلو سره كړي ده. (١)

الله ﷻ جل شانه خو مونږ ته دااوخودل چه مونږ پوهه شو اوسوچ اوكړو ولې دائی اونه خودل چه هغه غار د كوم ښار په كوم غركښې دې دا ځكه چه د دې نه مونږ ته څه فائده نشته اونه د دې سره د څه شرعي مقصد حاصلیدلې كیږي. بیاهم بعضې مفسرینو په دې كښې تكلف اوچت كړې دې. څوك وائی چه هغه دایله سره نیزدې دې. څوك وائی نینوی سره نیزدې دې څوك وائی په روم كښې دې اوڅوك وائی بلقاء كښې دې. اصل علم هم الله ﷻ ته دې چه هغه چرته دې كه په دې كښې څه دیني مصلحت یازمونږ څه دیني فائده وه نو یقیناً الله ﷻ به مونږ ته خودلې وو یادخپل رسول ﷺ په ژبه مباركه به نی مونږ ته بیان كړې وې. د حضورﷺ فرمان دې تاسو ته چه كوم كوم كار او څيزونو جنت ته نیزدې كونكی او ددوزخ نه لرې كونكی وو په هغې كښې یوهم ما بغیرد پريخودو نه اوخودل. نو الله ﷻ د دې صفت بیان كړو اود هغې ځائ نی اونه خودلو. ونی فرمائیل چه د نمر د راختلوپه وخت كښې د هغوی ښي طرف ته هغه تېتېدلو اود ډوبیدو په وخت كښې به نی هغوی ګس طرف ته پريخودل هغوی ددې نه فراخئی كښې دی. هغوی ته د نمر ګرموالې نه رسی اونه د هغوی بدن او كپړې سوزيږي.

داداالله ﷻیوه نښنه ده چه رب هغوی دې غارته اورسول چرته چه نی هغوی ژوندي اوساتل نمر هم ورشی هوا هم ورشی رڼرا هم وی دې د پاره چه نه نی په خوب كښې خلل وی اونه نقصان ورا‌ورسی. په حقیقت كښې داهم د الله ﷻ د طرف نه یوه د هغه د قدرت یوه كامله نښنه وه چه د دې خوانانو مؤحدینو هدایت پخپله الله ﷻ كړې وو دوی په نیغه لارشوې وو د چا په وس كښې نه وه چه دوی نی ګمراه كړې وې د دې برعكس چاته چه الله ﷻ لار اونه ښائی د هغه هادي څوك نشته.

| وَتَحْسَبُهُمْ | أَيْقَاظًا | وَّهُمْ | رُقُوْدٌ | وَّنُقَلِّبُهُمْ | ذَاتَ الْيَمِيْنِ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوته به ګمان كوې په هغوی | دویخو | حال دا چې هغوی | اوده دی | اوارووومونږهغوی | ښی طرفته |
| اوائې مخاطبه، تابه خیال كولو چې دوئ ویښ دی حال دادې چې دوئ اوده دی او مونږ دوئ ښی | | | | | |

| وَذَاتَ الشِّمَالِ | وَكَلْبُهُمْ | بَاسِطٌ | ذِرَاعَيْهِ | بِالْوَصِيْدِ |
|---|---|---|---|---|
| اوګس طرفته | اوسپې دهغوی | غوړونكې وو | دځنګلوخپلو | په خله دغاركښې |
| اوګس طرفته اړوو رااړوو اوددوئ سپې په درشل باندې خورې ځنګلې ناست وو | | | | |

| لَوِاطَّلَعْتَ | عَلَيْهِمْ | لَوَلَّيْتَ | مِنْهُمْ | فِرَارًا | وَّلَمُلِئْتَ |
|---|---|---|---|---|---|
| كه تاسرورښكاره كړو | هغوی ته | نومخ به اوګرزوې ته | دهغوی نه | په تېښته | اوخامخابه ډك شې ته |
| كه تاورته (هیله غوندې) سرورښكاره كړې وې نو پسته به ترې نه تښتیدلې وې اودهغوی | | | | | |

| مِنْهُمْ | رُعْبًا |
|---|---|
| دهغوی نه | په یره سره |
| رعب به درباندې خور شوې وو | |

(١) الطبري:٦٢١/١٧.

**قوله تعالى:-** وَتَحْسَبُهُمْ أَيْقَاظًا وَهُمْ رُقُودٌ

**ددوئ دخوب كيفيت:-** دوی اوده دی خو کتونکی دوی بیدارګنړی ځکه چه د هغوی سترګې کولاوې ذکرشوې دې چه کله ليوه اوده کيږی نو يوه سترګه کولاو ساتی يوه بنده بياهغه بله کولاوکړی او دا بنده کړی. لکه چه يوشاعر ونيلی دی -:

ينام باحدي مقلتيه ويتقي باخري الرزايا فهو يقظان نائم

د ځناوروچينجو مينجو اودښمنانونه د بچ کولو دپاره الله ﷻ په خوب کښې هم د هغوی سترګې کولا وساتلې دی اوزمکه ئی نه خوری اړخونه ئی اوده کيږی نه ځکه چه الله ﷻ د هغوی اړخونه بدلوی وائی چه په کال کښې دوه ځل اړخ بدلوی.

**د اصحاب كهف سپې :-** د هغوی سپې هم خپولې دروازې سره خاوروکښې چوکاټ سره نيزدې د څوکې په توګه لاسونه په زمکه باندې خواره کړې ناست دې اود دروازې نه بهر په دې وجه دې چه په کوم کور کښې سپې تصوير جنبی اوکافر سړې وی هغه کورته فرښتې نه ځی لکه څنګه چه په يوحسن حديث کښې نقل دی[1] دې سپی له هم په دې حال کښې خوب راغلو.رښتيادی چه دخو خلقو ناسته هم ښيګړه پيداکوی.ګورئی ددې سپی څومره شان شوچه په کلام الله کښې دهغه ذکرراغلو وائی چه په دوی کښې دچا داساتلې شوې ښکاری سپې وو.يو قول داهم دې چه د بادشاه د باورچی دا سپې ځکه چه هغه هم د دوی په مسلك وو دهغوی سره په هجرت کښې وو اودهغه سپې هغه پسې شاته لګيدلې وو. والله اعلم.

**يو څو بې دليله خبرې:-** وائی چه دحضرت ابراهيم ﷺ په لاس باندې دحضرت ذبيح الله ﷺ په بدله کښې کوم ګډ حلال شود هغه نوم جرير وو. حضرت سليمان ﷺ ته چه کوم ملاچرګك د ملکه بلقيس خبر ورکړې وو د هغه نوم غنفز وو اود اصحاب کهف د دې سپې نوم قطميرو او بنی اسرائيلو چه د کوم سخی عبادت شروع کړې وود هغه نوم يهموت وو. حضرت آدم ﷺ د جنت نه هندکښې کوز شوې وو حضرت حوا ﷺ په جده کښې ابليس د بيسان په دشت کښې او ماريه اصفهان کښې.

يو قول دې چه د دې سپی نوم حمران وودې سره د دې سپی په رنګ کښې هم ډير اقوال دی خومونږ حيران يو چه د دې نه څه نتيجه او د دې نه څه فائده؟څه ضرورت دې؟ بلکه عجيبه نه دی چه داسې بحثونه منع وی ځکه چه داخو په پښتوسترګوباندې کانړی ويشتل دی. بې دليل ژبه کولاوول دی. بيا فرمائی چه مونږ هغه ته داسې رعب ورکړوچه چا هغه ته کتلې نه شو. داځکه چه خلق د ده تماشه جوړه نه کړی څوك بهادری اونه کړی اودې له خواله لاړنه شی څوك دې سره لاس اونه لګوی. هغوئ په آرام او حوصلې سره ترکومې چه د الله ﷻ حکمت دې اوده وی. څوك چه دې ته ګوری د ويرې نه لړچيږی هم هغه وخت په اولته پښو واپس ګرځی هغوئ ته په يونظر کتل هم د خلقو د پاره ګران دی.

| | | |
|---|---|---|
| لِيَتَسَاءَلُوا | بَعَثْنٰهُمْ | وَكَذٰلِكَ |
| او دغه شان مونږ دوئ راوپښ کړل | دپاره ددې چې تپوس اوکړی ديو بل نه | اوهمدارنګې ارا پاسول مونږه هغوئ |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَالُوا | كَمْ لَبِثْتُمْ | مِّنْهُمْ | قَآئِلٌ | قَالَ | بَيْنَهُمْ |
| اوونيل هغوئ | څومره وخت تيرکړو تاسو | دهغوئ نه | يوويونکی | اوونيل | په خپل منځ کښې |

چې په خپل مينځ کښې ديوبل نه تپوس اوکړی نو يوتن په کښې اوونيل چې تاسو به څومره موده دلته تيره کړې وی دوئ اوونيل

[1]) ابوداؤد كتاب الطهارة باب الجنب يؤخر الغسل:٢٢٧ وسنده حسن، نسائی ٢٦٢، ابن ماجه: ٣٦٥، بدون ذكر الكافر.

| لَبِثْنَا | يَوْمًا | أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ | قَالُوْا | رَبُّكُمْ | أَعْلَمُ |
|---|---|---|---|---|---|
| وخت تیرکړو مونږه | یوه ورځ | یا یوه حصه دورځې | اووئیل هغوئ | رب ستاسو | ښه عالم دی |

چې مونږ یوهٔ ورځ یا دیوې ورځې یوه حصه تیره کړه پس دوئ اووئیل چې ستاسو رب ښه پوهه دې

| بِمَا | لَبِثْتُمْ | فَابْعَثُوْا | أَحَدَكُمْ | بِوَرِقِكُمْ | هٰذِهٖ |
|---|---|---|---|---|---|
| په هغه وخت | چې تاسوتیرکړو | نو اولیږئ | یو تن له تاسو نه | دسپنو زرو خپلو سره | چې دادی |

چې تاسوخومره موده تیره کړې ده (نو دا بحث پریږدئی خوهٔ یوتن دیوې روپۍ سره

| إِلَى الْمَدِيْنَةِ | فَلْيَنْظُرْ | أَيُّهَا | أَزْكٰى | طَعَامًا |
|---|---|---|---|---|
| دې ښارته | او دې دګورې هغه | چې کوم یو خائې ددغه ښار نه | زیات پاکیزه دې | په لحاظ دطعام سره |

ښار طرفته اولیږئ نو اودې ګورې چې دکوم خوراک پاکیزه دې نو دهغې نه دې

| فَلْيَأْتِكُمْ | بِرِزْقٍ | مِّنْهُ | وَلْيَتَلَطَّفْ |
|---|---|---|---|
| نو راوړی تاسوته | خوراك | دهغه خائې نه | اوبه کار دی چې هغه دهوښیارتیانه کار واخلی |

څه لږډیرخوراک تاسو له راوړی اوخلقو سره دې خوږې پستې خبرې کوی

| وَلَا يُشْعِرَنَّ | بِكُمْ أَحَدًا۝ | إِنَّهُمْ | إِنْ يَّظْهَرُوْا | عَلَيْكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| او خبرنهٔ کړې هرګز | په تاسو باندې هیڅوك | بیشکه هغوئ | که غالب شوا | په تاسویاندې |

اوستاسو حال دې چاته نه وائی که هغوئ درباندې خبر شو

| يَرْجُمُوْكُمْ | أَوْ يُعِيْدُوْكُمْ | فِيْ مِلَّتِهِمْ | وَلَنْ تُفْلِحُوْا |
|---|---|---|---|
| نوسنګسار به کړی تاسو | یابه واپس راوړی تاسو | املت خپل ته | اوهرګز به کامیاب نشئ تاسو |

نو سنګسار به مو کړی اوخپل مذهب ته به مو بیا واپس کړی او که چرې داسې اوشو نو تاسو

| إِذًا | أَبَدًا۝ |
|---|---|
| بیا | هیڅکله |

به چرې هم کامیاب نه شئ

**قوله تعالى:- وَكَذٰلِكَ بَعَثْنٰهُمْ لِيَتَسَآءَلُوْا بَيْنَهُمْ**

**درې سوا کاله نه پس چه د اصحاب کهف رابیدارشونو؟**:-ارشاد کولې شی لکه څنګه چه مونږهغوی په خپل قدرت کامله سره اوده کړې وو هم هغه شان مونږ په خپل قدرت سره راپاسول. درې سوه نهه کاله پورې اوده وو خوچه کله راپاسیدل نو چه څنګه اوده شوې وو نوهم هغه شان وو لکه څنګه چه د اوده کیدو په وخت کښې وو بدن خرمن وینبته تول هرڅه نی په اصلی حالت کښې وو. لکه څنګه چه د اوده کیدو په وخت وو اوس هم هغه شان وو هیڅ قسم بدلون په کښې نه وو. خپل مینځ کښې ونیل ولې جی څومره موده اوده وو؟ جواب ملاوشو چه یوه ورځ یاد دې نه هم کم ځکه چه د سحر په وخت کښې دوی اوده شوې وو اوهغه وخت د ماښام وخت ووبه دې وجه دهغوی دا خیال پیداشو خو بیا پخپله د هغوی دا خیال شو داسې خو نه ده. په دې وجه هغوی ذهن جنګول پریخودل اویوفیصله کونکې خبره نی اوکړه

چه د دې صحيح علم صرف هم الله ﷻ ته دې. دې وخت ولړه تنده معلوميده د دې وجه هغوى د بازار نه سودا راغوښتل تجويز كړل. پيسې هغوى سره وې په كومو كښې چه نې څه د الله ﷻ په لاركښې خرچ كړې وې څه ورسره وې نو وئيل هم دې ښاركښې چاله پيسې وركړئې اود هغه ځائ نه دې د خوراك ښناك څه پاك څيز راوړى يعنى ښكلې ښائسته څيز لكه چه په آيت كښې ارشاد دې ﴿وَلَوْلَا فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهُ مَا زَكَىٰ مِنكُم مِّنْ أَحَدٍ أَبَدًا﴾[1] يعنى كه د الله ﷻ فضل اوكرم په تاسو باندې نه وو نو تاسو نه به څوك هم پاك نه ووبل آيت كښې دى ﴿وَلَوْلَا فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهُ مَا زَكَىٰ مِنكُم مِّنْ أَحَدٍ أَبَدًا﴾[2] هغوى خلاصي بيامونده څوك چه پاك شو. زكوة ته هم زكوة په دې وجه وائى چه هغه مال پاك صفا كوى. دويم قول دا دې چه دې نه مراد ډير زيات خوراك راوړل دى لكه دفصل لونيدو په وخت كښې عرب وائى ((زكا الزرع)) او لكه د شاعر وينادہ -:

قبائلنا سبع وانتم ثلثة ولسبع ازكى من ثلاث واطيب

دلته هم دا لفظ دزياتوالى اوكثرت په معنى كښې دې خواولنې قول صحيح دې ځكه چه داصحاب كهف مقصد ددې قول نه حلال څيز راوړل وو كه هغه زيات وى كه كم.

وائى چه تلونكى له ډيراحتياط كول پكار دى چه په تلوراتلواوسودا اخستلوكښې دهوښيارئى نه كار واخلى تركومې پورې چه كيدې شى نودخلقو په نظركښې دې نه راخى. كوره هسې نه چه چاته پته اولگى اوكه هغوى ته معلومه شوه نو بيامو خير نشته. كه ددقيانوس سړو ستاسود ځائ معلومات اوكړو نوهغوى به تاسو له سختې سختې سزاګانې دركړى ياخوبه تاسو دهغوى نه اوويريږنى اوحق دين به پريږدنى اوبيابه كافران شئ يا هم په دې سزاګانې هغوى ستاسو كار خلاص كړى. كه تاسو د هغوى دين كښې يوځائ شوئى نوپوهه شئى چه تاسو د خلاصى نه لاس راښكلو بياخوبه د الله ﷻ سره ستاسو خلاصيدل ډير ګران شي.

| وَكَذَٰلِكَ | أَعْثَرْنَا | عَلَيْهِمْ | لِيَعْلَمُوٓا |
|---|---|---|---|
| او په دې طريقه | خبركړل مونږه | په هغوئ باند | دپاره ددې چې معلومه شي خلقوته |
| اودغه شان مونږ خلق دهغوئ په حال خبر كړل چې په دې پوهه شي | | | |

| أَنَّ | وَعْدَ اللَّهِ | حَقٌّ | وَأَنَّ | السَّاعَةَ | لَا رَيْبَ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې بيشكه | وعده | دالله | ربښتينى ده | او بيشكه | قيامت چې دې | نشته شك |
| چې دالله ﷻ وعده ربښتونې ده و دا چې دقيامت په راتلو كښې هيڅ شك | | | | | |

| فِيهَا | إِذْ | يَتَنَازَعُونَ | بَيْنَهُمْ | أَمْرَهُمْ |
|---|---|---|---|---|
| په راتلودهغې كښې | كله چې | هغوئ جګړې كولې | په خپل منځ كښې | په دې كار خپل كښې |
| نشته هركله چې (دهغې زمانې خلقو) ددوئ په حقله په خپل مينځ كښې جګړه كوله | | | | |

| فَقَالُوا | ابْنُوا | عَلَيْهِم | بُنْيَانًا | رَّبُّهُمْ | أَعْلَمُ |
|---|---|---|---|---|---|
| نو اووئيل څه خلقو | چې جوړكړئ | په دوئ باندې | يو ديوال | رب ددوئ | ښه عالم دې |
| نودوئ اووئيل چې په دوئ باندې يو عمارت جوړ كړئ دهغوئ رب ته دهغوئ حال ښه | | | | | |

---

[1] ٢٤/النور:٢١.

[2] ٨٧/الاعلى:١٤.

| بِهِمْ | قَالَ | الَّذِيْنَ | غَلَبُوْا | عَلٰٓى اَمْرِهِمْ |
|---|---|---|---|---|
| په حال ددوئ باند | اووئيل | هغه كسانوا | چې غالب وو | په معاملاتو دهغوئ باند |
| معلوم دي نوخوک چې په خپل كار باندې غالب وو هغوئ اووئيل چې مونږ خو به | | | | |

| لَنَتَّخِذَنَّ | عَلَيْهِمْ | مَّسْجِدًا۝ |
|---|---|---|
| خامخا به جوړ وو مونږه | په دوئ باند | يوه عبادت خانه |
| دلته يوه عبادت خانه جوړوو | | |

**قوله تعالى:- وَكَذٰلِكَ اَعْثَرْنَا عَلَيْهِمْ لِيَعْلَمُوْٓا اَنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ**

**د اصحاب كهف واقعه د مرګ نه پس د ژوندى كيدو ښكاره دليل دې** :- ارشاد دې چه هم دغه شان مونږ په خپل قدرت باندې دهغوى په حال باندې خلق خبركړل.دې دپاره چه د الله ﷻ دوعدې او قيامت د راتلوصداقت هغوى ته معلوم شي.وائى چه په هغه زمانه كښې خلقو ته د قيامت په راتلوكښې څه شك پيداشوې وو. يوې ډلې خو به وئيل چه صرف روحونه به بياژوندى كيږى د بدن واپس كيدل به نه كيږى نو الله ﷻ د سوونوكالو نه پس اصحاب كهف راپاسول د قيامت د كيدو او د بدن دوباره ژوندى كيدو حجت ئې واضح كړو او د سترګوليدلې دليل ئې وركړو.

**كوم سړې چه د خوراک څيزونه راوړله لاړوهغه څه اوليدل؟**:-بيان دې چه كله د هغوى نه يوصاحب پيسې واخستې اودسودا د اخستلودپاره د غارنه بهرراووتلو نو چه وني كتل دهغه دكتلى شوى څيزونو كښې يو څيزهم نه ووټوله نقشه بدله شوې وه. د هغه ښار نوم افسوس ووزمانې تيرې شوې وې كلى بدل شوى ووپه سوونو كالونه تيرشوى وو اودوى خوخپل خان سره هم دا ګڼړل چه مونږ دلته په رسيدو باندې يوه ورځ يا نيمه تيره شوې ده. دلته د زمانې انقلاب اوځه نور څه شوى وو. لګه څنګه چه د چا وينا ده -:

اماالديارفانهاكديارهم　　　　واري رجال الحي غيررجاله

كورونه خو هم هغه شان دى خود قبيلې خلق څه نور شان دى هغه اوكتل چه نه خو د ښار يوڅيز په خپل حال دې نه دښاريوكس پيژندګلو دې نه دې څوک پيژنى اونه نورخلق دې پيژنى. ټول عام اوخاص بل شان دى. دې په خپل زړه كښې حيران وو سرېږې تاويدلوچه پرون مابښام خو دا ښار مونږ پريخې دې دا ناڅاپې څه اوشو؟ ډير سوچونه ئې كول خو څه خبره ئې په ذهن كښې نه راتله. آخر ئې خيال اوكړو چه زه ليونې شوې يم بازما عقل په ځائ نه دې يا ماته څه مرض لګيدلې دې يا زه اوده يم. دا خيالونه ئې ډير زربدل شو خو څه خبره تړې نه شوه جوړيدې. په دې وجه ئې اراده اوكړه چه سودا اخلم اودا ښار ډير زر پريخودل پكار دى. يودوكان ته لاړو پيسې وركړې اود خوراک څښاک سودا ئې اوغوښتله. دوكاندار چه هغه وخت دا پيسه اوكتله نو ډير زيات حيران شو او هغه ئې خپل ګاوندى ته وركړه چه اوګوره دا سكه څنګه ده؟ د كوم وخت ده؟ د كومې زمانې ده؟ هغه بل ته وركړه اود هغه نه بل چا د كتلو د پاره اوغوښتله.غرض داچه دې نه خويوه تماشه جوړه شوه د هريود خلې نه وتل چه ده د پخوانې زمانې خزانه موندلې د هغې نه ئې دا راوړې ده. ده نه تپوس اوكړنى دا څوک دې ؟ د كوم ځائ؟ دا پيسه ئې د كوم ده؟ خلقو دې راګيركړو خلق راجمع شو اودريدو اولاندې باندې كاږه نيغ سوالونه كول شروع شو. هغه وئيل زه خوهم د دې ښار اوسيدونكې يم. پرون مابښام زه د دې ځائ نه تلې يم د دې ځائ بادشاه دقيانوس دې. دې وخت كښې ټولو اوخاندل او وئي رونړو دا څوک ليونې دې. آخر ئې بادشاه ته مخامخ كړو د هغه نه ئې تپوسونه اوكړه هغه ټول حال بيان كړو. اوس يوطرف ته بادشاه او ټول خلق حيران دى

بل طرف ته دي په شش وپنج کښې حيران ولاړدي. اخر ټول خلق هغه سره شو چه مونږ ته خپل نوز ملګرى اوښايه او خپل غارهم راته اوښايه. ده هغوى بوتله. هغه ونيل تاسو لږ شان اودريږئى زه هغوى ته خبر ورکوم. د هغه په اخواکيدو سره الله ﷻ په هغوى د بې خبرۍ پردې راخورې کړې دوى ته معلومه نه شوه چه هغه چرته لاړو؟ الله ﷻ بيا داراز پټ کړو. په يوروايت کښې داهم راغلي دي چه خلق سره د بادشاه لاړل. هغوى سره ملاوشو سلام عليك اوشو غارې ملاوکړې دا بادشاه پخپله هم مسلمان وو د هغه نوم تيودوسيس وو. اصحاب کهف هغه سره ملاوشو ډير خوشحاله شو او په مينه اومحبت سره ملاوشو خبرې اوشې بيا واپس خپل خپل ځائ ته لاړل بيا الله ﷻ هغوى مړه کړل. والله اعلم.
وائى چه حضرت عبدالله ابن عباس﵄ حبيب بن مسلمه ﵁ سره يوغزوه کښې ووهلته هغه د روم په ښارکښې يوغاراوليدو په کوم کښې چه هډوکي وو خلقو ونيل داهډوکى د اصحاب کهف دى. هغوى اوفرمائيل چه درې سوه کاله تيرشوى چه د هغوى هډوکى ډېشوى خاورې شوى. (ابن جرير)
نو فرمانى چه څنګه مونږ هغوى په عجيبه طريقه سره اوده کړى وو اوبالکل په يو نوې طريقه سره مو راپاسول دغه شان بالکل په يو نابلده طريقه سره د ښار باشندګان د هغوى په حالاتو خبرکړل دې د پاره چه هغوى ته د الله ﷻ د وعدو د حقانيت علم اوشى اود قيامت په کيدو کښې اود دې په حق سره کيدو کښې هيڅ شك نشته. هغه وخت هغوى په خپل مينځ کښې سخت مخالف وو اوجنګ جګړې کولې. بعضې د قيامت قايل وو بعضې منکر وو. د اصحاب کهف ښکاره کيدل په منکرانو باندې حجت اود منونکو دپاره دليل جوړشو.اوس دهغه کلي والا دا اراده اوکړه چه دهغه غارخُله بندکړى اوهغوى په خپل حال باندې پرېږدى چاته چه د کار غلبه حاصله وه هغوى خو اراده اوکړه چه مونږخود دوى نه چاپيره جمات جوړ وو. امام ابن جرير﵀ د هغه خلقو باره کښې دوه اقوال نقل کړى يو دا چه په هغوى کښې مسلمانانووئيلي وو دويم دا چه داقول د کافرانو وو. والله اعلم.
**قبرپوخ مه جوړوئى**:په ظاهرى توګه خوهغوى مسلمانان معلوميدل چه د دې کلمه قائل او ويونکى وو دا يوه بله خبره ده چه د هغوى دا وينا ښه وه که بده؟ نو په دې باره کښې صفاحديث موجود دې رسول الله ﷺ فرمائيلى الله ﷻ دې په يهوديانواونصارى باندې لعنت اوکړى چه هغوى د خپلو انبياؤکرامو اولياؤکرامو قبرونه جماتونه جوړکړل.([1]) کوم چه هغوى کړى وو د هغې نه حضور ﷺ خپل امت بچ کول غوښتل.ددې د پاره د اميرالمؤمنين حضرت عمر بن الخطاب ﵁ په زمانه کښې کله د حضرت دنيال ﵇ قبرپه عراق کښې بياموندې شو نو اوفرمائيلې شو چه دا پټ کړئى اوکومه رقعه چه ملاوشوې چه په کښې د بعضو جنګونو وغيره ذکر دې دا ښخه کړئى.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | | سَيَقُولُونَ | ثَلٰثَةٌ |
| | | | | ا | وائى به څه خلق ا چې هغوئ درې وو |
| | | | | | اوس څوک چې وائى چې هغوئ درې تنه وو |
| رَّابِعُهُمْ | كَلْبُهُمْ | وَيَقُولُونَ | خَمْسَةٌ | سَادِسُهُمْ | كَلْبُهُمْ |
| څلورم دهغوئ اسپې دهغوئ وو ا اوڅوک به وائى ا چې پنځه وو ا او شپږم دهغوئ اسپې دهغوئ وو | | | | | |
| او څلورم ئې سپې وو اوڅوک چې وائى چې پنځه تنه وو او شپږم ئې سپې وو | | | | | |

[1] صحيح بخارى كتاب الجنائز مايكره من اتخاذ المساجدعلى القبور:١٣٣٠، صحيح مسلم:٥٣١، احمد:٦/٨٠.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| رَجۡمًاۢ | بِالۡغَيۡبِ | وَيَقُوۡلُوۡنَ | سَبۡعَةٌ | وَّثَامِنُهُمۡ | كَلۡبُهُمۡ |
| دا ويشتل دي | په غيبو سره | اووائي څيني نورخلق | چي اوه وو | او اتم دهغوئ | سپي دهغوئ وو |

داتولي بي تحقيقه خبري دي اوځوک به وائي چي اووۀ تنه وو او اتم ددوئ سپي وو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قُلۡ | رَّبِّيۡۤ | اَعۡلَمُ | بِعِدَّتِهِمۡ | مَّا يَعۡلَمُهُمۡ | اِلَّا |
| ورته اووايه | چي رب زما | ښه عالم دي | په شماره دهغوئ | نۀ دي معلوم دوئ ته | مګر |

(اې پيغمبره) ته ورته اووايه چي زما رب ته دهغوئ شمير ښه معلوم دي په دوئ صرف لږ غوندي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قَلِيۡلٌ | فَلَا تُمَارِ | فِيۡهِمۡ | اِلَّا مِرَآءً | ظَاهِرًا |
| ډيرولږ خلقو ته | پس جګړه مۀ کوه تۀ | په باره دهغوئ کښي | مګربحث | سرسري |

خلق پوهه دي پس ته دسر سري بحث نه سوا ددوئ په باره کښي زيات تحقيق مه کوه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَّلَا تَسۡتَفۡتِ | فِيۡهِمۡ | مِّنۡهُمۡ | اَحَدًا | وَلَا تَقُوۡلَنَّ |
| او تپوس مه کوه تۀ | په باره دهغوئ کښي | په دوئ کښي | دهيچانه | او مۀ وايه تۀ هرګز |

او ددوئ په حقله په دي خلقو کښي دهيچا نه تپوس مه کوه اودهيڅ څيز په حقله

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لِشَايۡءٍ | اِنِّيۡ | فَاعِلٌ | ذٰلِكَ | غَدًا | اِلَّاۤ | اَنۡ يَّشَآءَ اللّٰهُ |
| دهيڅ څيز په حقله | چي بيشکه زۀ | کونکي يم | ددغه کار | صباله | مګروايه | چي اوغواړي الله |

دامه وايه چي زه به ئې صباله کوم سوا ددي نه چي الله ﷻ ئې غواړي

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَاذۡكُرۡ | رَّبَّكَ | اِذَا | نَسِيۡتَ | وَقُلۡ | عَسٰۤى | اَنۡ يَّهۡدِيَنِ | رَبِّيۡ |
| اوياد کړه | رب خپل | کله چي | هيرشي ستا | اووايه | اميد دي | چي اوښائي ماته | رب زما |

اوخپل رب يادوه هركله چي خبره درنه هيره شي اووايه چي اميد دي چي زما رب ماته داسي لار اوښائي

| | | |
|---|---|---|
| لِاَقۡرَبَ | مِنۡ هٰذَا | رَشَدًا |
| زياته نزدي (خبره) | ددي نه | صحيح والي ته |

چي ددي نه ډيره نزدي خبره راته سمه کړي

**قوله تعالى:- سَيَقُوۡلُوۡنَ ثَلٰثَةٌ رَّابِعُهُمۡ كَلۡبُهُمۡ**

**د اصحاب كهف شمير او دهغوئ نومونه:-** خلقو به داصحاب كهف په شمير كښي څه اوڅه وئيل.دري قسمه خلق وو خلورم شميرنه دي بيان شوي. دوه رومبني اقوال خو ئي ضعيف كړل چه دا د خان نه اټكلي خبري دي. بې نښې كانړي دى كه چرته اولګي نوكمال نه دي اوكه اونه لګي نو زوال نشته اودريم قول بيانولوسره خاموشي اختياركړه نه ئي ترديد اوكړو يعني اووه او اتم د هغوى سپي. دې خو معلوميږي چه هم دا خبره صحيح ده او په واقع كښې هم داسې ده. بيا ارشاد مبارك دې چه په داسې موقعوباندې بهترهم دادى چه دالله ﷻ دعلم طرف ته دااوګرخولې شى پداسې خبرو كښې سره د صحيح علم د نشت والى غوراو سوچ كول عبث دى كه ديوې خبرې علم اوشى د ځلې نه دې اوباسى ګنى خاموش دې شى.

د دې شمير صحيح علم ډېرو کموخلقوته دې. ابن عباس‌ فرمائي زه هم د هغوی نه يم ماته معلومه ده هغوی اووه وو(١)د حضرت عطاء خراساني  هم دا قول دې (٢)اوهم دا مونږ اول ليکلي وو. په دوی کښې خو بعضې ډېر کم عمر ووپه عنفوان ځوانئ کښې وو.دا خلق به شپه ورځ دالله  په عبادت کښې وو او ژړل به ئې او الله  ته به ئې فرياد کولو. روايت دې چه دا نهه وو او په دوی کښې چه کوم لوئ وو د هغه نوم مکسلمين وو هغه بادشاه سره خبرې کړې وې او هغه ته ئې د الله  واحد د عبادت دعوت ورکړې وو. د باقي نومونه دا دی يمليخ، مرطونس، کسطونس، بيرونس، ونيموس، يطبونس او قابوش. اود ابن عباس  صحيح روايت هم دا دې چه دا اووه کسان وو اود آيت د ظاهري الفاظونه هم دامعلوميږي. شعيب جبائي  وائي د هغوی دسپي نوم حمران وو.خود دې نومونو په صحت کښې نظر دې. والله اعلم. په دې کښې ډېر څيزونه د اهل کتاب نه اخستې شوی دی. بيا خپل نبي ته ارشاد فرمائي چه ته د دوی باره کښې ډېر بحث مباحثه مه کوه. دايوډېر سپک کاردې په کوم کښې چه څه غټه فائده نشته اومه د دوی باره کښې د چانه تپوس کوه ځکه چه هغوی عموما د ځان نه خبرې جوړوی اوکوی. هيڅ صحيح او رښتوني دليل هغوی سره نشته او الله  چه کوم څه ستا په وړاندې بيان کړی دی دا د دروغونه پاک دی او د شک شبه نه لرې دی د ايمان او يقين قابل دی بس هم دا حق دی اود ټولونه مقدم دی.

**د هرکارنه وړاندې ان شاء الله وئيل پکاردی**:-الله  تبارك وتعالی خپل خوږ نبی ختم المرسلين  ته ارشاد فرمائي چه کوم يوکار صباله کول غواړې نوداسې مه وايه چه صبابه ئې کوم بلکه دې سره ان شاء الله وايه ځکه چه صبابه څه کيږی د دې علم صرف الله  ته دې. علام الغيوب او په ټولو څيزونو باندې صرف هم هغه قادر دی د هغه نه امدادغواړه. بخاری اومسلم کښې دی رسول الله  فرمائي د حضرت سليمان بن داؤد  لس کم سل بيبياني وې په يو روايت کښې دی سل وې يو کښې دوه اويا وې نو هغه اووئيل چه نن شپه کښې به زه دوی ټولوله ورځم د هرې يوې ښځې به بچې کيږی اوهغه به د الله  په لارکښې جهاد کوی. هغه وخت فرښتې اووئيل چه ان شاء الله اووايه خو حضرت سليمان  اونه وئيل. د خپلې ارادې مطابق هغه ټولو بيبيانوله لاړو خوبغيرد يوې بی بی نه د يوې هم بچې اونه شواود کومې يوې چه اوشو هغه هم نيم بدن وو. حضور فرمائي دالله  قسم د چا په لاس کښې چه زما ځان دې که هغه ان شاء الله وئيلې وونود هغه به دا اراده پوره شوې وه او د هغه حاجت به پوره شوې وو اودا ټول بچې به ځوانان شوی وواود الله  د لارې مجاهد به جوړشوی وو.(٣)هم د دې سورت په شروع کښې د دې آيت شان نزول بيان شوې دې چه کله د حضور نه د اصحاب کهف قصه معلومه کړې شود نو حضور اوفرمائيل چه زه به صباله تاسو ته جواب درکړم ان شاء الله ئې اونه وئيل په دې وجه پنځلس ورځې وحی نازل نه شوه(٤)داحديث پوره مونږ د دې سورت د تفسير په شروع کښې بيان کړې دې دلته بياد بيان ضرورت نشته. بيا فرمائي چه کله درنه هيره اوشي نو بيا هم خپل رب يادکړه يعنی ان شاء الله وايه که په موقع ياد نه شي خو چه کله هم ياد شي وايه. (٥)

**په څه کاردقسم اخستو نه پس هم انشاء الله وئيل پکار دی**:-حضرت ابن عباس  د هغه سړی باره کښې فرمائي چه څوك قسم اوخوری نو هغه له بيا هم ان شاء الله وئيلو حق شته که يوکال په تيرشوې هم

---

(١) الطبری:٦٤٢/١٧.

(٢) الطبری:٦٤٢/١٧.

(٣) صحيح بخاری کتاب الجهاد باب من طلب الولدللجهاد:٢٨١٩، صحيح مسلم:١٦٥٤، مسندابی يعلی:٦٢٤٤.

(٤) الطبری:٦٤٢/١٧.

(٥) الطبری:٦٤٢/١٧.

وي(١) مطلب دا دې چه په خپل كلام كښې ياقسم كښې انشاء الله ونيل هيرشونو چه كله هم ياد راشي اودې واني كه هرڅومره موده هم تيره شوې وي اودهغې خلاف هم شوي وي ددې دا مطلب نه دې چه اوس به په ده باندې د قسم كفاره نه وي اوده له د قسم ماتولو اختيار دې. هم دا مطلب د دې قول امام ابن جرير رحمه الله بيان كړې دې چه مراد ان شاء الله ونيل هيرول دي. په يوبل روايت كښې د دې نه پس دا هم دي چه دا مخصوص دې. يومطلب دا هم دې چه كله يوه خبره هيره شي نود الله ﷻ ذكر كوه ځكه چه هيرول د شيطان حركت دې اود الله ﷻ ذكر هم د يادولو ذريعه ده. بيافرماني چه تانه دڅه داسې خبرې تپوس اوشي چه تاته د هغې علم نه وي نود الله ﷻ نه معلومول كول اود هغه طرف ته توجه كوه هغه به تاته صحيح او د هدايت والا لار دربنائي. په دې كښې نوراقوال هم شته. والله اعلم.

| | |
|---|---|
| وَلَبِثُوا | فِي كَهْفِهِمْ |
| ا اووخت تير كړو هغوئ | ا په غار خپل كښې |
| اودغه خلق په خپل غار كښې نهه كاله دپاسه | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ثَلٰثَ مِائَةٍ | سِنِينَ | وَازْدَادُوا | تِسْعًا ۝ | قُلِ اللّٰهُ | أَعْلَمُ | بِمَا | |
| درې ا | سوه ا | كلونه | ا او زيات كړل خلقو ا | نهه كاله ا | اووايه چې الله ا | ښه عالم دې ا | په هغه موده |
| درې سوه كاله (اوده) پاتې شول ته اووايه چې الله ﷻ ته ښه معلوم دی چې څومره موده | | | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَبِثُوا | لَهُ | غَيْبُ السَّمٰوٰتِ | وَالْأَرْضِ | أَبْصِرْ بِهِ | |
| چې هغوئ تير كړو ا هغه ته معلوم دي ا پټ حالونه دآسمانونو | | | ا اودزمكې | ا څنګه ښه ليدونكې دې هغه | |
| پاتې شوي وو هغه ته دآسمانونو اوزمكې ټولې غيبي خبرې معلوم دي هغه هرڅه ليدونكې | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَأَسْمِعْ | مَا لَهُمْ | مِنْ دُونِهِ | مِنْ وَلِيٍّ | وَلَا يُشْرِكُ |
| او ښه اوريدونكې دې ا نشته دوئ لره ا | | ماسوا د هغه نه ا | څوك دوست ا | اونۀ شريكوي هغه |
| اوهرڅه اوريدونكې دې الله ﷻ نه سوا بل ملګرې نشته او نه هغه په خپل حكم كښې | | | | |

| | |
|---|---|
| فِي حُكْمِهِ | أَحَدًا ۝ |
| په حكومت خپل كښې ا هيڅوك ا | |
| بل څوك شريكوي | |

**قوله:- وَلَبِثُوا فِي كَهْفِهِمْ ثَلٰثَ مِائَةٍ سِنِينَ وَازْدَادُوا تِسْعًا**

**د اصحاب كهف د حصاريدو موده:- الله ﷻ خپل خوږ نبي ﷺ ته د دې مودې خبر وركوي كومه چه اصحاب** كهف پخپلواوده كيدو كښې تيره كړې وه هغه موده دنمر په حساب سره درې سواكاله وه او د سپوږمۍ په حساب سره درې سوه اونهه كاله وه. في الواقع په شمسي او قمري كال كښې د هرو سلو كالونه پس درې كاله فرق پريوځي په دې وجه درې سوه ئې جدا بيان كړل اوبيائې نهه جدا بيان كړل. بيافرماني چه كله تانه د دوی د اوده كيدو د مودې تپوس اوشي اوتاسره د دې څه علم نه وي او الله ﷻ ته خبر كړې نې نوورانديې مه څه او په داسې اموروكښې جواب وركوه چه هم الله ﷻ ته صحيح علم دې. د آسمان اوزمكې غيب هم هغه پيژني چاته چه هغه كومه خبره اوښائي هم هغه پيژني. حضرت قتاده

---

(١) الطبري: ١٧/٦٤٢.

ﷺ فرمائي داوينا چه هغوى دري سوه كاله پوري حصار وود اهل كتاب وينا ده او الله ﷻ د دې ترديد كړې دې اوفرمائيلي دي چه هم الله ﷻ ته د دې پوره علم دې[1] د حضرت عبدالله ﷺ نه هم د دې معنى قراءت روايت دې خود قتاده رحمه الله دا قول تامل طلب دې ځكه چه د اهل كتابو په نيز د شمسى كال روان دې اوهغوى دري سوه كاله منى ددريوسوو اونهه كالو نه.كه هم د هغوى قول نقل كيدلو نو بيا به الله ﷻ دا نه فرمائيل اونور نهه كاله ئې زيات كړل. په ظاهره خو هم دا صحيح معلوميږى چه پخپله الله ﷻ تبارك وتعالى د دې خبرې خبر وركوى نه چه د چا قول فرمائي. هم دا اختيارد امام ابن جرير رحمه الله دې. دقتاده رحمه الله اود ابن مسعودﷺ قراءت دواړه منقطع دى اوبياشاذ هم دى.دجمهورو قراءت هم هغه دې كوم چه د قرآن دې اوهغه د شاذ دليل قابل نه دې. والله اعلم.

الله ﷻ خپل بنديگانوته ښه گورى اود هغوى آواز ښه اورى په دې الفاظوكښې د تعريف مبالغه ده او په دې دواړو الفاظوكښې د مدح مبالغه ده يعنى هغه ښه اوريدوكې او كتونكې دې. ([2])هريو موجود ځيزته گورى او هريوآواز اورى هيڅ يوكار ياكلام د هغه نه پټ نه دې. هيڅ څوك د هغه نه زيات اوريدونكې او ليدونكې نه دې. ([3])د ټولوعمل گورى اود ټولوخبرې اورى. د مخلوق خالق اود امرمالك هم هغه دې د هغه فرمان څوك بندولې نه شى د هغه څوك وزير اوامدادى نشته نه څوك شريك اونه څوك مشير شته هغه د دې ټولوكمونه پاك دې د دې ټولونقصاناتو نه لرې دې.

| وَاتْلُ | مَآ | أُوحِيَ | إِلَيْكَ | مِن كِتَٰبِ |
|---|---|---|---|---|
| اواوؤروه | هغه | چې وحى شوى ده | تاته | دكتاب |

اوته اولوله كومه وحى چې درته دخپل رب دكتاب په ذريعه

| رَبِّكَ | لَا مُبَدِّلَ | لِكَلِمَٰتِهِۦ | وَلَن تَجِدَ | مِن دُونِهِۦ |
|---|---|---|---|---|
| درب ستانه | نشته هيڅوك بدلونكې | حكمونودهغه لره | اوهرگزبه ته بيانه مومې | ماسوادهغه نه |

راغلې ده دغه خبرو هيڅ بدل پيداكيدې نشى اودهغه نه بغير به هيچرې ته

| مُلْتَحَدًا | وَاصْبِرْ | نَفْسَكَ | مَعَ الَّذِينَ | يَدْعُونَ | رَبَّهُم |
|---|---|---|---|---|---|
| خاني دپناه | اوصبركړه | نفس خپل | دهغه كسانوسره | چې رابلې هغوئ | رب خپل |

پناه بيا نه مومې(اى پيغمبره) ته خپل ځان په هغه چا پورې تړلې ساته

| بِالْغَدَوٰةِ | وَالْعَشِيِّ | يُرِيدُونَ | وَجْهَهُۥ | وَلَا تَعْدُ | عَيْنَاكَ |
|---|---|---|---|---|---|
| په صبا كښې | اوپه بيگاه كښې | اچې غواړې هغه | رضا دهغه | اومه اړوه ته | سترگې خپلې |

چې سحر مانښام خپل پروردگار يادوى او دهغه رضا مندى غواړى او خپلې سترگې دهغوئ نه

| عَنْهُمْ | تُرِيدُ | زِينَةَ الْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا | وَلَا تُطِعْ | مَنْ أَغْفَلْنَا |
|---|---|---|---|---|
| دهغوئ نه | چې غواړې ته | ښائيست دژوند | ددنيا | او اطاعت مه كوه | دهغه چاچې غافله كړې دې مونږه |

مه اړوه چې ددنيا دژوند دښائست طلب گار شې اودهغه چا خبره مه منه چې دهغه زړه مونږ دخپل

---

[1] الطبرى:١٧/٦٤٧.

[2] الطبرى:١٧/٦٥٠.

[3] الطبرى:١٧/٦٥٠.

| قَلْبَهٗ | عَنْ ذِكْرِنَا | وَاتَّبَعَ | هَوٰىهُ | وَكَانَ | اَمْرُهٗ |
|---|---|---|---|---|---|
| زړه دهغه | دیاد زمونږنه | او پیروي ئې کړې ده | اوخواهشاتو خپلو | او دې | کار دهغه |

ذکر نه غافله کړې دې اوهغه دخپل خواهش پیروي اوکړه اودهغه کار د حد نه تیر

| فُرُطًا |
|---|
| اوړیدل دحق نه |

شوې دې

**قوله تعالى:- وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ**

**د کمزورو صحابه کرامو ﷺ د فضیلت بیان:-** الله ﷻ خپل رسول ﷺ ته د خپل کلام تلاوت او د هغې د تبلیغ هدایت کوی ددې کلمات نه څوك بدلولې شی نه ئې روستوکولې شی نه ئې اخوادیخواکولې شی پوهه شه چه د هغه نه علاوه د پناه ځایٔ نشته. که تلاوت او تبلیغ دې پریخودو نو بیا د بچ کیدو څه صورت نشته([1])لکه چه یوبل ارشاد دې اې رسول ﷺ کوم څه چه ستا طرف ته ستادرب نه نازل شوی دی د هغې تبلیغ کوه. که اودې نه کړو نو تا د رسالت حق اُدانه کړو. د خلقو د شر نه به الله ﷻ تا بچ ساتی([2]) په یوبل روایت کښې دی ﴿اِنَّ الَّذِيْ فَرَضَ عَلَيْكَ الْقُرْاٰنَ لَرَآدُّكَ اِلٰى مَعَادٍ ۭ قُلْ رَّبِّيْٓ اَعْلَمُ مَنْ جَآءَ بِالْهُدٰى وَمَنْ هُوَ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ﴾ ([3])یعنې الله ﷻ به تا نه ستادمنصب باره کښې دقیامت په ورځ خامخاتپوس کوی دالله ﷻ ذکر دهغه تسبیح اوحمد لوئی اوبزرګی بیانونکوسره کینه چه سحر مابنام دالله ﷻ په یادکښې لګیادی که هغه فقیر وی که امیر وی که رذیل وی که شریف وی که طاقتور وی که کمزورې.

قریشودرخواست کړې وو چه تاسو ورو خلقو سره مجلس کښې مه کینئې لکه بلال عمار صهیب خباب ابن مسعود ﷺ وغیره او زمونږ مجلسونوکښې کینه نو الله ﷻ دهغوی د درخواست ردکولو حکم اوکړولکه بل آیت کښې چه ارشاد دې ﴿وَلَا تَطْرُدِ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيْدُوْنَ وَجْهَهٗ ۭ مَا عَلَيْكَ مِنْ حِسَابِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ وَّمَا مِنْ حِسَابِكَ عَلَيْهِمْ مِّنْ شَيْءٍ فَتَطْرُدَهُمْ فَتَكُوْنَ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ﴾([4])یعنی سحر مابنام د الله ﷻ دیادونکو د مجلس نه مه اخواکیږه. په صحیح مسلم کښې دی چه مونږ شپږ غریبانان دحضورنبی کریم ﷺ په مجلس کښې ناست ووسعد بن ابی وقاص، ابن مسعود، د قبیله هذیل یوسړی، بلال ﷺ اودوه کسان نور او په دې کښې معزز مشرکان راغله اوونې وئیل چه دوی ځان سره په خپل مجلس کښې داسې نیغ مه کینوه. هم الله ﷻ بهترپیژنی چه د حضور ﷺ په زړه کښې څه راغله؟ چه هم هغه وخت آیت ﴿وَلَا تَطْرُدِ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيْدُوْنَ وَجْهَهٗ ۭ مَا عَلَيْكَ مِنْ حِسَابِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ وَّمَا مِنْ حِسَابِكَ عَلَيْهِمْ مِّنْ شَيْءٍ فَتَطْرُدَهُمْ فَتَكُوْنَ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ﴾ نازل شو. ([5])

**دالله ﷻ د ذکر فضیلت:-** مسنداحمد کښې دی یوواعظ قصه بیانوله چه حضور ﷺ تشریف راوړو. هغه چپ شو نو حضور ﷺ اوفرمائیل ته بیان کوه زه خوبه د سحر د مانځه نه واخله د نمردراختلوپورې په دې مجلس کښې ناست یم اوداد ځان دپاره دځلورو غلامانود آزادولونه بهترګڼړم([6]) یوبل حدیث کښې

---

[1]) الطبری:١٧/٦٥١.
[2]) ٥/المائدة:٦٧.
[3]) ٢٨/القصص:٨٥.
[4]) ٦/الانعام:٥٢.
[5]) صحيح مسلم كتاب فضائل الصحابة باب فضل سعدبن ابی وقاص ﷺ:٢٤١٣.
[6]) احمد:٥/٢٦١.

دی چه حضورﷺ فرمائیل چه زه په دې مجلس کښې کینم نودا زما د پاره د څلورو غلامانو ازادولو نه خوښ دی[١] ابوداؤد طیالسی کښې دی دالله ﷻ ذکر کونکوسره د سحردمانځه نه واخله تر نمر راختلو پورې ناسته ماته د ټولې دنیا نه خوښه ده اودمازیګر دمانځه نه واخله ترنمر ډوبیدوپورې د الله ﷻ ذکرکول ماته داتوغلامانوآزادولونه ډیر خوښ دی که هغه غلام داسماعیل د اولاد نه قدردان او قیمتي ولې نه وی.د هغوی د یویو دیت دولس دولس زره[٢] وی نوټول قیمت څلور کم سل زره شو. بعضې خلق څلور غلامان یادوی خو حضرت انس ﷺ فرمائی والله حضورﷺ اته غلامان یادکړی دی. بزارکښې دی چه حضورﷺ راغلو یوصاحب د سورت کهف تلاوت کولو حضورﷺ ئې چه اولیدلو نو چپ شو حضورﷺ اوفرمائیل چه هم د دغه خلقو مجلس دې چرته چه ماله د خپل خان حصارولود پاره د الله ﷻ حکم دې.
(٣) بل روایت کښې دی چه د سورت حجر تلاوت ئې کولو یاد سورت کهف. (٤)
مسنداحمدکښې دی فرمائی د الله ﷻ د ذکر د پاره چه کوم مجلس راجمع شوې وی او د هغوی نیت هم د خیروی نودآسمان نه یوآوازکونکې آوازکوی پاسئی الله ﷻ تاسو اوبښلئی ستاسو بدئی په نیکو بدلې کړې شوې(٥) طبرانی کښې دی چه کله دا آیت نازل شو نوحضورﷺ په خپل یوکورکښې وو هم هغه وخت د داسې خلقو په لټون کښې اووتلونوځه خلق ئې د الله ﷻ په ذکرکښې اولیدل د چا ویښته چه خواره واره ووخرمنې ئې اوچې وې په مشکله هغوی ته یوه یوه کپړا حاصله وه زرد هغوی په مجلس کښې تشریف کیخودو اوونی فرمائیل د الله ﷻ شکر دې چه هغه زما په امت کښې داسې پیداکړی دی د چا سره چه د کیناستو ماته حکم اوشو. بیافرمائی چه دوی نه دې ستا سترګې تجاوز اونه کړی دا د الله ﷻ ذکر کونکی پریخودل اومالدارانو پسې لګیدل پرېرده څوك چه د دین نه باغیان دی. څوك چه د عبادتونونه لرې دی د چا بدئی چه زیاتې شوی دی د عملونونه چه بې وقوفان دی ته دوی پسې تګ مه کوه دهغوی طریقه مه خوښه وه په هغوی باندې دېسخیدو نظر مه اچوه دهغوی نعمتونوته د خوندپه نظر مه ګوره لکه چه ارشاد دې ﴿وَلَا تَمُدَّنَّ عَيْنَيْكَ إِلَىٰ مَا مَتَّعْنَا بِهِ أَزْوَاجًا مِّنْهُمْ زَهْرَةَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا لِنَفْتِنَهُمْ فِيهِ ۚ وَرِزْقُ رَبِّكَ خَيْرٌ وَأَبْقَىٰ﴾(٦) مونږ چه دوی ته کوم دا دنیاوی عیش اوعشرت ورکړې دې دا صرف د هغوی د ازمینت د پاره دې ته د محتاجئی په نظر دوی ته مه ګوره دراصل خو ستا رب سره رزق بهتر او ډیر باقی دې.

| وَقُلِ | الْحَقُّ | مِن رَّبِّكُمْ ۖ فَ | فَمَن | شَاءَ |
|---|---|---|---|---|
| اوورته اووایه | چې داحق دې | د طرفه درب ستاسو نه | نو هغه څوك | چې غواړی |

اودا اووایه چې داقرآن پاك ستاسو درب دطرفنه برحق دې نو څوك چې غواړی

| فَلْيُؤْمِن | وَمَن | شَاءَ | فَلْيَكْفُرْ ۚ | إِنَّا | أَعْتَدْنَا |
|---|---|---|---|---|---|
| نو ایمان دی راوړی | او هغه څوك | چې غواړی | نوانکار داوکړی | بیشکه مونږه | تیار کړې دی |

ایمان دې راوړی او څوك غواړی چې کفر دې اوکړی مونږ ظالمانوله داسې

---

(١) احمد:٣/٤٤٧.
(٢) مسندالطیالسی:٤/٢١٠٤.
(٣) مسندالبزار:.
(٤) مسندالبزار:٢٣٢٦.
(٥) احمد:٣/١٤٢ وسنده حسن، مسندابی یعلی:٤١٤١، المعجم الاوسط:١٥٧٩، مجمع الزوائد:١٠/٧٦.
(٦) ٢٠/طه:١٣١.

لِلظّٰلِمِيْنَ نَارًا اَحَاطَ بِهِمْ سُرَادِقُهَا وَاِنْ يَّسْتَغِيْثُوْا

دپاره دظالمانو وور اچې چاپيره شوى دى ادهغوئ نه اپردې دهغې وورا اوكه فريادا وكړى هغوئ

اور تيار كړې دې چې دهغې پردې به ترې نه دهرې غاړې چاپيره وى اوكه چرې هغوئ «دتندې» فرياد كوى

يُغَاثُوْا بِمَآءٍ كَالْمُهْلِ يَشْوِى

نو جواب دفرياد به وركړې شى | په داسې اوبو سره | چې وى به پشان دتيلودويخ دخيرې | چې وريتوى به

نو دويلې شوې تانبې په شان ويشيدلې اوبه ورته ملاوېږى چې مخونه به وريت كړى

الْوُجُوْهَ بِئْسَ الشَّرَابُ وَسَآءَتْ مُرْتَفَقًا

مخونه | ډيربدخيزدې دڅكلو | او ډير بددې | ځائې دآرام

ځومره خراب څښل به وى اوځومره خراب ځائې به وى

**قوله‌تعالى:- اَحَاطَ بِهِمْ سُرَادِقُهَا**

**د دوزخ خطرناك كيدو ذكر:-** اووايه كوم څه چه ماد خپل رب د طرف نه راوړى دى هم هغه حق صدق او رښتيا دى دشك شبه نه خالى دى. اوس چه د چا زړه غوارى اودې منى اوچه نه غوارى نه دې منى. د نه منونكو د پاره د دوزخ أور تيارديې د كوم د چاپيره ديوالونوپه قيدخانه كښې چه به دوى بې وسه وى. حديث شريف كښې دى چه د دوزخ د چاپيره ديوالونو پلنوالې د څلويښتو څلويښتو كالو د لارې دې. ([1]) (مسنداحمد) اوپخپله ديوالونه ئې هم د أوردى ([2]) بل روايت كښې دى چه سمندرئې هم دوزخ دې بيانى ددې آيت تلاوت اوفرمائيلو. بيانې اوفرمائيل والله نه به دې ته لاړشم اوچه تركومې هم ژوندې يم د دې يوڅاڅكې به هم ماته راونه رسى ([3])

**مهل څه ته وائي:-** مهل وائى ګنده اوبوته لكه د زيتونو د تيلو خيرې ([4]) اولكه وينه او نوونه چه ګرم وى ([5]) حضرت ابن مسعود ﷺ يو څل سره زر ګرم كړل كله چه هغه دأوبوپه شان شوه او جوش ئې اووهلو نو وئې فرمائيل د مهل يوشان والې داسې دى ([6]) ددوزخ أوبه هم تورې دى هغه پخپله هم تور دې دوزخيان هم تور دى. مهل تور رنګ سخا بوئى مردار ګنده اوسخت ګرم خيز دې. مخ له تلوسره څرمن سوزوى او مخ سوزوى.

مسنداحمد كښې دى د كافرمخ له تلوسره به د هغه د مخ څرمن اوسيزى اوبه دې كښې به راپريوځى. ([7]) قرآن پاك كښې دى چه هغه نوونه به پرې څكولې شى. ([8]) ډير په ګرانه به د هغوى د حلق نه تيرېږى د هغوى مخ له نيزدې كيدوباندې به د هغوى څرمن اوسوزى او راپريوبه خى څكوسره به نى كولمې پرې كړى د هغوى په چغوصورو باندې او شور زوګ باندې به په هغوى دا اوبه څكولې شى. ([9]) د ولږې په

---

[1] احمد:٢٩/٣، ترمذى كتاب صفة جهنم باب ماجاء فى صفة شراب اهل النار:٢٥٨٤مسندابى يعلى:١٣٨٩، حاكم:٦٠٠/٤.

[2] الطبرى:١١/١٨.

[3] حاكم:٥٩٦/٤ ، ٨٧٦٢.

[4] الطبرى:١٣/١٨.

[5] الطبرى:١٣/١٨.

[6] الطبرى:١٣/١٨.

[7] ترمذى كتاب صفة جهنم باب ماجاء فى صفة شراب اهل النار:٢٥٨١، احمد:٧٠/٣-٧١.

[8] ٤٧/محمد:١٥.

[9] الطبرى:١٤/١٨.

شكايت به ورته د زقوم د ونې خوراك وركولې شي په كوم سره چه به د هغوى دمخ څرمنې د هغوى بدن داسې پريږدي راوبه څي چه د هغوى پيژند ګلوكسان په د هغوى دمخ څرمنې كتوسره هم اوپيژنې بيا به د تندې په شكايت باندې ورته داسې ګرمې اوخوټيدلې اوبه ملاويږي په خلې ته په رسيدو به نې د مخ ټوله غوښه وريته شي(١)افسوس دې چه څومره خرابې اوبه دي اودا به هغه ګرمې اوبه وي چه د هغوى كولمې پريكيږي اودسخت ګرم بهيدونكي لختى نه به په دوى باندې اوبه څكولې شي. د هغوى ټكانه دهغوى منزل د هغوى كور اود هغوى د اوسيدو ځاى به ډير خراب وى لكه چه بل آيت كښې ارشاد دې ﴿إِنَّهَا سَاءَتْ مُسْتَقَرًّا وَمُقَامًا﴾(٢) هغه ډير خراب ځاى او ډير سخت منزل دې.

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا

بيشكه هغه كسان چې ايمان راوړې |

بيشكه چا چې ايمان راوړې دي

وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ إِنَّا لَا نُضِيعُ أَجْرَ مَنْ أَحْسَنَ

او عمل او كړې نيك | نو بيشكه مونږه | نه ضائع كوؤ | بدله | دهغه چا | چې ډير نيك وې

او نيك كارونه ئې كړې دي نو مونږ دهغه چا اجر هيڅكله نه ضائع كوؤ چې نيك

عَمَلًا ۝ أُولَٰئِكَ لَهُمْ جَنَّاتُ عَدْنٍ تَجْرِي

په لحاظ دعمل سره | داكسان چې دي | دي ددوئ دپاره | جنتونه |دهميشه سېرلي |چې بهيږي به

كارونه كوي داهغه خلق دي چې دوئ له هميشه سمسورپاتې كيدونكي باغونه دي

مِنْ تَحْتِهِمُ الْأَنْهَارُ يُحَلَّوْنَ فِيهَا مِنْ أَسَاوِرَ مِنْ ذَهَبٍ

لاند دباغونو ددوئ نه | نهرونه | اچولې كيږي به دوئ ته | په هغې كښې | بنګړې | دسرو زرو

چې لاندې به ترې ولې بهيږي دسروزرو بنګړې به ورته په لاسونو كښې اچولې شي

وَيَلْبَسُونَ ثِيَابًا خُضْرًا مِنْ سُنْدُسٍ وَإِسْتَبْرَقٍ مُتَّكِئِينَ

او اغوندى به | جامې شنې | دباريكوريښمو | اودغتوريښمو | تكيه وهونكې به وى

اوشنې نرئ اوغتې ريښيمو جامې به اغوندى په تختونو به ئې

فِيهَا عَلَى الْأَرَائِكِ ۚ نِعْمَ الثَّوَابُ ۚ وَحَسُنَتْ مُرْتَفَقًا ۝

په هغې كښې| په تختونوباند | ډيره ښه بدله ده | اوډيرښه دې | ځاى دآرام

تكيه لګولې وى څنګه ښه بدله ده اوڅنګه ښه ځاى دې

**قوله تعالى:- أُولَٰئِكَ لَهُمْ جَنَّاتُ عَدْنٍ**

**د حكم منونكودپاره د جنت نعمتونه:-** دجنت ذكردهغې خوشحالى اوپورته دخرابوخلقوحال اومال بيان اوفرمائيلې شواوس د نيكانو انجام او شروع بيانولې شي.داد الله ﷻ رسول الله ﷺ او كتاب الله منونكى اوعمل كونكى دى. ددوى د پاره دهميشه والى اومدام والى باغونه دى.دهغوى دبالاخانواو

---

(١) الطبرى:١٨/١٤.

(٢) ٢٥/الفرقان:٦٦.

باغونولاندې نهرونه بهيږي هغوى ته به كالي اوخاص كردسرو زرو بنګړي اچولې شي دهغوى لباس به هلته د خالص ريښمو وي.نرم او نري او نرم او پيړو ريښمين لباس به وى دوى به په آرام سره د بادشاهانو په شان په تكيه ګانو باندې كومې چه به په تختونوباندې پرتې وى تكيه لګولې ناست وى. ونيلې شى چه د سملاستو او په پړلت غزولوسره ناستې ته هم اتكا وانى ممكن دى چه هم دغه مراد دلته هم وى.په حديث كښې دى زه پړلت غزولو سره خوراك نه كوم(١)په دې كښې هم دا دوه اقوال دى (ارائك)جمع ده د(اريكة) تخت او پالنګ وغيره ته وانى. ښومره ښه بدله ده اوښومره ښه د آرام ځاى دې په خلاف د دوزخيانو چه د هغوى د پاره خرابه سزا ده اوخراب ځاى دې. په سورت فرقان كښې هم د دې دوو ډلو دغه شان د مقابلې بيان دې.

وَاضۡرِبۡ لَهُمۡ مَّثَلًا رَّجُلَيۡنِ جَعَلۡنَا لِاَحَدِهِمَا جَنَّتَيۡنِ
اوبيان كړه| دوئ ته| يومثال | ددووسړو |چې وركړل مونږه| يوددې دواړوته| دوه باغونه|
او (اې پيغمبره) ته دوئ ته دهغه دوه كسانو حال واوره چې مونږ په كښې يو تن له د انګورو دوه

مِنۡ اَعۡنَابٍ وَّحَفَفۡنٰهُمَا بِنَخۡلٍ وَّجَعَلۡنَا بَيۡنَهُمَا
دانګورونه | اوچاپيره شپول اولګوو مونږه ددواړونه| دكجورو |اوپيداكړومونږه| په منځ ددواړوكښې
باغونه وركړي وو اوهغه مو دكهجورو په ونو كښې راګير كړي وو او دهغه باغونوترمينځه مو

زَرۡعًا ؕ كِلۡتَا الۡجَنَّتَيۡنِ اٰتَتۡ اُكُلَهَا وَلَمۡ تَظۡلِمۡ مِّنۡهُ شَيۡـًٔا ۙ
فصل |دواړو باغونو |وركړې |ميوې خپلې| اوكم ئې نۀ كړو| دبارنيولونه| هيڅ څيز|
شنه زرغونه پټې جوړ كړې وو دواړو باغونو به خپلې پوره پوره ميوې وركولې او دواړو نه به هيڅ قسم له كمې نه راتلو

وَّفَجَّرۡنَا خِلٰلَهُمَا نَهَرًا ۙ وَّكَانَ لَهٗ ثَمَرٌ ۚ
اوجارى كړومونږه |په منځ ددواړوباغونوكښې| يونهر | اووه | هغه لره| ډيره ميوه|
اومونږ دغې دواړو باغونو ترمينځه داوبو يو لښتې بهيولې وو اوددې سرې نوره هم ميوه وغيره وه

فَقَالَ لِصَاحِبِهٖ وَهُوَ يُحَاوِرُهٗۤ اَنَا اَكۡثَرُ مِنۡكَ
نواووئيل هغه| ملګرى خپل ته |اوهغه| خبرى كولې دهغه سره| زۀ |زيات يم | ستانه
نوهغه خپل ملګرى ته په خبرو خبرو كښې اووئيل چې زه ستانه په مال كښې هم

مَالًا وَّاَعَزُّ نَفَرًا ۝ وَدَخَلَ جَنَّتَهٗ وَهُوَ ظَالِمٌ
په لحاظ دمال سره| او ډيرطاقتوريم| په لحاظ دسړو سره | اوننوتو| باغ خپل ته|اوهغه| ظالم وو
زيات يم اوپه متو كښې هم درباندې غالب يم اوهغه خپل باغ ته ورننوتو اوهغه په خپل

لِّنَفۡسِهٖ ۚ قَالَ مَاۤ اَظُنُّ اَنۡ تَبِيۡدَ هٰذِهٖۤ اَبَدًا ۙ
دپاره دخان خپل |اووئيل هغه| نۀ كوم ګمان زۀ| چې هلاك به شى | داباغ هيڅكله
خان زياتې كولو وې وئيل چې زه خيال نه كوم چې دا باغ به برباد شى

---

(١) صحيح بخارى كتاب الاطعمة باب الاكل متكئا:٥٣٩٨، ترمذى:١٨٣٠،ابن ماجه ٣٢٦٢، احمد:٣٠٩/٤، ابن حبان:٥٢٤.

| وَمَآ أَظُنُّ | السَّاعَةَ | قَآئِمَةً | وَّلَئِن رُّدِدتُّ | إِلَىٰ رَبِّي |
|---|---|---|---|---|
| اونه كوم گمان زه | په قيامت | دقائميدلو | او كه چرې واپس كړې شوم زه | رب خپل ته |

اونه زماداخيال دې چې قيامت به راشي اوكه زه خپل رب ته پستنه اورسيدم

| لَأَجِدَنَّ | خَيْرًا | مِّنْهَا | مُنقَلَبًا |
|---|---|---|---|
| نوزه به بيا مومم | بهتره | دهغې نه | ځائې دروتلو |

نو ددې باغ به هم بهتر ځائې بيامومم

**قوله تعالى:-وَاضْرِبْ لَهُم مَّثَلًا رَّجُلَيْنِ**

**د دوو باغونو والا د سړي واقعه:**-پورته دغريبانانو مسلمانانواو مالداره كافران ذكر شوې وو دلته د هغوی يومثال بيانولې شی دوه سړی وو په هغوی كښې يومالدار وود انگوروباغ او چاپيره د كهجورو ونې په مينځ كښې فصل ونې خورې شوې زيلئی شنې فصل شين ښه ډيرگلونه د هيڅ قسم نقصان نه اخوا ديخوانهرونه روان. دې مالدار سړي سره هروخت قسم قسم پيداوار موجود. ددې دويم قراءت (ثُمُر) هم دې دا جمع ده د (ثمرة) لكه (خشبة) جمع (خشب) ده. غرض دا چه ده يوه ورځ خپل دوست ته د فخر اوكبر په انداز اوونيل زه مالدار دعزت اولاد خاوند شان شوكت نوكران خادمان زه ستانه په ډير اوبنه حيثيت كښې يم. د يوفاجر سړي خواهش خو هم دغه وی چه د دنيادا څيزونه هغه سره ښه ډير وی دې خپل باغ ته لاړو اوپه خپل ځان باندې ظلم كونكې يعنی كبر جبر انكار د قيامت اوكفر كونكې دومره مست ووچه دهغه د ژبې نه اووتل نامكنه ده چه زما دا شنه فصلونه دا ميوه دارې ونې دا روان نهرونه دا آبادې زيلئی كله فنا شی په حقيقت كښې دا د هغه بې ايمانی كم عقلی او د دنياخرمستی اود الله ﷻ سره د كفر وجه وه. په دې وجه به نې ونيل چه زما په خيال خو قيامت هډو راتلونكې نه دې اوكه چرې راهم غلونوبنكاره خبره ده چه زه الله ﷻ ته گران يم گنی هغه به ماله دومره مال حال ولې راكولو؟ هلته به هم هغه ماله د دې نه ښه راكړی لكه چه بل آيت كښې ارشاددې ﴿وَلَئِن رُّجِعْتُ إِلَىٰ رَبِّي إِنَّ لِي عِندَهُ لَلْحُسْنَىٰ﴾[1] كه زه واپس كړې شوم نوهلته زمادپاره نور ښه څيزونه دی په يوبل آيت كښې دی ﴿أَفَرَأَيْتَ الَّذِي كَفَرَ بِآيَاتِنَا وَقَالَ لَأُوتَيَنَّ مَالًا وَوَلَدًا﴾[2] يعنی تاخوهغه هم اوليدو چه كوی خوزمونږ د آيتونو انكاراوسره د دې د هغه داخواهش دې چه ماته به د قيامت په ورځ هم ډيرمال اولادملاويږی. داد الله ﷻ په وړاندې بهادری كوی او په الله ﷻ پسې خبرې جوړوی. د دې آيت شان نزول عاص بن وائل دې لكه چه په خپله موقع باندې به راځي انشاء الله وبه الثقة.

| قَالَ | لَهُ | صَاحِبُهُ |
|---|---|---|
| اووئيل | هغه ته | ملگری دهغه |

په دې باندې هغه ملگری ورته اووئيل چې كوم

| وَهُوَ | يُحَاوِرُهُ | أَكَفَرْتَ | بِالَّذِي | خَلَقَكَ | مِن تُرَابٍ |
|---|---|---|---|---|---|
| او هغه | خبرې كولې دهغه سره | آيا تاكفر اوكړو | دهغه ذات سره | اچې پيدا ئې كړې ته | ادخاورې نه |

ورسره خبرې كوې چې آيا نه دهغه ذات نه انكار كوې چې كوم ته دښاورې نه پيدا كړې؟

[1] ٤١/حم السجدة: ٥٠.

[2] ١٩/مريم: ٧٧.

| ثُمَّ مِنْ نُّطْفَةٍ | ثُمَّ سَوّٰىكَ | رَجُلًا | لٰكِنَّا | هُوَ اللّٰهُ | رَبِّيْ |
|---|---|---|---|---|---|
| بيا د نطفې نه | بيا ئې برابر كړې ته | اسړى | ليكن | هم دغه الله | رب زما دى |

بيا ئې دڅاڅكي اوبه نه روغ كړې اوبيا ئې سم دم سړى جوړ كړې ليكن زه خو دا وايم چې هم الله ﷻ زما رب دى

| وَلَآ اُشْرِكُ | بِرَبِّيْٓ | اَحَدًا | وَلَوْلَآ | اِذْ | دَخَلْتَ | جَنَّتَكَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اونه شريكوم زه | ادرب خپل سره | هيڅوك | اوولې نه | كله چې | ننوتې ته | باغ خپل ته |

اوزه خپل رب سره څوك نه شريكوم اوهركله چې ته خپل باغ ته ورننوتې

| قُلْتَ | مَا شَآءَ اللّٰهُ | لَا قُوَّةَ | اِلَّا | بِاللّٰهِ | اِنْ تَرَنِ |
|---|---|---|---|---|---|
| ونيل تا | هغه كيږي چې اوغواړي الله | نشته دې قوت | مگر | په توفيق دالله | كه وينې ته ما لره |

نوتا داسې ولې اونه وئيل چې الله ﷻ څه غواړي نو هغه كيږي دالله ﷻ دمددنه بغير هيڅ طاقت نشته كه چرې ته

| اَنَا اَقَلَّ | مِنْكَ | مَالًا وَّوَلَدًا | فَعَسٰى | رَبِّيْٓ | اَنْ يُّؤْتِيَنِ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې زه لږ يم | ستانه | په لحاظ دمال اواولاد سره | انو اميد دې | چې رب زما | راكړې ماته |

ماپه مال او اولاد كښې خپل ځان نه كم گورې نو نزدې ده چې زما رب ماته ددې نه

| خَيْرًا | مِّنْ جَنَّتِكَ | وَيُرْسِلَ | عَلَيْهَا | حُسْبَانًا | مِّنَ السَّمَآءِ | فَتُصْبِحَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بهتره | دباغ ستانه | او رااوليږى | په دغه باندې | افت | داسمان نه | او شي باغ ستا |

نبه باغ راكړې او په دې باغ باندې دبره نه يوغيبي افت رااولي اودا باغ اوار

| صَعِيْدًا زَلَقًا | اَوْ يُصْبِحَ | مَآؤُهَا | غَوْرًا | فَلَنْ تَسْتَطِيْعَ |
|---|---|---|---|---|
| ميدان خونينده | يا شي | اوبه دهغې | وچې | انوهرگزته بياطاقت نه شې لرلې |

خونينده ميدان پاتې شي يا ددې باغ اوبه په كوزه لاړې شي اوبيا ئې ته دراخيژولو

| لَهٗ | طَلَبًا |
|---|---|
| دغه اوبولره | په طلب كولو سره |

هيڅ كوشش اونه كړې شې

**قوله تعالى :-قَالَ لَهٗ صَاحِبُهٗ وَهُوَ يُحَاوِرُهٗ**

**د غريب مالدار ته جواب او نصيحت**:-دې كافرمالدار ته چه كوم جواب دې غريب مؤمن وركړو دهغې بيان كولې شي چه څنگه هغه د وعظ او نصيحت ايمان اويقين هدايت اوكړو اود گمراهئ او غرور نه ئې اخواكولو.وئې فرمائيل چه ته الله ﷻ سره كفركوې چا چه د انسان پيدائش د خاورې نه شروع كړو بيائې دهغه نسل دگډوډو شوو اوبونه روان كړو.لكه چه آيت ﴿كَيْفَ تَكْفُرُوْنَ بِاللّٰهِ وَكُنْتُمْ اَمْوَاتًا فَاَحْيَاكُمْ ثُمَّ يُمِيْتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيْكُمْ ثُمَّ اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ﴾ (1)كښې دى تاسو الله ﷻ سره څنگه كفر كوئ؟ تاسو خو مړ وئ هغه ته ژوندې كړې تاسو د هغه د ذات اود هغه دنعمتونوڅنگه انكار كولې شئ؟ د هغه دنعمتونو او قدرتونو

(1) ٢/البقرة:٢٨.

بې شميره نمونې پخپله په تاسو كښې اواوتاسو باندې موجود دى.څوك كم عقل به داسې وى چه نه پوهيدلوچه هغه اول څه وو الله ﷻ هغه موجود كړو.او پخپله د كيدو باندې قادر نه ووهم الله ﷻ دهغه وجود پيداكړوبيا هغه دانكار څنګه لائق شو؟دهغه د توحيد او الوهيت نه څوك څنګه انكار كولې شى. زه خو ستاپه مقابله كښې په كولاو او واضح الفاظوكښې وايم چه زما رب هم هغه وحده لاشريك له دې زه د خپل رب سره شرك كول ناخوښوم. بيا خپل ملګرى ته نيك رغبت وركول سره وائى چه خپل ښين اوآباد فصل او د ښنو ميوونه ډك دې باغ ته دې اوګوره ته د الله ﷻ شكر ولې نه كوې؟ ولې ماشاء الله لاقوة الابالله نه وائې؟

**خپل مال او اولاد خوښ كيدو سره ماشاء الله وئيل پكار دى:-** هم د دې آيت په رڼاكښې بعضې سلف وائى چه خپل مال اولاددې خوښ شى نوهغه له داكلمه وئيل پكاردى.ابويعلى موصلى([1])كښې دى حضورﷺ فرمائى په كوم بنده باندې چه الله ﷻ د يونعمت انعام اوفرمائى بال بچ وى مالدارى يا خامن وى بيا هغه دا كلمه اووائى نو په دې كښې به هيڅ نقصان نه راځى بغيردمرګ نه بيابه هغوى ددې آيت تاويل كولو. حافظ ابوالفتح رحمه الله وائى داحديث صحيح نه دې.

مسنداحمدكښې دې حضورﷺ فرمائى آيازه تاسو ته د جنت يوه خزانه اوښايم؟ هغه خزانه لاحول ولاقوة الا بالله وئيل دى([2])يوبل روايت كښې دى چه الله ﷻ فرمائى زما دې بنده اومنل اوحواله نى كړل. دحضرت ابوهريره رضی الله عنه نه بيا تپوس اوكړې شو هغوى اوفرمائيل صرف لاحول الخ نه بلكه هغه چه په سورت كهف كښې دى.يعنى ﴿ مَاشَآءَاللّٰهُ لَاقُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ ﴾([3])بيافرمائى چه دې نيك سړى اووئيل زما د الله ﷻ نه دا اميد دې چه هغه به ماته په آخرت كښې ښه نعمتونه راكړى اوستا دا باغ كوم چه ته د هميشه والى والا ګڼرې تباه كړى د آسمان نه به په دې عذاب راشى په زوره به باران اوطوفان راشى ټول پټې او باغ به دې ختم كړى اوچ به شى او صفا زمكه به پاتې شى لكه چه دلته هډوڅه څيز راټوكيدلې نه وو يا به د دې د نهرونو اوبه ورخښ كړى. غور مصدر دې په معنى كښې د غائرد مبالغه په توګه راوړلې دې.

| | وَاُحِيْطَ | بِثَمَرِهٖ | فَاَصْبَحَ |
|---|---|---|---|
| | اوچاپيره كړې شوعذاب | په ميوو دهغه سره | نوشوهغه |
| نو دهغه ميوو نه عذاب راچاپيره شو نوهغه په هغه سرمايه | | | |

| يُقَلِّبُ | كَفَّيْهِ | عَلٰى مَآ | اَنْفَقَ | فِيْهَا |
|---|---|---|---|---|
| چى مروړل نې | دواړه لاسونه خپل | په هغه مال باند | چې خرچ كړې نې ووا | په هغه باغ كښې |
| لاسونه اومروړل كومه چې هغه په هغې كښې لګولې وه اودهغه باغ ټول | | | | |

| وَهِيَ | خَاوِيَةٌ | عَلٰى عُرُوْشِهَا | وَيَقُوْلُ | يٰلَيْتَنِيْ |
|---|---|---|---|---|
| اوهغه باغ | پاستر پريوتې ووا | په سپرونوخپلوباند | اووئيل نې | اے افسوس دې مالره |
| څپرونه راپريوتى وو اودا به ئې وئيل چې ائې كاش ما دخپل رب سره | | | | |

---

[1] المعجم الصغير:٢١٢/١ والمعجم الاوسط:٥٩٩٢.

[2] احمد:٤٦٩/٢، صحيح بخارى كتاب الدعوات باب الدعاء اذا علاء عقبة:٦٣٨٤، صحيح مسلم:٢٧٠٤، ابوداؤد:١٥٢٨، ترمذى:٣٣٧١، مسندابى يعلى:٧٢٥٢.

[3] احمد:٣٣٥/٢ وسنده حسن، مسند البزار:٣٠٨٦، مجمع الزوائد:٩٩/١٠.



| لَمْ أُشْرِكْ | بِرَبِّيٓ | أَحَدًا۝ | وَلَمْ تَكُنْ | لَّهُ | فِئَةٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې ما نه وې شريک کړې | د رب خپل سره | هيڅوک | اونه شوه | د ده لره | يوه ډله |
| هيڅوک شريک کړي نه وې او هيڅ يو داسې ټولي ورسره ملګرې نه شو چې | | | | | |
| يَنْصُرُونَهُ | مِنْ دُونِ اللّٰهِ | وَمَا كَانَ | مُنْتَصِرًا۝ | | |
| چې امدادنې کړې وې دهغه سره | ماسوا دالله نه | اونه وو هغه | مددګار د خان خپل | | |
| دالله ﷻ په مقابله کښې دهغه مدد کړې وې اونه ئې زمونږ نه بدله اخستې شوه | | | | | |
| هُنَالِكَ | الْوَلَايَةُ | لِلّٰهِ | الْحَقِّ ط | هُوَ خَيْرٌ | |
| په دې وخت کښې | دکارونوسمولو اختيار | الله لره دې | چې حق دې | هغه بهتر دې | |
| په داسې وخت کښې کارونه سمول دبرحق الله ﷻ کار دې هم هغه بهتر ثواب | | | | | |
| ثَوَابًا | وَخَيْرٌ | عُقْبًا۝ ع | | | |
| په لحاظ دثواب سره | او بهتر دې | په لحاظ دورکولو دښه انجام سره | | | |
| ورکوونکې اوغوره بدله ورکوونکې دې | | | | | |

**قوله تعالىٰ:-وَأُحِيطَ بِثَمَرِهِ**

**دكافرانو د باغونو انجام:-** د هغه ټول مال او ټول باغ غرق شو هغه مؤمن چه د کومې خبرې نه ويرولو هم هغه اوشو اوس هغه د خپل مال په تباهئ باندې د افسوس نه خپل تلې مړل او خواهش او تمنا ئې کوله چه افسوس ما د الله ﷻ سره کفر نه کولې[1] په څه چه به ئې فخر کولو په هغې کښې هيڅ هم پکار رانغله. خامن قبيله هرڅه ترې پاتې شو فخر او غرور هر څه ئې مات شو نه بل څوک اودريدو اونه په کښې پخپله څه همت پاتې شو بعضې خلق په ﴿هنالك﴾باندې وقف کوی اودا د اولنې جملې سره يوځائ کوی يعنی هلته هغه خپله بدله وانخستې شوه.

اوبعضې ﴿منتصرا﴾ باندې آيت کوی د وړاندې نه د نوې جملې شروع کوی. د ﴿ولاية﴾ دويم قراءت ﴿وِلاية﴾ هم دې په رومبې قراءت باندې مطلب دا شو چه هريومؤمن اوكافر هم الله ﷻ ته رجوع کونکې دې. ددې نه بغير د پناه ځائ نشته. د عذاب په وخت کښې څوک هم د هغه نه بغيرپه کار نه شی راتلې لکه چه فرمانی ﴿فَلَمَّا رَأَوْا بَأْسَنَا قَالُوٓا اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَحْدَهُ وَكَفَرْنَا بِمَا كُنَّا بِهِ مُشْرِكِينَ۝﴾[2] يعنی زمونږ عذابونه ئې اوليدل نو وئی وئيل چه مونږ په الله ﷻ چه واحد دې ايمان راوړو او انكار كوو په هغه چه كوم الله تعاليس سره شريك جوړوی لکه چه فرعون د ډوبيدو په وخت کښې وئيلې وو زه په هغه الله ﷻ باندې ايمان راوړم په كوم چه بنی اسرائيلو ايمان راوړې دې اوزه په مسلمانانو کښې شامل کيږم. هغه وخت جواب ملاوشو دا وخت د ايمان قبليدو نه دې. دې نه اول خو ته نافرمان وې په مفسدانو کښې شامل وې.[3] د واو د کسره په قراءت دا معنی شوه چه هلته حکم په صحيح توګه هم د الله ﷻ د پاره دې﴿لله الحق﴾ دويم قراءت د قاف په پيش سره هم دې څکه چه دا د﴿الولاية﴾ صفت دې لکه چه دالله ﷻ فرمان ﴿ اَلْمُلْكُ يَوْمَئِذٍ الْحَقُّ لِلرَّحْمٰنِ ط

---

[1] الطبری:١٨/٢٧.

[2] ٤٠/المؤمن:٨٤. الخ

[3] ١٠/يونس:٩٠-٩١.

وَكَانَ يَوْمًا عَلَى الْكٰفِرِيْنَ عَسِيْرًا﴾(١)كښې دی بعضې خلق د قاف زير لولی دهغوی په نيز دا صفت دې د الله ﷻ. بل آيت كښې دی ﴿ثُمَّ رُدُّوْٓا إِلَى اللّٰهِ مَوْلٰىهُمُ الْحَقِّ ۭ اَلَا لَهُ الْحُكْمُ ۣ وَهُوَ اَسْرَعُ الْحٰسِبِيْنَ﴾(٢)هم د دی د پاره بيافرمانی چه كوم اعمال صرف هم د الله ﷻ د پاره وی د هغې ثواب ډيرزيات وی اود انجام په لحاظ سره هم هغه ډير بهتر دی.

وَاضْرِبْ لَهُمْ
| او بيان كړه | دوئ ته |
او (اے نبی ﷺ) ته دوئ ته

مَّثَلَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا كَمَآءٍ اَنْزَلْنٰهُ مِنَ السَّمَآءِ
مثال | دژوند د دنيا | پشان داوبودی | چی نازلی كړي مونږه هغه | د آسمان نه
ددنياد ژوندمثال بيان كړه (هغه داسې دی) چې اوبه كومې چې مونږ داسمان نه راووروليّ

فَاخْتَلَطَ بِهٖ نَبَاتُ الْاَرْضِ فَاَصْبَحَ هَشِيْمًا تَذْرُوْهُ
نوګنړزرغون شو | په هغه اوبو سره | بوټی د زمكې | اوباشی | وچه ذری ذری | چی الوزوی هغې لره
بيادهغې په وجه ښه ګورشينكې راووتو كيږی اوبيا هغه ذری ذری شی چې بادونه ئې اخواديخوا

الرِّيٰحُ ۭ وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ مُّقْتَدِرًا ۝ اَلْمَالُ وَالْبَنُوْنَ زِيْنَةُ
هواګانې | او دی الله | په هر څيزباند | قدرت لرونكې | مال او خامن | ښائيست
الوزوی او الله ﷻ په هرڅيز پوره پوره قدرت لری مال او اولاد خو تش ددنيا د

الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ وَالْبٰقِيٰتُ الصّٰلِحٰتُ خَيْرٌ عِنْدَ رَبِّكَ
دژوند د دنيادی | اوباقی پاتې كيدونكی | نيكيانی | بهتر دی | په نزدرب ستا |
ژوندون ښائست دی اوباقی پاتې كيدونكی نيك عملونه چې دی نو هغه ستا درب سره

ثَوَابًا وَّخَيْرٌ اَمَلًا ۝
په لحاظ دثواب سره | اوبهتردی | په لحاظ دامید سره |
دثواب په حقله ښه دی او دامید ساتلو په حقله هم ښه دی

**قوله تعالى:- وَاضْرِبْ لَهُمْ مَّثَلَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا**

**د دنياد زوال مثال:-** دنياد خپل زوال فنا اوخاتمې اوبربادئی په لحاظ سره د آسمانی باران په شان ده چه د زمكې دانوغيره سره ملاويږی اوپه زرګونو بوټې شنې چې وهی تازه اودژوند آثارد هرڅيز نه ښكاری خويوڅو ورځې تيريدو سره هغه اوچ كلك شی او چوری چوری شی اوهواګانی هغه اخواديخوا الوزوی. په دې حالت باندې چه څوك قادر وو هغه په دې حال باندې هم قادرچه ددنيامثال عموماً د باران سره بيان فرمانی. لكه چه سورت يونس كښې آيت ﴿ اِنَّمَا مَثَلُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا كَمَآءٍ اَنْزَلْنٰهُ مِنَ السَّمَآءِ فَاخْتَلَطَ بِهٖ نَبَاتُ الْاَرْضِ مِمَّا يَاْكُلُ النَّاسُ وَالْاَنْعَامُ ۭ حَتّٰٓى اِذَآ اَخَذَتِ الْاَرْضُ زُخْرُفَهَا وَازَّيَّنَتْ وَظَنَّ اَهْلُهَآ اَنَّهُمْ قٰدِرُوْنَ عَلَيْهَآ ۙ اَتٰىهَآ اَمْرُنَا لَيْلًا اَوْ نَهَارًا فَجَعَلْنٰهَا حَصِيْدًا كَاَنْ

(١) ٢٥/الفرقان:٢٦.
(٢) [٦/الانعام:٦٢.

لم تغن بالامس ۚ كذلك نفصل الايت لقوم يتفكرون ﴾(١) اولكه د سورت زمر په آيت ﴿ الم تر ان الله انزل من السماء ماء ۚ فاخرجنا به ثمرت مختلفا الوانها ۚ ومن الجبال جدد بيض وحمر مختلف الوانها وغرابيب سود ﴾(٢). كنبې اولكه د سورت حديد په آيت كنبې اوصحيح حديث كنبې هم دى. دنياشين رنګ خوږه ده. (٣)الخ بيا فرمانى مال اوخامن د دنياد ژوند ښائست دې لكه چه فرمان دې ﴿ زين للناس حب الشهوت من النساء والبنين والقناطير المقنطرة من الذهب والفضة والخيل المسومة والانعام والحرث ۗ ذلك متاع الحيوة الدنيا ۖ والله عنده حسن الماب ﴾ (٤)د انسان د پاره دخواهشاتو محبت مثلاً ښځې خامن خزانې وغيره ښائسته كړې شوى دى بل آيت كنبې دى ﴿انما اموالكم واولادكم فتنة ۚ وان الله عنده اجر عظيم ﴾ (٥)ستاسومالونه اوستاسواولاد ازميښت دې اودالله ﷻ په نيز اجرعظيم دې. يعنى د هغه طرف ته ټيټيږه اودهغه عبادت كولوكښې مشغول اوسيدل ددنيا طلب كولو نه بهتردې. ددې دپاره دلته هم ارشادكولې شى چه باقيات صالحات په هرلحاظ سره ښكلې څيزدې مثلاً د پنځوو ختونومونځ او(سبحان الله والحمدلله ولا اله الا الله والله اكبر) او(لااله الاالله)او(سبحان الله والحمدلله) (٦)(الله اكبر) او (لاحول ولاقوة الابالله العلى العظيم)

**د مونځونو فضيلت**:-مسنداحمدكښې دى د حضرت عثمان ﷺ غلام فرمانى چه حضرت عثمان ﷺ يوخل خپلوملګروسره ناست ووكله چه مؤذن راورسيدوهغوى اوبه راوغوښتې نوپه يولوښى كښې تقريباً درې پاوه اوبه راغلې. هغوى اودس اوكړو ونى فرمائيل چه حضورﷺ دغه شان اودس اوكړوونى فرمائيل څوك چه زما ددې اودس په شان اودس اوكړى اودماسپښين مونځ اوكړى نود سحر نه واخله تر ماسپښين پورې ټول ګناهونه معاف كيږى. بيائى مازيګرهم دغه شان مونځ اوكړو نودماسپښين نه د مازيګرپورې ټول ګناهونه معاف. بيائى د ماښام مونځ اوكړو نود مازيګرنه واخله ترماښامه پورې ټول ګناهونه معاف بيائى د ماسخوتن مونځ اوكړو نود ماښام نه واخله تر ماسخوتن پورې ګناه معاف بيا د شپې هغه اوده وو اوسحر پاسيدو مونځ ئى أدا كړو نود ماسخوتن نه واخله تر سحره پورې ګناه معاف هم دغه هغه نيكئى دى چه بدونه منع كول كوى. خلقو تپوس اوكړو چه دا خوشونى نيكئى اوس اې حضرت عثمان ﷺ باقيات او صالحات څه دى؟ هغوى اوفرمائيل (سبحان الله والحمدلله والله اكبر ولاحول ولاقوة الابالله العلى العظيم)(٧)

**باقيات صالحات څه څيز دې؟**:- حضرت سعيدبن مسيب رحمه الله فرمائى باقيات صالحات دا دى (سبحان الله والحمدلله والله اكبر ولاحول ولاقوة الابالله)حضرت سعيدبن مسيب رحمه الله دخپل شاګرد نه تپوس اوكړو چه اوښايه باقيات صالحات څه دى؟ هغه جواب وركړو مونځ او روژه. هغوى اوفرمائيل تا صحيح جواب رانه كړو.بيا اوونيل زكوة حج ونى فرمائيل اوس هم جواب ټيك نه دې. واوره هغه پنځه كلمې دى(لااله الا الله والله اكبرسبحان الله والحمدلله ولاحول ولاقوة الابالله )حضرت ابن عمر ﷺ نه تپوس اوشو هغوى بغيرد الحمدلله نه څلور نورې كلمې اوخودلې. حضرت مجاهد رحمه الله بغيرد لاحول الخ نورې څلور كلمې ښائى. حضرت حسن او قتاده رحمهما الله هم دا څلور كلمې باقيات او صالحات ښائى. ابن جرير رحمه الله فرمائى رسول

---

(١) ١٠/يونس:٢٦.
(٢) ٣٩/الزمر:٢١
(٣) صحيح مسلم كتاب الرقاق باب اكثر اهل الجنة الفقراء:٢٧٤٢.
(٤) ٣/آل عمران:١٤.
(٥) ٦٤/التغابن:١٥. الخ
(٦) الطبرى:٢٣/١٨.
(٧) احمد:٧١/١ وهوحسن، مجمع الزائد:٢٩٧/١.

الله ﷺ فرمائيلى دى (سبحان الله والحمدلله ولا اله الا الله والله اكبر) دادى باقيات صالحات. حضور ﷺ فرمائي د باقيات صالحات كثرت كوني. تپوس اوشو هغه څه دى؟ يارسول الله ﷺ حضور ﷺ اوفرمائيل تكبير تهليل تسبيح او الحمدلله او لاحول ولاقوة الا بالله([1]) (احمد) دسالم بن عبد الله ؒ مولى عبدالله بن عبدالرحمن ؒ وائي چه زه حضرت سالم محمدبن كعب قرظى له د څه كارد پاره اوليګلم نو هغوى اوونيل چه سالم ته وايه چه د فلانكى قبر په ګوټ كښې ماسره ملاقات اوكړى زماهغه سره څه كاردې. د دواړو هلته ملاقات اوشو سلام عليك اوشو نوسالم ؒ تپوس اوكړو چه ستا په نيز باقيات صالحات څه څيز دې؟ هغه اوفرمائيل (لا اله الا الله والله اكبر، سبحان الله، لاحول ولاقوة الا بالله) سالم ؒ ونيل چه دا آخرى كلمه په كښې تاد كله نه زياته كړه؟ قرظى ؒ ونيل چه زه خو هميشه نه دا كلمه شميرم. دوه درې ځل هم دا سوال جواب اوشو نوحضرت محمدبن كعب ؒ اوفرمائيل آياستاد دې كلمه نه انكاردې؟ هغه جواب وركړو چه اوانكاردې ونيل واوره ماد حضرت ابوايوب انصارى ؓ نه اوريدلى دي هغه د رسول الله ﷺ نه اوريدلى دى حضور ﷺ فرمائيل چه كله په ماباندې معراج اوكړې شو ماپه آسمان كښې حضرت ابراهيم ؑ اوليدلو هغه دجبرائيل ؑ نه تپوس اوكړو دا تاسره څوك دې؟ حضرت جبرائيل ؑ جواب وركړو دا محمد ﷺ دې هغه ماته په خيرراغلې او مرحبا اوونيل اوونى فرمائيل چه ته خپل امت اووايه چه هغوى دې په جنت كښې ځان له ښه ډير باغونه اولګوى دهغې خاوره پاكه ده زمكه نى ارته ده. ماونيل هلته د باغونولګولو څه صورت دې؟ ونى فرمائيل ((لاحول ولاقوة الا بالله)) په كثرت سره لولئى.

مسنداحمدكښې د نعمان بن بشير ؓ نه روايت دې چه يوځل حضور ﷺ د ماسخوتن د مانځه نه پس مونږ له راغلود آسمان طرف ته اوكتل نظر نى ښكته كړو. زمونږ خيال پيدا شو چه په آسمان كښې څرنه نوې خبره شوې ده. بياحضور ﷺ اوفرمائيل زما نه پس دروغ ويونكى او ظلم كونكى بادشاهان به وى څوك چه دهغوى دروغ رښتياكړى اود هغوى په ظلم كښې د هغوى طرفدارى اوكړى هغه زمانه نه دې اونه زد د هغه يم اوڅوك چه د هغوى دروغ رښتيانه كړى اونه د هغوى د ظلم طرفدارى اوكړى هغه زما دې اوزه دهغه نه يم. خلقو واورئى ((سبحان الله والحمدلله ولا اله الا الله والله اكبر)) دا باقيات صالحات يعنى باقى پاتې كيدونكى نيكئى دى. ([2]) مسندكښې دى حضور ﷺ فرمائي واه واه پنځه كلمې دى اود نيكئى په تله كښې ډيرې درنې دى ((لا اله الا الله والله اكبر وسبحان الله والحمدلله)) او هغه ماشوم چه د هغه په مرګ باندې د هغه پلار صبر اوكړى او طلب د اجر اوكړى. واه واه پنځه څيزونه دى څوك چه د هغې يقين لرى الله ﷻ سره دې ملاقات اوكړى هغه قطعاً جنتى دې په الله ﷻ باندې د قيامت په ورځ په جنت دوزخ باندې د مرګ نه پس راژوندى كيدو باندې او په حساب باندې ايمان اولرى.([3])

مسنداحمدكښې دى چه حضرت شدادبن اوس ؓ په يوسفركښې وويوځاى كښې راكوزشو اوخپل غلام ته نى اوونيل چاړه راوړه لوبه كوو. حسان بن عطيه ؒ وائي ما هغه وخت اوونيل تاسو څه اوونيل؟ هغوى اوفرمائيل واقعى ما غلطى اوكړه واوره د اسلام راوړو نه پس نه واخله ترنن پورې ما چرته داسې كلمه د خپلې ژبې نه نه ده ويستلې چه هغه زما واګه جوړه شي بغيرد دې يوې كلمه نه. تاسو خلق دا هيرد كړئى اوچه اوس زه څه وايم دا ياد اوساتئى ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلى دى چه كله خلق د سرو اوسپينو زرو په جمع كولوكښې اخته شى نو تاسو هغه وخت داكلمات ډير په كثرت سره لولئى. ((اللهم انى اسئلك الثبات فى الامر والعزيمة على الرشد واسئلك شكر نعمتك واسئلك حسن عبادتك واسئلك قلبا سليما واسئلك لسانا صادقا

---

[1]) احمد:٧٥/٣.

[2]) احمد:٢٦٧/٣-٢٦٨.

[3]) احمد:٤٤٣/٣، ٢٣٧/٤ وهوصحيح بالشواهد، حلية الاولياء:٢٦٦/١.

واسئلك من خير ماتعلم واعوذبك من شرماتعلم واستغفرك لماتعلم انك انت علام الغيوب)) يعني اې الله زه تانه د خپل نيکئ په کارباندې ثابت قدمي اودنيکئ دکار پوره اراده اوستاد نعمتونو د شکرکولو توفيق غوارم او تانه دعا ده چه ته ماته دسلامتياوالا زړه او رښتونې ژبه راکړې.ستا په علم کښې چه کومه ښيګړه ده زه د هغې غوښتونکې يم اوستاپه علم کښې چه کومه بدي ده زه د هغې نه ستا پناه غوارم. پروردګارد هرې هغه بدئي نه زما توبه ده کوم چه ستا په علم کښې ده بې شکه په غيبوباندې هم ته خبردار ئې. (١)
حضرت سعدبن عباده ﷺ فرمائي چه د طائف په خلقو کښې د ټولونه وړاندې زه دحضور پاک ﷺ په خدمت کښې حاضرشوم زه د خپل کور نه سحر وختې اووتلم اومازيګر منى ته اورسيدم په غرباندې او ختم بياراکوز شوم. بيا حضور ﷺ له راورسيدم او اسلام مې قبول کړو. حضور ﷺ ماته سورت ﴿ قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ ۝ اَللّٰهُ الصَّمَدُ ۝ لَمْ يَلِدْ ۝ وَلَمْ يُوْلَدْ ۝ وَلَمْ يَكُنْ لَّهٗ كُفُوًا اَحَدٌ ۝ ﴾ اوسورت ﴿ اِذَا زُلْزِلَتِ الْاَرْضُ زِلْزَالَهَا ۝ ﴾اوخودلو اود دې کلماتو تعليم ئې راکړو((سبحان الله والحمدلله ولااله الاالله والله اکبر)) هم دا دې باقي پاتې کيدونکې نيکئ.
هم په دې سندسره روايت دې کوم سړې چه د شپې ښه اودس اوکړي غرغړې اوکړي بياسل ځل ((سبحان الله والحمدلله والله اکبرلااله الاالله)) اولولي د هغه ټول ګناهونه معاف کيږي بغير د قتل او وينې تويولو هغه نه معاف کيږي. ابن عباس ﷺ فرمائي چه باقيات صالحات د الله ﷻ ذکر دې او((لا اله الا الله والله اکبرسبحان الله والحمدلله تبارك الله ولا حول ولاقوة الا بالله واستغفرالله وصلى الله على رسول الله)) دې او هغه روژه مونځ حج صدقه غلامان آزادول جهاد صله رحمي اوټولې نيکئ دا ټول باقيات اوصالحات دی د کومې ثواب چه به دجنت والا ته ترکومې چه آسمان اوزمکه وي ملاويږي.فرمائي چه پاکيزه کلام هم په دې کښې داخل دې(٢)حضرت عبدالرحمن رحمه الله فرمائي چه ټول نيک اعمال په دې کښې داخل دی. (٣)امام ابن جرير رحمه الله هم دې ته مختار واني.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَيَوْمَ | | نُسَيِّرُ | | |
| اوپه کومه ورځ | | چې روان کړومونږه | | |
| اوپه کومه ورځ چې مونږ غرونه | | | | |
| الْجِبَالَ | وَتَرَى | الْاَرْضَ بَارِزَةً | وَّحَشَرْنٰهُمْ | فَلَمْ نُغَادِرْ |
| غرونه | اوته اووينې / زمکه / لغړه | | اوراجمع به کړومونږه داخلق | چې پرې به نه ږدومونږه |
| لرې کړو او ته به اووينې چې ټوله زمکه يو هوار ميدان پاتې شوې دې او مونږ به خلق جمع کړو نوهيڅوک به په کښې | | | | |
| مِنْهُمْ | اَحَدًا ۝ | وَعُرِضُوْا عَلٰى رَبِّكَ | صَفًّا | لَقَدْ جِئْتُمُوْنَا |
| ددوئ نه | هيڅوک | اووړاندبه کړې شی / رب ستاته | په قطارونو کښې | په تحقيق راغلئ تاسومونږته |
| پاتې پرې نه ږدو اوټول به ستادرب په وړاندې په قطارونو کښې ولاړ پيش کولې شي،او ورته ونيلې شي، څنګه چې مونږ | | | | |
| كَمَا | خَلَقْنٰكُمْ | اَوَّلَ مَرَّةٍ | بَلْ زَعَمْتُمْ | |
| لکه څنګه چې | پيدا کړې وئ مونږ تاسو | په اول ځل | بلکه ګمان کوئ تاسو | |
| تاسو په اول ځل پيدا کړې وې هغه شان نن تاسو زمونږ مخې ته راغلې يئ ليکن ستاسو خوداخيال وو | | | | |

(١) احمد: ١٢٣/٤ ، ابن ابي شيبه: ٢٧١/١٠، حلية الاولياء: ٢٦٦/١.
(٢) الطبرى: ٣٥/١٨.
(٣) الطبرى: ٣٥/١٨.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أَلَّن نَّجْعَلَ | لَكُم | مَّوْعِدًا۝ | وَوُضِعَ | الْكِتٰبُ |
| چې هېڅ مقرر کړې نهٔ دې مونږ | ستاسو دپاره | وخت دوعدې | اوکیښه خودلې شي | کتاب |

چې مونږ به درباندې دامقرر وخت نه راولو او عمل نامه بهٔ کیخودلې شي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَتَرَى الْمُجْرِمِينَ | مُشْفِقِينَ | مِمَّا | فِيهِ | وَيَقُولُونَ |
| نوتهٔ به اووینې مجرمان خلق | یریدونکی | دهغې نه | چې په هغې کښې وی | اووائی به |

نوته به مجرمان اووینې چې دهغې دلیک نه ویریږی او دابهٔ وائی چې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يٰوَيْلَتَنَا | مَالِ هٰذَا الْكِتٰبِ | لَا يُغَادِرُ | صَغِيرَةً | وَّلَا |
| اے افسوس دې مونږلره | څه شوی دی دې کتاب لره | چې نهٔ پرېږدی | وړه | اونهٔ |

هائې زمونږ بده نصیبه ددې عمل نامې خو عجیبه حال دې چې هیڅ یو گناه نه وړه او نه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| كَبِيرَةً | إِلَّا | أَحْصٰهَا | وَوَجَدُوا | مَا | عَمِلُوا | حَاضِرًا |
| لویه | مگر | حساب کړی ئې دی هغه ټول | او بیا به مومی هغوئ | هغه څه | چې کړی وی هغوئ | حاضر |

لویه باقی پرېخودې ده خو هره یوه لیکلې ده اوکوم عملونه چې ئې کړی دی هغه بهٔ موجود بیامومی

| | | |
|---|---|---|
| وَلَا يَظْلِمُ | رَبُّكَ | أَحَدًا۝ |
| او نهٔ کوی ظلم | رب ستا | په هیچا |

او ستارب په هیچا زیاتې نه کوی

**قوله تعالی:- وَيَوْمَ نُسَيِّرُ الْجِبَالَ**

**د قیامت د تباهوا و حساب کتاب ذکر:-** الله ﷻ دقیامت د تباهوذکر فرمائی اوچه کوم حیرانونکې لوئ لوئ کارونه به په هغه ورځ وی د هغې ذکر کوی چه آسمان به اوشلیږی غرونه به والوزی که هر څومره کلك درته ښکاری خو په هغه ورځ به د اوریځو په شان په تیزئی سره روان وی زمکه به صفا کولاو میدان شی په کوم کښې چه به هیڅ ښکته والې پورته والې نه وی نه به په دې کښې چرته څه کور وی نه خپر. ټول مخلوق به بغیر د پردې د الله ﷻ په حضورکښې مخامخ ولاړ وی هیڅ څوك به د مالك نه یوځائ هم پټ نه شی هیڅ د پناه او سرپټولوځائ به نه وی. هیڅ ونه غنه یا وابنه وغیره به نه ښکاری ټول د اول نه تراخره پورې خلق به راجمع شی هیڅ یو وړوکې یا لوئ به غیرحاضر نه وی. ټول وراندې روستو به په دغه مقرره ورځ راجمع کولې شی. په هغه ورځ به ټول حاضرشوی او موجود وی. ټول خلق به د الله ﷻ په وراندې صفونه تړلې ولاړ وی او روح او فرښتې به په صفونوکښې ولاړوی. د چا به هم د خبرې کولو طاقت نه وی بغیرد هغوی نه چاته چه الله الرحمن اجازت ورکړی اوهغه به خبره هم معقوله کوی نو یا خویه دټولویوصف وی یابه په صفونوکښې وی لکه چه دقرآن پاك ارشاددې ستارب به راځی او فرښتې صف په صف. هلته به د قیامت منکران د ټولوپه وراندې رټلې شی اورته به وائی چه اوگورئی چه څنګه په اول خل مونږ تاسو پیداکړی وئی هغه شان بیاهم راپیداکړئی او څان ته مخامخ اودرولی. دی نه اول خو تاسودې قائل نه وئی عمل نامه به ورته وراندې کړې شی په کوم کښې چه به هر وړوکې لوئ پټ ښکاره عمل لیکلې شوې وی.خپلې بدعملو ته چه اوگوری گناهگاران به حیران اواوویریږی اود افسوس اوخفگان نه به وائی مونږخپل عمر څنګه په غفلت کښې تیرکړو افسوس په بدوعملونوکښې

لګیاوواوګوره دې کتاب خو یوه معامله هم داسې نه ده پریخودې چه لیکلې نی نه وی. لویٔ واړه ټول ګناهونه په دې کښې لیکلې دی.

**دګناه هونو راجمع کیدلو یو مثال:**-طبرانی کښې دی چه د غزوه حنیین نه فارغ شو نو مونږ روان شو په یو میدان کښې رسول الله ﷺ ډیره شو مونږ ته نی اوفرمائیل چه ختی لارشئی که چاته څه لرګې ټکره ډکی وابنه وغیره ملاوشی نو راوړنی. مونږ ټول اخوا دیخوا خواره شو څه بناخونه لختې ازغی اوډ ونو جاړې ماړې او پاڼړې وغیره چه څه ملاو شوې راوړلې شوې یوه ډیرې اولګیدونو حضورﷺ اوفرمائیل ګورئې؟ دغه شان ګناه راجمع کیږی ډیرې جوړیږی.د الله ﷻ نه ویریږئی د لویو وړو ګناهونو نه بچ اوسیږئی ځکه چه دا ټول لیکلې کیږی([1])اوشمیرلې کیږی کوم خیراوشر نیکی بدی چاچه دچا کړې وی هغه به موجود مومی.لکه چه آیت ﴿يَوْمَ تَجِدُ كُلُّ نَفْسٍ مَّا عَمِلَتْ مِنْ خَيْرٍ مُّحْضَرًا ۖ وَمَا عَمِلَتْ مِن سُوءٍ تَوَدُّ لَوْ أَنَّ بَيْنَهَا وَبَيْنَهُ أَمَدًا بَعِيدًا ۗ وَيُحَذِّرُكُمُ اللَّهُ نَفْسَهُ ۗ وَاللَّهُ رَءُوفٌ بِالْعِبَادِ﴾([2])بل آیت ﴿يُنَبَّأُ الْإِنسَانُ يَوْمَئِذٍ بِمَا قَدَّمَ وَأَخَّرَ﴾([3])اوبل آیت ﴿يَوْمَ تُبْلَى السَّرَائِرُ﴾ ([4])کښې چه ټول پټ رازونه به ښکاره کړې شی. ([5])

**دبدعهدئی سزا:**-رسول الله ﷺ فرمائی د هریوبدعهد د پاره به د قیامت په ورځ یوه جهنډا وی د هغه د بدعهدئی په مطابق چه په هغې سره به د ده پیژندګلی کیږی. یوبل حدیث کښې دی چه دا جهنډا به د هغه کوناټو سره وی او اعلان به کیږی چه دا د فلانکی خویٔ د فلانکی بدعهدی ده. ([6])ستا رب داسې نه دې چه په مخلوق کښې په چا ظلم اوکړی اودا ده چه معاف کول پریخودل دا د هغه صفت دې او بدکارانو ته دخپل قدرت حکمت عدل اوانصاف سره هغه سزا هم ورکوی. دوزخ به د ګناهګارانو او نافرمانانونه ډك شی بیا به د کافرانو اومشرکانونه علاوه ګناهګاران مؤمنان خلاص کړې شی. الله ﷻ دیوې ذرې برابرهم بې انصافی نه کوی نیکئی زیاتوی او ګناهونه برابر ساتی دانصاف تله به په هغه ورځ مخامخ وی هیڅ چا سره به څه بدسلوکی نه کیږی. الخ. ([7])

**قیامت کښې به هریوته پوراپورا انصاف ملاویږی:**-مسند احمد کښې دی حضرت جابربن عبدالله ﷺ فرمائی ماته روایت رارسیدلې دې چه یو سړی د حضورﷺ نه یوحدیث واوریدو چه هغه بیان کوی ما د هغه نه خاص د دې حدیث اوریدو د پاره یواوبښ واخستو او سامان د سفرمې اوتړلو روان شوم. د یوې میاشت سفرکولونه پس شام ته اورسیدم نومعلومه شوه چه هغه حضرت عبدالله بن انیس ﷺ دې ما خوکیدار ته اوونیل چه لاړشه خبر نی کړه جابر په دروازه کښې دې هغه تپوس اوکړو چه آیا جابربن عبدالله ﷺ؟ دې اوریدو سره ډیر د تندئی د لاسه نی څادر سم کړوزر بهر راغلو اوماپورې اونختو اود غاړې ملاویدونه چه فارغ شو نوماااوونیل ماته دا روایت رارسیدلې دې چه تاد قصاص باره کښې د رسول الله ﷺ نه اوریدلې دې نو ماغوښتل چه پخپله هغه حدیث تاسو نه واورم ځکه دلته راغلم او اوریدوسره مې سفرشروع کړو په دې ویره چه هسې نه د دې حدیث د اوریدونه وړاندې زه مړ نه شم یاته مړ نه شې. اوس تاسو واوروئی هغه حدیث کوم یو دې؟ هغوی اوفرمائیل ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلی دی الله ﷻ عزوجل به دقیامت په ورځ دخپلو ټولوبندیګانوخپلې مخې ته حشر کوی بربنډ بدن ناسونته بې آسرې

---

[1] طبران:٥٤٨٥.

[2] ٣/آل عمران: ٣٠.

[3] ٧٥/القیامة:١٣.

[4] ٨٦/الطارق٩.

[5] صحیح بخاری کتاب الجزیة باب اثم الغادر للبروالفاجر:٣١٨٧، صحیح مسلم:١٧٣٧، احمد:١٤٢/٣، مسندابی یعلی:٣٣٨٢.

[6] صحیح بخاری کتاب الادب باب مایدعی الناس بابائهم:٦١٧٧، صحیح مسلم:١٧٣٥.

[7] ٢١/الانبیاء:٤٧.

اوسامانه. بیا به هغوی ته اواز کوی کوم چه به د لرې اونیزدې والا ټول یوشان اوری فرمانی به زه مالك یم زه د بدلوورکونکې یم هیڅ یو دوزخی به تر هغه وخت پورې دوزخ ته نه ځی ترکومې چه دهغه څه حق په یوجنتی وی اوزه هغه ورنه کړم اونه څوك جنتی په جنت کښې داخلیدې شی ترکومې چه دهغه څه حق په دوزخی باندې دې زه ئې ورنه کړم که هغه یوه څپیړه ولې نه وی. مونږ ونیل حضورﷺ داحقونه به څنګه ورکړې کیدې شی سره د دې چه هلته خو به مونږ بربنډ بدن بربنډې پښې بې اسرې او بې اسباب یو. حضورﷺ اوفرمائیل چه او په هغه ورځ به حق د نیکو نه ادا کولې شی. (١) یو بل حدیث کښې دی حضورﷺ فرمانی چه که بې ښکرو چیلنی یوې ښکرورې چیلنی وهلې وی نو هغې ته به هم بدله ورکولې شی. (٢) د دې نور هم ډیر شواهد دی کوم چه مونږ په تفصیل سره د آیت ﴿ وَنَضَعُ الْمَوَازِينَ الْقِسْطَ لِيَوْمِ الْقِيَامَةِ فَلَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْئًا ۖ وَإِن كَانَ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ أَتَيْنَا بِهَا ۗ وَكَفَىٰ بِنَا حَاسِبِينَ ﴾ (٣) په تفسیر کښې او آیت ﴿ إِلَّا أُمَمٌ أَمْثَالُكُم ۚ مَّا فَرَّطْنَا فِي الْكِتَابِ مِن شَيْءٍ ۚ ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّهِمْ يُحْشَرُونَ ﴾ (٤). په تفسیر کښې بیان کړې دی.

وَإِذْ قُلْنَا لِلْمَلَائِكَةِ

| اوکله چې | اوونیل مونږه | فرښتوته

اوهرکله چې موونږ فرښتو ته حکم اوکړو چې تاسو

اسْجُدُوا لِآدَمَ فَسَجَدُوا إِلَّا إِبْلِيسَ ۖ كَانَ مِنَ الْجِنِّ

چې سجده اوکړئ | آدم ته | نو سجده اوکړه هغوی | مګراونه کړه | ابلیس | ووهغه | دپیریانونه

ادم ﷺ ته سجده اوکړئ نو ټولو سجده اوکړه خو ابلیس اونه کړه هغه پیرې وو

فَفَسَقَ عَنْ أَمْرِ رَبِّهِ ۗ أَفَتَتَّخِذُونَهُ وَذُرِّيَّتَهُ أَوْلِيَاءَ

اونافرمانی اوکړه هغه | دحکم درب خپل نه | آیانوتاسو جوړوئ هغه لره | اواولاد دهغه لره | دوستان

نودخپل درب حکم نافرمانی ئې اوکړه نو اوس تاسو هغه او دهغه اولاد زما په مقابله کښې

مِن دُونِي وَهُمْ لَكُمْ عَدُوٌّ ۚ بِئْسَ لِلظَّالِمِينَ

غیر زمانه | حالانکه هغوئ | ستاسو دپاره | دشمنان دی | ډیرخراب دې | دپاره دظالمانو

په دوستئ نیسئ حال دا چې هغوئ خوستاسو څرګند دښمنان دی ظالمانو له څومره خرابه

بَدَلًا ۝ مَّا أَشْهَدتُّهُمْ خَلْقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَلَا

په لحاظ دبدل سره | نه ووحاضرکړی ماهغوئ | پیداکولو | دآسمانونو | اودزمکې ته | اونه

بدله ورکړې شوه ما نه خو دوئ داسمانونو او دزمکې دپیدا اوخت په وخت کښې رابللی وو

خَلْقَ أَنفُسِهِمْ وَمَا كُنتُ مُتَّخِذَ الْمُضِلِّينَ عَضُدًا ۝

پیداکولو | دځانونو ددوئ ته | اونه یم زه | جوړونکې | ګمراهه کونکو خلقولره | مضبوطیادمتوخپلو

او نه ددوئ دخپل پیدا اوخت په وخت کښې اوزه داسې (عاجزه) نه وم چې ګمراه کوونکی به مې خپل مددګاران جوړول

---

(١) احمد:٣/٤٩٥.

(٢) احمد:١/٧٢.

(٣) ٢١/الانبياء:٤٧.

(٤) ٦/الانعام:٣٨.

**قوله‌تعالى:- وَهُمۡ لَكُمۡ عَدُوٌّ**

**شيطان د انسان دښمن دي:**- بيان دي چه ابليس ستا بلكه ستاسو د اصلي پلار حضرت آدم ﷺ هم زوړ دښمن دي.خپل خالق اومالك پريخودوسره تاسوله د هغه خبره نه دي منل پكار.د الله ﷻ احسان اكرام لطف اوكرم ته اوګورئ هغه تاسو پيداكړئ ستاسو پالنه ئې اوكړه بيا هغه پريخودو سره د هغه بلكه خپل دښمن دوست جوړول څومره خطرناكه غلطي ده د دې پوره تفسيرد سورت بقره په تفسيركښې تيرشوې دې. الله ﷻ حضرت آدم ﷺ پيداكړو او ټولو فرښتو ته ئې دهغه د عزت په توګه د تعظيم او تكريم دپاره د هغه په وړاندې دسجدې كولو حكم اوكړو. ټولو حكم اومنلو خو ابليس بداصل وو د اور نه پيدا كړې شوې وو هغه انكار اوكړو اوفاسق جوړشو. د فرښتو پيدائش نوراني وو.

**هرڅيز خپل اصل ته ګرځي:**-صحيح مسلم كښې حديث دې فرښتې دنورنه پيداكړې شوې دي او ابليس د شغلې وهونكې اُور نه او آدم ﷺ د هغې نه د كوم بيان چه ستاسو په وړاندې اوكړې شو.([1]) ښكاره خبره ده چه هريوڅيز په خپل اصليت كښې راځي او په وخت چه په لوښي كښې څه وي نو هم هغه ترې ځاځي ګنې ابليس د فرښتو په شان اعمال كول هم د هغوي مشابهت ئې كولو اود الله ﷻ په رضامندئ كښې شپه ورځ مشغول وو د دې د پاره د هغوي په خطاب كښې دې هم راغلو خوده اوريدو سره په خپل اصليت كښې راغلو كبردهغه په طبيعت كښې ځاى شواوصفاانكارئې اوكړو. د ده پيدائش هم د اُور نه وو لكه څنګه چه هغه پخپله وئيلي تازه د اُور نه جوړكړې يم دې دې دخاورې نه. ابليس كله هم د فرښتونه نه وو.هغه دپيريانو اصل دې لكه چه حضرت آدم ﷺ چه دانسانانو اصل دې.داپيريان يو قسم وود فرښتو چه د تيزاُور نه پيداكړې شوې وو. د ده نوم حارث وو د جنت داروغه وو د دې ډلې نه علاوه نورې فرښتې نورى وې د پيريانو پيدائش د اُور د شغلې نه وو.

**شيطان اول كښې څه وو؟:**- حضرت ابن عباس ﷺ فرمائي ابليس دشريفانو فرښتونه وو اودبزرګ قبيلې وو د جنتيانو داروغه وو د دنياد آسمان بادشاه وو د زمكې هم بادشاه وو. دې سره د هغه په زړه كښې څه غروړراغلوچه هغه د ټول آسمان والا نه شريف دې هغه غرور ئې زياتيدلودهغه صحيح اندازه خو صرف هم الله ﷻ ته وه اودهغې د ښكاره كولو د پاره ئې ورته حضرت آدم ﷺ ته د سجدې كولو حكم اوكړونود هغه غرور ښكاره شو. د تكبر په وجه ئې صفا انكار اوكړو او كافرانوكښې يوځاې شو. ابن عباس ﷺ فرمائي چه هغه جن وو يعني د جنت خازن وو لكه چه خلقوته د ښارونو طرف ته نسبت كولې شي او وائي چه مكى مدني بصري كوفي دې د جنت خازن اود دنيا د آسمان په كارونو باندې مشر وو. د دې ځاې د فرښتو سردار وو. د دې ګناه نه اول هغه په ملائكو كښې داخل وو خو اوسيدلو به په زمكه باندې. د ټولو فرښتونه زيات په عبادت كښې كوشش كونكې او د ټولونه زيات علم والا هم په دې وجه كبرژن شو د هغه د قبيلې نوم جن وو. د زمكې او آسمان په مينځ كښې تګ راتګ لرلو د رب په نافرماني سره په غضب كښې راغلو اوشيطان رجيم جوړشو اوملعون شو نود كبرژن سړى نه د توبه اميد نه شي كيدلې او كه تكبر نه وى څه بله ګناه ترې شوې وى نو د هغه نه نااميده كيدل نه دى پكار.دې خو په جنت كښې دننه د كار روزګاركولووالا وو.ددې باره كښې دسلفو نه نورهم ډير آثار نقل دى خودا اكثر اسرائيلي دى صرف په دې وجه نقل كړې شوى دى چه دنظر نه تيرشي هم الله ﷻ ته د دې داكثر صحيح حال معلوم دي.

اود بني اسرائيلوروايتونه خو قطعًا قابل ترديددى كوم چه زمونږ په نيز د دلائلو خلاف وي. خبره دا ده چه قرآن خو كافي او وافي دى مونږ ته د وړاندينوكتابونوضرورت نشته مونږ دهغې نه بالكل بې

---

[1] صحيح مسلم كتاب الزهدباب فى احاديث متفرقة:٢٩٩٦، احمد:١٥٣/٦، ابن حبان:٦١٥٥.

نیازیو ځکه چه هغه د بدلون او کمي زیاتي نه خالي نه دی ډیر د ځان نه ځیزونه په هغې کښې ورداخل کړې شوی دی او په هغوی کښې داسې خلق نه شي موندلې چه د اوچتې درجه حافظان وی چه خیرې میرې لرې کړی اوکړه اوکوته جدا کړی د زیاتی او باطل یوځایٔ کونکو مخ نیوې اوکړی.

**د محدثینو اصحاب الجرح والتعدیل په امت باندې عظیم احسان:-** لکه څنګه چه الله الرحمن په دې امت کښې په خپل فضل اوکرم سره داسې امامان علماء سادات بزرګان اومتقیان پاك حافظان پیداکړی دی چاچه احادیث راجمع کړی دی تحریرکړی دی صحیح، حسن، ضعیف، منکر، متروك او موضوع ټول ئې جدا جداکړی خودلې دی. د ځان نه جوړکړې شوی دروغ ویونکې ئې چانړکړی جدا کړی دی دې د پاره چه د ختم المرسلین رحمة للعلمین ﷺ پاك اومتبرك کلام محفوظ کړې شي اود باطل نه بچ شي او دچاهم وس اونه چلیږی چه دحضورﷺ په نوم دروغوله رواج ورکړی اوباطل په حق کښې ګډوډکړی. زمونږ دعاده چه پدې ټوله طبقه دې الله ﷻ خپل رحمت اورضامندی نازله کړی اوددې ټولونه دې خوشحاله شي.آمین ثم آمین.

الله ﷻ دې دوی ته جنت الفردوس ورکړی اویقیناً دهغوی منصب ددې لائق دې.غرض داچه ابلیس د الله ﷻ د اطاعت نه اووتلو نوتاسو له پکار دی چه خپل دښمن سره دوستی اونه کړئی اوما پریخودو سره هغه سره تعلق مه جوړونی ظالمانوته به ډیره خرابه بدله ملاویږی. دا مقام هم بالکل داسې دې لکه سورت یس کښې د قیامت د هغې د تباهو نیکانو اوبدانو خلقو د نتیجوذکر کولوسره فرمائی چه اې مجرمانو تاسو په نن ورځ جداشئ. الخ. [1]

**د الله ﷻ هیڅ څوک وزیریامشیر نشته:-** کوم کوم چه تاسو د الله ﷻ نه بغیرخپل اولیاء جوړکړی دی هغه ټول ستاسو په شان زما غلامان دی. هغوی ته د هیڅ ځیز ملکیت نشته. د زمکې اوآسمان په پیدا کولو کښې ما هغوی نه ووشامل کړې بلکه هغه وخت خو هغوی موجود هم نه وو. ټول ځیزونه صرف ما پیدا کړی دی د ټولو تدبیرصرف زما په لاس کښې دې زما هیڅ څوك شریك وزیر مشیراو نظیر نشته لکه چه بل آیت کښې ارشاد دې ﴿قُلِ ادْعُوا الَّذِينَ زَعَمْتُم مِّن دُونِ اللَّهِ ۖ لَا يَمْلِكُونَ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ فِي السَّمَاوَاتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ وَمَا لَهُمْ فِيهِمَا مِن شِرْكٍ وَمَا لَهُ مِنْهُم مِّن ظَهِيرٍ﴾ [2] کوم کوم چه تاسو په خپل ګمان کښې څه ګڼرئی هغه ټول بغیرد الله ﷻ نه راوبلئ اوګورئی یادساتئ دوی ته په آسمان اوزمکه کښې د یوې ذرې برابر هم اختیارنشته نه په دې کښې څوك د هغه ملګرې اونه څوك د الله ﷻ امدادی شته نه په دې کښې څوك شفاعت کولې شي ترکومې چه د الله ﷻ اجازت اونه شي الخ. زما د پاره دا لائق نه دی نه ماته د دې ضرورت شته چه خاص کر ګمراه کونکی خپل دوست متې او امدادی جوړکړم.

| وَيَوْمَ | يَقُولُ | نَادُوا | شُرَكَاءِيَ الَّذِينَ | زَعَمْتُمْ |
|---|---|---|---|---|
| اوپه کومه ورځ | چې اووائی الله | چې آوازاوکړئ | شریکانوزماته \| هغه | چې ګمان کړې ووتاسوپه هغوئ دخدایئ |

او په کومه ورځ چې الله ﷻ اوفرمائی چې زما هغه شریکان راوغواړئ په کومو چې تاسو (دمعبودانو) خیال کولو

| فَدَعَوْهُمْ | فَلَمْ يَسْتَجِيبُوا | لَهُمْ | وَجَعَلْنَا |
|---|---|---|---|
| نو آواز به اوکړی \| دوی هغوئ ته | نو جواب به ورنه کړی هغوئ | دوئ لره | او شریك به کړو مونږ |

نودوئ به راوبلی هغوئ خوهغوئ به هډو جواب ورنه کړی او مونږ به ددوئ (اومعبودانو)

[1] ٣٦/یس:٥٩.
[2] ٣٤/سبا:٢٢.

| بينهم | مّوبِقًا۝ | وَرَاَ | الْمُجْرِمُوْنَ | النَّارَ | فَظَنُّوْٓا |
|---|---|---|---|---|---|
| به منځ ددوئ کښې | خاني دهلاکت | اواوبه ويني | مجرمان خلق | وور | اويقين به ني راشي |

ترمينځه يوه پرده اودروږ اومجرمان به (پخپلو سترګو) دوزخ اوويني اودا يقين

| اَنَّهُمْ | مُّوَاقِعُوْهَا | وَلَمْ يَجِدُوْا | عَنْهَا | مَصْرِفًا۝ |
|---|---|---|---|---|
| چې بيشکه دوئ | واقع کيدونکي دی په هغې کښې | اووبه نه مومي دوئ | دهغه وورنه | خاني دبچ کيدو |

به ئې راشي چې دوئ په کښې ورغوزويدونکي دی اودهغې نه دبچ کيدو به هيڅ لار نه مومي

**قوله تعالي:- وَلَمْ يَجِدُوْا عَنْهَا مَصْرِفًا۝**

**د قيامت په ورځ به مجرمان چرته تختيدې نه شي:-** ټول مشرکانوته به د قيامت په ورځ شرمنده کولو دپاره د ټولوخلقو په وړاندې اوونيلې شي چه خپلوشريکانوته آوازکړئ کوموته چه تاسو په دنيا کښې آوازونه کول چه هغوی دنن ورځې مصيبتونونه تاسوبچ کړی هغوی به چغې وهي خوهيڅ څوك به جواب نه ورکوی لکه چه بل آيت کښې ارشاد دی ﴿وَلَقَدْ جِئْتُمُوْنَا فُرَادٰی كَمَا خَلَقْنٰكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍ وَّتَرَكْتُمْ مَّا خَوَّلْنٰكُمْ وَرَآءَ ظُهُوْرِكُمْ وَمَا نَرٰی مَعَكُمْ شُفَعَآءَكُمُ الَّذِيْنَ زَعَمْتُمْ اَنَّهُمْ فِيْكُمْ شُرَكٰٓؤُا لَقَدْ تَّقَطَّعَ بَيْنَكُمْ وَضَلَّ عَنْكُمْ مَّا كُنْتُمْ تَزْعُمُوْنَ۝﴾ ([1]) مونږ ته تاسو دغه شان خان له خان راوړنی لکه څنګه چه مونږ تاسو په اول خل پيداکړی وئی اوکوم څه چه مونږه په دنيا کښې تاسو ته درکړې وو هغه ټول مو خپل شاته پريخودل نن خو مونږ تاسوته سره د دې شريکانويوته هم نه ګورو کوم چه تاسو د الله ﷻ شريکان ګرځولي وو اود چا د شفاعت چه تاسو يقين کړې وو. تاسو اودوی کښې تعلقات ختم شو اوستاسو ګمان باطل ثابت شو الخ. يوبل آيت کښې دی ﴿وَقِيْلَ ادْعُوْا شُرَكَآءَكُمْ فَدَعَوْهُمْ فَلَمْ يَسْتَجِيْبُوْا لَهُمْ وَرَاَوُا الْعَذَابَ لَوْ اَنَّهُمْ كَانُوْا يَهْتَدُوْنَ۝﴾ ([2]) ونيلې به شي چه خپل شريکان راوبلئ خوهغوی به جواب نه ورکوی الخ همدامضمون دلته آيت ﴿ وَمَنْ اَضَلُّ مِمَّنْ يَّدْعُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَنْ لَّا يَسْتَجِيْبُ لَهٗٓ اِلٰی يَوْمِ الْقِيٰمَةِ وَهُمْ عَنْ دُعَآئِهِمْ غٰفِلُوْنَ۝ وَاِذَا حُشِرَ النَّاسُ كَانُوْا لَهُمْ اَعْدَآءً وَّكَانُوْا بِعِبَادَتِهِمْ كٰفِرِيْنَ۝﴾ ([3]) کښې بيان فرمائيلې دی.

سورت مريم کښې ارشاد دی چه هغوی د خپل عزت د پاره د الله ﷻ نه بغير دير معبودان جوړ کړی ساتلی دی خوداسې کيدونکی نه دی هغوی خو به ټول د دوی د عبادت منکر شی اواولټه به هغوی دښمنان شی([4]) په دوی کښې اود دوی په باطلومعبودانوکښې به حجاب پرده اود هلاکت کنده جوړه کړو دې د پاره چه هغوی دوی سره او دوی هغوی سره ملاونه شي. نيکې لارې اوګمراه لارې جدا جدا شی د دوزخ دا کنده به ئې په خپل مينځ کښې يوځائ نه کړی. وائي چه دا کنده به د وينو اونوونو وی د دوی به په خپل مينځ کښې په دغه ورځ دښمنی وی.په ظاهره معلوميږی چه موبقا نه مراد هلاکت دې اودا هم کيدې شی چه د دوزخ يوکنده هم وی يا بله څه د فاصلې کنده وی. مقصددادې چه دې عبادت کونکوته به هغه معبودان جواب قدرې نه ورکوی نه به دوی په خپل مينځ کښې يوبل سره ملاوشی خکه چه د دوی په مينځ کښې به هلاکت وی او خطرناك امور به وی. عبدالله بن عمروؓ فرمائيلی دی مراد دادې چه په مشرکانو اومسلمانانو کښې به مونږ پرده کوو. ([5])

[1] ٦/الانعام:٩٤.
[2] ٢٨/القصص: ٦٤.
[3] ٤٦/الاحقاف:٥-٦.
[4] ١٩/مريم:٨١-
[5] الطبری:٤٦/١٨.

لکه چه آیت ﴿ وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ يَوْمَئِذٍ يَّتَفَرَّقُوْنَ۝ ﴾([1]) او آیت ﴿ يَوْمَئِذٍ يَّصَّدَّعُوْنَ۝ ﴾ ([2])او آیت ﴿وَامْتَازُوا الْيَوْمَ اَيُّهَا الْمُجْرِمُوْنَ۝﴾ ([3])او آیت ﴿وَيَوْمَ نَحْشُرُهُمْ جَمِيْعًا ثُمَّ نَقُوْلُ لِلَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا مَكَانَكُمْ اَنْتُمْ وَشُرَكَآؤُكُمْ ۚ فَزَيَّلْنَا بَيْنَهُمْ وَقَالَ شُرَكَآؤُهُمْ مَّا كُنْتُمْ اِيَّانَا تَعْبُدُوْنَ۝ ﴾([4])وغیره کښې دی ګناهګاران به دوزخ اووینی په اویا زره واګوکښې به هغه راګیرکړې شوې وی په هره یوه واګه به اویا اویا زره فرښتې وی کتوسره به پوهه شی چه زمونږ قیدخانه هم دا ده چه بغیرد داخلیدو نه به هم زیات سخت غم درد تکلیف مصیبت ورکوی. د عذاب یقین کیدل دعذاب نه اول عذاب دې خو هیڅ د خلاصی لار به نه بیاموی اود نجات به هیڅ صورت نه ښکاری. حدیث شریف کښې دی چه پنځه زره کاله به داکافران په دې تراره کښې وی چه دوزخ دهغوی مخې ته دې اودهغوی زړه دقابونه بهردې. ([5])

وَلَقَدْ — صَرَّفْنَا — فِيْ هٰذَا الْقُرْاٰنِ — لِلنَّاسِ — مِنْ كُلِّ مَثَلٍ ؕ

او په تحقیق سره | باربار بیان کړل مونږ | په دې قران کښې | دپاره دخلقو | دهر قسم مثال نه

اومونږ په دې قران پاک کښې دخلقو (دپوهولو) دپاره رنګ رنګ مثالونه بیان کړل

وَكَانَ الْاِنْسَانُ — اَكْثَرَ شَيْءٍ — جَدَلًا۝ — وَمَا مَنَعَ — النَّاسَ

اودې انسان | زیات دهرڅیزنه | په لحاظ دجګړې سره | اومنع کړل | داخلق |

خوانسان په جګړه کولو کښې دهرڅه نه سوا دې اودا خلق دهد ایت راتلونه پس

اَنْ يُّؤْمِنُوْٓا — اِذْ — جَآءَهُمُ — الْهُدٰى — وَيَسْتَغْفِرُوْا — رَبَّهُمْ — اِلَّآ

چې ایمان راوړی | کله چې | راغې دوی ته | هدایت | او چې ښښانه اوغواړی | درب خپل نه | مګر

نور څه څیز دایمان راوړلونه او دخپل رب دبخښنې غوښتلو منع کړې دی خو بس

اَنْ تَاْتِيَهُمْ — سُنَّةُ الْاَوَّلِيْنَ — اَوْ يَاْتِيَهُمُ — الْعَذَابُ — قُبُلًا۝ — وَمَا نُرْسِلُ

چې راشي دوئ ته | طریقه داولنو خلقو | یاراشي دوئ ته | عذاب | مخامخ | اونه لیږو مونږه

داچې (دوئ انتظار کوی) چې دپخوانو خلقوغوندې معامله دې ورسره اوشي یاد وربان دې مخامخ عذاب راشي

الْمُرْسَلِيْنَ — اِلَّا — مُبَشِّرِيْنَ — وَمُنْذِرِيْنَ ۚ — وَيُجَادِلُ — الَّذِيْنَ

رسولان | مګر | زیری ورکونکي | او یرونکي | اوجګړه کوی | هغه کسان |

اومونږ پیغمبران صرف په دې وجه رالیږو چې خلقو ته زیرې واوروی اوعذاب نه ئې اوویروی او کوم

كَفَرُوْا — بِالْبَاطِلِ — لِيُدْحِضُوْا — بِهِ — الْحَقَّ

چې کفر ئې کړې دی | په ذریعه دباطل | دپاره ددې چې ښکته کړی | په هغې سره | حق

خلق چې منکر دی په ناحقه جګړې کوی چې حق پرې بې اثره کړی

---

[1]) ٣٠/الروم:١٤.

[2]) ٣٠/الروم:٤٣.

[3]) ٣٦/يس:٥٩.

[4]) ٦/الانعام:٢٢.

[5]) احمد:٣/٧٥ح ١١٧١٤ مسندابي يعلى:١٣٨٥، حاكم:٤/٥٩٧.

| هُزُوًا | أُنْذِرُوْا | وَمَآ | اٰيٰتِيْ | وَاتَّخَذُوْٓا |
|---|---|---|---|---|
| په توقوسره | او هغه خبر اچې دوئ ترې يرولي شوي دي | آيتونه زما | او نيولي ني دي |  |

اوهغوئ خو زما د(قدرت) نخښې اودكوم څيز نه چې ويرولي شوي (هغه ټول) ټوقې مسخرې ګنړي

**قوله تعالى:- وَكَانَ الْاِنْسَانُ اَكْثَرَ شَيْءٍ جَدَلًا**

**انسان ډير جګړه مار دې :-** د انسانانود پاره مونږ په خپل كتاب كښې هره خبره ښه كولاو كولاو ښكاره كړې ده دې د پاره چه خلق د حق لارې نه وانوړي د هدايت د لارې نه دهوكه اونه خوري خوسره د دې بيان اوفرقان نه بيا هم د هدايت موندونكونه بغيرخلق ټول په ټول د خلاصي د لارې نه اخواشوى دى. مسنداحمد كښې دى چه يوه شپه رسول الله ﷺ دحضرت فاطمه بى بى ﷼ اوحضرت على ﷺ كورته تشريف راوړو وئې فرمائيل چه تاسو اوده شوى نى په مانځه نه ئى؟په دې باندې على ﷺ جواب وركړويارسول الله ﷺزمونږ ساه دالله ﷻپه لاس كښې ده هغه چه كله مونږ اوچتول غواړى راپاسوى مو. حضورﷺ داوريدوسره بغيرد څه فرمائيلوواپس شو خوپخپلوزنګونوباندې لاس وهونكې روان وو فرمائيل ئى انسان د ټولوڅيزونونه ډير جګړمار دې. (١)

**خلق دعذاب كتلوغوښتنه كوى اودحق نه انكاركوى:**دپخواني زماني اوددې وخت دكافرانود سركشئ بيان كولې شى چه د حق ښكاره كيدونه پس هم د دې د تابعدارئى نه منع كيرى غواړى چه د الله ﷻ عذابونه په خپلو سترګوسره اوګورى. چا غوښتنه كوله چه آسمان دې په مونږ راپريوځي چا وئيل راوړه چه ځنګه عذاب راوړلې شي راوړه. قريشو دا هم وئيلي اې الله كه دا رښتونې اوحق وى نو په مونږ باندې د آسمان نه كانړى رااوروه يا په مونږ باندې څه نور دردناك عذاب راوله.هغوى داهم وئيلي چه اې نبى مونږتاليونې ګنړواوكه حقيقت كښې ته رښتونې نبى ئى نوزمونږ مخې ته فريښتې ولې نه راولې وغيره وغيره دالله ﷻ دعذاب په انتظاركښې اوسيږى اوددې كتلوسې لګيدلي دى.د رسولانوكارخو صرف مؤمنانوته زيرې وركول اوكافران ويرول دى خلق ناحقه حجتونه كوى اوحق د خپل ځائ نه خونيول غواړى خودهغوى داغوښتنه كله هم دپوره كيدونه ده.حق دهغوى په باطلوخبرو باندې نه ښكته كيږى دوى زماآياتونه اودويرولوخبرې صرف ټوقې سخرې ګنړى وپخپله بې ايمانئى كښې زياتيږى

| فَاَعْرَضَ | رَبِّهٖ | بِاٰيٰتِ | ذُكِّرَ | مِمَّنْ | وَمَنْ اَظْلَمُ |
|---|---|---|---|---|---|
| نوهغه مخ واړوئ | درب خپل | په ذريعه دآيتونو | چې نصيحت اوكړې شى هغه ته | دهغه چانه | اوڅوك دې ډيرظالم |

اودهغه چا نه غټ ظالم څوك كيديشى چې دخپل رب دقدرت دنخښو په ذريعه ورته نصيحت اوكړې

| اِنَّا | يَدٰهُ | قَدَّمَتْ | مَا | وَنَسِيَ | عَنْهَا |
|---|---|---|---|---|---|
| بيشكه مونږه | لاسونو دهغه | چې مخكښې ليږلي دي | هغه انجام | اوهير شوترې | دهغې نه |

شى نو هغوئ ترې نه مخ واړوى اوخپل دګناه كارونه هير كړى او مونږ

| وَفِيْٓ اٰذَانِهِمْ | اَنْ يَّفْقَهُوْهُ | اَكِنَّةً | عَلٰى قُلُوْبِهِمْ | جَعَلْنَا |
|---|---|---|---|---|
| او په غوږونو دهغوئ كښې | چې پوهه شي په هغې | پردې | په زړونو دهغوئ باند | اچولي دي |

ددوئ په زړو نو باندې پردې راغوړولي دي چې ګنى په دې (قران) دې پوهه شي اودوئ مو په

(١)صحيح بخارى كتاب التهجد باب تحريض النبى ﷺ على قيام الليل والنوافل.....١١٢٧وصحيح مسلم:٧٧٥،احمد:٩١/١،

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَقْرًا ط | وَإِنْ | تَدْعُهُمْ | إِلَى الْهُدٰى | فَلَنْ يَّهْتَدُوْٓا | |
| درون والي دي | اوكه چرى | ته رااوبلې هغوئ | هدايت ته | نوهرگز به هدايت اونه مومى | |
| درانه کړي دي او که ته ئې هرڅومره سمې لارې ته راوبلې نو دوئ به هيڅرې سمې | | | | | |
| إِذًا | أَبَدًا | وَرَبُّكَ | الْغَفُوْرُ | ذُو الرَّحْمَةِ ط | لَوْ |
| په دې حالت کښې | هميشه | او رب ستا | بښونکې دې | خاوند درحمت دې | که چرى |
| لارې ته رانشى او ستارب بخښوونکې ډير رحم کوونکې دې که | | | | | |
| يُؤَاخِذُهُمْ | بِمَا | كَسَبُوْا | لَعَجَّلَ | لَهُمُ | |
| الله نيولې هغوئ لره | په سبب دهغه عمل | چې کوې ئې هغوئ | نو زربه ئې راليږلې وو | هغوئ ته | |
| الله ﷻ ددوئ په عملونو باندې ددوئ نيول کولې نو سمدستى به ئې پرې | | | | | |
| الْعَذَابَ ط | بَلْ | لَهُمْ | مَّوْعِدٌ | لَّنْ يَّجِدُوْا | مِنْ دُوْنِهٖ |
| عذاب | بلکه مقرردې | دپاره دهغوئ | وخت دوعدې | چې هرگزبه اونه مومى هغوئ | ماسوادهغې نه |
| عذاب راوستې ووخو دوئ له داسې نيته مقرر کړې ده چې دهغې نه په هيڅ ځائې کښې | | | | | |
| مَوْئِلًا | وَتِلْكَ الْقُرٰى | أَهْلَكْنٰهُمْ | لَمَّا | ظَلَمُوْا | |
| لار دتيښتې | او دغه كلې | هلاك كړل مونږه هغوئ | هر كله چې | ظلم اوکړو هغوئ | |
| پناه موندلې نشى او دغه کلى هرکله چې ظلم اوکړو مونږتباه کړل | | | | | |
| وَجَعَلْنَا | لِمَهْلِكِهِمْ | مَّوْعِدًا ع | | | |
| او مقرر کړې وه مونږ | دپاره دهلاکت دهغوئ | يوه وعده | | | |
| اومونږ ددوئ دتباهئ دپاره يو وخت مقرر کړې وو | | | | | |

**قوله تعالى:- وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ ذُكِّرَ بِاٰيٰتِ رَبِّهٖ**

**لوئ ظالم څوک دې؟**:-په حقيقت کښې د دې نه زيات گناهگار څوک دې؟دچا په وړاندې چه دهغوى د ساتونکى پالونکى کلام وئيلې کيږى اوهغوى د دې طرف ته هډو څه خيال اونه کړى دې سره بلد نه شى بلکه مخ واړوى اوانکاراوکړى اوچه کومې بدعملئى اوگناهونه ددې نه وړاندې دى هغه هم هير کړى نود دې باتورئى بې باکئ سزا دا وى چه په زړونوباندې پردې واچولې شى بيا د قرآن اوبيان په پوهه کښې راتلل نه نصيب کيږى غوږونه ئې درنيږى د ښو خبرو طرف ته توجه نه پاتې کيږى اوس که په لاکهونو دعوت د هدايت ورکړې خولار موندل گران او محال دى.اې نبى ﷺ ستارب ډير مهربان او ډيرداوچت رحمت والا دې که هغه گناهگاران زرسزا کول نو په زمکه به يو ساه لرونکې نه بچ کيدو هغه دخلقو ظلم معاف کوى خودا دې نه گنړى چه رانيولې به نه شو. ياد ساتئى هغه د سختو عذابونو والا دې داخود هغه حلم دې پرده اچول دى معافى کول دى دې د پاره چه د گمراهئى والا په نيغه لار راشى د گناهونووالا توبه اوکړى اود هغه د رحمت لمن اونيسى خوچه چا د دې حلم نه فائده اوچته نه کړه اوپخپله سرکشئى باندې کلک ولاړوو نودهغه رانيولو ورځ نيزدې ده چه دومره سخته به وى چه ماشومان به بوډاگان شى د ښځو حملونه به پريوځى په هغه ورځ به دپناه هيڅ ځائ نه وى د خلاصى به

هيڅ صورت نه وي. دا دی ستاسو نه اولنی امتونه چه هغوی هم ستاسو په شان په کفر او انکار کښې پربوتل او آخر ختم کړې شو. د هغوی د هلاکت مقررشوې وخت راورسیده اوهغوی تباه برباد کړې شو نواې مشرکانوتاسوهم اوویرېږئ تاسو اشرف الرسل اعظم نبی په تکلیف کونی هغه دروغ ګنړنی سره د دې چه د وړاندینوکافرانونه تاسو په طاقت قوت سازوسامان کښې ډیر کم ئی زما د عذابونونه اوویرېږئ زما د خبرونه نصیحت واخلئ.

| |
|---|
| وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى |
| او کله چې \| اووئیل \| موسی |
| اوهرکله چې موسی ﷺ خپل |
| لِفَتٰىهُ لَآ اَبْرَحُ حَتّٰى اَبْلُغَ مَجْمَعَ |
| خوان خادم خپل ته \| نهٔ واپس کیږم زهٔ \| تر هغې \| چې اورسم زهٔ \| ځائې دجمع کیدو |
| شاګرد ته اووئیل چې زه به روان یم تردې چې زه دوبندئ ته |
| الْبَحْرَيْنِ اَوْ اَمْضِيَ حُقُبًا۝ فَلَمَّا بَلَغَا مَجْمَعَ |
| ددوو دریابو ته \| یابه ځم زه \| ډیره موده \| نو هرکله چې \| اورسیدل دواړه \| ځائې دجمع کیدو |
| اورسم ګنې په کلونوکلونو به دغسې مزل کوم نوهرکله چې دواړه تنه هغې دوبندئ ته اورسیدل |
| بَيْنِهِمَا نَسِيَا حُوْتَهُمَا فَاتَّخَذَ سَبِيْلَهٗ فِي الْبَحْرِ |
| ددواړو دریابونو \| هیر کړو دواړو \| مهي خپل \|نو اونیوله هغه مهي \| لاره خپله \| په دریاب کښې |
| نو خپل مهي تري هیر شو نو هغه په دریاب کښې (ځان له) لار اونیوله چې یو |
| سَرَبًا۝ فَلَمَّا جَاوَزَا قَالَ لِفَتٰىهُ اٰتِنَا |
| پشان دسرنګ \| نوهرکله چې \| وړاندلاړل دواړه \| نواووئیل موسی \| اخلمی خادم خپل ته \| اوړه مونږ ته |
| سرنګ ئې جوړولو نوهرکله چې دواړه وړاندې تیرشول نو موسی ﷺ خپل شاګرد ته اووئیل |
| غَدَآءَنَا لَقَدْ لَقِيْنَا مِنْ سَفَرِنَا هٰذَا نَصَبًا۝ |
| دصباخوراك زمونږه \| بیشکه پیبنه شوه مونږ ته \| ددې سفرزمونږ نه \| دا \| ستومانی \| |
| چې ناشته راوړه مونږ خو په دې ننني مزل باندې ډیر ستړی شو |
| قَالَ اَرَءَيْتَ اِذْ اَوَيْنَآ اِلَى الصَّخْرَةِ فَاِنِّيْ نَسِيْتُ |
| خادم اووئیل \| ایااولیدل تا \| کله چې \| پناه واغسته مونږه \| هغه کټ ته \| نویبشکه هیرشوزما \| |
| هغه ورته اووئیل چې ایا تا اونه لیدل چې هرکله مونږ دهغه کټ خواته ناست وو نو زما نه |
| الْحُوْتَ وَمَآ اَنْسٰنِيْهُ اِلَّا الشَّيْطٰنُ اَنْ اَذْكُرَهٗ وَاتَّخَذَ |
| هغه مهي \| او هیر نهٔ کړو زمانه هغه \| مګر شیطان \| چې یادکړم هغه تاته \| اواونیوله هغه مهي |
| کب (هم هلته) هیر شو اوزمانه (تاته) دهغې ذکر کول شیطان هیر کړل او کب په |

سَبِيْلَهٗ | فِي الْبَحْرِ | عَجَبًا | قَالَ | ذٰلِكَ | مَا كُنَّا

لاره خپله | په درياب كښې | په عجيبه طريقې سره | اووئيل موسى | دغه هغه ځائې وو | اچې وو مونږه

درياب كښې ځان له په عجيبه شان لار جوړوله موسى ﵇ اووئيل چې هم دا خو هغه ځائې

نَبْغِ | فَارْتَدَّا | عَلٰۤى اٰثَارِهِمَا | قَصَصًا

چې طلب كوؤ مونږه | نو واپس رااوګرزيدل دواړه | په قدمونو خپلو | اتلاش كونكى ښاپونو دخپلو لره

ووچې مونږ لټولو نودواړه په خپلو قدمونو پسې اړلو روان شو

فَوَجَدَا | عَبْدًا | مِّنْ عِبَادِنَاۤ | اٰتَيْنٰهُ | رَحْمَةً | مِّنْ عِنْدِنَا

نو بيا موندو دواړو | يوبنده | دبندګانوزمونږنه | چى وركړې وو مونږهغه ته | رحمت | دطرفه زمونږنه

نوهغوئ زمونږ په بنديانو كښې يو بنده بياموندو چې مونږ ورباندې خپل فضل كړې وو اودخپل

وَعَلَّمْنٰهُ | مِنْ لَّدُنَّا | عِلْمًا

اوښودلي وو مونږهغه ته | دطرفه زمونږ نه | (خاص) علم |

طرفنه مو ورته يو خاص علم خودلې وو

**قوله تعالى: - وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى لِفَتٰىهُ**

**دحضرت موسى ﵇ اوحضرت خضر ﵇ واقعه:**-حضرت موسى ﵇ ته ذكر اوكړې شو چه د الله ﷻ يو بنده د دريابونوملاويدو په ځاى كښې دې هغه سره هغه علم دې چه تاسره نشته. هغوى هم هغه وخت د دهٔ د ملاقات كلكه اراده اوكړه. اوس خپل ملګرى ته فرمائى چه زه خو به د هغه ځائ د رسيدونه بغيرساه وانخلم. محل وقوع دهٔ،دوه سمندرونه يوخودې بحيره فارس اودويم بحيره روم مغربى.دا ځائ د طنجه سره مغرب طرف ښارونوپه آخركښې دې . والله اعلم. فرمائى چه ماله د مودو پورې تګ وى خو هيڅ حرج نشته.

**حقب څومره زمانه دهٔ؟** ①-: وائى چه د قيس په لغت كښې كال ته حقب وائى[١] ② عبدالله بن عمرو ؓ فرمائى دحقب نه مراد اتياكاله دى[٢] ③ مجاهد ؒ اوياكاله وائى[٣] ④ ابن عباس ؓ زمانه ښائى.[٤] حضرت موسى ﵇ ته حكم ملاوشوې وو چه خپل ځان سره يوكب مالګه لګيدلې يوسه چرته چه هغه ورك شى هم هلته به زمونږ بنده ملاوشى. دې دواړ كب ځان سره واخستو روان شو د سمندرونويوځاى كيدو ځاى ته اورسيدل هلته نهرحيات وو دواړه سملاستل د دې نهر د اوبوڅاڅكى په دې كب باندې پريوتل كب په خوزيدو شو. د هغه د ملګرى حضرت يوشع ﵇ په تيلئى كښې داكب پروت وو اوهغه د سمندر په غاړه وو.كب دهغه دسترګو په وړاندې اوبوته لاړو اوپه اوبوكښې نيغ سورې اوشواخوا ديخوا اوبه اودريدې او هغه سورې بالكل نيغ پاتې شو د كاڼړى په شان په اوبوكښې چاودې اوشو[٥] كوم

---

[١] الطبرى:٥٦/١٨.
[٢] الطبرى:٥٦/١٨.
[٣] الطبرى:٥٦/١٨.
[٤] الطبرى:٥٦/١٨.
[٥] الطبرى:٥٨/١٨.

ځاىٔ كښې چه اوبوسره داكب اولګيدو هغه اوبه دكانړى په شان شوې اوبوره سوره جوړه شوه. محمدبن اسحاق مرفوعًا راوړى دى چه حضورﷺ د دې خبرې بيان كولو سره اوفرمائيل اوبه د شروع نه چرته داسې نه دى كلكې شوې بغيرد دې كب د تلود ځاىٔ نه ګيرچاپيره داوبو نښه په شان د زمكې د سورى برابر. د موسى ﷺد واپس رسيدو پورې وو. دا نښه ليدوسره موسى ﷺاوفرمائيل هم د دې په لټون كښې خو مونږ وو. كله چه نى كب هيركړودوى وړاندې لاړل دلته داخبره يادساتل پكار دى چه د بو كار د دواړو ملګرو طرف ته منسوب شوې دې اود هيرې والا صرف يوشع ﷺ وو لكه چه ارشاد دې ﴿ يَخْرُجُ مِنْهُمَا اللُّؤْلُؤُ وَالْمَرْجَانُ﴾[1]ددې دواړوسمندرونونه غمى اومرغلرې راوخى حالانكه د دواړو اقوالونه يودا دې چه لؤ لؤ اومرجان د ترخو اوبونه راوخى. چه دهغه ځاىٔ نه يوه مرحله نورمخكې شو نو حضرت موسى ﷺدخپل ملګرى نه خوراك اوغوښتو اود سفرتكليف ئى هم بيان كړو داتكليف د مقصدنه وړاندې تلونه پس اوشو پدې باندې دهغه ملګرى ته دكب تلل رايادشو ونى ونيل دكوم كانړى سره چه مونږ حصار شوې وو هغه وخت مانه كب هيرشو اوتاته ذكر كول هم رانه شيطان هيركړل. د ابن مسعودﷺ په قراءت كښې(ان اذكره)دې فرمائى چه مونږ خو هم هغه دواړه په خپله هم هغه لاره د خپلوپښو په چاپونو لټولو لټولو باندې واپس شو هلته نى زمونږ د بنديګانونه يوبنده اوموندلو چاته چه مونږ د خپل رحمت نه اود خپل علم نه علم وركړې وو. داحضرت خضرﷺ دې.

**د بخارى شريف روايت:**بخارى شريف كښې دى سعيدبن جبير ﷺ حضرت عبدالله بن عباسﷺ ته اوونيل چه حضرت‌ادنوف خيال دې چه حضرت خضرﷺ سره ملاويدونكې موسى دبنى اسرائيل موسىﷺ نه وو.ابن عباس ﷺ اوفرمائيل هغه دالله ﷻ دښمن دروغژن دې مونږ ته ابى بن كعب ﷺ فرمائيلى دى درسول الله ﷺنه هغه اوريدلى دى حضرت موسى ﷺ اودريدواو بنى اسرائيلوته نى خطبه وركوله چه دهغه نه سوال اوكړې شو د تولونه لوىٔ عالم څوك دې؟ هغه جواب وركړو زه. هغوى د دې په جواب كښې دا اونه فرمائيل چه الله ﷻ پوهيږى په دې وجه د رب دا كلمه خوښه نه شوه. هم هغه وخت دا وحى راغله چه په مجمع البحرين كښې زمونږ يوبنده دې چه تانه هم زيات عالم دې په دې باندې حضرت موسى ﷺ اوفرمائيل پروردګار زه به هغه ته څنګه اورسم؟ حكم اوشو ځان سره يوكب كيږده هغه په ټوبنه دان كښې واچوه كوم ځاىٔ چه داكب ورك شى هم هغه ځاىٔ كښې به ملاوشى. هغه خپل ملګرې يوشع بن نون ﷺخپل ځان سره واخستو لاړو كانړى ته اورسيدل او په هغې باندې سر كيخودو لږ ساعت اوده شو كب د هغه لوښى نه اودانګل اووتلو اوسمندر ته داسې لاړو لكه چا چه سورنګ ويستې وى او په زمكه كښې كوزشوې وى. د اوبو تلل روانيدل الله ﷻ اودرول اود روزان په شان هغه سورې باقى پاتې شو. حضرت موسى ﷺ چه كله راپاسيدو نود هغه ملګرى هغه ته د دې ذكر كول هيركړل هغه وخت د دهغه ځاىٔ نه روان شو. د ورځ پوره كيدو نه پس تولو شپه روان وو سحرحضرت موسى ﷺ ستړې شو او ولږه نى محسوس كړه الله ﷻ چه دكوم ځاىٔ د تلوحكم كړې وو تركومې چه دهغه ځاىٔ نه وړاندې شوى نه وو د ستړې كيدو هډو نوم نه وو. اوس نى خپل ملګرى نه خوراك اوغوښتو اوتكليف ئى ورته بيان كړو. هغه وخت د هغه ملګرى اوونيل چه دهغه كانړى سره مونږ آرام كړې وو هم هغه ځاىٔ كښې خو هغه وخت كب مانه هيرشو اود هغې ذكر رانه هم شيطان هيركړو. هغه كب خو په سمندركښې د ځان د پاره يوه عجيبه لار جوړه كړه. د كب د پاره سورنګ جوړ شو اودهغه د پاره د حيرانتيا ذريعه. حضرت موسى ﷺاوفرمائيل چه هم د دغې خو لټون وو.
خپل د قدمونو نښې په كتلوسره دواړه واپس شو. هم هغه كانړى ته راورسيدل ونى كتل چه صاحب په

[1]) ٥٥/الرحمن:٢٢.

کېرا کښېنی پټ ناست وو. هغوی سلام اوکړو هغه ونیل تعجب دې ستاسو په زمکه کښې دا سلام څرنګ دې؟ هغه اوفرمائیل زه موسی یم. هغه تپوس اوکړو د بنی اسرائیل موسی؟ هغوی اوفرمائیل او. زه د دې د پاره راغلې یم چه ته ماته هغه ښیګړه اوښایه کوم چه الله ﷻ تاسو ته خودلی دی.هغه اوفرمائیل موسی ته ماسره صبر نه شې کولې ځکه چه ماته کوم علم دې هغه تاته نشته او تاته چه کوم علم دې دهغې ماته پته نشته الله ﷻ دواړو ته جدا علم راکړې دې. حضرت موسی اوونیل ان شاء الله تاسوبه اوګورئی چه زه به صبرکوم اوستاد یوفرمان به هم نافرمانی نه کوم. حضرت خضر اوونیل چه که ته ماسره پاتې کیدل غواړې نو مانه به پخپله د څه خبرې سوال نه کوې ترهغه وخته پورې چه زه درته پخپله خبر درکړم دومره خبرې کولوسره دواړه روان شو. د دریاب په غاړه باندې یوه کشتنئ وه د خان سره د تلو خبره ئې ورسره اوکړه. هغه حضرت خضر اوپیژندو او بغیرد کرایه اخستو ئې دواړه سواره کړل. لږ شان لرې تلی وو چه حضرت موسی اوکتل چه حضرت خضر چپ چاپ د کشتنئ تخته په تبرماتوی. حضرت موسی اوفرمائیل دا څه دی؟ دې خلقو خو مونږ سره احسان اوکړو بغیر کرایه اخستو ئې کشتنئ کښې سواره کړو اوتاد هغې تختې ماتول شروع کړل کوم سره چه به ټول کشتنئ والا ډوب شی داخودې ډیر خراب کار اوکړو. هم هغه وخت حضرت خضر اوفرمائیل ګوره ماتاته وړاندې ونیلې وو چه ته ماسره صبر نه شې کولې. حضرت موسی معذرت اوکړوچه خطا اوشوه په هیره سره مې تپوس اوکړو معافی اوکړه سختی مه کوه. حضور اوفرمائیل چه واقعی ړومبنی غلطی د هم د هیرې په وجه وه فرمائی دکشتنئ په یوه تخته باندې یوه مرغئی راغله کیناسته او په سمندرکښې ئې مښوکه ورکړه اوبه ئې یوړې والوته. هغه وخت حضرت خضر حضرت موسی ته اوفرمائیل زما اوستاعلم د الله ﷻ دعلم نه دومره کم کړې دې څومره اوبه چه د سمندرنه دې مرغئی په خپله مښوکه سره کمې کړې. اوس کشتنئ غاړې له راغله او دواړه روان شو د حضرت خضر نظر په یوڅوماشومانو لوبې کونکو پریوتلو په هغوی کښې یوماشوم د سرنه راونیولو حضرت خضر د هغه سټ داسې راتاوکړو چه هم هغه وخت ئې ساه اووتله. حضرت موسی اوویریدلو ونی فرمائیل چه بغیر د څه قتل نه تادا ماشوم ناحقه مړکړو؟ تاخوډیر منکر کار اوکړو. حضرت خضر اوفرمائیل ګوره هم دا مادرته وړاندې ونیلې وو چه زه اوته نه شو چلیدلې. هغه وخت حضرت خضر د اول نه هم ډیره سختی اوکړه حضرت موسی اوفرمائیل چه ښه ده که دې خل ما څه سوال اوکړو نو بې شکه ته ما خپل خان سره مه ساته یقینا اوس هغه معذور شو بیا دواړه یوځای روان شو. یوکلی ته اورسیدل او دهغوی نه ئې خوراك اوغوښتو ولې هغوی د میلمستیانه صفاانکاراوکړو. یودیوال ئې اولیدلوچه راپرېټ شوې وو او پریوتو ته نیزدې وو. هغه وخت حضرت خضر لاس یوړواوراتیغ او صحیح ئې کړو. حضرت موسی اوفرمائیل چه خیال خواوکړه چه مونږ دلته راغلو دوی نه مو خوراك اوغوښتلو هغوی رانه کړه اود میلمستیاخلاف ئې اوکړه د هغوی دا کاروو تا د هغوی نه اجرت هم اخستې شو. حضرت خضر اوفرمائیل چه بس هم دا ده زما اوستا په مینځ کښې جدائی. اوس زه تاته د دې کارونواصلیت ښایم. حضور فرمائی چه افسوس که موسی لږ شان صبرکړې وو نود دې دواړونورې خبرې به هم زمونږ په وړاندې الله ﷻ مونږ ته خودلې وې.دحضرت ابن عباس ﷺ به قراءت کښې ﴿وكان وراءهم﴾[1] په بدله کښې ((وكان امامهم)) دې او﴿سفينة﴾ نه پس ﴿صالحة﴾ لفظ هم دې او ﴿اما الغلام﴾نه پس ((فكان كافرا)) لفظ هم دې[2]په بل سندسره هم دا حدیث نقل دې په دې کښې دی چه

---

[1] ١٨/الكهف:٧٩.

[2] صحيح بخارى كتاب التفسير سورة الكهف باب قوله ﴿واذقال موسى لفتاه لا ابرح حتى ابلغ......﴾٤٧٢٥، صحيح مسلم: ٢٣٨٠، ابوداؤد:٤٧٠٧،ترمذى:٣١٤٩، ابن حبان: ٦٢٢٠.

حضرت موسى ﷺ دې كاڼرې سره اودريدو يوه چينه وه چه دهغې نوم نهر حيات وو د دې اوبه چه كوم خيز سره لګيدې هغه به ژوندې كيدو په دې كښې دمرغنى د اوبو اوړو نه پس د حضرت خضرﷺ قول نقل دې چه زما ستا او ټول مخلوق علم د الله ﷻ د علم په مقابله كښې دومره دې څومره چه د دې مرغنى منبوكه د دې سمندرد اوبو په مقابله كښې الخ. (١)

**دصحيح بخارى بل روايت** :-صحيح بخارى شريف كښې يوبل حديث دې حضرت سعيدبن جبير ﷺ فرمانى چه زه دحضرت عبدالله بن عباس ﷺ سره د هغه په كوركښې ووم هغوى اوفرمائيل چه څوك څه سوال كوى نو اودې كړى. ما ونيل الله ﷻ دې ما په تاسو باندې قربان كړى په كوفه كښې يوواعظ دې دهغه نوم نوف دې. بيا پوره حديث بيان كړو لكه څنګه چه پورته تيرشو په هغې كښې دى چه د حضرت موسى ﷺ په دې خطبه سره سترګې بهيدلې وې زړه نرم شوې وو كله چه هغوى لاړل نو يوسړې هغوى له راغلو دهغه نه نى سوال اوكړو چه په مخ دزمكې باندې ستانه هم څوك لوئ عالم شته؟ هغوى اوفرمائيل نه. په دې باندې الله ﷻ دهغوى زورنه اوكړه خكه چه هغه علم دالله ﷻطرف ته اونه ګرځولو. په دې كښې دى چه حضرت موسىﷺ نبنه اوغوښتله نو ارشاد اوشوچه يو مركب خان سره كړه په كوم ځائ كښې چه هم په ده كښې ساه راغله هغه سړې به هم هلته ملاوشى. هغوى كب واخستو او په ټيلئى كښې نى واچولو اوخپل ملګرى ته نى اوونيل چه ستاصرف هم دومره كار دې چه كوم ځائ دا كب تانه لاړو هلته ماته خبر اوكړه هغه ونيل چه داخو ډيره آسانه خبره دده. د هغه نوم يوشع بن نون وو (لفته) نه هم دا مراد دې دوى دواړه په ډير بزرګ ځائ كښې د يوې ونې لاندې ووحضرت موسى ﷺ له خوب راغلې وو اوحضرت يوشع ﷺ ويښ وو چه كب ټوپ كړو. هغه ونيل چه راپاسول خو ټيك نه دى چه پاسى نو خبربه نى كړم. په دې كښې داهم دى چه اوبوته دتلو په وخت كښې كومه سوره شوې وه هغه د حديث راوى عمرودخپل غتې ګوتې اودې سره خواكې دواړوګوتو يوه حلقه شان جوړه كړې وه اوخودلې وه چه داسې وه لكه څنګه چه په كاڼرې كښې وى. واپسئى كښې حضرت خضرﷺ د سمندر په غاړه باندې په يوه شنه ګدئى خوركړې په څادركښې راغونډشوې وو دهغې يوسر نى ددواړو پښو لاندې ايخودې وو اودويمه غاړه نى د سرلاندې وه. د حضرت موسى ﷺپه سلام كولوسره هغه څله كولاوكړه دې كښې داهم وو چه حضرت خضرﷺ اوفرمائيل چه ستا په لاس كښې تورات موجود دې وحى دآسمان نه راځى دا كافى نه دى؟اوزما علم ستا لائق هم نه دې اونه زه ستا د علم قابل يم. په دې كښې دى چه د كشتئى تخته نى ماته كړه نوهغه د يوتناو (پړى) سره اوتړله. په اول ځل سوال كول خو دهغوى د هيرې په وجه سره وو په دويم ځل د شرط په توګه وو د دريم ځل سوال كول قصداً د جدا كيدلو په وجه سره وو. په دې كښې چه په هلكانوكښې يوهلك وو كافر هوښيار هغه حضرت خضرﷺ راسملولو په چاړه نى حلال كړو. په يوقراءت كښې (زاكية مسلمة) هم دې. د (وراٸهم) قراءت (امامهم) هم دې. د دې ظالم بادشاه نوم په دې كښې بدد بن بدد دې اوكوم ماشوم نى چه قتل كړې وو د هغه نوم جيسور وو. وائى چه د دې هلك په بدله كښې هغوى كره يوه جينئى اوشوه(٢)په يوروايت كښې دى حضرت موسى ﷺ خطبه وركوله چه الله ﷻ اود هغه امر زمانه څوك هم زيات نه پيژنى الخ. دا نوف د كعب ﷺ د ښځې خوئ وودهغه قول وو دكوم موسى ﷺ چه په دې آياتونوكښې ذكر دې دا موسى بن ميشا وو.

**بل روايت** :-يوبل روايت كښې دى چه حضرت موسى ﷺ د الله ﷻ په درباركښې سوال اوكړو اې الله كه ستاپه بنديګانوكښې زمانه لوئ عالم څوك وى نو ماته نى اوښائې. پدې كښې دى چه مالګه اچولې

---

(١) صحيح بخارى كتاب التفسير سورة الكهف باب قوله تعالى (قال ارايت اذاوينا الى الصخرة....):٤٧٢٧.

(٢) صحيح بخارى كتاب التفسير سورة الكهف باب قوله (فلما بلغامجمع بينهما نسياحوتهما........):٤٧٢٦.

شوې کب هغوی سره وو. په دې کښې داهم دی چه حضرت خضرؑ اوفرمائيل چه ته دلته ولې راغلې؟ ته خو اوس هم په بنی اسرائيلو کښې مشغول ئې. په دې کښې دی چه پټې خبرې به حضرت خضرؑ نه ښکاره کولې شوې نو هغوی فرمائيل چه ته ماسره نه شې حصاريدلې ځکه چه ته خو به ظاهر ته ګورې اوفيصله به کوې اوماته په راز باندې خبرشوې دې. شرط دااوشو که تا هرڅومره خلاف ليدل اوکړه خوشونډې به نه خوزوې ترکومې چه حضرت خضر پخپله درته اونه ښائي. وانی چه کشتئ په ټولو کشتوکښې مضبوطه ښکلې او ښه وه هغه ماشوم يوبې مثاله ماشوم وو ډير ښکلې ډيرهوښيار او تيز. حضرت خضرؑ هغه راونيولو او په کاڼړی سره ئې د هغه سر چخړې کړو مړئې کړو. حضرت موسیؑ د الله ﷻ د ويرې نه اوړچيدو وړوکې شان ښکلې بې ګناه ماشوم دومره په بې دردئی سره بغير څه وجه حضرت خضرؑ قتل کړو. ديوال راپريوتونکې کتلوسره ئې اول هغه راګذار کړو او بيائی په آرام سره جوړ کړو. حضرت موسیؑ سترې شو چه په ناسته ناسته ئې ښه مشقت پيداکړو. ابن عباس ﵁ فرمائی د دې ديوال لاندې خزانه صرف علم وو.

**بل روايت**:-يوبل روايت کښې دی کله چه حضرت موسیؑ اود هغه قوم مصرباندې غالب شو اودلته راغلو هغه په آرام سره اوسيدلو نود الله ﷻ حکم اوشو چه دوی ته د الله ﷻ احسانونه وريادکړه. هغوی د خطبه د پاره اودريدل اود الله ﷻ احسانات ئې بيان کول شروع کړه چه الله ﷻ تاسو ته داسې داسې نعمتونه درکړل. اهل فرعون نه هغه تاسو ته خلاصې درکړو ستاسو دښمنان ئې تباه او غرق کړل بيائی تاسو دهغوی دزمکو مالکان کړئی ستاسو نبی سره ئې خبرې اوکړې هغه ئې د ځان د پاره خوښ کړو په هغه باندې ئې خپل محبت واچولو ستاسو ټول حاجتونه ئې پوره کړل ستاسو نبی د ټولې زمکې والا نه افضل دې. هغه تاسو ته تورات درکړو. غرض دا چه په پوره زور سره ئې د الله ﷻ بې شميره نعمتونه هغوی ته وريادکړل. په دې باندې يواسرائيلی اووئيل چه په حقيقت کښې خبره هم داسې ده خوای نبی الله په زمکه باندې ستانه زيات علم والا څوك شته؟ هغوی زر جواب ورکړونه. هم هغه وخت الله ﷻ حضرت جبرائيلؑ راوليګلو چه ده ته اووايه تاته څه پته ده چه زه خپل علم کوم کوم ځائ ساتم؟ بې شکه د سمندرپه غاړه باندې يوسړې دې چه هغه تانه هم زيات عالم دې. ابن عباس ﵁ فرمائی دې نه مراد حضرت خضرؑ دې. نوحضرت موسیؑ د الله ﷻ نه سوال اوکړو چه هغه خو زه اووينم. وحی اوشوه چه ښه ته د سمندرپه غاړه باندې څه هلته به تاته يوکب ملاوشی هغه واخله. خپل ملګری له ئې ورکړه او بياد سمندر په غاړه غاړه څه. کله چه ته کب هيرکړې او هغه تانه ورك شی نو هلته به زما دا نيك بنده اوموبې. حضرت موسیؑ چه په تلو تلوسترې شو نو خپل ملګرې نه چه دهغه غلام وو د کب متعلق تپوس اوکړوهغه وئيل چه د کوم کاڼړی سره مونږ حصارشوې ووهم هلته مانه کب هيرشو او تاسو ته ذکر کول رانه شيطان هيرکړل. ماواکتل چه کب خولکه چه سورنګ جوړ کړې په اوبوکښې روان وی. حضرت موسیؑ چه دا واوريده نو ډير حيران شو کله چه واپس شو راغلو نوونی کتل چه کب په اوبوکښې تګ شروع کړې دې. حضرت موسیؑ هم خپله همساباندې اوبه څيرلې او هغه پسې لاړو کب چه به کوم ځائ ته تلو دهغه ځائ اوبه به لکه د کاڼړی شوې دې سره هم د الله ﷻ نبی ډير حيران شو اوس کب هغوی يوې جزيرې ته بوتله. الخ.ابن عباس ﵁ او حربن قيس ﵀ کښې اختلاف وو چه د موسیؑ داملګرې څوك وو؟ دابن عباس ﵁ فرمان دې چه داحضرت خضرؑ وو هم غه وخت دوی سره حضرت ابی بن کعب ﵁ تيرشو. ابن عباس ﵁ هغوی راوغوښتل اوخپل اختلاف ئې ورته بيان کړو. هغوی د رسول الله ﷺ نه اوريدلې هغه حديث بيان کړو چه تقريباً اوس پورته تيرشو. په دې کښې د سوال کونکی دسوال الفاظ دادی چه آيا ته ددغه سړی کيدل هم پيژنې چه تانه دزيات علم والا دې؟ [1]

---

[1] صحيح مسلم کتاب الفضائل باب من فضائل خضر: ٢٣٨٠.

| | | |
|---|---|---|
| قَالَ | لَهٗ | مُوْسٰى |
| اووئيل | هغه ته | موسى |
| موسى عليه السلام هغه ته اووئيل | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| هَلْ اَتَّبِعُكَ | عَلٰٓى اَنْ تُعَلِّمَنِ | مِمَّا | عُلِّمْتَ | |
| ايا زهٔ تابع شم ستا \| په دې شرط چې ته | راكړې ماته | دهغې نه | چې ښودلې شوى ده تاته | |
| چې ايا زه تاسره لاړشم په دې شرط چې ته ماته دښيګړې هغه خبرې اوښائې كوم چې تاته خودلې شوى دى | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| رُشْدًا﴿٦٦﴾ | قَالَ | اِنَّكَ | لَنْ تَسْتَطِيْعَ | مَعِيَ | صَبْرًا﴿٦٧﴾ |
| كومه ښوهه | اووئيل هغه بنده | بيشكه ته | هرګز طاقت نشى لرلې | ازماسره | دصبركولو |
| (خضر عليه السلام) اووئيل چې ته ماسره په پاتې كيدو به صبر اونه كړې شې | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَكَيْفَ تَصْبِرُ | عَلٰى مَا | لَمْ تُحِطْ | بِهٖ | خُبْرًا﴿٦٨﴾ | قَالَ |
| اوڅرنګې به صبراوكړې ته | په هغه كارباندې | چې احاطه نهٔ وى ستا | په هغې باند | دخبر | اووئيل |
| او دكومې خبرې چې تاته خبر نشته نو ته په هغې څنګه صبر كولې شې موسى عليه السلام اووئيل | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| سَتَجِدُنِيْٓ | اِنْ شَآءَ اللّٰهُ | صَابِرًا | وَّلَآ | اَعْصِيْ | لَكَ |
| ته به بيامومې مالره | كه اوغواړى الله | صبركونكې | اونه به كوم نافرمانى زهٔ | | ستا |
| كه الله جل جلاله اوغواړى نو ته ماصابره بيامونډې شې او څه به هيڅ كار ستا د مرضئ نه خلاف نه كوم | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَمْرًا﴿٦٩﴾ | قَالَ | فَاِنِ اتَّبَعْتَنِيْ | فَلَا تَسْـَٔلْنِيْ | عَنْ شَيْءٍ |
| په هيڅ كاركښې | اووئيل بنده | نوكه ته پيروى كوې زما | نونهٔ به كوې تپوس زمانه | په باره دڅه خيزكښې |
| (خضر عليه السلام) اووئيل چې بيا كه ته ماسره پاتې كيدل غواړې نوځما نه د هيڅ خيز په حقله تپوس مه كوه | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| حَتّٰٓى | اُحْدِثَ | لَكَ | مِنْهُ ذِكْرًا﴿٧٠﴾ |
| ترهغې پورې | چې زهٔ بيان كړم | تاته | په باره دهغې كښې ذكر |
| ترڅو چې څه په خپله د هغې ذكر تاته اونه كړم نودواړه روان شو | | | |

**قوله تعالىٰ:- قَالَ لَهٗ مُوْسٰى**

**دحضرت موسى عليه السلام اوحضرت خضر عليه السلام خبرې اترې** :-دهغه خبرو اتروذكركولې شى كومې چه دحضرت موسى عليه السلام اوحضرت خضر عليه السلام په مينځ كښې شوې وې. حضرت خضر عليه السلام په دې علم سره خاص كړې شوې ووكوم چه حضرت موسى عليه السلام ته نه وو اوحضرت موسى عليه السلام سره هغه علم وو كوم نه چه حضرت خضر عليه السلام خبرنه وو. حضرت موسى عليه السلام په ادب سره اود دې د پاره چه هغه مهربانى اوكړى د حضرت خضر عليه السلام نه سوال كوى. شاګرد له دغه شان په ادب سره د استاذ نه سوال كول پكاردى. تپوس كوى چه كه اجازت وى نو زه به تاسو سره شم. ستاسو خدمت به كوم تاسونه به علم حاصلوم دكوم نه چه ماته نفع رارسى اوزما عمل نيك شى. حضرت خضر عليه السلام د دې په جواب كښې فرمائى چه ته زما سره نه شې چليدې زما كار به تاته د خپل علم په رڼرا كښې خلاف ښكارى زما علم تاته نشته اوتاسره چه كوم علم دې هغه ماته نه دې خودلې شوې نو زه په خپل يو جدا خدمت باندې لګيايم اوته په جدا خدمت باندې ممكن دى چه ته د خپلومعلوماتو خلاف زما كارونه اوګورې او بياصبربه اوكړې شې او په واقع

كښې ته په دې حال كښې معذور هم نى ځكه چه باطنى حكمت او مصلحت تاته معلوم نه دې اوما الله ﷻ په هغې باندې خبردار كوى. په دې باندې حضرت موسى ؑ جواب وركړو چه ته څه هم كوې زه به نى په ښه صبرسره برداشت كوم په يوه خبره كښې به ستا خلاف نه كوم. بيا حضرت خضر ؑ يو شرط پيش كړوچه ښه ده ديوځيزباره كښې به ته مانه تپوس نه كوې زه چه څه وايم هغه اوره اوته به دځپل خان نه د يوسوال شروع نه كوې.

ابن جرير كښې د حضرت ابن عباس ؓ يوقول دې چه حضرت موسى ؑ د الله ﷻ عزوجل رب العالمين نه سوال اوكړو چه تاته په خپلو ټولوبنديګانو كښې څوك ګران دې؟ جواب ملاو شو چه څوك هروخت زما په يادكښې وى اوما نه هيروى. تپوس نى اوكړو چه په ټولو بنديګانوكښې ښه فيصله كونكې څوك دې؟ ونى فرمائيل چه څوك په حق سره فيصله اوكړى اوپه خواهشاتوپسې نه وى. تپوس نى اوكړو چه د ټولونه لوئ عالم څوك دې؟ ونى فرمائيل هغه چه سره د عالم كيدو په علم پسې وى اود هرچا نه زده كړه كوى چه ممكن دى چرته د هدايت كلمه ملاوشى اوممكن ده چه يوه خبره د ګمراهئى نه د بچ كيدو په لاس راشى. حضرت موسى ؑ معلومه كړه چه ښه ده په زمكه باندې هم زمانه څوك زيات علم والاشته؟ ونى فرمائيل او تپوس نى اوكړو څوك؟ ونى فرمائيل خضر. عرض نى اوكړو زه هغه چرته اولټووم. ونى فرمائيل د درياب په غاړه كانړى سره چرته چه كب اوتختى. نوحضرت موسى ؑ د هغه په لټون كښې لاړو بيا هم هغه اوشو دكوم ذكر چه په قرآن كريم كښې دې هم د هغه كانړى سره د دواړو ملاقات اوشو. په دې روايت كښې داهم دى چه د سمندرد يوځائ كيدو مقام دكوم ځائ نه چه زياتې اوبه چرته هم نشته مرغئى په مښوكه كښې اوبه اخستې وې الخ.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَانْطَلَقَا ٚ | حَتّٰى | | | |
| نورروان شو دواړه | تر هغې پورې | | | |
| | تر دې چې | | | |

| إِذَا | رَكِبَا | فِي السَّفِينَةِ | خَرَقَهَا ۖ | قَالَ | أَخَرَقْتَهَا |
|---|---|---|---|---|---|
| كله چې | سواره شو دواړه | په كشتئ كښې | نوسورئ نې كړه هغه | اووئيل موسى | ايا تاسورئ كړه دا |

په يوه كشتئ كښې سوارۀ شونو (خضر عليه السلام) په كښې سورې اوكړو موسى عليه السلام ورته اووئيل چې

| لِتُغْرِقَ | أَهْلَهَا ۚ | لَقَدْ جِئْتَ | شَيْئًا | إِمْرًا ۝ |
|---|---|---|---|---|
| دپاره ددې چې ته ډوب كړې | خلق دهغې | په تحقيق سره راغلې ته | يو كار | ناكاره ته |

تاپه دې كښې سورې اوكړو چې په دې كښې سوارۀ خلق ډوب كړې داخو تا عجيبه كار اوكړو

| قَالَ | أَلَمْ أَقُلْ | إِنَّكَ | لَنْ تَسْتَطِيعَ | مَعِيَ | صَبْرًا ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| اووئيل هغه | آيا مانۀ وۀ وئيلې | چې بيشكه ته | هرګز طاقت نشې لرلې | زما سره | دصبر كولو |

(خضر ؑ) اووئيل چې ما نه وئيل چې ته بۀ ماسره په پاتې كيدو صبر اونه كړې شې

| قَالَ | لَا تُؤَاخِذْنِي | بِمَا | نَسِيتُ | وَلَا تُرْهِقْنِي |
|---|---|---|---|---|
| اووئيل موسى | چې مۀ نيسه ماله | په هغه كار | چې هير شو زما | او مۀ راچوه په ما |

موسى ؑ اووئيل چې زما په هيره مامه نيسه او زما په دې معامله كښې

| مِنْ اَمْرِيْ عُسْرًا۝ |
|---|
| دذي کارزمانه \| سختي \| |
| ماسره سختي مه کوه |

**قوله تعالی:- حَتّٰۤى اِذَا رَكِبَا فِى السَّفِيْنَةِ خَرَقَهَا ؕ**

**حضرت خضر ﷺ کشتئ ماته کړه:-** چه دواړوکښې چه کله شرط اولګيدوچه ته سوال مه کوه ترکومې چه زه پخپله دهغې راز درښکاره نه کړم.نودواړه يوځای روان شو تفصيلي روايتونه تيرشو چه د کشتئ والا هغوی اوپيژندل او بغيرکرايه اخستونی سواره کړل. کله چه کشتئ روانه شوه اود سمندر مينځ ته اورسيدله نو حضرت خضر ﷺ د هغې يوه تخته راوويستله بيا ئې هغه هم د پاس نه يوځای کړه دې کتلو سره موسی ﷺ نه صبراونه شو شرط ترې هيرشو او زر ئې اووئيل داځه فضول کاردې. د **(لتغرق)** لام لام عاقبت دې لام دتعليل نه دې لکه د شاعرپه دې قول کښې **(لدواللموت وابنواللخراب)** يعنې د هريو پيداشوی ساه لرونکی انجام مرګ دې اود هريوجوړشوی عمارت انجام نړيدل دی. **(امرا)** معنی منکر اوعجيب ده. دې اوريدو سره حضرت خضر ﷺ هغه ته خپله وعده ورياده کړه چه تاد خپل شرط خلاف اوکړو ماخوتاته اول نه وئيلي وو چه تاته د دې خبرو علم نشته ته چپ اوسيږه ماته ځه مه وايه سوال مه کوه د دې کارونو مصلحت او حکمت ماته الله ﷻ ښائي اوتاته دا ځيزونه پټ دی. موسی ﷺ معذرت اوکړو چه دا هيره معاف کړه اوماسره سختي مه کوه. اول چه کوم اوږدحديث دواقعه په تفصيل سره بيان کړې شو په هغې کښې دې چه داړومبې سوال په حقيقت کښې هيرې سره شوې وو.

| فَانْطَلَقَا ۔ حَتّٰۤى اِذَا لَقِيَا غُلٰمًا |
|---|
| \| نوروان شودواړه \| ترهغې پورې \| کله چې \| مخامخ شو دواړه \| ديوهلك سره |
| نوبيا دواړه روان شو نر دې چې يو هلک سره ملاؤ شو |
| فَقَتَلَهٗ ۙ قَالَ اَقَتَلْتَ نَفْسًا زَكِيَّةًۢ بِغَيْرِ نَفْسٍ ؕ |
| نوقتل ئې کړو هغه \| اووئيل موسی \| ايا تا قتل کړو \| يو نفس پاك \| بې دبدل دبل نفس نه |
| نوخضر ﷺ هغه قتل کړو موسی ﷺ اووئيل چې ښه تايوبې ګناه روح بغير دبدل نه اووژلو |
| لَقَدْ جِئْتَ شَيْـًٔا نُّكْرًا۝ |
| په تحقيق سرا راغلې ته \| يو کار \| ناکاره ته \| |
| داخو دې ډير خراب کار اوکړو |

**قوله تعالی:- حَتّٰۤى اِذَا لَقِيَا غُلٰمًا فَقَتَلَهٗ ۙ**

**حضرت خضر ﷺ يوماشوم قتل کړو:-** فرمان دې چه د دې واقعه نه پس دواړه يوځای روان شو يوکلی کښې ځوماشومانو لوبې کولې په دوی کښې يوډير تيز ډير ښکلې اوچالاك ماشوم وو هغه حضرت خضر ﷺ راونيولو اود هغه سرئې په کاڼی باندې مات کړو يا په لاس سره ئې سټ راتاوکړو ماشوم هم هغه وخت مړ شو. موسی ﷺ اوږچيدلو او په ډيره سخته لهجه کښې ئې اووئيل دا ځه فضول کار دې. ووکې بې ګناه ماشوم دې بغيرد ځه شرعي سبب نه اووژلوداکومه ښيګړه ده؟ بې شکه ته ډير منکر کار کوې.

د پنځلسمې سپارې تفسير ختم شو. **(الحمدلله)**

قَالَ اَلَمْ اَقُلْ لَّكَ اِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيْعَ مَعِيَ صَبْرًا ۝
هغه اووئيل اايا مانه وو وئيلى ا تاته ا چه بيشكه ته ا هرگز طاقت نشي لرلي ا ما سره ا دصبر كولو ا
خضر ورته اووئيل چه ما درته (وړاندې) وئيلى نه وو چه ستا اشنا زما سره گزاره نشي كيدې

قَالَ اِنْ سَاَلْتُكَ عَنْ شَيْءٍ بَعْدَهَا فَلَا تُصٰحِبْنِيْ
اووئيل موسى اكه تپوس اوكړو ما ستا نه اپه باره ديو څيز كښې اپس ددې نه ا نوبيا مه ملگرې كوه ما
(موسى) اوفرمائيل (بنه) كه د دې نه پس ما ستا نه دڅه څيز په باره كښې تپوس اوكړونو بيا ما خان سره مه

قَدْ بَلَغْتَ مِنْ لَّدُنِّيْ عُذْرًا ۝ فَانْطَلَقَا حَتّٰى اِذَآ اَتَيَآ
(اوس خو) اورسيدو تاته ا دطرفه زما نه عذر انوبيا روان شو دواړه ا تردې پورې اچه كله ورغلل دواړه
ملگرې كوه بيشكه زما په باره كښې به ته معذوره ئې ا بيا دواړه روان شول تردې چه يو كلي ته راغلل

اَهْلَ قَرْيَةِ ۣاسْتَطْعَمَآ اَهْلَهَا فَاَبَوْا
ا خلقو ديو كلي ته ا نوخوراک اوغوښتودواړو ا داوسيدونكو دهغه كلي نه ا خوهغوئ انكار اوكړو
(دوى وږې شوى وو) نو د هغوى نه ئې روټئ اوغښتله (چه مونږ مسافر يو ميلمستيا راكړئ) خو هغوئ

اَنْ يُّضَيِّفُوْهُمَا فَوَجَدَا فِيْهَا جِدَارًا
اچه ميلمستيا وركړي هغوئ دغه دواړوته انوبياموندو دي دواړو ا په دغه كلي كښې ا يوديوال
د دوى د ميلمستيا نه انكار اوكړو ا (خو د دې نه پس) دې دواړو په هغه كلي كښې يو ديوال بياموندلو

يُّرِيْدُ اَنْ يَّنْقَضَّ فَاَقَامَهٗ ؕ قَالَ لَوْ شِئْتَ
اتزدې ووچه ا چه راپريوزى ا نوهغه اودرولوهغه ديوال ا اووئيل موسى ا كه اراده كړې وې تا
چه غورزيدو ته ورنزدې وو نو (خضرعليه السلام) هغه (ديوال) نيغ كړو ا نو موسى اوفرمائيل كه تا

لَاتَّخَذْتَ عَلَيْهِ اَجْرًا ۝ قَالَ هٰذَا فِرَاقُ بَيْنِيْ
ا نوخامخا اخستې شوه تا په دې كار مزدورى ا اووئيل (خضر) ا دا جدائى ده ا په مينځ زما كښې
غوښتې وې نو په دې (ديوال نيغولو) به دې لږ ډيراجر اخستې وې ا خضر اوفرمائيل دا زما او ستا په

وَبَيْنِكَ ۚ سَاُنَبِّئُكَ بِتَاْوِيْلِ مَا لَمْ تَسْتَطِعْ
او په مينځ ستا كښې ا او خبر به دركړم څه تاته ا په حقيقت ا دهغې كارونو ا چه طاقت اونه لرلې شو تا ا
مينځ كښې د جدائې موقع ده ا اوس زه تا د هغه واقعاتو په حقيقت باندې خبروم اچه تا د هغې د برداشت

عَلَيْهِ صَبْرًا ۝
په هغې باندې ا دصبر كولو ا
كولو صبر نه لرلو ا

**قوله تعالى:- قَالَ اِنْ سَاَلْتُكَ عَنْ شَيْءٍ بَعْدَهَا فَلَا تُصٰحِبْنِيْ**

**د حضرت موسى ﷺ معذرت:-** حضرت خضر ﷺ په دې دويم ځل په تاكيد سره حضرت موسى ﷺ دهغه منظوركړې شوى شرط خلاف كولوباندې خبرداري وركړو.ددې دپاره حضرت موسى ﷺ هم يو بله لار اختياركړه او وئې فرمائيل ښه دا ځل مې هم پريږده كه بيا ما په تا باندې اعتراض اوكړو نو ته ما خپل

خان سره مه پریږده. یقیناتاسو باربار ماته خبرداري راکړو اودخپل طرف نه مو هیڅ کمي نه دې پریخې. که دې خل مې خطا اوکړه نو سزا به خورم.

ابن جریرکښې دی حضرت عبدالله بن عباس ﷺ فرمائی رسول الله ﷺ ته به چه کله څوک یادراتلل اوهغه ته به نې دعاغوښتله نواول به نې خان ته کوله. یوه ورځ نې فرمانیل چه په مونږ دې دالله ﷻ رحمت وی اوپه موسی ﷺ باندې افسوس چه هغه خپل ملګری سره صبرکړې وې اوليې نور هم حصار شوې وونور به هم حیرانونکی معلومات شرنې وو ولې هغه خودې ویناکولو سره چهتی واخسته چه که دې خل مې تپوس اوکړو نوما پریږده اوس په نور تکلیف کښې تا اچول نه غوارم.[1]

**دحضرت خضر ﷺ دیوال جوړول:** -د دریم خل دې واقعه نه پس بیا دواړه ملګری یوخائې شویوکلی ته اورسیدل.روایت دې چه دا ایله کلې وواردې خائې خلق ډیر بخیلان وو[2] انتها داوه چه دوه اوګی مسافرد روټې په غوښتلو سره هم هغوی په دوی دخوراک کولو نه صفاانکار اوکړو. هلته نې اوکتل چه یودیوال دې راپریوځی خائې نې بریخې دې اوتیټ شوې دې.د دیوال طرف ته د ارادې اسناد د استعارې په توګه دی. د هغې په لیدو باندې :ه ملا اوترله اود سترګو په رپ کښې هغه مضبوط کړو او بالکل نې صحیح کړو.

اول حدیث تیرشوې دې چه هغه په خپلودواړولاسونو باندې راواپس کړوکوګوالې تیك شو دیوال نیغ شو. دې وخت کښې بیا کلیم الله ګویان شو چه سبحان الله دې خلقو خو زمونږ د خوراك قدرې تپوس اونه کړو او په غوښتلو باندې هم اوتختیدل اوس چه تاد دې خلقو دا مزدوری اوکړه په دې باندې دې څه اجرت ولې وانخستلو؟ کوم چه بالکل زمونږ حق وو. دې وخت کښې هغه د الله ﷻ بنده اوونیل چه ملګری اوس زمااوستاپه مینځ کښې داقرار مطابق پخپله جدائی اوشوه څکه چه د ماشوم په قتل کولو دې سوال کړې وو هغه وخت چه ما په دې غلطئی باندې اوتوکلې نوتا پخپله ونیلې ووکه دې خل مې د څه خبرې تپوس اوکړونو ته ما د خپل خان نه جدا کړه. اوس واوره په کومو خبروچه تاد حیرانتیا سوال کړې وو او برداشت دې نه کړې شود هغې اصلی حکمت تاته ښکاره کوم.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أَمَّا السَّفِينَةُ | فَكَانَتْ | لِمَسٰكِينَ | يَعْمَلُونَ | |
| ا هرچه هغه کشتئ وه ا نووه هغه ا دیو څوغریبانانو کسانو ا چه کار به کوو هغوی ا | | | | |
| ا هغه بیړه (کومه چه ما ماته کړه) د څه غریبانانو وه چه هغوی به په هغې په دریاب | | | | |
| فِي الْبَحْرِ | فَأَرَدْتُّ | أَنْ أَعِيبَهَا | وَكَانَ | وَرَآءَهُمْ مَّلِكٌ |
| په دریاب کښې ا نواراده اوکړه ما ا چه څۀ عیب ژنه کرم هغه ا او وو ا وړاندې دهغوی ا یوبادشاه | | | | |
| دریاب کښې کار کولونو ما د دې وجې د هغې د خرابولو اراده اوکړه چه د هغوی نه وړاندې یو بادشاه | | | | |
| يَأْخُذُ كُلَّ سَفِينَةٍ | غَصْبًا | وَأَمَّا الْغُلٰمُ | فَكَانَ أَبَوٰهُ | مُؤْمِنَيْنِ |
| ا چه اخستله به ئې ا هره کشتئ ا په زور ا اوهر چه ووهغه هلک ا نو وو ا مور پلار دهغه ا مومنان | | | | |
| وو هغه به هره روغه بیړئ په زور سره اخستله ا اوهغه هلک (کوم چه ما قتل کړو) دهغه مورپلار مومنان | | | | |

---

[1] صحیح مسلم کتاب الفضائل باب فضائل الخضر: ۲۳۸۰، ابوداود: ۳۹۸٤، السنن الکبری للنسائی: ۱۱۳۱۰، ابن حبان: ۹۸۹.

[2] احمد: ۱۱۹/۵، صحیح مسلم: ۲۳۸۰.

| فَخَشِينَآ | اَنْ يُّرْهِقَهُمَا | طُغْيَانًا | وَّكُفْرًا |
|---|---|---|---|
| ا نوویریدو مونږ | اچه تنګ به کړی هغوئ لره | ا په سرکشئ خپلې سره ا | او په کفر خپل سره |

وو نو مونږ ته معلومه شوه چه په دغه دواړه مور پلار به دغه هلک د سرکشئ اوکفر اثر اوکړی

| فَاَرَدْنَآ | اَنْ يُّبْدِلَهُمَا | رَبُّهُمَا | خَيْرًا | مِّنْهُ | زَكٰوةً وَّاَقْرَبَ |
|---|---|---|---|---|---|
| نواراده اوکړه مونږ | اچه بدل ورکړی هغوئ ته | ا رب دهغوئ | ا بهتر | ا په پاکئ کښې | ا اوزیات نزدې دې |

نو مونږ اراده اوکړه چه د ده په ځائې به ورته الله ﷻ داسې اولاد ورکړی چه زیات پاکان او زیات

| رُحْمًا | وَاَمَّا الْجِدَارُ | فَكَانَ | لِغُلٰمَيْنِ | يَتِيْمَيْنِ |
|---|---|---|---|---|
| په لحاظ دصله رحمئ سره ا | او هر چه وو هغه دیوال ا | نو وؤ هغه | ا د دوؤ هلکانو | ا یتیمانو |

مینه ناک به وی ا او باقی پاتې شو هغه دیوال (کوم چه مونږ نیغ کړو) نو هغه په ښار کښې د دوو

**قوله تعالی:- اَمَّا السَّفِيْنَةُ فَكَانَتْ لِمَسٰكِيْنَ**

**کشتئ د یتیمانو ماشومانووه:-** خبره دا ده چه الله ﷻ حضرت خضر ﷺ په دې خبروباندې خبر کړې وو او هغه ته چه کوم حکم ملاوشوې ووهغه ئې پوره کړې وو. حضرت موسی ﷺ ته ددې راز علم نه وو په دې وجه به هغه دظاهر نه خلاف اوګنړلو اویدې باندې به ئې انکار کولو. اوس حضرت خضر ﷺ په اصلی معامله باندې پوهه کړو. فرمائی چه کشتئ خرابولو کښې مصلحت دا ووکه چرته صحیح سالم تلې وه نو وړاندې یوظالم بادشاه وو چه هره یوه ښه او جوړه کشتئ به ئې په ظلم سره اخستله. کله چه هغه دا ماته ګوډه اووینی نودا به پرېږدی اوکه داصحیح اوبرابره ثابته شوې وه نودا کشتئ به ددې مسکینانو نه تلې وه اودا دهغوی د رزق یوه ذریعه وه چه بالکل به تله. روایت دې چه د دې کشتئ مالکان یو څو یتیمان ماشومان وو. ابن جریج رحمه الله وائی چه د دې بادشاه نوم هددبن بدد وو. د بخاری شریف په حواله داروایت وړاندې تیرشوې دې[1] تورات کښې دی چه دادعیص بن اسحاق دنسل نه وو. په تورات کښې چه دکومو بادشاهانوواضحه ذکردې په هغوی کښې یو دې هم دې. والله اعلم.

**د ماشوم د قتل وجه:-** اول بیان تیرشوې دې چه د دې ځوان نوم جیسور وو په حدیث شریف کښې دی چه د ده په فطرت کښې کفروو.[2] حضرت خضر ﷺ فرمائیل چه ډیر ممکن وو چه د دې ماشوم مینه د ده مورپلار هم دکفر طرف ته مائل کړې وو. قتاده رحمه الله فرمائی چه ددې ماشوم په پیداکیدوباندې د ده مور پلارډیرخوشحاله شوې وو اود ده په هلاکت سره هغوی ډیر زیات خفه شو سره د دې چه د ده ژوند د هغوی د پاره هلاکت وو.

**هر انسان رضا بالقضا پکار ده:-** نوانسان له پکاردی چه دالله ﷻ په قضادې د ده رضا وی. رب د یوخبرې انجام پیژنی اومونږ ددې نه غافل یو. د مؤمن چه کوم یوکاردخان د پاره خوښوی دهغه په خپله خوښه باندې هغه ښه دې اوچه کوم الله ﷻ د هغه دپاره خوښوی.[3] په صحیح حدیث کښې دی د مؤمن د پاره چه کومې فیصلې د الله ﷻ وی هغه بالکل د ده د پاره بهتر او ښکلې وی.[4]

---

[1]) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورت الکهف باب قوله (فلما بلغا مجمع بینهما نسیا حوتهما فاتخذ سبیله...) ٤٧٢٦.

[2]) صحیح مسلم کتاب القدر باب معنی کل مولد یولد علی الفطرة وحکم موتی اطفال الکفار واطفال المسلمین: ٢٦٦١، ابوداؤد: ٤٧٠٥، ترمذی ٣١٥٠.

[3]) الطبری: ٨٦/١٨.

[4]) احمد: ١١٧/٣ وسنده حسن.

په قرآن کريم کښې دی ﴿وَعَسَىٰ أَنْ تَكْرَهُوا شَيْئًا وَهُوَ خَيْرٌ لَكُمْ﴾(١) ډير ممکن دی چه تاسو يو کار دخپل خان د پاره خراب او نقصاني گڼړئ او هم هغه ستاسو دپاره فائده مند او ښه وی. حضرت خضر عليه السلام فرمانی چه مونږ اوغوښتل چه الله ﷻ هغه ته يو داسې ماشوم ورکړی چه هغه ډير پرهيزگار وی او په کوم چه دمور پلار ډيره مينه وی يا داچه خپل مور پلار سره ښه سلوك کوی.اول بيان شوي دي چه ددې ماشوم په بدله کښې الله ﷻ دوی ته يوه ماشومه ورکړه. روايت دي چه ددې ماشوم د قتل په وخت د ده د مور په حمل کښې يو مسلمان هلك وو او هغه حامله وه.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَأَمَّا الْجِدَارُ | فَكَانَ | لِغُلَٰمَيْنِ | يَتِيمَيْنِ |
| او هر چه وو هغه ديوال | نو وو هغه | د دوو هلکانو | يتيمانو |
| او باقي پاتې شو هغه ديوال (کوم چه مونږ نيغ کړو) نو هغه په ښار کښې د دوو | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فِي الْمَدِينَةِ | وَكَانَ تَحْتَهُ | كَنزٌ | لَّهُمَا | وَكَانَ | أَبُوهُمَا |
| په دغه ښار کښې | او وه لاندې دهغې ديوال نه | خزانه | ددغه دواړو | او وو | پلار دهغوئ |
| يتيمانو هلکانو وو او د هغې د لاندې د دغه دواړو خزانه وه (چه د هغوی پلار خښه کړې وه) او د هغوی | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| صَالِحًا ج | فَأَرَادَ | رَبُّكَ | أَن يَبْلُغَا | أَشُدَّهُمَا | وَيَسْتَخْرِجَا | كَنزَهُمَا ق |
| نيک سړي | نو اراده او کړه | رب ستا | چه اورسيږي دواړه | قوت خپل ته | او راوباسي دواړه | خزانه خپله |
| دواړو پلار نيک وو نو ستا رب دا اراده اوکړه چه دواړه بالغان شي نو دغه خزانه به راوباسي | | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| رَحْمَةً | مِّن رَّبِّكَ ج | وَمَا فَعَلْتُهُ | عَنْ أَمْرِي ط | ذَٰلِكَ | تَأْوِيلُ |
| دا کار رحمت وو | د طرفه درب ستا | او نه دي کړي ما دا کار | په اختيار خپل سره | دادي | حقيقت |
| دا هرڅه ستا د رب په مهربانئ کيدل او دا کار ونه ما په خپل حکم نه دی کړی دا د هغه واقعاتو حقيقت | | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| مَا | لَمْ تَسْطِع | عَّلَيْهِ | صَبْرًا |
| دهغه کار | چه طاقت اونشو ستا | په هغې باندې | دصبر کولو |
| ورد کومو په برداشت کولو چه تا صبر نشو کولې | | | |

**قوله تعالى:- وَأَمَّا الْجِدَارُ فَكَانَ لِغُلَٰمَيْنِ**

ديوال د دوو ماشومانو يتيمانووو:- ددې آيت نه ثابتيږی چه په لوئی ښارباندې هم دکلی اطلاق کيدې شی خکه چه اول ﴿حَتَّىٰ إِذَا أَتَيَا أَهْلَ قَرْيَةٍ﴾(٢) فرمانيلې وو او دلته ﴿فِي الْمَدِينَةِ﴾ اوفرمانيلې شو.دغه شان مکه ته هم قريه يعنی کلې فرمانيلې شوې دې.ارشاددې ﴿وَكَأَيِّن مِّن قَرْيَةٍ هِيَ أَشَدُّ قُوَّةً مِّن قَرْيَتِكَ الَّتِي أَخْرَجَتْكَ أَهْلَكْنَاهُمْ فَلَا نَاصِرَ لَهُمْ﴾(٣) په آيت کښې مکه او طائف دواړوښارونو ته قريه فرمانيلې شوې ده.دغه شان ارشاد دې ﴿وَقَالُوا لَوْلَا نُزِّلَ هَٰذَا الْقُرْآنُ عَلَىٰ رَجُلٍ مِّنَ الْقَرْيَتَيْنِ عَظِيمٍ﴾(٤) په آيت کښې بيان کولې شی چه په دې ديوال صحيح کولو کښې د الله ﷻ مصلحت دا وو چه دا د دې ښار د دوو يتيمانو وو او د دې لاندې د هغوی مال خښ

---

(١) ٢/البقرة: ٢١٦.
(٢) ١٨/الکهف: ٧٧.
(٣) ٤٧/محمد: ١٣.
(٤) ٤٣/الزخرف: ٣١.

وو(۱) صحیح تفسیرهم دا دې خوداهم روایت دې چه هغه علمي خزانه وه بلکه په یومرفوع حدیث کښې دی دکومې خزانې ذکر چه په کتاب الله کښې دې داخالص د سرو زرو تختنې وې چه په هغې لیکلې ووحیرانتیا ده په هغه سړی چه د تقدیرقائل کیدوسره خپل ځان په محنت او مشقت کښې اچوی او غم تکلیف برداشت کوی. حیرانتیاده په هغه سړي چه د دوزخ عذابونه منونکې وی بیاهم په خندا او لوبو کښې مشغول دې. حیرانتیاده چه د مرګ یقین لری او په غفلت کښې پروت دې"لااله الاالله محمدرسول الله"(۲)داعبارت په دې تختوباندې لیکلې وو خو په دې کښې یو راوی بشربن منذر دې وئیلې شوی دی دادمصیصه قاضي وو.دده په حدیث کښې وهم دې.دسلفونه هم دده باره کښې بعضې آثار نقل دی.

حسن بصری رحمه الله فرمائی دا د سروزرو تختنی وې په کوم کښې چه "بسم الله الرحمن الرحیم" نه پس نیزدې نیزدې هم دا پورتنی نصیحتونه وو اوآخر کښې کلمه طیبه وه. د عمر مولی غفره رحمه الله نه هم تقریباهم دا روایت دې. امام جعفربن محمد رحمه الله فرمائی په دې کښې دوه نیمې کرښې وې پوره درې نه وې. روایت دې چه دا دواړه یتیمان په وجه د خپلو اووم نیکه دنیکو محفوظ ساتلې شوې ووکومو بزرګانو چه دا تفسیرکړې دې هغه هم د اول تفسیرخلاف نه دی ځکه چه په دې کښې هم دی چه دا علمی خبرې د سرو زرو په تختو باندې لیکلې وې او ښکاره خبره ده چه د سرو زرو تختنی پخپله مال دې اود ډیرو پیسو څیز دې. والله اعلم.

د دې آیت نه دا هم ثابتیږی چه د انسان د نیکو په وجه د هغه بال بچ هم په دې دنیاکښې او هم په آخرت کښې د الله ﷻ مهربانۍ حاصلولې شی لکه چه قرآن اوحدیث کښې په وضاحت سره ذکر دی. ګورئی په آیت کښې د دې هیڅ صلاحیت نه دې بیان شوې. اود هغوی د پلار نیك بختی او نیك عملی بیان شوې ده او اول تیرشوی دی چه د دې پلار د نیکئی په وجه د دې حفاظت اوکړې شو. دا د دې ماشومانو اووم نیکه وو. والله اعلم.

**دې ایت کښې خاص الله ﷻ ته د نسبت وجه:**-په آیت کښې دی چه ستا رب غوښتل اسناد د الله ﷻ طرف ته په دې وجه اوکړې شو چه دځوانئی پورې رسولو باندې دهغه نه بغیرهیڅ څوك هم قادر نه دی. ګوره چه دماشوم باره کښې اود کشتئی باره کښې د ارادې نسبت خپل ځان طرف ته کړې دې. ﴿فاردنا﴾ او﴿فاردت﴾ الفاظ دی. والله اعلم.

بیا فرمائی چه په اصل کښې دا دریواړه خبرې کومې چه تاخطرناکې اوګنړلې سراسر رحمت وو. کشتئی والا نه ځو لږ شان نقصان اوشو خودې سره پوره کشتئی بچ شوه. دماشوم په مړه کیدو باندې مور پلار خفه شو خود همیشه د خفګان او د الله ﷻ د عذاب نه بچ شو او بیا د نیکئی بدله لاس په لاس ملاوشوه اودلته د هغه نیك سړی داولاد ښیګړه وه. دا کارونه ما د خپلې خوښئی نه نه دی کړی بلکه د الله ﷻ احکام مې په ځائ راوړل.

**خضر علیه السلام نبي وو که وو ؟ اوده نوم :**-ددې نه بعضې خلقوحضرت، خضر علیه السلام دنبوت استدلال کړې دې اوپوره بحث اول تیرشوی دې اوخلق وائی چه دې رسول وو.یوقول دا ږو دا فرښته وه خود اکثرو بزرګانو فرمان دې چه دا و ولی الله وو.امام ابن قتیبه رحمه الله په معارف کښې لیکلی دی د هغه نوم بلیا بن ملکان بن فالغ بن عامر بن شالخ بن ارفحشد بن سام بن نوح وو. د هغه کنیت ابوالعباس دې لقب خضر دې. امام نووی رحمه الله په تهذیب الاسماء کښې لیکلی دی چه دا شهزاده وو.

---

(۱) الطبری:۱۸/۹۰.

(۲) مسندالبزار:۲۲۲۹.

**د خضر ؏ دحيات متعلق احاديث صحيح نه دي:**- دې اوابن صلاح ﷫ خو قائل دې چه هغه تراوسه پورې ژوندې دې اودقيامت پورې به ژوندې وي.په بعضو احاديثوكښې هم دا ذكر راغلې دې خو په دې كښې يوهم صحيح نه دې. دټولونه زيات مشهور حديث په دې باره كښې هغه دې په كوم كښې چه دى دحضورﷺ دپوښتنې دپاره هغوى تشريف راوړې وو.خوددې سندهم ضعيف دې.اكثر محدثين حضرات د دې خلاف دى اوهغوى دخضر د حيات قائل نه دى. دهغوى يودليل د قرآن پاك آيت(٣٤)([1]) يعنى تانه اول هم مونږ د هميشه د پاره چاته ژوندنه دې وركړې اودليل په غزوه بدركښې د حضورﷺ دا ارشاد فرمائيل ياالله كه چرې زما دا ډله هلاك كړې شوه نو په زمكه به بياستا عبادت اونه كړې شى([2]) يودليل داهم دې كه چرې حضرت خضر؏ ژوندې وونودحضورﷺپه خدمت كښې به خامخ حاضريدلو اواسلام به ئې قبلولو اودحضورﷺ په صحابه كرامو ژ په ټولې كښې به ملاويدلوځكه چه حضورﷺ د ټولوانسانانو او پيريانوطرف ته رسول جوړكړې راليګلې شوې وو.حضورﷺ خو تردې فرمائيلې دى كه موسى؏اوعيسى؏ژوندې(په زمكه) وې نود هغوى هم بغيرزما د تابعدارنى بله لار نه وه. حضورﷺ د خپل وفات نه يو څوورځې وړاندې فرمائيل چه نن څوك په زمكه باندې دى د نن نه به سل كاله پس يو هم باقى نه وى.([3]) دې نه علاوه نور هم ډير دلائل دى.

**د خضر د نوم وجه :**-مسنداحمد كښې دى چه حضرت خضر؏ته په دې وجه خضر ونيلې شى چه هغه په سپين رنګ اوچو واښو باندې ناست وو تردې چه د هغه لاندې شينكې راوټوكيدو اوممكن ده چه دې نه مراد وى چه هغوى په اوچه زمكه ناست ووا و بياهغه شنه خوزيدله.([4])غرض داچه كله حضرت خضر؏ دحضرت موسى ؏ په وړاندې داپټ رازونه ښكاره كړل اوددې كارونو اصل حكمت ئې ورته بيان كړو نوونى فرمائيل دا هغه رازونه وو د كوم د ښكاره كولو د پاره چه تا تندى كوله. د اول نه شوق او مشقت زيات وو د دې دپاره لفظ ﴿لم تسطع﴾ اونيلې اواوس د بيان كولونه پس هغه خبره پاتې نه شوه نو لفظ ﴿لم تسطع﴾ ئې اوونيل.هم داصفت په آيت ﴿وَقَالُوا لَوْلَا نُزِّلَ هَٰذَا الْقُرْآنُ عَلَىٰ رَجُلٍ مِّنَ الْقَرْيَتَيْنِ عَظِيمٍ﴾([5]) كښې دې يعنى ياجوج ماجوج نه په دې ديوال ختلې شى اونه په دې كښې څه سورې كولې شى په ختلوكښې تكليف د سورى كولو په نسبت كم دى چه د ثقيل مقابله په ثقيل سره او: خفيف مقابله په خفيف سره اوكړې شوه او لفظى اومعنوى مناسبت قايم شو.والله اعلم. دحضرت موسى ؏ د ملګرى ذكرخودقصه په اول كښې ووخوبيانه ځكه چه مقصد د حضرت خضر؏ او حضرت موسى ؏ واقعه بيانول وو.

په احاديثوكښې دى چه د موسى ؏ هغه ملګرې حضرت يوشع بن نون ؏ وو. هم دې دحضرت موسى ؏ نه پس د بنى اسرائيلو والى جوړكړې شوې وو. په يوروايت كښې دى هغه آب حيات څكلې وو ددې دپاره ئې هغه په يوه كشتئى كښې كينولو اود سمندرپه مينځ كښې ئې پريخودو. هغه كشتئى به هم داسې د ډ چپو په تلاطم كښې وى. دا بالكل ضعيف دې ځكه چه د دې په راوياتوكښې يوخو حسن بن عماره دې چه متروك دې اودويم د ده پلار دې چه غيرمعروف دې دا واقعه سنداً ټيك نه ده.

---

[1]) ٢١/الانبياء:٣٤.

[2]) صحيح مسلم كتاب الجهاد باب الامداد بالملائكة فى غزوة بدر وإباحة الغنائم:١٧٦٤.

[3])صحيح بخارى كتاب العلم باب سمر فى العلم:١١٦، صحيح مسلم:٢٥٣٧، ابوداؤد:٤٣٤٨، ترمذى:٢٢٥١،احمد:٢/٨٨

[4])صحيح بخارى كتاب احاديث الانبياء باب حديث الخضر مع موسى عليهما السلام٣٤٠٢، ترمذى:٣١٥١، احمد:٢/٣١٢، ابن حبان:٦٢٢٢.

[5]) ١٨/الكهف:٩٧.

| وَيَسْئَلُوْنَكَ | عَنْ ذِي الْقَرْنَيْنِ | قُلْ | سَأَتْلُوْا | عَلَيْكُمْ | مِّنْهُ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوتپوس کوی داخلق ستانه | په باره دذوالقرنین کښې | اورته اووایه | ازر به واورم | تاسوته په باره | دهغه کښې |

او دوی ستا نه د ذوالقرنین په باره کښې تپوس کوی | ته (ورته) اووایه چه زه به تاسوته د هغه

| ذِكْرًا | اِنَّا | مَكَّنَّا | لَهٗ | فِي الْاَرْضِ | وَاٰتَيْنٰهُ | مِنْ كُلِّ شَيْءٍ سَبَبًا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| څه حال | ابیشکه مونږ | طاقت ورکړې وو | اهغه ته | په زمکه کښې | او ورکړې وومونږ هغه ته | د هرخیزنه وسائل |

(د ژوند) څه حالات بیان کړم | مونږ هغه ته په زمکه کښې بادشاهی ورکړې وه او هغه ته مو د هر(هغه) خیز نه سامان ورکړې وو (چه ضرورت ورته پیښیدې

**قوله تعالى:-وَيَسْئَلُوْنَكَ عَنْ ذِي الْقَرْنَيْنِ**

**د حضرت ذوالقرنین واقعه:-** اول تیرشو چه دمکې کافرانواهل کتابوته ونیلې ووچه مونږ ته څه داسې خبرې اوښائې چه مونږ نی دحضرت محمد ﷺ نه معلومات اوکړواودهغې جواب مونږته رانه کړې شی نوهغوی ورخودلی ووچه د هغه نه د هغه سړې واقعه تپوس اوکړئی چه ددنیاسیل نی کړې وو. بل سوال د هغه نه دهغه خوانانو متعلق اوکړئی چه بالکل ورك شوې وو اودریم سوال دهغه نه د روح باره کښې اوکړنی.دهغوی ددې سوالونو په جواب کښې داسورت کهف نازل شو.دا هم روایت دې چه د یهودیانو یوه ډله دحضور ﷺ نه د ذوالقرنین باره کښې دقصه معلومولود پاره راغلې وه. نوحضور ﷺ هغوی ته په کتلو سره اوفرمائیل چه تاسو دې له راغلی ئی بیا حضور ﷺ هغه واقعه بیان کړه. دې کښې دی چه هغه یو رومی خوان وو هغه اسکندریه جوړه کړه. هغه له یوه فرښته ترآسمانه پورې د ختلو د پاره راغلې وه اود دیوال پورې نی بوتلې وو. هغه څه خلق اولیدل چه د هغوی خلې د سپو په شان وې. وغیره خوپه دې کښې ډیر اوږدوالې دې اونکارت هم دې اودا ضعیف دې. د دې مرفوع کیدل ثابت نه دی او په اصل کښې دا د بنی اسرائیلو واقعات دی.

**ذوالقرنین څوک دې؟**:-حیرانتیاده چه دامام ابوزرعه رازی غوندې دزمانې علامه داپه خپل کتاب دلائل نبوت کښې پوره وارد کړې دی. فی الواقع دا بیان د داسې بزرگ د حیرانتیاخیز خو دې چه دا رومی وخوداټیك نه دی چه اسکندر ثانی هم رومی وو هغه د فیلپس مقدونی خوئ دې د چا نه چه د روم تاریخ شروع کیږی او اسکندر اول خو د ازرقی وغیره په قول د حضرت ابراهیم ﷺ په زمانه کښې وو. هغه حضرت ابراهیم ﷺ سره د بیت الله د جوړولونه پس د بیت الله طواف اوکړو او په هغوی باندې نی ایمان راوړې وو د هغوی تابعدار جوړشوې وو او د ده وزیر حضرت خضر ﷺ وو د اسکندرثانی وزیر ارسطاطالیس مشهور فیلسوفی وو.والله اعلم. د هغه د مملکت روم تاریخ اولیکلو دا د حضرت مسیح ﷺ نه تقریبا درې سوه کاله وړاندې وو او اسکندر اول د کوم ذکر چه په قرآن کریم کښې دې دا د حضرت ابراهیم ﷺ په زمانه کښې وو کوم چه ازرقی وغیره ذکر کړې دې.کله چه حضرت ابراهیم ﷺ بیت الله شریف جوړکړو نوهغه ابراهیم ﷺ سره طواف کړې وواود الله ﷻ په نوم نی ډیرې قربانئی کړې وې.مونږ د الله ﷻ په فضل سره د ده ډیر واقعات خپل کتاب البدایه والنهایه کښې ذکر کړې دی.

**د ذوالقرنین د تسمیه وجه:-** وهب ﷫ وائی داباداشاه وو دهغه د سردواړوطرفوته به تانبه وه په دې وجه هغه ته ذوالقرنین اووئیلې شو اودهغه دسر یوطرف وهلې شوې وونوشهید کړې شو الله ﷻ بیا راژوندې کړو قوم بیا د سر بل طرف دومره اووهلو په څه سره چه هغه بیا مړشو نو څکه ده ته ذوالقرنین وائی. حضرت علی ﷺ فرمائی چه د دې نوم وجه دا ده چه ده د مشرق نه ترمغرب پورې سیل کړې وو. په دې وجه هغه ته ذوالقرنین وئیلې شی. مونږ هغه ته ډیره لویه بادشاهی ورکړې وه. دې سره د لښکرقوت او

د جنګ سامان هرڅه مو ورکړي وو د مشرق نه ترمغرب پورې د هغه سلطنت وو، عرب او عجم ټول د ده ماتحت وو. هغه ته د هرڅيز علم ورکړې شوې وو دزمکې اعلى اوادنى نښې ورته خودلې شوې وې.(١) په ټولو ژبو باندې پوهيدلو کوم قوم سره چه به ئې جنګ وو په هغه ژبه به پوهيدلو. يوځل د حضرت کعب احبار ﷺ ته حضرت اميرمعاويه ﷺفرمائيلې وو آياته داوانې چه ذوالقرنين خپل اس د ثريا سره تړلې وو؟ هغه جواب ورکړو که چرې تاسودا فرمائې نوواوره الله ﷻ فرمائيلى دى چه مونږ هغه ته دهرڅيزسامان ورکړې وو. په حقيقت کښې معاويه ﷺ پدې کښې په حقه وو ددې دپاره هم چه حضرت کعب ﷺ ته کوم څه هم چرته ليکلې ملاويدل هغه به ئې روايت کول که هغه دروغ ولې نه وى.
په دې وجه هغه فرمائيل چه د کعب دروغ خو څو ځل مخې ته راغلى دى يعنى پخپله خو به ئې دروغ نه سازول کوم روايت چه به ورته ملاويدلو نو که هغه به بې سند وو نو هم به ئې بيانولو. اودا خو ښکاره خبره ده چه دبنى اسرائيلو روايات د ځان نه خبرو تحريف نه بدلون نه محفوظ نه وو. خبره دا ده چه مونږ ته ددې اسرائيلى رواياتوطرف ته توجه کولو څه ضرورت دې؟ سره ددې چه زمونږ په لاس کښې د الله ﷻ کتاب اودرسول الله ﷺ ربښتونى او صحيح احاديث موجود دى.
**د اسرائيلى رواياتو خرابى**:-افسوس دې اسرائيلى رواياتو په مسلمانانوکښې ډيرې خرابۍ اچولې دى او ډير فساد ئې خورکړې دې. حضرت کعب ﷺ چه د دې اسرائيلى رواياتو په ثبوت کښې د قرآن پاک دا آيت کوم آخرى حصه پيش کړې ده داهم څه ټيك نه دى ځکه چه داخو بالکل ښکاره خبره ده چه يو انسان ته هم الله ﷻ د آسمانونو او ثريا پورې د رسيدلو طاقت نه دې ورکړې. اوګورنى دبلقيس متعلق هم قرآن دا الفاظ ونيلى دى ﴿وَأُوتِيَتْ مِن كُلِّ شَيْءٍ وَلَهَا عَرْشٌ عَظِيمٌ﴾(٢) هغې ته هرڅيز ورکړې شوې وو. دې نه هم مرادصرف دومره قدرې دې چه بادشاهانو سره به عام توګه کوم څه وى هغه ټول دې سره هم وو. دغه شان حضرت ذوالقرنين ته الله ﷻ ټولې لارې او ذرائع ورکړې وې چه هغه خپلو فتوحاتو ته وسعت ورکړې اوزمکه د سرکشو اوکافرانو نه خالى کړې اود هغه د توحيد سره د موحدينو بادشاهى په دنيا کښې خوره کړې اود الله ﷻ والا حکومت کلك کړى. په دې کارونوکښې چه د کوم څيز ضرورت وو الله ﷻ هغه ټول ذوالقرنين ته ورکړې وو. والله اعلم. حضرت على ﷺ نه تپوس کولې شى چه دې مشرق او مغرب ته څنګه اورسيدلو؟هغوى اوفرمائيل سبحان الله ﷻ اوريځې دهغه د پاره مسخر کړې وې او ټول اسباب ئې هغه ته ورکړې وو او پوره قوت او طاقت ئې ورکړې وو.

| فَأَتْبَعَ | سَبَبًا | حَتَّىٰ | إِذَا | بَلَغَ | مَغْرِبَ الشَّمْسِ |
|---|---|---|---|---|---|
| نو روان شو(مغرب ته) | په يولار | تردې پورې | چه کله | اورسيدو هغه | ځائې د ډوبيدو دنمرته |

نوهغه (مغرب طرف ته) روان شو تردې چه هغه ځائې ته اورسيدو چرته چه نمر ډوبيدلو

| وَجَدَهَا | تَغْرُبُ | فِي عَيْنٍ | حَمِئَةٍ | وَوَجَدَ | عِندَهَا |
|---|---|---|---|---|---|
| نوبيا ئې موندو هغه نمر | چه ډوبيږى | په چينه کښې | د تورو ختو | اووې موندو | هلته دهغه چينې سره |

څه ګورى چه هغه نمر د تورو ختو په يوه چينه کښې ډوبيږى او دهغې (چينې) سره ئې څه خلق بيا مندل

| قَوْمًا | قُلْنَا يَا ذَا الْقَرْنَيْنِ | إِمَّا أَن تُعَذِّبَ | وَإِمَّا أَن تَتَّخِذَ | فِيهِمْ |
|---|---|---|---|---|
| يوقوم | اووئيل ذوالقرنين | يا که ته عذاب ورکوې (دوى ته) | اويا که اختياروې ته | په دوى کښې |

(دهغه خلقو به پاره کښې) مونږ ورته اووئيل يا خو ته (دوى ته) عذاب ورکړه او يا دوى سره ښه سلوک

(١) الطبرى:١٨/٩٤..
(٢) ٢٧/النمل:٢٣.

| حُسْنًا۝ | قَالَ | أَمَّا | مَنْ | ظَلَمَ | فَسَوْفَ |
|---|---|---|---|---|---|
| ښه طريقه | اووئيل هغه | هرچه وى | هغه څوک | چه ظلم ئې كړې وى | نو زر ده چه |

اوكړه | هغه (ذوالقرنين) اووئيل چا چه (په شرک كولو سره په خپل ځان) ظلم اوكړو| نو زرده چه

| نُعَذِّبُهٗ | ثُمَّ يُرَدُّ | إِلٰى رَبِّهٖ | فَيُعَذِّبُهٗ |
|---|---|---|---|

|عذاب به وركړو مونږ هغه ته| بيا به واپس كړې شي|ارب خپل ته |نو هغه به عذاب وركړي هغه ته

مونږ به ورته عذاب وركړو| او بيا به خپل رب ته واپس شي | نو هغه به ورته (د هغه د عمل مطابق)

| عَذَابًا نُّكْرًا۝ | وَأَمَّا مَنْ | اٰمَنَ | وَعَمِلَ صَالِحًا | فَلَهٗ جَزَآءَ إِلْحُسْنٰى |
|---|---|---|---|---|

عذاب سخت|اوهرچه وى هغه څوک | چه ايمان ئې راوړو| اوعمل ئې اوكړو نيک| نوهغه لره جزاء نيكه ده

سخت عذاب وركړي | اوچا چه ايمان راوړلو او نيک عمل ئې اوكړو| نو دهغه دپاره ښكلې بدله ده

| وَسَنَقُوْلُ | لَهٗ | مِنْ اَمْرِنَا | يُسْرًا۝ |
|---|---|---|---|

| اوواېو به مونږ| هغه ته |په كار خپل كښې | داسان (كار) |

اومونږ به هغه ته په خپلو كارونو كښې د آسان كار اووايو|

**قوله تعالى:-حَتّٰى إِذَا بَلَغَ مَطْلِعَ الشَّمْسِ**

**ذوالقرنين دنمر د ډوبيدو ځائې ته اورسيدلو:-** ذوالقرنين په يوه لار اولګيدلو اود زمكې يوطرف ته يعنى مغرب طرف ته لاړو[1] كومې نښې چه په زمكه وې دهغې په امداد لاړو تركومې پورې چه دمغرب طرف ته تلې شو لاړو تردې چه دنمر د ډوبيدو ځاىٔ ته اورسيدو.اوپه دغه طرف باندې په زمكه تلل ممكن دى اوذوالقرنين اورسيدلو.اودا چه كومې قصې مشهورې دى چه د نمر د ډوبيدو د ځاىٔ نه هم وړاندې شو اونمر دهغه شاته په مودو پورې ډوبيدو. پاتې شوې دابې بنياده خبرې اوداعموماداهل كتابو خرافات دى اوپه دې كښې هم د بددينه خلقو د ځان نه خبرې دى اوصرف دروغ بې لكښى دى.

**نمر كوم ځائې كښې ډوبيږي:-** غرض داچه كله دمغرب آخرى طرف ته اورسيدلو نودا معلومه شوه لكه چه په بحر محيط كښې دا نمر ډوبيږي. څوك هم چه د سمندرپه غاړه ولاړوى او نمر په ډوبيدو باندې اووينى .پِه ظاهره به هم دا نظاره د هغه په وړاندې وى لكه چه نمر په اوبو كښې ډوبيږي. حالاتكه دا نمر په څلورم آسمان باندې دې اودې نه كله هم نه جدا كيږي.**(حمئة)** ياخو مشتق دې د **(حمأة)** نه يعنى متينند خټه. د قرآن آيت **﴿ إِنِّىْ خَالِقٌۢ بَشَرًا مِّنْ صَلْصَالٍ مِّنْ حَمَإٍ مَّسْنُوْنٍ۝ ﴾**[2] كښې د دې بيان تيرشوې دې. هم دا مطلب د حضرت ابن عباس ﷠ نه په اوريدو باندې نافع ﷫ واوريده چه حضرت كعب ﷜ فرمائيل چه ته زمونږ نه د قرآن پاك زيات عالم نى خو زه په كتاب كښې كورم چه هغه به د تور رنګ په خاوره كښې ډوبيدو په يوقراءت كښې **(فى عين حامية)** دې يعنى په ګرمه چينه كښې ډوبيدل ښكاره شو. دا دواړه قراءتونه مشهوردى او دواړه ټيک دى. كه هريوقراءت اولولى خود دې په معنى كښې هم لرې والې نشته څكه چه د نمردنيزديكيدو په وجه اوبه ګرمې وى اود هغه ځاىٔ د خاورې د تور رنګ په وجه د دغه اوبو رنګ د ختو په شان وى. حضور ﷺ يوځل نمر په ډوبيدو ليدو سره اوفرمائيل كه د الله ﷻ په سوركړې شوى اُور كښې د د هغه په حكم سره د دهٔ تاوْ كم شوې نه وو نوده به د زمكې ټول څيزونه

---

[1] الطبرى:١٨/٩٥.

[2] ١٥/الحجر:٢٨.



سېزلي وو(۱)ددې په صحت کښې نظردې.(په مرفوع کېدوکښې)که يرممکن دی چه دادعبدالله بن عمرو ﵁ خپل کلام وی اود هغه دوو تيلودکتابونونه اخستې شوې وی چه هغه ته په يرموك کښې ملاوشوې وې. والله اعلم.

ابن ابی حاتم کښې دی چه يوځل حضرت اميرمعاويه بن ابی سفيان ﵁د سورت کهف هم دا آيت تلاوت کړونوهغوی ﴿عين حامية﴾اولوستلوپدې باندې حضرت ابن عباس ﵁ اوفرمائيل چه مونږخو﴿حمئة﴾ لولو. حضرت معاويه ﵁ دحضرت عبدالله بن عمر﵁ نه تپوس اوکړوتاسوئې څنګه لولئې؟ هغوی جواب ورکړو چه څنګه ئې تاسو لولئې. په دې باندې حضرت ابن عباس ﵁ اوفرمائيل زما په کورکښې قرآن کريم نازل شوې دې . حضرت معاويه ﵁ حضرت کعب ﵁ له سړې اوليګلوچه اوښايه نمر کوم ځائ پريوځي؟ په تورات کښې د دې متعلق څه شته؟ حضرت کعب ﵁ جواب ورکړو دا د عربيت والا نه تپوس کول پکار دی هم هغوی د دې پوره عالمان دی اوپه تورات کښې خوما دا ليدلی دی چه هغه په اوبو اوخاوره کښې يعنی په چقړو کښې پټيږی اود مغرب طرف ته ئې په خپل لاس سره اشاره اوکړه. دا ټوله قصه اوريدو سره ابن حاضر اووئيل چه که زه دغه وخت کښې موجود ووم نو: دې په تائيدکښې به مې دتبع دوه دوه شعرونه لوستل په کوم کښې چه هغه د ذوالقرنين ذکر کولوسره وئيلی چه هغه د مغرب اومشرق پورې اورسيدلو ځکه چه الله ﷻ کريم ذات هغه ته هرقسم سامانونه ورکړې وو. هغه اوکتل چه نمر د تورې خاورې په شان چقړوکښې ډوبيدونکې ښکاری. ابن عباس ﵁ اوفرمائيل په دې شعرکښې درې الفاظ دی خلب ثاط او حرمد. ددې څه معنی ده؟ وئی خاوره چقړې اوتورې. هم هغه وخت حضرت عبدالله ﵁ خپل غلام يابل سړی ته اوفرمائيل څه چه وانی ليکه. يوځل دابن عباس ﵁ د سورت کهف تلاوت حضرت کعب﵁ واوريدواوچه کله هغوی ﴿حمئة﴾ اولوستلونو اووئيل والله چه څنګه په تورات کښې دی هم هغه شان ما ستاسو نه واوريدو په تورات کښې هم دا دی چه هغه په توررنګ چقړوکښې ډوبيږی. يوښار وو چه ډير لوئ وو دهغې دولس زره دروازې وې که هلته شورژوک نه وی نو څه عجيبه ده چه خلق به د نمر د ډوبيدو آواز هم واوری. هلته هغه يوډير لوئ امت آباد اوليدلو الله ﷻ دهغې په اوسيدونکو باندې هم هغوی ته غلبه ورکړه اوس دهغوی په اختيار کښې ووچه په هغوی باندې ظلم اوجبر اوکړی يا په هغوی کښې عدل اوانصاف اوکړی په دې باندې ذوالقرنين دخپل عدل اوانصاف ثبوت ورکړو اوعرض ئې اوکړو چه کوم سړې په خپل کفر اوشرك باندې کلك وی نو مونږ به سزا ورکوو په قتل اوتباهئی سره يا به د تانبې لوښې ګرم کړو په اُور او په هغې کښې به ئې واچوو. هم هلته به مردار شی يادا چه د سپيانو په لاس به ورته سخته سزا ورکړو.والله اعلم.او چه بيا کله هغه د خپل رب طرف ته واپس کولې شی نو هغه به هغوی ته ډيرسخت او دردناك عذاب ورکوی. د دې نه د قيامت د ورځ ثبوت هم کيږی. څوك چه ايمان راوړی اوزمونږ د توحيد دعوت قبول کړی د الله ﷻ نه بغيردنورود عبادت نه لاس واخلی هغه له به الله ﷻ بهترين بدله ورکوی او پخپله به مونږ هم دهغه عزت کوو او ښه خبره به ورته کوو.

| ثُمَّ | أَتْبَعَ | سَبَبًا ﴿٨٩﴾ |
|---|---|---|
| بيا | روان شو (مشرق ته) | په بله لار |
| بيا ذوالقرنين په يوه بله لار روان شو | | |

(۱) احمد:۲/۲۰۲، الطبری:۱۶/۱۲، مجمع الزوائد:۸/۱۳۱،

| حَتّٰى | اِذَا | بَلَغَ | مَطْلِعَ الشَّمْسِ | وَجَدَهَا | تَطْلُعُ |
|---|---|---|---|---|---|
| ترڅو پورې | چه کله | اورسيدو هغه | خائې د راختلو دنمر ته | بيا موندو هغه نمر | چه راخيژي |

ترڅو چه د مشرق اخري حد ته اورسيدو نو څه ګوري نمر په داسې خلقو راخيژي چه د هغوی اونمر په

| عَلٰى قَوْمٍ | لَّمْ نَجْعَلْ | لَّهُمْ | مِّنْ دُوْنِهَا | سِتْرًا ﴿٩٠﴾ |
|---|---|---|---|---|
| په يو داسې قوم باندې | چه نه وه جوړه کړې مونږ | دپاره دهغوی | لاندې دهغې (نمرنه) | څه پرده |

مينځ کښې مونږ هډو څه پرده نه وه ګرځولې (بلکه نمر به په هغوی باندې مخامخ لګيدلو)

| كَذٰلِكَ ط | وَقَدْ اَحَطْنَا | بِمَا | لَدَيْهِ | خُبْرًا ﴿٩١﴾ |
|---|---|---|---|---|
| دارنګې حال وو (دهغوی) | او احاطه کړې وه مونږ | په هغه څه | چه وو دهغوی سره | په حيثيت دخبردارنې |

هم دغه شان وه او د هغه (ذوالقرنين) سره چه (د حکومت د ضرورياتو کوم) څيزونه وو هغه مونږ ته معلوم وو

**قوله تعالى:- ثُمَّ اَتْبَعَ سَبَبًا ﴿٨٩﴾**

**ذوالقرنين د نمر دراختلوځائې ته اورسيدلو:-** ذوالقرنين د مغرب نه بيا مشرق ته لاړو په لارکښې چه به کوم خلق ملاويدل دالله ﷻ دعبادت اودهغه دتوحيد دعوت به ئې ورکولو. که هغوی به قبلولو نو ډيره ښه ده ګني هغوی سره به جنګ کيدلو هغوی به بيللواو د دوی ماتحت به راتلل اودهغه ځائې مال متاع او څاروی وغيره به ئې خان سره بوتلل او ورانډې کيدل به. په اسرائيلي خبروکښې دي چه هغوی يوزر او شپږ سوه کاله ژوندې وو اوبرابر په زمکه باندې دالله د تبليغ په سلسله کښې ووادې سره ئې بادشاهي هم خوريدله. کله چه هغوی د نمر د راوتلوځائې ته اورسيدلوهلته ئې اوکتل چه يوکلې آباد دې خود هغه ځائې خلق نيم څناوران شان دی نه هغوی کورونه جوړوي،اونه هلته څه ونې شته د نمر د تاؤ نه هلته څه څيز په نظر نه راځي. دهغوی رنګونه سره وو تيټ قدونه ئې وو اوعام خوراك د هغوی کب وو.

**نمر چرته نه راخيژي؟:-** حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائي چه د نمر د راختلوپه وخت کښې هغه به په اوبوکښې تللو د ډوبيدو په وخت کښې به لکه د څناورو يوخوابله خواکيدل. د قتاده رحمه الله قول دې چه هلته خو څه راټوکيدل نه. د نمر د راوتلو په وخت کښې به هغوی اوبوته تلل اود زوال په وخت کښې به هغوی په خپلو پټو وغيره کښې مشغول کيدل.([1]) د سلمه رحمه الله قول دې چه د هغوی غوږونه لوئ لوئ وو يوبه ئې خوررولو او بل به ئې اغوستلو. قتاده رحمه الله وغيره وائي چه دا وحشي حبشيان وو.
ابن جرير رحمه الله فرمائي چه هلته چرته کور ديوال ياراګيرونکې څيز نه وو جوړشوې. د نمر د راختلو په وخت کښې به دا خلق په اوبوکښې ننوتل هلته چرته غر هم نشته. اول په يووخت کښې هغوی له لښکر اورسيدلونوهغوی دوی ته اووئيل چه ګورئې چه د نمر د راوتلو په وخت کښې مه حصارېږئې خو هغوی ووئيل چه نه مونږخو به هم شپه په شپه ددې ځائې نه خو خوداخو راته اوښائې چه دادهډوکې پرقيدونکې ډيرې ځنګه دي؟ هغوی ووئيل چه دلته يولښکرراغلې وو د نمر د راوتلو په وخت کښې هغوی دلته حصارشو نو ټول مړه شو. دا د هغوی هډوکی دی دې اوريدو سره هغوی د هغه ځايه واپس لاړل. بيا فرمائي چه دذوالقرنين اودهغه د ملګرو هيڅ حرکت خبرې تګ راتګ زمونږ نه پټ نه وو. د هغه لښکر

---
[1] الطبری:۱۸/۱۰۰.

وغيره ډيرزيات وودزمكې په هره يوه حصه كښې خواره شوى وو خوزمونږ علم په اسمان او زمكه باندې حاوى دې زمونږ نه هيڅ هم پټ نه دى.(١)

ثُمَّ أَتْبَعَ سَبَبًا ۝ حَتَّىٰ إِذَا بَلَغَ بَيْنَ السَّدَّيْنِ

| بيا | روان شو (غرونوته) | په بله لار | ترديي پورې | چه كله | ورسيدو هغه | مينځ د دوو غرونو ته |

بيا هغه په بله لار روان شو ترديې چه هغه د دوو غرونو مينځ كښې خائې ته اورسيدو (چه دره ورته وائي)

وَجَدَ مِن دُونِهِمَا قَوْمًا لَّا يَكَادُونَ يَفْقَهُونَ قَوْلًا ۝

| نوبيا موندو هغه | اخواه د دغه دواړو غرونونه | څه خلق | چه نزدې نه وو | چه پوهه شي | په څه خبره |

نودهغې نه اخوا ئې داسې خلق بيا موندلو چه قريب نه وو چه په څه خبره باندې پوهه شوي وو

قَالُوا يَا ذَا الْقَرْنَيْنِ إِنَّ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ مُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ

| اووئيل هغوى | ائې ذوالقرنين | بيشكه ياجوج | او ماجوج | فساد كونكي دى | په زمكه كښې |

هغوى اووئيل اې ذاالقرنين ياجوج او ماجوج په دې زمكه كښې ډيرخرابي كوى (اومونږ دهغوى د مقابلې وس نه لرو)

فَهَلْ نَجْعَلُ لَكَ خَرْجًا عَلَىٰ أَن تَجْعَلَ بَيْنَنَا

| نوايا مقرر كړو مونږ | تالره | ټكس (محصول) | په دې كار | چه ته جوړ كړې | په مينځ زمونږ |

نوايا مونږ ستا دپاره څه چنده راجمع كړو چه ته زمونږ او د هغوى په مينځ كښې څه بند جوړ كړې

وَبَيْنَهُمْ سَدًّا ۝ قَالَ مَا مَكَّنِّي فِيهِ

| اوپه مينځ دهغوى كښې | يو بند | اووئيل هغه | هغه څه | چه اختيار راكړې دې ماته | په هغې كښې |

ذوالقرنين اووئيل الله ﷻ چه ماته كوم مال دولت راكړې دې هغه ډير ښه دې ......

رَبِّي خَيْرٌ فَأَعِينُونِي بِقُوَّةٍ أَجْعَلْ بَيْنَكُمْ

| رب زما | (هغه) كافي دي | پس امداد اوكړې زما | په محنت سره | جوړوم زه | په مينځ ستاسو |

(زما ستاسو چندې ته څه ضرورت نشته البته) ما سره د متو په زور سره مدد اوكړئ نو زه به ستاسو

وَبَيْنَهُمْ رَدْمًا ۝ آتُونِي زُبَرَ الْحَدِيدِ حَتَّىٰ إِذَا

| او په مينځ دهغوى كښې | يو ديوال (بند) | راوړنى ماته | تختې د اوسپنې | ترديې پورې | چه كله |

او د هغوى په مينځ كښې يو ديوال اووهم بس ماته د اوسپنې تكړې راكوئ (هغوى وركول شروع كړل

سَاوَىٰ بَيْنَ الصَّدَفَيْنِ قَالَ انفُخُوا حَتَّىٰ إِذَا

| هغه برابر كړوا | مينځ د دواړو غرونو | نو اووئيل هغه | چه اوپوكئ اور | ترديې پورې | كله چه |

ترديې چه د دواړو غرونو په مينځ كښې ئې برابر كړونو هغه حكم اوكړو چه پوك په اووهئ ترديې چه

جَعَلَهُ نَارًا قَالَ آتُونِي أُفْرِغْ عَلَيْهِ

| هغه اوگرځوى (داوسپنې ديوال) | پشان د اور | اووئيل ذوالقرنين | راوړنى ماته | چه واړوم څه | په دې باندې |

نې د اور غوندې سور كړلو (د دې نه پس ذوالقرنين) اووئيل چه (اوس) وئيلې شوې تانبه راوړئ چه زه

---

(١) الطبرى: ١٨/١٠١.

| قِطۡرًا ﴿٩٦﴾ |
|---|
| اوېلې کړې شوې تانبا ا |
| د دې دپاسه واچوم |

**قوله تعالى:-حَتَّىٰٓ إِذَا بَلَغَ بَيۡنَ ٱلسَّدَّيۡنِ**

**ذوالقرنين دوو ديوالونوله اورسيدو:-** خپل دمشرق سفرنئ ختم کړونو ذوالقرنين د هغه ځايه د شمال طرف ته يوه لار اونيوله چه ونئ کتل دوه غرونه وو چه په خپلو کښې يوځائ شوي ووخودهغوي په مينځ کښې يوه لار وه دکوم ځائ نه چه به ياجوج اوماجوج راوتل اوپه ترکيانوباندې به ئې تباهي اچوله هغوي به ئې قتل کول پټې باغونه به ئې تباه کول بال بچ به ئې ورله هم هلاک کولو او سخت فساد به ئې پيداکولو.

**ياجوج ماجوج هم انسانان دي:-** ياجوج ماجوج هم انسانان دي لکه چه د بخاري او مسلم د حديث نه ثابت دي. رسول الله ﷺ فرمائي الله ﷻ به حضرت آدم ﷺ ته اوفرمائي اې آدم! هغه به په لبيك او سعديك سره جواب ورکوي. حکم به اوشي چه د اُورحصه جدا کړه تپوس به کوي څومره حصه؟ حکم به اوشي په هرو زروکسانو کښې نهه سوه او يوکم سل په دوزخ کښې او يو په جنت کښې. هم دغه به هغه وخت وي چه ماشومان به بوډاګان شي اودهرې يوې حمل والا ښځې حمل به پريوځي. بيا حضور ﷺ فرمائي په تاسو کښې دوه امتونه دي چه هغه په چا کښې هم وي نو هغوي ته به کثرت رسوي. يعني ياجوج ماجوج.[1] امام نووي رحمه الله شرح صحيح مسلم کښې يوه عجيبه خبره ليکلې ده. هغه ليکي د حضرت آدم ﷺ خاص اوبو يوڅوقطرې کومې چه په خاوره کښې پريوتلې وې هم د هغې نه ياجوج اوماجوج پيداکړې شوي دي نولکه هغوي د حضرت آدم ﷺ اوحضرت حوا يي د نسل نه نه دي بلکه د آدم ﷺ دنسل نه دي. خودا ياد ساتئ چه دا قول ډير غريب دې نه په دې باندې څه عقلي دليل شته اونه نقلي اوداسې خبرې چه داهل کتابونه رارسي هغه دمنلوقابلې نه دي بلکه هغوي سره داسې ملاوټي اوېناوټي قصې دي.والله اعلم. مسنداحمد کښې حديث دې دحضرت نوح ﷺ درې ځامن وو سام حام اويافث؟ دسام د نسل نه ټول عرب دي اود حام دنسل نه ټول حبشان دي اود يافث دنسل نه ټول ترك دي.[2]
دبعضو علماؤ قول دې چه ياجوج اوماجوج هم دترکوداعلى نيکه يافث اولاد دې.دوي ته ترك به دې وجه ونيلې شوي دي چه هغوي دخپل فساد اوشيطانويه وجه دانسانانودنورې ابادئ نه شاته په غورونوکښې پريخودې شوي وو.

**د ذوالقرنين دسفر واقعات:-** امام ابن جرير رحمه الله دذوالقرنين دسفرمتعلق اود هغه ديوال متعلق اود ياجوج ماجوج د بدنونو دهغوي دشکلونو غوږونو وغيره متعلق د وهب بن منبه نه يوه ډيره اوږده واقعه په خپل تفسير کښې بيان کړې ده چه دعجائبو او غرائبونه علاوه دصحت نه هم لرې ده.ابن ابى حاتم کښې هم داسې ډير واقعات دي خوټول غريب او غير صحيح دي. د دې غرونو په دره کښې ذوالقرنين د انسانانو يوه آبادي اوليدله چه په وجه د لريوالي د نورو خلقو ددنيا اود هغوي خپله يوه خاص ژبه چه دنوروژبه باندې هم نه پوهيدل. دې خلقود ذوالقرنين قوت طاقت عقل اوهنرکتلوسره هغه ته درخواست اوکړو که ته رضامندئ نو مونږ به تاله ډير زيات مال راجمع کړو اوتاسو ددې غرونو په مينځ کښې دا دره په يومضبوط ديوال سره بندکړئ چه مونږ د دې فسادبانو د هرې ورځ تکليفونو نه بچ شو. ددې په

---

[1] صحيح بخاري كتاب الرقاق باب ﴿إن زلزلة الساعة شئ عظيم﴾ : ٦٥٣٠، صحيح مسلم:٢٢٢، ترمذي:٣١٦٩، احمد:٣٢/٣.
[2] احمد:١١/٥، ترمذي كتاب تفسير القرآن باب ومن سورة والصافات:٣٢٣١، للمعجم الكبير:٦٨٧١.

جواب کښې ذوالقرنین اوفرمائیل ماته ستاسو د مال هیڅ ضرورت نشته د الله ﷻ هرڅه راکړې شوی دی اوهغه ستاسو دمال نه ډیر بهتر دی. هم دا جواب دحضرت سلیمان علیه السلام د طرف نه د سبا دملکه قاصدانوته هم ورکړې شوې وو. ذوالقرنین د خپل دې جواب نه پس اوفرمائیل چه اوتاسو ماسره په خپل طاقت قوت او کار روزګار سره امداد اوکړئ نوزه به تاسو اوهغوی په مینځ کښې یومضبوط دیوال اودروم. (زبر) جمع د (زبرة) ده. ذوالقرنین فرمائی چه د اوسپنې ټکړې د خښتو په شان ماله راوړئ کله چه دا ټکړې راجمع کړې شوې نوهغه دیوال جوړول شروع کړه هغه په اوږدوالی او پلنوالي کښې دومره شو چه هغه ځائ راګیرکړو اود غرد څوکې پورې اورسیدو. د هغې د اوږدوالی پلنوالي او پیړوالی باره کښې مختلف اقوال دی.

**ذوالقرنین د ویلې کړې اوسپنې دیوال جوړ کړو:**-کله چه دا دیوال بالکل جوړشونوحکم ورکړې شو اوس د دې څلورو واړوطرفوته اوربل کړئ کله چه هغه د اوسپنې دیوال لکه د سروټکې په شان سور شو نو حکم اوکړې شو چه اوس ویلې کړې تانبه راوړئ اودهرطرف نه ئې په دې باندې رابهیوئ نوچه کله دا هم اوکړې شو اودا دیوال یخ شو نودادیوال ډیر مضبوط اوپوخ شو اوپه کتوکښې داسې معلومیدو لکه تیره څادرچه وی.

**دا دیوال چا لیدلې دې:**-ابن جریر کښې دی یوصحابی رضی الله عنه حضور ﷺ ته عرض اوکړوچه ما هغه دیوال لیدلې دې. حضور ﷺ اوفرمائیل څنګه دې؟هغه وئیل د کرخیدار څادرغوندې دې کوم کښې چه تورې اوسرې کرخې دی نو حضور ﷺ اوفرمائیل ټیک دی خودا روایت مرسل دې.خلیفه واثق په خپله زمانه کښې خپلوامیرانوته یولوئ لښکر اوسازوسامان ورکولوسره روان کړې ووچه ددې دیوال خبرراوړئ دې لښکردوه کالوپورې سفراوکړو و په ملکونوملکونو باندې ګرځیدل آخر دې دیوال ته اورسیدل وئې کتل چه د اوسپنې اوتانبې دیوال دې په دې کښې یوه ډیره لویه عظیم الشان دروازه هم د دې ده په کوم چه په منونووزنی تالې لګیدلې دی اوچه کوم مال مساله د دې دیوال نه بچ شوې ده هم هلته په یوبرج کښې کیخودې شوې ده کوم ځائ چه څوکنی اوپهره لګیدلې ده. دیوال ډیر اوچت دې چه څومره هم کوشش اوکړې شی خو په دې باندې ختل ناممکن دی. دې سره یوځائ ملاوشوې د غرونوسلسله دواړو طرفوته برابر روانه ده اونور ئې هم عجیبه او حیرانونکی امور اوکتل چه هغوی واپس راغله او خپل خلیفه ته ئې بیان کړل.

| اَنْ يَّظْهَرُوْهُ | فَمَا اسْطَاعُوْا |
| --- | --- |
| چه وراوخیژی په هغې باندې | نونه طاقت لری یاجوج ماجوج |

نو هغوی (یاجوج ماموج) به د دې طاقت نه لری چه د دې دپاسه راؤخیژی

| رَحْمَةٌ | هٰذَا | قَالَ | نَقْبًا | لَهٗ | وَمَا اسْتَطَاعُوْا |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| رحمت دې | دا | اووئیل (ذوالقرنین) | سوری کولو | په هغې کښې | اونه طاقت لری (هغوی) |

اونه به دا طاقت لرلی شی چه په دې کښې سورې اوکړی (د دې تکمیل نه) پس هغه اووئیل دا (جوړول

| وَكَانَ | دَكَّآءَ | جَعَلَهٗ | وَعْدُ رَبِّيْ | جَآءَ | فَاِذَا | مِّنْ رَّبِّيْ |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| او ده | ذرې ذرې | کړې به دې لره | وعده درب زما | چه راشی | نوهرکله | دطرفه د رب زما |

زما د رب مهربانی ده (خو) کله چه زما د رب وعده (چه قیامت دې) راشی نو دا (دیوال) به ذرې ذرې کړی

| يَأْجُوجُ | يَوْمَئِذٍ | بَعْضَهُمْ | وَتَرَكْنَا | حَقًّا | وَعْدُ رَبِّي |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| چه دسمندر دچپو پشان به ننوځي | په دغه ورځ | بعضي دهغوئ نه | او پرېږ به ږدو مونږ | حقه | وعده د رب زما |
| او زما د رب وعده (د قيامت) رشتينې ده \| او مونږ به هغه ورځ هغوی د يو بل سره ګډوډ کړو | | | | | |

| جَمْعًا | فَجَمَعْنَاهُمْ | فِي الصُّورِ | وَنُفِخَ | فِي بَعْضٍ |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| ټول | نو راجمع به کړو مونږ هغوئ لره | په شپيلۍ کښې | او پوکې به اووهلې شي | په بعضي نورو کښې |
| او (په دغه ورځ به) په شپيلۍ کښې پوک وهلی شي نو مونږ به (دوی ټول) په جمع کولو سره راجمع کړو | | | | |

**قوله تعالىٰ:- فَمَا اسْطَاعُوا أَنْ يَظْهَرُوهُ**

**ياجوج ماجوج او ديوال:-** په ديوال باندې خو نه د ختلو ياجوج ماجوج ته طاقت شته اونه په دې کښې څه سورې کولې شي چه د هغه خائ نه راوځي. ختل په نسبت د ماتولو زيات آسان دی د دې د پاره په ختلوکښې د **(مااسطاعوا)** لفظ استعمال شوې دې او په ماتولوکښې د **(مااستطاعوا)** لفظ راوړلې شوې دې. غرض دا چه نه هغوی راختلې شي چه راشي اونه سورې کولې شي. مسنداحمدکښې حديث دې حضور ﷺ فرمائي هره ورځ ياجوج ماجوج داديوال کنی تردې چه نيزدې شي اود نمر شعاګانې هغوی ته ښکاره شي ورځ تيره شي په دې وجه د هغوی د سردارحکم وی چه اوس ئې پريږدئې صباله به ئې ماتوو خو چه کله بله ورځ راشي نو هغه د اولنئ ورځې نه زيات مضبوط محسوس کوی د قيامت سره نيزدې چه کله الله ﷻ ته دهغوی راوتل منظور وی دوی چه په کنستلو سره لګه د پوستکي په شان کړي نود هغوی سرداربه وائي چه اوس ئې پريږدئې صبابه ان شاء الله دامات کړو.دان شاء الله وئيلو په برکت به بله ورځ چه کله هغوی راشي نوچه څنګه ئې پريخودې وی هم هغه شان به وی زر به ئې راغوزارکړي او بهر به راوځي ټولې اوبه به اوڅښي خلق به تنګ شي او قلعه ګانوکښې به پناه واخلي. دوی به خپل غشی د آسمانونوطرف ته اولي او په شان د وينوککړ به دا غشي د هغوی طرف ته واپس کولې شي نو دوی به وائي چه د زمکې والا خو ټول اوويريدل په آسمانونوباندې هم مونږ غالب راغلو. اوس به د هغوی په ستونوکښې غوټې راوځي او ټول په ټول به هم د دې وبا نه هلاك کړې شي.دهغه ذات قسم د چا په لاس کښې چه زما ځان دې دزمکې د خناورو خوراك به د هغوی بدنونه او وينې وی په کوم سره چه به هغوی ښه تکړه اوتازه شي( [1] په ابن ماجه کښې هم داروايت دې.امام ترمذي رحمه الله هم داراوړې دې او فرمائيلې دی چه دا روايت غريب دې بغيرد دې سند نه مشهور نه دې. د دې سند ډير قوی دې خود دې عبارت دنکارت نه خالی نه دې. څکه چه د آيت ظاهری الفاظ صفا دی چه نه هغوی راختې شی اونه هغوی سورې کولې شی څکه چه ديوال ډير مضبوط ډير پوخ او سخت دې.

کعب احبار رضي الله عنه نه روايت دې چه ياجوج ماجوج روزانه دا څټي او بالکل د پوستکي په شان ئې کوی بيا وائي چه راځئ صبابه ئې مات کړو. دويمه ورځ باندې راځي نو چه څنګه په اصل کښې وو هم هغه شان وی. په آخری ورځ د الله ﷻ په الهام باندې هغوی د تلو په وخت کښې به انشاء الله وائي بله ورځ چه راشي نو چه څنګه ئې چه پريځي وی هم هغه شان به وی او مات به ئې کړي. ډير ممکن دی چه هم د دې کعب رضي الله عنه نه حضرت ابوهريره رضي الله عنه دا خبره اوريدلې وی اوبيانئ بيان کړې وی يا يوراوی ته وهم شوې وی اوهغه د حضور ﷺ فرمان ګنړلوسره دا مرفوعا بيان کړې وی والله اعلم. دا مونږ وايو د دې تائيد د دې حديث نه هم کيږی کوم چه په مسنداحمدکښې دې. يوځل حضور ﷺ د خوب نه رابيدارشو مخ

---

[1] ترمذی کتاب تفسير القرآن باب ومن سورة الکهف:٣١٥٣ وهوصحيح، ابن ماجه :٤٠٨٠، احمد:٢/٥١٠، حاکم:٤/٤٨٨.

مبارك نې سور كيدلو او فرمانيل به نې ﴿لااله‌الاالله﴾د عربود خرابيدو وخت رانيزدې شو نن د ياجوج ماجوج په ديوال كښې دومره سورې اوشو. بيا حضور ﷺ د خپلو گوتونه حلقه جوړه كړه او ونې خودله. په دې باندې حضرت ام المؤمنين زينب بنت جحش k سوال اوكړو آيا زمونږ دخوخلقو په موجودگنې كښې به هم هلاكت كولې شې؟ ونې فرمانيل اوخوچه كله دخبيثوخلقو كثرت اوشې.(١)داحديث بالكل صحيح دې بخاري اومسلم دواړو كښې دې. اوپه بخاري كښې د راويانو په ذكر كښې دام حبيبه k ذكر نشته په مسلم كښې دې نورې هم د دې په سندكښې داسې ډيرې خبرې چه ډيرې كمې موندلې شوى دى.مثلاً دزهري رحمه‌الله روايت د عروه رحمه‌الله نه حالانكه دا دواړه بزرگان تابعي دى اود څلورو ښځو په خپل مينځ كښې ديوبل نه روايت كول بيا څلور ښځې صحابيه بيا په دې كښې هم دوه د حضور ﷺ د بيبيانو لوڼړه رضى الله عنهم. بزاركښې هم دا روايت د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه هم نقل دې.(مترجم وائى ددې تكلف اود دې مرفوع احاديثو متعلق د دې قول څه ضرورت دې؟ مونږ د قرآن پاك اودې صحيح مرفوع احاديثو په مينځ كښې ډير په آسانئى سره دا تطبيق كولې شو هغوى څه داسې سورې نه شى كولې دكوم نه چه راوخى. نرې كول يادحلقې برابر سورې كول بله خبره ده.دذوالقرنين چه كوم مقصد ددې ديوال دجوړولو نه ووهغه خود الله ﷻ په فضل سره حاصل شوچه نه هغوى د بره نه كوزيدې شى اونه سورې كولې شى چه راوخى اود دې خبرپه آيت كښې دې اود دې خلاف هيڅ حديث هم نشته. والله اعلم.مترجم)د دې ديوال جوړولونه پس د ذوالقرنين تسلى كيږى د الله ﷻ شكر كوى او فرمانى چه اې خلقو داهم د رب رحمت دې چه ما د دې شيطانانونه مخلوق ته اوس امن وركړو. اوچه كله د الله ﷻ وعده راشى نو دا به راپريوخى اودا به زمكه كښې خښ شى مضبوطيابه هيڅ په كاررانه شى. داوښې قوب چه كله د هغې شاسره ملاوشى نو عرب كښې دې ته ﴿ناقةدكاء﴾ وائى.

**قيامت سره نيزدې به داديوال دړې وړى شى**:- قرآن پاك كښې بل ځاى كښې ارشاددې چه كله په غر باندې د موسى عليه‌السلام په مخامخ رب تجلى اوكړه نوهغه غر په زمكه راپريوتلوهلته هم لفظ﴿جعله‌دكا﴾ دې نوقيامت سره نيزدې به دا ديوال دړې وړې شى اود هغوى د وتلود پاره به لارشى.د الله ﷻ وعدې اتل دى اوقيامت يقينى راتلونكې دې.ددې ديوال په ماتيدوسره به داخلق راوخى اونوروخلقو كښې به ورننوخى د خپلو پردو تميزبه ختم‌شى داواقعه به ددجال د راتلونه پس اود قيامت د قايميدونه وړاندې به وى اود دې پوره بيان آيت ﴿حَتَّىٰٓ إِذَا فُتِحَتْ يَأْجُوجُ وَمَأْجُوجُ وَهُم مِّن كُلِّ حَدَبٍ يَنسِلُونَ﴾(٢) په تفسيركښې به ان شاء الله راځى.

**كله چه شپيلئى پوك وهلې شى**:-دې نه پس به شپيلئى پوك وهلې شى او ټول خلق به راجمع كړې شى اودا هم وئيلې شوى دى چه دې نه مراد دادې د قيامت په ورځ به ټول انسانان او پيريان گډوډ كړې شى د بنى فزاره د يوشيخ بيان ابن جرير كښې دې چه كله پيريان اوانسانان يوبل سره يوځاى كړې شى نو هغه وخت به ابليس وائى زه ورځم چه پته اولگوم دا څه خبره ده؟ د مرق طرف ته به منډه كړى نو هلته به د فرښتو ډله اووينى رامنع به شى واپس به شى مغرب ته به اورسى هلته به هم دا رنگ وينى نو ښى طرف ته اوكس طرف ته به منډې وهې خو هرطرف ته به فرښتو محاصره كړې وى كتلوسره به نااميده شى او چغې صورې به شروع كړى ناڅاپى به هغه ته يوه وړه غوندې لارښكاره شى خپل ټول اولاد سره به په دې لار ورروان شى وړاندې تلوسره به گورى چه دوزخ شغلې وهى. د دوزخ يوداروغه به ورته وائى

(١)صحيح بخارى كتاب احاديث الانبياء باب قصة ياجوج ماجوج:٣٣٤٦، صحيح مسلم:٢٨٨٠، ترمذى:٦٨٧، ابن ماجه : ٣٩٥٣،احمد:٤٢٨/٦ .

(٢) ٢١/الانبياء:٩٦.

اې موذی خبیث ولې الله ﷻ ستا مرتبه اوچته کړې نه وه؟ته د جنتیانونه نه وې؟ نن چغې صورې ولې وهې،شیطان ورته وائی نن راباندې غصې ولې کوئی،دا ورځ خو د ملامت کولو ورځ نه ده. نن خوراته دخلاصي لار اوښايه. زه د الله ﷻ د عبادت د پاره تیاریم که حکم وی نودومره اوداسې عبادت به اوکړم چه په مخ د زمکې به چا هم نه وی کړې. داروغه به فرمانی چه الله ﷻ تاد پاره یوه فریضه مقررکړې ده. هغه خوشحاله شی چه زه ئی کوم اود هغې د پوره کولود پاره ښه تیار ولاړیم حکم به اوشی چه هم دا تاسو ټول دوزخ ته لارښنی.اوس به دا خبیث حیران او پریشان پاتې شی نو فرښته به په خپل وزر سره دې اود ده اولاد راکاږی او دوزخ کښې به ئی واچوی. دوزخ به دې راونیسی او زور به ورکړی یوخل به دې چغې اووهی ټولې فرښتې او ټول رسولان او انبیاء علیهم السلام په زنګونونو د الله ﷻ په وړاندې عاجزنی کښې پراته دی. طبرانی کښې حضورﷺ فرمانی یاجوج ماجوج د حضرت آدم ؑ د نسل نه دی که هغوی پریخودې شی نوددنیاپه ژوندکښې به فساد واچوی یویوخپل شاته په زرګونو بلکه ډیرپریږدی او مره کیږی بیاد دوی نه علاوه درې امتونه نوردی تاویل تالیس اومنسك[1]دا حدیث غریب دې بلکه منکر اوضعیف دې.اوبه نسائی کښې دی د دوی ښځې اوبچی دی اویویوزرزر بلکه دې نه هم زیات پریږدی اومره کیږی. ([2]) بیافرمانی شپیلنی به پوك وهلې شی. حدیث کښې دی چه هغه یوقرن دې په کوم کښې چه به پوکې وهلې شی.([3])دپوکی وهونکې به حضرت اسرافیل ؑ وی. لکه څنګه چه اوړد حدیث شریف بیان شوې دې. اود نورو هم ډیرواحادیثونه ددې ثبوت دې. حضورﷺ فرمانی زه څنګه په آرام او سکون سره کینم دشپیلنی والا فرښتې شپیلنی خپلې خُلې سره لګولې تندې ښکته کړې شوې غوږ لګولې په انتظار ناسته ده چه کله به حکم اوشی اوزه به شپیلنی پوك وهم. خلقو وئیل حضورﷺ بیا مونږ څه اووایو؟ وئی فرمائیل ﴿حسبنا الله ونعم الوکیل علی الله توکلنا﴾([4])

بیا فرمانی چه مونږ ټول به د حساب د پاره راجمع کړو د ټولوحشر به زمونږ په وړاندې وی لکه چه په سورت واقعه کښې دی چه وړاندې روستوټول به په مقرر ورځ اووخت رایوځائ کولې شی.([5]) یوبل آیت کښې دی ﴿ وَحَشَرۡنَٰهُمۡ فَلَمۡ نُغَادِرۡ مِنۡهُمۡ أَحَدًا ﴾([6]) مونږ به ټول راجمع کړو یوبه هم باقی پاتې نه شی.

وَعَرَضۡنَا جَهَنَّمَ يَوۡمَئِذٖ لِّلۡكَٰفِرِينَ عَرۡضًا ۝ ٱلَّذِينَ

او مخې ته به راولو مونږ / دوزوخ / په دغه ورځ / دپاره دکافرانو / په وړاندې کولو سره / هغه کافران

اومونږ به د قیامت په ورځ جهنم کافرانو ته مخامخ کړو / هغه کافران (چه په دنیا کښې)

كَانَتۡ أَعۡيُنُهُمۡ فِي غِطَآءٍ عَن ذِكۡرِي وَكَانُواْ لَا يَسۡتَطِيعُونَ

چه وې / سترګې دهغوئ / په پرده کښې / دیاد زمانه / اووو هغوئ / چه طاقت ئې نه لرلوا

د هغوی سترګې زما د یاد (توحید) نه په پرده کښې وې / اود (خپلو ګناهونو په وجه ئې) اوریدو طاقت

[1] الطیالسی:۲۲۸۲.

[2] السنن الکبری:١١٣٣٤.

[3] ابوداؤد کتاب السنة باب ذکر البعث والصور:۲۷٤۲وسنده صحیح، ترمذی:۲٤۳۰، دارمی:۲/۳۲٥، ابن حبان:۲٥۷۰، حاکم:۲/٤۳٦،احمد:۲/١٦۲.

[4] ترمذی کتاب صفة القیامة باب ماجاء فی (شان) الصور:۲٤۳١، السنن الکبری:١۰٤٦۲، احمد:٦/۲٥.

[5] ٥٦/الواقعة:٤۹-٥۰.

[6] ١٨/الکهف:٤۷.

سَمْعًا ﴿١٠١﴾ أَفَحَسِبَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَنْ يَتَّخِذُوا عِبَادِي

| داودریدو | ایا ګمان کوی | هغه کسان | چه کفر ئې کړې دی | چه جوړ کړی هغوی | بندګان زما

نه لرلو (ځکه چه اوریدو استعداد ئې تباه کړې وو) ایا کافران ددې نه پس هم دا ګمان کوی چه زما

مِنْ دُونِي أَوْلِيَاءَ ۚ إِنَّا أَعْتَدْنَا جَهَنَّمَ لِلْكَافِرِينَ نُزُلًا ﴿١٠٢﴾

| ماسوا زمانه | دوستان | بیشکه مونږ | تیار کړې دې | دوزخ | دپاره دکافرانو | میلمستیا

عبادت پریږدي او زما بندګان د خپلو ځانونو دپاره کارساز جوړ کړی مونږ د کافرانو د میلمستیا دپاره

قُلْ هَلْ نُنَبِّئُكُمْ بِالْأَخْسَرِينَ أَعْمَالًا ﴿١٠٣﴾

| ورته اووایه | ایا مونږ خبر درکړو تاسوته | په زیات نقصان موندونکو خلقو باندي | په لحاظ دعمل سره

جهنم تیار کړې دې ته ورته اووایه ایا زه تاسو ته دهغه چا خبر درکړم چه په خپل عمل کښې زیات تاوانیان دی

الَّذِينَ ضَلَّ سَعْيُهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَهُمْ

| داهغه خلق دی | چه ضائع دی | کوششونه دهغوی | په ژوند ددنیا کښې | اوهغوی

دا هغه خلق دی چه د دوی کوششونه په دنیاوی ژوند کښې ضائع شول او دوی (اوس هم) په خپلو اعمالو

يَحْسَبُونَ أَنَّهُمْ يُحْسِنُونَ صُنْعًا ﴿١٠٤﴾ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ كَفَرُوا

| ګمان کوی | چه بیشکه هغوی (ښه) ټیک ټیک کوی | هر کار | دا هغه کسان دی | چه انکار ئې اوکړو

د نیکو ګمان کوی | چه دوی ښه کارونه کوی | ............... دا هغه خلق دی چه د خپل رب

بِآيَاتِ رَبِّهِمْ وَلِقَائِهِ فَحَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فَلَا نُقِيمُ

| دایتونو درب خپل نه | اود ملاقات دهغه نه | نو ضائع شول | عملونه دهغوی | پس نه به ودروؤ مونږ

د ایاتونو او د هغه د ملاقات نه ئې انکار کړې دې | نو د دوی (نیک) عملونه ضائع شول | او مونږ به

لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَزْنًا ﴿١٠٥﴾ ذَٰلِكَ جَزَاؤُهُمْ جَهَنَّمُ بِمَا كَفَرُوا

| هغوی دپاره | په ورځ دقیامت | څه وزن | دا بدله دد وی | دوزخ دی | په سبب دهغې چه کفر اوکړو دوی

د قیامت په ورځ د هغې تول دپاره تله نه لګوو | دا جهنم د دوی د کفر په وجه د دوی سزا ده

وَاتَّخَذُوا آيَاتِي وَرُسُلِي هُزُوًا ﴿١٠٦﴾

| او اونیول دوی | ایتونه زما | اورسولان زما | په ټوقو سره |

اوپه دا چه زما په ایاتونو او په پیغمبرانو پوري به ئې ټوقې کولې |

**قوله تعالی:- وَعَرَضْنَا جَهَنَّمَ يَوْمَئِذٍ لِلْكَافِرِينَ عَرْضًا ﴿١٠٠﴾**

**کافرانوته به اول دوزخ ښودلې شي:-** کافران به دوزخ ته څې اوددې نه وړاندې به دوزخ اود هغې عذابونه وینی اودې یقین کولوسره چه دې کښې به دوی داخلیږی دداخلیدونه اول به تړقیږی او سوزیږی د غم تکلیف ویری د وجه نه به همت بیلی. د صحیح مسلم شریف په حدیث کښې دی دوزخ به د قیامت په ورځ په راښکوسره راوستلې شی دکوم چه به اویا زره واګې وی اوپه هره یوه واګه به اویااویا زره

فرښتې وی.(١) دې کافرانو په ټول عمر کښې خپلې سترګې او غوږونه بې کاره کړی ناست دی نه ئې حق اوليدلو نه ئې حق واوريدلواونه ئې عمل اوکړو. د شيطان ملګرتيانی اوکړه اودرحمن دذکرنه ئې غفلت اوکړو.دالله ﷻ احکام اوممانعتونه ئې شاته اوغورزول او دائې ګنړل چه د هغوی د دروغو معبودان به هغوی ته دا ټولې نفع رسوی او ټولې سختئی به لرې کوی صرف د هغوی غلط خيال دې بلکه هغوی خو به د دوی دعبادتونو نه هم منکران شی اود هغوی دښمنان به جوړشوی ولاړ وی. د دې کافرانو منزل خوهم جهنم دې چه هم د اوس نه تيار دې.

**د اعمالو په لحاظ سره د ډير تاوان والا څوک دی؟**:-دحضرت سعدبن ابی وقاص ﷺ نه دهغوی خوئ مصعب رحمه الله سوال اوکړو چه دې آيت نه څوك مراد دی؟هغوی اوفرمائيل چه نه بلکه دې نه مراد يهود اونصاری دی.هم يهوديانو پيغمبرﷺ دوروغ ګنړلې وواونصاری جنت رښتيانه منلواووائی چه هلته خوراك څښاك هيڅ هم نشته.او خارجی خلقود الله ﷻ وعده د مضبوتيانه پس ماته کړه حضرت سعدﷺ به خارجيانوته فاسقان ونيل.(٢) حضرت علی ﷺ وغيره فرمائی چه دې نه مراد خارجی دی.(٣) مطلب دا دې چه څنګه داآيت يهوديانو اونصاری ته شامل دې دغه شان د خارجی حکم هم دې کښې دې ځکه چه آيت عام دې څوك چه هم دالله ﷻ عبادت او اطاعت په داسې طريقه راوړی چه د الله ﷻ ناخوښه وی نوکه هغه په خپل عمل باندې خوشحاله وی اودا ګنړی چه ما د آخرت توښه اوينګه ډيرڅه راجمع کړل زما نيك اعمال د الله ﷻ خوښ دی اوغاته به په دې باندې اجر اوثواب خامخاملاويږی خود ده ګمان غلط دې. د ده اعمال قبول نه دی بلکه مردود دی اوهغه د غلط ګمان کونکې سړی دې. دا آيت مکی دې اوښکاره خبره ده چه په مکه کښې يهود اونصاری مخاطب نه وواودخارجيانوخويه دغه وخت کښې وجودهم نه وو. نوددې برزګانو هم دا مطلب دې چه دآيت الفاظ عام دې دوی ته اود دوی په شان ټولوته شامل دی.

**کافران او مشرکان به سره د اعمالو جهنم ته ځی**:-لکه چه په سورت غاشيه کښې دی د قيامت په ورځ به ډيرمخونه خوار اوذليل وی چه په دنياکښې ډير محنتونه کونکی بلکه په عملونوباندې ستړې شوی وو اوسخت تکليفونه ئې اوچت کړی وو.(٤) نن به هغوی سره د عبادت اورياضت دوزخ ته ورځی او په سورکړې شوی اورکښې به اچولې شی. يوبل آيت کښې دی ﴿وَقَدِمۡنَآ إِلَىٰ مَا عَمِلُواْ مِنۡ عَمَلٖ فَجَعَلۡنَٰهُ هَبَآءٗ مَّنثُورًا﴾(٥) دهغوی کړې شوی اعمال مونږ په وړاندې کيدو سره ردی او بې کاره کړل. بل آيت کښې دی دکافرانود اعمالو مثال داسې دې لکه چه يوتګې د لرې نه د شګو غوندئی د لرې نه اوبه ګنړی خو چه کله خواته راشی نو يوڅاڅکې اوبه هم نه وی.(٦) دا هغه خلق دی چه په خپله طريقه سره عبادتونه کوی او په زړه کښې هم دا ګنړی چه مونږ ډير ښه کارونه کوواوهغوی مقبول او د الله ﷻ خوښ دی خو هغوی د الله ﷻ په طريقوباندې نه وو د نبيانو د فرمان مطابق نه وو په دې وجه دمقبول کيدو په ځائې مردود شو اوهغوی دمحبوب کيدوپه ځائې باندې مبغوض شو. ځکه چه هغوی د الله ﷻ آياتونه دروغ ګنړل د الله ﷻ دوحدانيت اودهغه د رسولﷺ د رسالت ټول ثبوتونه د هغوی په وړاندې وو خوهغوی سترګې بند کړې وې او هډوونی نه منل. د هغوی د نيکئی چابړې به بالکل خالی وی.

---

(١) صحيح مسلم کتاب الجنة باب جهنم اعاذناالله منها:٢٨٤٢.

(٢) صحيح بخاری کتاب التفسيرسورة الكهف باب قوله ﴿قل هل ننبئكم بالاخسرين اعمالا﴾:٤٧٢٨.

(٣) الطبری:١٢٨/١٨.

(٤) ٨٨/الغاشية:٢-٣.

(٥) ٢٥/الفرقان:٢٣.

(٦) ٢٤/النور:٢٩.

د بخاري شريف په حديث كښې دي د قيامت په ورځ به يوچاق اوتازه سړې راشي خود الله ﷻ په نيز به دهغه وزن ديوماشي د وزر برابر هم نه وي بيا حضور ﷺ اوفرمائيل كه تاسو غواړئي نود دې آيت تلاوت اوكړئي ﴿فَلَا نُقِيمُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَزْنًا﴾[1] دابن ابي حاتم په روايت كښې دي ډير زيات خوراك څښاك كونكې چاق او تازه سړې به د قيامت په ورځ د الله ﷻ مخې ته راوستلې شي خود هغه وزن به د غلې د يوې داني برابر هم نه وي. بيا هغوى هم د دې آيت تلاوت اوكړو[2] بزاركښې دي قريشي كافر په خپله حليه كښې په فخر سره دحضور ﷺ مخې ته تيريدلو نو حضور ﷺ حضرت بريده ﷺ ته اوفرمائيل دا د هغوى نه دې چه دقيامت په ورځ به د ده د الله ﷻ په نيزهيڅ وزن نه وي.[3] دمرفوع حديث په شان د حضرت كعب ﷺ قول هم نقل دې دا بدله ده د هغوى د كفر اود الله ﷻ آياتونه اود هغه د رسولانو سپكاوې كول اود هغوى نه منل بلكه هغوى دروغ گنړل.

| إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا |
|---|
| بيشكه هغه كسان \| چه ايمان ئې راوړو |
| بيشكه كومو كسانو چه ايمان راوړې دي |
| وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ كَانَتْ لَهُمْ جَنَّاتُ الْفِرْدَوْسِ نُزُلًا ۝ خَالِدِينَ |
| اوعمل ئې اوكړو نيك \| وي به \| دپاره دهغوئ \| باغونه دفردوس \| ميلمستيا \| هميشه به وي \| |
| اونيك عملونه ئې كړي دي \| د دوى د ميلمستيا دپاره د فردوس باغونه دي \| دوى به په هغې كښې |
| فِيهَا لَا يَبْغُونَ عَنْهَا حِوَلًا ۝ قُلْ لَوْ كَانَ الْبَحْرُ |
| په هغې كښې \| نه به طلب كوي \| دهغې نه \| وتل (بر ځائي ته) \| ورته اووايه \| كه چرې شي \| درياب \| |
| هميشه دپاره وي \| د هغې نه د وتلو خواهش به نه كوي \| ته ورته اووايه كه چرته د سمندر اوبه |
| مِدَادًا لِكَلِمَاتِ رَبِّي لَنَفِدَ الْبَحْرُ قَبْلَ أَنْ تَنْفَدَ |
| سياهي \| دپاره دصفتونو ليكلو \| درب زما \| نوختم به شي درياب \| مخكښې ددې نه \| چه ختم شي \| |
| زما د رب د صفتونو ليكلو دپاره سياهي شي \| نو د سمندر اوبه به زما د رب د صفتونو ليكلو نه |
| كَلِمَاتُ رَبِّي وَلَوْ جِئْنَا بِمِثْلِهِ مَدَدًا ۝ قُلْ |
| صفتونه \| درب زما \| اواګر كه راوړو مونږ \| په شان دهغې درياب \| سياهي (نوره) \| ورته اووايه \| |
| وړاندې ختمې شي \| اګر چه مونږ (د نوروصفتونو ليكلو دپاره) د دې پشان نوره سياهي راوړو \| ته اووايه |
| إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِثْلُكُمْ يُوحَى إِلَيَّ أَنَّمَا إِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ |
| بيشكه \| چه زهٔ انسان يم \| په شان ستاسو \| چه وحى كيږي \| ماته \| چې بيشكه \| معبود ستاسو \| معبود \| |
| بيشكه زه ستاسو پشان يو انسان يم \| (خو) ماته وحې كولې شي چه ستاسو د عبادت مستحق صرف |

[1] صحيح بخارى كتاب التفسير سورة الكهف ﴿اولئك الذين كفروا بايات ربهم ولقائه فحبطت اعمالهم..﴾: ٤٧٢٩، صحيح مسلم: ٢٧٢٥.

[2] الطبرى: ١٢٩/١٨.

[3] مسندالبزار: ٢٩٥٦ مجمع الزوائد: ١٢٥/٥.

وَّاحِدٌ ۚ فَمَنْ كَانَ يَرْجُوْا لِقَآءَ رَبِّهٖ فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا صَالِحًا

یو دې | نو هغه څوک | چه وی | چه امید لری | د ملاقات | د رب خپل | نو هغه دې عمل کوی | عمل نیک |

یو الله دې | نو څوک چه د خپل رب د ملاقات یقین ساتی | هغه دې نیک عمل کوی

وَّلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهٖٓ اَحَدًا ۝

اونه دې شریکوی | په عبادت | د رب خپل کښې | هیڅوک |

اود خپل رب په عبادت کښې دې (ورسره) هیڅوک نه شریکوی

**قوله تعالٰی:-** اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

**دنیکانوخلقو میلمستیا:-** په الله ﷻ باندې ایمان لرونکی دهغه رسولان رښتونی منونکی اودهغوی په خبرو باندې عمل کونکی به بهترینوجنتونوکښې وی. بخاری اومسلم کښې دی کله چه تاسو د الله ﷻ نه د جنت سوال کوئی نو جنت الفردوس غوارئی دا د ټولونه اوچت او بهترجنت دې هم د دې نه د نورو جنتونونهرونه بهیږی.[۱] هم دا به د هغوی د میلمستیاځائې وی دوی به دلته د همیشه د پاره اوسیږی. نه به ویستلې شی اونه به د وتلوخیال ورخی نه به د دې نه بهتر ځائ بل وی اونه به د هغه ځائ د اوسیدونه ویریږی. ځکه چه د هرقسم اوچت عیش ورته حاصل وی یوپسې بل رحمت ملاویږی. ورځ په ورځ رغبت محبت او مینه الفت زیاتیږی د دې وجه نه طبیعت ستړې کیږی نه زړه مړیږی بلکه نور شوق هم زیاتیږی او نوې نعمت ملاویږی.

**د اووه سمندرونوسیاهی هم د رب تعریف نه شی لیکلې:-** حکم کولې شی چه د الله ﷻ د عظمت باره کښې د پوهه کولودپاره په دنیاکښې اعلان اوکړئی چه دزمکې سمندرونه سیاهی جوړه شی او بیا د الله ﷻ کلمات د الله ﷻ د قدرتونو څرګندونه د الله ﷻ خبرې اود الله ﷻ حکمتونه لیکل شروع کړی نودا ټوله سیاهی به ختمه شی خو د الله ﷻ تعریفونه به ختم نه شی. که بیا دغه شان نور دریابونه راوړلې شی بیاراوړلې او بیا راوړلې شی خوناممکن دی چه د الله ﷻ قدرتونه د هغه حکمتونه اود هغه دلیلونه ختم شی. د الله ﷻ فرمان دې ﴿وَلَوْ اَنَّ مَا فِي الْاَرْضِ مِنْ شَجَرَةٍ اَقْلَامٌ وَّالْبَحْرُ يَمُدُّهٗ مِنْۢ بَعْدِهٖ سَبْعَةُ اَبْحُرٍ مَّا نَفِدَتْ كَلِمٰتُ اللّٰهِ ۗ اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ۝﴾[۲] یعنی که په مخ دزمکې دونونه قلمونه جوړکړې شی اودټولوسمندرونونه سیاهی جوړه شی دې نه پس اووه سمندرونه نورهم راوړلې شی نوناممکن دی چه دالله ﷻ کلمات پوره اولیکی. د الله ﷻ عزت اود هغه حکمت د هغه غلبه او قدرت هم هغه پیژنی د ټولوانسانانوعلم د الله ﷻ د علم په مقابله کښې دومره هم نه دې څومره چه د سمندرپه مقابله کښې څاڅکې. د ټولو ونوقلمونه به په سولیدو سولیدوختم شی د ټولو سمندرونو سیاهی به ختمه شی خودالله ﷻ کلمات به هم داسې باقی پاتې شی لکه څنګه چه وې اوهغه بې شمیره او بې تعداده دی. څوک دی چه د الله ﷻ صحیح او پوره قدر اوعزت پیژندې شی؟ څوک دې چه د هغه پوره ثناوصفت په ځائ راوړې شی؟ بې شکه زمونږ رب هم هغه شان دې څنګه چه هغه پخپله فرمائی مونږ چه د هغه کوم تعریفونه اوکړو هغه د دې ټولونه زیات دې اود دې ټولونه لوئ دې. یادلرئ څنګه چه د ټولې زمکې په مقابله کښې یوه د اوری دانه ده دغه شان د جنت او آخرت د نعمتونو په مقابله کښې د ټولې دنیانعمتونه دی.

---

[۱] صحیح بخاری کتاب الجهاد باب درجات المجاهدین فی سبیل الله: ۲۷۹۰، احمد: ۲/ ۳۳۵، ابن حبان: ۴۶۱۱.

[۲] ۳۱/لقمان: ۲۷.

**ټول پيغمبران عليهم السلام بشردي:-** د حضرت معاويه بن ابى سفيان ﷺ فرمان دې چه دا د ټولونه آخرى آيت دې كوم چه په حضورﷺ باندې نازل شوې دې. حكم كولې شى چه تاسو خلقوته اوفرمائې چه زه هم ستاسو په شان يو انسان يم تاسوهم انسانان نى كه ما دروغ ګڼړنى نو راوړنى د دې قرآن په شان يو قرآن تاسوهم جوړ كړنى اوپيش كړنى. ګوړنى زه چرته په غيبوپوهيدونكې نه يم تاسوزما نه د ذوالقرنين د واقعه تپوس اوكړو د اصحاب كهف قصې تپوس مو اوكړونوما د هغې صحيح وافعات تاسو ته بيان كړل كوم چه د نفس الامر مطابق دى كه ماله د الله ﷻ وحى نه راتله نوما به دا تيرشوى واقعات څنګه چه هغه شوى دى څنګه بيانولې شو؟اوورنى د ټولې وحى خلاصه دا شوه چه تاسو مؤحد جوړشنى شرك پريږ دنى زمادعوت هم دغه دې څوك چه هم په تاسوكښې دالله ﷻ نه اجراوثواب اخستل غواړى هغه له د شريعت مطابق عمل كول پكاردى اود شرك نه بالكل بچ كيدل پكار دى. بغيرد دې دواړو كارونونه يوعمل الله ﷻ ته قبول نه دې چه په خلوص سره وى اود سنتومطابق وى.

**هر عبادت كښې يو ذره رياكارئى نه ځان ساتل ضرورى دى:-** يوسړى دحضورﷺ نه تپوس كړې وو چه په ډيرونيكوكارونوكښې باوجوددالله ﷻ د رضالټون سره زما اراده داهم وى چه خلق زما دا نيكى اوګورى نوزما د پاره څه حكم دې؟ حضورﷺ خاموش پاتې شو نودا آيت نازل شو.[٢] داحديث مرسل دى.د حضرت عباده بن صامت ﷺ نه يوسړى تپوس اوكړو چه يوسړې مونځ روژه صدقه خيرات حج زكوة ادا كوى د الله ﷻ رضامندى هم لټوى او په خلقو كښې نيك نامى او لوئى هم. حضورﷺ اوفرمائيل د هغه ټول عبادت بې كاره دې. الله ﷻ د شرك نه ويزاره دې چه څوك د هغه عبادت كوى اوبل نيت هم كوى نو الله ﷻ فرمانى چه دا ټول هم هغه ته وركړنى ماته د ده د څه خيز ضرورت نشته.[٢]

دحضرت ابوسعيدخدرى ﷺ بيان دې چه مونږ به حضورﷺ له په نمبرنمبر راتلواو شپه به موتيرولە كله چه به د حضورﷺ څه كار وونوفرمائيل به نى.داسې خلق ډير زيات وو يوه شپه مونږ په خپل مينځ كښې خبرې اترې كولې چه رسول مقبول ﷺ تشريف راوړو ونى فرمائيل داڅه پس پس كونى مونږ جواب وركړويارسول الله ﷺ زمونږ توبه ده مونږ دمسيح دجال ذكركولو اوزمونږ زړونه ويريدل.حضورﷺ اوفرمائيل زه تاسو ته د دې نه هم خطرناكه خبره اوښايم؟ هغه پټ شرك دې چه يوانسان د بل انسان د خودنې د پاره مونځ اوكړى.[٣] مسنداحمدكښې دى چه ابن غنم وائى زه اوحضرت ابوالدرداء ﷺ جابيه جمات ته لاړوهلته مونږ ته عباده بن صامت ﷺ ملاوشو په ګس لاس خو هغه زما ښي لاس اونيولواو پخپل ښى لاس باندې نى دابوالدرداء ګس لاس اونيولو اودغه شان مونږ درواړو هلته خبرې كولې روان وو هغوى اوفرمائيل چه ګوړنى كه تاسو درواړه يا په تاسو كښې يوكس هم ژوندې پاتې شو نوممكن دى چه هغه وخت هم اووينى چه دحضورﷺ د ژبې مباركې نه قرآن زده كړې شوې ښه سړې حلال حلال ګڼړل اوحرام حرام ګڼړلووالاسړې اودغه شان هرحكم په مناسب موقعه باندې ساتونكې اودهغه قدرت اوعزت په خلقو كښې داسې وى لكه دمرخر دسر.اوس لا دا خبرې كيدلې چه حضرت شدادبن اوس ﷺ اوحضرت عوف بن مالك ﷺ راغلو اوكيناستلو سره شداد ﷺ اوفرمائيل خلقوزما خو په تاسو د ټولونه زياته ويره د هغه څيز ده كوم چه مادرسول الله ﷺ نه اوريدلى دى يعنى پټ خواهش او شرك. په دې باندې حضرت عباده اوابوالدرداء ﷺ اوفرمائيل الله ﷻ دې مونږ معاف كړى مونږ ته حضورﷺ فرمائيلى دى چه په دې خبره باندې شيطان نااميده شوې دې چه په دې جزيره عرب كښې د هغه عبادت اوكړې شى او پټ خواهشات خو هم دغه د شهوت او خواهش څيزونه ښځې وغيره دى. دا

---

[١] الطبرى:٢٣٤٣٧.

[٢] الطبرى:١٣٦/١٨.

[٣] ابن ماجه كتاب الزهد باب الرياء والسمعة:٤٢٠٤وهوحسن، احمد:٣٠/٣، مجمع الزوائد:٣١٥/١.

شرك خو زمونږ په پوهه كښې رانغلو د كوم نه چه ته مونږ ويروې. شداد ﷺ اوفرمائيل بنه ده اوښائي چه بوسرې د بل د خودنې د پاره مونځ روژه صدقه زكوة خيرات كوى ددې حكم ستاسو په نيز څه دې؟ آيا هغه شرك اوكړو؟ ټولوجواب وركړو بې شكه دغه سړې مشرك دې. څوك چه د دنياد خودنې د پاره روژې اوساتى هغه مشرك دې چه په خلقو كښې خپل سخاوت خودلودپاره صدقه اوخيرات كوى هغه هم مشرك دې. په دې باندې حضرت عوف بن مالك ﷺ اووئيل آيا دا نه شى كيدې چه په داسې اعمالوكښې كوم چه د الله ﷻ د پاره وى الله ﷻ هغه قبول كړى او چه كوم د نورو د پاره وى هغه رد كړى. حضرت شداد ﷺ اوفرمائيل دا هيڅ كله نه شى كيدې ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلى دى چه د الله ﷻ ارشاد دې چه زه د ټولونه بهترحصې والا يم څوك هم چه ما سره په يوعمل كښې څوك شريك كړى زه هغه خپله حصه هم هغه دويم ته ورسپارم او ډير په بې پرواهئى سره لړ او ډير هر څه پريږدم.[1]

**عمل كښې ريا كارى پټ شرك دې:**-يوبل روايت كښې دى چه حضرت شداد بن اوس ﷺ يوه ورځ ژړل مونږ تپوس اوكړوحضرت تاسو ولې ژاړې؟ وئى فرمائيل چه يوحديث راياد شواوهغه اوژړولم ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلى دى ماته په خپل امت باندې د ټولونه زياته ويره د شرك اود پټ شهوت ده ما تپوس اوكړويارسول الله ﷺ ستاسوامت به تاسونه پس شرك كوى؟حضور ﷺ اوفرمائيل چه او واوره هغوى به دنمر سپوږمئى كانړى اوبتانو عبادت نه كوى بلكه په خپلو عملونوكښې به ځان خودنه كوى. پټ شهوت دا دې چه سحر په روژه كښې دې اوڅه خواهش ئى مخې ته راغلو روژه ئى پريخوده.[2] (ابن ماجه ومسنداحمد)

رسول الله ﷺ فرمائى چه د الله ﷻ فرمان دې چه زه د ټولوشريكانونه بهتريم ما سره چه څوك هم څه شريك كړى زه خپله حصه هم هغه ته وركوم. بل روايت كښې دى چه څوك بل كس زما سره په عمل كښې شريك كړى زه دهغه نه خلاص يم اود هغه هغه ټول عمل د دغه غيرد پاره دې.[3] بل حديث كښې دى ماته ستاسو په نسبت د ټولونه زياته ويره د وړوكى شرك ده.خلقو تپوس اوكړو چه هغه وړوكې شرك څه خيز دې؟ وئى فرمائيل رياكارى. د قيامت په ورځ به رياكارانوته جواب ملاويږى چه ځئ د چاد پاره چه موعمل كولودهغوى نه بدله اوغواړئى اوګورئى چه ملاويږى هم؟[4] دابوسعيدبن ابى فضاله انصارى صحابى ﷺ نه روايت دې فرمائى چه ما درسول الله ﷺ نه اوريدلى چه كله الله ﷻ د ټولو وړاندې روستونى خلق راجمع كړى د كومې ورځې په راتلو كښې چه څه شك شبه نشته په هغه ورځ به يو آواز كونكې آواز كوى كوم سړى په كوم عمل كښې دالله ﷻ سره څوك شريك يوځائ كړې وى هغه له پكاردى چه دخپل هغه عمل بدله هم د هغه دويم نه اوغواړى خكه چه الله ﷻ دحصه دار نه بې پرواه دې.[5] ابوبكر ﷺ فرمائى رسول الله ﷺ فرمائيلى دى چه الله تعالى به رياكارعذاب هم ټولوته ښائى او نياك عمل خلقوته اوروكې عذاب ب هم هم ټولوته اوروى.[6] (مسنداحمد)

دحضرت ابوسعيدخدرى ﷺ نه هم روايت نقل دې[7] ابن عمر ﷺ فرمائى چه حضور ﷺ فرمائيلى دى خپل نيك اعمال ښكاره كونكې به الله ﷻ خامخارسوا كوى.داچه دهغه اخلاق به خراب شى اوهغه به د

---

[1] احمد: ٤/١٢٥-١٢٦ وسنده حسن، مجمع الزوائد: ١٠/٢٢١

[2] ابن ماجه كتاب الزهد باب الرياء والسمعة: احمد: ٤/١٢٤.

[3] احمد: ٥/٤٢٨، ابن ماجه كتاب الزهد باب الرياء والسمعة: ٤٢٠٢ وهو حسن صحيح، الطيالسى: ٢٥٥٩، ابن حبان: ٣٩٥.د.

[4] احمد: ٥/٤٢٨؛ شرح السنة: ٤/٢٠١ وسنده حسن.

[5] ترمذى كتاب تفسير القرآن باب ومن سورة الكهف: ٣١٥٤ وسنده حسن، ابن ماجه: ٤٢٠٣، شعب الايمان: ٦٨١٧، احمد: ٣/٤٦٦،

[6] احمد ٥/٤٥ وهو صحيح بالشواهد، مسندالبزار: ٣٦٩١.

[7] ترمذى كتاب الزهد باب ماجاء فى الرياء والسمعة: ٢٣٨١ وهو صحيح، احمد: ٣/٤٠.

خلقو په نظر کښې ذليل اوخواروي. دې بيان کولوسره عبدالله ﷺ په ژړا شو.(١) (مسند احمد) حضرت انس ﷺ روايت کوی چه حضور ﷺ فرمائيل د قيامت په ورځ به د انسان د نيکواعمالو مهر لګيدلې بانړې د الله ﷻ په وړاندې پيش کولې شی. دا لره کړه دا قبول کړه، دا لره کړه او دا قبول کړه. هغه وخت به فرښتې عرض کوی اې الله ﷻ ترکومې چه زمونږ علم دې دا سړې خو مونږ نيک ګڼلو جواب به ملاؤ شی چه کوم زه لره کوم دا هغه اعمال دی په کوموکښې چه صرف زما رضامندی مطلوب نه وه بلکه په دې کښې رياکاری وه. نن خو به زه صرف هغه اعمال قبلوم چه صرف هم زما د پاره کړې شوی وی.
ريا چې خومره پورې عبادت کښې مشغول د الله ﷻ په غضب کښې وی. ارشاد دې چه څوك د خودنې اوروني دپاره اودريږی هغه چه ترکومې کينه نی دالله ﷻ په غصه اوغضب کښې وی دابويعلی په حديث کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی چه کوم سړې دخلقو په وړاندې په کتلوسره په مزه مزه ښه ښکلې مونځ اداکوی او په خان له خائ کښې خراب او په تندئی سره بې زړه ادا کوی هغه د خپل پروردګاربې عزتی اوکړه.(٢) اول بيان شوې دې چه دا آيت معاويه ﷺ د قرآن پاك آخری آيت ښائی خودا قول د اشکال نه خالی نه دې خکه چه سورت کهف ټول په ټول هم په مکه کښې نازل شوې دې. او ښکاره خبره ده چه دې نه پس برابر لسوکالوپورې قرآن پاك نازليدلو. نو په ظاهره خو دامعلوميږی چه د حضرت معاويه ﷺ مطلب دا وې چه دا آيت آخری دې يعنی په بل آيت سره منسوخ کيږی نه په دې کښې چه کوم حکم دې هغه به ترآخره پورې بدل کړې شوې نه دې د دې نه پس څه دامې آيت نه دې نازل شوې چه په دې کښې بدلون او جداوالې اوکړی.والله اعلم. يوډير زيات غريب حديث حافظ ابوبکر بزار ﷫ په خپل کتاب کښې راوړی دی چه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی چه کوم سړې آيت ﴿فَمَن كَانَ يَرۡجُواْ لِقَآءَ رَبِّهِۦ فَلۡيَعۡمَلۡ عَمَلٗا صَٰلِحٗا وَلَا يُشۡرِكۡ بِعِبَادَةِ رَبِّهِۦٓ أَحَدَۢا﴾ الخ د شپې په آخر وخت کښې اولولی الله ﷻ به هغه ته دومره لوئی نور ورکوی چه د عدن نه به مکې ته اورسی.(٣)

﴿الحمدلله﴾ د سورت کهف تفسيرختم شو

.............................

## ﴿تفسيرسورت مريم﴾

| ركوع ګانې | سورة مريم مكية وهي ثمان وتسعون اية وست ركوعات | اياتونه |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ | |
| | شروع کوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم کونکی دې | |

| كٓهيعٓصٓ ﴿١﴾ | ذِكۡرُ | رَحۡمَتِ | رَبِّكَ | عَبۡدَهُۥ | زَكَرِيَّآ ﴿٢﴾ | إِذۡ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ك د ن ع ص | دا ذکر دې | د نعمت | د رب ستا | په بنده خپل | زکريا باندې | کله چې |

کاف .ها. يا .عين .ص. دا بيان د رب د هغه احسان ذکر دې کوم چه هغه په خپل بنده حضرت زکريا باندې کړې وو

| نَادَىٰ | رَبَّهُۥ | نِدَآءً خَفِيّٗا ﴿٣﴾ | قَالَ | رَبِّ | إِنِّي |
|---|---|---|---|---|---|
| اواز اوکړو هغه | رب خپل ته | اواز پټ | اووئيل هغه | اې ربه زما | بيشکه زه چې يم |

څه وخت چه هغه خپل رب ته پټ آواز اوکړو اوعرض ئې اوکړو چه اې زما ربه زما د بدن هډوکی

(١) احمد:٢/١٦٢وهوصحيح، حلية الاولياء:١٢٣/٤-١٢٤، المعجم الكبير كمافي مجمع الزوائد ٢٢٢/١٠.
(٢) مسندابي يعلى:٥١١٧، عبدالرزاق:٣٦٩/٢، بيهقي:٢٩٠/٢.
(٣) حاكم:٣٧١/٢ البزار:٣١٠٨.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَهَنَ | الْعَظْمُ | مِنِّيْ | وَاشْتَعَلَ | الرَّأْسُ | شَيْبًا |
| كمزوري شو | هډوكي | زما | او سپينه شعله شوه | ويخته دسر(زما) | دوجي دبوډاوالي نه |

ضعيف شوى دى او د سر ويخته مي د بوډاوتوب په وجه سپين شوى دى

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلَمْ اَكُنْ | بِدُعَآئِكَ | رَبِّ | شَقِيًّا ۝ | وَاِنِّيْ |
| او نه يم زه(پاتي شوى) | په غوښتلو ددعا سره ستا نه | اے ربه زما | نامرداه | او بيشكه زه |

اې ربه زه كله هم ستانه په دعا غوستلو كښې نامراده شوې هم نه يم | اوزه د خپل مرګ نه پس د خپلو

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| خِفْتُ الْمَوَالِيَ | مِنْ وَّرَآءِيْ | وَكَانَتِ | امْرَاَتِيْ | عَاقِرًا | فَهَبْ | لِيْ |
| يريږم(دبد عملئ) | دخپلو رونړو عزيزانو نه ورستوزما | او ده | ښخه زما | شنډه | نو راكړه | ماته |

وارثانونه يريږم |او زما بى بى شنډه ده | نو ماته د خپل طرفه يو وارث راكړه چه (په نبوت كښې)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِنْ لَّدُنْكَ | وَلِيًّا ۝ | يَّرِثُنِيْ | وَيَرِثُ مِنْ اٰلِ يَعْقُوْبَ ۗ | وَاجْعَلْهُ |
| دطرفه ستانه | يو وارث | چې وارث شي زما | او وارث شي داولاد ديعقوب | او جوړ كړه هغه |

زما او د يعقوب ﷺ (دعلومو) وارث وى |او زما ربه هغه خپل بهترين بنده اوګرځوه |

| | |
|---|---|
| رَبِّ | رَضِيًّا ۝ |
| اے ربه زما | غوره انسان |

**قوله تعالى:- ذِكْرُ رَحْمَتِ رَبِّكَ عَبْدَهٗ زَكَرِيَّا ۝**

**د سورت تعارف:-** ددې سورت د شروع آياتونه حضرت جعفر بن ابى طالب رضي الله عنه دحبش دبادشاه په دربار كښې د بادشاه د درباريانو په وړاندې تلاوت فرمائيلي وو[1](مسند احمدوسيرت محمدبن اسحاق)

**د حضرت زكرياﷺ ذكر:-** -ددې سورت په شروع كښې چه كوم پنځه حروف دى دې ته حروف مقطعه وائى ددې تفصيلى بيان د سورت بقرې د تفسير په شروع كښې مونږ كړې دې. د الله ﷻ بنده حضرت زكرياء نبىﷺ باندې چه دالله ﷻ كوم لطف نازل شودهغې واقعه بيانولې شى په يوقراءت كښې زكريادې.دالفظ په مدسره هم دې اوپه قصرسره هم دواړه قراءتونه مشهور دى.هغوىﷺ د بنو اسرائيلو يو زبردست پيغمبروو.په صحيح بخارى كښې دى چه هغوى به د تركانى پيشه كولوسره خپله خيټه ساتله.[2] د رب نه به ئى دعاكوله خوپه دې وجه دا دخلقو په نيز يوه حيرانونكې دعاوه چاچه به اوريدله نو ونيل به ئى ګورئى بوډاوالى كښې داولاد غوښتنه كوى اوداوجه هم وه چه پټه دعادالله ﷻ ډيره خوښه وي او قبوليت سره ډيره نيزدې وى. الله ﷻ پرهيزګاره زړه ډيرښه پيژنى او په مزه آواز ډيرښه اورى.[3]

دبعضو سلفوقول دې چه څوك د خپل پوره خوب نه راپاسى او پټ الله ﷻ ته زارى اوكړى چه اې زما پروردګاراې زما پالونكيه اې زماربه نو الله ﷻ هم هغه وخت جواب وركوى چه لبيك عبدى اې زما

---

[1] احمد:١/٢٠٢-٢٠٣ ابن هشام:١/٣٥٧، حلية الاولياء:١/١١٥ مختصرًا دلائل النبوة:٢/٣٠١.

[2] صحيح مسلم كتاب الفضائل باب من لفضائل زكرياﷺ:٢٣٧٩،ابن ماجه:٢١٥٠، احمد:٢/٢٩٦،مسندابى يعلى:٦٤٢٦.

[3] الطبرى:١٨/١٤٢.



بنده زه حاضريم تاسره موجود يم. په دعاكښې وائی چه ياالله زما طاقت كمزورې دې زما هډوكي ډېر شوی دی زمادسردوېښتو تورواليې په سپينوالی كښې بدل شوې دې يعنی ظاهری او باطنی ټول طاقت ختم شوې دې دننه او بهر كمزورتيا راګيركړې يم. زه خوستا د ددرنه چرې هم خالی لاس نه يم تلې. كله چه مې ستا كريم ذات نه څه غوښتی دی تاراكړی دی. ﴿موالیٓ﴾كسانی ﴿موالیٓ﴾ لوستلې دې دې نه مراد عصبه دې.([1])

**د انبياء كرامو سره دنبوت فكر وی د مال او دولت وغيره نه وی**:-داميرالمؤمنين حضرت عثمان بن عفان ﷜ نه﴿خِفّتُ﴾په﴿خَفَّتْ﴾سره لوستل مروی دی يعنی زمانه پس زماخلق ډېر كم دی.په اولنی قراءت باندې مطلب دا دې چه زما اولاد نشته اوكوم چه زما خپلوان دی هغوی زمانه ويريده چه هسې نه زمانه پس څه خراب تصرف اونه كړی ماته اولاد راكړه چه زما نه پس زما نبوت راټينګ كړی. داهيڅ كله نه دی ګنړل پكار چه دخپل مال حال اواملاك د اخواديخوا تلوويره وه.انبياءكرام عليهم السلام دې نه ډېر پاك دی د هغوی مرتبه د دې نه ډيره زياته لرې ده چه هغوی دې د دې د پاره اولاد اوغواړی چه كه اولاد اونه شی نوزما ميراث به د لرې رشته دارانوته پاتې شی.

بل په ظاهره داهم دی چه حضرت زكريا﷤ ټول عمر خپل هډوكی سولولې وواود تركانړی كار كولوسره نی خپله خيټه په خپل كار روزګارسره ساتله هغه سره به داسې كوم يولوئ دولت ووچه د هغې د ميراث د پاره به هغه دومره پريشانه وو چه چرته دادولت مې دلاس نه اونه اوځی.انبياء كرام عليهم السلام خو هسې هم ددنياد زيات مال نه بې رغبت او د دنياپرهيزګاران وی. دريمه وجه داهم ده. بخاری اومسلم كښې په ډيروسندونوسره حديث شريف دې چه رسول الله ﷺ فرمانيل زمونږ ميراث به نه شی تقسيم كولې مونږ نه چه څه پاتې شی هغه ټوله صدقه ده.([2])ترمذی شريف كښې په صحيح سندسره روايت دې مونږ دانبياؤ عليهم السلام ډله يوزمونږ ميراث نه تقسيمېږی.نوثابته شوه چه د حضرت زكريا﷤ داعرض كول چه ماته خوئ راكړه چه زما وارث وی دې نه مطلب د نبوت وراثت دې نه چه د مال. د دې د پاره هغوی دا هم فرمانيل چه هغه زما او د آل يعقوب وارث وی. لكه چه ارشاد دې ﴿وَوَرِثَ سُلَيْمٰنُ دَاوٗدَ وَقَالَ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ عُلِّمْنَا مَنْطِقَ الطَّيْرِ وَاُوْتِيْنَا مِنْ كُلِّ شَيْءٍ ۭ اِنَّ هٰذَا لَهُوَ الْفَضْلُ الْمُبِيْنُ ﴾([3]) سليمان ﷤ دداود﷤ وارث شويعنی دنبوت وارث شونه چه دمال ګنی په مال كښې نور اولادكښې هم شريك وی تخصيص نه وی.څلورمه وجه دا هم وه اودا هم معقول وجه ده چه د اولاد وارث كيدل خو عام دی په ټولوكښې دی او په ټولومذهبونوكښې دی بياخو هيڅ ضرورت نه وو چه حضرت زكريا﷤ په خپله دعاكښې داوجه بيان فرمانيله.دې نه صفاثابت دی چه هغه ميراث څه خاص ميراث وواوهغه د نبوت وارث جوړيدل وو. نو په دې ټولو وجو سره ثابته ده چه دې نه مراد د نبوت ميراث دې لكه چه په حديث كښې دی زمونږ د انبياؤ كرامو عليهم السلام ميراث نه تقسيمېږی مونږ چه څه پريږدو هغه صدقه ده.([4]) مجاهد ﷫ فرمانی دې نه مراد د علم وراثت دې. زكريا﷤ ديعقوب ﷤ د اولادنه وو([5]) ابوصالح ﷫ فرمانی دې نه مراددادې چه هغه هم دخپلو مشرانو په شان نبی جوړشی.([6]) حضرت حسن ﷫ فرمانی چه د نبوت او علم وارث جوړ شی.دسدی ﷫ قول دې چه زما اود آل يعقوب د نبوت وارث جوړ شی. زيدبن اسلم

---

[1]) الطبری:۱۴٤/۱۸.
[2]) صحيح بخاری كتاب فرض الخمس:۳۸۰٤،صحيح مسلم:۱۷۵۸، ابوداؤد:۲۹۶۳، ترمذی: ۱۶۱۰، مسندابی يعلی:۲.
[3]) ۲۷/النمل:۱۶.
[4]) احمد:۴۶۳/۲ وهوصحيح.
[5]) الطبری:۱۴۶/۱۸.
[6]) الطبری:۱۴۶/۱۸.

رحمه الله هم دا فرمائي. د ابوصالح رحمه الله داهم قول دې چه زما د مال خاندان اود حضرت يعقوب د نبوت وارث وی.عبدالرزاق کښې حديث دې الله ﷺ دې په حضرت زکريا ؑ باندې رحم اوکړی د هغه د مال وارث نه څه غرض وو ! الله ﷺ دې په لوط ؑ باندې رحم اوکړی هغه د يوې مضبوطې قلعه خواهش کړې وو. ابن جريرکښې دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل زما په رور حضرت زکريا ؑباندې دې د الله ﷻ رحم وی وئيل اې الله ماله د خپل خان نه ولی راکړه چه زما اود آل يعقوب وارث جوړشی.(۱) خودا تول احاديث مرسل دی چه د صحيح احاديث معارضه نه شی‌کولې. والله اعلم. اواې الله هغه خپل خوښ کړې شوې غلام جوړکړه اوداسې ديندار او ديانتدار نې جوړکړه چه ستا د محبت نه علاوه تول مخلوق د هغه سره مينه کوی د هغه دين او اخلاقوته هريو د خوښنې او مينې په نظرسره گوری.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يٰزَكَرِيَّآ | اِنَّا نُبَشِّرُكَ | بِغُلٰمِ | | | | | |
| اے ربه زما اغوره انسان | اې زکريا | بيشکه مونږه زيرې درکوو تاله | ديوهلك | | | | |
| (الله اوفرمائيل) اې زکريا مونږ تاته د يو هلک زيرې درکوو | چه د هغه نوم به يحيى وی | | | | | | |
| اِسْمُهٗ يَحْيٰى | لَمْ نَجْعَلْ | لَّهٗ | مِنْ قَبْلُ | سَمِيًّا۝ | | | |
| چې نوم دهغه به يحيى وی | نهٔ دې گرخولې مونږ | دهٔ لره | مخکښې ددې نه | په نوم کښې شريك څوك | | | |
| مونږ د هغه نه وړاندې د هغه هم نام هيڅوک نه دې پيدا کړې | | | | | | | |
| قَالَ | رَبِّ | اَنّٰى يَكُوْنُ لِىْ | غُلٰمٌ | وَّكَانَتِ | امْرَاَتِىْ | عَاقِرًا | |
| اووئيل هغه | اې ربه زما | څرنگ به شی | زما | هلك | اوده | ښځه زما | شنډه |
| زکريا اووئيل اې زما ربه ! زما څوئې به څنگه پيدا شی حال دا دې چه زما بی بی شنډه ده | | | | | | | |
| وَّقَدْ بَلَغْتُ | مِنَ الْكِبَرِ عِتِيًّا۝ | قَالَ | كَذٰلِكَ | قَالَ | | | |
| اورسيدلې يم زهٔ | دزوړوالی نه وچ والی ته | اووئيل فرښتې | هم دارنگې به کيږی | ونيلی دی | | | |
| او د بوډاتوب اخری مرحلې عمر ته رسيدلې يم | افرشتې اووئيل | هم دغه شان به کيږی | ستا رب | | | | |
| رَبُّكَ | هُوَ | عَلَيَّ هَيِّنٌ | وَّقَدْ خَلَقْتُكَ | مِنْ قَبْلُ | وَلَمْ تَكُ | | |
| رب ستا | چې دا کار | په ماباند اسان دې | او بيشکه پيدا کړې نې ماتهٔ | مخکښې ددې نه | او نهٔ وې تهٔ | | |
| فرمائيلی دی چه دا کار ماته څه گران نه دې | او(ته گوری نه) | د دې نه وړاندې ماتهٔ هم پيدا کړې وې | | | | | |
| شَيْـًٔا۝ | | | | | | | |
| هيڅ څيز | | | | | | | |
| حال داچه ته هډو موجود نه وې | | | | | | | |

**قوله تعالى:- يٰزَكَرِيَّآ اِنَّا نُبَشِّرُكَ**

**د زکريا ؑ ددعا د قبوليت ذکر:**-دحضرت زکريا ؑ دعا قبليږی او فرمائيلې کيږی ته د يوماشوم زيرې واوره دهغه نوم يحيى دې. لکه چه بل ځای کښې ارشاد دې ﴿هُنَالِكَ دَعَا زَكَرِيَّا رَبَّهٗ ۚ قَالَ رَبِّ هَبْ لِىْ مِنْ لَّدُنْكَ ذُرِّيَّةً طَيِّبَةً ۚ اِنَّكَ سَمِيْعُ الدُّعَآءِ۝﴾(۲)هم هلته زکريا ؑ د خپل رب نه دعا اوکړه اې الله ماله ته بهترين اولاد راکړې

(۱) الطبری: ۱۰/۱۴۶.
(۲) ۳/آل عمران:۳۸.



ته ددعاګانو اوريدونکي نى.فرښتوهغه ته اواز وركړواوهغه دهغه وخت دمانځه په ځاى كښې په مانځه كښې ولاړ ووچه الله ﷻ هغوى ته د خپلې يوې كلمې زيرې وركوى چه سردار به وى پاك به وى نبى به وى پوره نيك اود اوچتې درجې دخوخلقو نه به وى. دلته فرمانى د ده نه اول د دې نوم چرته يوانسان هم نه وو شوې([1])داهم ونيلې شوى دى چه د ده په شان به نورځوك نه وى.هم دغه معنى ﴿سميا﴾ آيت ﴿ هَلْ تَعْلَمُ لَهُ سَمِيًّا ﴾ ([2])كښې ده.دامعنى هم بيان كړې شوې ده چه دې نه وړاندې د داسې شنډې ښځې داسې بچې نه دې شوې. دزكريا ﷺ هيڅ اولاد نه وو شوې د هغوى بى بى صاحبه د شروع د وخت نه بې اولاد وه. حضرت ابراهيم ﷺ اوحضرت ساره بىبى هم چه دماشوم زيرې واوريدو نو ډيره حيرانتيانى كړې وه د هغوى دحيرانتيا وجه د هغوى اولادنه كيدل يا شنډيدل نه وو بلكه په ډير بوډاوالى كښې د اولاد كيدل دهغوى د حيرانتيا وجه وه. او د زكريا ﷺ خو ددې پوره بوډاوالى پورې اولاد نه وو شوې. د دې د پاره حضرت خليل الله ﷺ فرمائيلې ووچه ماته په دې دومره بوډاوالى كښې د اولاد زيرې څنګه راكوې؟دې نه ديارلس كاله وړاندې اسماعيل ﷺ شوې وو.د هغوى بى بى هم چه دا خبر واوريدونو په حيرانتياسره ئى اوونيل چه په دې بوډاتوب كښې به زما اولاد كيږى؟سره د دې چه زما خاوند هم پوره درجه كښې بوډا دې داخو ډير حيرانونكې څيزدې. دې اوريدو سره فرښتو ونيلى وو چه ستاسو د الله ﷻ په امرباندې حيرانتياده. اې د ابراهيم ﷺ كوروداني په تاسو باندې د الله ﷻ رحمتونه او بركتونه دى الله ﷻ د تعريفونو او بزرګومالك دې.

**د خوې په زيرى د حضرت زكريا ﷺ حيرانيدل:-** حضرت زكريا ﷺ چه د خپلې دعاقبليدو او د هغه د خوئ كيدوزيرې اوريدو سره د خوشحالئى او حيرانيدو نه كيفيت معلومول چه په ظاهرى اسبابو خو دا امرمستبعد او ناممكن معلوميږى ددواړو طرفونه خو حال د خالص د نااميدئى دې. بى بى شنډه چه د هغې داوسه پورې اولاد نه دې شوې اوزه بوډا اوداسې بوډا د چا په هډوكې چه اوس هيڅ طاقت نه دې پاتې.داوچ خانښ په شان شوې يم.دكوروالامې هم بوډئى شوې ده بيا به زمونږ اولاد څنګه كيږى؟ غرض د رب العالمين نه ئى د خوشحالئى او حيرانيدو سره معلومات كولو.د ابن عباس ﷺ نه روايت دې زه ټول سنت پيژنم خو ماته دا معلومه نه شوه چه حضور ﷺ به ماسپښين او مازيګركښې لوستل كولو اوكه نه؟ اودا معلومه نه شوه چه لفظ ﴿عتيا﴾به لوستلو كه﴿سميا﴾([3])(احمد)فرښتې جواب وركړو چه وعده خو اوشوه. هم په دې حالت كښې به هم د دې بى بى نه ستا خوئ كيږى. الله ﷻ ته داكار ګران نه دې د دې نه د زيات حيرانيدو او لوئ قدرت كار خو تاسو پخپله ليدلې دې اوهغه پخپله ستاسو وجود دې چه هيڅ نه وواو الله ﷻ جوړكړئى. نو چه هغه ستاسو په پيداكول قادر وو نوهغه تاسو له په اولاد دركولوهم قادردې.لكه چه ارشاد دې ﴿هَلْ أَتَىٰ عَلَى الْإِنسَانِ حِينٌ مِّنَ الدَّهْرِ لَمْ يَكُن شَيْئًا مَّذْكُورًا﴾ ([4]) يعنى يقينًا په انسان باندې د هغه د زمانې داسې وخت هم تيرشوې دې په كوم وخت كښې چه هغه د ذكر قابل څيز نه وو.

| آيَتُكَ | قَالَ | ءَايَةً | اجْعَل لِّيٓ | رَبِّ | قَالَ |
|---|---|---|---|---|---|
| چى نښه ستا(داده) | اوونيل الله | يوه نښه | مقرر كړه ماله | اى ربه زما | اوونيل زكريا |

زكريا اوونيل زما دپاره څه نښه اوګرځوه الله اوفرمائيل ستا نښه دا ده

---

[1] الطبرى:١٨/١٤٨.
[2] ١٩/مريم:٢٥)
[3] احمد:١/٢٥٧-٢٥٨، ابوداؤد كتاب الصلوة باب قدرالقراءة فى صلوة الظهر والعصر:٨٠٩مختصرًا وسنده صحيح.
[4] ٧٦/الدهر:١.

| فَخَرَجَ | سَوِيًّا ۝ | ثَلٰثَ لَيَالٍ | النَّاسَ | اَلَّا تُكَلِّمَ |
|---|---|---|---|---|
| نو راووتو هغه | پرله پسې | درې شپې ورځې | خلقو سره | چې ته به خبرې نشې کولې |
| چه درې شپې ورځې به د خلقو سره خبرې نشې کولې \| او روغ رمټ به ئې \| نو هغه د عبادت خانې نه | | | | |

| بُكْرَةً | اَنْ سَبِّحُوْا | اِلَيْهِمْ | فَاَوْحٰى | مِنَ الْمِحْرَابِ | عَلٰى قَوْمِهٖ |
|---|---|---|---|---|---|
| سحر | چې تسبيح وايئ | هغوئ ته | نو اشاره ئې اوکړه | دعبادت خانې نه | په قوم خپل باندې |
| اووتلو او خپل قوم ته ورغلو \| نو هغه ته ئې په اشاره سره اووئيل چه صبا او بيګاه ( د الله ﷻ ) | | | | | |

| وَّعَشِيًّا ۝ |
|---|
| او ماښام |
| تسبيح وائې |

**قوله تعالى:- قَالَ رَبِّ اجْعَلْ لِّيْ اٰيَةً ؕ**

**د حضرت زکريا عليه السلام نخښه غوښتل:** حضرت زکريا عليه السلام د خپلې نورې تسلئ د پاره اود زړه د تشفی د پاره د الله ﷻ نه دعا کوی چه په دې خبره باندې څه نښه راښکاره کړه. لکه چه خليل الله عليه السلام د مړو د بيا راژوندی کيدو کتلو خواهش د دې د پاره ښکاره کړې وو. ارشاد اوشو چه ته به نه ګونګا کيږې اونه به بيمارېږې خو ته به خلقو سره خبرې نه شې کولې. دريوورځوپورې به هم داحال وی.( [1] )

هم دا شان شوې هم وو چه په تسبيح استغفار اوحمدوثناوغيره باندې به ئې ژبه چليدله خوخلقو سره به نی خبرې نه شوې کولې.( [2] ) د ابن عباس ﷺ نه داهم روايت دې چه د ﴿سويا﴾ معنی وار په وار ده. يعنی مسلسل يوشان برابر درې شپې درې ورځې به ستا ژبه د دنياوی خبرو نه بنده وی. رومبې قول هم د هغوی نه نقل دې اود جمهورو تفسيرهم دا دې اوهم دا ډېر صحيح هم دی. په سورت آل عمران کښې د دې بيان هم تيرشوې دې. چه علامت غوښتلو باندې ارشاد اوشو چه دريوورځوپورې به ته صرف په اشارو وغيره خلقو سره خبرې کولې شې.( [3] ) اود خپل رب يادا وذکر په کثرت سره کوه او سحر ماښام د هغه پاکی بيانوه. نو په دې دريو شپوورځوکښې هغوی چاانسان سره خبرې نه شوې کولې. او په اشارو سره به نی خپل مطلب ورخودلو. خوداخبره نه وه چه هغه ګونګې شوې وو. اوس چه هغوی دخپلې حجرې نه کوم ځائ کښې په يواځيوالی کښې د خپل اولاد د کيدو دعاکړې وه بهرراغلو او چه رب کوم نعمت په هغوی باندې انعام کړې وو اود کوم تسبيح اوذکر هغوی ته حکم شوې وو هم هغه قوم ته هم حکم اوشو خبرې نه شوې کولې نو په دې وجه نی هغوی ته په اشاروسره پوهه کړل يانی په زمکه باندې په ليکلو سره پوهه کړل.( [4] )

| وَاٰتَيْنٰهُ الْحُكْمَ | بِقُوَّةٍ ؕ | الْكِتٰبَ | خُذِ | يٰيَحْيٰى |
|---|---|---|---|---|
| او ورکړو مونږ هغه ته حکم | مضبوط | دا کتاب | اونيسه | اې يحيی |
| (بيا ورته مونږ اووئيل اې يحيی) دا کتاب کلک اونيسه \| او مونږ هغه ته په ماشوموالی | | | | |

[1]) الطبری:۱۸/۱۵۲.

[2]) الطبری:۱۸/۱۵۲.

[3]) ۳/آل عمران:٤۱.

[4]) الطبری:۱۸/۱۵۳.

صَبِيًّا ﴿۱۲﴾ وَّحَنَانًا مِّنْ لَّدُنَّا وَزَكٰوةً ؕ وَكَانَ تَقِيًّا ﴿۱۳﴾ وَّبَرًّا

په وړوکوالی کښې | او نرموالي دزړه | دخپل طرفنه | او پاکی | اووو هغه | پرهیزګاره |او نیک وو

کښې پوهه ورکړې وه | اود خپل طرفه مو ورته زړه خوږی او پاکی ورکړې وه | او هغه ډیر تقوی دار وو |

بِوَالِدَيْهِ وَلَمْ يَكُنْ جَبَّارًا عَصِيًّا ﴿۱۴﴾ وَسَلٰمٌ عَلَيْهِ يَوْمَ

د مور او پلار خپل دپاره| او نه وو هغه | سرکشه | نافرمانه | او سلام وو | په هغه باند | په کومه ورخ

اود خپل مورپلار په حق کښې ډیرنیک وو او سرکش اونافرمانه نه وو او په هغه دې سلام وی په کومه

وُلِدَ وَيَوْمَ يَمُوْتُ وَيَوْمَ يُبْعَثُ حَيًّا ﴿۱۵﴾

چې پیدا کړې شو هغه |اوپه کومه ورځ |چې به مری هغه|او په کومه ورځ| چې به راپاسولې شی|ژوندې

ورځ چې پیدا شو اوپه کومه ورځ چې به مری اوپه کومه ورځ چې به دوباره ژوندې راپاڅولې شی

**قوله تعالیٰ:- وَاٰتَيْنٰهُ الْحُكْمَ صَبِيًّا ﴿۱۲﴾**

**دحضرت یحیی ؑ صفات** :-دالله ﷻ دزیری او بشارت مطابق حضرت زکریا ؑ کره حضرت یحیی ؑ پیداشو.الله ﷻ هغوی ته تورات اوخودلوچه په هغوی کښې به ئی لوستلواودکوم احکام چه انبیاء کراموا ونیکانوخلقو نوروته خودل.هغه وخت د هغوی عمر هم دوړوکوالي وو. په دې وجه ئی د خپل دې حیرانونکی نعمت ذکرئی هم اوکړوچه بچې ئی هم ورکړواوهغه ته ئی دآسمانی کتاب علم هم په وړوکوالی کښې ورکړو اوحکم ئی ورکړو چه حرص اجتهاد کوشش اوقوت سره د الله ﷻ کتاب زده کړه.دې سره مونږ هم په هغه عمرکښې د پوهې علم طاقت کلکه اراده هوښیارتوب اوحلم ورکړو.د نیکوطرف ته د وړوکوالی نه آماده وو او په کوشش اوخلوص سره به ئی دالله ﷻ عبادت اودمخلوق خدمت کښې جداشوې وو.ماشومانو به هغوی ؑ سره د لوبوکولود پاره وئیل خوهغوی به دا جواب اوریدلوچه مونږ د لوبود پاره نه یو پیداکړې شوې.دحضرت یحیی ؑ وجودد حضرت زکریا ؑ د پاره زمونږ د رحمت یوه کرشمه وه. په کوم باندې چه بغیر زمونږ نه بل څوك قادر نه دی. دحضرت ابن عباس ؓ نه دا هم روایت دې چه والله زه پوهیږم چه د حنان څه مطلب دې. په لغت کښې د مینې شفقت او رحمت وغیره په معنی کښې راځی. په ظاهره هم دا مطلب معلومیږی چه مونږ هغه ته د وړوکوالی نه حکم ورکړې وواوهغه ته مو شفقت محبت او پاکوالي ورکړې وو.دمسنداحمد په یوحدیث کښې دی (۱) «هرخیری میری نه دهرې ګناه نه یوسرې به په دوزخ کښې دزروکالوپورې یا حنان یا منان چغې وهی» اومعصیت نه هغوی بچ کړې شوی وو.صرف نیك اعمال د هغوی د ژوند خلاصه وه. هغوی د ګناهونونه د الله ﷻ دنافرمانونه لرې وو.دې سره دمور پلار حکم منونکی اوهغوی سره ښه سلوك کونکې وو.هیڅ کله ئی دخپل مورپلار په خبره کښې مخالفت نه دې کړې.کله هم دهغوی دفرمان نه بهرشوې نه دې. کله هم دهغوی دمنع کولونه پس یوکارنه دې کړې.هیڅ سرکشی نافرمانئی خوئی په هغوی کښې نه وو.

**د ویرې درې واقعات**:-د دې خوصفتونواوښکلې خصلتونو په بدله کښې په دریوارو حالتونوکښې هغوی ته د الله ﷻ دطرف نه امن امان اوسلامتی ملاوشوه.یعنی د پیدانش والاورځ دمرګ ورځ او د حشرورځ دغه دریوارو ځایونوکښې ویره وی اوناآشناوی.دموردخیټې نه راوتلوسره یوه نوې دنیا ګوری چه د هغه ترنن ورځې پورې د دنیا نه عظیم الشان او بالکل مختلف وی.دمرګ په ورځ د هغه مخلوق سره

(۱) احمد:۳/۲۳۰ مسندابی یعلی:۴۲۱۰، مجمع الزوائد:۱۰/۳۸٤۔

مخ کیږی چه په ژوند کښې ورسره کله هم نه مخامخ شوې اونه ئې کله هم هغوی لیدلی. د محشر په ورخ هم علی هذاالقیاس خپل خان به په یوه ډیره لویه ګنړه کښې چه بالکل نوې ځیز به وی کتلو سره به حیرانیږی. نو په دې دریوارو وختونو کښې د الله ﷻ د طرف نه یحیی علیه السلام ته سلامتی ملاوشوه.

په یومرسل حدیث کښې دی حضور ﷺ فرمائیلی ټول خلق به د قیامت په ورخ څه ناڅه ګناه وړی خی به بغیر د حضرت یحیی علیه السلام. حضرت قتاده رحمه الله وائی چه هغه ګناه خوڅه چه د ګناه اراده ئی هم چرته نه ده کړې. داحدیث مرفوعًا[1] اوپه دووسندونوسره هم نقل دې خوهغه دواړه سندونه هم ضعیف دی. والله اعلم.حضرت حسن رحمه الله فرمانی دحضرت یحیی علیه السلام اوحضرت عیسی علیه السلام ملاقات اوشونو حضرت عیسی علیه السلام حضرت یحیی علیه السلام ته اوفرمائیل تاسو زمادپاره استغفاراوکړئی تاسوزما نه بهترئی. حضرت یحیی علیه السلام جواب ورکړوتاسومانه بهترئی. حضرت عیسی علیه السلام اوفرمائیل ماخوپخپله په خپل خان باندې سلام وئیلې دې اوپه تاسو باندې پخپله الله ﷻ سلام وئیلې. اوس د دې دواړو د الله ﷻ په نیز فضیلت ښکاره دې.

وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ مَرْيَمَ اِذِ انْتَبَذَتْ مِنْ اَهْلِهَا

| او بیان کړه | په دې کتاب کښې |(واقعه د) مریم | کله چې هغه یو طرفته لاړه | داهل خپل نه

(ائې نبی) کتاب (یعنی قران) کښې دمریم هم ذکر اوکړه څه وخت چې دکور دخلقو نه جدا شو

مَكَانًا شَرْقِيًّا ۝ فَاتَّخَذَتْ مِنْ دُوْنِهِمْ حِجَابًا فَاَرْسَلْنَآ

یو ځائې ته | چې نمر خاته طرف وو | او جوړه ئې کړه | طرفه ددوئ ته | یوه پرده | نو اولیږو مونږه

دنمر خاته اړخ یو مکان ته لاړه نو دخلقو دمخې نه ئې پرده اوکړه نو مونږ ورته خپله خاص فرښته اولیږله

اِلَيْهَا رُوْحَنَا فَتَمَثَّلَ لَهَا بَشَرًا سَوِيًّا ۝ قَالَتْ

هغې ته | روح خپل | نو شکل جوړ کړو هغه فرښتې | هغې(مریم) ته | انسان | پوره | اووئیل مریم

چې دهغې په وړاندې دسم دم بنیادم په شان ښکاره شوه هغې اووئیل چې

اِنِّيْٓ اَعُوْذُ بِالرَّحْمٰنِ مِنْكَ اِنْ كُنْتَ تَقِيًّا ۝

چې بیشکه زه | پناه غواړم | په رحمن سره | ستا نه | که ئې ته | یریدونکې دالله نه |

زه تانه درحمان (په نامه) پناه غوارم که ته دالله ﷻ نه ویریږې

قَالَ اِنَّمَآ اَنَا رَسُوْلُ رَبِّكِ ۖ لِاَهَبَ لَكِ غُلٰمًا زَكِيًّا ۝

اووې هغه فرښتې | بیشکه | زه | استازې یم | درب ستا | چې درکړم | تاته | هلك | پاك(صالح) |

فرښتې اووئیل چې زه ستا درب رالیږلې شوې فرښته یم چې زه تاته یو پاکیزه هلک درکړم

قَالَتْ اَنّٰى يَكُوْنُ لِيْ غُلٰمٌ وَّلَمْ يَمْسَسْنِيْ بَشَرٌ

اووئیل مریم|څنګه به پیدا شی | زما | هلك |حال دا چې ګوتی نۀ دی راوړی ماته|هیڅ یو انسان

هغې اووئیل چې زما لا څنګه هلک کیدیشی حال دادې چې نه راله بنیادم لاس راوړې دې

[1] احمد: ۲۵۴/۱ مسندابی یعلی: ۲۵۴۴، مجمع الزوائد: ۲۰۹/۸.



| هُوَ | قَالَ رَبُّكِ | كَذٰلِكِ | قَالَ | بَغِيًّا | وَلَمْ اَكُ |
|---|---|---|---|---|---|
| دا کار | فرمانيلي دی رب ستا | هم دغسې به کيږي | اوونيل فرښتې | زناكاره(ښځه) | اونه يم زه |

اونه زه بدکاره يم فرښتې اوونيل چې دغسې به کيږي ستارب فرمانيلي دی داکار

| لِلنَّاسِ | اٰيَةً | وَلِنَجْعَلَهٗ | هَيِّنٌ | عَلَيَّ |
|---|---|---|---|---|
| دپاره دخلقو | يوه نښه | او ګرځوو هغه هلك | او كوژ دا كار دپاره ددې چې | په ماباندآسان دي |

ماته ډيراسان دي اودا ځکه چې مونږ.................... داخلقو دپاره يو نخښه او(ذريعه د)....................

| مَّقْضِيًّا | وَكَانَ اَمْرًا | مِّنَّا | وَرَحْمَةً |
|---|---|---|---|
| خامخا كيدونكې | او دې دا كار | دخپل طرفنه | او رحمت |

رحمت جوړ کړو اودايوه فيصله شوې خبره ده

**قوله تعالى:- وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ مَرْيَمَ**

**د حضرت مريم ام عيسى عليهماالسلام ذكر:-** پورته د حضرت زكرياﷺ ذكر شوې وو اودا بيان فرمانيلې شوې ووچه هغه د خپل ټول بوډاوالی پورې بې اولاد وو اود هغه د بی بی هيڅ هم نه وو شوی. بلکه د اولاد صلاحيت په کښې نه وو. په دې باندې الله ﷻ هم په دې عمر کښې هغه له په خپل قدرت سره اولاد ورکړو.حضرت يحيى ﷺ پيداشو چه نيکوکار اووفاشعاروو.د دې نه پس د دې نه هم دخپل لوئ قدرت څرګندونه کوی. د حضرت بی بی مريم واقعه بيانوی چه هغه پيغله وه د يوسړی لاس هم هغې پورې نه وولګيدلې اوبغيردسړی نه الله ﷻ په خپل قدرت کامله سره هغې ته اولاد ورکړې. د حضرت عيسى ﷺ غوندې خوئ هغې ته ورکړو چه د الله ﷻ غوره پيغمبر روح الله اوكلمة الله وو. په دې دواړو قصوکښې پوره مناسبت دې د دې د پاره دلته هم اوسورت آل عمران کښې هم اوپه سورت انبياء کښې هم دا دواړه په تفصيل سره بيان کړې دې د پاره چه بنديګان د الله ﷻ د قدرت او عظيم الشان سلطنت کتنه اوکړی. بی بی مريم د عمران لور وه د داؤد ﷺ دنسل نه وه.په بنی اسرائيلوکښې دا کورنئ طيب اوپاکه وه.په سورت آل عمران کښې دهغوی ﷺ دپيدائش وغيره تفصيلی بيان تيرشوې دې.

د هغه زمانې د دستوراورواج مطابق د هغې مور بی بی هغه د بيت المقدس د مسجدمقدس د خدمت د کار د پاره د دنياوی کارونونه آزاده کړې وه. الله ﷻ دانذر قبول کړو اودحضرت بی بی مريم پالنه په ښه توګه باندې اوشوله. هغه د الله ﷻ په عبادتونو رياضتونو اونيکوکښې مشغوله شوه. د هغې عبادت رياضت تقوی او پرهيزګاری د هر چا په ژبه وه. هغه د خپلې ترور د خاوند حضرت زكرياﷺ په پالنه او تربيت کښې وه چه هغه د بنی اسرائيلو نبی وو. ټول بنی اسرائيل په دينی کارونوکښې هم د دوی د حکم تابعداروو. حضرت زكرياﷺ ته د حضرت بی بی مريم ډيرزيات كرامتونه ښکاره شوې وو خاص کر چه کله به هغه د دې عبادت خانې ته ورتلو نود نوی قسم بې موسمه ميوې به هلته موجود وې. معلومات ئې اوکړو مريم دا د کوم ځائ نه راځی؟ جواب ملاو شود الله ﷻ د طرف نه. هغه داسې قادردې چه چاله غواړی نو بې حسابه رزق ورکوی.اوس د الله ﷻ اراده اوشوه چه د حضرت بی بی مريم د خيټې نه حضرت عيسى ﷺ راپيداکړی چه د ټولو اولوالعزم پنځوپيغمبرانونه يودې. هغه د مسجدمقدس مشرقی طرف ته لاړه ياخود حيض راتلو په وجه ياپه بل څه وجه. ابن عباس ﷺ فرمائی چه په اهل کتاب باندې دالله ﷻ دطرف نه بيت الله ته متوجه کيدل اوحج کول فرض کړې شوی ووخوبې

بی مریم د بیت المقدس نه مشرق طرف ته تلې وه لکه چه د الله ﷻ ارشاد دې په دې وجه دغه خلقو د مشرق طرف ته مونځ کول شروع کړه. د عیسی ﷺ د پیدائش ځایْ هغوی پخپله قبله جوړه کړه.[۱] روایت دې چه کوم ځایْ ته هغه تلې وه هغه ځایْ د دې ځایْ نه لرې او غیرآباد وو. وائی چه هلته د هغې پتې ووکوم ته چه د اوبوورکولوډپاره هغه تلې وه. دا هم وئیلې شوېدی چه هلته نې حجره جوړه کړې وه. د دې د پاره چه د خلقو نه ځان د الله ﷻ په عبادت کښې په اوزګارتیاسره مشغول کړم. والله اعلم.

**دحضرت جبرائیل ﷺ په انسانی شکل کښې راتلل:**-کله چه هغه د خلقو نه لرې شوه او د هغوی اود دې په مینځ کښې پرده راغله نو الله ﷻ خپله امین فرښته حضرت جبرائیل ﷺ راولیګلو. هغه په پوره انسانی شکل کښې هغې ته ښکاره شو دلته د روح نه مراد هم دغه بزرګ فرښته ده.[۲] لکه چه په آیت ﴿نَزَلَ بِهِ الرُّوحُ الْأَمِينُ﴾[۳] الخ کښې دی.ابی بن کعب ﷺ وائی چه په روز ازل کښې کله دبنیادمو د ټولوروحونونه د الله ﷻ دالوهیت اقراراخستې شوې وو په هغه روحونوکښې د حضرت عیسی ﷺ روح هم وو. هم دا روح په انسانی شکل کښې الله ﷻ رالیګلې وو اوهم دې روح هغې سره خبرې کړې وې او د هغې بدن ته ورننوتلې وو خودا قول د غریب کیدونه علاوه منکرهم دې ډیر ممکن دی چه دا بنی اسرائیلی قول وی. هغې چه په دې ځان له ځایْ کښې یوغیرسړې اولیدونو داخیال نې راغلوچه دا چرته خراب سړې نه وی هغه ته نې دالله ﷻ ویره ورکړه. که ته پرهیزګارئې نودالله ﷻ نه اوویریږه اوزه دالله ﷻ پناه غوارم. دومره پته خوهغې ته د ده بشره نه لیګیدلې وه چه یوښه انسان دې اودې ته معلومه وه چه نیک انسان د پاره د الله ﷻ ویره اوخطره کافی ده. فرښتې د هغې ویره حیرانتیا اوخطره لرې کولوډپاره صفااووئیل بل هیڅ ګمان مه کوه زه د الله ﷻ رالیګلې شوې فرښته یم.

وائی چه دالله ﷻ نوم نې واوریدونوحضرت جبرائیل ﷺ اورچیدو او په خپل اصلی صورت کښې راغلو اووئې وئیل زه د الله ﷻ رالیګلې شوې یم د دې د پاره الله ﷻ زه رالیګلې یم چه تاته یویاك نفس څوئ درکول غوارې. د ﴿لِأَهَبَ﴾ دویم قراءت ﴿لِيَهَبَ﴾ دې ابوعمرو بن علاء چه یومشهور اومعروف قاری دې د هغه دغه قراءت دې د دوارو قراءتونوتوجیه او مطلب بالکل صفادې اوپه دوارو کښې استلزام هم دې. دې اوریدو سره بی بی مریم ته نوره هم حیرانتیا اوشوه سبحان الله زما به بچې څنګه کیږی؟زما خو نکاح نه ده شوې اود بدکارئی خو زما خیال هم نه دې. زما بدن سره تراوسه پورې د یوانسان لاس هم نه دې لګیدلې . بدکاره نه یم نو څنګه به زما بچې کیږی. ﴿بغیا﴾ نه مراد زناکاری ده.

**دانسان دپیدائش څلور طریقې:**-لکه څنګه چه په حدیث کښې هم دا لفظ په دې معنی کښې راغلې دې چه ﴿مهرالبغی﴾د زناکارې ښځې ګټه حرام ده.[۴] فرښتې د هغې حیرانتیالرې کولوډپاره اوفرمائیل چه دا ټول رښتیادی خوالله ﷻ په دې قادر دې چه د بغیرخاوند اوبغیرد څه بلې خبرې هم اولاد ورکړی هغه چه څه غواړی کیږی.الله ﷻ به داواقعه اوداماشوم دخلقو د تذکیرسبب جوړوی. دا به د الله ﷻ د قدرت یوه نښه وی دې د پاره چه خلقو ته پته اولګی چه هغه خالق په هرقسم پیداکولوباندې قادر دې. آدم ﷺ نې بغیرد ښځې اوسړی نه پیداکړو حوا بی بی نې صرف دسړی نه بغیرد ښځې پیداکړه اوباقی ټول انسانان نې دښځې اوسړی نه پیداکړل اوعیسی ﷺ نې بغیرد سړی صرف هم د ښځې نه راپیداکړو.

---

[۱] الطبری:۱۸/۱٦۲.

[۲] الطبری:۱۸/۱٦۳.

[۳] ۲٦/الشعراء:۱۹۳.

[۴] صحیح بخاری کتاب البیوع باب ثمن الکلب:۲۲۳۷،صحیح مسلم:۱۵٦۷، ابوداؤد:۳٤۸۱، ترمذی:۱۲۷٦، ابن ماجه :۲۱۵۹، احمد:٤/۱۱۹، ابن حبان:۵۱۵۷.

د تقسيم هم دا خلور صورتونه کيدې شي کوم چه ټول پوره کړې شو اود خپل قدرت کمال او د عظيم سلطنت مثال نې قايم کړو. فی الحقيقت کښې نه د هغه نه بغيرېل څوك معبود اونه پروردګارشته. دا ماشوم به د الله ﷻ رحمت جوړيږي او د الله ﷻ پيغمبر به وی. د الله ﷻ د عبادت دعوت به مخلوق ته ورکوی لکه چه بل آيت کښې دی چه فرښتو اوونيل اې مريم الله ﷻ تاته د خپلې کلمې يو زيرې اوروی د کوم نوم چه به مسيح عيسی بن مريم ﷺ وی چه په دنيااو آخرت کښې به د عزت خاوندوی اووی به هم د الله ﷻ مقرب. هغه به هم په زانګوکښې خبرې کوی او په زيات عمر کښې هم اووی به هم د نيکانو خلقو نه يعنی په وړوکوالی او بوډاوالی کښې به د الله ﷻ د دين دعوت ورکوی.([1])

روايت دې چه حضرت مريم عليهاالسلام اوفرمائيل د خلوت اوياخيوالی په موقعه به ماسره حضرت عيسی ﷺ خبرې کولې او چه زه بهٔ په ډله کې اووم نود الله ﷻ تسبيح به نې بيانوله.داحال د هغه وخت دې کله چه دې زما په خيټه کښې وو. يعنی دا خبرې او تسبيح د هغه ځما په خيټه کښې ووبيا فرمائی چه داکار د الله ﷻ په علم کښې مقدر اومقررشوې دې هغه به په خپل قدرت سره دا کارپوره کوی. ډير ممکن دی چه داقول هم د حضرت جبرائيل ﷺ وی اوداهم کيدې شی چه دا فرمان د الله ﷻ حضور ﷺ ته وی اودې نه مراد د روح پوك وهل وی. لکه چه ارشاد دې د عمران لور بی بی مريم ډيره پاك دامنه بی بی وه. هم مونږ په هغې کښې روح پوك وهلې وو([2]) يوبل آيت کښې دی چه هغه پاکه بيبی په کومه کښې چه مونږ خپل روح پوك وهلو.([3]) نود دې جمله مطلب دا دې چه دا خو به کيږی الله ﷻ د دې اراده کړې ده. والله اعلم.

| |
|---|
| فَحَمَلَتْهُ |
| نو اميدواره شوه مريم په هلك سره |
| نو دهغې په ګيډه شو نو د خپل(حمل) سره يولرې |
| فَانْتَبَذَتْ · بِهٖ · مَكَانًا · قَصِيًّا۝ · فَاَجَآءَهَا |
| نو لاړه يوې ډډې ته مريم \| دغه حمل سره \| يو ځائې ته \| چې لرې وو \| پس راوستله هغه |
| ..........ځائې ته لاړه نود زيږون دردونو.......... دکهجورې يوې ونې ته راوستله |
| الْمَخَاضُ · اِلٰى جِذْعِ النَّخْلَةِ · قَالَتْ · يٰلَيْتَنِىْ |
| دردونو دبچې دپيدا کيدلو \| تنې دونې دکجورې ته \| اوونيل هغې \| افسوس دې په مابانديِ |
| او هغې اوونيل چې هائې افسوس که زه ددې نه مخکښې مړه شوې |
| مِتُّ · قَبْلَ هٰذَا · وَكُنْتُ · نَسْيًا مَّنْسِيًّا۝ |
| چې مړه وې زهٔ \| وړاندې ددې نه \| اووې زهٔ \| هيره دزړونونه وتلې |
| او هيره تيره شوې وې |

**قوله تعالٰی:- فَحَمَلَتْهُ فَانْتَبَذَتْ بِهٖ مَكَانًا قَصِيًّا۝**

**حضرت بی بی مريم د کهجورې د ونې خواله لاړه:** روايت دې چه کله هغې د الله ﷻ فرمان واوريدو اود هغې په وړاندې نې سټ ټيټ کړونوجبرائيل ﷺ دهغې د قميص په ګريوان کښې پوکې اووهلو: په دې

([1]) ۳/آل عمران:۴۵–۴٦.

([2]) ٦٦/التحريم:۱۲.

([3]) ۲۱/الانبياء:۹۱.

سره د الله ﷻ په حکم سره د هغې حمل شو. اوس ډیره اوویریدله او دې خیال سره به نی زړه خوړلو چه زه به خلقو ته څه مخ ښایم؟ که هرڅومره خپل خلاصوالې پیش کړم خودا عجیبه خبره به څوك مني؟ هم په دې ویره کښې هغه وه اوچاته نی هم داواقعه نه وه بیان کړې اوچه هغه کله خپلې ترورد حضرت زکریا ﷺ بی بی له راغله نوهغې ورسره غاړه ملاوکړه او وني ونیل بچې دالله ﷻ په قدرت سره اوسنا د ترورد خاوند پدعا سره زه په دې عمرکښې حامله شوې یم څکه چې زکریا ﷺ دنیك ولد دعا غوښتلې نو بی بی مریم هغې ته اونیل تروري ماسره خوهم داسې واقعه پیښه شوه اوزه هم خپل خان ستا پشان حالت کښې ګنړم. داکورنئی د نبیکورنئی وه هغوی د الله ﷻ په قدرت او د بی بی مریم په صداقت باندې ایمان راوړو. د دې نه پس دا حالت وو چه کله به دې دواړو پاکو بیبیانو ملاقات کولو نو ترور به نی دامحسوس کول چه دهغې ماشوم دهغې دخورخې دماشوم مخې ته ټیټیږی اودهغه عزت کوی.([1])
هغوی په مذهب کښې دا جائزهم وو په دې وجه د حضرت یوسف رونړو او پلار هغه ته سجده کړې وه او الله ﷻ فرښتوته دحضرت آدم ﷺ په وړاندې د سجدې حکم کړې وو.خوزمونږ په شریعت کښې دا تعظیم صرف د الله ﷻ د پاره خاص کړې شو اوبل چا ته سجده کول حرام کړې شو.څکه چه دا د الله ﷻ د تعظیم نه خلاف ده اود هغه شان سره مناسب نه ده.امام مالك ﷫ فرمائی چه حضرت عیسی ﷺاو حضرت یحیی ﷺ د ترور خامن وو. خودا دواړه دترور خامن نه وو بلکه ماماواوخورئې وو اودواړه هم په یووخت کښې په حمل کښې وو. دحضرت یحیی ﷺ موربه اکثر حضرت بی بی مریم ته فرمانیل چه ماته خوداسې معلومیږی چه زما دا بچې ستا بچې ته سجده کوی. امام مالك ﷫ فرمائی چه د دې نه دحضرت عیسی ﷺفضیلت ثابتیږی. څکه چه الله ﷻ دهغه په لاس باندې پخپل حکم سره مړیژوندی کول د مورنه پیداشوی ړانده او برګیان به نی ښه کول.

**عیسی ﷺ څومره موده د مور په خیټه کښې وو:**-د جمهوروقول خودا دې چه هغه نهه میاشتې په خیټه کښې وو.حضرت عکرمه ﷫ فرمائی چه اته میاشتې وو. د دې د پاره د اتومیاشتو د حمل ماشوم عموماً ژوندې نه پاتې کیږی. ابن عباس ﷛ فرمائی چه دحمل کیدو سره ماشوم اوشو.داقول غریب دې ممکن دی چه هغه د آیت ظاهری لفظ سره داګنړلې وی چه دحمل کیدو جدااود ماشوم د پیداکیدوذکر په دې آیاتونوکښې "ف" سره دې او "ف" د تعقیب د پاره راخی خوتعقیب د هرڅیز د هغه په اعتبارسره کیږی لکه د عامو انسانانو د پیداکیدوحال د قرآن آیت ﴿وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنسَانَ مِن سُلَالَةٍ مِّن طِينٍ ۝ ثُمَّ جَعَلْنَاهُ نُطْفَةً فِي قَرَارٍ مَّكِينٍ ۝ ثُمَّ خَلَقْنَا النُّطْفَةَ عَلَقَةً فَخَلَقْنَا الْعَلَقَةَ مُضْغَةً فَخَلَقْنَا الْمُضْغَةَ عِظَامًا فَكَسَوْنَا الْعِظَامَ لَحْمًا ثُمَّ أَنشَأْنَاهُ خَلْقًا آخَرَ ۚ فَتَبَارَكَ اللَّهُ أَحْسَنُ الْخَالِقِينَ ۝﴾([2])کښې شوې دې چه مونږ انسان د کړنګیدلې خاورې پیداکړې دې بیاموهغه دنطفه په شکل کښې په رحم کښې حصار کړو بیامود نطفه نه چکنی جوړه کړه بیاد دې چکنی نه دغوښې ټکړا جوړه کړه بیاددې غوښې ټکړې نه هډوکی پیداکړه.دلته هم په دوو ځایونو کښې "ف"ده اوده هم د تعقیب د پاره. خود حدیث شریف نه ثابت دی د دواړو حالتونو په مینځ کښې د څلویښتو ورځو فاصله وی.([3])
د قرآن کریم په بل آیت کښې دی ﴿أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ أَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَتُصْبِحُ الْأَرْضُ مُخْضَرَّةً ۗ إِنَّ اللَّهَ لَطِيفٌ خَبِيرٌ ۝﴾([4]) آیا تاونه لیدل چه الله ﷻ د آسمان نه باران وروی؟ نوزمکه آبادیږی، ښکاره خبره ده چه د اوبوور یدونه ډیره موده پس شینکې راتوکیږی. حالاتکه "ف" دلته هم ده نوتعقیب د هرڅیز د هغه څیز په اعتبارسره کیږی. نیغه شان خبره خوداده چه په مثال د عادت د ښځو د خپل حمل زمانه پوره تیره شوه.

---

[1]) حاکم:۲/۵۹۳ ح ٤١٥٦ وسنده حسن وهومن الاسرائیلیات.
[2]) ۲۳/المؤمنون:۱۲.
[3]) صحیح بخاری کتاب بدء الخلق باب ذکر الملائکة صلوات الله علیهم:۳۲۰۸، صحیح مسلم:۲٦٤۳.
[4]) ۲۲/الحج:٦۳.

**د بی بی مریم سره د مسجد دخادم مکالمه اودهغې جوابونه**:-دبی بی مریم سره په مسجد مقدس کښې. د جمات یوخادم اویوصاحب بل هم وود هغه نوم یوسف نجاروو هغه چه کله د حضرت بی بی مریم داحال اوکتلونو اول خو نی دا حالت بد اوګنړلو د حضرت بی بی مریم د تقوی پرهیزګارئی عبادت اوریاضت د رب نه ویریدل اوحق کتلوته خیال کولوسره هغه د زړه دا خرابې ویستل غوښتل خو چه څنګه ورځې تیریدلې حمل ښکاره کیدلو بس اوس خو چپ پاتې نه شو یوه ورځ نی ډیر په ادب سره اوونیل بی بی مریم زه تاته د یوې خبرې تپوس کوم خفه کیږه مه. آیا بغیرد تخم نه د یوې ونې کیدل بغیرد دانې فصل کیدل بغیرد پلار نه ماشوم هم کیدې شی؟ هغه د ده په مطلب پوهه شوه اوجواب نی ورکړو چه دا هرڅه ممکن دی. دټولونه اول چه الله ﷻ کومه ونه پیداکړې وه هغه بغیرد تخم نه وه. د ټولونه اول چه الله ﷻ کوم فصل راټوکولې وو هغه بغیرد دانې نه وو دټولونه اول الله ﷻ حضرت آدم ﷺ پیداکړو هغه بغیرد پلار نه وو بلکه بغیرد مور نه هم وو. د هغه په عقل کښې خودا خبره راغله اوبی بی مریم او د الله ﷻ قدرت نی دروغ اونه ګنړلو. اوس چه بی بی مریم صدیقه دا اوکتل چه د قوم خلق به په هغې باندې تهمت لګوی نوهغې دا ټول پریخودل اوډیره لرې چرته لاړه.

**دخلقود تهمتونو په وجه بی بی مریم چرته لرې لاړې**:-امام محمدبن اسحاق رحمه الله فرمانی کله چه د حمل حالات ښکاره شو نوقوم دمسخرو آوازونه کول اوخبرې جوړول نی شروع کړې اوپه حضرت یوسف نجارغونډې صالح سړی باندې دا تهمت اولګولو نو هغه د دې ټولونه چرته غاړې ته شوه چه نه څوك ګوری او نه څوك دا اوګوری. کله چه د ماشوم پیداکیدو درد شروع شو نوهغه د یوې کهجورې بیخ ته کیناستله واتی چه داخلوت خانه د بیت المقدس مشرقی طرف ته حجره وه([1])داهم یوقول دې چه کله هغه دشام اومصر مینځ ته راورسیده هغه وخت دماشوم کیدو دردشروع شو([2]) بل یوقول دې چه د بیت المقدس نه هغه اته میله تلې وه دهغه کلی نوم بیت اللحم وو([3]) اول دمعراج دواقعه په بیان کښې یو حدیث تیرشوې دې په کوم کښې چه دی د عیسی ﷺد پیدائش ځائ هم بیت اللحم وو.([4]) والله اعلم.

**حیاناکه او پاکدامه ښځه په تهمتونو مرګ ته ترجیح ورکوی**:-مشهوره خبرهم دا ده اود نصرانیانوخو په دې خبره باندې اتفاق دې اوپه دې حدیث کښې هم دی که دا صحیح وی. دې وخت کښې هغې د مرګ غوښتنه کوله. ځکه چه د دین دفتنې په وخت کښې داخواهش کول هم جائز دی. پوهیدله چه څوك به هغې ته رښتونې نه وانی. دهغې بیان کړې شوې واقعه به هرڅوك دروغ ګنړی دنیابه هغه پریشانه کوی اوپه عبادت او اطمینان کښې به نی خلل پریوځی. هرسړې به نی په بدوسره یادوی اوپه خلقو به خراب اثر پریوځی.نوونی فرمانیل چه افسوس زه ددې حالت نه وراندې اوچته کړې شوې ووم.([5])بلکه افسوس چه زه خوهډو پیداشوی نه وې. دومره د حیانه شرمیدله چه هغې په دې تکلیف باندې مرګ ته ترجیح ورکړه اوخواهش نی کولو چه افسوس زه چرته ورك شوې اود یاد نه وتلې څیز وې چه نه نی څوك یادکړې نه نی لټون اوکړې او نه نی ذکر اوکړې. په احادیثوکښې د مرګ غوښتلونه ممانعت دې. مونږ داروایتونه د آیت ﴿ تَوَفَّنِيْ مُسْلِمًا وَّاَلْحِقْنِيْ بِالصّٰلِحِيْنَ ﴾([6])الخ په تفسیرکښې بیان کړې دې.

---

[1]) الطبری:۱۸/۱٦۱.

[2]) الطبری:۱۹/۱۷۰.

[3]) الطبری:۱۹/۱۷۰.

[4]) نسائی کتاب الصلوة باب فرض الصلوه.....٤٥۱ وسنده حسن.

[5]) الطبری:۱۸/۱۷۲.

[6]) ۱۲/یوسف:۱۰۱.

فَنَادٰىهَا
انو فرښتي اواز اوکړو هغې ته
بيا (فرښتې) ورته دلاندې نه اړخ ته اواز اوکړو چې هيڅ غم مه

مِنْ تَحْتِهَآ اَلَّا تَحْزَنِىْ قَدْ جَعَلَ رَبُّكِ تَحْتَكِ سَرِيًّا۝
دښکته طرف دهغې نه | چې مه غمژنه کيږه | پيدا کړې ده | رب ستا | ښکته طرف ستانه | يوه چينه
کوه ستا رب ستا در پښو لاندې يوه چينه راپيدا کړې ده

وَهُزِّىْٓ اِلَيْكِ بِجِذْعِ النَّخْلَةِ تُسٰقِطْ عَلَيْكِ رُطَبًا جَنِيًّا۝
اوا وخوزوه ته | خان خپل ته | تنه دونې دکجورې | رااوبه غورزوي | تاته | کجورې | تازه
او د کهجورې دابوټې خپل خان ته راوخنډه ددې نه به درته تازه کهجور راوغورزيږي

فَكُلِىْ وَاشْرَبِىْ وَقَرِّىْ عَيْنًا فَاِمَّا تَرَيِنَّ مِنَ الْبَشَرِ اَحَدًا
پس خوره | او ښکه | او يخې کړه | سترګې | نوکه چرې | او ليدلو تا | دانسانانو نه | يو کس
نو ته خوره اوڅښه اوخپلې سترګې (دخوئې په ديدن) يخوه اوکه چرته يو بنيادم اووينې

فَقُوْلِىْٓ اِنِّىْ نَذَرْتُ لِلرَّحْمٰنِ صَوْمًا فَلَنْ اُكَلِّمَ
نو اووايه(ورته) ته | چې بيشکه نذر منلي دې ما | دپاره درحمن | دروژې | انوهرګز به خبرې نه کوم زه
نو(په اشارت) ورته اووايه چې ما درحمان (الله ﷻ)په نامه دروژې نذر منلې دې نو زه نن دهيچا بنيادم

الْيَوْمَ اِنْسِيًّا۝
نن ورخ | ديو انسان سره |
سره خبرې اترې نه کوم

**قوله تعالىٰ:- فَنَادٰىهَا مِنْ تَحْتِهَآ اَلَّا تَحْزَنِىْ**
**د حضرت مريم عليها السلام د پاره د الله ﷻ د طرف نه انعامات:-** د (مِنْ تَحْتِهَا) دويم قراءت (مَنْ تَحْتَهَا) هم دې.
داخطاب کونکې حضرت جبرائيل ﷺ وو[1] دحضرت عيسى ﷺ خو ړومبې کارهم هغه وو چه هغه د خلقو په وړاندې دخپلې مور د خلاصى د پاره اوپاکدامنئ د پاره کړې وو. د هغه وادئ د لاندې غارې نه د دې ويرې او خطرې په عالم کښې حضرت جبرائيل ﷺ دا آسانى ورکړې وه. دا قول هم ونيلې شوې دې چه داخبره هم حضرت عيسى ﷺ کړې وه. آواز راغلو چه خفه کيږه مه ستاد پښولاندې ستارب د صفا ښکلې اوخوږو اوبو چينه روانه کړې ده دا اوبه ته اوڅکه.([2]) يوقول دا دې چه د دې چينې نه مراد پخپله حضرت عيسى ﷺ دې.خواولني قول ډير ښکاره دې. د دې اوبودذکرنه پس هم دخوراك ذکر دې چه د کهجورې دا ونه اوخوزوه د دې نه به تازه اومزيدارې کهجورې راپريوځى هغه خوره.
**دا ونه بالکل خالي وه په ځنډلو سره ميوې راتلې:-** وائى چه دا ونه اوچه پرته وه اوداقول هم دې چه ميوه داره وه. په ظاهره داسې معلوميږى چه دغه وخت دا ونه د کهجورونه خالي وه خود هغوى په خوزولوسره د دې نه د الله ﷻ په قدرت سره کهجورې راځنډلې کيدې. خوراك ځښاك هرڅه موجود شو او اجازت هم

---
[1] الطبرى:۱۸/۱۷۳.
[2] الطبرى:۱۸/۱۷۵.

ورکړې شو اوفرمائيلې شو خوره څکه اوزړه خوشحاله ساته.دحضرت عمرو بن ميمون رحمه الله فرمان دې چه دنفاس والا ښځود پاره د لمدواواوچوکهجورونه بل بهتر هيڅ څيزنشته.(۱) يو حديث کښې دی د کهجورې د ونې اکرام کوئی.دادهغه خاورې نه پيداکړې شوې ده دکوم نه چه آدم عليه السلام پيدا کړې شوې وو دې نه بغير هيڅ يوه ونه د نر اوښځې يوځائ کولونه نه لوئيږی. د ښځو د ماشوم د پيدا کيدو په وخت کښې هغوی ته لمدې کهجورې ورکونې که ملاونه شی نو اوچې صحيح دی. هيڅ يوه ونه د الله ﷻ په نيز د دې نه زياته د مرتبې والا نشته.ددې د پاره نی ددې لاندې حضرت بی بی مريم راکوزه کړه.(۲)داحديث بالکل منکردې. د (تسقط) دويم قراءت (تساقط) او(تسقط)هم دې. مطلب د دې ټولوقراءتونوهم يودې.بيا ارشاد اوشو چه چاسره خبرې مه کوه په اشاره نی پوهه کوه چه زه نن روژه يم. ياخومراددادې چه دهغوی په روژه کښې کلام کول ممنوع وويادا چه هم دخبروکولونه روژه ساتلې ده.(۳)

**زمونږ په شريعت کښې د خبرو نه روژه نشته:**-حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه له دوه سړی راغله يوسلام اوکړو بل اونه کړو. هغوی تپوس اوکړوددې څه وجه ده؟ خلقو وئيل چه ده قسم خوړلې چه نن به چاسره خبرې اونه کړم. هغوی اوفرمائيل دا مات کړه اوسلام کلام شروع کړه داخو صرف هم د حضرت بی بی مريم د پاره وو څکه چه الله ﷻ ته دهغې صداقت کرامت ثابت کول منظوروودې دپاره نی داعذر جوړ کړې وو. حضرت عبدالرحمن بن زيد رحمه الله فرمائی کله چه حضرت عيسی عليه السلام خپل مور ته اووئيل ته مه ويريږه نو هغې وئيل زه څنګه نه ويريږم زه د خاوند والا نه يم د چا د ملکيت وينځه نوکره نه يم ماته به دنياڅه وائی چه دا بچې د چا دې؟ زه به خلقوته څه جواب ورکولې شم؟ کوم يوعذربه ورته پيش کولې شم هائی افسوس چه زه د دې نه وړاندې مړه شوې ووم اوکاش چه زه نسيامنسيا يعنی هيره کړې شوې جوړه شوې ووم. هغه وخت حضرت عيسی عليه السلام وئيل مورې تاله چاسره د خبروکولو ضرورت نشته پخپله به دې ټولو سره اوګورم. ته خوهغوی ته صرف دا ښايه چه نن ما د چپ پاتې کيدونذر منلې دې.

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَاَتَتۡ | بِهٖ | قَوۡمَهَا | تَحۡمِلُهٗ |
| نو راغله | سره ددغه بچي | قوم خپل ته | چې راغستي ني ووٴ هغه |

بيا هغې ماشوم په غيږ کښې واخستو اوخپل قوم ته ورغله

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالُوۡا | يٰمَرۡيَمُ | لَقَدۡ جِئۡتِ | شَيۡـًٔا | فَرِيًّا | يٰۤاُخۡتَ هٰرُوۡنَ | مَا كَانَ |
| اووئيل خلقو | اے مريم | بيشکه راغلې ته | يو کار | ناکاره ته | اے خور دهارون | نه ووٴ |

هغوئ ورته اووئيل چې اې مريم! تادير بدکار کړې دې ائې دهارون خورې!

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اَبُوۡكِ | امۡرَاَ | سَوۡءٍ | وَّمَا كَانَتۡ | اُمُّكِ | بَغِيًّا | فَاَشَارَتۡ |
| پلار ستا | سړي | دبدئ | اونه وه | مور ستا | بدکاره | نو اشاره اوکړه هغې |

ستاپلار څه خراب سړي نه وو اونه ستامور بدکاره وه په دې باندې مريم دماشوم طرفته اشاره اوکړه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اِلَيۡهِ | قَالُوۡا | كَيۡفَ | نُكَلِّمُ | مَنۡ | كَانَ | فِى الۡمَهۡدِ |
| هغه بچې ته | اووئيل خلقو | څنګه | خبرې اوکړومونږ | دهغه چاسره | چې دې هغه | په زانګو کښې(پروت) |

هغوئ اووئيل چې مونږ په زانګو کښې پروت ماشوم سره څنګه خبرې اوکړو

(۱) الطبری:۱۸/۱۷۹.
(۲) مسندابي يعلى ۴۵۵.
(۳) الطبری:۱۸/۱۸۲.

صَبِيًّا ﴿٢٩﴾ قَالَ إِنِّي عَبْدُ اللَّهِ ۖ آتَانِيَ الْكِتَابَ وَجَعَلَنِي

يو ماشوم | اوونیل ماشوم | بیشکه زهٔ بنده دالله یم | هغه راکړو ماته کتاب | او جوړ نې کړم زهٔ

عیسی ﷺ اوونیل چې بیشکه زه دالله ﷻ بنده یم هغه ماله کتاب راکړې دې او زه ئې نبی جوړ کړې یم

نَبِيًّا ﴿٣٠﴾ وَجَعَلَنِي مُبَارَكًا أَيْنَ مَا كُنتُ وَأَوْصَانِي

نبی | اووې ګرځولم زهٔ | برکتی | هر چرته چې | یم زهٔ | او حکم ئې اوکړو ماته |

او زه ئې برکتی کړې یم په هر ځائې کښې چې زه یم اوهغه ماته دمونځ کولو اودزکوة ورکولو

بِالصَّلَاةِ وَالزَّكَاةِ مَا دُمْتُ حَيًّا ﴿٣١﴾ وَبَرًّا

په مانځه سره | او په زکاة سره | تر څو چې یم زهٔ | ژوندې | او جوړنې کړم زهٔ نیکی کونکې

حکم راکړې دې ترڅو پورې چې ژوندې یم او زه دخپلې مور خدمت ګزار جوړ کړې یم اوسرکش

بِوَالِدَتِي وَلَمْ يَجْعَلْنِي جَبَّارًا شَقِيًّا ﴿٣٢﴾ وَالسَّلَامُ عَلَيَّ يَوْمَ

دمورخپلې سره | اوګرځولې ئې نه یم زهٔ | سرکشه | بدبخته | او سلام دې | په ماباند | په کومه ورځ

اوبدبخت ئې نه یم پیدا کړې اوپه ماباندې سلام دې په کومه ورځ چې زه پیدا شوې یم

وُلِدتُّ وَيَوْمَ أَمُوتُ وَيَوْمَ أُبْعَثُ حَيًّا ﴿٣٣﴾

چې پیدا شوم زهٔ | او په کومه ورځ | چې به مرم زهٔ | او په کومه ورځ | چې به راپاځولې کیږم زهٔ | ژوندې

اوپه کومه ورځ چې به زه مړ کیږم |..................او په کومه ورځ چې به زه دوباره ژوندې کولې شم

**قوله تعالی:- فَأَتَتْ بِهِ قَوْمَهَا تَحْمِلُهُ ۖ**

**مریم علیهاالسلام حضرت عیسی ﷺ راوړې راځی:-** حضرت مریم بی بی د الله ﷻ داحکم هم اومنلو او خپل ماشوم ئې په غیږکښې راوړو اوخلقو له راغله. کتلوسره هریوګوته په خُله شواو دهرې خُلې نه اووتل مریم تاخوډیرخراب کاراوکړو[1] نوف بکالی ﷬ فرمائی چه خلق دحضرت بی بی مریم په لټون کښې وتلې ووخود الله ﷻ شان وو چه دهغې چرته هم پته اونه لګیده. په لارکښې یوښاروان ملاؤشو هغه نه ئې تپوس اوکړو چه په لاره کښې تاداسې داسې ښځه لیدلې ده؟ هغه ونیل چه نه خو ماد شپې یوه عجیبه خبرد دا اوکتله چه زمادا ټولې غواګانې ددې وادئی طرف ته په سجده کښې راپریوتلې. ما ددې نه وړاندې داسې قسم واقعه نه ده لیدلې اومأپخپلوسترګواوکتل چه دې طرفته یونور ښکاریدو. نو هغوئ په دغه طرف روان شو چه مخامخ دعیسی ﷺ مور ماشوم په غیږ کښې راختې ښکاری.د دوی په کتلوسره هغې خپل ماشوم په غیږ کښې کیناستله دې ټولو هغه راګیره کړه او خبرې جوړولې.

**د اخت هارون څه مطلب دې؟:-** دهغوی دا وینا چه اې د هارون خور دې نه مراد دا دې چه هغه د حضرت هارون ﷺ دنسل نه وه.([2])یادهغوی په کورکښې هارون نومې یونیك سړې وواوهم دهغه په شان عبادت اوریاضت د حضرت بی بی مریم هم وو. په دې وجه هغې ته د هارون خور اوونیلې شوه. څوك وائی چه هارون نومې یوبدکاره سړې وو په دې وجه خلقو د پیغور په ټوګه هغې ته د هغه خور اوونیل.

**د هارون خور ئې ورته ولې اوونیل:-** ددې ټولواقوالونه لوئ یوغریب قول داهم دې چه هغه دحضرت هارون ﷺ اوحضرت موسی ﷺ هم هغه سکه خورده کومې له چه دحضرت موسی ﷺ مور کله حضرت موسی

---

[1] الطبری:۱۸/۱۸۵.

[2] الطبری:۱۸/۱۸۷.

ﷺ په پيټۍ کښې واچولو او په درياب کښې ئې پريخې وو نوهغې ته ئې وئيلې وو چه دې سره شاته شاته په غاړه غاړه څه چه د چا خيال هم رانه شي. دا قول خو بالکل غلط معلوميږي څکه چه په قرآن پاك کښې دي چه حضرت عيسیٰﷺ د نبي اسرائيلوآخرى نبي وو. د هغوى نه پس صرف خاتم الانبياء حضرت محمد مصطفیﷺ نبي شوې وو. په صحيح بخارى کښې چه حضورﷺ فرمائي چه د عيسیٰ بن مريم ﷺ سره د ټولونه زيات نيزدې زه يم څکه چه زما اود هغه په مينځ کښې بل څوك نبي نه دې تيرشوې([1])که دمحمدبن کعب قرظي رحمه الله داقول چه هغه د هارون ﷺ سکه خوروه ټيك وى نو دا به منلې کيږي چه هغه دحضرت داؤد ﷺ اوحضرت سليمان ﷺ نه هم وړاندې وو څکه چه په قرآن مجيد کښې موجود دي حضرت داؤد ﷺ د حضرت موسیٰ ﷺ نه پس وو. اوګورئې آيت ﴿أَلَمْ تَرَ إِلَى الْمَلَإِ مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ مِنْ بَعْدِ مُوسَىٰ﴾([2])په دې آياتونو کښې د حضرت داؤد ﷺ واقعه اود هغه د جالوت قتل کولو بيان شوې دې اولفظ موجود دې چه دا د موسیٰ ﷺ واقعه ده. هغه ته چه کومه غلطي لګيدلې ده هغه د تورات هغه عبارت دې په کوم کښې چه دى کله چه موسیٰ ﷺ سره د بنى اسرائيلوپه درياب پورې وتلو اوفرعون سره دخپل لښکره ډوب شو اومړه شو هغه وخت مريم بنت عمران چه د موسیٰ ﷺ اوهارون ﷺ خوره وه په نغاره باندې د الله ﷻ د شکر ترانه وئيله اوهغې سره نورې ښځې هم وې. د دې عبارت نه قرظي رحمه الله داګنړلې چه دحضرت عيسیٰ ﷺ مور بى بى مريم ده حالانکه دا غلطه ده. ممکن ده چه د حضرت موسیٰ ﷺ د خور نوم هم مريم وى خودا چه هم دغه مريم د حضرت عيسیٰ ﷺ مور وه د دې هيڅ ثبوت نشته بلکه دا ناممکن دي. داکيدې شي چه د دواړونومونه يو وى په يو نوم باندې نور نومونه کيخودې شي او په بنى اسرائيلوکښې خودا عادت وو چه خپل نومونه به ئې دانبياؤ کرامو اولياؤکرامو په نومونوباندې کيخودل.

مسنداحمدکښې مغيره بن شعبه ﷺ نه روايت دې زه رسول الله ﷺ نجران ته اوليګلم هلته مانه بعضې نصرانيانوتپوس اوکړو چه تاسو﴿يَا أُخْتَ هَارُونَ﴾ لولئې حالانکه موسیٰﷺ خودحضرت عيسیٰ ﷺ نه ډير وړاندې تيرشوې دې. ماځوځه جواب ورنه کړې شو. کله چه زه مدينې ته راغلم نود حضور ﷺ په وړاندې مې داذکر اوکړو نو حضورﷺاوفرمائيل تا هغوى ته هم په هغه وخت ولې جواب ورنه کړو چه هغه خلقو به د خپلو انبياؤ او نيکانو خلقو نومونه په خپل اولاد باندې برابر د هغوى په نومونوباندې کيخودل([3]) په صحيح مسلم کښې هم دا حديث شته. امام ترمذى دا حسن صحيح غريب ښائي. يوځل حضرت کعب ﷺ وئيلې ووچه دا هارون د موسیٰ ﷺ رور هارون ﷺ نه دې. په دې باندې حضرت ام المؤمنين حضرت عائشه k انکار اوکړو نو هغه اووئيل که تاسود رسول الله ﷺ نه څه اوريدلې وى نو اووايه نو مونږ ته منظور دى ګنې په تاريخى توګه خود هغوى په مينځ کښې شپږ سوه کاله فاصله ده. دې اوريدو سره حضرت عائشه k چپ شوه. په دې تاريخ کښې زمونږ لږ شان تامل دې. قتاده رحمه الله فرمائي دمريم کورنئې د بره نه نيك صالح او ديندار ه وه اودادينداري لکه برابره دوراثت راروانه وه. بعضې خلق داسې هم وى اوبعضې کورنئې ددې خلاف هم وى چه د بره نه د ښکته پورې ټول هم بدوى. دا هارون ډير بزرګ سړې وو په دې وجه په بنى اسرائيلوکښې د هارون نوم کيخودو رواج روان شوې وو. دلته دا هم ذکر دې چه په کومه ورځ د حضرت هارون ﷺ جنازه اووتله د هغوى په جنازه کښې هم د دې هارون نوم څلويښت زره سړى وو.

---

[1]) صحيح بخارى كتاب احاديث الانبياء باب قول الله تعالى ﴿واذكر في الكتاب مريم اذانتبذت من اهلها...﴾:٣٤٤٢،صحيح مسلم٢٣٦٥، احمد:٤٦٣/٢، ابن حبان:٦١٩٥.

[2]) ٢/البقرة:٢٤.

[3])صحيح مسلم كتاب الادب باب النهى عن التكنى بابى القاسم.....:٢١٣٥، ترمذى:٣١٥٥، السنن الكبرى: ١١٣١٥، احمد:٢٥٢/٤.

**حضرت عيسی ﷺ د مور په غيا کښې خبرې کولوسره ګواهي ورکړه**:-غرض دا چه هغه خلقو ملامته کوله چه تانه دا بدکار څنګه اوشو ته خود نيکې مور لورنې مور پلار دواړه نيکان تولنه کورنئې پاکه نو بيا تا داڅنګه حرکت اوکړو؟دقوم د ترخې اوخرابې خبرې اوريدوسره هغې دارشاد مطابق خپل بچي ته اشاره اوکړه چه ده نه تپوس اوکړ. دې خلقو له په تاؤ باندې نور هم تاؤ ورغلوچه ګوره څنګه په کلکه باندې جواب ورکوی او مونږ پاګلان جوړه وی. ښه ده اوس به مونږ د غيږې د ماشوم نه څه تپوس کوو اوهغه به مونږ ته څه اووائی؟

**د عيسی ﷺ ماشوموالی کښې د توحيد اود خپلې مور د براءت بيان**:-پدې کښې بغيرد غوښتلونه هغه خبرې شروع کړې خلقوزه د الله ﷻ يوبنده يم د تولونه رومبې کلام دحضرت عيسیﷺ هم دا وود الله ﷻ پاکی اوتعظيم ئې بيان کړو اود خپلې غلامئې او بندګئې اعلان ئې اوکړو.د الله ﷻ ذات ئې د اولاد نه پاک اوخودلو بلکه ثابته ئې کړه څکه چې دالله ﷻ اولاد نه وی. بيائې د خپل نبوت اظهار اوکړو چه ماته هغه کتاب راکړې دې او زه ئې خپل نبی جوړکړې يم. په دې کښې دخپل مور بې ګناهی بيان کړه بلکه دليل ئې هم ورکړو چه زه خود الله ﷻ پيغمبريم. رب ماته خپل کتاب هم رانصيب کړې دې. وائی چه کله خلقود هغوی مور بی بی پسې خبرې کولې هغه وخت هغه پنئې څکل هغه ئې پريخودل او په اړخ شو د هغوی طرف ته متوجه جواب ئې ورکړو. وائې چه د دې قول په وخت کښې د هغوی ګوته اوچته وه او لاس ئې د اوږې پورې اوچت کړې وو. عکرمه رحمه الله فرمائی چه ماته ئې کتاب راکړو د دې دا مطلب دې چه د راکولواراده ئې کړې ده. به پوره کيږی. حضرت انس ﷺ فرمائی چه هم هغه وخت هغه ته ياد وو تول ئې زده کړې پيدا شوې وو. خود دې قول سه تبک نه دې. زه چه چرته هم يم خلقو ته نيکی ښايم او هغوی ته نفع رسونکې يم.[1] يوعالم د څان نه لوئ عالم سره ملاو شو اومعلومات ئې اوکړه چه ماته د خپل کوم يوعمل د اعلان کولو اجازت دې؟ وئې فرمائيل د ښې خبرې کولو اود خرابې خبرې د نه کولو څکه چه هم دا اصل دين دې اوهم دا د انبياء الله ميراث دې. هم دا کار هغوی‌ته حواله کيده نو اجماعی مسئله ده چه د حضرت عيسی ﷺ د دې عام برکت نه مراد د نيکئې حکم کول او بدئې نه منع کول دی.کوم څائ کښې چه په ناسته ولاړه تګ راتګ دا شغل برابر جاری وی([2]) کله هم د الله ﷻ د خبرورسيدونه نه منع کيږی. فرمائی ماته حکم ملاوشوې دې چه د پوره زندګئی پورې د مونځ او زکوة پابنديم. هم دا حکم زمونږ نبی ﷺ ته ملاوشو.ارشاد دې ﴿ وَاعْبُدْ رَبَّكَ حَتّٰى يَأْتِيَكَ الْيَقِيْنُ﴾([3]) ترمرګه پورې د الله ﷻ په عبادت کښې لګيااوسه نوحضرت عيسی ﷺ هم اوفرمائيل چه هغه دا دواړه کارونه زما د ژوندآخری ساعت پورې اوليکل.(ددې نه د تقدير ثبوت او منکرانود تقدير ترديدهم کيږی) د رب داطاعت د دې حکم سره ماته د خپلې موردخدمت کولو هم حکم ملاوشوې دې.عموماً په قرآن پاک کښې داواړه څيزونه په يوڅائ بيانيږی. لکه چه ارشاد دې ﴿وَقَضٰى رَبُّكَ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّآ اِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا﴾([4]) بل آيت ﴿اَنِ اشْكُرْ لِيْ وَلِوَالِدَيْكَ اِلَيَّ الْمَصِيْرُ﴾([5]) کښې.هغه زه سرکش نه يم جوړکړې زه د هغه د عبادت نه يا د مورد اطاعت نه سرکش او کبرکونکې جوړيدو سره بدبخت جوړ شم. وائی چه جبار او شقی هغه دې چه په غصه کښې راشی او وينې تويوی. فرمائی چه دمور پلارنافرمانه هم هغه وی چه بدبخت او سرکش وی. بداخلاق هم هغه وی چه کبر او غرور کوی.

---

[1] الطبری:۱۸/۱۹۱.
[2] الطبری:۱۸/۱۹۱.
[3] ۱۵/الحجر:۹۹.
[4] ۱۷/الاسراء:۲۳.
[5] ۳۱/لقمان:۱٤.

ذكر دي چه يوخل د هغه معجزي كتلوسره يوې ښځې په حيرانتياسره اوونيل مباركه ده هغه خيټه په كومه كښې چه پاللې شوې نى اومباركه ده هغه سينه كومې چه تاله پئى دركړې دى. هغوى جواب وركړو چه مبارك دې هغه چا چه د الله ﷻ د كتاب تلاوت اوكړو بيائى تابعدارى اوكړه اوسركش او بدبخت جوړنه شو.

بيا فرمانى زما د پيداكيدود مرګ نه پس د بيا راژوندى كيدو په ورځ باندې په ماسلامتى ده. دې نه هم د هغوى د بندګئى اود ټول مخلوق د يو الله ﷻ مخلوق كيدل ثابتيږى چه هغوى د انسانانو په شان د عدم نه په وجود كښې راغله بيا به د مرګ خوند هم څكي او د قيامت په ورځ به دوباره هم راپاسى. او دادريواړه موقعه سختې او ګرانې دى په هغوى باندې به آسانې وى نه به څه ويره وى نه څه پريشانى بلكه امن آرام اوسلامتى اوهم سلامتى به وى. صلوة الله وسلامه عليه.

| |
|---|
| ذٰلِكَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ ۚ قَوْلَ الْحَقِّ الَّذِي فِيهِ يَمْتَرُونَ ۝ |
| دغه \| عيسى(خوئى) دمريم دې \| او دا ده خبره \| حقه \| هغه \| چې په هغې كښې\| خلق شك كوى |
| دا عيسى ابن مريم ووا \| دا هغه رښتيا حقيقت دې \| په كوم كښې چې خلق شك كوى |
| مَا كَانَ لِلَّهِ أَنْ يَتَّخِذَ مِنْ وَلَدٍ ۖ سُبْحَانَهُ ۚ إِذَا قَضَىٰ أَمْرًا |
| نه ښائي الله لره \| چې اونيسى \| خوئى \| پاك دې هغه \| كله چې \| هغه حكم اوكړى\| ديو كار |
| دالله ﷻ سره نه ښائى \| چې هغه دې ځان دپاره اولاد اونيسى\| هغه پاک دې \|كله چې د يو كار فيصله |
| فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُ كُنْ فَيَكُونُ ۝ وَإِنَّ اللَّهَ رَبِّي |
| نو بيشكه \| هغه وائى \| هغه كار ته \| موجود شه \| نوهغه موجود شى \| او بې شكه الله \| رب زما دې |
| اوكړى\| نو دومره ورته اووائى چې موجود شه \| نو هغه كار موجودشى \|اوبيشكه الله ﷻ زماهم رب دې |
| وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوهُ ۚ هَٰذَا صِرَاطٌ مُسْتَقِيمٌ ۝ فَاخْتَلَفَ الْأَحْزَابُ |
| اورب ستاسو دې \| پس عبادت كوئ د هغه \| دا \| الار ده \| نيغه \| نو اختلاف اوكړو |
| او ستاسو هم رب دې\| نوصرف د هغه عبادت كوئ \|هم دغه (دشريعت) سمه لار ده \| بيا داهل كتابو ډلې |
| مِنْ بَيْنِهِمْ ۖ فَوَيْلٌ لِلَّذِينَ كَفَرُوا |
| ډلو \| په منځ خپل كښې \| نو تباهى ده \| دپاره د هغه كسانو \| چې كفر ئې اوكړو \| |
| په خپل مينځ كښې سره مختلف شوې \| نوهغه خلقو دپاره افسوس دې \|چې په لويه ورځ (دقيامت) دالله |
| مِنْ مَشْهَدِ يَوْمٍ عَظِيمٍ ۝ |
| دحاضريدو \| دورځې لوئې نه \| |
| د حاضرئ نه ئې انكار كړې دې\| |

**قوله تعالىٰ:- ذٰلِكَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ ۚ**

**دحضرت عيسى ؑ اصل واقعه:-** الله ﷻ خپل رسول محمد ﷺ ته فرمائى دعيسى ؑ په واقعه كښې چه دكوموخلقو اختلاف وو په هغوى كښې چه كومه خبره صحيح وه نوهغه هم دومره وه څومره چه مونږ

بیان اوفرمائیلو.دقول دویم قراءت قول هم دي. دابن مسعود ﷺ په قراءت کښې (قول الحق) دي.(١) د قول رفع ډیره ښکاره ده.لکه (الحق من ربك)(٢) الخ کښې دابیان فرمائیلوسره چه عیسی ﷺ د الله ﷻ نبي وو اودهغه بنده او بیا دخپل نفس پاکوالي بیان فرمائي چه دالله ﷻ د شان نه پریوتلي خبره ده چه دهغه اولاد وي.دا جاهلان ظالمان چه دخان نه کومي خبرې خوروي د هغې نه الله ﷻ پاك او لرې دې. هغه چه کوم یوکارکول غواړي نوهغې له دسامان یا اسبابوضرورت نه وي.فرمائي چه اوشه نوهم هغه وخت هغه کاراوشي یوخواحکم اوشي اوبل خوا څیز تیار وي. لکه چه ارشاد دي (إِنَّ مَثَلَ عِيسَىٰ عِندَ اللَّهِ كَمَثَلِ آدَمَ خَلَقَهُ مِن تُرَابٍ ثُمَّ قَالَ لَهُ كُن فَيَكُونُ ۝ الْحَقُّ مِن رَّبِّكَ فَلَا تَكُن مِّنَ الْمُمْتَرِينَ ۝)(٣) یعني دعیسی ﷺ مثال د الله ﷻ په نیز لکه د حضرت آدم ﷺ دي. آدم ﷺ ئې د خاورې نه جوړکړو وئې فرمائیل اوشه هم هغه وخت هغه اوشو دا بالکل ربښتیا دی اود الله ﷻ فرمان دې. تاله په دې کښې هیڅ قسم شك نه دی کول پکار. حضرت عیسی ﷺ خپل قوم ته دا هم فرمائیل چه زمااوستاسودټولورب الله ﷻ دې تاسو ټول هم د هغه عبادت کوئی نیغه لار کومه چه ما د الله ﷻ د طرف نه راوړې ده هم دا ده چه دهغه تابعداری کونکی په هدایت باندې دی اود هغه خلاف کونکی د ګمراهئی په لار دی. دا فرمان هم د هغه د مور د غیږ نه وو.

**د عیسی ﷺ پحقله د کافرانو کړې ودې خبرې او مؤمنانو ربښتیا وینا:-** دحضرت عیسی ﷺ په خپل بیان باندې اود حکم په خلاف روستوراتلونکو خلقو خبرې کړې دی اود هغوی باره کښې د مختلفو ډلو په شکل کښې داخلق تقسیم شوی دی یهودیانو وئیل چه عیسی ﷺ نعوذبالله ولدالزنا دې د الله ﷻ لعنتونه دې وی په هغوی چه هغوی د الله ﷻ په یوبهترین رسول باندې یو بدترین تهمت اوالزام اولګولو اوونی وئیل چه د هغه داکلام وغیره ټول د جادو کار دې. دغه شان نصاری هم دهوکه شو وئی وئیل چه داهم پخپله الله ﷻ دې اوداکلام هم د الله ﷻ دی. چا وئیل دا د الله ﷻ خوئ دې چا اوونیل چه دا په دریو معبودانوکښې یو دې. اویوې ډلې دواقعه مطابق اوونیل دالله ﷻ بنده اودهغه رسول دې هم داقول صحیح دې د اهل اسلام عقیده دعیسی ﷺ متعلق هم داده اوهم دا تعلیم د الله رب العزت دې.

**د رفع عیسی نه پس د بنی اسرائیلو غونډه او کنده رائې:-** وائی چه د بنی اسرائیلو ګنړه راجمع شوې وه او خپل خان نه ئې څلور زرد سرې راغونډکړل. هریوقوم خپل خپل یوعالم پیش کړو داواقعه د حضرت عیسی ﷺ د آسمان ته اوچتیدو نه پس ده. د دې خلقو په خپل مینځ کښې اختلاف اوشو.یوې خو وئیل چه داپخپله الله ﷻ دې ترکومې پورې چه هغه غوښتل په زمکه اوسیدو څوك ئې چه غوښتل وئې سوزول څوك ئې چه غوښتل وئې وژل بیا آسمان ته لاړو.دې ډلې ته یعقوبیه وائی. خو نورو دریواړو دا دروغ اوګنړله چه تاسو دروغ وائې. اوس دې دوو دریم ته اوونیل چه ښه ده تاسو څه وائي اوڅه خیال مو دې؟ هغوی وئیل چه هغه د الله ﷻ خوئ وو د دې ډلې نوم نسطوریه شو. هغه دوه چه کومې پاتې شوې نوهغوی هم اوونیل چه تاهم دروغ اوونیل.بیا دې دوو کښې یوونیل چه ته څه وایه هغه وئیل چه زه خودا عقیده لرم چه هغه په دې دریوکښې یو دې. یوخو الله چه معبود دې دویم هم دې معبود دې اودریم دهغه مور چه معبوددې دا اسرائیلیه ډله شوه اوهم دې د نصرانیانو بادشاه وو علیهم لعائن الله.

**د مسلمانانو رائې:-** څلورمې وئیل تاسو ټول دروغژن ئې حضرت عیسی ﷺ د الله ﷻ بنده او رسول دې هم د الله ﷻ کلمه ده اود هغه د طرف نه رالیګلې شوې روح دې. هم داخلق مسلمانان خودلې شی او هم دا ربښتونی وو.پدې کښې چه څوك د چا تابع وو هم په هغه قول باندې شو او په خپلوکښې ښه اختلاف

---

(١) الطبری:١٨/١٠٤.

(٢) ٣/آل عمران:٦٠.

(٣) ٣/آل عمران:١٤٧.

اوکړو.رښتونی اسلام خوښونکی خلق په هره زمانه کښې په شمیرکښې کم وی په هغوی باندې دا ملعونان خواره شو او هغوی راګیرکړل هغوی وهل ټکول او قتل کول ئې شروع کړه.

**عیسایانو د عیسی ﷺ دین بدل کړو:-** د اکثرومؤرخینوبیان دې چه قسطنطین بادشاه درې ځل عیسایان راجمع کړل. دآخری ځل په اجتماع کښې د هغوی دوه زره یوسل اویا علماء راجمع شوې وو خودا ټول د حضرت عیسی ﷺ باره کښې مختلف الخیال وو. سلو به څه وئیل او اویاؤ به نورڅه وئیل. پنځوسو به څه بل څه وئیل نودشپیتو به څه بله عقیده وه. د هریوخیال بل سره ټکراوخوړلو. د ټولونه لویه ډله د دریوسووشپیتووه. بادشاه هغه طرف ته کثرت اولیدونو هم د هغوی ملګرتیائی اوکړه. ملکی مصلحت هم په دې کښې وو چه د دې لوئی ډلې طرف داری اوکړې شي. نود هغه پالیسئی هم د هغوی طرف ته متوجه کړواوهغه باقی ټول خلق ئې اوویستل اود هغوی دپاره ئې دامانت کبری رسم ایجادکړوچه په اصل کښې دټولونه لوئ خیانت دې. اوس ئې دشریعت د مسئلوکتابونه په دغه علماؤ باندې اولیکل او ډیرو ملکی اود ښاریوضرورتونوته ئې شرعی شکل ورکړواودې کښې ئې داخل کړل. ډیرې نوې نوې خبرې ئې راپیداکړې او اصل مسیحی دین ئې وران کړو اویوه مجموعه ئې جوړه کړه اودا ئې قانوناً په خلقو کښې جاری کړه اود هغه وخت نه هم دا مسیحی دین ګڼړلې شی. کله چه ئې په دې باندې ټول رضامندکړل نوخلورو واړوطرفوته ئې کنسې ګرجې عبادت خانې جوړکړې اوهلته ئې د دغه علماؤ د کینولو اود خپل نوی پیداکړی مسیحیت خوررولوکښې لګیاشو.په شام کښې جزیره کښې روم کښې تقریباً دولس زره داسې مکانونه په هغه زمانه کښې جوړکړل.دهغه مور هیلانه کوم ځائ چه سولئی لګولې شوې وه هلته ئې یوګنبد جوړکړو نود هغې باقاعده عبادت شروع کړې شو او ټولو یقین اوکړو چه حضرت عیسی ﷺ په سولئی کړې شوې دې. خود هغوی دا قول غلط دې الله ﷻ خپل دا عزت مندبنده خپل ځان طرف ته آسمان ته اوچت کړې دې دا دې د عیسائی مذهب یووړوکې غوندې مثال. داسې خلق چه په الله ﷻ باندې دروغ اودځان نه خبرې اوتړی او هغه له اولاد شریکان اوملګرې ثابت کړی هغوی به په دنیاکښې مهلت اوموومی خو په هغه عظیم الشان ورځ به د هغوی هلاکت دټولو څلوروواړوطرفونه هغوی راګیرکړی او تباه به کړې شی.که الله ﷻ خپلو بندیګانوته په عذاب ورکولو کښې تندی نه کوی خو بالکل ئې پریږدی هم نه.

**الله ﷻ اول ظالم ته مهلت ورکوی بیا ئې رانیسی:-** بخاری اومسلم کښې حدیث دې چه الله ﷻ ظالم ته مهلت ورکوی خوچه کله دهغه نیول رانازل شی نوبیا د پناه هیڅ ځائ باقی نه پاتې کیږی. دې فرمانیلو سره رسول الله ﷺ دقرآن پاك دا آیت ﴿وَكَذٰلِكَ اَخْذُ رَبِّكَ اِذَآ اَخَذَ الْقُرٰى وَهِىَ ظَالِمَةٌ ۭ اِنَّ اَخْذَهٗٓ اَلِيْمٌ شَدِيْدٌ﴾[1] تلاوت اوفرمانیلویعنی ستادرب دنیولوطریقه هم داسې ده.کله چه هغه په ظلم سره ککړ کلې رانیسی نویقین اوکړئی چه دهغه نیول ډیرخطرناك اوډیر سخت دی[2] دبخاری اومسلم په حدیث کښې دی ناخوښه خبرې اوریدوسره صبرکونکې دالله ﷻ نه زیات بل څوك نشته.خلق دهغه اولاد ښائی اوهغه دوی ته رزق ورکوی اوعافیت هم.[3] بخپله قرآن پاك فرمائی ﴿وَكَاَيِّنْ مِّنْ قَرْيَةٍ اَمْلَيْتُ لَهَا وَهِىَ ظَالِمَةٌ ثُمَّ اَخَذْتُهَا ۚ وَاِلَىَّ الْمَصِيْرُ﴾[4] ددیروکلووالا هغه دی دچادظالم کیدوسره چه ما وخت ورکړو او بیامو راګیرکړل. آخر واپس راګرځیدل خو هم زما طرف ته دی. یوبل آیت کښې دی چه ظالمان خلق دې په خپلواعمالو باندې الله ﷻ غافل نه

---

[1] ۱۱/هود:۱۰۲.

[2] صحیح بخاری کتاب التفسیرسورة هودباب قوله ﴿وکذلك اخذ ربك اذا اخذ القری وهی ظالمة﴾:٤٦٨٦، صحیح مسلم:۲۵۸۳،ابن ماجه:٤٠١٨، ابن حبان:۵۱۷۵، بیهقی:٦/٩٤.

[3] صحیح بخاری کتاب الادب باب الصبر فی الاذی:٦٠٩٩،صحیح مسلم:٢٨٠٤،الاسماء والصفات للبیهقی:١٠٦٤.

[4] ۲۲/الحج:٤٨.

کنړی. هغوی‌ته چه کوم مهلت دې دهغه ورځ پورې دې په کومه ورځ چه به سترګې پورته اوخيژي.([1])
هم دغه فرمان دلته هم دې چه په هغوی به د هغې لونې ورځ حاضريدل ډيرسخت ګران وی. صحيح حديث کښې دی کوم سړې چه ددې خبرې ګواهی ورکړی چه الله ﷻ هم يودې اوهم هغه د عبادت لائق دې بل هيڅ څوك نشته اوداچه محمدﷺ د الله ﷻ رسول اوبنده دې. اودا چه حضرت عيسی ﷺ د الله ﷻ بنده اود هغه پيغمبردې اود هغه کلمه ده کومه چه نی د حضرت مريم طرف ته اچولې وه. هغې له راليګلې شوې روح دې اودا چه جنت حق دې اودوزخ حق دې. د هغه که هرڅنګه اعمال وی الله ﷻ به هغه خامخا جنت ته اورسوی.([2])

اَسْمِعْ بِهِمْ وَاَبْصِرْ ۙ
| څه ښه اوريدونکی به وی هغوئ | او څه ښه ليدونکی به وی |
| په کومه ورځ چې به دوئ مونږ ته واپس راشی | (په دغه ورځ به) خوډير

يَوْمَ يَاْتُوْنَنَا لٰكِنِ الظّٰلِمُوْنَ الْيَوْمَ فِيْ ضَلٰلٍ
په کومه ورځ | چې به هغوئ راځی مونږ ته | ليکن دا ظالمان | نن ورځ (په دنيا کښې) | په ګمراهئ
ښه اوريدونکی اوليدونکی وی |........خو نن ورځ (په دنيا کښې)ظالمان په ښکاره ګمراهئ کښې دی

مُّبِيْنٍ ۞ وَاَنْذِرْهُمْ يَوْمَ الْحَسْرَةِ اِذْ قُضِيَ
ښکاره کښې(پراته دی) | او اويروه دوئ | دورځې دافسوس نه | کله چې | فيصله کړې شی |
اوته دوئ د افسوس د ورځې (د عذاب) نه اوويروه | کله چې به آخرې فيصله اوکړې شی

الْاَمْرُ وَهُمْ فِيْ غَفْلَةٍ وَّهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ۞ اِنَّا
کار(دحساب کتاب) | حال دا چې دوئ | په غفلت کښې دی | او دوئ | ايمان نه راوړی | بيشکه
..........(خو) دوئ په غفلت کښې پراته دی | اودوی (اوس) ايمان نه راوړی |بيشکه مونږ به

نَحْنُ نَرِثُ الْاَرْضَ وَمَنْ عَلَيْهَا وَاِلَيْنَا
هم مونږ | په ميراث کښې اوړو | زمکه | اوهغه څه | چې په دې زمکې باند دی | او خاص مونږ ته به
زمکه او په دې باندې چې څوک اوسيږی دهغې وارثان يو | اوهم مونږ طرفته به دوئ راواپس کولې شی

يُرْجَعُوْنَ ۞
واپس کولې شی |

**قوله تعالى:- اَسْمِعْ بِهِمْ وَاَبْصِرْ ۙ**

**ظالمان به د قيامت په ورځ هر څه اووينی:-** ارشاددې چه په دنياکښې دې کافرانو سترګې پټې کړی دی او په غوږونوکښې مالوچ لګولې خودقيامت په ورځ به د دوی سترګې ښه روښانه وی غوږونه به نی هم ښه کولاؤ شولکه چه د الله ﷻ ارشاددې ﴿وَلَوْ تَرٰٓى اِذِ الْمُجْرِمُوْنَ نَاكِسُوْا رُءُوْسِهِمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۭ رَبَّنَآ اَبْصَرْنَا وَسَمِعْنَا فَارْجِعْنَا نَعْمَلْ صَالِحًا اِنَّا مُوْقِنُوْنَ ۞﴾([3]) افسوس چه تا ليدلې کله چه داګناهګاران خلق دخپل رب په وړاندې دشرم نه سرونه ټيټ

---

[1]) ۱٤/ابراهيم:٤٢.
[2]) صحيح بخاری کتاب احاديث الانبياء باب قوله تعالى ﴿ياهل الكتاب لاتغلوا فى دينكم﴾:٣٤٣٥، صحيح مسلم٢٨، احمد:٣١٣/٥.
[3]) ٣٢/السجده:١٢.

نيولې به ولاړ وي چه اې الله مونږ اوکتل مونږ واوريدل الخ.په هغه ورځ به نه کتل په کار راځي نه اوريدل نه ارمان اوافسوس نه ژړا. که دې خلقو په دنياکښې د خپلو سترګو اوغوږونو نه کار اخستې وې اود الله ﷻ دين ئې منلې وې نو نن به دوی ارمان او افسوس نه کولو. په هغه ورځ به ئې سترګې کولاؤ کړې وی اونن ړانده ګانړه جوړشوی ګرځی نه هدايت طلب کوی اونه کوری نه بنې خبرې اوری اونه ئې منی. مخلوق دې د ارمان اوافسوس والا ورځې نه خبردارکړه کله چه ټول کارونه فيصله کولې شی.جنتيان به جنت ته اودوزخيان دوزخ ته اوليکلې شی.د هغه حسرت او ارمان د ورځې نه نن دا خلق غافل دی بلکه ايمان اويقين هم نه لری. حضورﷺ فرمانې چه د جنتيانو جنت کښې اود دوزخيانو په دوزخ کښې د تلونه پس به مرګ د يو ګډ په شکل کښې راوستلې شی اود جنت او دوزخ په مينځ کښې به ئې اودروی بيا به د جنتيانو تپوس کولې شی چه دا پيژنئ؟ هغوی به په کتلوسره پوهه شی چه اودا مرګ دې. دوزخيانونه به هم دا تپوس کولې شی هغوی به هم دا جواب ورکړی. اوس به حکم اوکړې شی چه دامرګ حلال کړئ او آوازبه کولې شی چه اې جنتيانوستاسو دپاره هميشه والې دې مرګ نشته اودوزخيانوستاسو د پاره هم هميشه والې دې اومرګ نشته.بياحضورﷺ هم داايت ﴿وَأَنذِرْهُمْ يَوْمَ الْحَسْرَةِ إِذْ قُضِيَ الْأَمْرُ وَهُمْ فِي غَفْلَةٍ وَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ﴾ (١) تلاوت کړو اوحضورﷺ اشاره اوکړه اهل دنيا د دنياپه کښې دی(٢)(مسنداحمد) ابن مسعودؓ يوه اوږده واقعه بيانولو سره فرمانې چه هرسړې به خپل د دوزخ اوجنت کور وينې اوهغه ورځ د ارمان اوافسوس ورځ ده دوزخيان به خپل جنتي کور ته ګوری فرمائيلې به شی که د الله ﷻ احسان په تاسوباندې نه وو نوتاسو به دلته وئ.(٣) يوبل روايت کښې دی چه کله مرګ حلال کړې شی اود هميشه والې آواز اولګولې شی نو په هغه وخت کښې خو به جنتيان دومره خوشحاله شی که الله ﷻ ئې نه بچ کوی نودخوشحالئ نه به مړه شی اودوزخيان به دومره چغې صورې وهی که چرته مرګ وئ نودوی به مړه شوی وو. نوددې آيت هم دامطلب دې چه دا وخت به دحسرت اوارمان به هم وی اودخاتمې وخت به هم دغه وی.يوم الحسرت هم دقيامت په نومونو کښې يونوم دې.يوبل ايت کښې دی ﴿ أَن تَقُولَ نَفْسٌ يَا حَسْرَتَىٰ عَلَىٰ مَا فَرَّطتُ فِي جَنبِ اللَّهِ وَإِن كُنتُ لَمِنَ السَّاخِرِينَ﴾(٤)

**دزمکې اصل وارث الله ﷻ دې** :-بيا فرمانې چه خالق مالك هم الله ﷻ دې ټول د هغه ملکيت دې او هرڅه فانی دی،اوباقی صرف هم الله ﷻ جل شانه دې. څوك هم د ملکيت اوتصرف رښتونې دعويدار نشته د ټول مخلوق وارث اوحاکم هم هغه دې اودهغه ذات د ظلم نه پاك دې. اميرالمؤمنين حضرت عمر بن عبدالعزيزؒ عبدالحميدبن عبدالرحمنؒ ته کوفې کښې يوخط اوليکلو په کوم کښې چه ليکلې وو دحمد اوصلوة نه پس د اولې ورځ نه په ټول مخلوق باندې فناليکلې ده. ټول به د هغه طرف ته رسی. هغه خپل دې نازل شوی دې رښتونی کتاب کښې کوم چه هغه په خپل علم سره محفوظ کړې دې اودکوم ساتنه چه د خپلو فرښتو په ذريعه کوی ليکلی دی چه دزمکې اود دې د پاسه چه څه دی د هغې وارث هم هغه ذات دې او هم د هغه طرف ته به ټول واپس کولې شی.

---

(١) ١٩/مريم:٣٩.
(٢) احمد:٩/٣،صحيح بخاری کتاب التفسيرسورت کهيعص باب قوله عزوجل ﴿وانذرهم يوم الحسرة﴾: ٤٧٣٠ صحيح مسلم ٢٨٤٩،
(٣) الطبری:٣٤٤/٨.
(٤) ٣٩/الزمر:٥٦.

وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ اِبْرٰهِيْمَ ۬ اِنَّهٗ كَانَ صِدِّيْقًا

او ياد كړه | په كتاب كښي | ابراهيم | بيشكه هغه | وو | يو رښتني انسان

اوته په دي كتاب (قرآن) كښي د ابراهيم ؑ ذكر اوكړه | بيشكه هغه ډير رښتوني نبي وو.........

نَّبِيًّا ۝ اِذْ قَالَ لِاَبِيْهِ يٰۤاَبَتِ لِمَ تَعْبُدُ مَا

او يو نبي وو | كله چي | اووئيل هغه | پلار خپل ته | اے پلاره | ولي ته عبادت كوي | د هغه څه

كله چي هغه پلار ته اووئيل | ائي زما بابا جانه ته ولي د داسي څيز عبادت كوي اچي نه اوري.........

لَا يَسْمَعُ وَلَا يُبْصِرُ وَلَا يُغْنِيْ عَنْكَ شَيْــًٔا ۝ يٰۤاَبَتِ اِنِّيْ

چي نه اوري | او نهويني | اونه لري كولي شي | ستانه | څه څيز | اے پلاره | بيشكه زۀ چي يم

او نه ويني |.....................اونه ستا نه څه تكليف لري كولي شي | اې زما بابا جانه بيشكه ماته هغه علم

قَدْ جَآءَنِيْ مِنَ الْعِلْمِ مَا لَمْ يَاْتِكَ فَاتَّبِعْنِيْٓ

په تحقيق سره راغلي دي ماته | علم (وحي) | هغه | چي نۀ دي راغلي تاته | نو تابعداري اوكړه زما

نصيب دي | چي هغه تاته نه دي نصيب شوي | .........................نو زما تابعداري اوكړه

اَهْدِكَ صِرَاطًا سَوِيًّا ۝ يٰۤاَبَتِ لَا تَعْبُدِ الشَّيْطٰنَ ؕ اِنَّ الشَّيْطٰنَ

چي اوښايم تاته | لاره | نيغه | اے پلاره | عبادت مۀ كوه تۀ | دشيطان | بيشكه شيطان

زه بۀ درته برابره لار اوښايم | ائي زما پلاره د شيطان عبادت مه كوه | بيشكه شيطان

كَانَ لِلرَّحْمٰنِ عَصِيًّا ۝ يٰۤاَبَتِ اِنِّيْٓ اَخَافُ اَنْ يَّمَسَّكَ

دي | رحمان لره | نافرمانه | اے پلاره | بيشكه زهٔ | يريږم | چي اوبه رسيږي تاته

د رحمان نافرمان دي | . ائي زما بابا جانه ماسره دا ويره ده چي چرته په تاباندي د رحمان د طرفنه عذاب

عَذَابٌ مِّنَ الرَّحْمٰنِ فَتَكُوْنَ لِلشَّيْطٰنِ وَلِيًّا ۝

عذاب | د رحمان نه | نوشي به تۀ | د شيطان | ملګري |

رانشي | نوته به دشيطان ملګري پاتي شي |

**قوله تعالىٰ:- اِذْ قَالَ لِاَبِيْهِ**

**د ابرهيم ؑ دپلار سره خبري اترې** :- دمكې مشركان چه بت پرست وو او خپل خان ته به ئې د خليل الله ؑ تابعدار ونيل دهغوى په وړاندې اې نبي ﷺ پخپله دابراهيم ؑ واقعه بيان كړه. هغه رښتوني نبي دخپل پلار هم پرواه اونه كړه اود هغه په وړاندې ئې حق ثابت كړواود بت پرستنې نه ئې منع كړو. صفائي ورته اووئيل چه ته ولې د دې بتانو عبادتونه كوې چه نه نفع رسولې شي اونه نقصان. ونې فرمائيل چه زه بې شكه ستا خوئ يم خوالله ﷻ چه ماته كوم علم راكړې دې هغه تاسره نشته نه زما تابعداري اوكړه زه به تاته نيغه لاراوښايم دبدونه به دې بچ كړم اونيكوته به دې اورسوم. باباجى دابت پرستى خودشيطان تابعدارى ده هم هغه ددې لاره ښائي اوهم هغه په دې باندې خوشحاليږي.

لکه سورت یس کښې ارشاد دې ﴿أَلَمْ أَعْهَدْ إِلَيْكُمْ يَا بَنِي آدَمَ أَنْ لَا تَعْبُدُوا الشَّيْطَانَ ۖ إِنَّهُ لَكُمْ عَدُوٌّ مُبِينٌ﴾[1] الله ﷻ به اوفرمائي اې انسانانو آیاماتاسونه دا وعده نه وه اخستې چه دشیطان عبادت به نه کوئي هغه ستاسو ښکاره دښمن دې. بل آیت کښې دی﴿إِنْ يَدْعُونَ مِنْ دُونِهِ إِلَّا إِنَاثًا ۖ وَإِنْ يَدْعُونَ إِلَّا شَيْطَانًا مَرِيدًا﴾[2] داخلق خو ښخوته چغې وهي اوالله ﷻ نې پرېښې دې. په اصل کښې دوی د سرکشه شیطان رابلونکی دی. هغوی اوفرمائیل شیطان خود الله ﷻ نافرمانه دې مخالف دې د هغه د فرمانبردارئی نه کبرکونکې دې په دې وجه دالله ﷻ ددربارنه شړلې شوې دې که تا هم د هغه تابعداری اوکړه نوهغه به تاهم خپل حالت ته اورسوی.پلاره زما ستا په دې شرك او ګناه باندې داوېره ده چه الله ﷻ په تاباندې چرته عذاب رانه ولی اوته دشیطان دوست اودهغه ملګرې جوړنه شې د الله ﷻ امداد اود هغه ملګرتیاتانه پاتې نه شی. ګوره شیطان پخپله بې کس اوبې بس دې د هغه تابعداری به تاخراب خائ ته اورسوی.لکه چه بل خائ ارشادمبارك دې ﴿تَاللَّهِ لَقَدْ أَرْسَلْنَا إِلَىٰ أُمَمٍ مِنْ قَبْلِكَ فَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطَانُ أَعْمَالَهُمْ فَهُوَ وَلِيُّهُمُ الْيَوْمَ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾[3] یعنی دایقینی اوقسمیه خبره ده چه تانه وړاندې قومونوته هم مونږ رسولان لیګلی خوشیطان دهغوی بد عملئی هغوی ته ښائسته کړې خودلې وې اوهم هغه دهغوی ملګرې جوړشو خوهېڅ په کار رانغلو او د قیامت په ورځ په دردناك عذاب کښې راګیرشو.

قَالَ | أَرَاغِبٌ
اووئیل پلار | آیا مخ اړونکی ئې
(پلارورته) اووئیل چې ښه ابراهیم ﷺ ګنی ته زما د معبودانونه

أَنْتَ | عَنْ آلِهَتِي | يَا إِبْرَاهِيمُ | لَئِنْ | لَمْ تَنْتَهِ | لَأَرْجُمَنَّكَ
ته | دمعبودانو زمانه | اے ابراهیم | که چرې | منع نۀ شوې تۀ | نو زۀ به په کاڼړو اوولم تا
مخ اړونکې یې ............که ته (دخپلو خبرونه) منع نه شوې | نو زه به دې په کاڼړو اولم

وَاهْجُرْنِي | مَلِيًّا | قَالَ | سَلَامٌ عَلَيْكَ | سَأَسْتَغْفِرُ | لَكَ
او جدا شه زما نه | ډیره موده | اووئیل ابراهیم | سلام دې وی | په تاباند | زۀ به ښښنه غواړم | ستا دپاره
اوزما د مخې نه همیشه دپاره لرې شه | ابراهیم اووئیل چې په تا دې سلام وی زه به ستا دپاره دخپل

رَبِّي | إِنَّهُ | كَانَ | بِي | حَفِيًّا | وَأَعْتَزِلُكُمْ
درب خپل نه | بیشکه الله | دې | په ماباند | ډیر مهربان | او زۀ جدا کیږم ستاسو نه
رب نه بخښنه غواړم | بیشکه هغه په ما ډیر مهربان دی | او زه تاسو اوتاسو چې د الله ﷻ نه سوا کوم

وَمَا تَدْعُونَ | مِنْ دُونِ اللَّهِ | وَأَدْعُو | رَبِّي | عَسَىٰ
او دهغې نه چې رابلئ ئې تاسو | ماسوا دالله نه | او زۀ رابلم | رب خپل | امید دې
بتان رابلئ د هغې نه په ډډه کیږم | او زه خپل رب رابلم |.... امید دې چې زه به د خپل رب نه په غوښتلو

[1] ۳٦/یس:٦٠.
[2] ٤/النساء:١١٧.
[3] ١٦/النحل:٦٣.

| شَقِيًّا۝ | بِدُعَآءِ رَبِّي | أَلَّآ أَكُونَ |
|---|---|---|
| بدبخته | په رابللو درب خپل سره | چې نهٔ به شم زهٔ |
| کنبې محروم پاتې نشم | | |

**قوله تعالى:-قَالَ أَرَاغِبٌ أَنتَ عَنْ آلِهَتِي**

**دپلار يوې وقوفانه جواب:-** دحضرت ابراهيم ﷺ پدې طريقه باندې پوهه کولونه پس دهغه پلارد جهالت چه کوم جواب ورکړې دهغې بيان کولې شي. هغه وئيل چه ابراهيمﷺ ته زما د معبودانو ويزاره نې ددوی دعبادت نه ستا انکاردې بنه ده واوره که ته د خپل دې حرکت نه منع نه شوې اودوی ته دې بد وئيل،دهغوی عيبونه لټولواوهغوی ته کنځلې کولونه منع نه شوې نوزه به تاسنګسارکړم.ماته مه تکليف راکوه اومه ماته څه وايه هم دا به بنه وی په سلامتياسره مانه جدا شې ګنی زه به تاله سخته سزادرکړم. زما نه ته اوس د هميشه د پاره څه. حضرت ابراهيم ﷺ وئيل چه بنه ده خوشحاله اوسه زما د طرف نه به تاته هيڅ تکليف نه وی ځکه چه ته زما پلارئی اود الله ﷻ دعاکوم چه هغه تاته نيک توفيق درکړی اوتا اوبښی.

**مومن له پکار دی چې جاهلانو سره ډير زيات نه انخلي:-** دمؤمنانو هم دغه طريقه وی چه هغوی جاهلانو سره اينخلی نه لکه چه قرآن کنبې بل ارشاد دی ﴿وَإِذَا خَاطَبَهُمُ الْجَاهِلُونَ قَالُوا سَلَامًا۝﴾[1] کله چه جاهلانوسره د هغوی ملاويدل وی نو ورته وائی چه سلام. بل آيت کنبې دی د فضول خبرونه هغوی مخ اوړوی اوورته وائی چه زمونږ عملونه مونږ سره اوستاسو عملونه تاسوسره دی مونږ جاهلانوسره نه لګو. ماته د هغه د خپلې دعادقبيليدو اميد دې. هم ددې وعدې برابر هغه د ده دپاره بښنه غوښتله.د شام د هجرته نه پس هم اود مسجدحرام د جوړولونه پس هم اود هغه اولاد کيدلونه پس هم حضرت ابراهيم ﷺ به وئيل چه اې الله زما مور پلار اوټول د ايمان والا دحساب قايميدوپه ورځې اوبښې. آخرد الله ﷻ د طرف نه وحی راغله چه د مشرکانود پاره بښنه مه غواړه. هم د هغوی په اقتداء کنبې اول اول مسلمانانو هم د اسلام دشروع په زمانه کنبې دخپلو خپلوانو مشرکانود پاره دبښنې دعاګانې کولې.آيت نازل شو چه بې شکه د ابراهيم ﷺ تابعداری کونی هم په دې خبره کنبې د هغه کار د دې قابل نه دې.بل آيت کنبې ارشاد دې﴿ مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِينَ آمَنُوا أَن يَسْتَغْفِرُوا لِلْمُشْرِكِينَ وَلَوْ كَانُوا أُولِي قُرْبَىٰ مِن بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمْ أَنَّهُمْ أَصْحَابُ الْجَحِيمِ۝﴾[2] يعنی نبی اوايماندارانوله دمشرکانودپاره استغفارنه دی کول پکار.اوونی فرمائيل چه دابراهيم ﷺ استغفار صرف په دې وجه وو چه هغه د خپل پلارسره وعده کړې وه خوچه کله په هغه باندې واضحه شوه چه هغه دالله ﷻ دښمن دې نوهغه دده نه ويزاره شو.ابراهيمﷺخودلوئ رب دوست اوحلم والا وو.بيافرمائی چه زه تاسو نه اوستاسود دې معبودانونه جدا کيږم. زه صرف د هغه واحد رب عابديم د هغه په عبادت کنبې څوک نه شريک کوم.زه صرف د هغه نه دعاګانې او زاريګانې کوم اوزما يقين دې زه به پخپلو دعاګانوکنبې محروم نه يم.واقعه هم دا ده. دلته لفظ عسی د يقين په معنوکنبې دې د دې د پاره حضورﷺ نه پس سيدالانبياء دې.

| اعْتَزَلَهُمْ | فَلَمَّا |
|---|---|
| په جدا شو دهغویٔ نه | نو هر کله چې |
| بيا چې ابراهيم ﷺ دهغه خلقو نه اودهغویٔ دمعبودانو نه په ډډه شو | |

---

[1] ۲۵/الفرقان:۶۳.

[2] ۹/التوبه:۱۱۳.

| وَمَا | يَعْبُدُونَ | مِنْ دُونِ اللّٰهِ | وَهَبْنَا | لَهٗٓ | إِسْحٰقَ |
|---|---|---|---|---|---|
| او دهغي بتانونه | چې هغوئ ئې عبادت كولو | ماسوا د الله نه | نو وركړل مونږه | هغه ته | اسحاق |
| ......نو مونږ ورته اسحاق ﷺ (خوي، او د هغه نه، يعقوب ﷺ (نمسي) | | | | | |

| وَيَعْقُوبَ | وَكُلًّا | جَعَلْنَا | نَبِيًّا | وَوَهَبْنَا | لَهُمْ | مِّنْ رَّحْمَتِنَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او يعقوب | او هر يو | اوګرځولو مونږه | پيغمبر | او وركړو مونږه | هغوئ ته | د رحمت خپل نه |
| وركړل.........اوپه دواړو كښې مو هر يو نبي جوړ كړو اومونږ په دوئ باندې خپل رحمت كړې وو | | | | | | |

| وَجَعَلْنَا | لَهُمْ | لِسَانَ صِدْقٍ | عَلِيًّا |
|---|---|---|---|
| او وركړو مونږ | هغوئ ته | ريښتني شهرت | او چت |
| او د دوئ ذكر خير مو ډير اوچت كړې دې | | | |

قوله تعالٰى:- وَهَبْنَا لَهٗٓ إِسْحٰقَ وَيَعْقُوبَ

**ابراهيم ﷺ ته حضرت اسحاق ﷺ اوحضرت يعقوب ﷺ وركړې شو:-** خليل الله ﷺ دخپل مور پلار رشتي خاندان قوم اوملك د الله ﷻ په دين باندې قربان كړو دټولونه جداشو.دخپل خان د خلاصولو او جدائي اعلان ئې اوكړونو الله ﷻ دهغه نسل جاري كړو.هغوی كره حضرت اسحاق ﷺ پيداشو اوحضرت اسحاق ﷺ كره حضرت يعقوب ﷺ اوشو لكه چه ارشاد دې ﴿وَيَعْقُوبَ نَافِلَةً ۖ وَكُلًّا جَعَلْنَا صٰلِحِيْنَ﴾[1] بل آيت كښې دی﴿ وَمِنْ وَّرَآءِ إِسْحٰقَ يَعْقُوبَ﴾[2] يعنی دحضرت اسحاق ﷺ نه پس يعقوب ﷺ يا حضرت اسحاق ﷺ دحضرت يعقوب ﷺ پلاروو. لكه چه د سورت بقره آيت ﴿أَمْ كُنْتُمْ شُهَدَآءَ إِذْ حَضَرَ يَعْقُوبَ الْمَوْتُ ۙ إِذْ قَالَ لِبَنِيْهِ مَا تَعْبُدُوْنَ مِنْ بَعْدِيْ ۖ قَالُوْا نَعْبُدُ إِلٰهَكَ وَإِلٰهَ اٰبَآئِكَ إِبْرٰهِيْمَ وَإِسْمٰعِيْلَ وَإِسْحٰقَ إِلٰهًا وَّاحِدًا ۚ وَّنَحْنُ لَهٗ مُسْلِمُوْنَ﴾[3] كښې صفا لفظ دي چه حضرت يعقوب دخپل وفات په وخت كښې خپل بال بچ نه تپوس اوكړوتاسو ټول به زمانه پس د چا عبادت كوئي؟هغوی جواب وركړو چه هم دهغه الله ﷻ د كوم چه ته عبادت كوې اوستا پلارد ابراهيم ﷺ اواسماعيل ﷺ او اسحاق ﷺ.دلته مطلب دادې چه مونږ دهغه نسل جاري اوساتلوخوئ مو وركړو يادهغه خوئ خوئ اودواړه پيغمبران كړل اوستاسترګې موږې يخې كړې.دابنكاره خبره ده چه د حضرت يعقوب ﷺ نه پس دهغه خوئ حضرت يوسف ﷺ هم نبي جوړكړې شوې وودهغه ذكر دلته نشته. ځكه چه دحضرت يوسف ﷺ دنبوت په وخت كښې خليل الرحمن ژوندې نه وو. دا دواړه نبوتونه يعنی حضرت اسحاق ﷺ اوحضرت يعقوب ﷺ نبوت د هغوی په ژوندكښې د هغوی د سترګو په وړاندې وو.ددې دپاره ئې ددې احسان ذكر بيان كړو.كله چه د رسول الله ﷺ نه تپوس اوشو چه د ټولونه بهترسړې څوك دې؟ نوحضور ﷺ اوفرمائيل يوسف نبي الله ابن يعقوب نبي الله ابن سحاق نبی الله ابن ابراهيم نبی الله خليل الله.([4] بل حديث كښې دی الكريم بن الكريم بن الكريم بن الكريم يوسف بن يعقوب بن اسحاق بن ابراهيم عليهم السلام دی.([5] مونږ هغوی ته خپل ډيرزيات رحمتونه وركړی اود

---

[1] ۲۱/الانبياء:۷۲.

[2] ۱۱/هود:۷۱.

[3] ۲/البقرة:۱۳۳.

[4] صحيح بخاری كتاب احاديث الانبياء باب قول الله تعالى (لقدكان فى يوسف واخوته آيات للسائلين....): ۳۳۸۳،صحيح مسلم:۲۳۷۸، احمد:۲/۲۵۷، الطيالسی:۷۱، مسند حميدی:۱۰٤٥، ابن حبان:۹۲.

[5] صحيح بخاری كتاب احاديث الانبياء باب قول الله تعالى (لقدكان فى يوسف واخوته آيات للسائلين....): ۳۳۹۰، احمد:۲/۱۹٦

هغوی د خیرذکر اوښکلې ثنا په دنیاکښې د هغوی نه پس په اوچتوالی سره باقی اوساتل. تردې چه د هرمذهب والا د هغوی تعریفونه کوی. فصلوٰة الله وسلامه علیهم اجمعین.

| وَاذْكُرْ | فِي الْكِتٰبِ |
|---|---|
| او بیان اوکړه | په کتاب کښې |
| او (محبوبه) ته په دې کتاب (قران) کښې | |

| مُوْسٰىٓ | اِنَّهٗ | كَانَ | مُخْلَصًا | وَّكَانَ | رَسُوْلًا | نَّبِيًّا۝ | وَنَادَيْنٰهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| دموسی | بیشکه هغه | وؤ | خالص کړې شوې | او وؤ | رسول | نبی | او آواز او کړو مونږ هغه ته |
| دموسی ذکر هم اوکړه | بیشکه هغه دالله ﷻ خاص بنده اورسول اونبی وو | | | | | | اومونږ هغه ته دکوه طور |

| مِنْ جَانِبِ الطُّوْرِ | الْاَيْمَنِ | وَقَرَّبْنٰهُ | نَجِيًّا۝ |
|---|---|---|---|
| دطرفه د کوه طور | ښی نه | او رانزدې کړو مونږ ه هغه | دراز په خبرو کولو سره |
| د ښی طرفنه اواز کړې وو | اوهغه ته د راز د خبرو کولو په وجه خپل نژدیکت ورکړې وو | | |

| وَوَهَبْنَا | لَهٗ | مِنْ رَّحْمَتِنَآ | اَخَاهُ | هٰرُوْنَ | نَبِيًّا۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| او ورکړو مونږ | هغه ته | درحمت خپل نه | رور دهغه | هارون | په حیثیت دنبی |
| اوهغه ته مود خپلې مهربانۍ په وجه دهغه رورهارون ؑ د نبی په حیثیت ورکړې وو | | | | | |

**قوله تعالی:- وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ مُوْسٰىٓ**

**د موسی ؑ ذکر:-** دخپل خلیل ؑ د بیان کولونه پس اوس دخپل کلیم ؑ بیان کوی د (مُخْلِصًا) دویم قراءت (مُخْلَصًا) هم دې یعنی هغه په اخلاص سره عبادت کونکې وو. روایت دې چه حواریانودحضرت عیسی ؑ نه تپوس اوکړو اې روح الله مونږ ته اوښایه چه مخلص سړې څوک دې؟ هغوی ؑ اوفرمائیل چه صرف دالله ﷻ د پاره عمل اوکړی دهغه ددې خبرې غوښتنه نه وی چه خلق دې زماتعریفونه اوکړی. دویم قراءت کښې (مُخْلَصًا) دې یعنی د الله ﷻ خوښ کړې شوې بزرګ بنده حضرت موسی ؑ وو. لکه چه د الله ﷻ فرمان دې (اِنِّي اصْطَفَيْتُكَ عَلَى النَّاسِ بِرِسٰلٰتِيْ وَبِكَلَامِيْ ۖ فَخُذْ مَآ اٰتَيْتُكَ وَكُنْ مِّنَ الشّٰكِرِيْنَ۝) ([1])حضور ﷺ د الله ﷻ نبی اورسول وو. په پنځولویو لویو جلیل القدر اواولوالعزم پیغمبرانوکښې یو هغوی دی یعنی نوح، ابراهیم، موسی عیسی اومحمد صلوٰت الله وسلامه علیهم وسائرالانبیاء اجمعین. مونږ هغه ته د غرد ښی طرف نه آواز ورکړو اوغورایستنې کولوسره خپل څان ته نیزدې کړو.داواقعه د هغه وخت ده چه موسی ؑ د اورپه لټون کښې د کوه طور طرف ته اور لیدلې وو وراوراندې شوې وو.

ابن عباس ؓ وغیره فرمائی چه دومره نیزدې شوچه د قلم آواز ئې واوریدو([2]) دې نه مراد د تورات لیکلو قلم دې.سدی ؒ وائی آسمان ته لاړواود الله ﷻ کلام سره مشرف شو.وائی چه په دې خبروکښې هغه فرمان هم دې چه اې موسی ؑ چه زه ستا زره شکر کونکې اوستا ژبه خپل ذکر کونکې جوړه کړم اوتاته داسې بی بی درکړم چه د نیکئی په کارونوکښې ستا امدادی وی نو پوهه شه چه ما ستانه هیڅ ښیګړه نه ده اوچته کړې.اوچاته چه زه دا څیزونه ورنه کړم پوهه دې شی چه هغه ته هیڅ ښیګړه نه ده

---

[1] ۷/الاعراف:۱۴۴.

[2] حاکم:۲/۳۷۳.

ملاوشوي. په هغه باندې مونږ يوه مهرباني داهم اوکړه چه دهغه رور هارون ﷺ مونږ نبي جوړکړواود هغه د امداد پاره مو هغه سره کړو.لکه څنګه چه دهغه خوښه او دعا وه.فرمانيلي وو﴿وَأَخِي هَٰرُونُ هُوَ أَفْصَحُ مِنِّي لِسَانًا فَأَرْسِلْهُ مَعِيَ رِدْءًا يُصَدِّقُنِي إِنِّي أَخَافُ أَن يُكَذِّبُونِ﴾ (١)يوبل روايت کښې دى﴿قَالَ قَدْ أُوتِيتَ سُؤْلَكَ يَٰمُوسَىٰ﴾ (٢) موسى ﷺستاسوال مونږ پوره کړو.د هغوى ددعادا لفظ هم روايت دې ﴿فَأَرْسِلْ إِلَىٰ هَٰرُونَ﴾ (٣) الخ هارون هم رسول جوړکړه. وائي چه ددې نه زياته بهتره دعااود دې نه زيات شفاعت چاد چا د پاره په دنياکښې نه دې کړې. حضرت هارون ﷺ دحضرت موسى ﷺ نه مشر وو. صلوۃالله وسلامه عليهما.

| وَاذْكُرْ فِي الْكِتَٰبِ | إِسْمَٰعِيلَ | إِنَّهُ | كَانَ | صَادِقَ الْوَعْدِ | وَكَانَ | رَسُولًا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او بيان اوکړه په کتاب کښې | داسماعيل | بيشکه هغه | وو | رښتينې دوعدې | او وو | رسول |
| او(محبوبه) ته په دې کتاب(قرآن)کښې داسماعيل ﷺ ذکر هم اوکړه | | بيشکه هغه دوعدې (ډير رښتوني) وواو رسول | | | | |

| نَّبِيًّا | وَكَانَ | يَأْمُرُ | أَهْلَهُ | بِالصَّلَوٰةِ | وَالزَّكَوٰةِ |
|---|---|---|---|---|---|
| نبي | او وو هغه | چې حکم به ئې کولو | خپل کوروالو ته | دمانځه | او د زکاة |
| اونبي وو | اوهغه به دخپل کور خلقو ته دمونځ اداکولو او د زکوة ورکولو حکم کولو | | | | |

| وَكَانَ | عِندَ رَبِّهِ | مَرْضِيًّا |
|---|---|---|
| او وو هغه | په نز د رب خپل | خوښ کړې شوې |
| اود خپل رب په نزد ډير غوره وو | | |

قوله تعالى:- إِنَّهُ كَانَ صَادِقَ الْوَعْدِ

**حضرت اسماعيل ﷺ د وعدې کلک وو:-**دحضرت اسماعيل ﷺ بن ابراهيم ﷺ د خيرذکر کولې شي. هغه د ټول حجاز پلار دې. کوم نذر چه به ئې د الله ﷻ د نوم منلو دکوم عبادت کولوچه به ئې اراده کوله پوره کولوبه ئې. هغه به حق اداکولو هره وعده به ئې پوره کوله. يوسړي سره ئې وعده اوکړه چه زه به فلانکي ځاې کښې ملاويږم ته هلته راشه اسماعيل ﷺ دوعدې مطابق هلته لاړوخوهغه سړې رانغلو. هغوى ددغه سړي په انتظار کښې هم هلته حصارشوتردې چه يوه پوره شپه ورځ تيره شوه. هغه سړې راغلو ونې کتل چه هغوى هم هلته انتظار کښې دى تپوس ئې اوکړوتاسو د پرون نه دلته ئې؟ هغوى اوفرمائيل چه وعده مې کړې وه نوبيازه ستاسودراتلونه بغيرڅنګه اخواکيدې شوم. هغه معذرت اوکړو چه مانه بالکل هيرشوې وو.سفيان ثورى ﷫ وائي چه هم دلته په انتظارکښې په هغوى باندې پوره يو کال تيرشوې وو.

**زمونږ رسول هم د وعدې پابند وو:-**ابن شوذب ﷫ وائي چه هلته ئې کورجوړکړو.عبدالله بن ابوالحمساء ﷺ وائي د حضور ﷺ د نبوت نه وړاندې ما حضور ﷺسره څه تجارتي لين دين کړې وو زه لاړم او دامې اووئيل چه تاسو دلته اودريږئ زه اوس واپس راځم. بيازما هډوخيال نه شو هغه ورځ اوشپه تيره شوه دويمه ورځ هم تيره شوه او په دريمه ورځ زما خيال راغلوچه اومې کتل نوحضور ﷺ هم هلته تشريف ايخودې ووهغوى ﷺاوفرمائيل تاخوزه په مشقت کښې واچولم. زه دلته د دريوورځونه ستا انتظارکوم. (٤) (خرائطی)داهم وئيلې شوى دى چه دا د هغه وعدې ذکر دې چه هغوى په وخت د حلالولوکښې کړې

---

(١) ٢٨/القصص:٣٤.
(٢) ٢٠/طه:٣٦.
(٣) ٢٦/الشعراء:١٣.
(٤) ابوداؤد کتاب الادب باب فى العدة:٤٩٩٦

وه پلاره ته به ما د صبر کونکونه اوموميږ نو په حقيقت کښې هغه د وعدې پوره کول اوکړه اود صبر اوبرداشت نه ئې کار واخستو. د وعدې پوره کول نيک کار دې اووعده خلافي ډير خراب څيز دې. قرآن کريم فرمائي اې ايمان والا هغه خبرې د ژبې نه ولې اوباسئ په کوم چه پخپله عمل نه کوئ د الله ﷻ په نيز داخبره ډيره د غضب ده چه تاسوهغه وائې چه نه ئې کوئ.(۱) رسول الله ﷺ فرمائي د منافق درې نښې دی په خبروکښې دروغ وعده خلافي او په امانت کښې خيانت.(۲) دې آفتونونه مؤمن خان له او جدا وی. هم دا د وعدې رښتونوالې په حضرت اسماعيل ﷺ کښې وو اوهم دغه پاک صفت په حضرت محمد مصطفی ﷺ کښې وو کله هم حضور ﷺ چاسره دوعدې خلاف نه دی کړی.

يوځل حضور ﷺ دحضرت ابوالعاص بن ربيع ﷺ تعريف کولو سره اوفرمائيل ده چه ماسره کومه خبره اوکړه رښتيانې اوکړه کومه وعده چه هغه ماسره اوکړه پوره ئې کړه(۳)حضرت صديق اکبر ﷺ د خلافت په تخت قدم کيخودوسره اعلان اوکړو چاسره چه نبی کريم ﷺ څه وعده کړې وی زه دهغې دپوره کولود پاره تيار يم اوپه حضور ﷺ باندې چه د چا قرض وی زه دهغې د اداکولود پاره موجود يم. دې کښې جابر بن عبدالله ﷺ تشريف راورو عرض ئې اوکړو چه ماسره رسول الله ﷺ وعده فرمائيلې وه که د بحرين مال راغلو نو زه به تاته درې لپې ډکې درکوم. حضرت صديق اکبر ﷺ له چه کله د بحرين مال راغلو نوهغوی جابر ﷺ راوغوښتواو ورته ئې اوفرمائيل چه واخله درې لپې ډکې کړه.د هغه په لپه کښې پنځه سوه درهم راغلل. حکم ئې اوکړو چه د دريو لپو پنځلس سوه درهم ورکړئ.(۴) بيائی د اسماعيل ﷺ دنبی اورسول کيدو بيان اوفرمائيلو.اوداسحاق ﷺ ئې صرف نبی کيدل بيان کړل په دې سره د هغه په خپل رور باندې فضيلت ښکاره کيږی. د مسلم شريف په حديث کښې دی دابراهيم ﷺ په اولاد کښې الله ﷻ اسماعيل ﷺ خوښ کړو.(۵) بيا دهغه نور تعريف بيانولې شی هغوی د الله ﷻ په اطاعت باندې صابرو او خپلې کورنئ ته به ئې هم دا حکم فرمائيلو هم دا فرمان د الله ﷻ حضور ﷺ ته دې.

**هرمسلمان ته دخپل بال بچ د مالنځه فکر کول پکار دی:-** ﴿وَأْمُرْ أَهْلَكَ بِالصَّلَوٰةِ وَاصْطَبِرْ عَلَيْهَا ۖ لَا نَسْأَلُكَ رِزْقًا ۖ نَّحْنُ نَرْزُقُكَ ۗ وَالْعَاقِبَةُ لِلتَّقْوَىٰ﴾(۶) خپل بال بچ ته د مانځه حکم کوه په خپله هم په دې باندې په مضبوتياسره عمل کوه. يوبل آيت کښې دی ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قُوا أَنفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ نَارًا وَقُودُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ عَلَيْهَا مَلَائِكَةٌ غِلَاظٌ شِدَادٌ لَّا يَعْصُونَ اللَّهَ مَا أَمَرَهُمْ وَيَفْعَلُونَ مَا يُؤْمَرُونَ﴾(۷)اې ايماندارو خپل خان او خپل بال بچ داورنه بچ کړئ دکوم خشاک چه انسانان دی او کانړی دی چرته چه عذاب ورکونکې فرښتې د رحم نه خالی زور آورې ډيرې سختې دی.نامُمکن دی چه هغوی دالله ﷻ دحکم نه خلاف اوکړی بلکه هغوی ته چه څه وئيلې شوی دی هم دهغې په تابعدارئ کښې مشغول دی. مسلمانانوته د الله ﷻ حکم کيږی چه خپلې کورنئ ته د الله ﷻ دخبرو هدايت کوئ د گناهونونه ئې رابندوئ هسې بې تعليم ئې مه پريږدئ چه د دوزخ نوړئ جوړشی.رسول الله ﷺ فرمائي په هغه سړی دې د الله ﷻ رحم وی چه دشپې د تهجد د پاره د خپلې بسترې نه راپاسی بيا خپله ښځه راوچتوی اوکه هغه نه راپاسی نود هغې په مخ باندې اوبه وراچوی

(۱) ٦١/الصف:۲-۳.

(۲) صحيح بخاری کتاب الايمان باب علامات المنافق:۳۳، صحيح مسلم:۵۹.

(۳) صحيح بخاری کتاب فرض الخمس باب ماذكر من درع النبی ﷺ وعصاه وسيفه وقدحه وخاتمه......۳۱۱۰، صحيح مسلم: ۲٤٤۹ .

(۴) صحيح بخاری کتاب المغازی باب قصة عمان والبحرين: ٤۳۸۳،صحيح مسلم :۲۳۱٤.

(۵) صحيح مسلم کتاب الفضائل باب فضل نسب النبی ﷺ وتسليم الحجر عليه قبل النبوة:۲۲۷٦،ترمذی: ۳٦۰۵، احمد :٤/۱۰۷،مسندابويعلى:۷٤۸۵،دلائل النبوة:۱/۱٦٦.

(۶) ۲۰/طه:۱۳۲.

(۷) ٦٦/التحريم:٦.

اودخوب نه ني رابيداره وي. په هغه ښځه دي هم د الله ﷻ رحمت وي چه د شپې د تهجدد پاره راپاسي بياخپل خاوندراپاسوی که هغه نه راپاسي نودهغه په مخ داوبوڅاڅکي اچوي.(۱)(ابوداوٗد ابن ماجه). د حضورﷺ ارشاد دې کله چه انسان د شپې راپاسي خپله بي بي هم راپاسوي او دواړه دوه دوه رکعته مونځ هم اوکړي نود الله ﷻ په نيزدالله ﷻ ذکر کونکوسړواو ښځوکښي د دواړونومونه ليکلې کيږي.(۲)

| |
|---|
| وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ |
| او بيان اوکړه \| په کتاب کښې |
| او ته په دې کتاب (قرآن) کښې د ادريس |
| اِدْرِيْسَ اِنَّهٗ كَانَ صِدِّيْقًا نَّبِيًّا ۝ وَّرَفَعْنٰهُ مَكَانًا عَلِيًّا ۝ |
| دادريس \| بيشکه هغه \| وو \| ربښتيني انسان \| (او) نبي \| او پورته کړي وو مونږ هغه \| مقام \| لوړ ته |
| ذکر هم اوکړه \| بيشکه هغه ډير ربښتوني نبي وو \| اومونږ هغه ډيرې اوچتې مرتبې ته رسولې وو |

**قوله تعالى:-وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ اِدْرِيْسَ**

**د حضرت ادريس ﷺ د اوچتې مرتبې ذکر:-** دحضرت ادريس ﷺ بيان کولې شي چه هغه ربښتوني نبي وو.دالله ﷻ خاص بنده وومونږ هغه اوچت مکان ته پورته کړو.دصحيح حديث په حواله سره اول تير شوي دي چه په څلورم آسمان باندې حضورﷺ حضرت ادريس ﷺ سره ملاقات اوکړو.

**د ادريس ﷺ متعلق کمزورې واقعه:-** د دې آيت په تفسير کښې حضرت امام ابن جرير ﷫ يوډيرعجيبه اثر وړاندې کړې دې چه حضرت ابن عباس ﷛ حضرت کعب ﷛ نه سوال اوکړو چه د دې آيت مطلب څه دې؟ هغوی اوفرمائيل حضرت ادريس ﷺ له وحي راغله چه د ټول اولاد آدم ﷺ برابر صرف ستا په نيکو اعمالوکښې هره ورځ زياتوالې کوم. په دې باندې هغوی له خيال راغلوچه په عمل کښې نور هم وړانديوالې اوکړي.کله چه هغه له د هغه ملګرې فرښته راغله نو هغې ده سره يادداشت اوکړو ماله داسې وحي راغلې ده اوس ته ملك الموت ته اووايه چه هغه زما په مرګ کښې روستوالې اوکړي نوزه به نيك اعمال نورهم زيات کړم.فرښتې د حضرت ادريس ﷺ خبرې باره کښې ويناأوکړه نوملك الموت اوونيل هغه چرته دې؟هغې ونيل دا دې زما په لاس ناست دې هغه اوونيل سبحان الله ماته اوس حکم اوشو چه د ادريس ﷺ روح په څلورم آسمان باندې قبض کړه.زه فکرمند ووم چه هغه په زمکه دې اوماته د هغه د روح قبض کولو د پاره ددې آسمان حکم کولې شي. هم هغه وخت دهغه روح قبض کړې شو دا د دې آيت معنی ده.

خودايادساتئې چه د کعب ﷛ دا بيان د اسرائيلياتونه دې اود دې په بعضو خبروکښې نکارت دې. والله اعلم. هم دا روايت په بل سندسره دې او په هغې کښې داهم دی هغه د دې فرښتې په ذريعه معلومه کړې وه چه زماعمر څومره باقی دی؟يوبل روايت کښې دی چه دفرښتې په دې سوال باندې ملك الموت جواب ورکړو چه زه ګورم.وئی کتل نووئی ونيل صرف ديوې سترګې رپولو برابر.اوس چه کومې فرښتې لاندې کتل د حضرت ادريس ﷺ روح قبض شوي هم وو.د ابن عباس ﷛ نه روايت دې چه هغه درزی وو.دستنې په يوه يوه ټانکه باندې به ئې سبحان الله ونيل. ماښام به د هغه نه زيات نيك عمل آسمان ته نه ختلو.مجاهد ﷫ خو وائی چه حضرت ادريس ﷺ آسمانونوته خيژولې شوې دې هغه

(۱) ابوداوٗد کتاب الوتر باب الحث علی قيام الليل: ۱۴۵۰، وهوحسن،النسائی: ۱۶۱۱، ابن ماجه: ۱۳۳۶، احمد: ۲/۲۵۰، ابن حبان: ۲۵۶۷، حاکم: ۱/۳۰۹.

(۲) ابوداوٗد کتاب التطوع باب قيام الليل: ۱۳۰۹ السنن الکبری: ۱۳۱۰، ابن حبان: ۲۵۶، بيهقی: ۲/۵۰۱، حاکم: ۱/۳۱۶.

مرشوې نه دي بلکه دحضرت عیسی ﷺ په شان بې مرګه اوچت کړې شوې دې. د ابن عباس ﷺ نه په روایت د عوفی نقل دی چه شپږم آسمان ته اوچت کړې شوې دې اوهلته وفات شوې دې. حسن ﷺ وغیره وائي چه د اوچت مکان نه مراد جنت دې.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أُولَٰئِكَ | الَّذِينَ | أَنْعَمَ | اللَّهُ | عَلَيْهِمْ | |
| دا کسان چې دی \| دا هغه کسان دی \| چې انعام اوکړو \| الله \| په هغوئ باندې \| | | | | | |
| \| دا هغه پیغمبران دی په کومو چې الله ﷻ په پیغمبرانو کښې (خصوصی) انعام کړې وو | | | | | |
| مِنَ النَّبِيِّينَ | مِنْ ذُرِّيَّةِ آدَمَ | وَمِمَّنْ | حَمَلْنَا | | |
| چې دپیغمبرانو نه وو \| د اولاد دآدم نه وو \| او د(نسل) دهغه چانه وو \| چې سواره کړی وو مونږ \| | | | | | |
| یعنی د دآدم ﷺ په اولاد کښې اود هغه چانه چې مونږ نوح ﷺ سره (په بیړئ کښې) سواره کړی وو | | | | | |
| مَعَ نُوحٍ | وَمِنْ ذُرِّيَّةِ إِبْرَاهِيمَ | وَإِسْرَائِيلَ | وَمِمَّنْ | | |
| د نوح سره \| او داولاد دابراهیم نه وو \| او داسرائیل دنسل نه وو \| او دهغه کسانونه وو \| | | | | | |
| او څه په کښې دابراهیم ﷺ اویعقوب دنسل نه وو \| اودا(تول) په هغه خلقو کښې وو چې مونږ ورته هدایت کړې | | | | | |
| هَدَيْنَا | وَاجْتَبَيْنَا | إِذَا تُتْلَىٰ | عَلَيْهِمْ | | |
| چې لارښودلې وه ورته مونږه \| او خوښ کړی وو مونږه \| کله چې به لوستلې کیدل \| په هغوئ باندې \| | | | | | |
| وو\| او مونږ غوره کړی وو\| هرکله چې به دهغوئ په مخکښې د رحمان آیتونه اولوستلې شو | | | | | |
| آيَاتُ الرَّحْمَٰنِ | خَرُّوا | سُجَّدًا | وَبُكِيًّا ۩ | | |
| آیتونه درحمن \| نو پریوتل به \| په سجده \| په ژړا ژړا \| | | | | | |
| نو په سجده به پریوتل \| او ژړیدل به \| | | | | | |

**قوله تعالی:- أُولَٰئِكَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ**

**په انبیاء کرامو علیهم السلام باندې د الله ﷻ د فضل تذکره او دهغوئ نسب نامه:-** دالله ﷻ فرمان دې چه داد انبیاؤ کرامو علیهم السلام دله ده د چا ذکر چه په دې سورت کښې دې یا وړاندې تیرشوی یا دې نه پس به راځي. دا خلق د الله ﷻ انعام ورکړې شوی دی اوس دلته دشخصیت نه د جنس طرف ته اشاره ده، دوی د آدم ﷺ داولاد نه دی یعنی دحضرت ادریس ﷺ اولاد نه د هغوی نه کوم چه حضرت نوح ﷺ سره په کشتئ کښې سواره کړې شوی وو دې نه مراد ابراهیم خلیل الله ﷺ دې اود ابراهیم ﷺ د ذریت یعنی اولاد نه حضرت اسحاق حضرت یعقوب حضرت اسماعیل علیهم السلام دی اود اسرائیل د اولاد نه مرادموسی ﷺ حضرت هارون ﷺ حضرت زکریا ﷺ حضرت یحیی ﷺ اوحضرت عیسی ﷺ دې. هم دا قول دې د سدی ﷺ او امام ابن جریر. د دې د پاره د دوی نسب جدا بیان کړې شو.

د انبیاء علیهم السلام نسل د آدم ﷺ نه دې خو دوی کښې بعضې هغه هم دی چه د دې بزرګانو دنسل نه نه دی کوم چه دنوح ﷺ ملګرې وو څکه چه ادریس ﷺ خودنوح ﷺ نیکه وو. زه خووایم چه په ظاهره هم دا ټیک دی چه د نوح ﷺ نه پورته په نسب کښې د الله ﷻ پیغمبر ادریس ﷺ دې. اود بعضې خلقوداخیال دې چه ادریس ﷺ هم د بني اسرائیلو نبی دې. داوائی چه د معراج په حدیث کښې دادریس ﷺ هم حضور ﷺ ته دا وینا کول نقل دی چه مرحبادې وی نبی صالح ته او مرحبا دې وی

صالح رور ته. نو رور صالح نی ورته اوفرمانیلو نه چه خوئ صالح لکه چه ابراهیم ﷺ او ادم ﷺ چه ونیلی وو. روایت دی چه ادریس ﷺ د نوح ﷺ نه وړاندې دې. هغوی خپل قوم ته فرمائیلي وو چه د لاالله الاالله ونیلو قائل او معتقد جوړشئی بیاچه څه غواړئی کوئی. خوهغوی د دې نه انکاراوکړو. الله ﷻ هغوی ټول هلاک کړل. مونږ دا آیت د انبیاءکرام علیهم السلام د جنس د پاره ګرځولې دې.ددې دلیل د سورت انعام هغه آیاتونه دی په کوم کښې چه حضرت ابراهیم ﷺ حضرت اسحاق ﷺ حضرت نوح ﷺ حضرت داؤد ﷺ حضرت سلیمان ﷺ حضرت یوسف ﷺ حضرت موسی ﷺ حضرت هارون ﷺ حضرت زکریا ﷺ حضرت یحیی ﷺ حضرت عیسی ﷺحضرت الیاس ﷺ حضرت اسماعیل ﷺ حضرت یسع ﷺ او دحضرت یونس ﷺ وغیره ذکر اوتعریف کولونه پس اوفرمانیل ﴿أُولَٰئِكَ الَّذِينَ هَدَى اللَّهُ فَبِهُدَاهُمُ اقْتَدِهْ قُل لَّا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ أَجْرًا إِنْ هُوَ إِلَّا ذِكْرَىٰ لِلْعَالَمِينَ﴾ ([1]هم دا هغه خلق دی چاته چه الله ﷻ هدایت ورکړې دې ته هم د دوی د هدایت اقتداء اوکړه اودانی هم فرمانیلی دی چه د نبیانو بعضې واقعات مونږ بیان کړی دی اود بعضو واقعات تاته رسیدلې هم نه دی.([2])

**د صاد دپه سجده باندې د علماء کرامو اتفاق دې:**-صحیح بخاری کښې دی چه حضرت مجاهد رحمه الله د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه سوال اوکړوپه سورت "ص" کښې سجده شته هغوی اوفرمانیل اوبیاتی د دې آیت تلاوت اوکړو وئی فرمانیل ستاسو نبی ته د دوی د اقتداء حکم کړې شوې دې اوحضرت داؤد ﷺ هم د مقتداء انبیاء کرامو علیهم السلام نه دې.([3]) فرمان دې چه د دې پیغمبرانو علیهم السلام په وړاندې د کلام الله شریف آیاتونه تلاوت کیدل نود هغې دلائل او ثبوتونه اوریدوسره به په خشوع اوخضوع سره د الله ﷻ شکر اواحسان منلوسره ژړل او په ژړا اوزارئی سره به په سجده کښې پریوتل په دې وجه په دې آیت کښې د سجده کولوحکم د علماؤ کرامو متفق علیه مسئله ده دې دپاره چه د دې پیغمبرانو اقتداء او اتباع اوشی. امیرالمؤمنین حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه د سورت مریم تلاوت اوکړو اوچه کله دې آیت ته راورسیدو نوسجده ئی اوکړه. بیائی اوفرمانیل چه سجده خومې اوکړه خو هغه ژړاد کوم ځائ نه راوړم؟(ابن ابی حاتم او ابن جریر)

<table>
<tr><td colspan="6">فَخَلَفَ مِنۢ بَعۡدِهِمۡ</td></tr>
<tr><td colspan="6">| بیا راغلل | روستو دهغوئ نه |</td></tr>
<tr><td colspan="6">بیا دهغوئ نه پس خیني داسې نااهله جانشین شول</td></tr>
<tr><td>خَلۡفٌ</td><td>أَضَاعُوا</td><td>ٱلصَّلَوٰةَ</td><td>وَٱتَّبَعُوا</td><td>ٱلشَّهَوَٰتِ</td><td></td></tr>
<tr><td>داسې بدعمله جانشینان</td><td>چې ضائع کړو هغوئ</td><td>مونځ</td><td>او روان شو</td><td>په خواهشاتو پسې</td><td></td></tr>
<tr><td colspan="6">چې مونځونه ئې ضائع کړل | اود خواهشاتو تابعداری ئې شروع کړه.........</td></tr>
<tr><td>فَسَوۡفَ</td><td>يَلۡقَوۡنَ</td><td>غَيًّا</td><td>إِلَّا</td><td>مَن</td><td>تَابَ</td></tr>
<tr><td>نو زر ده</td><td>چې مخ به شي هغوئ</td><td>دګمراهئ دانجام سره</td><td>مګر</td><td>هغه څوك</td><td>چې توبه ئې اوویستله</td></tr>
<tr><td colspan="6">نو ډیرزر به د ګمراهئ سزا بیا مومی | .........البته چا چې توبه اوویستله</td></tr>
</table>

[1] ٦/الانعام: ٩٠.
[2] ٤٠/المؤمن:٧٨.
[3] صحیح بخاری کتاب التفسیرسورة ص:٤٨٠٧.

| وَاٰمَنَ | وَعَمِلَ | صَالِحًا | فَاُولٰٓئِكَ | يَدْخُلُوْنَ |
|---|---|---|---|---|
| او ايمان ئې راوړو | او عمل ئې اوکړو | نيک | نو دغه کسان چې دی | دا خليږی به هغوئ |
| او ايمان ئې راوړو | او نيک عملونه ئې اوکړل | ................ | دا خلق به جنت ته داخليږی | |

| الْجَنَّةَ | وَلَا يُظْلَمُوْنَ | شَيْئًا | | |
|---|---|---|---|---|
| جنت ته | او نۀ به پرې کيږی ظلم | هيڅ | جنتونه دی | دهميشه اوسيدو |
| او په دوئ به هيڅ ظلم نه شی کيدې | د هميشه اوسيدو په باغونو کښې به وی | | | |

**قوله تعالى:- فَخَلَفَ مِنْ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ**

**نااهل جانشين:-** دنيکانوخلقو خاص کر دانبياء کرام عليهم السلام ذکر اوکړې شو چه د الله ﷻ د حدودو محافظ د نيکوعملونونمونې د بدونه به بچ کيدل. اوس دخرابوخلقو ذکر کولې شی چه د هغوئ نه پس دزمانې خلق داسې شو چه هغوی دمونځونه بې پرواه شو. اوچه کله ئې د مانځه غونډې فريضې اهميت هيرکړو نوبنکاره خبره ده چه دنورو واجباتو به ئې څه پرواه کوله؟ ځکه چه مونځ خود دين بنياد دې اود ټولو عملونونه ښه اوبهترډې. دا خلق نفسانی خواهشاتو پسې پريوتل.اود دنيا په ژوندون کښې په تسلئې سره وراخته شو. دوی ته به د قيامت په ورځ سخته خساره وي او په تاوان کښې به وی. د مونځ ضائع کولونه مراد دا بالکل پريخودل دی. ددې وجه نه د امام احمد رحمه الله سلفو اوخلفو مذهب دې چه د مونځ پريخودونکې کافر دې. هم دا يوقول د امام شافعی رحمه الله هم دې.

### د مونځ پريخودونکی حکم

**مسلک حنفی:-** دحنفيانو په نيز کوم کس چه د نا راستئ په وجه مونځ پريږدی دې فاسق دې قيد کولې به شی او وهلې به شی ترديې چه وينه ترې روانه شی دا به ترديې پورې وی چې توبه اوباسی او يا په جيل کښې مړ شی او قتلولې به نشی ا بته دا که د دې د فرضيت نه انکار اوکړی او يا مونځ سپک اوګڼړی (الفقه الاسلامی وادلته ناقلا عن الدرالمختار (٣٢٢/١)، ومراقی الفلاح (ص، ٢٠).

ځکه چه په حديث کښې دی چه د بنده او شرک په مينځ کښې مونځ پريخودل دی.[1] دويم حديث کښې دی چه په مونږ اوهغوی کښې فرق د مانځه دې چاچه مونځ پريخودو هغه کافر شو.[2] د دې مسئله په وضاحت سره د بيانولودا مقام نه دې. ياد مونځ ترک کولونه مراد د مانځه د وخت په صحيح توګه پابندی نه کول دی ځکه چه ترک مونځ خوکفر دې.[3] د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه نه تپوس اوکړې شو په قرآن کريم کښې د مانځه ذکر ډير زيات دې چرته په مانځه کښې دسستئې کونکو د عذاب څه بيان شته چرته په مانځه باندې دامولې فرمان شته اوياچرته دمحافظت بيان شته. هغوی اوفرمائيل دې نه مراد په وختونوکښې سستی نه کول اود وختونو پابندی کول دی. خلقو خو وئيل چه مونږ داګڼړل چه دې نه مراد دمونځونو پريخودل او نه پريخودل دی. هغوی اوفرمائيل دا خوکفر دې.[4] حضرت مسروق رحمه الله فرمانی چه د پنځو وارو مونځونو حفاظت کونکې په غافلانوکښې نه شی ليکلې.دهغې ضائع کول خپل ځان هلاک کول دی.اودهغې ضائع کول دهغې دوختونوپابندی نه کول دی[5] خليفة المسلمين

---

[1] صحيح مسلم كتاب الايمان باب بيان اطلاق اسم الكفر على من ترك الصلاة: ٨٢، ابوداؤد: ٤٦٧٠، ترمذی: ٢٦١٨، ابن ماجه: ١٠٧٨.

[2] ترمذی كتاب الايمان باب ماجاء فی ترك الصلاة: ٢٦٢١، وسنده صحيح.

[3] الطبری: ٢١٥/١٨.

[4] الطبری: ٢١٦/١٨.

[5] الطبری: ٢١٦/١٨.

اميرالمؤمنين حضرت عمر بن عبدالعزيز رحمه الله د دې آيت تلاوت كولوسره اوفرمائيل چه دې نه مراد د سر نه مونځ پريخودل نه دى بلكه د مانځه وخت ضائع كول دى.(۱) حضرت مجاهد رحمه الله فرمائى چه دابدترين خلق به قيامت سره نيزدې راشى اود دې امت نيكان خلق به باقى نه وى. هغه وخت به داخلق د خناورو په شان تړپونه اومنډې تړړې وهي.

**دا نااهل خلق به كله وى:-؟ اود قاريانو درې قسمونه:-**عطاء بن ابى رباح رحمه الله هم دا فرمائى چه دا خلق به په آخرى زمانه كښې وى.حضرت مجاهد رحمه الله فرمائى دا به هم د دې امت خلق وى چه د څاروو په شان به په لاروكښې تړپونه اومنډې وهي اود الله ﷻ نه چه په آسمان كښې دې به نه ويرېږى اونه به دخلقو نه شرميږى. د ابن ابى حاتم په حديث كښې دى حضور ﷺ فرمائى دانا خلف خلق به د شپيتوكالو نه پس وى كوم چه به مونځونه ضائع كوى او په شهوتونوكښې به اخته شى اود قيامت په ورځ به سزا خورى. بيابه د هغوى نه پس هغه نالائق خلق راشى چه د قرآن تلاوت خو به كوى ولې دهغوى د حلق نه به لاندې نه تيرېږى.يادساتئى چه قاريان درې قسمه وى مؤمن، منافق او فاجر.د حديث د راوى وليد رحمه الله نه چه كله د هغه شاګرد د دې تفصيل تپوس اوكړو نوهغوى اوفرمائيل چه ايماندارخو به د دې تصديق كوى اومنافق به په دې باندې عقيده نه لرى. او فاجر به دې نه خپله خيټه ډكه كړى.(۲) ابن ابى حاتم كښې يوغريب حديث كښې دى چه حضرت عائشه صديقه k به د اصحاب صفه د پاره څه خيرات ليګلونوورته به ئې وئيل چه بربرى سړواوښخوله مه وركوه ځكه چه ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلى دى چه هم دا هغه ناخلف دى د كوموذكر چه په دې آيت كښې دې.(۳) د محمد بن كعب قرظى رحمه الله فرمان دې چه دې نه مراد د مغرب بادشاهان دى چه ډيرخراب بادشاهان دى.كعب احبار رحمه الله فرمائى د الله ﷻ قسم چه زه د منافقانو صفت په قرآن كريم كښې وينم دا نننه كونكى مونځونه پريخودونكى شطرنج او جوارئى وغيره لوبې كونكى دماسخوتن د مانځه په وخت كښې اوده كيدونكى په خوراك څښاك كښې مبالغه اوتكلف سره خيټوان جوړيدونكى خوراك كونكى ډله پريخودونكى دى. حضرت حسن بصرى رحمه الله فرمائى جماتونه د دې خلقو نه خالى ښكارى او بيتهكونه اوحجرې ډكې دى.

ابوالشهب عطاردى رحمه الله فرمائى په حضرت داؤد عليه السلام باندې وحى راغله چه خپل ملګرى هوښياركړى چه هغوى دې د خپلو نفسانى خواهشاتونه منع شى د چا زړونه چه د خواهشاتو چاپيره دى د هغوى په زړونوبردې اچوم. كله چه يوسړې په شهوت كښې روندشى نود ټولونه سپكه سزا هغه ته زه داوركوم چه د خپلې تابعدارئى نه هغه زه محروم كوم.مسنداحمدكښې دى ماته په خپل امت باندې د دوو څيزونو ډيره ويره ده. يودا چه خلق به دروغوشهوت پسې اولګى اومونځونه به پريږدى بل دا چه منافقان خلق به د دنياد خودلود پاره د قرآن پاك عاملان جوړشى اود رښتونومؤمنانوسره به جنګ جګړې كوى.(۴)

**د غيا معنى اومطلب:-**د(غيًا) معنى تاوان نقصان او بدى ده.(۵) د ابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دې(غي) د دوزخ ديوې كندې نوم دې چه ډيره ژوره ده اود ډيروسختو عذابونو(۶) والا اوپه دې كښې وينې اونوونه ډك شوى دى. ابن جريركښې دى چه لقمان بن عامر رحمه الله فرمائى چه حضرت ابوامامه صدى بن عجلان باهلى رضي الله عنه له لاړم او هغه ته مې سوال اوكړو چه د رسول الله ﷺ نه اوريدلې شوې حديث ماته واوروه.

(۱) الطبرى:۱۸/۲۱۶.
(۲) احمد:۳/۳۹-۳۹ وسنده حسن.
(۳) حاكم:۲/۲۴۴.
(۴) احمد:۴/۱۵۶ وسنده حسن، مجمع الزوائد:۱/۱۸۷.
(۵) الطبرى:۱۸/۲۱۸.
(۶) الطبرى:۱۸/۲۱۸.

هغوی اوفرمائيل چه واوره حضورﷺ فرمائيل كه د لس اوقيه وزن كاڼړي د دوزخ د غاړي نه دوزخ ته اوغورزولې شي نوهغه خود پنځوسوكالوپورې د دوزخ بيخ ته نه شي رسيدلې بيا به هغه غي او اثام ته اورسي. غي اواثام د دوزخ لاندې دوه كوييان دي كوم ځائ چه د دوزخيانو ويني نوونه راجمع كيږي. د غي ذكر په آيت ﴿ فَسَوْفَ يَلْقَوْنَ غَيًّا﴾كبنې دې اود اثام ذكر ايت ﴿وَمَن يَفْعَلْ ذَٰلِكَ يَلْقَ أَثَامًا﴾ كبنې دې.(١) داحديث په فرمان رسول سره روايت كول منكر دی. اوداحديث دسندپه روسره هم غريب دې بيا فرمائي چه څوك د دې كارونونه توبه اوكړي يعنى د مونځونوسستی او دخواهشاتونفساني تابعداری پريږدی الله ﷻ به د هغوی توبه قبوله كړي د هغوی آخرت به ښه كړی هغوی به د دوزخ نه خلاص كړي او جنت ته به ئې اورسوی. توبه د دې نه وړاندې ټول گناهونه معاف كوی. يوبل حديث كبنې دی چه توبه كونكې داسې دې لكه چه بې گناه وی.(٢) داخلق چه كومې نيكئې كوی د دې اجربه دوی ته ملاويږی. د يوې نيكئې ثواب به نه شي كمولې.د توبه نه وړاندې گناهونوباندې به هيڅ نيول نه كيږی. دا دې كرم د هغه كريم اودادې حلم د هغه حليم چه د توبه نه پس هغه گناه بالكل ختموی وركوی. په سورت فرقان كبنې د گناهونوذكر كولوسره د هغې د سزابيان كولونه پس ئې بيا استثنااوكړه او وئې فرمائيل چه الله ﷻ غفور او رحيم دې.

| | | | |
|---|---|---|---|
| جَنّٰتِ | عَدْنِ | الَّتِيْ | |
| جنتونه دی | دهميشه اوسيدو | هغه | |
| د هميشه اوسيدو په باغونو كبنې به وی \| هغه چې رحمان | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَعَدَ الرَّحْمٰنُ | عِبَادَهٗ | بِالْغَيْبِ | اِنَّهٗ | كَانَ |
| چې وعده كړې ده رحمن(دهغې) | دبندگانو خپلو سره | په غيبو | بيشكه شان دادې | چې ده |
| ئې د خپلو بندگانو سره غائبانه وعده كړې ده \| ...................... بيشكه د هغه وعده | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَعْدُهٗ | مَاْتِيًّا | لَا يَسْمَعُوْنَ | فِيْهَا | لَغْوًا | اِلَّا |
| وعده دهغه | پوره كيدونكې | نهٔ به اوری هغوئ | په هغې كبنې | څه فضول خبره | مگر |
| خامخا پوره كيدونكې ده \| په هغې كبنې به فضول خبره نه اوری \| سلام لفظ به وی (چې يو بل ته به | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| سَلٰمًا | وَلَهُمْ | رِزْقُهُمْ | فِيْهَا | بُكْرَةً | وَّعَشِيًّا |
| دسلامتيا خبره | اووی به دپاره دهغوئ | رزق دهغوئ | په هغې كبنې | صبا | بيگاه |
| د ملاقات په وخت كبنې وائي) \| اوهغوئ ته به په كبنې سحر ماښام روزی وركولې شي | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| تِلْكَ | الْجَنَّةُ | الَّتِيْ | نُوْرِثُ | مِنْ عِبَادِنَا | مَنْ | |
| دادې | جنت | هغه | چې په ميراث كبنې به ئې وركوؤ مونږه | دبندگانو خپلو نه | هغه چاته | |
| دا هغه جنت دې چې په خپلو بندگانو كبنې به ئې مونږ هغه څوك وارث جوړوو | | | | | | |

| | |
|---|---|
| كَانَ | تَقِيًّا |
| چې وی هغه | پرهيزگار |
| چې پرهيزگار وی | |

(١) طبرانی:٧٧٣١.
(٢) ابن ماجه كتاب الزهد باب ذكرالتوبه:٤٢٥ حلية الاولياء:٤/٢١٠.

**قوله تعالیٰ:- الَّتِيْ وَعَدَ الرَّحْمٰنُ عِبَادَهٗ بِالْغَيْبِ ؕ**

**مؤمنان به د جنت وارثان وی:-** په كومو جنتونوكښې چه به توبه ويستونكي داخلېږي شی دا جنتونه به د هميشه د پاره وی دكومې چه غائبانه وعده د هغوی رب هغوی سره كړې ده. دا جنتونه هغوی ليدلې نه دی خود كتلونه هم زيات يقين اوايمان د هغوی دې. خبره هم دغه ده چه د الله ﷻ وعدې اټل وی هغه حقائق دی چه ضرور به رامخامخ كيږی. نه به الله ﷻ وعده خلافی كوی اونه به وعده بدلوی. داخلق به هلته خامخارسولې شی اودوی به هغه ضرور مومی. د **(مَاْتِيًّا)** معنی **(اٰتِيًا)** هم راځی اودا هم دی چه څرته مونږ خو هغه زمونږ مخې ته راغلو لكه چه وائی په ماپنځوس كاله راغله زه پنځوسوكالوته اورسيدم. د دواړوجملو مطلب هم يو دې. نامكن دی چه په دې جنتونوكښې د هغوی په غوږونوكښې څه فضول اوبې كاره خبره اورسی. صرف دمبارك سلامت آوازونه به څلوروواړوطرفونوته وی اوخاص كر د فرښتو د پاكو ژبونه به دامبارك آوازونه د هغوی په غوږونوكښې كړنګيږی. لكه چه په سورت واقعه كښې دی **(لَا يَسْمَعُوْنَ فِيْهَا لَغْوًا وَّلَا تَاْثِيْمًا ۙ اِلَّا قِيْلًا سَلٰمًا سَلٰمًا ۝)**[1] هلته به هيڅ بې هوده اود طبع خلاف څه خبره نه اوری بغير د سلام اوسلامتيانه دااستثنا منقطع ده سحرماښام پاك مزيدارخوندناك خوراكونه بې تكلف اوبې تكليفه بې مشقته او بې زحمته به راروان وی

**جنت كښې شپه ورځ نشته اونه حسد او كينه:-** خودا مه ګڼږئ چه په جنت كښې به هم ورځ اوشپه وی نه بلكه دې انواروسره به هغه وختونوته جنتيان اورسی كوم چه دالله ﷻ دطرف نه مقرر دی. مسند احمد كښې دی رسول الله ﷺ فرمائی اولنئی ډله چه جنت ته ځی د هغوی مخونه به د څوارلسمې د سپوږمئ په شان روښانه اونورانی وی. نه به هلته هغوی له لارې راځی نه پوزه نه غتې ورې متيازې. د هغوی لوښی او سامانونه به د سرو زرو وی خوشبودار بخور به وی اود هغوی خولې به د مشك په شان وی. د هر يوجنتی سرې دوه بيبيانې خوبه داسې وی چه د هغوی د پنډو دصفائې نه به دهغوی دپنډو د هډوكي مازغه د بهر نه ښكاری. دې ټولوجنتيانوكښې به د يوجنتی بل سره هيڅ دښمنی نه وی نه به څه بغض وی ټول به د يوزړه په شان وی. په خپل مينځ كښې به ئی هيڅ اختلاف نه وی. سحر ماښام به د الله ﷻ په تسبيح كښې تيريږی.[2] حضور ﷺ فرمائی شهيدان خلق به هغه وخت د جنت د يونهر په غاړه د جنت دروازوسره د سور رنګ په ګنبدونوكښې وی هغوی ته سحر ماښام رزق رسولې شی.[3]

سحرماښام د دنياپه اعتباردی هلته شپه نشته بلكه هروخت به نوروی. پردې رااچولوسره اودروازې بنديدلوسره به جنتيان ماښام اودغه شان د پردواوچتيدوسره او دروازو كولاويدوسره به د سحر وخت پيژنی. ددې دروازو كولاويدل او بنديدل به هم د جنتيانوپه اشارو او حكمونوسره كيږی. دا دروازې هم داسې صفاسترا اوډشيشو په شان دی چه د بهر څيزونه دننه ښكاری. په دنياكښې د شپې ورځې عادت وو نود دې د پاره چه كوم يووخت كله غواړی موجود به وی. عرب سحر ماښام خوراك كولوعادت وو په دې وجه دجنتی خوراك وخت هم هغه اوخودلې شو ګنی جنتيان چه څه غواړی اوكله ئی غواړی موجود به وی. په يوغريب منكر حديث كښې دی چه د سحر ماښام څه خبره ده رزق خو بې شميره اوهروخت موجود دې. د الله ﷻ دوستانوله به په دې وخت كښې حورې راځی په كوموكښې چه به د ښكته درجې والا هغه وی چه صرف د زعفران نه پيداكړې شوی دی. دا د نعمتونو والا جنتونه به هغوی ته ملاويږی چه په ظاهراو باطن كښې د الله ﷻ تابعدارو غصه څكونكې او خلق معاف كونكی

---

[1] ۵۶/الواقعه: ۲۵-۲۶.

[2] صحيح بخاری كتاب بدء الخلق باب ماجاء فی صفة الجنة وانها مخلوقة: ۳۲۴۵، صحيح مسلم ۲۸۳۴، ترمذی: ۲۵۳۷، احمد: ۲/۳۱۶،

[3] احمد: ۱/۲۶۶ وسنده حسن، طبرانی: ۱۰۸۲۵، ابن حبان ۴۶۵۸، حاكم: ۲/۱۷۴ وصححه ووافقه الذهبی، مجمع الزوائد: ۵/۲۹۸.

وو د چا صفتونه چه ﴿ قَدْ أَفْلَحَ مَنْ تَزَكّٰى ﴾[1] په شروع کښې بيان شوي دي اوفرمائيلي شوي دي چه هم دا د فردوس برين وارثان دي د چا پاره چه د هميشه په توګه الله ﷻ جنت الفردوس ليکلې دې. (اې الله مونږ ته هم ته د خپل رحمت کامله نه فردوس برين ته اورسوې. آمين)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمَا نَتَنَزَّلُ | إِلَّا بِأَمْرِ | رَبِّكَ ۖ | لَهُ | مَا |
| او نه نازليږو مونږه | مګر په حکم | درب ستا | هغه لره دي | هر هغه څه |

| او (جبرئيل اوويل) مونږ د خپل رب د حکم نه بغير نه نازليږو | چې زمونږ په وړاندې |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بَيْنَ أَيْدِينَا | وَمَا | خَلْفَنَا | وَمَا | بَيْنَ ذَٰلِكَ ۚ |
| څه زمونږ په وړاند دي | او هغه څه | چې روستو زمونږ نه دي | اوهغه څه | چې په منځ ددې کښې دي |

| خې دي اوڅه چې زمونږ نه شاته دي اوڅه چې د دې په مينځ کښې دي هغه ټول د هغه ملکيت دې |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمَا كَانَ | رَبُّكَ | نَسِيًّا ﴿٦٤﴾ | رَّبُّ السَّمَاوَاتِ | وَالْأَرْضِ |
| او نه دې | رب ستا | هيرونکې | رب داسمانونو دي | او دزمکې دې |

| اوستارب (هيڅ) خبره هيرونکې نه دې | هغه د اسمانونو او د زمکې او څه چې د دې دواړو په مينځ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمَا | بَيْنَهُمَا | فَاعْبُدْهُ | وَاصْطَبِرْ | لِعِبَادَتِهِ ۚ |
| او دهغې چې په منځ ددې دواړو کښې دي | | نو بندګی کوه دهغه | او صبر کوه | په عبادت دهغه |

| کښې دي د ټولو څيزونو رب دې | نود هغه عبادت کوه | اوهم د هغه په عبادت ټينګ ولاړ اوسيږه |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| هَلْ تَعْلَمُ | لَهُ | سَمِيًّا ﴿٦٥﴾ | وَيَقُولُ الْإِنسَانُ | أَإِذَا مَا | مِتُّ |
| ايا ته پوهيږې | چې هغه لره شته | شريك په نوم | او وائي انسان | ايا هر کله چې | مړ شم زه |

| ايا تاته د هغه (الله سره په خدايي کښې) څوک همنام معلوم دې؟ | او انسان وائي چې ايا هرکله زه مړشم |

| | |
|---|---|
| لَسَوْفَ أُخْرَجُ | حَيًّا ﴿٦٦﴾ |
| نو راوبه ويستلې شم زه | ژوندې |

| نولابيا به هم ژوندې (دقبرنه) راويستې شم |

قوله تعالى:- وَمَا نَتَنَزَّلُ إِلَّا بِأَمْرِ رَبِّكَ

**فرښتې د الله ﷻ د حکم نه بغير نه نازليږي:** صحيح بخاری کښې دي حضرت رسول مقبول ﷺ يوځل حضرت جبرائيل عليه السلام ته اوفرمائيل ته چه څومره راځې د هغې نه زيات ولې نه راځې؟ د دې په جواب کښې دا آيت نازل شو[2] دا هم روايت دې چه يوځل دحضرت جبرائيل عليه السلام په راتلوکښې ډيرتاخير اوشو په څه سره چه حضور ﷺ ډير خفه وو. بيا هغوی دا آيت راوړو نازل شو[3] روايت دې چه دولس ورځې يا د دې نه څه کم نه وو راغلې نو حضور ﷺ اووئيل چه دا دومره تاخير ولې اوشو؟ مشرکانو خو څه نورې خبرې کولې په دې باندې دا آيت نازل شو[4] نولکه دا آيت ﴿والضحیٰ﴾ د آيت په شان دې.

---

[1] ۲۳/المؤمنون:۱.
[2] صحيح بخاری کتاب التفسير سورة مريم باب قوله ﴿ومانتنزل الابامرربك له مابين......﴾۴۷۳۱، ترمذی:۳۱۵۸.
[3] الطبری:۲۲۲/۱۸.
[4] الطبری:۲۲۳/۱۸.

واني چه ځلوېښت ورځې ملاقات نه ووشوې کله چه ملاقات اوشو نو حضور ﷺ اوفرمائيل زما شوق خو ډير زيات بې آرام کړې ووم. حضرت جبرائيل عليه السلام اوفرمائيل چه د دې نه ډير شوق زما ستاسو د ملاقات وو خوزه دالله ﷻ د حکم مامور اوپابنديم کله چه دهغه ځائ نه راوليګلې شم نو هله راتلې شم ګنې نه شم راتلې. هم هغه وخت دا وحی نازل شوه. خودا روايت غريب دې. ابن ابی حاتم کښې دی حضرت جبرائيل عليه السلام په راتلوکښې وخت اولګولو بيا چه کله راغلو نوحضور ﷺ بنديدو د وجه تپوس اوکړو هغوی جواب ورکړوچه کله خلق دګوتو نوکونه وانخلی ګوتې اوبندونه صفااونه ساتی بريتونه کم نه کړی مسواك اونه کړی نومونږ څنګه راتلې شو؟ بيا هغوی دا آيت تلاوت کړو.

مسنداحمد کښې دی يوه ورځ حضور ﷺ حضرت ام سلمه k ته اوفرمائيل مجلس درست او ټيك ټاك کړنی نن هغه فرښته راروانه ده چه د نن نه وړاندې په زمکه نه ده راغلې.(1) زمونږ وړاندې روستو ټول ځيزونه دهغه الله ﷻ دی يعنی دنياآخرت اود دې په مينځ کښې يعنی د دواړو شپيلو په مينځ کښې چه کوم ځيزونه دی هغه هم د هغه تمليك دی.راتلونکی امورد آخرت اوتيرشوی امور د دنيا اود دنيا او آخرت امورپه مينځ کښې ټول هم دهغه په قبضه کښې دی(2) ستارب هيرونکې نه دې هغه ته د خپل يادنه هيرکړې نه ئې اونه د هغه داصفت دی. لکه چه ارشاد دې ﴿وَالضُّحٰى۝وَالَّيْلِ اِذَا سَجٰى۝مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ وَمَا قَلٰى﴾ (3) قسم دې دڅاشت د وخت اود شپې چه کله پټ کړی نه خوستارب تانه لاس اخستې دې نه خفه دی.

ابن ابی حاتم کښې حضور ﷺ فرمانی کوم څه چه الله ﷻ په خپل کتاب کښې حلال کړی دی هغه حلال دې اوچه کوم ئې حرام کړی دی هغه حرام دی اود کومونه چه خاموش شوې دې هغه عافيت دې. ته د الله ﷻ عافيت قبلوه الله ﷻ د يوڅيز هيرونکې نه دې.بيا هغوی هم دا جمله تلاوت کړه.(4) د آسمان زمکې اوټول مخلوق خالق مالك مدبر متصرف هم هغه ذات دې.هيڅ څوك نشته چه د هغه يوحکم روستوکړې شی ته هم د هغه عبادت کوه او په هغې کلك اوسيږه.دهغه په شان د هغه برابر اود هغه په نوم باندې هيڅ څوك نشته.هغه د برکت خاوندې هغه اوچت دې دهغه په نوم کښې ټولې خوبيانې دی.

اَوَلَا يَذْكُرُ الْاِنْسَانُ اَنَّا خَلَقْنٰهُ

| ايا نه يادوی | انسان | چې بيشکه مونږ | پيدا کړې دې هغه

| ايا انسان دا نه يادوی چې د دې نه وړاندې په هغه وخت کښې

مِنْ قَبْلُ وَلَمْ يَكُ شَيْـًٔا۝ فَوَرَبِّكَ لَنَحْشُرَنَّهُمْ

مخکښې ددې نه |اونه وو هغه| هيڅ څيز | نوقسم دې په رب ستا|چې ضرور به مونږ ه راجمع کړو دوئ

مونږ دې پيدا کړو چې لاهيڅ څيز هم نه ووا ..... نو ستا په رب قسم مې دې چې مونږ به دوئ

وَالشَّيٰطِيْنَ ثُمَّ لَنُحْضِرَنَّهُمْ حَوْلَ جَهَنَّمَ جِثِيًّا۝

او شيطانان | بيا | به خامخا حاضر کړو دوئ | چاپيره ددوزخ نه | په زنګنانو پراته پرمخې

اوشيطانان خامخا راجمع کووا بيا به دوی د دوزخ نه ګيرچاپيره حاضرووا چې په ګودوبه(غورزيدلې) پراته وی

---

(1) احمد:٦/٢٩٦.
(2) الطبری:١٨/٢٢٤.
(3) ٩٣/الضحی:١-٣.
(4) البزار:١٢٣ مجمع الزوائد:٧/٥٥،حاکم:٢/٣٧٥.

| ثُمَّ | لَنَنْزِعَنَّ | مِنْ كُلِّ شِيْعَةٍ | أَيُّهُمْ | أَشَدُّ |
|---|---|---|---|---|
| بيا \| به اوباسو مونږه \| | دهري | دلي نه \| هر هغه سړي ددوئ \| | چي هغه زيات سخت وي | |
| بيا به د هري يوي دلي نه هغه كسان بيل كړو چي د رحمان نه په سركشئ كولو كښي د ټولو نه وړاندي | | | | |

| عَلَى الرَّحْمٰنِ | عِتِيًّا | ثُمَّ | لَنَحْنُ | أَعْلَمُ | بِالَّذِيْنَ | هُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په مقابله د رحمن كښي \| | په لحاظ دسركشئ سره \| | بيا \| | مونږه \| | ښه پيژنو \| | هغه كسان | اچي هغوئ |
| وو \| .........بيا مونږ هغه څوك ښه پيژنو چي دي دوزخ ته د داخليدو زيات قابل دي | | | | | | |

| أَوْلٰى | بِهَا | صِلِيًّا |
|---|---|---|
| ښه مستحق دي \| ددغه دوزخ \| په لحاظ دغورزولو \| | | |

قوله تعالى:- فَوَرَبِّكَ لَنَحْشُرَنَّهُمْ وَالشَّيٰطِيْنَ

**په الله ﷻ قسم چه محشربه كيږي:**-بعضي د قيامت منكران د قيامت راتلل په خپل نيز محال ګڼړي او د مرګ نه پس ژوندى كيدل د هغه په خيال كښي ناممكن ووادو قيامت اودد هغه ورځي دويم اود نوى سر نه دژوندون حال اوريدوسره به ئي سخت تعجب كولولكه چه دقرآن پاك ارشاددي﴿وَإِنْ تَعْجَبْ فَعَجَبٌ قَوْلُهُمْ ءَإِذَا كُنَّا تُرٰبًا ءَإِنَّا لَفِيْ خَلْقٍ جَدِيْدٍ ۗ أُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ ۚ وَأُولٰٓئِكَ الْأَغْلٰلُ فِيْٓ أَعْنَاقِهِمْ ۚ وَأُولٰٓئِكَ أَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ﴾ ([1])يعني كه چرته ستا حيرانتيا وى نودهغوى داحال هم دحيرانتيانه خالى نه دي آياچه كله مونږ مړه شواوخاورې شونوبيابه مونږ په نوى پيداكيدو سره راپيداكولي شو؟ په سورت يس كښي فرمائيلي دي چه انسان دانه ګوري چه مونږ هغه دنطفه نه پيداكړوبياهغه مونږسره صفاصفاجګړه اوكړه او هم په مونږ پسي خبري جوړي كړي او خپل پيداكيدل ئي هيركړه وئي وئيل چه داهډوكي كوم چه سخاشوى وى څوك به ئي راژوندى كړي؟نوجواب وركړه هغه خالق حقيقي به پيداكوى چاچه په اول ځل پيدا كړي وو هغه د هريو د هرقسم پيداكيدونه خبردي.([2]) دلته هم د دغه كافرانود دي اعتراض ذكر دي چه مونږ مړه شوبيابه راژوندى شو نو څنګه به اودريدي شو؟ په جواب كښي فرمائيلي شي چه آيا دوى ته دا هم معلوم نه دي چه هغوى هيڅ هم نه ووا و مونږ راپيداكړل. د شروع د پيدائش قائل او د دويم ځل پيدائش منكرچه كله هيڅ هم نه وو نو په هغه وخت كښي الله ﷻدي دغه كولوباندي قادرووااومونږ هغه راپيدا كړو نواوس چه څه ناڅه شو نوآيا الله ﷻ قادر نه دي چه هغوى بياراپيداكړي؟ نود اول ځل پيداكول دليل دي په دويم ځل پيداكولوباندي. چا چه شروع كړي ده هم هغه به ئي دوباره كوى او دوباره كول په نسبت د شروع كولو هميشه آسان وى.

**يو حديث قدسي:**-په صحيح حديث كښي دي چه الله ﷻ فرمائي ما بنيادم دروغ ګڼړي اود هغه د پاره دا لائق نه وو. ماته بنيادم تكليف راكوى اوهغه له داهم لائق نه دي. د هغه زما دروغژن ګڼړل دا دي چه وائى لكه څنګه چه الله ﷻ زما د شروع اعاده نه كوى حالاتكه ښكاره خبره ده شروع په نسبت د دوباره كولو ګرانه وى اود هغه ماته تكليف راكول دا دي زما اولاد ګڼړى سره د دي چه زه احد يم صمديم نه زما موريلارنه اولادا ونه زما د جنس نه بل څوك.([3])زما دي په خپل ځان قسم وى چه زه به دا ټول راجمع كړم اودكوموكوموشيطانانوچه دوى زمانه بغيرعبادت كولوهغوى به هم راجمع كړم بيابه دوى دوزخ نه

[1]) ۱۳/الرعد:٥.
[2]) ۳٦/يس:۷۷-۷۹.
[3]) صحيح بخارى كتاب التفسيرسورة (قل هوالله احد):٤۹۷٤، احمد:۲/۳۹۳، ابن حبان:۲٥۷.

مخامخ راودرم كوم ځاى چه به په زنګونونو باندې راپريوځى لكه چه ارشاددي ﴿ وَتَرَىٰ كُلَّ أُمَّةٍ جَاثِيَةً ۚ كُلُّ أُمَّةٍ تُدْعَىٰ إِلَىٰ كِتَابِهَا الْيَوْمَ تُجْزَوْنَ مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴾[1] هريوامت به ته وينې چه د زنګونونو په مخ به پراته وى.[2]
بوقول داهم دې چه د قيام په حالت كښې به د دوى حشر وى كله چه ټول اول او آخر راجمع كړې شى نو مونږ به په دوى كښې لوئ لوئ مجرمان اوسركشه جداكړو د هغوى سرداران اواميران ګناهونه او بدنى خورونكى د هغوى مشران اوهغوى ته د كفر اوشرك تعليم وركونكى هغوى د الله ﷻ ګناهونوطرف ته مائل كونكى به جدا كړې شى لكه چه ارشاد دې ﴿حَتَّىٰ إِذَا ادَّارَكُوا فِيهَا جَمِيعًا قَالَتْ أُخْرَاهُمْ لِأُولَاهُمْ رَبَّنَا هَٰؤُلَاءِ أَضَلُّونَا فَآتِهِمْ عَذَابًا ضِعْفًا مِّنَ النَّارِ ۖ قَالَ لِكُلٍّ ضِعْفٌ وَلَٰكِن لَّا تَعْلَمُونَ ﴾[3] كله چه هلته ټول راجمع شى نو روستونى به د وړاندينوباره كښې وائى اې الله هم دې خلقو مونږ دهوكه كړې وو ته دوى له دوچند عذاب وركړه بيا به خبرباندې دخبرعطف اچولوسره فرمائى چه الله ﷻ ته ښه معلومه ده چه د ټولونه زيات د عذابونو اود دوزخ د اُوردسزا حقدار څوك څوك دى. لكه چه بل آيت كښې ارشاد دې ﴿لِكُلٍّ ضِعْفٌ وَلَٰكِن لَّا تَعْلَمُونَ﴾[4]
د هريود پاره دبل عذاب دې تاسو دعلم نه خالى نې.

| وَإِن مِّنكُمْ | إِلَّا وَارِدُهَا ۚ | كَانَ | عَلَىٰ رَبِّكَ | حَتْمًا |
|---|---|---|---|---|
| او نشته هيڅوك په تاسو كښې امګر تيريدونكې دې په دوزخ | دې (داكار) | په رب ستا باندې | يقينى | |
| اوپه تاسو كښې به هريو كس په هغې (دوزخ باندې د پل صراط په ذريعه) تيريدونكى وى | داستاسو په | | | |

| مَقْضِيًّا | ثُمَّ نُنَجِّي | الَّذِينَ | اتَّقَوا | وَّنَذَرُ |
|---|---|---|---|---|
| فيصله شوې | بيا به بچ كړو مونږه | هغه خلق | چې متقيان وو | او پرې به ږدو |
| رب باندې يقينى فيصله شوې خبره ده چې خامخا به پوره كيږى | بيا به مونږ هغه كسان بچ كړو چې | | | |

| الظَّالِمِينَ | فِيهَا | جِثِيًّا |
|---|---|---|
| ظالمان خلق | په هغې كښې (پرمخې)غورزيدلى | |
| پرهيزګاران دى | اوظالمان به په كښې دننه په ګونډو غورزيدلى پريږدو | |

قوله تعالى:-وَإِن مِّنكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا

**هريوبه په دوزخ باندې تيريږى:-** دمسنداامام احمدبن حنبل رحمه الله په يوغريب حديث كښې دې ابو سميه فرمائى د كوم ورود چه په دې آيت كښې ذكر دې ددې باره كښې په مونږ كښې اختلاف اوشو چا به ونيل مؤمن به په دې كښې نه داخليږى چا به ونيل داخليږى خو به ولې د خپلې تقوى په سبب به خلاصې بيامومى.ما حضرت جابر رضي الله عنه سره ملاقات اوكړو اوداخبره مې معلومه كړه نو هغوى اوفرمائيل چه واريديږى خو به ټول.يوبل روايت كښې دى چه داخليږى خويه ټول هريونيك هم او بدهم خو په مؤمنانوباندې به هغه اُور يخ او د سلامتياوالا جوړيږى. لكه چه په حضرت ابراهيم عليه السلام باندې وو تردې چه د دې اُور د يخوالى شكايت به پخپله اُور كوى بيا به ددې پرهيزګارانو خلقوخلاصې دهغه ځائ نه اوشى.[5] خالدبن معدان رحمه الله فرمائى چه كله جنتيان جنت ته اورسى وائى به چه الله ﷻ خو فرمائيلې

[1] الجاثية/۴۵: ۲۸.
[2] الطبرى: ۲۲۷/۱۸.
[3] ۷/الاعراف: ۳۸.
[4] ۷/الاعراف: ۳۸.
[5] احمد: ۳۲۸/۲-۳۲۹ وهوحسن بالشاهد، حاكم: ۵۸۷/۴،ح ۸۷۴۴وسنده حسن،مجمع الزوائد: ۵۵/۷، شعب الايمان: ۳۳۶/۱.

وو چه هر یو یه دوزخ ته مخامخ کیږي اومونږ خو ورمخامخ نه شو نودوی ته به فرمانیلي شي چه تاسو خو هم د هغه ځای نه راتیرشوئی خو الله ﷻ هغه وخت اُور یخ کړو.
حضرت عبدالله بن رواحه ﷺ یوځل د خپلې بی بی په زنګون باندې سر ایخودې ملاست وو چه په ژړا شو دهغوی بی بی هم په ژړا شوه نو هغوی ددې نه تپوس اوکړو چه تاولې اوژړل؟ هغې جواب ورکړوچه ته مې په ژړا باندې اولیدې. هغوی جواب ورکړو چه ماته خو آیت ﴿وَإِن مِّنكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا ۚ كَانَ عَلَىٰ رَبِّكَ حَتْمًا مَّقْضِيًّا﴾ (١) رایادشو او ژړا راغله ماته څه پته ده چه زه به خلاصې بیاموم که نه. هغه وخت دوی بیمار وو. حضرت ابومیسره ﷺ چه به کله خپلې بسترې له د اوده کیدو د پاره تلونو ژړل به ئې اود ژبې نه به ئې ناځاپي وتل چه افسوس زه پیداشوې نه ووم.
یوځل دهغوی نه تپوس اوشو آخرستاد دې ژړا فریاد څه وجه ده؟ نوونی فرمانیل چه دا آیت دې. داخو ثابته ده چه هلته خو به تلل وی اودانه دی معلوم چه خلاصی به وی اوکه نه؟ یوبزرګ سړی خپل رور ته اوفرمانیل تاته خودا پته ده چه مونږ به په دوزخ باندې تیرولې شو هغه جواب ورکړو او یقینا معلومه ده.بیائې تپوس اوکړوچه داهم درته معلومه ده چه په هغه ځای به تیرهم شې؟هغه اوفرمانیل ددې خوراته هیڅ علم نشته. نوبزرګ اوونیل بیازمونږ د خنداخوشحالی د کومې؟ دې اوریدوسره د هغه وخت نه واخله ترمرګه پورې د هغه په شونډو خندا رانغله. نافع بن ازرق دحضرت ابن عباس ﷺ په دې باره کښې مخالف وو چه دلته د ورود نه مراد داخلیدل دی نوهغه په دلیل کښې د قرآن آیت ﴿إِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ أَنتُمْ لَهَا وَارِدُونَ﴾ (٢) پیش کولوسره اوفرمانیل ګوره دلته دورودنه مراد داخلیدل دی که نه دی؟ دویم آیت ئې اوفرمانیلو ﴿يَقْدُمُ قَوْمَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَأَوْرَدَهُمُ النَّارَ ۖ وَبِئْسَ الْوِرْدُ الْمَوْرُودُ﴾ (٣) اوونی فرمانیل اوښایه فرعون به خپل قوم دوزخ ته بوځی که نه؟ نواوس غوراوکړئی چه مونږ خو به په دې کښې داخلیږو خامخا نوراوخوبه هم که نه؟ غالبا تاخوبه الله ﷻ نه راوباسی د دې د پاره چه ته د دې نه منکرئې.دې اوریدو سره نافع روان شو او ونی خندل. دا نافع خارجي وو د ده کنیت ابوراشدوو.
بل روایت کښې دی ابن عباس ﷺ هغه پوهه کولو دپاره آیت ﴿وَنَسُوقُ الْمُجْرِمِينَ إِلَىٰ جَهَنَّمَ وِرْدًا﴾ (٤) هم لوستلې وو اودانی هم فرمانیلې وو چه اول د بزرګانو خلقو یوه دعاداهم وه ﴿اللهم اخرجنی من النار سالما وادخلنی الجنة غانما﴾ اې الله مادجهنم نه صحیح سالم راوباسې اوجنت ته مې په خندا خوشحالئی اورسوه. دحضرت ابن عباس ﷺ نه په ابوداؤد طیالسی کښې داهم روایت دې چه ددې مخاطب کفار دی.عکرمه رحمه الله فرمائی دا ظالمان خلق دی دغه شان به مونږ دا آیت لوستلو.داهم د حضرت ابن عباس ﷺ نه روایت دې چه نیک او بدبه ټول ورمخامخ کیږي. ګورئی د فرعون اود هغه د قوم د پاره او نورو ګناهګارانو د پاره هم د ورود لفظ د دخول په معنی کښې پخپله په قرآن کریم دوو آیاتونوکښې وارد دې. ترمذی وغیره کښې دی رسول الله ﷺ فرمانی واردکیږې خو به ټول بیابه تیریدل د خپلو خپلو عملونو مطابق وی.(٥)
**د پل صراط ذکر او په هغې تیریدل:-** حضرت ابن مسعود ﷺ فرمانی چه په پل صراط باندې به ټول تیریږی هم دغه اُور سره به اودریدل وی نو بعضې به دبجلئی په شان تیریږی بعضې د هوا په شان بعضې د مرغو په شان بعضې دتیزو اسونوپه شان بعضې د تیزواوښان په شان بعضې د تیزو تلونکی پیدل انسان په شان اوتردې چه د ټولونه آخری مسلمان په دې باندې تیریږی دابه هغه وی د چا چه صرف د

(١) ١٩/مریم:٧١.
(٢) ٢١/الانبیاء:٩٨.
(٣) ١١/هود:٩٨.
(٤) ١٩/مریم:٨٦.
(٥) ترمذی کتاب تفسیرالقرآن باب ومن سورة مریم:٣١٥٩، وسنده حسن، احمد١/٤٣٥، دارمی:٣٢٩/٢، حاکم:٣٧٥/٢.

پښو په ګوتوباندې نور وی پریوتونکې راپریوتونکې به خلاصې بیامومي.پل صراط خونیدونکې دې په کوم چه د کیکر په شان یاد مال کوندې په شان ازغی دی دواړو طرفو ته به د فرښتو صفونه وی د چا په لاسونوکښې چه به د دوزخ څوکیدار ستك(کرخ) وی په کومو سره چه به په نیولونیولو سره خلق دوزخ ته دیکه کوی الخ. حضرت عبدالله رحمه الله فرمانی دا د تورې د مخ نه تیره دې. اولنئی ډله خو به د بجلی د برق په شان تیرشی دویمه ډله به د هوا په شان تیره شی دریمه د تیز اس په شان څلورمه د تیز ځناور په شان. فرښتې به دهرطرف نه دعا کوی یا الله سلامت ئی اوساته بچ ئی کړه.(۱)

**دجهنم د هولناکئ بیان:**-دبخاری اومسلم په ډیرومرفوع احادیثوکښې هم دا مضمون واردشوې دې. د حضرت کعب ﷺ بیان دې چه دوزخ به ټول خلق په خپله شا راباکړی کله چه نیك او بدراجمع شی نود الله ﷻ حکم به کیږی چه ستاخپل خو راونیسه اوجنتیان پریږده. اوس به دوزخ دټولوبدو خلقو یوه نواله جوړه کړی. هغه بدان خلق داسې پیژنی لکه تاسو چه خپل اولاد پیژنئی بلکه دې نه هم زیات. مؤمنان به صفابچ شی.واورنی ددوزخ د داروغه ګانو قدونه دسلوکالود لارې په فاصله دی.دوی کښې هریوسره ګرز دې یوراخلاص کړی نو اووه لاکهه خلق ذره ذره کړی. مسند کښې دی حضور ﷺ فرمائیلی زما د خپل رب چه پاك ذات دې نه دا امیددې چه د بدراوحدیبیه په جنګ کښې کوم ایماندارشریك وو هغوی کښې به یوهم دوزخ ته نه خی.دې اوریدوسره حضرت حفصه k ونیل داځنګه؟قرآن خو فرمانی چه په تاسو کښې به یو دوزخ ته مخامخ کیدونکې دې نوحضورﷺ د دې نه پس دویم آیت اولوستلو چه متقیان خلق به دې نه خلاصې بیامومی اوظالمان خلق به هم دې کښې پاتې شی.(۲) بخاری اومسلم کښې دی دچاچه درې بچی مړه شوی وی هغه سره به اُور نه لګی مګرصرف دقسم پوره کیدو په توګه.(۳) دې نه مراد هم دا آیت دې. ابن جریرکښې دی چه یوصحابیﷺ تبې نیولې وود هغه د تپوس د پاره رسول الله ﷺ زمونږ سره راغلو حضورﷺ اوفرمائیل چه رب العزت فرمان دې چه دا تبه هم یواُور دې زه خپل مؤمنان بندیګان په دې کښې ځکه راګیروم چه داد دوزخ د اُور بدله شی.(۴) داحدیث غریب دې.

حضرت مجاهد رحمه الله هم دې فرمائیلو سره د دې آیت تلاوت اوکړو. مسنداحمدکښې دی رسول الله ﷺ فرمائیلی دی کوم سړې چه سورت اخلاص لس ځل اولولی د هغه د پاره په جنت کښې یومحل جوړولې شی. حضرت عمر ﷺ اوفرمائیل چه بیاخو به مونږ ډیرزیات محلونه تیارکړو. حضورﷺ جواب ورکړو چه الله ﷻ سره هیڅ کمې نشته هغه د بهتر نه بهتر او د ډیر نه ډیر ورکونکې دې. او کوم سړې چه د الله ﷻ په لارکښې زر آیاتونه اولولی الله ﷻ به دقیامت په روځ هغه د انبیاؤکرامو علیهم السلام صدیقینو شهیدانو صالحانوکښې اولیکی په حقیقت کښې د هغوی ملګرتیا دبهترین ملګرو ملګرتیاده اوچه کوم سړې دځه تنخواه په وجه نه بلکه د الله ﷻ د خوشحالئې دپاره دمسلمان لښکردهغوی د شانه حفاظت کولود پاره څوکئی کوی هغه به په خپلو سترګو باندې هم د دوزخ اُور نه وینی مګرصرف د قسم پوره کولود پاره ځکه چه د الله ﷻ فرمان دې په تاسو کښې به هریوپه دې باندې تیریدونکې دې. د الله ﷻ په لارکښې دهغه ذکر کول دخرچ کولونه هم اووه سوه چنده زیاته درجه لرې او په یو روایت کښې اووه زره دی.(۵)ابوداؤد کښې دی چه مونځ روژه اوداالله ﷻ ذکر دالله ﷻ په لارکښې په خرچ کولو

---

(۱) الطبری:۲۳۲/۱۸.

(۲) احمد:۲۸۵/۶، ابن حبان: ۴۸۰۰،ابن ماجه: ۴۲۸۱،وهوحدیث صحیح، له شاهد ل صحیح مسلم :۲۴۹۶.

(۳) صحیح بخاری کتاب الجنائزباب فضل من مات له ولد فاحتسب:۱۲۵۱،صحیح مسلم:۲۶۳۲، ترمذی: ۱۰۶۰، احمد:۲۳۹/۲، ابن حبان:۲۹۴۲.

(۴) الطبری:۲۳۳/۱۸.

(۵) احمد:۴۳۷/۳-۴۳۸.

باندې اووه سوه درجې لرې.(۱)
قتاده فرمائي چه دې آیت نه مراد تیریدل دي. عبدالرحمن رحمه الله وائي مسلمانان خو به په پل صراط باندې تیرشي اومشرکان به دوزخ ته ځي.حضورﷺ فرمائي په هغه ورځ به ډیر ښځې اوسړي په هغې باندې اوخوئیږي.ددې په دوارو غاړوبه د فرښتوصفونه ترلي وي چه د الله ﷻ نه به د سلامتیا دعاګانې کوي.(۲) داد الله ﷻ قسم دې چه پوره کیږي به. د دې فیصله شوې ده او الله ﷻ دا په ځان لازم کړې دي.(۳)په پل صراط باندې د تلونه پس پرهیزګاران خو به تیرشي او کافران ګناهګاران به د خپلې خپلې ګناه خطامطابق دوزخ ته پریوځي. مؤمنان به هم د خپل خپل عمل مطابق خلاصې بیامومي څنګه چه عمل وي هم دومره وخت به هلته لګي. بیادا خلاصې بیاموندونکي به د خپل رونړومسلمانانو سفارش کوي ملائکې به هم شفاعت کوي اوانبیاء کرام هم. بیابه ډیرزیات خلق د دوزخ نه په داسې حالت کښې راوځي چه اُور به هغوی خوړلې وي خود مخ د سجدې ځایونه به ئې بچ وي. بیابه د خپل خپل باقي ایمان په حساب سره د دوزخ نه راویستلې شي. د چا په زړه کښې چه د دینار برابر ایمان وي هغوی به اول راوځي بیا دې نه د کم اوبیا دې نه د کم تردې چه د اُوری د دانې هومره ایمان والا هم. بیا دې نه د کم او بیا هغې نه د کم هم بیاهغه چه په ټول عمر کښې یوځل لااله الا الله ونیلې وي اوهیڅ نیکي ئې هم نه وي کړې. بیا خو به په دوزخ کښې هم هغوی پاتې شي په کومو چه همیشه والې اودوام لیکلې شوې دې. دا ټوله خلاصه ده د هغه حدیثونو کوم چه په صحت سره راغلي دی نو په پل صراط باندې د تلونه پس به نیک خلق تیرشي ګناهګاران خلق به په پرې کیدو سره دوزخ ته پریوځي.

وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا بَيِّنٰتٍ
او کله چې الوستلې کیږي | په دې خلقو باندې | ایتونه زمونږ | چې واضحه او ښکاره دي
| او هرکله چې دوئ ته زمونږ ښکاره آیاتونه واورولې شي (نود هغې په اوریدو دایمان

قَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَيُّ
نو وائي | هغه کسان | چې انکار ئې کړې دې | هغه کسانوته | چې ایمان ئې راوړې دې | کومه یوه
راړو په ځائې ) کافران مومنانوته وائي | ..................چې په (مونږ) د دوارو

الْفَرِيْقَيْنِ خَيْرٌ مَّقَامًا وَّاَحْسَنُ نَدِيًّا ۝
ددې دوارو ډلونه | بهتره ده | په لحاظ دمقام سره | او زیات شاندار دی | په لحاظ دمجلس
ډلو (د کافرانو او مسلمانانو) کښې د چا ځائې بهتر دې | او د چا مجلس ډیر ښائسته دې

وَكَمْ اَهْلَكْنَا قَبْلَهُمْ مِّنْ قَرْنٍ هُمْ اَحْسَنُ اَثَاثًا
او څومره | هلاك كړي دي مونږ | مخکښې ددوئ نه | د قومونونه | چې هغوی | زیات ښه وو | په لحاظ دسامانونو
| او د دوئ نه وړاندې مونږ څومره ډیر امتونه هلاک کړي وو | چې (ددوئ نه) په سازوسامان او ظاهري شکل

وَّرِءْيًا ۝
او په لحاظ دظاهري شان وشوکت سره
صورت کښې ډیر ښه وو

(۱) ابوداؤد کتاب الجهاد باب في تضعيف الذکر في سبيل الله عزوجل.۲۴۹۸
(۲) الطبری:۱۸/۱۲۳.
(۳) الطبری:۱۸/۳۲۷.

**قوله تعالی:- اَیُّ الْفَرِیْقَیْنِ خَیْرٌ مَّقَامًا وَّاَحْسَنُ نَدِیًّا**

**کافران به مومنانوپورې خندا کانې کوی:-** د الله ﷻ د صفا او واضحه آیاتونو نه د پروردګار دلیل او برهان والا کلام نه کافرانو ته هیڅ فائده اونه رسیده. هغوی د دې نه مخ اړوی ستر ګې ترې اړوی او په خپل ظاهری شان اوشوکت سره هغوی مرعوب کول غواړی. وائی چه اوښائې د چاکورونه پرتکلف دی اود چا بیټهکونه ښائسته کړې شوی دی؟ آباد او ښکلې دی؟ مونږ چه مال اولاد دولت شان اوشوکت عزت او قدر کښې دهغوی نه زیات یومونږ الله ﷻ ته ګران یو؟یادا چه څوك پټ ګرځی راګرځی اوخوراك څښاك نه بیامومی کله د ارقم بن ابوارقم ﷺ په کورکښې پټیږی اوکله اخوادیخواتختی راتختی. لکه چه په بل آیت کښې دی کافرانو اووئیل﴿ خَیْرًا مَّا سَبَقُوْنَاۤ اِلَیْهِ ﴾[1] که دا دین بهتروو نودا به اول مونږ منلوکه دوی؟د حضرت نوح ﷺ قوم هم دا ونیلې ووچه﴿ قَالُوْۤا اَنُؤْمِنُ لَكَ وَاتَّبَعَكَ الْاَرْذَلُوْنَ ﴾[2] ستامنونکی خو ټول غریب محتاج خلق دی مونږ ستا تابعداران نه شو جوړیدې.

**د کافرانو دخندا کانو جواب:-** یوبل آیت کښې دی چه داسې هغوی دهوکه کیږی اووائی چه آیا هم دغه د الله ﷻ خوښ بندیګان دی چاته چه الله ﷻ په مونږ باندې فضیلت ورکړې دې؟[3] بیا د دوی د دې غلطئی جواب ورکړو د دوی نه اول د دوی نه هم په ظاهری شان اوشوکت کښې زیات او په مالدارئی کښې ډیر وراندې خلق وو.خود هغوی دبدعملو په وجه مونږهغوی تهس نهس تباه اوبربادکړل. د هغوی مجلسونه د هغوی کورونه د هغوی مالدارئی د دوی نه زیاتې وې.[4] په شان شوکت ظاهری لباس تکلفات کښې په امارت اوشرافت کښې ددوی نه څومره زیات وو د هغوی د کبر او دښمنئی په وجه سره مونږ هغوی تباه بربادکړل.فرعونیانو ته اوګوره د هغوی باغونه دهغوی نهرونه دهغوی فصلونه دهغوی اوچت مکانونه د هغوی عالیشان محلونه تراوسه پورې موجوددی اوهغوی غرق کړې شو اودکبانو خوراك جوړشول.دمقام نه مرادمسکن اونعمتونه دی.نَدِیٌّ نه مرادمجلسونه اوبیټهکونه دی.عربوکښې بیټهکونو ته اود خلق دراجمع کیدو ځائې ته نادی اوندی وائی[5] لکه آیت ﴿ وَتَاْتُوْنَ فِیْ نَادِیْكُمُ الْمُنْكَرَ ۚ فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖۤ اِلَّاۤ اَنْ قَالُوا ائْتِنَا بِعَذَابِ اللّٰهِ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِیْنَ ﴾[6] کښې دی.همدا ددې مشرکانوقول ووچه مونږددنیا په اعتبار سره تاسونه ډیروراندې یو.په لباس کښې مال اومتاع کښې شکل اوصورت کښې مونږتاسو نه غوره یو

| قُلْ | مَنْ كَانَ | فِی الضَّلٰلَةِ |
|---|---|---|
| ورته اووایه | هغه څوك چې وی | په ګمراهئ کښې |
| (ائې محبوبه) ته ورته اووایه څوک چې په ګمراهئ کښې دی | | |

| فَلْیَمْدُدْ | لَهُ | الرَّحْمٰنُ | مَدًّا ۚ | حَتّٰۤی | اِذَا | رَاَوْا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نو مهلت ورکوی | هغه ته | رحمان | په مهلت ورکولو سره | تردې پورې | کله چې | اووینی |
| نو رحمان (الله ﷻ) هغوئ ته پوره مهلت ورکوی | ...................... تردې چې کله هغه څیز | | | | | ووینی دکوم څیز |

[1] ۴۶/الاحقاف:۱۱.
[2] ۲۶/الشعراء:۱۱۱.
[3] ۶/الانعام:۵۳.
[4] الطبری:۱۸/۲۳۹.
[5] الطبری:۱۸/۲۳۹.
[6] ۲۹/العنکبوت:۲۹.

مَا يُوْعَدُوْنَ اِمَّا الْعَذَابَ وَاِمَّا السَّاعَةَ ط

هغه څيز | چي وعده ئې شوې ده (دهغوئ سره) | يا كه عذاب وى | او يا كه | قيامت وى |

چي ورسره وعده شوې ده | يا (په دنيا كښې) عذاب (پرې راشى) اويا قيامت (پرې راشى)

فَسَيَعْلَمُوْنَ مَنْ هُوَ شَرٌّ مَّكَانًا

نو معلومه به شي هغوئ ته | چې څوك دې | هغه | چي ناكاره دې | په لحاظ دخانې سره |

نو بيا به ورته معلومه شي چې څوك د خانې په اعتبار سره خراب دې | او د چا لښكر كمزورې دې

وَّاَضْعَفُ جُنْدًا ۝ وَيَزِيْدُ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اهْتَدَوْا هُدًى ط

او ډير كمزورې دې | په لحاظ دلښكر سره | او زياتوى الله | هغه كسان | چې په نيغه لاره دې هدايت كښې

.............. او الله ﷻ هدايت يافته خلق په هدايت كښې نور هم زياتوى

وَالْبٰقِيٰتُ الصّٰلِحٰتُ خَيْرٌ عِنْدَ رَبِّكَ ثَوَابًا

او باقي پاتې كيدونكى | نيكيانې | بهترې دى | په نيز درب ستا | په اعتبار دجزا سره |

اوهغه نيک عملونه چې باقي پاتې كيدونكې دى ستا د رب په نيز د ثواب

وَّخَيْرٌ مَّرَدًّا ۝

او بهترې دى | په اعتبار دواپس ورتلو سره

او دانجام په اعتبار سره بهتر دى |

**قوله تعالي:- قُلْ مَنْ كَانَ فِي الضَّلٰلَةِ**

**ګمراهي اوهدايت موندونكي خلق:-** داكافران چه خپل ځان پحق اوتاسوپه ناحقه ګنړي اوپخپله خوشحالئ اوازګارتياباندې په تسلئ سره ناست دي دوى ته اووايه چه د ګمراهورسئ اوږده وى دوى ته د الله ﷻ د طرف نه وخت ورکولې شي ترکومې چه قيامت رانه شي يادهغوى مرګ رانه شي. هغه وخت به دوى ته پوره پته اولګى چه په حقيقت كښې خراب سړي څوك وو اود چا ملګرى كمزورې وو. دنياخو زياتيدونكى او كميدونكې سورې دي نه پخپله د دې اعتبار اونه د دې د سامان او اسبابو اعتبار. دوى خو به په خپله سركشئ كښې وراندې كيږى لكه چه په دې آيت كښې مشركانو سره مباهله ده. لكه يهوديانوسره چه په سورت جمعه كښې د مباهله آيت دې چه راشئ زمونږ مقابله د مرګ غوښتنه اوكړئ.[1] دا شان په سورت آل عمران كښې د مباهله ذكر دې كله چه تاسو د خپل ځان خلاف دليلونه هم واورئ د عيسى ﷺ د الله ﷻ د ځوئ كيدو دعوي ګيرئ نوراشئ د بال بچ سره په ميدان كښې په دروغژن باندې د الله ﷻ لعنت ونيلو دعااوكړئ.[2] نونه خو مشركان د مقابله د پاره راغله نه د يهوديانو حوصله پيداشوه اونه نصرانيان په ميدان كښې نران شو.

ځنګه چه د ګمراهانو ګمراهي زياتيږى دغه شان د هدايت والا هدايت زياتيږى لكه چه ارشاد دې كله چه يوسورت نازليږى بعضې خلق وائى چه په تاسو كښې كوم يو دې په ايمان كښې زيات كړو؟[3] د

---

[1] ٦٢/الجمعة:٦.

[2] ٣/آل عمران:٦١.

[3] ٩/التوبة:١٢٤. الخ

باقیات صالحات پوره تفسیر هم د دې الفاظو په تشریح کښې سورت الکهف کښې تیرشو. دلته فرمائی چه هم دغه پاتې کیدونکې نیکئی د اجر او ثواب په لحاظ اود انجام او بدله په لحاظ سره د نیکانو د پاره بهتر دی
عبدالرزاق کښې دی یوه ورځ حضورﷺ د یوې وچې ونې لاندې تشریف کیخودې وو ناست وو د هغې بناخ نی اونیولو او وئې خوزولو وچې پاڼې راورژیدې نو حضورﷺ اوفرمائیل گورئی دغه شان د انسان گناه ﴿لااله الاالله والله أکبرسبحان الله والحمدلله﴾ وئیلوسره رژیږی اې ابوالدرداء ؓ دا وایه د هغې نه وړاندې چه هغه وخت راشی چه ته دا اونه وئیلې شې هم دغه باقیات صالحات دی هم دغه د جنت خزانې دی. د دې اوریدو سره د ابوالدرداء ؓ به دا حال وو چه دا حدیث به نی بیان فرمائیلو سره نی اووئیل والله زه خو به هم دا کلمې وایم کله به هم د دې نه ژبه منع نه کړم که خلق ماته لیونې ولې اونه وائی.(۱) په ابن ماجه کښې هم داحدیث په بل سند سره دی.

| |
|---|
| أَفَرَءَيْتَ الَّذِي كَفَرَ |
| ایا نو تا اولیدو \| هغه سړې \| چې انکار نې کړې دې |
| ایا تا هغه سړې لیدلې دې چې زمونږ د حکمونو نه ئې انکار کړې دې |
| بِآيَاتِنَا وَقَالَ لَأُوتَيَنَّ مَالًا وَوَلَدًا ۝ أَطَّلَعَ |
| د ایتونو زمونږ نه \| اووې وئیل \| خامخا به راکړې کیږی ماته \| مال او اولاد \| ایا خبر شوې دې دهٔ ته |
| او دا وائی چې ماته به (په اخرت کښې هم که چرته وی) مال او اولاد راکولې شی \| ایا ده ته دغیبو |
| الْغَيْبَ أَمِ اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمَٰنِ عَهْدًا ۝ كَلَّا سَنَكْتُبُ مَا |
| دغیبو \| یا نې اخستې دهٔ \| د رحمن نه \| وعده \| هر گز نهٔ \| لیکو به مونږه \| هغه څه |
| خبرې معلومې دی \| اوکه دهٔ د رحمان نه څه وعده اخیستې دهٔ؟ \| هرگز داسې نه ده \| څه چې دې |
| يَقُولُ وَنَمُدُّ لَهُ مِنَ الْعَذَابِ مَدًّا ۝ |
| چې وائی ئې دې \| او زیات به کړو مونږ \| دپاره دهغه \| عذاب \| په زیاتولو سره \| |
| وائی مونږ هغه (د فرشتو په ذریعه) لیکو \| او د دهٔ په عذاب کښې به عذاب زیاتوالې کوو |
| وَنَرِثُهُ مَا يَقُولُ وَيَأْتِينَا فَرْدًا ۝ |
| او مونږ به میراث اخلو دده نه \| د دغه څه \| چې وائی ئې دې \| او راځې به مونږ ته \| یوازې |
| اودې چې د کوم مال او اولاد ذکر کوی مونږ به هغه هم په میراث کښې اورو \| اودې به مونږ ته یوازې راځې |

**قوله تعالی:- أَفَرَءَيْتَ الَّذِي كَفَرَ بِآيَاتِنَا**

**د عاص بن وائل سرکشی:-** حضرت خباب بن ارت ؓ فرمائی زه لوهار ووم اوزما څه قرض په عاص بن وائل باندې وو زه د هغه نه د غوښتلو دپاره لاړم نوهغه وئیل چه زه خو به ستا قرض ترهغه وخته پورې نه اداکوم ترکومې چه ته د حضورﷺ د تابعدارئی نه اونه خې. ما وئیل چه زه خودا کفر ترهغه وخت پورې هم نه شم کولې چه ته مړ شې او بیاراژوندې شې. په دې باندې دې کافر وئیل چه ښه ده ته بس هم دلته اوسیږه چه زه مړشم او بیاراژوندې شم نوخامخابه ماته زما مال او اولاد ملاوشی نو هلته به

---

(۱) ابن ماجه کتاب الادب باب فضل التسبیح: ۳۸۰۴ مختصراً.

ستا قرض هم اداکړم ته راشه. په دې باندې دا ایت نازل شو(۱) بل روایت کښې دی چه ما په مکه کښې د هغه توره جوړه کړې وه دهغې پیسې پاتې وې(۲) فرمانې آیا ده ته د غیب خبرملاو شو؟ یا هغه د رب رحمن نه څه قول اوقرار واخستو؟ یوبل روایت کښې دی چه په ده باندې زما ډیر دراهم د قرض په توګه ورختلي وو.هغه چه ماته کوم جواب راکړوهغه مارسول الله ﷺ ته اووئیل پدې باندې داآیاتونه نازل شو.
یوبل روایت کښې دی چه ډیرو مسلمانانو قرض د هغه په ذمه وو د هغې په غوښتلو باندې ده اووئیل آیا ستاسو په دین کښې دانه دی چه جنت کښې به سره زر سپین زر ریښم ګلونه اومیوې وغیره وی؟ مونږ وئیل چه اودی نوهغه وئیل چه داڅیزونه به ماته خامخاملاویږی زه به ئې هلته تاسوتولوله درکړم. نودې آیاتونوپورې ﴿فردا﴾ نازل شو(وَلَدًا۞کښې) دویم قراءت د واو په پیش سره هم دې. معنی د دواړو هم یوه ده اودا هم وئیلی شوی دی چه د زیر سره خودمفردپه معنی کښې ده اودپیش سره دجمع په معنی کښې ده.د قیس قبیلې هم دا لغت دې. والله اعلم.دې مغرور ته جواب ورکولې شی چه ولې ده نه د غیبوخبرداري شته؟ ده ته د خپل آخرت د انجام خبر شته؟ چه دادې قسمونه خوری وائی؟یاده دالله ﷻ نه څه قول اوقرار یاوعده اخستې ده؟یاهغه د الله ﷻ توحیدمنلې دې؟ چه دهغې په وجه هغه ته د جنت د داخلیدویقین دې. آیت ﴿ أَمِ اتَّخَذَ عِندَ الرَّحْمَٰنِ عَهْدًا ﴾(۳) کښې د الله ﷻ دوحدانیت د کلمه قائل کیدل مراد اخستې شوی دی بیاد ده دکلام د تاکید د پاره نفی کولې شی اود ده د خلاف مؤکد بیانولې شی چه د ده د دې غرور دا کلمه هم زمونږ سره لیکلې شوې ده د ده کفر هم مونږ ته ښکاره دې او په آخرت کښې خو د ده د پاره هم عذاب اوعذاب دې چه هروخت به زیاتیږی ده ته هلته مال اولاد ملاویدل خو لاڅه کوي؟ د دې په خلاف د دنیامال اومتاع اولاد او ټبر به هم د ده نه واخستې شی اویك یواځې به مونږ ته پیش کیږی.دابن مسعود رضی الله عنه په قراءت کښې ﴿ونرثه ماعنده﴾ دې.دده جمع شوې عمل زمونږ په قبضه کښې دې دې خوبه خالي لاس هرڅه پریخودې زمونږ مخې ته پیش کیږی.

| وَاتَّخَذُوا | مِن دُونِ اللَّهِ | آلِهَةً | لِّيَكُونُوا | لَهُمْ |
|---|---|---|---|---|
| او نیولی دی دې خلقو | ماسوا دالله نه | نور خدایان | دپاره ددې چې شي هغوئ | دپاره ددوی |

اودوئ دالله ﷻ نه سوا خان دپاره نور معبودان جوړ کړي دی اچې د دوئ دپاره دعزت باعث وی

| عِزًّا | كَلَّا | سَيَكْفُرُونَ | بِعِبَادَتِهِمْ | وَيَكُونُونَ | عَلَيْهِمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| مددګاران | هرګز نه | انکار به اوکړي هغوئ | دعبادت ددوئ نه | اوشي به(دغه معبودان) | ددوئ |

هیڅکله نه دوئ به ډیر زر ددوئ دعبادت نه انکار اوکړي | اوددوئ مخالفین (دوشمنان) به شي

| ضِدًّا | أَلَمْ تَرَ | أَنَّا | أَرْسَلْنَا | الشَّيَاطِينَ | عَلَى الْكَافِرِينَ |
|---|---|---|---|---|---|
| دشمنان(مخالفان) | ایا نه ګوري ته | چې بیشکه | لیږلي دي مونږه | شیطانان | کافرانوته |

......ائې محبوبه) آیاته نه ګوري چې مونږ شیطانان په کافرانو باندې وړپرینښي (مسلط کړي) دي

| تَؤُزُّهُمْ | أَزًّا | فَلَا تَعْجَلْ | عَلَيْهِمْ | إِنَّمَا | نَعُدُّ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې تیزوي هغوئ لره | په تیزولو سره | نو تلوارمه کوه ته | په دوئ باند | بیشکه | شمارو مونږه(ورځې) |

(چې هغوئ (کفراوګناه ته) ښه تیزوي | نو ته په دوئ د عذاب راتلو تلوارمه کوه | مونږ پخپله ددوئ

(۱) صحيح بخاری كتاب التفسير سورة كهيعص باب ﴿أطلع الغيب ام اتخذ عندالرحمن عهداً﴾:۴۷۳۳، صحيح مسلم:۲۷۹۵، ترمذی:۳۱۶۲
(۲) صحيح بخاری:حواله سابق.
(۳) ۱۹/مريم:۷۸.

| لَهُمْ | عَدًّا ﴿٨٤﴾ |
| --- | --- |
| دپاره ددوئ \| په شمارولو سره \| | |
| کارونه شمیرو | |

قوله تعالى:- كَلَّا سَيَكْفُرُونَ بِعِبَادَتِهِمْ

**د قیامت په ورځ باطل معبودان به د عبادت کونکو نه د بې تعلقئ څرګنده کوی:-** -دکافرانو خیال دې چه د هغوی دالله ﷻ نه علاوه کوم معبودان دی د هغوی حامی اوامدادی به وی غلط خیال دې بلکه ناممکن دی اومعامله ددې بالکل خلاف ده.دهغوی دپوره محتاجئی په ورځ یعنی دقیامت به دوی صفا منکر شی اود خپلو عابدانو به دښمنان جوړشی. لکه چه فرمائی د دوی نه به نور دبدې لار او د ورکې شوې لارې والابه نورڅوك وی چه الله ﷻ پرېږدی اوهغه خلقوته چغې وهی چه د قیامته پورې به جواب ورنه کړې شی. د هغوی د دعانه بالکل غافل دی اودمحشر په ورځ به د هغوی دښمنان جوړشی اود هغوی د عبادت به بالکل انکاراوکړی.([1]) د ﴿كَلَّا﴾ دویم قراءت ﴿كُلٌّ﴾ هم دې.پخپله به داکافران هم په هغه ورځ د الله ﷻ نه سوا د نورو دعبادت نه انکار اوکړی. داټول عابدان اومعبودان به دوزخیان وی د یوبل به ملګری وی هغوی به په دوی‌او دوی به په هغوی باندې لعنت وائی هریوبه په بل باندې وراچول کوی. یوبل ته به بد وائی سختې جګړې به وی ټول تعلقات به ئی ختم شی د یوبل به ښکاره دښمنان شی او امدادبه چرته وی؟هیڅ مروت به نه وی معبودان به د عابدانو دپاره اوعابد د معبودانو د پاره د یوبل نه نابلده اوزیات په حسرت کښې وی([2]) آیاتاته نه ده معلومه چه داشیطانان هروخت کافران په نافرمانو باندې تیاروی([3]) مسلمانانوخلاف ئی راپاسوی خواهشات ورله زیاتوی په نه منلو او سرکشو کښې وراندې کوی.لکه چه فرمان دې د رب رحمن د ذکر نه مخ اوړونکې د شیطان حواله کیږی.([4]) ته تندی مه کوه د هغوی د پاره بددعا مه کوه موږ پخپله په ارادې سره هغوی ته وخت ورکړې دې هغوی وراندې کیدو ته پریږده آخر به په مقرر وخت باندې راګیرکړې شی الله ﷻ د دې ظالمانو د کارونو ناخبر نه دې. دوی ته خو ئی هسې لږ وخت ورکړې دې په کوم کښې چه دوی به خپلو ګناهونوکښې وراندې کیږی.آخر به سختو عذابونوکښې بې وسه پریوځی. تاسو فائده حاصله کړئی خو ولې یاد ساتئی چه ستاسو اصلی ځائ هم دوزخ دې. موږ د هغوی کالونه میاشتې ورځې او وخت شمیرو. د هغوی ساګانې هم موږ شمیرلې دی. د مقرر وخت پوره کیدو سره به په عذابونوکښې اونخلی.

| يَوْمَ | نَحْشُرُ | الْمُتَّقِينَ | إِلَى الرَّحْمَٰنِ |
| --- | --- | --- | --- |
| \| هغه ورځ \| | چې جمع به کړو موږه \| | پرهیزګاران \| | رحمان ته |
| په کومه ورځ چې به موږ ټول پرهیزګاران ډلې ډلې رحمان ته (دمیلمستیا | | | |

| وَفْدًا ﴿٨٥﴾ | وَنَسُوقُ | الْمُجْرِمِينَ | إِلَىٰ جَهَنَّمَ | وِرْدًا ﴿٨٦﴾ |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| ډلې ډلې \| | او اوبه شړو موږه \| | نافرمان خلق \| | دوزخ ته \| | پښان دتږی څناورو \| |
| دپاره) جمع کړو\| اومجرمان به اوږی تږی دوزخ ته اوشړو | | | | |

---

[1]) ۴۶/الاحقاف: ۵-۶.
[2]) الطبری:۱۸/۲۵۱.
[3]) الطبری:۱۸/۲۵۲.
[4]) ۴۳/الزخرف:۳۶.

| لَا يَمۡلِكُونَ | الشَّفَٰعَةَ | إِلَّا | مَنِ | ٱتَّخَذَ | عِندَ ٱلرَّحۡمَٰنِ |
|---|---|---|---|---|---|
| اختيار به نه لري خلق | دسفارش | مگر | هغه څوك | چې اخستې ئې وي | د رحمان |
| د هغه چا نه سوا د سفارش اختيار به هيچا ته نه وي چې درحمان نه ئې اجازت غوښتې وي | | | | | |
| عَهۡدٗا ۝ | وَقَالُواْ | ٱتَّخَذَ ٱلرَّحۡمَٰنُ | وَلَدٗا ۝ | | |
| اجازت نامه(وعده) | او وائي دوئ | چې نيولې دې رحمان | خوئې | | |
| ...........او(دا خلق) وائي چې رحمان ځان دپاره اولاد نيولې دې | | | | | |

**قوله تعالى:- يَوۡمَ نَحۡشُرُ ٱلۡمُتَّقِينَ إِلَى ٱلرَّحۡمَٰنِ وَفۡدٗا ۝**

**پرهيزګاران به د الله ﷻ ميلمانه وي:-** -کوموخلقوچه د الله ﷻ په خبروايمان راوړې د پيغمبرانو تصديق ئې کړې د الله ﷻ حکم منل ئې کړي د ګناهونونه بچ شوي د الله ﷻ ويره ئې په زړه کښې وه هغوى به د الله ﷻ په نيز د هغه د معززه ميلمنوپه توګه راجمع کيږي.په نوراني سورلئ به سواره راځي اود الله ﷻ د ميلمنوپه ځائ کښې به په عزت سره داخليږي.ددوى په خلاف ناخداترس ګناهګاران د رسولانو دښمنان به ديکو سره پرمخې رابښکونکې د تندې د لاسه ژبه راويستونکې په زور سره دوزخ ته راجمع کولې شي([1]) اوس اوښايه چه څوك دمرتبې والا او څوك د خو ملګرووالا دې؟ مؤمن به د خپل قبرنه مخ اوچت کوري به چه د هغه په وړاندې به يوښکلې ښائسته سړې پاکې جامې اغوستې خوشبولګولې خوشحاله پړقيدونکې مخ ولاړ وي. تپوس به کوى ته څوك ئې؟هغه به وائي تازه اونه پيژندم زه خو ستاد نيکو عملونو شکل يم. ستاعمل نوراني ښکلې مزيدار وو راځه چه اوس زه تا په خپلو اوږو باندې سورکړم اوپه عزت اواکرام دې محشر له بوځم. څکه چه د دنياپه ژوندکښې زه په تاسور ووم نومؤمن به د الله ﷻ په حضورپه سورلئي سورشي. د هغوى د سورلئي د پاره به نوراني اوښان هم موجود وي. دا ټول په خنداخوشحالئي په عزت اوقدر سره جنت ته ځي.حضرت علي ﷺ فرمائي چه د وفد دادستور نه دې چه پيدل دې راځي دامتقيان حضرات به په داسې نوراني اوښانوباندې سواره وي چه د مخلوق په نظر کښې به د دې نه بهتر سورلئ هيڅ کله هم نه وي راغلې.دهغوى کجاوې به دسروزرو وي دوى به د جنت ددروازوپورې هم دې سورلوباندې سواره ځي.دهغوى پيزوانونه به د زبرجدو وي([2])په يومرفوع روايت کښې دى خوحديث ډير غريب دې.

**د جنت د نعمتونو بيان:-** د ابن ابى حاتم روايت دې حضرت علي ﷺ فرمائي يوه ورځ مونږ رسول الله ﷺ سره ناست وو ماد دې آيت تلاوت اوکړو اواومې وئيل يارسول الله ﷺوفدخو په سورلئي باندې سور راځي حضور ﷺ اوفرمائيل قسم دې د هغه الله ﷻ د چا په لاس کښې چه زما ځان دې چه دا نيکو کار خلق به دقبرونونه راپاسوى اوهم هغه وخت دسپين رنګ نوراني اودوزرو والا اوښې به دخپلې سورلئي دپاره موجود وينى په کومو چه به د سرو زرو کجاوې وي د کومو د وزرو نه چه به نور راوچتيږي. او يو يو قدم به دومره لرې ايږدى ترکوم ځائ پورې چه نظر کار کوى. دوى به په هغې سواره شي اود يوې جنتى ونې خواته به اورسى دکوم ځائ نه چه به دوه نهرونه روان اووينى.ديو اوبه به اوڅکى په کومو سره چه به د هغوى دزړونو خيرې لرې شي په دويم کښې به غسل کوى په څه سره چه به د هغوى بدنونه نوراني شي او ويښته به ئې کلك شي. دې نه پس به نه د هغوى ويښته وران شي اونه به ئې بدن ګنده شي.دهغوى مخونه به پړقيږي اودوى به د جنت دروازې ته اورسى. دسرويا قوتو يوه کړئي به د سرو زرو

---

[1]) الطبرى:۱۸/۲۵۱.

[2])احمد:۱/۱۵۵.

په دروازه وی کومه چه به دوی اوګرنګوی. دې نه به ډیر خوږ اواز راوخی اوحوروته به معلومه شی چه د هغوی خاوندان راغله. د جنت خازنان به راشی دوروازې به کولاوکړی جنتیان چه د هغوی نورانی بدنونوته ښکلې مخونوته اوګوری نوپه سجده کښې به راپریوتل غواړی خوهغوی به ورته زر اووائی زه خوستا تابع یم ته حکم کوه. دوی به هغوی سره روان شی. د هغوی حورې به صبر نه شی اود خیمونه به راوخی اودوی پورې به اونخلی او ورته به وانی چه ته زمونږ د سرتاج نې زمونږ محبوب نې زه د همیشه د پاره یم چه د مرګ نه لرې یم زه د نعمتونو والایم کله به هم زما نعمتونه نه ختمیږی زه خوشحاله اوسیدونکې یم کله به هم خفه نه شم. زه هم دلته اوسیږم کله به هم تانه لرې نه شم. دوی به دننه داخل شی ګوری به چه سل سل ګزه بالاخانې دی لؤلؤ مرغلرو باندې زیړ شین رنګ دیوالونه د سرو زرو دی هریودیوال د بل په شان دې په هرمکان کښې اویاتختونه دی. په هریو تخت باندې اویاحورې دی په هره یوه حوره باندې اویاجوړې دی. خو بیاهم د هغوی بدن ښکاری د هغوی د جماع مقدار به د دنیا د یوې پوره شپې برابر وی. صفاښکلی اوبه خالص پئ کوم چه د څاروو د غولانځو نه نه دی راوتلی بهترین خوندناک اوبې ضرره پاك شراب کوم چه یوانسان نه دی نچوړی کړی ښکلې مزیدار شات چه د مچو د خیټې نه دی راوتلی نهرونه به بهیږی. میوه دارې ونې به د میونه ډکې خوزیږی. که غواړی نو به ولاړه ولاړه دې میوې راشوکوی اوکه غواړی نو په ناسته ناسته یا ملاسته ملاسته. سپینې او شنې مرغئی الوزی د کومې غوښه خوړلوته چه زړه اوشی نو هغه به پخپله حاضره شی. د کوم ځائ غوښه نی چه خوړله وئی خوړله اوبیا هغه د الله ﷻ په قدرت سره ژوندئی لاړه. د څلورو واړو طرفونه فرښتې راځی اوسلامونه وائی اوزیری اوروی چه په تاباندې دې سلامتی وی دا هغه جنت دې د کوم چه تاسو له زیری درکولې شو اوتن د هغې مالکان جوړکړی شوې ئی.دادستاسو دنیکوعملونو چه تاسو په دنیا کښې کول.که د هغوی د حورونه د یو. یوویښته هم زمکې ته ښکاره کړې شی نود نمر رڼرا به تته شی.

دا حدیث خو مرفوع بیان شوې دې خوتعجب نه دې چه موقوف وی لکه چه د حضرت علی ﷺ د خپل قول نه هم نقل دې. والله اعلم.

**د جهنم په حالت باندې تذکره:**-بالکل ددې برعکس به ګناهګاران خلق پرمخې په زنځیرونوکښې ترلې شوی د خناور په شان دیکې خوری اودوزخ طرف ته به راجمع کولې شی. هغه وخت به د تندې نه د هغوی خراب حالت وی. څوك به هغوی شفاعت کونکې یا دهغوی په حق کښې یولفظ ویونکې نه وی. مؤمنان خو به د یوبل شفاعت کوی خودا بدنصیبه به د دې نه محروم وی.دوی به پخپله وائی ﴿فَمَا لَنَا مِنْ شَافِعِينَ﴾[1] زمونږ هیڅ څوك سفارشی نشته نه زمونږ څوك رښتونې دوست شته اوچه چا د الله ﷻ سره وعده کړې ده دا استثنا منقطع ده. دې وعدې نه مراد د الله ﷻ د توحید ګواهی ورکول او په دې باندې کلك پاتې کیدل دی. یعنی صرف د یو الله ﷻ عبادت کول اود نورود عبادتونونه خلاصیدل د امداد طمع د هغه نه د ټولو خواهشاتو پوره کولو تمنا او ارزو هم د هغه نه.([2]) حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمائی چه دې موحدینود الله ﷻ وعده حاصله کړې ده قیامت کښې به الله ﷻ فرمائی چاسره چه زما وعده ده هغه دې اودریږی.

خلقو وئیل حضور ﷺ مونږ ته هم هغه اوښایه حضور ﷺ اوفرمائیل داسې وائی ﴿اللهم فاطر السموت والارض عالم الغيب والشهادة فاني اعهد اليك في هذه الحيوة الدنيا انك ان تكلني الى عمل يقربني من الشر ويباعدني من الخير واني لا اثق

---

[1]) ۲۶/الشعراء:۱۰۰.

[2]) الطبری:۲۵۷/۱۸.

﴿الابرحمتك فاجعل لی عندك عهدا تؤديه الی یوم القیمة انك لاتخلف المیعاد﴾(۱) په یو بل روایت کښې دې سره دا هم دی ﴿غاًنفا مستجیرا مستغفرا راهبا راغبا الیك﴾ (ابن ابی حاتم)

وَقَالُوا اتَّخَذَ الرَّحْمٰنُ وَلَدًا ۝ لَقَدْ جِئْتُمْ

| او وائی دوی | چې نیولې دې رحمان | خوئې | بیشکه چې راتګ او کړل تاسو

او (دا خلق) وائی چې رحمان خان دپاره اولاد نیولې دې | تاسو ډیره خرابه خبره کړې ده | نزدې ده

شَيْـًٔا اِدًّا ۝ تَكَادُ السَّمٰوٰتُ يَتَفَطَّرْنَ مِنْهُ

یو خیز ته | چې ډیر بد دې | قریبه ده | چې اسمانونه | اوشلیږی | د دې خبرې نه

چې په دې وینا باندې اسمانونه اوشلیږی | او زمکه څیرې شی

وَتَنْشَقُّ الْاَرْضُ وَتَخِرُّ الْجِبَالُ هَدًّا ۝ اَنْ دَعَوْا لِلرَّحْمٰنِ

او اوچوی | زمکه | او راپریوزی | غرونه | توټې توټې | چې رااوبللو دوئ | دپاره درحمن

او غرونه ریزه ریزه راوغورزیږی | څکه چې هغوئ درحمان دپاره خوئې

وَلَدًا ۝ وَمَا يَنْۢبَغِيْ لِلرَّحْمٰنِ اَنْ يَّتَّخِذَ وَلَدًا ۝ اِنْ كُلُّ مَنْ

خوئې | او نه ښائی | دپاره درحمان | چې اونیسی | خوئې | نه دی ټول | هغه څوك

ګرځولې دې | حال دا چې درحمان دپاره څوك خوئې جوړول مناسب نه دی | چې څوك هم په

فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ اِلَّاۤ اٰتِي الرَّحْمٰنِ عَبْدًا ۝

چې په اسمانونو کښې دی | او په زمکه کښې دی | مګر | راتلونکی دی | رحمان ته | په حیثیت دبنده

اسمانونو او په زمکه کښې موجود دی هریو به رحمان ته د بنده په حیثیت حاضریږی

لَقَدْ اَحْصٰىهُمْ وَعَدَّهُمْ عَدًّا ۝ وَكُلُّهُمْ

بیشکه احاطه کړې ده الله دهغوئ | او شمارلی ئې دی هغوئ | په شمارلو سره | او هغوئ ټول

هغه داټول څیزونه احاطه کړې دی | او ښه ئې شمیرلی دی | او هریو به ورته دقیامت په ورځ

اٰتِيْهِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فَرْدًا ۝

راتلونکی دی هغه ته | په ورځ دقیامت | یوازې |

ایکی یوازې حاضریږی |

**قوله تعالی:- وَقَالُوا اتَّخَذَ الرَّحْمٰنُ وَلَدًا ۝**

**د الله ﷻ په ذات باندې بهتان:-** د دې مبارك سورت په شروع کښې د دې خبرې ثبوت تیرشو چه حضرت عیسی ؑ د الله ﷻ بنده دې. هغه الله ﷻ بغیرد پلاته په خپل حکم سره د حضرت بی بی مریم د خیتې نه راپیدا کړې دې. په دې وجه دلته د دغه خلقو کم عقلتوب بیانولې شی چه هغه د الله ﷻ خوئ ګڼړی. د څه نه چه د الله ﷻ ذات پاك دې. دهغوی قول ئی بیان کړو بیافرمائی دا ډیره لویه خبره ده. ﴿اِدًّا﴾، ﴿اَدًّا﴾ او ﴿اُدًّا﴾ دریواړه لغته دی یعنی کسر الهزة خو مشهور ﴿اِدًّا﴾ دې. دهغوی دا خبره دومره خرابه ده. نزدې

(۱) حاکم: ۲/۳۷۷.

ده چه اسمان راورژی اومات شی اوزمکه په چتکوچتکو اوشلیږي. د دې د پاره چه زمکه او اسمان د الله ﷻ عزت اوعظمت پیژني په دې کښې د رب توحید ځائ شوې دې دې ته معلوم دی چه بدکاره ناپوهه انسانانو د الله ﷻ په ذات باندې تهمت لګولې دې. نه د هغه د جنس نه څوك شته نه د هغه مور پلار نه اولاد نه څوك شريك او نه څوك د هغه په شان. ټول مخلوق د هغه د وحدانیت ګواه دې. د کائنات هره یوه ذره دهغه په توحید باندې دلالت کوی.الله ﷻ سره شرك کونکو په شرك باندې ټول مخلوق رچیږی. نیزدی چه د کائناتو دا نظام درې ورې شی. شرك سره یوه نیکی هم په کار نه راځی. څه عجیبه ده چه د دې برعکس د توحیدسره ګناه الله ﷻ ټول په ټول معاف کړی.

لکه چه په حدیث شریف کښې دی خپلو مړو ته د(لااله الاالله) د شهادت کولوتلقین کوئی. د مرګ په وخت کښې چه چا دا اوونیل د هغه د پاره جنت واجب شو. صحابه کرام ز اوونیل حضورﷺ چا چه په ژوندکښې اوونیل وئی فرمائیل د هغه د پاره نورهم زیات واجبیږی. د الله ﷻ قسم د چا په لاس کښې چه زما ځان دې زمکه او آسمان اود دې په مینځ کښې اود دې نه لاندې ټول ځیزونه که د تلې په یوچاړی کښې واچولې شی (لااله الاالله) ګواهی په بل چاړی کښې واچولې شی نو دا به د دې ټولونه په وزن کښې زیات شی.([1]) ددې نور دلیل هغه حدیث شریف دې په کوم کښې چه د توحید د یوې ورو کې غوندې پرچې د ګناهونود لویولویو دفترونو نه په وزن کښې زیاتیدل دی راغلی دی.([2]) والله اعلم.

د دوی دا خبره کول دومره بده ده چه آسمان د الله ﷻ د عظمت د وجه رچی اوزمکه د هغه د غضب په وجه اوشلیږی اوغرونه ذره ذره شی. حضرت عبدالله ﷺ فرمائی یوغرد بل غر نه معلومات کوی آیاتن په تاباندې داسې هم یوانسان ختلې دې چه هغه د الله ﷻ ذکر کړې وی؟ هغه په خوشحالئی سره جواب ورکوی چه او. نو غر هم باطل او دروغ خبره اوښه خبره اوری او نورې خبرې نه اوری. بیا هغوی هم د دې آیت تلاوت اوکړو.

**اول زمکې صرف میوې اوګلونه راټوکول:**-روایت دې چه کله الله ﷻ زمکه اود دې ونې راپیداکړې نو هرې ونې به بنیادم ته میوې ګلونه او فائدې ورکولې. خوچه کله نه په زمکه باندې اوسیدونکو خلقو د الله ﷻ د پاره اولاد اوګرځولو نوزمکه اوخوزیده او په ونوکښې ازغی پیداشو.حضرت کعبﷺ فرمائی چه زمکه په غصه شوه او دوزخ په ډیر تاوسره شغلې اووهلې. مسنداحمدکښې د رسول الله ﷺ فرمان دې چه په تکلیف ورکونکو خبروباندې د الله ﷻ نه زیات صبرکونکې څوك نشته خلق دهغه سره شريك ګرځوی د هغه اولاد مقررکوی اوهغه دوی ته عافیت ورکوی رزق وررسوی اوګناهونه دهغوی نه اخواکوی.([3])نود دوی په دې خبره چه دالله ﷻ اولاددې زمکه آسمان اوترغرونو پورې تنګ دی.د الله ﷻ عظمت او شان سره لائق نه دی چه دهغه اولاد وی هلکان جینکئی وی د دې د پاره چه ټول مخلوق د هغه په غلامئی کښې دې.دهغه دجوړیادهغه په شان څوك نشته.په زمکه اوآسمان کښې چه څه دی ټول دهغه دحکم تابع دی اوحاضر شوی غلامان دی.هغه دټول آقادټول پالونکې اودټولو خبر اخستونکې دې.دټول شمیرهغه سره دې. ټول د هغه علم راګیرکړی دی اوټول د هغه د قدرت په احاطه کښې دی. د هریوښځې سړی لوئ وړوکې هغه ته خبر دې. د پیدائش د شروع نه د دنیاد ختمیدو پورې هغه ته علم دې.دهغه هیڅ څوك امدادی نشته نه شریك اونه ملګرې.هریو بې یار اومددګار به دهغه په وړاندې د

---

[1] ) الطبری:۲۵۸/۱۸.

[2] )ترمذی کتاب الایمان باب ماجاء فیمن یموت وهویشهدان الااله الاالله:۲٦٣۹وسنده صحیح، ابن ماجه:۴۳۰۰، احمد : ۲۱۲/۲، حاکم:٦/۱دا روایت امام حاکم او ذهبی صحیح الاسناد ګڼرلي دې.

[3] ) احمد:۳۹۵/۴، صحیح بخاری کتاب الادب باب الصبرلی الاذی:٦۰۹۹، صحیح مسلم:۲۸۰۴، السنن الکبری:۱۱۴۴۵، مسند حمیدی:۷۷۴، المعجم الاوسط:۳۴۹۴،الاسماء والصفات للبیهقی:۱۰٦۴.

قيامت په ورځ پيش کيدونکې دې.دټول مخلوق فيصلې د هغه په لاس کښې دی.هم هغه وحده لاشريك له به د ټولوېې باکی کوی اوځه چه غواړی کوی به. عدل کونکې دې ظالم نه دې د چا حق وهل د هغه د شان نه لرې دی.

| |
|---|
| اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا |
| بيشکه هغه کسان \| چې ايمان ئې راوړو |
| بيشکه کومو کسانو چې ايمان راوړې دې |
| وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ سَيَجْعَلُ لَهُمُ الرَّحْمٰنُ وُدًّا﴿۹٦﴾ |
| او عمل ئې اوکړو نيك \| اوبه ګرځوی \| دپاره دهغوئ \| رحمان \| محبت(په زړونو دخلقو کښی) |
| او نيک عملونه ئې کړی دی \| رحمان به دهغوئ دپاره (دخلقو په زړونو کښې) محبت پيدا کوی |
| فَاِنَّمَا يَسَّرْنٰهُ بِلِسَانِكَ لِتُبَشِّرَ بِهِ |
| پس بيشکه \| اسان کړو مونږه دا کلام \| په ژبه ستا \| دپاره ددې چې ته زيرې ورکړې \| په دې سره |
| نو مونږ دا (قرآن) ستا په ژبه ځکه اسان کړې دې اچې ته ددې په ذريعه پرهيز ګارانوته زيرې ورکړې . |
| الْمُتَّقِيْنَ وَتُنْذِرَ بِهٖ قَوْمًا لُّدًّا﴿۹۷﴾ وَكَمْ اَهْلَكْنَا |
| پرهيزګارو خلقو ته \| او ويروې ته \| په دې سره \| قوم \| ضديان \| او ځومره ډير هلاك کړل مونږه |
| اوددې په ذريعه جګړمار خلق اوويروې \| او مونږ ددې خلقو نه وړاندې ځومره ډيرې ډلې هلاکې کړې |
| قَبْلَهُمْ مِّنْ قَرْنٍ ۭ هَلْ تُحِسُّ مِنْهُمْ مِّنْ اَحَدٍ اَوْ تَسْمَعُ |
| مخکښې ددوئ نه \| قومونه \| ايا محسوسوې ته \| دهغوئ نه \| يو کس \| يا اورې ته |
| دی \| نو ايانن ته په هغوئ کښې ځوک (باقی پاتې) وينې \| يا د هغوئ |
| لَهُمْ رِكْزًا﴿۹۸﴾ |
| هغوئ لره \| څه کشار(کنګوسه) |
| کنګوسې قدرله اورې (نه بلکه ټول خاوره سره خاورې شو) |

**قوله تعالى:- سَيَجْعَلُ لَهُمُ الرَّحْمٰنُ وُدًّا﴿۹٦﴾**

**موحدينوته به د الله ﷻ محبت ملاويږی:**-ارشاد دې دچا په زړونوکښې چه توحيد دې او د چا په اعمالو کښې چه دسنتونوردې. ضروری خبره ده چه مونږ به دخپلو بنديګانوپه زړونوکښې دهغوی محبت پيدا کړو. په حديث شريف کښې دی کله چه الله ﷻ يوبنده سره محبت کول غواړی نو حضرت جبرائيل ؑ راوغواړی ورته فرمائی زه فلانکی سره محبت کوم ته هم هغه سره مينه اوساته. د الله ﷻ دا امانت داره فرښته هم هغه سره مينه کوی.بياپه آسمانونوکښې آواز کولې شی الله ﷻ فلانکی انسان سره مينه کوی اې فرښتو تاسوهم هغه سره مينه اوساتئ نودټولو آسمانونو فرښتې هغه سره مينه کوی.بيادهغه مقبوليت په زمکه راکوزولې شی.اوچه کله د يوبنده نه الله ﷻ خفه شی نوجبرائيل ؑ ته فرمائی ده نه زه خفه يم ته هم ده سره دښمنی کوه حضرت جبرائيل ؑهم د هغه دښمن جوړشی بيا په آسمانونوکښې



اواز کولي شي چه فلانکې د الله ﷻ دښمن دی تاسو ټول د هغه نه ویزاره اوسئی نود اسمانونووالا د هغه سره وران شي بیا هغه غضب او خفګان زمکې ته راکوزولې شي.(۱)(بخاری‌ومسلم وغیره)

مسنداحمدکښې دي چه کوم بنده د خپل مولا د رضاطلبګار شي اودهغه د خوشحالئی په کارونوکښې مشغول شي نو الله ﷻ حضرت جبرائیل ﷺ ته فرمائی زما فلانکې بنده ما خوشحالول غواړي واوره زه د هغه نه خوشحاله شوم. ما خپل رحمتونه په هغه باندې نازلول شروع کړه. نو حضرت جبرائیل ﷺ آواز کوی په فلانکې باندې د الله ﷻ رحمت اوشو. بیاد عرش حاملاني فرښتې هم دا آواز کوی بیا د هغوی سره خواکې اوغرض دا په اووه آسمانونوکښې دا آواز تاویږي. بیا په زمکه باندې د ده مقبولیت راکوزیږي.(۲) داحدیث غریب دې. هم داسې یویل حدیث کښې هم په مسند احمد کښې د غرابت والا دې په کوم کښې چه داهم دی چه محبت یاشهرت د چا ښیګړه یابدئی سره دا د آسمانونونه د الله ﷻ دطرف نه راکوزیږي.(۳). ابن ابی حاتم کښې د دې قسم حدیث نه پس د حضور ﷺ د دې آیت قرآنی لوستل هم مروی دې.(۴)

**دیو عابد قصه:**-حضرت حسن رحمه الله فرمائی یوسړی اراده اوکړه چه زه به د الله ﷻ داسې عبادت کوم چه په ټولوخلقو کښې زما نیک نامی اومشهورتیااوشی.اوس هغه د الله ﷻ عبادت طرف ته ورتیت شوکله چه ګورې په مانځه کښې د ټولونه وړاندې راځی اود ټولونه روستوځی. دغه شان په هغه باندې اووه میاشتې تیرې شوې خوچه کله ئې هم اوریدلی نوهم دا چه خلق هغه ته ریاکاروائی. هغه چه داحال اوکتلونو په زړه کښې ئی وعده اوکړه چه زه به صرف دالله ﷻ د خوشحالولود پاره عبادت اوعمل کوم. په یوعمل کښې هم وړاندې نه شو خو په خلوص سره ئی عمل شروع کړو.نتیجه داشوه چه په لږو ورځوکښې دهرسړې په ژبه باندې دا وو چه الله ﷻ دې په فلانکی سړی باندې رحم اوکړی اوس خو هغه واقعی الله والاجوړشو.بیا هغوی داآیت تلاوت کړو.ابن جریرکښې دی چه دا آیت د حضرت عبدالرحمن بن عوف ﷺ د هجرت باره کښې نازل شوې دې خودا قول صحیح نه دې ځکه چه دا پوره سورت مکه کښې نازل شوې دې. د هجرت نه پس د دې سورت د یوآیت نازلیدل ثابت نه دی. اوچه کوم اثر امام صاحب واردکړې دې هغه سنداً هم صحیح نه دې. والله اعلم.

**قران کریم په اسانه ژبه راغلې دې:**-مونږ دا قرآن پاك اې نبی ستا په ژبه یعنی عربی ژبه کښې بالکل آسانولو سره نازل کړې دې چه د فصاحت او بلاغت والا بهترین ژبه ده دې د پاره چه هغوی ته کوم چه په زړه کښې د الله ﷻ ویره لری او په ظاهره نیك عملونه لرې د الله ﷻ زیری واوروې اوخوك چه د حق نه اخواشوی په باطل باندې ځان مرکوی اود استقامت نه لرې په ځان خودلوکښې نشه دی جګړې کوی دروغژن رانده کانړه فاسق فاجرظالم ګناهګار بدکرداردی هغوی دالله ﷻ په نیولو اودهغه د عذابونونه خبردارکړه لکه چه د قریشوکافران وغیره ډیرو امتونو چاچه د الله ﷻ سره کفر کړې وو د نبیانو نه ئی انکار کړې وو مونږ هلاك کړل او په هغوی کښې یوهم باقی پاتې نه شو د یوآواز هم په دنیاکښې پاتې نه شو. د ﴿رکز﴾ لفظی معنی سپك او مدهم آواز دې.

﴿الحمدلله﴾ د سورت مریم تفسیرختم شو.

.........................

(۱)صحیح بخاری کتاب بدء الخلق باب ذکر الملائکة صلوات الله علیهم: ۳۲۰۹، صحیح مسلم ۲٦۳۷،ترمذی:۳۱٦۱، احمد:۲/۲٦۷، ابن حبان:۳٦٤.

(۲) احمد:۵/۲۷۹ وسنده حسن، مجمع الزوائد۱۰/۲۰۲، المعجم الاوسط:۱۲٦۲.

(۳) احمد: ۵/۲٦۳ وسنده ضعیف، طبرانی: ۷۵۵۱، مجمع الزوائد:۱۰/۲۷۱

(۴) ترمذی کتاب تفسیر القرآن باب ومن سورة مریم:۳۱٦۱، صحیح مسلم:۱٦۳۷ بدون ذکر الایة.

| آیاتونه | سورة طه مکی دې | رکوع ګاني |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ | |
| ۱۳۵ | شروع کوم په نوم د الله چه یرمهربان زیات رحم کونکې دې | ۸ |

طٰهٰ ۝ مَآ اَنۡزَلۡنَا عَلَیۡكَ الۡقُرۡاٰنَ لِتَشۡقٰۤی ۝ اِلَّا

طه | نۀ دې نازل کړې مونږه | په تاباندې | دا قرآن | چې تۀ په مشقت کښې پریوزې | مګر

مونږ دا قران مجید دې دپاره نه دې نازل کړې چې ته دې په مشقت کښې اخته شې بلکه دا خوهغه

تَذۡکِرَةً لِّمَنۡ یَّخۡشٰی ۝ تَنۡزِیۡلًا مِّمَّنۡ

دا خو یوه یادګیرنه ده | دپاره دهغه چا | چې یریږی | نازل شوې دې | دطرفه دهغه ذات نه

دچا دپاره نصیحت دې چې یریږی | دهغه(رب) دطرفه نازل کړې شوې دې

خَلَقَ الۡاَرۡضَ وَالسَّمٰوٰتِ الۡعُلٰی ۝ اَلرَّحۡمٰنُ عَلَی الۡعَرۡشِ

چې پیدا ئې کړه | زمکه | او آسمانونه | اوچت | هغه رحمان | په عرش باندې |

چې زمکه او دنګ آسمانونه ئې پیدا کړی دی | هغه رحمان (چه دهغه حکومت) په عرش

اسۡتَوٰی ۝ لَهٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الۡاَرۡضِ وَمَا

قائم دې | هغه لره دی| هغه څه | چې په آسمانونو کښې دی |اوهغه | چې په زمکه کښې دی | او هغه

باندې قائم دې | هرهغه څه دهغه دی کوم چې په آسمانونو کښې دی او کوم چې په زمکه کښې دی

بَیۡنَهُمَا وَمَا تَحۡتَ الثَّرٰی ۝ وَاِنۡ تَجۡهَرۡ

چې په منځ دددې دواړو کښې دی | او هغه | چې لاندې | دخاورونه دی | او که په زوره کوې |

څه چې دددې دواړو په مینځ کښې دی او څه چې د زمکې نه ښکته پراته دی| او که ته په زوره

بِالۡقَوۡلِ فَاِنَّهٗ یَعۡلَمُ السِّرَّ وَاَخۡفٰی ۝ اَللّٰهُ لَاۤ اِلٰهَ

خبره |پس بیشکه | هغه پوهیږی |په رو خبره | او په زیاته پټ خبره|الله(داسې ذات دې چه) |نشته لائق دعبادت

خبرې اوکړې نو هغه په پټو خبرو اوپه ښه پټو رازونو باندې هم پوهیږی| (هغه)الله ﷻ دې چې دهغه نه

اِلَّا هُوَ ؕ لَهُ الۡاَسۡمَآءُ الۡحُسۡنٰی ۝

مګر | هم هغه دې | هغه لره دی | نومونه | نیک(ښه) |

سوا بل څوک د عبادت لائق نشته| هم دهغه ښه ښه نومونه دی|

**د سورت تعارف:-** امام الائمه حضرت محمدبن اسحاق بن خزیمه ؒ پخپل کتاب التوحید کښې حدیث راوړلې دې چه رسول الله ﷺ فرمائیلي دی الله تبارك وتعالی د حضرت آدم ؑ د پیدائش نه زر کاله وړاندې دسورت طه اوسورت یس تلاوت اوفرمائیلو دکوم په اوریدوسره چه فرښتواووئیل هغه امت ډیرخوش نصیب دې په کوم چه به داکلام نازلیږی اوهغه ژبې یقیناًمستحق دمبارکې دی د کومو

نه چه به دالله ﷻ دکلام دا الفاظ اداکیږي.(۱) دا روایت غریب دي او په دې کښې نکارت هم دې اود دې راوي ابراهیم بن مهاجراود هغه په استاذ جرح هم ده.

**قوله تعالى:- تَنْزِيلًا مِّمَّنْ خَلَقَ الْأَرْضَ وَالسَّمٰوٰتِ الْعُلَى**

**د الله ﷻ صفات عالیه او دطه مطلب:-** دسورت بقره په شروع کښې د سورتونو د اول حروفو مقطعات تفسیربه پوره توګه بیان کړې شوې دې د کوم چه دوباره بیانولوضرورت نشته. داهم روایت دې چه د طه نه مراد "اې سړیه" دي. وائي چه دا نبطي کلمه ده څوك وائي معرب ده. داهم روایت دې چه حضورﷺ به په مانځه کښې یوه پښه مبارکه په زمکه باندې کیخوده او بله به نې اوچتوله نو الله ﷻ دا آیت نازل کړو یعنې طه په زمکه باندې دواړه پښې ایږده. مونږ داقرآن پاك په تاباندې ددې دپاره نه دې نازل کړې چه تاپه مشقت اوتکلیف کښې واچوو. وائي چه کله به قرآن پاك حضورﷺ اود هغه صحابه کرامو ژ شروع کړونومشرکانو وئیل چه داخلق خو په ښه پوره مصیبت کښې پریوتل. په دې باندې الله ﷻ دا آیت نازل کړو چه داپاك کلام تاسو په مشقت کښې اچولود پاره نه دې نازل کړې بلکه دا خود نیکانودپاره عبرت دې. دا خدائي علم دې چاته چه داملاوشو هغه ته ډیر لوئ دولت ملاوشو. بخاري او مسلم کښې دی چاسره چه د الله ﷻ اراده د ښیګړې وی هغه ته د دین پوهه ورنصیب کوی.(۲)

**قیامت کښې علماء کرامو ته دالله تعالى خطاب:-** حافظ ابوالقاسم طبراني رحمه الله یو مرفوع صحیح حدیث راوړلې دې د قیامت په ورځ چه کله الله ﷻ دخپلو بندیګانو فیصله کوی په خپله کرسئ به د خپل شان برابرکینی نو علماؤ ته به اوفرمائي چه ماتاسوته خپل علم درنصیب کړې وو او خپل حکمت مې د دې د پاره درکړې ووچه ستاسو ګناهونه معاف کړم او هیڅ پرواه اونه کړم چه تاسو څه څه کړی؟(۳) اول به خلقو د الله ﷻ عبادت کولوکښې خپل ځانونه په رسو تړلو اوزوړندولو. الله ﷻ دامشقت د دې کلام په ذریعه باندې آسان کړو اوونې فرمائیل چه داقرآن تاسو په مشقت کښې اچول نه غواړې. لکه چه ارشاددې خومره په آسانئ سره چه ئې لوستلې شئ لولئ(۴)داقرآن د شقاوت او بدبختئ څیز نه دې بلکه رحمت نور اودلیل د جنت دې دا قرآن پاك د نیکانوخلقو د پاره د چا په زړونوکښې چه د الله ﷻ ویره وی تذکره وعظ اوهدایت او رحمت دې. د دې په اوریدوباندې د الله ﷻ نیك انجام خلق د حلال اوحرام نه واقف کیږی اوخپل دواړه جهانه ښکلې کوی. دا قرآن پاك ستا د رب کلام دې. هم د هغه د طرف نه نازل شوې دې چه دهرڅیز خالق مالك او رازق قادر دې. چا چه زمکه لاندې او درنه پیدا کړې ده اوچا چه آسمان اوچت اومزیدار جوړکړې دې.د ترمذي وغیره په صحیح حدیث کښې دی د هرآسمان بیروالې د پنځو سوو کالو فاصله ده اود هریوآسمان نه د بل آسمان فاصله هم پنځه سوه کاله ده.(۵) دحضرت عباس رضی الله عنه والا حدیث امام ابن ابی حاتم رحمه الله هم د دې آیت په تفسیرکښې نقل کړې دې. هغه رحمن الله پخپل عرش باندې دې د دې پوره تفسیر په سورت اعراف کښې تیرشوې دې.دلته دنقل کولوضرورت نشته.دسلامتئ نه ډکه طریقه هم دغه ده چه آیاتونه اواحادیث صفات په طریقه د سلفو صالحینو اودهغې د ظاهری الفاظومطابق اومنلې شی.بغیرد کیفیت دغوښتلواوبغیرتحریف او تشبیه تعطیل او تمثیل څیزونه هم د الله ﷻ ملك دې. هم د هغه په قبضه اراده او غوښتلولاندې دی هم هغه د

(۱) دارمي:۲/۵۶۰ ح ۳۴۱۷.
(۲) صحیح بخاری کتاب العلم باب (من یرد الله خیرًا یفقه فی الدین):۷۱، صحیح مسلم:۱۰۳۷.
(۳) طبرانی:۱۳۸۱.
(۴) ۷۳/المزمل:۲۰.
(۵) ترمذی کتاب تفسیرالقرآن باب ومن سورة حدید:۳۲۹۸.

ټولومالك خالق اله اورب دې. د هيڅ چا دهغه سره د هيڅ قسم شركت نشته. د اوومې زمكې لاندې چه هم څه دی ټول هغه ټول د هغه دی.

دزمكې لاندې څه دی؟ :-كعب ﷜ وائی چه د دې زمكې لاندې اوبه دی د اوبولاندې بيا زمكه ده بيا د هغې لاندې اوبه دی.دغه شان به مسلسل بيا د هغې لاندې يوكاڼړې دې. د هغې لاندې يوه فرښته ده د هغې لاندې يوكب دې د كومې چه دواړه لاسونه دعرش پورې دی. د هغې لاندې هوا او تياره ده. هم د دغه ځائ پورې د انسان علم دې باقی الله ﷻ پوهيږی.

په حديث كښې دی د هرودوو زمكو په مينځ كښې د پنځوسووكالو فاصله ده. د ټولونه پاس زمكه د كب په شا ده دكوم دواړه لاسونه چه آسمان سره ملاوشوی دی داكب په يوكاڼړی باندې دې هغه كاڼړې د فرښتې په لاس كښې دې. دويمه زمكه د هواګانو خزانه ده. دريمه كښې د دوزخ كاڼړی دی په څلورمه كښې د دوزخ ګوګړ(كندهك) دی پنځمه كښې د دوزخ ماران دی شپږمه كښې دوزخی لړمانان دی او په اوومه كښې دوزخ دې. هلته ابليس راګيركړې شوې يولاس ئی وړاندې او يوروستو دې. كله چه الله ﷻ غواړی هغه پريږدی(۱)مسندابويعلی كښې دی حضرت جابربن عبدالله﷜ فرمائی مونږ د غزوه تبوك نه راواپس كيدو. سخته ګرمی وه دوه دوه او څلورڅلور سړی ګډوډ روان وو. زه د لښكر په شروع كښې ووم ناڅاپی يوسړې راغلواوسلام كولوسره ئی تپوس اوكړوتاسو كښې محمد﷜ كوم يودې؟ زه هغه سره يوځائ شوم. زما ملګری وړاندې شو. كله چه د لښكر د مينځ حصه راغله نو هم په هغې كښې حضور﷜ وو. ماوئيل دا حضور﷜ دې چه په دې سره اوبنه باندې سوردې. په سرباندې د ګرمئی په وجه كپړا اچولې وه. هغه د حضور﷜ سورلئی ته نيزدې شو او جلب ئی اونيولوعرض ئی اوكړوچه هم تاسو محمد﷜ ئی؟ حضور﷜ جواب وركړواو. هغه وئيل زه تاته يوڅوخبرې معلومول غواړم كومې چه د زمكې والا كښې د يو دوو كسانو نه بغيرېل څوك نه پيژنی. حضور﷜ اوفرمائيل چه ته څه تپوس كوې اوكړه.هغه وئيل دالله ﷻ انبياء عليهم‌السلام اوده كيږی هم؟حضور﷜ اوفرمائيل دهغوی سترګې اوده كيږی‌خو زړه ئی بيدار وی. هغه وئيل صحيح دې اوفرمائيل. اوس دا اوفرمائې چه څه وجه ده چه ماشوم كله د پلار په شان وی اوكله د مور په شان وی؟ حضور﷜ اوفرمائيل واوره د سړی اوبه سپينې او ټينګې دی او د ښځې اوبه نرې دی كومې اوبه چه غالب راشی شكل هم هغه طرف ته څی. هغه وئيل دا دې هم ټيك اوفرمائيل. هغه وئيل چه ښه ده دا اوفرمايه چه د ماشوم كوم اندامونه د سړی د اوبونه جوړيږی اوكوم د ښځې د اوبونه؟ وئی فرمائيل د سړی داوبونه هډوكی رګونه اوپټې جوړيږی اود ښځې د اوبونه غوښه وينه اووېښته. هغه وئيل داهم صحيح جواب دې. ښه ده دا اوښائې چه د دې زمكې لاندې څه څيز دې؟ وئی فرمائيل يومخلوق دې. وئيل د هغې د لاندې څه دی؟ وئی فرمائيل زمكه. وئيل دهغې لاندې څه دی؟وئی فرمائيل اوبه. وئيل داوبولاندې څه دی؟وئی فرمائيل تياره.وئيل دهغې لاندې؟ وئی فرمائيل هوا. وئيل دهوالاندې؟ وئی لمده خاوره. وئيل د هغې لاندې؟ د حضور﷜ اوښكې مباركې روانې شوې او ارشاد ئی اوفرمائيلو د مخلوق علم خو هم دې ځائ ته اورسيدو ختم شو اوس خالق ته د دې نه وړاندې علم دې.اې سوال كونكيه ددې باره كښې چه ته د چا نه سوال كوې هغه ستانه زيات پيژندونكې نه دې.هغه دحضور﷜ دصداقت ګواهی وركړه.حضور﷜ اوفرمائيل داپيژنې هم؟خلقو وئيل هم الله ﷻ اودهغه رسول ﷜ ته پوره علم دې. هغوی اوفرمائيل داحضرت جبرائيل ﷺ وو. دا حديث هم ډيرغريب دې اوبه دې كښې چه كومه واقعه ده ډيره عجيبه ده.د دې په راويانوكښې د قاسم بن عبدالرحمن تفرد دې كوم ته چه يحيی بن معين ﷫ وائی چه داد هيڅ څيز برابر نه دې. امام ابوحاتم رازی ﷫ هم ده ته ضعيف وائی. امام ابن عدی ﷫ فرمائی دامعروف سړې نه دې اوبه دې

(۱) حاكم:۴/۵۹۴

حدیث کښې ګډوډ کړې شوې دې. الله ﷻ ته معلومه ده چه ده د قصد نه داسې کړې دی یانې داسې د جانه اخستې دې الله ﷻ خو هغه دې چه ظاهر باطن اوچت ښکته لویْ وړوکې هر څه پیژنی.
لکه چه ارشاد دې اعلان اوکړه چه دا قرآن پاك هغه ذات نازل کړې چه د زمکې اوآسمان د پټو رازونو نه خبر دې اوغفور اورحیم دې.(۱) بنیادم چه پخپله څه پټوی یا د هغه نه څه پټ وی هغه ټول الله ﷻ ته ښکاره دی.داعمل دهغه د علم نه هم اول الله ﷻ ته معلوم دی.(۲)ټول تیرشوی موجوده راتلونکی مخلوق علم هغه سره هم داسې دې لکه چه دیوسړې علم. د ټولو پیدائش وژل او سوزول هم د هغه په نیزد یویوسړی پیدائش اود هغه د مرګ نه پس د دویم خل ژوندپه شان دې. ستاد زړه خیالات اوکوم خیالات چه نه راځی هغه هم پیژنی. تاته به زیات نه زیات د نن پټ اعمالوخبر وې اوهغه ته خو صبا کړې شوې اعمال کولو د هغې علم هم دې. ارادې صرف نه بلکه وسوسې هم په هغه باندې ښکاره دی. کړې شوې عمل اوچه کوم کوی هغه ټول عملونه په هغه ښکاره دی. هم هغه معبود برحق دې. اعلی صفتونه او ښکلې نومونه د هغه دی. د سورت اعراف د تفسیر په آخره کښې اسمائې حسنی متعلق احادیث تیرشوی دی. فلله الحمدوالمنة.

| وَهَلْ أَتٰىكَ | حَدِيثُ |
|---|---|
| او ایا راغلې دې تاته | خبر |
| او ایاتاته د موسی د واقعی خبر راغلې دې | |

| مُوسٰى ۞ | إِذْ رَا | نَارًا | فَقَالَ | لِأَهْلِهِ | امْكُثُوا |
|---|---|---|---|---|---|
| دموسی | کله چې اولیدو هغه | اور | نو اوونیل هغه | خپلې بی بی ته | لږ وخت تیر کړئ(دلته) |
| هرکله چې هغه اور اولیدو نو خپلې بی بی ته اوونیل چې تاسو دلته ایسارشئ | | | | | |

| إِنِّيٓ | اٰنَسْتُ | نَارًا | لَّعَلِّيٓ | اٰتِيكُمْ | مِّنْهَا | بِقَبَسٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه زهٔ | چې یم اولیدو | ما اور | دې دپاره چې زهٔ | راوړم تاسو ته | دهغه اور نه | یوه لمبه |
| بیشکه ما اور اولیدلو ..................کیدې شی چې زه تري نه ستاسو دپاره یوه شغله راوړم | | | | | | |

| أَوْ أَجِدُ | عَلَى النَّارِ | هُدًى ۞ | فَلَمَّآ | أَتٰىهَا | نُودِيَ |
|---|---|---|---|---|---|
| یا بیا مومم زهٔ | په اور باندې | دلارې پته | نو هر کله چې | راغې هغه اور ته | اواز او کړې شو |
| یا داور په خوا کښې د لارې درک اولګوم نوکله چې هلته اورسیدو نو اواز ورته اوشو | | | | | |

| يٰمُوسٰى ۞ | إِنِّيٓ | أَنَا رَبُّكَ | فَاخْلَعْ | نَعْلَيْكَ | إِنَّكَ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې اے موسی | بیشکه زهٔ چې یم | زهٔ رب ستا یم | نو او باسه | پیزار خپل | بیشکه تهٔ |
| چې ائې موسی ا بیشکه څه ستا پروردیګار یم انو ته خپلې دواړه پنړې اوباسه ا بیشکه ته په یو پاک | | | | | |

| بِالْوَادِ الْمُقَدَّسِ | طُوًى ۞ | وَأَنَا | اخْتَرْتُكَ | فَاسْتَمِعْ | لِمَا |
|---|---|---|---|---|---|
| په میدان پاك کښې ئې | دطوی | او ما | غوره کړې ئې تهٔ | نو غوږ کیږده | هغې ته |
| میدان یعنې په طوی کښې(ولاړ) ئې ا اوماته منتخب کړې ئې نو څه حکم چې درته کولې شی هغه واوره | | | | | |

(۱) ۲۵/الفرقان:۶.
(۲) الطبری:۱۸/۲۷۲، حاکم:۲/۳۷۸.

يُوحَىٰ ⑬ إِنَّنِي أَنَا اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا أَنَا

چې وحی کیږی تاته | بیشکه زهٔ چې یم | زهٔ الله یم | نشته دې لائق دعبادت | مګر | زهٔ یم |

بیشکه هم زه ستا الله (پروردیګار) یم | ....................زما نه سوا بل معبود نشته دې

فَاعْبُدْنِي وَأَقِمِ الصَّلَاةَ لِذِكْرِي ⑭ إِنَّ السَّاعَةَ آتِيَةٌ

نوعبادت کوه زما | اوقائم کړه مونځ | دپاره دیاد زما | بیشکه وخت دقیامت | ضرور راتلونکی دې

نو زما عبادت کوه| او زماد یاد دپاره مونځونه کوه | بیشکه قیامت راتلونکي دي

أَكَادُ أُخْفِيهَا لِتُجْزَىٰ كُلُّ نَفْسٍ بِمَا

زهٔ غواړم | چې پټ او ساتم دغه وخت | دپاره ددې چې بدله ورکړې شی | هر نفس ته | دهغه عملونو

څه غواړم چې هغه پټ اوساتم| ....................چې هر کس ته د خپل کوشش

تَسْعَىٰ ⑮ فَلَا يَصُدَّنَّكَ عَنْهَا مَنْ لَا يُؤْمِنُ بِهَا

چې کوی ئې هغه | نو منع دې نکړې تا |ددغه وخت د تیارئ نه |هغه څوك |چې ایمان نهٔ راوړی| په هغې

بدله ملاؤشي| نوهغه څوک چې ایمان نه راوړی| اودخپلو خواهشاتو تابعداری کوی

وَاتَّبَعَ هَوَاهُ فَتَرْدَىٰ ⑯

اوتابعداری ئې اوکړه | دخواهشاتوخپلو | ګنی هلاك به شې تهٔ|

چرته تا ددې(حقې لارې) نه منع نکړی| ګنی ته به هلاک شې |

**قوله تعالى:- وَهَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ مُوسَىٰ ⑨**

**د حضرت موسی ؑ واقعه:-** دحضرت موسی ؑ واقعه شروع کیږی. دا دهغه وخت قصه ده چه کله هغه هغه موده پوره کړې وه کومه چه د ده اوسخرصاحب په مینځ کښې تاکلې شوې وه. او هغه خپله بی بی واخسته اودلسوکالونه زیاته موده پس خپل وطن مصر ته روان وو.د یخنئی شپه وه لارئ هیره کړې وه دغرونوپه مینځ کښې په لاره ووتیاره خوره شوې وه.که هرڅومره ئی دکانړوپه ټکولوسره اورد اویستلوخودهغې نه بالکل اُور را اونه وتلو.اخوادیخوا ئی نظر اوزغلولونو ښی طرفته په غر باندې څه اُوربنکاره شونو بی بی ته ئی اووئیل دغه طرف ته اُورشان ښکاری زه ورځم چه د هغه ځائ نه څه انګار راوړم دې دپاره چه ته خان تودکړې او څه رڼاهم اوشی. اودا هم ممکن دی چه هلته څوك سړې ملاوشی او لار هم راته اوښائی بهرحال د لارې پته یا اُور به ملاؤشي. (۱)

**حضرت موسی ؑ ته پیغمبری ملاوشوه:-** -کله چه حضرت موسی ؑ اُور ته اورسیدو نود هغه مبارك میدان ښی طرف ته د ونونه آواز راغلو اې موسی ؑ زه ستا رب یم څپلنی اوباسه. یاخو په دې وجه دا حکم اوشو چه د هغوی څپلنی د خرد څرمن وې[۲] یا په دې وجه چه تعظیم کول ئی مقصدوو[۳] لکه څنګه چه کعبه ته دتلوپه وخت کښې خلق څپلنی اوباسی څی.یا په دې وجه چه دبرکت نه ډك ځای باندې پښې اولګی.نورې وجې هم بیان کړې شوی دی. طوی د هغه وادئی نوم وو[۴] یادا مطلب چه خپل

---

[۱] الطبری:۱۸/۲۷۷.

[۲] حاکم:۲/۳۷۹.

[۳] الطبری:۱۸/۲۷۸.

[۴] الطبری:۱۸/۲۸۱.

قدمونه دې زمکې سره اولګوه یادا مطلب چه دا زمکه څوځو ځل پاکه کړې شوې ده او په دې کښې برکتونه اچولې شوي دی بیا بیادوباره شوی دی. خو ډیر صحیح قول هم رومبې دې لکه چه آیت کښې دی ﴿اِذْ نَادٰىهُ رَبُّهٗ بِالْوَادِ الْمُقَدَّسِ طُوًى﴾ (١) ماته خپل ډیرغوره کړې ددنیانه مې ته خوښ کړې. په خپل رسالت اوخپل کلام باندې تا ممتاز کوم. ددې وخت د زمکې د مخ د ټولوخلقو نه ستا مرتبه اوچتوم.
ونیلې شوی دی چه حضرت موسی علیه السلام ته اوونیلې شو چه ته پیژنې هم ماتا لره او د ټولوخلقو نه مختار اوخوښ کړې شوې تاته ولې دخبروکولو عزت درکړو؟ هغه جواب ورکړو اې الله ماته د دې وجه معلومه نه ده. اوفرمائیلې شو په دې وجه چه ستا په شان نور څوک ماته داسې نه ټیټیږي. اوس زما وحی ته غوږکیږده خیال کولوسره ئې واوره. هم زه معبود یم بل څوك نشته.هم دا رومبنی فریضه ده ته صرف هم زما عبادت کوه. دبل چا هیڅ قسم عبادت مه کوه. زما د ذکر د پاره مونځونه قایمه وه زما د ذکر دا بهترین او غوره طریقه ده.یادا مطلب چه کله هم زه یادشم نو مونځ کوه. لکه چه په حدیث شریف کښې دی په تاسو کښې که چاله خوب راشی یاپه غفلت کښې شی توجه کله یادراشی نو مونځ دې اوکړی څکه چه د الله ﷻ فرمان دې زماد یاد په وخت کښې مونځ کوه.(٢) بخاری اومسلم کښې دی چه کوم سړې د خوب د وجه یا د هیرې په وجه دمونځ وخت تیرکړی نود دې کفاره هم دا ده چه کوم وخت وریادشی نوهم هغه وخت دې مونځ اوکړی. د دې نه علاوه بل څه کفاره نشته.(٣)
**قیامت د الله ﷻ نه سوا هیچاتا نه دې معلوم:-** قیامت یقیناً راتلونکې دې ممکن دی چه زه دهغې صحیح علم ښکاره نه کړم. په یوقراءت کښې ﴿أُخْفِيهَا﴾ نه پس ﴿من نفسی﴾ لفظ هم دې څکه چه د الله ﷻ د ذات نه هیڅ څیز پټ نه دې. یعنی د هغې علم به دخان نه بغیربل چاته ورنه کړم. نو په مخ د زمکه داسې څوك نشته چاته چه د قیامت مقرر وخت معلوم وی. دایوداسې څیز دې چه کیدې شوه نود خپل خان نه به هم مادا څیز پټ کړې وو خود رب نه هیڅ څیز پټ نه دې. دا د ملائکونه پټ دې او پیغمبران هم د دې نه بې علم دی.لکه چه ارشاد دې ﴿قُلْ لَّا يَعْلَمُ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ الْغَيْبَ اِلَّا اللّٰهُ ؕ وَمَا يَشْعُرُوْنَ اَيَّانَ يُبْعَثُوْنَ﴾ (٤) د زمکې اوآسمان والا نه بغیردرب واحد نه بل څوك په غیبوباندې پوهیدونکې نشته. بل آیت کښې دی چه قیامت به په زمکه آسمانو باندې ډیردروند پریوزی هغه به ناڅاپی راځی.(٥) یعنی د دې علم چاته هم نشته. په یوقراءت کښې ﴿أُخْفِيهَا﴾ دې رقاء فرمائی ماته حضرت سعیدبن جبیر رحمه الله دغه شان لوستلې دې د دې معنی ده ﴿اظهرها﴾ په هغه ورځ به هریوعمل کونکی ته دخپل عمل بدله ورکولې شی. که یوه ذره نیکي وی که بدی وی. دخپلو کړو بدله به په دغه ورځ ضرور ملاویږی نوڅوك دې هم بې ایمانه خلق دهوکه نه کړی. د قیامت منکران د دنیا مفتون د مولا نافرمان د خواهش غلام د الله ﷻ کوم یو بنده چه په دې پاکه عقیده کښې دې هغه ګډوډنه کړی. که هغه په خپله خوښه کښې کامیاب شو نو دې غرق شو او په نقصان کښې پریوتلو.

| وَمَا تِلْكَ | بِيَمِيْنِكَ |
|---|---|
| اوڅه دی دغه | په ښی لاس ستا کښې. |
| اوائې موسی داستا | په ښی لاس کښې |

---

(١) ٧٩/النازعات:١٦.
(٢) احمد:١٨٤/٣،صحیح مسلم کتاب المساجد باب قضاء الصلاة الفائتة واستحباب تعجیل قضائها: ٦٨٤ بتصرف یسیر.
(٣) صحیح بخاری کتاب مواقیت الصلاة باب من نسی صلاة فلیصل اذا ذکر....:٥٩٧، صحیح مسلم:٦٨٤، ابوداؤد:٤٤٢، ترمذی:١٧٨،
(٤) ٢٧/النمل :٦٥.
(٥) ٧/الاعراف:١٨٧.

يٰمُوْسٰى۝ قَالَ هِيَ عَصَايَ ۚ اَتَوَكَّؤُا عَلَيْهَا وَاَهُشُّ
اے موسی | اووئیل موسی | دا | همسا زما ده | زهٔ تکیه وهم | په دې باندې | او راخنډم (پاڼې)
څه څيزدی ؟ موسیٰؑ اووئیل دا زما همسا ده | زه په دې باندې تکیه وهم | اوخپلو چیلو

بِهَا عَلٰى غَنَمِيْ وَلِيَ فِيْهَا مَاٰرِبُ اُخْرٰى۝
په دې سره | کډو خپلو ته | او دی زمادپاره | په دې کښې | ضروری کارونه | نور هم (ډیر)
دپاره پرې پاڼې راخنډم | اوزما دپاره په دې کښې نورې هم ډیر فائدې دی (څه به درته یوه یوه شمارم)

قَالَ اَلْقِهَا يٰمُوْسٰى۝ فَاَلْقٰىهَا فَاِذَا هِيَ حَيَّةٌ
اووئیل الله | اوغورزوه دا | اې موسی | نو وې غورزوله هغه | نوبیو دم شو | هغه | مار
الله ﷻ ورته اوفرمائیل چې ائې موسی دا اوغورځوه | چه هغه اوغورځول نوناګهانه هغه مار وو چه

تَسْعٰى۝ قَالَ خُذْهَا وَلَا تَخَفْ ۗ سَنُعِيْدُهَا
چې منډې نې وهلې | اووئیل الله | او نیسه دا | او مهٔ یریږه | اوبه ګرزوؤ مونږ دغه همسا
منډې ئې وهلې | نو الله ﷻ اوفرمائیل | چې دا اونیسه او یریږه مه | مونږ دا اوس

سِيْرَتَهَا الْاُوْلٰى۝
شکل خپل | رومبی ته |
بیا داول په شان (همسا) ګرځوو |

قوله تعالی:- وَمَا تِلْكَ بِيَمِيْنِكَ يٰمُوْسٰى۝

**د حضرت موسی ؑ د همساذکر:-** دحضرت موسی ؑ دیوې ډیرې لوئې او صفابنکاره معجزې ذکر کولې شی چه دالله ﷻ د قدرت نه بغیرناممکن اود غیرنبی په لاس باندې هم ناممکن ده.په کوه طور باندې داتپوس کیږی چه ستا په ښی لاس کښې څه دی؟دا سوال د دې دپاره وو چه دحضرت موسی ؑ ویره لاړه شی داهم وئیلې شوی دی چه دا سوال د تقریرپه توګه دې یعنی ستا په لاس کښې هم لرګې دې دا چه څنګه دې هم داسې تاته معلومیږی اوس چه به دا څه کیږی هغه ګوره.د دې په جواب کښې کلیم الله عرض کوی دا زما خپل لرګې دې په کوم چه زه ډډه لګوم یعنی په تلو کښې دا ماته امداد راکوی ددې په ذریعه زه د خپلو چیلود پاره د ونونه ګیاپاڼې راخنډم. داسې لرګوکښې اوسپنه لګولې شی دې دپاره چه پاڼې اومیوه په آسانئی سره راوشوکولې شی اولرګې مات هم نه شی.[1] نورې هم ډیرې فائدې په دې کښې دی.

**د موسی علیه السلام د همسا باره کښې اسرائیلی خبرې:-** د دې فائدو په بیان کښې بعضې خلقو داهم وئیلی دی چه هم دالرګې به د شپې یوروښانه چراغ جوړیدلو. د ورځې چه به هغوی اوده کیدل نو هم دې لرګی به دچیلو خیال ساتلوچرته به چه دسوری ځایٔ نه وو نوموسی ؑ به داخښولو دې به د خیمې په شان په هغوی سورې کولو وغیره وغیره. په ظاهره داقول د بنی اسرائیلو قصه معلومیږی. ګنې بیا نن چه موسی ؑ دمار په شکل کښې لیدلو نو ولې به دومره ویریدلو؟ هغه خود دې لرګی عجائبات کتونکې راروان وو.بیاد بعضو دا قول دې چه دا لرګې د حضرت آدم ؑ وو. څوك وائی چه هم دا لرګې

[1]) الدرالمنثور:۵/۵٦٤.

به د قیامت نیزدې دابته الارض په شکل کښې ښکاره کیږي. وائي چه د دې نوم ماشا وو. هم الله ﷻ ته معلومه ده چه په دې اقوالو کښې ترکوم ځائ پورې حقیقت دې؟ حضرت موسی ﷺ ته د لرګی هم لرګي خودلو سره دښه بیدارولو او هوښیاریدلو حکم ملاو شو چه دا په زمکه باندې اوغورزوه. په زمکه باندې غورزولو سره هغه یوزبردست اژدها جوړه شوه او پونکار کولو سره اخوادېخوا ګرځیده بلکه منډې وهلې. داسې خوفناکه اژدها دې نه وراندې چا هډو لیدلې نه وه. دهغې خو دا حال وو چه یوه ونې مخې ته راغله هغه ئې هضمه کړه. یود غرکانړې په لار کښې راغلو هغه ئې یوه نوړئې کړه. دې حال کتو سره حضرت موسی ﷺ اولته پښې رامنډې کړې آواز ورکړې شو موسی ﷺ راونیسه خو همت ئې اونه شو. بیائې اوفرمائیلې شو موسی ﷺ ویریږه مه راونیسه. بیاهم ویره باقی وه. په دریم ځل ئې ورته اوونیل ته زمونږ په امن کښې ئې اوس ئې لاس وړاندې کړوونې نیوله. ونیلې شي چه د الله ﷻ فرمان کیدو سره هغه همسا په زمکه باندې راغوزار کړه او بیائې سترګې اخودېخوا شوې. اوس ئې چه خیال اوکړونود لرګی په ځائ یوډیر خوفناك مار ښکاری اوداسې ګرځي لکه چه د چا په لټون کښې وی. د بلاربې اوښې غوندې لوئ لوئ کانړې آسمان سره خبرې کونکې او اوچتې اوچتې ونې یوه نوړئې کوی اوخپلې خیتې ته ئې رسوی.سترګې داورد سروټکو په شان پرقیږی .دې هیبت ناك او تباهی راوستونکې اژدهاته ئې چه اوکتل حضرت موسی ﷺ غلې شوشانی کړه او په منډه اوتختیدو.

بیاد الله ﷻ سره خبرې کول یاد شو نواوشرمیدو اودریدو. هم هلته آواز راغلوموسی ﷺ واپس شه هلته راشه کوم ځائ چه وې. هغه واپس شوخوډیر ویریدلې وو. حکم اوشوچه په خپل ښی لاس سره ئې راونیسه هیڅ ویره مه کوه. مونږ به دا د دې په خپل اصلی حالت کښې راواپس کړو. هغه وخت موسی ﷺ وړنې کمبل په سرکړې وه کومه چه ئې هغه وخت یوازغی سره زوړندکړې وه. هغه هم دا کمبل د خپل لاس نه راتاوکړه او دا خطرناکه اژدهائې رانیول غوښتل. فرښتې ونیل موسی ﷺ که الله ﷻ دې ته ستا د ټك درکولو حکم اوکړی نوآیا ستادا کمبل تا بچ کولې شي؟ هغه جواب ورکړو هیڅ کله نه. دا حرکت زما نه زما دکمزورئې په وجه اوشو.زه ضعیف اوکمزورې پیداکړې شوې یم.اوس ئې په بهادرئې سره لاس وړاندې کړو اودسرنه ئې راونیوله. هغه وخت هغه اژدهابیالرګي شو لکه چه څنګه وه. هغه وخت چه دې په دې غونډئې ورختلو اود هغه په لاس کښې هغه همسا وه په کوم ئې چه ډډه لګولې وه په دې حال کښې هغه اول لیدلې وه هم په هغه حال کښې اوس دهغه په لاس کښې همسا موجود وه.

وَاضْمُمْ يَدَكَ اِلٰى جَنَاحِكَ تَخْرُجْ

اوجوخت کړه | لاس خپل | ترخ خپل ته | را اوبه وځی |

| اوته خپل لاس په خپل ترخ کښې ورکړه | هغه به بغیر د څه عیب نه سپین

بَيْضَآءَ مِنْ غَيْرِ سُوْٓءٍ اٰيَةً اُخْرٰى ۙ لِنُرِيَكَ

تك سپین(ځلیدونکي | بغیر د څه خرابئ نه |(دا) یوه نښنه ده | بله | دپاره ددې چې اوښایو تاته

پرقیدونکي راوځي | دا دویمه نښه ده ددې دپاره چې مونږ تاته خپلې لوئي

مِنْ اٰيٰتِنَا الْكُبْرٰى ۚ اِذْهَبْ اِلٰى فِرْعَوْنَ اِنَّهٗ طَغٰى ۧ

دنښو خپلو نه | لوئي |اوس لاړ شه | فرعون ته | بیشکه هغه | سرکشه شوې دې

لوئي نخښې اوښایو | ......... اوس ته فرعون ته ورشه ځکه چې هغه ډیر سرکشه شوې دې

قَالَ رَبِّ اشْرَحْ لِي صَدْرِي ۝ وَيَسِّرْ لِي أَمْرِي ۝

او وئیل موسی | اے ربه زما | فراخه کړې | زمادپاره | سینه زما | او آسان کړې ماته | کار زما

موسی دعا اوکړه ائي زماپروردیګاره ! زما سینه پرانیزه | ...............او زما کار آسان کړه

وَاحْلُلْ عُقْدَةً مِّن لِّسَانِي ۝ يَفْقَهُوا قَوْلِي ۝ وَاجْعَل لِّي

او پرانیزه | غوټه | د ژبې زما | چې پوهیږي خلق | په خبره زما | او مقرر کړه | زماسره

او زما د ژبې لقنت لرې کړه | چې خلق زما په خبره ښهٔ پوهیږي | او زما دکور په خلقو

وَزِيرًا مِّنْ أَهْلِي ۝ هَارُونَ أَخِي ۝ اشْدُدْ بِهِ أَزْرِي ۝

یو مددګار(وزیر) | دخاندان زما نه | هارون | رور زما | مضبوطه کړه | په هغه سره | شا زما

کښې زما یو مددګار جوړ کړه یعنی هارون | چې زما رور دې دهغه په ذریعه زما ملا مضبوطه کړه

وَأَشْرِكْهُ فِي أَمْرِي ۝ كَيْ نُسَبِّحَكَ كَثِيرًا ۝

او شریك کړه هغه | په کار زماکښې | دپاره ددې | چې مونږ پاکی بیان کړو ستا | ډیره

اوهغه راسره په دې کار(د نبوت) کښې شریک کړه | چې مونږ ستا ډیره ډیره پاکی بیانوو

وَنَذْكُرَكَ كَثِيرًا ۝ إِنَّكَ كُنتَ بِنَا بَصِيرًا ۝

اومونږ ذکر کوو ستا | ډیر | بیشکه ته | خاص هم ته | په حال زمونږ باند | الیدونکې(خبردار) ئې

اومونږ تاډیر ډیر یادوو | بیشکه ته زمونږ حالات ګورې وینې (ستا نه زمونږ یو حرکت هم پټ نه دې)

قوله تعالی:- وَاضْمُمْ يَدَكَ إِلَىٰ جَنَاحِكَ

**د حضرت موسی ﷺ معجزې** :- حضرت موسی ﷺ ته دویمه معجزه ورکولې شی. حکم کولې شی چه خپل لاس په خپل ترخ کښې واچوه اوبیانی راوباسه نوهغه به د سپوږمئی په شان پړقیدونکې راوخی. دا نه چه د برګی مرض یا د بلې بیمارنی عیب به وی.(۱)نوچه کله حضرت موسی ﷺ لاس ورکړو اوبیانی راوویستلو نو د چراغ په شان پړقیدو. په کوم سره چه د هغه یقین اوشو چه هغه د الله ﷻ سره کلام کوی اووروړاندې شو.(۲)دا دواړه معجزې دلته څکه ملاوشوې چه هغه د الله ﷻ دا زبردستې نښې اووینی اویقین ئې اوشی. بیاحکم اوشو فرعون زمونږ په دښمننی ملا تړلې ده هغه له لاړشه او هغه پوهه کړه.

**موسی علیه السلام ته د الله ﷻ وحی او هدایات**:-حضرت وهب رحمه الله وائی الله ﷻ حضرت موسی ﷺ ته د نیزدې کیدوحکم ورکړوچه هغه د هغه ونې تنې سره اولګیدواودریدو. زړه ئې اودریدو ویره او خطره ترې لرې شوه. دواړه لاسونه ئې په خپله همساباندې کیخودل سرئې ښکته کړو سټ ئې ټیټ کړوپه ادب سره ئې دالله ﷻ ارشاد اوریدو.ونې فرمائیل چه دملك مصر بادشاه فرعون له زمونږ پیغام یوسه لاړشه هم ددغه ځائ نه ته تختیدلې راغلې وې. هغه ته اووایه چه زمونږ عبادت کوی او څوك دې شریك نه

---

(۱) الطبری:۱۸/۲۹۷.

(۲) الطبری:۱۸/۲۹۸.



منی.بنی اسرائیلو سره دې ښه سلوك او احسان کوی هغوی ته دې تکلیفونه او سزاګانې نه ورکوی.
فرعون ډیرباغی شوې دې د دنیامفتون جوړشوې آخرت ترینه هیرشوې دې اوخپل پیدا کونکې نی
هیرکړې دې. ته زما رسالت یوسه اوهغه له لاړشه زماسترګې اوزماغوږونه تاسره دی.زه تاته ګورم او
خیال کوم ستاخبرې اورم اوتاته به اوروم. زما امداد به تاسره وی او ماتاته حجتونه درکړی دی هغې ته
قوی اومضبوط کړې نی. ته هم یوازې زماپوره لښکر نی.خپل یوضعیف بنده له تاورلیګم زما نعمتونو
ورلیګلوسره هغه پلن شوې دې اوزمارانیول نی هیرکړی دی.پدنیاکښې راګیرشوې دې اوپه کبراوغرور
کښې ورخښ شوې دې.زماد ربوبیت نه ویزاره شوې اوزمادالوهیت سره مقابله کوی.زما نه نی سترګې
اړولی دی سترګې بدلی کړی دی. زما د راګیرولونه غافل شوې دې . زما د عذابونو نه بې ویرېشوې
دې. زما دې په خپل عزت قسم وی که ما هغه ته وخت ورکول نه غوښتل نو آسمانونه به په هغه رامات
شوې وی. زمکې به هغه رانښکلې وو دریابونو به هغه ډوب کړې وو نوهغه زما د مقابلې نه دې هر
وخت زما په وس کښې دې هم ما هغه ته وخت ورکړې دې اود هغه نه بې پرواهی کوم. اوزه یم هم د ټول
مخلوق نه بې پرواه. حق خو دا دې چه بې پرواه کیدل خو صرف هم زما صفت دې ته زما رسالت اداکړه.
هغه ته زما د عبادت هدایت اوکړه هغه ته دتوحیداو اخلاص دعوت ورکړه. زما نعمتونه وریادکړه. زما
د عذابونونه ئی اوویروه زما په غضب باندې خبر کړه.کله چه زه غصه کوم نو امن نه پاتې کیږی. هغه
په نرمئی سره پوهه کړه چه د نه منلوعذر ئی مات شی.زما د ښښنې او زما د رحم او کرم خبرهغه ته
ورکړه. ورته اووایه که اوس هم زما طرف ته تېښ شوې نو زه به درته هغه ټولې بدعملنې پریږدم. زما
رحمت زمادغضب نه ډیر زیات کولاودې. خبردار د هغه دنیاوی دبدبه کتلوسره په رعب کښې مه راځه
د هغه مرئی زما په لاس کښې ده د هغه ژبه روانیدې نه شی د هغه لاس اوچتیدې نه شی هغه سترګه
ربولې نه شی د هغه سا روانیدې نه شی ترکومې چه زما اجازت نه وی. هغه پوهه کړه چه زما اومنی نو
زه به هم ورسره په مغفرت سره مخ شم. څلور سوه کاله د هغه په سرکشئی زما په بندیګانو باندې په
ظلم کولو اوزما د عبادت نه خلق منع کولوکښې تیرشو. خو بیاهم ما نه په هغه باندې باران بندکړو نه
مې پرې پیداوار بندکړو نه مې بوډاکړو نه مې مغلوب کړو.که غوښتل مې نوپه ظلم سره به مې رانیولې
وو خوزما حلم ډیر زیات دې. ته د خپل زور سره یوځائ شه هغه سره پوره جهاد اوکړئی اوزما په
امدادباندې یقین ساتئی. که زه اوغواړم نو خپل لښکر به ورولیګم او د هغه بنیاد به ختم کړم خوده ته
زه دا ښایم چه زما د ډلې یوکس هم په مخ د زمکه په طاقت سره غالب راتلې شی. امداد زما په لاس
کښې دې اود دنیاوی شان اوشوکت ته پرواه مه کوه بلکه یونظر ورته ګوره هم مه. که زه غواړم نوتاته
به دومره درکړم چه د فرعون دولت به د هغې پارسنګ هم نه وی.خو زه خپل بندیګان عموما غریب
ساتم دې دپاره چه دهغوی آخرت ښه وی. دا په دې وجه نه وی چه هغوی زما په نیز قابل اکرام نه وی
بلکه صرف د دې وجه نه چه د دواړوجهانو نعمتونه په راتلونکی جهان کښې راجمع ملاوشی. زما په
نیز دښیادم یوعمل ددومره وقعت والانه دې څومره چه دزهداودنیانه لریوالې.زه خپلو خاص بندیګانو
ته سکینه اود خشوع اوخضوع لباس وراغوندم. د هغوی مخونه د سجدو په برق سره روښانه کیږی. هم
دغه رښتونی اولیاءالله دی. د هغوی په وراندې هریوله پکار دی چه په ادب سره اوسی. آیا ماسره د
جنګ کولواراده لرونکې کامیاب کیدې شی؟ که ما د قهر په نظر هغه ته اوکتل نوهغه به تهس نس
شی. زما دښمنان په ما غالب نه شی راتلې.زما هیڅ نه شی کولې زه د خپلو دوستانو پخپله امداد
کوم.هغوی د دښمن ښکار کوم نه. په دنیااوآخرت کښې هغوی کامیاب کوم اود هغوی امداد کوم.

**سوانح موسی علیه السلام او فرعون ته ورتګ:-** حضرت موسی ﷺ خپل دروکوالی زمانه هم د فرعون
په کور کښې تیره کړې وه بلکه د هغوی په غیږد کښې ئی تیره کړې وه. د ځوانئی پورې د هغه په ملك

مصر کښې د هغه په بادشاهئ کښې اوسیدلې وو. بیا یو قبطي بې ارادې د هغه د لاسه مړشوې وو د څه په وجه چه هغه د دې ځائ نه تختیدلې وو. نو د هغه وخت نه واخله تراوسه پورې نې د مصر شکل نه وو لیدلې. فرعون یوسخت زړه والا بداخلاق کبرژن مزاج اوبدعمله انسان وو. کبر او غرور نې دومره زیات شوې وو چه وئیل به نې زه رب نه پیژنم. خپلو خلقو ته به نې وئیل ستاسوغټ رب زه یم. په ملك اومال دولت او سامانونوکښې لښکرو او وسلوکښې په مخ د زمکې د هغه د مقابله څوك نه وو. کله چه حضرت موسی ﷺ ته د هغه دهدایت کولو حکم اوشو نو هغه د الله ﷻ نه دعا اوکړه چه زما سینه کولاوکړې اوزما په کارکښې آسانی پیداکړې. د هغوی په وړوکوالی کښې د هغوی مخې ته کهجورې او سروټکی کیخودې شوې وې هغه سروټکه اوانګار په خپله خله کښې اچولې وه په دې وجه نې په ژبه کښې تتوالې شوې وو نودعا نې اوکړه چه زما د ژبې دا غوټه کولاوکړې.

**انبیاء علیهم السلام صرف د خپل حاجت مطابق الله ﷻ نه سوال کوې زیات نه :-** دحضرت موسی ﷺ دې ادب ته اوګوره چه د حاجت مطابق سوال کوې داعرض نه کوې چه زما ژبه دې بالکل صفاشي بلکه دا دعاکوې چه هغه دې کولاوشي دې دپاره چه خلق زماپه خبره پوهه شي. انبیاءکرام علیهم السلام د خپل حاجت مطابق دالله ﷻ نه سوال کوې وړاندې کیږی نه. نو د هغوی په ژبه کښې بیا هم څه اثر پاتې شوې وو لکه چه فرعون وئیلې وو چه زه بهتریم که دې؟ څوك چه صفاخبرې هم نه شي کولې. حسن بصری رحمه الله وائی چه د یوې غوټې دکولاویدو دعائی کړې وه چه پوره شوه. که پوره دعائی کړې وه نوهغه به هم پوره شوې وه. هغوی صرف د دې دعاکړې وه چه دهغوی ژبه داسې شي چه خلق د هغه په خبره پوهیږی.

**د موسی علیه السلام دعاګانې:-** حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی ویریدلو چه هغه د قتل په الزام کښې قتل نه کړی. د هغې دعائی اوکړه چه قبوله شوه. په ژبه کښې تتوالې وو د هغې دعائی اوکړه چه ژبه مې دومره صفا شي او خلق مې په خبره پوهه شي دا دعائی هم پوره شوه. دعائی اوکړه چه هارون هم نبی جوړکړه نو هغه هم پوره شوه. حضرت محمدبن کعب ﷺ له د هغه یورشته دار راغلو اوونې وئیل دا خو ډیر کمې دې چه ته په خبرو کښې خبرې کوې هغه وئیل وراره ولې ته زما په خبره نه پوهیږې؟ وئیل او په پوهه کښې خو مې راخی نوونې فرمائیل چه دا کافی دی. حضرت موسی ﷺ هم د الله ﷻ نه دغه دعاکړې وه. بیانی نوره دعااوکړه چه زما دخارجي او داظاهری امداد د پاره زما وزیر جوړکړه اوهغه دې هم زما د خاندان نه وی یعنی زما رور هاورن ته نبوت ورکړه. حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی هم هغه وخت حضرت هارون ﷺ ته د حضرت موسی ﷺ سره پیغمبری ملاوشوه.

**کوم رور د خپل رور پحقله دټولو نه ښکلې دعا کړې ده :-؟** حضرت عائشه صدیقه k د عمرې د پاره تله نو د یواعرابی کره ډیره شوه چه اوریدل نې چه یوسړی تپوس کولو چه په دنیاکښې کوم یو رور د خپل رور د پاره د ټولو نه زیاته نفع رسولې ده؟ په دې سوال باندې ټول چپ شو اوونیل مونږ ته د دې علم نشته. هغه وئیل په الله ﷻ باندې قسم ماته د دې علم شته. صدیقه k فرمائی چه ما په زړه کښې وئیل ګوره داسړې خومره بې ځایه زړه ورتیاکوی. بغیرد ان شاء الله نه قسم خوری. خلقو د هغه نه تپوس اوکړو چه اوبنایه هغه وئیل حضرت موسی ﷺخپل رور ته په خپله دعاسره نبوت ورکړو. ماهم دا واوریده او په زړه کښې ډیره حیرانه شوم چه خبره خوده ربښتیااوکړه. په حقیقت کښې یو رور هم بل رور ته د دې نه زیات نفع نه شي رسولې. الله ﷻ ربښتیافرمائیلې چه حضرت موسی ﷺ د الله ﷻ په نیز ډیر عزت دارو. د دې دعا په وجه سره بیان کوی چه زما ملامضبوطه شي اوزما په مشاورت کښې وی. زما په کارکښې هغه هم زما ملګرې جوړکړه دې د پاره چه مونږ ستا تسبیح په ښه شان سره بیان کړو. هروخت ستا پاکی بیانوو او ستا ذکر په کثرت سره کوو.

حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چه بنده د الله ﷻ ډیرذکرکونکې هغه وخت کیدې شي چه هغه په ناسته

ملاسته ولاړه د الله ﷻ په ذکر کښې مشغول وی چه ته مونږ ته ګوري دا ستا رحم اوکرم دې چه تامونږ غوره کړو مونږ ته دې نبوت راکړو اومونږ دې د خپل دښمن په وړاندې پیغمبران جوړ کړو اود هغه د هدایت د پاره دې اولیګلو. ستا شکر دې او هم ستا د پاره دی ټول تعریفونه. ستا په دې نعمتونو باندې مونږ ستا شکر کونکی یو.

| قَالَ | قَدْ أُوتِيتَ | سُؤْلَكَ | يَٰمُوسَىٰ ۝ | وَلَقَدْ مَنَنَّا | عَلَيْكَ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوونیل الله | درکړې شوه تاته | غوښتنه ستا | اې موسی | او احسان اوکړو مونږ | په تاباندې |
| الله ﷻ ا تاچې څه اوغوښتل هغه تاته درکړې شوا او مونږ ددې نه مخکښې په تاباندې | | | | | |

| مَرَّةً أُخْرَىٰٓ ۝ | إِذْ | أَوْحَيْنَآ | إِلَىٰٓ أُمِّكَ | مَا يُوحَىٰٓ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| یو ځل بیا | یاد کړه کله چې | اشاره اوکړه مونږه | مور ستا ته | هغه چې د وحی په ذریعه کیدې شی |
| یوبل ځل هم احسان کړې وواچې ستا مور ته مو د هغې خبرې الهام اوکړو چې دالهام قابله وه | | | | |

| أَنِ اقْذِفِيهِ | فِي التَّابُوتِ | فَاقْذِفِيهِ | فِي الْيَمِّ فَلْيُلْقِهِ |
|---|---|---|---|
| چې واچوه دې | په صندق کښې | او واچوه دغه صندق | په دریاب کښې | نو اوبه غورزوی هغه صندق لره |
| یعنی داچې موسی په یو صندق کښې واچوه | او بیا هغه (صندق) په دریاب کښې لاهو کړه | نو دریاب | | |

| الْيَمُّ | بِالسَّاحِلِ | يَأْخُذْهُ | عَدُوٌّ لِّي | وَعَدُوٌّ لَّهُۥ ۚ | وَأَلْقَيْتُ |
|---|---|---|---|---|---|
| دریاب | په غاړه باندې | چې رااوبه نیسی دهٔ لره | دشمن زما | او دشمن دهغه | اوواچوۀ ما |
| به ئې په خپله غاړې ته راولی | اوهغه څوک بهٔ اونیسی چې زما هم دښمن دې او ددهٔ هم دښمن دې | | | | |

| عَلَيْكَ | مَحَبَّةً | مِّنِّي ۝ | وَلِتُصْنَعَ | عَلَىٰ عَيْنِيٓ ۝ | إِذْ |
|---|---|---|---|---|---|
| په تاباند | محبت | دخپل طرفه | او چې تربیت اوشی ستا | وړاند دسترګو زما | یاد کړه کله چې |
| اومایه تاندې د خپل طرفه د خلقو مینه پیدا کړې وه او داچې خاص زما په نګرانئ کښې ستا پالنه اوشی اه کله چې | | | | | |

| تَمْشِيٓ | أُخْتُكَ | فَتَقُولُ | هَلْ أَدُلُّكُمْ | عَلَىٰ مَن | يَكْفُلُهُۥ ۖ |
|---|---|---|---|---|---|
| روانه وه | خور ستا | نو وې وئیل هغې | آیا زهٔ اوښایم تاسو ته | هغه څوک | چې پالنه اوکړی ددهٔ |
| ستا خور ورغله او وې وئیل چې آیا زه درته دداسې خلقو خبر درکړم چې هغوئ به ئې (ډیره ښهٔ) پالنه اوکړی | | | | | |

| فَرَجَعْنَٰكَ | إِلَىٰٓ أُمِّكَ | كَيْ | تَقَرَّ | عَيْنُهَا |
|---|---|---|---|---|
| دغه شان واپس راوستې مونږ تهٔ | مور ستا ته | دپاره ددې | چې یخې شی | سترګې دهغې |
| نومونږ ته خپلې مور ته بیا وزواپس کړې..............اچې دهغې سترګې درباندې یخې شی | | | | |

| وَلَا تَحْزَنَ ۚ | وَقَتَلْتَ | نَفْسًا | فَنَجَّيْنَٰكَ | مِنَ الْغَمِّ | وَفَتَنَّٰكَ |
|---|---|---|---|---|---|
| او غمژنه نشی | او مړ کړو تا | یو سړې | نو خلاص کړې مونږ تهٔ | ددې غم نه | او ازمائیلې مونږ تهٔ |
| اوغمژن کیږی نه | اوتایو سړې قتل کړې وو | نو تاته مې ددغه غم نه نجات درکړو | اوته مو په قسم قسم | | |

| فُتُونًاؕ |
| --- |
| په آزمېښتونو سره |
| امتحانونو کښې واچولې |

**قوله تعالٰی:- قَالَ قَدْ اُوْتِیْتَ سُؤْلَكَ یٰمُوْسٰی﴿۳۶﴾**

**دحضرت موسیٰ ﷺ تفصیلي حالات:-** دحضرت موسیٰ ﷺ ټولې دعاګانې قبولې شوې او اوفرمائیلې شو چه ستا درخواست منظور دې.ددې احسان سره ئې دیویل احسان ذکرهم اوکړوچه مونږپه تاباندې یوځل بل لوئ احسان هم کړې دې بیانئ داواقعه په مختصرتوګه باندې وریادکړه چه مونږ ستا په وړوکوالي کښې ستامور ته وحی راولیګله د کوم ذکر چه اوس تاته کولې شی. ته هغه وخت پنې رروکې بچې وې ستا مور فرعون اوفرعونیانو راګیره کړې وه ځکه چه په هغه کال هغه د بنی اسرائیلو هلکان قتل کول. ددې ویرې به هغه هروخت رچیده نومونږ وحی اوکړه چه صندوق جوړکړه. پنې ورکړه او داماشوم په دې صندوق کښې سملاوه. په دریائی نیل کښې داصندوق پریږده. هغې هم داسې کول یوه رسئ نې په دې پورې تړلې وه د کوم یو سرچه به ئې خپل کور سره تړلو. یوه ورځ ئې تړلو چه رسی د لاس نه خلاصه شوه او صندوق چپو یوړو. اوس ئې وارخطا شو.دومره خفه شوه چه صبر ناممکن شو.راز نې ښکاره کولو خومونږ ورله زړه مضبوط کړو.صندوق په اوبوکښې د فرعون محل سره تیریدو. آل فرعون هغه راوچت کړو د کوم غم نه چه هغه ځان محفوظ ساتل غوښتل هغه د هغه مخې ته راغلو. د کوم ژوند شمع چه مړه کولو د پاره هغه بې ګناه ماشومان قتل کول هغه هم دهغه په تیلو سره هم هغه کړه روښانه شوه. اود الله ﷻ ارادې به بغیرینديزنه پوره کیږی.د هغه دښمن هم د هغه په لاس کښې لوئیږی هم د هغه خوراك کوی او هم د هغه په تربیت کښې دې.

**موسی علیه السلام د فرعو په په کور کښې بیا دمور په غیږ کښې:-** پخپله فرعون اود هغه بی بی چه کله ماشوم اولیدلو نو د هغوی په رګ رګ کښې ورسره مینه پیدا شوه اوچت ئې کړو او پالنه ئې شروع کړه. دسترګو ستورې ئې ګنړلو.دشهزادګانو په شان په نازونعم کښې لوئیدلو.په بادشاهی دربارکښې اوسیدلو. الله ﷻ خپله مینه په تاباندې درواچوله. سره د دې چه فرعون ستا دښمن وو خود رب خبره څوك بدلولې شی؟ په فرعون باندې څه سخته وه چه ته نې اخستې او په تاباندې قربانیدل. داد دې د پاره چه ستا پالنه زما د سترګو په وړاندې وی.[1]بادشاهی خوراکونه کوه او په عزت اوقدر سره اوسیږه. فرعونیانو صندوقچه راوچته کړه کولاوئی کړه وئی کتله ماشوم ئی اولیدلو نو د پالنې اراده ئی اوکړه. هغه د یوې دائی پنی نه اخستل بلکه خُلې ته ئی نه پریخودل. خورئی صندوقچه سره په غاړه غاړه روانه وه هغه هم په موقعه باندې اورسیدله وئی وئیل که تاسود ده دپالنې خواهش کوئی او معقول اجرت هم ورکوئی نوزه درته یوکورنئی اوښایم چه دې به په مینه پالی او دخیرخواهئی سلوك به ورسره هم کوی. ټولو وئیل اومونږ تیاریو دوی ئی واخستل او خپلې مور له ئی بوتلل کله چه ماشوم په غیږ کښې واچولو نو هغه زر خُله کیخوده اوپئی څکل ئی شروع کړه. په دې باندې فرعون کړه ډیره خوشحالئی اوکړې شوې اوډیر انعام اواکرام ورکړې شو. تنخواه مقرره شوه هم خپل بچی باندې پئی څکوی تنخواه انعام عزت اواکرام ئی هم بیاموندو. دنیاهم ملاوشوه او دین هم زیات شو.

په دې وجه په حدیث شریف کښې دی چه څوك خپل کاراوکړی او په نیك نیتئی سره ئی اوکړی د هغه مثال دموسی ﷺ د مور په شان دې. چه هم خپل خوئ باندې پئی څکوی او مزدوری هم ملاوشی او دا

[1] الطبری:۱۸/۳۰۳.

هم زمونږ مهرباني ده چه مونږ ته هم دخپلې مورغيږ ته حواله كړې دې دپاره چه دهغې غم كم او سترګې يخې وى. بياستادلاسه يو فرعونى قبطى اووژلې شو نو بيا هم مونږ ته بچ كړې. فرعونيانو ستادقتل اراده كړې وه رازبنكاره شوې وو. تاته مود دې ځائ نه خلاصې دركړو. ته اوتختيدې د مدين كوهى ته لاړې سادې واخسته. زمونږ يونيك بنده تاته خوشخبرى واورولە. اوس هيڅ ويره نشته د دې ظالمانونه تاخلاصې بيامونډو ته مونږ د ازميښت په توګه په نورو فتنوكښې هم واچولې.

(وَفَتَنّٰكَ فُتُوْنًاۚ) څه وو ؟دهغې تفصيلات .اوله فتنه:-حضرت سعيدبن جبير رحمه الله فرمائى چه ما د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه نه د دې باره كښې تپوس اوكړو نو هغوى اوفرمائيل اوس خو ورځ په ډوبيدوده واقعات ډيردى بيا به ګورو.ما په دويم سحركښې بياسوال نو هغوى اوفرمائيل واوره د فرعون په درباركښې يوه ورځ د دې خبرې چيږ چاړ اوشو چه د الله ﷻ وعده حضرت ابراهيم عليه السلامخليل الله سره دا وه چه د هغوى په اولاد كښې به انبياء او بادشاهان وى نو اسرائيلان ترننه پورې ډير په انتظاردى اود هغوى دا يقين دې چه دمصرحكومت به بيا د هغوى لاس ته ورځى. اول خود دوى خيال وو چه دا وعده دحضرت يوسف عليه السلام باره كښې وه خوچه كله د هغوى د وفات پورې دا وعده پوره نه شوه نواوس هغوى عقيده لرى چه الله ﷻ به په دوى كښې يوپيغمبر راليګى دچا په لاس چه به هغوى ته سلطنت هم. ملاويږى اودهغوى قومى اومذهبى ترقى به هم كيږى.دې خبروكولوسره فرعونيانودمشاورت يو مجلس مقرركړو چه اوس څه اوكړوچه آئنده خطرې نه محفوظ پاتې شو.آخر په دې جلسه كښې دا قرار داد منظور شو چه د پوليس يوه محكمه مقرركړې شى چه د ښار ګشت دې لګوى او په بنى اسرائيلو كښې چه كوم نارينه اولاد پيدا كيږى هغه دې هم هغه وخت په سركار كښې دې پيش كړى اوحلال دې كړې شى. خوچه كله يوه موده تيره شوه نود هغوى خيال رابيدار شو چه داسې خو به بنى اسرائيليان تباه شى اوچه كوم ذليل خدمتونه د هغوى نه اخستې شى اوكوم بيګارونه د هغوى نه حاصليږى تول به اودريږى. په دې وجه دا تجويزاوكړې شو چه اوس يوكال د هغوى ماشومان پريږدئى اويوكال د هغوى خامن قتل كونى. دغه شان به د موجوده بنى اسرائيلو تعدادهم نه زياتيږى اونه به دومره كميږى چه مونږ ته دخپل خدمت كولو د پاره هم ملاؤنه شى.

**د هارون عليه السلام پيدائش په هغه كال وو چې ماشومان نه قتليدل:-** خومره بوداګان چه په دووكالوكښې مړه شى دومره ماشومان به په يوكال كښې پيداشى.په كوم كال چه قتل وقوف شوې ووپه هغه كال خو حضرت هارون عليه السلام پيداشو اوپه كوم كال كښې چه دعاموماشومانو قتل روان وو هغه كال كښې حضرت موسى عليه السلام پيداشو. هغه وخت د موسى عليه السلام د مور د ويرې او پريشانئى به څه تپوس كوې؟ بې اندازې وه اويوه فتنه خودا وه.

**دويمه فتنه :-** دا خطره خو هغه وخت لرې شوه كله چه الله ﷻ وحى اوكړه هغې له راغله چه خطره او ويره مه كوه مونږ به دې تاته بيّا راواپس كړو اودې به خپل رسول جوړوو. د الله ﷻ په حكم سره ئې خپل ماشوم په صندوقچه كښې رابندكړه او په درياب كښې لاهوكړه. كله چه صندوق د نظر نه پناه شو شيطان ورته په زړه كښې وسوسې اچول شروع كړه چه افسوس دې نه خو هم دابهتره وه چه هم زما په وراندې ئې حلال كړى وې نو ما به هغه پخپله كفن دفن كړې وو ولې اوس خو هغه ماد خپله لاسه د كبانوښكارجوړكړو. دا صندوق هم داسې روان وو اوخاص د فرعون ګودرسره اولګيدو. هلته دغه وخت د محل نوكرانې موجود وې هغوى دا صندوق اوچت كړو او غوښتل ئې چه دا كولاوكړى.وئى ګورى خو بيا اوويريدې چه هسې نه څه غلا وى. هم داسې ئې تاله كړې صندوق د فرعون بيګم صاحبې له اورسولو. هغه د بادشاه او بيګم په وړاندې كولاوكړې شو نود هغې نه يود سپوږمئى په شان وړوكې ماشوم راووتلودهغه په كتوسره دفرعون دښځې زړه د هغه په مينه كښې د خوشحالئى نه په ټوپونوشو.

بل طرف ته د موسی ﷺ دمور حالت خراب شو. د خپل دې ماشوم د خیال نه د هغې په زړه کښې بل څه تصور نه وو. بل خواهغه قصابان چه د حکومت د طرف نه د ماشومانو د قتل کولو په محکمه کښې نوکران وو چه هغوی دې خپلې چړې تیرې کړې وړاندې دې شی اود ملکه نه نی غوښتنه اوکړه چه دا ماشوم هغوی ته حواله کړې چه هغوی نی حلال کړی. اې ابن جبیر رحمه الله دا دویمه فتنه وه.

دریمه فتنه:-آخر ملکه جواب ورکړو چه صبراوکړئی زه بادشاه سره پخپله خبره کوم اودا ماشوم ترې غوارم. که هغه ماله راکړو نوصحیح ده که نه وی نو تاسو ته اختیار دې. هغه راغله او بادشاه ته نی اووئیل چه داماشوم خو به زما اوستا د سترګو یخوالې ثابت شی. هغه خبیث وئیل چه بس هم ته پرې خپلې سترګې یخه وه زما به هغه څنګ یخوالې شی. ماته د دې هیڅ ضرورت نشته. رسول الله ﷺ په قسم سره فرمائی که هغه هم دا وئیلې وې چه اوزما دسترګو یخوالې هم دې نو الله ﷻ الله ﷻ به هغه ته هم خامخا نیغه لار خودله لکه څنګه چه د هغه بی بی په هدایت باندې مشرف شوه. هغه پخپله د دې نه خان محروم ساتل غوښتل نو الله ﷻ هم هغه محروم کړو.

آخر نی فرعون په اخوادیخواسره راضی کړواود ماشوم د پالنې اجازت نی حاصل کړو. اوس چه دمحل څومره دایانې نوکرانې وې ټولې راجمع کړې اود یوې یوې په غیږ کښې دا ماشوم ورکړو خو الله ﷻ د ټولو پئی په هغه باندې حرام کړل هغه د هیڅ چا پئی هم په خُله نه کړه. دې سره ملکه اوویریدله چه دا خو ډیرداوشو دا ښکلې ماشوم به داسې هلاک شی. آخر نی حکم اوکړو چه دې بهر بوځئی او یواخوابل خوا لټون اوکړئی که د چا پئی دا ماشوم قبول کړی نو هغوی ته نی په منت او زارئی سره ورکړئی. بهر په بازار کښې یو میله غونډې اولګیدله هرسړې د دې نیك بختئی نه خان پوره کول غوښتل خوحضرت موسی ﷺ د چا پئی هم اونه څکل. د هغوی مور خپله مشره لور د هغه خور بهر رالیګلې وه چه بهر ګوره چه څه کیږی. هغه په دې ګڼړه کښې موجود وه اوداهر څه نی کتل اواوریدل. کله چه داخلق عاجز راغله نوهغې اووئیل که تاسو غواړئی نو زه به تاسو ته یو داسې کور اوښایم چه د ده پالنه اوکړی او هغوی به وی هم د ده خیرخواه. دې وینا سره خلقو ته شك شو چه دا جینئی خامخا دا هلك پیژنی اود ده کور هم پیژنی. اې ابن جبیر رحمه الله دا وه دریمه فتنه.

څلورمه فتنه:-خو الله ﷻ دې جینئی ته پوهه ورکړه اوهغې زر اووئیل ښه ده تاسو دومره هم نه پوهیږئی چه څوك بدنصیب به وی چه د دې ماشوم په خیر خواهئی یا پالنه کښې به کمې اوکړی کوم ماشوم چه زمونږ د ملکه مینه وی. څوك به دا نه غواړی چه دا دې مونږ کره لاړشی چه د انعام اواکرام سره د هغوی کور ډك شی.دې اوریدو سره د ټولو په پوهه کښې راغله اودائی پریخوده. وئی وئیل چه ښه ده وایه ته کومه یوه دائی د ده دپاره تجویز کوې هغې وئیل زه نی اوس راولم. په منډه لاړه او خپل مور ته نی زیرې ورکړو مور نی ښه په شوق او په امید راغله. خپل خوږ بچې نی په غیږ کښې واخستو خپل پئی نی په خُله کښې ورکړه ماشوم په ډکه خیټه اوڅکل. هم هغه وخت په شاهی محلونوکښې دا زیری اوګرځولې شو. ملکه داحکم اوکړو ډیر زرددائی اوماشوم ماله راولئی. کله چه مور اوخوئ لاړل نود خپل وړاندې نی په هغه باندې پئی اوڅکل اودې کتوسره چه ماشوم په ښه شان سره پئی څکی ډیره خوشحاله شوه او وئی وئیل دائی مورې زما دې ماشوم سره هغه محبت دې چه د دنیا بل څیز سره نه دې ته هم دلته په محل کښې اوسیږه اود دې ماشوم پالنه کوه.

خودحضرت موسی ﷺ موربی بی ته د الله ﷻ وعده یاده وه اود هغې پوره یقین وود دې وجه نه لږه شان اودریده او وئی فرمائیل چه دا خونامکمن دی چه زه خپل کور او بچې پریږدم او دلته اوسیږم. که چرې تاسو غواړئی نودابچې ماته حواله کړئی زه به نی خپل کورته بوځم اود ده په پالنه کښې به هیڅ قسم کوتاهی نه کوم. ملکه صاحبې مجبوراًداخبره هم اومنله اوهغې پدغه ورځ په خوشحالئی

خوشحالئ سره خپل بچې خپل کور ته راوستلو.ددې ماشوم په وجه د دې محله بنی اسرائیلوهم د فرعونی ظلمونونه خلاصې بیاموندو. کله چه وخت تیرشو نود بادشاه بیگم حکم راولیگلو چه یوه ورخ زما بچې ماله راوله.یوه ورخ مقرره شوه ټول درباریانود سلطنت حکم اوشو چه نن به زما بچې ماله راخی. تاسو ټول قدم په قدم باندې د هغه استقبال اوکړئی او په ښه دهوم دهام سره نذرونه ورکولوسره هغه زما محل ته راولئی. کله چه سورلی روانه شوه نو د هغه ځائ نه دسلطانی محل پورې برابر تحفې تحائف نذرونه او هدیې پیش کولې شوې او په ډیر عزت او اکرام سره هغه دلته راورسیدو. پخپله بیگم صاحبه هم ډیر لونی رقم پیش کړو اوډیره خوشحالی اوکړه. بیانی ونیل چه زه خو به دا بادشاه له بوځم هغه به هم ده ته انعام او اکرام ورکوی. بونی تلو اود بادشاه په غیږ کښې سملولو. حضرت موسی ﷺ دهغه ږیره اونیوله او په زوره نی راښکله. فرعون غصه شو اود هغه درباریانواوونیل څه عجیبه ده چه داهم هغه هلك وی دا فوراً قتل کړه.

**پنځمه فتنه:**-اې ابن جبیردا وه څلورمه فتنه. ملکه بې تابه شوه اوزرنی اوونیل اې بادشاه دا څه اراده کوې؟ تا دا ماله راکړې دې او ماداخپل خوئ جوړکړې دې بادشاه ونیل دا ټول ټیك دی خو گوری نه چه په راتلوسره زما ږیره اونیوله او زما بې عزتی اوکړه لکه چه هم دازمازاغورزونکې اوما تباه کونکې دې.بیگم صاحبه اوفرمائیل بادشاه ماشومان پدې څیزونوڅه پوهیږی.گوره زه درته یوه فیصله کونکې خبره ښایم دده مخې ته یودوه سروټکې داُورسرې کیږده اودوه مرغلرې داوبوپه شان پرقیدونکې کیږده بیاگوره چه دې څه اوچتوی؟که مرغلرې اوچتې کړې نوپوهه شه چه په ده کښې عقل دې اوکه د اُور سروټکې اوچتې کړې نو په ده کښې عقل نشته. چه کله عقل او تمیز نشته نو بیا د ده په ږیره نیولو باندې دا دومره لوئ خیالات کولو سره د ده د ځان دښمن کیدل د کوم ځائ عقل مندی او هوښیار توب دې؟ هم دغه شان اوشو او دواړه څیزونه د هغې مخې ته کیخودې شو. هغه سرې کړې سروټکې اوچتې کړې او هم هغه وخت نی ترې واخستې چه هسې نه لاس نی اوسوزی اوس د فرعون غصه یخه شود او بدل شو دهوا رخ ټیك شو. حق خبره خودا ده چه الله ﷻ ته کوم یوکار منظور وی هغې د پاره قدرتی اسباب راپیدا کیږی. د حضرت موسی ﷺ د فرعون په دربارکښې خاص محل اود هغه د ښځې په غیږ کښې د هغه تربیت او پالنه کیږی تردې چه هغه ښه عمر ته اورسیدو اوبالغ شو.

اوس خودفرعونیانو چه کوم ظلمونه په بنی اسرائیلوکیدل په هغې کښې هم کمې راغلو ټول په امن او امان کښې وو. یوه ورخ حضرت موسی ﷺ چرته روان وو د یوفرعونی او اسرائیلی جنگ وو. اسرائیلی حضرت موسی ﷺ ته فریاد اوکړو هغه له سخته غصه ورغله ځکه چه دغه وخت کښې دې فرعونی دا بنی اسرائیلی راگیر کړې وو.هغه ده له یوه موکه ورکړه اود الله ﷻ شان وو چه هغه مړشو. دا خو خلقو ته معلومه وه چه حضرت موسی ﷺ د اسرائیلی خلقو طرفداری کوی خوخلقو د دې وجه تراوسه پورې هم داگنړله چه هغه هم ددوی نه پئی ځکلی دی په دې وجه د هغوی طرفدار دې. د اصلی راز علم خو صرف د هغه مور بی بی ته وو اوممکن دی چه الله ﷻ خپل کلیم ته هم معلوم کړې وی. دې نی چه مړا ولیدونوموسی ﷺ اوویریدو چه داخو شیطانی حرکت دې او هغه دهوکه کونکې اوښکاره دښمن دې. بیانی د الله ﷻ نه معافی اوغوښتله چه اې الله ما په خپل ځان باندې ظلم اوکړو ما معاف کړه. پروردگارهم د هغه د دې خطا نه معافی اوکړه اوهغه خو هم غفور اورحیم دې. د قتل معامله وه نوهغه بیا هم ویریدلو په دې خیال کښې ووچه معامله خو چرته ښکاره شوې نه ده. هلته فرعون ته شکایت اوشوچه یوقبطی یوبنی اسرائیلی وژلې دې.فرعون حکم جاری کړوچه د واقعه پوره تحقیق اوکړئی قاتل پوره لټون اوکړئی رانی ولئی اود جرم ثابتیدلو په صورت کښې هغه هم قتل کړئی. پولیس هر قسم کوشش اوکړو خود قاتل څه پته اونه لگیده. اتفاقی خبره وه چه بله ورخ موسی ﷺ بیا چرته روان

ووچه هم هغه بني اسرائيلي يوبل فرعوني سره لګيادي جګړه کوي.دموسی ﷺ په ليدو باندې هغه فرياد شروع کړوخوهغه دا محسوس کړه چه کيدې شي موسی ﷺ په خپل پروني کار باندې پښيمانه دی. حضرت موسی ﷺ ته هم د هغه هروخت جنګ جګړې ښه معلوم نه شوې نو ورته نې اووئيل ته ډېر جنګالې ئې.دې وينا کولوسره هغه دا فرعوني رانيول غوښتل خو دې اسرائيلي بزدل دااوګڼړل چه ګني دې مانه خفه دې اوهم ما رانيول غواړي.

داهغه صرف بزدلانه خيال وو هغه خو هم هغه فرعوني رانيول غوښتل اودې ئې بچ کول غوښتل خود ويرې او وارخطاکيدو په وجه د هغه د خُلې نه ناڅاپي دا اووتل لکه تاچه پرون کوم سړې قتل کړې نن ما هم هغه شان وژل غواړې؟دې اوريدو سره هغه فرعوني دې پريخودواومنډه ئې کړه اوتختيدو او سرکاري سپاهيانوته ئې ددې خبر ورکړو.فرعون ته هم قصه معلومه شوه اوهم هغه وخت ئې جلادانو ته حکم ورکړوچه موسی ﷺ راونيسئ او قتل ئې کړئ.دا خلق په عامه لار د هغه په لټون کښې لاړل. بل خوا يوئي اسرائيلي لار پريخوده او په يوه لنډه لار ئې موسی ﷺ ته خان اورسولو او موسی ﷺ ئې خبرکړو. اې ابن جبيردا شوه پنځمه فتنه.

**شپږمه فتنه:-**موسی ﷺ دې اوريدو سره خپل موټې بندکړل او د مصر نه اوتختيدو. نه چرته پيدل تلې وو اونه چرته څه مصيبت کښې راګيرشوې وو د شهزادګانو په شان په مينه محبت کښې لوئې شوې وو نه د لارې نه خبرو اونه چرته د سفر موقع راغلې وه. په رب باندې يقين اوکړو او دا دعائې اوکړه اې الله ماته نيغه لار اوښايه او روان شو.تردې چه د مدين حدودوته اورسيدو. دلته ئې چه اوکتل خلقو خپلو څاروو ته اوبه ورکولې. هلته ئې دوه جينکئ اوليدلې چه خپل څاروی رامنع کړې ولاړې وې. تپوس ئې اوکړو چه تاسو خپلو څاروو ته د دوی سره ولې اوبه نه ورکوئې؟خان له ولاړې دا ولې مو رايسار کړي دي؟ هغوی وئيل په دې رش کښې مونږ څاروو ته اوبه ورکولې نه شومونږ خوچه داخلق اوبه ورکړي نو باقي بياخپلو څاروو ته ورکوو هغه ورواړاندې شو اود هغوی څاروو باندې ئې اوبه اوڅکلې. ډير زر ئې اوبه راښکلې هغه ډير طاقت کښې سړې وو د ټولونه وړاندې ئې د هغوی څاروی خړوب کړل. دوی خپلې چيلئ واخستې او خپل کورته روانې شوې. اوهغه د يوې ونې لاندې کيناستو او الله ﷻ نه ئې دعاکوله زه ستادټولو مهربانو محتاج يم. کله چه دا دواړه جينکئ خپل پلار له اورسيدې نو هغه اووئيل چه دا نن څه خبره ده چه تاسودوخت نه وړاندې راغلئ اوچيلئ هم ښه مړې اوډکې معلوميږي.

دې جينکو ورته ټوله واقعه بيان کړه. هغه حکم اوکړو چه تاسو کښې يوه لاړه شئ او هغه ماله راولئ هغه راغله اوحضرت موسی ﷺ ئې خپل پلار له بوتلو هغه د سرسري ملاقات نه پس د واقعه تپوس اوکړو نو هغه ټوله واقعه واوروله هغوی اوفرمائيل چه اوس د ويرې څه خبره نشته ته د دغه ظالمانونه خلاص شوې مونږ خلق د فرعون رعايانه يو اونه په مونږ باندې د هغه څه دباوشته. هم هغه وخت يوې جينئ خپل پلار ته اووئيل باباجي ده خو هسې هم زمونږ کاراوکړو اودا طاقت کښې هم دې امانت دار سړې دې ښه به وی که تاسودې خپل خان سره مقررکړئ دې به په مزدورئ باندې زمونږ چيلئ څروی. پلارته ئې غصه ورغله اوتپوس ئې اوکړو چه لورې تاته څنګه پته اولګيده چه دا طاقتور او امين دې؟ هغې جواب ورکړو چه طاقت خو ئې هغه وخت معلوم شو چه کله ده زمونږ چيلوته اوبه ورکړې دومره لويه ډولچه ئې په يوازې خان راښکله اوډير په چالاکئ اوآسانئ سره. امانتداری راته هغه وخت معلومه شوه چه کله ماده ته آواز اوکړو نو ده نظر اوچت کړو اوچه ورته معلومه شوه چه زه ښځه ذات يم نو بياخپل نظر ښکته کړو او لاندې کتلو سره ئې زما خبرې واوريدې. والله ستاسو پوره پيغام اوريدو پرې هغه پورته نظر نه دې اوچت کړې بيائې ماته اوفرمائيل چه ته زما نه شاته راځه

او د لرې نه ماته لاربنایه. داهم دلیل دې د ده د الله ﷻ نه د ویرې او امانتدارئی. د پلار غیرت اوحجت هم لاړو او د لور د طرف نه ئی هم زړه صفاشو اود حضرت موسی ﷺ مینه ئی په زړه کښې ځای شوه. اوس ئی حضرت موسی ﷺ ته اوفرمائیل زما اراده ده چه زما په دې دواړو لونړوکښې د یوې نکاح تاسره اوکړم په دې شرط باندې چه ته به اته کاله ماسره کار روزګار کوې. اوکه د لسوکالوپورې دې اوکړو نونوره به هم ښه وی. ان شاء الله تاسو به اوګورئی چه زه به ښه سړې یم. دا معامله مقرر شوه اود الله ﷻ پیغمبر د اتو کالوپه ځای لس کاله پوره کړل.

حضرت سعیدبن جبیر رحمه الله فرمائی چه اول ماته دا معلومه نه وه اویونصرانی عالم مانه تپوس کړې وونوما هغه ته جواب نه وو ورکړې. بیا چه کله ما دحضرت ابن عباس ﷺ نه تپوس اوکړواو هغوی ماته جواب راکړو نوهغه ته مې ذکر کړو. هغه وئیل ستا استاذ لوی عالم دې. ما وئیل چه او هغه خو دې. اوس موسی ﷺ داموده پوره کړه او خپله بی بی نی خان سره واخسته دې ځای نه لاړو. بیاهغه واقعات اوشوکوم چه دې آیاتونوکښې دی. اور نی اولیدو الله ﷻ سره ئی کلام اوکړود لرګی اژدها جوړیدل د لاس نورانی جوړیدل ئی اوکتل. نبوت ورته ملاو شو فرعون له لاړو د قتل د واقعه اندیښنه ئی ښکاره کړه ددې نه تسلی حاصله کړه دژبې تتوالې نه ئی خلاصې اوغوښتلودې نه فارغ شواود خپل رورهارون ﷺ همدردی او کارکښې شراکت اوغوښتلو.دا ئی هم حاصل کړل اوهمسائی واخسته اود مصر بادشاه له لاړل.

بل خواحضرت هارون ﷺ له وحی راغله چه دخپل رور ملګرتیا اوکړه اوهغه سره شه. دواړه رونړه یوځای شو اود فرعون دربارته لاړل. خبر ئی اوکړو په ډیر ساعت کښې اجازت ملاوشو فرعون ته ئی اووئیل چه مونږ د الله ﷻ رسولان جوړشوی تاله راغلې یو. اوس چه کوم سوال جواب اوشو هغه په قرآن مجیدکښې موجود دې. فرعون وئیل ښه ده تاسو څه غواړئی؟اود قتل واقعه ئی ورته یاده کړه د کوم عذر چه موسی ﷺ بیان کړو چه په قرآن پاك کښې موجود دې او وئی وئیل زمونږ اراده دا ده چه ته ایمان راوړې اوزمونږ سره بنی اسرائیلوته د خپلې غلامئی نه آزادی ورکړې هغه انکار اوکړو او وئی وئیل که رښتونی ئی نو څه معجزه اوښائی. هغوی هغه وخت خپله همسا په زمکه باندې اوغورزوله اوپه زمکه پریوتوسره هغه یوه زبردسته اژدها جوړه شوه خُله ئی کولاوکړې آوازونه ئی ویستل د فرعون طرف ته ئی ورټوپ کړو د ویرې په وجه فرعون د تخت نه ټوپ کړو او تختیدو سره ئی فریاد اوکړو موسی ﷺ درب په خاطر دا اونیسه. هغه لاس اولګولو او هم هغه وخت په خپل اصلی حالت کښې شوه بیا هغه خپل لاس په خپل ګریوان کښې ورکړونو هغه بغیرد څه مرض د داغ پړقیدو. د کوم په کتو چه هغه حیران شو هغه بیا لاس دننه کړو او راویستلو نو په خپل اصلی حال کښې وو. اوس فرعون خپلو درباریانوته اوکتل او وئی وئیل تاسو اوکتل دا دواړه جادوګردی غواړی چه دخپل جادو په زور باندې تاسو د خپل ملك نه بهر اوباسی اوستاسو په ملك باندې قبضه اوکړی اوستاسو طریقې ختمې کړی.

بیا ئی حضرت موسی ﷺ ته اووئیل مونږ ته ستا د نبوت منلو نه هم انکاردې او مونږ ستا هیڅ یوه مطالبه هم نه شوپوره کولې. بلکه مونږ خپل جادوګرستا دمقابله د پاره راغواړو چه ستا په دې جادو باندې به غالب راشی. دا خلق په خپل دې کوششونوکښې لګیاشو اود ټول ملك نه ئی جادوګرډیر په درناوی سره راجمع کړل کله چه ټول راجمع شو نو هغوی تپوس اوکړو چه د هغه جادو څه قسم دې؟ فرعونیانو وئیل د لرګی نه مارجوړوی. دوی وئیل په دې کښې څه دی؟ مونږ به د لرګو او رسونه داسې ماران جوړکړو چه په مخ د زمکه به د هغې خوك مقابله نه شی کولې. خوزمونږ د پاره انعام مقرر کول پکاردی. فرعون هغوی سره دا اقرار اوکړوچه انعام څه زه به تاسو خاص نیزدې دربایان جوړکړم او تاسو به داسې آزادکړم چه څه غواړئی درکولې به شی. هغوی اعلان اوکړو چه د اخترپه ورځ سحر به

فلانکی میدان کښې مقابله وی. روایت دې چه د هغوی دااخترد عاشورې په ورځ وو.
په هغه ورځ هم سحرسحر خلق هغه میدان ته راورسیدل چه نن څو ګورو چه څوك غالب راځی. مونږ خود جادوګرو قائل یو هم هغوی به غالب راځی اومونږ خو به هم د هغوی منو. په مسخرو سره به نی دا خبره بدلولوسره ونیل چه راځئی هم د دغه دواړو جادوګرو منونکی به جوړشو که هغوی غالب شو. میدان ته چه راغله نو هغه جادوګرو د الله ﷻ نبی ته اوونیل اوس اوښایه چه ته اول خپل جادو ښکاره کوې که مونږ اول شروع اوکړو؟ موسی ﷺ ونیل چه هم تاسو اول شروع اوکړئی چه ستاسوحوصله راوځی.هغوی خپل ټول لرګی اورسئی په زمکه اوغورزولی او هغه ټول ماران شو اود الله ﷻ د نبی طرف ته راپه منډه شو د هغې نه اوویریدو او روستوشو. نو الله ﷻ وحی راولیګله چه ته خپله همسا په زمکه راګذار کړه هغه اوغورزوله یوه خوفناکه عظیم الشان اژدها جوړه شوه اود هغوی طرف ته نی ورمنډه کړه دا لرګی اورسئی ګډې وډې شوې او هغه ټول ئی راتاؤکړل یوه نوړئی کړل. جادوګر پوهه شو چه دا جادو نه دې داخود الله ﷻ دطرف نه د رښتیاؤ نښه ده. په جادوکښې داخبره چرته ده؟ ټولو د ایمان اعلان اوکړو چه مونږ د موسی ﷺ په رب باندې ایمان راوړې دې اومونږد دې دواړو رنړو نبوت منو. مونږ د خپلو تیروشوو ګناهونونه توبه اوباسو.
د فرعون اوفرعونیانو ملاماته شوه رسوا شو مخونه ئی تور شو په ذلت سره خاموش شو د وینو ګوټونه نی اوځکل او چپ پاتې شو. دیخوا دا اوشو اوبل خوا د فرعون بی بی چه موسی ﷺ نی لکه د خپل سکه خونی ساتلې وو بیقراره ناسته وه اود الله ﷻ نه ئی دعاګانې غوښتلې چه ای الله ﷻ خپل نبی غالب کړه. فرعونیانو هم داحال لیدلې ووخو هغوی داخیال کړې ووچه د خاوندپه طرفدارنی کښې دا حال دې.د دې ځایٔ نه ناکام تلو باندې فرعون په بې ایماننئی باندې ملااوتړله. د الله ﷻ د طرف نه د موسی ﷺ په لاس ډیرې نښې ښکاره شوې. کله چه به څه مصیبت راغلو اودې به ئی راګیرکړو نو ویریدوبه او په زارو اومنتونو باندې به نی دا وعده کوله چه د دې مصیبت په لرې کیدو باندې به زه بنی اسرائیل تاسره کړم. خوچه کله به داعذاب لرې شو نو سرکشه به شواومنکر کیدوسره به نی ونیل چه ستا رب ددې علاوه نورهم څه کولې شی؟په هغوی باندې طوفان راغلو ملخان راغله سپګې راغلې چیندخې راغلې وینې راغلې اوډیرې صفاصفا نښې ئی اولیدلې. چه کله به آفت راغلو منډې به نی کړې وعده به نی اوکړه اوچه هغه به اخواشو نو منکر به شوکبرنه ئی اوکړو. اوس د الله ﷻ د طرف نه حکم اوشو چه بنی اسرائیل واخله اود دې ځایٔ نه اوځه. هغوی شپه په شپه هغوی واخستل اولاړل.
سحر فرعونیانواوکتل چه ټول بنی اسرائیل تلې دی. فرعون ته نی اوونیل هغه حکم اوکړواود هر طرف نه ئی فوخونه راجمع کړل او په یوه ډیره لویه اجتماع سره هغوی پسې شو. په لارکښې دریاب راتلو د هغې طرف ته د الله ﷻ حکم اوشو په تاچه زما د بنده موسی ﷺهمسااولګی نوته هغه ته لارې ورکړه.
په تاکښې دې دولس لارې وی چه د بنی اسرائیلودولس جدا جداقبیلې په خپلو خان له خان له لارو باندې اولګی بیا چه کله دوی پوریوځی اوفرعونیان راشی نوته رایوځایٔ شه اوبه هغوی کښې یو هم ژوندې پرینږدې. موسی ﷺ چه کله دریاب ته اورسیدو چه ونی کتل نو هغې موجونه وهل اوبه راختلې وې شو راوچت شو اوویریدل لرګې وهل ترې هیر شو دریاب داسې بې قراره وو چه هسې نه چه د دې په یوه حصه حضرت موسی ﷺ لرګې اووهی اوهغه ته پته نه وی نو د الله ﷻ په عذاب کښې به د الله ﷻ دنافرمانئی په سبب به راګیرشو.په دې د فرعون لښکرد بنی اسرائیلو سر ته راورسیدلو دوی اوویریدل او ونی ونیل موسی ﷺ مونږ خو دلته راګیرکړې شو. اوس ته هم هغه اوکړه د کوم چه الله ﷻ تاته حکم کړې دې یقینا نه الله ﷻ دروغژن دې اونه ته.
هغه اوفرمانیل چه ماته خو دا فرمانیلې شوې دی چه ته کله دریاب ته اورسې هغه به تاله دولس لارې

درکړي ته په هغې باندې تير شه. هم هغه وخت ورياد شو چه د لرګی وهلو حکم شوی وو. په همسانی اوروهلو اخوا د فرعون د لښکر اوله حصه د بنی اسرائيلو د لښکر آخری حصې له راغلې وه. درياب اوچ شو اوپه هغې کښې لارې جوړې شو اوهغوی خپل قوم په دې کښې بې خطرې ورکوز کړو اوپه آرام لاړل. کله چه دوی تيرشو د فرعون لښکر دوی پسې شاته په درياب کښې راکوز شو. کله چه دا ټولې لښکرې راکوزې شوې نود الله ﷻ د فرمان مطابق درياب روان شو او ټول ئې په يووخت کښې غرق کړل. بنی اسرائيلودا واقعه په خپل سرګو ليدله خو بياهم هغوی اونيل چه يارسول الله موږ ته به څه پته وی چه فرعون هم مړشو که نه. موسی ﷺ دعااوکړه نودرياب د فرعون بې سانعش په غاړه راګذار کړو د کوم په کتلوچه د هغوی پوره يقين اوشو چه د هغوی خپل سازوسامان اولښکرسره د دښمن تباه شو. اوس چه د دې ځائ نه وړاندې شونوونی کتل چه يوقوم دخپلو بتانو سره منجاوران ناست دی نو هغوی ونيل چه اې د الله ﷻ نبی زمونږ د پاره هم يوداسې معبود مقررول پکار دی.

حضرت موسی ﷺ ډير خفه شو چه تاسو ډيرلوئ جاهلان خلق ئی الخ تاسودومره لونی نښې اوليدلې دې داسې اهم واقعات مو واوريدل خوتراوسه پورې نه عبرت شته اونه غيرت. د دې ځائ نه وړاندې هغوی په مقام کښې قيام اوکړواودلته ئی خپل خليفه خپل رورهارون ﷺمقررکړوقوم ته ئی اوفرمائيل چه زما د واپسۍ پورې د دوی حکم منئي زه خپل رب له ځم. د ديرشو ورځو د هغه وعده وه. د قوم نه جدا شو او د وعدې ځائ ته اورسيدو ديرش ورځې شپې روژې ئی پوره کړې اود الله ﷻ سره دخبرو خيال ئی پيداشوخودائی اوګڼړل چه دروژو په وجه به د خلې نه بوئی اوځی لږ شان وابنه هغه راواخستل هغه ئی اوچپول. الله ﷻ سره دعلم د هغه نه تپوس اوکړو داسې دې ولې اوکړه؟ هغه جواب ورکړوتاسره د خبروکولوپه وخت کښې چه زما خُله خوشبوداره وی. الله ﷻ اوفرمائيل تاته پته نه ده چه د روژه دار د خُلې بوئی ماته د مشکو اوعنبرو نه زياته خوشبوداره لګی اوس ته لس روژې نورې اونيسه نو بيا ما سره خبرې اوکړه. هغه روژې ساتل شروع کړې. په قوم باندې چه کله ديرش ورځې تيرې شوې اود وعدې مطابق حضرت موسی ﷺ واپس نه شونو هغوی خفه شو.

حضرت هارون ﷺ هغوی ته خطبه اوکړه او ونی فرمائيل کله چه تاسو د مصر نه تلې ونی نود قبطيانو پيسې په تاسو کښې بعضوباندې قرض پاتې وې دغه شان په تاسو باندې د هغوی امانتونه هم پاتې شو. داخومونږ هغوی ته د واپس کولودپاره نه دی خوزه داهم نه غوارم چه هغه دې زمونږ ملکيت کښې پاتې وی. پدې وجه.تاسويوه ژوره کنده اوکنئی اوچه کوم لوښی سامان کالی سره زراو سپين زر وغيره د هغوی تاسو سره دی هغه ټول په دې کښې واچوئی او بيا اور ورته کړنی. نو هم دغه شان اوکړې شو هغوی سره يوسامری نومې سړې وو.دا دغواسخی عبادت کونکوکښې وو د بنی اسرائيلو نه نه ووخود ګاوندی کيدو په وجه اود فرعون د قوم نه د نه کيدو په وجه دې هم د هغوی سره د هغه ځائ نه راوتلې وو.هغه ديوې نښې نه په موټی کښې څه خاوره اوچته کړې وه.حضرت هارون ﷺ اوونيل ته هم دا په دې کښې واچوه هغه جواب ورکړو چه داخود هغه اثر نه دې چه تاسوئی ددرياب نه پورې ويستئی. خير دا زه وراچوم خو په دې شرط چه تاسو د الله ﷻ نه دعااوکړنی چه دې نه هغه څيز جوړکړی کوم چه زه غوارم.هغه دعااوکړه او د ده په موټی کښې چه څه ووهغه ئی ورواچول ونيل زه غوارم چه د دې نه يو سخې جوړشی.دالله ﷻ په قدرت سره په هغه کنده کښې چه څه وو دهغې نه دسخی شکل جوړشو. دننه نه وهلووخو روح په کښې نه ووخوهوا به دهغه د شانه ننه اوپه خُله به ترې وتله.دې نه به يوآواز وتلو بنی اسرائيلو تپوس اوکړوسامری دا څه دی؟ هغه بې ايمان اوونيل هم دا ستاسو د ټولورب دې خو موسی ﷺ لار هيره کړې ده او بل ځائ ته د رب په لټون کښې تلې دې. دې خبرې په بنی اسرائيلوکښې ډيرې فرقې جوړې کړې يوې ډلې خو اوونيل د حضرت موسی ﷺ د راتلوپورې هغوی هيڅ خبره نه شی

کولې. ممکن دی چه هغه رب وی نومونږ د دې بې ادبی ولې اوکړو؟ اوکه دا رب نه وی نود حضرت موسی ﷺ په راتلوبه هرڅه ښکاره شی. دويمې ډلې ونيل دا فضول څيز دې شيطانی حرکت دې مونږ په دې لغو څيز باندې هډو ايمان نه لرو. نه دا زمونږ رب دې اونه مونږ په دې ايمان لرو. يوې ډلې دا د زړه نه اومنلواود سامری په خبره ئی ايمان راوړوخو په ظاهره نی د هغه خبره دروغ اوګڼله. هارون ﷺ په هغه وخت ټول راجمع کړل ورته ئی اوفرمائيل اې خلقو دا د رب د طرف نه ستاسو امتحان دې تاسو پدې جګړه کښې ولې اونختئی ستاسورب خورحمن دې.تاسوزماتابعداری اوکړئی اوزماوينا اومنئی. هغوی ونيل آخر د دې څه وجه ده چه موسی ﷺ د ديرشو ورځو وعده کړې وه اونن څلويښت ورځې پوره کيدونکې دی اوتراوسه پورې واپس نه شو. بعضې بې وقوفانو ونيل د هغه نه د هغه رب خطأ شوې اوس هغه په لټون کښې دې. هلته لس روژې نورې پوره شوې او موسی ﷺ ته د الله ﷻ سره د کلام شرف حاصل شو. هغه ته اوخودلې شو چه ستانه پس ستا د قوم څه حال شو. هغه هم هغه وخت په افسوس غم غصه کښې واپس شواودلته په راتلوسره ئی د قوم نه ډير واوريده.دخپل رور د سرويښته ئی اونيول او رانی ښکلو د غصې د زياتی په وجه تختئی ترې هم پريوتلې.

بياد اصل حقيقت معلوميدونه پس ئی د خپل رور نه معذرت اوکړو د هغه د پاره ئی استغفار اوکړو او د سامری طرف ته متوجه شو وئی فرمائيل تا داسې ولې اوکړه؟ هغه جواب ورکړو د الله ﷻ د راليګلې شوی د پښې لاندې ما يوموټی خاوره اوچته کړې وه. دې خلقو هغه نه وه پيژندلې اوما پيژندلې وو. ما هغه يوموټی خاوره په دې اورکښې اچولې وه زما په خيال کښې هم دا خبره راغله. هغه اوفرمائيل چه زه د دې سزا په دنياکښې دا ده چه ته به هم دا وائې چه لاس لګول نه دی بيا يود وعدې وخت دې د کوم خلاف کول چه ناممکن دی او ستاپه کتوبه مونږ ستا دا معبود اوسوزوواو د هغه خاوره به هم په درياب کښې لاهوکړو.نو هغوی هم دغه شان اوکړه. هغه وخت بنی اسرائيلويقين اوکړو چه واقعی دا رب نه وو.اوس هغوی ډيرپښيمانه شو اوبغيرد دې مسلمانانو کوم چه حضرت هارون ﷺ سره د هغه په عقيده باندې پاتې شوی وو.باقی خلقو عذر معذرت اوکړو او وئی ونيل اې نبی الله ﷺ نه دعااوکړه چه هغه زمونږ دپاره د توبې دروازه کولاوکړی. هغه چه څه وائی مونږ به ئی په ځائ راوړو دې د پاره چه زمونږ دا زبردسته خطامعاف شی.

هغه د بنی اسرائيلو د ډلې نه اويا سړی راغوندکړل او جدائی کړل اود توبه د پاره ئی بوتلل. هلته زمکه اوشليده اودهغه اويا واړه ملګری په کښې ورغرق کړې شو. حضرت موسی ﷺ سره دافکر ملګرې شو چه زه به بنی اسرائيلو ته څه مخ ښايم؟ هغه سوال زاری شروع کړه اودعائی اوکړه اې الله که تاغوښتل دې نه وړاندې به دې زه اودا ټول هلاک کړې وو.زمونږ دبې وقوفانو د ګناه په بدله کښې خومونږ مه هلاک کوه. هغه خو به د دوی ظاهر کتل اود الله ﷻ د دوی په باطن باندې نظروو په هغوی کښې داسې هم وو چه په ظاهره باندې مسلمانان جوړ شوی ووخو په اصل کښې دزړه عقيده دهغوی هم دهغه سخی د رب کيدووه. هم د دې منافقانو په وجه هغه ټول د زمکې لاندې کړې وو. د الله ﷻ د نبی په دې سوال زار نی باندې د الله ﷻ رحمت په جوش کښې راغلو اوجواب ملاوشو چه هسې خو زما رحمت په ټولو باندې خور دې خو زه به دا دهغوی په نوم باندې هبه کرم کوم چه متقيان اوپرهيزګاروی د زکوٰة ادا کونکی وی زما په خبروباندې ايمان راوړی او زما د دې رسول اونبی تابعداری اوکړی د چا صفتونه چه هغوی په کتاب کښې ليکلې شوی ګوری يعنی په تورات او انجيل کښې.

حضرت کليم الله عرض اوکړو اې الله ﷻ ماخود خپل قوم د پاره توبه غوښتې وه اوتا جواب راکړو چه ته به خپل رحمت د هغوی د پاره کوې کوم چه وړاندې راتلونکی دی. بيا الله ﷻ ماهم ته د هغه رحمت والا نبی په امت کښې پيداکړې. رب العالمين اوفرمائيل واوره د هغوی توبه به هغه وخت قبليږی چه

داخلق په خپل مينځ کښې يوبل قتل کول شروع کړي. نه پلار خوئ ته اوګوري اونه خوئ پلار ته اوګوري خپل مينځ کښې دې اونخلې او يوبل دې قتل کول شروع کړي. نو بنواسرائيلو هم داسې اوکړه او چه کوم منافقان وو هغوی هم په صداقت سره توبه اوکړه الله ﷻ د هغوی توبه قبوله کړه. چه کوم بچ شو هغه هم اوبښلې شو اوکوم چه قتل شو هغه هم اوبښلې شو.حضرت موسى ﷺ اوس د دې ځائ نه د بيت المقدس طرف ته لاړو د تورات تختئي نی خان سره يوړې اوهغوی ته نی د الله ﷻ احکام واورول کوم چه په هغوی باندې ډير درانه پريوتل اوهغوی صفاانکاراوکړو. يوغرد هغوی په سرباندې زوړند کړې شو هغه د تنبيه شان د هغوی په سرونوباندې وو هروخت به ورته يره وه چه اوس به راپريوځي. هغوی اوس اقرار اوکړو او تورات نی واخستو. غر لرې شو او هغوی دې پاکې زمکې ته اورسيدل چرته چه کليم الله هغوی بوتلل غوښتل چه ونی کتل هلته د يوزبردست طاقتور قوم قبضه وه.

د حضرت موسى ﷺ په وړاندې په ډيره نامردئی سره اوونيل چه دلته خويوډير لوئ زور اور قوم دې په مونږ کښې د هغوی د مقابلې طاقت نشته. که دوی اووتل نو مونږ به دې ښارته داخل شو. دوی خو هم داسې نامردی او بزدلی ښکاره کوله. الله ﷻ دې سرکشونه دوو کسانوته هدايت ورکړوهغوی د ښارنه اووتل اودحضرت موسى ﷺپه قوم کښې شامل شواوهغوی نی پوهه کول چه تاسو د هغوی په بدنونواو شميرسره مه مرعوب کيږئی دا بهادران خلق نه دی د دوی زړونه ګردې کمزورې دی تاسو خو لږ شان وروړاندې شئی د هغوی د ښار دروازې ته اورسيږی اود هغوی پښې لاسونه سست شوی يقيناً تاسو به په هغوی باندې غالب راشئی اوداهم ونيلې شوی دی چه دا دواړه کسان کومو چه بنی اسرائيل پوهه کړې وو اوهغوی نی بهادران کړې وو پخپله هم د بنی اسرائيلونه وو. والله اعلم. خود هغوی په پوهيولو د الله ﷻ حکم کيدلو اود حضرت موسى ﷺ په وعده هم په هغوی باندې هيڅ اثر اونه شو اوهغوی صفا جواب ورکړو چه ترکومې داخلق په ښارکښې دی مونږ خود دې ځائ نه د خوزيدوهم نه يو. موسى ﷺ ته پخپله خپل رب خان سره کړه او لاړ شه اوهغوی سره جنګ جګړه اوکړه مونږ دلته ناست يو.

حضرت موسى ﷺ نه صبر اونه شو. د هغه د خلې نه د دې بزدلانو او بې قدرو په حق کښې بد دعا اووتله اوهغه د دوی نوم فاسقان کيخودلو د الله ﷻ د طرف نه هم د هغوی د پاره هم دغه نوم مقررکړې شواو هغوی په هم دې ميدان کښې راقيدکړې شو.

خلوېښت کاله هغوی هم دلته تيرکړل يوځائ کښې ورته هم قرار نه وو هم په دې بيابان کښې پريشانه سرګردانه ګرځيدل. هم د دې قيد په ميدان کښې په هغوی د وريځو سورې اوکړې شو اومن اوسلوی پرې نازله شوه کپړې نی نه شليدې نه به خيرنيدې يوځلورګوټيزکانړې ئی ايخودې ووېه کوم چه موسى ﷺ همسا اووهله نو د هغې نه دولس چينې روانې شوې. د هر طرف نه درې درې.دا خلق روان وو په تلوتلوکښې وړاندې کيدل چه ستړې به شو نودمه به ئی کوله. چه سحر به راپاسيدل نوهغه کانړی چه به چرته پراته وو هم هلته به وو. حضرت ابن عباس دا حديث مرفوع بيان کړې دې حضرت معاويه ﷺ چه کله دا بيان د حضرت ابن عباس ﷺ نه واوريدو نووئی فرمائيل چه دا په دې کښې کوم دی‌چه دې فرعونی د حضرت موسى ﷺ د وړاندينئی ورځې د قتل خبر خورکړې ووداخبره په ذهن کښې نه راځی ځکه چه د قبطی د قتل په وخت کښې بغيرد دې بنی اسرائيلی يوسړی نه کوم چه قبطی سره جنګ کولو هلته بل څوك نه وو. په دې باندې حضرت ابن عباس ﷺ ډيرزيات غصه شو اودحضرت معاويه ﷺ لاس نی اونيولو او حضرت سعدبن مالك ﷺ له نی بوتلو اوهغه ته اوونيل چه تاته يادد‌ی چه يوه ورځ رسول الله ﷺ مونږ ته د هغه سړی حال بيان کړې ووچه هغه د حضرت موسى ﷺ د قتل راز ښکاره کړې

وو؟ اوښايه بني اسرائيلي سړي ووکه فرعوني؟ حضرت سعد ﷺ اوونيل د بني اسرائيلي نه هغه فرعوني واوريده بياهم هغه لاړو اوحکومت ته ئې اوونيل او پخپله د دې ګواه جوړشو.(۱) (سنن الکبری نسائی) هم دا روايت په نوروکتابونوکښې هم دې. د حضرت ابن عباس ﷺ د خپل کلام نه ډيره لږه حصه مرفوع بيان کړې شوې ده. ډير ممکن دی چه هغوی د بنواسرائيلو د ځانه دا روايت اخستې وی. ځکه چه د دوی نه روايت اخستل مباح دی. ياخوبه هغوی د کعب احبار رحمه الله نه دا روايت اوريدلی وی اويا ممکن ده چه دبل ځانه ئې اوريدلی وی. والله اعلم. ماد خپل استاذ شيخ حافظ ابوالحجاج مزی رحمه الله نه هم دا اوريدلی دې.

| فَلَبِثْتَ | سِنِيْنَ | فِيْٓ اَهْلِ مَدْيَنَ ۙ۬ | ثُمَّ | جِئْتَ |
|---|---|---|---|---|
| او وخت تير کړو تا | ډير کلونه | په خلقو د مدين کښې | بيا (اوس) | راغلې ته |
| نو ته ځو کاله دمدين په خلقو کښې پاتې شوې | | | بيا انې موسی ا ته په | |

| عَلٰى قَدَرٍ | يّٰمُوْسٰى ۝ | وَاصْطَنَعْتُكَ | لِنَفْسِيْ ۚ۝ | اِذْهَبْ | اَنْتَ |
|---|---|---|---|---|---|
| په تيک اندازه | اې موسی | او جوړ کړې ماته | دپاره دکار خپل | لاړشه | ته |
| خپل مقرر وخت دلته راغلې | | اوبيا ما ته د خپل ځان دپاره منتخب کړې | | نو اوس ته اوستا | |

| وَاَخُوْكَ | بِاٰيٰتِيْ | وَلَا تَنِيَا | فِيْ ذِكْرِيْ ۚ۝ | اِذْهَبَآ |
|---|---|---|---|---|
| او رور ستا | په نښو زما سره | او مه کوئ سستی | په يادولو زما کښې | لاړ شئ دواړه |
| رور(هارون) زما په نښو(معجزاتو) سره لاړشئ | | اوزما په ذکر کښې سستی مه کوئ | | تاسو دواړه |

| اِلٰى فِرْعَوْنَ | اِنَّهٗ | طَغٰى ۚ۝ | فَقُوْلَا | لَهٗ | قَوْلًا | لَّيِّنًا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فرعون ته | بيشکه هغه | سرکشی کړې ده | نو اوکړئ دواړه | هغه ته | خبره | نرمه |
| فرعون ته لاړ شئ | خکه چې هغه (په خپله سرکشئ کښې) دحدنه تير شوې دې | | نو هغه سره نرمې خبرې اوکړئ | | | |

| لَّعَلَّهٗ | يَتَذَكَّرُ | اَوْ يَخْشٰى ۝ |
|---|---|---|
| کيدې شي چې هغه | نصيحت قبول کړي | يا اوويريږي |
| کيدې شي چه نصيحت قبول کړي | يا (زما دنيولونه) اوويريږي | |

**قوله تعالی:- فَلَبِثْتَ سِنِيْنَ فِيْٓ اَهْلِ مَدْيَنَ ۙ۬**

**حضرت موسیٰ ؑ په مدين کښې :-** حضرت موسیٰ ؑ ته الله ﷻ جل شانه بيان فرمائی چه ته د فرعون نه اوتختيدې او مدين ته اورسيدې هلته دې سخرګننې ملاوشوه اود شرط مطابق دې د هغوی چيلئی ځوکالونو پورې څرولې.بيا د الله ﷻ په اندازه اود هغه په مقرر وخت باندې ته هغه له اورسيدې. دهغه رب هيڅ خوښه نه پاتې کيږی هيڅ فرمان ئې نه ماتيږی د هغه دوعدې مطابق اود هغه په مقرر وخت باندې ستا هغه له رسيدل يو ضروری امر وو. داهم مطلب دې چه ته خپل قدر او منزلت ته اورسيدې يعنی نبوت اورسالت درته ملاوشو. ما ته خپل يوډير غوره پيغمبر جوړکړې. صحيح بخاری کښې دی چه عالم امثال کښې د حضرت آدم ؑ اوحضرت موسیٰ ؑ خپل مينځ کښې ملاقات اوشو نو حضرت

(۱) السنن الکبری: ۱۱۳۲۶، مسندابی يعلی: ۲۶۱۸ وسنده حسن وهومن الاسرائيليات.

موسی ﷺ ورته اوونیل چه تاسو خلق په مشقت کښې واچول اود جنت نه دې راوویستل. حضرت ادم ﷺ هغه ته اوفرمائیل چه ته الله ﷻ په خپل رسالت سره ممتاز کړې اود خپل خان د پاره نې خوښ کړې اوتورات نې درکړو.آیاپه هغې کښې تا دا نه دی لوستلی چه زما د پیدائش نه مخکښې دا ټول مقدر شوی وو؟ ونیل او. غرض داچه حضرت آدم ﷺ په موسی ﷺ باندې په دلیل کښې غلبه بیامونده.([1])

زمادرکړې شوي دليلونه اومعجزې واخلئي ته اوستا روردواړه فرعون له لاړشئي زماپه يادکښې غفلت مه کوه ستړې کيدوسره کينه مه. دغه شان د فرعون په وړاندې دواړه د الله ﷻ په ذکر کښې لګياشو دې د پاره چه د الله ﷻ امدادهغوی سره شی هغوی کلك اومضبوط جوړكړی اود فرعون شان ختم کړی. په حديث شريف کښې هم دی زما پوره اوربښتوني بنده هم هغه دې چه څوك پوره عمر ما يادوی.([2])

فرعون له تاسو زماپيغام اورسوئی لاړشئی هغه ډيرسر اوچت کړې دې دالله ﷻ په نافرمانوياندې بهادرشوې دې ډير زيات خورشوې دې اوخپل خالق اومالك نې هيرکړې دې.هغه سره نرمې خبرې اترې اوکړئي. ګورئي فرعون څومره خراب دې حضرت موسی ﷺ څومره ښه دې ولې حکم ورته داسې کيږی چه په نرمئي سره ئي پوهه کړئي. حضرت يزيد رقاشي رحمه الله دې آيت لوستلو سره فرمائي ﴿يامن يتحبب الى من يعاديه فكيف من يتولاه ويناديه﴾ يعني اې الله، هغه الله ﷻ چه دښمنانوسره هم نرمی اومحبت کوی ستابه څنګه سلوك وی هغه سره چه تاسره محبت کویاو تارابلی. حضرت وهب رحمه الله فرمائي چه د نرمو خبرو اترونه مراد دا دې چه هغه ته اووايه زما د غضب اوغصې نه زما رحمت اومغفرت ډير زيات دې.

**تبليغ په نرمه لهجه سره کوئی:-** ① عکرمه رحمه الله فرمائي چه د نرمې خبرې کولونه مراد د الله ﷻ طرف ته د وحدانيت دعوت ورکول دی چه هغه د لااله الاالله قائل شی.② حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائي هغه ته وائی چه ستا رب دې ته به مرکيږی اود الله ﷻ وعدې ته به رسې کوم ځائ چه جنت اودوزخ دواړه دی. ③ حضرت سفيان ثوری رحمه الله فرمائي هغه زما په دروازه کښې راوله اودروه. غرض دا چه ته هغه سره په آرام او نرمئي سره خبرې اترې اوکړه دې د پاره چه د هغه په زړه کښې ستا خبرې کينی لکه چه د الله ﷻ ارشاددې ﴿ٱدۡعُ إِلَىٰ سَبِيلِ رَبِّكَ بِٱلۡحِكۡمَةِ وَٱلۡمَوۡعِظَةِ ٱلۡحَسَنَةِۖ وَجَٰدِلۡهُم بِٱلَّتِي هِيَ أَحۡسَنُۚ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعۡلَمُ بِمَن ضَلَّ عَن سَبِيلِهِۦ وَهُوَ أَعۡلَمُ بِٱلۡمُهۡتَدِينَ۝﴾([3])يعنی دخپل رب دلارې دعوت هغه ته په حکمت او ښه طريقه سره ورکړه اوهغه په ښه طريقه سره پوهه راپوهه کړه دې د پاره چه هغه پوهه شی اود خپل ضلالت اوهلاکت نه واوری ياد خپل رب نه اوويريږی اودهغه اطاعت او عبادت طرف ته متوجه شی. لکه چه ارشاد دې﴿لِّمَنۡ أَرَادَ أَن يَذَّكَّرَ أَوۡ أَرَادَ شُكُورٗا۝﴾([4])دانصيحت د هغوی دپاره دې چه عبرت حاصل کړی ياشکر کونکې جوړشی. نود عبرت حاصلولو نه مراد د بدو نه اود ويرې د څيزونونه اخواکيدل اود ويرې نه مراد د اطاعت طرف ته مائل کيدل.

حسن بصری رحمه الله فرمائي چه د هغه د هلاکت دعامه کوه ترکومې چه د هغه ټول عذرونه ختم شوې نه وی. د زيد بن عمرو بن نفيل يا د اميه بن ابی صلت په شعرونوکښې دی چه اې الله ﷻ ته هغه ذات ئې چا چه په خپل فضل اوکرم سره حضرت موسی ﷺ ته دا وينا کولوسره باغی فرعون له اوليګلو چه هغه ته اووايه چه آيا دا آسمان تا بغيرستنواودرولې دې؟ او تادا جوړکړې دې؟ او آيا هم تا ددې په مينځ کښې دا منور نمر راخيژولې دې؟ چه تيارې په رڼا سره بدلوی.اخوا دسحر په وخت کښې هغه راوختلو

---

[1] صحيح بخاری کتاب التفسير سورة طه (واصطنعتك لنفسی):٤٧٣٦،صحيح مسلم:٢٦٥٢.
[2] ترمذی کتاب الدعوات:٣٥٨٠
[3] ١٦/النحل:١٢٥.
[4] ٢٥/الفرقان:٦٢.

او دیخواد دنیانه تیارې لرې شوی. ښه ده دااوښایه چه دې خاورې نه دادانې راویستونکې څوک دې؟ بیا په دې کښې غونچې پیداکونکې څوک دې؟ آیاد دې ټولو ښنو سره هم ته الله ﷻ نه شې پیژندلې؟

| | | |
|---|---|---|
| قَالَا | رَبَّنَآ | اِنَّنَا |
| اوونیل دواړو | ای ربه زمونږ | بیشکه مونږه |
| دواړو اوونیل چې ائې زمونږه ربه ! مونږ | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| نَخَافُ | اَنْ يَّفْرُطَ | عَلَيْنَآ | اَوْ | اَنْ يَّطْغٰى ۝ | قَالَ |
| یریږو | چې هغه به ظلم اوکړی | په مونږ باندې | یا | دا چې سرکشی به اوکړی | اوونیل الله |
| یریږو | چې چرته په مونږ باندې زیاتې اونکړې | | یا دا چه زیات سرکشه شی | | الله ﷻ اوفرمائیل |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَا تَخَافَآ | اِنَّنِىْ | مَعَكُمَآ | اَسْمَعُ | وَاَرٰى ۝ | فَاْتِيٰهُ |
| مهٔ یریږئ دواړه | بیشکه زهٔ | ستاسو سره یم | اورم | اووینم | نو ورشئ دواړه هغه ته |
| تاسودواړه مه یریږئ | زه ستاسو ملګرې یم | زه هر څه وینم ګورم | | | ............نو دواړه هغه ته ورشئ |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَقُوْلَآ | اِنَّا | رَسُوْلَا | رَبِّكَ | فَاَرْسِلْ | مَعَنَا |
| او ورته اووایئ | بیشکه مونږه | دواړه رسولان یو | درب ستا | نو اولیږه | مونږ سره |
| او ورته اووائې چې مونږ دواړه ستا د رب رالیږلې شوی یو | | | | ............نو ته مونږ سره | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| بَنِىْٓ اِسْرَآءِيْلَ ۵ | وَلَا تُعَذِّبْهُمْ ط | قَدْ جِئْنٰكَ | بِاٰيَةٍ |
| بنی اسرائیل | او مهٔ ورکوه تکلیفونه دوئ لره | راغلی یو مونږ تاته | په نښې سره |
| بنی اسرائیل پریږده (چه شام ته لاړ شی) | اوهغوئ ته (نور)تکلیفونه مه رسوه | مونږ تاته ستا د ر ب | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِّنْ رَّبِّكَ ط | وَالسَّلٰمُ | عَلٰى مَنِ | اتَّبَعَ | الْهُدٰى ۝ | اِنَّا |
| د طرفه درب ستانه | او سلامتیا ده | په هغه چا | چې تابعداری ئې اوکړه | دنیغې لارې | بیشکه مونږه چې یو |
| د طرفه یوه نښه راوړې ده | اوسلامتیا دې په هغه چا وی چې په سمه لار روان شی | | | | بیشکه مونږته خو |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قَدْ اُوْحِىَ | اِلَيْنَآ | اَنَّ الْعَذَابَ | عَلٰى مَنْ | كَذَّبَ | | وَتَوَلّٰى ۝ |
| وحی شوی ده | مونږ ته | چې بیشکه عذاب | په هغه چا دې | چې دروغ ئې اوګڼړو | | او مخ ئې واړلو |
| وحی شوې ده | چې (دهغه) عذاب هغه چا دپاره مقرر دی | | | چې (پیغمبر) دروغژن ګڼړی او د (حق) نه مخ ګرزوی | | |

**قوله تعالیٰ:۔ قَالَ لَا تَخَافَآ اِنَّنِىْ مَعَكُمَآ**

**د الله ﷻ نه بغیرچانه هم اونه ویریږئ** :۔د الله ﷻ دې دواړو پیغمبرانود الله ﷻ پناه غوښتلوسره خپله کمزوری د رب په وړاندې پیش کړه چه مونږ ویریږو چه فرعون په مونږ باندې څه ظلم اونه کړی اوبه بدسلوکئی سره پیش نه شی زمونږ آواز بندولود پاره په تندئی کښې مونږ په څه مصیبت کښې راګیرنه کړی اومونږ سره په ناانصافئی پیش نه شی.د الله ﷻ د طرف نه د دې تشفی اوکړې شوه چه دهغه نه هیڅ ویره مه کوئی زه پخپله تاسو سره یم ستاسو اود هغه خبره به اوروم اوستاسو حال به ګورم هیڅ خبره مانه پټه نه شی پاتې کیدې. دهغه مرئی زما په لاس کښې ده هغه زما د اجازت نه بغیرساهم نه شی اخستې. زما د قبضې نه بهر نه شی وتلې. زما حفاظت ملګرتیا او امداد تاسو سره دې.

حضرت عبدالله ﷺ فرمائی چه حضرت موسی ﷺ د الله ﷻ په دربارکښې دعااوکړه چه مانه هغه دعا

رااوښائي چه زه فرعون له د تلو په وخت کښې لولم نو الله ﷻ دادعا وراوخودله ﴿هیاشرهیا﴾ دکوم معنی چه په عربی کښې﴿انا الحی قبل کل شئ والحی بعد کل شئ﴾ یعنی هم زه یم د ټولونه اول ژوندې او هم د ټولو نه پس هم ژوندې. بیائی هغه ته اوخودل چه دې فرعون ته به څه وائې؟حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه دې لاړو دروازې سره اودریدو او اجازت ئی اوغوښتلو د ډیر ساعت نه پس اجازت ملاوشو. محمدبن اسحاق رحمه الله فرمائی چه دواړه پیغمبران به هره ورځ دوه کاله سحر اوماښام فرعون له تلل. دربارپانوته به ئی وئیل زمونږ د دواړو پیغمبرانو د راتلوخبر بادشاه ته اوکړه خود فرعون د ویرې نه چاهم خبر اونه کړو. دوه کاله پس د بادشاه یوبې تکلفه دوست خنداګانې او ټوقې کولې هغه اووئیل ستا دروازې سره یوسړې ولاړدې اویوعجیبه اود مزې خبره کوی.هغه وائی چه ستانه بغیرد هغه بل څوك رب دې اود هغه رب هغه ستاطرف ته رسول جوړکړې رالیګلې دې. هغه وئیل چه څه زما دروازه کښې دې؟ هغه وئیل او. حکم ئی اوکړو دننه ئی راولئی. سړې لاړو اودواړه پیغمبران دربارته راغله.حضرت موسی ﷺ اوفرمائیل زه د رب العالمین رسول یم فرعون هغه اوپیژندوچه داخو حضرت موسی ﷺ دې.

**دموسی علیه السلام د فرعون دربار کښې دبهادرئی بیان**:-دسدی رحمه الله بیان دې چه هغه په مصرکښې هم په خپل کور کښې حصار وو.مور او رور خواول هغه اونه پیژندلو. کورکښې چه څه پاخه وو هغه ئی د میلمستیا په توګه هغه ته وړاندې کړل دهغې نه پس ئی اوپیژندو او سلام ئی اوکړو. حضرت موسی ﷺ اووئیل چه ماته د الله ﷻ حکم شوې دې چه زه دغه بادشاه د الله ﷻ طرف ته راوبلم او ستامتعلق حکم دې چه ته زما ملګرتیااوکړه. حضرت هارون ﷺ اوفرمائیل بسم الله کړه. دواړه د شپې بادشاه له لاړل. حضرت موسی ﷺ په خپله همساباندې زنځیر اوکړنګولو. بادشاه سخت غصه شوچه دومره لوئ سړې څوك راغلو؟ چه داسې د دربارد آدابوخلاف په خپله همساباندې ماهوښیاروی؟ دربارپانو وئیل حضرت هیڅ نه دی صرف یولیونې سړې دې وائی اوګرځی چه زه رسول یم. فرعون حکم اوکړو دې ماته پیش کړئی. حضرت هارون ﷺ سره هغه بادشاه له لاړل اوهغه ته ئی اوفرمائیل مونږ د الله ﷻ رسولان یوته مونږ سره بنی اسرائیل پریږده هغوی له سزاګانې مه ورکوه. مونږ د رب العالمین دطرف نه دخپل رسالت دلیلونه او معجزې راوړې راغلې یوکه ته زمونږ خبره اومنې نود الله ﷻدطرف نه به په تا سلامتی نازله شی.رسول الله ﷺ هم چه کوم خط د روم بادشاه هرقل په نوم لیکلې وو په هغې کښې دبسم الله الرحمن الرحیم نه پس دامضمون وو چه داخط دمحمد ﷺ رسول الله ﷺ د طرف نه د شاه روم هرقل په نوم دې چه د هدایت پیروی کوی نو په هغه باندې سلام دې.دې نه پس دا چه ته اسلام قبول کړه نوسلامت به ئې الله ﷻ به درته دوچنده اجر درکړی.(۱)

**د مسیلمه کذاب درغون خط درسول کریم صلی الله علیه وسلم په نوم او دهغې جواب**:-مسیلمه کذاب صادق مصدوق ختم المرسلین حضور اکرم ﷺ ته یوخط لیکلې وو په کوم کښې چه دا لیکلې وو چه داخط د الله ﷻ د رسول مسیلمه د طرف نه د الله ﷻ رسول محمدﷺ په نوم دې. په هغوی باندې سلام وی. ما ته ځان سره په کارکښې شریك کړې ئی.ښاریې ستاسو د پاره او کلیوال زماد پاره دا قریشیان خو ډیر لوئی ظالمان دی.ددې په جواب کښې حضور ﷺ اولیکل داخط دمحمد رسول الله ﷺ دطرف نه د مسیلمه کذاب په نوم دې. سلام دې وی په هغوی څوك چه د هدایت تابعداری کوی. واوره زمکه د الله ﷻ ملکیت دې هغه په خپلوبندیګانوکښې چه څوك غواړی د دې وارث ئی جوړوی. د انجام په لحاظ سره ښه خلق هغه دی د چا زړونه چه د الله ﷻ د ویرې نه ډك وی(۲)غرض دا چه کلیم الله د الله ﷻ پیغمبر هم فرعون ته داسې اووئیل سلامتی دې په هغوی وی چه د هدایت منونکی وی بیافرمائی چه

(۱) صحیح بخاری کتاب بدء الوحی باب کیف کان بدء الوحی الی رسول الله ﷺ:۷، صحیح مسلم:۱۷۷۳.
(۲) الطبقات:۲۵۹/۱ تاریخ الاسلام للذهبی.

مونږ ته د وحی په ذریعه داخبره خودلې شوې ده چه د عذاب لائق صرف هم هغه خلق دی خوک چه د الله ﷻ کلام دروغ اوګڼړی اود الله ﷺ د خبرومنلونه انکاراوکړی لکه چه ارشاد دې ﴿فَأَمَّا مَنْ طَغَىٰ ۝ وَآثَرَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا ۝ فَإِنَّ الْجَحِيمَ هِيَ الْمَأْوَىٰ﴾(۱)کوم سړې چه سرکشی اوکړی اود دنیا په ژوندون باندې فخر اوکړی داخوښ کړی د هغه آخری ځایٔ هم دوزخ دې. په نورو آیاتونوکښې دی زه تاد شغلې وهونکی اور د دوزخ نه ویروم په کوم کښې چه به صرف هم هغه بدبخت داخلیږی چه دروغ ګنړل کوی او مخ اړوی.د هغه آخری ځایٔ هم دوزخ دې. په نورو آیاتونوکښې دی زه تاد شغلې وهونکی اور د دوزخ نه ویروم په کوم کښې چه به صرف هم هغه بدبخت داخلیږی چه دروغ ګنړل کوی او مخ اړوی.(۲) بل ایت کښې دی چه هغه خونه اومنل اونه ئې مونځ اداکړو بلکه دې نه منکر شو اوکار ئې د فرمان خلاف اوکړو.(۳)

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | فَمَنْ | رَّبُّكُمَا | يَٰمُوسَىٰ ۝ | قَالَ | رَبُّنَا |
| (نو) اووئیل فرعون | خوک دې | رب ستاسو ددواړو | اې موسی | اووئیل موسی | رب زمونږه | | | | | |
| فرعون اووئیل چې ستاسو رب خوک دې اې موسی ؟ | موسی ؑ اوفرمائیل چې زمونږ رب | | | | |
| الَّذِيٓ | أَعْطَىٰ | كُلَّ شَيْءٍ | خَلْقَهُۥ | ثُمَّ هَدَىٰ ۝ | قَالَ |
| هغه دې | چې ورئې کړو | هر خیز ته | شکل د هغه | بیا ئې ورته لار اوښودله دګزران | اووئیل فرعون |
| هغه دې چې هر خیز ته ئې د هغه صورت ورکړې دې اوبیا ئې ورته سمه لار خودلې ده | فرعون اووئیل | | | | |
| فَمَا | بَالُ | الْقُرُونِ الْأُولَىٰ ۝ | قَالَ | عِلْمُهَا | عِندَ رَبِّي |
| نو څه دې حال | دخلقو | تیرو شوؤ(پخوانی) | اووئیل موسی | علم دهغوی | زما درب سره |
| د تیرو قومو نو څه حال شو؟ ..................... | موسی ؑ اوفرمائیل چې دهغې علم خو زما رب سره | | | | |
| فِي كِتَٰبٍ | لَّا يَضِلُّ | رَبِّي | وَلَا يَنسَى ۝ | الَّذِي | |
| په کتاب کښې محفوظ دې | نۀ خطا کیږی | رب زما | او نۀ ئې هیریږی | هغه رب | |
| (په لوح محفوظ کښې درج) دې | زما رب نه غلطی کوی او نه ترې څه هیریږی | (الله) هغه ذات دې | | | |
| جَعَلَ | لَكُمُ | الْأَرْضَ | مَهْدًا | وَسَلَكَ | لَكُمْ |
| چې جوړه ئې کړه | ستاسو دپاره | زمکه | یو فرش | او راونې ئې کړې | ستاسو دپاره |
| چې زمکه ئې ستاسو دپاره فرش ګرځولې ده اوستاسو دپاره ئې په هغې لارې جوړې | | | | | |
| فِيهَا | سُبُلًا | وَأَنزَلَ | مِنَ السَّمَآءِ | مَآءً | فَأَخْرَجْنَا |
| په هغې کښې | لارې | او نازلې ئې کړې | د اسمان نه | اوبۀ | نو رااوویستل مونږه |
| کړې دی | اود اسمان نه ئې اوبه رااورولې دی ....................... | بیا مونږ په هغې سره قسم قسم | | | |

(۱) ۷۹/النازعات:۳۷-۳۹.
(۲) ۹۲/اللیل:۱٤-۱٦.
(۳) ۷۵/القیامة:۳۱-۳۲.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بِهٖٓ | اَزْوَاجًا | مِّنْ نَّبَاتٍ | شَتّٰى | كُلُوْا | وَارْعَوْا |
| په هغې اوبو سره | ډیر قسمونه | دبوټو | مختلف مختلف | خورئ | او څروئ |

شینکئ رازرغون کړی دي ........................ (پخپله ئې) خورئ او خپل څاروی په کښې څرونئ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَنْعَامَكُمْ | اِنَّ | فِيْ ذٰلِكَ | لَاٰيٰتٍ | لِّاُولِي | النُّهٰى |
| څاروی خپل | بیشکه | په دې کار کښې | ډیرې نښې دي | دپاره دخاوندانو | دعقل |

بیشکه په دې کښې د عاقلانو دپاره ډیرې نخښې دی .......................

| | | | |
|---|---|---|---|
| مِنْهَا | خَلَقْنٰكُمْ | وَفِيْهَا | نُعِيْدُكُمْ |
| ددې زمکې نه | پیدا کړی یئ مونږه تاسو | او هم په دې زمکه کښې | واپس کوو تاسو |

مونږ تاسو ددې زمکې نه پیدا کړی یئ او تاسو به په دې کښې واپس کوو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمِنْهَا | نُخْرِجُكُمْ | تَارَةً | اُخْرٰى | وَلَقَدْ اَرَيْنٰهُ |
| او د دې زمکې نه | به رااوباسو تاسو | یو ځل | بیا یعنی دوباره | او اوښودلې مونږه فرعون ته |

او هم ددې نه به مو یو ځل بیا بهر راوباسو او هغه (فرعون) ته خپلې نښې ټولې

| | | | |
|---|---|---|---|
| اٰيٰتِنَا | كُلَّهَا | فَكَذَّبَ | وَاَبٰى |
| نښې خپلې | ټولې | خو هغه دروغ اوګڼړلې | او انکار ئې اوکړو |

اوخودلې خو هغه دروغ اوګڼړلې او انکاری ئې اوکړو

قوله تعالى:- اَلَّذِيْٓ اَعْطٰى كُلَّ شَيْءٍ خَلْقَهٗ ثُمَّ هَدٰى

**ټول صورتونه هم الله ﷻ جوړ کړی دی**:-دانامنونکې یعنی فرعون مصر د الله ﷻ د وجود انکاری وو د الله ﷻ پیغام د کلیم الله په ژبه سره اوریدو سره د خالق د وجود نه د انکار په توګه سوال کوی چه ستا رالیکونکې اوستا رب څوك دې؟زه خو هغه نه پیژنم اونه ئی منم بلکه زما په خیال کښې خو د ټولورب زمانه بغیربل څوك نشته د الله ﷻ رښتونی رسول جواب ورکړو چه زمونږ رب خو هغه دې چه هغه هرڅیز ته د هغه جوړه ورکړې.(۱) انسان ته د انسان په شکل خر ته د هغه په صورت چیلنی ئی په یوجدا صورت پیداکړې ده.هریونی دهغه په مخصوص صورت کښې پیداکړې دې دهریوپیدائش ئی د هغه په ښکلې شکل باندې صحیح کړې دې. د انسانی پیدائش طریقه جدا ده څاروی په بل صورت باندې دی اوځناور په خان طریقه. د هریوجوړې هیئت ترکیبی جدادې. خوراك څښاك د خوراك څښاك څیزونه ټول جدا جدا ممتاز اومخصوص دی. د هریواندازه ئی مقررکړې اوبیائی د هغې ترکیب هغه ته خودلې دی.

**د هریو څیزعلم الله ﷻ ته دې** :- عمل اجل رزق مقررکولوسره هم په هغې باندې لګولې شوې دې.نظام سره د ټول مخلوق کارخانه روانه ده څوك د دې نه اخوادیخوانه شی کیدې. دمخلوق خالق د تقدیرونو مقرر کونکې په خپله اراده باندې د مخلوق پیداکونکې هم زمونږ رب دې. دا ټول اوریدوسره هغه ناپوهه تپوس اوکړو دهغوی څه حال شوې وو کوم چه مونږ نه وراندې وو اود الله ﷻ د عبادت منکر وو؟داسوال هغه په اهمیت سره اوکړو خود الله ﷻ پیغمبر داسې جواب ورکړوچه عاجزشو. وئی فرمائیل د دې ټولوعلم زما رب سره دې. په لوح محفوظ کښې د هغوی اعمال لیکلې دی اود بدله اوسزا ورځ

(۱) الطبری:۱۸/۳۱۶.

مقرره ده نه هغه غلطي کوی اونه لوئ او وړوکي به د هغه د نیولونه خلاص شی نه د هغه نه هیرېږی چه مجرم د هغه د نیولونه پاتې شی. د هغه علم ټول څیزونه په خپل ځان کښې راګیرکړی دی د هغه ذات د هیرې وغیره نه پاك دې. نه د هغه د علم نه یوڅیز بهردې اونه د علم نه پس د هیرولودهغه صفت دې هغه د علم د کمی او د علم د نقصان او هیرولو د نقصان نه پاك دې.

**ټول نعمتونه هم الله ﷻ ورکوی:**-موسی ﷺ دفرعون دسوال په جواب کښې د الله ﷻاوصاف بیانولوسره فرمائی چه هم هغه الله ﷻ زمکه دخلقو دپاره فرش جوړکړې دې.د﴿مَهْدًا﴾دویم قراءت ﴿مِهَادًا﴾ دې زمکه الله ﷻ د فرش په توګه جوړه کړې ده چه تاسو په دې باندې په مزه پراته یئ. هم په دې باندې کینئی اوده کیږئی او اوسیږئی.هغه په زمکه کښې ستاسو دتګ راتګ دپاره د سفر د پاره لارې جوړې کړې دی دې دپاره چه تاسولارهیره نه کړئی اومنزل مقصودته په آسانئی سره اورسئی. هم هغه د آسمان نه باران راوروی اود هغې په ذریعه د زمکې نه هرقسم پیداوار راټوکوی. فصلونه باغونه میوې قسم قسم خوندناکې چه تاسوئی پخپله هم اوخورئی او ځناوروته ګیاهم ورکوئی. ستاسوخوراك اومیوې ستاسود ځناورو ګیااوچه اولمده ټول هم د دې نه الله ﷻ راپیداکوی. د چاعقلونه چه صحیح سالم دی د هغوی د پاره خود قدرت دا ټولې نښې دلیل دې د الله ﷻ د الوهیت او د هغه وحدانیت اود هغه وجود هم په دې زمکه باندې مونږ پیداکړی دی ستاسو شروع هم ددې نه ده ځکه چه ستاسو پلار حضرت آدم ﷺ هم ددې نه پیداکړې شوی دې. هم دې ته به تاسو واپس کیږئی دمرګ نه پس هم په دې کښې خښیږئی اوهم ددې نه به د قیامت په ورځ بیاراپاسولې شئی.زمونږ په آواز به هم زمونږ تعریف کونی راوچتیږئی به او یقین به کوئی چه تاسو ډیر لږ وخت پورې وئی.(١) لکه چه په بل آیت کښې دی هم به دې زمکه به ستاسو ژوند تیریږی. مره کیدو سره به هم دې له ځنی اوبیا به هم د دې نه راویستلې شئی.(٢)دسنن په حدیث کښې رسول الله ﷺ د یومړی د خښولونه پس دهغه په قبرباندې خاوره اچولوسره اول ځل اوفرمائیل ﴿مِنْهَا خَلَقْنٰكُمْ﴾ دویمه لپه اچولوسره ئی اوفرمائیل﴿وَفِيْهَا نُعِيْدُكُمْ﴾اودریم ځل باندې اوفرمائیل ﴿وَمِنْهَا نُخْرِجُكُمْ تَارَةً اُخْرٰى﴾(٣)غرض دا چه فرعون له دلیلونه راغله هغه معجزې اونښې اولیدې خودټول انکار اوتکذیب ئی کولو.دکفرسرکشئ ضداو تکبرنه منع نه شو لکه چه ارشاد دې ﴿وَجَحَدُوْا بِهَا وَاسْتَيْقَنَتْهَآ اَنْفُسُهُمْ ظُلْمًا وَّعُلُوًّا ۭ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِيْنَ﴾(٤) یعنی سره د دې چه دهغوی په زړونو کښې یقین راغلې ووخوبیاهم دظلم اوزیاتی په وجه دانکار نه منع نه شو.

| قَالَ | أَجِئْتَنَا |
|---|---|
| اووئیل هغه | آیا راغلې یې ته مونږ ته |

هغه (فرعون) اووئیل چې ائې موسی! آیا

| لِتُخْرِجَنَا | مِنْ أَرْضِنَا | بِسِحْرِكَ | يٰمُوسٰى | فَلَنَأْتِيَنَّكَ |
|---|---|---|---|---|
| چې اوباسې مونږه | دزمکې زمونږ نه | په جادو خپل سره | اې موسی | نو رابه وړو مونږه تاته |

ته مونږ ته د دې دپاره راغلې ئې اچې ته دخپل جادو په زور مونږ دخپل ملک نه اوباسې انواوس به

(١) ١٧/الاسراء:٥٢.
(٢) ٧/الاعراف:٢٥.
(٣) احمد:٥/٢٥٤وسنده ضعیف، حاکم:٢/٣٧٩، بیهقی:٣/٩.
(٤) ٢٧/النمل:١٤.

| بِسِحْرٍ | مِّثْلِهٖ | فَاجْعَلْ | بَيْنَنَا | وَبَيْنَكَ | مَوْعِدًا |
|---|---|---|---|---|---|
| جادو | په شان ددې | نو مقرر کړه | په منځ زمونږ | او منځ خپل کښې | ځائې دوعدې |

مونږ ستا په مقابله کښې دغسې جادو وړاندې کړو نو ته زمونږ او خپل مینځ یو داسې ځائې مقرر کړه

| لَّا نُخْلِفُهٗ | نَحْنُ | وَلَآ اَنْتَ | مَكَانًا سُوًى ۝ | قَالَ |
|---|---|---|---|---|
| چې نۀ به کوو مخالفت دهغې نه | مونږه | اونۀ ته | يو ځائې هوار | اووئيل موسى |

چې نه به ترې مونږ خلاف کوو اونه بۀ ترې ته | چه په یو هموار میدان کښې دامقابله وي|موسی اووئیل

| مَوْعِدُكُمْ | يَوْمُ الزِّيْنَةِ | وَاَنْ يُّحْشَرَ | النَّاسُ | ضُحًى ۝ |
|---|---|---|---|---|
| وخت دوعدې ستاسو | ورځ د میلې ده | او راجمع دې کړې شي | خلق | په وخت دڅاښت کښې |

بنه ده تاسو سره دمیلې ورځ نیتهٔ شوه | او داچې خلق دې د څاښت په وخت کښې راجمع شي

**قوله تعالى:- لِتُخْرِجَنَا مِنْ اَرْضِنَا بِسِحْرِكَ يٰمُوْسٰى ۝**

**فرعون معجزوته جادو اووئيل:-** دحضرت موسى ؑ معجزه د لرګی نه مارجوړیدل د لاس روښانه کیدل وغیره لیدو سره فرعون وئیل داخوجادودې اوته خو د جادو په زور سره زمونږ ملك اخستل غواړې نو ته مغروره کیږه مه. مونږ هم په دې جادوکښې ستا مقابله کولې شو.ورځ او مقام مقررکړه چه مقابله اوکړو.مونږ به هم په هغه ورځ هم دې ځائې ته راشو اوته هم هسې نه چه څوك رانه شي. په کولاومیدان کښې د ټولوخلقو په وړاندې به د ګټې بیلات فیصله اوشي.حضرت موسى ؑ وئیل ماته منظور ده اود دې د پاره هم ستاسو د اختر ورځ مناسب ده څکه چه د فرصت ورځ ده ټول به راشي اوکتلوسره به په حق او باطل کښې تمیز اوکړي. د معجزې اوجادوفرق به معلوم شي. وخت دسحرکیخودل پکاردی دې دپاره چه کوم څه میدان ته راشي نوټول ئې اوکتلې شي.

حضرت ابن عباس ؓ فرمائي چه د هغوی د زینت او اختر ورځ د عاشورې ورځ وه. دایادساتئی چه انبیاء کرام علیهم السلام په داسې موقعوباندې چرته هم نه روستوکیږي. داسې کار کوي چه په هغې سره حق واضحه شي او هریوته ښکاره شي. په دې وجه هغه د دوی د اختروزځ مقرره کړه او وخت ئې د ورځې د راختو یعنی سحر کیخودواوصفاهوار میدان ئې مقررکړو د کوم ځائې نه چه ئې هریواولیدې شي اوچه کومې خبرې وی چه هغه واوریدې شي.[1] وهب بن منبه رحمه الله فرمائي چه فرعون مهلت اوغوښتو.حضرت موسى ؑ انکاراوکړو. په دې باندې وحی نازل شوه چه وخت مقررکړه فرعون د څلویښتو ورځو وخت اوغوښتلوچه منظورکړې شو.

| فَتَوَلّٰى فِرْعَوْنُ | فَجَمَعَ | كَيْدَهٗ | ثُمَّ | اَتٰى ۝ |
|---|---|---|---|---|
| نو واپس شو فرعون | او راجمع ئې کړل (اسباب) دمکر فریب خپل | بیا | راغلې (مقابلې له) | |

غرض دا چې فرعون واپس شو نو خپل دمکر سامان ئې ټول راغونډ کړو نو بیا موسى ؑ هغه خلقو

| قَالَ لَهُمْ | مُّوْسٰى | وَيْلَكُمْ | لَا تَفْتَرُوْا | عَلَى اللّٰهِ | كَذِبًا |
|---|---|---|---|---|---|
| اووئيل هغوئ ته | موسى | هلاکت دې تاسو دپاره | مه تړئ | په الله باندې | دروغ |

ته اووئیل چې هلاک شئ | .........تاسو په الله ﷻ باندې د درغو بهتانونه مه تړئ

[1] الطبری:۳۲۳/۱۸.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَيُسْحِتَكُمْ | بِعَذَابٍ | وَقَدْ خَابَ | مَنِ | افْتَرٰى ﴿٦١﴾ |
| کنی هلاک به کړي تاسو | په عذاب سره | او نامراده شو | هغه څوك | چې دروغ ئې جوړ کړل |
| کنی هغه به تاسو په عذاب سره هلاک کړي\| او څوک چې دروغ جوړوي هغه نامراده پاتې شوي دي | | | | |
| فَتَنَازَعُوْا | اَمْرَهُمْ | بَيْنَهُمْ | وَاَسَرُّوا | |
| نو اختلاف راغي دهغوئ | په کار خپل کښي | په منځ خپل کښي | او پټې پټې ئې شروع کړي | |
| بیا هغوئ په خپل مینځ کښې په خپله خبره کښې په جنګ شوا او پټې مشورې ئې اوکړې | | | | |
| النَّجْوٰى ﴿٦٢﴾ | قَالُوْٓا | اِنْ هٰذٰنِ لَسٰحِرٰنِ | يُرِيْدٰنِ | اَنْ يُّخْرِجٰكُمْ |
| دغوړ خبرې | اووئیل هغوئ | دا دواړه جادوګران دي | غواړي دوئ دواړه | چې اوباسي تاسو |
| بیا ئې اووئیل چې دا دواړه رونړه هم جادوګر دي\| اودا غواړي چې تاسو دخپل ملک | | | | |
| مِّنْ اَرْضِكُمْ | بِسِحْرِهِمَا | وَيَذْهَبَا | بِطَرِيْقَتِكُمُ | الْمُثْلٰى ﴿٦٣﴾ |
| د زمکې ستاسو نه | په جادو خپل سره | او ختمې کړي | لارې(دژوند) ستاسو | غوره |
| نه دجادو په ذریعه اوباسي\| اوستاسو بهترینه لاره چاره ورانه کړي\| نو تول سره رایوځائې | | | | |
| فَاَجْمِعُوْا | كَيْدَكُمْ | ثُمَّ ائْتُوْا | صَفًّا | وَقَدْ اَفْلَحَ الْيَوْمَ |
| نو راجمع کړئ | تدبیرونه خپل | بیا راشئ | قطار قطار(په اتفاق) | او کامیاب شو نن ورځ |
| شئ\| اودخپل فن مظاهره اوکړئ\|نو بیا قطار قطار راشئ\|ځکه چې نن به هغه څوک میدان ګټي | | | | |
| مَنِ | اسْتَعْلٰى ﴿٦٤﴾ | | | |
| هغه څوك | چې غالب شو | | | |
| چې غالب راشي\| | | | | |

**قوله تعالى:- فَتَوَلّٰى فِرْعَوْنُ فَجَمَعَ كَيْدَهٗ ثُمَّ اَتٰى ﴿٦٠﴾**

**فرعون جادوګر راواوغوښتل اود مقابله کولو کوشش ئې اوکړو:-** کله چه د مقابله میعاد مقررشو ورځ وخت اوځائ اوټاکلې شو نوفرعون داخواديخوانه جادوګر راجمع کول شروع کړه.په هغه زمانه کښې د جادو ډېر زور وو لوئ لوئ جادوګر موجود وو او فرعون عام حکم جاري کړې ووچه ټول هوښيار جادوګرماله راوليګئ.هغه وخت پورې ټول جادوګرراجمع کړې شو.فرعون هم په هغه ميدان کښې خپل تخت راوويستلو او په هغې کيناستو.ټول اميران اووزيران په خپل خپل ځائ کيناستل. خلق ټول راجمع شو. د جادوګرو صفونه صفونه جوړکړې شو اوتخت سره اودريدل.فرعون دهغوی ملاټپول شروع کړه اوورته نی اووئیل چه ګورئ نن خپل هغه هنر اوښائې چه په دنيا کښې يادګارپاتې شي.جادوګروونيل چه که مونږ بازي اوګټو نوڅه انعام به هم ملاويږي؟ونيل ولې نه زه خوبه تاسوخپل خاص درباريان جوړ کړم.

**جادوګر ته ميدان کښې د موسى عليه السلام نصيحت:-** بل خواحضرت كليم الله ﷺ هغوی ته تبليغ شروع کړو چه ګورئ په الله ﷻ باندې دروغ مه تړئ ګنې دا عملونه به مو تباه کړي. دخلقو په سترګو کښې دورې مه اچوئ په حقيقت کښې هيڅ هم نه وي او تاسو د جادو په زور ډېر څه اوښائې. د الله ﷻ نه بغير هيڅ څوك خالق نشته چه په حقيقت کښې څه پيداکړې شي يادساتئ داسې دروغژن اوبهتان

لګونکي خلق خلاصې نه شي موندلې.دې اوریدو سره په هغوی کښې په خپل مینځ کښې پس پس شروع شو.بعضې خو پوهه شو او وئې وئیل چه دا کلام د جادوګرونه دې.دې خو په ربښتیاسره د الله ﷺ رسول دې.

**د جادوګرو مینځ کښې اول اختلاف بیا اتفاق:-** بعضو وئیل چه نه جادوګردې مقابله اوکړئی. دا خبرې ډیر په احتیاط اوپټې اوکړې شوې. د ﴿ان هذان﴾ دویم قراءت ﴿ان هذین﴾هم دې.مطلب اومعنی ددواړو قراءتونو هم یوه ده. اوس ئې په اوچت آواز سره اووئیل چه دا دواړه رونړه هوښیار او رسیدلې جادوګر دی.دې وخته پورې خو ستاسوهوابنده اود بادشاه سره نیزدې ئې مال اودولت دېښې لاتدې لوټ کوئی خوکه نن دوی دابازی یوړه نو ښکاره خبره ده چه بادشاهی به هم د دوی شي تاسو به د ملك نه اوباسی عوام به د دوی ماتحت شي.د دوی زور به جوړشي بادشاهت به درنه واخلي اودې سره به ستاسو مذهب ختم کړي. بادشاهت عیش او آرام ټول څیزونه به درنه واخلي.شرافت عقل مندی ملك ټول هرڅه به د دوی په قبضه کښې راشي تاسو به هم داسې خوارزار شئی ستاسواشراف خلق به ذلیل شي امیران به فقیران شي ټول رونق اوسپرلې به لاړشي. دا بنی اسرائیل چه ستاسو وینځې غلامان جوړشوی دی ټول به دوی سره شي اوستاسوحکومت به دړې وړې شي.تاسو ټول اتفاق اوکړئی د دوی په مقابله کښې صف بندی اوکړئی او هیڅ یوفن باقی مه پریږدئی په کولاو زړه او هوښیارتوب سره د خپل جادوپه زور دوی ښکته کړئی.هم په یوځل هریواستاذخپله استاذی اوښائی چه میدان هم زمونږ دجادونه ډك شي. ګورئی که هغوی اوګټله نو دا ټول ملك به د هغوی شي اوکه مونږ غالب راغلو نوتاسو اوریدلی دی چه بادشاه به مونږ خپل مقرب او د دربار خاص اراکین جوړکړي.

قَالُوْا يٰمُوْسٰۤى اِمَّاۤ اَنْ تُلْقِيَ
| اووئیل(جادوګرانو) | اې موسی | یا به ته غورزوې(همساخپله) |
| هغوئ (جادوګرو) اووئیل چې ائې موسی یا خو ته رومبې خپله (همسا) اوغورزوه او

وَاِمَّاۤ اَنْ نَّكُوْنَ اَوَّلَ مَنْ اَلْقٰى ۝ قَالَ بَلْ
او یا به شو مونږه | اول | هغه څوك | چې غورزوې(جادوخپل) | اووئیل موسی | بلکه
یا ئې هم مونږ رومبې غورزوُا | ......موسی ﷺ اووئیل چې تاسو اول اوغورزوئی

اَلْقُوْا ۚ فَاِذَا حِبَالُهُمْ وَعِصِيُّهُمْ يُخَيَّلُ اِلَيْهِ
اوغورزوئی تاسو | نو فورا | رسئ دهغوئ | او همساګانې دهغوئ | په خیال کښې راتلې هغه ته |
نوناګهانه دهغوئ رسئ او همساګانې دموسی ﷺ په خیال کښې دجادو په زور سره

مِنْ سِحْرِهِمْ اَنَّهَا تَسْعٰى ۝ فَاَوْجَسَ فِيْ نَفْسِهٖ
دوجې د جادو دهغوئ نه|داسې لکه چې هغه(ماران دی) منډې وهی | نو اومندله | په زړه خپل کښې
داسې ښکاره شوې لکه چې منډې وهی | په دې باندې موسی ﷺ په خپل زړه کښې

خِيْفَةً مُّوْسٰى ۝ قُلْنَا لَا تَخَفْ اِنَّكَ اَنْتَ الْاَعْلٰى ۝ وَاَلْقِ
یره | موسی | اووئیل مونږه | مه یریږه | بیشکه ته | هم ته | به غالب ئې | او اوغورزوه
ویره محسوس کړه| مونږ ورته اووئیل چې مه ویریږئې هم ته به برې بیا مومې|او داستا

مَا | فِيْ يَمِيْنِكَ | تَلْقَفْ | مَا | صَنَعُوْا ط

هغه څه | چې په ښي لاس ستا کښې دی | تیر به کړي | هغه څیزونه | چې جوړ کړي دي دوئ

په ښي لاس کښې چې (همسا) ده دا اوغورزوه | ددوئ جوړ کړي ټول څیزونه بهٔ تیر کړي

إِنَّمَا | صَنَعُوْا | كَيْدُ | سٰحِرٍ ط | وَلَا يُفْلِحُ

بیشکه هغه څه | چې جوړ کړي دي دوئ | مکر(فریب) | دجادوګر دی | او بري نهٔ شي موندې

دوئ چې څه جوړ کړي دي دا خو تش دجادو فریب دی | او جادوګر چې هر خائې ته لاړشي نو

السّٰحِرُ | حَيْثُ أَتٰى﴿۶۹﴾ | فَأُلْقِيَ | السَّحَرَةُ | سُجَّدًا | قَالُوْا

جادوګر | په هر شان سره چې راشي | پس اوغورزولې شو | جادوګران | سجده کونکي | وې ونیل

کامیابیدې نشي | ..........بیا جادوګر په سجده پریوتل او دائې اووئیل چې

اٰمَنَّا | بِرَبِّ هٰرُوْنَ | وَمُوْسٰى﴿۷۰﴾

ایمان راوړو مونږ | په رب دهارون | او دموسی |

مونږ خو د هارون ﷺ او موسی ﷺ په رب باندې ایمان راوړو

**قوله تعالی:- قَالُوْا يٰمُوْسٰى إِمَّآ أَنْ تُلْقِيَ وَإِمَّآ أَنْ نَّكُوْنَ أَوَّلَ مَنْ أَلْقٰى﴿۶۵﴾**

**د جادوګرو موسی ﷺ ته اختیار ورکول او دموسی ﷺ جواب:** -جادوګرو موسی ﷺ ته اووئیل چه اوس وایه ته خپل وار اول کوې که مونږ ئې اوکړو؟په دې باندې د الله ﷻ پیغمبر ﷺ اوفرمائیل چه هم تاسو اول د خپل زړه براس اوباسئ دې دپاره چه دنیااوګورئ چه تاسوڅه اوکړه اوبیا الله ﷻ ستاسو کړه څنګه ختم کړل.هم هغه وخت هغوی خپل لرګی اورسئ په میدان کښې اوغورزولې څه داسې معلو میدل لګه چه هغه ټول ماران جوړشوی ګرځی راګرځی او په میدان کښې تر لرې لرې تختي. وئې ونیل د فرعون په برکت به هم مونږ غالب راځو.دخلقو په سترګوباندې جادو اوکړو هغوی اوویرول اود جادو زبردست چلونه ئې اوخودل. داخلق ووهم ډیر زیات دهغوی په غورزولې شوی لرګو او رسو باندې ټول میدان دمارانو نه ډك شو. هغوی په خپل مینځ کښې ګډوډ شو اولاتدې باندې شو. دې منظر حضرت موسی ﷺ لږ شان اوویرولوچه هسې نه داخلق د دوی په دې کرتب باندې قائل نه شی او په دې باطل کښې رااونخلی.هغه وخت الله ﷻ وحی اوکړه چه دخپل ښی لاس داهمسا دې میدان کښې اوغورزوه ویرېږه مه. هغه حکم په خائې راوړو.

**په جادوګرو باندې د موسی علیه السلام اوچتوالی:** -د الله ﷻ په حکم دا لرګې یوزبردست او بې مثال اژدهاجوړه شوه د هغې پښې هم وې سرجامنې او غابښونه ئې هم وو دې د ټولو په وړاندې ټول میدان صفا کړو. په دې کښې چه د جادوګرو څومره کرتبونه وو ټول ئې الواق تیر کړل. اوس ټولوته حق ښکاره شو اومعجزه اوجادو کښې تمیز اوشو. په حق اوباطل کښې پیژندګلو اوشوه. ټولوته پته اولګیدله چه د جادوګرو په کارکښې هیڅ اصلیت نه وو.په حقیقت کښې جادوګریوچال اوچلولوخو په هغې کښې غالب نه شو.ابن ابی حاتم کښې حدیث دې ترمذی کښې هم موقوفاً او مرفوعاً نقل دې چه جادوګر کوم خائې وینئ رانیسئ او وژنئ[۱] بیاهغوی هم دا جمله تلاوت اوفرمائیله. یعنی چه کوم خائې کښې

---

[۱] ذ دې معنی روایت په دې خایونوکښې موجود دې. ترمذی کتاب الحدود باب ماجاء فی حدالساحر:۱۴۶۰ وسنده ضعیف دارقطني:۳/۱۱۴،حاکم:۴/۳۶۰،بیهقی:۸/۱۳۶،مسندالفردوس:۸/۲۷۰۸).

وینئي امن مه ورکوئي.جادوګروچه کله دا اولیده نو دهغوی یقین پیداشو چه داکارد انساني طاقت نه خارج دې. هغوی د جادود کار نه خبروو په یونظرئي اوپیژندوچه واقعي دادهغه الله کاردې دکوم فیصله چه اټل ده.هغه چه څه غواړي د هغه په حکم سره کیږي د هغه د ارادې نه مراداومقصدجدا نه دې. د هغه دوی ته دومره کامل یقین اوشو چه هم په هغه وخت په هغه میدان کښې د ټولو په وړاندې دبادشاه په موجودګئی کښې الله ﷻ ته سربه سجده شو اوچغې کړې چه مونږ په رب العالمین یعنی د هارون ﷺ اوموسی ﷺ په رب باندې ایمان راوړې دې. سبحان الله سحر کافران او جادوګران وو اوماښام پاك مؤمنان اود الله ﷻ د لارې شهیدان وو. وائي چه دهغوی شمیر اتیازره یا اویا زره یاڅه د پاسه دیرش زره یانورلس زره یا پنځلس زره یادولس زره وو.داهم روایت دې چه دا اویا ووسحرجادوګر اوماښام شهیدان[1] روایت دې چه کله دوی په سجده کښې پریوتل نو الله ﷻ هغوی ته جنت اوخودلو اوهغوی خپل منزلونه په خپلو سترګوسره اولیدل.[2]

| |
|---|
| قَالَ اٰمَنْتُمْ لَهٗ |
| اووئیل فرعون \| ایمان راوړلو تاسو \| په هغه باند |
| فرعون اووئیل زما د اجازت نه وړاندې |
| قَبْلَ اَنْ اٰذَنَ لَكُمْ ۚ اِنَّهٗ لَكَبِيْرُكُمُ |
| مخکښې ددې نه \| چې اجازت کړې ووما \| تاسو ته \| بیشکه چې هغه \| خامخا مشر دې ستاسو |
| تاسو په ده ایمان راوړو\|...................... بیشکه چې داستاسو هغه مشر(استاد)دې |
| الَّذِيْ عَلَّمَكُمُ السِّحْرَ ۚ فَلَاُقَطِّعَنَّ اَيْدِيَكُمْ |
| هغه(مشر) \| چې ښودلې ئې دې تاسو ته \| جادو \| نو خامخا پریکوم زۀ \| لاسونه ستاسو |
| چې تاسو ته ئې هم جادو خودلې دې \| نو اوس زه ستاسو لاس او پښې ادل بدل پریکوم |
| وَاَرْجُلَكُمْ مِّنْ خِلَافٍ وَّلَاُوصَلِّبَنَّكُمْ فِيْ جُذُوْعِ النَّخْلِ ۡ |
| او خپې ستاسو \| ادلې بدلې \| او خامخا په سولئ کوم تاسو \| په تنو کښې \| دکجورو |
| اودکهجورو ونو کښې مو په سولئ خیژوم اودابه درته معلوم شي چې په |
| وَلَتَعْلَمُنَّ اَيُّنَآ اَشَدُّ عَذَابًا وَّاَبْقٰى ۞ |
| او پته به اولګی تاسو ته\|چې کوم یو زمونږ نه\|زیات سخت دې په لحاظ دعذاب سره\| او باقي پاتې کیدونکې دې |
| مونږ دواړو کښې دچا عذاب سخت دې \|او زیاتې پاتې کیدونکې دې\| هغوئ(جادوګرو) ورته |

**قوله تعالٰی:- قَالَ اٰمَنْتُمْ لَهٗ قَبْلَ اَنْ اٰذَنَ لَكُمْ ۚ**

**جادوګرو ته د فرعون خطاب اود هغوئ جواب:-** د الله ﷻ شان ته ګوره په کار خوداوو چه فرعون اوس په لار راغلې وې کوم چه هغه د مقابله د پاره راوستې وو هغوی په عام مجمع کښې بیلات اوکړو. هغوی خپل بیلات اومنلو خپل کارته نی جادو اودموسی ﷺ کارته نی دالله ﷻ دطرفنه معجزه او هغه معجزه

[1] الطبری:۱۸/۳٤۰.
[2] الطبری:۱۸/۳٤۲.

نی اومنله. پخپله هغوی ایمان راوړو چه د مقابلې دپار راوستلې شوی وو. په عام مجمع کښې د ټولو په وړاندې بغیرد ویرې هغوی حق دین قبول کړو خودې په خپل شیطانت کښې نور هم وړاندې شو او خپل طاقت اوقوت ئې ښکاره کول شروع کړه. خود حق والا مادی طاقت چرته مني؟ اول خوئې د جادوګرو دې مسلمان ټولی ته اوونیل چه زما د اجازت نه وړاندې تاسو په ده باندې ایمان ولې راوړ؟ بیانی داسې بهتان اوتړلوچه د هغې دروغ کیدل بالکل واضحه دی چه موسی ﷺ خوستاسو استاذ دې. هم د ده نه تاسو جادو زده کړې دې. تاسو ټول په خپل مینځ کښې یونی. په مشوره کولوسره زمونږ د تباهئی د پاره اول تاسو دې راولیګلو بیا د ده په مقابله کښې پخپله راغلنی اود خپل مینځ پټه سمجوته باندې تاسو مخامخ بیله اوپه ده باندې مو اوګټله بیامو د ده دین قبول کړو چه ستاسو په کتو سره زما داخلق هم په دې چکرکښې اونخلی. خواوس به تاسو ته د خپل دې سازباز کولو انجام معلوم شی.زه به ستاسو ښې اوګس پښه لاس پرې کړم او دکهجورو په تنوکښې به مو په سولئی کړم او دومره په خرابه طریقه به ستاسو ساه اوباسم چه د نورو دپاره عبرت شی. بادشاه د ټولونه اول داسزا ورکړه. چه دا تاسو خپل خان په هدایت باندې اوما اوقوم په ګمراهئی باندې ګڼرئی د دې حال به اوس تاسو ته معلوم شی چه د همیشه عذاب په چا باندې راځی؟ د دې بدمعاشئی د الله ﷻ په دې دوستانو باندې التیه اثر اوشو هغوی په خپل ایمان کښې کامل شو او ډیر په بې پرواهئی سره ئې جواب ورکړو د دې هدایت اویقین په مقابله کښې چه مونږ ته د الله ﷻ د طرف نه اوس حاصل شوې مونږ ستا مذهب په هیڅ شان سره د قبلولونه یو. نه تا مونږ د خپل ربښتونی مالك اوخالق په وړاندې څه خیز ګڼرو اودا هم ممکن دی چه داجمله قسم وی یعنی د هغه الله ﷻ قسم چاچه مونږ په اول خل پیداکړو مونږ په دې واضحه دلیلونوباندې ستا ګمراهئی ته ترجیح ورکولې نه شو.که ته مونږ سره هرڅه اوکړې. د عبادت حقدارهم هغه دې. چه هغه مونږ پیداکړی یو اونه ته چه پخپله هم هغه پیداکړې نی.ته چه څه کوې په هغې کښې کمې مه کوه. ته خو مونږ له هغه وخت سزاراکولې شې چه ترکومې مونږ ددې دنیاد ژوند په قیدکښې یوزمونږ یقین دې چه ددې نه پس به دهمیشه راحت اوغیرفانی خوشحالی اومسرت رانصیب کیږی. مونږ په خپل رب باندې ایمان راوړې زمونږ امید دې چه هغه به زمونږ د وړاندې قصور معافی اوکړی. خاص کرداقصورچه مونږ دالله ﷻ د ربښتونی نبی په جادوګرئی سره مقابلې کولو کارسرزد شو.

**د جادوګرو د جادو تعلیم هم د فرعون په حکم وو**:-ابن عباس ﷺ فرمائی چه فرعون د بنی اسرائیلو څلویښت ماشومان واخستل اوجادوګروته نی حواله کړه چه دوی ته د جادو پوره تعلیم ورکړنی. اوس داهلکان دامقوله وائی چه تازمونږنه په زور باندې دجادوګرئی داخدمت واخستو.دحضرت عبدالرحمن بن زید ﷺ قول هم دا دې[1] بیافرمانی زمونږ دپاره په نسبت ستا الله ﷻ ډیر بهتردې اود همیشه بدله اوثواب ورکونکې دې. نه زمونږ ستا د سزاګانو نه ویره اونه ستا د انعام لالچ. هم د الله ﷻ ذات د دې لائق دې چه د هغه عبادت او تابعداری اوکړې شی. د هغه عذابونه د همیشه د پاره دی او ډیر دردناك دی او سخت خطرناك دی. که د هغه نافرمانی دې اوکره. نو فرعون هم د هغوی سره دا اوکړه چه د ټولو پښې لاسونه نی اولته او سیدا پریکړل او په سولئی نی اوخیژول. هغه ډله چه د نمر راختو سره کافران وو د نمر د ډوبیدونه اول مؤمنان او شهیدان وو.

| قَالُوْا | لَنْ نُّؤْثِرَكَ | عَلٰی مَا | جَآءَنَا |
| --- | --- | --- | --- |
| اوونیل جادوګرانو | هر ګز به ترجیح درنه کړو تالره | په هغې باند | چې راغلی دی مونږ ته |
| اوونیل چې مونږبه تا هیڅ کله غوره نه کړو ادهغې ښکاره دلیلونو نه پس چې مونږ ته راغلی دی | | | |

[1] الطبری:۱۸/۳٤۱.

مِنَ الْبَيِّنٰتِ وَالَّذِيْ فَطَرَنَا فَاقْضِ مَآ اَنْتَ

دروښانه نښو نه | قسم دي په هغه ذات | چي پيدا کړي ئې يو مونږ | پس اوکړه | هغه څه | چي ته

اودهغي الله ﷻ په مقابله کښې چي مونږ ئې پيدا کړي يو | ته چي هر څه فيصله کول غواړې

قَاضٍ ۖ اِنَّمَا تَقْضِيْ هٰذِهِ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا ۗ اِنَّآ اٰمَنَّا

کونکې ئې | بيشکه | ته فيصله کولې شې | ددې ژوند ددنيا | بيشکه مونږه | ايمان راوړي دي

هغه اوکړه | ته خوبس ددې دنيا په حقله (چي څه غواړې هغه) کولې شې | مونږ خو پخپل رب ايمان راوړو

بِرَبِّنَا لِيَغْفِرَ لَنَا خَطٰيٰنَا وَمَآ اَكْرَهْتَنَا

په رب خپل | دپاره ددې چي اوبښي | مونږ لره | خطاګانې زمونږه | او هغه | چي مجبوره کړي يو تا مونږه

چي هغه زمونږ ګناهونه معاف کړي | او کوم د جادو کولو په باره کښې چه تا په مونږ کوم زياتې کړي دي

عَلَيْهِ مِنَ السِّحْرِ ۗ وَاللّٰهُ خَيْرٌ وَّاَبْقٰى ۞ اِنَّهٗ

په هغې باند | چه جادو دې | او الله | بهتر دې | او باقي پاتې کيدونکي دې | بيشکه شان دادې

هغه (هم راته اوبخښي) | او الله ﷻ هرچانه غوره دې اوباقي پاتې کيدونکي دې | ياد ساتئ

مَنْ يَّاْتِ رَبَّهٗ مُجْرِمًا فَاِنَّ لَهٗ جَهَنَّمَ ۗ لَا يَمُوْتُ

چي څوک ورشي | ارب خپل ته | په حيثيت دمجرم | نو بيشکه | دپاره دهغه | دوزخ دې | چي نۀ به مري

چي څوک خپل رب ته د مجرم په حيثيت راشي | نو بيشکه هغه دپاره جهنم دې | چي نه به په کښې مري

فِيْهَا وَلَا يَحْيٰى ۞ وَمَنْ يَّاْتِهٖ مُؤْمِنًا قَدْ عَمِلَ

په هغې کښې | او نۀ به ژوندې اوسي | او څوک چي ورشي هغه ته | په حيثيت دمومن | چي کړي ئې وي

او نه به رغيږي | او څوک چي ورته ايماندار ورشي | چي دنيکئ کارونه ئې کړي وي

الصّٰلِحٰتِ فَاُولٰٓئِكَ لَهُمُ الدَّرَجٰتُ الْعُلٰى ۞ جَنّٰتُ

نيک عملونه | نو دغه کسان چي دي | دي دهغوئ دپاره | مرتبې | اوچتې | باغونه دي

نوداسي خلقو دپاره اوچتې اوچتې درجې مقرر دي | ..............(يعنې) د هميشه استوګنې باغونه

عَدْنٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۗ

دهميشه استوګنې | چي بهيږي به | الاندې د ونود هغې نه | انهرونه | هميشه به وي | په هغې کښې

چي دهغې لاندې به ولې بهيږي | دوئ بۀ په کښې تل ترتله اوسيږي (چه د وتو ويره به ئې نه وي)

وَذٰلِكَ جَزٰٓؤُا مَنْ تَزَكّٰى ۞

او دا جزا ده | دهغه چا | چي پاکوالي ئې اختيار کړو |

اوهم دغه انعام دي د هغه چا چي پاک شو |

قوله تعالى:- لَا يَمُوْتُ فِيْهَا وَلَا يَحْيٰى ۞

په دوزخ کښې به مرګ نه راځي:-په ظاهره معلوميږي چه جادوګرو ايمان قبول کړو فرعون ته ئې کوم

نصیحتونه اوکړل هم په هغې کښې دا آیاتونه هم دی. هغه د الله ﷻ د عذابونونه ویروی اود الله ﷻ د نعمتونو لالچ ورکوی. د ګناهګارانو ځایٔ دوزخ دې کوم ځایٔ چه به مرګ هم نه راځی خو ژوندون به هم ډیر سخت دمشقت والا د مرګ نه خراب. لکه چه ارشاد دې ﴿لَا يُقْضٰى عَلَيْهِمْ فَيَمُوْتُوْا وَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمْ مِّنْ عَذَابِهَا كَذٰلِكَ نَجْزِيْ كُلَّ كَفُوْرٍ﴾ [1] یعنی نه به مرګ راځی اونه به عذاب سپکیږی کافرانوته مونږ هم داسې سزا ورکوو. په نورو آیاتونوکښې دی [2] یعنی د الله ﷻ د نصیحتونونه به هغه خلق بې فیض پاتې وی څوك چه ازلي بدبخت وی آخر به په ډیر سخت اور کښې وراوغوزولې شی کوم ځایٔ چه به نه مرګ راځی او نه به د آرام ژوند نصیب کیږی. بل آیت کښې دی چه په دوزخ کښې به خونیدونکی وانی به ای د دوزخ داروغه ته دعااوکړه چه الله ﷻ مونږ ته مرګ راکړی خوهغه به جواب ورکړی چه نه تاسو له مرګ راځی اونه وتلې شئ [3] مسنداحمدکښې دی رسول الله ﷺ فرمانی اصلی دوزخیان خو به په دوزخ کښې پراته وی نه به هغوی له هلته مرګ راځی اونه به د آرام ژوندملاویږی.اوداسې خلق به هم وی چه هغوی به د هغوی دګناهونو په وجه دوزخ کښې اچولې شی کوم ځایٔ چه به هغوی اوسوزی او سکاره به شی. ساه به ترې اوخی اوبیا به د شفاعت د اجازت نه پس د هغوی چوری ذرې راویستلې شی اود جنت د نهرونو په غاړو به شیندلې شی اوجنتیانوته به اوفرمائیلې شی چه په دوی باندې اوبه واچوئی.نوچه څنګه تاسو دنهرونو په غاړو د فصل دانې په راټوکیدو باندې لیدلې دی دغه شان به هغوی راټوکیږی دې اوریدو سره یوسړی اووئیل یارسول الله ﷺ مثال خودې داسې ورکړولکه چه تاسو څه زمانه په ځنګل کښې تیره کړې وی. [4]

**د نیک عمل کونکی د پاره جنت**:په یوبل حدیث کښې دی چه په خطبه کښې د دې آیت د تلاوت نه پس حضورﷺ فرمائیلې ووځوك چه الله ﷻ سره د قیامت په ورځ په ایمان اونیك عمل سره ملاوشی هغه ته به داوچتو بالاخانو والا جنت ملاویږی. رسول الله ﷺ فرمانی د جنت سل درجې دی او په هره درجه کښې دومره فاصله ده څومره چه په زمکه اوآسمان کښې ده. د ټولونه پاس جنت الفردوس دې د دې نه څلور نهرونه روان دی. ددې چت د رحمن عرش دې. تاسو چه د الله ﷻ نه کله هم جنت غواړئی نود جنت الفردوس سوال کوئی. [5](ترمذی‌وغیره). ابن ابی حاتم کښې دی چه وئیلې شوی ووچه د جنت سل درجې دی اوبیا دهرې درجې سل درجې دی په دوو درجوکښې دومره لریوالې دې څومره چه په زمکه او آسمان کښې دې. په دې کښې یاقوت مرغلرې اوکالی هم.په هرجنت کښې امیردې د کوم د فضیلت اوسردارئی چه ټول قائل دی.د بخاری اومسلم په حدیث کښې دی چه د اوچت علیین والا داسې ښکاری لکه څنګه چه تاسو خلق د آسمان ستوروته ګورئی.خلقو وئیل چه بیاخویه دااوچتې درجې د انبیاء کرامو د پاره وی؟ وئی فرمائیل واورئی د چا په قبضه کښې چه زما ځان دې داهغه خلق دی چه په الله ﷻ باندې ایمان راوړې او نبیان ئې رښتونې ګڼړلی. [6] د سنن په حدیث کښې داهم دی چه ابوبکر ﷺ اوعمر ﷺ هم د دوی نه دې. او څومره د ښه مرتبې والا دی. [7] داجنتونه د همیشه د اوسیدود پاره دی. کوم ځایٔ چه به دوی د همیشه اومدام د پاره وی. کوم خلق چه خپل نفس پاك ساتی دګناهونو او

---

[1]) ۳۵/فاطر:۳٦.

[2]) ۸۷/الاعلی:۱۱. الخ

[3]) ٤۳/الزخرف:۷۷.

[4])صحیح مسلم کتاب الایمان باب اثبات الشفاعة واخراج الموحدین من النار:۱۸۵، احمد:۱۱/۳، ابن ماجه:٤۳۰۹، ابن حبان:۱۸٤.

[5])ترمذی کتاب صفة الجنة باب ماجاء فی صفة درجات الجنة: ۲۵۳۱ وسنده صحیح، احمد: ۳۱٦/۵، حاکم:۸۰/۱.

[6])صحیح بخاری کتاب بدء الخلق باب ماجاء فی صفة الجنة وانها مخلوقة:۳۲۵٦، صحیح مسلم۲۸۳۱، احمد:۳٤۰/۵، ابن حبان:۷۳۹۳.

[7])ابوداؤد کتاب الحروف والقراءات:۳۹۷۸ ترمذی :۳٦۵۸، ابن ماجه: ۹٦، احمد:۲۷/۳، مسندابی یعلی:۱۱۳۰.

خیانت نه د گندگئی نه دشرك اوكفر نه ئی لرې ساتی دالله ﷻ چه واحد ذات دې عبادت کوی د رسولانو په تابعدارئی کښې خپل ژوندون تیرکړی د هغوی د پاره هم دغه د فخر مقامات او قابل د صد مبارکباد انعام دې. رزقناالله ایاها.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلَقَدۡ أَوۡحَيۡنَآ إِلَىٰ مُوسَىٰٓ | | | | | |
| او بیشکه وحی اوکړه مونږ \| موسی ته | | | | | |
| اومونږ موسی ﷺ ته خپله وحی اولیږله \| چې زما بندگان | | | | | |
| أَنۡ أَسۡرِ | بِعِبَادِي | فَٱضۡرِبۡ | لَهُمۡ | طَرِيقٗا | فِي ٱلۡبَحۡرِ يَبَسٗا |
| چې بوزه دشپې \| بندگان زما \| او جوړه کړه \| دپاره دهغوی \| لاره \| په دریاب کښې \| وچه \| | | | | | |
| شپه په شپه دمصر نه بهر بوزه \| بیا ورله په سمندر کښې (دهمسا په وهلو) یوه اوچه لار جوړه کړه | | | | | |
| لَّا تَخَٰفُ | دَرَكٗا | وَلَا تَخۡشَىٰ | فَأَتۡبَعَهُمۡ | | |
| نهٔ دې وی یره تاته \| ددرسیدو (دفرعون نه) \| او نهٔ دې راشي یره په تا \| پس وراورسیدو په هغوئ پسې | | | | | |
| مه د(چا) د رالاندې کولو ویره کوه \| اومه نوره ویره (په زړه کښې ساته) \| نو فرعون | | | | | |
| فِرۡعَوۡنُ | بِجُنُودِهِۦ | فَغَشِيَهُم | مِّنَ ٱلۡيَمِّ | مَا | غَشِيَهُمۡ |
| فرعون \| سره دلښکرو خپلوانو پټ کړی هغوئ لره \| دریاب \| هغه چې پټ ئې کړل هغوئ | | | | | |
| وریسې خپلې لښکرې روانې کړې \| نود دریاب چپې په دوئ راوختلې \| اودوئ ئې پټ کړل (یعنی ډوب | | | | | |
| وَأَضَلَّ | فِرۡعَوۡنُ | قَوۡمَهُۥ | وَمَا هَدَىٰ | | |
| او بې لارې کړې وو \| فرعون \| قوم خپل \| او نهٔ ئې وه ورته ښودلې نیغه لار \| | | | | | |
| ئې کړل) \| او فرعون خو خپل قوم گمراه کړې وو \| او سمه لار ئې ورته خودلې نه وه \| | | | | | |

**قوله تعالی:-لَقَدۡ أَوۡحَيۡنَآ إِلَىٰ مُوسَىٰٓ أَنۡ أَسۡرِ بِعِبَادِي**

**دحضرت موسی ﷺ قوم اخستل اود شپې وتل:-** دحضرت موسی ﷺ دافرمان هم فرعون روستو کړې روچه هغه دې بنی اسرائیل د خپلې غلامئی نه آزادکړی اوهغه دې حضرت موسی ﷺ ته حواله کړی. په دې وجه الله ﷻ تبارك وتعالی هغه ته حکم اوکړوچه هم د شپې شپې په بې خبرئی کښې ټول بنی اسرائیل چپ چاپ خان سره کړه اود دې خائ نه لاړشه لکه څنګه چه د دې تفصیلی بیان په قرآن مجید کښې په مختلفو مرقعویاندې شوې دې. دارشاد مطابق هغه بنی اسرائیل خان سره کړل اود دې خائ نه ئی هجرت اوکړو. سحر چه کله فرعونیان راپاسیدل اوبه ښارکښې یوبنی اسرائیلې اونه لیدلو نو فرعون له ئی خبرورکړو هغه په غصه کښې تاوړاتاوشو او هرطرف ته ئی کسان اوزغلول چه لښکرې راجمع کړی او غابنونه په چیچلوچیچلو سره ئی اوونیل چه دې یوموټې خلقو خو مونږ ډیرتنګ کړې یو. نن داټول قتل کړئی دنمر راختوسره لښکر موجودشو هم هغه وخت پخپله مشرئی کښې لښکر واخستو او هغوی پسې شاته روان شو. بنی اسرائیل د دریاب غاړې له رسیدلې وو چه د فرعون لښکر هغوی اولیدو.اوویریدل او خپل نبی ﷺ ته ئی اوونیل حضرت اوس به څه کیږی وړاندې دریاب دې اوشاته فرعونی لښکر. هغوی جواب ورکړو چه د ویریدلو هیڅ خبره نشته زما په امدادباندې پخپله زما رب دې هغه به اوس ماته لار اوښائی. دې کښې د الله ﷻ د طرف نه وحی راغله چه موسی ﷺ دریاب په خپل لرګی باندې اووهه هغه به اخواشی اولار به درکړی. نو هغه دې وینا سره چه د الله ﷻ په

حکم اې دریابه اخواشوه او. هم هغه وخت د هغې اوبه لکه د کانړی یوخوابل خوا اودریدې او په مینځ کښې لارې ښکاره شوې. اخوادیخوا اوبه لکه د لویولویو غرونو په شان اودریدې اوتیزو او اوچې هوا دا لارې بالکل لکه د اوچې زمکې د لارې په شان کړې. نه د فرعون د راګیرولو ویره پاتې شوه اونه د دریاب ډوبولو خطره پاتې شوه. فرعون اود هغه لښکر دا حال لیدلو. فرعون حکم اوکړو چه هم په دې لارو باندې تاسو هم وړپورې اوځئی. سره د خپل لښکر هم په دې لارو ورکوز شو د هغوی په کوزیدو سره اوبوته دروانیدو حکم اوشو دسترګو په رپ کښې ټول فرعونیان ډوب کړې شو.د دریاب چپوهغوی راپټ کړل. دا دلته چه کوم اوفرمانیلې شو چه هغوی هغه څیز راپټ کړل چه کوم څیز پټ کړل دا د دې د پاره چه دا مشهور اومعروف دې د نوم اخستلوضرورت نشته یعنی د دریاب موجونو.

هم د دې په شان آیت ﴿وَالْمُؤْتَفِكَةَ أَهْوَىٰ ۝ فَغَشَّاهَا مَا غَشَّىٰ ۝﴾(۱) یعنی د قوم لوط کلی هم هغه دغه شان راخلاص کړل بیاچه په هغوی باندې کومه تباهی راغله نویس راغله،دعربوپه شعرونوکښې داسې مثالونه موجود دی.غرض دا چه فرعون خپل قوم دهوکه کړو اونیغه لارنی هغوی ته اونه خودله. لکه څنګه چه په دنیا کښې هغه وړاندې شو او په دریاب کښې لاهوکړل دغه شان به وړاندې کیږی د قیامت په ورځ به نی په دوزخ کښې هم ورټونبی چه ډیر بدترین ځائ دی.(۲)

يَٰبَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ | قَدۡ أَنجَيۡنَٰكُم | مِّنۡ عَدُوِّكُمۡ | وَوَٰعَدۡنَٰكُمۡ | جَانِبَ

اې بنی اسرائیلو | مونږ تاسو ستاسو ددښمن نه خلاص کړئی | او وعده اوکړه مونږ تاسو سره | په طرف

انې بنی اسرائیلو خلاصې درکړو مونږ تاسو ته | ددشمن ستاسو نه |اومونږ د کوه طور ښی طرفته تاسو سره

ٱلطُّورِ | ٱلۡأَيۡمَنَ | وَنَزَّلۡنَا | عَلَيۡكُمُ | ٱلۡمَنَّ | وَٱلسَّلۡوَىٰ ۝

دکوه طور | ښی | او نازل کړل مونږه | په تاسو باندې | من(ترنجبین) | او سلوی(مرزان) |

(دتورات درکولو) وعده اوکړه| اومونږ په تاسو باندې من اوسلوی نازل کړل کړو| اوحکم مو اوکړو چې

كُلُواْ | مِن طَيِّبَٰتِ | مَا | رَزَقۡنَٰكُمۡ | وَلَا تَطۡغَوۡاْ

خورئ | دپاکو څیزونو | هغو نه | چی درکړی دی مونږ تاسو ته | او سرکشئ مه کوئ |

کوم پاکیزه څیزونه مونږ تاسو ته درکړی دی هغه خورئی |او په دې کښې له حد نه مه تیریږئی

فِيهِ | فَيَحِلَّ | عَلَيۡكُمۡ | غَضَبِيۖ | وَمَن يَحۡلِلۡ

په(خوراك د) هغې کښې | ګنې واقع به شی | په تاسو باند | غضب زما | او هغه څوك چې واقع شو

ګنې په تاسو باندې به زما غضب نازل شی | ........................او په چا چې زما غضب نازل شو

عَلَيۡهِ | غَضَبِي | فَقَدۡ هَوَىٰ ۝ | وَإِنِّي | لَغَفَّارٞ

په هغه باند | غضب زما | نو یقینا هغه هلاک شو | او بیشګه زهٔ | خامخا ډیر بښونکې یم |

نو هغه هلاک شو................................| او زه به ضرور د هغه چا بښونکې یم |

لِّمَن | تَابَ | وَءَامَنَ | وَعَمِلَ صَٰلِحٗا | ثُمَّ

هغه چا لره | چی توبه ئې اوویستله | او ایمان ئې راوړوا | او عمل ئې اوکړو نیك | بیا

.................. چه ایمان راوړی |اونیک عمل اوکړی |اوبیا په سمه لار قائم پاتې شی

---

(۱) ٥٣/النجم:٥٣-٥٤.

(۲) ١١/هود:٩٨.

| اهْتَدٰى ﴿۸۲﴾ |
|---|
| په نیغه لار روان شو |

قوله تعالى:- يٰبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ قَدْ اَنْجَيْنٰكُمْ مِّنْ عَدُوِّكُمْ

**دالله ﷻ د انعاماتو ذکر او ورسره خبرداری:-** الله ﷻ چه په بنی اسرائیلو باندې کوم لوئ لوئ احسانونه کړی ووهغه وریادوی. په هغې کښې یوداوو چه هغوی ته ئې د دښمنانونه خلاصې ورکړو اوداهم نه بلکه د هغوی دښمنانو ئې د هغوی د سترګوپه وړاندې په دریاب کښې ډوب کړل یوهم د هغوی نه باقی بچ پاتې نه شو. لکه چه ارشاددې ﴿وَاَغْرَقْنَآ اٰلَ فِرْعَوْنَ وَاَنْتُمْ تَنْظُرُوْنَ﴾[1] یعنی موږ ستا د سترګو وړاندې فرعون ډوب کړو. په صحیح بخاری شریف کښې دی د مدینې منورې د یهودیانود عاشورې په ورځ روژې ساتلوسره اوکتل نورسول الله ﷺ د هغوی نه ددې د سبب معلومات اوکړه. هغوی جواب ورکړو چه هم په دې ورځ موسی ﷺ له الله ﷻ په فرعون باندې کامیابی ورکړې وه. حضور ﷺ اوفرمائیل چه ستاسو په نسبت خو هغه موږ ته ډېرنیزدې دې. حضور ﷺ مسلمانانوته د دغه ورځ د رژوې ساتلو حکم ورکړو[2] بیا الله ﷻ خپل کلیم ته د کوه طور د ښی طرف ته وعده ورکړه. هغه هلته لاړو او شاته بنی اسرائیلو د سخی عبادت شروع کړو.دکوم بیان چه به هم وړاندې راشی. ان شاء الله ﷻ.دغه شان یواحسان ئې په هغوی باندې د من اوسلوی خوراك ورکول اوکړو. د دې پوره بیان په سورة بقره وغیره په تفسیرکښې تیرشوې دې. من دایوخوږ څیز وو چه د هغوی د پاره به د آسمان نه راکوزیدو اوسلوی یوقسم مرغئی وې چه د الله ﷻ په حکم به د هغوی مخې ته راتلې.دوی به د یوې ورځې د خوراك په اندازه د هغې نه اخستلو.زموږ دا درکړې شوې رزق خورئی اود حد نه مه وړاندې کیږئی. په حرام څیز یا په حرامه لار دا مه غواړئی ګنی زما غضب به نازل شی. او په چاچه زماغضب نازل شو یقین اوکړئی هغه بدبخت شو.[3] حضرت شفیع بن مانع رحمه الله فرمائی په دوزخ کښې یواوچت ځائ جوړشوې دې د کوم ځائ نه چه به کافر دوزخ ته راغورزولې شی نود زنځیرونو ځائ ته په څلوېښت کاله کښې رارسی. د دې آیت هم دامطلب دې چه هغوی په کنده کښې راپریوتل او چه څوك هم زما په وړاندې د خپلې ګناه نه توبه اوکړی زه د هغه توبه قبلوم.ګورئی بنی اسرائیلوکښې چه چا د سخی عبادت کړې وو د هغوی د توبه نه پس الله ﷻ هغوی هم اوبښل. غرض چه په کوم کفرشرك اوګناه باندې څوك وی بیا هغه د الله ﷻ د ویرې نه پریږدی الله ﷻ هغه معاف کوی. اودا ده چه د شروع نه ئې ایمان وی اونیك عمل کوی اووی هم په نیغه لاره شکی نه وی د رسول الله ﷺ په سنتواود صحابه کرامو ږ په طریقه وی او په دې کښې ثواب ګنړی. دلته د ثم لفظ د خبر په خبر ترتیب کولود پاره راغلې دې. لکه ارشاد دې ﴿ثُمَّ كَانَ مِنَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ وَتَوَاصَوْا بِالْمَرْحَمَةِ﴾[4]

| قَالَ | يٰمُوْسٰى ﴿۸۳﴾ | عَنْ قَوْمِكَ | اَعْجَلَكَ | وَمَآ |
|---|---|---|---|---|
| اووئیل موسی | ای موسی | دقوم ستانه | راګړندي کړې ته | او څه څیز |

او موسی ﷺ دا ته ولې د خپل قوم نه په تلوار رامخکښې شوې اموسی ﷺ اووئیل

[1] ۲/البقره: ۵۰.
[2] صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة طه باب ﴿ولقد اوحینا الی موسی ان اسربعبادی فاضرب لهم....﴾: ۴۷۳۷، صحیح مسلم: ۱۱۳۰، ابوداؤد: ۲۴۴۴، احمد: ۱/۲۹۱، ابن حبان: ۳۶۲۵.
[3] الطبری: ۱۸/۳۴۷.
[4] ۹۰/البلد: ۱۷.

هُمْ اُولَآءِ عَلٰٓى اَثَرِىْ وَعَجِلْتُ اِلَيْكَ رَبِّ لِتَرْضٰى۝

هغوئ | دغه دي | چه روستو زما روان دی | او په تلوار راغلم زۀ | تاته | اې ربه | چې راضي شې ته

زما ربه هغه ټول ما پسې (راروان دی) |او ما ستا طرفته دراتلو تلوار ځکه اوکړه| چې ته خوشحاله شې

قَالَ فَاِنَّا قَدْ فَتَنَّا قَوْمَكَ مِنْۢ بَعْدِكَ

اووئيل الله | نو بيشکه مونږه | په امتحان کښې واچولو | قوم ستا | روستو ستا نه |

الله ﷻ اوفرمائيل چې مونږ ستا قوم ستا (د راتلو) نه پس په امتحان کښې اچولې دې | او هغوئ خو

وَاَضَلَّهُمُ السَّامِرِيُّ۝ فَرَجَعَ مُوْسٰٓى اِلٰى قَوْمِهٖ غَضْبَانَ

او ګمراهه کړل هغوئ لره | سامری | نو واپس راغې | موسی | قوم خپل ته | سخت غصه

سامری ګمراه کړی دی انو موسی ؑ دغصې او افسوس په حالت کښې خپل قوم ته واپس راغلو

اَسِفًا ۚ قَالَ يٰقَوْمِ اَلَمْ يَعِدْكُمْ رَبُّكُمْ

افسوس کوونکې | اووئيل موسی | اې قومه زما | آيا نۀ وه کړې تاسو سره | رب ستاسو |

..........او وې فرمائيل انې زما قومه آيا ستاسو رب تاسو سره يو ښه وعده نه وه کړې

وَعْدًا حَسَنًا ۚ اَفَطَالَ عَلَيْكُمُ الْعَهْدُ اَمْ اَرَدْتُّمْ اَنْ يَّحِلَّ

وعده | نيکه | آيا وږده شوه | په تاسو باند | زمانه | يا | غواړئ تاسو | چې راشي

بيا آيا په تاسو باندې ډير زيات وخت تير شوې وو| يا دامو خوښه ده چې په تاسو دې

عَلَيْكُمْ غَضَبٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ فَاَخْلَفْتُمْ مَّوْعِدِيْ۝

په تاسو باندې | غضب | دطرفه درب ستاسو | چې خلاف اوکړو تاسو | دوعدې زما |

ستاسو درب غضب خامخاه راشي انو ځکه مو ماسره د پخې وعدې کولو نه مخالفت اوکړو

قَالُوْا مَآ اَخْلَفْنَا مَوْعِدَكَ بِمَلْكِنَا وَلٰكِنَّا

اووئيل هغوئ |چې خلاف نۀ دې کړې مونږه | دوعدې ستا | په اختيار خپل سره | ليکن مونږه

هغوئ ورته اووئيل چې مونږ تاسره د خپلې وعدې نه په خپله خوښه اوړيدلې نه يو اخو خبره داده

حُمِّلْنَآ اَوْزَارًا مِّنْ زِيْنَةِ الْقَوْمِ فَقَذَفْنٰهَا فَكَذٰلِكَ

بار کړې شوی وو | په | پيټو | دکالو د خلقو | نو اوغورزول مونږه هغه | نو دارنګې

چې په مونږ باندې د(قبطی) قوم (پاتې شوی) کالی درانه شوی وو| نو مونږ هغه اوغورزول انو دغه شان

اَلْقَى السَّامِرِيُّ۝ فَاَخْرَجَ لَهُمْ عِجْلًا جَسَدًا لَّهٗ

او غورزول | سامری(هم) | نو راوويستو هغه | دپاره دهغوئ | يو سخې ايوه جوسه | چې وو هغه لره

سامر ی هم اوغورزول انو بيا (سامری) هغې خلقو ته يو سخې راښکاره کړو| چې هغه تش کالبوت وو



| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| خوار | فَقَالُوْا | هٰذَآ | اِلٰهُكُمْ | وَاِلٰهُ | مُوْسٰى | فَنَسِيَ ﴿٨٨﴾ |
| اواز(دسخي) | نو اووئيل هغوئ | دادې | معبود ستاسو | او معبود | دموسي | نو هغه هير كړې دې |
| حو اواز به ئې كولو انو هغوئ بنى اسرائيلو) اووئيل چې هم دا ستاسومعبود دې او د موسى هم معبود دې خو | | | | | | |
| اَفَلَا يَرَوْنَ | اَلَّا يَرْجِعُ | اِلَيْهِمْ | قَوْلًا | وَّلَا يَمْلِكُ | لَهُمْ | |
| آيا نه گوري دوئ | چې جواب نه وركوي | دوئ ته | د خبرې | او نه اختيار لري | دپاره ددوئ | |
| موسى ﷺ هير كړو آيا داخلق نه گوري چې هغه بت دهغوئ دخبرې جواب نه وركوي او نه هغوئ ته | | | | | | |
| ضَرًّا | وَّلَا نَفْعًا ﴿٨٩﴾ | | | | | |
| دنقصان | او نه دنفعې | | | | | |
| دنقصان رسولو اختيار لري | | | | | | |

قوله تعالى - قَالَ فَاِنَّا قَدْ فَتَنَّا قَوْمَكَ مِنْۢ بَعْدِكَ وَاَضَلَّهُمُ السَّامِرِيُّ ﴿٨٥﴾

**د موسى ﷺ د قوم ازميښت:** حضرت موسى ﷺ چه كله د درياب نه پورې وتلو نو يوخائ ته اورسيدل دكوم خائ خلق چه د خپلو بتانو منجوران جوړ شوى ناست وو. بنى اسرائيلو وئيل موسى ﷺ زمونږ د پاره هم داسې يومعبود مقرركړه. هغوى اوفرمائيل تاسو ډير جاهلان خلق ئى دا خو بربادشوى خلق دى اوددوى عبادت هم باطل دې. بيا الله ﷻ هغه ته د ديرشو روژو حكم اوكړو بيائى دا زياتې كړې او پوره څلويښت شوې. شپه ورځ به روژه وو.هغه زركوه طورته لاړو په بنى اسرائيلو باندې ئى خپل رور هارون ﷺ خليفه مقرركړو. هلته چه اورسيدو نو الله ﷻ د دې زر راتلود وجه تپوس اوكړو هغه جواب وركړو چه هغه هم كوه طور سره نيزدې دې راځي. ماتندې اوكړه چه ستا رضامندى حاصله كړم او په هغې كښې ډراندې شم. الله ﷻ اوفرمائيل ستاپه زر راتلوكښې ستاقوم په يوه بله فتنه كښې اخته شو او هغوى د سخى عبادت شروع كړو.داسخې سامرى جوړكړو اوهغوى ئى د دې په عبادت كښې اخته كړل.په اسرائيلى كتابونوكښې دى چه د سامرى نوم هم هارون وو. حضرت موسى ﷺ له د وركولود پاره دتورات تختنې ليكلې شوې وې لكه چه فرمان دې﴿وَكَتَبْنَا لَهٗ فِي الْاَلْوَاحِ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ مَّوْعِظَةً وَّتَفْصِيْلًا لِّكُلِّ شَيْءٍ ۚ فَخُذْهَا بِقُوَّةٍ وَّاْمُرْ قَوْمَكَ يَاْخُذُوْا بِاَحْسَنِهَا ۚ سَاُورِيْكُمْ دَارَ الْفٰسِقِيْنَ﴾[1] يعنى مونږ د هغه دپاره دهرڅيز باره كښې تذكره اودهرڅيز تفصيل ليكلې وو او ورته مو وئيلې وو چه دا مضبوطې اونيسه اوخپل قوم ته هم اووايه چه په دې ښه عمل اوكړي. زه به تاته ډير زر د فاسقانو انجام اوښايم. حضرت موسى ﷺ ته چه كله د خپل قوم د مشركانه كار خبر اوشو نو سخت خفه شو او په ډير غم اوغصه كښې د هغه خائ نه واپس د قوم طرف ته لاړو چه اوگوري هغوى د الله ﷻ د دې دومره نعمتونوسره داسې سخت د بې وقوفتيا اومشركانه فعل مرتكب شو. غم خفگان او تكليف اوغصه هغه ته ډيره زياته ورغلې وه واپس راتلوسره ئى اووئيل گورئى الله ﷻ تاسو سره ټولې نيكې وعدې كړې وې تاسوته يې ددنيا او آخرت خيرونه او انعامونه دركړه خو په لږ شان وخت كښې تاسو د الله ﷻ نعمتونه هيركړل بلكه تاسو خو هغه حركت اوكړو په كوم سره چه د الله ﷻ غضب په تاسو نازل شو تاسو چه ماسره كومه وعده كړې وه د هغې مو بالكل لحاظ اونه ساتلو.[2] اوس بنى اسرائيلو معذرت اوكړوچه مونږ داكار په خپل اختيار سره نه دې

---

[1] ) الاعراف:٧/ ١٤٥.
[2] ) الطبرى:١٨/ ٣٥٠.

کړې خبره دا وه چه کوم سره زر د فرعونيانو مونږ سره قرض اخستې شوی پاتې شوې وو مونږ بهترهم دا اوګڼړل چه دا چرته اوغورزوو نو مونږ ټول په ټول دپرهيزګارئی په توګه هغه اوغورزول.

**دسر زرو و سپينو زرو د سيزلو حکم هم هارون ؑ کړې وو:-** يوروايت کښې دی چه حضرت هارون ؑ پخپله يوه کنده اوکنستله په هغې کښې ئی اُور بل کړو او هغوی ته ئی اوفرمائيل چه هغه ټول کالی په دې کښې واچوئی.دابن عباس ؓ بيان دې چه د هارون ؑ داراده وه چه دا ټول کالی يوځائ شی ويلې شی او يو غونداړې جوړشی. بيا چه کله موسی ؑ راشی اوڅنګه وائی نو هغه شان به اوکړو. سامری په دې کښې هغه موټې واچولوکوم چه هغه د الله ﷻ د قاصد د نښې نه ډك کړې وو اوحضرت هارون ؑ ته ئی اووئيل چه ته د الله ﷻ نه دعااوکړه چه هغه زما خواهش قبول کړی. هغه ته څه خبر وو دعائی اوکړه. هغه داخواهش کړې ووچه ددې نه يوسخې جوړشی دکوم نه چه دسخی په شان آواز هم اوخی نو هغه جوړشو اود بنی اسرائيلو د فتنه سبب جوړشو. نوارشاددې چه هم دغه شان سامری هم ورواچول[1] هارون ؑ يوځل سامری سره خواکې تيريدوهغه هغه سخې تيک ټاك کولو. هارون ؑ تپوس اوکړو څه کوې؟هغه وئيل چه هغه څيز جوړوم کوم چه نقصان به ورکوی او فائده به نه ورکوی.هغه دعااوکړه يا الله دې پخپله داسې کړې اودهغه ځائ نه ئی تشريف يوړو،سامری دعااوکړه چې ياالله دا څخې داسې کړې چې آواز کوی.دسامری په دعاسره دا سخې جوړشو او آوازبه ترې راوتلو.بنی اسرائيل په دهوکه کښې راغله او د دې عبادت ئی شروع کړو.د ده په آواز به هغوی ده ته په سجده پريوتل او په دويم آواز به ئی سر د سجدې نه اوچتولو. دې ټولی نورمسلمانان هم دهوکه کول چه په اصل کښې الله هم دا دې موسی ؑ نه چرته هيرشوې دې او بل ځائ کښې دده په لټون کښې ګرځی.هغه نه داوينا کول هير شوی دی چه داستاسو رب دې.داخلق منجوران جوړشو اود ده نه چاپيره ناست وو.د هغوی بې وقوفتياته ګوره چه دوی دومره نه ګوری چه هغه سخې خوصرف بې ساځيز دې.نه د هغوی ديوې خبرې جواب ورکولې شی اونه اوری.نه هغه ته د دنيااودآخرت د څه خبرې اختياراونه د ده په لاس کښې څه نفع اونه څه نقصان شته آواز چه به ترې کوم راوتلو ددې وجه هم صرف دا وه چه د روستو سورې نه به نی هواتيريدله اوپه خُله به وتله نود هغې آوازبه راتلو.ددې سخی نوم هغوی بهموت کيخودلی وو.

**د باران نه بچ کيدو پرنالې ته اودريدو:-** بل د هغوی دې بيوقوفتياته اوګوره چه د وړې ګناه نه د بچ کيدود پاره ئی لويه ګناه اوکړه. د فرعونيانود امانتونو نه د آزاديدلو د پاره ئی شرك شروع کړو. داخو هم هغه مثال شو چه يوعراقی دحضرت عبدالله بن عمر ؓ نه تپوس اوکړو که په کپړا باندې د ماشی وينه اولګی نو مونځ پرې کيږی که نه؟ نوهغوی اوفرمائيل چه دې عراقيانوته ګوره د رسول الله ﷺ د لور د خيګر ټکړه خو ئی قتل کړه اود ماشی د وينې د مسئلوتپوسونه کوی.[2]

| وَلَقَدْ | قَالَ لَهُمْ | هٰرُوْنُ | مِنْ قَبْلُ | يٰقَوْمِ | إِنَّمَا |
|---|---|---|---|---|---|
| او ونيلی وؤ | دوئ ته | هارون | دمخکښی نه | اي قومه زما | بيشکه |
| اونه دنفع ورکولوا او ددې نه وړاندې هارون هغوئ ته ونيلی هم وو چې ائې زما قومه | | | | | |

| فُتِنْتُمْ | بِهٖ | وَاِنَّ | رَبَّكُمُ | الرَّحْمٰنُ |
|---|---|---|---|---|
| په فتنه کښی اچولې شوی يئ تاسو | په دې(سخې) سره | او بيشکه | رب ستاسو | رحمن دې |
| د دې سخی په سبب په تاسو امتحان کړې شوې دې ......... اوبيشکه ستاسو رب رحمن دې | | | | |

---

[1] الطبری:۱۸/۳۵۵.

[2] صحيح بخاری کتاب الادب باب رحمة الولدوتقبيله ومعانقته:۵۹۹٤، ترمذی:۳۷۷۰،ابن ابی يعلی:۵۷۳۹.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَاتَّبِعُوْنِىْ | وَاَطِيْعُوْٓا | اَمْرِىْ۝ | قَالُوْا | لَنْ نَّبْرَحَ | |
| نو تابعداري اوکړئ زما | او اطاعت اوکړئ | دحکم زما | اوونيل هغوئ | چې هميشه به اوسو مونږ | |
| نو زما تابعداري کوئ او زما حکمونه منئ هغوئ اوونيل چې مونږ خو به دده په عبادت کښې | | | | | |
| عَلَيْهِ | عٰكِفِيْنَ | حَتّٰى | يَرْجِعَ | اِلَيْنَا مُوْسٰى۝ | قَالَ |
| په عبادت ددې سخې | محکم ولاړ | اتردې پورې | چې واپس راشي | مونږ ته موسی | اوونيل موسی |
| مشغول يو ......... تر دې چې موسی ؈ راته واپس راشي موسی ؈ اوونيل چې | | | | | |
| يٰهٰرُوْنُ | مَا مَنَعَكَ | اِذْ | رَاَيْتَهُمْ | ضَلُّوْٓا۝ | |
| اې هارونه | څه څيز منع کړې وې ته | کله چې | اوليدل تا دوئ | چې ګمراهان شول | |
| اې هارونه ته ماپسې ولې نه راتلې کله چې تا دا اوليدل چې دوئ ګمراهان شول؟ | | | | | |
| اَلَّا تَتَّبِعَنِ ؕ | اَفَعَصَيْتَ | اَمْرِىْ۝ | قَالَ | | |
| چې عمل دې اونکړلو په طريقه زما | ايا خلاف ورزي اوکړه تا | دحکم زما | اوونيل هارون | | |
| ايا تاهم زما د حکم نافرماني اوکړه؟ (هارون) اوونيل چې ائې زما دمور | | | | | |
| يَبْنَؤُمَّ | لَا تَاْخُذْ | بِلِحْيَتِىْ | وَلَا بِرَاْسِىْ ۚ | اِنِّىْ خَشِيْتُ | اَنْ تَقُوْلَ |
| اې خويه دمور | مه نيسه | ږيره زما | اونه سر زما | بيشکه زه يريدم | چې ته به اووائې |
| خويه (روره) زما ږيره او زما سر مه رانيسه اما سره دا ويره شوه چې ته به دا او وائې اچې | | | | | |
| فَرَّقْتَ | بَيْنَ | بَنِىْٓ اِسْرَآءِيْلَ | وَلَمْ تَرْقُبْ | قَوْلِىْ۝ | |
| چې اختلاف دې پيدا کړو | په منځ | دبنی اسرائيلو کښې | او لحاظ دې اونکړو | دخبرې زما | |
| تا په بنی اسرائيلو کښې اختلاف پيدا کړو او زما د راتلو انتظار دې اونه کړو | | | | | |

قوله تعالى:- اِنَّمَا فُتِنْتُمْ بِهٖ

**د باطل معبودعبادت کول فتنه ده:**-حضرت موسی ؈ راغلو دې نه وړاندې حضرت هارون ؈ هغه ډير پوهه کړو چه ګوره په فتنه کښې مه پريوځې د رب رحمن نه بغيرد بل چا مخې ته مه ټيټيږه. هغه د هرڅيز خالق اومالك دې.دټولواندازه مقرركونکې هم هغه دې. هم هغه د عرش مجيدمالك دې. هم هغه چه څه غواړي کونکې دې. تاسو زما تابعداری اوحکم منل کوئې. زه چه څه وايم هغه په ځائ راوړنې د کوم نه چه منع کوم منع شئې خودې سرکشوجواب ورکړوچه د موسی ؈ خبره خو به مونږ اومنو. نود هغه وخت پورې به مونږ د دې عبادت پرينږدو نود جنګيدلو مره کيدلود پاره تيارشو.

**د حضرت موسی ؈ د حضرت هارون ؈ نه خفګان:**- حضرت موسی ؈ په سخته غصه اوغم کښې راواپس شوې ووتختنې نې په زمکه باندې واچولې اوخپل رور هارون ؈ پسې په غصه کښې ورغلو اود سر د ويښتونه ئې اونيولواوخپل طرف ته ئې راښکلو. د دې تفصيلي بيان د سورت اعراف په تفسيرکښې تيرشوې دې اوهلته هغه حديث هم بيان شوې دې چه اوريدل د ليدلومطابق نه دې. هغه خپل رورااوخپل جانشين ملامت کول شروع کړه چه د دې بت پرستنې شروع کيدو په وخت کښې تاماته ولې خبر اونه کړو؟ آياچه څه ماتاته وئيلې ووته هم د هغې مخالف شوې؟ ماخوصفاوئيلې ووچه زماپه قوم کښې زماجانشينې کولوسره اصلاح کوه اودفسادپانومه منه.

**د هارون ﷺ حقیقت اظهار:-** حضرت هارون ﷺ جواب ورکړو چه اې زما دمورخویه روزه دا صرف د دې دپاره چه حضرت موسی ﷺ باندې ډیره مینه اورحم غالب راشی نه نی پلار جداجدا ووهم د یوپلار نه وودواړه سکه رونړه وو. هغه عذرپیش کولو چه ګوره په زړه کښې خوزما هم راغلې ووچه تاله راشم اوتاخبرکړم خوبیاخیال راغلو چه دوی یوازې پریخودل ښه نه دی چرته ته مانه نورخفه نه شې چه هغوی دې یوازې ولې پریخودل. دیعقوب ﷺ په اولادکښې دې دا جدائی ولې واچوله؟ اوځه چه ماونیلې وو د هغې ساتنه اوخیال دې ولې اونه ساتلو؟ خبره داده چه په هارون ﷺ کښې د تابعدارنی پوره ماده وه اود حضرت موسی ﷺ به نی ډیر عزت هم کولو اود هغه به نی ډیرلحاظ هم ساتلو.(۱)

قَالَ فَمَا خَطْبُكَ يٰسَامِرِيُّ ۝ قَالَ بَصُرْتُ بِمَا لَمْ يَبْصُرُوْا

اوونیل موسی نو څه کار دې ستا | اې سامریه | اوونیل(سامری) | الیدلی ووما | هغه څیز | چې لیدلی نه وو خلقو

موسی ﷺ اوونیل چې ښه سامریه ته اووایه چې ستا څه قصه ده | هغه اوونیل چې ماته یو داسې څیز ښکاره شو چې

بِهٖ فَقَبَضْتُ قَبْضَةً مِّنْ اَثَرِ الرَّسُوْلِ فَنَبَذْتُهَا

هغه څیز | نو راواخستلو ما | یو موټي(خاوره) | دقدم دنبي | د رسول نه | پس ورواچوو ما هغه

هغه بل چاته نه ښکاریدو | ما د فرښتې د قدمونو نه یو موټئ خاوره راوچته کړه | بیا مې هغه په دې بت

وَكَذٰلِكَ سَوَّلَتْ لِيْ نَفْسِيْ ۝ قَالَ فَاذْهَبْ فَاِنَّ

او دارنګې | ښه ښکاره کړو | ماته | نفس زما (دا کار) | اوونیل موسی | نو ځه(لرې شه) | بیشکه

کښې ورواچوله | اوهم داخبره زما نفس ماته ښه ښکاره کړې وه | موسی ﷺ اوفرمائیل چې ځه تول

لَكَ فِي الْحَيٰوةِ اَنْ تَقُوْلَ لَا مِسَاسَ ۖ وَاِنَّ لَكَ مَوْعِدًا

مقرره ده تادپاره | په ژوند کښې | چې وانې به ته | مه لګیږه(ماسره) | او بیشکه | دې تالره | وخت مقرر

عمر به ته هم دا وائې | چې ماته لاس مه راوړئی | .............. اوتاسره یوه بله وعده (دعذاب هم) ده

لَّنْ تُخْلَفَهٗ ۚ وَانْظُرْ اِلٰٓى اِلٰهِكَ الَّذِيْ

چې هر ګز به روستو نشي ته د هغې نه (بلکه هم په هغې به هلاکیږې) | او اوګوره ته | اخپل معبود ته | هغه

چې دهغې نه روستو کیدې نشې | .............. اوخپل دې معبو د ته اوګوره دکوم چې ته

ظَلْتَ عَلَيْهِ عَاكِفًا ۖ لَنُحَرِّقَنَّهٗ ثُمَّ لَنَنْسِفَنَّهٗ

چې وې ته | په هغه باند | محکم ولاړ | خامخا به مونږ سوزوو هغه | بیا به خامخا ذره ذره کوو هغه

عبادت کوې | .............. مونږ به دا اوسوزو | اوبیا (ددې یره یه) په دریاب کښې

فِي الْيَمِّ نَسْفًا ۝ اِنَّمَآ اِلٰهُكُمُ اللّٰهُ الَّذِيْ لَآ

په دریاب کښې | په ذره کولو سره | بیشکه | معبود ستاسو | الله دې | هغه(الله) | چې نشته دې

اوبهي وو | .............. ستاسو معبود خو بس یو الله ﷻ دې | چې هغه نه سوا بل

اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۗ وَسِعَ كُلَّ شَيْءٍ عِلْمًا ۝

لائق دعبادت | مګر | هم هغه دې | فرانبه دې | د هر څیز نه | په لحاظ دعلم سره |

معبود نشته | هغه هر څیز په خپل علم کښې راګیر کړی دی |

(۱) الطبری:۱۸/۳۵۹.



**قوله تعالى:- قَالَ فَمَا خَطْبُكَ يَٰسَٰمِرِيُّ**

**سامري سره د موسى ﷺ خبرې اوبددعا:** موسى ﷺ د سامري نه تپوس اوكړوچه تا دا فتنه ولې جوړه كړه. داسرې دباجرما اوسيدونكې وو د هغه قوم د غوا عبادت كولو. دهغه په زړه كښې هم د غوامينه وه. هغه بنى اسرائيلوسره د خپل ايمان اظهاركړې وو. د هغه نوم موسى بن ظفروو. په يو روايت كښې دى چه داكرمانى وو په يوبل روايت كښې دى چه د ده كلي نوم سامراوو.(١) هغه جواب وركړوچه كله دفرعون دهلاكت دپاره جبرائيل ﷺ راغلونومادهغه د اس دنوكې لاندې نه لږه شان خاوره واخسته.

د اكثرومفسرينوپه نيز مشهوره خبره هم دا ده. د حضرت على ﷺ نه روايت دې چه كله حضرت جبرائيل ﷺ راغلواوموسى ﷺ ئې واخستو ختلو نوسامري اوليدلو.هغه زر د اس د نوكې لاندې نه خاوره اوچته كړه. حضرت موسى ﷺ جبرائيل ﷺ د آسمانه پورې بوتلو الله ﷻ تورات اوليكلو حضرت موسى ﷺ د قلم د ليكلو آواز اوريدو. خو چه كله هغوى ته د خپل قوم مصيبت معلوم شو نولاندې راغلو او هغه سخې ئې اوسوزولو خود دې اثر سندغريب دې هم د دې خاورې يوه چونډئې ياموتي هغه د بنى اسرائيلوجمع كړې شوو كالود سوزولوپه وخت كښې په هغې كښې واچوله چه د هغې نه ښكلې سخې جوړشو. او دننه نه ډډ وو نو هوابه ورننوتله او د دې نه د وتلو په وخت كښې به آواز وتلو. د حضرت جبرائيل ﷺ په كتلوسره د هغه داخيال راغلې ووچه زه د ده د اس د نوكې لاندې خاوره اوچتوم زه چه څه غوارم هغه به د دې خاورې په اچولوسره جوړيږي. د هغه ګوتې هم هغه وخت اوچې شوې وې. كله چه بنى اسرائيلو اوكتل چه دوى سره د فرعونيانو كالى پاتې شوى دى اوفرعونيان هلاك شو اودا هغوى ته واپس كيدې نه شى نوپريشانه شو.

سامري ونيل چه ګورئى د دې په وجه په تاسو مصيبت نازل شوې دې دا راجمع كړئى اُور ورته كړئى. كله چه هغه راجمع شو او اُورئى اولګولو اوويلى شونود هغه په زړه كښې خيال راغلوچه هغه خاوره په دې باندې ورواچوى هغه د سخى په شكل كښې جوړشى. هم داسې اوشو اوهغه اوونيل چه ستاسو اود موسى ﷺ رب دا دې. هم دغه هغه جواب وركوى چه مادې كښې واچول اوزما زړه هم دا تركيب ماته اوخودلو. كليم الله ﷺ اوفرمائيل چه تاد نه اخستوڅيز په لاس كښې واخستو ستا سزا په دنياكښې اوس هم دا ده چه ته به نه په دنيا كښې چاسره لاس لګولې شې اونه به بل څوك تاسره لاس لګولې شى باقى سزا به ستا په قيامت كښې وى د كوم نه چه خلاصيدل ممكن نه دى د هغه بقايا تراوسه پورې وانى چه لاس مه راوړه.

اوس د خپل معبود حشر هم اوګوره چه د كوم په عبادت باندې به روند پروت وې مونږ هغه سيزو چه ايره شى. هغه د سرو زرو سخې داسې اوسوزيدولكه چه د وينې اوغوښې سخې څنګه سوزى. بيائى د هغې ايره په تيزه هواكښې په سمندركښې ذره ذره والوزوله. روايت دې چه هغه د بنى اسرائيلو د ښځو چه تركومې پورې ممكن وه كالى وغيره راغونډكړل د هغې نه ئې سخې جوړكړو كوم ته چه حضرت موسى ﷺ د سوزيدلونه پس پوكې وركړو اوپه درياب كښې د هغې خاوره او ايره اوبهيوله. چا هم چه د هغې اوبه اوڅكلې د هغه مخ زيړشو.دې سره ټول د سخى عبادت كونكى معلوم شو.اوس هغوى توبه اوكړه اوحضرت موسى ﷺ ته اوونيل چه زمونږ توبه به څنګه قبليږى؟ حكم اوشو چه يوبل قتل كړئى(٢) د دې پوره بيان تيرشوې دې بيا هغوى اوفرمائيل ستاسو معبوددا نه دې. دعبادت مستحق خو صرف الله ﷻ دې باقى ټول جهان د هغه محتاج دې اود هغه ماتحت دې اوهغه د هرڅيز عالم دې.

---

(١) الطبرى:١٨/٣٦٣.

(٢) حاكم:٢/٢٧٩-٣٨٠.

د هغه علم ټول مخلوق راګیرکړې دی. د هریوځیز شمیر هغه ته معلوم دی. یوه ذره هم د هغه د علم نه بهر نه ده. د هرې پاڼې او هرې دانې هغه ته علم دی. بلکه هغه سره چه کوم کتاب دی هغې کښې دالیکلې شوی موجود دی. د زمکې ټول ساه لرونکوته رزق هم هغه وررسوی د ټولوځای هغه ته معلوم دی. هرڅه کولاؤ اوواضح په کتاب کښې لیکلې شوی دی. د الله ﷻ علم محیط کل او په ټولو باندې حاوی دی. د دې مضمون نور هم ډیر آیاتونه دی.

| كَذٰلِكَ نَقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ اَنْۢبَآءِ مَا قَدْ سَبَقَ ۚ |
|---|
| هم دارنګې\| بیانوو مونږ \| په تاباندې \| دخبرونونه \| هغه خبرونه \| چې مخکښې تیر شوی دی\| |
| ائې پیغمبره) هم دغه شان مونږ تاته د پخوانو واقعاتو خبرونه اوروؤ \|..................او مونږ |
| وَقَدْ اٰتَيْنٰكَ مِنْ لَّدُنَّا ذِكْرًا ۖ مَنْ اَعْرَضَ عَنْهُ فَاِنَّهٗ |
| او درکړې دې مونږ تاته\| دخپل طرف نه \| یو ذکر(نصیحت) \| هغه چا \| چې مخ واړولو \| ددې نه \| نو بیشکه هغه |
| درته دخپل طرفنه یوه نصیحت نامه درکړې ده\| څوک چې ددې نه مخ اوګرزوی \|هغه به دقیامت په |
| يَحْمِلُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وِزْرًا ۙ خٰلِدِيْنَ فِيْهِ ؕ وَسَآءَ |
| باروی په ورځ دقیامت \| لوئ بار(دګناهونو) \| همیشه به وی \| په هغې کښې \| او ډیر بد دی(دا بار) |
| ورځ خراب پنډ بار کړی\| او په دغه ځائې کښې به همیشه اوسیږی \| او دغه |
| لَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ حِمْلًا ۙ |
| دپاره دهغوئ\| په ورځ دقیامت \| دحیثیته دبارنه \| |
| ډیر بد ځائې دی\| په اعتبار د بار کولو |

قوله تعالی:- فَاِنَّهٗ يَحْمِلُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وِزْرًا ۙ

**دقیامت په ورځ به خپل خپل بوج اوچتول وی:-** ارشاد دې چه ځنګه دموسی ؑ قصه په اصلی رنګ کښې ستاپه وړاندې بیانولې شی هم داسې نورتیرشوی حالات هم مونږ ستاپه وړاندې بالکل هم هغه شان بیانوو.مونږخوتاته قرآن عظیم درکړې دی.کوم سره چه باطل نه شی ورلنډې دې ځکه چه مونږ دحکمت اوحمدوالایو(۱)هیڅ یونبی ته څه کتاب د دې نه زیات د کمال والا ددې نه زیات جامع اود دې نه زیات دبرکت نه دې ملاو.دهرقسم اودټولونه اوچت کتاب هم داکلام الله دې. په کوم کښې چه تیرشوی خبرونه راتلونکی امور اود کار طریقې ذکردی دا نه منونکې اودې نه مخ اړونکې او د دې د احکامونه تیختګه کونکې د دې نه بغیربه بل څه کښې هدایت لټونکې ګمراه دې اودوزخ ته تلونکې دې. په قیامت کښې به هغه خپل بوج پخپله اوچتوی او په دې کښې به ډوب شی. دې نه چه څوک هم انکاراوکړی هغه دوزخی دې.کتابی وی که غیرکتابی عجمی وی که عربی ددې منکردوزخی دې. لکه ځنګه چه ارشادباری تعالی دې چه زه تاهم هوښیارونکې یم او چاته چه هم اورسی(۲)نو ددې تابعدار هدایت والا اوددې مخالف د ضلالت اوبدبختنې والا کوم چه دلته برباد شو اوهلته دوزخی شو.ددې عذاب نه خو به نه هغه ته خلاصې ملاو شی اونه بچ کیدې شی برابر بوج دې چه په ده باندې به په هغه ورځ وی.

(۱) ٤۱/فصلت:٤۲.
(۲) ٦/الانعام:۱۸.

يَوۡمَ يُنۡفَخُ

په هغه ورځ | چې پوکې به اووهلې شي

په کومه ورځ چې شپیلۍ پوک وهلې شي او ............|

فِي الصُّوۡرِ وَنَحۡشُرُ الۡمُجۡرِمِيۡنَ يَوۡمَئِذٍ زُرۡقًا ﴿۱۰۲﴾

په صور(شپیلۍ) کښې | او مونږ به راجمع کړو | مجرمان | په دغه ورځ | شین سترګي بې نظیره

ټول مجرمان به په دغه ورځ داسې رایوځائې کړو چې شنې سترګې بهٔ ئې نیولې وی | په

يَّتَخَافَتُوۡنَ بَيۡنَهُمۡ اِنۡ لَّبِثۡتُمۡ اِلَّا عَشۡرًا ﴿۱۰۳﴾

چې پټې خبرې به کوی | په منځ خپل کښې | چې وخت نهٔ دې تیر کړې تاسو | مګر لس ورځې

خپل مینځ کښې بهٔ پټې پټې خبرې کوی | چې تاسو خو بهٔ صرف لس ورځې په دنیا کښې پاتې شوې یئ

نَحۡنُ اَعۡلَمُ بِمَا يَقُوۡلُوۡنَ اِذۡ يَقُوۡلُ اَمۡثَلُهُمۡ

مونږ ته ښهٔ معلوم دی | هغه څه | چې وائی به هغوئ | کله چې | به اووائی | کامل سړې دهغوئ

مونږ د دوی په وینا باندې ښه پوهیږو | دغه وخت به په دوئ کښې زیات عقل مند اووائی | چې

طَرِيۡقَةً اِنۡ لَّبِثۡتُمۡ اِلَّا يَوۡمًا ﴿۱۰۴﴾

په عقل کښې | چې وخت نهٔ دې تیر کړې تاسو | مګر | یوه ورځ |

تاسو خو صرف یوه ورځ په دنیا کښې پاتې شوې یئ |

قوله تعالى:- يَوۡمَ يُنۡفَخُ فِي الصُّوۡرِ

**کله چه شپیلئ پوک وهلې شي:**-د رسول الله ﷺ نه تپوس اوشو چه دا صور یعنی شپیلئ څه څیز دې؟ حضور ﷺ اوفرمائیل چه دا یوقرن(نل-شپیلئ) ده چه پوک وهلې به شي.[1] یو بل حدیث کښې دی چه د دې ګولائی د آسمانونو او زمکو په مقدار ده. حضرت اسرافیل ﷺ به داپوک وهی. یوبل روایت کښې دی چه زهٔ څنګه آرام حاصلولې شم څکه چه د شپیلئ پوك وهونکې فرښتې شپیلئ خلهٔ کښې ورکړې ده تندې ئې ښکته کړې دې او په انتظاردې چه کله به حکم کیږی. خلقو وئیل حضور ﷺ بیامونږ څهٔ اولولو وئی فرمائیل چه وائی ﴿حسبنا الله ونعم الوكيل على الله توكلنا﴾[2] په دغه وخت به د ټولوخلقو حشر وی. د ویرې اوخطرې نه د ګناهګارانو سترګې به هم داسې کولاوپاتې کیږی. یوبل ته به پټ پټ وائی په دنیاکښې خو مونږ ډیرکم پاتې شو دزیات نه زیات لس ورځې به تیرې شوی وی مونږ د هغوی د راز دارئی خبروباندې هم پوهیږو. اوپه دوی کښې به ډیرعقل منداو کامل انسان دا وائی چه لس چرته وې؟ مونږ خو په دنیاکښې صرف یوه ورځ پاتې شو.

غرض دا چه کافرانوته به د دنیاداژوند یوخوب غوندې معلومیږی. هغه وخت به هغوی قسمونه خوری وائی به چه صرف یوساعت به مونږ په دنیاکښې پاتې شوی یو. یوبل آیت کښې دی ﴿اَوَلَمۡ نُعَمِّرۡكُمۡ مَّا يَتَذَكَّرُ فِيۡهِ مَنۡ تَذَكَّرَ وَجَآءَكُمُ النَّذِيۡرُ ؕ فَذُوۡقُوۡا فَمَا لِلظّٰلِمِيۡنَ مِنۡ نَّصِيۡرٍ﴾[3] مونږ تاسو ته دعبرت حاصلولوقابل عمر هم درکړې

---

[1] ابوداؤد كتاب السنة باب ذكر البعث والصور:۴۷۴۲وسنده صحيح، ترمذی:۳۲۴۴، ابن حبان:۷۳۱۲، حاكم:۲/۴۳۶، احمد:۲/۱۶۲.

[2] د دې تخریج هم دَ سورت الکهف آیت نمبر۸۸ لاندې تیرشوې دې.

[3] ۳۵/فاطر:۳۷.

وو بیاخبرداري كونكى هم تاسو له راغلي وو. په نورو اياتونوكښې دى چه د دې سوال په جواب كښې چه تاسو څومره موده په زمكه تيره كړې راغلى نى؟ د دې جواب دې يوه ورځ ياد دې نه هم كم[1] په حقيقت كښې دنياده هم د آخرت په مقابله كښې هم دومره ده خوكه په دې خبره باندې نى د وړاندې نه يقين كړې وې نودا فانى به په هغه باقى او دا لږ به په هغه ډيرباندې نه خوښولو بلكه د آخرت سامان به ئى په دې دنياكښې كولو.

وَيَسْـَٔلُوْنَكَ

| او تپوس كوى ستا نه دا خلق

| او (ائې زما محبوبه) خلق ستا نه د

عَنِ الْجِبَالِ فَقُلْ يَنْسِفُهَا رَبِّىْ نَسْفًاۙ فَيَذَرُهَا

دحال دغرونو |نو ورته اووايه |ذره ذره به كړى هغه |رب زما | په ذره كولو سره| نو پرې به ږدى دا زمكه

دغرونو په باره كښې تپوس كوى |نو ور ته اووايه چې زما رب به دغه غرونه والوزوى| او زمكه

قَاعًا صَفْصَفًاۙ لَّا تَرٰى فِيْهَا عِوَجًا وَّلَاۤ اَمْتًاؕ يَوْمَئِذٍ

ميدان | هموار | چى نۀ به وينى تۀ | په هغې كښى | څه كوږ والې | اونۀ لوړ والې | په دغه ورځ

به هموار ميدان پريږدى | ته به په دې كښې نه څه كوږوالئ اووينې اوه نه لوړوالئ|....... په دغه ورځ

يَتَّبِعُوْنَ الدَّاعِىَ لَا عِوَجَ لَهٗ ۚ وَخَشَعَتِ

به پيروى كوى ټول خلق | دبلونكى | چى نۀ به وى | كوږوالې | دغه بلونكى ته | او چپ به شى |

به ټول خلق په بلونكى پسې روان شى| چې دهغې نه به هيڅوک مخالفت كولې نشى | او ټول

الْاَصْوَاتُ لِلرَّحْمٰنِ فَلَا تَسْمَعُ اِلَّا هَمْسًا

اوازونه | رحمن ته | نو تۀ به نۀ اورې | مگر | كشار (دقدمونو) |

اوازونه به د رحمان الله ﷻ داواز په وړاندې ټيټ شى | نو ته به د پښو دكشارى د اواز نه سوا بل اواز نه

قوله تعالى:- فَقُلْ يَنْسِفُهَا رَبِّىْ نَسْفًاۙ

**غرونه به ذره ذره شى:**-خلقوتپوس اوكړوچه د قيامت په ورځ به داغرونه هم داسې باقى وى كه نه؟ د هغوى سوال نقل كولوسره جواب وركوى چه دابه اخواشى اوختم به شى گرخيدونكى به ښكارى او آخر به ذره ذريعه شى.زمكه به دصفا هوارميدان په شان شى.د**(قاع)** معنى هوارصفاميدان**(صفصفا)** هم ددې تاكيددې اودصف صف معنى بغيرراټوكيدونكې زمكه هم ده.خواولننى معنى ډيره ښه ده او دويمه معنى مرادى لازمى ده نه به په دې كښې څه كنده پاتې شى نه غونډئى نه اوچت ځاى نه ښكته ځاى.[2]ددې خطرناكوامورو سره به يوآوازكونكې آواز وركوى چه د هغه په آوازكولوسره به ټول مخلوق په منډه شى د فرمان مطابق به ټول هم يوطرف ته روان وى. نه به اخواخى نه ديخوا نه كوږ سيدا به روان وى. افسوس چه هم دا طريقه ئى د الله ﷻ د امورو په ځاى راوړلوسره داسې مشغول وې. خود نن دا طريقه بالكل بې فائدې ده.

---

[1]) ۲۳/المؤمنون:۱۱۳.

[2]) الطبرى:۳۷۲/۱۸.

په هغه ورځ خو به ښه کتونکی اوریدونکی جوړشي او اواز سره به حکم مني. په تیاره ځایٔ کښې به حشر وی آسمان به راغونډ کړې شي ستوری به راوړژی نمر سپوږمنی به ختم شي د آواز کونکی په آواز باندې به ټول روان شي. هم په دې یو میدان کښې به ټول مخلوق راجمع شي خو دومره د غضب خاموشي به وی چه د ربانی رعب د وجه نه به یوآواز نه راوخي. بالکل سکون او خاموشي به وی. صرف د پښو کشار به وی او غوږایستنې به وی.[۱] چه روان وی خی نود پښو کشار خو به خامخا وی او په اجازت د الله ﷻ به کله ناکله په یوحال کښې خبرې هم کوی خو تګ ئې هم په ادب او خبرې کول هم په ادب لکه چه ارشاد ربانی دې ﴿يَوْمَ يَأْتِ لَا تَكَلَّمُ نَفْسٌ إِلَّا بِإِذْنِهِ ۚ فَمِنْهُمْ شَقِيٌّ وَسَعِيدٌ ۝ فَأَمَّا الَّذِينَ شَقُوا فَفِي النَّارِ لَهُمْ فِيهَا زَفِيرٌ وَشَهِيقٌ ۝﴾[۲] یعنی په کومه ورځ چه هغوی زما په وړاندې حاضرېږی د چا به هم طاقت نه وی چه زما د اجازت نه بغیرژبه کولاوکړی. بعضې به نیکان وی اوبعضې به بدان وی.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يَوْمَئِذٍ | | | | | | |
| په دغه ورځ به | | | | | | |
| لَا تَنْفَعُ الشَّفَاعَةُ | إِلَّا | مَنْ | أَذِنَ | لَهُ الرَّحْمٰنُ | وَرَضِيَ | لَهٗ |
| نهٔ رسوی فائده سفارش | مګر | دهغه چا | چې اجازت اوکړو | هغه ته رحمن | اوراضي شو | دهغه نه |
| اورې | په د غه ورځ به سفارش چا ته فائده نه رسوی | خوهغه چاته چې رحمان ورته اجازت ورکړې وی | | | | |
| قَوْلًا ۝ | يَعْلَمُ | مَا | بَيْنَ أَيْدِيهِمْ | | | |
| په لحاظ دخبرې کولو سره | معلوم دی الله ته | هغه څه | چې په منځ دلاسونو دهغویٔ کښې دی | | | |
| اودهغه دپاره ئې (د شفارس) اجازت کړې وی | هغه دټولو خلقو وړاندې روستو حالات ډیرښه پیژنی | | | | | |
| وَمَا | خَلْفَهُمْ | وَلَا يُحِيطُونَ | بِهٖ | عِلْمًا ۝ | | |
| او هغه څه | چې روستو دهغویٔ نه دی | او احاطه نشي کولې دا خلق | په هغه باند | دحیثیته دعلم نه | | |
| ..............اوخلق په خپل علم سره د هغه (الله ﷻ دمعلوماتو) احاطهٔ نشی کولې | | | | | | |
| وَعَنَتِ | الْوُجُوهُ | لِلْحَيِّ الْقَيُّومِ ۖ | وَقَدْ خَابَ | مَنْ | | |
| او ذلیله شول | مخونه | همیشه ژوندی قائم الله ته | او خراب(ناکام) شو | هغه څوك | | |
| اومخونه بهٔ تل ژوندی اودنظام چلونکی الله ﷻ په وړاندې ټیټ شی | او چاچې .................. | | | | | |
| حَمَلَ | ظُلْمًا ۝ | وَمَنْ يَعْمَلْ | مِنَ الصّٰلِحٰتِ | وَهُوَ | | |
| چې پورته ني کړو | بار دظلم | او هغه څوك چې کوی عمل | دنیکو عملونو نه | او هغه | | |
| دنافرمانئ بوج اوچت کړو هغه به ناکامه وی | او څوک چې نیک کار اوکړی اوهغه | | | | | |
| مُؤْمِنٌ | فَلَا يَخَافُ | ظُلْمًا | وَلَا هَضْمًا ۝ | | | |
| مومن هم وی | نو نهٔ دې یرېږی | دظلم نه | او نهٔ دکمولو دنیکو نه | | | |
| مومن وی | نو هغه سره به نه دظلم څهٔ ویره وی اونه دنقصان | | | | | |

---

[۱] الطبری:۱۸/۳۷۴.

[۲] ۱۱/هود:۱۰۵-۱۰۶.

**قوله تعالی:- يَوْمَئِذٍ لَّا تَنفَعُ الشَّفَاعَةُ**

**د قیامت په ورځ د شفاعت بیان:-** د قیامت په ورځ به د چاهم څه مجال نه وی چه د چا به شفاعت اوکړی مګر چاته چه الله ﷻ اجازت اوکړی. نه به د آسمان فرښتې بغیرد اجازت نه د چا سفارش کولې شی او نه بل څوك بزرګ. ټولو ته به پخپله ویره لګیدلې وی بې اجازته به د چا سفارش نه وی. فرښتې او روح به په صفونوکښې ولاړوی بغیردرب داجازت نه به څوك شونډې نه شی کولاووهلې.پخپله به سیدالناس اکرم الناس رسول الله ﷺهم د عرش لاندې د الله ﷻ په وړاندې به په سجده پروت وی. د الله ﷻ به ښه حمداوثنا اوکړی د ډیر وخته پورې به په سجده پروت وی بیا به الله ﷻ فرمائی اې محمدﷺ سراوچت کړه څه ونیل غواړې ستا خبره به اوریدې شی. شفاعت کوه ستا شفاعت به قبولولې شی. بیابه حد مقرر شی حضورﷺ به د هغوی شفاعت اوکړی جنت ته به ئې بوځی. بیا به واپس شی او بیابه هم داسې وی څلور ځل به هم داسې وی(۱) صلوات الله وسلامه علیه وعلی سائرالانبیاء. یوبل حدیث کښې دی حکم به اوشی چه د دوزخ نه هغه خلق هم راوباسه د چا په زړه کښې چه یومثقال ایمان وی. نو ډیر خلق به راوویستلې شی دچا په زړه کښې چه د دې نه هم کم وی د دې نه هم کم اود دې نه هم کم وی هغه هم د دوزخ نه آزادکړه الخ. (۲) هغه په خپل علم سره د ټول مخلوق احاطه کړې ده.مخلوق د هغه د علم احاطه نه شی کولې لکه چه ارشاد دې د هغه د علم نه صرف هم هغه معلومولې شی کوم چه هغه غواړی. دټول مخلوق مخونه د هغه په وړاندې عاجز ښکته خوار او نرمښی سره ټیټ دی. ځکه چه هغه د مرګ وغیره نه پاك دې. د همیشه نه دې او همیشه به وی نه خوب ورځی اونه پرکالې. پخپله په خپل ځان باندې قایم اوسیدونکې اوهریوخیز د خپل تدبرنه قایمونکې دې. د ټول ساتنه پالنه او حفاظت هم هغه کوی هغه ټول کمالات لری اوټول مخلوق د هغه محتاج دې. بغیرد رب د مرضئ نه نه څه څیز پیداکیدې شی اونه باقی پاتې کیدې شی. چاچه دلته ظلم کړې هغه به هلته بربادوی. ځکه چه هریوحقدارته به الله ﷻ په هغه ورځ د هغه حق ورکوی. تردې چه بغیرښکرو چیلئی له به په ښکره وره چیلئی باندې هم د هغې بدله ورکوی. حدیث قدسی کښې دی چه الله ﷻ به اوفرمائی زما دې په خپل عزت او جلال باندې قسم وی د ظالم ظلم به زه خپلې مخې ته په تیریدو پرینږدم.(۳) صحیح حدیث کښې دی خلقو د ظلم نه بچ شئی ظلم به د قیامت په ورځ تیاره جوړیږی راځی به(۴) اود ټولو نه به نقصان ورکونکې وی. څوك چه الله ﷻ سره په شرك باندې ملاوشو هغه تباه برباد شو ځکه چه شرك خو عظیم ظلم دې. د ظالمانو بدله بیانولوسره دمتقیانو ثواب بیانولې شی چه نه به دهغوی بدی زیاتولې شی اونه به دهغوی نیکئی کمولې شی.(۵) د ګناه د زیاتوالی او د نیکئی د کمی نه هغوی بې ویرې دی.

| وَكَذٰلِكَ أَنزَلْنٰهُ | قُرْاٰنًا عَرَبِيًّا | وَّصَرَّفْنَا | فِيهِ |
|---|---|---|---|
| او دارنګې \| نازل کړو مونږ ه دا کتاب | دقرآن عربي په حیثیت | او بار بار بیان کړل مونږه | په دې کښې |
| اودغه شان مونږ دا قران پاک په عربئ ژبه کښې نازل کړې دې | | او په دې کښې موهر قسم سزاګانې اورولې | |

(۱) صحیح بخاری کتاب الرقاق باب صفة الجنة والنار:۶۵۶۵، صحیح مسلم:۱۹۳.
(۲) صحیح بخاری کتاب التوحید باب قول الله تعالی (وجوه یومئذ ناضرة الی ربها ناظرة):۷۴۳۹، صحیح مسلم:۸۳.
(۳) مسندشامیین:۱/۲۰۶.
(۴) صحیح مسلم کتاب البر، باب تحریم الظلم:۲۵۷۸.
(۵) الطبری:۱۸/۳۷۹.



| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِنَ الْوَعِيْدِ | لَعَلَّهُمْ | يَتَّقُوْنَ | اَوْ يُحْدِثُ | |
| دا بتونو يرونكو نه | دپاره ددې چې هغوئ | خان اوساتي دغلط عمل نه | يا پيدا كړي دا قرآن | |
| دى | چې خلق اوويريږى | يا دا چې دا (قرآن) په كښې پوهه پيد اكړى | | |
| لَهُمْ | ذِكْرًا۝ | فَتَعٰلَى اللّٰهُ | الْمَلِكُ | الْحَقُّ ۚ وَلَا تَعْجَلْ |
| دپاره دهغوئ | نصيحت | پس او چت دى الله | چې بادشاه دى | حق دى | او مه كوه تلوار |
| اوډير لوئې دې هغه الله ﷻ چې حقيقي بادشاه دى | اوته د قران په لوستلو كښې | | | |
| بِالْقُرْاٰنِ | مِنْ قَبْلِ | اَنْ يُّقْضٰى | اِلَيْكَ | وَحْيُهٗ ۡ وَقُلْ |
| په لوستلو دقران | مخكښې دهغې نه | چې پوره كړې شي | تاته | وحي دهغې | او او وايه |
| تلوار مه كوه (چه زر زر ئې لولې) | ددې نه مخكښې چې ددې وحى درباندې پوره را نازله شي | اودا وايه | | |
| رَّبِّ | زِدْنِيْ | عِلْمًا۝ | | |
| اے ربه زما | زيات كړې مالره | په لحاظ دعلم سره | | |
| چې ائي زما ربه زما علم زيات كړه | | | | |

قوله تعالى :- وَكَذٰلِكَ اَنْزَلْنٰهُ قُرْاٰنًا عَرَبِيًّا

**قرآن پاک حق اود الله ﷻ د طرف نه وحى ده**:-د قيامت ورځ خو راتلونكې ده او په هغه ورځ به د نيكو او بدو اعمالوبدله ملاويږى.دخلقو هوښيارولود پاره مونږ دزيرې وركونكې اوويرونكې خپل كلام په صفاعربى ژبه كښې نازل كړو دې دپاره چه هرسړې پوهه شي او په دې كښې په مختلفو طريقوسره خلق اوويرولې شود قسم قسم يرې مو واورولې دې د پاره چه خلق د بدو نه بچ شي او نيكئى حاصلولوكښې اخته شي. يادهغوى په زړونوكښې غوراوفكراونصيحت پيداشى.داطاعت طرفته راتيږ شي د نيكوكارونوكوشش اوكړى. نو بس پاك دې هغه الله ﷻ چه حقيقى بادشاه دې.ددوارو جهانويوازې مالك دې هغه پخپله حق دې اود هغه وعده حق ده دهغه وعيد حق دې اود هغه رسولان حق دى جنت او دوزخ حق دې دهغه ټول ارشادات اودهغه د طرف نه چه څه وى انصاف اوحق دى. د هغه ذات د دې نه پاك دې چه د خبرولونه بغيرچاته سزا وركړى. هغه د ټولو عذر ختموى د چا شك باقى نه پريږدى حق واضحه كوى.بيا سركشوته په انصاف سره سزا وركوى. كله چه زمونږ وحى نازليږى هغه وخت ته زمونږ په كلام لوستلو كښې تندى مه كوه اول ئى پوره اوره.لكه سورت قيامة كښې چه ارشاد دې﴿لَا تُحَرِّكْ بِهٖ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهٖ ۝﴾([1])يعنى تندى كول د هيريدلو دويرې دوحى نازليدوسره سره دا مه لوله داستا په سينه كښې جمع كول اوستا په ژبه تلاوت كول زمونږ په ذمه دى. كله چه مونږ دا لولونو ته ددې لوستلو تابع اوسيږه. بيا په دې باندې پوهه كول هم زمونږ ذمه وارى ده.په حديث كښې دى اول به حضورﷺ د جبرائيل عليه السلام سره سره لوستلوپه كوم كښې چه به حضورﷺ ته مشكل وو.كله چه داآيت نازل شونو حضورﷺ د دې تكليف نه خلاص شو([2])اوتسلى اوشوه چه دالله ﷻ وحى څومره نازليږى ماته به يادېږى يوحرف به هم نه هيروم څكه چه د الله ﷻ وعده شوې ده. هم دا فرمان دلته دې چه د فرښتې قراءت چپ اوره كله چه هغه اولولى بيا ئى ته لوله اوزمانه د خپل علم د زياتوالى دعاكوه.نوحضورﷺ دعا اوكړه

[1]) ٧٥/القيامة:١٦.
[2]) صحيح بخارى كتاب بدء الوحى باب كيف كان بدء الوحى الى رسول الله: ٥،صحيح مسلم، كتاب الصلاة:٤٤٨.

او الله ﷻ قبوله كړه او تروفات پورې په علم كښې زياتيدلو.(ﷺ) حديث كښې دي چه وحى به وار په وار برابره راتله تردې چه په كومه ورځ حضورﷺ وفات كيدلو په هغه ورځ هم په كثرت سره وحى نازل شوه.[1]
د ابن ماجه په حديث كښې د حضورﷺ دادعانقل ده ﴿اللهم انفعني بما علمتني وعلمني ما ينفعني وزدني علما والحمد لله على كل حال﴾ ترمذى كښې هم داحديث دي اوپه آخره كښې داالفاظ زيات دى ﴿واعوذ بالله من حال اهل النار﴾[2]

وَلَقَدْ عَهِدْنَآ
| او په تحقيق سره حكم كړى وو مونږه |
| .........او مونږ ددې نه مخكښې دادم ﷺ

اِلٰٓى اٰدَمَ مِنْ قَبْلُ فَنَسِيَ وَلَمْ نَجِدْ لَهٗ عَزْمًا ﴿۱۱۵﴾
| ادم علیه السلام ته | مخكښې ددې نه | نو هير شو دهغه | اواونۀ موندو مونږه | هغه لره | كلكه اراده |
نه وعده اخستې وه| خو دهغه نه غفلت اوشو| او مونږ په هغه كښې (د نافرمانۍ) كلكه اراده نه موندلې

وَاِذْ قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ فَسَجَدُوْٓا اِلَّآ
او كله چې | اووئيل مونږه | فرښتو ته | سجده اوكړئ | ادم ته | نو سجده اوكړه هغوئ | مګر نه
ا اويادكړه هغه وخت چې هركله مونږ فرښتوته اووئيل | چې تاسو ادم ﷺ ته سجده اوكړئ

اِبْلِيْسَ ۭ اَبٰى ﴿۱۱۶﴾ فَقُلْنَا يٰٓاٰدَمُ اِنَّ هٰذَا عَدُوٌّ لَّكَ
ابليس | انكار ئې اوكړو | نو اووئيل مونږه | اې ادمه | بيشكه | دا دشمن دى | ستا
نوټولو سجده او كړه اخو ابليس اونه كړه | هغه انكار اوكړو | نو مونږ اووئيل چې ائې ادم ﷺ! داستا

وَلِزَوْجِكَ فَلَا يُخْرِجَنَّكُمَا مِنَ الْجَنَّةِ فَتَشْقٰى ﴿۱۱۷﴾ اِنَّ
او دښځې ستا | پس اونۀ باسى تاسو دواړو لره | دجنت نه | نوبه مشقت كښې به پريوزې | بيشكه
اوستا د ښځې دښمن دې| نو هسې نه تاسودواړه د جنت نه بهر اوباسى| نو په مصيبت كښې به اخته

لَكَ اَلَّا تَجُوْعَ فِيْهَا وَلَا تَعْرٰى ﴿۱۱۸﴾ وَاَنَّكَ لَا تَظْمَؤُا
دې تالره | چې نۀ به وږې كيږې | په هغې كښې | اونۀ به بربنډ يږې | اوبيشكه ته | نۀ به تږې كيږې
شې دلته (په جنت) كښې به نه ته اووږې كيږې| اونه به چرې بربنډيږې |اودا هم ده چې نه به چرې تږې

فِيْهَا وَلَا تَضْحٰى ﴿۱۱۹﴾ فَوَسْوَسَ اِلَيْهِ الشَّيْطٰنُ قَالَ
په هغې كښې | اونۀ به دې ګرمى كيږې | نو وسوسه واچوله | هغه(ادم) ته | شيطان | اووئيل هغه
كيږې | اونه به د ګرمۍ نه تنګيږې | نو شيطان دهغوئ په زړه كښې وسوسه واچوله | هغه اووئيل چې

يٰٓاٰدَمُ هَلْ اَدُلُّكَ عَلٰى شَجَرَةِ الْخُلْدِ وَمُلْكٍ لَّا يَبْلٰى ﴿۱۲۰﴾
اې ادمه | ايا اوښايم تاته | اونه دهميشوالى | او بادشاهى | چې نۀ به ختميږى |
ائې ادم ﷺ! ايا زه تاته دهميشه پاتې كيدو ونه اوښايم| او داسې بادشاهى چې كمزورې كيږي به نه

[1] صحيح بخارى كتاب فضائل القرآن باب كيف نزل الوحى واول ما نزل:٤٩٨٢، صحيح مسلم:٣٠١٦.
[2] ترمذى كتاب الدعوات باب (سبق المفردون...):٣٥٩٩.

| فَأَكَلَا | مِنْهَا | فَبَدَتْ | لَهُمَا | سَوْاٰتُهُمَا |
|---|---|---|---|---|
| نو اوخوړه دواړو سره \| دهغې ونې نه \| نو په نتيجه کښې ښکاره شو \| دواړو ته \| دپردې خايونه د دواړو |
| نودواړو دهغې ونې نه خوراک اوکړو \| نو خپل د پردې ځايو نه (شرمګاهونه) ورته ښکاره شو |

| وَطَفِقَا | يَخْصِفٰنِ | عَلَيْهِمَا | مِنْ وَّرَقِ الْجَنَّةِ | وَعَصٰى |
|---|---|---|---|---|
| او شروع اوکړه دواړو \| چې نښلولې ئې \| په ځان پورې \| دپاڼو (دونو) دجنت نه \| او نافرماني اوکړه |
| اودواړو په ځان پورې د جنت پاڼې انښلول شروع کړل \| او آدم ﷺ نه د خپل رب په |

| اٰدَمُ | رَبَّهٗ | فَغَوٰى | ثُمَّ | اجْتَبٰهُ | رَبُّهٗ | فَتَابَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ادم \| درب خپل \| نو بې لارې شو \| بيا \| غوره کړو هغه لره \| رب دهغه \| نو رجوع ئې اوکړه |
| په حکم کښې تقصير اوشو \| اوهغوئ په غلطئ کښې واقع شول \| بيا خپل رب هغه مقبول کړونودهغه توبه ئې |

| عَلَيْهِ | وَهَدٰى |
|---|---|
| په هغه باند \| او هدايت ئې اوکړو هغه ته \| |
| قبوله کړه \| اوسمه لار ئې ورته اوخودله . |

قوله تعالٰى :- وَلَقَدْ عَهِدْنَآ اِلٰٓى اٰدَمَ مِنْ قَبْلُ فَنَسِيَ

**انسان د خطا او نسيان جوړه دې** :-ابن عباس ﷺ فرمائي انسان ته انسان ځکه وائي چه ده ته د ټولو نه اول کوم حکم ملاوشو هغه ده هيرکړو.[1]مجاهد رحمه الله اوحسن بصري رحمه الله فرمائي چه داحکم آدم ﷺ پريخودو[2]بيا دآدم ﷺ د بزرګئ اوشرافت بيان کولې شي.سورة بقره، اعراف،حجر او سورة کهف کښې دشيطان آدم ﷺ ته دسجدې نه کولوپوره تفصيلي بيان تيرشوې دې او په سورة "ص" کښې به هم د دې بيان راځي. ان شاء الله ﷻ. په دې ټولوسورتونو کښې د آدم ﷺ د پيدائش بيا دهغوی د بزرګئ د څرګندونې د پاره د فرښتو هغه ته د سجدې کولو د حکم اود ابليس د پټې دښمنئ د اظهاربيان شوې دې. هغه تکبراوکړو اود الله ﷻ د حکم نه ئې انکاراوکړو.هم هغه وخت حضرت آدم ﷺ پوهه کړې شو چه ګوره دا ستا اوستا دبي بي حوا دښمن دې دده په دهوکه کښې مه راځه ګنې محروم به کړې شې اودجنت نه به اوويستلې شې اوبه سخت تکليف کښې به واچولې شې.د رزق د لټون محنت به دې په سرراشي دلته خوبې محنت اوبې مشقت رزق دررسي.دلته خو ناممکن دی چه وږې پاتې شې. ناممکن دی چه بربنډپاتې شې د دننه اوبهر تکليفونو نه بچ يئې. دلته به دې نه تنده اونه ګرمي به دننه توګه په تکليف کړی نه به دې د ګرمئ تيزوالې په بهرنئ توګه پريشان کړی.که دشيطان په دهوکه کښې راغلې نو دا مزې به درنه واخستلې شی اود دې مقابل چه کوم تکليفونه دی هغه به مخې ته راشي.خو شيطان هغه په مختلفو چالونوسره راګيرکړواو په مکرسره ئې په خپلو خيروکښې راوستو.په قسمونو قسمونو ئې هغه ته دخپلې خيرخواهئ يقين ورکړو. هم په اول خل الله ﷻ هغه ته فرمائيلې ووچه د جنت ټولې ميوې خوره خودې ونې ته نيزدې کيږه هم مه. خوشيطان هغه دومره دهوکه کړو چه آخرئ دې ونې نه خوراك اوکړو.هغه دهوکه کولوسره ورته اوونيل چه څوک د دې ونې ميوه اوخوری هغه به د هميشۀ دپاره دلته وی. صادق مصدوق حضوراکرم ﷺ فرمائي په جنت کښې يوه ونه ده چه که

[1] الطبری:۱۸/۳۸۳.
[2] الطبری:۱۸/۳۸۳.

يوسوردهغې دسورى لاندې دسلوکالوپورې روان وى نوهغه به ختم نه شى د هغې نوم شجرة الخلدې.
(١) (مسنداحمد، ابوداؤد،طيالسى)

**اخر کار دواړه دهوکه شو او ونه ئې اوخوړله:**-دواړود ونې نه څه خوړلې ووچه جامې ترې کوزې کړې شوې اواندامونه ئې ښکاره شو.ابن ابى حاتم کښې دى رسول الله ﷺ فرمانى آدم ﷺ نى غنم رنګې اوږد قد،قامت اوډيرو ويښتووالا جوړکړې وو.دکهجورې د ونې په شان قدئى وو. ممنوع ونې نه خوړلو سره لباس کوزکړې شو خپل ستر ته په کتلوسره د شرم نه اخوا ديخوا پټيدلو او په يوه ونه کښې ويښته او نختل زر ئى د څان خلاصولوکوشش کولو چه الله ﷻ آواز اوکړو اې آدم آيا ته زما نه تختې؟ الله ﷻ کلام اوريدوسره ئى په ادب باندې عرض اوکړواې پروردګار د شرم د وجه نه چرته سر پټوم. ښه ده دا خواوفرمايه چه د توبه اورجوع نه پس هم جنت ته رسيدې شم؟جواب ملاؤشو او(٢) هم دا معنى ده د الله ﷻ د دې فرمان چه آدم ﷺ د الله ﷻ نه يوڅوکلمې واخستلې د کوم په وجه چه الله ﷻ بيا هغه په خپله مهربانئى کښې واخستلو.داروايت منقطع دې اوددې په مرفوع کيدلوکښې هم کلام دې.کله چه د آدم ﷺ او بى بى حوا نه لباس واخستلې شو نو دې وخت کښې دجنت د ونوپاڼې په څان پورې اونخلولې.
ابن عباس ﷺ فرمائى چه دانځرپانړو باندې خپل څان پټ کړو.دالله ﷻ د نافرمانئى په وجه دنيغې لارې نه اخواشو.خوآخر الله ﷻ بيادهغوى لارخودنه اوکړه توبه ئى قبوله کړه او په خپلو خاص بنديګانو کښې ئى شامل کړل.

**د ادم ﷺ او موسى ﷺمينځ کښې مکالمه:**-په صحيح بخارى وغيره کښې دى حضورﷺ فرمائى چه د حضرت موسى ﷺ اوحضرت آدمﷺ په مينځ کښې خبرې اترې اوشوې. حضرت موسى ﷺ اوفرمائيل چه تا د خپلې خطا په وجه ټول انسانان د جنت نه راوويستل او هغوى دې په مشقت کښې واچول. حضرت آدم ﷺ جواب ورکړو اې موسى ﷺ ته الله ﷻ په خپل کلام او خپل رسالت سره ممتاز کړې. ته ماته په دې خبره باندې الزام راکوې کومه چه الله ﷻ زما د پيدائش نه وړاندې مقدر او مقررکړې وه. نو آدم ﷺ موسى ﷺ په دې خبرواتروکښې لاجواب کړو.(٣) په يوبل روايت کښې دموسى ﷺ داهم فرمان دې چه ته الله ﷻ په خپل لاس باندې پيداکړې وې او په تاکښې هغه خپل روح پوک وهلې وو او ستا په وړاندې ئى په خپلو فرښتو باندې سجده کړې وه اوته ئى په خپل جنت کښې ځاى کړې وې. د آدم ﷺ په دې جواب کښې داهم روايت دې چه الله ﷻ تاته هغه تختئى درکړې په کوم کښې چه د هرڅيز بيان وو اوپه غوږکښې خبرې کولوسره څان ته نيزدې کړې. اوښايه الله ﷻ تورات کله ليکلې وو؟ جواب ملاوشو څلويښت کاله وړاندې. تپوس ئى اوکړو چه په دې کښې داليکلې وو چه آدم ﷺ د الله ﷻ نافرمانى اوکړه او لار ئى هيره کړه. وئيل او. وئى فرمائيل چه ته بياماته د دې امر الزام ولې راکوې؟ چه زما په تقديرکښې الله ﷻ زما د پيدائش نه هم څلويښت کاله وړاندې ليکلې وو.(٤)

| مِنْهَا | اهْبِطَا | قَالَ |
|---|---|---|
| ددې جنت نه | کوز شئ دواړه(دلې) | اووئيل الله |
| الله ﷻ ورته اوفرمائيل چې تاسو دواړه اوس | | |

١) احمد:٢/٤٥٥.
٢) ابن ابى حاتم:١/٩٩، الطبرى:١٢/٣٥٤
٣) صحيح بخارى كتاب التفسير سورة طه باب (فلايخرجنكمامن الجنة فتشقى....):٤٧٣٨، صحيح مسلم:٢٦٥٢، ابوداؤد :٤٧٠١، احمد:٢/٢٤٨، ابن حبان:٦١٨٠.
٤) صحيح مسلم كتاب القدر باب حجاج آدموموسى ﷺ:٢٦٥٢.



جَمِيعًا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ ۚ فَإِمَّا يَأْتِيَنَّكُم مِّنِّي

ټول | بعضې ستاسو | دپاره د بعضو | دشمنان يئ | نو كه چرې | راشي تاسو ته | زما د طرف نه

دجنت نه كوزشئ په يو ځل | تاسو به ديو بل دښمنان يئ ابيا كه چرې زما د طرفه تاسو ته

هُدًى فَمَنِ اتَّبَعَ هُدَايَ فَلَا يَضِلُّ وَلَا

هدايت | نو هغه چاچې | تابعداري اوكړه | دهدايت زما | نو نۀ به بې لارې كيږي هغه | او نۀ به

هدايت درشي | نو څوک چې زما دهدايت پيروي اوكړي | نو هغه بۀ نه گمراه كيږي

يَشْقَىٰ ۝ وَمَنْ أَعْرَضَ عَن ذِكْرِي فَإِنَّ لَهُ

بدبخته كيږي | او هغه څوک | چې مخ ئې واړولو | دنصيحت زمانه | نو بيشكه | وي به هغه لره

اونه بۀ محرومه پاتې كيږي | اوڅوک چې زما د ياد نه مخ واړوي | نو بيشكه دهغه

مَعِيشَةً ضَنكًا وَنَحْشُرُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَعْمَىٰ ۝ قَالَ

ژوند | النډتنګ | او راپورته به كړو مونږ هغه | په ورځ دقيامت | ړوند | اوبه وائي هغه

ژوندون به لنډتنګ وي | اودقيامت په ورځ به مونږهغه ړوندراپاسوؤ | هغه به اووائي

رَبِّ لِمَ حَشَرْتَنِي أَعْمَىٰ وَقَدْ كُنتُ بَصِيرًا ۝ قَالَ

اې ربه زما | ولې راپورته كړم تا زۀ | ړوند | او بې شكه وم زۀ | ليدونكې | اوبه وائي الله

چې ائې زما ربه تازه ړوند ولې راپاسوم | حالانكه زه په دنيا كښې دستركو خاوند وم | حكم به اوشي چې

كَذَٰلِكَ أَتَتْكَ آيَاتُنَا فَنَسِيتَهَا ۖ وَكَذَٰلِكَ الْيَوْمَ

همدارنګې | راغلې وې تاته | آيتونه زمونږ | نو هير كړل تا هغه | او همدارنګې | نن ورځ

چې دغه شان تاته زمونږ ايتونه درغلې وې | اخو تادهغې پرواه اونه كړه | او دغه شان به

تُنسَىٰ ۝

تۀ(هم) هيرولې كيږې |

ته نن هير كړې شې |

**قوله تعالي:- قَالَ اهْبِطَا مِنْهَا جَمِيعًا**

**حضرت آدم ؑ اوحضرت بي بي حوا د جنت نه اوويستلې شول:** حضرت آدم ؑ بي بي حوا اوابليس لعين ته هغه وخت اوئيلې شوچه تاسو ټول د جنت نه اوځئ. په سورت بقره كښې د دې پوره تفسير تير شوې دې. تاسو په خپل مينځ كښې د يوبل دښمنان ئي يعنى اولاد آدم ؑ او اولاد ابليس. تاسو له به زما رسولان او زما كتابونه درځي.

**دقران پاک د مخ اړونكي بد حالت:**- زما د خودلې شوې لارې منونكي به نه په دنياكښې رسواكيږي او نه په آخرت كښې ذليل كيږي اودحكمونومخالف زما د رسولانو د لارې نه رامنع شوي اود نور لارو سالك به په دنياكښې هم تنګ وي اوتسلي اود زړه كولاوالې به ورته حاصل نه وي اودخپلو گمراهوبه وجه به تنګوسختوكښې اوسيږي. سره د دې چه په ظاهره به ورته د خوراك څښاك اوسيدو اغوستو فراخي

وی خو په زړه کښې یقین اوهدایت د نشتوالی په وجه همیشه په شك شبه تنګ والی اوقلت کښې اخته وی. بدنصیب د الله ﷻ د رحمت نه محروم د خیرنه خالی ځکه چه په الله ﷻ باندې ایمان نه وی د هغه د وعدې یقین نه وی دمرګ نه پس په نعمتونوکښې به نې هیڅ حصه نه وی. الله ﷻ سره بدګمانه دی تلونکې څیز راتلونکې نه ګنړی ګنده روزتی دی ګنده عملونه نې دی قبر نې تنګ اوتیاره دې.هلته به داسې راتینګولې شی چه ښئ پوښتئ به نې په ګسه کښې اوګسه په ښئ کښې ورننوځی.رسول الله ﷺفرمانی چه دمؤمن قبرتکه شنه باغیچه وی اویا لاسه کولاووی. داسې معلومیږی لکه چه سپوږمئ په دې کښې وی. ښه رڼا او نور خوریږی لکه چه د څوارلسمې شپې سپوږمئ چه راختلې وی. ددې آیت شان نزول معلوم دې چه زما د ذکر نه مخ اړونکو ژوند به تنګ وی د دې نه مراد دکافر په قبرکښې په هغه عذاب دې. په الله ﷻ قسم چه په هغه باندې یوکم سل اژدهاګانې مقررولې شی.دهرې یوې اوه اوه سرونه وی چه هغه به د قیامته پورې ټکونه ورکوی.(۱)ددې حدیث مرفوع کیدل بالکل منکر دی.په یوښکلې سندسره هم روایت دې چه دې نه مراد د قبرعذاب دې.(۲) دې به د قیامت په ورځ ړوندراوچتولې شی. بغیرد دوزخ نه به هغه ته هیڅ څیز نه ښکاری. نابینا به وی اود حشر میدان ته به روان وی اود دوزخ مخې ته به اودرولې شی. لکه چه ارشاد دې ﴿ وَنَحْشُرُهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ عَلٰى وُجُوْهِهِمْ عُمْيًا وَّبُكْمًا وَّصُمًّا ۭ مَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ۭ كُلَّمَا خَبَتْ زِدْنٰهُمْ سَعِيْرًا ﴾ (۳)یعنی مونږ به دوی د قیامت په ورځ پرمخې ړانده ګونګیان او کاڼه جوړولوسره حشر ته راولو. د دوی اصلی ځائ دوزخ دې دوی به وائی چه ماخو به په دنیاکښې ښه کتل اوپوهیدلم بیازه ولې ړوندکړې شوم؟ جواب به ملاوشی چه دا بدله ده د الله ﷻ د آیاتونونه د مخ اړولو اوداسې کیدلو لکه چه څه خبر نه وی. نونن به مونږ هم تاسره هم داسې معامله کوو لکه چه ته زمونږ د یادنه کوزشوې. لکه چه بل ځائ ارشاد دې ﴿فَالْيَوْمَ نَنْسٰىهُمْ كَمَا نَسُوْا لِقَاۗءَ يَوْمِهِمْ هٰذَا ۙ وَمَا كَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يَجْحَدُوْنَ﴾(۴) نن به مونږ هغوی بالکل هم هغه شان هیرکړو لکه چه هغوی د نن ورځې ملاقات هیرکړې وو. نودابرابر اود عمل مطابق بدله ده. په قرآن باندې ایمان لرلوسره د دې د احکامو عامل کیدوسره که د یوسړی د دې الفاظ د یاد نه اوځی نوهغه په دې وعیدکښې داخل نه دې د ده د پاره رسول الله ﷺ فرمانی چه هغه به د قیامت په ورځ الله ﷻ سره د جذامی په حالت کښې ملاویږی.(۵)

| وَكَذٰلِكَ | نَجْزِيْ | مَنْ | اَسْرَفَ |
|---|---|---|---|
| او همدارنګې | بدله ورکوؤ مونږ | هغه چاته | چې اسراف ئې اوکړو |

اودغه شان مونږ هر هغه چالره سزا ورکوؤ چې د حد نه وړاندې تیر شی

| وَلَمْ يُؤْمِنْۢ | بِاٰيٰتِ | رَبِّهٖ ۭ | وَلَعَذَابُ | الْاٰخِرَةِ | اَشَدُّ |
|---|---|---|---|---|---|
| او ایمان ئې رانوړو | په ایتونو | درب خپل | او خامخا عذاب | داخرت | زیات سخت دې |

اود خپل رب نخښې اونه منې اوداخرت عذاب ډیر سخت اوډیر پاتې کیدونکې دې ایا دوئ

---

(۱) ابن حبان: ۳۱۲۲.

(۲) حاکم:۲/۳۸۱ وسنده حسن.

(۳) ۱۷/الاسراء:۹۷.

(۴) ۷/الاعراف:۵۱.

(۵) احمد:۵/۲۸۵، ابوداؤدکتاب الوتر باب التشدید فیمن حفظ القرآن ثم نسیه:۱۴۷۴

| |
|---|
| وَأَبْقَىٰ ۝ أَفَلَمْ يَهْدِ لَهُمْ كَمْ أَهْلَكْنَا |
| او زيات باقي پاتې کيدونکي دي \| ايا ښکاره شوې نه ده \| دوئ ته \| چې څومره ډير \| هلاك كړل مونږه |
| ددې نه هم سبق وانه خستلو چې مونږ تراوسه دد وئ نه وړاندې څومره ډير قومونه تباه کړی دی |
| قَبْلَهُمْ مِّنَ الْقُرُونِ يَمْشُونَ فِي مَسَاكِنِهِمْ ۗ إِنَّ |
| مخکښې ددوئ نه \| دزمانې دخلقو نه \| چې(نن) ګرزی دوئ \| په کورونو دهغوئ کښې \| بیشکه |
| چې دهغوئ په کورونو کښې اوس دوئ ګرځی \| بیشکه په دې کښې |
| فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّأُولِي النُّهَىٰ ۝ وَلَوْلَا |
| په دې(هلاکت دمنکرینو) کښې \| ډیرې نښې دی \| دپاره دخاوندانو \| دعقلونو \| او که چرې نه وې |
| دعقل دخاوندانو دپاره نخښې پرتې دی اوکه چرې ستا درب |
| كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِن رَّبِّكَ لَكَانَ لِزَامًا |
| خبره \| چې مخکښې شوې ده \| دطرفه د رب ستا نه \| نو خامخا وو به \|(عذاب) لازم \| |
| د طرفه یوه خبره داول نه خلاصه شوې نه وې اویو وخت مقرر نه وې نو په دوئ به |
| وَأَجَلٌ مُّسَمًّى ۝ فَاصْبِرْ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ وَسَبِّحْ |
| او که نۀ وې یوه نیټه \| مقرره \| نو صبر کوه \| په هغه څه باند \| چې وائی دوئ \| او تسبیح وایه \| |
| عذاب راتلل لازم شوی وونوته ددوئ په خبرو باندې صبر اوکړه اودخپل رب پاکی دهغه |
| بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ غُرُوبِهَا ۖ |
| سره دحمد \| درب خپل \| مخکښې \| د راختلو \| د نمر نه \| او مخکښې \| دپریوتلو دهغې نه \| |
| دتعریفونو سره بیانوه دنمر دختلو نه مخکښې اود ډوبیدو نه وړاندې |
| وَمِنْ آنَاءِ اللَّيْلِ فَسَبِّحْ وَأَطْرَافَ النَّهَارِ لَعَلَّكَ |
| او په ځینو وختونو دشپې کښې \| نو تسبیح وایه \| او په طرفونو \| د ورځ کښې \| شاید چې تۀ \| |
| اودشپې په ځینو وختونو کښې ئې هم تسبیح کوه او د ورځې په اول او په آخر کښې هم دپاره ددې |
| تَرْضَىٰ ۝ |
| راضی شې \| |
| چې خوشحاله اوسیږې |

**قوله تعالى:- وَلَعَذَابُ الْآخِرَةِ أَشَدُّ وَأَبْقَىٰ ۝**

**د آخرت عذابونه ایر سخت دی:** ځوك چه د الله ﷻ د حدونوپرواه اونه کړی د الله ﷻ آیاتونه دروغ اوګنړی هغه مونږ هم دغه شان د دنیااوآخرت په عذابونوکښې راګیروو. خاص کر د آخرت عذاب خو ډیر دروندې اوهلته به هیڅ ځوك نه وی چه بچ ئې کړې شی. ددنیاعذابونه خونه د هغې د سختئی د مقابلې دی،اونه په موده کښې هغه د همیشه د پاره او د غم نه ډك دی.ملاعنه کونکو ته د پوهه کولو

سره رسول مقبول ﷺ هم دا فرمائيلي وو ددنياسزا داخرت د عذابونوپه مقابله كښې بالكل سپكه او هيڅ څيز نه دي. (۱)

**د ړومبنوقومونود تباهئ ذكر:-** كوم خلق چه تانه منى اوستادشريعت نه انكاركوى آياهغوى د دې خبرې نه هم عبرت نه حاصلوى چه ددوى نه وړاندې كوموخلقو دا طريقه راويستې وه مونږ هغه تباه برباد كړل. نن د هغوى يوه ستركه رېبدلې يوه ساه روانه اويوه ژبه خبرې كونكې باقى نه ده پاتې. د هغوى اوچت او پاخه كولاو اوښائسته محلونه ورانې كنډرې پرتې دى كوم ځائ نه چه به د هغوى تګ راتګ كيدلو. كه چرې د دوى عقل وې نوداسامان دهغوى د عبرت دپاره ډيرڅه وو. آيادوى پدې زمكه باندې په تلوراتلوسره دقدرت په دې نښنو باندې د زړه نه غورنه كوى؟ آياپه غوږونوباندې دهغوى د درد نه ډكې قصه اوريدوسره عبرت نه حاصلوى؟ آيادهغوى وران شوى كلو ته په كتوسره سترګې نه كولاوېږى ؟ دوى دسترګو ړانده نه دى بلكه د زړه هم ړانده دى(۲)په سورت الٓمٓ السجده كښې هم د دې پورتنى آيت په شان آيت دې. الله ﷻ داخبره مقرركړې ده چه تركومې په بنديګانوباندې خپل حجت ختم نه كړى هغوى نه په عذاب كوى.دهغوى د پاره هغه يووخت مقرركړې دى. هم هغه وخت به د هغوى د اعمالو سزا هغوى ته ملاوېږى.كه داخبره نه وه نو يوخوابه ئې ګناه كوله اوبل خوابه راګيريدل ته ددوى په تكذيب باندې صبركوه.د دوى په فضول خبروباندې برداشت كوه او تسلى ساته چه دوى زما د قبضې نه بهرنه دى.د نمر د راختلونه د وړاندې نه مراد دسحر مونځ دې اود نمر د ډوبيدونه د وړاندې نه مراد د مازيګرمونځ دې.

**د سحرمابنام ذكر اودعا:-** بخارى اومسلم كښې دى چه مونږ يوځل رسول مقبول ﷺ سره ناست وو حضور ﷺ دڅوارلسمې شپې سپوږمئى ته اوكتل وئې فرمائيل چه تاسوبه زرخپل رب داسې وينئى څنګه چه دا سپوږمئى بغيرد مزاحمت اوتكليف نه ګورئى. نوكه تاسو نه كيدې شى نود نمر د راختونه د وړاندې اود نمر د ډوبيدونه وړاندې مانځه پوره شان سره حفاظت كونى.بياحضور ﷺ هم د دې آيت تلاوت اوفرمائيلو.(۳) د مسنداحمدپه حديث كښې دى رسول الله ﷺ فرمائى د دغه دواړو وختونو والا مونځ ګذاربه اورته نه ځى(۴) مسنداوسنن كښې دى چه رسول الله ﷺ فرمائيلى دى چه د ټولونه د كمې درجې جنتى هغه دې چه د دوو زرو كالود لارې فاصلې پورې به هم خپل ملكيت ګورى. د ټولونه لرې څيز به د هغه د پاره داسې وى لكه چه د ټولونه نيزدې اود ټولونه د اوچت منزل والا خويه په ورځ كښې دوه دوه ځل د الله ﷻ ديداركوى.(۵) بيافرمائى چه د شپې په وختونوكښې هم تهجدكوه. بعضې وائى چه دې نه مراد د مابنام اوماسخوتن مونځ دې.اود ورځې په وختونوكښې هم د الله ﷻ پاكوالې بيانوه دې د پاره چه د الله ﷻ په اجر اوثواب باندې ته خوشحاله شې. لكه چه ارشاد دې چه ډير زر به ستا الله ﷻ تاته هغه څه دركړى چه ته به خوشحاله شې.(۶)

**جنتيانو ته د الله ﷻ خطاب:-** صحيح حديث كښې دى الله ﷻ به اوفرمائى اې جنتيانو هغوى به وائى ﴿لبيك ربنا وسعديك﴾ الله ﷻ به اوفرمائى آياتاسو خوشحاله شوئى؟ دوى به وائى اې الله ﷻ مونږه ډير

---

(۱) صحيح مسلم كتاب اللعان:۱۴۹۳.

(۲) ۲۲/الحج:۴۶.

(۳) صحيح بخارى كتاب مواقيت الصلاة باب فضل صلاة العصر:۵۵۴، صحيح مسلم:۶۳۳، ابوداؤد۴۷۲۹، ترمذى:۲۵۵۱، ابن ماجة: ۱۷۷، احمد:۴/۳۶۰، ابن حبان:۷۴۴۲.

(۴) صحيح مسلم كتاب المساجد باب فضل صلاتى الصبح والعصر۶۳۴، ابوداؤد:۴۲۷، احمد:۴/۱۳۶، ابن حبان .۱۷۴۰.

(۵) ترمذى كتاب تفسير القرآن باب ومن سورة القيامة:۳۳۳.

(۶) ۹۳/الضحى:۵.



خوشحاله یو. تامونږ ته هغه نعمتونه راکړې دی چه په خپل مخلوق کښې دې چاته هم نه دی ورکړې. بیاڅه وجه ده چه مونږ به راضی نه یو. الله ﷻ چه أرحم الرحمین دې به فرمائی واخلئ زه تاسو ته د دې نه غوره څیز درکوم. تپوس به کوی الله عزوجل د دې نه غوره څیز به څه وی؟ فرمائی به زه تاسو ته خپله رضامندی درکوم چه اوس به زه په یووخت کښې هم تاسو نه خفه نه شم.(١) بل حدیث کښې دی چه جنتیانوته به اوفرمائیلې شی الله ﷻ چه تاسو سره کومه وعده کړې وه هغه د هغې پوره کونکې دې. وائی به داالله ﷻ ټولې وعدې رښتونې دی زمونږ مخونه روښانه دی زمونږ د نیکو تله درنه شوه. مونږ د دوزخ نه اخواکړې شو. په جنت کښې داخل کړواوس کوم یوڅیز باقی دې؟ هم هغه وخت به پردې اوچتې شی اودالله ﷻ دیدار به اوشی. د الله ﷻ قسم ددې نه به زیات هیڅ نعمت نه وی هم دا زیاتوالې دې.(٢)

| وَلَا تَمُدَّنَّ | عَيْنَيْكَ | إِلَىٰ مَا | مَتَّعْنَا | بِهِۦٓ |
|---|---|---|---|---|
| او مه اوږدوه | سترګې خپلې | هغه څیزونو ته | چې نفع ورکړې ده مونږه | په هغه څیز سره |
| اوهیڅرې په هغه څیزونو پسې سترګې مه پورته کوه چې | | | | |

| أَزْوَٰجًا | مِّنْهُمْ | زَهْرَةَ | الْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا | لِنَفْتِنَهُمْ |
|---|---|---|---|---|
| مختلف قسم خلقو ته | ددوئ نه | شان وشوکت | د ژوند دد نیا | دپاره ددې چې امتحان اوکړو په دوئ |
| مونږ ددوئ څینو ټولګو له ورکړې دا تش ددنیا دژوند رونق دې چې مونږ په دې کښې | | | | |

| فِيهِ | وَرِزْقُ | رَبِّكَ | خَيْرٌ | وَأَبْقَىٰ | وَأْمُرْ |
|---|---|---|---|---|---|
| په هغې سره | او رزق | درب ستا | بهتر دې | او باقي پاتې کیدونکې دې | او حکم کوه |
| ددوئ ازمیښت اوکړو اوستا د رب ورکړې رزق غوره او زیات باقي پاتې کیدونکې دې | | | | | |

| أَهْلَكَ | بِالصَّلَوٰةِ | وَاصْطَبِرْ | عَلَيْهَا | لَا نَسْـَٔلُكَ | رِزْقًا |
|---|---|---|---|---|---|
| بال بچ خپل ته | د مانځه | او پابند اوسه | په هغې باند | نه غواړو مونږه ستا نه | رزق |
| او خپلو خپلوانوته دمونځ حکم ورکوه او پخپله هم د مونځ پابند اوسیږه مونږ ستا نه روزی نه غواړو | | | | | |

| نَحْنُ | نَرْزُقُكَ | وَالْعَاقِبَةُ | لِلتَّقْوَىٰ |
|---|---|---|---|
| مونږه | رزق درکوو تاته | او ښه انجام | دپاره دتقوی دې |
| بلکه مونږ تاتهت رزق درکوو اوښه انجام دپرهیزګارئ دې | | | |

**قوله تعالی:- وَلَا تَمُدَّنَّ عَيْنَيْكَ إِلَىٰ مَا مَتَّعْنَا بِهِ**

**ددنیالالچ مه کوه:-** ددې کافرانو دنیاوی ښائست او تش ټپاس ته د حسرت په نظرسره مه ګوره داخود لږ شان وخت څیزدې. داصرف د هغوی د ازمیښت دپاره هغوی‌ته دلته ملاوشوې دې چه اوګوری شکر او تواضع کوی که ناشکری او تکبرکوی؟ په حقیقت کښې د شکر کونکو کمې دې. د هغوی مالدارانو ته چه کوم څه ملاوشوی دی دهغې نه خوتاته ډیر بهترنعمت ملاوشوې دې. مونږ تاته اووه آیاتونه درکړی دی چه سردوباره کولې شی. اوقرآن عظیم مو درکړې دې.نوخپلې سترګې دهغوی ددنیاوی سازو

(١) صحیح بخاری کتاب الرقاق باب صفة الجنة والنار: ٦٥٤٩، صحیح مسلم: ٢٨٢٩، ترمذی: ٢٥٥، احمد: ٨٨/٣.

(٢) صحیح مسلم کتاب الایمان باب اثبات رویة المؤمنین فی الآخرة ربهم سبحانه وتعالی: ١٨١، ابن ماجه: ١٨٧،

سامان طرف ته مه گرځوه.(۱)دغه شان اې پيغمبرﷺ ستاد پاره چه الله ﷻ سره کومه ميلمستياده نه خودهغې څه انتهاء شته اونه دهغې چاسره په دې وخت کښې دبيانولوطاقت شته.تاته به ستا پروردگار دومره څه درکړی چه ته به راضي رضامند شې.(۲) د الله ﷻ دين بهتراوباقي دې.

**د رسول کريم صلى الله عليه وسلم ددنيا نه د بې رغبتئ انتها:**-حضورﷺخپلو ازواج مطهرات نه ايلاء کړې وه او په يوه بالاخانه کښې اوسيدلو.عمر ﷺ چه هلته اورسيدو نو وني کتل حضورﷺ په يوه زګه بوجئ باندې پروت وودخرمن يوه ټکړه ئې يوطرف ته ايخودې وه اوخه مشکونه زوړندوو.داد بې سرو سامانئ حالت په کتلوسره د هغه په سترګوکښې اوښکې راغلې.حضورﷺ تپوس اوکړو څنګه ژاړې؟ جواب ملاوشو حضورﷺ داقيصر اوکسرى په څنګه عيش اوعشرت کښې پراته دى او تاسو سره د دې چه د الله ﷻ په مخلوق کښې د ټولونه بزرګ هستى په څنګه حال کښې نئ؟حضورﷺ اوفرمائيل اې د خطاب خويه آيا تراوسه پورې ته په شك کښې ئې د دې خلقو ښيګړو هم په دنياکښې تندی کړې ده.(۳) رسول اللهﷺ سره د قدرت او طاقت د دنيانه ډيرزيات بې رغبت وو.کوم څه چه به په لاس ورتله هغه به ئې د الله ﷻ په لارکښې ورکول اود خپل ځان د پاره به ئې يوه پيسه هم نه کيخودله.

ابن ابى حاتم کښې د حضورﷺ ارشاد نقل دې چه حضورﷺ فرمائيل زماپه تاسو باندې د ټولونه زياته ويره په هغه وخت ده چه دنيابه ستاسو په قدمونوکښې خپل ټول سازوسامان واچوی اوخپل برکتونه به په تاسو راواړوی.(۴) غرض دا چه کافرانوته د دنياد ژوندښانست صرف دازميښت د پاره ورکولې شی. د خپلې کورنئ خلقو ته د مانځه تاکيد کوه چه هغوی د عذاب نه بچ شى اوپخپله هم د دې په پابندئ سره اداکول کوه.خپل ځان اوخپل بال بچ د دوزخ نه بچ کړه. د حضرت عمر فاروق ﷺ عادت مبارك وو چه د شپې به کله تهجدو له پاسيدو نود خپل کور والا به ئې هم پاسول او د آيت تلاوت به ئې کولو. مونږ تانه د رزق طلب کونکی نه يو د مانځه پابندى کوه رب به تاله د داسې ځائ نه رزق دررسوی چه ستا په خواب اوخيال کښې به هم نه وی. الله ﷻ د پرهيزګارانو دپاره خلاصې کوی اود بې شان او ګمان د ځائ نه رزق وررسوی. ټول پيريان اوانسانان صرف د الله تعلى د عبادت د پاره پيداکړې شوی دی. رزاق اود زبردست طاقتونومالك هم الله ﷻ دې. فرمائى چه مونږ پخپله د ټول مخلوق روزی رسونکې يو. مونږ تاله د غوښتلو تکليف نه درکوو. د حضرت هشام رحمه الله پلار چه به کله د مالدارانو کورونوته تلو اود هغوی شان به ئې اوکتلو نوواپس به خپل کورته راغلو اوهم داآيت به ئې تلاوت کړو اووئيل به ئې زماد کورنئ خلقو د مانځه حفاظت کوئی د مانځه پابندی کوئی الله ﷻ به تاسوباندې رحم اوکړی.

**کوروالا ته د مانځه تاکيدکول:**-ابن ابى حاتم کښې دى چه کله به حضورﷺ ته څه تنګوالې اوشو نود خپل کور ټولوخلقوته به ئې فرمائيل اې زما دکورخلقو مونځ کوئی مونځ قايم کړئی. دټولو انبياء کرامو عليهم السلام دغه طريقه وه چه دخپل هر ويريدو او هرکار په وخت کښې به ئې مونځ شروع کولو.(۵) د ترمذى او ابن ماجه وغيره په حديث قدسى کښې دی الله ﷻ فرمائى اې بنيادمه زما د عبادت د پاره ځان اوزګارکړه زه به ستا سينه د نورې بې پرواهئ نه ډکه کړم. ستا غريبى اوفقيرى به لرې کړم. او که تاداسې اونه کړه نوزه به ستا زړه د اشغال نه ډك کړم اوستا فقيرى به هډو بندوم نه.(٦) ابن ماجه کښې

---

(۱) ۱۵/الحجر:۸۷-۸۸.

(۲) ۹۳/الضحى:۵.

(۳) صحيح بخارى کتاب المظالم باب الغرفة والعلية والمشرفة...:۲٤٦۸، صحيح مسلم ۱٤۷۹.

(٤) صحيح بخارى کتاب الرقاق باب مايحذر من زهرة الدنيا:٦٤۲۷، صحيح مسلم:۱۰۵۲.

(۵) ابن ابى حاتم.

(٦) ترمذى کتاب صفة القيامة باب احاديث ابتلينا بالضراء ومن کانت الاخرة همه......۲٤٦٦ وسنده حسن، ابن ماجه:٤۱۰۷، احمد:۳۵۸/۲

دی رسول الله ﷺ فرمائی چاچه خپل ټول فکر غورقصد اوخیال رایوځای کړواوداخرت خیال نی اوتړلواوهم په دې کښې مشغول شو الله ﷻ به هغه ددنیادټولو پریشانونه محفوظ کړی. اوچاچه د دنیا فکرونه خپل کړل اود دې ځای غمونه نی واخستل الله ﷻ ته په د ده بالکل پرواه نه وی که هغه په څه حیرانئی کښې هلاك شي.(١) یوبل روایت کښې دی د دنیاپه غمونوفکرونوکښې اخته کیدونکی په ټولو کارونوکښې الله ﷻ پریشانئی اچوی اود هغه فقیری به د هغه د سترګو په وړاندې کړی اودنیابه ورته هم دومره ملاویږی چه څومره نی په تقدیرکښې ده. څوك چه د خپل زړه مرکز آخرت جوړکړی خپل نیت کښې هم هغه ساتی نو الله ﷻ به د هغه په هرکارکښې تسلی نصیب کړی. د هغه زړه به موړاو بهادر جوړکړی اودنیابه د هغه د قدمونو نه په تندکونوسره راځی.(٢) بیافرمائی په دنیاآخرت کښې نیك انجام هم پرهیزګار خلق دی. رسول الله ﷺ فرمائی مانن شپه په خوب کښې اولیدل لکه چه مونږ د عقبه بن رافع په کورکښې یو هلته مونږ ته د ابن طاب د باغ لمدې کهجورې پیش کړې شوې. ماد دې تعبیردا واخستو چه په دنیاکښې به هم د انجام په لحاظ هم زمونږ پانړې درنه وي اوچتوالی او غوره والې به هم مونږ ته ملاویږی اوزمونږ دین پاك صفا طیب طاهرکامل اومکمل دې.(٣)

| وَقَالُوْا لَوْلَا يَاْتِيْنَا |
|---|
| او وائی دوئ \| ولې نه راوړی دې مونږ ته |
| اودا خلق وائی چې دې مونږ ته دخپل |
| بِاٰيَةٍ مِّنْ رَّبِّهٖ ؕ اَوَلَمْ تَاْتِهِمْ بَيِّنَةُ مَا فِي الصُّحُفِ |
| یوه نښه \| دطرفه درب خپل نه \| آیا رانغې دوئ ته \| واضحه بیان \| دهغې ټولو تعلیماتو \| چې په صحیفو |
| رب دطرفنه یوه نخښه ولې نه راوړی ایا دوئ ته هغه خبرې څرګند رانغلې چې پخوانو صحیفو کښې |
| الْاُوْلٰى ۝ وَلَوْ اَنَّآ اَهْلَكْنٰهُمْ بِعَذَابٍ مِّنْ قَبْلِهٖ |
| اولنو کښې وو \| اوکه چرې مونږه \| هلاك کړې وې دوئ \| په عذاب سره \| مخکښې دراتلو ددې قرآن نه |
| لیکلې شوې پرتې وې اوکه مونږ دوئ ددې (قران پاک) نه وړاندې په عذب باندې هلاک کړې وې |
| لَقَالُوْا رَبَّنَا لَوْلَآ اَرْسَلْتَ اِلَيْنَا رَسُوْلًا |
| نو خامخا به وئیل دوئ \| اے ربه زمونږه \| ولې رااونه لیږو تا \| مونږ ته \| یو رسول |
| نو دوئ بهٔ وئیل چې ائې زمونږه ربه ! تامونږ ته ولې یو رسول راونه لیږلو چې مونږ ستا |
| فَنَتَّبِعَ اٰيٰتِكَ مِنْ قَبْلِ اَنْ نَّذِلَّ |
| چې تابعداری کړې وې مونږه \| دآیتونو ستا \| مخکښې ددې نه \| چې ذلیله شوې وې مونږه |
| دحکم پیروی کړې وې وړاندې ددې نه چې بې قدره او رسوا |

(١) ابن ماجه کتاب الزهد باب الهم بالدنیا:٤١٠٦.
(٢) ابن ماجه حواله سابق:٤١٠٥، وسنده صحیح، ابن حبان:٦٨٠، المعجم الاوسط:٧١٦٧، شعب الایمان:١٧٣٦.
(٣) صحیح مسلم کتاب رؤیا النبی ﷺ:٢٢٧٠، ابوداؤد:٥٠٢٥، احمد:٢٨٦/٣، مسندابی یعلی:٣٥٢٨.

| وَنَخْزٰى | قُلْ | كُلٌّ | مُّتَرَبِّصٌ | فَتَرَبَّصُوْا |
|---|---|---|---|---|
| او شرمنده شوي وې مونږه | ورته اووايه | هر سړی | انتظار کونکي دي(دانجام) | نو تاسو هم انتظار کوئ |
| دې شو ورته اووايه چې هريو انتظار کونکی دی نو تاسو هم انتظار کوئ ډير زر به درته | | | | |

| فَسَتَعْلَمُوْنَ | مَنْ | اَصْحٰبُ | الصِّرَاطِ | السَّوِيِّ | وَمَنِ |
|---|---|---|---|---|---|
| ډير زر به معلوم شي تاسو ته | چې څوك دى | ملګرى | دلارې | نيغې | او څوك دي |
| معلوم شي چې څوک په سمه لاره روان دي او څوک هدايت | | | | | |

| اهْتَدٰى |
|---|
| چې روان دي په نيغه لار |
| موندونکی دي |

قوله تعالى:- وَقَالُوْا لَوْلَا يَاْتِيْنَا بِاٰيَةٍ مِّنْ رَّبِّهٖ

**کافران د پيغمبر ﷺ نه نخښې غواړي:-** کافرانو به داهم ونيل چه آخر څه وجه ده چه دانبی مونږ ته د خپل صداقت هيڅ معجزه نه ښائی؟جواب ملاويږي چه دادي قرآن کريم چه د وړاندينوکتابونود خبر مطابق الله ﷻ په خپل دې نبی امی باندې نازل کړې دې چه نه ليکل پيژنی اونه لوستل. ګورنی په دې کښې د وړاندينوخلقو حالات دی اوبالکل د هغه کتابونومطابق د الله ﷻ د طرف نه د دې نه اول نازل شوی دی. قرآن پاك دټولوساتونکې دې وړاندينی کتابونود کمی زياتی نه پاك پاتې نه شويدې وجه قرآن پاك نازل شو چه دده صحت غيرصحت ممتازکړی.په سورت عنکبوت کښې دکافرانود دې اعتراض په جواب کښې اوفرمائيل ﴿قُلْ اِنَّمَا الْاٰيٰتُ عِنْدَ اللّٰهِ وَاِنَّمَآ اَنَا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ﴾[1] اووايه چه الله ﷻ رب العالمين په هر قسم معجزو ښکاره کولو باندې قادردې. زه خو صرف د خبرداری کولووالا رسول يم. زما په قبضه کښې هيڅ معجزه نشته. نوولې ددوی دپاره دامعجزه کافی نه ده چه مونږ په تادا کتاب نازل کړوچه د هغوی په وړاندې برابرتلاوت کولې شی.په کوم کښې چه دهريويقين لرونکی دپاره رحمت اوعبرت دې.

**د رسول کريم صلى الله عليه وسلم ابدی او لويه معجزه:**-صحيح بخاری اوصحيح مسلم کښې دی رسول الله ﷺ فرمانی چه هريونبی ته داسې معجزې ملاوشوې چه د هغې په کتو هغه خلقو په هغه نبي باندې ايمان راوړو خوماته ژوندنی اود هميشه والا معجزه راکړې شوې ده يعنی دالله ﷻ داکتاب قرآن مجيد چه د وحی په ذريعه په ماباندې نازل شوی دې. ماته دا يقين دې چه د قيامت په ورځ به د ټول انبياؤ عليهم السلام دتابعدارانونه زما تابعداران زيات وی.[2] دايادساتنی چه دلته درسول الله ﷺ د ټولونه لويه معجزه بيان شوې ده. ددې دامطلب نه دې چه د حضورﷺ نورې معجزې نه وې. د دې نه علاوه د دې پاکې معجزې دقرآن د حضورﷺ لاس نه دومره معجزې ښکاره شوی دی چه په شميرکښې نه شی راتلې.خوددې ټولومعجزو نه لويه اوزياته دحضورﷺ د ټولونه اعلى معجزه هم دا قرآن کريم دې که چرې مونږدامحترم ختم المرسلين آخری پيغمبر ﷺ دليګولونه وړاندې مونږدانه منونکی په خپل عذاب سره هلاك کړې وې نوددوی به داعذر به باقی پاتې شوې ووکه زمونږبه وړاندې يوپيغمبر راغلې وې يوه وحی ربانی نازل شوې وې نو مونږ به خامخا په هغې ايمان راوړې وې اود هغې په تابعدارئی او حکم په خای راوړلوکښې به لګياشوی وو اود دې ذلت او رسوائې نه به بچ شوې وو. د دې د پاره مونږ

[1] ۲۹/العنکبوت:۵۰.

[2] صحيح بخارى كتاب فضائل القرآن باب كيف نزل الوحى واول مانزل:۴۹۸۱، صحيح مسلم:۱۵۲.

ددوی داعذر هم ختم کړو.رسول مواولیکلوکتاب مونازل کړو هغوی ته ایمان نصیب نشو.د عذابونو مستحق شواوعذر نی هم لرې شو. مونږ ته ښه معلومه ده چه یو نه په زرګونو آیاتونه او نښې کتلو سره هم دوی ایمان نه راوړی. اوچه کله عذابونه په خپلوسترګو اووینی هغه وخت به ایمان راوړی خوهغه به بې فائدې وی.لکه چه ارشاددې مونږ داپاك اوبهترکتاب نازل کړې دې کوم چه دبرکت دې تاسو دا اومنئ اوددې حکم په ځائ راوړئ نو په تاسوبه رحم اوکړې شی.(۱) هم دا مضمون په آیت ﴿وَأَقْسَمُوا بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ لَئِن جَاءَتْهُمْ آيَةٌ لَّيُؤْمِنُنَّ بِهَا ۚ قُلْ إِنَّمَا الْآيَاتُ عِندَ اللَّهِ ۖ وَمَا يُشْعِرُكُمْ أَنَّهَا إِذَا جَاءَتْ لَا يُؤْمِنُونَ﴾(۱)کښې دی وائي چه د رسول په راتلوبه مونږ مؤمنان جوړشو. معجزه لیدلو سره به ایمان قبول کړو. خومونږ د دوی د ختې نه خبریو. دوی به ټول آیاتونه لیدلوسره هم ایمان نه راوړی. بیاارشاد کولې شی چه اې نبی دې کافرانوته اووایه چه دلته تاسو هلته به مونږ په انتظاریو. اوس به حال ښکاره شي چه په صراط مستقیم باندې څوك دی؟دحق طرف ته څوك روان دی؟ عذابونه کتلوسره به ئې سترګې کولاؤشی.هغه وخت به معلومه شي چه په ګمراهوکښې څوك اخته وو. ویریږه مه هم اوس به درته معلومه شی چه دروغژن اوشیطان څوك وو؟ یقینا مسلمانان په نیغه لار دی اوغیرمسلم د دې نه اخواشوی دی.

﴿الحمدلله﴾ د شپاړسمې سپارې تفسیرختم شو.

.............................

(۱) ٦/الانعام:۱۵۵.

**د سورت تعارف:-** صحیح بخاری کښې دحضرت عبدالله ﷺ نه روایت دې چه سورة بنی اسرائیل، سورة کهف، سورة مریم، سوره طه او سورة انبیاء دعتاق اول نه دی اوهم دا تلادی دی. (١)

| آیاتونه | سورة الانبياء مکی دې | رکوع گانې |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ | |
| ١١٢ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | ٧ |

اِقۡتَرَبَ لِلنَّاسِ حِسَابُهُمۡ وَهُمۡ فِيۡ غَفۡلَةٖ مُّعۡرِضُوۡنَ ①

نزدې شو | خلقو ته | (وخت د) حساب ددوئ | او دوئ | په غفلت کښې | مخ اړونکی دی |

خلقو ته ددوئ (دعملونود) حساب (وخت) رانزدې شو | اودوئ په غفلت کښې مخ اړولې پراته دی

مَا يَأۡتِيۡهِمۡ مِّنۡ ذِكۡرٍ مِّنۡ رَّبِّهِمۡ مُّحۡدَثٍ اِلَّا اسۡتَمَعُوۡهُ

نه راځی دوئ ته | یو نصیحت | دطرفه درب ددوئ نه | نوې (تازه) | مگر | اوری دوئ هغه |

دوئ ته چې ددوئ درب د طرفه کوم یو نوې نصیحت هم راشی نو دوئ ئې و اوری خو داسې لکه

وَهُمۡ يَلۡعَبُوۡنَ ② لَاهِيَةً قُلُوۡبُهُمۡ ؕ وَاَسَرُّوا النَّجۡوَى ۖ الَّذِيۡنَ

حال دا چې دوئ | لوبې کوی | بې پروا دی | زړونه ددوئ | او پټې کوی | دغوږ خبری | هغه کسان

چې دوئ په لوبو کښې مشغوله وی|اددوئ زړونه غافله دی |او دې ظالمانو پټې پټې مشورې اوکړې

ظَلَمُوۡا ۖ هَلۡ هٰذَاۤ اِلَّا بَشَرٌ مِّثۡلُكُمۡ ۚ اَفَتَاۡتُوۡنَ

چې ظلم ئې کړې دې | نه دې دا سړې | مگر | یو انسان دې | په شان ستاسو | آیا نو راځئ تاسو |

چې دې خو بس هم ستاسو په شان یو سړې دې |نو آیا تاسود جادو په خبرو پسې روان ئې

السِّحۡرَ وَاَنۡتُمۡ تُبۡصِرُوۡنَ ③ قٰلَ رَبِّيۡ يَعۡلَمُ

جادوته | حال داچې تاسو | بنه گورئ (چې جادو دې) | اوونیل رسول | رب زما | علم لری |

حال دا چې تاسو ئې په سترگو وینئ گورئ| ............ پیغمبر اووئیل چې زما رب دآسمان اوزمکې

الۡقَوۡلَ فِي السَّمَآءِ وَالۡاَرۡضِ ۫ وَهُوَ السَّمِيۡعُ

په هغه خبره | چې اوشی په آسمان کښې | او په زمکه کښې | او هغه | هر څه اوریدونکې دې |

په هره خبره باندې عالم دې|............ او هغه هر څه اوریدنکې

الۡعَلِيۡمُ ④ بَلۡ قَالُوۡۤا اَضۡغَاثُ اَحۡلَامٍۭ بَلِ افۡتَرٰىهُ

او په هر څه پوهه دې | بلکه | وائی دوئ | (دا قرآن گډوډ خوبونو دی | بلکه (دا) دخانه جوړ کړې دې

په هر څه عالم دې |بلکه دوئ خو وائی چې دا (قرآن) بعضې گډوډ خوبونه دی |بلکه (پیغمبر) دخانه

---

(١) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الانبیاء:٤٧٣٩.



| أُرۡسِلَ | كَمَآ | بِاٰيَةٍ | فَلۡيَأۡتِنَا | هُوَ شَاعِرٌ | بَلۡ |
|---|---|---|---|---|---|
| رالیږلی شوی وو | لکه څنګه چې | څه نښه | پس رادوړی دې مونږ ته | شاعر دې | بلکه دې |
| جوړ کړی دی ابلکه دی شاعر دی انوده دپاره پکار دی چې داسې نښه مونږ ته راوړی الکه څنګه چې | | | | | |
| مِّنۡ قَرۡيَةٍ | قَبۡلَهُمۡ | مَآ اٰمَنَتۡ | | | الۡاَوَّلُوۡنَ۝ |
| هیڅ یو کلی | مخکښې ددوئ نه | نه وو راوړی ایمان | | | اولنی (پیغمبران دنبنو سره) |
| پخوانو پیغمبرانو راوړی وی | ددوئ نه وړاندې چه کوم خلق مونږ هلاک کړی وو هغوی خو هم | | | | |
| | يُؤۡمِنُوۡنَ۝ | اَفَهُمۡ | | | اَهۡلَكۡنٰهَا |
| | ایمان راوړی | آیا نو دوئ (به ګنی) | | | چې هلاک کړو مونږ هغه کلې |
| ایمان نه وو راوړی | ........نو ایا داخلق به ایمان راوړی څه؟ | | | | |

**قوله تعالىٰ:- اِقۡتَرَبَ لِلنَّاسِ حِسَابُهُمۡ**

**قیامت نیزدې راغلې دې:**- الله ﷻ خلق خبردارکوی چه قیامت نیزدې راغلې دې خوبیاهم دخلقو په غفلت کښې کمې رانغلو اونه هغوی د دې دپاره څه تیاری کوی چه د هغوی په کارراشی بلکه په دنیا کښې اینختې دی اوداسې مشغول او اخته شوی دی چه دقیامت نه بالکل غافل شوی دی. لکه چه بل آیت کښې ارشاد دې ﴿أَتَىٰٓ أَمۡرُ ٱللَّهِ فَلَا تَسۡتَعۡجِلُوهُۚ سُبۡحَٰنَهُۥ وَتَعَٰلَىٰ عَمَّا يُشۡرِكُونَ۝﴾[1] د الله ﷻ امر راغلواوس ولې تندی کوئ؟ بل آیت کښې فرمانیلې شوی دی ﴿اقۡتَرَبَتِ ٱلسَّاعَةُ وَٱنشَقَّ ٱلۡقَمَرُ۝ وَإِن يَرَوۡاْ ءَايَةٗ يُعۡرِضُواْ وَيَقُولُواْ سِحۡرٞ مُّسۡتَمِرّٞ۝﴾[2] قیامت نیزدې راغلو او سپوږمئ اوشلیده.الخ. د ابونواس شاعریوشعر بالکل هم ددې معنې دې:-

الناس في غفلاتهم :- ورحى المنية تطحن

دمرګ میچن په زوره زوره روانه ده اوخلق په غفلتونوکښې پراته دی. حضرت عامربن ربیعه ﷺ کره یو صاحب میلمه راغلو هغه په ډیر اکرام اواحترام سره هغه خپل کورکښې دیره کړواودهغه باره کښې رسول الله ﷺ ته هم سفارش اوکړو.یوه ورځ دا بزرګ میلمه هغه له راغلو وئې وئیل رسول الله ﷺ ماته فلانکئې وادی راکړه زه داغواړم چه د دې بهترینې زمکې یوه ټکړه ستا په نوم کړم ته به هم مشغول ئې او تانه پس به ستا بال بچ هم په دې سره اسوده وی.عامر ﷺ جواب ورکړو روره ماته ددې څه ضرورت نشته.نن یوسورت نازل شوې دې مونږ ته خودا دنیاترخه غوندې معلومه شوه بیا هغوی هم دا ﴿اقۡتَرَبَ لِلنَّاسِ حِسَابُهُمۡ وَهُمۡ فِي غَفۡلَةٖ مُّعۡرِضُونَ۝﴾ تلاوت اوفرمانیلو. (۳)

دې نه پس د قریشوکافران اوهم د دوی په شان د کافرانو باره کښې فرمائی چه داخلق د الله ﷻ کلام او د الله ﷻ وحی ته هډو غوږ نه ایږدی. دوی تازه اونوې راغلې شوې ذکر زړه لګولوسره هډو اوری نه په یوغوږ ئې اوری اوپه بل ئې اوباسی.زړه ئې په خندا او لوبوکښې مشغول کړې دې. بخاری شریف کښې دی حضرت عبدالله بن عباس ﷺ فرمائی تاسو ته د اهل کتابو د خبرو دپوښتنو څه ضرورت دې؟ هغوی خود الله ﷻ په کتاب کښې ډیر بدلون او تحریف کړې دې کمې زیاتې ئې کړې دې اوتاسو سره خو د

---

[1] ١٦/النحل:١.

[2] ٥٤/القمر:١-٢.

[3] دې روایت کښې موسی بن عبیده اوعبدالرحمن بن زید بن اسلم دواړه ضعیف راویان دی.(میزان الاعتدال:٢/٢٥٦رقم:٣٦٣٦ ٥٦٤/٢ رقم:٤٨٦٨).

الله ﷻ اوسني نازل کړې شوې خالص کتاب موجود دې. په کوم کښې چه هيڅ ګډوډوالي نه دې شوې. داخلق د الله ﷻ د کتاب نه بې پرواهی کوی خپل ژرونه د دې د اثر نه خالی ساتل غواړی. اودا ظالمان نور هم غولوی چه د خپل ځان په شان د يوانسان ماتحتی خو مونږ نه شو کولې تاسو څنګه خلق نی چه په غړيدلوسترګو جادو منئی. دا ناممکن ده چه هم زمونږ په شان انسان له الله ﷻ رسالت او وحی سره مختص کړې بيا حيرانيتا ده چه خلق سره د علم نه د ده په جادوکښې راځی.د دې بدکردارو په جواب کښې الله ﷻ فرمانی دوی تهمت تړی اودوی ته اووايه چه کوم الله ﷻ د زمکې اوآسمان ټولوخبرو باندې پوهيږی اودچانه چه يوه خبره هم پټه نه ده هم هغه الله ﷻ داقرآن پاك نازل کړې دې. په دې کښې د تيرو شوو او راتلونکو خبرو موجود کيدل د دې خبرې دليل دې چه د دې نازل کونکې د غيب عالم دې هغه ستاسو ټولې خبرې اوريدونکې دې اوستاسو د ټول حالات علم لرونکې دې نوتاسوله د هغه ويره ساتل پکار دی.

**دکافرانو د رسول کريم ﷺ په حقله مختلف بکواسونه**:-بيادکافرانوضد ناپوهی دحجت نه منل بيانوی د څه نه چه صفابنکاره دی چه هغوی پخپله حيران دی اوپه يوه خبره اودريدې نه شی کله د الله ﷻ کلام ته جادووانی نوکله ورته شاعری وانی کله ورته فضول او بې معنې خبرې وائی اوکله ئی داخبرې د حضورﷺ د خپل ځان نه جوړې شوی بنانی. خيال کوئی په خپل ځان باندې يقين نه ساتونکوته چه ژنه څه راځی هغه دوړونوی نوداسې خلق د مستقل مزاج وئيلو حقدار دی؟ کله به ئی وئيل چه بنه ده که دا رينتونې نبی وو نو د حضرت صالحؑ په شان به ئی يوه اوښه راوړې وه دحضرت موسیؑ په شان به ئی يوه معجزه خودلې وه د حضرت موسیؑ يومعجزه به ئی خودلې وه. بې شکه الله ﷻ په دې څيزونوخو قادردې خو که بنکاره شوې وې او بياهم دوی د خپل کفر نه نه وو خوزيدلې نود الله ﷻ دعادت په شان به د هغه په عذابونوکښې راګيريدل اوميده کړې شوی به وو.په عام توګه وړاندينو خلقوبه هم داوئيل ايمان ورته نصيب نه شونوغرق به کړې شو.دغه دوی هم دامعجزې غواړی که بنکاره شی اوايمان راونړی نوتباه به کړې شی.

لکه چه ارشاددې ﴿ اِنَّ الَّذِيْنَ حَقَّتْ عَلَيْهِمْ كَلِمَتُ رَبِّكَ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴾ [1]په چا چه ستا درب خبره ثابته شوې ده که هغوی ټولې معجزې هم اوګوری خوايمان به قبول نه کړی اود دردناك عذاب په کتلو به ئی ډيرزر قبول کړی خوهغه به صرف يوبې فائدې خبره وی. خبره هم دا ده چه دوی ايمان نه راوړو ګنی د حضورﷺ بې شميره معجزې هره ورځ دهغوی دسترګو په وړاندې وې بلکه حضورﷺ ته د نوروانبياء کرامو علیهم السلام نه ډيرې زياتې او بنکاره معجزې ورکړې شوې وې.

**دمنافق ابی بن سلول معجزه طلب کول**:-د ابن ابی حاتم په يوډيرغريب روايت کښې دی چه د صحابه کرامو ﷺ يوه ډله په جمات کښې ناسته وه.ابوبکرصديق ﷺ د قرآن پاك تلاوت کولو.دې کښې عبدالله بن ابی بن سلول منافق راغلو خپله ګدئی خوره کړه تکيه ئی اولګوله په شان سره کيناستو. وو هم بنه تك سپين غټې غټې د فصاحت خبرې جوړونکې. وئی وئيل ابوبکرﷺ ته حضور ﷺ ته اووايه چه هغوی مونږته څه نښه اوښائی لکه چه دهغوی نه وړاندې پيغمبرانونښې خودلې وې مثلاًموسیؑ تختنی راوړې، داؤدؑ زبور راوړو، صالحؑ اوښه راوستله، حضرت عيسیؑ انجيل او آسمانی دسترخوان. حضرت ابوبکرﷺ دې اوريدو سره په ژړا شو. په دې کښې حضورﷺ د کورنه تشريف راوړو نوهغوی نورو صحابه کرامو ﷺ ته اوفرمائيل دحضورﷺ د تعظيم دپاره اودريږئی اودې منافق غوښتنه ئی درسالت دربارته اورسوله. حضورﷺارشاد اوفرمائيل زماد پاره مه اودريږئی صرف دالله

[1] ۱۰/يونس:۹۶.

ﷺ دپاره اودریږئی.صحابه کرامو ﷺ اووئیل حضورﷺ مونږ ته ددې منافق نه سخت تکلیف رسی. حضوراکرم ﷺاوفرمائیل چه اوس حضرت جبرائیل ﷺ ماله راغلو راته ئی اوفرمائیل چه بهر لاړشه او خلقو ته خپل دافضائل بیان کړه اود دې نعمتونو بیان اوکړه چه رب تاته درکړی دی. زه ټولې دنیاته رسول جوړکړې رالیګلې شوې یم. ماته داحکم دې چه پیریانوته هم د الله ﷺ پیغام اورسوم. ماته رب خپل پاك كتاب رانصیب کړې دې سره د دې چه ما لیك لوستل نه دی کړی زما ټول وړاندې روستو ګناهونه معاف کړې شوی دی. زما نوم ئی په اذان کښې کیخودې دې زما امدادئی په فرښتوسره کړې دې. ماته ئی خپل امدادئاونصرت راکړې دې زما رعب ئی زما نه وړاندې وړاندې کړې دې ماته حوض کوثر راکړې شوې دې چه د قیامت په ورځ به د نورو ټولوحوضونونه به لوئې وی. ماته الله ﷺ د مقام محمود وعده راکړې ده. هغه وخت چه ټول خلق به حیران اوپریشان ولاړ وی سرونه به ئی ښکته کړې وی. زه الله ﷺ د هغه ړومبنئ ډلې نه کړې یم چه د خلقو نه به راوځی. زما په شفاعت به زما د امت اویا زره کسان بغیر دحساب کتاب نه جنت ته ځی. ماته ئی غلبه او سلطنت راکړې دې ماته به د جنت نعیم هغه اوچته اواعلی بالاخانه ملاویږی چه د دې نه به اعلی مقام بل چاته نه ملاویږی. زما د پاسه به صرف دوه فرښتې وی چه د الله ﷺ عرش به ئی اوچت کړې وی. زما اوزما د امت د پاره د غنیمت مال حلال کړې شوې دې اوزما نه وړاندې دا د هیڅ چا د پاره هم حلال نه وو.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَآ اَرۡسَلۡنَا | | | | | | |
| اونهٔ وو لیږلی مونږه | | | | | | |
| او ستا نه وړاندې مونږ هم سرې | | | | | | |
| قَبۡلَكَ | اِلَّا | رِجَالًا | نُّوۡحِیۡۤ | اِلَیۡهِمۡ | فَسۡـَٔلُوۡۤا | |
| مخکښې ستا نه | مګر | انسانان | چې مونږ به وحی کوله | هغوئ ته | پس تپوس اوکړئ | |
| پیغمبران جوړکړی لیږلی ووا | چا ته چې مونږ وحی لیږله وه | که چرې تاسو په دې خبره | | | | |
| اَهۡلَ الذِّكۡرِ | اِنۡ كُنۡتُمۡ | لَا تَعۡلَمُوۡنَ ﴿۷﴾ | وَمَا جَعَلۡنٰهُمۡ | جَسَدًا | | |
| داهل کتابونه | که یئ تاسو | چې نهٔ پوهیږئ | اونهٔ وو جوړ کړی مونږ هغوئ لره | داسې بدن | | |
| نه پوهیږئ انودعلم د خاوندانو تپوس اوکړئ | اومونږ ددې پیغمبرانو داسې بدنونه نه دی جوړ کړی | | | | | |
| لَّا يَاۡكُلُوۡنَ | الطَّعَامَ | وَمَا كَانُوۡا | خٰلِدِيۡنَ ﴿۸﴾ | ثُمَّ | صَدَقۡنٰهُمُ | |
| چې نهٔ به ئې خوړو | خوراك | اونهٔ وو هغوئ | همیشه ژوندی | بیا | رښتیا کړه مونږه دهغوئ سره | |
| چې ګنې خوراکونه دې نه کوی | اونه هغوی همیشه دپاره ژوندی پاتې شوی دی | بیا مونږ هغوی سره | | | | |
| الۡوَعۡدَ | فَاَنۡجَيۡنٰهُمۡ | وَمَنۡ | نَّشَآءُ | وَاَهۡلَكۡنَا | | |
| وعده | نو بچ کړل مونږه هغوئ | او هغه څوك | چې غوښتلو مونږه نجات دهغوئ | اوهلاك كړل مونږه | | |
| خپله وعده رښتیا کړه | نوهغوئ ته او نورو هغه چاته چه مونږ غوښتله نجات ورکړو | اودحد نه | | | | |
| الۡمُسۡرِفِيۡنَ ﴿۹﴾ | | | | | | |
| دحد نه اوړیدونکی خلق | | | | | | |
| تیریدونکی مو هلاک کړل | | | | | | |

**قوله تعالى:- وَمَآ أَرْسَلْنَا قَبْلَكَ إِلَّا رِجَالًا نُّوحِىٓ إِلَيْهِمْ**

**ټول پیغمبران علیهم السلام سړی او بشر وو:-** مشرکان د دې منکر ووچه په انسانانوکښې څوك انسان د الله ﷻ رسول وی په دې وجه الله ﷻ د هغوی تردیدکوی فرمائی تانه وړاندې چه څومره رسولان راغلی هغه ټول انسانان وو په هغوی کښې یوفرښته نه وو لکه چه بل ځائ کښې ارشاد دې ﴿وَمَآ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ إِلَّا رِجَالًا نُّوحِىٓ إِلَيْهِم مِّنْ أَهْلِ ٱلْقُرَىٰٓ ۗ أَفَلَمْ يَسِيرُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ فَيَنظُرُوا۟ كَيْفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ۗ وَلَدَارُ ٱلْءَاخِرَةِ خَيْرٌ لِّلَّذِينَ ٱتَّقَوْا۟ ۗ أَفَلَا تَعْقِلُونَ﴾[1] یعنی تانه وړاندې چه مونږ څومره رسولان لیګلی دهغوی طرف ته وحی نازل شوې ټول هم د ښارونواوسیدونکی وو.بل آیت کښې دی ﴿قُلْ مَا كُنتُ بِدْعًا مِّنَ ٱلرُّسُلِ وَمَآ أَدْرِى مَا يُفْعَلُ بِى وَلَا بِكُمْ ۖ إِنْ أَتَّبِعُ إِلَّا مَا يُوحَىٰٓ إِلَىَّ وَمَآ أَنَا۠ إِلَّا نَذِيرٌ مُّبِينٌ﴾[2] یعنی ورته اووایه چه زه خو چرته نوې یوازې عجیبه او روميې رسول نه یم ددې کافرانونه وړاندې کافرانوهم د نبیانو د نه منلوهم دغه بهانه کړې وه لکه چه قرآن پاك ارشادکړې دې چه هغوی وئیلې وو﴿أَبَشَرٌ يَهْدُونَنَا فَكَفَرُوا۟ وَتَوَلَّوا۟ ۚ وَّٱسْتَغْنَى ٱللَّهُ ۚ وَٱللَّهُ غَنِىٌّ حَمِيدٌ﴾[3] آیایوانسان به زمونږلار خودونکې وی؟الله ﷻ په دې آیت کښې فرمائی ښه ده تاسو اهل علم نه یعنی یهودیانو نصرانیانو نه او نورو خلقو نه تپوس اوکړئ چه دوی له انسانان رسولان جوړکړې رالیګلې شوې ووکه فرښتې؟ داهم د الله ﷻ احسان دې چه انسانانوته هم د هغوی په شان انسانان رسولان جوړوی رالیګی دې دپاره چه خلق هغوی سره کیناستې پاسیدې شی د هغوی تعلیم حاصل کړې شی اود هغوی په خبرو باندې پوهه شی.

هغه وړاندې پیغمبران ټول په ټول داسې جثې والا نه ووچه دخوراك څښاك حاجت ئې نه لرلوبلکه هغوی د خوراك څښاك محتاج وو. لکه چه ارشاد دې ﴿وَمَآ أَرْسَلْنَا قَبْلَكَ مِنَ ٱلْمُرْسَلِينَ إِلَّآ إِنَّهُمْ لَيَأْكُلُونَ ٱلطَّعَامَ وَيَمْشُونَ فِى ٱلْأَسْوَاقِ ۗ وَجَعَلْنَا بَعْضَكُمْ لِبَعْضٍ فِتْنَةً أَتَصْبِرُونَ ۗ وَكَانَ رَبُّكَ بَصِيرًا﴾[4] یعنی تانه وړاندې چه څومره رسولان مونږ لیګلې دی هغوی ټولو به خوراك کولو په بازاراونوکښې به ګرځیدل هم یعنی هغوی ټول انسانان وو د انسانانو په شان به ئې خوراك څښاك کولو کار روزګاراودتجارت دپاره به بازارونوته هم تله راتله. دا خبره د دې پیغمبرئی خلاف نه ده لکه چه دمشرکانو قول وو﴿وَقَالُوا۟ مَالِ هَٰذَا ٱلرَّسُولِ يَأْكُلُ ٱلطَّعَامَ وَيَمْشِى فِى ٱلْأَسْوَاقِ ۙ لَوْلَآ أُنزِلَ إِلَيْهِ مَلَكٌ فَيَكُونَ مَعَهُۥ نَذِيرًا﴾[5] یعنی داڅنګه رسول دې چه خوراك څښاك کوی او بازارونوته ځی ده له یوه فرښته ولې نه رانازلیږی که هغې هم د ده د دین تبلیغ کولو. ښه ده چه دا نشته نو دې د یوې خزانې مالك کوی ولې نه. یابه ئې ده ته یوباغ ورکړې وو چه د هغې نه ده په ارت مټ خوراك کولو الخ. دغه شان نور پیغمبران هم په دنیاکښې پاتې نه شو راغله او لاړه لکه چه ارشاددې ﴿وَمَا جَعَلْنَا لِبَشَرٍ مِّن قَبْلِكَ ٱلْخُلْدَ ۖ أَفَإِي۟ن مِّتَّ فَهُمُ ٱلْخَٰلِدُونَ﴾[6] یعنی تانه وړاندې هم مونږ دیوانسان دپاره همیشه والې نه دې کړې. هغوی له دالله ﷻ وحی راتله فرښتو به د الله ﷻ حکم احکام رسول. بیاچه هغوی سره د رب کومه وعده وه هغه پوره شوه یعنی د هغوی مخالفین د ظلم په وجه تباه کړې شو او هغوی خلاصې بیاموندلو د هغوی تابعدار هم کامیاب شواود حدنه وړاندې کیدونکی یعنی د نبیانو دروغ ګڼړونکی الله ﷻ هلاك کړل.

---

[1] ۱۲/یوسف:۱۰۹.

[2] ٤٦/الاحقاف:۹.

[3] ٦٤/التغابن:٦.

[4] ۲۵/الفرقان:۲۰.

[5] ۲۵/الفرقان:۷.

[6] ۲۱/الانبیاء:۳٤.



| لَقَدْ أَنْزَلْنَآ | إِلَيْكُمْ | كِتٰبًا | فِيْهِ |
|---|---|---|---|
| نازل کړې دې مونږ | تاسو ته | يو کتاب | چې په هغې کښې |

(خلقو) مونږ په تاسو يو کتاب (قران پاک) نازل کړې دې اپه کوم کښې چې

| ذِكْرُكُمْ | أَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ⑩ | وَكَمْ | قَصَمْنَا | مِنْ قَرْيَةٍ |
|---|---|---|---|---|
| ذکر ستاسو دې | آيا نهٔ پوهيږې تاسو | او څومره ډير | ريز مريز کړل مونږه | دکلونه |

ستاسو دپاره نصيحت دې انو آيا تاسو پوهيږئ نه ؟ (چه نصيحت قبول کړئ) اومونږ ډير کلی تباه کړل

| كَانَتْ | ظَالِمَةً | وَّأَنْشَأْنَا | بَعْدَهَا | قَوْمًا | اٰخَرِيْنَ ⑪ | فَلَمَّآ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چې وو | ظالمان | او راپورته کړل مونږه | روستو دهغې نه | قوم | نور | پس هر کله چې |

چې دهغې خلق ظالمان وو او دهغوئ نه پس مو يو بل قوم پيدا کړو انو هر کله چې

| أَحَسُّوْا | بَأْسَنَآ | إِذَا | هُمْ | مِّنْهَا | يَرْكُضُوْنَ ⑫ | لَا تَرْكُضُوْا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوليدو هغوئ | عذاب زمونږ | نو بيا | هغوئ | دهغې نه | تښتيدل | مهٔ تښتئ نواز |

هغوئ زمونږ عذاب اوليدو انو دهغه کلی نه په تيښته شروع شول (مونږ ورته اووئيل اوس) مه تښتئ

| وَارْجِعُوْٓا | إِلٰى مَآ | أُتْرِفْتُمْ | فِيْهِ | وَمَسٰكِنِكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| او واپس لاړ شئ | هغه ځائې ته | چې ښه ژوند درکړې شوې وو | په هغې کښې | او کورونو خپلو ته |

اوکوم نعمتونه چې تاسو ته درکړې شوی وو هغې ته او خپلو کورونو طرفته واپس لاړ شئ

| لَعَلَّكُمْ | تُسْـَٔلُوْنَ ⑬ | قَالُوْا | يٰوَيْلَنَآ | إِنَّا | كُنَّا |
|---|---|---|---|---|---|
| شايد چې ستاسو نه | تپوس اوکړې شي | اووئيل هغوئ | اے هلاکته زمونږه | بيشکه مونږه | وو |

کيديشی چې ستاسو نه تپوس اوشی هغوئ اووئيل چې افسوس بيشکه هم مونږ

| ظٰلِمِيْنَ ⑭ | فَمَا زَالَتْ | تِّلْكَ | دَعْوٰىهُمْ | حَتّٰى | جَعَلْنٰهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| ظالمان | پس هميشه وه | دغه | بلنه دهغوئ | تر دې پورې | چې کړل مونږه هغوئ |

ظالمان وو انو هم دغه شان چغې ئې وهلې اتر دې چې هغوئ مو دريبلی شوی

| حَصِيْدًا | خٰمِدِيْنَ ⑮ |
|---|---|
| ريبلي شوی | يخ پراته |

فصل اود مړاور په شان کړل

قوله تعالى:- لَقَدْ أَنْزَلْنَآ إِلَيْكُمْ كِتٰبًا فِيْهِ ذِكْرُكُمْ ط

**قرآن پاک نصيحت دې** :- الله ﷻ دخپل کلام پاک فضيلت بيانولوسره د دې قدراومنزلت طرف ته رغبت ورکولودپاره فرمائي چه مونږ داکتاب ستاطرف ته نازل کړې دې په کوم کښې چه ستاسو بزرګي ده. (۱)ستاسو دين ستاسوشريعت اوستاسوخبرې دی بياخوحيرانتياده چه ته د دې نعمت قدراونه کړې اود

(۱) الطبري: ۶۱۱/۲۱.

دومره شرافت والا کتاب نه غفلت کوئ لکه چه ارشادباری تعالی دی ﴿وَاِنَّهٗ لَذِکۡرٌ لَّکَ وَلِقَوۡمِکَ ۚ وَسَوۡفَ تُسۡـَٔلُوۡنَ﴾ (۱)ستاسودپاره اوستاسودقوم دپاره نصیحت دي اوتاسو نه به د دې باره کښې سوال کولېش شی. بیا فرمائی چه مونږ دېروکلوظالمان چورې کړې دی.یوبل آیت کښې دی مونږ دنوح ﷺ نه پس هم ډېر کلی تباه کړی دی(۲)یوبل آیت کښې دی چه څومره کلی دی ډېرېه ترقئی اورونق کښې ووخوبیادهغه خائ دخلقوډظلم په وجه مونږ هغوی تباه کړل(۳)بوس والوزولي شوآبادئی په تباهئ اورونق په خاموشئ کښې بدل کړې شوې د هغوی د هلاکت نه پس نور خلق د هغوی په خائ کینولې شو. د یوقوم نه پس دویم او ددویم نه پس دریم اودغه شان داسې راتلل. کله چه دې خلقودعذابونوراتلل اولیدل او یقین نې اوشو چه دالله ﷺد نبی دفرمان مطابق د الله ﷻ په عذاب کښې هغوی راغله نوهغه وخت اووېرېدل اود تیختې لارئی لټوله اواخوا دیخواپه منډو ترړوکښې اخته شو.اوس تختئی راتختئی مه بلکه په خپلو محلونوکښې اودخپل عیش اوعشرت په سامانونوکښې بیاراشئی دې دپاره چه تاسوسره سوال او جواب خواوشی چه تاسو د الله ﷻ دنعمتونو شکر اداکړې هم دې اوکه نه؟دا فرمان د رټنې او غصې په توګه دې اودهغوی د خوارئ اوذلیل کولود پاره به وی. دغه وخت به هغوی د خپلو ګناهونواقرار کوی صفابه وائی چه بې شکه مونږ ظالمان وو خود هغه وخت اقرار بالکل بې فائدې دې. بیا به هم دا اقرار وی تردې چه هغوی به تباه کړې شی د هغوی آواز به دباؤکړې شی اودوی به اومړلې شی دهغوی تګ راتګ تلل راتلل خبرې کول به یودم بندشی.

| وَمَا خَلَقۡنَا السَّمَآءَ وَالۡاَرۡضَ وَمَا |
|---|
| \| اونهٔ دي پیدا کړې مونږه \| اسمان \| او زمکه \| او هغه \| |
| او مونږ اسمان اوزمکه اوڅه چې ددې په مینځ کښې دی |
| بَیۡنَهُمَا لٰعِبِیۡنَ ﴿۱۶﴾ لَوۡ اَرَدۡنَاۤ اَنۡ نَّتَّخِذَ لَهۡوًا |
| چې په منځ ددواړو کښې دی \| لوبې کونکی \| که اراده لرلې مونږه \| چې اونیسو مونږه \| لوبه |
| لوبه تماشه نه ده جوړه کړې \| ..........که چرې لوبه تماشه مو جوړول غوښتلې |
| لَّاتَّخَذۡنٰهُ مِنۡ لَّدُنَّاۤ ۖ اِنۡ کُنَّا فٰعِلِیۡنَ ﴿۱۷﴾ |
| نو خامخا نیولې به وې مونږه هغه لوبه \| دخپل طرف نه دخان سره \| که وې مونږه \| کونکی ددې کار |
| نو هم دخپل خان نه به مو جوړه کړې وې\| که مونږ خامخا داسې کونکی وو |
| بَلۡ نَقۡذِفُ بِالۡحَقِّ عَلَی الۡبَاطِلِ فَیَدۡمَغُهٗ فَاِذَا هُوَ |
| بلکه مونږه ګوزار ورکووا \| په حق سره \| په باطل باندې \| نو سرماتوی دهغه (باطل) \| نو بیا \| هغه |
| بلکه مونږ خو حق د باطل دپاسه وراچوو \| نو هغه دهغې سرماتوی \| نو هغه (باطل) ورک شی |
| زَاهِقٌ ؕ وَلَکُمُ الۡوَیۡلُ مِمَّا تَصِفُوۡنَ ﴿۱۸﴾ وَلَهٗ |
| په خانې ورك شی \| او ستاسو دپاره \| تباهی ده \| دهغې خبرو \| چې تاسو ئې بیانوئ \| او هغه لره دی |
| ..........اوتاسو چه کوم تاسو دروغ بیانوئی د هغې په وجه به هلاک شئ \| ..........او په آسمانونو |

(۱) ٤٣/الزخرف:٤٤.اخ

(۲) ١٧/الاسراء:١٧.

(۳) ٢٢/الحج:٤٥.



| عِندَهُ | وَمَنْ | وَالْأَرْضِ ط | فِي السَّمٰوٰتِ | مَنْ |
|---|---|---|---|---|
| هغه مخلوق اچې په اسمانونو کښې دی اا او په زمکه کښې دی اا او هغه (فرښتي ) اچې دهغه سره دی | | | | |
| اوزمکه کښې ټول هرڅه دهغه ملکیت دی اا او کومې (فرښتي) چې هغه سره دی | | | | |

| يُسَبِّحُونَ | وَلَا يَسْتَحْسِرُونَ ﴿١٩﴾ | عَنْ عِبَادَتِهِ | لَا يَسْتَكْبِرُونَ |
|---|---|---|---|
| هغوئ تسبیح وائی ا | او نه ستومانه کیږی ا | دعبادت دهغه نه ا | خان غټ نه ګڼری ا |
| نه دهغه دعبادت نه خان لوئي حسابوی اا اونه (د هغه په عبادت) ستړي کیږی اد شپې او ورځې د | | | |

| لَا يَفْتُرُونَ ﴿٢٠﴾ | وَالنَّهَارَ | الَّيْلَ |
|---|---|---|
| سستی نه کوی ا | | دشپې اا او دورځې ا |
| هغه پاکی بیانوی اا او سستی نه کوی | | |

قوله تعالىٰ:- وَمَا خَلَقْنَا السَّمَآءَ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا لٰعِبِيْنَ ﴿﴾

**د اسمان تخلیق د الله ﷻ عجیبه قدرت دې** :- آسمان اوزمکه الله ﷻ په عدل سره پیدا کړی دی دې دپاره چه بدانوته سزا اونیکانوته بدله ورکړی هغه دا بې کاره د لوبې تماشې په توګه نه دی پیدا کړی. یو بل آیت کښې ددې مضمون سره بیان دې چه دا ګمان خودکافرانودې دچاد پاره چه د دوزخ اورتیار دې[1]

د دویم آیت یوه معنی خوداده که چرته مونږ لوبه اوتماشه غوښتله نودابه موجورکړی وو یوه معنی دا ده چه که مونږ ښځه غوښتلې.د (لهوًا) معنی داهل یمن په نیزدښځې هم راځی.یعنی که مونږښځه جوړول غوښتل نوحورعین نه چه مونږ سره دی خوك جوړوله.یوه معنی داهم ده که چرې مونږ اولادغوښتلې. دا دواړه معنې یوبل سره لازم اوملزوم دی هم ښځې سره اولاد دې لکه چه ارشاد دې ﴿لَوْ أَرَادَ اللّٰهُ أَنْ يَتَّخِذَ وَلَدًا لَّاصْطَفٰى مِمَّا يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ سُبْحٰنَهُ ط هُوَ اللّٰهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ﴾ [2] یعنی که الله ﷻ ته هم دامنظور وه چه دهغه اولاد وې نو په خپل مخلوق کښې به ئې چرته د اوچتې درجې مخلوق ته دا منصب ورکړې وې خو هغه د دې خبرې نه پاك اوډیر لرې دې د هغه د توحید اوغلبه خلاف دی چه د هغه دې اولاد وی. نوهغه مطلق د اولادنه پاك دې.نه عیسی ﷺ دهغه خوئ دې اونه عزیر ﷺ نه فرښتې دهغه لونړه دی.ددې عیسایانو یهودیانو او مکې د کافرانو د دې فضول خبرې اوتهمت نه رب واحد قهار پاك دې اوډیر اوچت دې.

﴿إِنْ كُنَّا فٰعِلِيْنَ﴾ کښې "ان" ته نافیه ونیلې شوې ده یعنی مونږ داکونکې هډو وو نه[3] بلکه د مجاهد رحمه الله قول دې په قرآن مجید کښې هریو ځای کښې "ان" د نفی د پاره دې.([4])مونږ حق واضح کوواوهغه ښکاره بیانوو په کوم سره چه باطل ښکته شی مات شی ذره ذره شی اوډیراخوا شی هغه دې هم ددې لائق نه اودریدې اونه کلکیدې شی اونه د ډیر وخت دپاره پاتې کیدې شی.د الله ﷻ د پاره چه کوم خلق اولادګرځوی دهغوی ددې فضول وینا په وجه دهغوی د پاره "ویل" دې اوهغوی دپاره پوره خرابی ده.

**فرښتې د الله ﷻ بندګان دی**:- بیا ارشاد کولې شی چه کومې فرښتې تاسود الله ﷻ لونړه ګڼړئی د هغوی حال واورئی د الله ﷻ الوهیت او عظمت ته اوګورئی آسمان او زمکه ټول څیزونه د هغه په ملکیت کښې دی د هغه په عبادت کښې مشغول دی نا ممکن دی چه یووخت سرکشی اوکړی. نه عیسی ﷺ

[1] ۳۸/ص:۲۷.
[2] ۳۹/الزمر:٤.
[3] الطبری:۱۸/٤۲۰.
[4] الدرالمنثور:۵/٦۲۰.

ته د الله ﷻ په بنده کیدو کښې څه شرم دې اونه فرښتو ته د الله ﷻ په عبادت کولوکښې څه شرم نه په هغوی کښې څوك تکبر کوی یاد عبادت نه پټیږی اوچه څوك هم داسې اوکړی نو یووخت راروان دې چه هغوی به دالله ﷻ په وړاندې دمحشر میدان کښې دټولوسره وی او خپل کړه به زغمی. دابزرګ فرښتې د هغه په عبادت باندې سترې کیږی هم ویریږی هم نه سستی اوکمې هغوی له خواته هم نه راځی. شپه ورځ دالله ﷻ په حکم منلوکښې دی. د هغه په عبادت د هغه په تسبیح کښې لګیادی نیت اوعمل دواړه موجود دی د الله ﷻ هیڅ نافرمانی نه کوی اونه د یوفرمان د پوره کولو نه منع کیږی.

**د فرښتو هر وخت تسبیح وئیل:**۔ابن ابی حاتم کښې دی یوځل رسول الله ﷺ دصحابه کرامو ﷺ په ټولی کښې وو ونې فرمائیل خلقو چه داځه زه اورم هغه تاسو هم اورنی خلقو جواب ورکړو چه حضور ﷺ مونږ خو څه هم نه اورو.حضور ﷺ اوفرمائیل زه د آسمانونو چغار اورم اوحق خودې هم دا چه دوی دې چغیږی خکه چه دې کښې دیوې لویشت ځائ داسې نشته چرته چه د یوې نه د یوې فرښتې سر په سجده کښې پروت نه وی. (۱) عبدالله بن حارث بن نوفل ﷫ فرمائی زه حضرت کعب احبار ﷫ سره ناست ووم هغه وخت زما عمر کم وو.ما دهغوی نه د دې آیت مطلب معلوم کړو خبرې کول تلل د الله ﷻ پیغام وړل اوتلل عمل کول هم دوی د دې تسبیح نه نه بندوی؟ زما په دې سوال کولوسره هغه بیدار شان شو او ونې فرمائیل دا ماشوم څوك دې؟ خلقو ونیل د بنوعبدالمطلب نه دې هغوی زما تندې ښکل کړو ونې فرمائیل خوره بچیه تسبیح د دې فرښتو د پاره داسې دی لکه زمونږ د پاره ساه اخستل ګوره تلوراتلو خبرو وغیره کښې ستا ساه برابر خې راځی دغه شان د فرښتو تسبیح هر وخت جاری وی.

| |
|---|
| اَمِ اتَّخَذُوْٓا اٰلِهَةً مِّنَ الْاَرْضِ هُمْ |
| ایا نیولي دی دوئ \| خدایان \| دزمکي نه \| چې هغوئ |
| ..........ایا دې خلقو په زمکه کښې داسې څیزونه |
| يُنْشِرُوْنَ۝ لَوْ كَانَ فِيْهِمَآ اٰلِهَةٌ اِلَّا اللّٰهُ |
| را ژوندی کوی مړی \| که چرې وې \| په دې دواړو کښې \| نور خدایان \| ماسوا دالله نه \| |
| معبودان جوړ کړی دی اچې هغوی پیدا کولي شي؟ که چرې په زمکه او اسمان کښې دالله نه سوا نور |
| لَفَسَدَتَا ۚ فَسُبْحٰنَ اللّٰهِ رَبِّ الْعَرْشِ عَمَّا |
| نو خامخا به خراب شوي وي نظام ددواړو \| پس پاکي ده الله لره \| چې رب دعرش دی \| دهغي خبرونه |
| معبودان وي \| نودواړه به تباه شوی وو \| الله دهغه خبرو نه پاک دې کومې چې دهغه دپاره بیانوی \| دعرش مالك |
| يَصِفُوْنَ۝ لَا يُسْـَٔلُ عَمَّا يَفْعَلُ وَهُمْ يُسْـَٔلُوْنَ۝ |
| چې دوئ ئې بیانوی \| تپوس نه کیږی \| دهغه کارونو \| چې کوی ئې هغه \| او ددوئ نه به تپوس کیږی |
| ..... هغه ذات چې هر څه کوی نو پوښتنه ترې نه نشی کیدې \| اودخلقو نه به تپوس پوښتنه کولی شی |

قوله تعالى - لَوْ كَانَ فِيْهِمَآ اٰلِهَةٌ اِلَّا اللّٰهُ لَفَسَدَتَا

**د الله ﷻ نه بغیربل معبودنشته:**- دشرك تردیدکولې شی چه دکوموکوموتاسودالله ﷻ نه بغیرعبادت کونې په هغوی کښې یوهم داسې نه دې چه مړی بیا ژوندی کوی. په چا کښې په ټولوکښې په یوځائ دا طاقت نشته نو بیا هغوی د دې قدرت والا سره برابر منل یاد هغوی هم عبادت کول څومره بې

(۱) مشکل الاثار:۲/٤۲٤، المعجم الکبیر:۱/۲۱۲۲.



انصافي ده. بیا فرمائي واورئی که دا اومنلې شي چه واقعي خدایان ډیردي نولازم به راځي چه زمکه آسمان دې تباه اوبرباد شي لکه چه ارشاد دې ﴿مَا اتَّخَذَ اللَّهُ مِن وَلَدٍ وَمَا كَانَ مَعَهُ مِنْ إِلَٰهٍ إِذًا لَّذَهَبَ كُلُّ إِلَٰهٍ بِمَا خَلَقَ وَلَعَلَا بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ ۚ سُبْحَانَ اللَّهِ عَمَّا يَصِفُونَ﴾ (١)دالله ﷻ اولادنشته اونه هغه سره څوك بل معبود شته که چرې داسې وې نوهرمعبودبه خپل خپل مخلوق اخستلو ګرځیدلواوهریوبه په بل باندې دغالب راتلو کوشش کولو.الله ﷻ د هغوی د بیان کړې شوو صفتونونه مبرا اومنزه دې.

دلته بیان فرمائي چه الله ﷻ دعرش مالك دهغوی د وئیلی شوی فضول صفتونونه یعنی ځامنو اولونړو نه پاك دې.د الله ﷻ ذات اوچت دې اود هغه شان خودا دې چه هغه خوعلی الاطلاق حقیقي شهنشاه دې په هغه باندې څوك حاکم نشته. ټول د هغه دغلبې اوقهر لاندې دی نه خود هغه په حکم پسې څوك لګیدلې شي اونه د هغه فرمان څوك روستوکولې شي. د هغه لوئی عظمت جلال حکومت علم حکمت لطف رحمت بې پایانه دې. د هیڅ چا د هغه په وړاندې لکې خوزولو مجال نشته. ټول بنکته اوعاجزدی کمزورې اوبې وسه دی هیڅ څوك نشته چه د هغه په وړاندې خبره یا د خبرې مجال اوکړې هیڅ څوك نشته چه دهغه په وړاندې خبره قدرې اوکړې شی هیڅ څوك نشته چه هغه د څه اختیار وی چه د هغه نه تپوس اوکړې چه داکار دې ولې اوکړو یاداسې دې ولې اوکړو؟هغه دټول مخلوق خالق دې د ټولو مالك دې هغه ته اختیاردې چه د چانه څه تپوس کوی دهریود اعمالوتپوس پوښتنه به کوی.لکه چه ارشاد دې ﴿فَوَرَبِّكَ لَنَسْأَلَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ﴾ (٢) ستاد رب قسم چه مونږ به د دې ټولو نه تپوس کوو د هریوهغه کار کوم چه دوی کړې دې هم هغه دې چه د ده په پناه کښې راغلو د ټولوشرونونه بچ شو اوهیڅ څوك نشته چه د هغه مجرم له پناه ورکړې شي.

| أَمِ اتَّخَذُوا | مِن دُونِهِ | آلِهَةً | قُلْ | هَاتُوا | بُرْهَانَكُمْ | هَٰذَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| یا نیولي دي دوئ | بې دهغه نه | نور خدایان | ورته اووایه | راوړئ | دلیل خپل | دا قران |

ایا دوئ دالله ﷻ نه سوا (ځان دپاره) نور معبودان جوړ کړی دی | ته ورته اووایه چې تاسو خپل یو دلیل

| ذِكْرُ | مَن | مَّعِيَ | وَذِكْرُ | مَن | قَبْلِي |
|---|---|---|---|---|---|
| نصیحت دې | هغه چاته | چې زما سره دی | او نصیحت دې | هغه چاته | چې مخکښې زمانه وو |

خو پیش کړئی | دا دهغه خلقو ذکر دې چې ماسره دی | اودهغوئ ذکر دې کوم چې زما نه وړاندې وو

| بَلْ أَكْثَرُهُمْ | هُمْ | لَا يَعْلَمُونَ | الْحَقَّ | فَهُم | مُّعْرِضُونَ |
|---|---|---|---|---|---|
| بلکه زیات خلق | ددوئ نه | نه پوهیږی | په حق باند | نو هغوئ | مخ اړونکی دی (دقران نه) |

خو په دوئ کښې زیات خلق په حقه خبره نه پوهیږی انو (ځکه) دهغې نه مخ اړوی.

| وَمَا أَرْسَلْنَا | مِن قَبْلِكَ | مِن رَّسُولٍ | إِلَّا | نُوحِي | إِلَيْهِ |
|---|---|---|---|---|---|
| اونه دي لیږلي مونږه | مخکښې ستا نه | یو رسول | مګر | مونږه وحی کړی ده | هغه ته |

اومونږ ستا نه وړاندې داسې هیڅ یو پیغمبر نه دې لیږلې امګر هغه ته مو دا وحی کړې وی

(١) ۲۳/المؤمنون:۹۱.

(٢) ۱۵/الحجر:۹۲.

| اَنَّهٗ | لَآ اِلٰهَ | اِلَّآ اَنَا | فَاعْبُدُوْنِ۝ |
|---|---|---|---|
| چې بيشكه | نشته لائق دعبادت | مګر زۀ يم | نو خاص زما عبادت كوئ |
| چې زما نه سوا بل معبود نشته انو صرف هم زما عبادت كوئي | | | |

قوله تعالى:- اَمِ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖۤ اٰلِهَةً ؕ

**د باطلومعبودانو حقيقت:-** دې خلقوچه دالله ﷻ نه كوم كوم معبودان جوړكړي دي دهغوى دعبادت كولو دوى سره هيڅ دليل نشته اومونږ چه دكوم الله ﷻ عبادت كوو په هغې كښې ربښتونې يو زمونږ په لاس كښې اوچت دليل د الله ﷻ كلام موجود دې اوددې نه اول تول د الله ﷻ كتابونه هم د دې دليل دې په اوچت آوازسره ګواهي وركوي كوم چه د توحيد په موافقت اود كافرانود خان نه عبادتونه كولو په خلاف كښې دي.كوم كتاب چه په كوم پيغمبر باندې نازل شو په هغې كښې دا موجود پاتې دي چه د الله ﷻ نه بغير د عبادت څوك لائق نشته خو اكثرمشركان د حق نه غافل دى اود الله ﷻ د خبرونه منكر دي.

تول رسولانوته هم دالله ﷻ دتوحيد تلقين شوې دې.ارشاد بارى تعالى دې﴿تُسْـَٔلُوْنَ۝وَسْـَٔلْ مَنْ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رُّسُلِنَاۤ اَجَعَلْنَا مِنْ دُوْنِ الرَّحْمٰنِ اٰلِهَةً يُّعْبَدُوْنَ۝﴾[1]تاسو وراندې چه كوم پيغمبران تيرشوى دى ته پخپله تپوس اوكړه چه مونږ دهغوى دپاره دخان نه بغيربل څوك معبود ګرځولى ووچه هغوى دې دهغه عبادت كوي.

بل آيت كښې دى ﴿وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِيْ كُلِّ اُمَّةٍ رَّسُوْلًا اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوْتَ ۚ فَمِنْهُمْ مَّنْ هَدَى اللّٰهُ وَمِنْهُمْ مَّنْ حَقَّتْ عَلَيْهِ الضَّلٰلَةُ ؕ فَسِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِيْنَ۝﴾[2] مونږ هريو امت ته خپل يوپيغمبر ليګلې كوم چه په خلقوكښې اعلان كړې دې چه تاسو تول ديو الله ﷻ عبادت اوكړئى اود هغه نه بغيردهرچادعبادت نه جدا شئى.د انبياء كرامو شهادت هم دادې اوپخپله دالله ﷻ فطرت هم ددې ګواه دې اود مشركانو هيڅ دليل نشته دهغوى تول حجتونه بې كاره دى او په هغوى باندې د الله ﷻ غضب دې او دهغوى دپاره سخت عذاب دې.

| وَقَالُوا اتَّخَذَ | | | | |
|---|---|---|---|---|
| او وائي دوئ نيولې دې | | | | |
| او دوئ وائي چې رحمن (الله ﷻ) | | | | |
| الرَّحْمٰنُ | وَلَدًا | سُبْحٰنَهٗ ؕ | بَلْ | عِبَادٌ مُّكْرَمُوْنَ۝ |
| رحمان | اولاد (فرښتو لره) | پاك دې هغه (ددې نه) | بلكه | هغوئ خو بندګان دى چې عزت وركړې شوې دې |
| اولاد نيولې دې احال داچې هغه ددې نه پاك دې ابلكه (فرښتې خو) دهغه ډيرمعزز مخلوق دې | | | | |
| لَا يَسْبِقُوْنَهٗ | بِالْقَوْلِ | وَهُمْ | بِاَمْرِهٖ يَعْمَلُوْنَ۝ | يَعْلَمُ |
| نۀ رومبنې كيږي دهغه نه | په خبره سره | او هغوئ | په حكم دهغه عمل كوئ | معلوم دى هغه ته |
| دهغه نه وړاندې خبره قدر نه كوي او د هغه په حكم پوره پوره عمل كوي ا هغه ته هر هغه څه معلوم دى | | | | |
| مَا | بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ | وَمَا | خَلْفَهُمْ | وَلَا يَشْفَعُوْنَ ۙ |
| هغه څه | چې وړاند ددوئ دى | او هغه څه | چې روستو ددوئ دى | او نۀ هغوئ سفارش كوي (دچا) |
| كوم چه د دوى نه وړاندې دى اوكوم چې ترې شاته دى ا او هغوئ دچا سفارش هم نه كوي | | | | |

[1] ٤٣/الزخرف:٤٥.
[2] ١٦/النحل:٣٦.



| إِلَّا | لِمَنِ | ارْتَضٰى | وَهُمْ | مِّنْ خَشْيَتِهٖ | مُشْفِقُوْنَ ﴿۲۸﴾ |
|---|---|---|---|---|---|
| مګر کوی | دپاره دهغه چا | چي راضي وي ترې الله | او هغوئ | دهيبت دهغه نه | ډيري يريدونکي دي |

سوا د هغه چا نه دچا چي الله ﷻ راضي وي| او هغوئ ټول دالله ﷻ دهيبت نه هميشه يريدونکي وي

| وَمَنْ يَّقُلْ | مِنْهُمْ | اِنِّيْٓ | اِلٰهٌ | مِّنْ دُوْنِهٖ | فَذٰلِكَ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوهغه څوک چي اوواني | ادهغوئ نه | اچي بيشکه زهٔ | امعبود يم | اسوادهغه نه | انو دغه ويونکي چي دي |

اوپه دوئ کښي چي څوک داسې اوواني چي دهغه نه سوا زه معبود يم | نو هغه له مو مونږ

| نَجْزِيْهِ | جَهَنَّمَ ط | كَذٰلِكَ | نَجْزِي | الظّٰلِمِيْنَ ﴿۲۹﴾ ع |
|---|---|---|---|---|
| بدله به ورکوو مونږ هغه له | دوزخ | دارنګې | بدله ورکوو مونږه | ظالمانو له |

ددوزخ سزا ورکووا مونږ ظالمانو ته هم دغه شان سزا ورکووا

قوله تعالىٰ:- وَقَالُوا اتَّخَذَ الرَّحْمٰنُ وَلَدًا سُبْحٰنَهٗ ط

**د مکې دکافرانو بهتانونه ټول او د هغې جواب:-** دمکې دکافرانو داخيال ووچه دافرښتې دالله ﷻ لونړه دي د هغوی ددې خيال ترديد کولوسره الله ﷻ فرمائي دابالکل غلط دي اوفرښتې د الله ﷻ بزرګ بنديګان دي ډيرداوچتو درجو والا دی اودعزت مالکان دی قولاً اوفعلاً هروخت دالله ﷻ په اطاعت کښې مشغولې دی. نه په څه کارکښې د هغه نه وړاندې کيږي اونه په څه کارکښې د هغه د حکم خلاف کوی بلکه چه هغه څه فرمائي دوی په منډه باندې هغه حکم په ځائ راوړي د الله ﷻ په علم کښې راګيرې دی دهغه نه هيڅ خبره پټه نه ده د وړاندې روستوښي اوکس طرف هغه ته پوره علم دې دذرې ذرې نه هغه خبر دې. دا پاکې فرښتې هم دومره مجال نه لري چه د الله ﷻ ديومجرم د الله ﷻ په وړاندې د هغه د مرضئ خلاف د هغه سفارش کولود پاره شوندې اوخوزولې شي. لکه چه ارشاد دې﴿مَنْ ذَا الَّذِيْ يَشْفَعُ عِنْدَهٗٓ اِلَّا بِاِذْنِهٖ ط﴾[1] هغه څوک دی چه د هغه د اجازت نه بغير د چا سفارش هغه له يوړلې شي.

بل آيت کښې دی ﴿وَلَا تَنْفَعُ الشَّفَاعَةُ عِنْدَهٗٓ اِلَّا لِمَنْ اَذِنَ لَهٗ ط حَتّٰٓى اِذَا فُزِّعَ عَنْ قُلُوْبِهِمْ قَالُوْا مَاذَا لا قَالَ رَبُّكُمْ ط قَالُوا الْحَقَّ ج وَهُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيْرُ﴾[2] يعنی هغه سره دچا شفاعت بغيردهغه دخپل اجازت نه نه شي چليدې. هم د دې مضمون نور هم آياتونه په قرآن کريم کښې موجود دی. فرښتې اود الله ﷻ مقرب بنديګان ټول په ټول د الله ﷻ د ويرې اود الله ﷻ د هيبت نه هروخت رچيږي. په هغوی کښې چه څوک هم د رب کيدو دعوی اوکړی مونږ به هغه دوزخ ته ورسيده کړو د ظالمانو به مونږ خامخا بدله اخلو. داخبره د شرط په توګه ده اود شرط دپاره دا ضروری نه دی چه هغه دې واقع هم شي يعنی دا ضروری نه دی چه د الله ﷻ د بندې ګانونه څوک داسې ناپاکه دعوی اوکړی اوداسې سخته سزا اوخوری. هم د دې په شان آيت ﴿قُلْ اِنْ كَانَ لِلرَّحْمٰنِ وَلَدٌ ق فَاَنَا اَوَّلُ الْعٰبِدِيْنَ﴾[3] او ﴿لَئِنْ اَشْرَكْتَ لَيَحْبَطَنَّ عَمَلُكَ وَلَتَكُوْنَنَّ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ﴾[4] نونه درحمن اولاداونه د نبی کريم ﷺ نه شرک ممکن دي.

---

[1] ) ۲/البقره:۲۵۵.
[2] ) ۳۴/سبا:۲۳.
[3] ) ٤۳/الزخرف:۸۱.
[4] ) ۳۹/الزمر:۶۵.ع

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَوَلَمْ يَرَ الَّذِيْنَ | كَفَرُوْٓا | اَنَّ السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضَ | كَانَتَا |
| آیا نه ګوری هغه کسان | چې دمنلو نه ئې انکار کړې دې | چې بیشکه آسمانونه | او زمکه | اوو دواړه |

آیا کافرانو ته داخبره نه ده معلومه چې آسمانونه او زمکه په خپل مینځ کښې ملاؤ وو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| رَتْقًا | فَفَتَقْنٰهُمَا | وَجَعَلْنَا | مِنَ الْمَآءِ | كُلَّ شَيْءٍ | حَيٍّ |
| پیوست | پس جدا جدا کړل مونږه هغه | او پیدا کړل مونږه | داوبو نه | هر څیز | ژوندې |

نوبیامونږ هغه جدا جدا کړل | اومونږ داوبو نه هر ژوندې څیز را پیدا کړې دې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَفَلَا يُؤْمِنُوْنَ | وَجَعَلْنَا | فِي الْاَرْضِ | رَوَاسِيَ | اَنْ تَمِيْدَ بِهِمْ |
| آیا نو نه منی دوئ | او ودرول مونږه | په زمکه کښې | غرونه | چې اونه خوزی (دا زمکه په دوئ باند |

نوآیا دوئ ایمان نه راوړی| او مونږ په زمکه کښې غرونه جوړکړل | ددې دپاره چې اونه خوزی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَجَعَلْنَا | فِيْهَا | فِجَاجًا سُبُلًا | لَّعَلَّهُمْ | يَهْتَدُوْنَ |
| او جوړې کړې مونږه | په دې زمکه کښې | فراخه لارې | دپاره ددې چې دوئ | لارې معلوم کړې |

اوپه دې زمکه کښې مو ارتې بیرته لارې جوړې کړې دی | دې دپاره چې خلق پرې خې راخی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَجَعَلْنَا | السَّمَآءَ سَقْفًا | مَّحْفُوْظًا | وَهُمْ | عَنْ اٰيٰتِهَا | مُعْرِضُوْنَ |
| او جوړکړو مونږه | اسمان چت | محفوظ (دپریوتلونه) | او دوئ | دنښو دهغې نه | مخ اوړونکی دی |

اومونږ اسمان یو محفوظ چت جوړکړو| په دې باندې هم دوئ (اسماني)نښو نه ډډه کوی (اوسوچ فکر نکوی)

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَهُوَ | الَّذِيْ | خَلَقَ | الَّيْلَ | وَالنَّهَارَ | وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ | كُلٌّ |
| او هغه | هغه ذات دی | چې پیدا ئې کړه | شپه | او ورځ | او نمر او سپوږمئ | دا ټول |

او الله ﷻ هغه ذات دی چې شپه ورځ او نمر او سپوږمئ ئې پیدا کړی دی اهریو په خپله

| | |
|---|---|
| فِيْ فَلَكٍ | يَّسْبَحُوْنَ |
| په فلك کښې | لامبو وهی یعنی ګرزی |

خپله دائره کښې لامبووهی |

**قوله تعالى:- اَوَلَمْ يَرَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا**

**د الله ﷻ د قدرت تذکره:-** الله ﷻ داخبره بیان کوی چه د هغه قدرت پوره دې اود هغه زبردسته غلبه ده. فرمانی چه کوم کافران د الله ﷻ نه بغیرد چا عبادت کوی آیا دوی ته دومره هم علم نشته چه د ټول مخلوق پیداکونکې هم الله ﷻ دې اود ټولوڅیزونوساتندونکې هم هغه دې.بیادهغه سره د نورو عبادت ولې کوئی.د زمکې او آسمان د شروع نه یوبل سره یوځائ اُنختلی قط په قط وو الله ﷻ دا جدا جدا کړل زمکې ئی لاندې او آسمانونه ئی پورته په فاصله باندې اوپه حکمت سره قائم کړل. اووه زمکې پیداکړې اوهم اووه آسمانونه ئی پیداکړل. دزمکې اوروميې آسمان په مینځ کښې جوف اوخلا اوساتله دآسمان نه ئی اوبه راوورولې اود زمکې نه ئی پیداوار راوټوکولو او هرژوندې څیزئی د اوبونه پیدا کړو. آیادا ټول څیزونه په کوم کښې چه د هر یوه یوصانع خودمختاری قدرت او وحدت باندې دلالت کوی خپلې مخې ته موجود موندلوسره هم داخلق د الله ﷻ د عظمت قائل کیدو سره شرك نه پریږدی؟



ففی کل شئ له اية تدل علی انه واحد

**اول شپه وه که ورځ:** -يعنی په هريوڅيز کښې د الله ﷻ ربوبيت او د هغه د وحدانيت نښې موجود دی. د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه سوال اوشو چه اول شپه وه که ورځ؟ نو هغوی اوفرمائيل چه اول زمکه او آسمان يوځائ قط په قط ملاوشوې وو نو ښکاره خبره ده چه په دې کښې به تياره وه اود تيارې نوم هم شپه نوثابته شوه چه هم شپه وړاندې وه. (۱)

**د رتقا تفسير اومطلب:** -دابن عمر رضی الله عنه نه چه کله ددې آيت تفسيرتپوس اوشو نوهغوی اوفرمائيل چه تاسو د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه تپوس اوکړئ چه هغه کوم جواب درکړی نوهغه ماته هم اوښايئ. حضرت ابن عباس رضی الله عنه اوفرمائيل زمکه اوآسمان يوځائ وونه به باران وريدلواونه به پيداوار راټوکيدلو. کله چه الله ﷻ ژوندې مخلوق پيداکړو نو آسمان ئې اوشلولواود هغې نه ئې اوبه راووروليې اوزمکه ئې اوڅيرله اود هغې نه پيداوار راوټوکولو. کله چه سوال کونکی حضرت ابن عمر رضی الله عنه ته دا جواب بيان کړو نوهغوی ډيرخوشحاله شو او وئې فرمائيل نن ماته نور هم يقين پيدا شوچه د قرآن په علم کښې حضرت عبدالله رضی الله عنه ډير وړاندې دې زما په زړه کښې به کله داخيال راغلو چه چرته داسې خوبه نه وی چه د عبدالله رضی الله عنه جراءت زيات شوې وی خونن هغه وسوسه د زړه نه لاړه. آسمان ئې اوشلولواووه آسمانونه ئې جوړکړل د زمکې مجموعه ئې اوڅيرله اووه زمکې جوړې کړې.

د مجاهد رحمه الله په تفسيرکښې داهم دی چه دا ملاوشوې وو يعنی اول اووه واړه آسمانونه يوځائ وو اودغه شان اووه واړه زمکې هم يوځائ وې بيادا جداجدا کړې شو. دحضرت سعيدبن جبير رحمه الله تفسيردې چه دا دواړه اول يووو بياجداجدا کړې شو. دزمکې آسمان په مينځ کښې خلا کيخودې شوه اوبه د ټولوسا لرونکو اصل جوړکړې شو. حضرت ابوهريره رضی الله عنه يو ځل حضور ﷺ ته عرض اوکړو چه کله زه تاسو ته ګورم زما زړه خوشحاليږی اوزما سترګې يخيږی تاسو مونږ د ټولو څيزونود اصليت نه خبر کړئ. حضور ﷺ اوفرمائيل ابوهريره ټول څيزونه د اوبونه پيداکړې شوی دی. يوبل روايت کښې دی چه بيا ما اووئيل يارسول الله ﷺ ماته څه داسې عمل اوښائې په کوم سره چه زه جنت ته داخل شم. حضور ﷺ اوفرمائيل خلقو ته سلام کوه په خلقو خوراك خوره صله رحمی کوه اودشپې چه خلق اوده شی نوته د تهجدمونځ کوه دې د پاره چه په سلامتيا سره جنت ته داخل شې. (۲)

**د زمکې درې حصې اوبو کښې دی او يوه حصه ښکاره ده:** -زمکه الله ﷻ عزوجل وتبارك وتعالی د غرونو په ميخونوسره مضبوطه کړه دې د پاره چه هغه په خوزيدو راخوزيدو سره خلق پرشانه نه کړی مخلوق په زلزله کښې وانچوی. دزمکې دريمه حصه خو په اوبوکښې ده او صرف يوه څلورمه حصه دنمر اوهواد پاره کولاوشوې ده دې د پاره چه خلق آسمان او د دې عجائبات په خپلو سترګو سره اوليدې شی. بيا په زمکه کښې الله ﷻ په خپل رحمت کامله سره لارې جوړې کړې چه خلق په آسانئی سره خپل سفراوکړې شی اولرې ملکونوته هم اورسی.

د الله ﷻ شان ته اوګوره په دې ټکره کښې اوچت غرونه حائل دی د دې ځائ نه هغه ځائ ته رسيدل په ظاره سخت او ګران ښکاری خود الله ﷻ قدرت پخپله په دې غرونوکښې لارې جوړوی چه د دې ځائ خلق هلته اود هغه ځائ خلق دلته اورسی اوخپل کار روزګار پوره کړی. آسمان ئې په زمکه په شان د ګنبد جوړکړو لکه چه ارشاد دې چه مونږ آسمان په خپلو لاسونو جوړکړو اومونږ د وسعت اوکشادګئی والايو (۳) فرمائی قسم دې د آسمان اودهغې دجوړخ (۱) ارشاددې چه آياهغوی اونه ليدل چه مونږ دهغوی

---

(۱) الطبری: ۱۸/٤۳۳.
(۲) احمد: ۲/۲۹۵ حاکم: ٤/۱٦۰، مجمع الزوائد: ۵/۱٦، ابن حبان: ٦٤۲.
(۳) ۵۱/الذاريات: ٤۷.

په سرونوباندې اسمان په کوم حيثيت سره جوړکړې دې او څنګه موورته ښانست ورکړې دې اود مزې خبره خودا ده چه په دومره لوئ آسمان کښې يوسورې هم نشته. (٢)
بنا وائی دګنبد اوخيمې اودرلوته، لکه چه رسول الله ﷺ فرمائی داسلام بنا پنځه دی(٣)لکه چه په پنځوستنوباندې يوګنبد يا خيمه ولاړه وی. بيا آسمان چه په شان د چت دې.دادې هم محفوظ اوچت د ځوکئی والا چه ديوځائ نه دې ته ځوك نقصان اونه رسوی اوچت او اعلی صفا دې لکه حديث کښې چه دی يو سړی د حضورﷺ نه سوال اوکړو چه آسمان څه څيز دې حضورﷺ اوفرمائيل رامنع شوې چپه ده. (٤) دا روايت سنداً غريب دې.
خوخلق د الله ﷻ د دې زبردستونښونه هم بې پرواه دی لکه چه ارشاد دې د زمکې اوآسمان ډيرې نښې دی چه دبرخلقو د نظرلاندې دی خوبیاهم هغوی دې نه مخ اړولې دې. (٥) څوك غور اوفكر نه كوی څوك سوچ نه کوی چه داڅومره خورشوې دې څومره اوچت څومره عظيم الشان آسمان زمونږ په سرونو باندې بغيرد ستنو الله ﷻ څنګه قايم ساتلې دې. بيا څومره په ښکلې طريقه سره دا ستوری پيللې شوی دی په دې کښې هم څه ولاړ دی اوڅه روان دی. بيا د نمر چال مقرر دې د دې موجودګی ورځ ده د دې په نظر نه راتلل شپه ده د پوره آسمان يوچکر په يوه شپه او ورځ کښې پوره کوی. د دې چال د دې تيزی بغيرد الله ﷻ نه بل څوك نه پيژنی اوهسې اټکلې اواندازې کول بله خبره ده.
**د بنی اسرائيلو د يو عابد واقعه**:-د بنی اسرائيلوعابدانوکښې يوخپل ديرش کاله موده دعبادت پوره کړه خو چه څنګه به د نورو عابدانود پاره ديرش کاله عبادت کولونه پس اوريځ سورې کولو په ده باندې اونه شو نوهغه خپلې مور ته داحال بيان کړو. هغې وئيل بچې تابه د دې عبادت په موده کښې څه ګناه کړې وی هغه وئيل مورې يوه هم نه. ونی وئيل بيا به تا چرته د ګناه کولو پوره قصد اواراده کړې وی. جواب نې ورکړو چه داسې هم بالکل نه دی شوی. مور نې وئيل ممکن دی چه تاآسمان ته کتلې وی اود غور اوفکر کولونه د بغيرستړګې ښکته کړې وی عابد وئيل چه داسې خو برابر کيدل ونی فرمائيل بس هم دا وجه ده. بيانی د خپل قدرت کامله بعضې نښې اوخودلې چه شپې اود دې تيارې ته اوګوره اود دې په رڼرا باندې نظرواچوه. بيا د يو بل پسې وار په وار راتللو انتظام او په اهتمام سره راتلل ګوره چه د يو کميدل دبل زياتيدل. ګوره نمر او سپوږمئی ته د نمر رڼرا يوه خاص رڼرا ده اود دې آسمان د دې حرکت اود دې چال جدا دې. د سپوږمئی نور جدا دې آسمان نی جدا دې چال نی جدا دې اندازې جدا دی او هريو لکه چه په خپل آسمان کښې روان وی ګرځی.(٦)
اود الله ﷻ دحکم په ځائ راوړلو کښې مشغول دی لکه چه ارشاد دې هم هغه سحر روښانه کونکې دې هم هغه شپه په سکون او آرام کونکې دې هم هغه د نمر اوسپوږمئی اندازه مقررکونکې دې هم هغه د عزت غلبه او د علم والا دې.(٧)

---

(١) ٩١/الشمس:٩١.
(٢) ٥٠/ق:٦.
(٣) صحيح بخاری کتاب الايمان باب دعاؤکم ايمانکم:٨، صحيح مسلم:١٦،ابن حبان:٣٧٤/١، ترمذی:٢٦٠٦،مجمع الزوائد:٤٧/١، بيهقی ٣٥٨/١،مصنف عبدالرزاق:١٧٤/٥.
(٤) ابن ابی حاتم وسنده حسن، العظمة لابی الشيخ:٥٣٩، الاحاديث المختاره:١٨/١ح١١٧.
(٥) ١٢/يوسف:١٠٥.
(٦) الطبری:٥٢٠/١٨.
(٧) ٦/الانعام:٩٦.

| | | |
|---|---|---|
| وَمَا جَعَلْنَا | لِبَشَرٍ | مِّنْ قَبْلِكَ |
| او نه دي جوړ کړي مونږه | دپاره ديو انسان | مخکښې ستا نه |

او مونږستا نه وړاندې هم دهيڅ يو انسان دپاره هميشه پاتې کيدل نه دي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الْخُلْدَ ط | أَفَإِنْ | مِّتَّ | فَهُمُ | الْخٰلِدُوْنَ ﴿۳۴﴾ | كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ |
| هميشوالي | آيا پس که چرې | مړ شې ته | نو دوئ به ګڼې | هميشه وي | هر نفس | څکونکې |

جوړ کړي | نوآيا که ته وفات شې | نو داخلق بۀ دلته هميشه پاتې شي | هريو نفس به دمرګ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الْمَوْتِ ط | وَنَبْلُوْكُمْ | بِالشَّرِّ | وَالْخَيْرِ | فِتْنَةً ط |
| د مرګ دي | او ازمايو مونږ تاسو | په بدو حالاتو کښې | او په ښه حالاتو کښې | په ازمائيلو سره |

مزه څکي | اومونږد امتحان دپاره په تاسو باندې سختى اوراحت راولو | اوزمونږ طرف ته به

| | |
|---|---|
| وَإِلَيْنَا | تُرْجَعُوْنَ ﴿۳۵﴾ |
| او خاص مونږ ته به | راوستلې کيږئ تاسو |

تاسو ټول راواپس کيږئې |

قوله تعالى:- كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ ط

**مرګ اټل حقيقت دې**:-خومره هم چه خلق دى دا ټول مرګ يوه ورخ مره کونکى دى دمخ د زمکې ټول مخلوق به مرګ سره مخ کيدونکى دى اودرب دشان اوجلال والا ذات هميشه دپاره ژوندې پاتې کيدونکې دې. هم د دې ايت نه علماؤ استدلال کړې دې چه حضرت خضر ﷺ مړشوې دې. داغلط دى چه هغه تراوسه پورې ژوندې دې ځکه چه هغه هم انسان وو اود الله ﷺ ولى وو يانبى يا رسول وو خو هم انسان وو. د دې کافرانو دا آرزو څومره ناپاکه ده چه ته به مړشې نو ولې دا د هميشه اوسيدو د پاره دې؟ داسې خو ناممکن دى دنياخو روانه ده چاله هم بغيرد الله ﷺ نه هميشه والې نشته څوک وړاندې دې څوک روستو.

**مرګ ژوند ،تنګى ،فراخى ټول امتحان دى**:-بيافرمائى دمرګ خوند به هرکس څکى. حضرت امام شافعى ﷫ به دافرمائيل چه خلق زمادمرګ خواهش مندى نوآيا دې باره کښې هم زه يوازې يم؟ داهغه خوند نه دې چه څوک به پرېږدى. بيافرمائى د نيکئى بدئى آرام او بى آرامى خواږه تراخه وسعت اوتنګئى سره ،مونږ خپل بنديګان ازميښت کوو دې د پاره چه شکر کونکې شکرکونکې اونه شکرکونکې صابر اوناامېده معلوم شي. صحت بيـ.ارى ..الدارى اوفة .رى سختى اونرمى حلال اوحرام هدايت اوګمراهى اطاعت اوګناه ټول ازميښتونه دى په دې کښې ښه اوخراب ښکاره کيږى ستاسود ټولو راواپس کيدل هم زمونږ طرف ته دى هغه وخت چه څنګه وى ښکاره به شي بدانوته به سزا او نيکانوته بدله به ملاويږى. (۱)

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَإِذَا | رَاٰكَ | الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا |
| او کله چې | اووينى تا | هغه کسان | چې دحق نه انکاريان دى |

اوهر کله چې کافران تا اووينى نو نور څه نه

(۱) الطبرى:۱۸/۴۴۰.

| اِنْ يَّتَّخِذُوْنَكَ | اِلَّا | هُزُوًا | اَهٰذَا | الَّذِيْ | يَذْكُرُ | اٰلِهَتَكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نه نيسي دوئ تاله | مگر | په ټوقوسره | آيا دا دي | هغه څوک | چي يادوي | خدايان ستاسو |
| خو ټوقي درپوري شروع كوي \| چي آيا دا هغه (سړی) دی چي ستاسو دمعبودانو ذكر (په بدئي) كوي | | | | | | |
| وَهُمْ | بِذِكْرِ الرَّحْمٰنِ | هُمْ | كٰفِرُوْنَ | خُلِقَ | الْاِنْسَانُ | |
| او حال دا چي دوئ | په ذكر درحمان سره | پخپله | انكاريان دي | پيدا كړې شوې دی | انسان | |
| اوحال دادي چي دوئ پخپله د رحمان د ياد نه انكار يان دی \| د انسان په پيدائش (فطرت) كښې | | | | | | |
| مِنْ عَجَلٍ | سَاُورِيْكُمْ | اٰيٰتِيْ | فَلَا تَسْتَعْجِلُوْنِ | | | |
| دتلوار (بې صبرئ) نه | ډير زر به اوښايم زه تاسو ته | نښې زما | پس تلوار مه كوئ (دعذاب) زما | | | |
| تندی ايښودې شوې ده \| زه به ډير زرتاسو ته خپلې نخښې اوښايم \| نو تاسو تندی مه كوئ | | | | | | |

**قوله تعالى:- اِنْ يَّتَّخِذُوْنَكَ اِلَّا هُزُوًا**

**د كافرانو ټوقې مسخرې كول:-** ابوجهل او د قريشو كافران وغيره به حضورﷺ ته په كټلو سره خنداګانې اومسخرې شروع كولې اوحضورﷺ په شان كښې به ئې بې ادبی كوله ونيل به ئې چه ښه ده ګورئي دغه دې چه زمونږمعبودانوته بدې ردې وائي.ستاسو مشرانوته بې وقوفان وائي يوخوددوی دا سركشی ده اوبل پخپله د رحمن د ذكر نه منكر دی دالله ﷻ منكردی اود رسول الله ﷺ منكر دی. په بل آيت كښې د دوی هم د دې كفر بيان كولوسره فرمائيلی دی ﴿اِنْ كَادَ لَيُضِلُّنَا عَنْ اٰلِهَتِنَا لَوْلَآ اَنْ صَبَرْنَا عَلَيْهَا ۚ وَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ حِيْنَ يَرَوْنَ الْعَذَابَ مَنْ اَضَلُّ سَبِيْلًا﴾ [1] يعنی هغه خودې وائي خومونږكلك ولاړيوكنی هغه خو مونږدخپل معبودانو نه زړه توری كولوكښې هيڅ كمې نه دې پريخې.خبردوی ته به د عذاب په كتلوسره معلومه شي چه ګمراه څوك ووانسان ډيرجلدبازدي.حضرت مجاهدرحمه الله فرمائي الله ﷻ دټولوڅيزونود پيدا كولو نه پس آدم عليه السلام پيداكول شروع كړو. ماښام سره نيزدې چه په هغه كښې روح وربوك وهلې شو په سر ژبه اوسترګوكښې كله روح راغلو نو وئې ونيل يا الله ﷻ چه د ماښام نه وړاندې زما پيدائش مكمل شي.

حضورﷺ فرمائي په ټولوورځوكښې بهتراوغوره ورځ د جمعه ورځ ده. هم په دې ورځ حضرت آدم عليه السلام پيداكړې شو هم په دې جنت ته داخل كړې شو هم د هغه ځائ نه راكوزكړې شو هم په دې كښې به قيامت قايمولې شی هم په دې ورځ كښې يوساعت دې په هغه وخت كښې چه كله بنده په مانځه كښې وی اود الله ﷻ نه څه غواړی نو الله ﷻ هغه وركوی. حضورﷺ په خپلو ګوتومباركوسره اشاره اوكړه وئې خودل چه دا ساعت ډير كم دې. حضرت عبدالله بن سلام رضي الله عنه فرمائي ماته معلومه ده هغه ساعت كوم يودې هغه د جمعه د ورځ آخری ساعت دې هم دغه وخت الله ﷻ حضرت آدم عليه السلام پيدا كړو. [2]

**موحدانو ته تسلی او زغم كول:-** په اول آيت كښې د كافرانود بدبختنی ذكركولوسره د دې نه پس د انسان د تندنی كولو په دې حكمت سره دې لكه چه د كافرانو سركشی اوريدوسره د مسلمانانو د انتقام جذبه راوچتيږی اوهغوی ډير زربدله اخستل غواړی په دې وجه چه انسان پيدائشی جلدباز دې خود الله ﷻ عادت دا دې چه هغه ظالمانوته وخت وركوی خوچه بيائي كله رانيسی نو پريږدی نه. د دې د پاره ئې اوفرمائيل چه زه تاسو ته خپلې نښې خودونكې يم چه په ګناهګارانو باندې به څنګه سختی وی.زماپه

[1] ۲۵/الفرقان:۴۲.

[2] ابوداؤد كتاب الجمعة باب فضل يوم الجمعة وليلة الجمعة:۱۰۴۶ وسنده صحيح،ترمذی: ۴۹۱،احمد:۴۸۶/۲،حاكم:۲۷۸/۱

نبي ﷺ پورې ټوقې کونکې خرمن څنګه اوباسم تاسو به هم اوس اوګورئ چغې مه وهئ دير شته خو انډهير نشته په مهلت سره هيريږى نه.

وَيَقُولُونَ مَتٰى هٰذَا الْوَعْدُ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ۝ لَوْ يَعْلَمُ

او وائي دا خلق | کله به وی | دا وعده | که يئ تاسو | رښتيني | افسوس که معلوم وې

او دوئ وائي چې دا وعده بهٔ کله پوره کيږى که تاسو رښتوني يئ (نورائې ولئ) | کاش ! منکرانو ته

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا حِيْنَ لَا يَكُفُّوْنَ عَنْ وُّجُوْهِهِمُ النَّارَ

هغه کسانو ته | چې کافران دي | کوم وخت چې | نهٔ به شي منع کولې | دمخونو خپلو نه | وور

هغه وخت معلوم وې | چې دوئ به نه دخپلو مخونو نه اور منع کولې شي

وَلَا عَنْ ظُهُوْرِهِمْ وَلَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ۝ بَلْ تَاْتِيْهِمْ

او نهٔ دشاګانو خپلو نه | اونهٔ به ددوئ سره | امداد اوکړى شي | بلکه رابه شي دوئ ته |

او نه به دخپلو شاګانو نه نه | او نه بهٔ ورسره څه قسم مدد کولې شي | نور څه نه خو دغه اور

بَغْتَةً فَتَبْهَتُهُمْ فَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ رَدَّهَا

(عذاب) ناڅاپه | پس حيران به کړى دوئ | او طاقت به نهٔ لرلې دوئ | د واپس کولو دهغې |

به پرې ناګهانه راشي | او دوئ بهٔ حيران کړى | نو بيا به ترې نه هغه اور لرې کولې شي | اونه به ورته

وَلَا هُمْ يُنْظَرُوْنَ۝ وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّنْ قَبْلِكَ

اونهٔ به دوئ ته | مهلت ورکړى شي | او بيشکه ټوقې شوې دي | په رسولانو پورې | مخکښې ستا نه

(دتوبې ويستلو) مهلت ورکولې شي | او ستانه وړاندې هم دپيغمبرانو پورې ټوقې شوې وې

فَحَاقَ بِالَّذِيْنَ سَخِرُوْا مِنْهُمْ مَّا كَانُوْا

پس چاپيره شو | په هغه کسانو باندې | چې ټوقې ئې کولې | په دوئ پورې | هغه څيز | چې وو هغوئ

نو چا چې ورپورې خندګانې کولې | دهغوئ نه هم هغه عذاب راتاؤ شو | په کوم پورې

بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ۝ قُلْ مَنْ يَّكْلَؤُكُمْ بِالَّيْلِ

په هغې پورې | چې ټوقې به ئې کولې | ورته اووايه | څوک دې | چې بچ کوی تاسو | په شپه کښې

چې دوئ خندل | (ائې پيغمبره) ورته اووايه چې څوک به د رحمان دعذاب نه ستاسو د شپې

وَالنَّهَارِ مِنَ الرَّحْمٰنِ ؕ بَلْ هُمْ عَنْ ذِكْرِ رَبِّهِمْ مُّعْرِضُوْنَ۝

او په ورځ کښې | درحمان نه | بلکه دوئ | دذکر | درب خپل نه | مخ اړونکي دي |

اود ورځې حفاظت اوکړى | (که هغه اوغواړی) خبره داده چې دوئ دخپل رب د ياد نه مخونه اړوی

اَمْ لَهُمْ اٰلِهَةٌ تَمْنَعُهُمْ مِّنْ دُوْنِنَا ؕ لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ نَصْرَ

ايا | شته دوئ لره | خدايان | چې منع کړى دوئ | زمونږ نه | دوئ طاقت نهٔ لرى | دامداد

ايا دوئ سره زمونږ نه سوا داسې معبودان شته | چې ددوئ حفاظت اوکړى ؟ هغوئ

| يُصۡحَبُوۡنَ۝ | مِّنَّا | وَلَا هُمۡ | اَنۡفُسِهِمۡ |
|---|---|---|---|
| ملګرتيا اوکړې شي | دطرفه زمونږ نه | اونه به ددوئ سره | دنفسونو خپلو |

خو دخپلو ځانونو مدد هم نشي کولې اونه زمونږ په مقابله کښې دهغوی ملګرتيا کولې شي.

**قوله تعالٰی:- وَيَقُوۡلُوۡنَ مَتٰى هٰذَا الۡوَعۡدُ اِنۡ كُنۡتُمۡ صٰدِقِيۡنَ۝**

**د کافرانو د قيامت غوښتنه او هغوئ ته رټنه:-** دالله ﷻ عذاب راتلل د قيامت راتلل دې خلقو محال ګڼړلو په دې وجه به ئې په کبرسره وئيل اوښايه ستاداويرول به کله پوره کيږي؟دوی ته جواب ورکولې شی که تاسوپوهيدلئی اود هغه ورځ دتباهونه خبر وئی نوتندی به مونه کوله هغه وخت به دالله ﷻعذاب لاندې باندې راغونډکړې وی.طاقت به ئی نه وی چه د الله ﷻ عذاب د ځان نه وړاندې روستو کړې شی. د ګوګړو(ګندهك) جامې به وی په کوم کښې چه به اُور لګيدلې وی اوپه ولاړه به سوزيږی.دهرطرف نه به دوزخ راګيرکړې وی هيڅ څوك به نه وی چه امداد ئی اوکړی. هيڅ بهانه به نه ملاويږی چه دا لرې کړی. دې نه به نه بچ کيږی اونه به ورته د يوساعت ډهيل اومهلت ملاويږی.

**مخکينوخلقوهم رسولانوپورې ټوقې کولې:-** الله ﷻ خپل پيغمبرﷺ ته تسلی ورکولوسره فرمانی تاسو چه تنکوی ياټوقبکوی اودروغ وائی پدې پريشانه کيږه مه د کافرانودازورعادت دې.مخکينو پيغمبرانو سره هم دوی داسې کړی دی د څه په وجه چه آخر په عذاب کښې راګيرکړې شو لکه چه فرمانی ﴿وَلَقَدۡ كُذِّبَتۡ رُسُلٌ مِّنۡ قَبۡلِكَ فَصَبَرُوۡا عَلٰى مَا كُذِّبُوۡا وَاُوۡذُوۡا حَتّٰۤى اَتٰٮهُمۡ نَصۡرُنَا‌ ۚ وَلَا مُبَدِّلَ لِـكَلِمٰتِ اللّٰهِ‌ ۚ وَلَقَدۡ جَآءَكَ مِنۡ نَّبَاِى الۡمُرۡسَلِيۡنَ۝﴾ [1] تانه وړاندې انبياء کرام هم دروغ ګڼړلې شوی دی اوهغوی په خپل تکذيب باندې صبرکړې دې ترديې چه هغوی له زمونږ امداد راغلو. د الله ﷻ خبرې څوك بدلونکی نشته مونږ له د رسولانو خبرې راغلې دی.بيا خپل نعمت بيانوی چه هغه ستاسودټولو حفاظت شپه ورځ په خپلو سترګو سره کوی چه نه اوده کيږی اونه سترې کيږی. ﴿من الرحمن﴾معنی د رحمن بدلې يعنی د رحمن نه بغيردی. عربی شعرونوکښې هم "من"دبدل په معنی کښې دې.هم پدې يواحسان باندې څه موقوف دی داکافران خود الله ﷻ د هريو احسان ناشکری کوی بلکه د هغه د نعمتونومنکردی اود هغې نه مخ اړونکی دی. بيا د انکار په توګه په هغوی باندې غصه کولوسره فرمانی آيادهغوی معبودان چه دالله ﷻنه بغيردی هغوی پخپل حفاظت کښې ساتی يعنی هغوی داسې نه شی کولې د هغوی صرف داګمان کول غلط دی بلکه د هغوی باطل معبودان پخپله د خپل امداد او حفاظت هم مالکان نه دی بلکه هغوی زمونږ نه بچ کيدې هم نه شی. زمونږ دطرف نه هيڅ يو خبرد هغوی په لاس کښې نشته. يوه معنی د دې جمله داهم ده چه نه خو هغوی څوك بچ کولې شی اونه ځان بچ کولې شی.

| عَلَيۡهِمُ | طَالَ | حَتّٰى | وَاٰبَآءَهُمۡ | هٰٓؤُلَآءِ | بَلۡ مَتَّعۡنَا |
|---|---|---|---|---|---|
| | چې اورده شوپه دوئ باند | اتر دې پورې | او پلارانو ددوئ ته | دوئ ته | بلکه ښه سامانونه ورکول مونږ |

مونږ دوئ او ددوئ پلار نيکه ته دنياوی نعمتونه ورکړل ترديې چې په دوی باندې يوه اوږده موده تيره

| نَـنۡقُصُهَا | نَاۡتِى الۡاَرۡضَ | اَنَّا | اَفَلَا يَرَوۡنَ | الۡعُمُرُ‌ |
|---|---|---|---|---|
| چې کموږ مونږه هغه | راځو زمکې ته | چې بيشکه مونږه | ايا نه وينی دوئ | عمرونه |

شوه ايا دوئ نه ګوری چې مونږ(ددوئ دقبضې لاندې) زمکه (په اسلامی فتوحاتو سره) د هرطرفه

[1] ٦/الانعام:٣٤.

مِنْ اَطْرَافِهَا ۭ اَفَهُمُ الْغٰلِبُوْنَ ۝ قُلْ اِنَّمَآ اُنْذِرُكُمْ

د طرفونو دهغې نه | آیا نو ګنی دوئ به | غالب شي | بیشکه چې | زهٔ یروم تاسو

راټنګوؤ | نو آیا د دې باوجود هم دوئ غلبه بیاموندې شی | ته ورته اووایه چې زه خو تاسو صرف

بِالْوَحْيِ ۖ وَلَا يَسْمَعُ الصُّمُّ الدُّعَآءَ اِذَا مَا يُنْذَرُوْنَ ۝ وَلَئِنْ

په ذریعه دوحی | اونهٔ اوری | کانړه خلق | آواز (بلنه) | کله چې | هغوئ یرولې کیږی | او که چرې

د وحی په ذریعه (د الله ﷻ دعذاب نه یروم) | او کانړه چې څه وخت ویرولې شی اِنو هغوی هډو آواز نه

مَّسَّتْهُمْ نَفْحَةٌ مِّنْ عَذَابِ رَبِّكَ لَيَقُوْلُنَّ يٰوَيْلَنَآ

اورسیږی دوئ ته | لږ شان | دعذاب درب ستا نه | نو خامخا وائی دوئ | اے هلاکته زمونږه |

اوری | او که چرې ستا درب له طرفنه دوئ ته دعذاب یوه چپه راشي اِنو دوئ وائی چې هائې زمونږ

اِنَّا كُنَّا ظٰلِمِيْنَ ۝ وَنَضَعُ الْمَوَازِيْنَ الْقِسْطَ لِيَوْمِ

بیشکه مونږه | وؤ | ظالمان | او مونږه به کیږدو | تلې | دانصاف | دپاره دورځې

بدبختئ | بیشکه مونږ په ځانونو باندې ظلم کړې وو | او مونږ به دقیامت په ورځ د انصاف تلې اولګوو

الْقِيٰمَةِ فَلَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْئًا ۭ وَاِنْ كَانَ مِثْقَالَ حَبَّةٍ

دقیامت | پس ظلم به نهٔ کیږی | دیو نفس سره | هیڅ قدرله | او که چرې وی | په قدر | دیوې دانې |

نو په چا به ذره برابر هم ظلم نشی کولې | او که (دچا عمل) دا اوری ددانې هومره هم وړوکې وی اِنو هم

مِّنْ خَرْدَلٍ اَتَيْنَا بِهَا ۭ وَكَفٰى بِنَا حٰسِبِيْنَ ۝

داوری | راًبه وړو مونږه | هغه | او کافی یو مونږه | حساب کونکی |

به هغه بیش کړو | او د حساب اخستلو دپاره مونږ یوازې بس یو |

**قوله تعالٰى:- بَلْ مَتَّعْنَا هٰٓؤُلَآءِ وَاٰبَآءَهُمْ**

**د کافرانو او الله ﷻ بعضې نخښې:-** دکافرانود کینې اودهغوی پخپله ګمراهئی باندې د کلکیدلو وجه بیان فرمائی ذوی ته دخوراك څښاك دپاره ملاویږی هغوی ته اوږده اوږده عمرونه ملاو دی. هغوی دا اوګنړل چه زمونږ داکړه وړه د الله ﷻ خوښ دی. دې نه پس هغوی ته نصیحت کوی ولې هغوی دا نه ګوری چه مونږ کلی په کلی دهغوی دکفر په وجه تباه کړه. د دې جمله نورې هم ډیرې معنې کړې شوی دی. کومې چه مونږ په سورت رعد کښې بیان کړی دی خو ډیره صحیح معنی هم دا ده لکه چه فرمائی ﴿وَلَقَدْ اَهْلَكْنَا مَا حَوْلَكُمْ مِّنَ الْقُرٰى وَصَرَّفْنَا الْاٰيٰتِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ۝﴾[1] مونږ ستاسو خواکې کلی تباه کړل اوخپلې نښې په اړولو راړولو تاسو ته اوخودلې دې دپاره چه خلق د خپلو بدونه واوړی. حسن بصری رحمه الله د دې یوه معنی داهم بیان کړې ده چه مونږ په کفرباندې اسلام غالب کړې دې.[2]

آیا تاسود دې نه عبرت نه حاصلونی چه څنګه الله ﷻ دوستان په دښمنانوباندې غالب کوی او څنګه تکذیب کونکی وراندینی امتونه هغه تباه برباد کړل اومؤمنانوبند یګانوته خلاصې ورکړې شو. آیااوس هم داخلق خپل ځان هم غالب ګڼړی؟داسې نه ده بلکه دامغلوب دی ذلیل دی رذیلان دی او په نقصان

[1] ٤٦/الاحقاف:٢٧.

[2] الطبری:١٠/٤٩٤.

کښې دی.دبربادئي لاندې دی زه خود الله ﷻ د طرف نه مبلغ یم د کومو عذابونونه چه تاسو خبردارکوم دازمادخپل طرف نه نه دی بلکه د الله ﷻ د طرف نه دی اوچه د چا سترګې الله ﷻ رندی کړی دی زړه اودماغ ئې بندکړی دی هغوی ته د الله ﷻ داخبرې سودمندنه پریوځی. کانړه خبرول بې کاره دی ځکه چه هغوی خاوری نه. که په دې ګناهګارانوباندې یووړوکې غوندې عذاب هم راشی نو چغې صورې کوی اوهغه وخت ډیر زرد خپل قصور اقرارکوی. د قیامت په ورځ به د انصاف تله قایمولې شی دا تله هم یوه وی خوچه کوم عملونه په دې کښې تللې شی هغه به ډیرزیات وی په دې اعتبارسره ئې د جمع لفظ راوړې.په هغه ورځ به په چا باندې هیڅ ظلم هم نه شی کولې ځکه چه د حساب اخستونکې الله ﷻ پخپله دې چه هم ځان له د ټول مخلوق دحساب اخستلو د پاره کافی دې. د هروړوکی نه وړوکې عمل به هلته موجودشی.

بل آیت کښې فرمائیلې دی ستارب به په چاباندې ظلم نه کوی. ارشاددې﴿ إِنَّ اللَّهَ لَا يَظْلِمُ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ وَإِن تَكُ حَسَنَةً يُضَاعِفْهَا وَيُؤْتِ مِن لَّدُنْهُ أَجْرًا عَظِيمًا﴾ (١) الله ﷻ د اوری د یوې دانې هومره هم ظلم نه کوی. نیکی زیاتوی اوودې اجر دخپل ځان نه ډیر زیات ورکوی. حضرت لقمان ؑ په خپلو وصیتونوکښې خپل خوئ ته فرمائیلې وو بچې که د اوری د یوې دانې برابر هم عمل وی که په کانړې کښې وی که په آسمانونو کښې وی یاپه زمکه کښې وی الله ﷻ به هغه راوړی او ډیر باریك بین او خبردې. بخاری اومسلم کښې رسول الله ﷺ فرمائی دوه کلمې دی چه په ژبه باندې سپکې دی په تله کښې ډیرې درنې دی الله ﷻ ته ډیرې خوښې دی. ﴿سبحان الله وبحمده سبحان الله العظيم﴾ (٢)

**د لااله الا الله د ذکر فضائل:**-مسنداحمدکښې دی رسول الله ﷺ فرمائی زما د امت یوسړې به د قیامت په ورځ الله ﷻ د ټول اهل محشرپه وړاندې خپل ځان له راوغواړی اود هغه د ګناه به یوکم سل دفتری د هغه په وړاندې راکولاوکړی د کوم ځائ پورې چه نظرکارکوی دومره دومره به یویو دفتر وی بیا به الله ﷻ د هغه نه تپوس اوکړی چه آیاتاته په دې خپلوکړې شوو ګناهونوکښې د یوې نه څه انکارشته؟ زما د طرف نه چه کومې حفاظت کونکې فرښتې ستا په اعمالولیکلوباندې مقررکړې شوې وې هغوی په تاباندې څه ظلم خونه دې کړی؟ جواب به ورکړی اې الله نه د انکارګنجائش شته اونه داونیلې شم چه په ظلم سره ئې لیکلې دی الله ﷻ به فرمائی چه ښه ده تاسره څه عذرشته یاڅه نیکی شته؟ هغه به ویریدلې وی وائی به هیڅ هم نشته. رب العالمین به اوفرمائی ولې نه بې شکه ستایوه نیکی مونږ سره شته اونن به په تاباندې هیڅ ظلم نه شی کولې. یوه وړه شان پرچه به راوویستلې شی په کوم کښې چه به ﴿اشهدان لااله الاالله وان محمدارسول الله﴾ لیکلې وی الله ﷻ فرمائی چه دا پیش کړئی هغه به وائی اې الله ﷻ داپرچه به د دې دفترو په مقابله کښې څه اوکړی؟ الله ﷻ به فرمائی په تا باندې به ظلم نه شی کولې.اوس به ټول په ټول دفترونه د تلې په یوچابړې کښې کیخودې شی اوهغه پرچه به د تلې په بل چابړې کښې کیخودې شی نود دې پرچه وزن به د هغه دفترونونه زیات شی. دا به ښکته شی اوهغه به اوچت شی. د رب رحمن او رحیم د نوم نه به بل هیڅ وزنی څیز نه وی. ابن ماجه او ترمذی (٣) کښې هم روایت دی.

---

(١) ٤/النساء: ٤٠.

(٢) صحيح بخاری کتاب التوحيد باب قول الله تعالى ﴿ونضع الموازين القسط ليوم القيامة﴾: ٧٥٦٣،صحيح مسلم: ٢٦٩٤، ترمذی: ٣٤٢٧، ابن ماجه: ٣٨٠٦، احمد: ٢٣٢/٢، ابن حبان: ٨٣١.

(٣) احمد: ٢١٣/٢، كتاب الايمان باب ماجاء فيمن يموت وهو يشهد ان لا اله الاالله: ٢٦٣٩وسنده صحيح،ابن ماجه: ٤٣٠٠، حاكم: ٦/١، ابن حبان: ٢٢٥.

مسند احمد کښې دي د قیامت په ورځ چه کله تلې کیخودې شي نو یوسړې به راویستلې شي او په بوچاړې کښې به کیخودلې شي اوکوم څه چه په هغه باندې شمیرلې شوی دی هغه به هم کیخودې شي نو هغه چاپړې به ښکته شي اودې به د دوزخ طرف ته اولیګلې شي. اوس به هغه شا کړې وی چه د الله ﷻ د طرف نه به یوه فرښته آواز ورکړې تندی مه کونې یوځیز د ده پاتې دې بیا به یوه پرچه راوویستلې شي په کوم کښې چه به﴿لااله الاالله﴾ وی اوهغه به ددې سړی سره په تله کښې کیخودې شي او دا د نیکو چاپړې به ټیټ شي. (۱)

د مسنداحمد په یوحدیث کښې یوصحابی ﷺ رسول الله ﷺ سره کیناستو ونی ونیل یارسول الله ﷺ زما غلام دې چه زما تکذیب هم کوی زما خیانت هم کوی زما نافرمانی هم کوی اوزه هم هغه وهم ټکوم او بدې ردې هم ورته وایم. اوس تاسواوفرمائې چه زما اود هغه به څه حال وی؟ حضور ﷺ اوفرمائیل د هغه نافرمانی دروغژن ګنړل اوخیانت هرڅه به راجمع کړې اوستا وهل ټکول بدې ردې ونیل اوس که ستاسزا دهغه د خطا برابره شوه نو ته خلاص شوې نه عذاب نه ثواب اوکه چرته ستا سزا کمه پاتې شوه نوتانه به د الله ﷻ فضل اوکرم ملاوشی اوکه ستا سزا د هغه کړو نه زیاته شوه نوتانه به د دې زیاتې شوې سزابدله اخستې شي.دې اوریدوسره هغه صحابی ﷺپه ژړا شو اوچغې نی شروع کړې نوحضور ﷺ اوفرمائیل په ده څه اوشو؟ آیا ده په قرآن کریم کښې دا نه دی لوستلې ﴿وَنَضَعُ الْمَوَازِينَ الْقِسْطَ لِيَوْمِ الْقِيَامَةِ فَلَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْئًا ۖ وَإِن كَانَ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ أَتَيْنَا بِهَا ۗ وَكَفَىٰ بِنَا حَاسِبِينَ﴾(۲)دې اوریدوسره هغه صحابی ﷺ اووئیلې یارسول الله ﷺ دا معاملات اوریدوسره خو زما زړه غواړی چه خپل ټول غلامان آزاد کړم تاسو ګواه اوسیږئی دا ټول د الله ﷻ په لار کښې آزاد دی. (۳)

| وَلَقَدْ اٰتَيْنَا | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| او په تحقیق ورکړې وو مونږه | | | | | |
| او مونږ موسی ﷺ او | | | | | |
| مُوسٰى | وَهٰرُونَ | الْفُرْقَانَ | وَضِيَاءً | وَّذِكْرًا | |
| موسی او هارون ته | فرق کونکې په منځ دحق او دباطل کښې | او رڼړا | او نصیحت | | |
| هارون ته (تورات) ورکړې ووا چې په حق اوباطل کښې فرق کوونکې او رڼړا وه اود پرهیزګارو | | | | | |
| لِّلْمُتَّقِينَ | الَّذِينَ | يَخْشَوْنَ | رَبَّهُم | بِالْغَيْبِ | |
| دپاره دپرهیزګارانو | هغه پرهیزګاران | چی هغوئ یریږی | درب خپل نه | په غیب سره (بې لیدو) | |
| دپاره نصیحت وو ا.............هغه خلق چې دخپل رب نه غائبانه ویریږی | | | | | |
| وَهُم | مِّنَ السَّاعَةِ | مُشْفِقُونَ | وَهٰذَا | ذِكْرٌ | مُّبَارَكٌ |
| او هغوئ | دحساب کتاب دوخت نه | یریدونکې وی | او دا (قران) | نصیحت دې | برکتناك |
| دقیامت نه هم ویره کوی ا اودا (قران پاك) بابرکته نصیحت دې ا کوم چې مونږ نازل | | | | | |

(۱) احمد: ۲/۲۲۱-۲۲۲، الترمذی: ۲٦۳۹ وهوحدیث صحیح، مجمع الزوائد:٦/۲۸۰.
(۲) ۲۱/الانبیاء:٤۷.
(۳) احمد: ۲/۲۸۰،ترمذی کتاب تفسیرالقرآن، باب ومن سورة الانبیاء:۳۱٦٥.

| أَنْزَلْنٰهُ ط | أَفَأَنْتُمْ | لَهُ | مُنْكِرُوْنَ ع |
|---|---|---|---|
| نازل کړي دي مونږه دا | آيا تاسو | ددې نه | انکار کونکي يئ |
| کړي دي نو آيا تاسوددې نه انکار کوئی | | | |

قوله تعالى:- وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسٰى وَهٰرُوْنَ الْفُرْقَانَ

**د تورات فضيلت:-** مونږ اول هم داخبره خودلې ده چه دحضرت موسی عليه السلام اوحضرت هارون عليه السلام ذکر يوځاې راځي اودغه شان د تورات او قرآن پاك ذکر هم عموماً يوځاې راځي.فرقان نه مراد کتاب (۱) يعنی تورات دې چه په حق اوباطل حلال اوحرام کښې فرق کونکې وو(۲)هم په ده سره حضرت موسی عليه السلام ته امدادملاوشو.ټول په ټول آسمانی کتابونه حق اوباطل، هدايت ګمراهي ښه بدحلال حرام کښې جدائی کونکې وی. دې سره په زړونو کښې نورانيت په اعمالوکښې حقانيت دالله ﷻ ويره او د الله ﷻ طرفته رجوع حاصليږی چه هغوی دخپل رب نه په غائبانه توګه هم ويريږی.لکه چه د جنتيانو صفتونه بيانولو سره اوفرمائيل ﴿مَنْ خَشِيَ الرَّحْمٰنَ بِالْغَيْبِ وَجَآءَ بِقَلْبٍ مُّنِيْبٍ﴾(۳) څوك چه د رحمان نه بغيرکتلو ويريږی اوتيتيدونکي زړه لری. يو بل آيت کښې دی کوم خلق چه د خپل رب غائبانه ويره لری د هغوی دپاره ښښنه اوډير لوئ اجردې.(۴)ددې پرهيزګارانودويم صفت دادې چه دوی دقيامت ويره لری دهغې د تباهونه لړزيږی او رچيږی.بيا فرمائی چه داقرآن عظيم خومونږ هم اوس نازل کړې دې دکوم خواته چه هم باطل نه شی راتلې دحکمتونو او تعريفونووالا الله ﷻ د طرف نه نازل شوې دې. افسوس! آياددومره وضاحت حقانيت صداقت اونورانيت والا قرآن پاك هم ددې قابل نه شوچه تاسوددې نه منکر شوئی.

| وَلَقَدْ آتَيْنَا |
|---|
| او په تحقيق سره ورکړې وه مونږه |
| او مونږ ابراهيم عليه السلام ته د دې (قرآن) نه وړاندې |

| إِبْرٰهِيْمَ | رُشْدَهُ | مِنْ قَبْلُ | وَكُنَّا | بِهِ |
|---|---|---|---|---|
| ابراهيم عليه السلام ته | ښۀ پوهه دهغه | مخکښې دهغې نه هم | او وو مونږه | په ابراهيم عليه السلام باندې |
| هدايت ورکړې وو | او مونږ د هغه (ابراهيم د صلاحيتونو) نه ښه خبر وو | | | |

| عٰلِمِيْنَ ع | إِذْ | قَالَ | لِأَبِيْهِ | وَقَوْمِهِ | مَا هٰذِهِ | التَّمَاثِيْلُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ښۀ پوهه | کله چې | اوونيل هغه | پلار خپل ته | او قوم خپل ته | چې څه دی دا | شکلونه |
| هر کله چې ده خپل پلار اوخپل قوم ته اوونيل اچې دا څه (واهيات) شکلونه دی | | | | | | |

| الَّتِيْ | أَنْتُمْ | لَهَا | عٰكِفُوْنَ | قَالُوْا | وَجَدْنَا |
|---|---|---|---|---|---|
| هغه | چې تاسو | هغې ته | تينګ ولاړ يئ په عبادت سره | اوونيل هغوئ | موندلي وو مونږه |
| چې ددې دعبادت دپاره تاسو ډيرې لګولې دی! هغوئ ورته اوونيل چې مونږ خو خپل پلاران | | | | | |

---

(۱) الطبری:۱۸/۴۵۳.
(۲) الطبری:۱۸/۲۸۰.
(۳) ق/۵۰:۳۳.
(۴) الملك/۶۷:۱۲.

| أَبَآءَنَا | لَهَا | عٰبِدِيْنَ۝ | قَالَ | لَقَدْ كُنْتُمْ أَنْتُمْ | وَاٰبَآؤُكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| پلاران خپل | دې ته | عبادت کونکي | اوونيل هغه | بيشکه يئ تاسو | او پلاران ستاسو |
| نيکونه ددوئ عبادت کونکي موندلي دي ابراهيم ﷺ اوونيل چې تاسو اوستاسو پلاران نيکونه | | | | | |

| فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ۝ | قَالُوْٓا | أَجِئْتَنَا بِالْحَقِّ | أَمْ أَنْتَ |
|---|---|---|---|
| په گمراهئ ښکاره کښې | اوونيل هغوئ | آيا تاسو مونږ ته راوړې دې حق | يا ته نې |
| هم په ښکاره گمراهئ کښې پراته وو هغوئ ورته اوونيل چې آيا ته مونږ ته رشتيا وايې | | | |

| مِنَ اللّٰعِبِيْنَ۝ | قَالَ | بَلْ رَّبُّكُمْ | رَبُّ السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ |
|---|---|---|---|---|
| دلوبو کونکو نه | اوونيل هغه | بلکه رب ستاسو | رب دآسمانونو | او دزمکې دې |
| اوکه هسې ټوقې راسره کوئ؟ ابراهيم ﷺ اوونيل چې (دځه ټوقې) ستاسو رب خو | | | | |

| الَّذِيْ | فَطَرَهُنَّ ۖ | وَاَنَا | عَلٰى ذٰلِكُمْ | مِّنَ الشّٰهِدِيْنَ۝ |
|---|---|---|---|---|
| هغه رب چې پيدا کړې ئې دى دا | او زهٔ | په دې باندې تاسو ته | دگواهي کونکونه يم | |
| دآسمانونو اودزمکې رب دې چې هغه ټول ئې پيدا کړې دي او زهٔ په دې خبره گواه يم | | | | |

قوله تعالىٰ:- وَلَقَدْ اٰتَيْنَآ اِبْرٰهِيْمَ رُشْدَهٗ مِنْ قَبْلُ وَكُنَّا بِهٖ عٰلِمِيْنَ۝

**ابراهيم ﷺ د وړکوالي نه په هدايت وو:-** ارشاد دې چه ابراهيم خليل الله ﷺ ته خو الله ﷻ د وړوکوالي نه هدايت ورکړې ووهغه ته ئې خپل دليلونه الهام کړې وو اونيکي ورته خودلې وه. لکه چه ارشاد دې ﴿وَتِلْكَ حُجَّتُنَآ اٰتَيْنٰهَآ اِبْرٰهِيْمَ عَلٰى قَوْمِهٖ ۚ نَرْفَعُ دَرَجٰتٍ مَّنْ نَّشَآءُ ۗ اِنَّ رَبَّكَ حَكِيْمٌ عَلِيْمٌ۝﴾ [1] دادى زمونږ زبردست دليلونه چه مونږ حضرت ابراهيم ﷺ ته ورکړې وودې د پاره چه هغه خپل قوم قائل کړې شي.

**دابراهيم ﷺ په وړکوالي کښې دغارقصه اسرائيلي ده:-** داچه کومې قصې مشهورې دى د ابراهيم ﷺ هم دپښو ځکلو د زمانې نه دهغه مور دې په يوغارکښې ساتلې وودکوم ځائ نه چه د مودو پس هغه راووتلواوداللهﷻپه مخلوقاتو خاص په نمرسپوږمئ ستورووغيره باندې نظرا چولوسره اللهﷻ اوپيژندلو دا ټولې د بنى اسرائيلو قصې دى.قاعده دا ده چه په دې کښې کومه يوه واقعه د دې مطابق وى کوم حق چه زمونږ په لاس کښې دې يعنى کتاب اوسنت هغه رښتونې ده اود قبليدو قابله ده ځکه چه هغه د صحت مطابق ده اوچه کومه خلاف وى هغه مردود ده اود کوم مطابق چه زمونږ شريعت خاموش دې برابروالي اومخالفت هيڅ هم نه وى نودهغې روايت کول په قول داکثرومفسرينو جائزدى خونه مونږ هغې ته رښتونې ونيلې شو اونه دروغ.

اوداښکاره خبره ده چه هغه واقعات زمونږ د پاره هيڅ سند نه لرى نه په هغې کښې زمونږ څه دينى فائده شته که چرې داسې وه نو زمونږ جامع نافع اوکامل شامل شريعت به د دې په بيان کښې کوتاهى نه کوله زمونږ خپل مسلك خو په دې تفسيرکښې دا دې چه مونږ داسې بنى اسرائيلي روايات نه وارد کووځکه چه په هغې کښې صرف د وخت ضائع کولونه بل هيڅ نفع نه وى اود نقصان احتمال زيات دې ځکه چه زمونږ يقين دې چه بنى اسرائيلو کښې د روايت ښه کتلو هغه ماده نه وه چه په رښتياؤ او دروغوکښې تميز پيژندلو په هغوى کښې دروغ ورننوتلې وولکه څنګه چه زمونږ حافظانو امامانو

---

[1] ٦/الانعام:٨٣.

تشریح کړې ده. غرض دا دې چه په دې ایت کښې د دې امر بیان دې چه مونږ دې نه وړاندې حضرت
ته هدایت ورکړې وو او مونږ ته پته وه چه هغه د دې قابل دې. هم په وړوکوالی کښې هغه ﷺ ابراهیم
دخپل قوم د غیرالله عبادت کول نه خوښول او ډیره بهادرئ سره اوسختئ سره ئې د دې نه انکار
اوکړواوقوم ته ئې ښه ښکاره اووئیل چه تاسو څه د دې بتانونه چاپیره ناست ئې تاتونه مو لګولې دی؟
حضرت علی ؓ په لار تیریدو چه جوار ګرخلق ناست وو شطرنج ئې لګولې وو لوبه ئې کوله هغوی هم
دا آیت تلاوت کړو وئې فرمائیل چه په تاسو کښې دې څوك په خپل لاس کښې سره کړې شوې سروټکه
واخلی دا د شطرنج د ګیټو د اخستلونه ښه دی.
د حضرت ابراهیم ﷺ د دې ښکاره دلیل هغوی سره څه جواب ووچه ورکړې به ئې وې وئیل داخو زړه
طریقه ده دپلارانو نیکونونه راروانه ده. هغوی اوفرمائیل داڅه دلیل شو؟ زمونږ چه په تاسو باندې کوم
اعتراض دې هغه په هغه وړاندینویاندې هم دې. په یوه ګمراهئ کښې ستاسو مشران لګیاوو نو تاسو
هم په هغې کښې لګیائې نو دې کښې څه ښیګړه اوشوه. زه وایم چه تاسو اوستاسوپلاران اونیکونه ټول
د حق لارې نه اخواشوې وو او په ښکاره ګمراهئ کښې ډوب شوې وو. اوس د هغوی غوږونه اودریدل
خکه چه هغوی د خپلو عقلمندو خلقو بې عزتی اولیدله د خپل پلارانواونیکونو باره کښې ئې دنه
اوریدو خبرې واوریدې د خپلومعبودانو سپکاوې ئې اولیدو نواوویریدل او وئې وئیل
ابراهیم ﷺ واقعی ته ټیك وائې که ټوقې کوې مونږ خوداسې خبره چرته نه ده اوریدلې. هغوی ته د حق
د تبلیغ موقعه ملاوشوه اوصفا اعلان ئې اوکړو چه رب خو صرف د زمکې او آسمان خالق دې. د ټولو
خیزونومالك او خالق هم هغه ذات دې.ستاسو دا معبودان د یومعمولی څیز د پیداکولو هم نه خالق دی
اونه مالك بیامعبودان اومسجودان څنګه شوزما ګواهی ده چه خالق اومالك هم الله ﷻ د عبادت لائق
دې د هغه نه بغیر نه څوك رب شته اونه معبود.

| وَتَاللّٰهِ | لَاَكِيْدَنَّ | اَصْنَامَكُمْ | بَعْدَ | اَنْ تُوَلُّوْا |
|---|---|---|---|---|
| او قسم دې په الله | خامخا به څه تدبیر اوکړم | ادبتانو ستاسو | روستو ددې نه چې | اوګرځئ تاسو |
| او په الله ﷻ قسم کله چې تاسو (ددوئ نه بتانونه) لاړشئ انو زهٔ بهٔ ستاسو بتانو سره یو چل | | | | |

| مُدْبِرِيْنَ۝ | فَجَعَلَهُمْ | جُذٰذًا | اِلَّا | كَبِيْرًا | لَّهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| شاکونکي (بتانو ته) | نو کړل ئې هغه بتان | اټوټې ټوټې | مګر نهٔ | لوئ بت | دهغوئ |
| کوم ......... نو (ابراهیم ﷺ) هغه بتان ټوټې ټوټې کړل خو یو لوئې بت ئې سلامت پرېخودو | | | | | |

| لَعَلَّهُمْ | اِلَيْهِ | يَرْجِعُوْنَ۝ | قَالُوْا | مَنْ | فَعَلَ هٰذَا |
|---|---|---|---|---|---|
| دپاره ددې چې هغوئ | دې (لوئ بت) ته | واپس راشي | اووئیل هغوئ | چاوکړو | دا کار |
| کیدې شي چې خلق هغه ته رجوع اوکړي | هغوئ اووئیل زمونږ د معبودانو سره دا کار چا کړې دې | | | | |

| بِاٰلِهَتِنَآ | اِنَّهٗ | لَمِنَ الظّٰلِمِيْنَ۝ | قَالُوْا | سَمِعْنَا |
|---|---|---|---|---|
| دخدایانو زمونږ سره | بیشکه هغه | دظالمانو نه دې | اووئیل هغوئ | اوریدلي وو مونږه |
| بیشکه هغه خو ډیر لوئې ظالم دې | چا په کښې اووئیل چې مونږ دیوخلمي دخولې نه ددوئ | | | |

| فَتًى | يَّذْكُرُهُمْ | يُقَالُ | لَهٗ | اِبْرٰهِيْمُ۝ | قَالُوْا | فَاْتُوْا بِهٖ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چې یو خلمئ | یادول دوئ | چې وئیلې شي | هغه ته | ابراهیم | اووئیل هغوئ | نو راولئ هغه |
| بدی اوریدلي وه | چې هغه ته ابراهیم ﷺ وئیلې شی | خلقو | اووئیل چې ښه ده | | | |

عَلَىٰٓ أَعۡيُنِ ٱلنَّاسِ لَعَلَّهُمۡ يَشۡهَدُونَ ۝ قَالُوٓاْ ءَأَنتَ

به سترګو دخلقو | دپاره ددې چې خلق | اووینی (سزا دهغه) | تپوس تر اوکړو خلقو | آیا تا کړې دي

نو هغه دټولو مخامخ پیش کړئ | چې هغوئ پرې ګواهان شي | هغوئ تپوس اوکړو چې انې ابراهیم

فَعَلۡتَ هَٰذَا بِـَٔالِهَتِنَا يَٰٓإِبۡرَٰهِيمُ ۝ قَالَ بَلۡ فَعَلَهُۥ كَبِيرُهُمۡ

دا کار | دخدایانو زمونږ سره اے ابراهیمه | اووئیل ابراهیم | بلکه | کړې دې داکار | مشر ددوئ

ﷺ ایازمونږ دخدایانو سره داکار تا کړې دې اده اووئیل چې نه دا کار دې لوئې (بت) کړې دې

هَٰذَا فَسۡـَٔلُوهُمۡ إِن كَانُواْ يَنطِقُونَ ۝

چې دادې | نو تپوس اوکړئ ددوئ نه | که وی دوئ | چې خبرې کوی |

که چرې دوئ خبرې کوی | نو ددوئ نه تپوس اوکړئ |

**قوله تعالي:- فَجَعَلَهُمۡ جُذَٰذًا**

**ابراهيم ﷺ بتان مات کړل:-** پورته ذکر اوشو چه خلیل الله ﷺ خپل قوم دبت پرستئی نه منع کړو اود توحیدپه جذبه کښې راغلو اوقسم ئی اوخوړلو چه زه به خامخاستاسو د دې بتانوځه علاج کوم. داهم د قوم بعضې کسانو واوریدل. د هغوی د اختر چه کومه ورځ مقرر وه خلیل الله ﷺ وئیل چه تاسو د خپل اختر د رسمونوکولود پاره لاړشئی نوزه به ستاسو دابتان ټیك کړم. د اختر نه وړاندې یوه ورځ دوه د هغوی پلار هغه ته اووئیل چه بچیه ته هم مونږ سره د اختر د پاره لاړشه تاته به زمونږ د دین ښه والې او رونق معلوم شی. هغه دې بوتلوخولږمزل کولونه پس حضرت ابراهیم ﷺ راپریوتلو وئی پلاره زه بیمار یم پلار هغه پریخودو اود کفر رسمونو اداکولود پاره لاړو کوم خلق چه به په لار تیریدل د هغه نه به ئی تپوس کولو چه په لارکښې څنګه ناست ئې؟

جواب به ئې ورکولوچه زه بیماریم. کله چه عام خلق لاړل اویداګان پاتې شو نوهغه اوفرمائیل ستاسو د ټولودتلونه پس به نن زه ستاسود دې خدایانو مرمت اوکړم. داچه هغه اوفرمائیل زه بیماریم نوواقعه دې نه بود ورځ وړاندې هغه لږ شان بیمار هم وو. کله چه هغه خلق لاړل اومیدان خالی شو نوهغوی خپله اراده پوره کړه او لوئ بت ئی پریخودو باقی ئی ټول بتان ذره ذره کړل. لکه چه په نورو آیاتونو کښې د دې تفصیلی بیان موجود دې چه په خپل لاس ئی دا بتان ټکړې ټکړې کړل. د دې لوئ بت په پریخودوکښې حکمت اومصلحت دا ووچه اول خوبه ددې خلقو ذهن ته داخیال لاړشی چه کیدې شی دې لوئ خدائې داواره خدایان تباه کړی وی ځکه چه هغه ته به غیرت شوې وی چه زمادلوئ په موجودګنی کښې داواره څنګه د خدائې لائق شو داخیال دهغوی په ذهنونوکښې پخولودپاره هغوی تبر د هغه لوئ په غاړه کښې زوړند کړو لکه څنګه چه روایت دې. کله چه دا مشرکان دخپلې میلې نه واپس راغله وئی کتل چه دهغوی ټول خدایان پرمخې پراته دی اود خپل حالت نه دا ښائی چه هغوی صرف بې ساه بې نفع اوبې نقصانه خوار او ذلیل څیزونه دی او په دې خپل حالت باندې نی د خپل ځان د عبادت کونکو په بې وقوفتیاباندې مهر لګولو خو په دې بې وقوفانوباندې اولته اثر اوشو وئیل دا څوك ظالم سړې وو چه زمونږ د معبودانو نی داسې سپکاوې اوکړو؟

**د قوم مشوره او دابراهيم عليه السلام ډلې ته راغوښتل:-** هغه وخت چه کوموخلقو دابراهیم ﷺ هغه خبرې اوریدلې وې دهغوی خیال راغلو او وئی وئیل چه هغه ځوان د کوم چه ابراهیم نوم دې هغه مونږ د

خپلو خدايانودخرابي بيانولوسره اوريدلي وو. حضرت ابن عباس ﷺ به دا ايت لوستلو او فرمائيل به نی چه کوم نبی جوړشو نو خوان چه کوم عالم جوړشونو خوان د الله ﷻ شان ته گوره چه کوم مقصدد خليل الله ﷺ وو هغه پوره کيږی.د قوم داخلق مشوره کوی چه راشئی ټول راجمع کړئی هغه راوغواړئی اوبياهغه ته سزا واوروئی. ابراهيم ﷺ هم داغوښتل چه يوه داسې ګنړه وی اوزه د هغوی غلطی په هغوی باندې ښکاره کړم اوهغوی ته دتوحيد تبليغ اوکړم. هغوی ته اوښايم چه دا څنګه ظالمان جاهلان دی چه د دوی عبادت کوئی چه د نفع نقصان مالکان نه دی بلکه دخپل خان هم اختيار نه لری. ګنړه پيدا شوه او ټول لوئ واړه راغله. حضرت ابراهيم ﷺ هم د ملزم په حيثيت کښې پيش کړې شو د هغه نه تپوس اوکړې شو چه زمونږ دې خدايانوسره دا فضوليات تا کړی دی؟ په دې باندې خليل الله ﷺ د هغوی قائل معقول کولود پاره اوفرمائيل چه داکار خودې لوئ بت کړې دې اود هغې طرف ته ئی اشاره اوکړه کوم چه هغوی مات کړې نه وو. بيا ئی اوفرمائيل چه مانه څه تپوس کوئی ددې خپلو خدايانونه تپوس اوکړئی چه ستاسو ټکړې ټکړې کونکې څوك دې؟ددې نه دخليل الله ﷺ مقصددا وو چه داخلق هم پخپله پوهه شی چه په دې ګانړو کښې څه دی چه خبرې به اوکړی اوچه کله هغه دومره عاجزدی نو بيادعبادت څنګه لائق کيدې شی نودامقصدهم دالله ﷻپه فضل سره دهغوی پوره شواودا دويم ګذار پرې هم ډير سخت اولګيدو.

د بخاری اومسلم په حديث کښې دی خليل الله ﷺ درې خل دروغ وئيلی دی چه دوه د الله ﷻ په لار کښې دې د هغوی دا فرمائيل چه د هغوی دا بتان دې لوئ مات کړی دی بل دا فرمائيل چه زه بيمار يم او يوځل حضرت خليل الله ﷺ ساره بی بی سره په سفروو اتفاقی توګه سره هغوی د يوظالم بادشاه په علاقه تيريدل هغه هلته څوکنی لګولې وه چابادشاه ته اووئيل چه يومسافر سره ښکلې ښځه ده او هغه دې وخت زمونږ په سلطنت کښې دې. بادشاه ډير زر يوسپاهی اوليګلو چه هغه دې بی بی ساره راولی هغه تپوس اوکړوچه دا تاسره څوك دی؟حضرت ابراهيم ﷺ وئيل زما خورده نوده وئيل د بادشاه دربارته ئی اوليګه هغه حضرت ساره بی بی له لاړو او ورته ئی اووئيل چه واوره دې ظالم بادشاه ته غوښتې ئی او ماته خپله خور خودلې ئی که تاته تپوس اوکړی نو هم دا وايه څکه چه د دين په اعتبارسره ته زما خور ئی او په مخ د زمکې زما اوستانه بل څوك مسلمان نشته. دې ويناسره هغه لاړو حضرت ساره اخوا لاړه او حضرت ابراهيم ﷺ په مانځه اودريدو.کله چه دې ظالم حضرت ساره اوليدله او دهغې طرف ته ئی ورټوپ کړو هم هغه وخت د الله ﷻ عذاب هغه راګيرکړو او پښې لاسونه ئی شل شو اوويريدو او په عاجزئی سره ئی اووئيل اې نيکې بی بی الله ﷻ ته دعااوکړه چه ما پريږدی زه وعده کوم چه تاته به لاس هم نه لګوم. هغې دعااوکړه هم هغه وخت صحيح شو خوبيه کيدو سره هغه بيا اراده اوکړه چه هغه راونيسی بيا د الله ﷻ عذاب راغلو اودې خل ئی د اول خل نه هم په سختئی سره راګيرکړو بيائی عاجزی اوکړه غرض دا چه درې خل داسې اوشو په دريم خل خلاصيدو سره هغه خپلې خواته يونوکر ته آواز اوکړو تاخو ماله انسانی ښځه نه ده راوستلې بلکه شيطانه (نعوذبالله) دې راوستې ده لاړه شه دا اوباسه اوهاجره ورسره کړه چه څي. هم هغه وخت اوويستلې شوه او هاجره ورته حواله کړې شوه. حضرت ابراهيم ﷺ د هغوی په کش کړپ پوهيدوسره د مانځه نه خان فارغ کړو او تپوس ئی ترې اوکړو چه وايه څه اوشو؟ هغې وئيل الله ﷻ د هغه کافر دهوکه هم په هغه باندې ورواړوله او هاجره ئی زما د خدمت د پاره راکړه. حضرت ابوهريره داحديث بيانولوسره فرمائی داد ستاسو مور اې د آسمانی اوبوخامنو. (۱)

---

(۱) صحیح بخاری کتاب احادیث الانبیاء باب قول الله تعالی ﴿واتخذالله ابراهیم خلیلا﴾:۳۳۵۸، صحیح مسلم ۲۳۷۱، ابوداؤد:۲۲۱۲، احمد:۲/۴۰۳، ابن حبان:۵۷۳۷، بیهقی:۷/۳۲۶.

فَرَجَعُوٓا
نو رجوع اوكړه هغوئ
هر كله چې هغوئ خپل مينځ كښې

إِلَىٰٓ أَنفُسِهِمْ فَقَالُوٓا إِنَّكُمْ أَنتُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ ۝ ثُمَّ نُكِسُوا
ځانونو خپلو ته | پس اووئيل هغوئ | بيشكه تاسو | يئ ظالمان | بيا | نسكور كړې شو هغوئ
سوچ اوكړو | نو وې وئيل چې بيشكه هم تاسو يئ بې انصافه يئ | بيا هغوئ (دشرم نه ، خپل

عَلَىٰ رُءُوسِهِمْ لَقَدْ عَلِمْتَ مَا هَٰٓؤُلَآءِ يَنطِقُونَ ۝ قَالَ
په سرونو خپلو | (اووې وئيل) چې پوهه ئې ته | چې نه دي دا (بتان) | چې خبرې كوي | اووئيل ابراهيم
سرونه ښكته كړل | (او وې وئيل) چې تا ته خو معلومه ده چې دوئ خبرې نشي كولې | ابراهيم ﷺ

أَفَتَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ مَا لَا يَنفَعُكُمْ شَيْـًٔا
آيا تاسو عبادت كوئ | ماسوا د الله نه | دهغه څيزونو | چې نفع نشي رسولې تاسو ته | دهيڅ څيز |
اووئيل چې آيا تاسو د الله ﷻ نه سوا دداسې څيزونو عبادت كوئ | چې نه فائده دررسوی

وَلَا يَضُرُّكُمْ ۝ أُفٍّ لَّكُمْ وَلِمَا
او نه نقصان دررسولې شي تاسو ته | لعنت دوی | په تاسو باندې | او په هغه معبودانو باندې |
او نه نقصان دركولې شي | افسوس دې په تاسو او په هغه بتانو دكومو چې

تَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ ۚ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ۝ قَالُوا
چې تاسو ئې عبادت كوئ | بې د الله نه | آيا تاسو د عقل نه كار نه اخلئ | اووئيل هغوئ |
تاسو د الله ﷻ نه سوا عبادت كوئ | آيا تاسو د سوچ او عقل نه كار نه اخلئ | هغوئ اووئيل چې

حَرِّقُوهُ وَٱنصُرُوٓا ءَالِهَتَكُمْ إِن كُنتُمْ فَٰعِلِينَ ۝ قُلْنَا
اوسوزوئ دې | او امداد اوكړئ | د خدايانو خپلو | كه يئ تاسو | كونكي دڅه كار | اووئيل مونږه |
دې (په اور كښې) اوسوزوئي | او د خپلو معبودانو مدد اوكړئ | كه تاسو څه كول غواړئ | مونږ حكم

يَٰنَارُ كُونِى بَرْدًا وَسَلَٰمًا عَلَىٰٓ إِبْرَٰهِيمَ ۝ وَأَرَادُوا بِهِۦ
اے اوره | شه ته | يخ | او سلامتيا والا | په ابراهيم باندې | او اراده اوكړه هغوئ | په ده باندې
اوكړو اے اوره ته په ابراهيم باندې يخ شه | او بې ضرر شه | او خلقو هغه ته د نقصان رسولو

كَيْدًا فَجَعَلْنَٰهُمُ ٱلْأَخْسَرِينَ ۝
دبدئ كولو | نو كړل مونږه هغوئ | نقصان موندونكي (ناكام) |
منصوبه جوړه كړه | خو مونږ هغوی نامراده كړل

**قوله تعالى:-** ﴿قَالَ أَفَتَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَنفَعُكُمْ شَيْئًا وَلَا يَضُرُّكُمْ﴾

**څوک چه د نفع نقصان مالک نه وی هغه معبودنه دی:-** بیان دی چه دخلیل الله ﷺ په خبرو اوریدو سره خو د هغوی خیال پیداشواوخپل خانونه نی په خپله بې وقوفتیاباندې ملامت کول دېرپښیمانتیا نی اوچته کړه او پخپل مینځ کښې خو نی اوونیل چه مونږ غټه غلطی اوکړه چه خپلو خدایانوسره مو څوك د حفاظت دپاره پرینخودل او لاړو.بیائی په غور اوفکر کولوسره خبره جوړه کړه چه دا ته مونږ ته وائې چه مونږ ددوی نه تپوس اوکړو چه تاسو چا مات کړی ئې نوولې تاته معلومه نه ده چه دابتان بې ژبانه دی. په عاجزئی حیرانیتا اوډیر بې جوابئې په حالت کښې ددې خبرې اقرار اوکړو.اوس خلیل الله ﷺ ته پوره موقعه ملاوشوه نو زړئی اوفرمائیل نودبې ژبانه بې نفع اوبې ضررڅیز عبادت څنګه؟تاسو ولې دومره ناپوهه کیږئی.بلادې وی په تاسواوستاسو په دې دروغژنو خدایانو افسوس څومره د ظلم او جهل خبره ده چه دداسې څیزونوعبادت کولې شی اویوالله موپریخې دې هم دادی هغه دلیلونه دکوم ذکر چه اول شوې ووچه مونږ ابراهیم ﷺ ته هغه دلیلونه اوخودل په کوم سره چه قوم حقیقت ته اورسیدو.

**حضرت ابراهیم ﷺ اوور ته غورځول:-** داقاعده ده چه کله انسان په دلیل سره عاجز شی نویاخو نیکی هغه راکاړی او یابدی په هغه باندې غالب راځی دلته دا خلق د هغوی بدبختئی راګیرکړل اوپه دلیل سره عاجز راتلوسره بې جوابه پاتې شو نو خپل دباؤ نی ښکاره کړو. خپل مینځ کښې مشوره اوکړه چه ابراهیم ﷺ په اور کښې واچوئی اومړئی کړئی دې د پاره چه زمونږ ددې خدایانوعزت پاتې شی..په دې خبره ټولواتفاق اوکړو اولرګی راوړل نی شروع کړه. تردې پورې چه بیمارانو ښځو به هم نذر منلو چه که هغه جوړه شوه نود ابراهیم ﷺ دسیزلودپاره به لرګی راوړی. په زمکه کښې یوه ډیره لویه اوژوره کنده اوکړه او هغه ئې دلرګونه ډکه کړه او یولونې ډیرې ئې جوړکړو اودې ته نی اور اولګولو. په مخ د زمکه کله هم داسې اور نه دې لیدلې شوې چه کله د اور شغلې آسمان سره خبرې کولې اودې له تلل هم محال شو نوبیا اوویریدل چه خلیل الله ﷺ به دې کښې څنګه اچوو؟آخردیوکردی فارسی اعرابی په مشوره باندې چه دهغه نوم بیزن وو یومنجنیق (ټال) تیارکړو چه په دې کښې کینوئی روان نی کړئی وروئی غورزوئی.روایت دې چه دا سرې هم هغه وخت الله ﷻ په زمکه کښې ورننویستلو اود قیامت پورې هغه لاندې روان دې([1])کله چه هغه اورکښې اوغورزولې شونوهغوی اوفرمائیل﴿حَسْبِيَ اللَّهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ﴾ حضور ﷺ اوصحابه کرامو ﷺ ته هم چه کله د خبراورسیدو د عربویولوئ لښکردهغوی د مقابلې دپاره راروان دې نوحضور ﷺ هم دا لوستلې وو. ([2])

**د غورزولو په وخت کښې د ابراهیم علیه السلام دعاګانو حالت:-** داهم روایت دې چه کله هغوی په اور کښې واچولې شو نوهغوی اوفرمائیل اې الله ته په آسمانونوکښې یوازې معبودئی اوتوحیدسره پرې زمکه ستاعبادت کونکې ضرف یوزه یم.([3])

روایت دې چه کله کافر هغه اوتړلو نو هغوی اوفرمائیل یاالله ستا نه علاوه بل څوك د عبادت لائق نشته ستا ذات پاك دې ټول حمداو ثنا هم ستا دپاره دی د ټول ملك هم ته یوازې مالك نی څوك هم ستا شریك او ملګرې نشته. حضرت شعیب جبائی ﷺ فرمائی دغه وخت د هغوی عمر صرف شپاړس کاله وو. والله اعلم. د بعضې سلفونه نقل دی چه دغه وخت حضرت جبرائیل ﷺ د هغوی مخې ته د آسمان

---

[1] الطبری:۱۸/٤٦٥.

[2] صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة آل عمران باب قوله ﴿الذین قال لهم الناس ان الناس....﴾:٤٥٦٣.

[3] مسندالبزار:۲۳٤۹حلیة الاولیاء:۱/۱۹.

اوزمکې په مینځ کښې ښکاره شو او وئې فرمائیل چه څه حاجت شته. هغوی جواب ورکړو چه تاسو ته خو هیڅ حاجت نشته البته د الله ﷻ نه حاجت شته.

**په ابراهیم علیه السلام باندې هغه اوور یخ کړې شو:**-حضرت ابن عباس ؓ فرمائی د باران داروغه فرښتې غوږ لګولې تیاره وه چه کله به د الله ﷻ حکم اوشی اوزه به په دې اور باران اووروم دا به یخ کرم خونیغ په نیغه حکم هم اور ته اوشو چه زما په خلیل باندې ته سلامتیاوالا اویخ شه. فرمائی چه هم دې حکم سره په مخ د زمکې ټول اور یخ شو.([1]) حضرت کعب احبار ؒ فرمائی په هغه ورځ په زمکه باندې چا هم د اور نه فائده نه ده اخستې اود ابراهیم ؑ رسئی خو اور اوسوزولې خود هغوی یوویښته ته هم اور اونه لګیدو. حضرت علی ؓ فرمائی چه اور ته حکم اوشوچه هغه دې خلیل الله ؑ ته هیڅ نقصان اونه رسوی.

د ابن عباس ؓ نه روایت دې که اورته صرف د یخیدو حکم شوې وونو بیابه یخوالی هم هغوی ته نقصان رسولو([2])ددې دپاره ئې ورسره ذا اوفرمائیل چه یخیدوسره د سلامتیاوالا جوړشه. ضحاک ؒ چه ډیره لویه کنده وه اوډیره ژوره ئې کنستلې وه اوهغه ئې د اور نه ډکه کړې وه. هر طرف ته د اور شغلې راوتلې په دې کښې ئې خلیل الله ؑ واچولو ولې اور هغوی پورې اوهم نه لګیدو تردې چه الله ﷻ عزوجل هغه بالکل یخ کړو. ذکر دې چه په دې وخت کښې حضرت جبرائیل ؑ هغوی سره وو هغوی د مخ نه صرف خوله اوچوله د دې نه سوا اور هغوی ته هیڅ نقصان اونه رسولو.

سدی ؒ فرمائی چه دسوری فرښته هغوی سره وه. روایت دې چه هغوی په دې کښې څلویښت یا پنځوس ورځې وو. فرمائیل به ئې چه ماته په هغه زمانه کښې کوم راحت اوخوندحاصل ووهغه شان د دغې نه دراوتلونه پس حاصل نه شو.څومره به ښه وه چه زماټول ژوند په هغې کښې تیرشوې وو. ابوهریره ؓ فرمائی چه دحضرت ابراهیم ؑ پلارکومه ښه کلمه وئیلې ده هغه دا چه کله هغوی د اور نه ژوندې او صحیح سالم راووتلو هغه وخت د تندی نه خوله اوچولوسره اوکتلو نو وئې وئیل ابراهیم ستا رب ډیر بزرګ او لوئ دې. قتاده ؒ فرمائی په هغه ورځ چه کوم ځناور راووتل د اور مړه کولوکوشش ئې کولو بغیرد چمچورکئی نه([3])زهری ؒ فرمائی چه رسول الله ﷺ دچمچورکئی دوژلوحکم فرمائیلې دې اوهغه ته ئې فاسق وئیلې.([4])عائشه ؓ په کورکښې یوه نیزه لیدلو سره یوې ښځې تپوس اوکړوچه دامو څه له ساتلې ده؟هغوی وئیل دچمچورکود پاره.دحضور ﷺ ارشاددې چه کوم وخت حضرت ابراهیم ؑ په اورکښې واچولې شو هغه وخت ټولوځناورو دا اورمړه کولوبغیرد چمچورکئی نه چه نور پوکی هم ورکول نو حضور ﷺ د دې دوژلوحکم ورکړو. ([5]) بیافرمائی چه د هغوی مکر مونږ په هغوی باندې اولټه کړو کافرانوداللهﷻ نبی ؑ ښکته کول غوښتل الله ﷻ هم هغوی لاندې اوخودل. عطیه عوفی ؒ بیان دې چه دابراهیم ؑ په اورکښې دسوزیدوتماشه دکتلودپاره ددې کافرانو بادشاه هم راغلې وو.اخوا خلیل الله ؑ په اورکښې اچولې شو اودیخواد اور نه یوبڅرې الوزی اود دې کافربادشاه په ګوته پورې لګی اوهلته په ولاړه ولاړه د ولوبه وراندې داسې سوزوی لکه چه روټئی اوسوزی.

---

[1]) الطبری:۱۸/٤٦٦.

[2]) الطبری:۱۸/٤٦٥.

[3]) الطبری:۱۸/٤٦٧.

[4]) الطبری:۱۸/٤٦٧.

[5]) ابن ماجه كتاب الصيد باب قتل الوزغ:۳۲۳۱وسنده حسن.

وَنَجَّيْنٰهُ

| او بچ اوویستل مونږه ابراهیم |

| او مونږ هغه او لوط دواړه

وَلُوْطًا اِلَى الْاَرْضِ الَّتِيْ بٰرَكْنَا فِيْهَا

او لوط | زمکې ته | هغه (زمکې ته) | چې برکت ایښې دې مونږه | په هغې کښې |

بچ اوویستل | داسې ملک ته چې مونږ د ټولې دنیا دخلقو دپاره برکتی کړې دې |

لِلْعٰلَمِيْنَ۝ وَوَهَبْنَا لَهٗۤ اِسْحٰقَ ۭ وَيَعْقُوْبَ نَافِلَةً ۭ وَكُلًّا

دپاره دخلقو (ددنیا) | او ورکړو مونږ | هغه ته | اسحاق | او یعقوب | پرې زیات دپاسه | او دا ټول

او مونږ ابراهیم ته اسحاق (خوئې) ورکړو | او ددې نه علاوه یعقوب (نمسې) مو ورته هم دانعام په طور او ټول

جَعَلْنَا صٰلِحِيْنَ۝ وَجَعَلْنٰهُمْ اَئِمَّةً يَّهْدُوْنَ

جوړ کړل مونږه | صالحان | او جوړ کړل مونږه هغوئ | امامان | (چې) ددین) لار به نې ښودله

نیکان کړل | او هغوئ مو د (ټولو) خلقو پیشوایان جوړ کړل | چې زمونږ په حکم به ئې

بِاَمْرِنَا وَاَوْحَيْنَاۤ اِلَيْهِمْ فِعْلَ الْخَيْرٰتِ وَاِقَامَ الصَّلٰوةِ

په حکم زمونږ سره | او وحی اوکړه مونږه | هغوئ ته | دکولو دنیکو کارونو | او دقائمولو دمونځ |

(خلقو ته) ددین لار خودله | او هغوئ دوحی په ذریعه د نیکئ کارونه کول | دمونځ کولو

وَاِيْتَآءَ الزَّكٰوةِ ۚ وَكَانُوْا لَنَا عٰبِدِيْنَ۝ۙ وَلُوْطًا

او دورکولو دزکات | او وو هغوئ | مونږ لره | عبادت کونکی | او (اولیږو مونږه) لوط |

دزکوة ورکولو حکم مو ورته کړې وو | او هغوئ هم زمونږ عبادت کولو | او لوط ﷺ ته مونږ

اٰتَيْنٰهُ حُكْمًا وَّعِلْمًا وَّنَجَّيْنٰهُ مِنَ الْقَرْيَةِ

او ورکړو مونږه هغه ته | حکم (نبوت) | او علم | او نجات ورکړو مونږ هغه لره | دکلی نه |

حکمت او علم ورکړې وو | او دهغه کلی نه مو بچ را اوویستلو | دکوم او سیدونکی چې

الَّتِيْ كَانَتْ تَّعْمَلُ الْخَبٰۗىِٕثَ ۭ اِنَّهُمْ كَانُوْا

دهغه کلی نه | چې وو خلق دهغه کلی | چې کولې به ئې | بدکاریانې | بیشکه هغوئ | وو

د بې حیایې د کارونو کونکی وو ........... بیشکه هغه خراب او

قَوْمَ سَوْءٍ فٰسِقِيْنَ۝ۙ وَاَدْخَلْنٰهُ فِيْ رَحْمَتِنَا ۭ اِنَّهٗ

قوم دبدئ | فاسقان | او داخل کړو مونږ هغه | په رحمت خپل کښې | بیشکه هغه |

بدکاره خلق وو | او هغه (لوط ﷺ) مونږ پخپل رحمت کښې داخل کړو | یقینی ده چه هغه په

| مِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿٧٥﴾ |
|---|
| دصالحانو نه وو |
| نیکانو خلقو کښې شامل وو |

**قوله تعالى:- إِلَى الْأَرْضِ الَّتِيْ بٰرَكْنَا فِيْهَا لِلْعٰلَمِيْنَ ﴿٧١﴾**

**د شام ملك اومكه مكرمه :-** د الله ﷻ فرمان دې چه هغه خپل خليل د كافرانونه بچ كړو اود شام مقدس ملك ته اورسولو.ابی بن كعب ﷺ فرمائی تولې خوږې اوبه د شام د صخره د لاندې نه راوځی. قتاده ﷫ فرمائی چه هغه له الله ﷻ د عراق د زمکې نه خلاصې ورکړو اودشام زمکې ته ئې اورسولو هم شام دانبياءکرامودهجرت ځائ دې.د زمکې نه چه څه کميږی هغه په شام کښې زياتيږی اود شام کمې په فلسطين کښې زياتيږی. هم شام دمحشرزمکه ده. هم دلته به حضرت عيسى ﷺ راكوزيږی هم دلته به دجال قتل كولې شی.دكعب ﷺ په قول چه خليل الله ﷺ خزان طرف ته تلې وو دلته په راتلوسره هغوی ته معلومه شوه چه د دې ځائ د بادشاه لوردخپل قوم د دين نه ويزاره ده اود هغوی نه نفرت لری بلكه په هغوی باندې پيغوورونه كوی نو هغوی دې سره په دې اقرار نكاح اوكړه چه هغه به ده سره د دې ځائ نه هجرت كوی خی به هم ددې نوم ساره بی بی ده.دا روايت غريب دې او مشهور دا دې حضرت ساره بی بی د هغوی دتره لوروه اوهغوی سره ئې هجرت كړې ووراغلې وه.ابن عباس ﷺ فرمائی دا هجرت په مكه كښې ختم شو.هم د مكه په نسبت الله ﷻ فرمائيلی دی دا د الله ﷻ رومبې كور دې چه دبركت اوهدايت والا دې[1] په كوم كښې چه بغيردډيرو نښونه مقام ابراهيم ﷺ هم دې دې ته راتلونكې په امن اوسلامتياكښې راځی. بيافرمائی مونږ ده ته حضرت اسحاق ﷺ وركړويعقوب ﷺ وركړو لكه خوئ او نمسې لكه چه ارشاددې ﴿فَبَشَّرْنٰهَا بِإِسْحٰقَ ۙ وَمِنْ وَّرَآءِ إِسْحٰقَ يَعْقُوْبَ ﴿٧١﴾﴾[2] دخليل الله ﷺ په سوال كښې هم ديوهلك غوښتنه وه دعائی كړې وه چه ﴿رَبِّ هَبْ لِيْ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿١٠٠﴾﴾[3] الله ﷻ دادعاهم قبوله كړه اوخوئی له ئې خوئ هم وركړو كوم چه د سوال نه زيات وو اوټول ئې نيكوكار جوړكړه.دا ټول ئې ددنيامقتداء او پيشوا جوړ كړه د الله ﷻ په حكم سره دمخلوق د خالق اودالله ﷻ دلارې دعوت ئې كولو.هغوی ته مونږ د نيكو كارونووحی اوكړه. په دې عام خبره باندې عطف اچولو سره بياخاص خبرې يعنی مونځ روژه ئې بيان كړه اوارشاداوشوچه هغوی دې ددې نيكو كارونونه علاوه دنيكوكارونودحكم پخپله هم پدې نيكو باندې عمل كونكې وو.بيادلوط ﷺ ذكر شروع كيږی لوط بن هاران بن آزر.هغوی په ابراهيم ﷺ باندې ايمان راوړې وو اوهم د هغوی په تابعدارئی كښې هغوی سره هجرت كړې وولكه چه كلام الله كښې دی ﴿فَاٰمَنَ لَهٗ لُوْطٌ ۘ وَقَالَ إِنِّيْ مُهَاجِرٌ إِلٰى رَبِّيْ ۭ إِنَّهٗ هُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿٢٦﴾﴾[4] په هغوی باندې ايمان راوړو وئی فرمائيل زه دخپل رب طرف ته هجرت كونكې يم.نو الله ﷻ هغوی ته حكمت اوعلم وركړو اووحی نازله كړه اود نبيانو په پاكه سلسله كښې ئې داخل كړواود سدوم او دې سره خواوشا كلوته ئې دليګلو حكم اوشو. هغوی اونه منلواوپه مخالفت باندې ئې ملاوتړله د كوم په وجه چه د الله ﷻ په عذاب كښې راګيركړې شواوفناكړې شود كومو د بربادئی واقعات چه د الله ﷻ په كتاب عزيزكښې خوځائ بيان

[1] ۳/آل عمران:۹٦.
[2] ۱۱/هود:۷۱.
[3] ۳۷/الصافات:۱۰۰
[4] ۲۹/العنكبوت:۲٦.

شوی دی دلته فرمانی چه مونږ هغوی له د ډیر خراب کار کونکوفاسقانود کلی نه خلاصی ورکړو اوهغه خو اوچت اونیکوکار وو مونږ هغه په خپل رحمت کښې داخل کړو.

| مِنْ قَبْلُ | نَادٰى | اِذْ | وَنُوْحًا |
|---|---|---|---|
| مخکښې دهغوئ نه | آواز اوکړو هغه | کله چې | او (دا نعمت مونږ ورکړو) نوح علیہ السلام له |
| | | | او ددې نه وړاندې کله چې نوح ﷺ آواز اوکړو |

| وَاَهْلَهٗ | فَنَجَّيْنٰهُ | لَهٗ | فَاسْتَجَبْنَا |
|---|---|---|---|
| او کوروالو دهغه ته | نو خلاصې ورکړو مونږ هغه ته | هغه لره | نو دعا قبوله کړه مونږه |
| | | | نو مونږ دهغه دعا قبوله کړه اومونږ هغه اود هغه اهل ته د ډیرلوئې غم |

| الَّذِيْنَ | مِنَ الْقَوْمِ | وَنَصَرْنٰهُ | الْعَظِيْمِ | مِنَ الْكَرْبِ |
|---|---|---|---|---|
| هغه قوم | په مقابله دقوم کښې | او امداد اوکړو مونږ دهغه | لوئ نه | دمصیبت |
| | | | | نه نجات ورکړل اومونږ د نوح ﷺ بدله دهغه خلقو نه واخسته چې زمونږ حکمونه ئې دروغ |

| فَاَغْرَقْنٰهُمْ | قَوْمَ سَوْءٍ | كَانُوْا | اِنَّهُمْ | بِاٰيٰتِنَا | كَذَّبُوْا |
|---|---|---|---|---|---|
| نو غرق کړل مونږ هغوئ | وو قوم بد | هغوئ | بیشکه | ایتونه زمونږه | چې دروغ اوګنړل هغوئ |
| | | | | | ګنړل ابیشکه چې دغه خلق ډیر خراب خلق وو. نومونږ دوئ ټول |

| اَجْمَعِيْنَ |
|---|
| ټول |
| غرق کړل |

قوله تعالى:- وَنُوْحًا اِذْ نَادٰى مِنْ قَبْلُ

**د نوح ﷺ دعا:-** نوح نبی ﷺ خپل قوم تنګولوتکلیفونه نی ورکړه نوهغوی الله ﷻ ته فریاداوکړواې الله ﷻ زه عاجزراغلم ته زما امداد اوکړې په زمکه باندې د دې کافرانونه یوکس هم پرینږدې ګنې دوی به ستا بندیګان غولوی اود دوی اولاد به هم داسې فاجر اوکافر وی. الله ﷻ د خپل نبی ﷺ دعاقبوله کړه هغوی ته اومؤمنانوته ئې خلاصې ورکړو اود هغوی اهل هم بغیرد هغوی نه د چانوم چه په بربادکیدو کښې راغلې وو. په هغوی باندې د ایمان راوړونکو شمیرډیرکم ووډقوم دسختئې سزا ورکول اود تکلیف نه د عالم رب خپل نبی بچ کړو.نهه نیم سوه کاله( ۹۵۰ ) هغوی په دې قوم کښې وو اوهغوی نی د اسلام طرف ته راغوښتل خوبغیرد یوخوکسانو باقی ټول دکفر اوشرك نه اخوانه شو بلکه هغوی ته نی سختې سزاګانې ورکړې اویوبل نی هغوی ته تکلیف ورکولود پاره وینا کوله مونږ د هغوی امداد اوکړو اوپه عزت او قدر سره د کافرانود تکلیفونو ورکولونه خلاصې ورکړو اوهغه خراب خلق مو سنبال کړل اود نوح ﷺ د دعامطابق په مخ د زمکې یوکافر هم پاتې نه شو ټول ډوب کړې شو.

| يَحْكُمٰنِ | اِذْ | وَسُلَيْمٰنَ | وَدَاوٗدَ |
|---|---|---|---|
| فیصله کوله دواړو | کله چې | او سلیمان له | او (دا نعمت مونږ ورکړو) داود له |
| | | | اوداود ﷺ او سلیمان ﷺ هم یادکړه کله چې دوئ د |

فِي الْحَرْثِ إِذْ نَفَشَتْ فِيهِ غَنَمُ الْقَوْمِ ۚ وَكُنَّا

په باره دفصل کښې | کله چې | دشپې ورګډې شوې | په هغې کښې | ګډې ديو قوم |او وو مونږه

پتې په معامله کښې فيصله کوله | په کوم کښې چې د يوې ډلې بيزې ځريدلې وې

لِحُكْمِهِمْ شٰهِدِينَ ۝ فَفَهَّمْنٰهَا سُلَيْمٰنَ ۚ وَكُلًّا

فيصلې دهغوئ ته | کتونکي (پخپله) | نو پوهه ورکړه مونږه دهغه فيصلې | سليمان له |او هر يو له

اومونږ ته دهغوئ فيصله ښکاره وه|نومونږ دهغې فيصلې پوهه سليمان ته ورکړه

اٰتَيْنَا حُكْمًا وَّعِلْمًا ۫ وَّسَخَّرْنَا مَعَ دَاوٗدَ الْجِبَالَ

ورکړي وو مونږه | حکم او علم | او تابع کړي وو مونږه | دداود سره | غرونه |

اوحکمت اوعلم مو هريو ته ورکړي وو| اومونږ داود ﷺ سره غرونه مسخر کړي وو

يُسَبِّحْنَ وَالطَّيْرَ ۭ وَكُنَّا فٰعِلِيْنَ ۝ وَعَلَّمْنٰهُ

چې تسبيح به ئې ونيله |او مارغان هم | او وو مونږه | کونکي (ددې کار) |او ښودلې وو مونږ هغه ته

چې هغې (غرونو) اومارغانو به زمونږ پاکي بيانوله|اوداکار مونږ(پخپل قدرت)کړي وو|

صَنْعَةَ لَبُوْسٍ لَّكُمْ لِتُحْصِنَكُمْ مِّنْۢ بَاْسِكُمْ ۚ

جوړول | دجامو (زغرو) | ستاسو دپاره | دپاره ددې چې بچ کړي تاسو | دجنګ ستاسو نه

او مونږ هغه ته دزغرو جوړول ستاسو (دفائدې) دپاره خودلي وو| چې تاسو د حملونه بچ کوي

فَهَلْ اَنْتُمْ شٰكِرُوْنَ ۝ وَلِسُلَيْمٰنَ الرِّيْحَ عَاصِفَةً

نو ايا يئ تاسو | شکر ايستونکي | او دپاره دسليمان | مونږ مسخر کړې وه) هوا تيزه

نوايا تاسو شکر نه اداکوئي | اومونږ د سليمان ﷺ دپاره تيزې هواګانې مسخر کړې وې

تَجْرِيْ بِاَمْرِهٖٓ اِلَى الْاَرْضِ الَّتِيْ بٰرَكْنَا فِيْهَا ۭ

چې تلله به | په حکم دهغه سره | هغه زمکې ته | چې برکت اېښې وو مونږه | په هغې کښې

چې دهغه په حکم به هغې زمکې طرفته چليدې |په کومه کښې چې مونږ برکتونه اچولي وو

وَكُنَّا بِكُلِّ شَيْءٍ عٰلِمِيْنَ ۝ وَمِنَ الشَّيٰطِيْنِ مَنْ

او وو مونږه | په هر څيز باندې| عالمان | او دشيطانانونه (تابع کړئ وو مونږه) | څيني هغه

اومونږ ته خو هر يو څيز معلوم دې |او په شيطانانو کښې داسې هم وو| چې دهغه

يَّغُوْصُوْنَ لَهٗ وَيَعْمَلُوْنَ عَمَلًا دُوْنَ ذٰلِكَ ۚ وَكُنَّا

چې غوپې به ئې وهلې | دپاره دهغه | او کول به ئې | نور کارونه هم | علاوه ددې نه|او وو مونږ

دپاره ئې (په دريابونو کښې) غوپې وهلې | اوددې نه علاوه نور کارونه به ئې هم کول | اومونږ

لَهُمْ حٰفِظِيْنَ ۝

هغوئ لره | ساتونکي

په دهغوئ حفاظت کولو

**قوله تعالى:-اِذْ يَحْكُمٰنِ فِي الْحَرْثِ**

**د داؤد ﷺ او سليمان ﷺ يوه فيصله**:-ابن مسعود ﷺ فرمائی چه دافصل د انګورو وود کومې غونچې چه زوړندوې. **(النفش)** معنی د شپې په وخت کښې دڅاروو څرولو ته اود ورځې په وخت کښې څاروو څرولو ته عربی کښې **(همل)** وائی.[1] ابن مسعود ﷺ فرمائي داباغ چيلوتباه کړو.داؤد ﷺ دا فيصله اوکړه چه دباغ دنقصان په بدله کښې دې داچيلئی هغه باغ والا ته ورکړې شی.سليمان ﷺ چه دافيصله واوريده نو عرض ئې اوکړواې د الله ﷺ نبی د دې نه علاوه هم د فيصله څه صورت شته؟ هغوی اوفرمائيل هغه څه؟ چه چيلئی دې د باغ والاته حواله کړې شی هغه دې د دې نه فائده اخلی اوباغ دې دچيلووالا ته حواله کړې شی په دې کښې دانګورودځيلوحفاظت دې کوی تردې چه څيلئی ښه برابرې شی انګور اولګي اوبيا په دې حالت کښې راشی په کوم کښې چه وونود باغ والا ته به دې خپل باغ ورکړې او د باغ والا دې هغه ته چيلئی حواله کړی. هم دامطلب د دې آيت دې چه مونږ د دې جګړې ښه فيصله حضرت سليمان ﷺ ته اوخودله.[2]

ابن عباس ﷺ فرمائی د حضرت داؤد ﷺ دې فيصلې اوريدو سره د چيلووالا مخ زړوندکړو او صرف سپی خان سره واخستل او واپس روان وو حضرت سليمان ﷺ د هغه نه تپوس اوکړو چه ستاڅه فيصله اوشوه؟ هغه خبرورکړو نو هغوی اوفرمائيل چه که زه په دې ځائ کښې موجود وې نودا فيصله به مې نه ورکوله څه بله فيصله به مې ورکوله.داؤد ﷺ ته چه کله داخبر اورسيدونوهغه ئې راوغوښتو او تپوس ئې ترې اوکړوچه بچې تابه څه فيصله کوله؟هغوی هم داپورتنئی فيصله واوروله. مسروق ﷺ فرمائی چه دې چيلو غونچې او پاڼې هره څه خوړلې وونود داؤد ﷺ فيصله خلاف سليمان ﷺ فيصله ورکړه چه د دغه خلقو چيلئی دې د باغ والا ته ورکړې شی اودا باغ دې دوی ته حواله کړې شی ترکومې چه باغ په خپل اصلی حال کښې راشی نوترهغې پورې دې د چيلونه بچی پئی اود دې تولې فاندې د باغ والا اخلی بيا دې هريوته خپل څيز ورکړې شی.

**که دپې چيلئ وغيره باغ خراب کړی نو تاوان شته د ورځې نشته**:-قاضی شريح له هم يوه دا جګړه راغلې وه نو هغوی دا فيصله اوکړه که د ورځې دې چيلونقصان کړې وی نوهيڅ معاوضه نشته اوکه د شپې ئې نقصان رسولې وی نود چيلووالا ذمه واردې بياهغوی هم د دې آيت تلاوت اوکړو.د مسند احمدپه حديث کښې دی چه د براء بن عازب ﷺ اوښه يوباغ ته تلې وه اوهلته ئې دباغ ډير نقصان کړې وو نورسول الله ﷺ دا فيصله اوفرمائيله چه په باغ والا باندې دورځې حفاظت دې اوکوم نقصان چه د څارو نه د شپې شوې دې دهغې جرمانه په څاروو والا باندې ده.[3] په دې حديث کښې علتونه راوستلې شوی دی او مونږ په کتاب الاحكام کښې د الله ﷺ په فضل سره د دې پوره تفصيل بيان کړې دې.

**د اياس بن بن معاويه واقعه**:-روايت دې چه کله د حضرت اياس بن معاويه ﷺ ته د قاضی جوړيدو درخواست اوکړې شونوهغه حضرت حسن ﷺ له راغلو وئی ژړل او تپوس ئې ترې اوکړو چه اې ابوسعيد ته ولې ژاړې؟ وئی فرمائيل ماته دا روايت رسيدلې دې که چرې قاضی اجتهاد اوکړو بيائې هم غلطی اوکړه نو دوزخی دې اوکوم خواهش د نفس طرف ته ټيټ شو هغه هم دوزخی دې. او چا چه اجتهاد اوکړو اوصحت ته اورسيدو هغه جنت ته اورسيدو.حضرت حسن ﷺ چه دا واوريده نو وئی فرمائيل چه واوره الله ﷺ دحضرت داؤد ﷺ اوحضرت سليمان ﷺ دفيصلې ذکرفرمائيلې دې

[1] الطبری:۱۸/۴۷۷.

[2] الطبری:۱۸/۳۷۵، حاکم:۲/۵۸۸.

[3] احمد:۵/۴۳۵، ابوداؤد کتاب البيوع باب المواشی تفسد زرع قوم:۳۵۶۹ابن ماجه:۲۳۳۲، ابن الجارود:۷۹۶،حاکم:۲/۴۷



اوښکاره خبره ده چه انبياء عليهم السلام حکم دې د هغوی په قول سره د دې خلقو خبرې ردکيدلې شي الله ﷻ خود حضرت سليمان ﷺ تعريف هم کړې دې ولې دحضرت داؤد ﷺ خرابوالې ئې نه دې بيان فرمانيلې. بل دا چه د خپل زړه په ارادو اوخواهشاتو پسې مه کيږنې دريم دا چه د الله ﷻ نه بغير د بل چا نه مه ويريږنې بيانئې دا آيت تلاوت کړو. ﴿يٰدَاوٗدُ اِنَّا جَعَلْنٰكَ خَلِيْفَةً فِي الْاَرْضِ فَاحْكُمْ بَيْنَ النَّاسِ بِالْحَقِّ وَلَا تَتَّبِعِ الْهَوٰى فَيُضِلَّكَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۭ اِنَّ الَّذِيْنَ يَضِلُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌۢ بِمَا نَسُوْا يَوْمَ الْحِسَابِ﴾(۱) يعنی اې داؤد ﷺ مونږ ته دزمکې خليفه جوړ کړې ته دخلقو په مينځ کښې دحق فيصلې کوه اوپه خواهشاتو پسې مه لګه د الله ﷻ د لارې نه به واوړې. بل ځائ ارشاددې ﴿فَلَا تَخْشَوُا النَّاسَ وَاخْشَوْنِ وَلَا تَشْتَرُوْا بِاٰيٰتِيْ ثَمَنًا قَلِيْلًا ۭ وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰۗىِٕكَ هُمُ الْكٰفِرُوْنَ﴾(۲) دخلقو نه مه ويريږه هم زما نه ويريږه بل ارشاد دې ﴿وَاخْشَوْنِ وَلَا تَشْتَرُوْا بِاٰيٰتِيْ ثَمَنًا قَلِيْلًا ۭ وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰۗىِٕكَ هُمُ الْكٰفِرُوْنَ﴾(۳) زما آياتونه په معمولی ګټه باندې مه خرڅوه. زه وايم چه د انبياء عليهم السلام په معصوميت کښې اود هغوی دالله ﷻ د طرف نه هروخت تائيدکيدلو کښې خود چا اختلاف نشته اودصحيح بخاری حديث دې رسول الله ﷺ فرمائی کله چه حاکم اجتهاد اوکوشش اوکړی بيا صحت ته هم اورسي نوهغه ته دوچنده اجرملاويږی اود پوره کوشش کولونه پس هم غلطی اوکړی نو غه ته اجر ملاويږی. (۴) داحديث صفا ښائی چه حضرت اياس رحمه الله ته چه کوم وهم ووچه سره د پوره کوشش نه هم خطا اوکړی نو دوزخی دې دا غلطه ده. والله اعلم.

**دقاضی دې قسمونه:**-دسنن په يويل حديث کښې دی چه قاضی درې قسمه دی يوجنتی اودوه دوزخيان. کوم چه حق معلوم کړواوهم پدې ئې فيصله اوکړه هغه جنتی دې اوچاچه په جهالت سره فيصله اوکړه هغه دوزخي دې اوچاچه دحق پيژندلو سره ددې خلاف فيصله اوکړه هغه هم دوزخی دې. (۵)

**د وينځو د فيصلې قصه:**-د قرآن کريم بيان کړې شوې دې واقعه سره نيزدې هغه قصه ده کومه چه په مسنداحمد کښې ده رسول الله ﷺ فرمائی دوه ښځې وې هغوی سره خپل بچی هم وو شرمخ راغلو يو ماشوم ئې اوچت کړو اوس هرې يوې ښځې وئيل چه ستا بچې يوړو اوچه کوم پاتې دې هغه زما بچې دې. آخر دا قصه حضرت داؤد ﷺ ته پيش کړې شوه هغې مشرې ښځې ته فيصله ورکړه چه دا ماشوم ستا دې هغه د دې ځائ نه لاړه په لارکښې حضرت سليمان ﷺ وو هغه دواړه راوغوښتې ورته ئې اووئيل چاړه راوړنی زه دا ماشوم دوه ټکړې کوم او هرې يوې ته به نيمه ټکړه ورکړې شی په دې باندې هغه مشر خو چپ شوه ولې کشرې چغې صورې شروع کړې الله ﷻ دې په تاسو باندې رحم اوکړی تاسو داسې مه کوئی دا هلك هم د دې مشرې دې هم دې ته ئې ورکړئی. حضرت سليمان ﷺ په دې معامله باندې پوهه شو اوماشوم ئې کشرې ته ورکړو. دا حديث په بخاری اومسلم کښې هم شته. (۶) امام نسائی رحمه الله په دې باندې باب تړلې دې چه حاکم له جائز دی چه خپله فيصله په زړه کښې اوساتی اوحقيقت معلوموولو د پاره دې د هغې خلاف څه اووائی.

---

(۱) ۳۸/ص:۳٦.

(۲) ٥/المائده:٤٤.

(۳) ٥/المائده:٤٤.

(۴) صحيح بخاری کتاب الاعتصام باب اجر الحاکم اذااجتهدفاصاب اواخطا:۷۳٥۲، صحيح مسلم:۱۷۱٦، ابوداؤد:۳٥۷٤، احمد:٤/۹۸

(۵) ابوداؤد کتاب القضاء باب القاضی يخطی:۳٥۷۳ وسنده ضعيف خلف بن خليفه راوی حافظه خرابه وه، ترمذی:۱۳۲۲، ابن ماجه:۲۳۱٥ شعب الايمان:۷٥۳۱، حاکم:٤/۹۰.

(٦) احمد:۲/۳۲۲، صحيح بخاری:کتاب احاديث الانبياء باب قوله تعالی ﴿ووهبنا لداؤد سليمان نعم العبد.....﴾:۳٤۲۷، صحيح مسلم:۱۷۲۰، ابن حبان:٥۰٦٦.

**بله عجيبه قيصه:**-هم داسې يوه واقعه په ابن عساكر كښې هم ده چه يوې ښائسته ښځې سره يورئيس ملاويدل غوښتل خوښځې اونه منل دغه شان درې نوروكسانو هم دې سره د بدكارئې اراده اوكړه خو هغه منع پاتې شوه. په دې باندې هغه رئيسان كلك شو او په خپل مينځ كښې اتفاق كولوسره د داؤد ﷺ په عدالت كښې ټولودا ګواهي وركړه چه هغه ښځه خپل سپي سره داسې كاركوي. د څلورو واړو په اتفاقي بيان سره داحكم اوكړې شو چه دا رجم كړنې. هم هغه ماښام حضرت سليمان ﷺ د خپل عمر هلكانو سره ناست وو حاكم جوړشوې ووڅلورو هلكانو د دغه خلقو په شان هغوى له دامقدمه راوړه او د يوې ښځې په نسبت ئې داسې وينا اوكړه. حضرت سليمان ﷺ حكم اوكړو څلور واړه جدا جدا كړنې. بيا ئې يويو خپل خان له راوغوښتلو او تپوس ئې ترې اوكړو چه د هغه سپي رنګ څنګه دې؟ يووئيل تور،بيائې دويم خان له راوغوښتو د هغه نه ئې هم دا سوال اوكړو هغه وئيل سور دريم وئيل خاكي او څلورم وئيل سپين. هغوى په دغه وخت دا فيصله اوكړه چه دا په دې ښځه هسې تهمت دې اوهغه څلور واړه ئې قتل كړل. حضرت داؤد ﷺ ته هم دا واقعه بيان كړې شوه نو هغوى هم هغه وخت زر هغه څلور اميران راوغوښتل اوهمدغه شان ئې دهغوى نه د سپي درنګ باره كښې تپوس اوكړو دوى ګډوډشو چا يوڅه اووئيل او چا بل څه.داؤد ﷺ ته دهغوى دروغ معلوم شواو حكم ئې اوكړو چه دوى قتل كړنې.

**د داؤد عليه السلام ښكلې اواز:**-بيا بيان فرمائي چه حضرت داؤد ﷺ ته هغه نوراني مرتبې وركړې شوې وه اوهغوى به داسې په خوږ آواز او خلوص سره زبور تلاوت كولو چه مرغو به هم خپلې وزرې اودرولې اودالله ﷻ تسبيح به ئې بيانولې اودغه شان غرونه هم. يوروايت كښې دى چه د شپې حضرت ابوموسى اشعرى ﷺ د قرآن كريم تلاوت كولو رسول الله ﷺ د هغه خوږ مزيدار اود خلوص نه ډك آواز اوريدو سره اودريدو اود ډير وخت پورې ئې اوريدو بيائې اوفرمائيل چه ده خود آل داؤد د آواز خوږوالي راكړو.[1] حضرت ابوموسى اشعرى ﷺ ته چه كله معلومه شوه نوونئې فرمائيل چه كه ماته معلومه وه چه حضورﷺ زما قراءت اورى نوما به نور هم ښه لوستلو.[2]

حضرت ابوعثمان نهدى ﷫ فرمائي ما خود چا د ښه نه ښه باجه كښې هم داسې آواز كښې مزه نه ده اخستې كومه چه د ابوموسى ﷺ په آواز كښې وه. دومره خوږ آواز چه حضورﷺ د حضرت داؤد ﷺ د آواز يوه حصه اوګرځوله. اوس ګوره چه پخپله به د داؤد ﷺ آواز څنګه وو. بيا خپل يوبل احسان ښائې چه حضرت داؤد ﷺ ته زغرې جوړول هم مونږ خودلى وو. د هغوى د زمانې نه وړاندې به بغير كړنډو اوبغيركړو زغرې جوړيدلې دكړنډو والا او كړيدارې زغرې به هم هغوى جوړولې[3] لكه چه بل آيت كښې دى مونږ حضرت داؤد ﷺ ته اوسپنه نرمه كړه چه هغه بهترين زغرې تيارې كړى اوبه ټيك اندازه په هغې كښې كړنې جوړې كړى. دا زغرې به په ميدان جنګ كښې په كارراتلې. نوداهغه نعمت ووچه په دې باندې خلقو له د الله ﷻ شكر كول پكار دى.

**د سليمان ﷺتابع څيزونه:**- مونږ زوروره هوادسليمان ﷺ ابع كړې وه چه هغه به ئې دهغه دحكم مطابق دبركت والا زمكې يعنى شام ته به ئې رسولو. مونږ ته د هريوڅيز علم دې. هغوى به په خپل تخت باندې د خپل سازوسامان اولښكركيناستو بياچه به ئې چرته تلل غوښتل هوابه هغوى د حكم مطابق په يوساعت كښې هلته رسولود تخت د پاسه به مرغو وزرې خورې كړې سورې كولو لكه چه ارشاد دې ﴿فَسَخَّرْنَا لَهُ الرِّيحَ تَجْرِي بِأَمْرِهِ رُخَاءً حَيْثُ أَصَابَ﴾ [4] يعنى مونږ هوادهغه تابع كړې وه چه چرته به ئې تلل غوښتل

[1] صحيح بخارى كتاب لفضائل القرآن باب حسن الصوت بالقراءة للقرآن :۵۰۴۸، صحيح مسلم:۷۹۳، احمد:۳۴۹/۵.
[2] حاكم:۴۶۶/۳ وسنده ضعيف، مجمع الزوائد:۱۷۱/۷.
[3] الطبرى:۴۸۰/۱۸.
[4] ۳۸/ص:۳۶.

هم هغه طرف ته به ئې په نرمئ سره روانولو سحر ماښام به ئې د میاشتو میاشتو مزلې کولې.
سعید بن جبیر رحمه الله فرمائي شپږ زره کرسئ به ئې لګولې. نیزدې به مؤمنان انسانان ناست وو هغوی پسې شانه به مسلمانان پیریان ناست وو بیا به د هغوی په حکم باندې په ټولومرغوسورې کړې ووچه بیا به ئې حکم کولونوهوابه هغوی روانول. (۱)
عبدالله بن عبیدبن عمیر رحمه الله فرمائي حضرت سلیمان علیه السلام به هوا ته حکم کولو هغه به د یوې لوئ ډیرنئ غونډې جمع کیدله لکه چه غر دې بیا به ئې د هغې په اوچت مکان باندې د اودریدلوحکم کولوبیابه د وزرو په اس باندې سوریدو او په خپله فرش باندې به ورختلوبیابه ئې هوا ته حکم کولو نو هغې به اوچت ځائ ته اوړلو دغه وخت به هغوی سرښکته کولو اواخوادیخوابه ئې بالکل نه کتل په دې کښې به د هغوی عاجزی اود الله ﷻ شکرکولو مقصدوو. ځکه چه هغوی ته د خپلې عاجزئ علم وو بیا به چه کوم ځائ هغوی حکم کولو هم هلته به هوا کوزولو. دغه شان سرکشه پیریان هم الله ﷻ د هغوی په قبضه کښې کړې وو چه په سمندرکښې به ئې غوپې لګولې او مرغلرې او قیمتي کاڼړی به ئې راویستل او نور به ئې ډیر کارونه روزګارونه کول. لکه چه ارشاد دې ﴿ وَالشَّيٰطِيْنَ كُلَّ بَنَّآءٍ وَّغَوَّاصٍۙ وَّاٰخَرِيْنَ مُقَرَّنِيْنَ فِي الْاَصْفَادِ۝ هٰذَا عَطَآؤُنَا فَامْنُنْ اَوْ اَمْسِكْ بِغَيْرِ حِسَابٍ۝ وَاِنَّ لَهٗ عِنْدَنَا لَزُلْفٰى وَحُسْنَ مَاٰبٍ۝ ﴾ (۲) مونږ سرکشه پیریان د هغوی تابع کړې وو چه ګلکاران وو غوپې وهونکی وو اودې نه علاوه نورشیطانان هم د هغوی ماتحت ووچه په زنځیرونوکښې به تړلې شوی وواوهم مونږ دسلیمان علیه السلام محافظ او ساتندونکی ووهیڅ یوشیطان به هغوی ته بدی نه شوه رسولې بلکه ټول په ټول د هغوی ماتحت حکم منونکی او تابعدار ووځوک به هغوی ته نیزدې هم نه تلل د هغوی بادشاهی به په هغوی چلیدله ځوک چه به ئې غوښتل قیدکول به ئې اوځوک چه به ئې غوښتل نو آزادول به ئې هم دائې اوفرمائیل چه څه نور پیریان به وو چه تړلې شوی وو.

<table>
<tr><td>اِذْ</td><td>وَاَيُّوْبَ</td></tr>
<tr><td>کله چې</td><td>ایوب له | او (دحکم او دعلم دا نعمت مونږ ورکړې وو) |</td></tr>
<tr><td>څه وخت چه</td><td>اوایوب علیه السلام یاد کړه | ...........................</td></tr>
</table>

<table>
<tr><td>وَاَنْتَ</td><td>الضُّرُّ</td><td>مَسَّنِيَ</td><td>اَنِّيْ</td><td>رَبَّهٗٓ</td><td>نَادٰى</td></tr>
<tr><td colspan="6">اواز اوکړو هغه | رب خپل ته | بیشکه زه چې یم | رسیدلې دې ماته | ضرر (تکلیف) | او ته</td></tr>
<tr><td colspan="6">هغه خپل رب ته زاری اوکړه | چې ماته تکلیف رارسیدلې دې || و ته دټولونه زیات</td></tr>
</table>

<table>
<tr><td>فَكَشَفْنَا</td><td>لَهٗ</td><td>فَاسْتَجَبْنَا</td><td>الرّٰحِمِيْنَ</td><td>اَرْحَمُ</td></tr>
<tr><td colspan="5">ډیر مهربانه ئې | دټولو مهربانانو نه | پس قبوله کړه مونږه | دعا دهغه | نو لرې کړو مونږه</td></tr>
<tr><td colspan="5">رحم کونکې ئې | نومونږ دهغه دعا قبوله کړه | او دهغه تکلیف مو لرې کړو | اوهغه ته</td></tr>
</table>

<table>
<tr><td>وَمِثْلَهُمْ</td><td>اَهْلَهٗ</td><td>وَاٰتَيْنٰهُ</td><td>مِنْ ضُرٍّ</td><td>بِهٖ</td><td>مَا</td></tr>
<tr><td colspan="6">هغه | چې وو په هغه | دضرر نه | او ورکړو مونږ هغه ته | اهل وعیال دهغه | او په مثل دهغوئ</td></tr>
<tr><td colspan="6">مو خپله کورنۍ واپس کړه | او ددوئ په شان مور نور خلق هم ورته</td></tr>
</table>

(۱) حاکم: ۵۸۹/۲ عن ابن عباس رضی الله عنه.
(۲) ۳۸/ص: ۳۷-۴۰.

| مَّعَهُمْ | رَحْمَةً | مِّنْ عِنْدِنَا | وَذِكْرٰى | لِلْعٰبِدِيْنَ۝ |
|---|---|---|---|---|
| مو ورسره نور هم ورکړل | خاص درحمت په طور | د طرفه زمونږ نه | او نصيحت | دپاره دعبادت کونکو |
| په خپل رحمت سره ورکړل | | | او د عبادت کونکو دپاره نصيحت وو | |

قوله تعالى:- وَاَيُّوْبَ اِذْ نَادٰى رَبَّهٗٓ اَنِّىْ مَسَّنِىَ الضُّرُّ

**د حضرت ايوب ؑ بيمارى صبراود صحت دعا:-** د حضرت ايوب ؑ د تکليفونوبيان کولې شى کوم چه بدنى مالى اوداولاد وو.دهغوى ډير قسم قسم ځاروى ووفصلونه باغونه وغيره وو اولاد بيبيانې وينځې غلامان ځناورمال متاع هرڅه د الله ﷻ ورکړې شوې موجود وو. اوس چه کله د رب د طرف نه ازمينت راغلونوهم ديوسر نه هرڅه فناشو تردې چه په بدن کښې جذام اولګيدو اودژبې نه بغيرد بدن ټولې حصې ئى ددې بيمارى نه محفوظ پاتې نه شوې تردې پورې چه دخواوشا خلقو ترې کرکه کوله.د ښار په شاړ ګوټ کښې ئى استوګنه اختيارکړه. بغيرد يوې بى بى نه بل څوك هغه سره پاتې نه شو د دې مصيبت په وخت کښې ترې ټولوډډه اوکړه. هم دغه يوه وه چه دهغوى خدمت به ئى کولواودې سره به خوارى مزدورى هم کوله اود خيټې ساتلود پاره به ئى راوړله.حضورﷺ رښتيافرمائيلى دى چه د ټولونه سخت ازمينت هم دنبيانو عليهم السلام وى بيادنيکانو خلقويياد هغوى نه د ښکته درجې د خلقو اوبياد هغوى نه دکمې درجې دخلقو.[1] يوبل روايت کښې دى چه د هرسړى امتحان د هغه د دين په اندازه کيږى که هغه په خپل دين کښې مضبوط وى نو امتحان ئى هم سخت وى. [2]

**د ايوب ؑ د صبر بيان او دهغه دعاګانې:-** حضرت ايوب ؑ ډير زيات صابروو تردې چه د هغه صبرد عامو خلقو په ژبه هم مشهوردې.يزيدبن ميسره فرمائى کله چه د هغوى ازمينت شروع شويال بچ ئى مړشو مال فناشوهيڅ څيز ئى په لاس کښې پاتې نه شو هغه د الله ﷻ په ذکر کښې نورهم زيات شو وئى فرمائيل اې دټولوپالونکو پالونکيه تا په ماباندې لوئ لوئ احسانونه کړى مال دې راکړواولاددې راکړو هغه وخت زمازړه ډير مشغول وواوس تا هر څه واخستل اوزما زړه دې د دې ټولوفکرونونه خالى کړواوس زما په زړه اوتاکښې هيڅ څيز مينځ کښې نشته که زمادښمن ابليس ستا دا مهربانى پيژندلې وه نوهغه به زما سره ډيرحسد کولو.ابليس لعين په دې وينا کولوسره اود دې وخت حمد سره لوليه شو. د هغوى په دعاګانوکښې داهم دعاوه اې الله تاچه زه مالدار اولاد والا اوبال بچ والاجوړکړې ووم تاته ښه پته ده چه هغه وخت ما هيڅ کبر او غرور نه دې کړې کله مې هم په چا ظلم نه دې کړې زماربه تاته معلومه ده چه زما نرمه اوګرمه بستره به تياره وه ما به شپې ستا په عبادت کښې تيرولې خپل نفس ته به مې داسې رټنه ورکوله چه ته دې له نه ئى پيداکړې شوې. ستادرضاپه طلب کښې ماخپل راحت او آرام پريخودې وو.(ابن ابى حاتم) ددې آيت په تفسيرکښې ابن ابى حاتم او ابن جريرکښې يوه ډيره اوږده قصه ده کومه چه وراندينوډيرو مفسرينوهم ذکرکړې ده خوبه دې کښې غربت دې اود دې د اوږدوالى په وجه هغه مونږ پريخوده. د مودو پورې هغوى په مصيبتونوکښې راګيروو.

حضرت حسن رحمه الله او حضرت قتاده رحمه الله فرمائى اوه کاله او څومياشتې هغوى دې کښې اخته وو. د بنى اسرائيلو د ګندګريل د غورزلوځائ (ډيران) کښې هغوى اچولې وو په بدن باندې چينجى شوې وو [3] بيا الله ﷻ په هغوى باندې رحم اوکرم اوکړو دټولومصيبتونونه ئى خلاصې ورکړو اجرئى ورکړو او

---

[1] ترمذى كتاب الزهدباب ماجاء فى الصبرعلى البلاء:٢٣٩٨وهوحسن، ابن ماجه:٤٠٢٣-٤٠٢٤، احمد:١/١٧٢، حاكم : ١/٤١، المختار:١٠٥٦.

[2] حواله سابق.

[3] دا خبره اسرائيلى روايت دې د انبياء کرامو سره مناسبت نه دى ، حاشيه ابن كثير.

تعریفونه ئی اوکړې شودوهب بن منبه ﷺ بیان دې چه پوره دیرش کاله هغوی په دې تکلیفونوکښې وو. ټوله غوښه ترې رژیدلې وه صرف هډوکی او څرمن پاتې وه هغوی به په ایرو کښې پراته وو اوصرف یوه بی بی ئی وه چه هغوی سره وه. کله چه ډیره موده تیره شوه نو یوه ورځ نی اوونیل اې د الله ﷺ نبی ته د الله ﷺ نه دعاولې نه کوې چه هغه دا مصیبت زمونږ نه لرې کړی هغوی اوفرمائیل چه بی بی اویاکاله الله ﷺ زه په صحت اوعافیت کښې اوساتلم نوکه اویا کاله هم زه په دې حالت کښې پاتې شم او صبر اوکړم نودا هم ډیرکم دی. په دې باندې بی بی اوړچیده او هغه به ښار ته تله د خاوند او خپل کار روزګاریه ئی کولو اوچه څه به ملاویدل نو هغه به ئی راوړل او په هغوی باندې به ئی خوړل څکل.

**د شیطان دهوکه:-** دهغوی یودوه د زړه پورې دوستان وو هغوی په فلسطین کښې شیطان خبرکړل چه ستاسو دوست په سخت مصیبت کښې اخته دې تاسو لاړشئی اود هغه پوښتنه اوکړئی اود ځان سره څه شراب یوسئی هغه پرې اوڅکوئی نو دې سره به هغه ته شفاملاوشی.دا دواړه راغلل اودحضرت ایوب ﷺ احالت ئی چه اولیدلو نود سترګونه ئی اوښکې لاړې او په چغو ئی اوژړل.هغوی تپوس اوکړو تاسو څوك ئی؟ هغوی وریادکړل نوخوشحاله شو هغوی ته ئی پخیرراغلې اوونیل.هغوی ونیل جناب تاسو لکه چه څه پټوئی او په ښکاره ددې خلاف کوئی.ایوب ﷺ خپلې سترګې دآسمان طرف ته اوچتې کړې ونی فرمائیل الله ﷺ ښه پوهیږی چه مابه څه پټول اوڅه به مې ښکاره کول. زما رب زه په دې کښې اخته کړم چه اوګوری زه صبر کوم که بې صبری. هغوی ونیل چه ښه ده مونږ تاله څه دارو راوړی دی تاسودا اوڅکئی شفابه ملاوشی.شراب دی مونږ دخپل ځانځ نه راوړی دی.دې اوریدوسره هغه سخت غصه شواوونی ونیل تاسوشیطان خبیث راوستې ئی تاسو سره خبرې کول ستاسو خوراك څښاك په مایاندې حرام دې. دا دواړه د هغوی د خوانه لاړل.

**د شیطان بله دهوکه:-** یوځل د هغوی بی بی د کوردخلقو روټئی پخې کړې د هغوی یوماشوم اوده وو نو هغوی د دې ماشوم دحصې ټیکلې هغې ته ورکړې دانی راوړې او حضرت ایوب ﷺ له راغله نوهغوی اوفرمائیل چه دانن دې د کوم ځایځ نه راوړی دی هغې ټوله قصه بیان کړه. هغوی اوفرمائیل چه هم اوس اوس لاړه شه ممکن ده چه هغه ماشوم راپاسیدلې وی اوهم د دې ټیکلو ضد کوی او په ژړا ژړا نی ټول کور پریشانه کړې وی. هغې روټئی واپس یوړې لاړه د هغوی په دروازه کښې یوه چیلئی ترلې شوې وه هغه نی په داسې زور سره ډیکه کړه هغې ونیل کوره دا ایوب د داسې غلط خیال والا دې. بیا پورته لاړه چه ونی کتل نوواقعی ماشوم راپاسیدلې وو اوهم د دې ټیکلود پاره نی شور کولو اوټول کور نی سخت تنګ کړې وو. دې کتلوسره ئی اوونیل الله په ایوب باندې رحم اوکړې په ډیره ښه موقعه باندې راورسیدم ټیکلې نی ورکړه او واپس راغله. په لارکښې شیطان د طبیب په شکل کښې ملاو شو ونیل ستاخاوند په سخت تکلیف کښې دې مودې تیرې شوې ته هغه ته اووایه چه د فلانکې قبیلې د بت په نوم دې یوموچ مړکړی شفابه ورته اوشی بیادې توبه اوکړی. کله چه داحضرت ایوب ﷺ له راغله نوهغوی ته نی دا اوونیل. هغوی اوفرمائیل د شیطان خبیث جادو په تا اوچلیدو که زه کله ټیك شوم نو سل ذورې به دې وهم.یوه ورځ هغه دهرې ورځ په شان د روزګاریه لټون کښې کوریه کورګرځیدله خو چرته هم کارملاونه شونو نااميده شوه. د ماښام واپس راتلوپه وخت کښې ورته دحضرت ایوب ﷺ د ولګې خیال راغلو نوهغې دخپلو ویښتویوه کمځنی پریکړه اود یومالداره جینئی په لاس ئی خرڅه کړه هغې دې ته د خوراك څښاك ډیر سامان ورکړو کوم چه هغې کورته راوړه. حضرت ایوب ﷺ تپوس اوکړو دا نن دومره ډیره اودومره ښه خوراکونه د کوم ځایځ نه راغله؟ ونی فرمائیل د یومالداره کور کارمې کړې نوهغوی اوخوړله. بله ورځ هم اتفاقی هم داسې اوشو اوهغې د خپلو ویښتو دویمه کمځنئی پرې کړه خرڅه نی کړه اوخوراك نی راوړونو نن نی هم داسې خوراك لیدوسره اوفرمائیل والله زه به نی

چرې هم اونه خورم چه ترڅودې ماته صحیح خبره نه وی خودلی چه دادې څنګه راوړه؟ اوس هغې خپله لوپټه د سر نه کوزه کړه چه وئې کتل نودسر ویښته ئې پرې شوې ووهم هغه وخت اوویریدلو اوبې آرامه شو د الله ﷻ نه سوال اوکړوماته ضرر رسیدلې دې اوته د ټولونه ډیر رحیم ذات ئې.حضرت نوف رحمه الله فرمائی کوم شیطان چه حضرت ایوب علیه السلام پسې لګیدلې وو د هغه نوم مبسوط وو. دحضرت ایوب علیه السلام بی بی به عموماً هغوی ته عرض کولو د الله ﷻ نه دعااوغواړه خو هغه به نه غوښتله تردې چه یوځل د بنواسرائیلوڅه خلق هغوی له راغله او وئې وئیل چه دې سړی ته دا تکلیف او ضرر خامخا د څه ګناه په وجه سره شوې دې هغه وخت ناڅاپی د هغوی د خلې مبارکې نه دادعااووتله.

**د ایوب علیه السلام او دوؤ رونړو قصه**:-حضرت عبدالله بن عبید بن عمیر رحمه الله فرمائی دحضرت ایوب علیه السلام دوه رونړه وو یوه ورځ هغوی د ملاقات د پاره راغلل خود بدن د بدبوئې په وجه نیزدې رانغله اوهم د لرې نه په ولاړه ئې یویل ته اووئیل که په دې سړی کښې څه نیکی وه نو الله ﷻ به دې په دې مصیبت کښې نه اخته کولو.دې خبرې ایوب علیه السلام ته هغه خفګان وراورسولو چه ترننه ورځې پورې په یوڅیز باندې هم داسې خفګان نه ووکړې. هم هغه وخت ئې عرض اوکړو اې الله ﷻ یوه شپه په ماداسې نه ده تیره شوې چه یواوګې سړې زماپه علم کښې وو اوما خیټه مړه کړې وی.پروردګار که زه ستا په نیز پدې خبره کښې رښتونې یم نوزماتصدیق اوکړه نوهم هغه وخت دآسمان نه دهغه تصدیق اوشواوهغه دواړو اوریدل. بیائی اوفرمائیل پروردګارکله هم داسې نه دی شوی چه ماسره دیوې نه زیاتې کپړې وی اوما یوبریندته نه وی ورکړې که زه پدې ویناکښې رښتونې یم نوزماتصدیق د آسمان نه اوکړه په دې باندې هم دهغوی تصدیق ددوی په اوریدوسره اوکړې شو.بیائی دادعااوکړه اوپه سجده کښې راپریوتلو وئې فرمائیل اې الله اوس به زه د سجدې نه سر اوچت نه کړم ترکومې چه دې دا مصیبت زما نه اخواکړې نه وی کوم چه په ما باندې نازل شوې. ستا دعاقبوله شوه اوته سراوچت کړه هغه ټول تکلیفونه او بیمارنی د هغوی نه لرې شوې کومې چه په هغوی باندې راکوزې شوې وې.ابن ابی حاتم کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی ایوب علیه السلام اتلس کاله په مصیبتونوکښې راګیرووبیادهغه ددوودوستانودراتلو اوبدګمانئی کولو ذکردې د څه په جواب کښې چه هغوی اوفرمائیل چه زماخوداحالت ووچه په لارکښې به مې دوه سړې په جګړه لیدل او په هغې کښې به مې چه کوم سړې په قسم خوړلو اوریدلو نو کورته په راتلوبه مې دهغه کفاره ورکوله چه هسې نه ده د الله ﷻ نوم په ناحقه سره اخستې وی. هغوی په خپله بیمارئی کښې دومره کمزورې شوې وو چه د هغوی بی بی به د هغوی لاس نیولو او قضائی حاجت له به ئې بوتلو.یوه ورځ هغوی ته حاجت وو آواز ئې اوکړو خود هغوی بی بی په راتلوکښې لږ شان وخت اولګولو هغوی ته سخت تکلیف اوشو هم هغه وخت د آسمان نه آواز راغلو اې ایوب علیه السلام خپله پونده په زمکه اووه هم دا اوبه اوڅکه او هم دې سره غسل هم اوکړه. (¹) د دې حدیث مرفوع کیدل بالکل غریب دی.

**په ایوب علیه السلام باندې د الله ﷻ خصوصی مهربانی**:-ابن عباس رضی الله عنه فرمائی هم هغه وخت الله ﷻ د هغوی د پاره جنتی حله نازله کړه د کوم په اغوستو چه هغوی خان له شو کیناستو کله چه د هغوی بی بی راغله او وې نه پیژندلې شو نو هغوی نه ئې تپوس اوکړو اې د الله ﷻ بنده دلته یوبیمار بې کسه بې وسه وو تاته معلومه ده هغه څه شو؟ هغه وئیل چرته شرمخ به اوړې وی یا به سپی مات کړې وی. بیائی اوفرمائیل چه نه نه هم هغه بیمارایوب زه یم. بی بی ئې اوفرمائیل اې سړیه ته یودردمندې ښځې پورې ټوقې کوې اوما بې وقوفه جوړوې. هغوی وئیل نه نه ماته الله ﷻ شفاراکړه اودا رنګ او شکل هم.دهغوی مال هغوی ته واپس ورکړې شو اود هغوی هم هغه اولاد واپس دوی ته ملاوشو اوهغې

¹) حاکم:۲/۵۸۱-۵۸۲ سنده ضعیف الزهری عنعن،مسندالبزاوس:۲۳۵۷، مسندابی یعلی: ۳۶۱۷، ابن حبان:۲۸۹۸، حلیة اولیاء:۳/۳۷۴.

سره دغه شان نور هم. په وحی کښې دازیږې هم هغوی ته اوروليې شوې وو قربانی اوکړه استغفاراوکړه د کور والا ستا باره کښې زما نافرمانی کړې وه.

**د سرو زرو د ملخانو راوتل:-** یوبل روایت کښې دی چه کله الله ﷻ حضرت ایوب ؑ ته عافیت ورکړو د آسمان نه د سرو زرو ملخان راووریدل. کوم چه هغوی راواخستل او په خپله کپړه کښې جمع کول شروع کړل نوآوازراغلوچه اې ایوب ته تراوسه پورې اسوده شوې نه نی؟هغوی جواب ورکړو اې پروردګار ستا په رحمت سره څوك كله اسوده كيدې شي.(۱)

**د ایوب علیه السلام د بی بی نوم:-** بیا فرمانی چه مونږ هغه ته د هغه اهل ورکړو. ابن عباس ؓ فرمانی چه هم هغه خلق ور واپس کړې شو(۲) دهغوی د بی بی نوم رحمت وو.که دا قول چرې د آیت نه فهم شوې وی نو دا هم دورازکار امر دې اوکه د اهل کتابونه اخستې شوی وی نوهغه د تصدیق اوتکذیب قابل څيز نه دې. ابن عساکر د هغې نوم په خپل تاریخ کښې "لیا" خودلې دې دا د میشابن یوسف بن یعقوب بن اسحاق بن ابراهیم لور ده.یوقول داهم دې چه حضرت "لیا" د حضرت یعقوب ؑ لور او حضرت ایوب ؑ بی بی ده چه د ثنیه په زمکه کښې هغوی سره وه. یوروایت کښې دی چه اوفرمانیلې شوستا ټول اهل جنت کښې دې که ته غواړې نوټول دلته په دنیاکښې راولم اوکه وائې نو هم هلته دې وی اوپه دنیاکښې د هغې عوض درکړم نوهغوی دویمه خبره خوښه کړه. نود آخرت اجر اود نیابدله دواړه هغوی ته ملاوشو. دا هر څه زمونږ د رحمت ښکاره کونه وه اوزمونږ د ربښتونی عبادت کونکو د پاره نصیحت اوعبرت وو. هغوی داهل بلاپیښواوداهرڅه خکه اوشوچه په مصیبتونو کښې اینختی خلق د خپل خان د پاره د هغوی په ذات کښې عبرت اوګوری او بې صبری اوناشکری اونه کړی او نور خلق هغوی د الله ﷻ خراب بندیګان اونه ګنړی. حضرت ایوب ؑ د صبر یوغر وواود ثابت قدمئ یو نمونه وو. د الله ﷻ په تقدیر باندې د هغه په امتحان باندې انسان له صبر اوبرداشت کول پکار دی نه دا معلومه چه قدرت خپل پټ پټ کوم کوم حکمتونه بنائی.

| وَإِسْمٰعِيْلَ وَإِدْرِيْسَ | وَذَا الْكِفْلِ ۖ | كُلٌّ | مِّنَ الصّٰبِرِيْنَ ﴿٨٥﴾ |
|---|---|---|---|
| او (دا نعمت مونږه) اسماعیل او ادریس له ورکړو | او ذوالکفل له هم | دا ټول وو | دصبر کونکو نه |

او اسماعیل ؑ او ادریس ؑ او ذا الکفل ؑ یادکړه دا ټول د صبرکونکو څنی وو

| وَأَدْخَلْنٰهُمْ | فِيْ رَحْمَتِنَا ۖ | إِنَّهُمْ | مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿٨٦﴾ |
|---|---|---|---|
| او داخل کړل مونږه هغوئ | په رحمت خپل کښې | بیشکه هغوئ | وو دصالحانونه |

اودوئ مونږ په خپل رحمت کښې داخل کړل بیشکه چې دغه ټول نیکان خلق وو

**قوله تعالى:- وَإِسْمٰعِيْلَ وَإِدْرِيْسَ وَذَا الْكِفْلِ ۖ**

**دحضرت اسماعیل، ادریس او ذوالکفل علیهم السلام تذکره:-** حضرت اسماعیل ؑ دحضرت ابراهیم ؑ خوئ وو په سورت مریم کښې د هغه بیان شوی دې. د حضرت ادریس ؑ هم ذکر شوې دې.

**ذوالکفل نبی ووکه ولي؟ دده د بزرګئ قصه:-** ذوالکفل خو په ظاهره نبی معلومیږی څکه چه د نبیانو په ذکر کښې دهغه نوم راغلې دې اوخلق وائی چه دانبی نه وو.بلکه یو نیك سړې وو دخپلې زمانې بادشاه

---

(۱) حاکم:۲/۵۸۲.
(۲) الطبری:۱۸/۹۰۶.

وو ډير عادل اود مروت سړي وو. امام ابن جرير په دې كښې توقف كوى. (۱) والله اعلم.
مجاهد رحمه الله فرمائي دا يونيك بزرګ وو چاچه د خپل وخت نبى سره وعده اوكړه اوپه هغې باندې قايم پاتې شو.په قوم كښې به ئې عدل اوانصاف كولو. روايت دې چه حضرت يسع عليه السلام ډير بوډا شوې وو نواراده ئې اوكړه چه زه هم په خپل ژوند كښې خپل څوك خليفه جوړكړم چه اوګورم هغه څنګه عمل كوى. خلق ئې راجمع كړل او ورته ئې اوفرمائيل چه كوم سړې درې خبرې منظوركړى هغه ته زه خلافت وركوم. ټوله ورځ روژه وى ټوله شپه قيام كوى اوهيڅ كله هم غصه نه كوى. نور خو څوك اونه دريدل ولې يو سړې كوم چه خلقو ډيردسپكې درجې والا ګنړلواودريدوچه زه به داشرط پوره كړم.هغوى تپوس اوكړوچه ته به د ورځې روژه ئې د شپې به تهجد كوې او په چابه غصه نه كوې؟ هغه وئيل او نوحضرت يسع عليه السلام وئيل چه ښه نوصبا صحيح. په دويمه ورځ هم هغوى دغه شان په عام مجلس كښې سوال اوكړو خود هغه سړې نه علاوه بل څوك اونه دريدلو نوهم هغه خليفه جوړكړې شو. اوس شيطان واړه واړه شيطانان د دې بزرګ د دهوكه كولود پاره راليګل شروع كړه خود چا هم څه داؤ اونه چليدو نو ابليس پخپله راغلو غرمه د قيلولې د پاره هغوى ملاست وو چه دې خبيث كنډه ټكول شروع كړه. هغوى تپوس اوكړوچه څوك ئې؟ هغه وئيل زه يومظلوم يم يوفريادى يم زما قوم ما تنګوى ماسره هغوى داكړې داكړى هغه يوه ډيره اوږده قصه اوروك شروع كړه نو په يوشان ئې هم نه ختمولو د خوب ټول وخت په دې كښې تيرشو او حضرت ذوالكفل به په شپه ورځ كښې صرف هم دې وخت كښې لږ شان ساعت د پاره اوده كيدلو. هغه وئيل ښه ده مابنام راشه زه به ستاسره انصاف اوكړم. اوس چه د مابنام هغوى فيصلې كولې نو هر طرف ته ئې هغه كتلو خود هغه چرته هم پته اونه لګيدله تردې چه پخپله هم لاړو اواخواديخوائى اوكتلو خوپيدانه شو بل سحر هم هغه رانغلو. بيا چه هغه د لږساعت د آرام دپاره سملاستونودا خبيث راغلو او دروازه ټكول ئې شروع كړه هغوى كولاوكړه ورته ئې اوفرمائيل چه ماخوتاته مابنام د راتلووئيلې وو زه په انتظاروم خوته رانغلې. هغه وئيل حضرت څه اوكړم چه ماكله ستاسوطرف ته دراتلواراده اوكړه نوهغوى وئيل ته مه ورځه مونږبه ستا حق اداكړو زه حصارشوم اوس هغوى بياانكاراوكړو. دې وخت كښې ئې څه اوږدې قصې شروع كړې اود نن خوب هم لاړو. اوس ئې مابنام بياانتظاراوكړو نه هغه راتلو اونه راغلو. په دريمه ورځ باندې هغوى يوسړې مقرر كړو چه ګوره څوك دروازې له رانه شي دخوب نه زما حالت خرابيږى.هغوى لاملاست نه وو چه هغه مردود بياراغلو څوكيدارهغه رامنع كړو خوهغه په يوه سوره دننه راغلو اود دننه نه ئې دروازه ټكول شروع كړه. هغوى راپاسيدل او څوكيدار ته ئې اووئيل چه ګوره ما تاته وئيلې وو بيادې هم دروازې ته څوك راپريخودل هغه وئيل زمادطرف نه خو څوك هم نه دې راغلى.اوس چه هغه په غورسره اوكتل نو دروازه بنده وه اوهغه سړې دننه موجود وو. هغوى ته پته اولګيده چه داشيطان دې. هغه وخت شيطان اووئيل اې د الله ولى ما بيله نه تا د شپې قيام پريخودو نه ته په دې نوكر باندې په داسې حال كښې غصه شوې نو الله د هغه نوم ذوالكفل كيخودو ځكه چه د كومو خبرو هغه كفالت كړې وو هغه ئې پوره كړې.(ابن ابى حاتم)دابن عباس نه هم په څه تفسيرسره داقصه نقل ده په دې كښې دى چه د بنواسرائيلو يوقاضى د مرګ په وخت كښې وئيلې وو چه زما نه پس زما منصب څوك سنبالولې شى؟ هغه وئيل چه زه نودهغه نوم ذوالكفل شو.په دې كښې دى چه كله شيطان دهغه د آرام په وخت كښې راغلو څوكيدار منع كړو نوهغه دومره شور اوكړو چه هغوى راپاسيدل او په دويمه ورځ ئې هم داسې اوكړه په دريمه ئې هم دغه شان اوكړه. اوس هغه د ده سره د تلود پاره تيارشو زه تاسره ځم او ستا حق دركوم خو په لار كښې هغه خپل لاس خلاص كړو او اوتختيدو.حضرت اشعرى رضي الله عنه په منبر باندې اووئيل چه ذوالكفل

---

(۱) الطبرى:۱۸/۵۰۷.



نبي نه وو دبنواسرائيلو يونيك سړې وو چه هره ورځ به ئې سل مونځونه كول دې نه پس هغه هم د دې په شان د عبادت ذمه اوچته كړه په دې وجه هغه ته ذوالكفل اوونيلې شو. په يومنقطع روايت كښې دى د حضرت ابوموسى اشعرى ﷺ نه هم نقل دى يوغريب حديث په مسنداحمد كښې دى په دې كښې د كفل يوه واقعه بيان ده ذوالكفل ئې ورته نه دې وئيلې ډير ممكن دى چه دا څوك بل صاحب وى. په دې حديث كښې واقعه دا ده چه كفل نومې يوسړې وو چه د يوې گناه نه نه بچ كيدو. يوځل هغه يوې ښځې له شپيته ديناره وركړه اود بدكارئى د پاره ئې تياره كړه كله چه د خپلې ارادې پوره كولو د پاره تيارشو نو هغه ښځه په ژړا شوه او په رچيدو شوه. هغه وئيل چه ماخوپه تا څه زبردستى نه ده كړې چه ته ژړا كوې بيا د دې ژړا او رچيدو څه وجه ده؟ هغې وئيل چه ما ترننه پورې د الله ﷻ داسې هيڅ نافرمانى نه ده كړې دې وخت كښې زما محتاجئى دا بده ورځ ماته اوخودله. كفل وئيل چه ته په يوه گناه باندې دومره په ترددكښې ئې سره د دې چه دې نه وړاندې كله هم تا داسې نه دى كړې. هم هغه وخت ئې پريخوده اود هغې نه جداشو او ورته ئې اوونيل څه دا دينار ماتاته اوبښل په الله ﷻ قسم د نن نه پس به زه د الله ﷻ هيڅ قسم نافرمانى اونه كړم. د الله ﷻ شان وو چه هم په هغه شپه وفات شو سحر خلق گورى چه د هغه په دروازه باندې قدرتى توگه باندې ليكل شوى ووچه الله ﷻ كفل اوبښلو. (١)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَذَا النُّوْنِ | اِذْ | ذَّهَبَ | مُغَاضِبًا | فَظَنَّ |
| او دا (نعمت مونږ وركړې) مهى والاله | كله چې | لاړو هغه | په غصه | نو گمان ئې اوكړو |
| اودمهى والا(يونس ﷺ) ياد كړه \| څهٔ وخت چې هغه خفه قهريدلې روان شوااو داخيال ئې اوكړو چې مونږ | | | | |
| اَنْ لَّنْ نَّقْدِرَ | عَلَيْهِ | فَنَادٰى | فِي الظُّلُمٰتِ | |
| چې هر گزتنگسيارانولو | په ده باندې | نو اواز اوكړو هغه | په تيرو كښې | |
| به په ده تنگسيا نه راولو\|........ نو په تورو تيارو كښې ئې اواز اوكړو \| چې (ائې الله ﷻ) | | | | |
| اَنْ لَّآ اِلٰهَ | اِلَّآ | اَنْتَ | سُبْحٰنَكَ ۖ | اِنِّيْ كُنْتُ |
| چې نشته لائق دعبادت | مگر | هم ته ئې | پاك دې ذات ستا | بيشكه زهٔ \| ووم |
| ستا نه بغير بل معبود نشته \| ته پاك ئې \| بيشكه چې هم زه زياتې كونكې يم | | | | |
| مِنَ الظّٰلِمِيْنَ ۞ | فَاسْتَجَبْنَا | لَهٗ ۙ | وَنَجَّيْنٰهُ | مِنَ الْغَمِّ ۭ |
| دظالمانو نه | پس دعا قبوله كړه مونږه | دهغه | او خلاصې وركړو مونږ هغه لره | دغم نه |
| نو مونږ دهغه دعا قبوله كړه \| .......................او هغه مو دغم نه خلاص كړو | | | | |
| وَكَذٰلِكَ | نُـْۨجِي | الْمُؤْمِنِيْنَ ۞ | | |
| او دارنگې | خلاصي وركوو مونږ | مومنانو له | | |
| اومونږ ايماندار خلق هم داشان د غم نه خلاصوو | | | | |

قوله تعالى:-وَذَا النُّوْنِ

دحضرت يونس ﷺ ذكر:- داواقعه دلته هم ذكر ده اوسورة صافات كښې هم ده اوسورة نون كښې هم ده.داپيغمبرحضرت يونس بن متى ﷺ وو.هغه د موصل دعلاقې د نينوى طرف ته نبى جوړكړو الله ﷻ

(١) احمد:٢/٢٣، ترمذى كتاب صفة القيامة باب فيه اربعة احاديث:٢٤٩٦ حاكم:٤/٢٥٢ (التقريب:١/٢٩٠ رقم:١١٢)

لیګلې وو. هغوی د الله ﷻ د لارې دعوت ورکولوخو خلقو ایمان راونړلو هغوی د هغه ځایٔ نه خفه شو لاړو اوهغه خلقو ته ئې اووئیل په دریوورځوکښې به د الله ﷻ عذاب په تاسو راځي. کله چه هغوی ته د دې خبرې حقیقت معلوم شو اوهغوی ته پته اولګیده چه پیغبران علیهم السلام دروغژن نه وی دا ټول په ټول سره دلویو وړو او خناوروځاروو خنګل ته اووتل بچی د مشیندونه جداکړل او په چغوچغو ئې الله ﷻ ته زاری اوفریادونه اوکړل. یو خواد دوی چغې ویناګانې بل طرف ته د هغوی د ځاروو عجیبه آوازونه غرض داچه د الله ﷻ رحمت متوجه شو عذاب اوچت کړې شو لکه چه ارشاددې ﴿فَلَوْلَا كَانَتْ قَرْيَةٌ آمَنَتْ فَنَفَعَهَا إِيمَانُهَا إِلَّا قَوْمَ يُونُسَ لَمَّا آمَنُوا كَشَفْنَا عَنْهُمْ عَذَابَ الْخِزْيِ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَمَتَّعْنَاهُمْ إِلَىٰ حِينٍ﴾[1] یعنی د عذابونو د تحقیق نه پس ایمان چاته فائده نه ده ورکړې بغیرد یونس ﷺ دقوم نه چه د هغوی د ایمان په وجه مونږ دهغوی نه عذاب اخوا کړو اوددنیادرسوائي نه هغوی مونږبچ کړل اودمرګه پورې موورته مهلت ورکړو.

**یونس علیه السلام د قوم نه خفه لاړو کشتۍ کښې سور شو:**-حضرت یونس ﷺ د دې ځایٔ نه لاړو او په یوه کشتئ کښې سور شو وړاندې تلوسره د طوفان آثار ښکاره شو او نیزدې وه چه کشتئ ډوبه شوې وه نومشوره اوکړې شوه چه یوسړې په دریاب کښې غورزول پکاردی. چه دا وزن کم شی نو خسنړې د حضرت یونس ﷺ په نوم راووتلو چا هغه په دریاب کښې غورزول خوښ نه کړه په دویم ځل خسنړې اوشو هم د هغه نوم راووتلو بیا په دریم ځل هم دهغه نوم راووتلوپخپله په قرآن کښې دی ﴿فَسَاهَمَ فَكَانَ مِنَ الْمُدْحَضِينَ﴾[2] دې ځل حضرت یونس ﷺ پخپله تیارشواوکپړې ئې اوویستلې اودریاب ته ئې ورټوپ کړو. دبحر اخضر نه یوکب اوبه شلونکې راغلو هغوی ئې یوه نوړئې کړل خود الله ﷻ په حکم ئې نه څه هډوکې مات کړو اونه ئې بدن ته څه نقصان اورسولو دې د هغه خوراك نه وو بلکه د ده خیټه د هغه قیدخانه وه. هم په دې وجه دهغوی نسبت د کب طرف ته اوکړو. عربی کښې کب ته نون وائی د هغه غضب اوغصه په قوم باندې وه[3] خیال دا وو چه هغه به الله ﷻ زرنه رانیسی نودلته د ﴿نَّقْدِرَ﴾ هم دا معنی ابن عباس ﷺ مجاهد رحمه الله ضحاك رحمه الله کړې ده.[4] امام ابن جریر رحمه الله هم داخوښوی اوددې تائید په آیت ﴿ وَمَن قُدِرَ عَلَيْهِ رِزْقُهُ فَلْيُنفِقْ مِمَّا آتَاهُ اللَّهُ لَا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلَّا مَا آتَاهَا سَيَجْعَلُ اللَّهُ بَعْدَ عُسْرٍ يُسْرًا﴾[5] نه هم کیږی.

عطیه عوفی رحمه الله دامعنی کړې ده چه مونږ به په ده باندې نه مقدر کوو ﴿قَدَرَ﴾ او ﴿قَدَّرَ﴾ دواړه لفظونوهم په یوه معنی کښې ونیلې شی. ددې په سند کښې د عربی دیوشعر نه علاوه ﴿فَالْتَقَى الْمَاءُ عَلَىٰ أَمْرٍ قَدْ قُدِرَ﴾[6] هم پیش کولې شی.

**د مهی په خیټه کښې د یونس ﷺ دعا او تسبیح:**-په دې تیاروکښې راګیرېدو سره حضرت یونس ﷺ خپل رب رابللو.دسمندر لاندې تیاره بیا د کب د خیټې تیاره بیا دشپې تیاره دا ټولې تیارې راجمع شوې وې[7] هغوی د سمندرپه بیخ کښې د کاڼو تسبیح واوریده او پخپله ئې هم تسبیح کول شروع کړو.هغه د کب خیټې ته لاړو اول خو ئې خیال کوو چه مړشوم بیائی پښې اوخوزولې نواوخوزیدې یقین ئې اوشوچه ژوندې دې هم هلته په سجده کښې پریوتلواو وئیل اې الله ما ستا د پاره هم دا ځایٔ جمات

[1] ۱۰/یونس:۹۸.

[2] ۳۷/الصافات:۱٤۱.

[3] الطبری:۵۱۱/۱۸

[4] الطبری:۵۱٤/۱۸.

[5] ٦۵/الطلاق:۷.

[6] ۵٤/القمر:۱۲.

[7] حاکم:۳۸۳/۲.

جوړکړو چاچه دې نه وړاندې به داسې ځائ د سجدې نه وی جوړکړې.([1])حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائی چه څلویښت ورځې هغوی د کب په خیټه کښې وو.ابن جریرکښې دی رسول الله ﷺ فرمائی کله چه الله ﷻ دحضرت یونس عليه السلام د قید کولواراده اوکړه نوکب ته حکم اوشو نوهغه تیرکړی خوداسې چه نه ئی هډوکی مات شی اونه ئی په بدن باندې څه کرخې راشی.کله چه هغه د سمندربیخ ته اورسیدو اوتسبیح ئی واوریده نو حیران شو وحی اوشوه چه دا د سمندرد ځناورو تسبیح ده نوهغوی هم د الله ﷻ تسبیح شروع کړه. دې اوریدو سره فرښتو وئیل یا الله دا خود ډیر لرې نه دې ډیر کمزورې دا د چا دې مونږ خوئی نه پیژنو. جواب ملاو شو دا زما د بنده حضرت یونس عليه السلام آواز دې هغه زما نافرمانی اوکړه ما هغه د کب په خیټه کښې قیدکړو هغوی وئیل اې ربه دهغه اعمال خو به شپه ورځ هروخت راختل الله ﷻ د هغوی سفارش قبول کړو کب ته حکم اوشو چه هغه دې غاړې ته اوغورزوی([2])په تفسیر ابن کثیر په یوه نسخه کښې دارروایت هم دې حضور ﷺ اوفرمائیل چه هیڅ چا له لائق نه دی چه هغه خپل ځان ته د یونس بن متی نه غوره اووائی دالله ﷻدې بنده په تیاروکښې دخپل رب تسبیح بیان کړې ده([3])پورته چه کوم یورروایت تیرشود هغې هم دا یو سنددې.ابن ابی حاتم کښې دی حضور ﷺ فرمائی کله چه حضرت یونس عليه السلام دا دعااوکړه نودا کلمات د عرش نه چاپیره تاویدل فرښتو وئیل د ډیر لرې آواز دې خوغوږونه مو دې سره د وړاندې نه بلد دی آواز ډیر کمزورې دې الله ﷻ اوفرمائیل ولې تاسو اونه پیژندلو؟ هغوی وئیل نه الله ﷻ اوفرمائیل دا زماد بنده یونس آواز دې.فرښتو وئیل هم هغه یونس د چا پاك عمل او قبول شوې به هره ورځ ستا طرف ته راختلواود چا دعاګانې چه تاته قبولې وې اې الله چه څنګه هغه دآرام په وخت کښې نیکی کوله نو د دې مصیبت په وخت کښې په هغه رحم اوکړه. هم هغه وخت الله ﷻ کب ته حکم اوکړو چه بغیر تکلیف نه هغه غاړې ته اوغورزوه.([4]) بیا فرمائی چه مونږ دهغه دعاقبوله کړه اودغم نه موورته خلاصې ورکړودتیارونه موراوویستلوهم دغه شان مونږ ایماندارو ته خلاصې ورکوو.هغوی په مصیبتونو کښې چه راګیرشی نوهم مونږ ته آوازکوی اومونږدهغه دست ګیری کوواوټول مشکلات ورته آسانوو. خاص کر چه څوك دا د یونس عليه السلام دعا اولولی دکوم چه سید الانبیاء رسول الله ﷺ ترغیب ورکړې دې.

**دیونس علیه السلام والا دعا مقبوله دعا ده:**-مسنداحمد اوترمذی وغیره کښې دی حضرت سعدبن ابی وقاص رضی الله عنه فرمائی زه جمات ته لاړم هلته حضرت عثمان رضی الله عنه موجودوو. ما سلام اوکړو هغوی ماته په غورسره اوکتل اوزما دسلام جواب ئی رانه کړو.ماامیرالمؤمنین عمر رضی الله عنه ته شکایت اوکړوهغوی عثمان راوغوښتو اود واقعه تپوس ئی ترې اوکړو چه تاسود یومسلمان رور د سلام جواب ولې ورنه کړو؟ هغوی اوفرمائیل نه دې راغلې نه ده سلام کړې اونه دا چه ماده له جواب نه دې ورکړې. په دې باندې ما قسم اوخوړو نوهغه هم زما په مقابله کښې قسم اوخوړلو بیا څه خیال کولوسره حضرت عثمان رضی الله عنه توبه اواستغفار اوکړو او وئی فرمائیل ټیك ده چه ته وتلې وې خوهغه وخت ما خپل زړه سره هغه خبره کوله چه ماد رسول الله ﷺ نه اوریدلې وه. والله کله چه هغه ماته یاده شی نوزما په سترګونه بلکه زماپه زړه باندې هم پرده پریوځی. حضرت سعد رضی الله عنه اوفرمائیل زه تاته د هغې خبر درکوم رسول الله ﷺ زمونږ په وړاندې اول هم د دعاذکر کړې وو چه یواعرابی راغلو اوحضور ﷺ نی په خپلو خبروکښې مشغول

---

[1] الطبری:۵۱۸/۱۸، حاکم:۵۸۵/۲.

[2] الطبری:۵۱۸/۱۸ مجمع الزوائد:۱۰۱/۷.

[3] مصنف ابن ابی شیبة:۳۱۸۵٤،موقوفًا علی علی رضی الله عنه وسنده حسن ذ سبح الله ل الظلمات نه علاوه دا روایت په صحیح بخاری کتاب احادیث الانبیاء باب قول الله تعالی ﴿وهل اتاك حدیث موسی﴾:۳۳۹۵.

[4] ابن ابی حاتم.

کړو ډېر زيات وخت تيرشو بياحضورﷺ د هغه ځای نه پاسيدواوکورته ئي تشريف يوړو. زه هم حضورﷺ پسې شاته ووم. کله چه حضورﷺ کورته نيزدې اورسيدو نوماسره ويره وه چه حضورﷺ چرته کورته لاړنه شي اوزه پاتې شم نوما په زوره زوره په زمکه پښې وهلوسره تلل شروع کړه. حضورﷺ زما د څپلوکشار واوريدو نوزما طرف ته ئي اوکتل او وئي فرمائيل څوك ابواسحاق؟ ماوئيل اوجي يارسول اللهﷺ! هم زه يم. حضورﷺ اوفرمائيل څه خبره ده ماوئيل حضورﷺ تاسو د اول دعاذکر اوکړو بيا هغه اعرابی راغلو اوتاسو مشغول شونی. حضورﷺ اوفرمائيل او هغه دعا د حضرت ذوالنون ﷺ وه چه هغه د کب په خيټه کښې کړې وه يعنی ﴿لَّآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنْتَ سُبْحٰنَكَ ۖ اِنِّیْ كُنْتُ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ﴾ (۱) واوره کوم يومسلمان چه په کومه يوه معامله کښې هم د خپل رب نه دا دعا اوکړی الله ﷻ هغه ضرور قبلوی. (۲)

دې دعا سره دعااوکړی د هغه دعابه خامخا ﷺابن ابی حاتم کښې دی څوك هم چه د حضرت يونس فرمائی هم پدې آيت کښې ددې نه پس فرمان دې چه مونږهم دغه شان ﷺقبلولې شي(۳)ابوسعيد هغه نوم په کوم سره چه راوبللې ﷻ فرمائی دالله ﷺمؤمنانوته خلاصې ورکوو.ابن جريرکښې دی حضور په دعاکښې دې. ﷺشي اوقبول ئي کړی اوچه څه اوغوښتې شی هغه ورکوی هغه د يونس بن متی

**ديونس عليه السلام دعاټولومسلمانانو دپاره عامه ده:-** حضرت سعدبن ابی وقاص ﷺ فرمائی ماوئيل يارسول اللهﷺ هغه صرف د حضرت يونس ﷺ د پاره خاص وه يا د ټولومسلمانانود پاره عام ده. وئی فرمائيل دهغه دپاره خاص اود ټولومسلمانانود پاره عام ده څوك هم چه دادعااوکړی. آياتا په قرآن پاك کښې نه دی لوستلی چه مونږ دهغه دعا قبوله کړه هغه مو د غم نه خلاص کړواودغه شان مونږ مؤمنان خلاصوو. نوچه څوك هم دا دعااوکړی د هغه د پاره د الله ﷻ د قبلولووعده شوې ده. (۴)

ابن ابی حاتم کښې دی چه کثير بن معبد فرمائی ما د امام حسن بصری رحمه الله نه تپوس اوکړو ابوسعيد! د الله ﷻ هغه اسم اعظم چه کله د هغې سره د هغه نه دعااوکړې شي او الله ﷻ ئی قبوله کړی اوچه کله د هغه نه هغې سره سوال اوکړې شي نوهغه ئي ورکوی کوم يودې؟ هغوی جواب ورکړو وراره آيا تا په قرآن کريم کښې د الله ﷻ دا فرمان نه دې لوستلې؟ بياهغوی هم دا دوه آياتونه اولوستل اوونی فرمائيل وراره دا د الله ﷻ اسم اعظم دې کله چه دې سره دعااوکړې شی هغه قبلوی اوکله چه د هغه نه په دې سره غوښتنه اوکړې شي هغه ئي ورکوی.

| | إِذْ | وَزَكَرِيَّآ | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | ا کله چې | ا او (دا نعمت ورکړو مونږ) زکريا له | | | |
| | ا او زکريا ﷺ ياد کړه څه وخت چې | | | | |
| نَادٰى | رَبَّهٗ | رَبِّ | لَا تَذَرْنِیْ | فَرْدًا | وَّاَنْتَ |
| آواز اوکړو هغه | رب خپل ته | اے ربه زما | مه پريږده ما | يوازې | او هم ته ئي |
| هغه دخپل رب نه دعا اوکړه اچې ائی زما ربه ا ما يوازې لاوارثه مه پريږده ا اوهم نه | | | | | |

---

(۱) ۲۱/الانبياء:۸۷.

(۲) احمد:۱۷۰/۱، کتاب الدعوات باب فی دعوة ذی النون....۳۵۰۵وسنده صحيح، مسندابی يعلی:۷۷۲،السنن الکبری للنسائی:۱۰۴۹۲

(۳) حاکم:۳۸۲/۲وسنده صحيح، مسند ابی يعلی:۷۰۷.

(۴) الطبری:۵۱۹/۱۸، حاکم:۵۰۶/۱،

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| خَيْرُ الْوٰرِثِيْنَ﴿٨٩﴾ | فَاسْتَجَبْنَا | لَهٗ | وَوَهَبْنَا | لَهٗ | يَحْيٰى |

بهتره دوارثانو نه | نو دعا قبوله كړه مونږه | دهغه | او وركړو مونږ | هغه ته | يحيى

دټولونه بهتر وارث ني| نومونږ دهغه دعا قبوله كړه |او ورته مو يحيى ﷺ وركړو

وَاَصْلَحْنَا لَهٗ زَوْجَهٗ ؕ اِنَّهُمْ كَانُوْا يُسٰرِعُوْنَ

اواصلاح اوكړه مونږ | دده دپاره | ددهٔ دښځي | بيشكه هغوىٰ | ووٰ | اچي تلوار به ني كوله |

اودده بي بي مو ددهٔ دپاره داولاد قابله كړه |بيشكه هغوى به دنيكئ په كارونو كښي

فِي الْخَيْرٰتِ وَيَدْعُوْنَنَا رَغَبًا وَّرَهَبًا ؕ وَكَانُوْا لَنَا

به نيكو كارونو كښي | او آواز به ني كوو مونږ ته | په مينه | او په يره سره | او ووٰ هغوىٰ | مونږ ته

دتلوار كولو|......اومونږ به ني په اميد اوويره سره يادولو| او مونږ ته به ني عاجزى

خٰشِعِيْنَ﴿٩٠﴾ وَالَّتِيْٓ اَحْصَنَتْ فَرْجَهَا فَنَفَخْنَا

تيتيدونكى | اوياده كړه قيصه دهغه جينى|چي حفاظت ني كړي ووٰ|دشرم دخائي خپل|نوپوكړو مونږ

كوله|...او د هغي زنانه (مريم) ذكر اوكړه |چا چي خپل عزت بچ كړي ووا| نو مونږ په

فِيْهَا مِنْ رُّوْحِنَا وَجَعَلْنٰهَا وَابْنَهَآ اٰيَةً لِّلْعٰلَمِيْنَ﴿٩١﴾

په هغي كښي | دروح خپل نه | او اوګرزوله مونږه هغه | او څوئي دهغي | ننبه | دپاره دخلقو |

هغي كښي خپل روح پوك وهل| اوهغه ښځه اودهغي څوئي مو دټولي دنيا دپاره يو ننبه اوګرځوله |

**قوله تعالىٰ:- وَزَكَرِيَّآ اِذْ نَادٰى رَبَّهٗ**

**د حضرت زكريا ﷺ واقعه:-** الله ﷻ دحضرت زكريا ﷺ قصه بيانوى چه هغه دعا اوكړه چه زما دي اولاد وي چه زمانه پس نبى جوړشي.په سورت مريم اوسورت آل عمران كښي داواقعه په تفصيل سره ده. هغوى دادعاد خلقونه پټه كړې وه. مايوازي مه پريږده يعنى بي اولاده. ددعانه پس ني دالله ﷻ ثنا اوكړه څنګه چه ددې دعا لائق وه. الله ﷻ د هغوى دعاقبوله كړه اود هغوى بى بى د چا چه د بوډيوالى پورې اولاد نه وو شوې د اولاد قابله ني جوړه كړه. (١)

بعضې خلق وائى چه د ژبې اوږدوالې ني بندكړو اوبعضې وائى د اخلاقوكمې ني پوره كړو خود قرآن الفاظوته نيزدې هم دومبنى معنى ده. دا تول بزرګان د نيكوطرف ته اود الله ﷻ د حكم منلوطرف ته منډوترړو والا وو. (٢) او په لالچ او ويرې سره به ني د الله ﷻ نه دعاګاني كولې او رښتونى مؤمنان د رب خبرې منونكى اود الله ﷻ ويره لرونكى تواضع عاجزى او كونكى اود الله ﷻ په وړاندې خپله عاجزى ښكاره كوله. (٣)

**دعاء كښي ديره عاجز پكار ده :-**روايت دې چه حضرت ابوبكرصديق ﷺپه خپله يوه خطبه كښي فرمائيل خلقو زه تاسوته د الله ﷻ نه دويريدلو اود هغه پوره ثنااوصفت بيانولو اوپه لالچ اوويرې سره د دعاګانو غوښتلو او په دعاګانوكښي خشوع اوخضوع كولووصيت كوم. ګورئى الله ﷻ د حضرت زكريا ﷺ د

(١) الطبرى:١٨/٥٢٠.
(٢) الطبرى:١٦/٢.
(٣) الطبرى:١٦/٢.

کورنئی هم دا فضیلت بیان فرمانیلې دې بیا هغوی دا ایت مبارك تلاوت کړو. (۱) کرخولې دي.

**د حضرت مریم بی بی د خیرذکر:-** د حضرت بی بی مریم اوحضرت عیسی ﷺ قصه بیانوی. په قرآن کریم کښې عموماً د حضرت زکریا ﷺ اوحضرت یحیی ﷺ قصه سره هم دهغوی قصه بیانیږی خکه چه په دې خلقو کښې پوره ربط دې. حضرت زکریا ﷺ د پوره بوډاوالي په حال کښې دهغوی بی بی د خوانئی دعمر نه راتیره شوې پوره عمر بې اولاده وه هغې له نې اولاد ورکړو اود دې قدرت د خودلو سره بیا صرف یوې ښځې ته بغیرد خاوندنه اولاد ورکول دا د نور قدرت کمال ښکاره کوی. په سورت آل عمران او سورت مریم کښې هم دا ترتیب دې د عصمت والا د ښځې نه مراد بی بی مریم ده. لکه چه ارشاد دې ﴿وَمَرْيَمَ ابْنَتَ عِمْرٰنَ الَّتِيْٓ اَحْصَنَتْ فَرْجَهَا فَنَفَخْنَا فِيْهِ مِنْ رُّوْحِنَا وَصَدَّقَتْ بِكَلِمٰتِ رَبِّهَا وَكُتُبِهٖ وَكَانَتْ مِنَ الْقٰنِتِيْنَ﴾ (۲) یعنی دعمران لور چه مریم وه پاکه بی بی وه هغه اود هغې خوئ حضرت عیسی ﷺ نې د خپل قدرت بې مثاله نښه جوړه کړه چه مخلوق ته د الله ﷻ د هرقسم قدرت اود هغه د پیداکولو کولو اختیارات اوتصرف په خپله اراده سره څیزونه جوړول معلوم شي. عیسی ﷺ د الله ﷻ دقدرت یوه نښه وود پیریانو دپاره هم اود انسانانو د پاره هم.

| إِنَّ | هٰذِهٖٓ اُمَّتُكُمْ | اُمَّةً وَّاحِدَةً ۖ | وَّاَنَا | رَبُّكُمْ | فَاعْبُدُوْنِ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه | دا امت ستاسو | امت یو دې | او زه | رب ستاسو یم | نو پس عبادت کوئ زما |
| بیشکه ستاسو دا امت هم یو امت دې \| او زه ستاسو رب یم \| نو تاسو هم زما عبادت کوئی | | | | | |
| وَتَقَطَّعُوْٓا | اَمْرَهُمْ | بَيْنَهُمْ ۭ | كُلٌّ | اِلَيْنَا | رٰجِعُوْنَ ۝ |
| او ټوټې ټوټې کړو دې خلقو | کار ددین خپل | په منځ خپل کښې | ټول | مونږ ته | واپس راتلونکي دي |
| اودې خلقو په خپل دین کښې اختلافات اوکړو \| ............ هر یو به مونږ ته پیش کیږی | | | | | |
| فَمَنْ يَّعْمَلْ | مِنَ الصّٰلِحٰتِ | وَهُوَ | مُؤْمِنٌ | فَلَا كُفْرَانَ | |
| نو څوك چې عمل کوی | دنیکو کارونو نه | او هغه وی | مومن | پس نۀ به کیږی ناقدری | |
| نوڅوك چې دنیکئ کارونه کوی \| او هغه مومن هم وی \| نو دهغه د کوشش به هیڅکله ناقدری اونشی | | | | | |
| لِسَعْيِهٖ ۚ | وَاِنَّا | لَهٗ | كٰتِبُوْنَ ۝ | وَحَرٰمٌ | عَلٰى قَرْيَةٍ |
| د کوشش دهغه | او بیشکه مونږه | دغه کار لره | لیکونکي یو | او حرام دی | په هغه کلي باند |
| او مونږ دهغه عملونه لیکو \| ............ او کومه ښاریه چې مونږ تباه کړې ده | | | | | |
| اَهْلَكْنٰهَآ | اَنَّهُمْ | لَا يَرْجِعُوْنَ ۝ | حَتّٰٓى | اِذَا | |
| چې هلاك کړې وی مونږ هغه | چې بیشکه هغوئ | به واپس نۀ راځی | تر هغې پورې | کله چې | |
| دهغې داوسیدونکو دپاره ممکن نه ده \| چې هغوئ به بیا دنیا ته واپس راشی \| تر دې چې | | | | | |
| فُتِحَتْ | يَاْجُوْجُ وَمَاْجُوْجُ | وَهُمْ | مِّنْ كُلِّ | حَدَبٍ | |
| پرانستې شی | یاجوج او ماجوج | او هغوئ | دهرې لوړې نه | په جلتې راکوزیږی | |
| یاجوج او ماجوج راخواره شی \| او هغوئ به د هرې لوړې نه په منډه کوزیږی | | | | | |

(۱) حاکم: ۲/۳۸۳

(۲) ٦٦/التحریم: ۱۲.

| يَنْسِلُوْنَ ۞ | وَاقْتَرَبَ الْوَعْدُ الْحَقُّ | فَاِذَا | هِيَ | شَاخِصَةٌ |
|---|---|---|---|---|
| او رانزدې شي | وعده حقه (قيامت) | نو يو دم به | حالت داسې وي | چې تيغې به راوتلې وي |

او رنبتينې وعده رانزدې شوه | نو ددغې كافرانو خلقو سترګې به وازې پاتې شي

| اَبْصَارُ | الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا ؕ | يٰوَيْلَنَا | قَدْ كُنَّا |
|---|---|---|---|---|
| سترګې | دهغه كسانو | چې كفر ئې كړې وي | (او وائي به) اے هلاكته زمونږه | وو مونږه |

.......... (بيا به هغوئ وائي چې) افسوس مونږ ددې حقيقت نه په غفلت كښې پاتې شوې وو

| فِيْ غَفْلَةٍ | مِّنْ هٰذَا | بَلْ كُنَّا | ظٰلِمِيْنَ ۞ |
|---|---|---|---|
| په غفلت كښې | ددې (بدانجام) نه | بلكه وو مونږه | ظالمان |

..........نه ؛ بلكه په ځان مونږ ظلم كړې وو

**قوله تعالى:-** اِنَّ هٰذِهٖٓ اُمَّتُكُمْ اُمَّةً وَّاحِدَةً

**امت يو رب يو:-** ارشاددې چه ستاسو د ټولوهم يودين دې د كولواونه كولو احكام په تاسو ټولوكښې يو شان دى.﴿هٰذِهٖٓ﴾ اسم دې د﴿اِنَّ﴾او﴿اُمَّتُكُمْ﴾خبر دې او﴿اُمَّةً وَّاحِدَةً﴾حال دې يعنى داشريعت كوم چه بيان شو ستاسو دټول متفق عليه شريعت دې دكوم چه اصلي مقصد دالله ﷻ توحيددې.لكه آيت ﴿يٰٓاَيُّهَا الرُّسُلُ كُلُوْا مِنَ الطَّيِّبٰتِ وَاعْمَلُوْا صَالِحًا ؕ اِنِّيْ بِمَا تَعْمَلُوْنَ عَلِيْمٌ ۞ وَاِنَّ هٰذِهٖٓ اُمَّتُكُمْ اُمَّةً وَّاحِدَةً وَّاَنَا رَبُّكُمْ فَاتَّقُوْنِ ۞﴾پورې[1] دې.رسول الله ﷺ فرمائى زمونږدانبياؤكرامو ډله داسې ده لكه ديوپلارخامن چه دين دټولويودې يعنى الله وحده لاشريك له اګرچه د شريعت احكام عبادت دې[2]د قرآن پاك ارشاد دې ﴿لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنْكُمْ شِرْعَةً وَّمِنْهَاجًا ؕ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَجَعَلَكُمْ اُمَّةً وَّاحِدَةً وَّلٰكِنْ لِّيَبْلُوَكُمْ فِيْ مَآ اٰتٰىكُمْ فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرٰتِ ؕ اِلَى اللّٰهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيْعًا فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ فِيْهِ تَخْتَلِفُوْنَ ۞﴾ [3]دهر يو لاراوطريقه ده.بيا خلقواختلاف اوكړو بعضې پخپلو نبيانو ايمان راوړواوبعضو نه دې راوړې. د قيامت په ورځ د ټولوواپس كيدل هم زماطرف ته دې هريوته به دهغوى د عملونو بدله وركوى نيكانو ته نيكه بدله اوبدانوته بده سزا.د چا په زړه كښې چه ايمان وى اود چا اعمال نيك وى د هغوى عملونه به ضائع كيږى نه.لكه چه ارشاددې ﴿اِنَّا لَا نُضِيْعُ اَجْرَ مَنْ اَحْسَنَ عَمَلًا ۞﴾[4]دنيك كاركونكو اجرمونږ نه ضائع كوود داسې اعمالو قدردانى كوودېوې ذرې برابرمونږظلم نه كوو.ټول اعمال ليكلې كيږى هيڅ څيز پريخودې كيږى نه.

**د ياجوج ماجوج تذكره:-** د هلاك شوخلقوبياواپس دنياته راتلل محال دى داهم مطلب كيدې شى چه د هغوى توبه قبوله نه ده خواولنئى قول اولى دې. ياجوج ماجوج د آدم ؑ د نسل نه دى بلكه دا د حضرت نوح ؑ دخوئ يافث د اولاد نه دى د چا د نسل نه چه ترك دى اودا هم د هغوى يوه ډله ده. دوى د ذوالقرنين د جوړكړې شوى ديوال نه بهر پريخودلې شوى وو هغه ديوال جوړولوسره فرمائيلې وو دا زما د رب رحمت دې اود الله ﷻ په مقررشوى وخت به دوى ذره ذره كړې شى اوزما د رب وعده حق ده. [5]

---

[1] ۲۳/المؤمنون:۵۱-۵۲.

[2] صحيح بخارى كتاب احاديث الانبياء باب قوله تعالى مختلف ﴿واذكر فى الكتاب مريم.....﴾:۳۴۴۳،صحيح مسلم:۲۳۶۵.

[3] ۵/المائدة: ۴۸.

[4] ۱۸/الكهف:۳۰.

[5] ۱۸/الكهف:۹۸. الخ

ياجوج ماجوج به قيامت سره نيزدې د هغه ځای نه راوځي او په زمکه کښې به فساد خوروی. هر اوچت ځای ته عربی کښې حدب وائی د هغوی د راوتلوپه وخت کښې به د هغوی داحال وی نوداخبرته داسې واوره لکه چه اوريدونکی په خپلو سترګوسره وينی او په واقعې کښې د ټولونه رښتونې خبرد الله ﷻ نه زيات د چا به وی چه د غيب اوحاضر پيژوندونکې، د شوو او کيدونکوخبرونه خبر دې. ابن عباس ؓ هلکان په ټوپونو منډو تررواوپه شاباندې سورلی اخستل اوکتل نو وئی فرمائيل چه دغه شان به ياجوج ماجوج راځی. (١)

په ډيروزياتو احاديثوکښې ددوی دراوتلوذکردې. مسنداحمدکښې رسول الله ﷺ فرمانی ياجوج ماجوج به کولاوولې شی اوهغوی به خلقو له رارسی لکه چه د الله ﷻ فرمان دې ﴿ وَهُمۡ مِّن كُلِّ حَدَبٖ يَنسِلُونَ ﴾ (٢) هغوی به خواره شی او مسلمانان به په خپلو ښارونو او قلعه ګانوکښې راغونډشی او خناور به هم هلته يوسی او خپلې اوبه به په دوی باندې څکی. ياجوج ماجوج چه په کوم يونهرباندې تيريږی د هغې اوبه به صفا اوڅتی تردې چه په هغې کښې به دوړې الوزی.دهغوی چه کله بله ډله هلته راورسی هغوی به وائی چه کيدې شی په څه زمانه کښې به دې کښې اوبه وې.کله چه دااوګوری په مخ دزمکې به څوک هم نه وی وائی به چه دزمکې والا نه اوزګارشوراځنی چه د آسمان والا خبرواخلو.نو په دوی کښې به يو شيطان خپله لنده راتاوکړی او دآسمان طرف ته به يوغشې اوغورزوی دالله ﷻ په قدرت به هغه د وينو ککړهغه له واپس راشی دابه هم يوقدرتی ازميښت وی بيابه د هغوی په ستونوکښې غوټې اوشی او هم په دې وباکښې به دا ټول په ټول په يوځل مردارشی يوبه هم باقی پاتې نه شی ټول شور ژوګ به ختم شی. مسلمانان به وائی چه څوک شته چه زمونږ د پاره خپل ځان په لاس کښې کيږدی اود ښار نه بهر لاړ شی اودادښمنان اوګوری چه په کوم حال کښې دی؟يوصاحب به د دې دپاره تيارشی او خپل ځان به قتل شوې اوګڼړی اودمسلمانانو دخدمت د پاره به راوځی.ګوری به چه ټول ډيرې شوی دی اوټول هلاک شوی پراته دی.دې به هم هغه وخت آواز اوکړی مسلمانانو خوشحاله شئ الله ﷻ پخپله ستاسو دښمنان تباه کړل دادی ډيری شوی پراته دی.اوس به مسلمانان بهرراشی اوخپل څاروی به بهر راوباسی د هغوی د پاره به ګياه صرف د هغوی د غوښې نه بغير بل هيڅ نه وی دوی به د هغوی غوښې خوری او ښه به چاق اوتازه شی. (٣)

**ددجال ذکر او دهغه فساد:**-مسنداحمدکښې دی حضورﷺ يوځل سحر سحر د دجال ذکر اوکړواوداشان چه مونږ ونيل که ددې ونوشاته دې اوهم اوس راوتل غواړی. حضورﷺ اوفرمائيل چه ماته د دجال نه زياته ويره په تاسوباندې دهغه څيز ده که دجال زماپه موجودګئی کښې هم راووتلو زه به هغه سره پوهه شم خو په تاسوکښې هرسړې دهغه نه بچ شئی زه تاسو دالله ﷻ په امان کښې ورکوم. هغه به عمر کښې خوان ګورګوتی وينښته کاږې راوتلې سترګې والا دې هغه به دشام او عراق د مينځ نه راوځی ښی او ګس طرف ته به ګرځی اې د الله ﷻ بنديګانوتاسو ثابت قدم اوسيږئ.مونږ ونيل يارسول الله ﷺ هغه به څومره حصاروی. حضورﷺ اوفرمائيل څلوېښت ورځې او يوه ورځ به د يوکال په مثال وی يوه ورځ د يوې مياشتې په مثال او يوه ورځ د يوې جمعه په مثال او باقی ورځې د نورو ورخو په شان. مونږ تپوس اوکړويارسول الله ﷺ چه کومه ورځ د کال برابره وی په هغې کښې به مونږ له هم دا پنځه مونځونه کافی وی؟ وئی فرمائيل چه نه تاسو په خپله اندازه باندې په خپل وخت مونځ اداکوئی مونږ تپوس اوکړو چه

---

(١) الطبری:٥٢٨/١٨.

(٢) ٢١/الانبياء:٩٦.

(٣) احمد:٣/٧٧٠، ابن ماجه كتاب الفتن باب فتنة الدجال وخروج عيسى بن مريم:٤٠٧٩ وسنده حسن،مسندابى يعلى:١٣٥١، حاكم:٤٨٩/٤، ابن حبان:٦٨٣.

د هغه رفتاربه څنګه وي؟ونې فرمائيل لکه چه اوريځ وي او هوائي د يوخوانه بل خواته اوړي ځي. يوې قبيلې له به لاړشي هغوي به خپل ځان له راوغواړي هغوي به د ده اومني آسمان ته به حکم اوکړي چه په دوي باندې باران راووروه زمکې ته به وائي چه دوي له پيداوار راوټوکوه. ددوي څناور اوڅاروي به ښه تازه چاق او ماړه دوي ته واپس راشي. يوقبيلې له به لاړشي اوخپل ځان به پرې منل غواړي هغوي به انکار اوکړي دې به د هغه ځائ نه اوځي نود هغوي ټول مال به هم هغه پسې شي او دوي به خالي لاس پاتې شي.هغه به غيرآباد ځنګلوته ځي او زمکې ته به وائي خپلې ټولې خزانې راوباسه هغه به ني راوباسي اوټولې خزانې به په هغه پسې داسې روانې وي لکه د شاتومچنې چه خپل سردارپسې وي. دا به هم ښائي چه يوسړې به په توره باندې بالکل دوه ټکړې کړي اواخوادېخوالرې لرې به ني اوغورزوي بيا به د هغه نوم واخلي او هغه به بيا ژوندې د هغه خواله راشي. دې به هم په دغه حال کښې وي چه الله ﷻ به مسيح بن مريم ﷺ راوليګي هغه به دمشق سره نيزدې د سپينې منارې سره راکوزيږي خپل دواړه لاسونه به ني د دوو فرښتو په وزرو باندې ايخودې وي دې به هغه پسې شي او مشرقي باب لد سره به ني قتل کړي. بيا به حضرت عيسى بن مريم ﷺ طرف ته به الله ﷻ وحي اوکړي چه زه خپل داسې مخلوق درليګم چه د هغوي سره د جنګ کولو به په تاسوکښې تاب اوطاقت نه وي زما بنديګان د کوه طور طرف ته راغونډکړه. بيا به الله تبارك وتعالى ياجوج ماجوج راوليګي لکه چه ارشاد دې ﴿وَهُم مِّن كُلِّ حَدَبٍ يَنسِلُونَ﴾ دهغوي نه به تنګ راشي حضرت عيسى ﷺ اود هغه ملګري به الله ﷻ ته سوال اوکړي نو الله ﷻ به هغوي پسې د غوټو بيماري راوليګي چه د هغوي په ستونوکښې به راوځي اوټول په ټول به لاندې باندې مردارشي بيا به حضرت عيسى بن مريم ﷺ د مؤمنانوسره راشي ګوري به چه ټوله زمکه به د هغوي نه ډکه پرته وي اود هغوي د خراب بوئي نه به اودريدې نه شي.
هغوي به بيادالله ﷻ نه دعااوکړي نو هغه به د بختي اوښانو په شان مرغنې راوليګي چه هغوي به اوچت کړي او الله ﷻ ته معلومه ده چه چرته به ني اوغورزوي رابه شي. حضرت کعب ﷺ فرمائي چه په سهيل يعني دنمر دراختلو په ځائ کښې به ني اوغورزوي. بيا به په ټوله زمکه باندې يوشان باران وي زمکه به اووينځلې شي اود لاس د تلي په شان به پاکه شي.بيابه دالله ﷻ په حکم خپل برکتونه راوباسي. په هغه ورځ به يوه پوره ډله په يوانارباندې ماړه شي اود هغې د پوستکي نه لاندې به سورې هم حاصلوي. د يوې اوښې پئې به د مسلمانانو د پوره ډلې د پاره اود يوې غواړنې به د يوې قبيلې د پاره اوديوې چيلئې پئې به ديوکوردپاره کافي وي.بيابه يوه صفا غوندې هوا روانه شي اود مسلمانانو د ترخونونه به اوځي اود هغوي روح به قبض شي. بيا به په مخ د زمکه کښې ډير خراب شيطانان باقې پاتې شي چه د خرو په شان به ټوپونه وهي هم په هغوي باندې به قيامت قايميږي.([1]) امام ترمذي رحمه الله دې ته حسن وائي.

**د ياجوج ماجوج متعلق بل حديث**:-مسنداحمدکښې دې يولږم حضور ﷺ خوړلې وو نوحضور ﷺ به خپله ګوته باندې پټنې تړلې خطبه ته ولاړ وو او ونې فرمائيل چه اوس دښمن نشته خوتاسو به دښمنانوسره هم جهادکونې تردې چه ياجوج ماجو راشي اود پلنومخونو والا د ورو سترګووالا د هغوي مخونه به قط په قط د ډهال په شان وي. ([2])

دا دسورت اعراف د تفسيرپه آخره کښې بيان کړې شوي دې. مسنداحمدکښې دې حضور ﷺ فرمائي چه د معراج په شپه د حضرت ابراهيم ﷺ حضرت موسى ﷺ او حضرت عيسى ﷺ سره د قيامت د ورځې مذاکره شروع شوه. حضرت ابراهيم ﷺ د دې د علم نه انکاراوکړو اودغه شان حضرت موسى

---

[1] صحيح مسلم كتاب الفتن باب ذكر الدجال:۲۹۳۷، احمد:۱۸۱/۴، ترمذى:۳۲۴، ابن ماجه:۴۰۷/۵، ابوداؤد:۴۳۲۱، مختصراً.

[2] احمد:۲۷۱/۵ ح۲۲۳۳۱وسنده حسن، خالدبن عبدالله بن حرملة صدوق وثقه الامام مسلم وابن حبان مجمع الزوائد:۸/۶.

عليه السلام هم. حضرت عیسی عليه السلام اوفرمائیل چه د دې د واقع کیدو د وخت نه خو بغیرد الله ﷻ نه څوك هم
نه دی خبر او ماته الله ﷻ دا فرمائیلی دی دجال راوتونکې دې ماسره به دوه څانګې وی هغه به زما
کتلو سره د سیسې په شان ویلی کیږی تردې چه الله ﷻ به هغه هلاك کړی. تردې چه هغه ما اووینی نو
کاڼړی او بوټی به هم وائی اې مسلمانه دا زما لاندې کافر دې راشه داقتل کړه نو الله ﷻ به هغه هلاك
کړی اوخلق به خپلو ښارونواو وطنونوته واپس شی. دغه وخت به یاجوج ماجوج راوخی اود هراوچت
ځائ نه به ټوپونه وهی راخی به او چه څه وینی تباه کوی به ئې. څومره اوبه چه وینی څکی به ئې. خلق
به بیا تنګ شی او په خپلو وطنونو کښې به راګیرکینی. شکایت به کوی نو زه به بیا د الله ﷻ نه
دعاوکړم چه اې الله دا تباه کړې الله ﷻ به هغوی تباه کړی او په ټوله زمکه به د هغوی بدبوئی خوره
شی بیابه باران راوریږی اود اوبوچپې به د هغوی مردار جوسې خان سره اوبهیوی او دریاب ته به ئې
یوسی. زما رب ماته فرمائیلی دی کله چه دا هرڅه ښکاره شی نو بیاخود قیامت راتلل هم داسې دی
لکه چه د پوره ورځو د حمل ښځه د حمل کیدو د پاره د کور والا ته فکر وی چه سحر به ماښوم اوشی
یاماښام به اوشی د شپې به اوشی یا د ورځې[1] (ابن ماجه)د دې تصدیق د کلام الله په دې آیت کښې
موجود دې په دې باره کښې احادیث هم ډیرزیات دی اود سلفوآثار هم ډیر دی.

**د قیامت د نوروعلاماتو ذکر**:- حضرت کعب رحمه الله قول دې چه د یاجوج ماجوج د راوتلوپه وخت کښې
هغوی به هغه دیوال اوکنی تردې چه د هغوی د کودالو آوازونه به خواوشا خلق هم اوری چه شپه شی نو
په دې کښې به یووائی چه اوس سحر به دا مات کړو اوراوبه خو.کله چه دوی سحر راشی نو هم هغه
شان به وی لکه چه پرون وو. غرض دا چه هم دغه شان به کیږی او چه الله ﷻ ته دهغوی وتل کوم وخت
کښې منظور وی نود یوکس د خلې نه به اوخی چه ان شاء الله صبا به ئې ماتوو. اوس چه راشی نو چه
څنګه ئې پریخودې وو هم هغه شان به ئې اووینی نو اوبه ئې کنی او مات به ئې کړی او بهر به راوخی.
د هغوی رومبئی ډله به بحیره له راشی ټولې اوبه به اوڅکی بله چه راشی نو ختې به هم اوڅټې. دریمه
به راشی چه اوګوری نو وائی به کیدې شی دلته چرته اوبه وې. خلق به د دوی نه په منډو منډو تختی
پټیږی به. کله چه دوی ته څوك هم ښکاره نه شی نودوی به خپل غشی آسمان طرف ته اولی د هغه ځائ
نه به داد وینوککړدوی ته واپس راشی. دوی به فخرکوی چه مونږ دزمکې اوآسمان والاباندې غالب
شو.عیسی بن مریم عليه السلام به دوی ته خیرې اوکړی چه اې الله په مونږ کښې ددوی دمقابلې طاقت نشته
اوپه زمکه باندې تګ راتګ کول هم ضروری دی ته چه څنګه هم غواړې ددوی نه مونږ ته خلاصی
راکړې.الله ﷻ به دوی په طاعون کښې اخته کړی غوټې به په کښې راوخی اوټول په ټول به مړه شی. بیا
به یوقسم مرغئی راشی دوی به په خپلو منښوکو کښې اوچت کړی او سمندرکښې به ئې اوغورزوی.
بیابه الله ﷻ نهر حیات روان کړی چه زمکه به اووینځی اوصفا به ئې کړی زمکه به خپل برکتونه
راوباسی یوانار به یوې کورنئی له کافی وی ناڅاپه به یوسړې راشی او آواز به اوکړی چه ذوالسویقتین
راوتې دې عیسی عليه السلام به د اووه اته سوو لښکر اولیګی دوی به لاپه لارکښې وی چه یمنی پاکه صفا
هوابه روانه شی اود ټولومومنانو روحونه به قبض کړی.بیا به په مخ د زمکه ګډوډخلق پاتې شی د
خاروو په شان به وی په هغوی باندې به قیامت قایم شی. دغه وخت کښې به قیامت دومره نیزدې وی
لکه د پوره ورځو اسپه چه د بچی پیداکیدو ته نیزدې وی اود اسپې والا خواوشا ګرځی چه کله به بچې
پیدا کیږی.کعب رحمه الله دا بیان فرمائیلو سره اوفرمائیل اوس چه یوسړې زماددې قول او علم نه روستو هم
څه وائی نوهغه تکلف اوکړو.دکعب رحمه الله داواقعه بیانول بهترین واقعه ده څکه چه ددې شهادت په
صحیح احادیثوکښې هم موندلې شی.په احادیثوکښې داهم راغلی دی چه عیسی عليه السلام به پدغه زمانه

[1] احمد:۱/۳۷۵، ابن ماجه کتاب الفتن باب فتنة الدجال وخروج عيسى بن مريم:۴۰۸۱ وسنده صحيح حاکم:۴/۴۸۸.

کښې حج هم کوی. مسند احمد کښې داحدیث مرفوعاروایت دې چه هغه به دیاجوج ماجوج دخروج نه پس یقینادبیت الله حج کوی(۱) داحدیث په بخاری کښې هم شته. کله چه داتباهئی دازلزلې دابلا ګانې اوداآفتونه راشی نوهغه وخت به قیامت بالکل نیزدې راشي. دهغې په کتلوسره به کافران وائی دا خو ډیره سخته ورځ ده دهغوی سترګې به اوشلیږی اووائی به افسوس مونږ خو په غفلت کښې ووافسوس مونږ خو خپل خان پخپله خراب کړود ګناهونواقرار او پدې باندې به ملامته وی خواوس بې فائدې دی.

إِنَّكُمْ وَمَا
بیشکه تاسو | او هغه خدایان |
بیشکه چې تاسو او د الله ﷻ |

تَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ ط أَنْتُمْ لَهَا
چې تاسو ئې عبادت کوئ | ماسوا دالله نه | خشاك دي | دوزخ | دوزخ | تاسو | دغه دوزخ ته
نه بغیر چې تاسو د چا عبادت کوئي | هغه ټول هم د دوزخ خشاک دی | تاسو ټول

وَارِدُونَ لَوْ كَانَ هَؤُلَاءِ آلِهَةً مَّا وَرَدُوهَا ط وَكُلٌّ
ورتلونکي يئ | که چرې وې | دوئ | معبودان | نه به وو ننوتي هغې ته | او ټول به |
به هغې ته ننوځئ | .......... که دوئ په (ربښتیا) خدایان وې نو (دوزخ) ته به ولې ورننوتل | خو ټول

فِيهَا خَالِدُونَ لَهُمْ فِيهَا زَفِيرٌ
په دې دوزخ کښې | همیشه (پراته وی) | وی به دپاره دهغوئ | په دغه دوزخ کښې | زبیرګي (فریاد)
به په کښې همیشه همیشه اوسیږی | په هغې کښې دننه به چغې سوری وهي

وَهُمْ فِيهَا لَا يَسْمَعُونَ إِنَّ الَّذِينَ سَبَقَتْ
اوهغوئ به | په هغې کښې | هیڅ نه اوری (دشور دلاسه) | بیشکه هغه کسان | چې داول نه به شوی وی
او بل هیڅ خبره به نه اوری | هغه خلق د کومو دپاره چې زمونږ

لَهُمْ مِنَّا الْحُسْنَى لا أُولَئِكَ عَنْهَا مُبْعَدُونَ لا
به حق دهغوئ کښې | د طرفه زمونږ نه | فیصله دخیر | هغوئ به | دهغې عذاب نه | لرې ساتلي کیږي
د طرف د وړاندې نه د نیکئ فیصله شوې ده | هغوئ به د دې عذاب نه لرې ساتلې شي

لَا يَسْمَعُونَ حَسِيسَهَا ج وَهُمْ فِيمَا اشْتَهَتْ
نه به اوری هغوئ | کشار دهغې | او هغوئ به | په هغه څیزونو کښې | چې غواړې ئې
دهغې کشار قدرې به هم نه اوری | او د خپلې خوښې په ژوند کښې به همیشه دپاره

أَنْفُسُهُمْ خَالِدُونَ لَا يَحْزُنُهُمُ الْفَزَعُ الْأَكْبَرُ
زړونه دهغوئ | همیشه اوسیږی | نه به غمژن کوی هغوئ لره | دغه وخت لویه ویره
اوسیږی | د قیامت لویه ویره به ئې (دذرې هومره) په غم کښې نه غورزوی

(۱) احمد: ۲۸/۳ صحیح بخاری کتاب الحج باب قول الله تعالی (جعل الله الکعبة البیت الحرام.....): ۱۵۹۳، صحیح ابن خزیمه

| وَتَتَلَقّٰهُمُ | الْمَلٰٓئِكَةُ ط | هٰذَا يَوْمُكُمُ | الَّذِيْ | كُنْتُمْ |
|---|---|---|---|---|
| او ملاقات به کوي دهغوئ سره | فرښتي | (او ورته واني به) دا ستاسو ورځ ده | هغه | چي وئ تاسو |
| اوفرښتي به ورله مخي ته راځي اچي دانن ستاسو هغه ورځ ده چي وعده به | | | | |
| تُوْعَدُوْنَ۝ | | | | |
| چي ستاسو سره به وعده کيدي شوه دهغي | | | | |
| درسره کولي شوه | | | | |

**قوله تعالى:-** اِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ ط

**د باطلومعبودانو انجام:**-بت پرستوته الله ﷻ فرمائي تاسو اوستاسوبتان به ددوزخ خشاك وى لکه چه ارشاد دي ﴿وَقُوْدُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ عَلَيْهَا مَلٰٓئِكَةٌ غِلَاظٌ شِدَادٌ لَّا يَعْصُوْنَ اللّٰهَ مَآ اَمَرَهُمْ وَيَفْعَلُوْنَ مَا يُؤْمَرُوْنَ۝﴾ (۱) ددي خشاك انسان اوکانړي دي.په حبشي ژبه کښي حطب ته حصب واني(۲)يعني لرګي. بلکه په يوقراءت کښي د حصب په ځاې حطب دي. تاسو ټول عابد اومعبودان دوزخيان ئي اوهغه هم دهميشه د پاره.که چرې دا رښتوني معبودان وو نوولي به په اورکښي سوزيدل دلته خو به عبادت کونکي اود چا چه عبادت شوي دي ټول به هميشه په دوزخ کښي وی هغوی به په اولته ساه ګانوکښي چغي وهي لکه چه ارشاد دي ﴿لَهُمْ فِيْهَا زَفِيْرٌ وَّشَهِيْقٌ۝﴾ (۳) هغوی به په سيده اواولته ساه ګانوکښي چغي وهي اودچغونه بغيريه د هغوی په غوږونوکښي نورهيڅ آواز نه راځي. دحضرت ابن مسعود ؓ نه روايت دي چه کله صرف مشرکان په دوزخ کښي پاتي شی هغوی به د اوريه صندوقونوکښي قيدکولي شي په کوم کښي چه به د اور سرونه وي په هغي کښي به د هريودا ګمان وی چه په دوزخ کښي د هغه نه بغيربل څوك نشته. بيا هغوی هم دا آيت تلاوت اوفرمائيلو. (ابن ماجه)

**د نيکانو د بدلي ذکر:**-دحسنی نه مرادرحمت او نيك بختی ده(۴)ددوزخيانو اود هغي د عذابونوذکر کولو نه پس دنيکانو اود هغوی دبدلو ذکرکولي شی.دا خلق ايماندار وود هغوی د نيکو عملونوپه وجه نيك بختي د هغوی په استقبال کښي تياره وه. لکه چه ارشاد دي ﴿ لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوا الْحُسْنٰى وَزِيَادَةٌ ط وَلَا يَرْهَقُ وُجُوْهَهُمْ قَتَرٌ وَّلَا ذِلَّةٌ ط اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ۝﴾ (۵) دنيکانود پاره نيکه بدله ده اوزيات اجر هم. ارشاد دي ﴿ هَلْ جَزَآءُ الْاِحْسَانِ اِلَّا الْاِحْسَانُ۝﴾(۶) دنيکئي بدله هم نيکي ده. د هغوی ددنيا اعمال نيك وو نوپه آخرت کښي ثواب اونيکه بدله ملاوشوه. دعذاب نه بچ شو اود الله ﷻ په رحمت باندي کامياب شو.دوی د دوزخ نه لرې کړي شوی دی چه د هغي کش کرپ هم واونوري. نه د دوزخيانو سوزيدل هغوی واوري. په پل صراط باندي دوزخيانو له زهريلا ماران ټکونه ورکوی او دوی هلته حس حس کوی. جنتي خلق د دي دردناك آوازونونه ناخبره دي دومره هم نه دي چه د ويرې نه هغوی اخواشوی دی بلکه دي سره راحت او آرام هم ورته حاصل دي. د خوښي څيزونه حاضر اود هميشه راحت حاضر.

(۱) ۲۶/الحجر:۶.

(۲) صحيح بخاری کتاب التفسير سورة الانبياء:۴۷۳۹.

(۳) ۱۱/هود:۱۰۶.

(۴) الطبری:۵۴۱/۱۸.

(۵) ۱۰/يونس:۲۶.

(۶) ۵۵/الرحمن:۶۰.

حضرت علی ﷺ یوه شپه د دې ایت تلاوت اوکړوونی فرمائیل زه عمر عثمان زبیر طلحه او عبدالرحمن رضی الله عنهم دې خلقو نه یو ئی دحضرت سعد رضی الله عنه نوم واخستو.پدې کښې دمانځه تکبیراوشونوهغوی په څادر رانبکلوسره ﴿لَا يَسْمَعُونَ حَسِيسَهَا﴾ لوستلوسره پاسیدواودریدو.یوبل روایت دې چه هغوی اوفرمائیل عثمان اود هغه ملګری هم داسې دی. ابن عباس ﷺ فرمائی هم دغه خلق اولیاء الله دی د بجلئی نه به هم په پل صراط باندې تیز تیریږی اوکافران به په زنګونونو باندې راپریوځی. بعضې خلق وائی چه دې نه مراددډین هغه بزرګان دی چه د الله ﷻ والا وو اود شرک نه ویزاره وو خود هغوی نه پس د هغوی د مرضئی نه خلاف خلقو د هغوی عبادتونه شروع کړی وو لکه حضرت عزیر علیه السلام اوحضرت عیسی علیه السلام فرښتې نمر سپوږمئی اوحضرت بی بی مریم وغیره.

حضرت عبدالله بن زبعری رسول الله ﷺ له راغلواوونی وئیل چه ستاخیال دې چه الله ﷻ ایت ﴿ إِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ ﴾ نازل کړې دې؟که چرې دارښتیا دی نوآیا نمر سپوږمئی فرښتې عزیر علیه السلام عیسی علیه السلام به زمونږ بتانوسره ټول دوزخ ته ځی؟د دې په جواب کښې آیت ﴿وَلَمَّا ضُرِبَ ابْنُ مَرْيَمَ مَثَلًا إِذَا قَوْمُكَ مِنْهُ يَصِدُّونَ﴾ (۱)نازل شو او آیت ﴿ إِنَّ الَّذِينَ سَبَقَتْ لَهُم مِّنَّا الْحُسْنَىٰ ﴾ (۲) نازل شو.په سیرت ابن اسحاق کښې دی چه حضور ﷺ یوه ورځ ولید بن مغیره ﷺ سره په جمات کښې ناست وو نونضر بن حارث راغلو او هغه وخت په جمات کښې نور ډیرقریش هم ناست وو. نضر بن حارث رسول الله ﷺ سره خبرې کولې خوهغه لاجوابه شو نوحضور ﷺ آیت ﴿إِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ أَنتُمْ لَهَا وَارِدُونَ ۝ لَوْ كَانَ هَٰؤُلَاءِ آلِهَةً مَّا وَرَدُوهَا ۖ وَكُلٌّ فِيهَا خَالِدُونَ ۝ لَهُمْ فِيهَا زَفِيرٌ وَهُمْ فِيهَا لَا يَسْمَعُونَ ۝﴾ تلاوت کړوکله چه هغه ددې مجلس نه لاړونوعبدالله بن زبعری راغلوخلقوهغه ته اووئیل چه نن نضربن حارث خبرې اوکړې خوډیرخراب راګیرشواوحضور ﷺ دې فرمائیلوسره لاړوهغه وئیل که چرې زه وې نوجواب به مې ورکولوچه مونږ دفرښتو عبادت کوو یهودیان عزیر علیه السلام نصرانیان حضرت مسیح علیه السلام نوآیا دا ټول به هم دوزخ ته ځی؟ ټولوته دا جواب ډیر خوښ راغلوکله چه حضور ﷺ سره ددې ذکر اوشونوحضور ﷺ اوفرمائیلچا چه عبادت اوکړو هغه به د عابدانو سره دوزخ ته ځی. دې بزرګانو به پرې خپل عبادتونه نه کول بلکه دوی خودهغوی نه د شیطان عبادت کولو هم هغه دوی ته د هغوی د عبادت کولو لار اوخودله.دحضور ﷺ جواب سره د قرآنی جواب دې نه پس آیت ﴿إِنَّ الَّذِينَ سَبَقَتْ لَهُم مِّنَّا الْحُسْنَىٰ أُولَٰئِكَ عَنْهَا مُبْعَدُونَ ۝﴾ نازل شونودکوموخلقو جاهلانوعبادت کړې وو هغوی ددې نه خلاص شو.په قرآن پاك کښې . دی ﴿وَمَن يَقُلْ مِنْهُمْ إِنِّي إِلَٰهٌ مِّن دُونِهِ فَذَٰلِكَ نَجْزِيهِ جَهَنَّمَ ۚ كَذَٰلِكَ نَجْزِي الظَّالِمِينَ ۝﴾ (۲)یعنی په دوی کښې چه څوك خپل معبودیت په دوی باندې منل غواړی د هغې بدله دوزخ دې مونږ ظالمانوته هم داسې سزا ورکوو. یوبل آیت ﴿ وَلَمَّا ضُرِبَ ابْنُ مَرْيَمَ مَثَلًا إِذَا قَوْمُكَ مِنْهُ يَصِدُّونَ ۝﴾ (۳) نازل شو چه د دې خبرې په اوریدوسره هغه خلق حیران شو وئی وئیل چه زمونږ معبودان ښه دی که هغه دا خو صرف فساد دې اوداخلق جګړې کونکی دی هغه زمونږ انعام کړې شوې بنده وو هغه مونږ د بنی اسرائیلو دپاره نمونه جوړه کړې وه. که چرې مونږ غوښتل نو ستاسو جانشین به مونږ فرښتې کړې دې حضرت عیسی علیه السلام د قیامت یوه نښه ده د هغوی په لاس چه کومې معجزې صادر شوی دی هغه څه شکې څیزونه نه دی هغه د قیامت دلیل دې. تاته په دې کښې شك نه دی کول پکار. هم زما منه هم دا صراط مستقیم دې.دابن زبعری دې جرات ته ګوره چه خطاب اهل مکه ته دې اودهغه ددې تصویرونو

---

۱) ۴۳/الزخرف:۵۷.
۲) ۲۱/الانبیاء:۲۹.
۳) ۴۳/الزخرف:۵۷. اع

اوددي كانړو دپاره ونيلې شوې دي كوم چه هغوى دالله ﷻ نه بغيرعبادت كولو اونه چه حضرت عيسى عليه السلام او پاك نفوس به راګيرولې شي چا چه به د غيرالله د عبادتونونه رامنع كول.

امام ابن جرير رحمه الله فرمائي لفظ ماجوج چه كوم دلته دې هغه په عربو كښې د هغې د پاره راځي كوم چه بې جان او بې عقل وي.دا ابن زبعرى د دې نه پس مسلمان شوې وو.دا ډير مشهور شاعر وو او هغه د مسلمانانو په كولاوزړه سره بې عزتي كړې وه خود مسلمانيدو نه پس د ډير معذرت وكه د مرګ، ويرې،شپيلئى د ويرې،دخلقو دوزخ كښې دداخليدو دوخت د ويرې دهغه وخت دويرې كله چه په دوزخ باندې سر پخولې شي. كله چه مرګ د دوزخ او جنت په مينځ كښې حلالولې شي غرض دا چه په هغه باندې د څه اندينښې ويره نه وى هغوى به د هريو غم او ويرې نه لرې وى پوره په شوق كښې به وى خوشحاله به وى اود خفګان نه به په ميلونولرې وى. د فرښتو ډلې ډلې به هغوى سره ملاقاتونه كوى هغوى ته به تسلي وركولوسره وائي چه هم د دې ورځې وعده تاسو سره كيدله دې وخت كښې تاسو د قبرونونه د پاسيدود ورځې په انتظار شئ.

| | | | |
|---|---|---|---|
| يَوْمَ | نَطْوِي | السَّمَاءَ | كَطَيِّ السِّجِلِّ |
| هغه ورځ | چې راونغاړو مونږ | اسمان | پشان درانغښتلو |
| هغه ورځ (ياده كړه) چې مونږ بهٔ اسمان راونغاړو لكه چې ليكلې شوې كاغذ | | | |
| لِلْكُتُبِ ؕ | كَمَا بَدَاْنَاۤ | اَوَّلَ | خَلْقٍ |
| د كاغذ دپاره دليكلو | لكه څنګه چې شروع كړې ده مونږه | داول | پيداوښت |
| رانغښتلې شي ...........څنګه چې مو اول ځل پيدا كړې وو | | | |
| نُّعِيْدُهٗ ؕ | وَعْدًا | عَلَيْنَا ؕ | اِنَّا كُنَّا فٰعِلِيْنَ ۝ |
| دغه شان به ئې دوباره پيدا كوو مونږ | داوعده ده | په ذمه زمونږ | ايشكه يو مونږه كونكي ددې كار |
| دغسې به ئې دوباره پيدا كړو دا زمونږ په ذمه پرته وعده ده چې مونږ به ئې خامخا پوره كوو | | | |

**قوله تعالى:-يَوْمَ نَطْوِي السَّمَاءَ كَطَيِّ السِّجِلِّ لِلْكُتُبِ ؕ**

**اسمان به راغونډكړې شي:**-دابه د قيامت په ورځ وى كله چه مونږ آسمان راغونډكړو لكه چه ارشاد دې ﴿مَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَقَوِيٌّ عَزِيْزٌ ۝﴾[1] دې خلقو دالله ﷻ داسې قدرچه څنګه كول پكاروواونه كړو ټوله زمكه به دقيامت په ورځ د هغه په موټې كښې وى او ټولوآسمانونه به د هغه په ښى لاس كښې راغونډ شوې وى هغه پاك او اوچت دې د هر هغه څيز نه كوم چه خلق د هغه شريك ګرځوى. بخارى شريف كښې دي حضور ﷺ فرمائي الله ﷻ به د قيامت په ورځ زمكې په موټى كښې واخلي او آسمانونه به د هغه په ښى لاس كښې وى ([2]) ابن عباس رضي الله عنه فرمائي چه اووه واړه آسمانونه اود هغه ځائ ټول مخلوق، اووه واړه زمكې اود هغې ټول مخلوقات به الله ﷻ په خپل ښى لاس كښې راغونډكړى اود هغه په لاس كښې به داسې وى لكه د اورى دانه.

**د سجل نه څه مراد دى؟**:-دسجل نه مراد كتاب دې اوونيلې شوې دى چه دلته مراد يوه فرښته ده چه كله دچااستغفارخيژى نوهغه وائي چه دانوراوليكه.دافرښته په عمل نامه باندې مقررده. كله چه انسان

---

[1] ۳۹/الزمر:۶۷.

[2] صحيح بخارى كتاب التوحيد باب قول الله تعالى ﴿لما خلقت بيدى....﴾:۷۴۱۲.

وفات شي نوداکتاب سره د نوروکتابونو رانغاړي اوهغه د قيامت دپاره ايږدي دانوم دي دهغه صحابي ﷺ چه دحضورﷺ دوحی ليکونکي وو(۱) خوداروايت ثابت نه دي.دحديث اکثرو حافظانودي تپولوته موضوع وئيلي دي خاص کرزمونږ استاذ حافظ کبير ابوالحجاج مزی ﷫.مادا حديث په يوجدا کتاب کښي ليکلي دي امام ابن جعفر ابن جرير ﷫ هم په دي حديث باندي ډير انکار کړي دي اود دي نی به ترديدکړي دي اوفرمائی چه د سجل نوم يوصحابی هم نشته.دحضورﷺ د تپولومنشيانو نومونه مشهور اومعروف دی ديونوم هم سجل نه دي. په حقيقت کښي امام صاحب صحيح او درست فرمائيلي دی. ددي حديث د منکر کيدو دا لويه وجه ده بلکه داهم يادساتئی چا چه د دي صحابی ذکر کړي دي هغه په دي حديث باندي په اعتماد کولوسره ذکر کړي دي. کله چه داثابت نه دي نوبيا د ذکر شوي د سر نه واخله ترپښوپوري غلط اوگرځيدو، صحيح هم دا دی چه د سجل نه مراد صحيفه ده. (۲) لکه چه داکثرومفسرينوقول دي اولغة هم داخبره ده.نو ارشاد دي په کومه ورځ چه مونږ آسمان راونغاړوبه مثال دکتاب دليکلي شوی لام دلته معنی کښي علی دي لکه ﴿وَتَلَّهٗ لِلۡجَبِيۡنِ﴾(۳)کښي لام دلته په معني کښي دعلی دي او په لغت کښي ددي مثالونه هم دی. والله اعلم.دابه يقينًا کيږی اوپه هغه ورځ به الله ﷻ دنوي سر نه مخلوق داول په شان راپيداکوی څوك چه په شروع کښي قادروو هغه په دوباره کولو باندي د دي نه زيات قادر دي. دا د الله ﷻ وعده ده اود هغه وعدي اټلي وی هغه نه چرته بدليږی اونه په هغي کښي اختلاف وی هغه په تپولوخيزونوباندي قادردي. هغه به داپوره او ثابته وی. حضورﷺ په ولاړه باندي پخپل يووعظ کښي اوفرمائيل تاسوخلق به دالله ﷻ په وړاندي جمع کيدونکی ئی برېندي پښي برېندبدن ناسونته لکه څنګه چه مونږ په اول خل پيداکړئی دغه شان به مو دوباره واپس کوو دازمونږ وعده ده اودا به مونږ پوره کوو. (۴) (بخاری) تپول خيزونه به ختم شي بيا به جوړولي شي.

| وَلَقَدۡ كَتَبۡنَا | فِي الزَّبُوۡرِ | مِنۡۢ بَعۡدِ الذِّكۡرِ | اَنَّ الۡاَرۡضَ |
|---|---|---|---|
| او ليکلي دی مونږه | په زبور کښی | روستو دنصيحت نه | چی بيشکه دا زمکه چی ده |
| او مونږ د لوح محفوظ د ليک نه پس په آسمانی کتابونو کښي ليکلي دی چي (دجنت) دزمکي وارثان | | | |

| يَرِثُهَا | عِبَادِيَ | الصّٰلِحُوۡنَ | اِنَّ فِيۡ هٰذَا | لَبَلٰغًا |
|---|---|---|---|---|
| وارثان کيږی به ددي | بندګان زما | نيکان | بيشکه په دي (بيان) کښي | يو لوئ خبر دي |
| بۀ (صرف) زما نيکان بندګان وی \| په دي (قران پاک) کښي دعبادت کونکو دپاره ډير کافی | | | | |

| لِّقَوۡمٍ | عٰبِدِيۡنَ | وَمَاۤ اَرۡسَلۡنٰكَ | اِلَّا | رَحۡمَةً | لِّلۡعٰلَمِيۡنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| دپاره دخلقو | عبادت کونکو | اونۀ ئي ليږلي مونږ تۀ | مګر | رحمت ئي | دپاره دمخلوقاتو |
| مضمون دي \| .............. او مونږ ته دتولو جهانونو دپاره رحمت جوړ کړي ليږلي ئي | | | | | |

(۱) ابوداؤد کتاب الخراج باب فی اتخاذ الکاتب:۲۹۳۵.
(۲) الطبری:۵۴۳/۱۸ صحيح بخاری کتاب التفسير سورة الانبياء: ۴۷۳۹.
(۳) ۳۷/الصافات:۱۰۲.
(۴) صحيح بخاری کتاب التفسير سورت الانبياء:۴۷۴۰، صحيح مسلم:۲۸۶۰، احمد:۲۳۵/۱.

**قوله تعالى:- اَنَّ الْاَرْضَ يَرِثُهَا عِبَادِيَ الصّٰلِحُوْنَ**
**د زمکې وارثان به د الله ﷻ نيکان بندګان وي:-** الله ﷻ چه خپلوبنديګانوته څنګه آخرت کښې ورکوی دغه شان په دنيا کښې هم ملك اومال ورکوی. دالله ﷻ وعده آخری اوفيصله ربښتوني وی. لکه چه ارشاد دی ﴿اِنَّ الْاَرْضَ لِلّٰهِ يُوْرِثُهَا مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِيْنَ﴾[1] زمکه دالله ﷻ ده څوك چه غواړی دهغې وارث ئې جوړوي. انجام کاردپرهيزګارانوحصه ده اوارشاددې چه مونږ دخپلو رسولانو اوايمانداراانو په دنيا کښې اوپه آخرت کښې امداد کوو[2] يو بل ارشاد دې په تاسوکښې ايمانداراانو اونيکانو خلقو سره د الله ﷻ وعده ده چه هغه به دوی په زمکه کښې غالب جوړوی لکه څنګه چه د هغوی نه وړاندينی جوړ کړې اود هغوی د پاره ئې د هغوی دين مضبوط کړو په کوم سره چه هغوی خوشحال دی.[3]
**د ذبور او ذکر نه څه مراد دی؟:-** نورفرمانی چه د په شرعی او تقديری کتابونوکښې ليکلې شوی دی چه دابه يقيناً کيږی. دزبور نه مراد دسعيدبن جبير رحمه الله په قول تورات انجيل او قرآن پاك دی[4] مجاهد رحمه الله وائی دې نه مرادکتاب دی[5] بعضې خلق وائی چه زبور د هغه کتاب نوم دې چه په حضرت داؤد ﷺ باندې نازل شوې وو. دذکرنه مراددلته تورات دی. ابن عباس رضي الله عنه فرمانی دذکرنه مرادقرآن پاك دی. سعيد رحمه الله فرمانی ذکرهغه دې چه په آسمانونو کښې دې يعنی دالله ﷻ سره ام الکتاب رومبې کتاب يعنی لوح محفوظ. فرمانی په تورات زبور او علم الٰهی کښې هم اول دا فيصله شوې وه چه امت محمديه ﷺ به د زمکې بادشاه جوړيږی نيك کيدو سره به جنت ته ځی اوداهم ونيلې شوی دی چه د زمکې نه مراد د جنت زمکه ده.[6] ابوالدرداء رضي الله عنه فرمائی صالحان خلق هم مونږ يودې نه مراد ايماندار خلق دی په دې قرآن پاك کښې چه کوم په نبی آخرالزمان ﷺ باندې نازل شوې دې پوره نصيحت اوکفايت دې د هغوی د پاره چه زمونږ عبادت کونکی بنديګان دی چه زمونږ منی خپل خواهش زمونږ په نوم باندې قربانی کوی. بيافرمانی چه مونږ دخپل خان داخپل نبی رحمة للعالمين جوړکړې ليګلې دې نوددې نعمت شکرکونکی په دنيا اوآخرت کښې کامياب دی اوناقدری کونکی په دواړو جهانوکښې ناکام او برداد دی لکه چه ارشاد دې چه تا هغوی نه دی کتلی کومو چه دالله ﷻ دنعمت ناشکری اوکړه اوخپل قوم ئې غرق کړو[7] دې قرآن پاك په نسبت ئې اوفرمائيل چه دادايماندارودپاره هدايت او شفاده اوبې ايمانه کانړه اوړانده دی[8] په صحيح مسلم کښې دی چه په يوه موقعه باندې د رسول الله ﷺ صحابه کرامو عرض اوکړوحضور ﷺ ددې کافرانودپاره بددعااوکړه حضور ﷺ اوفرمائيل زه لعنت کونکې نه يم راليګلې شوې بلکه رحمت او هدايت يم.[9] يوبل حديث کښې دی چه دې سره داهم دی چه زه د يو قوم د ترقئ او د بل د تنزلئ د پاره ليګلې شوې يم
**د نبی عليه السلام دهجرت نه پس د ابوجهل خپل قوم ته خطاب او هدايت:-** طبرانی کښې دی ابوجهل اووئيل اې قريشيانومحمد يثرب له تلې دې خپل ګشتی لښکرې اخواديخوا ستاسو په لټون کښې راليکی. ګورئی هوښيار اوسئی هغوی د اوړې شرمخانوپه شان په شيش کښې ناست دی چه هغوی خار

---

[1] ۷/الاعراف:۱۲۸.
[2] ۴۰/غافر:۵۱.
[3] ۲۴/النور:۵۵.
[4] الطبرى:۱۸/۵۴۷.
[5] الطبرى:۱۸/۵۴۷.
[6] الطبرى:۱۸/۵۴۹.
[7] ۱۴/ابراهيم:۲۸.
[8] ۴۱/فصلت:۴۴.
[9] صحيح مسلم كتاب البر باب النهى عن لعن الدواب وغيرها:۲۵۹۹، مسندابى يعلى:۶۱۷۴.

خوړلي دي ځکه چه تاسو هغوی ویستلي دی. والله هغه جادوګر بې مثال دی زه خو چه هغه یا د هغه په ملګروکښې څوك هم وینم نوماته دهغوی سره شیطان ښکاری تاسوته پته ده چه اوس او خزرج قبیلې زمونږ دښمنان دی.دی دښمن ته هغه دښمنانوپناه ورکړې ده.په دې باندې مطعم بن عدی اوونیل ابو الحکم واوره ستاسوداروركوم چه تاسودوطن نه ویستي دي ماڅوك دده نه زیات رښتوني اود وعدې پوره کونکي نه دي لیدلي اوس چه دومره ښه سړی سره تاسو داسې سلوك کړې دي نو اوس خو هغه پرېږده اوتاسو له پکار دی چه د هغوی نه جدا اوڅان له شئ په دې باندې ابوسفیان بن حارث اوونیل تاله په هغوی باندې پوره سختي کول پکار دی یادساتئ که چرته د ده طرفدار په تاسو غالب راغله نو تاسوبه دیوڅایئ هم پاتې نه شئ نه به رشته اوګورنی اونه خاندان زماپه رائې کښې خوتاسوله د مدینې والا تنګول پکاردی چه یاخو هغوی محمد(ﷺ) اوباسي اوهغه ځان له یوازې پاتې شي یاخود دې مدینې والا ختمول پکار دی که تاسو تیارشئ نوزه به د مدینې په ګوټ ګوټ کښې لښکرې کینوم او هغوی به سخت تنګ کړم.

**ددې خبرې په جواب کښې درسول ﷺارشاد:-** کله چه حضورﷺ ته داخبرې اورسیدې نو وېی فرمائیل په الله ﷻ باندې قسم دی د چا په قبضه کښې چه زما ځان دی چه هم زه به هغوی قتل او غرق کړم او په قیدکولو سره به ئې بیاپرېږدم سره د احسانه. زه رحمت یم زما لیګونکي الله ﷻ دی هغه به ماد دې دنیانه نه اوچتوی ترکومې چه ماځپل دین په دنیاباندې غالب کړې نه وی زما پنځه نومونه دی محمد، احمد،ماحی چه زما په وجه به الله ﷻ کفر ختموی. حاشر چه خلق به زماپه قدمونوکښې راجمع کوی او عاقب[۱] مسنداحمدکښې دی حضرت حذیفه ؓ مدائن کښې ووهروخت به د احادیثو مذاکره کیدله. یوه ورځ حضرت حذیفه ؓ حضرت سلمان ؓ له راغلو نوحضرت سلمان اوفرمائیل اې حذیفه یوه ورځ حضورﷺپه خپله خطبه کښې اوفرمائیل چاته چه ما په غصه کښې بدې ردې وئیلي وی یا مې په هغه باندې لعنت کړې وی نو اوګنړئې چه زه هم ستاسو په شان یوانسان یم ستاسو په شان ماته هم غصه راتلي شی.اوزه رحمة اللعالمین یم نوزمادعاده چه الله ﷻ دې زمادا الفاظ هم ددغه خلقوډپاره د رحمت ذریعه اوګرځوی[۲] پاتې شوه داخبره چه حضورﷺ دکافرانو دپاره څنګه رحمت وو؟ د دې جواب دادې چه په ابن جریرکښې دحضرت ابن عباس ؓ نه هم ددې آیت په تفسیرکښې روایت دې چه د مؤمنانودپاره خوحضورﷺ په دنیااوآخرت کښې رحمت وو اودغیرمؤمنانودپاره حضوراکرم ﷺ په دنیا کښې رحمت وو چه هغوی په زمکه کښې ورخښولو نه اود آسمان نه کانړی راوریدلونه بچ شولکه څنګه چه د وړاندینوامتونوپه منکرانو باندې عذاب راغلو. (۳)

| قُلْ | اِنَّمَا | يُوْحٰٓى | اِلَيَّ | اَنَّمَآ اِلٰهُكُمْ | اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ۚ | فَهَلْ اَنْتُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ورته اووایه | بیشکه | وحی کیږی | ماته | چې بیشکه معبود ستاسو | معبود یو دی | نو آیا تاسو |

(ائې پیمغبره) ته اووایه چې ما ته خو بس دا وحی راغلي ده | چې ستاسومعبود بس یو معبود دی | نو

| مُّسْلِمُوْنَ ۞ | فَاِنْ تَوَلَّوْا | فَقُلْ | اٰذَنْتُكُمْ | عَلٰى سَوَآءٍ ؕ |
|---|---|---|---|---|
| منونکی یئ | نو که مخ واړوؤ دوئ | نو ورته اووایه | چې خبردار کړی یئ ما تاسو | ښه ښکاره |

ایا تاسو هم منئ که نه ؟ | نو که بیا هم مخونه واړوی | نو ته ورته اووایه چې ما خو تاسو پوره

---

۱) طبرانی:۱۵۳۲ وسنده ضعیف.
۲) ابوداؤد کتاب السنة باب فی النهی عن سب اصحاب رسول الله:۴۶۵۹ وسنده حسن، احمد:۴۳۷/۵.
۳) الطبری:۵۵۲/۱۸.

| وَإِنْ أَدْرِي | أَقَرِيبٌ | أَمْ بَعِيدٌ | مَّا | تُوعَدُونَ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| اونه پوهیږم زه | چي آیا نزدې دي | یا لرې دي | هغه څیز | چي تاسو سره ئې وعده کیږي |
| خبرکړئی \| اوماته دامعلومه نه ده چې کومه وعده تاسو سره شوې ده چې هغه نزدې ده اوکه لرې | | | | |

| إِنَّهُ | يَعْلَمُ | الْجَهْرَ | مِنَ الْقَوْلِ | وَيَعْلَمُ | مَا | تَكْتُمُونَ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه الله | پوهیږي | په اوچت آواز | دخبرې نه | او پوهیږي | په هغه خبرو | چې پټوئ ئې تاسو |
| بیشکه چې الله ﷻ په ښکاره خبره هم پوهه دې او په هغې هم پوهه دې چې تاسوئې پټوئی | | | | | | |

| وَإِنْ أَدْرِي | لَعَلَّهُ | فِتْنَةٌ | لَّكُمْ | وَمَتَاعٌ |
|---|---|---|---|---|
| او ځومره چې پوهیږم زه | نو شاید چې دا تا خیر | یوه فتنه ده | ستاسو دپاره | او سامان دژوند دې |
| اوزه نه پوهیږم اکیدې شی چې دا(تاخیر) ستاسو دپاره یو امتحان وی او تاسو ته ترڅه | | | | |

| إِلَىٰ حِينٍ ۝ | قُلْ | رَبِّ | احْكُم | بِالْحَقِّ ط | وَرَبُّنَا |
|---|---|---|---|---|---|
| دخاص وخته پورې | اخر اووئیل رسول | اے ربه | فیصله اوکړه | په حقه سره | او رب زمونږه |
| وخت پورې فائده رسول دی \| پیغمبر اووئیل چې ائې زما ربه ! ته دحق مطابق فیصله کوه \| اوزما رب | | | | | |

| الرَّحْمَٰنُ | الْمُسْتَعَانُ | عَلَىٰ مَا | تَصِفُونَ ۝ |
|---|---|---|---|
| رحمان دې | چې امداد تر غوښتلې کیږي | په مقابله دهغه خبرو کښې | چې تاسو ئې بیانوئ |
| درحمتونو خاوند دې \| مونږ ترې نه مدد غواړو \| دهغې خبرو په مقابله کښې چې کومې تاسو بیانوئ | | | |

**قوله تعالى:- إِنَّمَا يُوحَىٰ إِلَيَّ أَنَّمَا إِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ**

الله ﷻ یودې :- الله ﷻ سبحانه وتعالی خپل نبی ﷺ ته حکم ورکوی چه ته مشرکانوته اوفرمایه چه زما طرف ته هم داوحی کولې شی چه صرف هم الله ﷻ معبودبرحق دې تاسو ټول هم هغه اومنئی او که تاسو زما په خبره یقین نه کوئی نومونږ اوتاسو جدایو تاسو زمونږ دښمنان ئی اومونږ ستاسو.لکه چه یوبل روایت کښې دی که دروغ ګنړی نو اووایه چه زماد پاره زما عمل دې او ستاسود پاره ستاسو عمل دې. تاسوزمادعمل نه خلاص ئې اوزه ستاسودکړونه ویزاره یم[1] بل آیت کښې دی ﴿وَإِمَّا تَخَافَنَّ مِن قَوْمٍ خِيَانَةً فَانبِذْ إِلَيْهِمْ عَلَىٰ سَوَاءٍ ۚ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْخَائِنِينَ﴾[2] یعنی که چرته تاته دیوقوم نه دبې وعدګئی خیانت اندیښنه وی نوزر هغوی ته د خپلې وعدې ماتولو خبر ورکړه.

دغه شان دلته هم دی که چرې تاسو جداوالې اختیارکړئی نوزمونږ او ستاسو تعلقات ختم دی یقین کوئی چه کومه وعده تاسوسره کولې شی هغه خو به ضرور پوره کیږی که هم اوس وی اوکه څه وخت پس دهغې ماته پخپله علم نشته. د ظاهر اوباطن عالم صرف الله ﷻ دې چه تاسوکوم ښکاره کړئی او کوم پټ کړئی هغه ته دهرڅه علم دې دبندیګانو ټول علم دظاهری اوپټو اعمالوهغه ته ښکاره دې وړوکې لوئ پټ ښکاره هرڅه باندې پوهیږی. ممکن دی چه دهغه تاخیرهم ستاسو ازمینبت وی اوتاسو

---

[1] ۱۰/یونس:٤١.
[2] ۸/الانفال:٥٨.

نه ستاسود ژوندپورې نفع درکوي. انبياء کرامو عليهم السلام ته چه د ومې دعاتعليم کړې شوې ووچه اې الله په مونږ،کښې اوزمونږ په قوم کښې ته رښتونې فيصله اوکړه اوهم ته بهترفيصله کونکې ئې. نبی کريم ﷺ ته هم د دې قسم دعاحکم اوشو. حضوراکرم ﷺ چه به کومې يوې غزوې،ته تلو نودعابه ئې کوله اې زما ربه ته رښتونې فيصله اوفرمائې مونږ د خپل مهربان رب نه امدادغواړو چه هغوی ستاسو دروغ اود خان نه خبرې مونږ نه واړوی اوپه دې کښې زمونږ امدادکونکې هم هغه دې.

﴿الحمدلله﴾ د الله ﷻ په فضل اوکرم سره د سورت انبياء تفسيرختم شو.

..............................

| آیاتونه | | سورة الحج مدنی دي | | رکوع گاني |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | | |
| ۷۸ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم کونکې دې | | ۱۰ |

يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوۡا رَبَّكُمۡ ۚ اِنَّ زَلۡزَلَةَ السَّاعَةِ شَىۡءٌ عَظِيۡمٌ ۝

اے خلقو | اويرېږئ | دغضب درب خپل نه | بيشکه | زلزله دقيامت | څيز دې الوئ (هيبتناک)

انې خلقو! دخپل رب نه ويره کوئ | (ځکه چې) دقيامت (دورځې) زلزله يوډير لوئې څيز دې

يَوۡمَ تَرَوۡنَهَا تَذۡهَلُ كُلُّ مُرۡضِعَةٍ عَمَّاۤ

په کومه ورځ | چې تاسو اووينئ هغه زلزله | ناخبره به شي | هره تی ورکونکی ښځه | دهغه بچی نه |

په کومه ورځ چې به تاسو هغه (زلزله) اووينئ انوهره يوه تې ورکونکې (مور) به خپل

اَرۡضَعَتۡ وَتَضَعُ كُلُّ ذَاتِ حَمۡلٍ حَمۡلَهَا وَتَرَى النَّاسَ

چې تي ئې ورکوي هغه ته | او اوبه غورزوي | هره | حملداره ښځه | حمل خپل | او تاته به خلق

دتې ماشوم نه غافله شي| اوهره حملداره زنانه به خپل حمل اوغورزوي |او ته به خلق نشه

سُكٰرٰى وَمَا هُمۡ بِسُكٰرٰى وَلٰـكِنَّ عَذَابَ اللّٰهِ شَدِيۡدٌ ۝

بې هوشه ښکاري | اونه به وي هغوئ | بې هوشه | ليکن | عذاب دالله | دې ډير سخت

نشه وينئ | خو هغوی به نشه نه وي | ليکن دالله ﷻ عذاب به ډير سخت وي

**قوله تعالى:- اِنَّ زَلۡزَلَةَ السَّاعَةِ شَىۡءٌ عَظِيۡمٌ ۝**

**د قيامت تباهئي:-** الله ﷻ خپلو بنديگانوته دتقوی حکم ورکوی اود راتلونکو خطرناکو امورونه ئې ويروی خاص کر د قيامت د زلزلې نه. دې نه مراد ياخوهغه زلزله ده چه قيامت د قايم کيدوسره به وی لکه چه ارشاددې ﴿اِذَا زُلۡزِلَتِ الۡاَرۡضُ زِلۡزَالَهَا﴾[1] زمکه به ښه پوره اوجړقولې شی بل ارشاددې ﴿وَّحُمِلَتِ الۡاَرۡضُ وَالۡجِبَالُ فَدُكَّتَا دَكَّةً وَّاحِدَةً﴾[2] يعنی زمکه او غرونه به اوچتولوسره اوجنګولې شی او ټکرې ټکرې به کړې

---

[1] ۹۹/الزلزال: ۱. اغ

[2] ۶۹/الحاقة: ۱۴. اغ

شي يو بل ارشاددي ﴿إِذَا رُجَّتِ الْأَرْضُ رَجًّا﴾ (۱) يعني زمکه به په ډېر زور سره خوزيږي او غرونه به ذره ذره شي. د صورپه يوحديث کښې دى الله ﷻ چه کله د آسمان اوزمکې پيدائش اوکړو نو صور(شپيلئ)پيداکړه دائى اسرافيل ؈ ته ورکړه او هغه په خُله کښې نيولې سترګې د عرش طرف ته پورته کړې ګورى چه درب حکم به کله وى چه هغه شپيلئ پوک وهي.ابوهريره ﷜ تپوس اوکړو يارسول الله ﷺ دا صور يعني شپيلئ څه څيز دې؟ حضورﷺ اوفرمائيل د پوك وهلو يو څيز دې ډېر لوئ چه به هغې کښې به درې خل پوکې وهلې شى په کوم سره چه به ټول د زمکې اوآسمان والا اوويرېږى بغير د هغوى نه څوك چه الله ﷻ غواړى بغيردبنديدواوبغيردساه اخستويه ئې ډيروخته پورې برابر وهي.هم د دې رومبنى شپيلئ ذکر.په آيت ﴿وَمَا يَنظُرُ هَٰؤُلَاءِ إِلَّا صَيْحَةً وَاحِدَةً مَّا لَهَا مِن فَوَاقٍ﴾ (۲) کښې دې.پدې سره به غرونه ذره ذره شى اوزمکه به اوړچيږى لکه چه ارشاددې﴿يَوْمَ تَرْجُفُ الرَّاجِفَةُ﴾(۳)کله چه به زمکه لړزيږى يويل پسې به زبردستې جتکې لګى اوزړونه به درزيږى. دزمکې به داسې حالت شى لکه د کشتئ چه په طوفان غولئ کښې وى اويايوقنديل فانوس په چت کښې زوړند وى اوهغه هواځلورو واړو طرفونوته زنګوى. افسوس هم دغه وخت به وى چه پئى ورکونکې ښځې به خپلو بچوته پئى ورکول هيرکړى اود حامله ښځې حملونه به پريوځى اوماشومان به بوډاګان شى شيطانان به اوتختى د زمکې د غاړو پورې به اورسى خود هغه ځائ نه به د فرښتو په وهلوسره راواپس کړې شى. خلق به اخواديخوا حيران اوپريشان منډې ترړې وهي يويل ته به آوازونه کوى هم د دې وجه نه قرآن پاك د دې ورځ نوم يوم التناد کيخودې دى. هم په دغه ورځ به زمکه د يو طرف نه د بل طرفه پورې اوشليږى د هغه وخت د ويريدو اندازه نه شى کيدې.بيا په آسمان کښې بدلونونه ښکاره شى نمرسپوږمئى به بې نوره کړې شى ستورى به راو رژيږى اوځمکې به راوځى ژوندى خلق به دا هرڅه وينى او مړه خلق به د دې نه بې خبره وى.د قرآن پاك آيت﴿ فَفَزِعَ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَمَن فِي الْأَرْضِ إِلَّا مَن شَاءَ اللَّهُ ۚ وَكُلٌّ أَتَوْهُ دَاخِرِينَ﴾ (۴)کښې د کوموخلقو استثناء کړې ده چه هغوى به بې هوشه نه وى.دې نه مراد شهيدان خلق دى دا ويره به په ژوندوخلق باندې وى شهيدان د الله ﷻ په نيز ژوندى دى او رزق حاصلوى الله ﷻ به هغوى ته د دې ورځې د شر نه خلاصې ورکوى او هغوى به په امن کښې ساتى د الله ﷻ دا عذاب به صرف خراب مخلوق د پاره وى. هم دا الله ﷻ د دې سورت د شروع په آياتونوکښې بيانوى.(۵) داحديث طبرانى ابن جرير ابن ابى حاتم وغيره کښې دې او ډير اوږد دې د دې حصې د نقل کولونه دلته مقصد دا دې چه په دې آيت کښې د کومې زلزلې ذکر دې دا به د قيامت د قايميدونه اول وى اود قيامت طرف ته د دې اضافت د وجه د نيزديوالى د قيامت دې لکه چه وائى اشراط الساعة وغيره والله اعلم. ياد دې نه مراد هغه زلزله ده چه د قيامت نه پس به په ميدان محشرکښې وى کله چه خلق د قبرونونه راوځى اود محشر ميدان کښې جمع کيږى. امام ابن جرير ﷫ هم دا خوښوى. د دې په دليل کښې ډير احاديث دى.

**د محشرميدان اودهغه متعلق احاديث:**-حضور ﷺ په يوسفرکښې وو صحابه کرام ﷺ ډير تيز تيز روان وو.حضور اکرمﷺ دې دواړوآياتونوپه اوچت آوازسره تلاوت اوکړو.دصحابه کرام ﷺ په غوږونو کښې د آواز پريوتلوسره ټولوخپلې سورلئ واخستې اود حضورﷺ نه چاپيره جمع شو چه کيدې شى حضور ﷺ نور هم څه اوفرمائى. حضوراکرم ﷺ اوفرمائيل معلومه ده چه دابه کومه ورځ وى؟ دابه هغه ورځ وى

(۱) ۵۶/الواقعه:۴. الخ

(۲) ۳۸/ص:۵۱.

(۳) ۷۹/النازعات:۶. الخ

(۴) ۲۷/النمل:۸۷.

(۵) ابن ابى حاتم:۱۲/۱۶۳، الطبرى:۱۸/۵۵۹.

په کومه ورځ چه به الله ﷻ آدم ﷺ ته فرمائي اې ادم ددوزخ حصه راوباسه نو هغه به وائي یاالله دخومره نه خومره؟ فرمائي به دهریوزرو نه یوکم زر د دوزخ د پاره او یود جنت د پاره. دې اوریدو سره د صحابه کرام ﷡ زړونه اودریدو چپ شو.حضور ﷺ چه داحالت اوکتلو نو وئې فرمائیل غم مه کوئې خوشحاله شئې اوعمل کوئې د هغه ذات قسم دچا په لاس کښې چه زما ځان دې تاسو سره د مخلوق هغه شمیردې چه کوموسره هم وی هغه به زیاتوی. یعني یاجوج اوماجوج د بنیادمونه چه کوم هلاک شوی دی اودابلیس اولاد.اوس دصحابه کرامو ﷡ ویره لږه شان کمه شوه نوحضور ﷺ اوفرمائیل چه عمل کوئې اوزیرې واورئې د هغه قسم دچا په لاس کښې چه دمحمد ﷺ ځان دې تاسو خود نورو خلقو په مقابله کښې داسې ئې لکه د اوښ د اړخ یا د ځناور د لاس داغ(١) هم د دې روایت په بل سند کښې دی چه داآیت د سفرپه حالت کښې نازل شوپه دې کښې دی چه صحابه کرامو ﷡ د حضور ﷺ دافرمان واوریدونوپه ژړاشو.حضور ﷺ اوفرمائیل نیزدې نیزدې اوسیږئې اوټیک ټاک اوسیږئې دهرپونبوت نه وړاندې دجاهلیت زمانه پاتې ده هم هغه به دا شمیرپوره کوی کنې نود منافقانونه به داشمیرپوره کولې شی.په دې کښې دی چه حضور ﷺ اوفرمائیل زما خودا امیددې چه د جنت ځلورمه حصه به هم تاسو ئې دې اوریدو سره صحابه کرامو ﷡ الله اکبر اووئیل ارشاد اوشو څه عجیبه ده چه تاسودریمه حصه ئې. په دې باندې هغوی بیاتکبیراووئیل حضور ﷺ اوفرمائیل چه زما امید دې تاسو به نیم په نیم ئې هغوی بیاتکبیراووئیل راوی وائي چه ماته یادنه دی چه حضور ﷺ بیا دویمه حصه هم اوفرمائیله که نه. (٢)
یوبل روایت کښې دی چه د غزوه تبوك نه په واپسئ باندې مدینې سره نیزدې حضور ﷺ آیت تلاوت شروع کړو.په یوبل روایت کښې دی کوم چه هلاك شو د پیریانونه اوانسانانونه(٣)یوبل حدیث کښې دی تاسو په زرو جزونوکښې یوجز ئې. (٤)
په صحیح بخاری کښې د دې آیت په تفسیرکښې دی چه د قیامت په ورځ به الله ﷻ حضرت آدم ﷺ راوغواړی هغه به جواب ورکړی(لبیك ربنا وسعدیك)بیا به آواز راشی الله ﷻ تاته حکم درکوی چه د خپل اولاد نه د دوزخ حصه راوباسه هغه به تپوس کوی یاالله خومره؟ حکم به کولې شی په هرو زروکښې یو کم زر.هغه وخت به د حامله ښځو حمل پریوځی ماشومان به بوډاګان شی خلق به وارخطاشی د څه نشې په وجه نه بلکه دالله تعالی د عذابونود سختئې په وجه. دې اوریدو سره د صحابه کرامو ﷡ مخونه بدل شان شو نوحضور ﷺ اوفرمائیل د یاجوج ماجوج نه یوکم زر اوتاسو نه یو. تاسو خوداسې ئې لکه د سپین رنګ په غوایه کښې توروېښته چه د هغه په اړخ کښې وی یا په شان د یوڅو سپینو ویښتو چه د تورو ویښتو دغوائي په اړخ کښې وی. بیائې اوفرمائیل چه زما امید دې چه په ټولوجنتیانوکښې به ستاسو شمیر د ځلورمې حصې وی مونږ په دې باندې تکبیراووئیل. بیائې اوفرمائیل نیم شمیرکښې ټول اوبه نیم کښې صرف تاسو(٥) یوبل روایت کښې دی چه صحابه کرام ﷡ اووئیل حضور ﷺ بیا به هغه خوش نصیب په مونږ کښې څوك وی چه کله داحالت دی(٦)یوبل روایت کښې دی تاسو به د الله ﷻ په وړاندې بربنډې پښې بربنډ بدن اوناسوتنه راجمع کولې شئې.حضرت عائشه ﷞ اوفرمائیل حضور ﷺ ښځې اوسړی په یوځای؟ په یوبل به ئې نظر پریوځی. حضور ﷺ اوفرمائیل عائشه هغه وخت

---

(١) احمد:٤٣٥/٤، ترمذي كتاب تفسير القرآن باب ومن سورة الحج٣١٦٩والحاكم:٢٨/١.
(٢) ترمذی کتاب تفسیرالقرآن باب ومن سورة الحج:٣١٦٨ احمد:٤٣٢/٤، مسندحمیدی:٨٢١.
(٣) مسند ابی یعلی:٣١٢٢.
(٤) ومسنده.
(٥) صحیح بخاری کتاب التفسیرسورة الحج باب قوله (وتری الناس سکری):٤٧٤١، صحیح مسلم:٢٢٢، احمد:٣٢/٢.
(٦) احمد:٣٨٨/١.

به ډیرسخت اوخطرناك وی([1])(صحيحين)مسنداحمد كښي حضرت عائشه ﷞ فرماني ماونيل يارسول الله ﷺآيا دوست به د قيامت په روځ خپل دوست يادوی؟ حضورﷺ اوفرمائيل عائشه په دريو موقعو باندې به څوك هيڅ څوك هم يادنه كړی د عملونود تول په وخت كښي تركومې چه كمې زياتې معلوم نه شي. د عمل نامو د وركولو په ځائ اووخت كښې تركومې چه په ښي اوګس لاس كښې ملاونه شي.

**جهنم به درې قسمه خلق راګيروي**:-هغه وخت چه د دوزخ نه به يوه غړانګه راوځی چه راګيروی به او په سخت غضب اوغصه كښي به وی اووائي به چه زه په درې قسم خلقو باندې مسلط شوې يم يوخو هغه خلق چه دالله ﷻ نه بغيرنورو خلقو ته آوازونه كوی.دويم هغه چه د حساب په ورځ ئی ايمان نه وی راوړې اوپه هرسركش كبرژن ضدی اوبيا به هغه دوی راغوندكړی او په راټولولو سره به ئی خپلې خيټې ته اورسوی. په دوزخ باندې به پل صراط وی چه د ويښته نه به نرې او تورې نه تيره وی په دې باندې به ازغی او ركاوټونه وی څوك چه الله ﷻ غواړی اوبه ئی نيسی په دې باندې تيريدونكی به د بجلئی په شان وی دسترګو ريولو په شان او په شان د هوا اوپه شان د تيزو اسونو اوښانو. فرښتې به څلور واړه طرفونوته ولاړې دعاګانې كوی الله سلامتيا وركړې الله ﷻ بچ ئی كړې نو بعضې خو به صحيح سالم تيرشی اوبعضې به څه ناڅه زخم اوخوری بچ به شی او بعضې به پرمخې دوزخ ته پريوځی([2]) د قيامت آثار اوددې په تباهوكښې نور هم ډير احاديث دی د كوموچه ځائ بل دې. دلته اوفرمائيلې شو دقيامت زلزله ډيره خطرناكه ده ډيره سخته ده زړه درزونكې ده تباه كونكې ده او اينه الوزونكی ده. زلزله د رعب او ويرې په وخت كښې زړه خوزيدلو ته وائی لكه چه په آيت كښې دی په دې ميدان جنګ كښې مؤمنان اخته كړې شو اوسخت اوجرقولې شو([3]) كله چه تاسودا اووينئ دا ضمير شان د قسم نه دې په دې وجه د دې نه پس د دې تفسيردې. د دې سختئ په وجه پئ څكونكې مئيندې خپل بچې هيركړی او دحامله حمل به پريوځی خلق به وارخطاشي داسې به ښكاری لكه چه په نشه كښې بدمست وی خو په اصل كښې به هغوی په نشه كښې نه وی بلكه د عذابونوسختو به هغوی بې هوشه كړې وی.

| وَمِنَ النَّاسِ | مَنْ | يُّجَادِلُ | فِي اللّٰهِ | بِغَيْرِ عِلْمٍ | وَّيَتَّبِعُ |
|---|---|---|---|---|---|
| او څيني دخلقو نه | هغه دی | چې جګړه كوی | په باره دالله كښې | بغير دعلم نه | او پيروی كوی |
| اوبعضې خلق داسې هم دی اچې دالله ﷻ په باره كښې بغير د علم (اودليل) نه جګړې كوی او | | | | | |

| كُلَّ شَيْطٰنٍ | مَّرِيْدٍ ۙ | كُتِبَ | عَلَيْهِ |
|---|---|---|---|
| دهر شيطان | سر كشه | حال دا چې ليكلې شوی ده (دا خبره) | په حق ددغه شيطان كښې |
| د هر يو سركش شيطان تابعداری كوی | چې چا په باره كښې چې دا ليكلې شوې دې چې | | |

| اَنَّهٗ | مَنْ | تَوَلَّاهُ | فَاَنَّهٗ | يُضِلُّهٗ |
|---|---|---|---|---|
| چې بيشكه | هغه څوك | چې دوست كوی ده لره | نو بيشكه | به بې لارې كوی هغه (تابع خپل) |
| څوك هغه سره ملګرې شی ا............نو هغه ئې ګمراه كړی | | | | |

| وَيَهْدِيْهِ | اِلٰى عَذَابِ السَّعِيْرِ ۞ | يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ | اِنْ كُنْتُمْ | فِيْ رَيْبٍ |
|---|---|---|---|---|
| اولار به ښائی هغه ته | دعذاب د وورګرم | اے خلقو | كه يئ تاسو | په شك كښې |
| اود دوزخ د عذاب لار ورته سموی ا............ائې خلقو! كه تاسو دبيا ژوند په باره كښې شكمن | | | | |

[1] صحيح بخاری كتاب الرقاق باب الحشر:۶۵۲۷ صحيح مسلم:۲۸۵۹.
[2] احمد:۱۱۰/۵.
[3] ۳۳/الاحزاب:۱۱.

| مِّنَ الْبَعْثِ | فَاِنَّا | خَلَقْنٰكُمْ | مِّنْ تُرَابٍ | ثُمَّ | مِنْ نُّطْفَةٍ |
|---|---|---|---|---|---|
| ددوباره ژوندی کیدونه | پس بیشکه | پیدا کړی یئ مونږ تاسو | دخاورو نه | بیا | دنطفي نه |

يئ | نو (لږ فکر اوکړئی) چې مونږ تاسو(اول) دښاورې نه پيدا کړئی | بیا د یو خاڅکي اوبونه

| ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ | ثُمَّ مِنْ مُّضْغَةٍ | مُّخَلَّقَةٍ | وَّغَيْرِ مُخَلَّقَةٍ |
|---|---|---|---|
| بیا دوینې دټوټې نه | بیا دغوښې دټوټې نه | چې پوره شکل والا هم وی | او نیمګړی شکل والا هم وی |

بیا د چکه وینې نه | بیادغوښې دبوټئ نه | چې (بعضې) پوره وی او (بعضې) ناپوره وی

| لِّنُبَيِّنَ | لَكُمْ ط | وَنُقِرُّ | فِي الْاَرْحَامِ |
|---|---|---|---|
| دپاره ددې چې واضحه کړو مونږ | تاسو ته (حقیقت) | اوقرار ورکوؤ مونږ | په رحمونو (دمیندو) کښې |

چې تاسو ته خپل قدرتونه اوښائی | او مونږ چې دچا په باره کښې اوغواړو نو تر

| مَا نَشَآءُ | اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى | ثُمَّ | نُخْرِجُكُمْ | طِفْلًا |
|---|---|---|---|---|
| هغه چې خوښه شي زمونږه | دنیټې خاصې پورې | بیا | رااوباسو مونږ تاسو | په شکل دبچی کښې |

یوې مودې پورې هغه دمور په رحم کښې ځائې کړو | بیا تاسو د پوره ماشوم په صورت کښې پیدا کړو

| ثُمَّ لِتَبْلُغُوْٓا | اَشُدَّكُمْ ج | وَمِنْكُمْ | مَّنْ |
|---|---|---|---|
| بیا (بالو تاسو) | دپاره ددې چې اورسئ تاسو | پوره ځوانۍ خپلې ته | او خینی ستاسو نه | هغه دی |

او چې بیا د ځوانۍ زور ته اورسئ | اوپه تاسو کښې څوک داسې دی | چې (په پوخ عمر کښې) مړه شی

| يُّتَوَفّٰى | وَمِنْكُمْ | مَّنْ | يُّرَدُّ اِلٰٓى | اَرْذَلِ الْعُمُرِ |
|---|---|---|---|---|
| چې وفات کړې کيږي | او خینی ستاسو نه | هغه دی | چې واپس کړې کیږی | بدترین عمر ته |

اوبعضې داسې وی | چې (دبوډاتوب) غورزیدلی عمر ته اورسی

| لِكَيْلَا | يَعْلَمَ | مِنْۢ بَعْدِ عِلْمٍ | شَيْـًٔا ط | وَتَرَى الْاَرْضَ | هَامِدَةً |
|---|---|---|---|---|---|
| دپاره ددې چې پوهه نشي | روستو دپوهیدو نه | په څه خیز باند | او ته وینې | زمکه | اوچه کلکه |

چې دپوهې نه پس یو څل بیا په څه نه پوهیږی |..........اوته وینې ګوری چې زمکه اوچه مړه پرته وی

| فَاِذَآ | اَنْزَلْنَا | عَلَيْهَا | الْمَآءَ | اهْتَزَّتْ | وَرَبَتْ | وَاَنْۢبَتَتْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نو هر کله چې | نازل کړو مونږه | په هغې باند | اوبه | نو اوخوزیږی | او اوپړسیږی | او زرغون کړی |

نو کله چې مونږ په هغې اوبه راوروؤ | نو راویښه شي | او زرغونه شي | اودهر قسم

| مِنْ | كُلِّ زَوْجٍۢ بَهِيْجٍ ۝ | ذٰلِكَ | بِاَنَّ | اللّٰهَ | هُوَ الْحَقُّ |
|---|---|---|---|---|---|
| دهر قسم | بوټو ښائیستو نه | دا کار | په سبب ددې چې بیشکه | الله | هم هغه حق دی |

ښائسته شینکئ راوټوکوی | داځکه چې الله ﷻ حق دی | اوهم هغه پخپله

| وَأَنَّهُ | يُحْيِ | الْمَوْتَى | وَأَنَّهُ | عَلَى كُلِّ شَيْءٍ | قَدِيرٌ ۝ | وَأَنَّ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او بیشکه هغه | ژوندي کوي | مړي | او بیشکه هغه | په هر څیز باند | قادر دي | او بیشکه |
| مړو کې ساه اچوي او هغه په هر څیز باندې قدرت لري او دا (خکه) چې | | | | | | |

| السَّاعَةَ | آتِيَةٌ | لَا رَيْبَ | فِيهَا | وَأَنَّ اللَّهَ | يَبْعَثُ |
|---|---|---|---|---|---|
| قیامت | راتلونکي دي | نشته هیڅ شك | په راتلودهغې کښې | او بیشکه چې الله | به راژوندي کوي |
| قیامت راتلونکي دي په دې کښې هیڅ شک نشته او الله ﷻ به په قبرونو کښې پراته مړي | | | | | |

| مَنْ | فِي الْقُبُورِ ۝ |
|---|---|
| هغه خوك | چې په قبرونو کښې دي |
| يو ځل بيا راژوندي کوي | |

**قوله تعالى:-وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُجَادِلُ فِي اللهِ**

**په الله ﷻ باندې بهتانونه لګول:**-کوم خلق چه دمرګ نه پس د ژوندون منکردي او الله ﷻ په دې باندې قادرنه مني اودالله ﷻ دفرمان نه اخواکیږي دنبیانوتابعداري پریږدي اودسرکش انسانانو اوپیریانو ماتحتي کوي دهغوی الله ﷻ ترديدبيانوي. تاسوګورئ چه څومره بدعتي اوګمراه خلق دی هغوی د حق نه مخ اړوي د باطل په تابعدارئ کښې لګیاکیږي دالله ﷻ کتاب اودهغه د رسول ﷺ سنت پریږدي او د ګمراه سردارانو مني.دهغوی په رائې او خواهش باندې عمل کوي. د دې د پاره ئې اوفرمائیل چه دوي سره صحیح علم نشته. دوی چه د چا مني هغوی ازلي سپیره دی خپل تقلید کونکی دهوکه کوی او آخر هغوی په عذاب کښې راګیروی کوم چه د دوزخ سوزونکې اوردې.

**ددې ایت مبارک شان نزول:**-دا آیت د نضربن حارث باره کښې نازل شوې دې[1] دې خبیث وئیلې وو چه لږ خواوښایه چه الله ﷻ دسرو زرو دې سپینوزرودې که دتانبې دې.دهغه په دې سوال کولوسره آسمان اولړزیدو اودهغه کوپړئ والوته.یوروایت کښې دی چه یو یهودي هم داسې سوال کړې وو هم هغه وخت آسماني ګرز(تندر) هغه هلاك کړو.

**د انساني پيدائش مختلف ادوار:**-د قیامت د مخالفینواومنکرینو وړاندې دلیل بیانولې شی که ستاسود دویم ځل دژوندون نه انکار دې نوموندړ د دې په دلیل کښې تاسوته ستاسو د اول ځل پیدائش دریادوو. تاسو په خپل اصلیت غور اوکړئ اوګورئ چه مونږ تاسو د خاورې نه پیداکړي ئې یعنی ستاسو پلار حضرت آدم ؑ د چا نسل چه تاسو ټول ئې تاسو ټول مو د اوبود یو ذلیل څاڅکی نه پیداکړئ کوم چه اول دچك وینې شکل اختیارکړو بیاد غوښې یوه ټکړه جوړه شوه.دځلوبښتو ورځوپورې خو نطفه په خپل شکل کښې وړاندې کیږي بیاد الله ﷻ په حکم سره د وینې سوروالي راپیداشي بیا ځلوېښت ورځې پس هغه د غوښې یوه ټکړې شکل اختیارکړي په کوم کښې چه څه شکل اوصورت نه وی بیا الله ﷻ دې ته صورت ورکوی سرسینه خیټه پنډئ پښې او ټول اندامونه جوړیږي کله د دې نه وړاندې حمل ساقط کیږي کله د دې نه پس ماشوم پریوځی داستاسو د مشاهدې خبره ده اوکله پاتې کیږي. کله چه په دې ټکړه باندې ځلويښت ورځې تیرې شي نو الله ﷻ فرښته راولیکې هغه ټیك ټاك او صحیح کولوسره په دې کښې روح وړبوك وهی اوچه څنګه د الله ﷻ خوښه وی هم هغه شان ښائسته یا بدرنګه ښځه یاسړې جوړوی. رزق اجل نیکی بدی هم دغه وخت لیکلې کیږي. بخاري اومسلم شریف کښې

[1] الطبري:۱۸/٥٦٦.

دی رسول الله ﷺ فرمائی په تاسوکښې دهریو پیدائش ستاسودموریه خیټه کښې ترڅلویښتو ورځو پورې جمع کیږی.بیادڅلویښتو ورځونه پس چك وینې شکل اختیاروی بیاڅلویښت ورځې پس د غوښې ټکړه بیا فرښتې ته دڅلورو څیزونولیکلوحکم ورکولوسره رالیګی. رزق عمل اجل نیك بخت او بدبخت لیکلې کیږی بیا په دې کښې روح پوك وهلې شی. (۱)

**دپیداکیدو نه وړاندې دتقدیر لیکل:-** عبدالله ﷺفرمائی چه په رحم کښې نطفه حصاریدوسره فرښته تپوس کوی چه اې الله ﷻ دابه مخلوق وی که نه؟که انکاراوشی نو هغه کلکیږی نه هم د وینې په شکل کښې درحم نه خارج کیږی اوکه حکم ملاوشی چه دده پیدائش به کولې شی نوفرښته معلومات کوی چه هلك به وی که جینئی؟نیك به وی که بد؟اجل به ئې څه وی؟ اثریه څه وی؟چرته به مری؟بیادنطفه نه تپوس کولې شی ستارب څوك دې؟هغه وائی الله.تپوس کوی چه رازق څوك دې؟وائی الله.بیا فرښتې ته وائی چه لاړشه اوپه اصل کتاب کښې اوګوره دده ټول حال به ملاوشی.بیا هغه پیداکولې شی اولیکلې شوې ژوندون تیروی. تقدیراو رزق بیامومی مقرر ځائ ته څې راځی بیامرګ راځی او ښخولې شی کوم ځائ چه ښخیدل مقرر وی.بیاحضرت عامر رحمه الله دغه آیت تلاوت کړو.د غوښې ټکړه جوړیدونه پس د څلورم پیدائش طرفته واپس کولې شی اوژوندئی ساه جوړیږی.دحضرت حذیفه بن اسید ﷺ نه یومرفوع روایت دې چه څلویښت پنځه څلویښت ورځې په نطفه باندې تیرې شی نوفرښته معلوموی چه داجنتی دې که دوزخی؟چه جواب ملاوشی نو لیکلې کیږی بیا تپوس کوی چه هلك به وی که جینئی؟ کوم جواب چه ملاویږی نو لیکی. بیا عمل اثر رزق او اجل لیکلې شی اوکتاب راغونډولې شی په کوم کښې چه نه کمې ممکن دې اونه زیاتې(۲)بیا ماشوم شی اوپه دنیا کښې پیداشی نه په کښې عقل وی نه پوهه کمزورې وی او ټول اندامونه ئې ضعیف وی بیائی الله ﷻ لویوی.مورپلار پرې مهربان کوی شپه ورځ هغوی ته د ده فکر وی په تکلیفونواوچتولوسره پالنه کوی او الله ﷻ هغه لویوی اود تازه ځوانئی زمانه راځی ښائسته او صحت مند کیږی بعضې خو په ځوانئی کښې لاړشی او بعضې بوډاګان کیږی.

**د انسان ضعیف العمری:-** چه بیاعقل او پوه ترې لاړه شی اود ماشومانو په شان کمزورې شی په حافظه او پوهه کښې کمې راشی دعلم نه پس بې علم شی لکه چه ارشاد دی﴿اَللّٰهُ الَّذِیْ خَلَقَكُمْ مِّنْ ضُعْفٍ ثُمَّ جَعَلَ مِنْۢ بَعْدِ ضُعْفٍ قُوَّةً ثُمَّ جَعَلَ مِنْۢ بَعْدِ قُوَّةٍ ضُعْفًا وَّشَیْبَةً ؕ یَخْلُقُ مَا یَشَآءُ ۚ وَهُوَ الْعَلِیْمُ الْقَدِیْرُ﴾(۳) الله ﷻ مونږ په کمزورئی کښې پیدا کړو بیائی زوراوطاقت راکړاوددې قوت اوطاقت نه پس ضعف او بوډاوالې راغلو.کوم چه هغه غواړی پیداکوی هغه د پوره علم او کامل قدرت مالك دې.

**د انسان د عمر متعلق مرحلې:-** مسند حافظ ابویعلی موصلی کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی ماشوم چه تر کومې بالغتوب ته اونه رسی د هغه نیکئی د هغه د پلار یا مور پلار په عمل نامه کښې لیکلې کیږی او بدی نه په هغوی باندې وی اونه په هغه باندې. بلوغت ته په رسیدوباندې قلم په هغه باندې روان شی اودهغه سره فرښتو ته د هغه دحفاظت اوهغه د صحیح ساتلوحکم ملاویږی.کله چه هغه په اسلام کښې دڅلویښتو کالو عمر ته رسی نوالله ﷻ هغه له ددریو بلاګانونه خلاصې ورکوی.دلیونتوب نه جذام نه او برص (برګی مرض) نه،کله چه په هغه باندې دالله ﷻ په دین کښې پنځوس کاله تیریږی نو الله ﷻدهغه په حساب کښې سپکوالې کوی کله چه هغه دشپیتوکالوشی نوالله ﷻهغه دخپلې رضا مندئی کارونوطرف ته طبیعت ورګرځوی اوهغه خپل طرف ته راغب کوی.کله چه هغه د اویاؤ کالوشی

---

(۱) صحیح بخاری کتاب بدء الخلق باب ذکر الملائکة صلوات الله علیهم:۳۲۰۸، صحیح مسلم:۲٦٤۳، ابوداؤد:٤۷۰۸، ترمذی:۲۱۳۷

(۲) صحیح مسلم کتاب القدر باب کیفیة خلق آدمی ل بطن امه.....:۲٦٤٤، احمد:٤/٦، مشکل الاثار:۲٦٦۳، السنة لابن ابی عاصم:۱۷۹، ابن حبان:٦۱۷۷.

(۳) ۳۰/الروم:٥٤. الخ

نو اسماني فرښتې هغه سره محبت کوي اوکله چه هغه د اتياؤکالوشي نو الله ﷻ دهغه نيکئ خوليکي ولې د بدونه ئې تجاوز کوي. کله چه هغه دلس کم سلوکالوعمرته اورسي نوالله ﷻدهغه وړاندې روستو ګناهونه معاف کوي د هغه د کور دخلقو د پاره هغه سفارشي او شفيع جوړوي هغه ته د الله ﷻ په نيز د امين الله خطاب ملاويږي او په زمکه کښې د الله ﷻ د قيديانو په شان اوسيږي.
کله چه هغه ډيرناکاره عمر ته اورسي اود علم نه پس بې علم شي نوکوم څه چه هغه د خپل صحت او هوش په زمانه کښې نيکئ کولې تولې برابر هم د هغه په عمل نامه کښې ليکلې کيږي. اوکه يوه بدي د هغه نه اوشي نو نه ليکلې کيږي([1]) داحديث ډيرغريب دې او سخت نکارت په کښې دې سره د دې نه دا امام احمد بن حنبل رحمه الله په خپل مسندکښې موقوفًا هم او مرفوعًا هم راوړلې دې. د حضرت انس رضي الله عنه نه موقوفًا نقل دې اود حضرت عبدالله بن عمربن الخطاب رضي الله عنه نه درسول الله ﷺ فرمان اوبيا د حضرت انس رضي الله عنه نه په دويم سندسره مرفوعًا هم دا وارد دې([2]) حافظ ابوبكربن بزار رحمه الله هم دا په روايت د حضرت انس بن مالك رضي الله عنه نه په حديث مرفوع کښې بيان کړې دې. ([3]) (او په مسلمانانوباندې د رب د مهربانئ تقاضا هم دا ده. الله ﷻ دې زمونږ په عمر کښې په نيکئ سره برکت واچوی. آمين)
**د مرګ نه پس د ژوندې کيدو يوبل دليل:**-دمړودژوندی کولويودليل بيانولوسره بيادا دويم دليل بيانوی چه هوارميدان بغيرد راټوکيدو اوچه اوسخته زمکه مونږ په آسماني اوبوباندې خړوب کولوسره شنه او تازه کوو.قسم قسم ګلونه ميوې داني خوږې تروې ښکلې مزيدارې رنګ او شکل والا ميوو نه ډکې شوې ښاسته لونې وړې ونې په خوزيدو خوزيدو سره د سپرلي مزه ښائي.هم دا هغه مړه زمکه وه چه د پرون پورې ئې خاورې الوزولې اونن د زړه خوند او د سترګو نور جوړيدو سره د خپل ژوند او خوانئ مزه ورکوي.دګلونوواړه واړه بوټي دماغو له تازګي ورکوي د لرې نه د نسيم سپکې سپکې چپې خومره ښکلې معلوميږي.فسبحان الله وبحمده.رښتيادی چه خالق مدبر د خپلې خوښې مطابق کونکې خود مختاره حاکم حقيقي هم الله ﷻ دې. هم هغه د مړو ژوندی کونکې دې اود هغې نښه د مړې زمکې ژوندی کيدل د مخلوق د سترګو په وړاندې دی هغه په هريوانقلاب او هر زړه په حال باندې قادر دې. څه چه غواړي کيږي دکوم کار چه اراده کوي واني چه اوشه نوبيانا ممکن دی چه هغه ويناکولوسره اونشي.يادساتئ چه قيامت بې شکه اوشبهې راتلونکې دې اودقبرونو مړی به هغه قديرالله ﷻ ژوندې کولوسره رااوچتوی. هغه د عدم نه په وجودکښې په راوستلوباندې قادر دې او وی به. په سورت يس کښې هم دبعضو خلقو داعتراض ذکرکولوسره هغوی ته دهغوی ړومبي پيدائش وريادولوسره قائل کړی دی اودې سره د شنې ونې نه د اُور پيداکولو قلب ماهيت هم په دليل کښې پيش کړې دې. ([4]) نور آياتونه هم په دې باره کښې ډير دی.
**د الله ﷻ د ديدار مثال په دنيا کښې:**-حضرت لقيط بن عامر رضي الله عنه چه د ابورزين عقيلي په کنيت سره مشهور دې يوځل د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړوچه آيا مونږ خلق به ټول په ټول خپل رب تبارك وتعالى ليدلې شو؟ اود هغه په مخلوق کښې د دې ليدلو څه مثال شته؟ حضور ﷺ اوفرمائيل چه ولې تاسو ټول په ټول سپوږمئ ته نه ګورئ؟ مونږ وئيل او نو بيا الله ﷻ خو د لوئ شان خاوندې. بيائې عرض اوکړوچه حضور ﷺ دمړو ژوندی کولوهم څه مثال په دنياکښې شته؟جواب ملاوشو ولې پدې ځنګلو

---

[1] مسند ابي يعلى:۳۶۷۸.
[2] احمد:۸۹/۲.
[3] احمد:۲۱۷/۳-۲۱۸.
[4] ۳۶/يسين:۷۸-۸۰.

کښې تاسو نه تیرېږنې کوم چه غیرآباد او وران پراته وی خاورې الوزی اوچ او مړه کیږی بیا تاسو ګورئی چه هم هغه ټکړه تکه شنه اوقسم قسم ونونه شنه آباده په نوی ژوندسره پیداکیږی ښکلې کیږی دغه شان به الله ﷻ مړی راژوندی کوی او په مخلوق کښې هم کتلې شوی مثالونه د دې پوره نمونه اوثبوت موجود دی(۱) (ابوداؤد وغیره) حضرت معاذ بن جبل ﷺ فرمائی څوك چه د دې خبرې یقین اوساتی چه الله ﷻ حق دې اوقیامت خامخا بې شکه راتلونکې دې او الله ﷻ به مړی د قبرونو نه بیا راژوندی کوی هغه یقینی جنتی دې.

| | | |
|---|---|---|
| وَمِنَ النَّاسِ | مَنْ | يُّجَادِلُ |
| او خینی دخلقو نه | هغه څوك دی | چې جګړه کوی |
| اوپه خلقو کښې بعضې داسې هم شته | چې دالله ﷻ په باره کښې | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فِي اللّٰهِ | بِغَيْرِ عِلْمٍ | وَّلَا هُدًى | وَّلَا كِتٰبٍ مُّنِيْرٍ | ثَانِيَ |
| په باره دالله کښې | بغیر دعلم نه | او بغیر دهدایت نه | او بغیر دکتاب روښانه نه | تا وونکې وی |
| بې دڅه علم نه اوبې د څه دلیل نه اوبې د یوروښانه کتاب نه جګړې کوی |............ په تکبر سره | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عِطْفِهٖ | لِيُضِلَّ | عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ط | لَهٗ | فِي الدُّنْيَا |
| دډې خپلې لره | دپاره ددې چې بې لارې کړی خلق | د الله دلارې نه | دپاره دهغه | په دنیا کښې |
| څټ کږ څوی |.............. چې (خلق) دالله ﷻ دلارې نه ګمراه کړی | داسې بنده دپاره په دنیا کښې | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| خِزْيٌ | وَّنُذِيْقُهٗ | يَوْمَ الْقِيٰمَةِ | عَذَابَ الْحَرِيْقِ ۝ |
| شرمندګی ده | اواوبه څکوؤ مونږ هغه ته مزه | په ورځ دقیامت | دعذاب سوزونکی |
| هم رسوائی ده | او دقیامت په ورځ به مونږ دوئ ته د سوزونکی عذاب مزه اوڅکوو | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ذٰلِكَ | بِمَا | قَدَّمَتْ | يَدٰكَ | وَاَنَّ اللّٰهَ |
| دا عذاب | په سبب دهغې عمل دی | چې مخکښې لیږلې وو | لاسونو ستا | او بیشکه چې الله |
| دادهغه عملونو سزا ده | چې تا وړاندې لیږلی وو | اوالله ﷻ په خپلو بندګانو چرې هم | | |

| | | |
|---|---|---|
| لَيْسَ | بِظَلَّامٍ | لِّلْعَبِيْدِ ۝ |
| نه دی | ظلم کونکې | په بندګانو (خپلو) باندې |
| ظلم نه کوی | اوپه خلقو کښې بعضې هغه هم شته | |

**د جاهلانو مقلدانو حالت:** پورتنو آیاتونوکښې دګمراه جاهلانو تقلید کړل شوؤحال بیان شوې وودلته د هغوی دپیرانو مرشدانو ګمراهانو مبتدعینوحال بیانولې شی چه هغوی په بې عقلئی اوبې دلیلئی سره په صرف رائې قیاس او نفسانی خواهشاتوسره دالله ﷻ باره کښې کلام کوی دحق نه ډډه کوی په کبرسره سټ اړوی دحق قبلولونه بې پرواهئی سره انکارکوی. لکه څنګه چه فرعونیانودموسی ﷺ ښکاره معجزې کتلو سره هم انکار بې پروائی اوکړه او وئی نه منلې. بل آیت کښې دی کله چه هغوی ته د الله ﷻ د وحی د تابعدارئی د پاره اوونیلې شی اود رسول الله ﷺ فرمان طرف ته رابللې شی نوته

---

(۱) احمد:۴/۱۱، ابوداؤد بکتاب السنة باب فی الرؤیة:۴۷۳۱وسنده حسن، ابن ماجه:۱۸۰ مختصرًا.

خو به اوګورې اې رسول ﷺ دامنافقان تانه منع کیږي. په سورت منافقون کښې ارشاد اوشو چه کله دوی ته وئیلې کیږي چه راشئ د خپل ځان د پاره په رسول الله ﷺ باندې استغفاراوکړئ نوهغوی خپل سر راتاؤکړي او په غرور کښې راشي او بې نیازئ سره انکارکوي. (١)

حضرت لقمان ؑ خپل خوئ ته نصیحت کولوسره اوفرمائیل ﴿وَلَا تُصَعِّرْ خَدَّكَ لِلنَّاسِ وَلَا تَمْشِ فِي الْأَرْضِ مَرَحًا إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُورٍ﴾(٢) دخلقو نه خپل اننګی مه خوره وه یعنې خپل ځان لوئ ګنړلوسره کبر مه کوه. بل آیت کښې دی زمونږ آیاتونه اوریدو سره دکبر نه مخ اړوي(٣) د ﴿لِيُضِلَّ﴾ لام خو یالام عاقبت دې یالام تعلیل دې د دې د پاره اکثر د دې مقصد دنورو ګمراه کول نه وي اوممکن ده دې نه مراد معاند او انکارهم وي اوکیدې شي چه دامطلب وي چه مونږ هغوی دا داسې بداخلاقه په دې وجه سازکړل چه دوی د ګمراهانوسردار شي. د دوی د پاره په دنیاکښې هم ذلت اوخواري ده چه بدله ده د ده د تکبر. ده دلته کبر کولو اولوئ جوړیدل ئې غوښتل مونږ به دې نور هم ورو کې کړو. دلته به هم په خپله غوښتنه کښې ناکام او بې مراده به وي اوپه آخرت کښې به هم د دوزخ د اُور نوړنې وي.دابه د غصې او رټنې په توګه وئیلې کیږي چه دا ستاد عمل نتیجه ده د الله ﷻ ذات د ظلم نه پاك دې. لکه چه ارشاد دې فرښتو ته به وئیلې شي دې اونیسئ او په راښکو ئې دوزخ ته بوځئ اود ده په سریاندې د اُور په شان اوبه اوبهیوئ. واخله اوس د خپلې لوئې خپل عزت اود لوئې بدله واخله څه. هم دغه هغه څه دی چه په کوم سره په تول عمر کښې په شك شبه کښې پاتې وي(٤)حضرت حسن بصري ﷫ فرمائي ماته دا روایت راو رسیدو په یوه یوه ورځ به هغوی اویا اویا ځل په اُورکښې به اوسوزي او یقیني به شي بیابه ژوندي کولې شي او بیا به سوزولې شي.

| يَعْبُدُ اللَّهَ | مَنْ | وَمِنَ النَّاسِ |
|---|---|---|
| اچې بندګي کوي دالله | هغه څوك دی | اوځینې دخلقو نه |
| په غاړه (ولاړ) کوي | (دشک شبهې) | اوپه خلقو کښې بعضې هغه هم شته اچې دالله عبادت |

| وَإِنْ أَصَابَتْهُ | اطْمَأَنَّ بِهِ | خَيْرٌ | فَإِنْ أَصَابَهُ | عَلَىٰ حَرْفٍ |
|---|---|---|---|---|
| او که اورسیږي ده ته | نو مطمئن شي په هغې باند | فائده | نو که اورسیږي ده ته | په غاړه باند |
| او که چرې په څه مصیبت کښې | نو هغه ددې نه مطمئن شي | فائده اورسیږي | | (داسې کس ته) که چرې |

| ذَٰلِكَ | وَالْآخِرَةَ | خَسِرَ الدُّنْيَا | عَلَىٰ وَجْهِهِ | انْقَلَبَ | فِتْنَةٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| دادې | او په اخرت کښې | نقصاني شو دی په دنیا | په مخ خپل باند | نو واپس اوګرځي | مصیبت |
| کښې نقصان | | بیرته ګرځي انودهٔ په دنیا کښې او آخرت دواړو | (اودکفرطرفته) | نو مخ اوچت کړي | اخته شي |

| لَا يَضُرُّهُ | مَا | مِنْ دُونِ اللَّهِ | يَدْعُوا | الْمُبِينُ ۝ | هُوَ الْخُسْرَانُ |
|---|---|---|---|---|---|
| اچې نهٔ ضرر رسولې شي هغه ته | هغه څه | اماسوا دالله نه | رابلي هغه | ښکاره | هغه نقصان |
| اچې نه دهٔ ته نقصان | رابلي | سوا داسې (معبودان) | دوی دالله ﷻ نه | ښکاره نقصان دي | هم دا بیاموندو |

---

(١) ٦٣/المنافقون:٥.

(٢) ٣١/لقمان:١٨.

(٣) ٣١/لقمان:٧.

(٤) ٤٤/الدخان:٥٠.

وَمَا | لَا يَنْفَعُهٗ ؕ | ذٰلِكَ | هُوَ الضَّلٰلُ | الْبَعِيْدُ ﴿۱۲﴾ | يَدْعُوْا

او هغه څه | چې نهٔ نفع رسولې شي هغه ته | داده | هغه ګمراهي | لرې | عبادت کوي هغه

رسولې شي |اونه ورته نفع رسولې شي | هم دغه يوه لويه ګمراهي ده | هغه داسې (ددروغو معبود) بلې

لَمَنْ | ضَرُّهٗٓ | اَقْرَبُ | مِنْ نَّفْعِهٖ ؕ | لَبِئْسَ | الْمَوْلٰى

دهغه چا | چې نقصان دهغه | ډير نزدې دې | دفائدې دهغه نه | ډير بد دې | دا مددګار |

دکوم نقصان چې ددهٔ دنفعې نه زيات نزدې دې| ..............بې کاره مولی دي

وَلَبِئْسَ | الْعَشِيْرُ ﴿۱۳﴾

او ډير بد دې | دا ملګرې |

او داسې ملګرې بد ملګرې دي|

**قوله تعالی:-وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّعْبُدُ اللّٰهَ عَلٰى حَرْفٍ ۚ**

**د مفادپرستو اومنافقانو خلقو تذکره:**-دحرف معنی شك د([1])يوطرف ده لکه چه هغوی د دين په يوه غاړه باندې ولاړ دی که فائده ملاوشي نود خوشحالئی نه پلنيږی که نقصان اووينی نو تختي. په صحيح بخاری کښې د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روايت دې هجرت به ئی کولو مدينې ته رسيدل او بال بچ ئی پيدا شو اوپه خاروکښې برکت اوشونوائی چه دادين ډيرښه دې اوکه چرته اونه شی نوائی چه دادين خو ډير خراب دې.([2])

**دا ايت مبارک دچاباره کښې دې ؟**:-ابن ابی حاتم کښې هم دهغوی نه روايت دی چه بانډچيان به حضور ﷺ له راتلل اسلام به ئی قبلولو واپس به تلل نوچه کله به ئی د باران اوبه بيامونډلې په څناورو کور مال حال کښې برکت کتلونو په تسلئی سره به ئی وئيل ډير ښه دين دې اوکه چرې د دې خلاف به ئی کتل نو ډير زر به ئی وئيل چه په دې دين کښې خود نقصان نه بغيرهيڅ هم نشته په دې باندې دا آيت نازل شو. د عوفی رحمه الله په روايت د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه نقل دی چه داسې خلق هم وو چه مدينې ته به رسيدل دلته په راتلوبه هغه کره هلك يا د اوښې بچې اوشو اوهغوی به جوړشو نو خوشحاله به شو اود دې دين تعريفونه به ئی کول اوکه چرې به څه مصيبت راغلو اود مدينې هوا به برابر پرې رانغله په کور کښې جينئی پيداشوه د صدقې مال ورته حاصل نه شو نو په شيطانی وسوسه کښې به راتلل او صفا به ئی وئيل چه په دې دين کښې خو بس سختئ او سختی ده. ([3])

د عبدالرحمن رحمه الله بيان دې چه داحال د منافقانودې که دنياورته ملاوشي نو په دين خوشحاليږی اوچه کله ملاونه شوه ياڅه ازميښت راغلو نوزر څادر راکاږی او مرتداوکافرکيږی.([4])پوره بدنصيب دی دنيا اوآخرت دواړه تباه کوی د دې نه زياته بربادی به څه وی. دکومو خلقو بتانواو بزرګانونه چه دوی امداد غواړی چاته فريادونه کوی اوچاله خپل حاجتونه اوړی د چانه چه رزق غواړی هغوی خو صرف عاجز دی نفع نقصان خود هغوی په لاس کښې شته نه لويه ګمراهي هم دا ده. په دنياکښې هم د هغوی په عبادت سره د نفع نقصان نه وړاندې کيږی اوپه آخرت کښې چه به د هغوی نه کوم نقصان ملاويږی نو

---

[1] الطبری:۵۷۶/۱۸.

[2] صحيح بخاری کتاب التفسير سورة الحج باب (ومن الناس من يعبدالله علی حرف):۴۷۴۲.

[3] الطبری:۵۷۵/۱۸.

[4] الطبری:۵۷۶/۱۸.

دهغې به څه وائي. دابتان خود هغوی ډېر خراب وليان او ډېر خراب ملګري ثابتيږي. (۱) يادا مطلب چه داسې کونکی پخپله ډېر بدکار او ډېر زيات خراب دی. دا اولني تفسيرډېر ښه دي. والله اعلم.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِنَّ اللَّهَ | يُدْخِلُ | الَّذِينَ | ءَامَنُوا | |
| بيشکه الله | دا خلوی | هغه کسان | چې ايمان ئې راوړو | |
| بيشکه الله ﷻ به هغه خلق چې ايمان ئې راوړي دي | | | | |
| وَعَمِلُوا | الصَّٰلِحَٰتِ | جَنَّٰتٍ | تَجْرِي | مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَٰرُ |
| او عملونه ئې اوکړل | نيک نيک | داسې باغونو ته | چې بهيږي به | لاتد دهغې نه نهرونه |
| او نيک کارونه کوی داسې باغونو ته داخل کړی اچې لاندې به ترې ولې بهيږی | | | | |
| إِنَّ اللَّهَ يَفْعَلُ | مَا | يُرِيدُ | مَن | كَانَ يَظُنُّ |
| بيشکه الله کوی | هغه څه | چې غواړی ئې هغه | هغه څوک | چې ګمان لري |
| بيشکه الله چې څه غواړی هغه کوی \| څوک چې داخيال کوی چې الله ﷻ به دنيا | | | | |
| أَن لَّن يَنصُرَهُ اللَّهُ | فِي الدُّنْيَا | وَالْأَخِرَةِ | فَلْيَمْدُدْ | |
| چې هر ګز به امداداونه کړی دهغه سره الله په دنيا کښې \| او په آخرت کښې انو پکاردی چې اورسی | | | | |
| او آخرت کښې دخپل پيغمبر مدد نه کوی انو هغه له پکار دی چې يوه رسۍ تر آسمانه | | | | |
| بِسَبَبٍ | إِلَى السَّمَاءِ ثُمَّ | لْيَقْطَعْ | فَلْيَنظُرْ | هَلْ يُذْهِبَنَّ |
| په يوه ذريعه رسۍ سره \| آسمان ته | بيا | ادپريکړی (دغه رسۍ) | بيا داوګوری | چې آيا لرې کولې شي |
| پورې اوغزوی ابيا دې اوخيژی او، دوحی سلسله دې پرېکړی \| بيا دې اوګوری چې آيا دهغه دا طريقه | | | | |
| كَيْدُهُ | مَا يَغِيظُ | وَكَذَٰلِكَ | أَنزَلْنَٰهُ | ءَايَٰتٍ |
| تدبير ددهٔ \| هغه څيز لره | چې غصه کوی دې | او دارنګې | نازل کړی دې مونږ دا قران | ايتونه |
| هغه څيز ختمولی شي چې دې ئې په غصه کړی دې؟ \|او هم دغه شان مونږ دا (قران) د ښکاره ښنو په صورت | | | | |
| بَيِّنَٰتٍ | وَأَنَّ اللَّهَ | يَهْدِي | مَن | يُرِيدُ |
| واضحه | او بيشکه الله | هدايت کوی | هغه چاته | چې اراده اوکړی هغه |
| کښې نازل کړی دي \|او چاته چې الله اوغواړی هدايت ورته کوی | | | | |

**قوله تعالى:- إِنَّ اللَّهَ يُدْخِلُ الَّذِينَ ءَامَنُوا وَعَمِلُوا الصَّٰلِحَٰتِ**

دخرابو خلقوبيان سره دخو خلقوبيان کولې شي دچاپه زړونوکښې چه ديقين نوردې اود چا په اعمالو کښې دسنتو ظهوردې د نيکوخواهش منداود بدونه لرې دی دوی به په اوچتو محلونواو اعلى درجو کښې وی خکه چه دوی لارموندونکی دی اود هغوی نه سوا نورخلق بې لارې دی اوس چه څه غواړی کوی دې اوچه څه غواړی پريږدی دې.

---

(۱) الطبري:۱۸/۵۷۹.

د قرآن پاک احکام واضحه دي:-يعني کوم خلق چه دا واني چه الله ﷻ به د خپل نبي ﷺ امدادنه په دنيا کښې کوي اونه په آخرت کښې هغوی دې يقين اوکړي چه د هغوی داخيال صرف هم خيال دې د حضور ﷺ به امداد کولې شي دوی که په خپله غصه کښې مړه هم شي يا هغوی له پکاردي چه په خپل ورکښې رسئي زوړند کړي او خپل ځان پهانسي کړي اوخپل ځان هلاك کړي.(۱) ناممکن دی چه هغه خيزيعني دالله ﷻ امداد دهغه نبي ﷺ له رانه شي که دوی په سوزيدو سوزيدو مړه شي خود دوی دا خيالونه کول به غلط ثابتيږي.دامطلب هم کيدې شي چه ددوی دخيالونوخلاف به کيږي دالله ﷻ امداد به د آسمان نه نازليږي که د دوی په وس کښې وی نودوی دې يوه رسئي په آسمان کښې زوړندکړي او آسمان ته دې اوخيژي اود آسمان نه نازل شوې امداد دې بندکړي. خواولنئي معنی ډيره ظاهره ده اوپه دې کښې دهغوی پوره عاجزی او نامرادئی ثبوت دې چه الله ﷻ به خپل دين خپل کتاب او خپل نبي ﷺ ته ترقي ورکوی اودا خلق دا ليدلې نه شي په دې وجه دوی له پکاردی چه دوی مړه شي اوخپل ځان پخپله هلاك کړي.لکه چه ارشاد دی﴿اِنَّا لَنَنْصُرُ رُسُلَنَا وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَيَوْمَ يَقُوْمُ الْاَشْهَادُ﴾(۲)مونږ دخپلو رسولانو اوايمانداراتو امداد کوو په دنيا کښې هم اوپه آخرت کښې هم.دلته فرمائي چه دوی په پهانسئي کښې زوړند شي اودې ګوری چه د محمد ﷺ شان څنګه کمولې شي؟ د خپلې سينې اور څنګه مړکولې شي؟ داقرآن مونږ نازل کړې دې اود دې آياتونه د دې الفاظ د معنې په لحاظ سره ډير واضحه دی د الله ﷻ د طرف نه د هغه په بنديګانو باندې داحجت دې. هدايت او ګمراهي هم د الله ﷻ په لاس کښې دی اوهم هغه د دې حکمت پيژني هيڅ څوك د ده نه تپوس پوښتنه نه شي کولې هغه د ټولو حاکم دې هغه درحمتونووالا غلبه والې حکمت والا عظمت والا علم والا دې هيڅ څوك په هغه باندې مختار نشته چه څه غواړي کوی هغه د ټولونه حساب اخستونکې دې او هغه هم ډير زر.

| اِنَّ الَّذِيْنَ | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بيشکه هغه کسان | | | | | |
| ابيشکه کوم خلق چې | | | | | |
| اٰمَنُوْا | وَالَّذِيْنَ | هَادُوْا | وَالصَّابِئِيْنَ | وَالنَّصٰرٰى | |
| چې ايمان ئې راوړو | او هغه کسان | چې يهوديان شو | او صابيان | او نصارى | |
| مومنان دی | اوکوم چې | يهوديان دی | او صابيان | او عيسايان دی | |
| وَالْمَجُوْسَ | وَالَّذِيْنَ | اَشْرَكُوْٓا | اِنَّ اللّٰهَ | يَفْصِلُ | بَيْنَهُمْ |
| اومجوسيان | او هغه کسان | چې شرك ئې اوکړو | ابيشکه الله | افيصله به اوکړي | په منځ ددوئ کښې |
| اود اورعبادت ګذار دی | اوخوك چې مشرکان دی | الله ﷻ به دقيامت په ورځ | ددې ټولو په مينځ | | |
| يَوْمَ الْقِيٰمَةِ | اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدٌ | اَلَمْ تَرَ | اَنَّ اللّٰهَ | | |
| په ورځ دقيامت | ابيشکه الله په هر څيز باند | انظر لرونکې دې | آيا نه وينې ته | اچې بيشکه الله چې دې | |
| کښې فيصله اوکړي | الله ﷻ ته هر څيز ښکاره دې | آيا ته نه ګورې چې ټول الله ﷻ | | | |

(۱) الطبری:۱۸/۵۸۱، حاکم:۲/۳۸۶ مختصرًا.
(۲) ۴۰/غافر:۵۱.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَسْجُدُ | لَهٗ | مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ | وَمَنْ | فِي الْاَرْضِ | |
| سجده کوی هغه ته | هغه ټول | چې په آسمانونو کښې دی | او څوك چې | په زمکه کښې دی | |
| ته سجده (اطاعت) کوی اکوم مخلوقات چې په آسمانونو اوزمکه کښې دی | | | | | |
| وَالشَّمْسُ | وَالْقَمَرُ | وَالنُّجُوْمُ | وَالْجِبَالُ | وَالشَّجَرُ | وَالدَّوَآبُّ |
| او نمر | او سپوږمۍ | او ستوری | او غرونه | او ونې | او خناور |
| اونمر | او سپوږمۍ | اوستوری | اوغرونه | او ونې | او ځاروی |
| وَكَثِيْرٌ | مِّنَ النَّاسِ ؕ | وَكَثِيْرٌ | حَقَّ | عَلَيْهِ | الْعَذَابُ ؕ |
| او ډیر | دخلقو نه | او ډیر (هغه خلق هم) | چې ثابت شوې دې | په هغه باندې | عذاب |
| اوډیر انسانان هم سجده کوی| اوډیر په کښې داسې هم دی چې عذاب پرې ثابت شوې دې | | | | | |
| وَمَنْ يُّهِنِ اللّٰهُ | فَمَا لَهٗ | مِنْ | مُّكْرِمٍ ؕ | اِنَّ اللّٰهَ | |
| او هغه څوك چې ذلیله ئې کړی الله | نو نشته | هغه لره | څوك عزت ورکونکې | بیشکه الله | |
| اوڅوک چې الله ﷻ ذلیله کړی انو هغه له څوک عزت ورکونکې نشته | الله ﷻ | | | | | |
| يَفْعَلُ | مَا يَشَآءُ ؕ۩ | | | | |
| کوی هغه | چې غواړی هغه | | | | |
| چې څه غواړی نو هغه کوی | | | | | |

**قوله تعالى:-وَالصّٰبِئِيْنَ وَالنَّصٰرٰى**

د صابئینو بیان سره داختلاف د سورت بقره په تفسیرکښې تیرشوې دې دلته فرمائی چه د دې مختلف مذهبونووالافیصله به دقیامت په ورځ صفا شی.الله ﷻ به ایماندارانوله جنت ورکوی اوکافران به دوزخ ته اورسوی. د ټولوافعال او اقوال ظاهر او باطن الله ﷻ ته ښکاره دی.

**هریو څیز الله ﷻ ته سجده کوی:**-دعبادت مستحق هم هغه یووحده لا شریك له دې د هغه د عظمت په وړاندې هرڅیزسر ښکته کړې دې که په خوشحالئی وی که په خفګان دهرڅیز سجده په خپل طریقه ده. قرآن پاك د سوری ښی اوګس طرف ته کیدل هم د الله ﷻ په وړاندې سر په سجده کیدل آیت ﴿اَوَلَمْ يَرَوْا اِلٰى مَا خَلَقَ اللّٰهُ مِنْ شَيْءٍ يَّتَفَيَّؤُا ظِلٰلُهٗ عَنِ الْيَمِيْنِ وَالشَّمَآئِلِ سُجَّدًا لِّلّٰهِ وَهُمْ دٰخِرُوْنَ﴾[1] کښې بیان کړی دی.د آسمانونو فرښتې د زمکې ځاروی انسانان پیریان مرغئی خناوران ټول د هغه مخې ته سر په سجده دی او د هغه تسبیح اوحمد کوی. نمر سپوږمئی اوستوری هم هغه ته په سجده کښې پراته دی.دا دروېواړه څیزونه د دې د پاره جدابیان کړل چه بعضې خلق د دې عبادت کوی سره د دې چه هغوی د الله ﷻ په وړاندې ټیټ دی. د دې د پاره اوفرمائیلې شو چه نمر سپوږمئی ته سجدې مه کوئی هغه ته سجدې کوئی چه د دې خالق دې.بخاری اومسلم کښې رسول الله ﷺ دحضرت ابوذر ﷺ نه تپوس اوکړو پوهیږې چه دا نمر چرته ځی؟ هغه جواب ورکړو الله ﷻ ته اودهغه نبی ﷺ ته علم دې.حضور ﷺ اوفرمائیل دا دعرش لاندې ځی او الله ﷻ ته سجده کوی بیاد هغه نه اجازت غواړی څه وخت راروان دې هغه ته به یوه ورځ اوونیلې شی د کوم

---

[1] ۱۶/النحل:۴۸.

ځائ نه چه راغلې نې هم هلته واپس شم[1] سنن ابی داوٗد نسائی ابن ماجه او مسند احمد کښې د تندر په حدیث کښې دی نمر سپوږمئی دالله ﷻ مخلوق دې هغه دچا په مرګ یاپیداکیدوباندې تندرنه نیسی بلکه الله ﷻ چه په خپل مخلوق کښې په چا باندې تجلی اچوی نوهغه د هغه په وړاندې ټیټیږی.[2] ابو العالیه رحمه الله فرمائی چه نمر سپوږمئی اوټول ستوری ډوبیدوسره په سجده کښې ځی اودالله ﷻ نه اجازت غواړی اود ښی طرف ته ځی اوبیا خپل ځائ ته رسی. د غرونو او ونوسجده کول دهغوی سوری ښی او ګس طرف ته کیدل دی.یوسړی حضور ﷺ ته خپل یوخوب بیان کړو مااوکتل چه د یوې ونې شاته مونځ کوم زه چه کله سجدې ته لاړم نوهغه ونه هم سجدې ته لاړه اومااوریده چه هغې په خپله سجده کښې داوئیل ﴿اللهم اكتب لي بها عندك اجرا وضع عني بها وزرا واجعلها لي عندك ذخرا وتقبلها مني كما تقبلتها من عبدك داود﴾ یعنی اې الله د دې سجدې په وجه زماد پاره خپل ځان سره اجراوثواب اولیکه اوزما ګناه معاف کړه او زما د پاره دا د آخرت ذخیره کړه اودا قبوله کړه څنګه چه تا د خپل بنده داوٗد ﷺ سجده قبوله کړه. د حضرت ابن عباس رضی الله عنه بیان دې چه بیا مااوکتل یوه ورځ رسول الله ﷺ دسجدې آیت اولوستلو سجده نې اوکړه اوهم دادعائی په خپله سجده کښې اولوستله کومه چه ما اوریدله. (ترمذی وغیره)[3]

**ټول ځناور هم هغه ته سجده کوی.** دمسنداحمد په حدیث کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی د خپل څاروی شاخپل منبر مه جوړه وه ډیرې سورلئی دخپل سور نه ښه وی[4] اوزیات ذکرکونکی وی.اواکثر انسانان هم په خپله خوشحالئی سره د الله ﷻ عبادت په ځائ راوړی اوسجدې کوی اوهغه هم دی چه دې نه محروم دی کبرکوی سرکشی کوی.الله ﷻ چه څوك ذلیل کړی هغه څوك عزیزکولې شی؟ رب خودمختاره کارکونکې دې.

**د الله ﷻ د رضا او ارادې نه منکر ته د علی رضی الله عنه هدایت:-** ابن ابی حاتم کښې دی حضرت علی رضی الله عنه ته چا اووئیل دلته یوسړې دې چه د الله ﷻ ارادې او دهغه رضا نه منی. هغوی دې سړی ته اووئیل اې سړیه ته دا اوښایه چه ستا پیدائش الله ﷻ په خپله خوښه کړې دې که ستا؟ هغه وئیل خپله خوښه. دا هم اوښایه چه کله ته غواړې نو بیمار شې که الله ﷻ غواړی. هغه وئیل چه کله هغه غواړی. تپوس نې اوکړوچه بیا تاته شفا ستا په غوښتنه سره کیږی که دهغه په اراده سره؟ جواب نې ورکړو دالله ﷻ په اراده سره. ونې فرمائیل چه ښه ده دااوښایه چه اوس هغه چرته غواړی تابه بوځی که نه چرته ته غواړې؟ وئیل چه چرته هغه غواړی. ونې فرمائیل بیا څه خبره پاتې شوه؟ واوره که تاد دې خلاف جواب کولوتو ما به ستا سر پرې کړې وومسلم کښې دی حضور ﷺ فرمائی کله چه انسان د سجدې آیت لولی اوسجده کوی نوشیطان جداشی اوژاړی او وائی چه افسوس بنیادم ته د سجدې حکم شوې دې نو سجده کوی جنتی شو ما انکار اوکړو دوزخی جوړشوم[5]

**دسورت حج دوه سجدې:-** حضرت عقبه بن عامر رضی الله عنه یوځل دحضور ﷺ نه تپوس اوکړویارسول الله ﷺ سورت حج ته په ټولوسورتونو دافضیلت ملاوشو چه پدې کښې دسجدې دوه آیاتونه دی؟حضور ﷺ اوفرمائیل چه او اوکه څوك په دې دواړو باندې سجده اونه کړی نو هغه له پکار دی چه دا دې هډو لولی نه. (ترمذی وغیره)[6] امام ترمذی رحمه الله فرمائی چه داحدیث قوی نه دې خود امام صاحب داقول د غور قابل دې ځکه چه د دې راوی ابن لهیعه رحمه الله د خپل سماعت په دې کښې تصریح کړې ده او په دې

[1] صحیح بخاری کتاب بدء الخلق باب صفة الشمس والقمر:۳۱۹۹، صحیح مسلم ۱۵۹، السنن الکبری للنسائی:۱۱۱۷۶، ابن حبان:۶۱۵۳.
[2] احمد:۲۶۹/۴، ابن خزیمه:۱۴۰۴، نسائی کتاب الکسوف باب نمبر ۱۶، حدیث:۱۴۸۶، ابن ماجه: ۱۶۶۲، ابوداوٗد:۱۱۹۳ مختصرًا
[3] ترمذی کتاب الدعوات باب مایقول فی سجود القرآن:۳۴۲۴ وسنده حسن،ابن ماجه: ۱۰۵۳،ابن حبان:۲۷۶۸و حاکم:۲۱۹/۱.
[4] احمد:۴۴۱/۳.
[5] صحیح مسلم کتاب الایمان باب بیان اطلاق اسم الکفر علی من ترك الصلاة:۸۱، ابن ماجه، ۱۰۵۲، احمد:۴۴۳/۲، ابن حبان : ۲۷۵۹.
[6] ابوداوٗد کتاب سجود القرآن باب تفریع ابواب السجود کم سجدة فی القرآن:۱۴۰۲، وسنده حسن، ترمذی:۵۷۸، احمد:۱۵۱/۴

دې خکه چه د دې راوی ابن لهیعه رحمه الله د خپل سماعت په دې کښې تصریح کړې ده او په دې باندې نی ډیره جرح تدلیس کړې ده چه دې سره اوچتیږي. په ابوداؤدکښې د رسول الله ﷺ ارشاد دې سورت حج ته په قرآن پاك کښې په نورو سورتونو باندې فضیلت ورکړې شوې دې په دې کښې دوه سجدې دی.[1] امام ابوداؤدفرمانی چه په دې سندسره خوداحدیث مستندنه دې خوبه بل سندسره دا مستندهم بیان کړې شوې دې خوصحیح نه دې.روایت دې چه عمر رضی الله عنه حدیبیه کښې د دې سورت تلاوت اوکړو اودوه ځل نی سجده اوکړه او وئی فرمائیل دې ته د دې دوو سجدو فضیلت ورکړې شوې دې.(ابوبکر بن عدی) عمرو بن عاص رضی الله عنه ته رسول الله ﷺ په ټول قرآن کښې پنځه سجدې اولوستلې درې په سورت مفصل کښې دوه سورت حج کښې ([2]) نودا روایتونو دا خبره پوره شان سره مضبوطوی.

| هٰذٰنِ | خَصۡمٰنِ | اخۡتَصَمُوۡا |
|---|---|---|
| دا دوه ډلې دی | جګړه کونکی | چې جګړه ني اوکړه |
| ادا دواړه ډلې دی اچې د خپل رب په باره کښې | | |

| فِیۡ رَبِّهِمۡ | فَالَّذِیۡنَ | کَفَرُوۡا | قُطِّعَتۡ | لَهُمۡ |
|---|---|---|---|---|
| په باره درب خپل کښې | نو هغه کسان | چې کفر ني اوکړو | پریکړې شوی دی | دهغوئ دپاره |
| جګړه کوی | نو څوک چې کافران دی | هغوئ دپاره به داور جامې | | |

| ثِیَابٌ مِّنۡ نَّارٍ | یُصَبُّ | مِنۡ فَوۡقِ | رُءُوۡسِهِمُ | الۡحَمِیۡمُ | یُصۡهَرُ |
|---|---|---|---|---|---|
| جامې داور نه | اچولې کیږی به | دپاسه | دسرونو دهغوئ | اوبۀ یشیدلې | چې ویلې کیږی به |
| کټ کړې شی | د سرونو دپاسه په پرې (ختکیدلې) تودې اوبه واچولې شی | په هغې سره به | | | |

| بِهٖ | مَا | فِیۡ بُطُوۡنِهِمۡ | وَالۡجُلُوۡدُ | وَلَهُمۡ |
|---|---|---|---|---|
| په هغې سره | هغه څه | چې په ګیډو دهغوئ کښې وی | او څرمنې هم | اووی به دپاره دهغوئ |
| ددوئ دخیټې دننه کولمې اوددوئ څرمنې ویلې کیږی ......................او د دوئ د وهلو دپاره | | | | |

| مَّقَامِعُ | مِنۡ حَدِیۡدٍ | کُلَّمَاۤ | اَرَادُوۡۤا | اَنۡ یَّخۡرُجُوۡا | مِنۡهَا | مِنۡ غَمٍّ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ګرزونه | داوسپنې | هر کله چې | اراده اوکړه هغوئ | چې وځی | د(دوزخ) نه | دغم نه |
| په ورته داوسپنې ګرزونه پراته وی | کله چې ترې د غم د وجې بهرته وتل غواړی | .............نو بیا | | | | |

| اُعِیۡدُوۡا | فِیۡهَا | وَذُوۡقُوۡا | عَذَابَ الۡحَرِیۡقِ |
|---|---|---|---|
| نو واپس به وردیکه کړې شی | په هغې کښې | چې اوڅکئ مزه | دعذاب دسوزیدو |
| په ورواپس کولې شی | او ورته به اووئیلې شی چې دسوزیدو عذاب اوڅکئ | | |

**قوله تعالی:- هٰذٰنِ خَصۡمٰنِ**

**د مؤمن اوکافراختلاف:-** حضرت ابوذر رضی الله عنه قسم خوړلوسره فرمائیل چه دا آیت د حضرت حمزه رضی الله عنه اود هغه په مقابله کښې چه کوم کافران په بدرکښې راغلې ووعتبه اودهغه ددوملګرویاره کښې نازل

[1]) المراسيل لابن داؤد:۷۸.

[2]) ابوداؤد كتاب سجود القرآن باب تفريع ابواب السجود كم سجدة فى القرآن:۱۴۰۱، ابن ماجه:۱۰۵۷، حاكم:۲۲۳/۱.

شوي دي (۱)صحيح بخاري كښې دي چه حضرت علي ؓ بن ابي طالب فرمائي دقيامت په ورځ به زه د
ړلونه اول د الله ﷻ په وړاندې د خپل حجت ثابتولود پاره په زنګونونو باندې پريوځم.

د(خَصْمٰنِ) نه مراد څوك دي؟:-حضرت قيس ؒ فرمائي چه هم د دوی باره كښې دا آيت نازل شوې دې د
بدر په ورځ داخلق د يوبل مقابلې له راغلي وو علي حمزه اوعبيده ؓ اوشيبه عتبه او وليد(۲) يوبل
قول دې چه دې نه مرادمسلمانان اواهل كتاب دي.اهل كتابوبه ونيل زمونږ نبي اوزمونږ كتاب ستاسو
د نبي اوستاسو د كتاب نه اول دې په دې وجه مونږ الله ﷻ سره په دې نسبت ستاسو نه زيات نيزدې يو
او مسلمانانو به ونيل چه زمونږ كتاب ستاسود كتاب فيصله كوی اوزمونږ نبي خاتم الانبياء دې په دې
وجه ستاسو نه اولي دې نو الله ﷻ اسلام غالب كړاودا آيت نازل شو. قتاده ؒ فرمائي چه دې نه
مراد صداقت او تكذيب والا دی. مجاهد ؒ فرمائي په دې آيت كښې د مؤمن اوكافر مثال دې چه په
قيامت كښې اختلاف وو. عكرمه ؒ فرمائي مراد ترې د جنت اودوزخ قول دې.د دوزخ سوال وو چه
ما د سزا ځيز جوړكړه اودجنت خواهش وو چه ما د رحمت ځاځ جوړكړه. د مجاهد ؒ قول دې ټولو
اقوالوته شامل دې اود بدر واقعه هم په دې ضمن كښې راتلې شي. مؤمنانو د الله ﷻ د دين غلبه
غوښتله اوكافرانود ايمان د نورختمولوحق ښكته كول او باطل ښكاره كولو په فكركښې وو.

ابن جرير ؒ هم دامختار ګڼړی اودا ډيرښه هم دې اودې نه پس هم دې د كافرانود پاره د اورټكرې جدا
جدامقرركړې شوې دی.دابه دتانبې په شكل كښې وی چه ډيرګرمانش رسوی(۳)بيابه په دپاسه د ګرمو
اوبوترلي شوې داره اچولې شي په كوم سره چه به ئې كولمې او چربې ويلې شي اوځرمن به ئې اوسوزی
پريوبه ځی. په ترمذی كښې دی چه د اور په شان په دې ګرمو اوبوسره به ئې كولمې وغيره د خيټې نه
اوځی په پښوباندې به ئې راپريوځی. بيا چه څنګه وې هم هغه شان به شي اوبيابه دغه شان كيږی. (۴)

داوور سټك به څومره وی؟:-عبدالله بن سرى ؒ فرمائي فرښته به دا ډولچه دكړو نه نيسی راوړی به
ئې دهغه په خُله كښې به ئې اچوی.دې به ويريږی مخ به اړوی نوفرښته به دې په تندی باندې د او
سپنې په سټك وهی په دې سره به د هغه سر اوشليږی هم دهغه ځاځ نه به دا داورګرمې اوبه وراچولې
شي چه نيغې به خيټې ته وررسی.رسول الله ﷺ فرمائي په دې سټكانو په كومو سره چه به دوزخيان
ټكولې شي كه يويه زمكه باندې راوړلې شي اوكيخودې شي نوټول انسانان او پيريان چه يوځاځ شي
هغه به اوچت نه كړې شي.(۵) (مسند) حضورﷺ فرمائي كه په هغې باندې يولوځ غر اووهلې شي نوهغه
به ذره ذره شي.دوزخيان به په دې ټكړې ټكړې شي او چه څنګه وی هم هغه شان به كولې شي. كه چرې
غساق چه ددوزخيانوخوراك دې يوه لوټه په دنياكښې اوبهيولې شي نود دنياټول خلق به د بدبوئې نه
هلاك شي(۶) (مسنداحمد).

ابن عباس ؓ فرمائي چه د دې په لګيدوسره به د بدن يويواندام جدا جداشي اود چغو صورو شور به
جوړشي(۷)كله چه دهغه ځاځ نه وتل غواړی هم هغه ځاځ ته به واپس كولې شي.حضرت سلمان ؓ
فرمائي ددوزخ اورسخت تور او تيارې والا دې ددې شغلې هم روښانه نه دی اونه د دې انګارد رڼرا والا

---

۱) صحيح بخاری كتاب التفسيرسورة الحج باب قوله (هذن خصمن اختصموا فى ربهم):٤٧٤٣، صحيح مسلم:٣٠٣٣، ابن ماجه:٢٨٣٥.
۲) صحيح بخاری كتاب التفسير سورة الحج:٤٧٤٤، ابن ابی شيبه:٤٥٧/٥.
۳) الطبرى:٨٩٠/١٨.
۴) ترمذی كتاب صفة جهنم باب ماجاء فى صفة شراب اهل النار:٢٥٨٢وسنده حسن، حاكم:٣٨٧/٢، حلية الاولياء: ١٨٢/٨
۵) احمد:٢٩/٣مسندابى يعلى:١٣٨٨، حاكم:٦٠٠/٤.
۶) احمد:٨٣/٣ حديث مسندابى يعلى:١٣٧٧.
۷) الطبرى:٥٩٣/١٨.

دې. بیاهغوی هم ددې ایت تلاوت اوکړو.(۱)

د حضرت زید رحمه الله قول دې دوزخیان به په دې کښې ساهم نه شی اخستې. حضرت فضیل بن عیاض رحمه الله فرمائی والله د دې نه د خلاصیدو به څه آسرا هم نه وی په پښوکښې به درنې بیړنی وی په لاسونوکښې مضبوطې هتکړنی وی د أور شغلې به هغه دومره اوچتوی لکه چه بهر به اوخی خوبیابه هم د فرښتود لاس نه ګرز خوری او بیخ ته به رسی. دوی ته به وئیلې کیږی چه اوس د سوزیدو مزه اوڅکئی لکه چه ارشاددې دوی ته به وئیلې شی ددې أور عذاب اوزغمئی کوم چه تاسو ترننه پورې دروغ ګنړلو. (۲) په ژبه هم اوپه خپلوعملونوسره هم.

إِنَّ اللَّهَ يُدْخِلُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جَنَّاتٍ

بیشکه الله به داخل کړی | هغه کسان | چی ایمان ئې راوړو | او عملونه ئې اوکړل نیك | داسې جنتونو نه

الله ﷻ به هغه کسان چې ایماندار دی اود نیکئ کارونه کوی داسې باغونو ته داخل

تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ يُحَلَّوْنَ فِيهَا مِنْ أَسَاوِرَ

چی بهیږی به | لاند دهغې نه | نهرونه | وابه چولې شی هغوئ ته | په هغې کښې | بنګړی

کړی | چې دهغې لاندې به نهرونه بهیږی | هلته به ورته دسرو زرو

مِنْ ذَهَبٍ وَلُؤْلُؤًا ۖ وَلِبَاسُهُمْ فِيهَا حَرِيرٌ ۝ وَهُدُوا

دسروزرو | او ملغلرې | او جامې دهغوئ به | په هغې کښې | دریښموی | او هدایت اوکړې شو هغوئ ته

بنګړی اوملغلرې اچولې شی | اوهلته به دهغوئ جامې د ریښمو وی | او (داځکه چې په دنیا کښې)

إِلَى الطَّيِّبِ مِنَ الْقَوْلِ ۚ وَهُدُوا إِلَىٰ صِرَاطِ الْحَمِيدِ ۝

پاکې ته | دخبرې نه (پاکې قبلولوته) | او اوښودلې شوه هغوئ ته | لاره | دستائیلی شوی الله

دوئ ته دپاکیزه خبرې هدایت شوې وو | او د ستائیلې شوی (الله ﷻ) لار ورته خودلې شوې وه

**قوله تعالى:- إِنَّ اللَّهَ يُدْخِلُ الَّذِينَ آمَنُوا**

**په جنتیانوباند انعامونه:-** پورته ددوزخیانواودهغوی دسزاګانو دهغوی دطوقاوزنځیرونه دهغوی سوزیدل دهغوی د أوردلباس ذکر کولوسره اوس دجنت اود هغې دنعمتونو اود هغه ځائ د اوسیدونکو حال بیانوی. الله ﷻ دې مونږ دخپلوسزاګانونه بچ کړی او بدلې دې راکړی. آمین. فرمائی چه د ایمان او نیک عمل په بدله کښې به جنت ملاویږی د کوم ځائ محلونه اوباغونه څلورو وارو طرفو نه داویو نهرونه چپې وهی چرته چه غوارې هم°هلته به پخپله دهغوی مخ کیږی د سرو زروپه کالویاندې به ښائسته کړې شوی وی د مرغلرو نه به ډك وی. په متفق علیه حدیث کښې دی د مؤمن کالی به هغه ځائ پورې رسی د کوم ځائ پورې چه د اودس اوبه رسی.(۳)کعب احبار رحمه الله فرمائی په جنت کښې یوه فرښته ده د کومې نوم چه هم ماته معلوم دې هغه د خپل پیدائش نه د مؤمنانود پاره کالی جوړوی اود قیامت د ورځې پورې به ئې جوړوی. که ددې نه یوبنګړې هم دنیاته راښکاره کړې شی نود نمر رڼا به داسې لاړه

(۱) حاکم:۲/۳۸۷.

(۲) ۳۲/السجده: ۲۰.

(۳) صحیح بخاری کتاب اللباس باب نقض الصور:۵۹۵۲، صحیح مسلم: ۲۵۰.

شي ځنګه چه دهغه دراوتلوسره د سپوږمئي نه خي.ددوزخيانو دلباس ذکرپورته تيرشودلته د جنتيانود لباس ذکرکولې شي هغوی به نرمې ورقيدلې ريښمنې کپړې اغوستې وی لکه چه ځنګه په سورت دهر کښې دي چه د هغوی لباس به د ښنو ريښمو وی د سپينوزرو بنګرې به وي اود شراب طهور د جام د پاسه جام به څکی. دا د ستاسو بدله دا دې ستاسو د کوششونونتيجه. (۱)صحيح حديث کښې دي ريښم تاسو مه اغوندئی ځوك چه دا په دنياکښې واچوی هغه به د آخرت په ورځ د دې نه محروم وی(۲) حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه فرمائی ځوك چه په دې ورځ د ريښمي لباس نه محروم شو هغه به جنت ته نه ځی ځکه چه د جنت والا دا لباس دی(۳) هغوی ته پاکه خبره اوخودلې شوه لکه چه ارشاددی ﴿ وَتَحِيَّتُهُمْ فِيْهَا سَلٰمٌ وَاٰخِرُ دَعْوٰىهُمْ اَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴾ (۴) ايمانداريه حکم د الله ﷻ به جنت ته ځی کوم ځائ کښې چه به د هغوی تحفه په خپل مينځ کښې سلام وی. يوبل آيت کښې دی په هره يوه دروازه به فرښتې هغه له راځی اوسلام به ورته کوی وائی به ستاد صبرکولو څه ښه انجام اوشو. (۵)

يوبل ځائ کښې ارشاددي ﴿لَا يَسْمَعُوْنَ فِيْهَا لَغْوًا وَّلَا تَاْثِيْمًا اِلَّا قِيْلًا سَلٰمًا سَلٰمًا﴾(۶) هلته به څه فضول خبره اود غم خبره نه اوری بغيردسلام اوسلامتيانه.نوهغوی ته هغه کورورکړې شوچرته چه دزړه خوشحالولو آوازونه اوهم سلام اوسلام اوری. لکه چه ارشاد دې هلته به هم د مبارك سلامت آوازونه راځی په خلاف د دوزخ چه هروخت به غصې اورتنې اوری اوتوکلې به شی. او بې عزته کولې به شی چه داسې عذابونه برداشت کړئې وغيره.اوهغوی ته به هغه ځائ ورکولې شی چه خوشحاله خوشحاله به شی اوپه ناځاپی به د ژبونه د الله ﷻ حمداو ثنا اداکيږی ځکه چه بې شميره او بې مثاله رحمتونه به وی.

په صحيح حديث کښې دي چه ځنګه بې ارادې اوبې تکليفه ساه خی راځی دغه شان به جنتيانوته تسبيح اوحمدالهام کيږی(۷)دبعضې مفسيرينو قول دې چه دطيب کلام نه مرادقرآن کريم دې او﴿لااله الا الله﴾ دې د حديث شريف نور دوا ذکرونه دی اود صراط حميد نه مراد اسلامی لار ده. دا تفسيرهم د اولنی تفسيرخلاف نه دې. والله اعلم.

| إِنَّ الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | وَيَصُدُّوْنَ | عَنْ سَبِيْلِ اللهِ | وَالْمَسْجِدِ |
|---|---|---|---|---|
| بيشکه هغه کسان | چې کفر ئې اوکړو | او منع کوی خلق | دلارې دالله نه | و دمسجد |
| بيشکه هغه خلق چې کومو کفر کړې دی او چې خلق د الله ﷻ دلارې نه او مسجد | | | | |

| الْحَرَامِ | الَّذِيْ | جَعَلْنٰهُ | لِلنَّاسِ | سَوَآءَ |
|---|---|---|---|---|
| حرام نه | هغه (مسجدحرام) | چې جوړ کړې دې مونږ هغه | دپاره دخلقو | برابر حقونه |
| حرام نه منع کوی کوم چې مونږ دټولو دپاره مقررکړې دې چې په هغې کښې | | | | |

---

(۱) ۷۶/الدهر:۲۱-۲۲.

(۲) صحيح بخاری کتاب اللباس باب لبس الحرير للرجال وقدر مايجوز منه:۵۸۳، ۵۸۳۴، صحيح مسلم۲۰۶۹،السنن الکبری :۹۵۸۴.

(۳) احمد:۱/۳۷وسنده صحيح واصله عندالبخاری:۵۸۳۷ومسلم:۲۰۶۹.

(۴) ۱۴/ابراهيم:۲۳.

(۵) ۱۳/الرعد:۲۳-۲۴.

(۶) ۵۶/الواقعة:۲۵-۲۶.

(۷) صحيح مسلم کتاب الجنة باب فی صفات الجنة واهلها....۲۸۳۵.

| الْعَاكِفُ | فِيهِ | وَالْبَادِ | وَمَنْ | يُرِدْ |
|---|---|---|---|---|
| دمقامي خلقو \| په هغې کښې \| او دبهر نه دراتلو نکو خلقو \| او هغه څوك \| چې اراده لرى | | | | |
| کښې اوسيدونکي (کوربه) اود بهر نه راتلونکي (مسافر) يو برابر دى \| او څوک چې | | | | |

| فِيهِ | بِإِلْحَادٍ | بِظُلْمٍ | نُّذِقْهُ |
|---|---|---|---|
| په دې مسجدحرام کښې \| دحق نه په مخ اړولو سره \| په ظلم سره \| مونږ به اوڅکوو هغه ته مزه | | | |
| په ظلم سره په دې ځائي کښې د گناه کولو اراده اوکړى \| نو مونږ به پرې دردناک | | | |

| مِنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ ﴿٢٥﴾ |
|---|
| دعذاب دردناك نه \| |
| عذاب اوڅکوو \| |

**قوله تعالى:-وَيَصُدُّونَ عَنْ سَبِيلِ اللّٰهِ**

**د مسجدالحرام څخه بندول لويه گناه ده:-** الله ﷻ دکافرانو د دې فعل ترديد کوى چه هغوى به مسلمانان د مسجد الحرام نه بندول هغوى به ئې دحج احکام کولونه منع کول سره ددې چه د اولياءالله دعوى به ئې کوله.حالانکه اولياء الله هغه دى د چا په زړونوکښې چه د الله ﷻ ويره وى. دې نه معلوميږى چه دا ذکرد مدينې دې لکه دسورت بقره آيت ﴿يَسْئَلُونَكَ عَنِ الشَّهْرِ الْحَرَامِ قِتَالٍ فِيهِ ۖ قُلْ قِتَالٌ فِيهِ كَبِيرٌ ۖ وَصَدٌّ عَنْ سَبِيلِ اللّٰهِ وَكُفْرٌ بِهِ وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَإِخْرَاجُ أَهْلِهِ مِنْهُ أَكْبَرُ عِنْدَ اللّٰهِ ۚ وَالْفِتْنَةُ أَكْبَرُ مِنَ الْقَتْلِ ۗ وَلَا يَزَالُونَ يُقَاتِلُونَكُمْ حَتَّىٰ يَرُدُّوكُمْ عَنْ دِينِكُمْ إِنِ اسْتَطَاعُوا ۚ وَمَنْ يَرْتَدِدْ مِنْكُمْ عَنْ دِينِهِ فَيَمُتْ وَهُوَ كَافِرٌ فَأُولَٰئِكَ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ ۖ وَأُولَٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ ۖ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ﴾ (١) کښې دى دلته فرمائى چه سره دکفرنه بيا داهم فعل دې چه داالله ﷻدلارې نه اودمسجدالحرام نه مسلمانان بندوى چه په حقيقت کښې ددې اهل دى.هم داترتيب د دې آيت دې﴿الَّذِينَ آمَنُوا وَتَطْمَئِنُّ قُلُوبُهُمْ بِذِكْرِ اللّٰهِ ۗ أَلَا بِذِكْرِ اللّٰهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوبُ﴾(٢)دهغوى صفت دادې چه دهغوى زړه داالله ﷻپه ذکرسره مطمئن کيږى

**دمسجد حرام د زمکې په ملکيت کښې اختلاف:-**مسجد حرام چه الله ﷻ دټولود پاره يوشان د حرمت ځائ جوړکړې دې دمقيم يامسافرپه حقوقوکښې هيڅ کمې زياتې نه دې ايخودې اهل مکه هم په مسجد حرام کښې ديره کيدې شى اود بهرخلق هم.(٣)دهغه ځائ په منزلوکښې دهغه ځائ اوسيدونکى اود بهرنه راغلى خلق ټول يوشان حق لرى.پدې مسئله کښې امام شافعى رحمه الله امام اسحاق بن راهويه رحمه الله دامام احمدبن حنبل رحمه الله په موجودگئى کښې اختلاف اوکړو.امام شافعى رحمه الله خواووئيل چه د مکې حويلې په ملکيت کښې راوستلې شى په وراثت کښې تقسيم کيدې شى اوپه کرايه باندې هم ورکولې شى اودليل ئې داوړکړوچه اسامه بن زيد رضي الله عنه درسول الله ﷺ نه سوال اوکړوچه صبابه ته په مکه کښې هم خپل کورکښې کوزيږې؟نوحضور ﷺ جواب ورکړوچه عقيل زمونږ د پاره کومه حويلى پريخې ده؟ بيائې اوفرمائيل چه کافرد مسلمان وارث نه دې اونه مسلمان د کافر(٤)يوبل دليل دادې چه امير المومنين عمرفاروق رضي الله عنه دصفوان بن اميه رضي الله عنه کور په څلور زره درهم باندې واخستلو او هلته ئې جيل خانه جوړه کړې وه. طاؤس اوعمرو بن دينار رحمهما الله هم پدې مسئله کښې دامام صاحب ملگرتياکوى.امام اسحاق بن

---

(١) ٢/البقرة: ٢١٧.

(٢) ١٣/الرعد:٢٨.

(٣) الطبرى:٥٩٦/١٨.

(٤) صحيح بخارى کتاب المغازى باب اين رکزالنبى ﷺ الراية يوم الفتح:٤٢٨٢-٤٢٨٣، صحيح مسلم:١٣٥١،ابوداؤد:٢٩١٠،

راهويه رحمه الله ددې خلاف وائي چه هغه په وراثت کښې نه شي تقسيم کيدې اونه په کرايه ورکولې شي. په سلفو کښې يوه ډله هم دا وائي. دمجاهدرحمه الله او عطاء رحمه الله هم دا مسلك دې. ددې دليل د ابن ماجه داحديث دې چه علقمه بن نضله رحمه الله فرمائي دحضورﷺ په زمانه کښې اوصديقي اوفاروقي په خلافت کښې دمکې حويلئي به آزادې اوبې ملکيت وئيلې کيدې که ضرورت به وو نوپاتې به وې گڼې نورو خلقو ته به ئې د اوسيدو پاره ورکولې(۱)عبدالله بن عمر فرمائي نه خود مکې کورونه خرڅول جائز دى اونه ددې کرايه اخستل.عطاء رحمه الله به هم په حرم کښې کرايه اخستلونه منع کوله.عمر بن الخطاب رضی الله عنه به د مکې دکورونو دروازو کيخودو نه منع کوله ځکه چه په صحن کښې به حاجيان خلق اوسيدل.د تولونه اولنئي دروازه سهيل بن عمرو رضی الله عنه جوړه کړې وه عمر رضی الله عنه هم هغه وخت هغه ته د حاضريدلو حکم ورکړو.هغه راغلوونئي وئيل مامعاف کړئي زه سوداگرسړې يم مادضرورت مطابق دادروازې جوړې کړې دې دپاره چه زما څاروى زماپه وس کښې وى.هغوى اوفرمائيل ښه ده بيامونږ هم ستادپاره دا جائزساتو.په نورو رواياتو کښې فاروقي حکم په دې الفاظو سره نقل دې چه اې اهل مکه دخپلو کورونو دروازې مه ايږدئى دبهر خلق چه کوم ځائ غواړي حصار شي.عطاء رحمه الله فرمائي د ښاريو خلق او بهر وطن خلق په دې کښې برابردى چرته چه غواړى کوزيږى دې.عبدالله بن عمر رضی الله عنه فرمائي چه دمکې د کورونو کرايه خوړونکې په خپله خيټه کښې اورډکونکې دې.امام احمد رحمه الله ددې دواړو خبروپه مينځ کښې مسلك خوښ کړې دې.يعنى ملکيت او وراثت خو ئې جائزخودلې اوکرايې ته ئې ناجائزوئيلى دى ددې نه دليلونه جمع کيږى. والله اعلم.

**د حرم کورونه په کرايه ورکول او د دې په ملکيت کښې د راتلو حکم**

دامام ابوحنيفه رحمه الله مسلک دې چه دحرم مکې زمکه خرڅول دغه شان دهغې کورونه په کرايه ورکول جائزنه دى بلکه هرکس ته په هغې کښې استوگنې حق حاصل دې (تفسيرمظهرى۱۲/۱۹۰، ۱۹۱)

﴿بِإِلْحَادٍ﴾کښې "با"زائده ده لکه ﴿تَنبُتُ بِالدُّهْنِ﴾(۲)کښې داعشى په شعر﴿ضمنت برزق عيالنا ارماحنا﴾الخ کښې يعنى زمونږ دکورنئى رزق زمونږ په نيزوباندې موقوف دې. الخ د نوروشاعرانو په کلام کښې با په داسې موقعو باندې زائده راتلل استعمال شوى دى خود دې نه هم ښکلې خبره دا ده چه مونږ اووايوچه د دې ځائ فعل﴿يهم﴾معنى متضمن ده د دې د پاره چه با سره متعدى شوې ده. د الحاد نه مراد کبيره اوشرمناکه گناه ده.

د ﴿بِظُلْمٍ﴾ مطلب او تفسير :- ﴿بِظُلْمٍ﴾ نه مراد قصداً دې د تاويل په رو سره نه دى کيدل بله معنى د شرك د غيرالله عبادت کولوهم کړې ده(۳)داهم مطلب دې چه په حرم شريف کښې د الله ﷻ حرام کړې شوې کارونه حلال گڼړل لکه گناه بې ځايه قتل ظلم او ستم وغيره داسې خلق د سختو عذابونو لائق دى. ( ) مجاهدرحمه الله فرمائي څوك هم چه دلته خراب کاراوکړى دادحرم شريف خصوصيت دې چه غيروطنى خلق د څه بدکار اراده اوکړى نوهغوى ته سزاکيږى دې د پاره چه داسې نه کوى. ابن مسعود رضی الله عنه فرمائي چه که يوسړې په عدن کښې وى،او په حرم کښې د الحاد او ظلم اراده لرى نو بيابه هم الله ﷻ هغه ته د سخت عذاب مزه ورڅکى.شعبه رحمه الله فرمائي چه هغه خودا مرفوع بيان کړې ووخو زه دا مرفوع نه

---

(۱) ابن ماجه كتاب المناسك باب اجر بيوت مكة:۷:۳۱۰۷،
(۲) ۲۳/المؤمنون: ۲۰.
(۳) الطبرى:۱۸/۶۰۰.
(۴) الطبرى:۱۸/۶۰۰.

بیانوم([1]) د دې بل سند هم شته چه صحیح دی او موقوف کیدل په نسبت د مرفوع کیدلو زیات صحیح دی. عموماً دا قول هم دابن مسعودؓ نه نقل دی. والله اعلم. یو بل روایت کښې دی چه په چاباندې صرف دبدنی په اراده باندې بدی نه لیکلې کیږی خوکه دلرې نه یعنی په عدن کښې ناست وی او د دې ځائې دیوسړی دقتل اراده اوکړی نو اللهﷻ به هغه په سخت عذاب کښې راګیروی([2]) ①(حضرت مجاهد ؒ فرمائی چه په هغوی باندې دلته قسمونه خوړل هم په الحاد کښې داخل دی②سعیدبن جبیر ؒ فرمائی چه خپل نوکر ته دلته کنځلې کول هم الحاد کښې دی.③ د ابن عباس ؓ قول دې چه د مالداره سړی دلته راتلل او تجارت کول④ ابن عمر ؓ فرمائی په مکه کښې غله خرڅول⑤ حبیب بن ابوثابت ؒ فرمائی چه د ګران خرڅولو د پاره دلته غله حصارول. ابن ابی حاتم کښې هم د رسول الله ﷺ د فرمان نه هم دا نقل دی([3]) ابن عباس ؓ فرمائی چه دا آیت دعبدالله بن انیس باره کښې نازل شوې دې حضور ﷺ یو مهاجر او یو انصاری سره لیګلې وو نو یو خل هریو پخپل خپل نسب باندې فخر کولو هغه په غصه کښې راغلو او انصاری ئی قتل کړو او مکې ته اوتختیدو او اسلام دین نی پریخودو. نو مطلب به دا وی چه څوك الحاد اوکړی او په مکه کښې پناه واخلی. د دې آثارونه لګه چه معلومیږی دا ټول کارونه د الحاد نه دی خو په حقیقت کښې دا ټول د هغې نه زیات عام دی بلکه په دې کښې تنبیه ده چه د دې نه په لوئې څیز باندې هم د دې د پاره د هاتیانو والا د بیت الله د خرابولو اراده اوکړه نو الله ﷻ په هغوی باندې د مرغوسیلونه راولیګل کوم چه په هغوی باندې قوتکانړی راوغورزول او هغوی تباه کړل او د نورو د پاره ئی د عبرت نښې جوړ کړل. په حدیث کښې دی چه یو لښکر به د بیت الله د غزوې د پاره راځی کله چه هغه راورسی نو ټول په ټول به سره د اولینو او آخرینو ډوب کړې شی([4]) عبدالله بن عمر ؓ عبدالله بن زبیر ؓ ته فرمائیل ته دلته د الحاد کولو نه بچ شه ما د حضور ﷺ نه اوریدلی دی چه دلته به یو قریشی الحاد کوی که دهغه ګناه د ټولو انسانانو او پیریانوسره اوتللې شی نو بیا به هم هغه زیات شی ګوره خیال کوه ته هغه جوړنه شې([5])(مسند احمد) یو بل روایت کښې هم دادی چه دا نصیحت هغوی په حطیم کښې په ناستې سره کړې وو.([6])

| الْبَيْتِ | مَكَانَ | لِإِبْرَاهِيمَ | بَوَّأْنَا | وَإِذْ |
|---|---|---|---|---|
| ددې کور (کعبې) | ځائې | ابراهیم ته | اوښودو مونږ | اوکله چې |
| اوهرکله چې مونږ ابراهیم ؑ ته دبیت الله شریف (دجوړولو) ځائې په نښه کړو | | | | |

| لِلطَّائِفِينَ | بَيْتِيَ | وَطَهِّرْ | شَيْئًا | بِي | أَنْ لَا تُشْرِكْ |
|---|---|---|---|---|---|
| دپاره دطواف کونکو خلقو | کور زما | او پاك اوساته | هیڅ څیز | زما سره | چې مه شریکوه |
| (او حکم مو ورته اوکړو) چې ما سره هیڅ څیز مه شریکوه او زما کور د طواف کوونکو | | | | | |

[1] احمد:۱/۴۲۸ وسنده حسن، وصححه الحاکم:۲/۳۸۸، علی شرط مسلم ووالقه اللهی، مسندابی یعلی ۵۳۸٤،
[2] حاکم:۲/۳۸۸ وسنده حسن.
[3] ابوداؤدم کتاب المناسك باب تحریم مکة:۲۰۲۰،
[4] صحیح بخاری کتاب البیوع باب ماذکر فی الاسواق:۲۱۸۸، ابن حبان:۶۷۵۵.اخ.
[5] احمد:۲/۱۳۶ وسنده حسن، مجمع الزوائد:۳/۲۸۵.
[6] احمد:۲/۲۱۹ ح۷۰٤۳ وسنده حسن.

| فِي النَّاسِ | وَأَذِّنْ | السُّجُودِ ﴿۲۶﴾ | وَالرُّكَّعِ | وَالْقَآئِمِينَ |
|---|---|---|---|---|
| په خلقو کښې | او اعلان اوکړه | سجده کونکو خلقو | او رکوع کونکو | دپاره دقیام کونکو |

اوقیام کونکو او رکوع کونکو او سجده کونکو دپاره پاک کړه | ............ او په خلقو کښې د

| يَأْتِينَ | وَّعَلٰى كُلِّ ضَامِرٍ | رِجَالًا | يَأْتُوكَ | بِالْحَجِّ |
|---|---|---|---|---|
| چې راځی | او په هر اوښ باند سواره | پیاده | چې راشی تاته | په کولو دحج سره |

حج اعلان اوکړه | خلق به درته پیاده هم راځی |او په ټپوټپو اوښو باندې سوارۀ هم | چې په

| مِنْ كُلِّ فَجٍّ عَمِيقٍ ﴿۲۷﴾ |
|---|
| دهرې لارې زورې نه |

لویو اوږدو لارو به خان رارسوی |

قوله تعالى:-وَإِذْ بَوَّأْنَا لِإِبْرٰهِيمَ مَكَانَ الْبَيْتِ

**حضرت ابراهیم ﷺ اوبیت الله شریف:-** دلته مشرکانوته خبرداری ورکولې شی چه هغه کوردکوم بنیاد چه د اولې ورځ نه د الله ﷻ په توحید کیخودې شوې دې تاسو په دې کښې شرک روان کړو.ددې کور جوړونکې خلیل الله ﷺ دې دټولونه اول هم هغوی دا جوړکړو.دحضور ﷺنه ابوذر ؓ سوال اوکړو حضور ﷺدټولو نه اول کوم یوجمات جوړشوې دې؟ونې فرمانیل مسجد حرام ماونیل بیا؟ ونې فرمانیل بیت المقدس. ماونیل د دې دواړو په مینځ کښې څومره فاصله ده؟ ونې فرمانیل د څلویښتوکالو.[1] د الله ﷻ ارشاد دې ﴿إِنَّ أَوَّلَ بَيْتٍ وُضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِي بِبَكَّةَ مُبٰرَكًا وَّهُدًى لِّلْعٰلَمِينَ ۚ فِيهِ اٰيٰتٌ بَيِّنٰتٌ مَّقَامُ إِبْرٰهِيمَ ۚ وَمَنْ دَخَلَهٗ كَانَ اٰمِنًا ۗ وَلِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا ۚ وَمَنْ كَفَرَ فَإِنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ عَنِ الْعٰلَمِينَ ﴿﴾[2] یوبل آیت کښې دی چه مونږ دابراهیم ﷺ اواسماعیل ﷺ نه وعده واخسته چه زماکورپاك ساتئی.الخ[3]دبیت الله ذد جوړولو پوره ذکر مونږ اول لیکلې دې په دې وجه دلته د دوباره لیکلو ضرورت نشته. دلته اوفرمانیلې شو دا صرف زما په نوم باندې جوړکړه اودا پاك اوساته یعنی د شرك وغیره نه[4]اودا خاص کړنی صرف د هغوی دپاره څوك چه موحدان دی.طواف یو داسې عبادت دې چه بغیردبیت الله شریف نه په مخ د زمکه کښې نه شته اونه جائزدې.بیانی طواف سره مونځ یوځائ کړو دقیام رکوع اوسجدې ذکر ئی اوفرمانیلو ددې دپاره چه څنګه طواف د هغه سره مخصوص دې د مانځه قبله هم دا ده او په هغه حالت کښې چه انسان ته معلومه نه وی یاپه جهادکښې وی یا په سفرکښې نفل مونځ کوی بې شکه د قبلې طرف ته د مخ نه کیدلو په حالت کښې هم د هغه مونځ کیدې شی. والله اعلم.

**د ابراهیم علیه السلام ټولې دنیا ته د حج اواز:-** اودا حکم اوشو چه د دې کور د حج د پاره ټول انسانان راوبله.ذکردې چه هغه وخت هغوی عرض اوکړویاالله زماآوازبه دې ټولوته څنګه لورسی؟جواب ملاوشو ستا په ذمه صرف آواز کول دی آواز رسول زما په ذمه دی. نوهغوی په مقام ابراهیم باندې یا په صفا غونډئی باندې یاداابوقبیس په غرباندې اودریدو آواز ئی اوکړو اې خلقو ستاسو رب خپل یو کور جوړ کړوتاسو ددې حج اوکړئی.غرونه ټیټ شو اودهغوی آوازپه ټوله دنیاکښې راتاوشوتردې چه دپلارپه شا

[1] صحیح بخاری کتاب احادیث الانبیاء باب نمبر ۱۰ حدیث:۳۳۶٦، صحیح مسلم:۵۲۰، ابن ماجه:۷۵۳، احمد:۱۵۰/۵
[2] ۳/آل عمران۹٦-۹۷.
[3] ۲/البقرة:۱۲۵.
[4] الطبری:٦۰٤/۱۸.

کښې اودمورپه خیټه کښې چه کوم ووهغه هم خبر شو هرکانړې ونې اوهرسړې د کوم په قسمت کښې چه حج کول لیکلي وی په آوچت آوازسره ئې لبیك اوونیل دډیروسلفونه دا نقل دی. (۱) والله اعلم.
بیافرمانی چه پیدل خلق به هم راځی اوپه سورلو سواره به هم راځی. د دې نه بعضې حضراتواستدلال کړې دې چه د چا طاقت وی د هغه د پاره پیدل حج کول په سورلئی د حج کولونه غوره دې ځکه چه اول د پیدل والا ذکردې(۲)بیادسورلئی نود هغوی طرف ته زیاته توجه اوکړې شوه اودهغوی دهمت قدر دانی اوکړې شوه.ابن عباس ﷺ فرمائی زما داخواهش باقی پاتې شو چه افسوس ما پیدل حج کړې وې ځکه چه د الله ﷻ په فرمان کښې د پیدل والا ذکر دې. خود اکثرو بزرګانوقول دې چه په سورلئی باندې بهتر دې ځکه چه رسول الله ﷺ سره د طاقت اوقدرت پیدل حج نه دې کړې نو په سورلئی باندې حج کول د رسول الله ﷺ پوره اقتداء ده. بیافرمائی چه د لرې لرې نه به حج له راځی. دخلیل الله ﷺ دعا هم دا وه چه ﴿فَاجْعَلْ أَفْئِدَةً مِّنَ النَّاسِ تَهْوِي إِلَيْهِمْ وَارْزُقْهُم مِّنَ الثَّمَرَاتِ لَعَلَّهُمْ يَشْكُرُونَ﴾ (۳) د خلقو زړونه اې الله ﷻ ته د دې طرف ته متوجه کړې.نن اوګوره کوم یو مسلمان به وی چه دهغه زړه به دکعبې د زیارت شوق نه لرې اود چاپه زړه کښې به دطواف دخواهش بې قراری نه وی.(الله ﷻ دې مونږ ته رانصیب کړی آمین).

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لِّيَشْهَدُوا | مَنَافِعَ لَهُمْ | وَيَذْكُرُوا | اسْمَ اللَّهِ | |
| دپاره ددې چې حاضر شی | فائدو خپلو ته | او چې یاد کړی | نوم دالله | |
| دپاره ددې چې دلته خپلو فائدوته حاضر شی اوپه مقررو ورځو کښې | | | | |
| فِي أَيَّامٍ مَّعْلُومَاتٍ | عَلَىٰ مَا رَزَقَهُم | مِّن بَهِيمَةِ | الْأَنْعَامِ | |
| په ورځو معلومو کښې | په هغه څاروؤ باندې | چې ورکړی دی الله هغوئ ته | دخریدونکو څاروؤ نه | |
| دالله ﷻ نوم یاد کړی اپه هغو څاروؤ کوم چې ورته الله ﷻ ورکړی دی | | | | |
| فَكُلُوا | مِنْهَا | وَأَطْعِمُوا | الْبَائِسَ | الْفَقِيرَ ثُمَّ لْيَقْضُوا |
| پس خورئ په خپله هم | دهغې نه | اوخوروئ ئې | اپه تنګ دسته | افقیر باندې هم ابیا د لرې کړی هغوئ |
| نو تاسوترې پخپله هم خورئې او په بدحالو فقیرانو باندې هم خوروئې ابیا پکار دی | | | | |
| تَفَثَهُمْ | وَلْيُوفُوا | نُذُورَهُمْ | وَلْيَطَّوَّفُوا | بِالْبَيْتِ الْعَتِيقِ |
| خیری خپلې | او پوره دکړی | نذرونه خپل | او اوکړی طواف | دکور پخوانی |
| چې خلق خپلې خیرې لرې کړی اوخپل نذرونه پوره کړی اوپکار دی چې ددې زوړ کور طواف اوکړی | | | | |

قوله تعالی:- لِّيَشْهَدُوا مَنَافِعَ لَهُمْ
**بیت الله شریف ته دتللو دنیا فائدې**:-ددنیااوآخرت فائدې حاصلولوله راشئ دالله ﷻدرضاسره د دنیاوی مفادتجارت وغیره هم واخلئ(۴)لکه آیت ﴿لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَن تَبْتَغُوا فَضْلًا مِّن رَّبِّكُمْ ۚ فَإِذَا أَفَضْتُم مِّنْ عَرَفَاتٍ فَاذْكُرُوا اللَّهَ عِندَ الْمَشْعَرِ الْحَرَامِ ۖ وَاذْكُرُوهُ كَمَا هَدَاكُمْ وَإِن كُنتُم مِّن قَبْلِهِ لَمِنَ الضَّالِّينَ﴾(۵)دحج په موسم کښې تجارت کول منع

(۱) الطبری:۱۸/۶۰۵،حاکم:۲/۳۸۸.
(۲) الدرالمنثور:۶/۳۵.
(۳) ۱۴/ابراهیم:۳۷.
(۴) الطبری:۱۸/۶۰۹.
(۵) ۲/البقرة:۱۹۸.

نه دی دمقرره ورځونه مراددذی الحجه رومبې لس ورځې دی.دحضوراکرم ﷺ ارشاد دې چه دیوې ورځې عمل د الله ﷻ په نیزد دې ورځود عمل نه غوره نه دې. خلقو تپوس اوکړو جهادهم نه؟ وئې فرمائیل چه جهادهم نه بغیرد هغه مجاهد کوم چه د خپل مال اوځان د الله ﷻ په لارکښې ورکړې وی(۱)(صحیح بخاری)ماداحدیث ددې په ټولواسنادوسره یومستقل کتاب کښې جمع کړی دی. په یو روایت کښې دی چه د یوې ورځې عمل د الله ﷻ په نیزد دې ورځو نه لوئ او خوښ نه دې نوتاسو په دې لسوورځوکښې ﴿لااله الاالله﴾ او﴿الله اکبر﴾ او﴿الحمدلله﴾په کثرت سره لولئ(۲)هم ددې لسو ورځو قسم﴿ وَلَيَالٍ عَشْرٍ ۝﴾(۳)آیت کښې دې.بعضې سلف وائی﴿ وَأَتْمَمْنَاهَا بِعَشْرٍ فَتَمَّ مِيقَاتُ رَبِّهِ أَرْبَعِينَ لَيْلَةً ۚ وَقَالَ مُوسَىٰ لِأَخِيهِ هَارُونَ اخْلُفْنِي فِي قَوْمِي وَأَصْلِحْ وَلَا تَتَّبِعْ سَبِيلَ الْمُفْسِدِينَ ۝﴾(۴)نه مرادهم دغه لس ورځې دی.ابوداؤدکښې دی حضور ﷺ به په دغه ورځوکښې روژې ساتلې.(۵) بخاری شریف کښې دی ابن عمر رضی الله عنه او ابوهریره رضی الله عنه به په دې ورځوکښې بازار ته راتلو او تکبیرونه به ئې وئیل نود بازاروالا هم هغوی سره تکبیرونه وئیل(۶) هم په دې لسو ورځوکښې د عرفې ورځ ده. د کومې ورځې د روژې په نسبت چه د رسول الله ﷺ فرمان دې چه تیرشوو او راتلونکو دووکالو ګناه په دې سره معاف کیږی(۷) (صحیح مسلم) هم په دې لسو ورځوکښې د قربانئ ورځ یعنی بقرعیدورځ ده. د کوم نوم چه په اسلام کښې د حج اکبر ورځ ده. یوروایت کښې دی چه د ا لله تعالی په نیزدا د ټولوورځونه غوره ده. غرض دا چه په ټول کال کښې د داسې فضیلت ورځ نشته لکه چه په حدیث کښې دی دالس ورځې د رمضان المبارك د آخری لسو ورځونه هم غوره دی. ځکه چه مونځ روژه صدقه وغیره کوم چه هم د رمضان په دې آخری عشره کښې کیږی هغه ټول په دې ورځوکښې هم کیږی دې نه علاوه په دې ورځو کښې د حج فریضه هم اداکیږی. داهم وئیلې شوی دی چه د رمضان مبارك آخری لس ورځې بهتردی ځکه چه په دې کښې لیلة القدردې د زرو میاشتونه بهتر ده. دریم قول درمیانه دې چه ورځې خودا غوره دی اوشپې د رمضان آخری لسو ورځو غوره دی. د دې قول په منلوسره مختلف دلائلو کښې جمع کیږی. والله اعلم. ﴿أَيَّامٍ مَّعْلُومَاتٍ عَلَىٰ مَا رَزَقَهُم مِّن بَهِيمَةِ الْأَنْعَامِ ۖ فَكُلُوا مِنْهَا وَأَطْعِمُوا الْبَائِسَ الْفَقِيرَ ۝﴾(۸) په دریم تفسیرکښې یوقول دادې چه داد قربانئ ورځ اود دې نه پس درې ورځې دی.دحضرت ابن عمر رضی الله عنه اوابراهیم نخعی رحمه الله نه هم دانقل دی او په یوروایت سره د حضرت امام احمدبن حنبل رحمه الله مذهب هم دا دې. دریم قول دا دې چه د اختروړځ او دې نه پس دوه ورځې. اود ﴿أَيَّامًا مَّعْدُودَةً﴾ نه د اختر ورځ اود دې نه پس درې ورځې د دې اسناددعبدالله بن عمر رضی الله عنه پورې صحیح دی. سدی رحمه الله هم دا وائی د امام مالك رحمه الله هم دا مذهب دې. د دې اوددې نه وړاندې قول تائید د الله ﷻ فرمان﴿عَلَىٰ مَا رَزَقَهُم مِّن بَهِيمَةِ الْأَنْعَامِ ۖ فَكُلُوا مِنْهَا وَأَطْعِمُوا الْبَائِسَ الْفَقِيرَ﴾(۹) سره کیږی ځکه چه د دې نه مراد د ځاروو د قربانئ وخت کښې د الله ﷻ نوم اخستل. څلورم قول دادې چه دا د عرفې ورځ د اختر ورځ او

---

(۱) صحیح بخاری کتاب العیدین باب فضل العمل فی ایام التشریق:۹۶۹، ترمذی:۷۵۷، ابوداؤد:۲۴۳۸، ابن ماجه:۱۸۲۷

(۲) احمد:۷۵/۲ شعب الایمان:۳۷۵، مشکل الاثار:۲۹۷۱.

(۳) ۸۹/الفجر:۲.

(۴) ۷/الاعراف:۱۴۲.

(۵) ابوداؤد کتاب الصیام باب فی صوم العشر:۲۴۳۷ وسنده صحیح، نسائی:۲۴۲۰.

(۶) صحیح بخاری کتاب العیدین باب فضل العمل فی ایام التشریق قبل: رقم:۹۶۹ تعلیقا.

(۷) صحیح مسلم کتاب الصیام باب استحباب صیام ثلاثة ایام من کل شهر:۱۱۶۲، ابوداؤد:۲۴۲۵، ترمذی:۷۵۲، ابن ماجه:۱۷۳، ابن حبان:۳۶۳۲.

(۸) ۲۲/الحج:۲۷.

(۹) ۲۲/الحج:۲۷.

د دي نه پس یوه ورځ ده. د امام ابوحنيفه رحمه الله هم دا مذهب دی. دحضرت اسلم رحمه الله نه روايت دی چه مراد يوم عرفه يوم نحر او ايام تشريق دی.

**د قربانئ د وخت ابتداء او انتهاء**

**مسلک حنفي**:-د لويې اختر د نمر راختو نه واخله تر د ذوالحجې د دولسم تاريخ يعنى د اختر د دريمې ورځې د ماښام نمر پريوتو نه وړاندې پورې د قربانئ وخت دی د دې په مينځ کښې قرباني کيږی البته د لوئې اختر د صبا راختو نه پس به هغه کس قرباني نه کوی کوم چه په ښار کښې اوسيږی ترڅو چې د اختر مونځ نه وی شوی (د دولستو مياشتو فضائل او احکام (ص، ۲۴۲) بحواله د درمختار) ﴿بَهِيمَةُ الْأَنْعَامِ﴾ نه مراد اوښ غوا او چيلئ ده.لکه د سورت انعام آيت) ﴿ثَمَٰنِيَةَ أَزْوَٰجٍ ۖ مِّنَ ٱلضَّأْنِ ٱثْنَيْنِ وَمِنَ ٱلْمَعْزِ ٱثْنَيْنِ ۗ قُلْ ءَآلذَّكَرَيْنِ حَرَّمَ أَمِ ٱلْأُنثَيَيْنِ أَمَّا ٱشْتَمَلَتْ عَلَيْهِ أَرْحَامُ ٱلْأُنثَيَيْنِ ۖ نَبِّـُٔونِى بِعِلْمٍ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ﴾ (۱)کښې تفصيل موجود دی.

**د خپلې قربانئ نه غوښه خوړل جائز دی**:-بيافرمائی چه دا پخپله خورونی او په محتاجانو باندې خورنی. دې نه بعضې خلقو دليل اخستی دی چه د قربانئ غوښه خوړل واجب دی خوداقول غريب دی. داکثرو بزرګانو مذهب دی دا رخصت دی يا استحباب دی. په حديث شريف کښې دی حضور ﷺ چه کله د قربانئ حکم ورکړو چه د هر يواوښ د غوښې نه يوه ټکړه غوښه راوباسئ پخه ئی کړئ بيا حضور ﷺ هغه غوښه اوخوړله اوخوروانی اوڅکله. (۲) امام مالك رحمه الله فرمائی زه داخوښوم چه د قربانئ غوښه قربانی کونکې اوخوری څکه چه د الله ﷻ فرمان دی.ابراهيم رحمه الله فرمائی چه مشرکانوخلقو به د خپلې قربانئ غوښه نه خوړله د دې په خلاف مسلمانانوته د دې غوښې د خوړلو اجازت ورکړې شو اوس چه څوك غواړی خوری دې اوکه څوك نه غواړی نه دې خوری. دمجاهد اوحضرت عطاء رحمهما الله نه هم داسې نقل دی. مجاهد رحمه الله فرمائی دلته داحکم ﴿وَإِذَا حَلَلْتُمْ فَٱصْطَادُوا۟ ۚ وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَـَٔانُ قَوْمٍ أَن صَدُّوكُمْ عَنِ ٱلْمَسْجِدِ ٱلْحَرَامِ أَن تَعْتَدُوا۟ ۘ وَتَعَاوَنُوا۟ عَلَى ٱلْبِرِّ وَٱلتَّقْوَىٰ ۖ وَلَا تَعَاوَنُوا۟ عَلَى ٱلْإِثْمِ وَٱلْعُدْوَٰنِ ۚ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ ۖ إِنَّ ٱللَّهَ شَدِيدُ ٱلْعِقَابِ﴾ (۳) په شان دی يعنی چه کله تاسود احرام نه فارغ شئ نوښکار کوئی اوپه سورت جمعه کښې ارشاددی ﴿فَإِذَا قُضِيَتِ ٱلصَّلَوٰةُ فَٱنتَشِرُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ وَٱبْتَغُوا۟ مِن فَضْلِ ٱللَّهِ وَٱذْكُرُوا۟ ٱللَّهَ كَثِيرًا لَّعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾ (۴)کله چه مونځ ختم شی نو په زمکه کښې خواره شئ(۵) مطلب دادی چه په دواړو آياتونوکښې دښکار کولوحکم اوپه زمکه کښې خپل رزق لټولوداپاره دخوريدو خودا حکم واجب يا فرض نه دی دغه شان د خپلې قربانئ د غوښې خوړلو حکم هم ضروری اوواجب نه دی.امام ابن جرير رحمه الله هم داقول خوښوی. دبعضې خلقوداخيال دی چه د قربانئ غوښه دې دوه خائ کړی يوه حصه پخپله د قربانئ کونکی اودويمه حصه د فقيرانو محتاجانو. بعضې وائی چه درې حصې کول پکاردی يوه حصه خپله يوه حصه هديه ورکولوداپاره او يوه حصه د صدقه کولوداپاره د اول قول والا داپورتنئ آيت په سندکښې راوړی اوددويم قول والا ﴿وَأَطْعِمُوا۟ ٱلْقَانِعَ وَٱلْمُعْتَرَّ ۚ كَذَٰلِكَ سَخَّرْنَٰهَا لَكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ﴾ (۶) په دليل کښې پيش کوی ددې به پوره بيان راځی.ان شاء الله ﷻ.عکرمه رحمه الله فرمائی ﴿

---

(۱) ٦/الانعام:۱۴۳.
(۲) احمد:۱/۳۱۴.
(۳) ٥/المائدة:۲.
(۴) ٦۲/الجمعة:۱۰.
(۵) الطبری:۱۸/٦۱۱.
(٦) ۲۲/الحج:۳٦.

الْبَآئِسَ الْفَقِيْرَ ﴾نه مراد هغه بې وسه انسان دې چه سره دمحتاج کیدو هم هغه سوال نه بچ کیږي.(۱) مجاهد رحمه الله فرمائي چه څوك د سوال د پاره لاس نه شي خوروليې بيمار وی کم ليدونکې وی. (۲) بيا هغه احرام کولاوکړي سر اوخوروي کېږې واغوندي نوکونه پريکړي وغيره د حج احکام پوره کړي(۳) نذرونه پوره کوي (۴) د حج قرباني اوکړي او چه څه هم وی. نوچه کوم سړي د حج د پاره اووتلو د هغه په ذمه د بيت الله طواف صفامروه عرفات ميدان ته تلل د مزدلفه حاضري شيطانان ويشتل وغيره ټول هرڅه لازم دی. دا ټول احکام پوره کړئي او په صحيح توګه ئي په ځائ راوړئي اود بيت الله طواف اوکړئي کوم چه په يوم نحر باندې واجب دې.

**د حج آخري عمل طواف ، او حطيم په طواف کښې داخل دې:**-حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائي د حج آخری کار طواف دې او رسول الله ﷺ هم کړې دې کله چه حضور ﷺ په لسم ذی الحجه باندې منی ته واپس راغلو نود ټولونه وړاندې ئي شيطان په اوه کانړواوويشتل بيا قرباني اوکړه او بيائي سرمبارك اوخرولو بيا واپس راغلو بيت الله ته اود بيت الله طواف ئي اوکړو. د ابن عباس رضي الله عنه نه په بخاری اومسلم کښې روايت دې چه خلقو ته حکم شوې دې چه د هغوی آخری کاردې د بيت الله شريف طواف وی او دا ده چه حائضه ښځوله ئي آساني کړې ده.(۵)دبيت العتيق دلفظ نه استدلال کولوسره اوفرمائيلې شوچه طواف کونکوله حطيم شريف هم په خپل طواف کښې دننه اخستل پکاردی ځکه چه هغه هم د اصل بيت الله نه دې.دابراهيم عليه السلام په بنيادکښې دا داخل وو قريشو د نوي جوړولوپه وخت کښې دابهرپريخودې وو او د دې وجه هم د خرچ کمې وو نه چه څه بله وجه. پدې وجه حضور ﷺ دحطيم شريف نه شاته طواف کولو او فرمائيلې هم دی چه حطيم شريف په بيت الله کښې داخل دې او هغوی دواړه شامي ګوټونوله لاس نه دې وړلې اونه ئي ښکل کړي دی ځکه چه هغه د ابراهيم عليه السلام د بنياد مطابق نه دی. د دې آيت د نازليدونه پس حضور ﷺ د حطيم شريف نه شاته طواف اوکړو. اول داسې عمارت وو چه هم دننه وو په دې وجه دې ته زوړکور ونيلې شوې دې هم دغه د ټولونه ړومبې د الله ﷻ کوردې. (۶) يوه بله وجه داهم ده چه په طوفان نوح کښې داسلامت پاتې شو اوداهم وجه ده چه يوسرکش هم په دې غالب رانغللې شو دا د ټولو د لاس نه آزاددې چاهم چه دې سره خرابه اراده کړې هغه تباه شوې دې الله ﷻ دا د سرکشود تسلط نه آزاد کړې دې. په ترمذی کښې دغه شان يومرفوع حديث هم دې. (۷) چه حسن غريب دې او په يو روايت سره مرسلاً هم نقل دې.

| ذٰلِكَ ق | وَمَنْ يُّعَظِّمْ | حُرُمٰتِ اللّٰهِ | فَهُوَ | خَيْرٌ |
|---|---|---|---|---|
| دا وو (مقصد دکعبې دجوړولو) | او څوك چې عزت کوی | دحرمتونو دالله | نو دا کار | بهتر دې |
| داخبره اوشوه | او څوک چې دالله ﷻ د درنو حکمونو ادب کوی | | نو داکار د هغه دپاره د هغه د رب | |
| لَهٗ | عِنْدَ رَبِّهٖ ط | وَاُحِلَّتْ | لَكُمُ | الْاَنْعَامُ | اِلَّا مَا |

(۱) الطبری:۶۱۲/۱۸.
(۲) الطبری:۶۱۲/۱۸.
(۳) الطبری:۲۱۳/۱۸.
(۴) الطبری:۲۱٤/۱۸.
(۵) صحيح بخاری کتاب الحج باب طواف الوداع:۱۷۵۵، صحيح مسلم:۱۳۲۸، بيهقی:۱۶۱/۵.
(۶) الطبری:۶۱۵/۱۸.
(۷) ترمذی کتاب تفسيرالقرآن باب ومن سورت الحج:۳۱۷۰حاکم:۳۸۹/۲.

| |
|---|
| دپاره دهغه\|په نز درب دهغه \|او حلال کړې شو\|ستاسو دپاره\|څريدونکي څاروي\|ماسوا دهغه څيزونو |
| په نيز دير غوره دي\| ............ اوستاسو دپاره ټول څاروي حلال دي\| بغير دهغې نه چې دکومو |
| يُتْلٰى عَلَيْكُمْ فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْاَوْثَانِ وَاجْتَنِبُوْا |
| چې لوستلې شوي دي په تاسو باند\| نو ځان ساتئ\| دپليتۍ دبتانو نه \| او ځان ساتئ |
| (دحرمت احکام) چې په تاسو نه بيان کړې شي \| نو تاسو د بتانو دپليتئ نه ځان |
| قَوْلَ الزُّوْرِ ۙ حُنَفَآءَ لِلّٰهِ غَيْرَ مُشْرِكِيْنَ بِهٖ ؕ |
| دخبرې ددروغو نه \| يو مخيزى بندګان شئ دالله \| چې نه يئ شريك کونکي \| دهغه سره |
| ساتئ\|او ددروغو دخبرو نه ځان بچ کړئ\|دالله اړخ ته مائله اوسيږئ\|هغه سره څوک مه شريکوئ |
| وَمَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَكَاَنَّمَا خَرَّ مِنَ السَّمَآءِ فَتَخْطَفُهُ |
| او څوک چې شريك کوي\|دالله سره\|نو لکه چې\|راوغورزيدو هغه\|داسمان نه \|نواو تښتوي هغه لره |
| \| ............ اوڅوک چې د الله ﷻ سره (بل څه) شريکوي\|نو هغه داسې دي لکه چې داسمان نه |
| الطَّيْرُ اَوْ تَهْوِيْ بِهِ الرِّيْحُ فِيْ مَكَانٍ سَحِيْقٍ ۝ |
| مارغان \| يا او غورزوي \| هغه لره \| هوا \| په يو ځائي ژور کښي \| |
| راپريوتلو \| يا مارغانو په (فضا کښې) اوتښتولو\| |

**قوله تعالى:- وَمَنْ يُّعَظِّمْ حُرُمٰتِ اللّٰهِ**

**شعائرالله د ايمان دتقدس نخښې دي:-** خرمائي داخو وود حج احکام اوپه هغې چه کومه بدله ملاويدله د هغې بيان اوس واورئ چه کوم سړې د الله ﷻ د حرمات عزت اوکړي يعنى د ګناهونواوحرام کارونو نه بچ شي دهغې دکولونه خپل ځان منع کړي اودهغې نه تختي دهغوى دپاره الله ﷻ سره لوئ اجردې. څنګه چه دنيکويه کولوباندې اجر دې دغه شان د ګناهونو په پريخودلو هم ثواب دې. مکه حج عمره هم داللہ ﷻ حرمات دى ستاسود پاره ټول څاروى حلال دى اوچه کوم حرام وو دهغې ستاسو په وړاندې بيان شوي دې.کومو مشرکانو چه بحيره،سائبه وصيله او حام نومونه کيخودو سره پريخي دى داالله ﷻ نه دى خودلى الله ﷻ چه کوم حرام کول هغه ئې خودلى دى لکه مردار څاروې د حلالې په وخت کښې بهيدونکې وينه دخنزير غوښه د الله ﷻ نه بغيرد بل چا په نوم باندې مشهور کړې شوې مرنى خفه کړې شوې وغيره.([1])تاسو له پکاردى چه د بت پرستنى د ګندګنى نه لرې شي دلته من د بيان جنس د پاره دې.اود دروغ خبرې نه بچ شنى. په دې آيت کښې شرک سره دروغ اوترل لکه چه آيت ﴿قُلْ اِنَّمَا حَرَّمَ رَبِّيَ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ وَالْاِثْمَ وَالْبَغْيَ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَاَنْ تُشْرِكُوْا بِاللّٰهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهٖ سُلْطٰنًا وَّاَنْ تَقُوْلُوْا عَلَى اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ﴾ ([2]) يعنى زمارب ګنده کارونه حرام کړى که هغه ښکاره وى اوکه پټ، ګناه اوسرکشى او په بې علمئ سره په الله ﷻ باندې خبرې جوړول په دې کښې د دروغو ګواهى هم داخل ده.

**د دروغو ګواهي د شرک سره برابر ده:-** بخارى اومسلم کښې دى حضورﷺ تپوس اوکړو آيا زه تاسو ته د ټولونه لويه ګناه اوښايم؟صحابه کرامو ﷺ عرض اوکړو ارشاد اوفرمائې. ونى فرمائيل الله ﷻ سره شريك کول.دمور پلار نافرمانى کول بيا د تکيه نه جداشو ونى فرمائيل دروغ ونيل اود دروغوګواهى

[1] الطبرى:۱۸/۶۱۸.

[2] ۷/الاعراف:۳۳.

ورکول.داني باربارفرمائيل ترديې چه مونږ ونيل چه کاش حضورﷺدانور نه فرمائي(۱)مسنداحمد کښې دی حضورﷺ په خپله خطبه کښې په ولاړه درې ځل اوفرمائيل د دروغوګواهي د الله ﷻ سره د شرك كولوبرابركړې شوه.بيا حضور ﷺ داپورتنئ جمله تلاوت کړه(۲) يوبل روايت کښې دی د سحر د مانځه نه پس حضورﷺ په ولاړه اوفرمائيل (۳) دابن مسعودؓ دافرمان هم نقل دی دالله ﷻ دين په خلوص سره اونيسئ دباطل نه اخواشئ اودحق طرف ته راشئ هغه سره څوك شريك کونکونه مه جوړيږئ.

**د مشرک د شرک مثال:**-بيائي د مشرك د تباهئ مثال بيان کړو لکه چه څوك د آسمان نه راپريوځي او يا خو هغه مرغئ اوچت کړی يوسی يائې هوا چرته لرې د تباهئ کنده کښې اوغورزوی. د کافر روح چه واخلی او فرښتې دآسمان طرف ته خيژی نود هغه د پاره د آسمان دروازې نه کولاويږی اوهم د هغه ځائ نه راغوزارکړې شی هم د دې بيان په دې آيت کښې دې.(۴) داحديث په پوره بحث سره په سورت ابراهيم کښې تيرشوی دې. په سورت انعام کښې د دې مشرکانود پاره يو بل مثال بيان شوی دی چه دا په مثال د هغوی دی کوم چه شيطان ليونی جوړكړی دی. (۵)

| ذٰلِكَ ۗ | وَمَنۡ يُّعَظِّمۡ | شَعَآئِرَ اللّٰهِ | فَاِنَّهَا | مِنۡ تَقۡوَى الۡقُلُوۡبِ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| داده اصل معامله | او څوك چې عزت کوی | دنښنو دالله | نو بيشکه دا عزت | دتقوی دزړونونه دی |

داخبره اوشوه | او څوک چې د الله ﷻ دنښنو عزت کوی | نو دا خبره د زړونو د پرهيزګارئ خبره ده

| لَكُمۡ | فِيۡهَا | مَنَافِعُ | اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى | ثُمَّ | مَحِلُّهَآ |
|---|---|---|---|---|---|
| دی ستاسو دپاره | په دې کښې | ديرې فائدې | دنيتې مقررې پورې | بيا | ځائې دذبحه کولو دهغې |

ستاسو دپاره د څاروو نه يوې مقررې نيتې پورې فائده اخستل جائز دی | بيا ددغې څاروو دحلالې

| اِلَى الۡبَيۡتِ الۡعَتِيۡقِ ۝ |
|---|
| دپخوانی کور خواته دی |

ځائې د زوړ کور(کعبې) په خوا کښې مقرر دی

**قوله تعالٰى:-ذٰلِكَ ۗ وَمَنۡ يُّعَظِّمۡ شَعَآئِرَ اللّٰهِ**

**د قربانئ مسئلې** :-د الله ﷻ شعائر په کوم کښې چه د قربانئ څاروی هم شامل دی د هغې حرمت او عزت بيانولې شی دالله ﷻ په احکامويانديې عمل کول د الله ﷻ دفرمان عزت کول دی.حضرت ابن عباسؓ فرمائي دقربانئ څاروی چاق او ښکلې کول (۶)دسهلؓ بيان دې چه مونږ به د قربانئ څاروی چاقول او ښکلې کول دټولومسلمانانو هم دارواج وو.(۷)(بخاری) د رسول الله ﷺ ارشاد مبارك

---

(۱) صحیح بخاری کتاب الشهادات باب ماقیل فی شهادة الزور:۲۶۵٤، صحیح مسلم:۸۷، ترمذی:۱۹۱۰.

(۲) احمد:۱۷۸/٤ ترمذی کتاب الشهادات باب ماجاء فی شهادة الزور:۲۲۹۹

(۳) احمد:۳۲۱/٤ ابوداؤد کتاب القضاء باب فی شهادة الزور۳۵۹۹ترمذی:۲۳۰۰، ابن ماجه:۲۳۷۲.

(۴) احمد:۲۸۷/٤ وهوحديث صحيح.

(۵) ٦/انعام:۷۱.

(۶) الطبری:۶۲۱/۱۸.

(۷) صحیح بخاری کتاب الاضاحی باب اضحية النبی ﷺ بکبشین اقرنین.... تعليقاقبل حديث ۵۵۵۳.

دي چه ددوو توررنګ څاروودويني نه ديوسپين رنګ دځناوروينه الله ﷻ ته ډيره خوږنه ده[1] مسند احمدابن ماجه. دتور رنګ څاروی هم جائزدی خود سپين رنګ څاروی غوره دی. صحيح بخاری کښې دی رسول الله ﷺ دوه برګ ګډان د لويولويوښکروالا په خپله قربانئی کښې حلال کړل. [2]ابوسعيد ﷺ فرمائی حضور ﷺ يوګډ د لويوښکرو والا برګ حلال کړو د کوم په مخ چه سترګوسره او په پښوياندې تور داغونه وو. (سنن) [3]امام ترمذی رحمه الله دې ته صحيح وائی. ابن ماجه وغيره کښې دی حضور ﷺ دوه ګډان چاق تازه برګيان خصی حلال کړل.

**دکوم څاروي قرباني نه کيږي**:-دعلی ﷺ روايت دې مونږ ته رسول الله ﷺ حکم راکړوچه مونږ د قربانئی د پاره څاروی اخستلو په وخت کښې سترګې اوغوږونه په ښه شان سره ګورئ د ورانديې نه کټ شوې غوږونووالا د روستونه کټ شوی غوږونه په اوږدوالی کښې څيرلې شوی غوږونووالا اود سورو والا قربانی مه کوئی[4](احمد اهل سنن) دې ته امام ترمذی صحيح وائی.دغه شان حضور ﷺ د ښکرماتی او غوږ پرې شوی څاروی قربانئی نه منع فرمائيلې ده. د دې په شرح کښې سعيدبن مسيب رحمه الله فرمائی چه د نيم نه زيات ښکر يا غوږ نه وی[5] بعضې اهل لغت وائی چه که د بره نه د يوڅاروی ښکرمات وی نودې ته په عربئ کښې قصماء وائی اوچه کله لاندې حصه ماته وی نوهغې ته عضب وائی اوپه حديث کښې لفظ عضب دې اوکه دغوږ څه حصه ئی پرې شوې وی نوهغې ته په عربئ کښې اعضب وائی.امام شافعی رحمه الله فرمائی چه دداسې څاروی قربانی کول اګرچه جائزده خوپه کراهت سره.امام احمد رحمه الله فرمائی جائز نه ده امام مالک فرمائی که دښکرنه ئی وينه روانه وی نوجائزنه ده ګنی جائز ده.والله اعلم

**د کوم څاروی چې ښکر مات وی يا غوږ کټ شوی وی دهغې د قربانئ حکم**

**مسلک حنفی**:- -کوم څاروي چه پيدائشی داسې وی چه ښکر ئې نه وی نو د هغه قربانی جائز ده ځکه چه ښکريو داسې څيز دې چه دا خوړلې نشی نو ځکه ددې په وجود او عدم وجود کښې څه فرق نشته او که ښکر ئې وی خو مات شوې وی نو هم دا حکم دې يعنی قربانی پرې کيږی البته دا که بيخی د جرړې نه مات شوې وی نو بيا پرې قربانی جائزه نه ده او په غوږ کښې دا مسئله ده که د غوږ زياته حصه ئې کټ شوې وې نو په هغې قربانی نه کيږی او که کمه حصه ئې کټ شوې وی نو قربانی پرې کيږی[6]

د رسول الله ﷺحديث دې چه څلور قسمه عيب لرونکی څاروی په قربانئی کښې جائز نه دی هغه کانړې ځناور چه دهغه ړوندوالې ښکاره وی اوهغه ناجوړه څاروې چه دهغه بيماری ښکاره وی او هغه ګوډ چه دهغه ګوډوالې ښکاره وی اوهغه کمزورې نرې مړژواندې څاروې چه دننه نه خالی شوې وی[7] (احمد اهل سنن) دې ته امام ترمذی صحيح وائی.داهغه عيبونه دی چه دې سره څاروې کم قيمته کيږی او د هغې غوښه ناقصه کيږی اوچيلئی څرېږی خوداخپلې کمزورئی په وجه خپله ګياه نه شی پوره کولې.

---

[1]) احمد:۲/٤١٧ حاکم:٤/٢٢٧.

[2]) صحيح بخاری کتاب الاضاحی باب اضحية النبی ﷺ بکبشن الربن....٥٥٥٤، صحيح مسلم:١٩٦٦، ابوداؤد:١٧٩٤، ترمذی:١٤٩٤، ابن ماجه:٣١٢٠،احمد:٣/١٧٠، ابن حبان:٥٩٠.

[3]) ابوداؤد کتاب الضحاياباب مايستحب من الضحايا:٢٧٩٦ وهوصحيح، ترمذی:١٤٩٦،نسائی:٤٣٩٥، ابن ماجه:٣١٢٨.

[4]) احمد:١/١٠٨، ابوداؤدکتاب الضحايا باب مايکره من الضحايا:٢٨٠٤، ترمذی:١٤٩٨، نسائی: ٤٣٧٧، ابن ماجه:٣١٤٢، حاکم:٤/٢٢٤، اوامام ترمذی دې روايت ته صحيح حسن ونيلې دې.

[5]) ابوداؤد حواله سابق:٢٨٠٥-٢٨٠٦، ترمذی: ١٥٠٤، نسائی:٤٣٨٢، ابن ماجه:٣١٤٥ وسنده حسن.

[6]) رباره مهينو کښې فضائل واحکام ص،۲۴۲ بحواله درمختار وشامی، بحرالرائق، ـه

[7]) ابوداؤدکتاب الضحايا باب مايکره من الضحايا: ٢٨٠٢وسنده صحيح، ترمذی: ١٤٩٧، نسائی٤٣٧٤، ابن ماجه:٣١٤٤.

ددې دپاره ددې حديث مطابق دامام شافعي رحمه الله وغيره په نيزد دې قرباني جائزده اود بيمار ځاروی په باره کښې د کوم بيماری چه د خطرناك درجې پورې نه وي ډيره کمه وي د امام صاحب دواړه قوله دی.
ابوداؤدکښې دی حضور ﷺ منع فرمائيلې ده د ښکرماتی ځاروی اود ښکر پرې شوی ځاروی نه دکانړی يعنی ړوند ځاروی نه اوبالکل کمزوری ځاروی نه چه هميشه د رمې نه شاته پاتې وي په وجه د خپلې کمزورتيا يا د ډيرعمر کيدو په وجه اود ګوډځاروی نه. (۱) نود دې ټولوعيبونو والا ځارو و قربانی ناجائزده اوکه د قربانئ د پاره صحيح سالم او روغ رمټ ځاروې مقرر کولونه پس اتفاقی په هغې کښې څه داسې خبره راشی مثلاً ګوډ راګوډ شی وغيره نود حضرت امام شافعي رحمه الله په نيز د دې قربانی کول بې شکه جائزده. امام ابوحنيفه رحمه الله د دې خلاف دی. د امام شافعي رحمه الله دليل هغه حديث دې چه په مسنداحمد کښې د حضرت ابوسعيد رضي الله عنه نه روايت دې ماد قربانئ د پاره ځاروې واخستلو په هغه باندې يوشرمخ حمله اوکړه اود هغه د پنډئ نه ئې غوښه يوړه ما حضور ﷺ ته واقعه بيان کړه نوحضور ﷺ اوفرمائيل ته هم د دې ځاروی قربانی کولې شې. (۲)

## د اخستلونه پس پهه ځاروی کښې د عيب پيدا کيدو حکم

**مسلک حنفي:-** که دقربانئ دپاره ئې ځاروې واخستلو اودهغې نه پس په هغې کښې داسې عيب پيدا شو چه دهغې سره قربانی نه کيږی نو په دې صورت کښې که قربانی کونکې مالدار وی هغه به بل ځاروې اخلی او په هغې به قربانی کوی اوکه غريب وی نو هم هغه عيب دار ځاروی باندې به قربانی کوی دبل ځاروی اخستلو ضرورت نشته (ددولستو مياشتو فضائل اواحکام (ص،۲۴۸) بحواله درمختار)
د اخستلو په وخت کښې د ځاروې چاقوالې تياريدل او بې عيبه کيدل پکاردی. څنګه چه دحضور ﷺ حکم دې سترګه غوږ ئې ګورئ(۳) عمر فاروق رضي الله عنه د قربانئ د پاره يوډير ښکلې اوښ مقررکړو خلقو دهغې قيمت درې سوه اشرفئ اولګولونو هغوی د رسول الله ﷺ نه دمسئلې تپوس اوکړوکه ستاسو اجازت وی نو زه داخرڅ کړم او د دې په قيمت نور ډيرځاروی واخلم اوهغه به د الله ﷻ په لارکښې قربانی کړم. حضور ﷺ منع کړو او حکم ئې ورکړوچه هم دا د الله ﷻ په لارکښې حلال کړه. (۴)

## کوم ځاروې چه د قربانئ دپاره واخستې شی په هغې کښې د تبديلئ حکم

**مسلک حنفي:-** که د قربانئ دپاره ئې ځاروې مقرر کړې وی نو که هم د هغې په برابر قيمت باندې بل ځاروې واخلی نو قربانی کيږی خوسره دکراهته او که د هغې نه ئې په کم قيمت باندې ځاروې واخستلو نو باقی روپئ به صدقه کوی (د دولسو مياشتو فضائل او احکام (ص، ۲۴۴) په حواله د شامی)-
حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائی چه د قربانئ ځاروی د شعائرالله نه دی. محمدبن ابی موسی رحمه الله فرمائی عرفات کښې حصاريدل مزدلفه رمی جمارسرخرول او د قربانئ اوښ دا ټول شعائرالله دی. ابن عمر رضي الله عنه فرمائی د دې ټولونه زيات بيت الله شريف دې. بيافرمائی چه د دې ځارو په وينځوکښې ورئ کښې ستاسودپاره فائدې دی تاسو په دې سورلی کوئ د دې څرمنې ستاسو په کار راځی دا ټول د يو مقرر وخت پورې يعنی چه ترکومې مو دالله ﷻ په لار (۵) قربانی کړې نه وی د دوی پئ څکئ د دې نسلونه

---

(۱) ابوداؤد کتاب الضحايا باب مايکره من الضحايا:۲۸۰۲.
(۲) احمد:۳۲/۳ ابن ماجه، کتاب الاضاحي، باب من اشترى ضحية فاصابها عنده شئ:۳۱٤٦.
(۳) ابن ماجه کتاب الاضاحي باب ما يکره ان يضحى به :۳۱٤۳وسنده حسن.
(۴) احمد:۱٤٥/۲، ابوداؤد کتاب المناسك باب تبديل الهدى:۱۷٥٦
(۵) الطبری:۶۲۳/۱۸.

حاصل کړنی کله چه د قربانئی د پاره مقرر کړې شوې یا هغه د الله ﷻ څیز شو نور بزرګان وائی که ضرورت شو نو اوس هم ترې سورلی اخستې شي.
بخاری او مسلم کښې دي یو سړی د خپلې قربانئی څاروي شړلو سره حضور ﷺ اولیدو نوونی فرمائیل پدې سورشه نو هغه عرض اوکړو حضور ﷺ دا ماد قربانئی په نیت سره مقرر کړې دې. حضور ﷺ په دویم ځل یادریم ځل باندې اوفرمائیل افسوس کینې پرې ولې نه[1] صحیح مسلم کښې دی چه کله ضرورت اوحاجت وی نوسورېږئی[2] د یو سړی د قربانئی اوښې بچې راړو نو علی ؓ هغه ته حکم اوکړو چه په ده باندې په ډکه خیته پئې اوڅکوه بیاهم که بچ شی نو خیرې په خپل کارئی راوله اودقربانئی په ورځ دا اود دې بچې دواړه د الله ﷻ په نوم حلال کړه.

### د قربانئ د څاروی نه د فائدې اخستلو حکم

مسلک حنفی:- دقربانئ په څاروی باندې به بوج نه اوړی سورلی به پرې نه کوی په کرایه به ئې نه ورکوی د هغې پئ به نه استعمالوی بلکه کوم پئ چې اولوشی نو هغه به صدقه کوی دغه شان د هغې وړئ او ویخته به نه کټ کوی اوکه کټ ئې کړه هغه به صدقه کوی (درمختار) البته دا ده که د قربانئ د څاروی نه ئې فائده واخستله او د هغې فائدې په عوض کښې ورته څه ملاو شوی وی هغه د دې په ګیاه وغیره باندې خرچ کړی نو داجائز ده (عالمگیری)[3] بیافرمائی چه دهغوی دقربانئی ځائ بیت الله دی لکه چه ارشاددي ﴿هَدْيًا بٰلِغَ الْكَعْبَةِ اَوْ كَفَّارَةٌ طَعَامُ مَسٰكِيْنَ اَوْ عَدْلُ ذٰلِكَ صِيَامًا لِّيَذُوْقَ وَبَالَ اَمْرِهٖ ؕ عَفَا اللّٰهُ عَمَّا سَلَفَ ؕ وَمَنْ عَادَ فَيَنْتَقِمُ اللّٰهُ مِنْهُ ؕ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ ذُو انْتِقَامٍ﴾[4] بل ایت کښې دی ﴿وَالْهَدْيَ مَعْكُوْفًا اَنْ يَّبْلُغَ مَحِلَّهٗ ؕ وَلَوْلَا رِجَالٌ مُّؤْمِنُوْنَ وَنِسَآءٌ مُّؤْمِنٰتٌ لَّمْ تَعْلَمُوْهُمْ اَنْ تَطَئُوْهُمْ فَتُصِيْبَكُمْ مِّنْهُمْ مَّعَرَّةٌ بِغَيْرِ عِلْمٍ ۚ لِيُدْخِلَ اللّٰهُ فِيْ رَحْمَتِهٖ مَنْ يَّشَآءُ ۚ لَوْ تَزَيَّلُوْا لَعَذَّبْنَا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا﴾[5] د بیت العتیق معنی اوس اوس بیان کړې شوېده.فالحمدلله.دبیت الله طواف کونکې داحرام نه حلالیږی په دلیل کښې داآیت تلاوت اوفرمائیلو.

| | | | |
|---|---|---|---|
| | وَلِكُلِّ اُمَّةٍ | جَعَلْنَا | مَنْسَكًا |
| | او دپاره دهر امت | مقرر کړی ده مونږه | یوه طریقه دقربانئ |
| | اومونږ هریو امت دپاره یو د قربانئ ځائې کړې دې | | |
| لِيَذْكُرُوا | اسْمَ اللّٰهِ | عَلٰى مَا | رَزَقَهُمْ |
| دپاره ددې چې یاد کړئ هغوئ | نوم دالله | په هغه (څاروو) باندې | چې ورکړی دی هغه هغوئ له |
| دې دپاره چې مونږ ورته کوم څاروی ورکړی دی په هغې دالله ﷻ نوم واخلي | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مِّنْ بَهِيْمَةِ | الْاَنْعَامِ ؕ | فَاِلٰهُكُمْ | اِلٰهٌ وَّاحِدٌ | فَلَهٗ | اَسْلِمُوْا ؕ | |
| دخیږدونکو څارووئ نه | | نو معبود ستاسو | معبود یو دی | او خاص هم هغه ته | غاړه کیږدئ | |
| ..........نوستاسو معبود صرف یو دی الله ﷻ دې انو هم دهغه تابعداری کوئی | | | | | | |

---

[1] صحیح بخاری کتاب الحج باب رکوب البدن:۱٦۸۹، صحیح مسلم:۱۳۲۲، ترمذی:۹۱۱، ابن ماجه:۳۱۰٤.

[2] صحیح مسلم کتاب الحج باب جوازرکوب البدنة:۱۳۲٤.

[3] (د دولسو میاشتو فضائل او احکام)

[4] ٥/المائده:۹٥.

[5] ٤۸/الفتح:۲٥.

| وَبَشِّرِ | الْمُخْبِتِينَ ۝ | الَّذِينَ | إِذَا | ذُكِرَ اللَّهُ |
|---|---|---|---|---|
| او زیري ورکړه | عاجزي کونکو خلقو لره | هغه (عاجزي کونکي) | کله چي | یاد کړی شي الله |
| او (اې پیغمبره) عاجزي کونکو ته زیري ورکړه | داهغه خلق دي چي کله دالله ﷻ نوم یاد شي نو ددوئ | | | |
| وَجِلَتْ | قُلُوبُهُمْ | وَالصَّابِرِينَ | عَلَىٰ مَا | أَصَابَهُمْ |
| نو یریږئ | زړونه دهغوئ | او صبر کونکي وی | په هغه مصیبت باندي | چي رسیږي هغوئ ته |
| زړونه یریږي | .....او کوم مصیبتونه چه ورته اورسي په هغې صبر کوی | ............ | | |
| وَالْمُقِيمِي | الصَّلَاةِ | وَمِمَّا | رَزَقْنَاهُمْ | يُنفِقُونَ ۝ |
| او قائیمونکي وی | دمانخه | او دهغې رزق نه | چي ورکړي دي مونږ هغوئ ته | خرچ کوی |
| اود مونځونو پابندي کوی | اوزمونږ د ورکړي روزئ نه (دنیکئ په لارکښي) خرچونه کوی | | | |

**قوله تعالی:- وَلِكُلِّ أُمَّةٍ جَعَلْنَا مَنسَكًا**

**د قربانئ اهمیت:-** ارشاددي چه په ټولوامتونوکښي په هریوامت کښي اوهري یوې ډلي ته مونږ د قربانئ حکم ورکړي وو د هغوی د پاره یوه ورځ د اختر مقرروه هغوی به هم د الله ﷻ په لارکښي حلاله کوله ټول په ټولوبه خپلي قربانئ مکې ته راالیکلي دي د پاره چه د قربانئ د څاروو د حلالي په وخت کښي دالله ﷻ د نوم ذکر اوکړي. حضورﷺ له هم دوه برګ ګډان لوئ لوئ ښکرو والا راوړلي شو هغوی دا راسملول اود هغې په مرئ پښه مبارکه کیخوده اوبسم الله الله اکبر لوستلو سره ئې حلال کړل.[1]

**د قربانئ حقیقت څه دي؟:-** مسنداحمدکښي دی صحابه کرامو ﷺ دحضورﷺ نه تپوس اوکړودا قربانی څه څیز دي؟ حضورﷺ جواب ورکړو ستاسودپلار ابراهیم ﷺ سنت دی. تپوس ئې اوکړو مونږ ته په دې کښي څه ملاویږي؟ وئې فرمائیل د هریوویښته په بدله کښي یوه نیکي. تپوس ئې اوکړود وړئې څه حکم دي؟وئې فرمائیل د وړئې کولوسره دهریو ریښي په بدله کښي یوه نیکي.دا امام ابن ماجه ﷫هم راوړې دی[2] ستاسود ټولو الله ﷻ هم یودې سره ددې چه دشریعت بعضې احکام بدلیږی رابدلیږی خو په توحید کښي د الله ﷻ په یووالي کښي یورسول ته هم په نیك امت کښي اختلاف نه دی شوی ټول د الله ﷻ توحید اوهم د هغه دعبادت د پاره ټول جهان رابللی په ټولوباندي اول هم داوحی نازله شوي ده نوتاسو ټول د هغه طرف ته ټیټ شئ اوهم د هغه شئ اوهم د هغه داحکامو پابندي اوکړئ هم د هغه په تابعدارئ کښي استحکام اوکړئ کوم خلق چه مطمئن دی کوم چه متواضع دی کوم د تقوی والا دی څوك چه د ظلم نه ویزاره دی د مظلومیت په حالت کښي د بدلې اخستلونه دی د مولا په مرضئ اورب په رضا باندي راضي دی هغوی ته زیري واوروئ هغوی د مبارکوقابل دی. څوك چه د الله ﷻ ذکر اوری زړه نرم کړی اود الله ﷻ د ویرې نه زړه ډك کړی د رب طرف ته ښکته کیږی. په سختو کارونوباندي صبر کوی،په مصیبتونوباندي صبر کوی.امام حسن بصری ﷫فرمائی والله که تاسودصبر او برداشت عادت په خان کښي وانچولو نوتاسو به برباد کړي شئ.د**(والمقیمی)** قراءت په اضافت سره خو د جمهورودي خوابن سمیقع **(والمقیمین)**لوستلي دي د **(الصلاة)** ئې زبر لوستلي دي. امام حسن ﷫ خو لوستلي دي د نون په حذف اواضافت سره خود**(الصلاة)**زبرئې لوستلي دي اوفرمائي چه د نون حذف دلته د تخفیف په وجه سره دي. خکه چه په وجه داضافت اومنلي شی نود دي زیر لازم دي نوکیدې شی

---

[1] صحیح بخاری کتاب الاضاحی باب التکبیر عندالذبح:۵۵۶۵،صحیح مسلم:۱۸۶۶.
[2] احمد:۳۶۸/۴، ابن ماجه کتاب الاضاحی باب ثواب الاضحیة:۳۱۲۷.

چه په وجه د نیزدیکت وی مطلب دا چه د رب د فریضي پابند دی اود الله ﷻ حق اداکونکی دی.اود الله ﷻ ورکړې شوی ورکوی د خپلې کورنئی خلقو ته فقیرانو محتاجانوته اوټول مخلوق ته څوك چه ضرورت مندوی اوټولوسره په ښه سلوك اواحسان سره مخ کیږی. د الله ﷻ د حدودو حفاظت کوی د منافقانو په شان نه دی چه یوکاراوکړی بل پریږدی. په سورت براءة کښې هم دا صفتونه بیان کړې شوی دی اوهلته د الله ﷻ په حمد سره پوره تفسیرهم مونږ کړې دې.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَالْبُدْنَ | جَعَلْنٰهَا | لَكُمْ | مِّنْ شَعَآئِرِ اللّٰهِ | لَكُمْ | | | |
| او اوښان دقربانۍ | گرځولي دي مونږ هغه | دپاره ستاسو | دنښو دالله نه | دي ستاسو دپاره | | | |
| اوښان مونږ ستاسو دپاره دالله (ددين) نښې مقرر کړي دی \| په دې کښې ستاسو خپل خير دې | | | | | | | |
| فِيْهَا | خَيْرٌ | فَاذْكُرُوا | اسْمَ اللّٰهِ | عَلَيْهَا | صَوَآفَّ | فَاِذَا | وَجَبَتْ |
| په هغې کښې | خير | پس ياد کړئ | نوم دالله | په هغې باندې | په ولاړه | نو کله چې | اولږې |
| نو څه وخت چې تاسو دغه (څاروی قربانۍ ته) قطار کښې اودروئ نو دالله ﷻ نوم پرې اخلئ ابيا چې | | | | | | | |
| جُنُوْبُهَا | فَكُلُوْا | مِنْهَا | وَاَطْعِمُوا | الْقَانِعَ | | | |
| اړخونه دهغې | نو خورئ | دهغې نه (بخپله هم) | او خوروئ ئې | په صبر کونکي فقير باندې هم | | | |
| هغوی په اړخونو پريوځي\|نودهغې نه خپله هم خورئ\|\|اودصبر کونکو اوغوښتونکو فقيرانو(دواړو) باندې | | | | | | | |
| وَالْمُعْتَرَّ | كَذٰلِكَ | سَخَّرْنٰهَا | لَكُمْ | لَعَلَّكُمْ | | | |
| او په سوال کونکي باند هم | دارنګې | تابع کړی دی مونږ داڅاروی | دپاره ستاسو | دپاره ددې چې تاسو | | | |
| هم خوروئی \|دغه شان مونږ داڅاروی ستاسو دپاره تابع کړی دی اچې تاسو زمونږ شکر اداکړئ | | | | | | | |
| تَشْكُرُوْنَ۝ | | | | | | | |
| شکر اوباسئ \| | | | | | | | |

**د قربانئ فضائل:-** داهم د الله ﷻ احسان دې چه هغه څاروی پیداکړی اوهغه ئی پخپل نوم باندې قربانی کولو اوخپل کورته د قربانئی په توګه باندې د رسولوحکم کړې دې او دائی شعائرالله اوګرځول بل حکم ئی فرمانیلی ﴿لَا تُحِلُّوْا شَعَآئِرَ اللّٰهِ وَلَا الشَّهْرَ الْحَرَامَ وَلَا الْهَدْيَ وَلَا الْقَلَآئِدَ وَلَآ آٰمِّيْنَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ يَبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنْ رَّبِّهِمْ وَرِضْوَانًا ۭ وَاِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوْا ۭ وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَاٰنُ قَوْمٍ اَنْ صَدُّوْكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ اَنْ تَعْتَدُوْا ۘ وَتَعَاوَنُوْا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوٰى ۠ وَلَا تَعَاوَنُوْا عَلَى الْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ ۠ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ۭ اِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ۝﴾ (۱) مه د الله ﷻ د دې عظمت والا د نښنو بې ادبی کونی اومه د حرمت والا د میاشتو ګستاخی کوی الخ. هر اوښ اوغوا چه دقربانئی دپاره مقررکړې شی هغه په بدن کښې داخل دی(۲) اګرچه بعضې خلقوصرف اوښ ته بدن وئیلې خوصحیح دا دی چه اوښ جودې ولې غوا هم په دې کښې شامله ده.حدیث شریف کښې دی چه څنګه اوښ د اووه کسانو د طرف نه قربانی کیدې شی دغه شان غواهم.دجابربن عبدالله ﷺ نه په صحیح مسلم کښې روایت دې مونږ ته

(۱) ۵/المائدة:۲.

(۲) صحیح مسلم کتاب الحج باب بیان وجوه الاحرام......:۱۲۱۳، ابوداوٗد:۲۸۰۹، ترمذی:۹۰٤، ابن ماجه:۳۱۳۲، ابن حبان:۷۰۰۶، بیهقی:۵/۱٦۸.

رسول الله ﷺ حکم راکړو چه مونږ په اوښ کښې اووه کسان شريك شو او په غواکښې دې هم اووه کسان سرې شريك شي.امام اسحاق بن راهويه رحمه الله وغيره فرمائی چه په دې دواړو ځاروکښې لس لس کسان شريکيدلې شي. په مسنداحمد اوسنن نسائی کښې داسې حديث هم راغلې دې. والله اعلم.

## په غټ ځاروي کښې د اووه کسانو د شرکت حکم

**مسلک حنفي:**-په غټ ځاروی کښې مثلاً اوښ غوا ميخه کښې اووه کسان شريکيدې شي اوپه وړوکی ځاروی کښې به صرف يو کس حصه اخلی لکه ګډ ګډه چيلې چيلۍ (د دولسو مياشتو فضائلو او احکام (ص،۲۴۳) پحواله د درمختار وشامی) -

بيافرمائی چه په دې ځناوروکښې ستاسو د آخرت ګټه ده. حضورﷺ فرمائی چه د قربانئی د اختر په ورځ د انسان يوعمل هم د الله ﷻ په نيز د قربانئی نه زيات خوښ نه دې ځاروې به د قيامت په ورځ د خپلو ښکرو نوکواوويښتوسره دانسان په نيکوکښې پيش کولې شي.يادساتئی دقربانئی د وينې د ځاځکی په زمکه باندې د پريوتلونه وړاندې الله ﷻ ته رسی نو په يخوزړونوسره قربانی کوئی.(١) (ابن ماجه ترمذی) حضرت سفيان ثوری رحمه الله خو به په قرض کولو سره هم قربانی کوله اود خلقو په تپوس کولو به ئی فرمائيل چه الله ﷻ فرمائی په دې کښې ستاسو ښيګړه ده. رسول الله ﷺ فرمائی د يوې خرچې غوره والې د الله ﷻ په نيز په نسبت د دغه خرچې چه د قربانئی د اختر په ورځ په قربانئی باندې کولې شی هيڅ ګله نه دې.(٢) (دارقطنی). الله ﷻ فرمائی ستاسو د پاره په دې ځاروکښې ثواب دې ګټه ده د ضرورت په وخت کښې پئی ځکلې شئی سورلی کولې شئی اوبياد دې د قربانئی کولو په وخت کښې د خپل نوم لوستلوهدايت کوی.

حضرت جابرﷺ فرمائی ما د لوئ اخترمونځ رسول الله ﷺ سره اداکړو د مانځه نه په اوزګاريدوسره د حضورﷺ مخې له ګډ راوستلې شو کوم چه حضورﷺ ﴿بسم الله والله اکبر﴾ لوستلوسره حلال کړو بيائی اوفرمائيل اې الله ﷻ دا زما د طرف نه دې او زما د امت نه د هغه کسانو د طرف نه دې چه قربانی نه شی کولې. (٣) (احمد ابوداؤد ترمذی) فرمائی چه د اختر په ورځ حضورﷺ له دوه ګډان راوستې شوهغه ئی قبلې طرف ته مخ کړوحضور ﷺ ﴿وجهت وجهي للذي فطر السموات والارض حنيفا وماأنامن المشركين ان صلوتي ونسكي ومحياي ومماتي لله رب العلمين لاشريك له وبذلك امرت واناأول المسلمين اللهم منك ولك عن محمد وامتي﴾ لوستلو ﴿بسم الله والله اکبر﴾ اووئيل او حلال ئی کړل. (٤)

حضرت ابورافع ﷺ فرمائی د قربانئی په موقع به رسول الله ﷺ دوه ګډان ښه چاق تازه تيار ښکلې د لويوښکروالا برګ اخستل کله چه به ئی مونځ اوکړو اود خطبه نه به فارغ شو نو يوځاروې به حضور ﷺ له راوستې شوحضورﷺ به پخپله په عيدګاه کښې په خپل لاس حلالولو اوفرمائيل به ئی اې الله دا زماد امت د طرف نه دې ځوك هم چه دتوحيداوسنت ګواه دی بيا به دويم ځاروې حاضرکړې شوکوم چه حلالولوسره به ئی فرمائيل دا د محمد اوآل محمد ﷺ د طرف نه دې بيابه ئی د دواړو غوښه غريبانانو ته هم ورکوله اوحضورﷺ اود کور خلقو به هم خوړله. (٥) (احمد ، ابن ماجه)

---

(١) ترمذی کتاب الاضاحی باب ماجاء فی فضل الاضحية:١٤٩٣ابن حبان:٣١٢٦.

(٢) دارقطنی:٢٨٢/٤.

(٣) احمد:٢٥٦/٣، ابوداؤد کتاب الضحايا باب فی الشاة يضحی بهاعن جماعة:٢٨١٠وهوحسن، ترمذی:١٥٢١، احمد :٥٦٢/٣، حاکم:٢٢٩/٤، بيهقی:٢٨٥/٤.

(٤) ابوداؤدکتاب الضحايا باب مايستحب من الضحايا:٢٧٩٥وهوحسن، ابن ماجه:٣١٢١.

(٥) احمد:٨/٦.

## په قربانۍ کښې نیابت جائز دې

**مسلک حنفی:-** د بل چا د طرفه قربانی کول جائز دی ځکه چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم د خپل امت دپاره قربانی کړې وه.

**اوښ په ولاړه حلالول سنت دی :-** د ﴿صواف﴾ معنی ابن عباس ﷛ اوښ په دریوپښوباندې اودرولود هغه ګس لاس نې اوتړلو ﴿بسم الله والله أکبرلا اله الاالله اللهم منك ولك﴾لوستلوسره هغه حلال کړو. حضرت ابن عمر ﷛ یوسړې اولیدلوچه هغه خپل اوښ حلالولوپاره کینولې دې نو هغوی اوفرمائیل دا اودروه اود ده پښې اوتړه او حلال نې کړه هم دا سنت دی د ابوالقاسم ﷺ.([1])حضرت جابر ﷛ فرمائی رسول الله ﷺ او صحابه کرامو ﷡ به د اوښ یوه پښه اوتړله په دریوپښوباندې به نې اودرولو او حلالولوبه نې([2]) (ابوداؤد).حضرت سالم بن عبدالله ﷫ سلیمان بن عبدالملك ته فرمائیلې ووچه د ګس طرف نه قربانی کوه. د حجة الوداع بیان کولوسره حضرت جابر ﷛ فرمائی چه حضور ﷺ درې شپیته اوښان په خپل لاس سره قربانی کړل د حضور ﷺ په لاس کښې حربه (دلړګی لاسکی والا جنګی وسله) وه په کومې سره چه به حضور ﷺ زخمی کول([3])د ابن مسعود ﷛ په قراءت کښې ﴿صوافن﴾ یعنی په ولاړه پښې تړلې. د صواف معنی د خالص هم کړې شوې دې یعنی ځنګه به چه د جاهلیت په زمانه کښې الله ﷻ سره نورهم شریك کول تاسو مه کوئی بلکه صرف د یوالله چه واحددې په نوم باندې قربانیانې کوئی. بیا چه کله دا په زمکه باندې راپریوځی یعنی حلال شی یخ پریوځی نو پخپله ئې هم اوخورئې او په نورو باندې ئې هم اوخورئې نیزه وهلوسره په تکړې کولوشروع مه کوئی ترکومې چه روح اوځی اویخ شی. په یوحدیث شریف کښې هم راغلی دی چه د روح په ویستو کښې تندی مه کوئی. ([4])

د صحیح مسلم په حدیث کښې دی الله ﷻ هريوځيزته نرمی کول ليکلې دی. دښمنان په میدان جنګ کښې قتل کولوسره هم ښه سلوك کوئی او ځاروی حلالووخت کښې هم په ښه شان نرمئی سره حلالونی اوچاړه ښه تیره کوئی او ځاروی ته تکلیف مه ورکوئی.([5]) فرمان دې چه په ځاروی کښې ترکومې ساه وی اود هغه د بدن څه حصه پرې کړې شی نودا حرام ده.([6]) (احمد ، ابوداؤد ، ترمذی)

### د ساه وتلو نه وړاندې د ځاروی نه څه اندام کټ کول او دهغې حکم

**مسلک حنفی:-** دساه وتلو نه وړاندې چې کوم اندام دځناور نه کټ کړې شی هغه به د مرداري په حکم کښې وی دهغې خوړل ناجائز او حرام دی بیافرمائی داپخپله اوخورئی بعضې سلف وائی د دې خوړل مباح دی. امام مالك ﷫ فرمائی مستحب دی نورخلق وائی واجب دی.

### د قربانۍ د غوښې خوړولو حکم

**مسلک حنفی:-** د قربانۍ غوښه په خپله خوړل خپلوانو ته ورکولو غریبانانو او مالدارانو ته ورکول ټول

---

[1]) صحیح بخاری کتاب الحج باب نحرالابل مقیدة:۱۷۱۳، صحیح مسلم:۱۳۲۰، ابوداؤد:۱۷۶۸، احمد:۳/۲، ابن حبان:۵۹۰۳.

[2]) ابوداؤد کتاب المناسك باب کیف تنحرالبدن:۱۷۶۷.

[3]) صحیح مسلم کتاب الحج باب حجة النبی ﷺ:۱۲۱۸.

[4]) دارقطنی:۲۸۳/٤.

[5])صحیح مسلم کتاب الصید باب الامر باحسان الذبح والقتل:۱۹۵۵، ابوداؤد:۲۸۱۵، ترمذی:۱٤۰۹، ابن ماجه:۱۳۷۰، ابن حبان:۵۸۸۲، احمد:۱۲۳/٤.

[6]) احمد:۲۱۸/۵، ابوداؤد کتاب الاضاحی باب اذاقطع من الصید قطعة:۲۸۵۸ وسنده حسن، ترمذی:۱٤۸۰، حاکم:۲۳۹/٤، بیهقی:۲۳/۱، دارقطنی:۵٤۸، دارمی:۱۸.

صورتونه جائز دی البته غوره دا ده چه غوښنه درې حصې کړې شی یوه حصه په خپله اوخوری بله حصه خپلوانو ته ورکړی او دریمه حصه عامو مسکینانو غریبانانو ته ورکړی (د دولسو میاشتو فضائل او احکام (ص، ۲۵۰) پحواله د درمختار)-

**د قانع او معتظ مطلب:**-مسکینان که هغه په کورونوکښې ناست وی اوکه دریه درسوالونه کوی. دا هم مطلب دې چه قانع خو هغه دې چه په صبرسره کورناست وی اومعتر هغه دې چه اخوادیخوا ځی راځی خو بیا هم سوال نه کوی.(۱) داهم ونیلې شوی دی چه قانع هغه دې چه صرف په سوال کولو باندې صبر اوکړی اومعتر هغه دې چه سوال خونه کوی ولې د خپلې عاجزئی اوغریبئی اظهاراوکړی. دا هم روایت دې چه قانع هغه دې چه مسکین وی تلوراتلووالاوی اود معترنه مراد دوستان اوکمزوری خلق اوکاونډیان سره د دې چه مالدار وی خوچه تاسوکره ځی راځی هغه ته وینی نو هغوی هم دی چه طمع ساتی اوهغه هم چه امیر اوفقیرموجود وی. داهم ونیلې شوی دی چه د قانع نه مراد اهل مکه دی. د امام ابن جریر رحمه الله فرمان دې چه د قانع نه مراد سوال کونکې دې خکه چه هغه خپل لاس د سوال د پاره اوږدوی اود معتر نه مراد چه اخوادیخواکیږی چه که څه ملاوشی.د بعضې خلقو داخیال دې چه د قربانئی داغوښې دې درې حصې کړې شی یوه حصه د خپل خوراك د پاره یوه د دوستانوورکولود پاره او یوه د صدقه کولود پاره. حدیث کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی چه هم ما تاسو دقربانئی د غوښې جمع کولونه منع کړې وئی چه د دریوورځونه زیات پورې نی مه ساتئی اوس زه اجازت درکوم چه خورئی جمع کوئی او څنګه چه غواړئی(۲)په یویل روایت کښې دی چه خورئی جمع کوئی او صدقه کوئی او یویل روایت کښې دی (۳) پخپله خورئی په نوروخورئی اود الله ﷺ په لارکښې ورکوئی.(۴)

بعضې خلق وائی چه قربانئی کونکې دې نیمه غوښنه پخپله خوری او باقی غوښنه دې نیمه دې صدقه کړی خکه چه قرآن پاك فرمائیلی دی پخپله ئی خورئی اوحاجت مندفقیر باندې خورئی او په حدیث کښې داهم دی چه خورئی جمع کوئی اود الله ﷺ په لارکښې ورکوئی. اوس که یوسړې د خپلې قربانئی غوښنه هم پخپله اوخوری نویوقول خودارروایت دې چه په ده باندې هیڅ نقصان نشته. بعضې خلق وائی چه په هغه باندې هم داسې یوه قربانی یا دهغې قیمت ورکول دی بعضې وائی چه نیم قیمت دې ورکړی بعضې نیمه غوښنه او بعضې وائی د دې په اجزاء کښې د وړو وړو اجزاء قیمت د ده په ذمه دې باقی معاف دی.

## د قربانئ تولہ غوښې په خپله د خوړلو حکم

**مسلک حنفی:**-دقربانئ توله غوښنه پخپله خوړل په مالدارانو او غریبانانو باندې تقسیمول تول صورتونه جائز دی خو غوره دا ده چه درې حصې ئې کړی یوه حصه په خپله اوخوری بله حصه رشته دارانو ته ورکړی اودریمه حصه عامو مسکینانانواوغریبانانو ته ورکړی (د دولسو میاشتو فضائل او احکام) پحواله د درمختار)-

---

(۱) الطبری:۱۸/۶۳۶.

(۲) صحیح مسلم کتاب الاضاحی باب بیان ماکان من النهی عن اکل لحوم الاضاحی بعدثلاثة..:۱۹۷۷، ترمذی:۱۵۱۰.

(۳) صحیح مسلم حواله سابق:۱۹۷۱،ابوداؤد:۲۸۱۲، ابن حبان:۵۹۲۷.

(۴) صحیح بخاری کتاب الاضاحی باب مایوکل من لحوم الاضاحی ومایتزودمنها:۵۵۶۹.

د خرمن باره کښې په مسند احمد کښې حديث دې وئې خورئې د الله ﷻ په لار کښې ورکړنې د خرمن نه فائده اوچته کړئې خودا خرخونې مه([1]) بعضې علماؤ د خرخولو اجازت ورکړې دې بعضې وائي په غريبانانو کښې دې تقسيم کړې شي. (مسئله)

**اول مونځ بيا قرباني کول سنت دي:** براء بن عازب رضي الله عنه وائي چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي د ټولونه اول مونږ له په هغه ورځ مونځ اداکول پکار دي بياواپس کيدل او قربانيانې کول پکاردي څوک چه داسې اوکړي هغه سنت اداکړل اوچاچه د مانځه نه وړاندې قرباني اوکړه نوداسې ده لکه چه هغه د خپل کوروالا دپاره غوښه راجمع کړه د هغه قربانئې سره هيڅ مينه نشته. ([2]) (بخاري ومسلم) د دې وجې د امام شافعي رحمه الله اود علماؤد يوې ډلې داخيال دې چه د قربانئې اول وخت هغه وخت دې چه کله نمر راوخيژي.اودومره وخت تيرشي چه مونځ اوشي او دوه خطبې اوشي. د امام احمد رحمه الله په نيز د دې نه پس دومره وخت هم چه امام حلال، اوکړي څکه چه په صحيح مسلم کښې دي امام چه ترکومې قرباني اونه کړي تاسو قرباني مه کوئي. ([3])(احمد ابن حبان) وائي چه د قربانئې ورځې د ذي الحجه د خاتمه پورې دي خوداقول غريب دې

### د مانځه نه وړاندې د قربانئ کولو حکم

**مسلک حنفي:-** په کلو کښې د اختر د مانځه نه وړاندې قرباني کول جائز ده او په ښارونو کښې چه د اختر مونځ په کښې کيږي د اختر د مانځۀ نه وړاندې قرباني کول جائز نه ده ([4])په حواله د درمختار-
بيافرمائي چه هم په دې وجه مونږ دا څاروی اوځناور ستاسوحکم منونکي کړي دي چه کله هم تاسو غواړئې سورلي کوئي کله چه غواړئې پئې ترې اخلئې کله چه غواړئې حلالوئې غوښه خورئې لکه چه په سورت يس په آيت ﴿ أَلَمْ يَرَوْا كَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم مِّنَ الْقُرُونِ أَنَّهُمْ إِلَيْهِمْ لَا يَرْجِعُونَ ۝ وَإِن كُلٌّ لَّمَّا جَمِيعٌ لَّدَيْنَا مُحْضَرُونَ ۝ وَآيَةٌ لَّهُمُ الْأَرْضُ الْمَيْتَةُ أَحْيَيْنَاهَا وَأَخْرَجْنَا مِنْهَا حَبًّا فَمِنْهُ يَأْكُلُونَ ۝ وَجَعَلْنَا فِيهَا جَنَّاتٍ مِّن نَّخِيلٍ وَأَعْنَابٍ وَفَجَّرْنَا فِيهَا مِنَ الْعُيُونِ ۝ لِيَأْكُلُوا مِن ثَمَرِهِ وَمَا عَمِلَتْهُ أَيْدِيهِمْ ۖ أَفَلَا يَشْكُرُونَ ۝ ﴾ کښې بيان شوې دې. هم دغه فرمان دلته دې چه د الله ﷻ د دې نعمت شکر اداکړئې ناشکري اوناقدري مه کوئي.

| وَلَٰكِن يَنَالُهُ | وَلَا دِمَاؤُهَا | لُحُومُهَا | اللَّهَ | لَن يَنَالَ |
|---|---|---|---|---|
| وليکن رسي هغه ته | اونه اوويني دهغې | غوښې دهغې | الله ته | هر گز نه رسي |
| اونه ئې وينه \| بلکه هغه ته ستاسو صرف | | | | |

| لَكُمْ | سَخَّرَهَا | كَذَٰلِكَ | مِنكُمْ | التَّقْوَىٰ |
|---|---|---|---|---|
| دپاره ستاسو | تابع کړل هغه دا څاروی | دارنګې | ستاسو نه | تقوی |
| پرهيزګاري رسيږي \| په دې شان هغه دا څاروی ستاسو تابع کړي دي اچې تاسو | | | | |

---

[1] احمد:۱۵/۴ مجمع الزوائد:۲۶/۴.
[2] صحيح بخاري كتاب العيدين باب الخطبة بعد العيد:۹۶۵، صحيح مسلم:۱۹۶۱، ابوداؤد:۲۸۰۱، ترمذي:۱۵۰۸، احمد:۳۰۳/۴،
[3] صحيح مسلم كتاب اولاضاحي باب من الاضحية:۱۹۶۴.
[4] د دولسو مياشتو فضائل اواحکام (ص،۲۴۲)

| لِتُكَبِّرُوا اللهَ | عَلٰى مَا | هَدٰىكُمْ |
| --- | --- | --- |
| دپاره ددې چې تاسو لوئې بیان کړی دالله | په هغه هدایت باند | چې ښودلې ئې دې تاسو ته |
| دالله ﷻ لوی بیان کړئ | .....................هغه تاسو ته لار خودلې ده | |

| وَبَشِّرِ | الْمُحْسِنِيْنَ ۝ |
| --- | --- |
| او زیرې ورکړه (اے نبی ﷺ) | نیکی کونکو خلقو له |
| (ائې نبی ﷺ) نیکی کونکو ته زیرې ورکړه | |

قوله تعالى:-وَلٰكِنْ يَّنَالُهُ التَّقْوٰى مِنْكُمْ ط

**د تقوی فضیلت**:-ارشاددې چه د قربانیانو په وخت کښې د الله ﷻ نوم په لوئې سره اخلئ هم د دې د پاره قربانیانې مقررشوی دی چه په خالق اورازق سره ئې اومننئ دانه چه د قربانیانو په غوښه اووینه سره د الله ﷻ فائده کیږی. الله ﷻ د ټول مخلوق نه غنی او د ټول بندیگانونه بې پرواه دې.دجاهلیت د بې وقوفتیاګانو نه یوه داهم وه چه د قربانو د څاروو غوښه به ئې خپله بتانوته کیخوده او په هغوی باندې به ئې د وینې څاڅکې کولو. داهم رواج وو چه په بیت الله باندې به ئې وینوڅاڅکی شیندل. مسلمانان کیدو سره صحابه کرامو ﷺ ددې باره کښې تپوس اوکړو په کوم باندې چه دا آیت نازل شو چه الله ﷻ خو تقوی ته ګوری او قبلوی اوهم په دې باندې بدله ورکوی. په صحیح حدیث کښې دی چه الله ستاسوصورتونوته نه ګوری نه د هغه نظر ستاسو په مال باندې دې بلکه د هغه نظر ستاسو په زړونوباندې دې اوستاسو په اعمالوباندې دې[1]یوبل حدیث کښې دی چه خیرات اوصدقه د سوال کونکی په لاس کښې پریوځی د دې نه اول د الله ﷻ لاس ته ورځی د قربانئی د څاروی د وینو څاڅکې په زمکه باندې پریوځی دې نه اول الله ﷻ ته رسی[2]دې هم دا مطلب دې چه د وینوڅاڅکې جدا کیدو سره قربانی قبلیږی. والله اعلم.

**د قربانئ د خړمنې حکم**:-دعامر شعبی رحمه الله نه د قربانئی د څرمنوباره کښې تپوس اوشو نوئی فرمائیل الله ﷻ ته غوښه اووینه نه رسی که غواړئی خرڅئی کړئی او که غواړئی وئی ساتئی که غواړئی نو د الله ﷻ په لار کښې ئې ورکړئی. هم د دې د پاره الله ﷻ دا څناور ستاسوپه قبضه کښې کړی دی چه تاسو د الله ﷻ د دین او د هغه د شریعت لار اووینئی د هغه د خوښې کارونه اوکړئی اود هغه دناخوښې کارونونه منع شئی اودهغه عظمت اولوئی بیان کړئی کوم خلق چه نیکوکاردی اود الله ﷻدحدودو پابندی په شریعت باندې عمل کونکی دی درسولانوصداقت کوی هغوی دمبارکئی او زیرو لائق دی.

(مسئله)

د امام ابوحنیفه، امام مالك او ثوری رحمهم الله قول دې چاسره چه د زکوة د نصاب برابر مال وی په هغه باندې قربانی واجب ده د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دا شرط هم دې چه هغه په خپل کورکښې مقیم وی. په یوصحیح حدیث کښې دی چه د چا وس وی او قربانی اونه کړی نوهغه دې زمونږعیدګاه ته نه نیزدې کیږی.[3] په دې روایت کښې غرابت دې اوامام احمدرحمه الله دا منکر ښائی. ابن عمر رضی الله عنه فرمائی

---

[1] صحيح مسلم كتاب البروالصلة باب تحريم ظلم المسلم:۲۵۶٤/۳٤.

[2] ترمذى كتاب الاضاحى باب ماجاء فى فضل الاضحية:۱٤۹۳ابن ماجه:۳۱۲۶،

[3] احمد:۳۲۱/۲، ابن ماجه:۳۱۲۳وسنده حسن، حاكم:۳۸۹/۲، دارقطنى:۲۸۵/٤.

رسول الله ﷺ برابر لس کالوپورې هرکال قرباني کوله. (۱) (ترمذی)

**د قربانۍ نصاب**

**مسلک حنفي:**-په څومره مال باندې چه د صدقه فطر واجبيږي هم په هغه هومره باندې قرباني هم واجبيږي د دې دپاره د کال تيريدل اود مال تجارتي کيدل ضروري نه دي بلکه که يو کس د ضرورت نه زياتي سامان وي او دهغې قيمت دومره وي چه په هغې باندې د قربانۍ څاروې اخستې شي نو په هغه باندې هم قرباني واجب ده (د دولسو مياشتو فضائل او احکام (ص، ۲۴۰) پحواله د در مختار)

د امام شافعي رحمه الله اوامام احمد رحمه الله مذهب دې چه قرباني واجب او فرض نه ده بلکه مستحب ده څکه چه په حديث کښې راغلي دي په مال کښې د زکوة نه علاوه بل هيڅ فرضيت نشته.(۲) داهم اول روايت بيان کړې شوې دې چه حضور ﷺ د خپل ټول امت د طرف نه قرباني کړې نو واجب کيدل ساقط شو.

حضرت ابوشريح رحمه الله فرمائي د حضرت ابوبکر ﷺ او حضرت عمر ﷺ په ګاونډ کښې اوسيدلم دې دواړو بزرګانو به قرباني نه کوله په دې ويره چه خلق به د هغوی اقتداء اوکړي بعضې خلق وائي چه قرباني سنت کفايه ده چه په محله کښې يا په کوڅه کښې يا په کورنئ کښې يوکس هم اوکړه نود باقي غاړه خلاصه شوه د دې د پاره مقصدصرف شعار ښکاره کول دي. په ترمذي وغيره کښې دي رسول الله ﷺ د عرفات په ميدان کښې اوفرمائيل په هريوکوروالا باندې په هرکال کښې قرباني ده او هغه عتيره ده معلومه ده چه عتيره څه څيزدې؟ هم هغه کوم ته چه تاسو رجبيه وائي. (۳)د دې په سند کښې کلام کړې شوې دې.

ابوايوب ﷺ فرمائي صحابه کرامو رضي الله عنهم به د رسول الله ﷺ په موجودګۍ د ټولې کورنئ د طرف نه يوه چيلئ د الله ﷻ په لار کښې حلالوله پخپله به ئې هم خوړله اوبه نورو باندې به ئې هم خوړله بيا په دې کښې خلقو دا اوکړو چه تاسو ئې ګورئ. (۴) (ترمذی ابن ماجه) عبدالله بن هشام رحمه الله به د خپل ځان اود کور والا د طرف نه به يوه چيلئ قرباني کوله. (۵) (بخاری)

**د قربانۍ د څاروي عمر:**-اوس دقربانئ دڅاروی دعمر باره کښې اوګورئ. په صحيح مسلم کښې رسول الله ﷺ فرمائي چه مه حلالوئ مګرمسنه (عمرته رسيدلې) بغيرد هغه صورت چه هغه په تاسو باندې ګران پريوځي اوبيا د ګډې بچې هم د شپږومياشتو حلالولې شئ.(۶)زهري رحمه الله خوفرمائي چه جذعه يعني شپږمياشتيز څناورخودقربانئ په کارکښې نه شي راوستې اود دې په مقابله کښې د اوزاعي رحمه الله مذهب دې چه دهريوجزعه کافي ده خودادواړه اقوال دافراط تفريط يعني کمي زياتي والا دی.

د جمهورو مذهب دا دې چه اوښ غوا چيلئ خو هغه جائز ده چه ثنی وی او د ګډې د شپږو مياشتو هم جائزدې. اوښ خو دوه کالنې وی کله چه د پنځوکالوشي او په شپږم کښې شي اوغوا چه کله د دوو کالو پوره شي په دريم کښې شي اوداهم ونيلې شوی دی چه درې تيرکړي اوپه څلورم کښې وی اود چيلئ ثنی خو هغه دې چه دوه کاله تيرشوی وی اوجذعه وائي چه د پوره کال وی اوونيلې شوی دی چه د لسو مياشتو وی يوقول دې چه د اتومياشتو وی يوقول دې چه د شپږو مياشتو وی اود دې نه د کمې

---

۱) ترمذی کتاب الاضاحی باب دلدليل على ان الاضحية سنة:۱۵۰۷، احمد:۳۸/۲.

۲) ابن ماجه کتاب الزکاة باب ماادی زکاته ليس بکنز:۱۷۸۹.

۳) ابوداؤد کتاب الضحايا باب ماجاء في ايجاب الاضاحی:۲۷۸۸. ترمذی:۱۵۱۸،نسائی:۴۲۲۹، ابن ماجه ۳۱۲۵.

۴) ترمذی کتاب الاضاحی باب ماجاء ان الشاة الواحدة تجزئ من اهل البيت:۱۵۰۵، وهوصحيح، ابن ماجه:۳۱۴۷.

۵) صحيح بخاری کتاب الاحکام باب بيعة الصغير:۷۲۱۰.

۶) صحيح مسلم کتاب الاضاحی باب من الاضحية: ۱۹۶۳،ابوداؤد:۲۷۹۱،احمد:۳۱۲/۳، مسندابي يعلى:۲۳۲۴.

مودي هيڅ يو قول نشته. د دې نه د کم عمر والا ته حمل واني ترکومې چه د دې په شا باندې ويښته اودريږي او ويښته سملی اودواړو طرفو ته تيټ شی نودې ته جذع واني. والله اعلم.

## د قربانئ د ځاروی عمر

**مسلک حنفی:**-چې چيلئ د يو کال نه کمه نه دغه شان چې ګډه ګډه د يو کال نه کم نه وی البته دا که خورب وی چه په نظر سره د شپږو مياشتو نه زيات ښکاری نو په هغې ګډ قربانی جائز ده دغه شان د غوا او ميخې دپاره دوه کاله عمر شرط دې که د دې نه کم وی قربانی پرې نه کيږی او د اوښ عمر پنځه کال پکاردې که د پنځو کالو نه کم وی نوقربانی پرې نه کيږی (١)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَنِ الَّذِيْنَ | يُدٰفِعُ | اِنَّ اللّٰهَ | | |
| دهغه خلقو دطرفنه | مدافعت کوی | بيشکه الله | | |
| بيشکه چې الله ﷻ به دمومنانو نه | | | | |
| اُذِنَ | كَفُوْرٍ | كُلَّ خَوَّانٍ | لَا يُحِبُّ | اِنَّ اللّٰهَ | اٰمَنُوْا |
| اجازت ورکړې شو | نعمت ناشکره | هر خيانتګر | نهٔ خوښوی | بيشکه الله | چې ايمان ئې راوړې دې |
| هغه مسلمانانو ته | | او بيشکه الله ﷻ هيڅ خيانت ګر ناشکره نه خوښوی | | | (دمشرکانو غلبه) ختمه کړی |
| ظُلِمُوْا | بِاَنَّهُمْ | يُقٰتَلُوْنَ | لِلَّذِيْنَ | | |
| ظلم شوې دې | په سبب ددې چې په هغوئ باندې | چې د چا خلاف جنګ کيږی | هغه کسانو ته | | |
| ځکه چې په دوئ ظلم کيږی | | اوس دجنګ کولو اجازت کولې شی | کوم سره چې جنګ کولې شی | | |
| اُخْرِجُوْا | الَّذِيْنَ | لَقَدِيْرُ | عَلٰى نَصْرِهِمْ | وَاِنَّ اللّٰهَ | |
| چې اوويستلې شو | دا هغه کسان دی | خامخا قادر دې | په مدد دهغوئ باند | او بيشکه الله | |
| کوم چې ددوئ | دا هغه خلق دی | | او بيشکه الله ﷻ ددوئ په مدد کولو باندې قادردې | | |
| رَبُّنَا اللّٰهُ | يَّقُوْلُوْا | اِلَّآ اَنْ | بِغَيْرِ حَقٍّ | مِنْ دِيَارِهِمْ | |
| رب زمونږ الله دې | چې وئيل به هغوئ | بل سبب نهٔ وو مګر دا | په ناحقه | دکورونو خپلو نه | |
| صرف په دې وجه چې دوئ دا وائی چې زمونږ رب الله ﷻ دې | | | | دکورونو نه په ناحقه ويستلې شوی دی | |
| لَّهُدِّمَتْ | بِبَعْضٍ | بَعْضَهُمْ | النَّاسَ | دَفْعُ اللّٰهِ | وَلَوْلَا |
| نړولې شوی به وو | په ځينو نورو باندې | په ځينی دهغوئ لره | خلقو لره | دفع کول دالله | اوکه نه وې |
| او که چرې الله ﷻ خلق ديو بل په ذريعه نه دفع کولې انو (دراهبانو) خانقاهګانې او (دعيسايانو) | | | | | |

(١) (د دولستو مياشتو فضائل او احکام (ص، ۲۴۳) بحواله د شامی.

| صَوَامِعُ | وَبِيَعٌ | وَّصَلَوٰتٌ | وَّمَسٰجِدُ |
| --- | --- | --- | --- |
| د راهبانو خانقاګاني | دعيسايانو ګرجې | او ديهوديانو عبادت خاني | او دمسلمانانو جوماتونه |

ګرجې او (ديهوديانو) عبادت خاني او (دمسلمانانو) جماتونه چې د الله ﷻ

| يُذْكَرُ | فِيهَا | اسْمُ اللّٰهِ | كَثِيْرًا | وَلَيَنْصُرَنَّ | اللّٰهُ | مَنْ |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| چې يادولې شي | په هغې کښې | نوم دالله | ډير | او خامخا به امداد کوي | الله | دهغه چا |

نوم په کښې ډير ډير يادولې شي (داټول) به وران شوي وو او الله ﷻ به دهغه چا مدد کوي

| يَّنْصُرُهٗ | اِنَّ اللّٰهَ | لَقَوِيٌّ | عَزِيْزٌ۝ |
| --- | --- | --- | --- |
| چې مدد کوي دهغه | بيشکه الله | ډير طاقتور دي | غالب دي |

خوک چې دهغه (ددين) مدد کوي بيشکه الله ﷻ زوراور او غالب دي

الله ﷻ دخپل طرف نه خبرورکوي چه دهغه کوم بنديګان په هغه باندې يقين اوکړي د هغه طرف ته تيتيږي هغوی ته هغه خپل امان ورنصيب کوي دشيطانانوبداودښمنانوبدونه پخپله هغه لرې کوي خپل امداد په هغوی باندې نازل کوي پخپل حفاظت کښې هغوی ساتي.لکه چه ارشاددي﴿اَلَيْسَ اللّٰهُ بِكَافٍ عَبْدَهٗ ۖ وَيُخَوِّفُوْنَكَ بِالَّذِيْنَ مِنْ دُوْنِهٖ ۚ وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ هَادٍ﴾[1] يعنی آيا الله ﷻ دخپل بنده د پاره کافی نه دې؟يو بل ايت کښې دی﴿وَمَنْ يَّتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ فَهُوَ حَسْبُهٗ ۚ اِنَّ اللّٰهَ بَالِغُ اَمْرِهٖ ۚ قَدْ جَعَلَ اللّٰهُ لِكُلِّ شَيْءٍ قَدْرًا۝﴾[2] خوك چه په الله ﷻ باندې بهروسه اوتکل اوکړی هغه پخپله دهغوی دپاره کافی دې.الخ دهوکه بازاوناشکره د الله ﷻ د محبت نه محروم دی خپلې وعدې نه پوره کونکی دالله ﷻ دنعمتونومنکردالله ﷻ د مينې نه لرې دی.

قوله تعالی:- اِنَّ اللّٰهَ يُدٰفِعُ عَنِ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ط

**د جهاد اجازت اود هغې پس منظر**:-حضرت ابن عباس ؓ وائي چه کله حضور ﷺ او صحابه کرام ؓ د مکې نه هم ويستلې شواوکافرانودمکې نه حمله اوکړه نوهله دجهاد داجازت داآيت نازل شو. ([3]) د ډيرو سلفونه نقل دی چه داد جهاد ړومبې آيت دې کوم چه په قرآن کريم کښې نازل شوې. ([4])دې نه بعضې بزرګانو استدلال کړې دې چه داسورت مدنی دې.کله چه رسول الله ﷺ د مکې نه هجرت اوکړو نوحضرت ابوبکرصديق ؓ دخلې نه اووتل افسوس چه دې کافرانودالله ﷻ پيغمبرد وطن نه اوويستلو يقينًا دوی به تباه کيږی بيا دا آيت نازل شونو صديق اکبر ؓ پوهه شو چه جنګک به کيږی. ([5])الله ﷻ د خپلو مؤمنانوبنديګانوپه امداد باندې قادردې که غواړی نوبې جنګ اوبې دعوی به دوی غالب کړی خوهغه ازمينبت کول غواړی په دې وجه حکم اوشو چه د دې کافرانوسترونه اووهنې الخ. يوبل آيت کښې دی ارشادفرمائی ﴿قَاتِلُوْهُمْ يُعَذِّبْهُمُ اللّٰهُ بِاَيْدِيْكُمْ وَيُخْزِهِمْ وَيَنْصُرْكُمْ عَلَيْهِمْ وَيَشْفِ صُدُوْرَ قَوْمٍ مُّؤْمِنِيْنَ۝﴾ ([6]) دوی سره اوجنګيږئی الله ﷻ ستاسو په لاس دوی ته سزاورکوی او په دوی به تاسو غالب کړی دوی به رسوا کړی اودمؤمنانودحوصلې اوچتيدلو وخت به ورکړی چه د دوی زړه يخ شی اودې سره چه خوک غواړی

---

[1] ۳۹/الزمر:۳۶.

[2] ۶۵/الطلاق:۳.

[3] الطبری:۶۴۳/۱۸.

[4] الطبری:۶۴۳/۱۸.

[5] احمد:۲۱۶/۱، ترمذی کتاب تفسيرالقرآن باب ومن سورة الحج:۳۱۷۱وهوصحيح، السنن الکبری للنسائی:۱۱۳۴۵.

[6] ۹/التوبه: ۱۴.

د توبې توفيق به ورکړې الله ﷻ دعلم اوحکمت مالك دی. بل آيت کښې دی ﴿أَمْ حَسِبْتُمْ أَنْ تُتْرَكُوا وَلَمَّا يَعْلَمِ اللَّهُ الَّذِينَ جَاهَدُوا مِنْكُمْ وَلَمْ يَتَّخِذُوا مِنْ دُونِ اللَّهِ وَلَا رَسُولِهِ وَلَا الْمُؤْمِنِينَ وَلِيجَةً ۚ وَاللَّهُ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ﴾[1] آيا تاسو داسوچ کړې دې چه تاسوبه پريخودلې شئې حالانکه تراوسه پورې خو هغه ښکاره شوی نه دی چه مجاهددی اود الله ﷻ اودهغه رسول ﷺ اودمسلمانانونه بغيرد چاسره دوستی اويوشان والې نه کوی نوپوهه شئی چه الله ﷻ ستاسو د عمل نه خبردې. بل آيت کښې دی آيا تاسو دا ګمان اوکړو چه تاسو به جنت ته لاړشئی سره ددې چه تراوسه پورې مجاهدين صابرين د نورونه ممتازشوی نه دی.[2] بل آيت کښې ارشاد فرمائی ﴿وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ حَتَّىٰ نَعْلَمَ الْمُجَاهِدِينَ مِنْكُمْ وَالصَّابِرِينَ وَنَبْلُوَ أَخْبَارَكُمْ﴾[3] مونږ به يقينًا تاسو ازميښت کووترهغه وخت پورې چه په تاسو کښې غازيان او صبرکونکی زمونږ په وړاندې ښکاره شی. په دې باره کښې نورهم ډيرآياتونه دی. بيائی اوفرمائيل الله ﷻ د هغوی په امدادباندې قادردې اوهم داسې اوشو چه الله ﷻ خپل لښکر په دنيا باندې غالب کړو.[4]

**مکی دور کښې د جهاد نه کولو حکمت:**-جهادچه کوم وخت شريعت مشروع کړو هغه وخت هم د دې د باره مناسب او صحيح وو. ترکومې چه حضور ﷺ په مکه کښې وو مسلمانان ډيرکمزورې وو په شمير کښې به هم د لسو په مقابله کښې يوپه مشکله راتلو. کله چه په ليلة العقبه کښې انصارو د رسول الله ﷺ په لاس باندې بيعت اوکړونو هغوی اووئيل که حضور ﷺ حکم اوکړی نودې وخت چه په منی کښې څومره مشرکان جمع دی په دوی به حمله اوکړو خوحضور ﷺ اوفرمائيل ماته لاأوس د دې حکم نه دې راکړې شوې دايادساتئی چه دا بزرګان صرف د اتياؤ نه لږ شان د پاسه وو. کله چه د مشرکانوبغاوت زيات شواوهغوی په سرکشئی کښې د حدنه وړاندې شوحضور ﷺ ته به ئی سخت تکليفونه ورکول اود هغوی په قتل کولوپسې شو هغوی ﷺ ئی د وطن نه د ويستلو منصوبې جوړولې دغه شان ئی په صحابه کرامو ﷺ باندې د مصيبتوتوغرونه راکينول دوه لاسه تش تور وطن مال اسباب خپل پردی ئی پريخودل چرته چه د چا وس وو په موقعه ئی اوکتله او په ويره روان شو څه حبشه ته لاړل اوڅه مدينې نه لاړل تردې چه پخپله د رسالت د آفتاب راختل هم په مدينه کښې اوشو د مدينې خلق د محمد ﷺ دجهنډې لاندې خوشحاله راجمع شو.دلښکرشکل ئی جوړکړو يوڅومسلمانان د يوې جهنډې لاندې راجمع ښکاره شود قدم کلکيدو ځاې ورته ملاوشو. اوس د دين دښمنانوسره د جهاداحکامات نازل شو نود ټولونه اول هم دا نازل شو. په دې کښې بيان اوفرمائيلې شو چه دامسلمانان مظلومان دی اود دوی نه د دوی کور، مال حال واخستلې شو بې وجه د کورنه بې کوره کړې شو د مکې نه راوويستلې شواومدينې ته بې آسرې اوبې سامانه راورسيدل.[5] دهغوی هيڅ جرم بغيرد دې نه نه ووچه صرف د يو الله ﷻ منونکی وو رب ئی يومنلو اوخپل پروردګارئی صرف هم الله ﷻ ګڼړلو. دا استثنا منقطع ده د مشرکانو په نيزدا يوډيرلوئ جرم دې چه په هيڅ کله هم په يوصورت کښې دمعاف کولو قابل نه دی.ارشاد دی ﴿يُخْرِجُونَ الرَّسُولَ وَإِيَّاكُمْ أَنْ تُؤْمِنُوا بِاللَّهِ رَبِّكُمْ إِنْ كُنْتُمْ خَرَجْتُمْ جِهَادًا فِي سَبِيلِي وَابْتِغَاءَ مَرْضَاتِي ۚ تُسِرُّونَ إِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ وَأَنَا أَعْلَمُ بِمَا أَخْفَيْتُمْ وَمَا أَعْلَنْتُمْ ۚ وَمَنْ يَفْعَلْهُ مِنْكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَاءَ السَّبِيلِ﴾[6] تاسواوستاسو رسول ﷺ

---

[1] ) ۹/التوبه: ۱۶.
[2] ) ۳/آل عمران: ۱۴۲.
[3] ) ۴۷/محمد: ۳۱.
[4] ) الطبری: ۱۸/۶۴۳.
[5] ) الطبری: ۱۸/۶۴۳.
[6] ) ۶۰/الممتحنة: ۱. الخ

صرف په دې وجه اوباسي چه تاسو په الله ﷻ باندې ايمان لرئى كوم چه ستاسو حقيقى پروردګارډې د خندقونووالا په قصه كښې اوفرمائيل ﴿ وَمَا نَقَمُوا مِنْهُمْ إِلَّا أَن يُؤْمِنُوا بِاللَّهِ الْعَزِيزِ الْحَمِيدِ ﴾ (١) يعنى په حقيقت كښې د هغوى څه قصور نه ووبغيرد دې نه چه هغوى په الله ﷻ غالب مهربان د احسان مالك باندې ايمان راوړلې وو. مسلمانانو صحابه كرامو ﷺ به خندق كنستلواو خپل خان سره به ئې ونيل :-

لاهم لولاانت مااهتدينا ولا تصدقنا ولا صلينا

فانزلن سكينة علينا وثبت الاقدام ان لاقينا

ان الاولى قد بغوا علينا اذاارادوا فتنة ابينا

پخپله رسول الله ﷺ هم د هغوى په موافقت كښې ووارد قافيه آخرى حرف به رسول الله ﷺ هم د هغوى سره اداكولو اوابيناوئيلوسره به ئې ښه آواز اوچتولو.(٢) بيافرمائى چه كه الله ﷻ د يوعلاج په بل سره نه كولو اويه هريوسير باندې پاؤباندې سير نه وونو په زمكه به شراوفساد خوريدلو هريوطاقتور به كمزورې تيرولو.

﴿صَوَامِعُ وَبِيَعٌ وَصَلَوَاتٌ﴾ددې څه مطلب دې :-؟دعيسايانو عابدانو ووكو عبادت خانوته صوامع وائى (٣) يو قول دا هم دې چه د صابى مذهب د خلقو د عبادت خانونوم دې اوبعضې وائى چه د مجوسيانوآتش كدوته صوامع وائى. مقاتل ﷫ وائى داهغه كورونه دى چه په لاروكښې وى او﴿بِيَعٌ﴾ د دې نه لوئ كورونه وى داهم د نصرانيانود عابدانو عبادت خانې وى(٤) بعضې وائى دا د يهوديانوكنسې دى اود صلوات هم يوه معنى هم دا كړې شوې ده(٥)بعضې وائى چه دې نه مراد ګرجې دى اود بعضو قول دې دصابى خلقو عبادت خانې دى په لاروكښې چه داهل كتابوكومې عبادت خانې دى هم هغې ته صلوات وئيلې شى اوچه دمسلمانانووى نوهغې ته جماتونه وائى(٦) د ﴿فِيهَا﴾ د ضمير مرجع جماتونه دى خكه چه د ټولونه اول هم دا لفظ دې داهم وئيلې شوى دى چه دې نه مراد دا ټول خايونه دى يعنى ددنياترك كونكوخلقو صوامع دنصرانيانو بيع ديهوديانو صلوات اودمسلمانانوجماتونه په كومو كښې چه د الله ﷻ نوم ښه اخستې شي. (٧)

د بعضې علماؤ بيان دې چه په دې آيت كښې د اقل نه د اكثرطرفته د ترقى صنعت كيخودې شوې دى نود ټولونه زيات آباد اود ټولونه لوئ د عبادت كور د كوم خائ د عبادت كونكو اراده صحيح نيك نيت اوعمل صالح دى هغه جماتونه دى. بيافرمائى الله ﷻ د خپل دين د امداديانو پخپله مددګاردې. لكه چه ارشاد دې ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِن تَنصُرُوا اللَّهَ يَنصُرْكُمْ وَيُثَبِّتْ أَقْدَامَكُمْ ﴾ (٨) اې مسلمانانوكه تاسو د الله ﷻ د دين امدادكوئى نو الله ﷻ به ستاسو امداد اوكړى اوتاسو ته به ثابت قدمى دركړى په كافرانوباندې افسوس دې اود هغوى عملونه غرق دى. بيائى خپل دوه صفتونه بيان كړل قوى كيدل چه ټول مخلوق ئې پيداكړو د عزت مالك كيدل چه ټول د هغه ماتحت دى هريود هغه مخكې

(١) ٨٥/البروج: ٨.
(٢) صحيح بخارى كتاب المغازى باب غزوة الخندق وهى الاحزاب:٤١٠٦، صحيح مسلم:١٨٠٣.
(٣) الطبرى:٦٤٧/١٨.
(٤) الطبرى:٦٤٨/١٨.
(٥) الطبرى: ٦٤٩/١٨.
(٦) الطبرى:٦٥٠/١٨.
(٧) الطبرى:٦٥٠/١٨.
(٨) ٤٧/محمد:٧.

ذلیل بنکته ټول د هغه محتاج هغه د ﷲ تعالی نه بې پرواه چاله چه هغه امداد ورکړی هغه غالب د چانه چه دهغه امداد اخواشی هغه مغلوب. فرمانی ﴿وَلَقَدْ سَبَقَتْ كَلِمَتُنَا لِعِبَادِنَا الْمُرْسَلِيْنَ ۝ إِنَّهُمْ لَهُمُ الْمَنْصُوْرُوْنَ ۝﴾ ([1]) یعنی مونږ خود اول نه خپلو رسولانوسره وعده کړې ده چه د هغوی به په یقینی توګه باندې امدادکولې شي اودا چه هم زمونږ لښکر به غالب راځي. بل آیت کښې دی ﴿كَتَبَ اللّٰهُ لَاَغْلِبَنَّ اَنَا وَرُسُلِيْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ قَوِيٌّ عَزِيْزٌ ۝﴾([2]) الله ﷻ ونیلی دی چه زه اوزمارسولان علیهم السلام غالب دی بې شکه الله ﷻ د قوت اوعزت مالك دې.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَلَّذِيْنَ اِنْ مَّكَّنّٰهُمْ | فِي الْاَرْضِ | اَقَامُوا | الصَّلٰوةَ | وَاٰتَوُا | |
| دا هغه خلق دی چې اقتدار ورکړو مونږ هغوئ لره \| په زمکه کښې \| نو قائیموی به \| مانځه لره \| او ورکوی به | | | | | |
| دغه (مظلومان) داسې خلق دی اکه مونږ ورته دزمکې په مخ باندې حکومت ورکړو \| نو دمونځ پابندی به کوی | | | | | |
| الزَّكٰوةَ | وَاَمَرُوْا | بِالْمَعْرُوْفِ | وَنَهَوْا | عَنِ الْمُنْكَرِ ؕ | وَلِلّٰهِ |
| زکات \| او حکم به کوی \| دنیکئ \| او منع کوی \| دبدئ نه \| او دالله په لاس کښې دې | | | | | |
| او زکاتونه به ورکوی \| اونورو ته به د نیکئ کولو حکم کوی \| اوبدئی نه به ئې منع کوی | | | | | |
| عَاقِبَةُ الْاُمُوْرِ ۝ | وَاِنْ يُّكَذِّبُوْكَ | فَقَدْ كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ | | | |
| انجام \| دټولو معاملاتو \| او که دروغ ګڼړی دوئ تالره \| نو دروغ ګڼړلې دی (رسولان خپل) مخکښې ددوئ نه | | | | | |
| اودهر کارانجام دالله ﷻ په اختیار کښې دې \| اوکه نن دوئ تا درغژن ګڼړی \| نو (څه اوشو) | | | | | |
| قَوْمُ نُوْحٍ | وَّعَادٌ | وَّثَمُوْدُ ۝ | وَقَوْمُ اِبْرٰهِيْمَ | وَقَوْمُ لُوْطٍ ۝ | |
| قوم دنوح \| او عادیانو \| او ثمودیانو \| او قوم دابراهیم \| او قوم دلوط \| | | | | | |
| ددوی نه وړاندې د نوح علیه السلام قوم او عاد او ثمود هم او دابراهیم علیه السلام اود لوط علیه السلام قوم او د مدین | | | | | |
| وَّاَصْحٰبُ مَدْيَنَ ۚ | وَكُذِّبَ | مُوْسٰى | فَاَمْلَيْتُ | لِلْكٰفِرِيْنَ | |
| او مدین والو \| او دروغ ګڼړلې شوې دې \| موسی \| نو مهلت ورکړو ما \| کافرانو لره | | | | | |
| خلقو هم (خپل پیغمبران) دروغژن ګڼړلی وو \| اوموسی علیه السلام هم دروغژن ګڼړلې شوی وو \| نو ما کافرانو | | | | | |
| ثُمَّ | اَخَذْتُهُمْ ۚ | فَكَيْفَ | كَانَ نَكِيْرِ ۝ | فَكَاَيِّنْ | مِّنْ قَرْيَةٍ |
| بیا \| رااونیول ما هغوئ \| خرنګې وو \| عذاب زما \| پس ډیر دی \| دکلونه | | | | | |
| له مهلت ورکړو \| بیا ما دوئ راونیول \| نو (تا اولیدل) چې زما عذاب څنګه وو \| نو څومره کلی | | | | | |

[1] ۳۷/الصافات: ۷۱.
[2] ۵۸/المجادلة: ۲۱.

اَهۡلَكۡنٰهَا وَهِيَ ظَالِمَةٌ فَهِيَ خَاوِيَةٌ

چي هلاك كړي دي مونږه هغه | حال دا چي هغه | ظالمان وو | پس هغه | پريوتي دي |

دی چې مونږ هغه هلاک کړل ا ځکه چې هغوئ نافرمانه وو ا نو اوس دهغوئ چتونه

عَلٰى عُرُوۡشِهَا وَبِئۡرٍ مُّعَطَّلَةٍ وَّقَصۡرٍ مَّشِيۡدٍ ۝

په چتونو خپلو باندي ا او ډيري کوهيان دی ا چي شاړ پراتۀ دی ا او ډيري ماڼئ ا او چتې محکمې ورانې دی

البته پراته دی ا او شاړ کوهيان او ځومره لوړ لوړ محلونه (وران) پراته دی

اَفَلَمۡ يَسِيۡرُوۡا فِي الۡاَرۡضِ فَتَكُوۡنَ لَهُمۡ قُلُوۡبٌ يَّعۡقِلُوۡنَ

ايا دا خلق ګرزيدلي نه دي | په زمکه کښي چي وي | دوئ لره | زړونه | چي پوهه ئې حاصلولې

نو ايا دوئ دزمکې په مخ تګ راتګ نه کوی | چې د دوئ داسې زړونه وې | چې پوهه ئې

بِهَاۤ اَوۡ اٰذَانٌ يَّسۡمَعُوۡنَ بِهَا ۚ فَاِنَّهَا

په هغې سره | ياوې غوږونه دوئ لره | چي اوريدل کولې دوئ | په هغې سره | پس بيشکه حقيقت دادې

پرې کولې شوې | يا داسې غوږونه ئې وې چې په هغې ئې (حقه خبره) اوريدې شوی | خو حقيقت

لَا تَعۡمَى الۡاَبۡصَارُ وَلٰكِنۡ تَعۡمَى الۡقُلُوۡبُ الَّتِيۡ فِي الصُّدُوۡرِ ۝

چي ړندې نۀ دی | سترګې | وليکن | ړانده دی | زړونه | هغه | چي په سينو کښی وی

دا دې | چې سترګې نه ړنديږی بلکه هغه زړونه ړانده دی چې په سينو کښې پټ پراته دی

قوله تعالى:- اَلَّذِيۡنَ اِنۡ مَّكَّنّٰهُمۡ فِي الۡاَرۡضِ

**دا ايت مبارک د چا باره کښې نازل شوی دې؟** حضرت عثمان ﷺ فرمائی چه دا آيت زمونږ باره کښې نازل شوې دې مونږه بې سببه دوطن ويستلې شوې وو بيا الله ﷻ مونږ ته بادشاهی راکړه مونږ د مونځ روژې پابندی اوکړه او ښه کارونه مو اوکړه او د بدونه منع شو نو دا آيت زما او زما دملګرو باره کښې دی ابوالعاليه ؒ فرمائی دې نه مراد اصحاب رسول ﷺ دی.

حضرت عمر بن عبدالعزيز ؒ په خپله خطبه کښې د دې آيت تلاوت کولو سره او فرمائيل په دې کښې صرف دبادشاهانو بيان نه دې بلکه د بادشاه او رعايا دواړو بيان دې. په بادشاه باندې خود اکاردې چه د الله ﷻ حقونه تاسو نه پوره واخلی د الله ﷻ دحق په کوتاهئ کښې تاسو راونيسی او د يوحق دبل نه واخلی او چه ترکومې پورې ممکن وی تاسو ته نيغه لار ښائی په تاسو باندې دهغه حق دادې چه ظاهر او باطن په خوشحالئ خوشحالئ سره د هغه تابعداری اوکړئ. عطيه ؒ فرمائی هم د دې آيت مضمون په آيت ﴿وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا مِنۡكُمۡ وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَيَسۡتَخۡلِفَنَّهُمۡ فِي الۡاَرۡضِ كَمَا اسۡتَخۡلَفَ الَّذِيۡنَ مِنۡ قَبۡلِهِمۡ ۖ وَلَيُمَكِّنَنَّ لَهُمۡ دِيۡنَهُمُ الَّذِي ارۡتَضٰى لَهُمۡ وَلَيُبَدِّلَنَّهُمۡ مِّنۡۢ بَعۡدِ خَوۡفِهِمۡ اَمۡنًا ؕ يَعۡبُدُوۡنَنِيۡ لَا يُشۡرِكُوۡنَ بِيۡ شَيۡـئًا ؕ وَمَنۡ كَفَرَ بَعۡدَ ذٰلِكَ فَاُولٰٓـئِكَ هُمُ الۡفٰسِقُوۡنَ ۝﴾ [1] کښې دې. د کارونو انجام د الله ﷻ په لاس کښې دې او ښکلې نتيجه به هم د پرهيزګارانو وی او دهرې يوې نيکئ بدله هم هغه سره ده.

**د انبياو عليهم السلام دروغ ګڼړلو انجام:**- الله ﷻ خپل نبی ﷺ ته تسلی ورکوی چه د منکرانو انکار تاسره څه نوې خبره نه ده د نوح ؑ نه واخله د موسی ؑ پورې د ټولو انبياو کرامو انکار کافرانو برابر کړې دې

[1] ۲٤/النور: ٥٥.

دلائل مخامخ وو حق ښکاره شو خومنکرانو اونه منله. ماکافرانوته مهلت ورکړې چه دوی سوچ اوفکر اوکړی پخپل انجام باندې غوراوکړی خوچه کله هغوی دنمك حرامئ نه منع نه شونوآخرزما په عذابونوکښې راګیرشو.ګوره چه زما راګیرول څنګه دی بې پناه ثابت شو اوخومره خطرناك انجام ئې شو. دسلفونه نقل دی چه د فرعون د خدائی دعوی او د الله ﷻ په راګیرولوکښې د څلوېښتوکالو موده وه. رسول الله ﷺ فرمائی چه الله ﷻ هریو ظالم ته وخت ورکوی بیا چه کله ئې راګیرکړی نو خلاصې ئې نه وی.بیاحضورﷺ دا آیت ﴿وَكَذٰلِكَ أَخْذُ رَبِّكَ إِذَآ أَخَذَ الْقُرٰى وَهِيَ ظَالِمَةٌ ۚ إِنَّ أَخْذَهٗٓ أَلِيمٌ شَدِيدٌ﴾ (۱) اولوستلو (۲) بیا فرمائی چه دډیروکلو ظالمان کومو چه درسولانوتکذیب کړې وومونږ غرق کړل.د چامحلونه چه کنډرې پرمخې پراته دی د هغوی منزلونه وران شو د هغوی آبادئی تباه شوې د هغوی کوهیان خالی پراته دی چه د پرون پورې آباد وو نن خالی دی د هغوی چونه کړې شوی محلونه چه د لرې نه سپین پړقیدل ښکاریدل چه او چت او اعلی او پاخه وو نن هغه وران پراته دی هلته (۳) ګونګیان خبرې کوی د هغوی مضبوطیاهغوی بچ نه کړې شو دهغې ښائست اوپوخوالې بې کاره ثابت شو درب عذاب هغه تباه برباد کړل. لکه چه ارشاد دې ﴿أَيْنَمَا تَكُونُوا يُدْرِكْكُمُ الْمَوْتُ وَلَوْ كُنْتُمْ فِي بُرُوجٍ مُشَيَّدَةٍ ۗ وَإِنْ تُصِبْهُمْ حَسَنَةٌ يَقُولُوا هٰذِهٖ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ ۖ وَإِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَقُولُوا هٰذِهٖ مِنْ عِنْدِكَ ۚ قُلْ كُلٌّ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ ۖ فَمَالِ هٰؤُلَاءِ الْقَوْمِ لَا يَكَادُونَ يَفْقَهُونَ حَدِيثًا﴾ (۴) سره د دې چه تاسویه چونه کړې شوی قلعه ګانوکښې محفوظ ئې خومرګ به هلته هم تاسو پرینږدی.آیا هغوی پخپله په زمکه کښې ګرځیدل راګرځیدل نه ټیك نه ده کله ئې غور اوفکر هم نه وو کړې چه څه عبرت ئې حاصل کړې وو.امام ابن ابی الدنیا ﷫ "کتاب التفکر والاعتبار" کښې روایت راوړې دې چه الله ﷻ موسی ﷤ له وحی راولیګله اې موسی ﷤ داوسپنې څپلئی واچوه او د اوسپنې والا لرګې واخله په زمکه روان شه آثار او عبرت اوګوره هغه به ختم نه شی تردې چه ستا د اوسپنې څپلئی به ټکرې ټکرې شی اود اوسپنې لرګې به دې هم مات رامات شی. هم په دې کتاب کښې د بعضې هوښیارانوقول دې چه په وعظ سره خپل زړه راژوندې کړه او په غور اوفکر سره دا نورانی کړه اود زهد او دنیا نه بچ کیدو سره دا مرکړه اویه یقین سره دا کلك کړه اود مرګ په ذکر سره دا خوارکړه اود فنا په یقین باندې دې له صبرورکړه ددنیامصیبتونه د ده په وړاندې کیږده د ده سترګې کولاوکړه د زمانې تنګی ده ته اوښایه اودې اوویره وه د ورځو اوختل راوختلو باندې دې پوهه کړه او بیدارئی کړه په تیروشوو واقعاتو باندې دې عبرتناك کړه دپخوانو قصې ده ته واوره دې هوښیارکړه ددوی په ښارونوکښې اود دوی په قصوکښې دې دغور اوفکرعادت کړه اوګوره چه ګناهګارانوسره دهغه معامله څنګه اوشوه څنګه هغوی تاوراتاوکړې شو. نودلته هم دغه فرمان دې چه د پخوانو خلقو واقعات مخې ته کیږدئی اوخپل زړه پوهه کړئی د هغوی د هلاکت ربښتونې قصې اوریدوسره عبرت حاصل کړئی واورئی صرف سترګې ړندې نه وی بلکه د ټولونه زیات خراب ړوندتوب د زړه دې سره د دې چه سترګې ئې صحیح سالم وی. د زړه د ړوندوالی په وجه نه عبرت حاصلیدې شی نه د خیراوشر تمیزکیږی. ابومحمدابن حیان اندلسی خوك چه ۵۱۷هـ کښې وفات شوې وو دامضمون ئې پخپلو یوڅوشعرونوکښې ښه ځائ کړې دې فرمائی چه اې سړیه چه په ګناهونوکښې خوندونه اخلې آیا ته دخپل بوډاوالی اوخراب حالت نه هم خبرنئې؟که نصیحت اثر نه کوی نو آیا په کتلواوریدلوسره هم عبرت نه حاصلیږی؟ واوره سترګې او

(۱) ۱۱/هود:۱۰۲.

(۲) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة هود باب قوله ﴿وكذلك اخذ ربك اذااخذالقرى....﴾:٤٦٨٦، صحیح مسلم۲۵۸۳، ترمذی:۳۱۱۰، ابن ماجه:٤٠١٨،ابن حبان:۵۱۷۵،بیهقی:٦/٩٤.

(۳) الطبری: ۱۸/٦۵۳.

(۴) ٤/النساء:۷۸.

غوړونه دې خپل کاراونه کړي نودومره بدنه دي چه څومره بد دا دي چه دواقعاتونه سبق حاصل نه کړي شي يادساته چه نه خو به دنياباقي وي نه دا آسمان اونه نمر. که زړه دي نه غواړي خود دنيانه به يوه ورځ د زړه په نه غوښتو هم تلل وي. څه به مالداروي اوڅه غريب څه به ښاروالا وي اوڅه به کلي والا.

| وَيَسْتَعْجِلُونَكَ | بِالْعَذَابِ | وَلَنْ يُخْلِفَ اللّٰهُ | وَعْدَهٗ |
|---|---|---|---|
| او تلوار کوي دا خلق په تا | په راوستلو د عذاب | او هر گز به خلاف نه کوي الله | دوعدې خپلې |
| اوداخلق له تانه زر عذاب غواړي او الله ﷻ به هيچرې دخپلې وعدې خلاف ورزی نه کوي | | | |

| وَاِنَّ يَوْمًا | عِنْدَ رَبِّكَ | كَاَلْفِ سَنَةٍ | مِّمَّا | تَعُدُّوْنَ |
|---|---|---|---|---|
| او بيشکه چې يوه ورځ | په نزدرب ستا | پشان دزرو کالو ده | دهغې کلونو نه | چې تاسو ئې شماري |
| اوستا درب يوه ورځ ستاسو دشمير مطابق د زروکالو سره برابره ده | | | | |

| وَكَاَيِّنْ | مِّنْ قَرْيَةٍ | اَمْلَيْتُ | لَهَا | وَهِيَ ظَالِمَةٌ | ثُمَّ | اَخَذْتُهَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او ډير دي | دکلونو | چې مهلت ورکړو ما | هغې ته | ظالمان وو | بيا | رااونيول ما هغه |
| اوڅومره ډير کلي وو چې ماهغوئ ته مهلت ورکړې وو او هغوئ ظالمان وو او بيا ماهغوئ رااونيول | | | | | | |

| وَاِلَيَّ | الْمَصِيْرُ |
|---|---|
| او خاص ما ته | راتلل دي دهر چا |
| اوهم زما طرفته دټولو واپس کيدل دي | |

قوله تعالى:- وَاِنَّ يَوْمًا عِنْدَ رَبِّكَ

**د قيامت د ورځې دمقدار بيان:-** الله ﷻ خپل نبي ﷺ ته فرمائي چه داملحدان کافران الله ﷻ دهغه رسول ﷺ اودقيامت ورځ دروغ گڼړي اوتانه عذاب غوښتلودپاره تندي کوي چه داعذابونه زرولې نه راولې د کومونه چه ته هروخت مونږ ويروې. هغوی به الله ﷻ ته هم پخپله وئيل چه که دا ستاد طرف نه حق وي نوبه مونږ باندې دآسمان نه کاڼړي راووروه اوځنگه چه دردناك عذاب وي راوليکه. وئيل به ئې چه د حساب دورځې نه وړاندې زمونږ معامله صفاکړه. الله ﷻ فرمائي يادساتئ د هغه وعده اټله ده قيامت او عذاب به راځي د اولياء الله عزت او د الله ﷻ د ښمنانو ذلت يقيني کيدونکې ځيزدې. اصمعي رحمه الله وائي چه زه ابوعمرو بن علاسره ووم چه عمروبن عبيدراغلو اووئي وئيل اې ابوعمرو آيا الله ﷻ د خپلې وعدې خلاف کوي؟هغوی اووئيل نه. هغه هم دغه وخت کښې دعذاب آيت تلاوت کړو. په دې باندې هغه اوفرمائيل چه آيا ته عجمي ئې؟ واوره عربو کښې وعده يعنی د ښه خبرې د وعدې خلاف بدگڼړلې شي خود ايعاد يعني سزا د احکامو ردو بدل يا معافي بد نه شي گڼړلې بلکه هغه کرم او رحم گڼړلې شي. گوره يوشاعر وائي:- (فاني وان اوعدته اووعدته لمخلف ايعاني ومنجز موعدي)که زه څه ته سزا اووايم يا هغه ته د انعام وعده اوکړم نوداخوکيدې شي چه زه دخپلې دهمکئ خلاف اوکړم بلکه يقيني به هيڅ کله سزا ورنه کړم ولې خپله وعده به خامخاپوره کوم. غرض دسزا وعده کول اوسزا نه ورکول وعده خلافي نه ده خود رحمت اوانعام وعده کولوسره بيا رامنع کول خراب صفت دې د کوم نه چه د الله ﷻ ذات پاك دې. بيافرمائي چه يوه ورځ د الله ﷻ په نيز ستاسو د زرو زرو ورځو برابره ده. داپه اعتبارد هغه دحلم او بردبارئ ده هغه ته علم دې چه هروخت د هغوی په راگيرولو باندې قادر دې نو په دې وجه څه تندي ده که هرڅومره مهلت ورته ملاوشي هرڅومره رسئ اوږده شي خو چه کله غواړي نودسا

اخستلومهلت به هم ورنه کړی او راوبه نې نيسي. د دې وجه د دې نه پس فرمانې چه د ډيرو کلوخلقو به ظلم باندې ملاتړلې وه ماهم دهغوی نه سترګې پټې کړې وې کله چه بيه مست شونوناڅاپې راګيرکړې شوټول مجبوره دی اوټول به هم زما مخې ته حاضريږی اوډټول واپس کيدل هم زماطرفته دی. ترمذی وغيره کښې دی رسول الله ﷺ فرمانې فقيران مسلمانان به د مالدارانو مسلمانانونه نيمه ورځ وړاندې جنت ته ځې يعنې پنځه سوه کاله وړاندې. (۱) يوبل روايت کښې دی چه حضرت ابوهريره نپوس اوکړو د نيمې ورځې اندازه څه ده؟ اوفرمائيلې شو چه تا قرآن پاك نه دې لوستلې؟ ماوئيل چه اوئودغه آيت نې راته واورلو يعنې دالله ﷻ په نيز يوه ورځ د زروکالو ده(۲)دابوداوُد کتاب الملاحم په آخره کښې ليکلې دی حضورﷺ فرمانې زمادالله ﷻ د ذات بابرکات نه اميدې چه هغه به زما امت دنيمې ورځې پورې خامخا مؤخر ساتی.دحضرت سعدؓ نه نې تپوس اوکړو چه نيمه ورځ څومره موده شوه. هغوی اوفرمائيل دپنځوسوو کالو.ابن عباس ؓ دا آيت لوستلو سره اوفرمائيل دا دهغه ورځو نه دی په کوموکښې چه الله ﷻ زمکه اوآسمان پيداکړل. (ابن جرير).

بلکه امام احمدبن حنبلؒ کتاب الردعلی الجهميه کښې داخبره په کولاولفظ سره بيان کړې ده.

مجاهد ؒ فرمائی دا آيت په شان د آيت ﴿يُدَبِّرُ الْأَمْرَ مِنَ السَّمَاءِ إِلَى الْأَرْضِ ثُمَّ يَعْرُجُ إِلَيْهِ فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ أَلْفَ سَنَةٍ مِّمَّا تَعُدُّونَ﴾(۳) دې.يعنې الله ﷻ د کارتدبيردآسمان نه زمکې طرف ته کوی بياهم د هغې طرف ته ورخيژی هم په يوه ورځ د کومې اندازه چه ستاسو د شمير په اعتبارسره د زرو کالوده.امام محمدبن سيرين ؒ ديونومسلم اهل کتاب نه نقل کوی چه الله ﷻ زمکه او آسمان په شپږو ورځوکښې پيداکړی دی او يوه ورځ ستا درب په نيز د زرو کالوپه شان ده کوم چه تاسو شميرنې الله ﷻ د دنيا اجل د شپږو ورځو کړې دې اومه ورځ باندې قيامت دې اويوه ورځ په شان د زرو زروکالوده. نوشپږ ورځې خو تيرې شوې او تاسو په اومه ورځ کښې ئې نو بس اوس خو بالکل د هغه حامله په شان ده چه د پوره ورځو وی پته نه لګی چه کله به بچې اوشی.

| قُلْ يٰٓاَيُّهَا | النَّاسُ | اِنَّمَآ | اَنَا لَكُمْ |
| --- | --- | --- | --- |
| اووايه اے نبی ﷺ | چې اے خلقو | بيشکه زهٔ | ستاسو دپاره |
| اووايه چې ائې خلقو! زهٔ ستاسو دپاره ښکاره | | | |

| نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ | فَالَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ | لَهُمْ |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| يرونکې ښکاره يم | نو هغه کسان | چې ايمان ئې راوړو | او عملونه ئې اوکړل نيك | دهغوئ دپاره |
| يرونکې يم | ...........نو چاچې ايمان راوړې دې | ............اودنيکئ کارونه کوی | | نو د هغوی دپاره |

| مَّغْفِرَةٌ | وَّرِزْقٌ | كَرِيْمٌ | وَالَّذِيْنَ | سَعَوْا | فِيْٓ اٰيٰتِنَا |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| بښنانه ده | او رزق دې | عزتمند | او هغه کسان | چې کوشش کوی | په ايتونو زمونږ کښې |
| ښښنه اودعزت روزی ده | ............ | | او هغه کسان چې زمونږ دآياتونو په حقله دهغې | | |

(۱) ترمذی کتاب الزهد باب ماجاء ان الفقراء المهاجرين يدخلون الجنة قبل اغنيائهم:۲۳۵۳-۲۳۵٤وهوحسن، السنن الکبری للنسائی: ۱۱۳٤۸، ابن ماجه:٤۱۲۲، احمد:۲/۲۹٦، ابن حبان:٦۷٦.

(۲) ابوداؤد کتاب الملاحم باب قيام الساعة: ٤۳۵۰.

(۳) ۳۲/السجدة:۵.

مُعٰجِزِيْنَ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَحِيْمِ۝ وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ

عاجزه کونکی هغې لره | دغه کسان | ملګری د دوزخ دی | اونه دي لیږلي مونږ | مخکښې ستا نه

دعاجزه کولو کوششونه کوی |نو هم دغه کسان جهنمیان دی ||او مونږ چې ستا نه وړاندې کوم رسول

مِنْ رَّسُوْلٍ وَّلَا نَبِيٍّ اِلَّآ اِذَا تَمَنّٰٓى اَلْقَى الشَّيْطٰنُ

یو رسول | او نه یو نبی | مګر | کله چې | تلاوت اوکړو هغه | نو واچوؤ خلل | شیطان |

یا نبی رالیږلي دي |خو کله چې به هغه د الله ﷻ حکمونه لوستل|نو شیطان د هغه په لوستلو په دوران

فِيْٓ اُمْنِيَّتِهٖ ۚ فَيَنْسَخُ اللّٰهُ مَا يُلْقِى الشَّيْطٰنُ ثُمَّ يُحْكِمُ اللّٰهُ

په تلاوت د هغه کښې | نو ختموی الله | هغه خلل | چې اچوی نې شیطان | بیا | محکم کوی الله |

کښې (د کافرانو په زړونو کښې )وسوسه غورزولې ده |بیا الله د شیطان وسوسې ختمې کړې | بیا الله ﷻ خپل

اٰيٰتِهٖ ۗ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ۝ لِّيَجْعَلَ مَا

ایتونه خپل | او الله | ښه پوهه دې | او حکمت والا دی | دپاره ددې چې جوړ کړی الله | هغه خلل |

ایتونه مضبوط کړی ||او الله په هره خبره پوهه دې دصاحب د حکمت دی ||او د ا (هرڅه) ځکه (کیږی) چې الله

يُلْقِى الشَّيْطٰنُ فِتْنَةً لِّلَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ

چې اچوی نې شیطان | فتنه | دپاره د هغه خلقو | چې په زړونو د هغوئ کښې | مرض د نفاق وی |

د شیطان غورزلې وسوسې یو امتحان اوګرځوی| د هغه خلقو دپاره چې د هغوئ په زړونو کښې بیماری دې

وَّالْقَاسِيَةِ قُلُوْبُهُمْ ۗ وَاِنَّ الظّٰلِمِيْنَ لَفِيْ شِقَاقٍۭ بَعِيْدٍ۝

او چې سخت وی | زړونه د هغوئ | او بیشکه دا ظالمان خلق | په ضد (مخالفت) | الرې کښې دی |

اوزړونه نې سخت شوی دی |. اوبیشکه ظالمان په ډیرلرې مخالفت کښې اخته دی

وَّلِيَعْلَمَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ اَنَّهُ الْحَقُّ

او دپاره ددې چې پوهه شي | هغه کسان | چې ورکړې شوې دې علم | چې بیشکه دا قران | حق دې |

او چې کومو خلقو ته علم ورکړې شوې دې | چې هغوئ ښه پوهه شي | چې دا ستا درب

مِنْ رَّبِّكَ فَيُؤْمِنُوْا بِهٖ فَتُخْبِتَ لَهٗ قُلُوْبُهُمْ ۗ

د طرفه درب ستا نه | او ایمان راوړی | په هغې | او نرم شي | هغې ته | زړونه د هغوئ |

طرفه حق دې |نو هغوئ په دې ایمان راوړی ||او د هغوئ زړونه د الله ﷻ په حضور کښې ټیټ شي

وَاِنَّ اللّٰهَ لَهَادِ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ۝

او بیشکه الله | لاربنودونکې دې | هغه کسانو ته | چې ایمان نې راوړې دې | لارې نیغې ته |

اوبیشکه الله ﷻ ایمان دارو ته د نیغې لارې طرفته خودنه کوی ..............

**قوله تعالٰی:- قُلْ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اِنَّمَآ اَنَا لَكُمْ نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ۝**

**د کافرانو زر عذاب غوښتل او د هغه جواب:-** کافرانو به عذابونه غوښتل او د هغې د زر راتلو شور به نې کولو د هغې په جواب کښې اعلان کولې شی خلقو زه خود الله ﷻ رالیګلې شوې یم تاسو د رب د عذابونو

چه ستاسو په وړاندې دی خبردار کړم ستاسو حساب زما په ذمه نه دی عذاب د الله ﷻ په وس کښې دی
که غواړی نواوس به ئی راولی که غواړی نو څه وخت پس به ئی راولی ماته څه پته ده چه په تاسو کښې
د چا په قسمت کښې هدایت دی او څوك دالله ﷻ د رحمت نه محروم پاتې کیدونکې دی غوښتنه خو هم
د الله ﷻ پوره کیږی. حکومت دهغه په لاس دی هرڅه کونکې هم هغه دی دهیڅ چا د هغه په وړاندې
دکښ کړپ کولو طاقت نشته هغه د یرحساب اخستونکې دی زما حیثیت خودخبر ورکونکی دی.په
کوموزړونو کښې چه یقین اوایمان دی اودهغې دګواهئی اوداعمالونه هم ثابت دی دهغوی ټول ګناهونه
د معاف کیدو لائق دی اود هغوی ټولې نیکئی د قدر وړدی. رزق کریم نه مراد جنت دی. کوم خلق چه
نورهم دالله ﷻ دلارې نه اودرسول الله ﷺ دتابعدارئی نه منع کوی هغوی دوزخیان دی[1] دسخت عذاب
اوتیزاور خشاك دی الله ﷻ دې مونږ بچ کړی. بل آیت کښې دی داسې کافرانوله د هغوی دفساد په بدله
کښې په عذاب باندې عذابونه دی. ([2])

**دالله ﷻ په وحی کښې د باطل ګډون نه شی کیدې** :- دلته اکثرومفسرینو دغرانیق قصه نقل کړې ده اودا
هم چه ددې واقعه په وجه اکثرو دحبشو مهاجرینو دااوګڼړل چه اوس دمکې مشرکان مسلمانان شو نو
واپس مکې ته راغله. خودا روایت په هرسندسره مرسل دی په یوصحیح سندسره مسندکښې مروی نه
دی. والله اعلم.

**اول روایت**:-ابن ابی حاتم کښې دی رسول الله ﷺ په مکه کښې د سورت النجم تلاوت اوفرمائیلوکله چه
حضور ﷺ داآیاتونه لوستل ﴿أَفَرَءَيْتُمُ اللَّتَ وَالْعُزَّىٰ ۝ وَمَنَوٰةَ الثَّالِثَةَ الْأُخْرَىٰ﴾ ([3])نو شیطان د حضور ﷺ په آوازکښې
دا الفاظ واچول (تلك الغرانيق العلى وان شفاعتهن ترتجى) نومشرکان خوشحاله شو چه نن خو حضور ﷺ زمونږ د
معبودانو تعریف اوکړو چه ددې نه وړاندې حضور ﷺ چرته هم نه دی کړې. حضور ﷺ سجده اوکړه نو
هغه ټولوهم سجده اوکړه په دې باندې دا آیت نازل شو.دا ابن جریر رحمه الله هم روایت کړې دی دا مرسل
دی مسندالبزارکښې هم د دې ذکر نه پس دی چه صرف هم په دې سندسره دا متصلاً نقل دی اوصرف
امیه بن خالد هم داوصل کوی اوهغه مشهورثقه دی.داصرف په طریق کلبی سره روایت دی ابن ابی
حاتم داپه دوو سندونوسره اخستې دی خودواړه مرسل دی. په ابن جریرکښې هم مرسل دی. قتاده رحمه الله
وائی چه مقام ابراهیم سره حضور ﷺ مونځ کولوچه پرکالې پرې راغلو اوشیطان د حضور ﷺ په ژبه
مبارکه واچول (وان شفاعتهن الترتجى وانها لمع الغرانيق العلى). مشرکانودا الفاظ راونیول او شیطان دا خبره خوره
کړه. په دې باندې دا آیت نازل شواوهغوی خوار شو.ابن ابی حاتم کښې دی چه سورت النجم نازلیدلو
او مشرکانو وئیل که چرې دا سړې زمونږ د معبودانو په خو الفاظو کښې ذکر اوکړی نومونږ به دوی اود
دوی ملګری پریږدو خود دوی خودا حال دی چه یهود اونصاری اوکوم خلق چه د دوی د دین مخالف
دی دهغه ټولونه زیات خو په کنځلو اوبدوسره زمونږ دمعبودانو ذکر کوی. دغه وخت کښې په حضور ﷺ
او ملګرو باندې سخت تکلیفونه اچولې شو. دحضور ﷺ د هغوی د هدایت لالچ وو کله چه د سورت
النجم تلاوت حضور ﷺ شروع کړواو ﴿وَلَهُ الْأُنثَىٰ﴾ ([4]) پورې ئی اولوستلو نوشیطان د بتانو د ذکر په وخت
کښې داکلمې واچولې(وانهن لهن الغرانيق العلى وان شفاعتهن لهى التى ترتجى)داشیطان مقفی عبارت وود هر
مشرك په زړه کښې داکلمې کیناستې اویویوته یادې شوې تردې چه دامشهوره شوه چه حضرت محمد

---

[1] الطبرى:۱۸/۶۶۲.
[2] ۱۶/النحل:۸۸.
[3] ۵۳/النجم:۱۹-۲۰.
[4] ۵۳/النجم:۲۱.

د سورت نجم په ختمیدو باندې ﷺ د خپل اولني دین طرف ته واپس راوګرځیدو اوچه کله رسول الله ﷺ
سجده اوکړه نوټول مسلمانان او مشرکان په سجده کښې راپریوتل ولید بن مغیره خو ډیر زیات بوډا
وو په دې وجه هغه یوموټې خاوره اوچته کړه او پخپل تندی پورې نې اولګوله. اوس هریوحیران شوځکه
چه حضور ﷺ سره دواړه ډلې په سجده کښې شاملې وې مسلمانان حیران وو چه دې خلقو خو ایمان
راوړې نه دې یقین نه کیږې چه بیا دوی زمونږ سره څنګه د حضور ﷺ په سجده کولوسره سجده اوکړه؟
شیطان چه کوم الفاظ د مشرکانوپه غوږونوکښې وریوك وهلې وو هغه مسلمانانواوریدلی هم نه وو.
اخوا د هغوی زړونه خوشحالیدل شیطان داسې په آوازکښې آوازملاوکړو چه مشرکانو په هغې کښې
هیڅ فرق نه شوکولې هغوی خو ټولو په دې باندې یقین پوخ کړې ووچه پخپله هم حضور ﷺ د دې دواړو
آیاتونو تلاوت کړې دې په اصل کښې د مشرکانوسجده د خپلو بتانود پاره وه. شیطان دا واقعه دومره
خوره کړه چه دمکې دحبشې دمهاجرینوغوږونوته هم اورسیدله.عثمان بن مظعون ﷺ اودهغه ملګروچه
داواوریده چه اهل مکه مسلمانان شوی دی بلکه هغوی حضور ﷺ سره مونځ هم اوکړو او ولیدبن مغیره
سجده اونه کړې شوه نوهغه یوموټې خاوره اوچته کړه اوهم په هغې باندې تندې کیخودو.مسلمان اوس
پوره امن اوتسلئی سره دی نوهغوی دهغه ځائې نه دواپس کیدوفیصله اوکړه اویه خوشحالئی
خوشحالئی مکې ته راورسیدل. اول دشیطان د دې الفاظو راز کولاوشوې وو الله ﷻ دا الفاظ اخواکړې
وواوخپل کلام نې محفوظ ساتلې وو.اوس دمشرکانود دښمننی اُورنورهم تیزشوې وواوهغوی په
مسلمانانوباندې دنوی مصیبتونو اوریځې راورول شروع کړې وو.دا روایت هم مرسل دې.دبیهقی
کتاب دلائل النبوة کښې هم دا روایت دې. امام محمدبن اسحاق هم دا په خپل سیرت کښې راوړې دې
خودا سندونه مرسلات او منقطعات دی. والله اعلم.

**دامام بغوی په دې باندې سوال:**-امام بغوی رحمه الله خپل تفسیرکښې دا هر څه د حضرت ابن عباس رضی الله عنه وغیره
دکلام نه دا شان روایتونه نقل کړی دی اوبیائی پخپله یوسوال کړې دې چه کله درسول الله ﷺ عصمت
حفاظت پخپله الله ﷻ کوی نوداسې خبره څنګه واقع شوه. بیائی ډیر جوابونه ورکړی دی په کوم کښې
چه یومزیدارجواب داهم دې چه شیطان دا الفاظ دخلقوپه غوږونوکښې واچول اوهغوی ته نې وهم
واچولو چه دا الفاظ دحضور ﷺ دخلې مبارکې نه وتلی دی.په حقیقت کښې داسې نه وواصرف
شیطانی حرکت وونه چه درسول الله ﷺ آواز.والله اعلم.

نورهم د دې په شان جوابونه متکلمینو حضراتو ورکړی دی. قاضی عیاض هم دا په شفاکښې چیرلې
دی اود هغوی دجواب حاصل دادې چه داهم داسې دی په سبب ددې د ثبوت.اود رب فرمان چه هغوی
خواهش کوی الخ پدې کښې دحضور ﷺ تسلی فرمائیلې شوې ده چه ته پدې کښې خفه کیږه مه په
وراندینو نبیانو اورسولانوباندې هم داسې اتفاقات راغلی دی. بخاری شریف کښې د حضرت ابن
عباس رضی الله عنه روایت دې د دې په خواهش کښې چه کله هغه خبره کوی نوشیطان دهغې د خبرې په مینځ
کښې خبره اچوی نود شیطان اچولې شوې خبره باطل کولو سره بیاالله ﷻ خپل آیاتونه محکم
کوی.([1]مجاهد رحمه الله وائی د(تمنی)معنی قال ده.([2]د(امنیه) معنی (قراءته) ده (الامامی) مطلب دادې
لولی لیکی نه.بغوی اواکثرمفسرین وائی(تمنی)معنی(تلا)ده یعنی چه کله دالله ﷻ کتاب لولی
نوشیطان په مینځ کښې څه اچوی. د حضرت عثمان رضی الله عنه په مدح کښې شاعر ونیلی دی(تمنی کتاب الله اول
لیلة واخرهالاقی حمام المقادر)دلته هم لفظ (تمنی)دلوستلو په معنی کښې دې.

[1]) صحیح بخاری کتاب التفسیرسورة الحج تعلیقًا قبل رقم:٤٧٤١.
[2]) الطبری:١٨/٦٦٧.

الله ﷻ حق ثابتوی باطل ختموی: ابن جریر رحمه الله وائی چه داقول ډیر نیزدې تاویل والا دی.[1] دنسخ حقیقي معنی لغة ازاله اورفع یعنی اخوا کول اوختمول دی. الله سبحانه وتعالی دشیطان باطل القاء کوی.[2]
حضرت جبریل علیه السلام د الله ﷻ په حکم سره د شیطان زیات کړې شوې ختموی اودالله ﷻ آیاتونه مضبوط باتې کیږی. الله ﷻ دټولو کلامونو پیژندونکې دی هیڅ یوه پټه خبره هم او یوراز هم د هغه نه پټ نه دې هغه حکیم دې د هغه یوکار هم د حکمت نه خالی نه وی. دا د دې د پاره چه د چا په زړونوکښې شرک کفر نفاق دې دهغوی دپاره فتنه جوړه شی نومشرکانو دادالله ﷻ دطرف نه اومنل حالانکه هغه شیطانی الفاظ وو. بیمارو زړونووالا نه مراد منافقان دی اود سختو زړونو والا نه مراد مشرکان دی.[3]
دا هم یو قول دې چه دې نه یهودمرادددی ظالمان د حق نه ډیر لرې وتلی دی هغوی د نیغې لارې نه ورک شوی دی اوچاته چه صحیح علم ورکړې شوې دې په کوم سره چه هغوی په حق او باطل کښې فرق کوی. هغوی ته د دې خبرې د بالکل حق کیدو اودالله ﷻ د طرف نه دکیدو صحیح یقین پیداشی او هغوی کامل ایمان والا جوړشی. اودا اوګنړی چه بې شکه دا هم دالله ﷻ کلام دې ځکه خود دې دومره حفاظت صیانت اوساتنه ده په هیڅ طریقه اودهیڅ طرف نه پدې کښې دباطل ګډوډوالی نه شی کیدې دحکیم اوحمیدالله ﷻ د طرف نه نازل شوې دې. نودهغوی زړه دتصدیق نه ډک شی. ټیټیږی او په رغبت سره متوجه کیږی. الله ﷻ دایماندارو لارخودنه دنیاکښې دحق اوهدایت طرف ته کوی صراط مستقیم ورته ښانسته کوی او آخرت کښې د عذابونونه بچ کوی درجوته ئې رسوی اونعمتونو ورنصیب کوی.

| وَلَا يَزَالُ | الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | فِيْ مِرْيَةٍ مِّنْهُ | حَتّٰى |
|---|---|---|---|---|
| اوهمیشه به وی | هغه کسان | چې انکارکونکی دی | په شك کښې ددې (دین) نه | تر هغه وخته پورې |

اوخوک چې کافران دی هغوئ به دقران پاک په باره کښې همیشه په شک کښې پراته وی

| تَأْتِيَهُمُ | السَّاعَةُ | بَغْتَةً | اَوْ يَأْتِيَهُمْ | عَذَابُ يَوْمٍ | عَقِيْمٍ ﴿٥٥﴾ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې راشي هغوئ ته | قیامت | ناساپه | یا راشي هغوئ ته | عذاب دورځې | شنډې (منحوسې) |

تردې چې ناګهانه بهٔ دوی ته قیامت راشی | یا دشنډې (بې برکته) ورځې عذاب بهٔ ئې په سر اودریږی

| اَلْمُلْكُ | يَوْمَئِذٍ | لِّلّٰهِ ط | يَحْكُمُ | بَيْنَهُمْ ط | فَالَّذِيْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| بادشاهي به | په دغه ورځ | الله لره وی | فیصله به کوی هغه | په منځ دهغوئ کښې | نو هغه کسان |

به دغه ورځ بهٔ بادشاهی صرف د یو الله ﷻ وی | هغه به د دوی په مینځ کښې فیصلې کوی | نو کومو

| اٰمَنُوْا | وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ | فِيْ جَنّٰتِ | النَّعِيْمِ ﴿٥٦﴾ |
|---|---|---|---|
| چې ایمان ئې راوړو | او عملونه ئې اوکړل نیك | هغوئ به په جنتونو | دنعمتونو کښې وی |

کسانو چې ایمان راوړې دې | او نیک عملونه ئې کړی دی | هغوئ بهٔ دجنت په باغونو کښې وی

| وَالَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | وَكَذَّبُوْا | بِاٰيٰتِنَا | فَاُولٰٓئِكَ |
|---|---|---|---|---|
| او هغه کسان | چې کفر ئې اوکړو | او دروغ ئې اوګڼړل | آیتونه زمونږه | نو دغه کسان چې دی |

او کومو خلقو چې کفر اختیار کړې دې | اوزمونږ آیتونه ئې دروغ ګڼړلی دی | هغوی

---

[1] الطبری:۱۸/۶۶۶.
[2] الطبری:۱۸/۶۶۸.
[3] الطبری:۱۸/۶۶۹.

| لَهُمْ | عَذَابٌ مُّهِينٌ ﴿٥٧﴾ | وَالَّذِينَ | هَاجَرُوا | فِي سَبِيلِ اللَّهِ |
|---|---|---|---|---|
| دي دهغوئ دپاره | عذاب سپکونکي | او هغه کسان | چي هجرت ئي اوکړو | په لار دالله کښي |
| دپاره سپکونکي عذاب مقرر دي ....... او کومو خلقو چي دالله ﷻ په لاره کښي هجرت کړي دي | | | | |

| ثُمَّ | قُتِلُوا | أَوْ مَاتُوا | لَيَرْزُقَنَّهُمُ اللَّهُ رِزْقًا | حَسَنًا ط | وَإِنَّ اللَّهَ |
|---|---|---|---|---|---|
| بيا | قتل کړي شو | ايا مره شو | خامخا به رزق ورکوي هغوئ له الله | رزق ښه | او بيشکه الله |
| بيا هغوئ شهيدان کړي شول \| يا مړهٔ شول \| نو الله به هغوئ ته خامخا رزق ورکړي \| او (يادساتئ چي) | | | | | |

| لَهُوَ | خَيْرُ | الرَّازِقِينَ ﴿٥٨﴾ | لَيُدْخِلَنَّهُم | مُّدْخَلًا |
|---|---|---|---|---|
| خامخا هغه | بهتره | رزق ورکونکي دي | خامخا به داخل کړي هغوئ لره | داسي خائي دداخليدوته |
| بيشکه الله ﷻ ښه رزق ورکونکي دي \| هغه ذات به هغوئ يقينا داسي ځائي ته داخل کړي | | | | |

| يَرْضَوْنَهُ ط | وَإِنَّ اللَّهَ | لَعَلِيمٌ | حَلِيمٌ ﴿٥٩﴾ | ذَٰلِكَ ج |
|---|---|---|---|---|
| چي خوښ به کړي هغوئ هغه | او بيشکه الله | ډير پوهه دي | صبر ناك دي | دا خو دي حال دهغوئ |
| کوم چي به هغوئ خوښوي \| او الله بيشکه (دټولو دحال نه) خبردار اوبردبار دي \| هم داسي ده | | | | |

| وَمَنْ | عَاقَبَ | بِمِثْلِ | مَا | عُوقِبَ |
|---|---|---|---|---|
| او چاچي بدل واغستو | په مثل | دهغي | الکه څنګه چي عذاب ورکړي شوي وو (دهٔ لره) | |
| اوڅوک چي د ظلم صرف دومره بدله واخلي څومره ظلم چي دهٔ سره شوي وي | | | | |

| بِهِ | ثُمَّ بُغِيَ | عَلَيْهِ | لَيَنصُرَنَّهُ اللَّهُ ط | إِنَّ اللَّهَ |
|---|---|---|---|---|
| په هغي | بيا زياتي هم شوي وي | په هغه باندي | نو خامخا به امداد کوي دهغه الله | بيشکه الله |
| اوبيا دوباره په ده ظلم اوشي \| ...............نو الله ﷻ به ضرور ددهٔ مدد کوي \| .......بيشکه الله ﷻ | | | | |

| لَعَفُوٌّ | غَفُورٌ ﴿٦٠﴾ |
|---|---|
| خامخا معاف کونکي دي \| ښنونکي دي \| | |
| ډير معاف کونکي او بخښونکي دي | |

**قوله تعالى:- وَلَا يَزَالُ الَّذِينَ كَفَرُوا فِي مِرْيَةٍ مِّنْهُ**

**قرآن مجيد اود کافرانو حالت:**-ددې کافرانوچه کوم شك شبه د الله ﷻ په دې وحی يعنی قرآن پاك کښې ده هغه د دوی د زړونونه د تللونه ده[1] شيطان به داغلط ګمان دهغوی دزړونونه د قيامته پورې اونه باسی.قيامت د هغې عذابونه به ناڅاپی په هغوی راشی دوی به صرف بې شعوره وی دې وخت کښې چه کوم مهلت هغوی ته ملاویږی په دې سره دوی مغروره شوی دی په کوم قوم چه دالله ﷻ عذاب راشی په هغه حالت کښې راځی چه د هغې نه نه ويريدل او بې پرواه شوی وو.دالله ﷻ دعذاب نه هم هغه غافل کيږی چه پوره فاسقان اوښکاره مجرمان وی ياهغوی ته دبې خبره ورځې عذاب وراورسی کومه ورځ چه به دهغوی د پاره سپيره ثابتيږی. د بعضو قول دې چه دې نه مراد د بدرورځ ده او بعضو وئيلی دی چه دې نه مراد د قيامت ورځ ده. هم دغه قول صحيح دې ځکه چه د بدر ورځ هم د هغوی د

[1] الطبري: ۶۷۰/۱۸.

پاره د الله ﷻ د عذاب ورځ وه. په هغه ورځ به صرف هم د الله ﷻ بادشاهي وی لکه چه په بل ایت کښې د الله ﷻ د قیامت د ورځې مالك دی[1] بل آیت کښې دی چه په هغه ورځ به هم د رحمن ملك وی او هغه ورځ به په کافرانو باندې ډیره سخته تیریږی[2] فیصله به پخپله الله ﷻ کوی د چا په زړه کښې چه د الله ﷻ یقین وی او د رسول الله ﷺ صداقت او د ایمان مطابق دهغوی اعمال وی د کوموچه په زړه او عمل کښې موافقت وو د چا ژبې چه دهغوی د زړونو برابروې هغوی به د جنت په نعمتونو کښې پوره وی. کوم نعمتونه چه نه فناکیږی نه کمیږی نه خرابیږی د چا په زړه کښې چه د حقیقت نه کفر وو چه حق نی دروغ ګڼړلو د انبیاء کرامو خلاف نی کول د حق د تابعدارنی نه نی کبر کولو د هغوی د تکبر په بدله کښې به هغوی له ذلیل کونکی عذابونه وی. لکه چه ارشاد دی ﴿إِنَّ الَّذِينَ يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِي سَيَدْخُلُونَ جَهَنَّمَ دَاخِرِينَ﴾ [3] کوم خلق چه زما د عبادتونو نه سرکشی کوی هغوی به ذلیل کیږی.

**د هجرت او جهاد ثواب:-** کوم خلق چه خپل وطن خپل بال بچ خپل یاران دوستان پریږدی او د الله ﷻ د رضاد پاره د هغه په لار کښې هجرت اوکړی د هغه د رسول ﷺ او د هغه د دین د امداد د پاره اورسی او بیا د جنګ په میدان کښې د دښمن په لاس شهید کړې شی او یابې جنګه د خپلې قضاسره په خپله بستره هغه له مرګ راشی د هغه د پاره د الله ﷻ د طرف نه ډیر لویئ اجر او زبردست ثواب دې. لکه چه ارشاد دی ﴿وَمَن يَخْرُجْ مِن بَيْتِهِ مُهَاجِرًا إِلَى اللَّهِ وَرَسُولِهِ ثُمَّ يُدْرِكْهُ الْمَوْتُ فَقَدْ وَقَعَ أَجْرُهُ عَلَى اللَّهِ ۗ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا﴾ [4] کوم سړی چه خپل کور او وطن پریږدی او د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ طرف ته هجرت اوکړی بیا هغه له مرګ راشی نو د هغه اجر الله ﷻ سره ثابت شو په هغه به د الله ﷻ فضل وی هغه ته به د جنت نعمتونه ملاویږی په کوم سره چه به د هغه سترګې یخې وی الله ﷻ بهترین رازق دې هغوی به پروردګار جنت ته رسوی کوم ځائ چه به دوی خوشحاله وی. لکه چه ارشاد دې کوم چه زمونږ په مقربو کښې دی د هغوی د پاره راحت او خوشبودار ګلونه او د نعمتونو نه ډك باغونه دی داسې خلقو ته راحت رزق او جنت ملاویږی[5] په خپله لار کښې ربنتونی مهاجر په خپله لار کښې جهاد کونکی او د خپلو نعمتونو مستحق خلق الله ﷻ ښه پیژنی. هغه ډیر حلم والا دی. د بندیګانو ګناه معاف کوی د هغوی د خطاګانو نه تیریږی د هغوی هجرت قبلوی د هغوی توکل ښه پیژنی.

**د الله ﷻ په لار کښې د شهادت او مرګ حقیقت:-** کوم خلق چه د الله ﷻ په لار کښې شهیدان وی که مهاجر وی او که نه وی هغه به رب سره ژوند او رزق بیاموسی. لکه چه ارشاد دې ﴿وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتًا ۚ بَلْ أَحْيَاءٌ عِندَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ﴾ [6] د الله ﷻ د لارې شهیدان مړه مه ګڼړنی هغوی خپل رب سره ژوندی دی روزنی ورکولې شی. په دې باره کښې ډیر احادیث دی کوم چه بیان شوی دی. د الله ﷻ په لار کښې د شهیدانو اجر هم د الله ﷻ په ذمه ثابت دې په دې آیت سره هم او دې بارې په احادیثو سره هم. حضرت شرحبیل بن سمط رحمه الله فرمانی چه د روم د یوې قلعه په محاصره باندې زمونږ موده تیره شوه اتفاقی حضرت سلمان فارسی رضی الله عنه په هغه ځائ تیریدو ونی فرمائیل ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلی دی کوم سړې چه د الله ﷻ د لارې په تیاری کښې مړشی نو د هغه اجر او رزق د الله ﷻ د طرف نه د همیشه د

---

[1] ۱/الفاتحة: ۴.
[2] ۲۵/الفرقان: ۲۶.
[3] ۴۰/غافر: ۶۰.
[4] ۴/النساء: ۱۰۰.
[5] ۵۶/الواقعه: ۸۸-۸۹.
[6] ۳/آل عمران: ۱۶۹.

پاره جاري وی اوهغه په فتنه کښې د اچونکو والا نه محفوظ وی که تاسو غواړئ نو آیت ﴿وَالَّذِيْنَ هَاجَرُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ثُمَّ قُتِلُوْٓا اَوْ مَاتُوْا لَيَرْزُقَنَّهُمُ اللّٰهُ رِزْقًا حَسَنًا ۭ وَاِنَّ اللّٰهَ لَهُوَ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ﴾[1] اولولئ [2]حضرت ابوقبيل او ربيعه بن سيف معافری رحمهما الله وائي مونږه د رودس په جهاد کښې وو مونږ سره حضرت فضاله بن عبيد ﷛ هم وو زمونږ مخې ته دوه جنازې تيرې شوې په کوموکښې چه يوشهيدوو اوبل په خپل مرګ مړشوې وو خلق د شهيد په جنازه ورښکته شو. حضرت فضاله ﷛ اوفرمائيل دا څه خبره ده؟ خلقو ونيل حضرت دا شهيددې اودابل دې نه محروم دې. هغوی اوفرمائيل والله ماته خودواړه خبرې برابر دی که د دې قبر نه پاسم اوکه د هغه قبر نه پاسم. واورئ د الله ﷻ په کتاب کښې دی بيا هغوی د دې آيت تلاوت اوکړو.
[3] يوبل روايت کښې دی چه هغوی هم په خپل مرګ د مړشوی په قبربانديې اودريدو او وئې فرمائيل تاسوله نورڅه پکاردی په جنت کښې ځائ اورزق ښکلې.يوبل روايت کښې دی چه هغه دې وخت کښې امير وو. دا آخری آيت د صحابه کرامو رضي الله عنهم د يوړوکی لښکر باره کښې نازل شوې دې کوموسره چه د مشرکانويولښکر سره د هغوی د منع کولود حرمت په مياشت کښې جنګ اوکړو. الله ﷻ د مسلمانانو امداداوکړو اومخالفين ئې ښکته کړل الله ﷻ معاف کونکې او ښښونکې دې. [4]

ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ يُوْلِجُ الَّيْلَ
| دا کار | په سبب ددې چې بيشکه الله | ننباسي | شپه
|............دا په دې و جه چې الله ﷻ شپه په ورځ کښې داخلوی

فِي النَّهَارِ وَيُوْلِجُ النَّهَارَ فِي الَّيْلِ وَاَنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ بَصِيْرٌ
په ورځ کښې | او ننباسي | ورځ | په شپه کښې | او بيشکه الله | اوريدونکې | ليدونکې دې
او ورځ په شپه کښې داخلوی |................... اوبيشکه الله ﷻ هر څۀ اوری هر څه وينی

ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْحَقُّ وَاَنَّ مَا يَدْعُوْنَ
دا خکه | چې بيشکه الله | هم هغه | حق دې | او بيشکه | هغه تول | چې دوئ رابلی هغوئ
ګورى دا مدد به (خکه) کيږی | چې صرف الله ﷻ حق دې | اودا کافران چې دالله ﷻ نه سوا

مِنْ دُوْنِهٖ هُوَ الْبَاطِلُ وَاَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيْرُ
ماسوا دالله نه | هغه باطل دی | او بيشکه الله | خاص هم هغه داوچتې مرتبې والا دې | لوئ دې
نور معبودان رابلی | هغه باطل دی |او په دې کښې شک نشته | چې الله ﷻ اوچت دې لوئې دې

اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَتُصْبِحُ الْاَرْضُ
آيا تۀ ګورې نۀ | چې بيشکه الله | نازلوی | داسمان نه | اوبۀ | نوشی | زمکه |
آيا ته دې ته نه ګوری | چې الله ﷻ دپورته نه اوبه رانازلوی |نو په هغې باندې زمکه تکه

[1] ۲۲/الحج:۵۷.
[2] صحيح مسلم كتاب الامارة باب فضل الرباط في سبيل الله عزوجل:۱۹۱۳ بدون الاية.
[3] الطبری:۱۸۲/۹.
[4] الطبری:٦٧٤/۱۸.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| تُخْضَرَّةً | إِنَّ اللّٰهَ | لَطِيفٌ | خَبِيرٌ | لَهٗ | مَا | |
| شنه | بيشكه چي الله | مهربانه باريك بين دي | خبردار دي | هغه لره دي | هغه څه | |
| شنه شي \| بيشكه الله ﷻ ډير مهر بان په هرڅه خبر دي \| ......................څه چي په آسمانونو كښې دي | | | | | | |
| فِي السَّمٰوٰتِ | وَمَا فِي الْأَرْضِ | وَإِنَّ اللّٰهَ | لَهُوَ | | | |
| چي په آسمانونو كښي دي \| او هغه څه چي په زمكه كښې دي \| او بيشكه الله \| خامخا دي هغه | | | | | | |
| او څه چي په زمكه كښې دي\| ټول د الله ﷻ ملكيت دي \| او الله ﷻ بې نيازه اودهر تعريف | | | | | | |
| الْغَنِيُّ | الْحَمِيدُ | أَلَمْ تَرَ | أَنَّ اللّٰهَ | سَخَّرَ | لَكُمْ | |
| غنی \| او ستائيلي شوي \| آيا تهٔ نهٔ گوري \| چي بيشكه الله \| تابع كړي دي \| دپاره ستاسو \| | | | | | | |
| مستحق دي \| آيا تا نه دي كتلي چي الله ﷻ د زمكي ټول څيزونه ستاسو تابع كړي دي | | | | | | |
| مَّا | فِي الْأَرْضِ | وَالْفُلْكَ | تَجْرِي | فِي الْبَحْرِ | بِأَمْرِهٖ | |
| هغه ټول هر څه \| چي په زمكه كښې دي \| او كشتئ \| چي چليږي \| په درياب كښې \| په حكم دهغه سره | | | | | | |
| او بيړئ هم چي د هغه په حكم سره په دريابونو كښې رواني دي | | | | | | |
| وَيُمْسِكُ | السَّمَاءَ | أَن تَقَعَ | عَلَى الْأَرْضِ | إِلَّا | بِإِذْنِهٖ | |
| او نيولي ني دي \| آسمان \| د دي نه چي راپريوزي \| په زمكه باند \| مگر \| په حكم دهغه سره | | | | | | |
| او هم د هغه ذات په حكم سره آسمان په زمكه د راپريوتو نه ټينګ شوي دي \| .......... | | | | | | |
| إِنَّ اللّٰهَ | بِالنَّاسِ | لَرَءُوفٌ | رَّحِيمٌ | وَهُوَ | الَّذِي | |
| بيشكه الله \| په خلقو باند \| خامخا مهربانه دي \| رحم كونكي دي \| او هغه \| هغه ذات دي | | | | | | |
| بيشكه الله ﷻ په انسانانو ډير مهربان رحم كونكي دي \| ............او الله ﷻ هغه ذات دي چي كوم | | | | | | |
| أَحْيَاكُمْ | ثُمَّ يُمِيتُكُمْ | ثُمَّ يُحْيِيكُمْ | إِنَّ الْإِنسَانَ | | | |
| چي ژوندي ني كړئ تاسو \| بيا به مړهٔ كړي تاسو \| بيا به ژوندي كړي تاسو \| ربنتيا ده چي انسان | | | | | | |
| تاسو پيدا كړني \| بيا به درباندي مرګ راولي\| بيا به مو ژوندي كړي اخو په دي كښې شك نشته چي | | | | | | |
| لَكَفُورٌ | | | | | | |
| ډير ناشكره دي \| | | | | | | |
| انسان ډير ناشكره دي \| | | | | | | |

قوله تعالى:- ذٰلِكَ بِأَنَّ اللّٰهَ يُولِجُ الَّيْلَ فِي النَّهَارِ

د شپې ورځې ګردش:- الله ﷻ بيان فرمائي چه خالق اومتصرف هم هغه دي پخپل ټول مخلوق كښې چه څه غواړي كوي. ارشاد دي ﴿قُلِ اللّٰهُمَّ مٰلِكَ الْمُلْكِ تُؤْتِي الْمُلْكَ مَن تَشَاءُ وَتَنزِعُ الْمُلْكَ مِمَّن تَشَاءُ وَتُعِزُّ مَن تَشَاءُ وَتُذِلُّ مَن تَشَاءُ بِيَدِكَ الْخَيْرُ إِنَّكَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾ [1] الهى هم ته مالك الملك ئى چاله چه غواړې ملك وركوې دچانه چه

[1] ۳/آل عمران: ۲۶.

غواړي اخلي څوك چه غواړي د عزت په تال تالنى وركوي څوك چه غواړي د در نه نى په در كړي تولې بنيگړي هم ستاپه لاس كنبي دى هم ته په هرڅيز باندې قادرئى شپه په ورځ كنبي او ورځ په شپه كنبي هم ته راوړې. ژوندي د مړى نه اومړي د ژوندى نه هم ته راوباسې چاله چه غواړې بې حسابه رزق وركوې.نوكله ورځې وړې شپې غتې او كله شپې وړې او ورځې غتې لكه چه په گرمئى او يخنئى كنبي وى.دبنديگانو تولې خبرې الله ﷻ اورى دهغوى ټول حركات او سكنات گورى هيڅ يوحال د هغه نه پټ نه دې.دهغه هيڅ څوك حاكم نشته بلكه دهغه په وړاندې څوك چونړهم نه شى كولې. هم هغه ربنتوني معبود دې د عبادتونو لائق د هغه نه بغيربل څوك نشته. د زبردستې غلبه والا او لوئ شان والا دې چه څه غواړى كيږى اوچه څه نه غواړى نامكن دى چه اوشي هرسړي دهغه مخكې فقير او هر يودهغه په وړاندې عاجز دهغه نه بغيرچه څوك عبادت اوكړى هغه باطل اوهيڅ نفع نقصان د چاپه لاس كنبي نشته هغه اوچت دې اوهريوڅيزدهغه ماتحت دې دهغه دحكم لاندې دې دهغه نه بغيرڅوك معبودنشته نه دهغه نه سوابل څوك رب شته نه دهغه نه څوك لوئ اونه په هغه باندې څوك غالب هغه د تقدس والا هغه دعزت اوجلالت والادظالمانوونيلې شوو ټولوكمزورو خبرو نه پاك د ټولوخوبيانو والا دټولونقصاناتو نه پاك اولړې.

**د بيا اژوندى كيدو په مثال سره وضاحت:**-خپل عظيم الشان قدرت او زبردسته غلبه بيانوى چه په اوچه غيرآباده زمكه باندې د هغه په حكم سره هواگانې اوريځې راولى او هم هغه زمكه آباده تازه تكه شنه راژوندئى كيږى.دلته "ف"دتعقيب دپاره ده دهريوڅيز تعقيب د هغه په اندازه سره كيږى. دنطفه نه چك وينه كيدل بيا د چك وينې نه دغوښې ټكره كيدل چه كوم ځائ بيان فرمانيلى دى هلته هم "ف"راغلې ده او په هرو دووصورتونو كنبي دځلوينبتو ورځو فاصله وى اوداهم ذكردې چه د حجازبعضې زمكې داسې هم دى چه دباران كيدوسره سره شنه شى.فالله اعلم. د زمكې په گوټونو كنبي اود دې په خيټه كنبي چه څه دى ټول د الله ﷻ په علم كنبي دى يوه يوه دانه د هغه په علم كنبي ده اويه هم هلته رسى اوهغه راټوكيږي لكه څنگه چه د حضرت لقمان په قول كنبي دى اې بچيه! كه يوڅيز د اورى د دانې هومره وى او بيا هغه هم په يوكانړى كنبي وى يا په آسمان كنبي وى يا په زمكه وى الله ﷻ به هغه خامخاراوړى الله ﷻ پاك او خبردې([1])يوبل آيت كنبي دى دزمكې اوآسمان پټ څيزونه به الله ﷻ ښكاره كړى([2]) بل آيت كنبي دى چه دهرې پاڼې د راپريوتو د هرې دانې چه د زمكې په تياروكنبي وى اود هريو اوچې اولمدې د څيزونو الله ﷻ ته علم دې او هغه په ښكاره كتاب كنبي دى.([3]) يوبل ځائ كنبي دى چه يوه ذره هم په آسمان اوزمكه كنبي د الله ﷻ نه پټه نه ده هيڅ لوئ وړوكې څيز داسې نه دې چه په كتاب كنبي ښكاره نه وى. اميه بن ابى الصلت يا زيدبن عمروبن نفيل په قصيده كنبي دى :-

وقولا له من ينبت الحب فى الثرى فيصبح منه البقل يهتز رابيا

ويخرج منه حبة فى رؤسه ففى ذاك ايات لمن كان واعيا

اې زمادواړوپيغمبرانو!تاسودوى ته اووانې چه دخاورې نه دانې څوك راوباسى ونه راټوكيږى او تاويږى اود دې په سرونوباندې وينبته راوځى د عقل مندودپاره خو په دې كنبي يونه څومره نښې موجود دى. د ټول كائنات مالك هم هغه ذات دې هغه د هريوڅيز نه بې پرواه دې هريودهغه په مخكې فقيردې اود هغه داوچت دربار محتاج دې.ټول انسانان د هغه غلامان دى.آياتاسونه گورئى چه ټول څناوركانړى

[1] ۳۱/لقمان:۱۶.

[2] ۲۷/النمل:۲۵.

[3] ۶/الانعام:۵۹.

بني باغونه هغه ستاسود فائدې اوستاسو په ماتحتنی کښې ورکړې ساتلې. د زمکې او اسمان څیزونه ستاسودپاره سرګردانه دي.هم دهغه احسان فضل اوکرم دې دهغه په حکم سره کشتني تاسواخوا دیخوااوړې ستاسو مالونه او سامانونه دیو ځایٔ نه بل ځایٔ ته رسي.اوبه شلولوسره اوموجونوکښې تیربدلوسره د الله ﷻ په حکم په هواګانوسره کشتني ستاسو د فائدې دپاره رواني دي. ددې ځایٔ د ضرورت څیزونه هغه ځایٔ ته اود هغه ځایٔ نه دضرورت څیزونه دلته برابر رارسي.هغه پخپله آسمان نیولې دې چه په زمکه باندې راپرېوته نۀ شي ګني که اوس هغه حکم ورکړونودا به په زمکه راروان وي او تاسو ټول به هلاك شئ.

د انسانانود ګناهونوسره الله ﷻ په هغوی باندې خپل شفقت اومهرباني اوخیال ساتي لکه چه ارشاد دې ﴿وَاِنَّ رَبَّكَ لَذُوْ مَغْفِرَةٍ لِّلنَّاسِ عَلٰى ظُلْمِهِمْ ۚ وَاِنَّ رَبَّكَ لَشَدِیْدُ الْعِقَابِ۝﴾ (۱) د خلقود ګناهونوباوجود الله ﷻ په هغوی باندې بښونکې دې اوبې شکه هغه دسختوعذابونووالاهم دې هم هغه تاسوپیداکړي ني اوتاسو به فنا کوي بیابه مو دوباره راپیداکوی لکه ارشاد دې ﴿كَیْفَ تَكْفُرُوْنَ بِاللّٰهِ وَكُنْتُمْ اَمْوَاتًا فَاَحْیَاكُمْ ۚ ثُمَّ یُمِیْتُكُمْ ثُمَّ یُحْیِیْكُمْ ثُمَّ اِلَیْهِ تُرْجَعُوْنَ۝﴾ (۲) تاسو الله ﷻ سره څنګه کفر کوئ حالانکه تاسو مړه وئ هم هغه تاسوراژوندي کړنی بیابه هم هغه تاسو وژني اوبیابه دوباره تاسو ژوندی کوی بیابه تاسو ټول د هغه طرف ته واپس ګرځولې شئ.یوبل آیت کښې ارشاد دې ﴿قُلِ اللّٰهُ یُحْیِیْكُمْ ثُمَّ یُمِیْتُكُمْ ثُمَّ یَجْمَعُكُمْ اِلٰى یَوْمِ الْقِیٰمَةِ لَا رَیْبَ فِیْهِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا یَعْلَمُوْنَ۝﴾ (۳) هم الله ﷻ به تاسو ژوندی کوی بیا به هم هغه تاسو وژني بیابه تاسودقیامت په ورځ د کومې په راتلوکښې چه هیڅ شك نشته جمع کوی. بل ځایٔ فرماني چه هغوی به وائي اې الله تامونږ دوه ځل اووژلو اودوه ځل دې ژوندی کړو (۴) نودکلام مطلب دادې چه ددا سې الله ﷻ سره تاسو بل څوك ولې شریك ګرځوئ؟دنورو عبادت هغه سره څنګه کوئ؟پیدا کونکی صرف هم هغه رزق ورکونکې هم هغه صرف مالك اومختار هم هغه. تاسو هیڅ نه وئ تاسو ني پیداکړني بیا به ستاسو د مرګ نه پس تاسو بیاراپیداکوی یعني د قیامت په ورځ انسان ډیر ناشکره اوناقدره دې.

| | | | |
|---|---|---|---|
| لِكُلِّ اُمَّةٍ | جَعَلْنَا | مَنْسَكًا هُمْ | نَاسِكُوْهُ |
| دپاره دهرامت | مقرر کړې ده مونږه | یوه طریقه دعبادت | چې هغوئ عمل کونکي دي په هغې |
| امونږ دهرامت دپاره دعبادت طریقې مقرر کړې دي | | | په کومو چې هغوئ روان دي |

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَلَا یُنَازِعُنَّكَ | فِی الْاَمْرِ | وَادْعُ | اِلٰى رَبِّكَ ؕ |
| پس اے نبي دوئ دجګړه نۀ کوی ستا سره | په کار ددین کښې | او تهٔ رابله خلق | رب خپل ته |
| نودوئ دی تا سره په دې باره کښې جنګ نه کوی | | او ته لګیا اوسه دوئ الله ﷻ طرفته | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اِنَّكَ | لَعَلٰى هُدًى مُّسْتَقِیْمٍ۝ | وَاِنْ | جٰدَلُوْكَ | فَقُلِ |
| بیشکه تهٔ | په لاره نیغه باندې ئې | او که چرې | هغوئ جګړه کوی ستا سره | نو ورته اووایه |
| رابله | بیشکه ته په سمه لار ولاړ ئې | او که دوئ تاسره جګړه کوی | | نو دوئ ته اووایه چې |

(۱) ۱۳/الرعد:۶.
(۲) ۲/البقرة:۲۸. اع
(۳) ۴۵/الجاثیة:۲۶.
(۴) ۴۰/غافر:۱۱.

| بَيْنَكُمْ | اَللّٰهُ يَحْكُمُ | بِمَا | تَعْمَلُوْنَ۞ | اَللّٰهُ اَعْلَمُ |
|---|---|---|---|---|
| په منځ ستاسو کښې | الله به فيصله کوی | چې تاسو ئې کوئ | هغه څه | الله ته ښه معلوم دی |

تاسو څه کوئی الله ﷻ دهغې نه ښه خبر دی | الله ﷻ به ستاسو ترمينځه په هغې خبرو

| تَخْتَلِفُوْنَ۞ | فِيْهِ | كُنْتُمْ | فِيْمَا | يَوْمَ الْقِيٰمَةِ |
|---|---|---|---|---|
| چې اختلاف به مو کولو | په هغې کښې | چې وئ تاسو | په هغه ټولو خبرو کښې | په ورځ دقيامت |

کښې د قيامت په ورځ فيصله اوکړی| په کومو کښې چې تاسو اختلاف کوئ |

**قوله تعالى:- لِكُلِّ اُمَّةٍ جَعَلْنَا مَنْسَكًا**

**د هريوقوم د شريعت تذکره:** اصل کښې په عربی ژبه کښې د **(منسك)** لفظی ترجمه دې ځائ کښې ده د کوم ځائ چه انسان د تلوراتلوعادت واچوی د حج احکام په ځائ راوړو ته ددې دپاره **(مناسك)** ونيلې شي چه خلق باربار هلته ځی اوحصاريږی. نقل دی چه دلته مراد دادې چه دهرامت د پيغمبرد پاره مونږ شريعت مقررکړې دی نوپه دې امرکښې دې داخلق جنګ نه کوی. مراد دا دې چه مشرکان خلق دی او که مرادهرامت د قدرت په توګه دهغې افعال مقرروول دی لکه چه سورت بقره کښې ارشاددې د هريود پاره يوطرف ته دې کوم طرف چه هغه متوجه کيږی دلته هم دا دی چه هغوی د دې په ځائ راوړونکی دې نودضميراعاده هم پخپله په هغوی ده يعنی داټول د الله ﷻ په قدرت اود هغه په اراده سره کوی نود هغوی په جنګ کولوسره ته مه بدزړه کيږه اود حق نه مه اخواکيږه د خپل رب طرف ته نی راغواړه اوپه خپل استقامت اوهدايت باندې په کامل يقين سره اوسيږه.هم دالارحق سره ملاويدونکې او مقصود په کاميابئ سره راوړونکې اچونکې دې. لکه چه فرمائی ﴿وَلَا يَصُدُّنَّكَ عَنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ بَعْدَ اِذْ اُنْزِلَتْ اِلَيْكَ وَادْعُ اِلٰى رَبِّكَ وَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ﴾ خبردارچرته داخلق تاد الله ﷻ اياتونه تاله په رسيدلوباندې هم هغوی منع نه کړی. د خپل رب د لارې دعوت عام ورکوه که په دې باندې هم څوک اودريږی نودهغه نه خان خلاص کړه ورته اووايه چه الله ﷻ ستاسو اعمال وينی لکه چه څو ځايونو کښې دامضمون سردوباره کړې دې. يوځائ کښې دی که چرې دوی تا دروغ اوګڼړی نودوی ته وايه چه زما د پاره زما عمل دې او ستاسو د پاره ستاسوعمل دې تاسو زما دعمل نه خلاص ئې او زه ستاسو دعمل اوکړو نه ويزاره يم نوهم دلته هم د هغوی غوړونه کولاوکړه چه الله ﷻ ستاسودعمل نه خبردې. هغه ستاسو دوړوکی نه دوړوکی عمل نه هم خبردې اوهم هغه په مونږ اوتاسوکښې کافی شاهددې. د قيامت په ورځ به مونږ اوتاسوکښې فيصله الله ﷻ پخپله کوی اوهغه وخت به ټول اختلافات ختم شي لکه چه ارشاد دې نه ته هم د هغه دعوت ورکوه اوزمونږپه حکم باندې کلك اوسيږه اودچاپه خواهش پسې مه لګه اوصفا اعلان اوکړه د الله ﷻ په نازل کړې شوی کتاب باندې زما ايمان دې. الخ.

| وَالْاَرْضِ ط | فِي السَّمَآءِ | مَا | يَعْلَمُ | اَنَّ اللّٰهَ | اَلَمْ تَعْلَمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| او په زمکه کښې دی | چې په آسمان کښې دی | په هغه هرڅه | پوهيږی | بيشکه الله | آيا تاته معلومه نه ده |

آيا تاسو نه پوهيږئ چې په آسمانونو اوزمکه کښې څه دی| هغه دالله ﷻ په علم کښې دی

| يَسِيْرٌ۞ | عَلَى اللّٰهِ | اِنَّ ذٰلِكَ | ذٰلِكَ فِيْ كِتٰبٍ ط | اِنَّ |
|---|---|---|---|---|
| آسان دی | په الله باندې | بيشکه دا ټول کارونه | دا ټول هر څه په کتاب کښې دی | بيشکه |

بيشکه داټولې خبرې په کتاب (لوح محفوظ) کښې ليک دی | بيشکه دا خبره په الله ډيره آسانه ده

| بِهٖ | لَمْ يُنَزِّلْ | مَا | مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ | وَيَعْبُدُوْنَ |
|---|---|---|---|---|
| په کولو دهغې باند | چې نه دی نازل کړې الله | دهغه څيزونو | دالله نه | اوعبادت کوی دا خلق | ماسوا |

اودا (خلق) دالله ﷻ نه سوا دهغه بتانوعبادت کوی اد چا د عبادت په جواز چې الله ﷻ څه

سُلْطٰنًا وَّمَا لَيْسَ لَهُمْ بِهٖ عِلْمٌ ؕ وَمَا

هيڅ سند | او دهغه څيز | چې نشته | دپاره دهغوئ | په هغې باند | څه علم | او نشته |

دليل نه دي نازل كړې | او نه دوئ ته ددي څه علم شته | ...... ...............اود

لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ نَّصِيْرٍ ۝ وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا

دپاره ددي ظالمانو | هيڅوك مددګار | او هر كله چې | لوستلې كيږي | په دوئ باند | آيتونه زمونږ

ظالمانو دپاره څوک مددګار نشته | اوهركله دوئ ته زمونږ ښكاره آيتونه لوستلي شي

بَيِّنٰتٍ تَعْرِفُ فِيْ وُجُوْهِ الَّذِيْنَ كَفَرُوا

واضحه صفا | ته پيژني | په مخونو كښې | دهغه كسانو | چې دحق نه ني انكار كړې دي

نو ته دكافرانو په مخونو باندې د خفګان آثار پيژندلي شي | (تردې چې ، نزدې وي

الْمُنْكَرَ ؕ يَكَادُوْنَ يَسْطُوْنَ بِالَّذِيْنَ يَتْلُوْنَ

ناخوښتيا (بدشكلي) | نزدې وي دوئ | چې اوس به حمله كوي | په هغه كسانو باند | چې اوروي هغوئ

چې په هغو خلقو حمله اوكړي | څوك چه ورته زمونږ اياتونه اوروي

عَلَيْهِمْ اٰيٰتِنَا ؕ قُلْ اَفَاُنَبِّئُكُمْ بِشَرٍّ مِّنْ ذٰلِكُمْ ؕ

دوئ ته | آيتونه زمونږ | ورته اووايه | آيا نو خبر دركړم زه تاسو ته | په ډيربد څيز سره | ددې حملې ستاسو نه

..........(ائې پيغمبره) ورته اووايه چې آيا دې نه زيات خراب څيز درته اوښايم

اَلنَّارُ ؕ وَعَدَهَا اللّٰهُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ؕ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ۝

وور دې | وعده كړې ده ددې الله | دهغه كسانو سره | چې كافران دي | او ډېر بد ځاني دې | دورتلو

(واوُرني) هغه څيز اور دې | چې الله ﷻ كافرانو سره دهغې وعده كړې ده | اودغه ډيرخراب ځاني دي

**قوله تعالى:- اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ ؕ**

**دالله ﷻ د علم تذكره:-** د رب دكمال دعلم بيان كولې شي چه دزمكې اوآسمان هريوڅيز د هغه د علم په احاطه كښې دې يوه ذره هم دهغې نه بهرنه ده د كائنات د وجود نه داول هغه سره دكائنات علم وو بلكه هغه په لوح محفوظ كښې ليكلې وو. په صحيح مسلم كښې حديث دې الله ﷻ د زمكې اوآسمان د پيداكولونه پنځوس زره كاله اول كله چه دهغه عرش په اوبوباندې وو د مخلوق تقديرونه اوليكل. ([1])

**دټولونه اول قلم پيداكړې شو:-** د سنن په حديث كښې دى : ټولونه اول الله ﷻ قلم پيداكړو اوهغه ته ني اوفرمائيل ليكه هغه تپوس اوكړو څه اوليكم؟ ونې فرمائيل چه څه كيدونكي دى نود قيامته پورې چه څه كيدونكي ووهغه قلم اوليكل([2]) دابن عباس ﷺ قول دې چه دسلوكالوپه لاركښې الله ﷻ لوح محفوظ پيداكړو اودمخلوق د پيدانش نه اول چه الله ﷻ په عرش باندې ووقلم ته دليكلوحكم وركړو هغه تپوس اوكړوچه څه اوليكم؟ ونې فرمائيل زماعلم كوم چه د مخلوق متعلق د قيامته پورې نوقلم

---

[1]) صحيح مسلم كتاب القدر باب حجاج ادم وموسى صلى الله عليهماوسلم:۲۶۵۳، ترمذى:۲۱۵۶، احمد:۲/۱۶۲، ابن حبان:۶۱۳۸.

[2]) ابوداؤد كتاب السنة باب فى القدر: ۴۷۰۰ وهوصحيح، ترمذى: ۳۳۱۹،۲۱۵۵.

روان شو اودقیامته پورې چه څه کیدونکي اموردی کوم چه دالله ﷻ په علم کښې وو قلم اولیکل.هم دا
په دې آیت کښې خپل نبی ﷺ ته فرمائی آیا ته نه پیژنې چه د آسمان او زمکې د هریوځیز زه عالم یم
نوداهغه د علم کمال دی چه د ځیزد وجود نه اول هغه ته معلوم دی بلکه لیکلي هم دی او هغه ټول هم
داسې په واقع کښې کیدونکي دی. د بندیګانود ټولو اعمالوعلم دهغوی د عمل نه وړاندې الله ﷻ ته
دی او هغه چه څه کوی د هغه کولونه وړاندې الله ﷻ پیژندلو هریوحکم منونکې اونه منونکې د هغه په
علم کښې وو اودهغه په کتاب کښې لیکلي شوي وو اوهریوځیزدهغه د علمي احاطې هم دننه وواودا د
الله ﷻ په امرباندې څه ګران نه ووټول په کتاب کښې وو او په رب باندې ډیر آسان وو.

**د کلام الله نه مخ اړول قابل ګرفت دی:-** بغیردلیل او بې سنده دالله ﷻ نه علاوه دبل عبادت اوبندګی
کونکوجهالت او کفربیانوی.چه بغیرد شیطانی تقلید نه اود پلار نیکه په کتلوراکتلو نه څه نقلي دلیل
هغوی سره شته اونه عقلي. یوبل آیت کښې دی ﴿وَمَنْ يَدْعُ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ لَا بُرْهَانَ لَهُ بِهِ فَإِنَّمَا حِسَابُهُ عِنْدَ رَبِّهِ ۚ إِنَّهُ لَا
يُفْلِحُ الْكَافِرُونَ﴾[1] ځوك هم چه الله ﷻ سره بل معبود بغیردلیل نه رابلی د هغه نه به الله ﷻ پخپله تپوس
پوښتنه کوی. ناممکن دی چه داسې ظالمان به خلاصې بیامومی. دلته هم اوفرمائیلې شو چه د دې
ظالمانویه هیڅ ځوك امدادی نه وی چه د الله ﷻ د عذاب نه ئې بچ کړی. په هغوی باندې چه د الله ﷻ
د پاك کلام آیاتونه صحیح دلیلونه اوواضحه حجتونه کله پیش کړې شی نود هغوی په تن اوبدن کښې
اُور اولګی.دالله ﷻتوحیداودرسولانو تابعداری په صفاتوګه بیان کړې شوه چه په هغوی باندې مرچکی
اولګیدل شکلونه ئې بدل شویه تندو باندې ګونجې راغله لستونړې راوچت کړل. که وس ئې وو نو ژبې
به ئې راښکلې شوې وې یولفظ هم د حقانیت به په زمکه نه وو راغلې هم هغه وخت به ئې مرئی خفه
کړې وې. ددې رښتونی خیرخواهانودالله ﷺ ددین دتبلیغ کونکوبدنی کوی ژبې ئې دهغوی خلاف
روانې دی اوچه ممکن وی نولاسونه ئې هم دهغوی طرف ته داوچتیدونه نه منع کیږی.ارشاد دې چه
نبی ﷺدوی ته اووایه چه یوطرف ته خوتاسوکوم تکلیف د الله ﷻ د دین ساتونکوته ورکول غواړئی هغه
وزن کړئی بل طرفته ددې خفګان وزن اوکړئی کوم چه یقیناًتاسو ته ستاسودکفراوانکارپه وجه
رسیدونکې دې بیاګورئی چه بدترین ځیزکوم یودې؟هغه د دوزخ اُور اود هغه ځایٔ قسم قسم عذابونه؟
آیاچه کوم تکلیف تاسو دې رښتونی موحدینوته رسول غواړئی؟نوداهم ستاسو ارادې اوارادې دی.
اوس تاسوهم پوهه شئی چه دوزخ هم ډیرخراب ځایٔ دې ځومره خطرناك دې ځومره تکلیف ورکونکې
دې اوځومره دمشکل ځایٔ دې. یقیناًډیر زیات خراب ځایٔ دې او ډیر ویرونکې مقام دې کوم ځایٔ چه
د راحت او آرام نوم هم نشته.

| يَا أَيُّهَا النَّاسُ | ضُرِبَ | مَثَلٌ | فَاسْتَمِعُوا | لَهُ ؕ | إِنَّ الَّذِينَ |
|---|---|---|---|---|---|
| اے خلقو | بیانیږی | یو مثال | نو غوږ کیږدئ | هغې ته | بیشکه هغه (معبودان) |

اې خلقو ! (اوس) یوه لویه خبره اوروله شی انوښه غوږونه ورته کیږدئی | تاسو چې دالله ﷻ

| تَدْعُونَ | مِنْ دُونِ اللَّهِ | لَنْ يَخْلُقُوا | ذُبَابًا | وَلَوِ اجْتَمَعُوا |
|---|---|---|---|---|
| چې تاسو ئې رابلئ | ماسوا دالله نه | هرګز نشی پیدا کولې | هغوئ یومچ (هم) | اواګر که راجمع شی ټول |

نه بغیر ځوک رابلئ | هغوئ خو یومچ قدر له هم نشی پیدا کولې | اګر که ټول پرې باندې راټول شی

[1] ۲۳/المؤمن: ۱۱۷.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَهُ ط | وَاِنْ يَّسْلُبْهُمُ | الذُّبَابُ | شَيْـًٔا | لَّا يَسْتَنْقِذُوْهُ | |
| پيداكولو دهغې ته | اوكه اوتښتوي دهغوئ نه | يو مچ | څه څيز | نو نشي خلاصولې هغوئ هغه څيز | |
| اوكه يو مچ ترې نه څه اوتښتوي | نو دوئ ټول ترې نه هغه خلاصولې قدرې هم نشي | | | | |
| مِنْهُ ط | ضَعُفَ | الطَّالِبُ | وَالْمَطْلُوْبُ ۝ | مَا قَدَرُوا | |
| دهغه(مچ) نه | انو كمزوري دي | اغوښتونكي هم | اودچا نه چې مدد غوښتلې شي هغه هم | او نۀ پيژندو خلقو قدر | |
| غوښتو والا(عابد) اود كوم (دروغژن معبود) نه چې غوښتل كولې شي دواړه كمزوري دي | اذې خلقو | | | | |
| اللّٰهَ | حَقَّ | قَدْرِهٖ ط | اِنَّ اللّٰهَ | لَقَوِيٌّ | عَزِيْزٌ ۝ |
| دالله | پشان دحق | قدر پيژندولو دهغه | بيشكه الله | ډير قوي دي | غالب دي |
| دالله ﷻ هغه شان قدر اونكړو څنګه چې پكار وو | | | ابيشكه الله ﷻ زوراور اوغالب دي | | |

**قوله تعالى:- لَنْ يَّخْلُقُوْا ذُبَابًا**

**د باطلومعبودانوب وسى:-** دالله ﷻ نه سواچه د چا عبادت كولې شي دهغوى كمزورى اودهغوى د عبادت كونكو كم عقلى بيانولې شي. چه اې خلقو داجاهلان كوم چه د الله ﷻ نه بغيرد نوروعبادت كوى رب سره چه څوك شرك كوى د دوى يومثال ډير ښكلې او بالكل د واقعه مطابق بيانولې شي.لږ شان په غورسره واورئى چه د دوى دا ټول بتان اوخدايان كوم چه دوى الله ﷻ سره شريك ګرځوى راجمع شى او يومچ جوړول اوغواړى نوټول به عاجزراشى او يومچ قدرې به جوړنه كړې شى.دمسند احمد په حديث قدسى كښې د الله ﷻ فرمان دې د هغه نه زيات ظالم څوك دې چه زما په شان بل جوړول غواړى كه په حقيقت كښې په چاكښې داقدرت وى نويوه ذره (يامچ) يايوه دانه د غلې دې جوړه كړى[1] په بخارى او مسلم كښې الفاظ داسې دى چه هغه دې يوه ذره يا يوه اوربشه جوړه كړى.[2] بنه ده نوره هم د دوى د باطلومعبودانو ډيره كمزورى اوناتوانى واوره چه دوى د مچ مقابله هم نه شي كولې د هغوى حق د هغوى څيز ددوى نه اوړى اخلى دوى بې وسه دى اوداهم نه شي كولې چه د هغه نه خپل څيز واپس واخلى.بنه ده چه دمچ په شان كمزورې اوسپك مخلوق نه هم چه څوك خپل حق وانخستې شي نود ده نه هم كمزورې بې وسه بې طاقته او پريوتلې بل څوك كيدې شي؟ حضرت ابن عباس ﷺ فرمانى د طالب نه مراد بت او دمطلوب نه مراد مچ دې.[3] امام ابن جرير ﷫ هم داخوښوى اود الفاظونه هم دا ښكارى. دويم مطلب دابيان كړې شوې دې چه دطالب نه مراد عابداودمطلوب نه مراددالله ﷻ نه سوا بل معبود. د الله ﷻ عظمت او قدر د هغوى په زړونوكښې نه دې ورګډشوې كه چرې داسې وې نودا دومره لوئ او طاقتور الله ﷻ سره به ئې داسې ذليل مخلوق ولې شريك كولو د چا چه د مچ پاسولوهم قدرت نه وى لكه چه دمشركينوقريشو بتان وو. الله ﷻ په خپل قوت او قدرت كښې بې مثال دې. ټول څيزونه بغير نمونې په اول ځل پيدا ئش سره هغه پيداكړى دى بغير دبل چا دامداد اخستلواومشوره كولو چه څوك شريك كړى.بياد ټولوهلاك كولونه پس ددې نه هم په آسانئى سره راپيداكولوباندې قادردې.هغه ډير مضبوط نيونكې په اول ځل پيداكونكې اوبياراپيداكونكې د رزق وركونكې او د ډير زيات بې اندازې طاقت لرونكې دې. ټول هرڅه د هغه په وړاندې ښكته دى څوك د هغه اراده نه شي بدلولې د هغه فرمان روستوكونكې اود هغه د عظمت او سلطنت مقابله كونكې نشته هم هغه واحداوقهاردې.

---

[1] احمد:۲/۲۹۱، ۲/۲۳۲ ح۷۱۶۶وسنده صحيح، البخاري:۵۹۵۳ومسلم:۲۱۱۱.
[2] صحيح بخاري كتاب اللباس باب نقض الصور:۵۹۵۳، صحيح مسلم:۲۱۱۱، ابن حبان:۵۸۵۹، بيهقى:۲۶۸/۷.
[3] الطبرى:۱۸/۶۸۵.

| اَللّٰهُ يَصْطَفِيْ | مِنَ الْمَلٰٓئِكَةِ | رُسُلًا | وَّمِنَ النَّاسِ ؕ | اِنَّ اللّٰهَ | سَمِيْعٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| الله غوره کوي | دفرښتو نه | استازي | او دانسانانو نه هم | بیشکه الله | اوریدونکي |

الله ﷻ په فرښتو کښې هم استاذي غوره کوي او په انسانانو کښې هم بیشکه الله ﷻ هر څه اوري

| بَصِيْرٌ ۚ | يَعْلَمُ | مَا | بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ | وَمَا |
|---|---|---|---|---|
| لیدونکي دي | پوهیږي هغه | په هغه څه | چې په منځ دلاسونو ددوئ کښې دي | او په هغه څه |

وینې ګوري هغه (الله ﷻ) ته ددوئ وړاندې روستو هر څه معلوم دي

| خَلْفَهُمْ ؕ | وَاِلَى اللّٰهِ | تُرْجَعُ | الْاُمُوْرُ ۝ |
|---|---|---|---|
| چې روستو ددوئ نه دي | او خاص الله ته | واپس کیږي | ټول کارونه |

او ټول کارونه بهٔ دالله ﷻ طرفته واپس پیش کولې شي

قوله تعالی:- اَللّٰهُ يَصْطَفِيْ مِنَ الْمَلٰٓئِكَةِ رُسُلًا وَّمِنَ النَّاسِ ؕ

**د رسالت د منصب حقدار څوک دي؟**:-خپل مقررکړې تقدیر جاري کول اوخپل مقررکړې شوې شریعت خپل رسول ﷺ ته درسولود پاره الله ﷻ چه کومه فرښته غوارې مقررکوي. دغه شان دخلقونه هم چه الله ﷻ څوک دپیغمبرۍ دمنصب دپاره غواړي ورکوي. دبندګانو ټول اعمال هغه اوري اودیویونده اعمال د هغه په نظرکښې دي هغه ښه پیژني چه درسالت د منصب حقدارڅوك دې. لکه چه ارشاد باری تعالی دي ﴿اَللّٰهُ اَعْلَمُ حَيْثُ يَجْعَلُ رِسَالَتَهٗ ؕ سَيُصِيْبُ الَّذِيْنَ اَجْرَمُوْا صَغَارٌ عِنْدَ اللّٰهِ وَعَذَابٌ شَدِيْدٌۢ بِمَا كَانُوْا يَمْكُرُوْنَ ۝﴾ (١) هم رب ته علم دې چه د رسالت دمنصب صحیح توګه باندي څوك اهل دي؟درسولانودوړاندې روستوالله ﷻ ته علم دې چه څه هغوی طرفته اورسیدل هغوی اورسول ټول هرڅه هغه ته ښکاره دی واضحه دی.لکه چه ارشاددي﴿عٰلِمُ الْغَيْبِ فَلَا يُظْهِرُ عَلٰى غَيْبِهٖٓ اَحَدًا ۝﴾(٢)یعنی هغه دغیبوپیژندونکې دې دخپلوغیبویه چاباندې څرګندونه نه کوي اوچه کوم پیغمبرهغه خوښ کړی نود هغه مخکې روستو څوکې مقررکوي دې دپاره چه هغه ته معلومه وی چه هغه دالله ﷻپیغام اورسولواوالله ﷻ هریوڅیز راګیرکړې دې کوم چه هغه سره دی اودهرڅیز شمیرپورې هغه سره شمیرلې دی.نوالله سبحانه وتعالی دخپلورسولانو پالونکې دې څه چه هغه ته اورولې اوونیلې شی په هغې باندې پخپله د هغوی حفاظت کونکې دې اود هغوی امدادی هم دې. لکه چه فرمان دې ﴿يٰٓاَيُّهَا الرَّسُوْلُ بَلِّغْ مَآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ ؕ وَاِنْ لَّمْ تَفْعَلْ فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهٗ ؕ وَاللّٰهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكٰفِرِيْنَ ۝﴾ (٣)اې رسول کوم څه چه ستادرب دطرف نه ستاطرف ته نازل شوی دی اورسوه که چرې داسې دې اونه کړه نود رسالت حق به ادانه شی ستابچ کول د الله ﷻ په ذمه دی.

| يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ |
|---|
| اے هغه کسانو |

ائې د ایمان خاوندانو!

---

(١) ٦/الانعام:١٢٤.
(٢) ٧٢/الجن:٢٦.
(٣) ٥/المائدة:٦٧.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اٰمَنُوا | ارْكَعُوْا | وَاسْجُدُوْا | وَاعْبُدُوْا | رَبَّكُمْ | وَافْعَلُوا | |
| چې ایمان موراوړي دي | رکوع کوئ | او سجده کوئ | او بندګي کوئ | درب خپل | او کوئ | |
| دهغه په وړاندې ټیټ شئ او سجده کوئ او دخپل رب عبادت کوئی او دنیکئ کارونه کوئی | | | | | | |
| الْخَيْرَ | لَعَلَّكُمْ | تُفْلِحُونَ | وَجَاهِدُوْا | فِي اللهِ | حَقَّ | |
| نیکی | دپاره ددې | چې تاسو کامیاب شئ | او جهاد کوئ | په لار دالله کښې | پشان دحق | |
| ........چې تاسو کامیاب شئ ........... او دالله ﷻ په لار کښې داسې | | | | | | |
| جِهَادِهٖ | هُوَاجْتَبٰكُمْ | وَمَا جَعَلَ | عَلَيْكُمْ | فِي الدِّيْنِ | | |
| دجهاد کولو دهغه | هغه غوره کړي یئ تاسو | اونه ئې ده ایښې | په تاسو باند | په دین کښې | | |
| کوششونه کوئ | ښکه چې پکار دي | .........هغه تاسوله عزت درکړو | او په تاسو ئې د دین په | | | |
| مِنْ حَرَجٍ | مِلَّةَ | اَبِيْكُمْ | اِبْرٰهِيْمَ | هُوَ | سَمّٰكُمُ | |
| څه تنګسیا | پیروی اوکړئ ددین | دپلار خپل | ابراهیم | هغه | نوم ایښي دي ستاسو | |
| حقله هیڅ قسمه تنګسیا رانوستله | تاسو دخپل پلار ابراهیم ؈ په ملت (قائم اوسئ) | هغه په تاسو | | | | |
| الْمُسْلِمِيْنَ | مِنْ قَبْلُ | وَفِيْ هٰذَا | لِيَكُوْنَ | الرَّسُوْلُ | | |
| مسلمان | مخکښې ددې قرآن نه | او په دې قرآن کښې هم | دپاره ددې چې شي | رسول | | |
| دمسلمانانو نوم ایښودي وو | پخوا هم او اوس هم په دې (قران پاک) کښې | ددې دپاره چې رسول | | | | |
| شَهِيْدًا | عَلَيْكُمْ | وَتَكُوْنُوْا | شُهَدَآءَ | عَلَى النَّاسِ | فَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ | |
| ګواه | په تاسو باند | او شئ تاسو | ګواهان | په خلقو باندې | پس ودروئ مونځ | |
| په تاسو باندې ګواه شي | او تاسو په نورو خلقو ګواهان شئ | نو همیشه دمونځ پابندی کوئ | | | | |
| وَاٰتُوا | الزَّكٰوةَ | وَاعْتَصِمُوْا بِاللهِ | هُوَ | مَوْلٰكُمْ | | |
| او ورکړئ | زکات | او منګولې اولګوئ په دین دالله | هغه | مولی مالك ستاسو دي | | |
| او زکاة ورکوئی | او دالله ﷻ په (حکمونو) مضبوطتیا سره عمل کوئ | هغه ستاسو مالک دي | | | | |
| فَنِعْمَ الْمَوْلٰى | وَنِعْمَ | النَّصِيْرُ | | | | |
| نو خومره ښه اقا او څومره ښه مددګار دي | | | | | | |
| پس ډیر ښه مالك دي | او ډیر ښه | مددګار دي (هغه) | | | | |

قوله تعالی:- وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّيْنِ مِنْ حَرَجٍ

**اسلام آسان دین دي** :- ددې دویمې سجدې باره کښې دوه اقواله دی د اولې سجدې دآیت په موقعه باندې مونږ هغه حدیث بیان کړي دي په کوم کښې چه دی رسول الله ﷺ اوفرمانیل سورة حج له په دوو سجدو باندې فضیلت ورکړې شوې دي چه څوك داسجدې اونه کړی هغه دې لوستل هم نه کوی[1] نورکوع سجده دعبادت او د نیکئ حکم کولوسره فرمائی د خپلو مالونوخپلو خانونو او خپلوژبوسره د

[1] ابو داؤد کتاب سجود القرآن باب تفریع ابواب السجود.. :۱۴۰۲ وسنده حسن، ترمذی:۵۷۸، احمد:۱۵۱/۴، حاکم ۲۲۱/۱، دارقطنی ۴۰۸/۱.

الله ﷻ په لار کښې جهاداوکړنی اودجهاد حق اداکړنی خنګه چه حکم ورکړې شوې دې چه د الله ﷻ نه دومره ویرېړنی خومره چه دهغه نه دویریدلوحق دې.هم هغه تاسو بزرګان اوخوښ کړی نې په نورو امتونوباندې تاسولهٔ بزرګی شرافت کرامت اوعزت درکړوکامل رسول اوکامل شریعت نی تاسو ته درنصیب کړوتاسوٌ له آسان او ښکلې دین درکړو.هغه احکام نی په تاسو کینخودل اوهغه سختنی نی په تاسوباندې اونه کړې وهغه بوج نی په تاسووانچولو کوم چه ستاسودوس نه وی اوپه تاسو ګران پریوځی کوم چه تاسو په ځائ راونړلې شنی.د اسلام نه پس دټولونه زیات او دټولونه اوچت تاکید کړې شوې رکن مونځ دې دې ته ګورنی چه په کورکښې په آرام سره ناستنی نوځلورکعته فرض اوکه په سفرکښې نی نوهغه به هم دوه پاتې شی اوپه ویره کښې خود حدیث مطابق صرف یورکعت دې[1]که په سورلنی باندې ئی اوکه پیدل نی که قبله ته مو مخ وی که بل طرف ته مخ وی نو هم دغه حکم د سفرد نفل مونځ هم دې چه کوم طرف ته د سورلنی مخ وی کولې شي.بیادمونځ قیام هم دبیمارنی په وجه ساقطیږی بیمارپه ناسته هم مونځ کولې شی.که د دې طاقت نی هم نه وی نوپه ملاسته ملاسته نی هم اداکولې شی.دغه شان نورو فرائض او واجباتوته اوګورنی چه الله ﷻ څومره آسانئی په هغې کښې کیخودې دی. د دې دپاره به حضورﷺ فرمائیل چه ماله دیوطرف او بالکل د آسانئی والا دین راکړې لیګلې شوې یم. ([2]) حضوراکرم ﷺ چه کله حضرت معاذ ؓ اوحضرت ابوموسی اشعری ؓ د یمن امیر جوړکړل اولیګل نی نو ورته ئی فرمائیلې وو زیرې اوروئی نفرت مه خوروئی آسانی کوئی سختی مه کوئی([3]) نور هم د دې مضمون ډیر احادیث دی.

حضرت ابن عباس ؓ د دې آیت هم داتفسیرکوی چه ستاسو په دین کښې هیڅ تنګی اوسختی نشته. ([4])امام ابن جریرؒ فرمائی دملة نصب په نزع دخافض دې لکه چه په اصل کښې(کملة ابیکم) وو اوکیدې شی چه(الزموا)محذوف اومنلې شی او(ملة)د دې مفعول اوګرځولې شی.([5]) په دې صورت کښې به.دا د دې آیت په شان شی﴿دِينًا قِيَمًا مِّلَّةَ إِبْرَٰهِيمَ حَنِيفًا ۚ وَمَا كَانَ مِنَ ٱلْمُشْرِكِينَ﴾([6])هغه ستاسونوم مسلمان کیخودلویعنی الله ﷻ د ابراهیم ؑ نه هم اول ([7]) خکه چه د هغوی دعاوه چه مونږ دواړه پلار اوځوئ او مونږ په دله کښې یوټولې مسلمانان جوړکړه خوامام ابن جریرؒفرمائی چه داقول څه ښه نه ښکاری چه د اول نه مراد دحضرت ابراهیم ؑ اول وی خکه چه دا خو ډیر ښکاره دی چه حضرت ابراهیم ؑ د دې امت نوم پدې قرآن پاک کښې مسلم نه دې کیخودلې نود "اول نه"د لفظ معنی داشوه چه په اولنو کتابونوکښې او په نور ذکر کښې اوپه دې پاک اوآخری کتاب کښې. هم دا قول د حضرت مجاهدؒ وغیره دې اوهم داصحیح دې خکه چه د دې نه وړاندې د دې امت بزرګی اوفضیلت بیان دې د دوی د دین دآسانئی ذکر دې بیا دوی ته ددین نور رغبت ورکولوسره ښائی چه داهغه دین دې چه حضرت ابراهیم خلیل الله ؑ راوړې وو.بیاد دې امت د بزرګنی د پاره اود دوی د متوجه کولود پاره فرمائیلې شی چه ستاسوذکر زما په وړاندینو کتابونو کښې هم دې.

---

[1]) صحیح مسلم کتاب صلاة المسافرین، باب صلاة المسافرین وقصرها:۶۷۸.

[2]) احمد:۲۱۶/۵وسنده ضعیف.

[3]) صحیح بخاری کتاب الجهادباب مایکره التنازع والاختلاف من الحرب:۳۰۳۸، صحیح مسلم:۱۷۳۳.

[4]) الطبری:۶۸۹/۱۸.

[5]) الطبری:۶۹۱/۱۸.

[6]) ۶/الانعام:۱۶۱.الخ

[7]) الطبری:۶۹۱/۱۸.

د مودونه د انبياء كرامو په كتابونوكښې ستاسو خبرې راروانې دي. د وړاندينو كتابونو لوستونكي
تاسو نه ښه خبردي نوددې قرآن پاك نه اول اوپه دې قرآن پاك كښې ستاسو نوم مسلم دې اوپخپله د الله
ﷻكيخودې شوې دې.په نسائي كښې رسول الله ﷺ فرمائي چه كوم سړې اوس هم دجاهليت دعوى
كوي يعني په پلار نيكه اوحسب اونسب باندې فخركوي اونورمسلمانان خواراوسپك گڼړي هغه د
دوزخ خشاك دې. چاتپوس اوكړويارسول الله ﷺ كه هغه روژې ساتي لمونځ كوي؟ ونې فرمائيل اوسره
ددې چه مونځ گذاروي اوروژې ساتي.الله ﷻ چه ستاسو كوم نومونه ايخودې دي هم په هغه نومونو
سره ئې رابلئ او آواز كوئ مسلمين مؤمنين اوعبادالله (١)د سورة بقره آيت ﴿يَآأَيُّهَا النَّاسُ اعْبُدُوْا رَبَّكُمُ الَّذِيْ
خَلَقَكُمْ وَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ﴾(٢)په تفسير كښې مونږ داحديث پوره بيان كړې دې.بيافرمائي چه مونږ
تاسوعادل ښكلې امت څكه جوړكړئ اوددې دپاره موپه ټولوامتونوكښې ستاسوعدالت مشهورتيا
اوكړه چه تاسودقيامت په ورځ په نوروخلقو گواهي وركړئ.ټول مخكيني امتونه به دمحمدامت د
بزرگئ اوفضيلت اقرار كوي. دې امت ته په نورو امتونوباندې سرداري حاصله ده. پدې وجه به د دوی
گواهي په هغوی باندې معتبره گڼړلې شي. ددې باره كښې چه ددوی رسولانودالله ﷻ پيغام دوی ته
رسولې دې هغوی دتبليغ فرض اداكړې دی. او پخپله به رسول الله ﷺ په دې امت باندې گواهي وركوي
چه حضورﷺ دوی ته د الله ﷻ دين رسولې دې او د رسالت حق ئې اداكړې. د دې باره كښې چه څومره
احاديث دي اوددې باره كښې چه څومره تفسيردې هغه مونږ ټول په ټول د بقرې د اوه لسمې ركوع د
دې آيت ﴿وَكَذٰلِكَ جَعَلْنٰكُمْ اُمَّةً وَّسَطًا لِّتَكُوْنُوْا شُهَدَآءَ عَلَى النَّاسِ وَيَكُوْنَ الرَّسُوْلُ عَلَيْكُمْ شَهِيْدًا ۗ وَمَا جَعَلْنَا الْقِبْلَةَ الَّتِيْ كُنْتَ عَلَيْهَآ اِلَّا
لِنَعْلَمَ مَنْ يَّتَّبِعُ الرَّسُوْلَ مِمَّنْ يَّنْقَلِبُ عَلٰى عَقِبَيْهِ ۗ وَاِنْ كَانَتْ لَكَبِيْرَةً اِلَّا عَلَى الَّذِيْنَ هَدَى اللّٰهُ ۗ وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِيْعَ اِيْمَانَكُمْ ۗ اِنَّ اللّٰهَ بِالنَّاسِ
لَرَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ﴾(٣)په تفسير كښې ليكلې دي. په دې وجه دلته بيا دوباره دبيانولو ضرورت نشته. هم
هلته دې اوكتلې شي.دحضرت نوحؑ اود هغه د امت واقعه هم بيان كړې شوې ده.

**په دې امت عظيم احسانات او مهرباني:**-بيا فرمائي چه د دومره لوئ اوعظيم الشان نعمت شكريه تاسو له
ضرورداداكول پكاردي دكوم طريقه چه داده كوم فرائض چه دالله ﷻ په تاسو دی هغه په شوق سره اود
زړه په مينه سره په ځائ راوړئ خاص كر دمونځ اوزكوة ډيرخيال ساتئ.كوم چه الله ﷻ واجب كړي دي
هغه دزړه په مينه په ځائ راوړئ اوچه كوم څيزونه ئې حرام كړي دي هغې سره خواكې هم مه تيريږئ.
مونځ چه خالص درب دې اوزكوة په كوم كښې چه د رب د عبادت نه علاوه د مخلوق سره احسان هم
دې. اميران خلق د خپل مال نه يوحصه فقيرانوته په خوشحالئ خوشحالئ وركوي د هغوی كار روان
شي زړه ئې خوشحاله شي په دې كښې هم د الله ﷻ د طرف نه ډيره آساني ده. حصه هم ډيره كمه ده او
په ټول كال كښې يوځل.دزكوة ټول احكام دسورت توبه آيت زكوة ﴿اِنَّمَا الصَّدَقٰتُ لِلْفُقَرَآءِ وَالْمَسٰكِيْنِ وَالْعٰمِلِيْنَ
عَلَيْهَا وَالْمُؤَلَّفَةِ قُلُوْبُهُمْ وَفِي الرِّقَابِ وَالْغٰرِمِيْنَ وَفِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَابْنِ السَّبِيْلِ ۗ فَرِيْضَةً مِّنَ اللّٰهِ ۗ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ﴾ (٤) په تفسيركښې
مونږبيان كړي دی هم هلته اوگورئ.بيا حكم كولې شي چه په الله ﷻباندې پوره يقين ساتئ هم په
هغه باندې توكل كوئ پخپلو ټولوكارونوكښې هم دهغه نه مدد غواړئ.اعتمادهروخت هم په هغه
باندې كوئ هم دهغه په تائيدباندې نظرساتئ هغه ستاسومولی دې ستاسوحافظ دې امدادگردې

---

١) ترمذي كتاب الامثال باب ماجاء في مثل الصلاة والصيام والصدقة:٢٨٦٣وسنده صحيح، احمد:١٣٠/٤، مسندابي يعلى:١٥٧١، ابن خزيمه:١٨٩٥، ابن حبان:٦٢٣٣،حاكم:١١٧/١، مسندالطيالسي:١١٦١.

٢) ٢/البقرة:٢١.

٣) ٢/البقرة:١٤٣.

٤) ٩/التوبة:٦٠.

تاسوله ستاسوپه دښمنانوباندې برې درکونکې دې.هغه چه د چا ولی جوړشو دبل چا د ولايت ضرورت نشته. د ټولونه بهترولی هم هغه دی د ټولونه ښه امداد کونکې هم هغه دې. که ټوله دنیادې دښمنان شي خوهغه په ټولوباندې قادر دې اود ټولونه زيات قوي دې. ابن ابی حاتم کښې دحضرت وهب بن ورد ﷺ نه روايت دې چه الله ﷻ فرمائي اې بنيادمه د خپلې غصې په وخت کښې ته مايادوه زه به هم د خپل غضب په وخت کښې تاته معافئ درکوم او په چا چه زما عذاب نازل شي زه به تا د هغې نه بچ کړم. برباد کيدونکوسره به تا نه بربادوم. اې بنيادمه کله چه په تاباندې ظلم اوکړې شي نو د صبر او برداشت نه کار اخله په ما نظرساته زما په امداد باندې يقين ساته او زما په امدادباندې راضي اوسې، يادساته زه به ستا امداد کوم. دا د هغې نه بهترده چه ته خپل امداد پخپله اوکړې. الله ﷻ دې مونږ ته د نيکوتوفيق راکړي اوخپل امداد دې رانصيب کړي. آمين.

**(الحمدلله)** د سورت حج تفسير ختم شو.

هم دې سره د الله ﷻ په فضل اوکرم سره داووه لسمې سپارې تفسيرهم ختم شو.

........................................

| رکوع گانې | | سورة المؤمنون مكية وهي مائة وثمان عشرة اية وست ركوعات | | اياتونه |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | | |
| ⑥ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم کونکې دې | | ⑪⑧ |

قَدۡ اَفۡلَحَ الۡمُؤۡمِنُوۡنَ ① الَّذِيۡنَ هُمۡ فِيۡ صَلَاتِهِمۡ

کامياب شوی دی | مومنان | هغه (مؤمنان) | چې هغوئ | په مونځ خپل کښې |

يقيني ده چه هغه مومنان کامياب شول | کوم چې په خپلو مونځونو کښې

خٰشِعُوۡنَ ② وَالَّذِيۡنَ هُمۡ عَنِ اللَّغۡوِ مُعۡرِضُوۡنَ ③

عاجزی کونکی دی | او هغه (مومنان) | چې هغوئ | دبدوکارونو نه | مخ اړونکی وی |

عاجزی کونکی دی | او(هغه مومنان کامياب شول) کوم چې د فضول خبرو نه ځان ساتی

وَالَّذِيۡنَ هُمۡ لِلزَّكٰوةِ فٰعِلُوۡنَ ④ وَالَّذِيۡنَ هُمۡ

او هغه (مومنان) | چې هغوئ | دزکات طريقې لره | کونکی وی | او هغه (مومنان) | چې هغوئ |

اوهغه (مومنان کامياب شول) کوم چې زکوة ادا کونکی دی| او هغه چې

لِفُرُوۡجِهِمۡ حٰفِظُوۡنَ ⑤ اِلَّا عَلٰٓى اَزۡوَاجِهِمۡ اَوۡ مَا

دشرم ځايونو خپلو لره | حفاظت کونکی وی | ماسوا دښځو خپلو نه | يا هغه وينځې

دخپلو شرمگاهونو حفاظت کونکی دی | ............مگر دخپلو ښځو اودخپلو

مَلَكَتۡ اَيۡمَانُهُمۡ فَاِنَّهُمۡ

چې مالکان شوی دی | ښی لاسونه دهغوئ | ځکه چې هغوئ (دوئ ته په ورتلو سره) |

وينځو نه (دا احتياط) نه کوی | ............ځکه چې په دې کښې دوی

غَيْرُ مَلُومِينَ ۝ فَمَنِ ابْتَغَىٰ وَرَاءَ

نۀ دی ملامت کړی شوی | نو هغه څوك | چې تلاش کړي | غیر ددغه (ښځو او وینځو خپلو ) نه |

نشی ملامته کولی | نو څوک چې ددې نه علاوه (د نورو ښځووغیره)

ذَٰلِكَ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْعَادُونَ ۝ وَالَّذِينَ هُمْ

نو دغه کسان چې دی | دوئ | اورپدونکی دی دحد نه | او هغه (مومنان) | چې هغوئ

خواهش لری | نو داسې خلق دحدنه تیریدونکی دی | اوهغه څوک چې هغوئ

لِأَمَانَاتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رَاعُونَ ۝ وَالَّذِينَ هُمْ

امانتونو خپلو لره | او وعده خپلو لره | لحاظ ساتونکی وی | او هغه (مومنان) | چې هغوئ

دخپلو امانتونو او د خپلو لوظونو خیال ساتی | اوهغه څوک چې

عَلَىٰ صَلَوَاتِهِمْ يُحَافِظُونَ ۝ أُولَٰئِكَ هُمُ الْوَارِثُونَ ۝

په مونځونو خپلو | ساتنه کوی | دا مومنان چې دی | هم دوئ وارثان دی |

دخپلو مونځونو حفاظت کوی | هم دا خلق حقیقي وارثان (او حقدار) دی

الَّذِينَ يَرِثُونَ الْفِرْدَوْسَ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ۝

هغه (وارثان) | چې په میراث کښې به اخلي | جنت فردوس | دوئ به | په هغې کښې | همیشه وی

چې جنت فردوس به په میراث کښې اوړي | اوهمیشه به په هغې کښې وی

قوله تعالی:- الَّذِينَ هُمْ فِي صَلَاتِهِمْ خَاشِعُونَ ۝

**د الله ﷻ دنیکانو خلقو صفتونه:-** نسائی ترمذی اومسنداحمد کښې روایت دې چه کله به په حضور ﷺ باندې وحی نازلیدله نوداسې خوږ خوږ مزیدار مزیدار او نرې نرې آواز به دحضور ﷺ د خوانه راتلو لکه څنګه چه د شاتود مچود بنړاری وی. یوځل هم داحالت شروع شوکله چه وحی نازل شوه لږساعت پس حضور ﷺ د قبلې طرف ته متوجه شواودواړه لاسونه ئی اوچت کړل دادعائی اوفرمائیله اې الله ته مونږ زیات کړه مه موکمه وه زمونږ عزت اوکړه سپکاوې مومه کوه مونږ له خپل انعام راکړه مه مومحروم کوه مونږ له په نورو باندې اختیارراکړه د نورو اختیار په مونږ باندې مه خوښه وه مونږ نه ته خوشحاله شه او مونږ خوشحاله کړه. د عربی الفاظ دادی. ﴿اللهم زدنا ولا تنقصنا واكرمنا ولا تهنا واعطنا ولا تحرمنا وآثرنا ولا تؤثر علينا وارض عنا وارضنا﴾ بیانی اوفرمائیل په ماباندې لس آیاتونه نازل شوی څوك چه پدې باندې کلك شوهغه جنتی شو. بیاحضور ﷺ دا پورتنی لس آیاتونه تلاوت اوفرمائیل[1] امام ترمذی رحمه الله دا حدیث منکرګڼری ځکه چه د دې راوی صرف یونس بن سلیم دې چه د محدثینوپه نیز معروف نه دې.

**دنبی کریم ﷺ اخلاق څه وو؟:-** نسائی کښې دعائشه k نه دحضور ﷺ دعاداتو اخلا قوپاره کښې سوال اوشونوهغوی اوفرمائیل دحضور ﷺ اخلاق قرآن وو بیانی ددې آیاتونو ﴿يُحَافِظُونَ﴾ پورې تلاوت اوکړو اوونی فرمائیل هم دااخلاق د حضور ﷺ وو.[2]

---

[1] ) ترمذی کتاب تفسیر القرآن باب ومن سورة المؤمنین:۳۱۷۳ السنن الکبری للنسائی:۱٤۳۹، احمد:۳٤/۱،حاکم:۳۹۲/۲د.

[2] ) حاکم:۳۹۲/۲ وسنده حسن.

**د جنت عدن تعریف**:-روایت دي چه کله الله ﷻ جنت عدن پیداکړواوبه دې کښې ونې وغیره په خپل لاس سره اولګولې اوچه هغې ته ئې اوکتل نو ونې فرمانیل چه څه اوواني نوهغوی هم دا آیاتونه تلاوت کړل کوم چه په قرآن کښې نازل شو[1] ابوسعید ﷺ فرمائی چه ددې یوه خښته دسروزرو ده اویوه د سپینوزرو الخ. کله چه فرښتې په دې کښې داخلې شوې نو ونې ونیل واه واه دا خود بادشاهانوځاې دې. یویل روایت کښې دی چه د دې خته د مشکو ده[2] بل روایت کښې دی چه په دې کښې هغه څیزونه دی چه نه سترګولیدلې دی اونه په زړه کښې د هغې خیال راغلې دې[3] بل روایت کښې دی چه کله جنت د دې آیاتونوتلاوت اوکړوزما دې په خپله بزرګئی اوجلال باندې قسم وی په تاکښې به هیڅ کله هم بخیل داخل نه شی[4] یویل حدیث شریف کښې دی چه ددې یوه خښته دسپینو مرغلرو اوبله دسرویاقوتو او دریمه دزبرجد ده د دې خته د مشکو ده د دې وابنه زعفران دی.د دې په آخره کښې دی چه دا حدیث بیان فرمانیلوسره حضور ﷺ ددې آیت ﴿وَمَن يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ﴾[5] تلاوت اوفرمائیلو.[6]

**د ایتونوتشریح اودمؤمنانو صفتونه**

**اول صفت**:-غرض داچه فرمان دې مؤمن مرادته اورسیدواونیك بختی ئې بیاموندله او خلاصې ئې بیاموندلو د دې مؤمنانوشان دادې چه هغوی په خپلو مونځونو کښې دالله ﷻ ویره لری په خشوع او آرام سره مونځ اداکوی[7] زړه حاضرساتی سترګې ښکته وی لاسونه ئې تیټ وی. د محمدبن سیرین رحمه الله قول دې د رسول الله ﷺ صحابه کرامو رضوان الله اجمعین به د دې آیت دنازلیدلونه وړاندې په مانځه کښې سترګې آسمان طرف ته اوچتولې خوددې آیت په نازلیدوسره دهغوی سترګې ښکته شوې.دسجدې د ځاې نه به ئې خپل نظر نه اخواکولو اودا هم روایت دې چه دمانځه د ځاې نه به د هغوی نظر اخوادیخوانه کیدو.که د چا ددې نه بغیر عادت جوړشوې وې نوهغه له پکاردی چه خپل نظر ښکته کړی. په یومرسل حدیث کښې دی چه حضور ﷺ به هم د دې آیت د نازلیدونه وړاندې هم داسې کول.[8] دا خشوع اوخضوع هم هغه سړی ته حاصلیدلې شی د چازړه چه اوزګاروی خلوص ورته حاصل وی په مانځه کښې ئې پوره زړه لګیدلې وی‌اود ټولوکارونو نه زیر ئې هم دې طرف ته خیال وی.په حدیث شریف کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی زما خوشبوئی او ښځې ډیرې خوښې دی اوزمادسترګو یخوالې په مانځه کښې کیخودې دې(نسائی)[9] یوانصاری صحابی رضی الله عنه خپلې وینځې ته دمانځه په وخت کښې اوونیل اوبه راوړه مونځ اوکړم راحت حاصل کړم نو په اوریدونکو دا خبره سخته اولګیده. هغه اوفرمائیل رسول الله ﷺ به حضرت بلال رضی الله عنه ته فرمائیل پاسه اوبه مانځه سره مونږ ته راحت راورسوه.[10] بیابل صفت بیان شو چه هغوی د باطل نه شرك نه ګناه نه اود هریوفضول او بې فائدې قول اوعمل نه بچ کیږی لکه چه ارشاددې ﴿وَإِذَا مَرُّوا بِاللَّغْوِ مَرُّوا كِرَامًا﴾[11] هغوی د فضول خبرونه په

---

[1] ) حاکم:۲/۳۹۲وسنده حسن.
[2] ) مسندالبزار:۳۵۰۸، حلية الاولياء:۶/۲۰٤
[3] ) المعجم الکبیر:۱۱٤۲۹،المعجم الاوسط:۷٤۲ والترهیب:۵٤٦۸.
[4] ) المعجم الاوسط:۵۵۱
[5] ) ۵۹/الحشر:۹.
[6] ) ابن ابي الدنيا
[7] ) الطبری:۹/۱۹.
[8] ) دا روایت مرسل
[9] ) نسائی کتاب عشرة النساء باب حب النساء:۳۳۹۱وسنده حسن، احمد:۳/۱۲۸، ابویعلی:۳٤۸۲.
[10] ) ابوداؤد کتاب الادب باب فی صلاة العتمة:٤۹۸٦وهوصحیح، احمد:۵/۳۷۱، مشکل الاثار:۵۵٤۹.
[11] ) ۲۵/الفرقان:۷۲.

عزت سره تيريږي هغوی د بدنی او بې فائدې کارونونه د الله ﷻ د منع کولو په وجه رابنديږي.

**دويم صفت:**-بل صفت د هغوی دا دې چه دوی د مال زکوة اداکوی اکثر مفسرين هم دا فرمانی خوبه دې کښې يوه خبره دا ده چه دا آيت مکی دې اود زکوة فرضيت د هجرت په دويم کال کښې شوې دې بيابه مکی آيت کښې د دې بيان څنګه دې؟ د دې جواب دادې چه اصل زکوة هم په مکه کښې واجب شوې وو البته د دې دمال اندازه او نصاب وغيره دا ټول احکام په مدينه کښې مقررشو ګورنی سورت انعام هم مکی دې اوپه دې کښې هم د زکوة حکم دې﴿وَاٰتُوْا حَقَّهٗ يَوْمَ حَصَادِهٖ﴾ يعنی هم د فصل د کټ کولو په ورځ د دې زکوة ورکونی هلته دا معنی هم کيدې شی چه دزکوة نه مرادخپل نفس دشرك اوکفر د خيری نه پاکول وی.لکه چه ارشاددې﴿قَدْ اَفْلَحَ مَنْ تَزَكّٰى﴾(١)هغه خپل نفس پاك کړوخلاصې نی بيا موندلواو چا چه داخراب کړو هغه نامراده شوهم دايوقول په آيت ﴿وَوَيْلٌ لِّلْمُشْرِكِيْنَ الَّذِيْنَ لَا يُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ هُمْ كٰفِرُوْنَ﴾(٢)کښې هم دې اوداهم کيدې شی چه په آيت کښې دواړه زکوتونه مرادواخستې شی يعنی د نفس زکوة هم اود مال هم. په حقيقت کښې کامل مؤمن هم هغه دې چه خپل نفس هم پاك اوساتی او د خپل مال زکوة هم ورکړی. والله اعلم.

**دريم صفت:**-بيانی بل صفت بيان کړو چه هغوی د خپلوبيبيانواود ملکيت د وينځونه علاوه د نورو ښځو نه خپل نفس لرې ساتې يعنی حرام کارنی نه بچ کيږی اودزنااولواطت وغيره نه خپل خان بچ ساتی.اودهغوی بيبيانې چه الله ﷻ په هغوی باندې حلالې کړی دی اوپه جهادکښې ملاوشوې وينځې کومې چه په هغوی باندې حلالې دی. هغوی سره په ملاويدلو کښې په هغوی هيڅ ملامتيااو نقصان نشته.کوم سړې چه په نوروطريقوسره ياد نوررونه خپل خواهش پوره کوی هغه دحدنه وړاندې کيدونکې دې. قتاده رحمه الله فرمانی چه يوې ښځې خپل غلام واخستو او په سندکښې نی دا ايت پيش کړو. کله چه حضرت عمر رضی الله عنه ته دامعلومه شوه نوهغوی دا معامله د صحابه کرامورضوان الله اجمعين په وړاندې پيش کړه.صحابه کرامو رضوان الله اجمعين اوفرمائيل چه دې غلط مطلب اخستې دې په دې باندې عمر رضی الله عنه د هغه غلام سر اوخرولو اود وطن نه ئی اوويستلو اودې ښځې ته ئی اوفرمائيل د دې نه پس ته په هريومسلمان باندې حرامه ئی خوداأثرمنقطع دې اودې سره غريب هم دې. امام ابن جرير رحمه الله دا د سورت مائده د تفسير په شروع کښې نقل کړې دې خود دې د نقل کولو مناسب ځائ هم دا وو. د دې په عاموسلمانانو باندې حراماولو وجه د هغې د ارادې په خلاف هغې سره معامله کول وو. والله اعلم.

**پخپل لاس منی ويستل هم دې ايت مبارک کښې داخل دی:**-امام شافعی رحمه الله اود هغوی موافقو خلقو د دې آيت نه استدلال کړې دې چه پخپل لاس باندې خاص اوبه ويستل حرام دی ځکه چه دا هم د دې دواړوحلالوصورتونو علاوه دی اوموتی وهونکې سړې هم دحدنه تيريدونکې دې. امام حسن بن عرفه رحمه الله په خپل جزکښې يوحديث نقل کړې دې چه رسول الله ﷺ فرمانی اووه قسمه خلق دی چه د هغوی طرف ته به الله ﷻ دخپل رحمت په نظر نه ګوری اونه به هغوی پاکوی اونه به هغوی دعالمانوسره رايوځائ کوی اوهغوی به دټولونه اول په دوزخ کښې اچونکوسره دوزخ ته داخلولې شی.دايوه بله خبره ده چه توبه اوکړی.په توبه کونکو باندې الله ﷻ مهربانئی سره رجوع کوی اويوخولاس سره نکاح کونکې يعنی موتې وهونکې اولواطت کونکې اونشه کونکې شرابی خپل موريلار وهونکی تردې چه هغوی چغې اووهی اوخپلو ګاونديانوته تکليف رسونکې تردې چه هغوی په ده باندې لعنت راوليگی

---

(١) ٩١/الشمس:٩.
(٢) ٤١/فصلت:٦-٧.

اوخپلې ګاونډنې سره بدکاري کونکې(۱) په دوی کښې یو راوی مجهول دې. والله اعلم.
**څلورم او پنځم صفت**:-بل صفت دې چه هغوی خپل امانتونه او وعدې پوره کوی په امانت کښې خیانت نه کوی بلکه دامانت په اداکولوکښې وړاندیوالې کوی. وعدې پوره کوی اود دې خلاف عادتونه د منافقانو دی. رسول الله ﷺ فرمانی د منافق درې نښې دی کله چه خبره کوی دروغ وائی کله چه وعده اوکړی خلاف ئې کوی اوکله امانت ورکړې شی نوخیانت کوی. (۲)
**شپږم صفت**:-بیانی بل صفت بیان کړوچه هغوی دمونځونوپه خپلو وختونوکښې حفاظت کوی. د رسول الله ﷺ نه سوال اوشوچه د ټولونه زیات محبوب عمل د الله ﷻ په نیزکوم یودې. حضور ﷺ اوفرمائیل چه مونځ په خپل وخت اداکوی تپوس اوشو بیا؟ وئې فرمائیل د مورپلارسره ښه سلوك کول تپوس اوشو بیا؟وئې فرمائیل دالله ﷻ په لار کښې جهادکول(۳) (بخاری ومسلم)حضرت قتاده رحمه الله فرمانی د وخت نه مراد رکوع سجده وغیره حفاظت کول مراددی چه په دې باندې دوباره نظر واچونی نو په شروع کښې هم مونځ بیان شو او په آخره کښې هم د مونځ بیان اوشو د کوم نه چه ثابت شو مونځ د ټولونه غوره دې.
په حدیث کښې دی نیغ نیغ اوسیږئې په تاسو به هیڅ کله احاطه اونه کړې شئې پوهه شئې چه ستاسو په ټولواعمالوکښې بهترین عمل هم مونځ دې.ګورئې د اودس حفاظت صرف هم مؤمن کولې شی(۴) دا صفتونه ئې بیانولو سره اوفرمائیل چه هم داخلق وارثان دی اودجنت الفردوس به دهمیشه وارثان وی.
د حضور ﷺ فرمان دې د الله ﷻ نه چه کله جنت غواړئې نو جنت الفردوس غواړئې اوهغه د ټولونه اعلی اوسط جنت دې. هم د دې نه د جنت ټول نهرونه روانیږی اوهم ذ دې د پاسه د الله ﷻ عرش دې. (۵)
**دهر مؤمن او کافر دوه ځایونه وی**:-فرمانی تاسوکښې دهریوکس دوه دوه ځایونه دی یوپه جنت کښې او یوپه دوزخ کښې کله چه څوك دوزخ ته لاړشی نود هغه دجنت وارث جنتیان جوړشی د هغې بیان په دې آیت کښې دې (۶) مجاهد رحمه الله فرمانی جنتی خپل د جنت ځائې ښائسته کوی،اودوزخ ځائې نړوی او دوزخی ددې خلاف کارکوی.کافران کوم چه د عبادت دپاره پیداکړې شوی وو هغوی عبادت پریخودو نو دهغوی دپاره چه کوم انعامات ووهغه دهغوی نه په زورسره واخستې شواوربښتونې مؤمنانوله ورکړې شو د دې دپاره ئې دوی ته وارثان اوونیل. په صحیح مسلم کښې دی چه څه مسلمانان به د غرونو برابرګناه راوړی رابه شی کومه چه به الله ﷻ په یهودیانواونصاری باندې ورواچوی اوهغوی به اوبښی(۷)په یوبل سندسره روایت دې د قیامت په ورځ به الله ﷻ هریومسلمان ته یویهودی یانصرانی ورکوی چه داستاد دوزخ نه فدیه ده.
عمر بن عبدالعزیز رحمه الله چه کله دا حدیث واوریدو نوحدیث راوی ابوهریره رضی الله عنه له ئې قسم ورکړو هغوی درې ځل قسم اوخوړلو او حدیث ئې سردوباره کړو(۸) هم د دې په شان آیت داهم دې ﴿تِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِي نُورِثُ

---

۱) شعب الایمان: ۵۴۷۰
۲) صحیح بخاری کتاب الایمان باب علامات المنافق: ۳۳، صحیح مسلم: ۵۹، ترمذی: ۲۶۳۳، احمد: ۲/۳۵۷،
۳) صحیح بخاری کتاب مواقیت الصلاة باب فضل الصلاة لوقتها: ۵۲۷، صحیح مسلم: ۸۵، ترمذی: ۱۷۳، احمد: ۱/۴۵۱، ابن حبان: ۱۴۷۷.
۴) ابن ماجه کتاب الطهارة باب المحافظة علی الوضوء: ۲۷۷ وهوحسن، احمد: ۵/۲۷۶، حاکم: ۱/۱۳۰.
۵) صحیح بخاری کتاب الجهادباب درجات المجاهدین فی سبیل الله: ۲۷۹۰، احمد: ۲/۳۳۵، ابن حبان: ۴۶۱۱. (بخاری مسلم)
۶) ابن ماجه کتاب الزهد باب صفة الجنة: ۴۳۴۱ وهوصحیح.
۷) صحیح مسلم کتاب التوبةباب فی سعة رحمة الله تعالی علی المؤمنین وفداء کل مسلم بکافر من النار: ۲۷۶۷.
۸) صحیح مسلم حواله سابق.

مِنْ عِبَادِنَا مَنْ كَانَ تَقِيًّا﴾(١) يو بل آيت كښې دى ﴿وَتِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِيْٓ اُوْرِثْتُمُوْهَا بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ﴾(٢) فردوس په رومى ژبه كښې باغ ته وائى اوبعضې سلف وائى چه هغه باغ ته وائى كوم كښې چه د انګورو خيلنى وى. والله اعلم.

وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ مِنْ سُلٰلَةٍ مِّنْ طِيْنٍ ۚ ثُمَّ جَعَلْنٰهُ

او جوړ كړي دي مونږه | انسان | دست نه | دختې نه | بيا | جوړ كړو مونږ هغه

اومونږ انسان د خالصې ښاورې نه پيدا كړو |............ بيا مونږ د دې نه نطفه

نُطْفَةً فِيْ قَرَارٍ مَّكِيْنٍ ۪ ثُمَّ خَلَقْنَا النُّطْفَةَ عَلَقَةً

| يوه نطفه | په خائې دقرار محكم كښې | بيا | جوړه كړه مونږه | ددغه نطفې نه | توټه دوينې

جوړه كړه | اوپه يو محفوظ ځائې (رحم) كښې مو اوساتله | بيامو دهغه څاڅكى نه چكه وينه جوړه كړه

فَخَلَقْنَا الْعَلَقَةَ مُضْغَةً فَخَلَقْنَا الْمُضْغَةَ

بياجوړ كړو مونږه | ددغه توټې د وينې نه | بوټۍ دغوښې | بيا جوړ كړو مونږه | ددغه بوټۍ دغوښې نه

بيا مو دهغې چكه وينې نه (دغوښې) بوټۍ جوړ كړه | بيا مو هغه بوټې

عِظٰمًا فَكَسَوْنَا الْعِظٰمَ لَحْمًا ۗ ثُمَّ اَنْشَاْنٰهُ

هډونكى | بيا ورواغستوله مونږه | دغه هډوكو ته | غوښه | بيا | پيدا كړو مونږه دهٔ لره

هډوكي كړل | بيا مو هغې هډوكو باندې غوښه اوخيژوله | بيا مو ترې نه يو بل

خَلْقًا اٰخَرَ ؕ فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ اَحْسَنُ الْخٰلِقِيْنَ ؕ ثُمَّ

په پيدا وښت بل سره | پس ډير بركت والا دې | الله | چې ډير ښه | پيدا كونكې دې | بيا

نوې مخلوق جوړ كړو | نو مبارك دې هغه الله ﷻ چې د ټولو نه ښه پيدا كونكې دې | بيا

اِنَّكُمْ بَعْدَ ذٰلِكَ لَمَيِّتُوْنَ ؕ ثُمَّ اِنَّكُمْ

بيشكه تاسو چې يئ | روستو ددې نه | خامخا مړهٔ كيدونكي يئ | بيا | بيشكه تاسو

ددې نه پس به ضرور تاسو مرئ | بيا به د قيامت په ورځ

يَوْمَ الْقِيٰمَةِ تُبْعَثُوْنَ

په ورځ دقيامت | به راپاسولې كيږئ | |

دنوى سره راژوندى كيږئ |

**قوله تعالى:-** وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ مِنْ سُلٰلَةٍ مِّنْ طِيْنٍ

**د انسان پيدائش اود هغه حقيقت:-** الله ﷻ د انسان د پيدائش شروع بيانوى چه د آدم اصل د خاورې نه دې كوم چه دختې اوكړنګيدلې خاورې په صورت كښې وو. بيا دآدم ؑ د اوبونه دهغه اولاد پيدا شولكه چه ارشاد دې الله ﷻ تاسود خاورې نه جوړكړنى بيا انسانان جوړكړنى او په زمكه كښې خواره

(١) ١٩/مريم:٦٣.

(٢) ٤٣/الزخرف:٧٢.

کړنی(١)مسند کښې دی الله ﷻ ادم ﷺ د یوموټې خاورې نه پیداکړوکومه نې چه د ټولې زمکې نه اخستې وه هم په دې اعتبارسره د آدم ﷺ د اولاد رنګ اوشکل مختلف شو څوک سوردې څوک سپین دې څوک توردې اوڅوک بل رنګ دې په دوی کښې نیکان هم دی اوبدان هم.(٢)﴿ ثُمَّ جَعَلْنٰهُ ﴾کښې د ضمیرمرجع د انسان د جنس طرف ته دې لکه چه ارشاد دې ﴿وَبَدَاَ خَلْقَ الْاِنْسَانِ مِنْ طِیْنٍ ۚ ثُمَّ جَعَلَ نَسْلَهٗ مِنْ سُلٰلَةٍ مِّنْ مَّآءٍ مَّهِیْنٍ ۚ﴾(٣)بل آیت کښې دی﴿اَلَمْ نَخْلُقْكُّمْ مِّنْ مَّآءٍ مَّهِیْنٍ ۙ فَجَعَلْنٰهُ فِیْ قَرَارٍ مَّكِیْنٍ ۙ ﴾(٤)د انسان د پاره یوه مقرره موده هم د مور رحم د حصاریدو ځائ دې چرته چه د یوحال نه بل حالت اودیوصورت نه بل صورت ته منتقل کیږي. بیاد نطفې چه یو ټوپ وهونکی اوبه دی کومې چه د سړی د شانه اود ښځې دسینې نه اوځی په شکل بدلولوسره د سور رنګ په بوټۍ کښې وربدلیږی بیا هغه بوټۍ د غوښې په یوه ټکړه کښې وربدلولې شي په کوم کښې چه څه شکل او ښبانه نه وی بیا په هغې کښې هډوکی جوړوی. سرېښې لاسونه هډوکی پټې رګونه وغیره جوړکړل اود ملا هډوکې جوړکړو رسول الله ﷺ فرمائی د انسان ټول بدن سخاکیږی بغیرد ملا د هډوکی نه. هم د دې نه پیداکولې شی اوهم په دې سره ترتیب ورکولې شی(٥)بیا دې هډوکوته هغه غوښه اچوی دې د پاره چه هغه پټ اوکلك وی بیابیادې کښې روح ورپوك وهی په کوم سره چه هغه د خوزیدو راخوزیدو ګرځیدو راګرځیدو قابل شی او یوژوندې انسان جوړشي د کتلو اوریدلو پوهیدلو اود حرکت او سکون قدرت ورکوی هغه د برکت خاوند الله ﷻ د ټولو نه ښه پیدائش سره پیداکونکې دې.

**څلور میاشتې پس ماشوم کښې روح اچولې کیږي**:-د علی ﷺ نه روایت دې کله چه په نطفه باندې څلور میاشتې تیرې شی نو الله ﷻ یوه فرښته رالیګی چه په دریو تیاروکښې په هغه کښې روح پوك وهی هم دا معنی ده چه دې به مونږ په دویم خل پیداکوو یعنی د دویم قسم دې پیدائش نه مراد د روح پوك وهل دی. نودیو حالت نه بل حالت اود بل نه بل طرف ته دمور په خیټه کښې داوختو راوختونه پس بالکل ناپوهه ماشوم پیداکیږی. بیا هغه لوئیږی تردې چه هغه خوان شي بیا په هغه بوډاوالی راځی او بوډاکیږی بالکل بوډا شی غرض دروح پوك وهل اوبیاد دې انقلاباتو راتلل شروع کیږی(٦) والله اعلم.

صادق اومصدوق حضرت محمد مصطفی ﷺ فرمانی چه په تاسو کښې د هریوپیدائش تر څلویښتو ورځوپورې دهغه د مور په خیټه کښې جمع کیږی. بیا ترڅلویښتو ورځو پورې هغه د چك وینې په شکل کښې وی بیا ترڅلویښتو ورځو پورې د غوښې د بوټۍ په شکل کښې وی. بیا الله ﷻ فرښته ورلیګی چه په هغه کښې روح پوك وهی بیا د الله ﷻ په حکم څلور خبرې لیکلې کیږی. رزق اجل عمل نیك بد یعنی خراب اوښه کیدل.نو قسم دې دهغه ذات چه د هغه نه بغیر بل څوك معبود برحق نشته یوسړی به د جنت والا عمل کوی تردې چه دجنت نه به یو لاس لرې وی خودتقدیر هغه لیك به غالب راشی اود خاتمې په وخت کښې به د دوزخی والا کارکوی او هم په دې باندې مری او دوزخ ته رسی. دغه شان یو سړې به بدکارونه کوی اود دوزخ نه به د یولاس په فاصله پاتې شی خود تقدیر لیك به راوراندې شی اود جنت د اعمالو په خاتمه به فردوس برین ته اورسی. (٧)

---

(١) ٣٠/الروم:٢٠.

(٢) ابوداؤد کتاب السنة باب فی القدر:٤٦٩٣وسنده صحیح، ترمذی:٢٩٥٥، احمد:٤/٤٠٠، حاکم:٢/٢٦١،

(٣) ٣٢/السجدة:٧-٨.

(٤) ٧٧/المرسلات:٢٢-٢٣.

(٥) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الزمر باب قوله ﴿ونفخ فی الصور فصعق......﴾:٤٨١٤،

(٦) الطبری:١٨/١٩.

(٧) صحیح بخاری کتاب بدء الخلق باب ذکر الملائکة صلوات الله علیهم:٣٢٠٨،

حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمائي کله چه نطفه رحم ته پريوځي نو هغه هرېووېښته او د نوك ځاۍ ته رسي بياڅلوېښت ورځې پس د تېنګې شوې وينې په شکل کښې شي. مسنداحمدکښې دی حضور ﷺ څخلوصحابه کرامو رضوان الله اجمعين ته خبرې بيانولې نويويهودی راغلوکافرانودقريشوهغه ته اوونيل دادنبوت دعويدار دې هغه وتپل ښه ده زه دده نه يوسوال کوم کوم چه د نبيانونه علاوه بل څوك نه پېژني. دحضور ﷺ په مجلس کښې راغی کېنی اوتپوس کوی چه دا اوښايه د انسان پيدائش د کوم څيز نه کيږی؟حضور ﷺ اوفرمائيل د سړی اودښځې د نطفې نه دسړی نطفه درنه او ټينګه وی اودې نه هډوکي او پټې جوړيږی اودښځې نطفه سپکه او نرئی وی دې نه غوښه او وينه جوړيږی هغه وئيل تاسو رښتونی ئی د وړاندينو نبيانوهم دا قول دی[1]رسول الله ﷺ فرمائی چه کله په نطفه باندې په رحم کښې څلوېښت ورځې تيرې شی نويوه فرښته راځی اودالله ﷻنه تپوس کوی چه ياالله دابه نيك وی که بد؟ سړې به وی که ښځه؟ کوم جواب چه ملاويږی هغه ليکی. عمل عمر نرمی ګرمی هرڅه ليکی بيا دفتر راغونډولې شی په دې کښې بيادهيڅ کمی زياتی ګنجائش نه وی[2]د بزار په حديث کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی الله ﷻ په رحم باندې يوه فرښته مقررکړې ده چه عرض کوی ياالله اوس نطفه ده ياالله اوس بوټئی ده ياالله اوس د غوښې ټکره ده کله چه الله ﷻ هغه پيداکول غواړی نو هغه تپوس کوی ياالله سړې به وی که ښځه؟نيك بخت به وی که بدبخت، رزق به ئی څه وی؟ اجل به ئی څه وی؟د دې جواب ورکولې شی اودا ټول څيزونه ليکلې کيږی[3]دا ټولې خبرې او خپل کامل قدرت بيانولوسره فرمائی چه د ټولونه ښه پيداکونکې الله دبرکتونووالا دې. حضرت عمر بن خطاب ﷺ فرمائی ما د خپل رب موافقت په څلورو خبروکښې کړې دې کله چه دا آيت نازل شو مونږ د انسان پيدائش د کرنګيدلې خاورې نه کړې دې نو بې واره زما د ژبې نه﴿فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ اَحْسَنُ الْخٰلِقِیْنَ﴾[4]اووتل او هم هغه بيا نازل شو[5] زيدبن ثابت انصاری ﷺ باندې چه کله حضور ﷺدا پورتنې آيت ليکلو﴿ثُمَّ اَنْشَاْنٰهُ خَلْقًا اٰخَرَ﴾[6]پورې ليکلې وونوحضرت معاذ ﷺ بې واره اووئيل ﴿فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ اَحْسَنُ الْخٰلِقِیْنَ﴾[7]. دې اوريدوسره د الله ﷻ نبی ﷺ مسکې شو نوحضرت معاذ ﷺ تپوس اوکړو يارسول الله ﷺ تاسو څنګه اوخندل. هغه اوفرمائيل د دې آيت په ختميدو باندې هم دا دی[8] ددې حديث په سندکښې يوراوی جعفی دې چه ډير ضعيف دې او دا روايت بالکل منکردې حضرت زيدبن ثابت ﷺ کاتب وحی په مدينه کښې وونه چه په مکه کښې. د معاذ ﷺ داسلام واقعه هم د مدينې ده اودا آيت په مکه کښې نازل شوی دې نودا پورتنې روايت بالکل منکردې. والله أعلم. د دې اول ځل پيداکيدونه پس تاسو مړه کيدونکې ئی بيابه د قيامت په ورځ دوباره راپيداکولې شئی بيابه حساب کتاب وی اودخير اوشر بدله به ملاويږی.

| وَلَقَدْ خَلَقْنَا | فَوْقَكُمْ | سَبْعَ |
|---|---|---|
| او پيدا کړی دی مونږه | دپاسه ستاسو | اوه |
| اومونږ ستاسو دپاسه اووه | | |

[1] احمد:۱/٤٦٥.
[2] صحيح مسلم كتاب القدر باب كيفية خلق الادمي ل بطن امه......:٢٦٤٤، صحيح مسلم:٢٦٤٦، احمد:٦/٤، مشكل الاثار:٢٦٦٣.
[3] صحيح بخاري كتاب احاديث الانبياء باب خلق آدم وذريته:٣٣٣٣، صحيح مسلم:٢٦٤٦، احمد:١٤٨/٣.
[4] ٢٣/المؤمنون: ١٤.
[5] مسندالطيالسي:٤١.
[6] ٢٣/المؤمنون: ١٤.
[7] ٢٣/المؤمنون: ١٤
[8] المعجم الاوسط:٤٦٥٧.

طَرَآئِقَ ۖ وَمَا كُنَّا عَنِ الْخَلْقِ غٰفِلِيْنَ ۝ وَاَنْزَلْنَا

لاري | اونه وو مونږ | دپيدا كولو نه | ناخبره | او نازلې كړې مونږه |

اسمانونه جوړ كړل| او مونږ (دخپل) مخلوق نه بې خبره نه يو| اومونږد اسمان

مِنَ السَّمَآءِ مَآءًۢ بِقَدَرٍ فَاَسْكَنّٰهُ فِي الْاَرْضِ ۖ

داسمان نه | اوبه | په يو خاص مقدار كښې | نو ودرولې مونږه هغه اوبه | په زمكه كښې

نه په يوه اندازه اوبه راوروو |بيا هغه مونږ په زمكه كښې ايساروو

وَاِنَّا عَلٰى ذَهَابٍۢ بِهٖ لَقٰدِرُوْنَ ۝ فَاَنْشَاْنَا لَكُمْ

او بيشكه مونږه | په غانبولو | ددې سره | خامخا قادر يو | بيا پيدا كړل مونږه | ستاسو دپاره

او بيشكه مونږ ددې په ختمولو باندې هم قادريو| بيامونږ ددې (اوبو) په

بِهٖ جَنّٰتٍ مِّنْ نَّخِيْلٍ وَّاَعْنَابٍ ۘ لَكُمْ فِيْهَا

په دې (اوبو) سره | باغونه | دكجورو | او دانگورو | ستاسو دپاره | په دې كښې |

ذريعه ستاسو دپاره دكهجورو اوانگورو باغونه پيداكړل

فَوَاكِهُ كَثِيْرَةٌ وَّمِنْهَا تَاْكُلُوْنَ ۝ وَشَجَرَةً

ميوې دى | ډيرې | او ددې باغونونه | تاسو خوراك كوئ | او (پيدا كړه مونږه) هغه ونه هم |

چې په هغې كښې ډيرې ميوې دى |اوله دې نه خوراكونه هم كوئى |او يوه بله ونه

تَخْرُجُ مِنْ طُوْرِ سَيْنَآءَ تَنْۢبُتُ بِالدُّهْنِ وَصِبْغٍ

چې راوځى | د طور سينا نه | چې زرغونيږى | دتيلو سره | او انگولې دې |

نې پيداكړه |چې په طور سينا كښې راټوكيږى | تيل په كښې پراته وى |او دا د خوړنكو

لِّلْاٰكِلِيْنَ ۝ وَاِنَّ لَكُمْ فِي الْاَنْعَامِ لَعِبْرَةً ۭ

دپاره دخوړونكو | او بيشكه | ستاسو دپاره | په څارووكښې | عبرت (سبق) دې |

دپاره تركارى ده |اوستاسو دپاره په څاروو كښې هم د عبرت اخستو موقع ده

نُسْقِيْكُمْ مِّمَّا فِيْ بُطُوْنِهَا وَلَكُمْ

مونږه څكوو به تاسو باندې| دهغې نه | چې په خيتو دهغوئ كښې دى | او ستاسو دپاره |

مونږ په تاسو باندې د هغوئ د خيتو څينې څيزونه څكوو| ......، اوستاسو

فِيْهَا مَنَافِعُ كَثِيْرَةٌ وَّمِنْهَا تَاْكُلُوْنَ ۝

په دغه څاروو كښې | (نورې) فائدې هم دى | ډيرې | او ددې نه خورئ تاسو |

دپاره په دې كښې نورې فائدې هم پرتې دى |اوپه كښې بعضې تاسو خورئى هم

| وَعَلَيْهَا | وَعَلَى الْفُلْكِ | تُحْمَلُونَ ﴿٢٢﴾ |
|---|---|---|
| او په دغه ځارووْ باندي | او په کشتئ باندا | بارولي کيږئ تاسو |
| اوپه دې ځارواو بيړو باندې تاسو سورلي کوئې | | |

قوله تعالى:- وَلَقَدْ خَلَقْنَا فَوْقَكُمْ سَبْعَ طَرَآئِقَ

**دَ آسمان دَ تخليق تذكره**:-د انسان د پيدائش ذكر كولوسره اوس دآسمانونود پيداكولو بيان دې د كوم جوړول چه د انسان دپيداكولونه ډير زيات سخت او ګران اود ډيرې لوئې كاريګرئي كاردې.په سورت آلم سجدة كښې هم د دې بيان دې لكه چه حضورﷺ به د جمعه په ورځ د سحر د مانځه په اول ركعت كښې لوستلو هلته اول دآسمان اوزمكې د پيداكولوذكر دې بياد انساني پيدائش ذكر دې بيا د قيامت اود سزا جزا وغيره ذكر دې. د اووه آسمانونود جوړولوذكر ئې كړې دې لكه چه فرمانى ﴿تُسَبِّحُ لَهُ السَّمٰوٰتُ السَّبْعُ وَالْأَرْضُ وَمَنْ فِيهِنَّ ۚ وَإِنْ مِنْ شَيْءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهِ وَلَٰكِنْ لَا تَفْقَهُونَ تَسْبِيحَهُمْ ۗ إِنَّهُ كَانَ حَلِيمًا غَفُورًا﴾[1]الخ اووه واړه آسمانونه ټولې زمكې اوددې ټول څيزونه د الله ﷻ تسبيح بيانوى آيا تاسو نه ګورئى چه الله ﷻ څنګه د يو بل د پاسه دا اووه آسمانونه جوړكړى دى الله ﷻ هم هغه ذات دې چاچه اووه واړه آسمانونه جوړكړى دى اوددې په شان زمكې. هم دهغه حكم د دې په مينځ كښې نازليږى دې د پاره چه تاسو ته پته اولګى چه الله ﷻ په هرڅيز باندې قادر دې. او ټول څيزونه ئې په خپل وسيع علم سره راګيركړى دى الله ﷻ د خپل مخلوق نه غافل نه دې. كوم څيز چه زمكې ته لاړشى اوكوم د زمكې نه راوخى د الله ﷻ په علم كښې دى د آسمان نه چه څه راكوزيږى اوآسمان ته چه څه خيژى د زمكې پټ څيزونه اودغرونوڅوكې د سمندرونوبيخ ټول دهغه په وړاندې ښكاره دى.دغرونودغونډو شګې دسمندرونو ميدانونو د ونو ټولو هغه ته خبر دې.د ونې يوه پاڼړه نه راپريوځى مګردهغه په علم كښې وى يوه دانه دزمكې تياروته داسې نه شى تلې چه هغه ته پته نه وى هيڅ يو لونداو اوچ څيز داسې نه دې چه په كولاوكتاب كښې نه وى.

**دَ يوڅولويونعمتونوتذكره**:- دالله ﷻ خوهسې ډير اوبې شميره نعمتونه دى خود يوڅو لويونعمتونو ذكر دلته كولې شى چه هغه دآسمان نه په قدرد حاجت اوضرورت باران راوروى نه ډيرزيات چه زمكه خرابه شى او پيداوارسخا شى نه ډيركم چه ميوې غلې وغيره هډو راپيدانه شى بلكه په دې اندازه چه فصل آباد او شين وى باغونه تك شنه وى حوضونه تالابونه نهرونه ولې لختى اوبهيږى اود اوبوكمې نه وى. نه دڅكلو كمې وى اونه په نورودڅكلوكمې وى. تردې چه په كوم ځائ كښې د زيات باران ضرورت وى هلته زيات كيږى اوكوم ځائ چه د كم ضرورت وى هلته كم. اود كوم ځائ زمكه چه د دې قابله نه وى هلته اوبه نه وريږى خودولولختو په ذريعه هلته قدرت دباران اوبه رسوى اودهغه ځائ زمكه خړوب كوى لكه دمصر دعلاقې زمكه چه دنيل درياب په اوبوسره خړوب كيږى هم دې اوبوسره خاوره راښكلې كيږى كومه چه دحبشه په علاقه كښې وى دهغه ځائ باران سره هغه خاوره رابهيږى رارسى او په زمكه باندې حصاريږى اوزمكه د كروندې قابله شى. ګنى د هغه ځائى تره خه زمكه د كر قابله نه ده.سبحان الله.دا لطيف خبير غفور رحيم الله ﷻ څه څه قدرتونه دى او حكمتونه ئې دى په زمكه كښې الله ﷻ اوبه راحصاروى په زمكه كښې د دې جذب كولو اوراښكلو طاقت الله ﷻ پيداكوى دې د پاره چه دانو اوګټكوته هم دننه دننه اوبه اورسوى.

**د اوبو بې شماره فائدې**:-بيافرمائى چه مونږ د دې په اورلو اولرې كولوباندې يعنى په نه ورولوباندې هم قادريوكه اوغواړونوپه كلكه اوكانړېژنه زمكه غرونواوبيكاره ځايونوكښې به ئې اوبهيوى.كه اوغواړى

[1] ۱۷/الاسراء:۴۴.

نواوبه به ترخې کړي چه دخکلوقابل به هم نه وي اود نه به په نور څه د څکلوقابلې وي اونه به د پټو او باغونودمطلب وي. نه د لامبلواونه دوينځلودمقصداوکه اوغواړي نوپه زمکه کښې به هغه طاقت کيښږدي چه هغه اوبه راکاږي اوجذب ئې کړي بلکه هم دپاسه به پرې ګرځي راګرځي.دا هم زمونږ په اختيارکښې دي چه داسې لړې لړې حوضونوته اوبه اورسوو چه ستاسو دپاره به بې کاره شي اوتاسو به د هغې نه هيڅ فائده اوچته نه کړې شئې داخاص دالله ﷻ فضل اوکرم دې اودهغه خاص مهرباني اولطف دې چه داوريخونه سپکې خوږې مزيدارې دخونداوبه راوروي بياهغه زمکې ته اورسوي اخوا ديخواآبادي شي فصلونه جدا پخيږي باغونه په کښې خان له تياريږي پخپله ئې څکئې او په خپلو څناورو باندې ئې هم څکوئې لامبئې وينځئې پاکوالې اوصفائي حاصله ونې.فالحمدلله.په آسماني اوبو باندې الله ﷻ ستاسو دپاره رزق راټوکوي چې وهونکي پټي دي چرته شنه باغونه دي چه د ښائسته ښکاريدو سره ښکلې نظاره ورکوي او فائده منددي. کهجورې اوانګورچه د اهل عربويوخوښ خوراك اوميوه ده اودغه شان د هرنوملك والا د پاره جدا جدا ميوې هغه پيداکړې دي د چا پوره شکر ويستل چه دچاپه وس کښې هم نه دي. هغه تاسوته ډيرې ميوې درکړې دي دکومو ښائست هم چه تاسو ګورئې اوښکلې خوندونو سره ئې تاسو خورئې اوفائدې ترې اوچتوئې. بيائې دزيتون د ونې ذکر اوفرمائيلو. طورسينا هغه غر دې په کوم چه الله ﷻ موسی ﷺ سره کلام کړې وواود دې نه چاپيره غرونه. طورهغه غرته وائي چه د ونونه ډك او تك شين وي ګنې غر ته جبل وائي طور به ورته نه شي وئيلې.نوپه طور سيناکښې چه کومې د زيتون ونې پيداکيږي هغې نه تيل راوځي چه دهغې خوراك خلقو له دترکارئې کارورکوي.په حديث کښې دي چه د زيتون تيل خورئې اولګوئې هغه د مبارکې ونې نه راوځي([1]) (احمد) حضرت عمر فاروق ﷺ کره يوصاحب د عاشورې په شپه ميلمه راغلو نوهغوی په ده باندې داوښ پانچې اود زيتونو تيل اوخوړل او وئې فرمائيل چه دادهغه مبارکې ونې تيل دي د کومې ذکرچه الله ﷻ خپل نبي ﷺ ته کړې دې. بياد څاروو ذکر کولې شي اود هغې نه چه انسان کومې فائدې اوچتوي د هغه نعمتونو څرګندونه کوي. د هغې پئې څکئې اود هغې غوښه خورئې د وينښتو او وړئې نه ئې جامې وغيره جوړوئې په دې سورلي کوئې په دې باندې خپل سامانونه او اسباب بارکوئې او دلرې لرې پورې ئې رسوئې که دا نه وونوهلته پورې رسيدوکښې به مونيم خان ويلې کړې وو.بې شکه الله ﷻ په بندېګانوباندې مهربان اورحمت والا دې لکه چه فرمائي﴿أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّا خَلَقْنَا لَهُم مِّمَّا عَمِلَتْ أَيْدِينَا أَنْعَامًا فَهُمْ لَهَا مَالِكُونَ﴾([2]) آياهغوی نه ګوري چه مونږ پخپله هغوی د څاروو مالکان کړي دي چه دوی د هغې غوښه اوخوري اوپه دې باندې سورلي اوکړي اوقسم قسم فائدې ترې واخلي آيااوس هم په دې باندې زمونږ شکر ويستل واجب اوضروري نه دي؟ دا د اوچې سورلئې دي اوبيا د لمدې سورلئې کشتئې اوجهازونه جدا دي.

| وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا | نُوحًا |
|---|---|
| او بيشکه اوليږو مونږه | نوح ﷺ |
| اومونږ حضرت نوح ﷺ ددهٔ | |

[1]) احمد:۳/۴۹۷.

[2]) ۳۶/يس:۷۱.

إِلَىٰ قَوْمِهِ فَقَالَ يَٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ

قوم دهغه ته | نو اووئیل هغه | اے قومه زما | بندګی کوئ دالله | نشته تاسو لره | هیڅ یو معبود

قوم طرفته اولیږلو انو دهٔ ورته اووئیل چې اے قومه ! تاسو دالله ﷻ عبادت کوئ | او د

غَيْرُهُ ۚ أَفَلَا تَتَّقُونَ ﴿۲۳﴾ فَقَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ كَفَرُوا

بې دهغه نه | ایا نو نهٔ یریږئ تاسو | نو اووئیل سردارانو | هغه (سردارانو) | چې دمنلو نه انکار اوکړو هغوئ

هغه نه سوا ستاسو بل معبود نشته|نوایا تاسو نه ویریږئ| نو دهغه دقوم سردارانو اووئیل

مِن قَوْمِهِ مَا هَٰذَا إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُرِيدُ أَن يَتَفَضَّلَ

دقوم دهغه نه | چې نهٔ دې دا | مګر | انسان دې | په مثل ستاسو | اراده لري دې | چې اوچت شي

کوم چې کافران وو| چې دې خو ستاسو په شان یو انسان دې |دې غواړي چې تاسو باندې

عَلَيْكُمْ وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَأَنزَلَ مَلَائِكَةً مَّا سَمِعْنَا

په تاسو باندې| اوکه غوښتلې الله | نو خامخا رالیږلې به ئې وې | فرښتې | نهٔ دې اوریدلې مونږه

خپل خان اوچت کړي |اوکه الله (رسولان ، رالیږل غوښتلې انو فرښتې به ئې رالیږلې وې

بِهَٰذَا فِي آبَائِنَا الْأَوَّلِينَ ﴿۲۴﴾ إِنْ هُوَ إِلَّا رَجُلٌ بِهِ

دا خبرې | په پلارانو زمونږ اولنو کښې | نهٔ دې (دا نوح) | مګر یو سړې دې | چې په دهٔ باندې|

مونږ خو دا خبره دخپلو پخوانو مشرانو نه ده اوریدلې ادې خو یو داسې سړې دې

جِنَّةٌ فَتَرَبَّصُوا بِهِ حَتَّىٰ حِينٍ ﴿۲۵﴾

پیریان دی | پس انتظار اوکړئ | دهٔ ته | دځه وخته پورې |

چې دلیونتوب اثر پرې راغلې دې اتر یو وخت پورې ورته |

قوله تعالىٰ:-وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا

**حضرت نوح عليه السلام اوکبرژن سرداران:-** نوح عليه السلام الله ﷻ دخپل قوم طرف ته بشیراونذیرمبعوث کړو.نوح عليه السلام هغوی له لاړواوداالله ﷻ پیغام نی ورااورسولودالله ﷻ عبادت کوئی دهغه نه بغیرڅوك د عبادتونو حقدار نه دی.دالله ﷻ سره د نورو عبادت کولوسره تاسو دالله ﷻ نه نه ویریږئی؟دقوم مشرانو سردارانو وئیل چه دا خوهم ستاسو په شان یوانسان دې د نبوت دعوی کولوسره تاسو نه خان لویول غواړی د سردارنی حاصلولوپه فکر کښې دې د انسان طرف ته څنګه وحی راخی؟ که د الله ﷻ اراده د نبی رالیګلووه نو چرته آسمانی فرښته به نی رالیګلې وه. داخومونږ څه چه زمونږ پلارانونیکونوهم نه دی اوریدلی چه انسان به د الله ﷻ رسول جوړشی داخوڅه لیونې سړې دې چه داسې دعوتونه کوی او هسې خان اوچت حسابوی. ښه ده چپ شنی ګورنی هلاك به شنی.

قَالَ رَبِّ

اووئیل (نوح) | اے ربه زما |

انوح عليه السلام دعا

انْصُرْنِيْ بِمَا كَذَّبُوْنِ۞ فَاَوْحَيْنَآ اِلَيْهِ
امداد اوكړې زما | په سبب دهغې | چې دروغ ني اوګڼړلم زۀ | نو وحی اوکړه مونږه | هغه ته
اوکړه اچې انې زما ربه ما سره مدد ا وکړه | څکه چې دوئ زه دروغژن اوګڼړلم| نومونږ ورته
اَنِ اصْنَعِ الْفُلْكَ بِاَعْيُنِنَا وَوَحْيِنَا فَاِذَا جَآءَ
چې جوړه کړه | کشتئ | په نګرانئ زمونږ کنبې | او زمونږ دوحی مطابق | نو کله چې | راشي
حکم ورکړوا چې ته زمونږ په نګرانئ کنبې یوه بیړئ جوړه کړه اوزمونږ په حکم ني
اَمْرُنَا وَفَارَ التَّنُّوْرُ فَاسْلُكْ فِيْهَا مِنْ كُلٍّ
حکم زمونږه | او رااوخوټکیږی تنور | نو سواره کړه | په دې کشتئ کنبې | دهر قسم ځناور نه |
جوړه کړه | نو کله چې زمونږ حکم (دعذاب) راشيا اود زمکې نه اوبه راوخوټکیږی انو
زَوْجَيْنِ اثْنَيْنِ وَاَهْلَكَ اِلَّا مَنْ سَبَقَ
جوړه جوړه | دوه دوه | او اهل وعیال خپل | مګر (مۀ سوروه) | هغه څوك | چې مخکنبې شوی دې
دهرقسم ځناورو نه دوه دوه جوړئي په کنبې کینوه| اوخپل د کور خلق هم | خو هغه څوك
عَلَيْهِ الْقَوْلُ مِنْهُمْ ۚ وَلَا تُخَاطِبْنِيْ فِي الَّذِيْنَ
په هغه باند| خبره دعذاب | دهغوئ نه | او مۀ کوه خبری زما سره | په معامله دهغه کسانو کنبې |
په کنبې مه پریږده | چې ډوبیدو حکم پرې شوې دې | اودهغه خلقو باره کنبې ماسره
ظَلَمُوْا ۚ اِنَّهُمْ مُّغْرَقُوْنَ۞ فَاِذَا اسْتَوَيْتَ
چې ظلم ني کړې دې | بیشکه چې هغوئ | ډوبیدونکي دی | نو کله چې | برابر(سور) شې تۀ |
خبره مه کوه اڅوك چې ظالمان دی اهغوئی غرقیدونکی دی انوبیا څه وخت چې ته
اَنْتَ وَمَنْ مَّعَكَ عَلَى الْفُلْكِ فَقُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ
تۀ او هغه څوك | چې ستا سره دی | په کشتئ باند| نو اووایه | ثناده | الله لره | هغه الله |
اوستاملګری په بیړئ کنبې ځائې اونیسی انو ته دا دعا اولوله چې دهرې ثناء لائق الله دې
نَجّٰنَا مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ۞ وَقُلْ رَّبِّ اَنْزِلْنِيْ
چې خلاص نې کړو مونږه | دقوم ظالم نه | او اووایه | اے ربه زما | کوز کړه ما |
چې مونږ ته ئې د ظالم قوم نه نجات را کړو |اودا دعا کوه | چې انې زما ربه ما(دکشتئ نه )
مُنْزَلًا مُّبٰرَكًا وَّاَنْتَ خَيْرُ الْمُنْزِلِيْنَ۞ اِنَّ
په یو داسې ځائې کنبې | چې برکتناك وی | او تۀ | بهتره ځائې ورکونکې نې | بیشکه |
دبرکت په ځائې باندې کوز کړه |..................اوته د ټولو نه ښه کوزونکې ئې |بیشکه

| فِيْ ذٰلِكَ | لَاٰيٰتٍ | وَّاِنْ كُنَّا | لَمُبْتَلِيْنَ۝ |
|---|---|---|---|
| په دې قیصه کښې | ډیرې نښې دی | او بیشکه چې یو مونږه | خامخا ازمیښت کونکی |

په دې (واقعه) کښې ډیرې (دعبرت) نخښې دی| اومونږ خو امتحان کونکی یوا

قوله تعالى:- فَاَوْحَيْنَآ اِلَيْهِ اَنِ اصْنَعِ الْفُلْكَ

**نوح ﷺ ته د کشتئ جوړولوحکم:**-کله چه نوح ﷺ د هغوی نه تنګ شو او نااميده شونو د الله ﷻ نه ئی دعااوکړه یاالله زه ډیر بې وسه شوم ته زما امداد اوفرمایه تکذیب کونکو باندې ما غالب کړه هم هغه وخت دالله ﷻ حکم اوشو چه کشتئی جوړه کړه اوښه مضبوطه پلنه په هغې کښې د هرقسم ځیزونو خناورو بوټو میوو وغیره جوړې اوهم په دې کښې خپل ځان اود ځان په شان کینوه خوچه په چا باندې د الله ﷻ غضب وراندیوالی کړې دې ایمان ئی نه دې راوړې لکه ستا د قوم کافران اوستاخوئ اوستا ښځه. والله اعلم. اوته چه کله آسمانی عذاب د باران اواوبوپه شکل کښې اووینې بیاماته ددې ظالمانو سفارش مه کوه. بیا په دوی باندې رحم مه کوه اومه د دوی د ایمان امیدساته بس بیاخویه داټول غرق شی اوهم په کفر باندې به د دوی خاتمه وی. د دې پوره قصه په سورت هودکښې تیره شوې ده. د دې د پاره نی مونږ دلته نه راګرخوو.

**په سورلئ د سوریدو په وخت دعا پکارده:**-کله چه ته اوستا مؤمنان ملګری په کشتئی کښې سواره شئ نو وانې چه ټول تعریفونه هم دالله ﷻ دپاره دی چاچه مونږ له دظالمانونه خلاصې راکړو.لکه چه ارشاد دې الله ﷻ ستاسودسورلئی د پاره کشتئی او ځاروی جوړکړی دی دې د پاره چه تاسو سورلی واخلئی او دخپل رب نعمت اومنئی اوسوریدو سره اووایئې چه هغه الله ﷻ پاك دې چا چه دا ځناور زمونږ تابع کړل په مونږ کښې پخپله دومره طاقت نه وویقینی مونږ د خپل رب طرف ته واپس ګرځیدونکی یو( ) نوح ﷺ هم دا اووئیل او وئی فرمائیل راشئی په دې کښې کینئی د الله ﷻ په نوم سره ددې اودریدل اوروانیدل دی. نود شروع کیدو په وخت کښې هم الله ﷻ یاد کړنی اوچه کله اودریږی نو بیا هم الله ﷻ یادکړنی.دعا ئی اوکړه یاالله ما په مبارك منزل باندې اودروې اوهم ته د ټولونه بهترکوزونکې ئی. په دې کښې یعنی دمؤمنانو په خلاصی اوکافرانوبه هلاکت کښې دانبیاءکرامو علیهم السلام دتصدیق نښې دی د الله ﷻ د قدرت علامتونه دی دهغه قدرت اود هغه علم د دې نه ښکاره کیږی. یقینًا الله ﷻ خپل رسولان رالیګلوسرد د خپل بندیګانو ازمیښت او د هغوی پوره امتحان کوی.

| ثُمَّ اَنْشَاْنَا | مِنْۢ بَعْدِهِمْ | قَرْنًا | اٰخَرِيْنَ۝ | فَاَرْسَلْنَا | فِيْهِمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| بیا پیدا کړو مونږه | روستو دهغوئ نه | یو قوم | بل | بیا اولیږو مونږه | په هغوئ کښی |

بیا ددوئ نه پس مونږ یو بل قوم راپیدا کړوا نو هغوئ ته مونږ دخپل (قوم) نه

| رَسُوْلًا | مِّنْهُمْ | اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ | مَا لَكُمْ | مِّنْ اِلٰهٍ | غَيْرُهٗ | اَفَلَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| یو رسول | دهغوئ نه | چې بندګی کوئ دالله | نشته تاسو لره | څوك معبود | بې دهغه نه | آیا نو تاسو |

یو پیغمبر اولیږلوا نو (هغه پیغمبر اووئیل) چې تاسو دالله ﷻ عبادت کوئی| دهغه نه سوا

| تَتَّقُوْنَ۝ | وَقَالَ الْمَلَاُ | مِنْ قَوْمِهٖ | الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا |
|---|---|---|---|---|
| یریږئ نه | او اووئیل سردارانو | دقوم دهغه نه | هغه کسانو | چې دمنلو نه ئې انکار اوکړوا |

ستاسو بل معبود نشته |آیا تاسونه یریږئ |اودهغه دقوم سردارانو اووئیل اکوم چې

( ) ۴۳/الزخرف:۱۲-۱۳.

وَكَذَّبُوا بِلِقَآءِ الْاٰخِرَةِ وَاَتْرَفْنٰهُمْ

او دروغ ني اوګڼړله | پيښې دآخرت | او دخوشحالئ سامان ورکړې وو مونږ هغوئ ته |

کافران وو او داخرت راتلل ئي دروغ ګڼړل او مونږ ورله په دنيا کښې

فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۙ مَا هٰذَآ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ ۙ يَأْكُلُ

په ژوند ددنيا کښې | چې نۀ دې دا (سړې) | مګر | انسان دې | په مثل ستاسو | دې خوري |

دراحت او عيش سامانونه ورکړی وو اچې دې ستاسو په شان سړې دې اکوم څيزونه

مِمَّا تَأْكُلُوْنَ مِنْهُ وَيَشْرَبُ مِمَّا تَشْرَبُوْنَ ۝ وَلَئِنْ

دهغې نه | چې خورئ تاسو | دهغې نه | او دې څکي | دهغې نه | چې څکي ئي تاسو | او که چرې

چه تاسو خورئ هغه دې هم خوري | او دهغه څه نه څکاک کوي کوم چه تاسو څکئ | او که تاسو

اَطَعْتُمْ بَشَرًا مِّثْلَكُمْ اِنَّكُمْ اِذًا لَّخٰسِرُوْنَ ۝

خبره اومنله تاسو | ديو بشر | چې ستاسو پشان دې | نو بيشکه تاسو ابيا | خامخا نقصان موندونکي يئ

دڅان غوندې يو سړی تابعداری اوکړه | ...........نو بيا خو تاسو به په بنکاره تاوان کښې ئي

اَيَعِدُكُمْ اَنَّكُمْ اِذَا مِتُّمْ وَكُنْتُمْ تُرَابًا

آيا دې وعده کوی ستاسو سره | چې بيشکه تاسو | کله | مړۀ شئ | او شئ تاسو | خاورې

دا سړې خو تاسو ته وائی اچې هر کله تاسو مړه شئ او بناورې هډوکی شئ

وَّعِظَامًا اَنَّكُمْ مُّخْرَجُوْنَ ۝ هَيْهَاتَ هَيْهَاتَ

او هډوکی | نو بيشکه تاسو به | راايستلې کيږئ (دقبرونو نه) | ډير لرې دې | ډير لرې دې

نو بيا به د نوی سره راويستلې شئ (ژوندی کيږئ) (دعقل نه) ډيره لرې ده | ډيره لرې ده

لِمَا تُوْعَدُوْنَ ۝ اِنْ هِيَ اِلَّا حَيَاتُنَا الدُّنْيَا

هغه څيز | چې ستاسو سره ني وعده کولې شي | نۀ دې دا ژوند | مګر | ژوند زمونږ ددنيا دې

داوعده چې تاسو سره کولې شی از مونږ دا ژوند خو صرف هم ددنيا ژوندې دې

نَمُوْتُ وَنَحْيَا وَمَا نَحْنُ بِمَبْعُوْثِيْنَ ۝ اِنْ هُوَ

چې مرو مونږه | او ژوندی کيږو مونږه | اونۀ يو مونږه | راپاسيدونکی دقبرونونه | نۀ دې دا سړې

چې خوک مری او څوک پيدا کيږي او مونږ به دمرګ نه پس بيا هيچرې نه ژوندی کيږو | داخو

اِلَّا رَجُلُ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا وَّمَا نَحْنُ لَهٗ

مګر | يو سړې دې | چې تړلي دی | په الله باندې | دروغ | اونۀ يو مونږه | دۀ لره

يو داسې سړې دې | چې په الله ﷻ باندې ئي دروغ جوړ کړی دی | او مونږ هيڅ کله ددۀ دخبرې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بِمُؤْمِنِيْنَ۞ | قَالَ | رَبِّ | انْصُرْنِيْ | بِمَا | كَذَّبُوْنِ۞ |
| منونكى | اووئيل رسول | اے ربه زما | امداد اوكړې زما | په سبب دهغې | چې دروغ ئې اوګڼړلم زهٔ |

منونكى نه يو |نو (پيغمبر) دعا اوكړه چې ائې زماربه ته زما مدد اوكړه|ځكه چې دوئ زه دروغژن كړې يم

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | عَمَّا قَلِيْلٍ | لَّيُصْبِحُنَّ | نٰدِمِيْنَ۞ | فَاَخَذَتْهُمُ | الصَّيْحَةُ |
| اووئيل الله | چې دلږې مودې نه پس به | شي دوئ | بنپيمانه | نو اونيول هغوئ | يوې چغې |

(الله ﷻ ورته)اووئيل چې داخلق بهٔ ډير زر (پخپلو خبرو) پښيمانه شي | نو بيا يو سخت آواز

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِالْحَقِّ | فَجَعَلْنٰهُمْ | غُثَآءً | فَبُعْدًا | لِّلْقَوْمِ |
| په حقه سره | نو جوړ كړل مونږه دهغوئ نه | خسنړې دسيلاب | پس لرې والې دوی | دپاره دقوم |

په هغوئ باندې راغلو| نو مونږ دوئ ريزه ريزه كړل| نو د ظالمانو دپاره

| |
|---|
| الظّٰلِمِيْنَ۞ |
| ظالم |

هلاكت دي

قوله تعالى:- ثُمَّ اَنْشَاْنَا مِنْۢ بَعْدِهِمْ

**دنوح ﷺ دَ قوم نه پس عاديان اوثموديان:-** الله ﷻ بيان فرمائى چه دنوح ﷺ نه پس هم ډير امتونه راغله لكه عاديان هغوى سره متصل وو ياثموديان چه په هغوى باندې د چغې عذاب راغلې وو لكه چه په آيت كښې دى هغوى له هم دالله ﷻ رسول راغلې وو دالله ﷻ دعبادت اودهغه دتوحيد تعليم ئى وركړو خوهغوى تكذيب اوكړو اومخالفت ئى اوكړو. دتابعدارئى نه ئى انكار اوكړوصرف په دې وجه چه دا انسانان دى. قيامت ئى هم اونه منلو اودبدنى حشر نه هم منكر شو او وئى وئيل چه داخوبالكل د قياس نه هم لرې دى. بعث نشر حشر قيامت هيڅ خيز نشته. دې سړې دا ټولې خبرې د ځان نه جوړې كړې دى مونږ د داسې فضول خبرو منونكى نه يو. نبى ﷺ دعا اوكړه اوپه هغوى باندې امداد اوغوښتلو هم هغه وخت جواب ملاوشو څوك چه ستاموافقت نه كوى په هغوى به هم اوس غذاب راشى اودوى به په چغوچغوژاړى آخر په يوه زبردسته چغه او آواز سره ټول ختم كړې شو اوهم د دې هغوى حقدار هم وو. ډيرې تيزې سيلئى او د هوا په پوره طاقت سره د فرښتو زړه ويستونكى او خطرناك آوازهغوى ذره ذره كړه او تباه برباد ئى كړل. بوس ترې والوتل او صرف دكورو كنډرې پاتې شوې دخلقو دعبرت دپاره پاتې شواود ګندګريل په شان بې كار څيزونه شول. دداسې ظالمانو پاره لريوالې دې په هغوى باندې رب ظلم نه دې كړې بلكه هم د هغوى كړه وو كوم چه د هغې مخې ته راغله نواې خلقو تاسو له هم د رسول ﷺ د مخالفت نه زيات ويريدل پكار دى.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | اَنْشَاْنَا | مِنْۢ بَعْدِهِمْ | قُرُوْنًا | اٰخَرِيْنَ۞ |
| بيا | پيدا كړل مونږه | روستو دهغوئ نه | قومونه | نور |

........ بيا مونږ دهغوئ نه پس نور قومونه پيدا كړل

مَا تَسْبِقُ مِنْ أُمَّةٍ أَجَلَهَا وَمَا يَسْتَأْخِرُونَ ۝ ثُمَّ

نشي مخكښې كيدې | يو قوم | دنيتې خپلې نه | اونه روستو كيدې شي | بيا

هيڅ يو امت نه خو د خپلې نيتې نه وړاندې كيدې شي | اونه روستو پاتې كيدې شي | بيا

أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا تَتْرَا ۚ كُلَّمَا جَاءَ أُمَّةً رَّسُولُهَا

رااوليږل مونږه | رسولان خپل | پرلپسې | هر كله چې | راغې | يو امت ته | رسول دهغوئ

وروپسې مونږ خپل پيغمبران پرله پسې رااوليږل | څه وخت چې به يو امت ته خپل رسول

كَذَّبُوهُ فَأَتْبَعْنَا بَعْضَهُمْ بَعْضًا

نو هغوئ دروغژن اوګڼړو هغه | پس رااوستل مونږه | خيني دهغوئ | په خيني نورو پسې

ورغلو | اوهغوئ به دروغژن اوګڼړلو | نو مونږ به هم (پيغمبران) يو په بل پسې اوليږل

وَجَعَلْنَاهُمْ أَحَادِيثَ ۚ فَبُعْدًا لِّقَوْمٍ لَّا يُؤْمِنُونَ ۝

او جوړ كړل مونږه هغوئ | قيصې | پس لرې والې دې | دپاره دهغه قوم | چې ايمان نه راوړي

اودهغې خلقو نه مو قصې جوړې كړې | نود هغه خلقو دپاره هلاكت دې چه ايمان نه راوړي

ثُمَّ أَرْسَلْنَا مُوسَىٰ وَأَخَاهُ هَارُونَ ۙ بِآيَاتِنَا وَسُلْطَانٍ

بيا | اوليږو مونږه | موسى عليه السلام | او رور دهغه | هارون عليه السلام | دنښو زمونږ سره | او ددليل

بيا مونږ موسى ﷺ اودهغه رور هارون ﷺ رااوليږل | د خپلو حكمونو اوښكاره

مُّبِينٍ ۝ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ وَمَلَئِهِ فَاسْتَكْبَرُوا وَكَانُوا

ښكاره سره | فرعون ته | او دسلطنت واكدارانو دهغه ته | نو تكبر اوكړو هغوئ | او وو هغوئ

دليلونو سره | فرعون ته اودهغه سردارانو ته | خو هغوئ تكبر اوكړو | اوهغه

قَوْمًا عَالِينَ ۝ فَقَالُوا أَنُؤْمِنُ لِبَشَرَيْنِ مِثْلِنَا

قوم | خان غټ ګڼړونكې | نواووئيل هغوئ | ايا ايمان راوړومونږ | په دوؤ سړو | چې زمونږ پشان دي

ډير سركشه خلق وو | نوهغوئ اووئيل چې ايا مونږ دې (هيله بيله) دخان غوندې په دوه كسانو

وَقَوْمُهُمَا لَنَا عَابِدُونَ ۝ فَكَذَّبُوهُمَا فَكَانُوا

او حال دا چې قوم ددواړو | زمونږه | غلامان دي | نو دروغ اوګڼړل هغوئ هغه دواړه | نو شو هغوئ

باندې ايمان راوړو | حال دادې چې ددوئ دقوم خلق زمونږ غلامان دي | نوهغوئ دواړه (پيغمبران)

مِنَ الْمُهْلَكِينَ ۝ وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَى الْكِتَابَ لَعَلَّهُمْ

دهلاك كړې شوؤ نه | او بيشكه وركړو مونږه | موسى عليه السلام | ته كتاب | دپاره ددې چې هغوئ

دروغژن كړل | نو هغوئ هلاك كړې شول | او مونږ موسى ﷺ ته (تورات نومې) كتاب وركړو

يَهْتَدُونَ ۝

نيغه لار بيا مومي |

چې خلق ترې نه سمه لاربيا مومي |

**قوله تعالى:-** ثُمَّ أَنْشَأْنَا مِنْ بَعْدِهِمْ قُرُونًا آخَرِينَ ۝

**د مختلفو امتونو ذکر:-** ددوی نه پس هم ډیرامتونه او مخلوق راغلو کوم چه مونږ پیدا کړې وو دهغوی د پیدا کولونه اول چه الله ﷻ دهغوی اجل مقرر کړې وو هغه الله ﷻ پوره کړونه وړاندیوالي اوشوا ونه روستووالي بیامونږ یو بل پسې برابر رسولان راولیګل (۱) هریوامت ته پیغمبر راغلو او هغه خپل امت ته د رب پیغام اورسولو چه د یو الله ﷻ عبادت کوئی د هغه نه بغیرد بل چا عبادت مه کوئی بعضې په نیغه لار راغله اوبه بعضو باندې د کفر کلمه راست راغله د تولوامتونو اکثریت د انبیاء کرامو علیهم السلام منکر وولکه سورت یس کښې چه فرمائی ﴿ يَحَسْرَةً عَلَى الْعِبَادِ ۚ مَا يَأْتِيهِمْ مِنْ رَسُولٍ إِلَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِءُونَ ۝ ﴾ (۲) افسوس دې په بنیادمانو باندې هغوی له چه کوم رسول راغلو هغه پسې توقې مسخرې اوکړې مونږ یو بل پسې تول غرق اوفنا کړل ﴿ وَكَمْ أَهْلَكْنَا مِنَ الْقُرُونِ مِنْ بَعْدِ نُوحٍ ۗ وَكَفَىٰ بِرَبِّكَ بِذُنُوبِ عِبَادِهِ خَبِيرًا بَصِيرًا ﴾ (۳) د نوح علیه السلام نه پس هم مونږ ډیر کلی تباه کړل هغوی مونږ زړې قصې جوړې کړې. دهغوی قصې باقی پاتې شوې او هغوی تباه او برباد شو ذره ذره کړې شود بې ایمانود پاره د رحمت نه لرېوالې دې.

**موسی علیه السلام هارون علیه السلام اوفرعون:-** موسی علیه السلام اوهارون علیه السلام الله ﷻ فرعون او د هغه قوم فرعونیانوته د ښکاره دلیلونواو معجزوسره اولیګل خو هغوی هم د خپل خان نه دوړاندې کافرانو په شان دخپلو پیغمبرانو تکذیف اومخالفت اوکړواود وړاندې کافرانو په شان نې هم داوئیل چه مونږ دخپل خان په شان دانسانانود نبوت قائل نه یو دهغوی زړونه هم بالکل هم دهغوی په شان شو نوآخر الله ﷻ هم په یوه ورځ ټول په دریاب کښې غرق کړل.دې نه پس موسی علیه السلام ته د خلقو د هدایت د پاره تورات ملاوشو بیا د مؤمنانو په لاس باندې کافران هلاك کړې شودجهاد احکام نازل شو دغه شان په عام عذاب سره یو امت فرعون اود هغه د قوم قبط نه پس هلاك نه کړې شو. یوبل آیت کښې ارشاددې د مخکینو خلقو د هلاکت نه پس مونږموسی علیه السلام ته کتاب ورکړوچه د خلقو د پاره بصیرت هدایت او رحمت وو دې د پاره چه هغوی نصیحت حاصل کړی.(۴)

| وَآوَيْنَاهُمَا | آيَةً | وَأُمَّهُ | ابْنَ مَرْيَمَ | وَجَعَلْنَا |
|---|---|---|---|---|
| او پناه ورکړه مونږه دواړو له | او جوړ کړه مونږه | خوې دمریم | او مور دهغه | یوه نښه |
| او مونږ د مریم خوئی اودهغه مور یوه غټه اوڅرګنده نخښه اوګرځوله | | | | |

| كُلُوا | يَا أَيُّهَا الرُّسُلُ | وَمَعِينٍ ۝ | ذَاتِ قَرَارٍ | إِلَىٰ رَبْوَةٍ |
|---|---|---|---|---|
| خورئ | اے رسولانو | او دروانو اوبو خانې وو | چې داطمینان خانې وو | یو لوړ خائې ته |
| اوهغوئ ته مو په یوه اوچته زمکه پناه ورکړې وه چې داستوګنې قابله اوجاری اوبووالاوه اې زما پیغمبرانو! | | | | |

| عَلِيمٌ ۝ | تَعْمَلُونَ | بِمَا | إِنِّي | وَاعْمَلُوا صَالِحًا | مِنَ الطَّيِّبَاتِ |
|---|---|---|---|---|---|
| بنه عالم یم | چې کوئ ئې تاسو | په هغې څه | بیشکه زه | او عمل کوئ نیک | دپاکو څیزونونه |
| تاسو ټول پاکیزه څیزونه خورئی او تل دنیکئ کارونه کوئی ازه ستاسو په کارونو ښه خبر یم | | | | | |

---

(۱) الطبری:۱۹/۳۴.
(۲) ۳٦/یس:۳۰.
(۳) ۱۷/الاسراء:۱۷.
(۴) ۲۸/القصص:۴۳.

وَإِنَّ هَٰذِهِ أُمَّتُكُمْ أُمَّةً وَاحِدَةً وَأَنَا رَبُّكُمْ فَاتَّقُونِ ﴿٥٢﴾

او بیشکه | چې دا امت ستاسو | امت یو دی | او زه رب ستاسو یم | نو او ویرېږئ زما نه |

او بیشکه ستاسو دا امت یو امت دی او زه ستاسو رب یم نو تاسو زما (د مخالفت) نه او ویرېږئ

فَتَقَطَّعُوا أَمْرَهُمْ بَيْنَهُمْ زُبُرًا ۖ كُلُّ حِزْبٍ بِمَا

پس پریکړو خلقو | دین خپل | په منځ خپل کښې | ټوټې ټوټې | هره ډله | په هغې سره |

بیا خلقو د خپل دین په معامله کښې اختلاف اوکړو | هره ډله هم په

لَدَيْهِمْ فَرِحُونَ ﴿٥٣﴾ فَذَرْهُمْ فِي غَمْرَتِهِمْ حَتَّىٰ حِينٍ ﴿٥٤﴾

چې د هغوئ سره دي | خوشحاله دی | نو پرېږده دوئ | په غفلت د دوئ کښې | د یو خاص وخته پورې

خپله خبره باندې خوشحالي کونکي ده | نو ته دوئ ترېو وخته پورې په خپل غفلت کښې پرېږده

أَيَحْسَبُونَ أَنَّمَا نُمِدُّهُمْ بِهِ

ایا دوئ دا خیال کوی | چې بیشکه هغه څیز | چې مونږه امداد کوؤ د دوئ | په هغې سره

ایا دوئ د ا گمان کوی چې مونږ دوئ ته کوم ځامن او مالونه ورکړی دی

مِنْ مَالٍ وَبَنِينَ ﴿٥٥﴾ نُسَارِعُ لَهُمْ فِي الْخَيْرَاتِ ۚ

د مال نه | او د ځامنو نه | دا ګنی مونږ کوشش کوؤ | د پاره د دوئ | په خیر رسولو کښې

نو دا ..........ورته مونږ په فائده ورکولو کښې تلوار کوو؟!

بَلْ لَا يَشْعُرُونَ ﴿٥٦﴾

بلکه نه پوهیږی دوئ |

داخبره نه ده بلکه دوئ نه پوهیږی |

**قوله تعالى:- وَجَعَلْنَا ابْنَ مَرْيَمَ**

**د عیسی ﷺ پیدائش د الله ﷻ د قدرت کامله ښرګندونه:-** عیسی ﷺ او بی بی مریم علیها السلام الله ﷻ د خپل قدرت د ښرګندونې یوه زبردسته نښه جوړه کړه. آدم ﷺ ئې د سړی او ښځې نه بغیر پیداکړو بی بی حواء ئې صرف د سړی نه بغیر د ښځې پیداکړه او عیسی ﷺ ئې صرف د ښځې نه بغیر د سړی نه پیداکړو. باقی ټول انسانان ئې د سړی او ښځې نه پیداکړی دی. ﴿ربوة﴾ وائی اوچتې زمکې ته چه ښه اود پیداوار قابله وی([1]) هغه ځائ د ونو اوبو والا تازه اود شینکی نه ډك ووکوم ځائ چه الله ﷻ خپل داغلام اونبی اود هغه صدیقه مور بی بی چه دالله ﷻ بنده او وینځه وه ځائ ورکړو چه جاری اوبه صفا ستراهواره زمکه وه([2]) وائی چه دا ټکړه د مصروه یاد دمشق یاد فلسطین ﴿ربوة﴾ شګلنې زمکې ته وائی. په یو ډیر غریب حدیث کښې دی چه حضور ﷺ یو صحابی ﷺ ته فرمائیلې وو چه ستا وفات به په ﴿ربوة﴾ کښې کیږی نو هغه په شګلنه زمکه کښې وفات شو. دې ټولو اقوالو کښې ډیر نیزدې او قریب قول هغه دې چه دې نه مراد نهر دې لکه چه په بل آیت کښې داسې بیان فرمائیلې شوې دې ﴿قَدْ جَعَلَ

---

[1] الدر منثور: ۲۰۷/۷.

[2] الطبری: ۳۹/۱۹.

﴿ربك تحتك سريا﴾ [1] ستا رب ستاد قدمونو لاندې يو جاري نهر روان كړې دې. نودا مقام دبيت المقدس مقام دې نولكه چه د دې آيت تفسير دا آيت دې اود قرآن تفسيراول په قرآن سره بياد حديث نه او بياد آثار نه كول پكاردي.

**دټولونبيانو عليهم السلام خوراک حلال او د خپل لاس ګټه وه:** الله ﷻ خپلو ټولوانبياءكرامو عليهم السلام ته حكم فرمائي چه هغوی دې حلاله نوړني خوری اونيك اعمال دې كوی نوثابته شوه چه حلاله نوړني د نيك عمل امدادی ده نو انبياء كرامو عليهم السلام ټولې ښيګړې راجمع كړې قول فعل دلالت اونصيحت ټول هغوی راغونډكړل الله ﷻ دې هغوی ټولونه د ټولونيكانو بنديګانو طرف نه نيكې بدلې وركړی. دلته نې څه رنګ اومزه بيان نه كړه بلكه دا نې اوفرمائيل چه حلال څيزونه خورني. حضرت عيسى ﷺ به د خپلې موردوړنی دكاركولو د اجرت اومزدوړنی نه خوراك كولو. په صحيح حديث كښې دی هيڅ يونبی داسې نشته چه هغه به چيلنی نه وی څرولې. خلقو تپوس اوكړو چه تاسو سره؟ حضور ﷺ اوفرمائيل اوما هم په يوڅوقيراطوباندې داهل مكه چيلنی څرولې[2] يوبل حديث كښې دی چه حضرت داؤد ﷺ به د خپل لاس د محنت ګټه خوړله.[3] بخاری اومسلم شريف كښې دی چه الله ﷻ ته د ټولونه ګرانه روژه د حضرت داؤد ﷺ روژه وه اود ټولو نه زيات خوښ قيام د حضرت داؤد ﷺ قيام وونيمه شپه به اوده كيدو اودريمه حصه به نې د تهجد مونځ كولو او شپږمه حصه به اوده كيدو يوه ورځ به نې روژه ساتله او بوه ورځ به نې نه ساتله.ميدان جنګ كښې چرته هم شاكړې نه وه[4] ام عبدالله بنت شداد k فرمائي ماد حضور ﷺ په خدمت كښې دپنيو يو: پياله د مابنام په وخت كښې اوليګله دې د پاره چه حضور ﷺ په دې باندې خپل روژې ماتې اوكړی د ورځې آخری حصه وه اود نمر تيزوالې وونوحضور ﷺ قاصد واپس كړوچه كه ستاد چيلنی وو نو خيريوه بله خبره وه هغه اوونيل يارسول الله ﷺ ما دا پنی په خپل مال سره اخستې دی بيا حضور ﷺ اوڅكل نو په دويمه ورځ هغه مور بی بی په خدمت كښې حاضره شوه عرض نې اوكړويارسول الله ﷺ په دې ګرمنی كښې ما پنی راوليګل او ډير وخت پس مې راليګلې ووتاسو زما قاصدواپس كړو.حضور ﷺ اوفرمائيل ماته هم دافرمائيلې شوې دی انبياء كرام صرف حلال خوراك كوی اونيك عمل كوی[5] يوبل حديث كښې دی خلقو الله ﷻ پاك دې اوپاك څيز قبلوی.

**د حلال خوراک حكم ټولو مؤمنانو ته هم دې:** الله ﷻ مؤمنانوته هم داحكم وركړې دې كوم چه نې رسولانو ته وركړې دې.اې رسولانوپاك څيزونه خورنی اونيك عمل كوئی زه ستاسود عملونو عالم يم. هم داحكم نې ايمانداروته هم وركړو چه اې د ايمان خاوندانو كوم څيزونه چه حلال مونږ تاسو ته دركړی دی هم هغه خورنی بيا حضور ﷺ ديوداسې سړی ذكر اوكړوچه يواوږدسفرنی كړې وی دخيرنو وينښتو والاوی ددوړو مخ نې وی ولې خوراك څښاك اوغوستن نې د حرامو وی اوهغه خپل لاس د آسمان طرف ته اوچت كړی وانی چه اې ربه اې ربه خونامكن دی چه د هغه دعاقبوله كړې شی. [6] امام ترمذی دا حديث حسن غريب ښانی.

---

[1] ۱۹/مريم:۲٤.

[2] صحيح بخاری كتاب الاجارة باب رعی الغنم علی قراريط:۲۲٦۲، ابن ماجة:۲۱٤۹.

[3] صحيح بخاری كتاب البيوع باب كسب الرجل وعمله بيده:۲۰۷۲-۲۰۷۳، ابن حبان:٦۲۲۷.

[4] صحيح بخاری كتاب احاديث الانبياء باب احب الصلاة الی الله صلاة داؤد.........:۳٤۲۰

[5] طبرانی:۲٤/۱۷٤-۱۷٥، مجمع الزوائد:۱۰/۲۹۱،.

[6] صحيح مسلم كتاب الزكاة باب قبول الصدقة من الكسب الطيب وتربيتها:۱۰۱٥، ترمذی:۲۹۸۹، احمد:۲/۳۲۸.

دټولوانبیاکرامو علیهم السلام دعوت هم یووو:-بیافرمائي اې پیغمبرانو ستاسو دا دین هم یودین دي هم یو ملت دي یعنی د الله ﷻ وحده لاشریك له د عبادت طرف ته رابلل دی. د دې د پاره د دې نه پس نی اوفرمائیل زه ستاسو رب یم مانه ویریږئی په سورت انبیاء کښې د دې تفسیراوتشریح شوې ده. ﴿امة واحدة﴾ باندې نصب دحال کیدلوپه وجه سره دې دکومو امتونو طرف ته چه انبیاء لیګلې شوی وو هغوی د الله ﷻ دین ټکړې کړو اوپه کومه ګمراهئی کښې کلك شو په هغې باندې فخر کولو څکه چه په خپل خیال کښې هم داهدایت ګنړلو نود رټنې په توګه نی اوفرمائیل دوی هم په خپله دهوکه اوخونیدوکښې پریږده تردې چه د دوی د تباهئی وخت راشی خوراك څښاك ته نی پریږده او پریږده چه مست شی او بې خوده شی اوس به ورته معلومه شی چه مغروره ګمان کوی دا مال اولاد چه مونږ دوی ته ورکړې دې دا دهغوی دنیکئی اوښیګړې په توګه هغوی سره ښه سلوك کوو؟ هیڅ کله نه دا خو هغوی په دهوکه کښې دی، دوی په دې سره دا ګنړی چه څنګه مونږ دلته خوشحاله یوهلته به هم بغیرسزا پاتې شو دا بالکل غلط دی کوم څه چه مونږ دوی ته په دنیاکښې ورکړی دی هغه خود لږ شان وخت مهلت دې خودوی بې شعوره دی اصل حقیقت ته نه رسی لکه چه ارشاد دې ﴿فَلَا تُعْجِبْكَ أَمْوَالُهُمْ وَلَآ أَوْلَادُهُمْ ۚ إِنَّمَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيُعَذِّبَهُم بِهَا فِي الْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا وَتَزْهَقَ أَنفُسُهُمْ وَهُمْ كَٰفِرُونَ﴾[1] تادې دهغوی مال اولادپه دهوکه کښې نه اچوی دالله ﷻ اراده خودا ده چه پدې سره دوی په دنیاکښې عذاب کړی.په یویل آیت کښې دی چه دوی له داوخت څکه ورکړې شوې دې چه دوی په خپلوګناهونوکښې نورهم زیات شی[2] یویل ځائ ارشاد دې ما او د دې خبرې تکذیب کونکی پریږده مونږ به دوی داسې وار په وار رانیسوچه دوی ته به پته هم نه لګی.[3] الخ په نورو آیاتونوکښې ارشاد دې ﴿ذَرْنِي وَمَنْ خَلَقْتُ وَحِيدًا﴾[4] الخ یعنی ما اودوی پریږده کوم چه مایوازې پیداکړی دی ډیر مال مې ورکړې اوتابعدار ځامن مې ورکړی دی اودهرقسم سامان مې په دې وجه ورکړې دې چه بیاد ده طمعه ده چه زه به ده ته نور هم زیات ورکړم هیڅ کله هم نه هغه به زمونږ دخبرومخالف وو.یویل آیت کښې دی ﴿وَمَآ أَمْوَالُكُمْ وَلَآ أَوْلَادُكُم بِالَّتِي تُقَرِّبُكُمْ عِندَنَا زُلْفَىٰٓ إِلَّا مَنْ ءَامَنَ وَعَمِلَ صَٰلِحًا فَأُولَٰٓئِكَ لَهُمْ جَزَآءُ الضِّعْفِ بِمَا عَمِلُوا۟ وَهُمْ فِي الْغُرُفَٰتِ ءَامِنُونَ﴾[5]ستاسو مالونو اواولاد تاسو ماسره ملاوولې نه شی ماسره نیزدې خوهغوی دی چه ایماندارددی اونیك عمل کوی.الخ. ددې مضمون نورهم ډیر آیاتونه دی. قتاده فرمائی هم دا د الله ﷻ شکردې تاسو انسانان په مال اولاد سره مه ګورئی د ایمان تله اوپیژندګلوخوایمان اونیك عمل دې.حضورﷺ فرمائی الله ﷻ ستاسواخلاق هم په تاسوکښې داسې تقسیم کړی دی څنګه چه نی روزی تقسیم کړې ده.الله ﷻ خودنیاهغه له هم ورکوی چاسره چه محبت ساتی اوهغوی له نی هم ورکوی چاسره چه محبت نه ساتی اودین صرف هغوی ته ورکوی چاسره چه پوره محبت ساتی نو پوهه شئی چه چاله الله ﷻ دین ورکړو نو الله ﷻ هغه سره محبت ساتی.د هغه ذات قسم دچاپه لاس کښې چه دمحمد ﷺ ځان دې بنده ترهغه وخته پورې مسلمان کیدې نه شی تر کومې چه دهغه زړه او ژبه مسلمانه شوې نه وی.او بنده مؤمن کیدې نه شی ترکومې چه د هغه ګاونډی دهغه د تکلیف نه محفوظ او بې فکر نه وی.خلقو تپوس اوکړوچه دتکلیفونونه څه مراد دې ونی فرمائیل دهوکه او ظلم وغیره.واورئی کوم سړې چه حرام مال راوړی د هغې په خرچ کولوکښې برکت نه

---

[1] ۹/التوبة: ۵۵.
[2] ۳/آل عمران:۱۷۸.
[3] ٦۸/القلم:٤٤.
[4] ۷٤/المدثر:۱۱.
[5] ۳٤/سبا:۳۷

وی دهغه صدقه قبوله نه ده. کوم چه پریږدی اوخی هغه د ده د دوزخ توښه ده. الله ﷻ بدی په بدنی سره نه ختموی بدی په نیکنی سره ختموی خبیث خبیث نه ختموی. (۱)

| |
|---|
| اِنَّ الَّذِيْنَ هُمْ مِّنْ خَشْيَةِ رَبِّهِمْ |
| بیشکه هغه کسان \| چې هغوئ \| دیري \| درب خپل نه \| |
| بیشکه کوم کسان چې دخپل رب نه دیري د وجې |
| مُّشْفِقُوْنَ ۝ وَالَّذِيْنَ هُمْ بِاٰيٰتِ رَبِّهِمْ يُؤْمِنُوْنَ ۝ |
| یریدونکی دی \| او هغه کسان \| چې هغوئ په ایتونو \| درب خپل باندي \| ایمان راوړی \| |
| یریږي \|.................او کوم کسان چې دخپل رب په نښو باندې یقین کوی |
| وَالَّذِيْنَ هُمْ بِرَبِّهِمْ لَا يُشْرِكُوْنَ ۝ وَالَّذِيْنَ يُؤْتُوْنَ |
| او هغه کسان \|چې هغوئ \|درب خپل سره \| (هیڅوک) نه شریکوی \|اوهغه کسان \| چې ورکوی هغوئ |
| اوکوم کسان چې د خپل رب سره بل هیڅوک نه شریکوی\| اوکوم کسان چې ورکړه کوی |
| مَآ اٰتَوْا وَّقُلُوْبُهُمْ وَجِلَةٌ اَنَّهُمْ اِلٰى رَبِّهِمْ |
| هغه څه\| چې ورکوی \| او زړونه دهغوئ \| یریدونکی وی \| چې بیشکه هغوئ \| رب خپل ته |
| خومره چې ورکوی اوزړونه ئې د دې نه ویریږي چې دوئ به یوه ورځ خپل رب ته واپس |
| رٰجِعُوْنَ ۝ اُولٰٓئِكَ يُسٰرِعُوْنَ فِي الْخَيْرٰتِ وَهُمْ لَهَا |
| واپس تلونکی دی \| دا کسان چې دی \| دوئ منډې وهی \| په نیکو کنبې \|او دوئ \| هغې ته |
| کیږي \| همدغه خلق دې چې د نیکو په کولو کنبې تلوار کوی \| اوهم دا خلق دی چې |
| سٰبِقُوْنَ ۝ |
| خان مخکنبې رسونکی دی \| |
| په دې کنبې وړاندې کیدونکی دی \| |

قوله تعالى:- اِنَّ الَّذِيْنَ هُمْ مِّنْ خَشْيَةِ رَبِّهِمْ مُّشْفِقُوْنَ ۝

**مومن چه نیک عمل کوی نوهم ویریږی**:-فرمانی چه داحسان اوایمان سره سره نیك اعمال کول اود الله ﷻ د ویرې نه رچیدل داد هغوی صفت دې. حضرت حسن بصری فرمانی مؤمن د نیکنی اود الله ﷻدویرې مجموعه وی اومنافق دبدنی سره باتوراوبې ویرې وی(۲)دادالله ﷻ دپیدانشی آیاتونو او نښو باورکوی لکه چه مریم بی بی صفت بیان شوې دې چه هغه دخپل رب دکلماتو اودهغه دکتابونو یقین لرلو الله ﷻ قدرت قضا او شرعې هغې ته پوره یقین وو.دالله ﷻ هریوکار هغه خوښ ګنړی دالله ﷻ منع کړې شوې هریوکارهغه ناخوښ ګنړی.هریوخبرهغه رښتونې منی هغه موحدوی دشرك نه ویزاره وی الله ﷻ یواو بی نیازه منی هغه بې اولاد اوبغیر ښځې والا ګنړی بې نظیر اوبې مثال ئې ګنړی. هغه سره څوك شریك کوی نه.د الله ﷻ په نوم باندې خیراتونه کوی خودې سره ویریږی چه داسې نه چه قبول نه شی.عائشه صدیقه دحضورﷺ نه تپوس اوکړو آیا داهغه خلق دی چانه چه زناکاری اوشراب خوری کیږی نود هغوی په زړه کنبې د الله ﷻ ویره وی؟حضورﷺ اوفرمائیل چه اې د صدیق لور دا هغه خلق

---

۱) احمد: ۳۸۷/۱.

۲) الطبری: ۴۵/۱۹.

نه دي بلکه داهغه دي چه مونځونه کوي روژې ساتي صدقې کوي خود نه قبليدونه ويريږي. هم دا دي چه په نيکوکښې وړاندې کيدونکي دي.[1] د دې آيت دويم قراءت ﴿يَاتون ماأتوا﴾ هم دې يعنی کوي چه څه کوي خو زړه د هغوی ويريږي. مسنداحمدکښې دي چه حضرت عائشه صديقه k له ابوعاصم ورغلو هغې مرحبا اوونيل اوونی فرمانيل چه برابرولې نه راځې جواب نی ورکړو چه هسې نه تاسو ته تکليف وی.موږ نن زه د يوآيت د الفاظو تحقيق د پاره حاضرشوې يم دا ﴿يؤتون ماآتوا﴾ دې يا ﴿يأتون ماأتوا﴾ دې؟ هغې اوفرمانيل ستاد پاره کوم يوکيدل خوښ دی؟ما ونيل که داآخری الفاظ وی نو لکه چه مادا ټوله دنيااومونډله بلکه د دې نه به هم ماته زياته خوشحالی وی هغې اوفرمانيل بيا ته خوشحاله شه والله ماهم داسې دا الفاظ د رسول الله ﷺ نه اوريدلی دی[2] د دې يوراوی اسماعيل بن مسلم مکی ضعيف دې په اووه وارو مشهوروقراءتونوکښې او د جمهورو په قراءت کښې هم دغه دې کوم چه په قرآن کښې موجود دې اود معنی په لحاظ سره هم دا ډير ښکاره معلوميږی ځکه چه دا سابق ګرځولې شوی دي اوکه دويم قراءت واخلې نودا سابق نه بلکه درميانه اوسپک کيږی. والله اعلم.

| |
|---|
| وَلَا نُكَلِّفُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا |
| اونهٔ ورکوو تکليف مونږه \| يو نفس ته \| مګر \| مطابق دطاقت دهغه |
| اومونږ هيچا ته د وس نه زيات تکليف نه ورکوو |
| وَلَدَيْنَا كِتٰبٌ يَّنْطِقُ بِالْحَقِّ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ |
| او زمونږ سره ايو کتاب دې \| چې بيانوی \| حق \| اوداخلق چی دی\|هيڅ ظلم به نهٔ کيږی په دوی باندې |
| اومونږ سره يو کتاب دې چې هميشه حق خبره کوی\| اوپه خلقو بهٔ ديوې ذرې هومره ظلم هم نه کيږی |
| بَلْ قُلُوْبُهُمْ فِيْ غَمْرَةٍ مِّنْ هٰذَا وَلَهُمْ أَعْمَالٌ |
| بلکه زړونه ددوی \| په غفلت کښی دی \| ددې (کتاب عملنامې) نه \| او دوی لره \| عملونه دی |
| بلکه ددې کافرانو زړونه د دين نه غافل دی \| ............او ددی نه علاوه څه |
| مِّنْ دُوْنِ ذٰلِكَ هُمْ لَهَا عٰمِلُوْنَ |
| (چې هغه هم) مختلف دی \| ددغه طريقې نه \| چې دوی \| هغه عملونو لره \| کونکی دی |
| نور (خراب) کارونه هم دی چې داخلق ئې کوی اتردې چې هرکله |
| حَتّٰى إِذَا أَخَذْنَا مُتْرَفِيْهِمْ بِالْعَذَابِ إِذَا |
| تر هغې پورې \| کله چې \| رااونيول مونږه \| مالداره عياشان خلق ددوی \| په عذاب سره\| نو بيا به |
| مونږ ددوی مالداره خلق په عذاب کښې راونيسو نو دوی دغه |
| هُمْ يَجْئَرُوْنَ لَا تَجْئَرُوا الْيَوْمَ إِنَّكُمْ مِّنَّا |
| هغوی\| رمبارې وهلی \| شور زو ږ مهٔ کوی \| نن ورځ \| بيشکه چې تاسو ته \| زمونږ دطرفنه |
| وخت چغې کړی\| (ورته بهٔ اوونيلې شی) چې نن چغې مه وهئ\| ولې چې زمونږ |

---

[1] ترمذی کتاب تفسير القرآن باب ومن سورة المؤمنين:۳۱۷۵وهو حسن، احمد:۱۵۹/٦. (ترمذی)
[2] احمد:٦/۹۵.

لَا تُنْصَرُوْنَ ۝ قَدْ كَانَتْ اٰيٰتِيْ تُتْلٰى عَلَيْكُمْ

هيڅ امداد نه ملاميږئ | په تحقيق سره وو | ايتونه زما | چې لوستلې كيدل به | په تاسو باندې

دطرفه به ستاسو مدد نشي كولې | زما ايتونه تاسو ته لوستلې شول

فَكُنْتُمْ عَلٰٓى اَعْقَابِكُمْ تَنْكِصُوْنَ ۝ مُسْتَكْبِرِيْنَ ۝ بِهٖ

نو وئ تاسو | په پوندو خپلو باند | چې واپس به تښتيدئ | تكبر كونكي به وئ | په هغه پورې

نو تاسو به ترې نه په شا روان وئ | تكبر به موكولو

سٰمِرًا تَهْجُرُوْنَ ۝

دشپې قيصه كونكي وئ | اوبكواس به موكولو |

قيصې به مو ترې جوړولې بيهوده

قوله تعالى:- وَلَا نُكَلِّفُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا

**انسان ته د وس نه زيات تكليف نه وركولې كيږي:-** الله ﷻ شريعت آسان كړې دې اوداسې احكام ئې نه دي مقرركړي كوم چه دانساني طاقت نه بهر وي بيابه دقيامت په ورځ هغه د دوی دعملونوحساب اخلي چه ټول په ټول به په كتابي شكل كښې ليكلې شوی موجود وی. دا عمل نامه به صحيح صحيح د هغوی هر يو عمل اوښائي او په چا باندې به هيڅ قسم ظلم نه شي كولې هيڅ يوه نيكي به كميږی نه بلكه د اكثرو مؤمنانو ګناهونه به معاف كولې شي.دمشركانو زړونه د قرآن نه اوختلې شوی اودهوكه شوی دی دې نه علاوه هم د هغوی نورې بدعملئی دی لكه چه شرك وغيره دوی ښه په ښكاره كوی[1] دې دپاره چه د هغوی بدئی هغوی ددوزخ نه اخوانه كړی. هغه حديث تيرشو په كوم كښې ارشاد دې چه انسان دنيكئی كارونوكولوكولوسره دجنت نه ديولاس په فاصله شي چه په هغه د تقدير ليك غالب راځي اوبدعملئی شروع كوی نتيجه داوی هغه دوزخ ته اورسی[2]تردې چه كله په هغوی كښې په آبادو خوشحالواودولت مندوخلقو باندې دالله ﷻ عذاب راپريوځي نو دې وخت هغوی فرياد كوی. په سورت مزمل كښې ارشاددی چه ما اوداماالداران دروغ ګنړونكي پريږدئي دوی ته لږ شان مهلت نور هم وركړه مونږ سره بيړئی هم دي اودوزخ هم شته او په مرئي كښې اينختونكې خوراك هم شته اودردناك عذاب هم شته[3]يوبل آيت كښې دی ﴿كَمْ اَهْلَكْنَا مِنْ قَبْلِهِمْ مِّنْ قَرْنٍ فَنَادَوْا وَّلَاتَ حِيْنَ مَنَاصٍ ۝﴾[4]يعنې مونږدې نه وړاندې هم ډيركلي تباه كړی دی هغه وخت هغوی شوراوغوغا شروع كړه چه بې فائدې وه.دلته فرمائي چه نن تاسو ولې شوركوئی؟ولې فريادكوئی؟هيڅ څوك نن ستاسو په كارنه شي راتلې چه په تاسوباندې د الله ﷻ عذاب راغلونو اوس ټولې چغې صورې بې فائدې دی.څوك دی چه زمادعذاب په مقابله كښې ستاسو امداداوكړې شي بياد هغوی يوه لويه ګناه بيانوی چه دا زما د آياتونو منكر وو هغه به نی اوريدل او هيرول به ئې چه راغوښتې به شونو انكار به ئې كولود توحيدنه به ئې انكاركولو او په شرك باندې عقيده لرله حكم خود اوچت او بزرګ الله ﷻ چليږی﴿مُسْتَكْبِرِيْنَ﴾ حال دې د حق نه اخواكيدل اودحق نه دانكاركولودوی به هغه وخت كبركولواوحق اوداهل حق به ئې سپك ګنړل ددې معنی په زړا

---

[1] الطبری:۱۹/۴۹.

[2] صحيح بخاری كتاب بدء الخلق باب ذكر الملائكة صلوات الله عليهم:۳۲۰۸،صحيح مسلم: ۲۶۴۳، احمد:۲/۳۸۲، ابن حبان: ۱۶۷۴.

[3] ۷۳/المزمل:۱۱-۱۳.

[4] ۳۸/ص:۳.

کښې د (به) ضمیر مرجع یاخوحرم دې یعنی مکه چه دوی به په هغې کښې فضول بکواس کولو یاقرآن پاك دې په کوم پورې چه به دوی ټوقې کولې کله به نې ورته شاعری ونیل کله کهانت وغیره یا پخپله حضور ﷺ دې چه د شپې به بې کاره اوزګار ناست وو ګپ شپ کښې به نې کله حضور ﷺ ته شاعر ونیل کله کاهن ونیل کله جادوګر کله دورغژن او کله مجنون ونیل سره د دې چه حرم د الله ﷻ کوردې قرآن د الله ﷻ کلام دې حضور ﷺ د الله ﷻ رسول ﷺ دی چاله الله ﷻ خپل امداد رسولې دې او په مکه باندې قبضه ورکړه دا مشرکان نې د هغه ځائ نه ذلیل او خوار کولوسره اوویستل اوداهم ونیلې شوی دی چه مراددا دې چه داخلق د بیت الله د وجه نه فخر کولو اوخیال به نې کولوچه هغوی اولیاء الله دی سره د دې چه دا خیال نې صرف وهم وو. د ابن عباس ﷺ نه روایت دې چه دقریشو مشرکانوبه په بیت الله باندې فخر کولو[1] خپل خان به نې د دې مهتمم او متولی ګنړلو سره د دې چه نه به نې آباده وله اونه به نې د دې صحیح ادب کولو. ابن ابی حاتم m دلته ډیر څه لیکلې دی حاصل د هغه ټولوهم دا دی.

اَفَلَمۡ يَدَّبَّرُوا الۡقَوۡلَ
| ایا غوروفکر اونۀ کړو دې خلقو | په دې کلام باند
| ایا دوئ په دې کلام کښې سوچ فکر نه کوی

اَمۡ جَآءَهُمۡ مَّا لَمۡ يَاۡتِ اٰبَآءَهُمُ الۡاَوَّلِيۡنَ ﴿٦٨﴾ اَمۡ لَمۡ
یا راغلې دې دوئ ته | هغه څیز | چې نۀ وو راغلې | پلرونو ددوئ | اولنو ته | یا اونۀ
یا دوئ ته څه داسې علم راغلې دې | چې ددوئ وړاندېنو مشرانو ته نه وو ورغلې | یا

يَعۡرِفُوۡا رَسُوۡلَهُمۡ فَهُمۡ لَهٗ مُنۡكِرُوۡنَ ﴿٦٩﴾ اَمۡ يَقُوۡلُوۡنَ
پیژندو دوئ | رسول خپل | نوګنې دوئ | دهغه نه | دنا آشنا والی په وجه تریږی | یا وائی دوئ
دوئ خپل پیغمبر اونه پیژندو | او ددې په وجه دوئ د هغه منکران شول | او که دوئ دا وائی

بِهٖ جِنَّةٌ ؕ بَلۡ جَآءَهُمۡ بِالۡحَقِّ وَاَكۡثَرُهُمۡ
چې په دۀ باندې الیونتوب دې | (نۀ ده داسې) بلکه | هغه دوئ ته حق راوړې دې | او زیات خلق ددوئ
چې دې سودانی دې انه . بلکه هغه خو ورته رښتونې خبره راوړې ده | او په دوئ په زیاتو

لِلۡحَقِّ كٰرِهُوۡنَ ﴿٧٠﴾ وَلَوِ اتَّبَعَ الۡحَقُّ اَهۡوَآءَهُمۡ لَفَسَدَتِ
حق لره | ناخوښونکې دی | او که پیروی کولې | حق | دخواهشاتو ددوئ | نو خامخا به خراب شوی وو
باندې رښتیا بد لګی | او که چرې حق د دوی د خواهشاتو تابعداری کړې وې | نو آسمانونه

السَّمٰوٰتُ وَالۡاَرۡضُ وَمَنۡ فِيۡهِنَّ ؕ بَلۡ اَتَيۡنٰهُمۡ
اسمانونه | او زمکه | او هغه څوك | چې په دې کښې دی | بلکه | راوړې دې مونږ دوئ ته
اوزمکه اوڅه چې په دې کښې دی ټول تباه به شوی وو | ..................بلکه مونږ خو دوئ

[1] حاکم: ۲/۳۹۴.

| بِذِكْرِهِمْ | فَهُمْ | عَنْ ذِكْرِهِمْ | مُّعْرِضُوْنَ | اَمْ تَسْئَلُهُمْ | خَرْجًا |
|---|---|---|---|---|---|
| ذكر ددوئ | نو دوئ | دذكر خپل نه | مخ اړونكي دي | يا ته غواړې ددوئ نه | څه اجرت |

نه سودمند د خبره وركړه اخو دوئ دسودمندې خبرې نه هم مخ اړوي آياته ددوئ نه څه

| فَخَرَاجُ رَبِّكَ | خَيْرٌ | وَّهُوَ | خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ | وَاِنَّكَ | لَتَدْعُوْهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| نو ثواب درب ستا | بهتر دي | اوهغه | بهتره رزق وركونكې دي | او بيشكه ته | خامخا رابلې دوئ |

معاوضه غواړې اخو ستا درب عوض دټولو نه ښه دي اوهغه دټولو نه ښه رزق وركونكې دي اوبيشكه ته

| اِلٰى صِرَاطٍ | مُّسْتَقِيْمٍ | وَاِنَّ الَّذِيْنَ | لَا يُؤْمِنُوْنَ | بِالْاٰخِرَةِ |
|---|---|---|---|---|
| لارې | نيغې ته | او بيشكه هغه كسان | چې ايمان نه راوړي | په آخرت باندې |

دوئ سمې لارې ته رابلې اوبيشكه هغه خلق چې په آخرت باندې يقين نه ساتي

| عَنِ الصِّرَاطِ | لَنٰكِبُوْنَ | وَلَوْ رَحِمْنٰهُمْ | وَكَشَفْنَا |
|---|---|---|---|
| ددغې نيغې لارې نه | خامخا ووه كونكې دي | او كه رحم اوكړو په دوئ باندې | او لرې كړو مونږ |

هغوئ دسمې لارې نه بې لارې شوي دي اوكه مونږ په دوئ باندې رحم اوكړو اوددوئ

| مَا | بِهِمْ | مِّنْ ضُرٍّ | لَّلَجُّوْا | فِيْ طُغْيَانِهِمْ |
|---|---|---|---|---|
| هغه | چې په دوئ باندې | دتكليف نه | نو ښه به ټينګ شي دوئ | په سركشۍ خپله كښې |

تكليف نه لرې كړو نو بيا به هم دوئ په خپله ګمراهۍ كښې سرګردانه وي

| يَعْمَهُوْنَ |
|---|
| چې سرګردانه به وي |

**قوله تعالىٰ:- اَفَلَمْ يَدَّبَّرُوا الْقَوْلَ**

**قرآن پاک بې مثال او بينظير كتاب دې:-** الله ﷻ د مشركانو په دې قول باندې انكار كوي كوم چه هغوى د قرآن پاك په نه پوهيدو كښې اوپه دې كښې غور نه كولو كښې كولواوده دې نه به نې مخ اړولو سره د دې چه الله ﷻ په هغوى باندې خپل هغه پاك او بزرګ كتاب نازل كړې وو چه په يونبى باندې هم نه وو نازل كړې دا د ټولونه پوره اشرف او غوره كتاب دې. دهغوى پلاران نيكونه په جاهليت كښې مړه شوى وودچا په لاسونو كښې چه هيڅ يوخدائى كتاب نه وو په هغوى كښې څوك پيغمبر نه وو راغلې نوهغوى له پكاروو چه د الله ﷻ د رسول ﷺ خبره نې منلې وه دالله ﷻ د كتاب نې قدركړې وو اوشپه ورځ نې په دې باندې عمل كولو لكه څنګه چه په هغوى كښې پوهه خلقو اوكړل چه هغوى مسلمانان او د رسول ﷺ تابعدار شو اوپه خپل عمل نې الله ﷻ رضاكړوافسوس چه كافرانو دعقل نه كاروانخستلو.دقرآن متشابه آياتونوپسې شونوهلاك شوآياداخلق محمدﷺ نه پيژنى آياد هغوى صداقت امانت اوديانت هغوى ته معلوم نه دې؟حضورﷺ خوهم په هغوى كښې پيداشوى هم په هغوى كښې لوئ شوې بياځه وجه ده چه نن هغه ته دروغژن وائى چاته چه به نى ددې نه وړاندې رښتونې ونيلو دوه مخيزكيږى. جعفرؓ بن ابى طالب د حبشى بادشاه نجاشى په وړاندې په ډك دربار كښې هم دغه فرمانيلې ووچه الله ﷻ رب العالمين وحده لاشريك له مونږ كښې يورسول راوليګلودچا نسب د چا صداقت د چا ديانت اوامانت چه مونږ ته ښه معلوم وو.مغيره بن شعبهؓ كسرى ته دجنګ په وخت كښې دجنګ په ميدان

كښې هم داونيلي وو ابوسفيان ﷛ بن صخر بن حرب دروم بادشاه ته هم دا فرمائيلي وو په ډك درباركښې بادشاه د هغه نه اود هغه د ملګرونه تپوس كړې ووسره د دې چه په هغه وخت كښې هغه مسلمان شوې هم نه وو ولې هغوی ته دحضور ﷺ صداقت امانت ديانت اود رښتونوالی په نسبت دښكليوالی اقرار كړې وو[1] ونيل به ئې دې ليونې دې ياده قرآن پاك دخپل خان نه جوړكړې دې سره د دې چه خبره داسې نه وه حقيقت صرف دا دې چه د هغوی زړونه د ايمان نه خالي وودوی به په قرآن پاك باندې نظر نه اچولو اوځه چه به په خُله ورتله دوړول به ئې. قرآن پاك خوهغه كلام دې چه د هغې د مثل اونظيرنه ټوله دنياعاجزه ده. سره دسخت مخالفت اوسره د پوره كوشش او په ډيره مقابله كولوكښې د چا نه هيڅ هم اونه شوچه ددې په شان قرآن ئې پخپله جوړكړې وې يادټولويه امدادئې ددې په شان يوسورت جوړكړې وې داخوسراسر حق دې اود هغوی حق سره چيړ دې. روستونئې جمله حال دې اوكيدې شي چه مستانفه وی والله اعلم.ذكر دې چه يوځل حضور ﷺ يوسړی ته اوفرمائيل چه مسلمان شه هغه ونيل سره د دې چه زما د دې نه نفرت وی؟حضور ﷺ اوفرمائيل وی دې. په يو روايت كښې دی يوسړې حضور ﷺ ته لاركښې ملاوشو حضور ﷺ هغه ته اوونيل اسلام قبول كړه په هغه باندې دا ډير سخت اولګيدل او مخ ئې تك سور شو حضور ﷺ اوفرمائيل ګوره چه ته په يوه ډيره غيرآباد خطرناكه لار روان ئې اوتاته يوسړې ملاوشي چه دهغه د حسب اونسب نه ته ښه خبرئې اود هغه د رښتون ولئې او امانت نه ته ښه خبرئې اوهغه تاته اووائې چه په دې لار ځه كومه چه آسانه ارته اونيغه اوصفاده نودا اووايه چه ته به د هغه په خودلې شوې لارځې كه نه؟ هغه ونيل چه اوخامخابه ځم. حضور ﷺ اوفرمائيل چه بس ته يقين اوكړه په الله ﷻ قسم چه ته د دنياد دې سختې ګرانې اوخطرناكې لار نه هم په ډيره خرابه لار روان ئې اوزه تاته د نيغې لار دعوت دركوم اوزما اومنه. روايت دې چه يوبل داسې سړی ته رسول الله ﷺ فرمائيلي ووكله چه هغه د اسلام د دعوت وركولوسره بدمنلي ووچه ستا دوه ملګرې وې يورښتونې او امانتدار بل دروغژن اوخيانت كونكې نوته اوښايه چاسره به محبت كوې هغه ونيل رښتونی امين سره ونې فرمائيل چه هم دغه شان تاسو خلق خپل رب سره نيزدې ئې[2] دحق نه مراد د سدی m په قول هم پخپله الله ﷻ دې[3] يعني كه الله ﷻ هم د دوی په مرضئې سره شريعت مقرركولونوزمكه او آسمان به وران شوې وولكه چه بل آيت كښې دی چه كافرانوئيل په دې دواړو كلوكښې چرته په يولوئ سړی دا قرآن ولې نازل نه شو؟ددې په جواب كښې دافرمان دې چه آياد رباني رحمت تقسيم ددوی په لاسونو كښې دې؟[4] يوبل آيت كښې دی چه كه درب درحمت دخزانودوی مالكان وې نودوی به دخپل بخيل توب په وجه ټوله دنياترې ساتلې وه[5]

**دا نسان دماغ د مخلوق د انتظام نه عاجز دی:**-يوبل آيت كښې دی كه دوی چرته د ملك د يوې حصې مالكان جوړكړې وونودوی خوبه يوه پيسه هم چاته نه وركوله[6] نو پدې آياتونوكښې الله رب العزت بيان اوفرمائيلو چه انسانی دماغ د مخلوق په انتظام كښې د قابليت نااهل دې داهم د الله ﷻ شان دې چه دهغه صفتونه د هغه فرمان اود هغه افعال د هغه د شريعت تقديراودهغه تدبيرټول مخلوق راګير كړې دې اود ټول مخلوق حاجت پوره كول دهغه دمصلحت لاندې دې دهغه نه بغيرڅوك معبود نشته نه

---

[1] ) صحيح بخاری كتاب بدء الخلق باب كيف كان بدءالوحي الى رسول الله :۷، صحيح مسلم:۱۷۷۳.

[2] ) داروايت مرسل دې.

[3] ) الطبری:۱۹/۵۷.

[4] ) ۴۳/الزخرف:۳۱-۳۲.

[5] ) ۱۷/الاسراء:۱۰۰.

[6] ) ۴/النساء:۵۳.

خوك بالونكي. بيافرماني چه دا قران پاك هم مونږ د دوی د نصيحت د پاره راوړلي دي دوی د دې نه مخ اړوی بيا ارشاد دي چه ته د قرآن پاك په تبليغ د دوی نه څه اجرت نه غواړې ستانظرصرف هم په الله ﷻ دي هم هغه به تاله د دې اجر درکوی لکه چه وئی فرمانيل کومه بدله چه زه تاسو نه غواړم هغه مې هم تاسو له درکړه زه خود اجر غوښتونکي صرف هم د الله ﷻ نه يم([1])په بل آيت کښې حضورﷺ ته حکم اوشوچه اعلان اوکړه زه نه څه بدله غواړم اونه په تکلف کونکوکښې يم([2])بل ځائ دی اووايه چه زه تاسو نه په دې باندې هيڅ اجر نه غواړم صرف د خپلولئی د تعلق جوش دی([3])په سورت يس کښې دی دښاردلږې غاړې نه چه کوم سړې په منډه راغلو هغه خپل قوم ته اوونيل خلقو د خپلو انبياؤ کرامو تابعداری کونی خوك چه تاسو نه هيڅ اجر اوبدله نه غواړی.([4]) دلته ئې اوفرمانيل هم هغه بهترين رازق دې ته خلق نيغې لارې ته راغواړه.

**د رسول کريم صلى الله عليه وسلم د امت مثال:**-مسنداحمد کښې دی حضورﷺ اوده وودوه فرښتې راغلې يوه دحضورﷺ سر مبارك ته او بله پښو مبارکوته اودريدې. يوې بلې ته اوونيل چه د ده اود ده د امت مثال بيان کړه هغې ونيل د ده مثال د هغه قافلې د مسافر په شان دې چه په يوکولاوميدان کښې وو نه هغوی سره څه توښه وه نه اوبه اودانه اونه د وړاندې تلو طاقت اونه د روستو تلوطاقت. حيران وو چه څه به کيږی په دې کښې يوښه سړې يوشريف انسان په ښکلی لباس کښې راغلو هغه په راتلوسره د هغوی پريشانئی ته اوکتل هغوی ته اوونيل که تاسوزما وينا اومنئی اومايسې راشئی نوزه به تاسو د ميوه ډکوباغونو اوداوبونه ډکو حوضونوته اورسوم تړولود هغه خبره اومنله اوهغه په حقيقت کښې هغوی شنوډکو باغونو تازه او روانوچينو ته اورسول چرته نه چه دې خلقو بې منع کولوخوراك څښاك اوکړو اودې سره ښه ماړه او تازه او چاق شو يوه ورځ هغه اوونيل چه ګورئی ماتاسو د هغه غريبئی او تکليف نه دلته راوستلئی اودې د مزې ځائ ته مې راورسولئی اوس که تاسو زما منئی نو زه به د دې نه هم تاسواوچتوباغونو او پاك ځائ ته اود دې نه هم د چپو وهونکونهرونو طرف ته بوځم په دې باندې يوه ډله تياره شوه او هغوی ونيل چه مونږ تاسره يوخودويمې ډلې اوونيل مونږ ته د نورو ضرورت نشته بس مونږ خو به هم دلته پراته يو.([5])

**بل مثال، د امت بې کول او د کوثر بيان:**-ابويعلى موصلى کښې دی حضورﷺ فرماني زه به تاسو نه غيږې ډکوم اوستاسو شاګانې به رانيولوسره تاسو د دوزخ نه منع کوم خوتاسو به د پتنګانواو د سپرلی دچينجو په شان زما د لاسونونه خلاصيږئی او په اورکښې غورزيږئی نوآياتاسوداغواړئی چه زه تاسو پريږدم؟واورئی په حوض کوثر باندې به زه ستاسوپيشوا او خيال ساتونکې يم تاسوبه خان له خان له او ډلې ډلې زماخوالد راځئی زه به تاسو ستاسو په نښونښانوباندې علامتونواونومونوسره پيژنم لکه څنګه چه يونوی ناخبره سړې خپل اوښان د نورو د اوښانونه جدا کوی.زمادسترګوپه وړاندې به تاسو کښې بعضې دګس طرف وړلا دعذاب فرښتې رانيسی بوتلل به ئې غواړې نوزه به الله ﷻ ته عرض اوکړم اې الله دازما دقوم اوزما د امت خلق دی نوجواب به ملاوشی چه تاته نه ده معلومه تانه پس دوی کوم کوم بدعتونه کړی دی دوی خوتانه پس دخپل ګيتوپه مخ واپس شوی دی هغه به هم اوپيژنم چه د قيامت په ورځ به ئې په خپل سټ باندې چيلئی راپشاکړې راځی هغه چيلئی به چغې وهی اوزمانوم به

---

[1] ۳۴/سبا:۴۷

[2] ۳۸/ص:۸۶.

[3] ۴۲/الشورى:۲۳.

[4] ۳۶/يس:۲۰.

[5] احمد:۱/۲۶۷.

اخلي اوازونه به کوي خوزه به هغوی ته صفااووایم چه زه د الله ﷻ په مخکښې ستاسو هیڅ په کار نه شم راتلې ماخود الله ﷻ خبرې دررسولي وې دغه شان به څوك وي چه د اوښ سره به راروان وي بربړی به او اوازونه به کوي اې محمد ﷺ اې محمد ﷺ زه به وایم چه زه د الله ﷻ په وړاندې ستاسود پاره هیڅ اختیار نه لرم ما خو رسول کړې وو. بعضې به راشي چه د هغوی په سټ به اس سور وی چه هنړیږی به هغه به هم ماته آواز راکوی اوزه به هم دغه جواب ورکوم. بعضې به راخي مشکونه به ئې راوچت کړي وی چغې په وهی یامحمد ﷺ یامحمد ﷺ زه به وایم چه زه خوستاسودیوکار هم مالك نه یم ماخو در رسولي وو(۱) امام علی بن مدینی فرمائی د دې حدیث سندخودې حسن خود دې یوراوی حفص بن حمید مجهول دې خویحیی بن معین ده ته صالح ونیلي دې او نسائی اوابن حبان هم ده ته ثقه ونیلي دې د آخرت یقین نه ساتونکی د نیغې لار نه بې لارې شوی دی. کله چه یو سړې د نیغې لار نه اخواشي نو عرب وائی ﴿نکب فلان عن الطريق﴾دهغوی دکفرپوخوالي بیانولې شی که الله ﷻ دهغوی نه سختی اخواکړي اوهغوی ته قرآن واوروی اوپوهه ئی کړی نوبیابه هم دوی دخپل کفردښمنئی سرکشئ اوتکبر نه اخوانه شي کوم څه چه نه دی شوی هغه کله اوشی نوبیابه څنګه وی د دې علم هم الله ﷻ ته دی.بل ځایٔ ارشاد فرمانیلې دی که الله ﷻ په هغوی کښې ښیګړه لیدله نوضرور به ئی هغوی ته اورول اوکه هغوی ته به ئی نه اورول هم نو هغوی به اړولوسره تاویدل(۲)دوی خو به دوزخ ته مخامخ اودریدوسره یقین کوی،هغه وخت به وائی چه افسوس مونږ واپس کړې شوي وې اودرب خبرې مو دروغ نه ګنړلې اویقین موکولو. دې نه وړاندې چه کوم څیز پټ وو هغه اوس ښکاره شو. خبره دا ده چه که دوی واپس هم کړې شي نو بیابه هم د منع کړې شوی کارونوطرف ته واپس راځي الخ نودا هغه خبره ده چه کیږی به نه خوکه اوشی نو څه به وی؟د حضرت ابن عباس ﷺ نه روایت دې ﴿لو﴾ سره چه کومه یوه جمله په قرآن کریم کښې ده هغه کله هم واقع کیدونکې نه ده.

| | | |
|---|---|---|
| وَلَقَدْ اَخَذْنٰهُمْ | بِالْعَذَابِ | فَمَا اسْتَكَانُوْا |
| او په تحقیق سره اونیول مونږ دویٔ | په عذاب سره | پس ټیټ نه شو دویٔ |
| اومونږدویٔ په عذاب کښې رانیولی وو اوخوبیا هم نه خو رب ته تسلیم شول | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لِرَبِّهِمْ | وَمَا يَتَضَرَّعُوْنَ۝ | حَتّٰى | اِذَا | فَتَحْنَا | عَلَيْهِمْ |
| رب خپل ته | اونهٔ دویٔ عاجزی اختیاروی | تر هغې پورې | اچې کله | پرانستله مونږه | په هغویٔ باندې |
| او نه ئې ورته عاجزی اوکړه | ..................تر دې چې کله مونږ په دویٔ باندې د سخت عذاب | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بَابًا | ذَا عَذَابٍ شَدِيْدٍ | اِذَا هُمْ | فِيْهِ | مُبْلِسُوْنَ۝ | وَهُوَ الَّذِيْٓ | |
| دروازه | دسخت عذاب | بیادویٔ | په هغې کښې | ناامیده وی دهر خیرنه | او هغه هغه ذات دې | |
| دروازه پرانسته نوبیادویٔ په دې کښې ناامیده شول او الله هغه ذات دې | | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَنْشَاَ | لَكُمُ | السَّمْعَ | وَالْاَبْصَارَ | وَالْاَفْئِدَةَ |
| چې پیدا ئې کړو | ستاسو دپاره | طاقت داوریدو | او طاقت دلیدو | او زړونه (دپاره دسوچ) |
| چې تاسو ته ئې غوږونه سترګې او زړونه درکړل | | | | |

[1] مجمع الزوائد:۸۵/۳، کشف الاستار:۹۰۰ وسنده حسن.
[2] الانعام:۲۳/۸.

| قَلِيلًا | مَّا | تَشْكُرُونَ۝ | وَهُوَ الَّذِيْ | ذَرَاَكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| ډیر لږ دي | هغه | چې تاسو شکر اوباسئ | او هغه هغه ذات دی | چې خواره نې کړي تاسو |

خو تاسو ډیر کم شکر اوباسئ او الله ﷻ هغه ذات دې چې تاسو نې د زمکې په مخ

| فِي الْأَرْضِ | وَإِلَيْهِ | تُحْشَرُونَ۝ | وَهُوَ الَّذِيْ | يُحْيِ |
|---|---|---|---|---|
| په زمکه کښې | او خاص هغه ته به تاسو ورجمع کړې شئ | | او هغه هغه ذات دی | چې ژوندی کول کوی |

خواره کړي نې او هم دهغه طرفته به تاسو جمع کولې شئ او هم هغه ذات دې چې ژوندي کول

| وَيُمِيتُ | وَلَهُ | اخْتِلَافُ | الَّيْلِ وَالنَّهَارِ | أَفَلَا تَعْقِلُونَ۝ |
|---|---|---|---|---|
| اومړه کول کوی | او خاص دهغه کار دی | بدلول | دشپې او دورځې | ایا نو تاسو عقل نه چلوئ |

کوی او وژل کوی او دشپې ورځې اړول دهغه په اختیار کښې دی انو ایا تاسو دعقل نه کار نه اخلئ

| بَلْ | قَالُوا | مِثْلَ مَا | قَالَ | الْأَوَّلُونَ۝ | قَالُوا | ءَاِذَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بلکه | وائي دوئ | په مثل دهغې | چې ونیلي دی | ړومبنو کافرانو | دوئ وائي | ایا هر کله چې |

بلکه دا خلق هم هغه خبرې کوی لکه چې پخوانو (کافرانو) کړې وې دوئ وائی کله چې

| مِتْنَا | وَكُنَّا | تُرَابًا | وَّعِظَامًا | ءَاِنَّا | لَمَبْعُوثُونَ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| مړه شو مونږه | او شو مونږه | خاورې | او هډوکی | انو ایا مونږ به | اکنی خامخا ژوندی راپاسولې کیږو |

مونږ مړهٔ شو او بنا ورې او هډوکی شو نو ایا لابیا به راژوندی کولی شو

| لَقَدْ وُعِدْنَا | نَحْنُ | وَآبَاؤُنَا | هٰذَا | مِنْ قَبْلُ | اِنْ هٰذَآ |
|---|---|---|---|---|---|
| په تحقیق وعده شوی ده | زمونږ سره | او دپلارانو زمونږ سره | دا | امخکښې ددې | نه انه دی دا خبری |

داسې وعدې خو مونږ سره او زمونږ مشرانو سره پخوا راسې کیږی ادا نو بل څیه نه دی

| اِلَّآ | اَسَاطِيرُ | الْأَوَّلِينَ۝ |
|---|---|---|
| مګر | هسې (قیصې) دی | دپخوانو خلقو |

بلکه تشې د پخوانو خلقو بې سنده خبرې دی

**قوله تعالی:- وَلَقَدْ اَخَذْنٰهُمْ بِالْعَذَابِ**

**د الله ﷻ عذاب او د کافرانو په خپل ځائې کلک اودریدل:-** فرمائی چه مونږ هغوی د دوی د بدو په وجه په سختو اومصیبتونو کښې اخته کړل خو بیا هم هغوی نه خپل کفر پریخودو اونه د الله ﷻ طرف ته تیټ شو بلکه په کفر او ګمراهئ کښې اخته دی نه د هغوی زړونه نرم شو اونه دوی په ربښتونی زړه سره زمونږ طرف ته متوجه شو اونه نی د دعا د پاره لاس اوچت کړو لکه چه ارشاد دې ﴿فَلَوْلَآ اِذْ جَآءَهُمْ بَاْسُنَا تَضَرَّعُوْا وَلٰكِنْ قَسَتْ قُلُوْبُهُمْ وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ۝﴾[1] زمونږ عذاب په لیدو سره دوی زمونږ طرف ته په عاجزئ سره ولې تیټ نه شو؟ خبره دا ده چه د دوی زړونه سخت شوی دی الخ. ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه په دې آیت کښې هغه قحط کالنی ذکردې چه په قریشو باندې دحضور ﷺ دنه منلو په وجه راغلې وه دکوم شکایت سره چه ابوسفیان د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او حضور ﷺ ته نې د الله ﷻ قسمونه

[1] الانعام: ۶/۴۳.

ورکړل اود خپلولئی واسطې نی ورکړې اوونی ونیل چه مونږ خو اوس ګندګی اووینې خورو. (۱)

**د قریشو د قحط سالئ تذکره:-** بخاری اومسلم کښې دی د قریشو شیطانونه تنګ راغلو نو رسول الله ﷺ د هغوی د پاره بددعاکړې وه څنګه چه د حضرت یوسف ؑ په زمانه کښې اووه کاله قحط راغلې وو هم په دغه شان قحط باندې ای الله ته زما امداد اوکړه(۲) ابن ابی حاتم کښې دی وهب بن منبه ؒ قیدکړې شوهلته یوخوان سړی اوونیل زه تاته د زړه دخوشحالولود پاره څوشعرونه اووایم؟ نوهغوی اوفرمائیل دې وخت کښې مونږ د الله ﷻ په عذاب کښې یواوقرآن د دې شکایت کړې دې چه څوک داسې وخت کښې هم الله ﷻ ته ټیټ نه شی بیاهغه درې روژې برابر اوساتلې.بیاد هغه سوال اوکړې شو چه دا په مینځ کښې روژې ماتې نه کول څنګه روژې دی؟نوجواب نی ورکړو چه یونوې څیز دیخوانه اوشویعنی قید نویونوې څیز مونږ هم اوکړو یعنی په عبادت کښې زیاتوالې. تردې چه د الله ﷻ حکم راورسیدو ناځاپې وخت راغلو اود کومو عذابونوچه په خوب اوخیال کښې هم نه وو هغه راغله نود هر قسم خیر نه محروم شو امیدنی ختم شو او حیران اوویریدلې پاتې شو. د الله ﷻ نعمتونوته اوګوره هغه غوږونه درکړی هغه سترګی درکړی زړه نی درکړو عقل اوپوهه نی درکړه چه غور اوفکر اوکړنی د هغه وحدانیت او د هغه په اختیارباندې خان پوه کړې شنی. خوچه څومره څومره نعمتونه زیات شو شکر کم شو.لکه چه څنګه ارشاد دې دغه شان حرص اوکړنی خو په دوی کښې اکثر بې ایمانه دی(۳) بیادخپل عظیم الشان سلطنت اوقدرت بیان فرمائی چه مخلوق هغه پیداکړو او پخپله کولاو زمکه کښې تقسیم کړل بیابه دقیامت په ورځ خواره شوی راغونډکړی اوخپل خان سره به نی جمع کړی.اوس هم هغه پیدا کړی نی او بیا به موهم هغه سوزوی.

**داوسنو او مخکښینو کافرانو زړونه یو شان دی:-** هیڅ وړوکې لویٔ روستو مخکې به باقی نه پاتې کیږی هم د دغه سخاشوی اوډډ شوی هډوکوژوندی کونکې اودخلقو وژونکې دې هم د هغه په حکم سره ورځ راخیژی شپه راخی دیونظام نه پس بل نظام راخی نه نمر دسپوږمئی نه وړاندې کیدې شی نه شپه په ورځې باندې وړاندیوالې کولې شی آیا په تاسوکښې دومره هم عقل نشته چه دومره لویو نښو کتلوسره خپل الله ﷻ اوپیژنئی؟ اود هغه د غلبه اود هغه دعلم قائل شنی.خبره دا ده چه که د دې زمانې کافروی که د وړاندې زمانووی خوزړونه د ټولویودی ژبې هم یودی کوم بکواس چه د وړاندینو وې هغه د دې روستونوهم دې چه مړه کیدوسره خاورې کیدونه پس صرف دسخاشوی هډوکوبه شکل کښې دباقی پاتې کیدونه پس په نوی پیداکیدوسره به پیداکولې شی په عقل کښې نه راخی.مونږته هم دغه اوونیلې شو زمونږ پلاران اونیکونه نی هم په دې اوویرول خومونږ یومړې هم په ژوندې کیدو باندې اونه لیده مونږخویوهیږو چه دا صرف بکواس دې. بل آیت کښې دی هغوی اوونیل چه کله مونږ سخا هډوکی شو هغه وخت به هم بیا راژوندی کولې شو؟ الله ﷻ اوفرمائیل چه کومه خبره تاسونه کیدونکې ګنړنې نوپه یوآواز سره به اوشی او ټوله دنیابه زمونږ په وړاندې په یو میدان کښې راجمع شی. په سورت یس کښې هم دا اعتراض اوجواب دې چه آیاانسان نه ګوری چه مونږ د نطفې نه پیداکړې بیا هغه ضدی او جنجالې جوړشواوخپل پیدائش نی هیرکړو اوپه مونږ باندې اعتراضونه کولوسره مثالونه ورکوی چه دا سخاشوی هډوکی به څوک اوسوزوی؟ اې نبی ﷺ ته دوی جواب ورکړه چه دوی به د یونوې سر نه هغه الله ﷻ راپیداکړی چا چه دوی په اول خل راپیداکړی وو اوچه د هرڅیز پیداکولو عالم دې. (۴)

---

(۱) الطبران:۲۰۳۸ وسنده حسن، حاکم: ۳/ ۳۹۴.

(۲) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الروم:۴۷۷۴، صحیح مسلم:۲۷۹۸، احمد:۱/ ۳۸۰، ترمذی:۳۲۵۴.

(۳) ۱۲/یوسف:۱۰۳.

(۴) ۳۶/یس:۷۷-۷۹.

قُلْ لِّمَنِ الْأَرْضُ

| ورته اووایه | چا لره ده | دا زمکه

(ائ پیغمبره) ته ورته اووایه چې دا زمکه

وَمَنْ فِيهَآ إِنْ كُنتُمْ تَعْلَمُونَ۝ سَيَقُولُونَ

او هغه مخلوقات چې په دې کښې دی | که چرې یئ تاسو | چې پوهیږئ | ضرور به اووائي دوی

او ددې دپاسه اوسیدنکی خلق ټول دچا مخلوق دي که تاسو ترې نه خبر یئ دوی به ضرور اووائي

لِلَّهِ ۚ قُلْ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ۝ قُلْ مَن رَّبُّ السَّمَٰوَٰتِ

چې الله لره دي | ورته اووایه | ایا نو تاسو نصیحت نه قبلوئ | اووایه | څوک دی | رب داسمانونو

چې دا ټول د الله ﷻ مخلوق دي نو ورته اووایه چې نو بیا فکر پرې ولې نه کوئ ورته اووایه چې د

السَّبْعِ وَرَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ۝ سَيَقُولُونَ لِلَّهِ ۚ قُلْ

اووه | او درب | دعرش | لوئ | ضرور به اووائي دوئ | الله لره دي | ورته اووایه

اووه اسمانونو رب څوک دي | او د لوئي عرش مالک څوک دي | دوئ به جواب اوکړي چې دا هرڅه

أَفَلَا تَتَّقُونَ۝ قُلْ مَنۢ بِيَدِهِۦ مَلَكُوتُ

ایا نو تاسو یریږئ نه | ورته اووایه | څوک دي | چې په لاس دهغه کښې | بادشاهي |

دالله دي نو ورته اووایه چې تاسو ترې نه ولې نه ویریږئ اورته اووایه چې هغه څوک دی چې په لاس کښې یئ

كُلِّ شَىْءٍ وَهُوَ يُجِيرُ وَلَا يُجَارُ عَلَيْهِ إِن كُنتُمْ

د هر څیز ده | او هغه | پناه ورکوی | او نه شی ورکولې څوک پناه | په مقابله دهغه کښې | که یئ تاسو

د هر څیز اختیار دي | او هغه پناه ورکوی | او د هغه په مقابله کښې څوک چا ته پناه نشي ورکولې

تَعْلَمُونَ۝ سَيَقُولُونَ لِلَّهِ ۚ قُلْ فَأَنَّىٰ

چې پوهیږئ | ضرور به اووائي دوئ | چې دا اختیار الله لره دي | ورته اووایه | نو بیا څنګه

که چرې تاسو پوهیږئ | نو به وائي چې الله ﷻ ! | نو ورته اووایه چې بیا په تاسو د کوم طرفه

تُسْحَرُونَ۝ بَلْ أَتَيْنَٰهُم بِٱلْحَقِّ وَإِنَّهُمْ لَكَٰذِبُونَ۝

دوکه کیږئ | بلکه راوړي دي مونږ دوئ ته | حق | او بیشکه چې دوئ | دروغژن دي

جادو کولې شي ؟ | بلکه مونږ دوئ ته حقه خبره رسولې ده | او دوئ یقینا دروغژن دي

**قوله تعالى:- سَيَقُولُونَ لِلَّهِ ۚ**

**مشرکانو به هم الله ﷻ خالق او مالک منلو:-** الله ﷻ جل وعلاد خپل وحدانیت خالقیت تصرف او ملکیت ثبوت ورکوی دې د پاره چه معلومه شی چه معبود برحق صرف هم هغه دې دهغه نه بغیر د بل چا عبادت نه دی کول پکار. هغه یو دې بغیر د شریک نه دې. نو خپل عزت مند رسول الله ﷺ ته حکم ورکوی چه ته دې مشرکانو نه تپوس اوکړه نو هغوی به په صفا الفاظو سره دالله ﷻ د رب کیدو اقرار اوکړي او به هغې کښې به هیڅ څوک شریک نه ګڼړی. نه هم د دوی جواب واخله او دوی قائل کړه چه کله خالق او مالک صرف الله ﷻ دې دهغه نه علاوه بل معبود نشته نو بیا هغه خان له څنګه معبود نه شی کیدې؟ د هغه سره د

نوروعبادت ولې کولې شی؟ واقعه هم دا ده چه هغوی خپل معبودان هم دالله ﷻ مخلوق اودالله ﷻ مملوك ګنړل خودوی دالله ﷻ مقربان ګنړلوسره په دې نیت عبادت کولو چه هغوی به مونږ هم د الله ﷻ په دربارکښې مقرب کړی. حکم کولې شی چه د زمکې اود زمکې دټولوځیزونومالك څوك دې؟د دې په بابت د دې مشرکانونه تپوس اوکړه د دوی جواب به هم دا وی چه هم هغه وحده لاشريك له دې. اوس ته بیادوی ته اووایه چه سره د دې اقرار کولوبه تاسوبیا هم دا نه ګنړئی چه د عبادت لائق هم هغه یو الله دې ځکه چه خالق اورازق هم هغه دې. بیا تپوس اوکړه چه د دې اوچت اولوئ آسمان جوړونکې خالق څوك دې چه دعرش غوندې زبردست ځیز رب دې؟ کوم چه د مخلوق چت دې. لکه چه حضورﷺ ارشاد فرمائیلې دالله ﷻ ډیرلوئ شان دې د هغه عرش په آسمانونوباندې داسې دې حضورﷺ د خپلو لاسونو نه یوګنبدغوندې جوړکړو ونی خودل[1] بل حدیث کښې دی اووه واړه آسمانونه اووه زمکې اود دې ټول مخلوق دکرسئی په مقابله کښې داسې دی لکه چه په یوکولاوهوارمیدان کښې یوه ګوتمه پرته وی. اوکرسئی سره ددې ټولوځیزونو دعرش په مقابله کښې هم داسې ده.دبعضې سلفونه نقل دی د عرش د یوطرف نه دبل طرف پورې لریوالې دپنځوسو زروکالوپه مسافت دې.اوداوومې زمکې نه ددې اوچت والې دپنځوسوزروکالوپه مسافت دې. دعرش نوم د دې د اوچتوالی په وجه عرش دې. د کعب احبار ﷺ نه روایت دې چه آسمان د عرش په مقابله کښې داسې دې لکه چه یوفانوس د زمکې اوآسمان په مینځ کښې وی. د مجاهد قول دې چه آسمان اوزمکه د عرش په مقابله کښې داسې دی لکه چه یوګوتمه په یولوئ اوهوار میدان کښې پرته وی. ابن عباس ﷺ فرمائی چه دالله ﷻنه بغیردعرش د قدر اوعظمت باره کښې څوك هم اندازه نه شی لګولې. د بعضې سلفوویناده چه عرش د سرو یاقوتو دې. په دې آیت کښې عرش عظیم ونیلې شوې دې اود دې سورت په آخره کښې عرش کریم ونیلې شوې دې. یعنی ډیر لوئ اود ډیر زیات ښائست والا نواوړدوالې پلنوالې کولاووالی عظمت حسن اوښه والې ډیر زیات اعلی اواوچت دې په دې وجه خلقو دې ته دسرو یاقوتو ونیلې دې.د ابن مسعود ﷺ قول دې ستاسو رب سره شپه ورځ هیڅ نه وی دهغه دعرش نور د هغه د مخ د نور نه دې. غرض داچه د دې سوال جواب هم هغه دا ورکوی چه د آسمان اوعرش رب هم الله ﷻ دې نو ته اووایه چه تاسو ولې د هغه د عذابونو او سزاګانونه نه ویریږئی؟ چه د هغه سره د نورو عبادتونه کوئی.

**د زمانه جاهلیت د یوې موحدې ښځې قصه**:-په کتاب التفکروالاعتبارکښې امام ابوبکر ابن ابی الدنیا یو حدیث راوړلې دې چه رسول الله ﷺ به عمومًا داحدیث بیانولو چه د جاهلیت په زمانه کښې یوې ښځې دغره په څوکه چیلئی څرولې هغې سره دهغې خوئ هم وو.یوځل هغه دخپلې مورنه تپوس اوکړو مورې ته چا پیداکړې ئی؟ هغې ونیل الله، ونیل زما پلار چا پیداکړې؟هغې ونیل الله. تپوس نی اوکړو زه چاپیداکړې یم؟ هغې ونیل الله. ماشوم تپوس اوکړو اودا آسمانونه؟ هغې ونیل الله.تپوس نی اوکړو دازمکې؟ جواب نی ورکړو داهم الله ﷻ. بیانی تپوس اوکړومورې داغرونه چا جوړکړی دی؟مور جواب ورکړو ددې خالق هم الله ﷻ دې.تپوس نی اوکړوزمونږ د دې چیلوپیداکونکې څوك دې؟مورنی ونیل هم دغه الله ﷻ. هغه ونیل سبحان الله دالله ﷻ دومره لوئ شان دې؟ بیادهغه په زړه کښې دالله ﷻ دومره عظمت کیناستو چه هغه په رچیدو شو اودغرنه پریوتلو اوروح نی لاړو.ددې یوراوی لړ شان ټيك نه دې. والله اعلم. تپوس اوکړه چه د ټول ملك مالك اودهرځیز مختارڅوك دې؟ دحضور ﷺ قسم په عام توګه هم په داسې خبروکښې شوې دې چه دهغه ذات قسم د چا په لاس کښې چه زما خان دې کله چه به ئی څه تاکیدی قسم خوړلو نوفرمائیل به ئی چه دهغه قسم چه دزړونومالك اودهغې ګرځونکې دې.[2]

---

[1] ابوداؤد كتاب السنة باب فی الجهمية:٤٧٦٦

[2] صحيح بخاری كتاب الايمان والنذور باب كيف كانت يمين النبی ﷺ:٦٦٢٨، ابوداؤد٣٢٦٣، ترمذی:١٥٤٠، احمد:٢٥/٢

بیاداهم تپوس اوکړه چه هغه څوك دې چه ټولوته پناه ورکوي؟اود هغه پناه څوك ماتولې نه شي اود هغه په مقابله کښې څوك چاته پناه نه شي ورکولې. د چا د پناه هغه پابندنه دې یعنې دومره لوئ سیدو مالك چه ټول مخلوق ټول ملك اوحکومت د هغه په لاس کښې دې اوښایه هغه څوك دې؟ په عربوکښې رواج وو چه د قبیلې سردار به چاله پناه ورکړه نوټوله قبیله به د هغې پابندوه خوکه په قبیله کښې څوك دچا په پناه کښې راغله نوپه سرداربانديې دهغې پابندي نشته. دلته د الله ﷻ عظمت اوسلطنت بیانولې شي چه هغه قادرمطلق او حاکم کل دې. د هغه اراده څوك بدلولې نه شي د هغه یوحکم روستوکولې نه شي. د هغه نه څوك تپوس پوښتنه کولې نه شي د هغه د مرضئی نه بغیریانړه خوزیدلې نه شي. که هغه د ټولونه تپوس پوښتنه اوکړي خود چا طاقت نشته چه د هغه نه څه سوال اوکړې شي. دهغه عظمت د هغه لوئی اودهغه غلبه د هغه دباؤ د هغه قدرت د هغه عزت اوحکمت د هغه ډیرزیات عدل اوبې مثال دې ټول مخلوق د هغه په وړاندې عاجز ښکته اوبې وسه دې رب د ټول مخلوق تپوس کونکې دې. د دې سوال جواب هم هغه سره بغیرد دې نه بل هیڅ نه دې چه هغوی اقراراوکړي چه دومره لوئ بادشاه داسې خودمختارهم هغه یوالله دې.ورته اووایه بیاپه تاسو څه راپریوتلي دي؟په تاسوداسې کوم یوجادو شوې دې چه سره ددې اقرار کولو هم د نورو عبادتونه کوئی. مونږ خود هغوی په وړاندې حق راوړو توحید ربوبیت سره سره ئې توحیداولوهیت بیان کړوصحیح دلیلونه اوصفا خبرې وراورسولې اود هغوی غلط وبناکول ښکاره کړه چه دوی په شریکانو جوړولوکښې دروغژن دی اود هغوی دروغژن کیدل پخپله د هغوی د اقرارنه ښکاره دی. لکه چه د سورت په آخره کښې اوفرمائیل د الله ﷻ نه بغیر نورو ته د آواز کولو هیڅ سندنشته[1] الخ صرف د پلارانوانیکونو په تقلیدباندې کلك ولاړدی اوداوانی هم چه مونږ خپل مشران هم په دې باندې لیدلی دی اومونږ د هغوی تقلید نه شو پریخودې.

| مَا اتَّخَذَ اللّٰهُ | مِنْ وَّلَدٍ | وَّمَا كَانَ | مَعَهٗ | مِنْ اِلٰهٍ | اِذًا |
|---|---|---|---|---|---|
| نه دې نیولې الله \| هیڅوك څوئې \| او نشته \| دهغه سره \| بل څوك معبود \| كه داسې وې | | | | | |
| الله ﷻ هیڅوک خان له څوئې کړې نه دې \|اونه هغه سره بل څوک معبود شریک شته ، \|که | | | | | |
| لَّذَهَبَ | كُلُّ اِلٰهٍ | بِمَا | خَلَقَ | وَلَعَلَا | |
| نو بوتلې به وې \| هر معبود \| هغه مخلوق \| چې پیدا کړې ئې وو \| او خامخا به غلبه کولې | | | | | |
| داسې وې نو هر یو معبود به خپل مخلوق خان له بیل کړې وو \| او بیا به ئې | | | | | |
| بَعْضُهُمْ | عَلٰى بَعْضٍ | سُبْحٰنَ اللّٰهِ | عَمَّا | يَصِفُوْنَ | عٰلِمِ |
| خینو دهغوئ \| په خینو باندې \| پاکی دالله ده \| دهغه خبرونه \| چې بیانوئ ئې دا خلق \| عالم دې | | | | | |
| په یو بل باندې حملې کولې ، \| الله ﷻ دهغه خبرونه پاک دې \| د کومو خبرو چه دوی هغه ته نسبت کوی | | | | | |
| الْغَيْبِ | وَالشَّهَادَةِ | فَتَعٰلٰى | عَمَّا | يُشْرِكُوْنَ | |
| په پټو \| او په ښکارو باندې \| پس ډیر اوچت دې \| دهغه څیز نه \| چې شریکوی ئې داخلق (ورسره) | | | | | |
| هغه په پټو او څرګنده ټولو خبرو باندې ډیر ښه عالم دې \|اود دوی دشرک دخبرونه پاک دې | | | | | |

[1] ۲۳/المؤمنون: ۱۱۷.

قوله تعالى:- مَا اتَّخَذَ اللّٰهُ مِنْ وَّلَدٍ

**د آسمانونو او زمکو نظام هم د الله ﷻ په لاس کښې دې:-** الله ﷻ دې نه خپل اوچتوالي او بزرګی بیانوی چه دهغه دې اولاد وی یاد هغه شریك. ملك کښې تصرف کښې عبادت کښې په مستحق کیدو کښې هغه یوازې دې نه دهغه څوك اولاد شته او نه څوك شریك.که فرض کړه اومنلې شی چه ډیرخدایان دی نو هر یو دخپل مخلوق مستقل مالك کیدل پکاردی نو په موجوداتو کښې نظام قایم نه شی پاتې کیدلې څکه چه دکائناتو نظام مکمل دې. عالم علوی او عالم سفلی دآسمان او زمکې وغیره په کمال اوربط سره په خپل خپل کارکښې مشغول دی د خپل دستور نه یوانچ اخوادیخوا کیدې نه شی. نومعلومه شوه چه د دې ټولو مالك او خالق هم یو الله دې دانه چه ګډوډ او ډیردی.اود ډیروخدایانو منلو په صورت کښې داهم ښکاره خبره ده چه هریو به بل ښکته اومغلوب کول او پخپله غالب اوزورآور کیدل غواړی که غالب راغلو نومغلوب الله پاتې نه شو اوکه غالب رانغلو نوهغه بیاپخپله الله نه دې.اوس دادواړه دلیلونه ښائی چه الله ﷻ هم یو دې.دمتکلمینو په توګه دې دلیل ته دلیل تمانع وائی د دې تقریرداد دې که چرې دوه خدایان اومنلې شی یاد دې نه زیات نو یو به د بدن د حرکت اراده کوی بل به د دې د سکون اراده کوی نواوس په دې حال کښې که د دواړو مراد حاصل نه شی نو بیاخو دواړه عاجز پاتې شو اوچه کله عاجز پاتې شو نوالله کیدې نه شی څکه چه واجب خوعاجز نه وی. اودا هم ناممکن دی چه د دواړو مراد پوره شی څکه چه د یوغوښتنه د بل خلاف ده نو د دواړو مراد حاصلیدل محال دی اودا محال لازم شوې دې څکه چه دوه یاددونه زیات خدایان فرض کړې شوې وو.نوداشمیرباطل شو.اوس پاتې شودریم صورت چه د یوغوښتنه پوره شی اود یونه شی نوچه د کوم یو پوره شوهغه خوغالب او واجب شو اود کوم چه پوره نه شو هغه مغلوب اوممکن شو. څکه چه د واجب داصفت نه دې چه هغه دې مغلوب شی نوپه دې صورت کښې هم دمعبودانو د زیاتوالی دا شمیر باطل شو. ثابته شوه چه الله ﷻ هم یو دې. هغه ظالمان سرکشه اود حد نه تیریدونکی کافران مشرکان چه د الله ﷻ د پاره اولاد ګرځوی اود هغه شریکان ښائی د هغوی دې بیان کړې شوی صفتونو نه د الله ﷻ ذات اوچت بزرګ اوخلاص دې. هغه هرهغه څیز پیژنی کوم چه د مخلوق نه پټ دې او هغه هم چه مخلوق ته ښکاره دې. نوهغه د دې ټولوشریکانونه پاك دې کوم چه منکران او مشرکان د الله ﷻ شریك ښائی.

| يُوْعَدُوْنَ ۙ | مَا | تُرِيَنِّيْ | اِمَّا | رَّبِّ | قُلْ |
|---|---|---|---|---|---|
| اووایه اے نبی ! اے ربه زما ! که چرې ! ته ښائې ما ته ! هغه عذاب ! چې وعده ئې کیږي ددوئ سره | | | | | |
| نه ورنه اووایه چې ائي زما ربه ! که ته ما ته هغه عذاب خودل غواړې ! دکوم چې دوئ سره وعده شوې کولې شی | | | | | |

| عَلٰٓى | وَاِنَّا | فِى الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ۞ | فَلَا تَجْعَلْنِىْ | رَبِّ |
|---|---|---|---|---|
| اے ربه زما ! پس مه شاملوه ما ! په دې خلقو ظالمانو کښې ! او بیشکه مونږه ! په دې کار باندې | | | | |
| نو ائي زما ربه ! ما په دې ظالمانو کښې مه شاملوه ! ، او مونږ په دې | | | | |

| اِدْفَعْ | لَقٰدِرُوْنَ ۞ | نَعِدُهُمْ | مَا | اَنْ نُّرِيَكَ |
|---|---|---|---|---|
| چې اوښایو تاته ! هغه عذاب ! چې مونږه پرو‌ز دوئ دهغې نه ! خامخا قدرت لرونکې یو ! دفعه کوه | | | | |
| خبره پوره قدرت لرو ! چې کوم وعده مونږ دوئ سره کوو ! هغه تاته اوښایو (ائي پیغمبره) | | | | |

| بِالَّتِيْ | هِيَ | اَحْسَنُ | السَّيِّئَةَ ط | نَحْنُ | اَعْلَمُ | بِمَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په هغه طريقه | چې هغه | ډېره ښه وي | بدئ لره | مونږه | ښه پوهيږو | په هغه خبرو |
| نه د بدې خبرې په جواب کښې هغه وايه کومه چې غوره ده | | | | او څه چې دوئ بيانوي | | |
| يَصِفُوْنَ﴿۹۶﴾ | وَقُلْ | رَّبِّ | اَعُوْذُبِكَ | مِنْ هَمَزٰتِ | | |
| چې دوئ ئې بيانوي | اووايه | اے ربه زما | زۀ پناه غواړم په تا سره | د وسوسو (چيخولو) | | |
| هغه مونږ ته ډېر ښه معلوم دي | او دعا اوکړه چې ائې زما ربه زۀ د شيطانانو دسوسو نه | | | | | |
| الشَّيٰطِيْنِ﴿۹۷﴾ | وَاَعُوْذُ | بِكَ | رَبِّ | اَنْ يَّحْضُرُوْنِ﴿۹۸﴾ | | |
| دشيطانانو نه | او زۀ پناه غواړم | په تا سره | اے ربه زما | چه دوئ حاضرشي ماته | | |
| په تاسره پناه غواړم | او ائې زما ربه! زه ددې خبرې نه هم په ستا سره پناه غواړم | په تاسره پناه غواړم | | | | |

**قوله تعالىٰ:- قُلْ رَّبِّ اِمَّا تُرِيَنِّيْ مَا يُوْعَدُوْنَ﴿**

**د سختئ په وخت کښې ددعا تعليم:-** دسختئى راتلوپه وخت کښې د دعاتعليم ورکولې شى که ته په دې بدکارانوباندې عذاب راولې اوزه پدوى کښې موجود يم نومادهغې نه بچ کړه. د مسنداحمد او ترمذى په حديث کښې دى دحضورﷺ په دعاګانوکښې به داجمله هم وه ياالله چه ته کله يوقوم سره د فتنې اراده اوکړې نوما په فتنه کښې داچولونه وړاندې اوچت کړه([1])اللهﷻ د دې تعليم ورکولونه پس فرمائى چه مونږداعذابونه تاته په خولوباندې قادريوکوم چه پدې کافرانوباندې زمونږدطرف نه راکوزيد ونکى دى.

**دَ بدئى جواب په نيکئى سره ورکول دَ همت کاردې:-** بيا هغه خبره وربښائى چه د ټولو مشکلاتو د لرې کونکې اورفع کونکې ده اوهغه. دا چه د بدئى کونکوسره نيکى کونى دې د پاره چه دهغه دښمنى په محبت او نفرت په الفت کښې بدله شى. لکه چه بل آيت کښې هم دى چه ته ئى په نيکئى سره لرې کړه نود خان دښمن به دې هم دوست جوړشى.([2])خودا کارد هغوى نه کيدې شى چه صبرکونکى وى يعنى د دې حکم پوره کول اود دې نيکئى حاصلول صرف د هغه خلقو نه کيدې شى چه د خلقو د تکليف برداشت کولوعادت شى سره د دې که هغوى بدى کوى خودې به ښيګړې کوى.دا صفت هم د هغه خلقو دې چه ډير د نصيب خاوند.ان دى د دنيا اوآخرت ښيګړه چه د چا په قسمت کښې وى.

**د شيطان نه د بچ کيدلو ترکيب، تعوذ:-** د انسان د بدئى نه د بچ کيدوښکلې ترکيب خودلوسره د شيطان د بدئى نه د بچ کيدلو ترکيب خودلې کيږى چه داللهﷻ نه دعا اوکړئى چه هغه تاسو دشيطان نه بچ کړى ځکه چه دهغه ددهوکې دچل وسله تاسوسره ددې نه بغيربل څه نشته. هغه په ښه سلوك او احسان سره په وس کښې د نه راتلو بيان ،ونږ د استعاذه په بيان کښې ليکلى دى چه حضورﷺ ﴿اعوذبالله السميع العليم من الشيطان الرجيم من همزه ونفخه ونفثه﴾ لوستل([3]) اوزه پناه غواړم چه شيطان زما په يوکارکښې حائل شى اوهغه ماته راورسى. نود هريو کار په شروع کښې د اللهﷻ ذکردشيطان شامليدل بندوى خوراك څښاك جماع حلالول وغيره د ټولو کارونوپه شروع کولوکښې اول داللهﷻ ذکر کول پکاردى. په ابوداؤد کښې دى چه دحضورﷺ يوه دعاداهم وه ﴿اللهم انى اعوذبك من الهرم واعوذبك من الهدم ومن الغرق واعوذبك ان

---

([1]) ترمذى کتاب تفسير القرآن باب ومن سورة صٓ:۳۲۳۵وسنده حسن، احمد:۲۴۳/۵.
([2]) ۴۱/فصلت:۳۴.
([3]) ابوداؤد کتاب الصلاة باب من راى الاستفتاح سبحانك اللهم وبحمدك:۷۷۵وسنده حسن.

يتخبطني الشيطن عند الموت﴾ (۱) اې الله ﷻ زه تانه د خراب بوډاوالي د خښيدلوسره مرګ نه اوډوبيدلوسره مرګ نه پناه غوارم اود هغې نه هم چه د مرګ په وخت کښې شيطان ما دهوکه کړي.

**د خوب نه راتللو دعا:**-مسنداحمدکښې دی چه مونږ ته به رسول الله ﷺ يوه دعاخودله چه د خوب د تختيدو دمرض لرې کولود پاره مونږ د اوده کيدوپه وخت کښې اووايو﴿بسم الله اعوذ بكلمات الله التامة من غضبه وعقابه ومن شرعباده ومن همزات الشياطين وان يحضرون﴾ د حضرت عبدالله بن عمرو ﷺ دستور ووچه په خپل اولاد کښې به کوم يوهوښياركيدو نودا دعابه ئې ورخودله اوچه کوم به واړه او ناپوهه وو يادولې به ئې نه شوه نوهغوی ته به ئې دادعا په غاړه ليکلې زوړندوله. په ابوداوٗد ترمذی او نسائی کښې هم دا حديث شته دې. (۲) امام ترمذی دې ته حسن غريب وائی.

| حَتّٰٓى إِذَا | جَآءَ | أَحَدَهُمُ الْمَوْتُ | قَالَ | رَبِّ | ارْجِعُوْنِ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| ترهغې پورې کله چې | راشي | ايو ددوئ ته مرګ | نو وائي به | اے ربه زما | واپس اوليږه ما (دنياته) |
| چې هغوئ ماته راشي ترديې چې کله په دوئ کښې چاته مرګ راشي | | | نو وائي | ائي زما ربه | ما دوباره دنيا ته واپس کړه |

| لَعَلِّىٓ | أَعْمَلُ | صَالِحًا | فِيْمَا | تَرَكْتُ | كَلَّا |
|---|---|---|---|---|---|
| اميد دې چې زه | عمل اوکړم | نيك | په هغه دنيا کښې | چې پرېښودې ده ما | هرګز نه |
| ددې دپاره چې کومه دنيا مې پريخودې ده په هغې کښې څه نيک کارونه اوکړم | | | | | هيڅ کله نه |

| إِنَّهَا | كَلِمَةٌ | هُوَ | قَآئِلُهَا | وَمِنْ وَّرَآئِهِمْ | بَرْزَخٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| بيشکه دا | هسې يوه خبره ده | چې دې | اويونکې دې دهغې | او روستو ددې مړو خلقو نه | پرده ده |
| داخو هسې يوه خبره ده چې دغه کافر ئې کوی | | | | اود ددوئ مخې ته به يوه پرده وی | اتر هغه |

| إِلٰى يَوْمِ | يُبْعَثُوْنَ ۝ |
|---|---|
| دهغه ورځې پورې | چې راپاسولې کيږي به دوئ |
| ورځې پورې چې کله دوئ دوباره راژوندی کړې شی | |

قوله تعالى:-حَتّٰٓى إِذَا جَآءَ أَحَدَهُمُ الْمَوْتُ

**برزخ اوعذاب قبراو دمرګ وخت:**-بيان کولې شی چه د مرګ په وخت کښې کافران اوبدترين ګناهګاران به سخت پښيمانه وی اوپه حسرت او آرمان سره خواهش به کوی افسوس چه مونږ دنياته واپس کړې شو دې د پاره چه مونږ نيك اعمال اوکړوخوهغه وخت دا تمناکول فضول او بې حاصله ده. دغه شان په سورت منافقون کښې اوفرمائيلې شوکوم چه مونږ درکړی زمونږ په لارکښې ورکوئی د هغې نه وړاندې چه په تاسو کښې د چامرګ واقع شی اوهغه وخت هغه وائی چه ياالله لږ شان وخت راکړه نوزه به صدقه اوخيرات اوکړم اونيك به جوړ شم خود اجل راتلوسره چاته مهلت نه شی ورکولې ستاسو د ټولو عملونو نه الله ﷻ خبردار دې(۳) هم د دې مضمون نور هم ډير آياتونه دی. مثلا ﴿يَوْمَ يَأْتِيهِمُ الْعَذَابُ فَيَقُولُ الَّذِينَ ظَلَمُوا

(۱) ابوداوٗد کتاب الوتر باب ل الاستعاذة:۱۵۵۲ وسنده حسن، نسائی:۵۵۳٤.
(۲) ابوداوٗد کتاب الطب باب باب کيف الرقى:۳۸۹۳.
(۳) ۶۳/المنافقون: ۱۰-۱۱.

رَبَّنَآ أَخِّرْنَآ إِلَىٰٓ أَجَلٍ قَرِيبٍ نُّجِبْ دَعْوَتَكَ وَنَتَّبِعِ ٱلرُّسُلَ ۗ أَوَلَمْ تَكُونُوٓا۟ أَقْسَمْتُم مِّن قَبْلُ مَا لَكُم مِّن زَوَالٍ ﴾ (۱) او ﴿ يَوْمَ يَأْتِى تَأْوِيلُهُۥ يَقُولُ ٱلَّذِينَ نَسُوهُ مِن قَبْلُ قَدْ جَآءَتْ رُسُلُ رَبِّنَا بِٱلْحَقِّ فَهَل لَّنَا مِن شُفَعَآءَ فَيَشْفَعُوا۟ لَنَآ أَوْ نُرَدُّ فَنَعْمَلَ غَيْرَ ٱلَّذِى كُنَّا نَعْمَلُ ﴾ (۲) او ﴿ وَلَوْ تَرَىٰٓ إِذِ ٱلْمُجْرِمُونَ نَاكِسُوا۟ رُءُوسِهِمْ عِندَ رَبِّهِمْ رَبَّنَآ أَبْصَرْنَا وَسَمِعْنَا فَٱرْجِعْنَا نَعْمَلْ صَٰلِحًا إِنَّا مُوقِنُونَ ﴾ (۳) او ﴿ وَلَوْ تَرَىٰٓ إِذْ وُقِفُوا۟ عَلَى ٱلنَّارِ فَقَالُوا۟ يَٰلَيْتَنَا نُرَدُّ وَلَا نُكَذِّبَ بِـَٔايَٰتِ رَبِّنَا وَنَكُونَ مِنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ۝ بَلْ بَدَا لَهُم مَّا كَانُوا۟ يُخْفُونَ مِن قَبْلُ ۖ وَلَوْ رُدُّوا۟ لَعَادُوا۟ لِمَا نُهُوا۟ عَنْهُ وَإِنَّهُمْ لَكَٰذِبُونَ ﴾ (۴) او ﴿ وَتَرَى ٱلظَّٰلِمِينَ لَمَّا رَأَوُا۟ ٱلْعَذَابَ يَقُولُونَ هَلْ إِلَىٰ مَرَدٍّ مِّن سَبِيلٍ ﴾ (۵) او ﴿ قَالُوا۟ رَبَّنَآ أَمَتَّنَا ٱثْنَتَيْنِ وَأَحْيَيْتَنَا ٱثْنَتَيْنِ فَٱعْتَرَفْنَا بِذُنُوبِنَا فَهَلْ إِلَىٰ خُرُوجٍ مِّن سَبِيلٍ ﴾ (۶) اودې نه پس ايت ﴿ وَهُمْ يَصْطَرِخُونَ فِيهَا رَبَّنَآ أَخْرِجْنَا نَعْمَلْ صَٰلِحًا غَيْرَ ٱلَّذِى كُنَّا نَعْمَلُ ۚ أَوَلَمْ نُعَمِّرْكُم مَّا يَتَذَكَّرُ فِيهِ مَن تَذَكَّرَ وَجَآءَكُمُ ٱلنَّذِيرُ ۖ فَذُوقُوا۟ فَمَا لِلظَّٰلِمِينَ مِن نَّصِيرٍ ﴾ (۷) وغيره. په دې آياتونوكښې بيان شوې دې چه داسې بدكاران خلق مرګ اووينى د قيامت په ورځ د الله ﷻ په وړاندې د پيشنى په وخت به د دوزخ مخامخ اودريږى اودنياته به واپس د راتلوخواهش كوى اود نيكواعمالوكولووعده به كوى خوپه هغه وخت كښې به ددوى غوښتنه نه شى پوره كولې. داخو هغه كلمه ده چه د مجبورئى په صورت كښې او په داسې سخت وخت كښې د هغوى د خلې نه اوځى اودا هم چه دوى وائى خود كولونه دى. كه دنياته واپس هم كړې شى نونيك عمل به نه كوى بلكه هم داسې به وى چه څنګه وو.داخودروغژن دى. څومره مبارك دې هغه سړې چه په دې ژوندون كښې نيك عمل اوكړى اوڅنګه بدنصيبه دى دا خلق چه نن نه هغوى مال اولاد غواړى نه دنيااو ښائست د دنياصرف دا غواړى چه يودوه ورځې ژوندون دې نوروى نوځه نيك اعمال به اوكړى خوتمنائى بې كاره طلب ئى بې فائدې او غوښتنه ئى بې ځايه ده. دا هم روايت دې چه د دوى په غوښتنه به الله ﷻ دوى اورټى او فرمائى به چه داهم ستاسوخبره ده عمل به بيا هم نه كوئى.

**هر مؤمن لره د كافرانو د خواهشاتو نه عبرت اخستل پكار دى:**-علاء بن زياد څه ښه خبره فرمائيلې ده هغوى فرمائى چه تاسو داسې اوګنړئ چه زمامرګ راغلې ووخومادالله ﷻنه دعااوكړه چه ماته يو څو ورځې مهلت راكړه دې د پاره چه زه نيكئى اوكړم. الله ﷻ ماته مهلت راكړې دې نواوس ماله پكاردى چه په كولاوزره سره نيكئى اوكړم.قتاده فرمائى چه دكافر اميداوارمان يادساتئى اوپخپله د ژوند ګهړئى د رب په تابعدارئى كښې تيروئى. ابوهريره ﷺ فرمائى كله چه كافر په خپل قبركښې كيخودې شى اوخپل د دوزخ ځاىْ اووينى نو وائى چه زما ربه ماواپس كړه زه به توبه اوكړم اونيك اعمال به كوم. جواب به وركولې شى چه څومره عمر تاته در كړې شوې ووتاختم كړې دې. بياد هغه قبر راغونډشى او تنګ شى اوماران اولړمانان ورپورې اونخلى.

**د قبر خطرناک حالت:-**عائشه صديقه k فرمائى په ګناهګارانو باندې د هغوى قبرونه ډيرمصيبت ځاىْ جوړيږى.دهغوى په قبرونوكښې تور ماران هغوى له تكونه وركوى. په كوم كښې چه يوډير لوىْ د هغه سر ته ناست وى اويوهم دومره لوىْ د ښپوطرف ته وى. هغه د سرد طرف نه تكونه وركوى پورته ختل شروع كوى اودابل دښپوُ طرف نه تكونه وركوى اوپورته ختل شروع كوى تردې چه مينځ ته راورسى

---

(۱) ۱٤/ابراهيم:٤٤.
(۲) ۷/الاعراف:۵۳.
(۳) ۳۲/السجدة:۱۲.
(۴) ٦/الانعام:۲۷-۲۸.
(۵) ٤۲/الشورى:٤٤.
(۶) ٤۰/غافر:۱۱.
(۷) ۳۵/فاطر:۳۷.

اودواړه یوځای شي.نودادې هغه برزخ چرته به چه دوی د قیامته پورې وی.د﴿مِنْ وَّرَآىِٕهِمْ﴾معنی کړې شوې ده چه دهغوی په وړاندې برزخ یوپرده ده ددنیااوآخرت په مینځ کښې. هغوی خونه په صحیح توګه په دنیاکښې دی چه اوخوری اوڅکی اونه په آخرت کښې دی چه د اعمالوپه پوره بدله کښې راشی بلکه هم په مینځ مینځ کښې دی. نو په دې آیت کښې ظالمان ویرولې شی چه دوی ته په په عالم برزخ کښې هم ډیر سخت عذاب وی.لکه چه ارشاد دې ﴿مِنْ وَّرَآىِٕهِمْ جَهَنَّمُ ۚ وَلَا يُغْنِيْ عَنْهُمْ مَّا كَسَبُوْا شَيْـًٔا وَّلَا مَا اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَوْلِيَآءَ ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ﴾[1] دهغوی په وړاندې دوزخ دی. بل آیت کښې دی﴿وَمِنْ وَّرَآىِٕهٖ عَذَابٌ غَلِيْظٌ﴾[2] دهغوی په وړاندې ډیر سخت عذاب دی.د برزخ اوقبرداعذاب به دقیامت د قایمیدوپورتې برابر په هغوی جاری وی لکه چه په حدیث شریف کښې دی هغوی به برابرپه دې عذاب کښې وی یعنی په زمکه کښې.[3]

| | | |
|---|---|---|
| فَاِذَا | نُفِخَ | فِي الصُّوْرِ |
| نو بیا کله چې | پوکې اووهلې شی | په صور کښې |
| نو څه وخت چې شپیلئ پوک وهلې شی | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَلَآ اَنْسَابَ | بَيْنَهُمْ | يَوْمَىِٕذٍ | وَّلَا يَتَسَآءَلُوْنَ |
| نو نۀ به خپلولی پاتې وی | په منځ ددوئ کښې | په دغه ورځ | اونۀ به تپوس کوی دیو بل نه |
| نو نۀ به ددوئ ترمینځه خپلولئ پاتې وی او نۀ به څوک دچاتپوس کوی | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَمَنْ | ثَقُلَتْ | مَوَازِيْنُهٗ | فَاُولٰٓىِٕكَ | هُمُ | الْمُفْلِحُوْنَ |
| نو هغه څوک | چې درنې شوې | تلې دهغه | نو دغه کسان چې دی | هم دوئ | کامیاب دی |
| خو چې دچا (دعمل) تله درنه شی نو هغه کسان به کامیاب شی | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَمَنْ | خَفَّتْ | مَوَازِيْنُهٗ | فَاُولٰٓىِٕكَ | الَّذِيْنَ | خَسِرُوْٓا |
| اوهغه څوک | چې سپکې شوې | تلې دهغه | نو دغه کسان | هغه کسان دی | چې په نقصان کښې واچوۀ هغوئ |
| او د چا (دعمل) تله چې سپکه شی نو دا به هغه خلق وی چې خپل ځانونه ئې دخپله لاسه | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اَنْفُسَهُمْ | فِيْ جَهَنَّمَ | خٰلِدُوْنَ | تَلْفَحُ | وُجُوْهَهُمُ | النَّارُ | وَهُمْ |
| ځانونه خپل | په دوزخ کښې به | همیشه وسی | سیزی به | مخونه دهغوئ | وور | او هغوئ به |
| په تاوان کښې اچولی وو او همیشه به په دوزخ کښې وی (ددوزخ) اور به ددوئ مخونه سوزوی او هلته به | | | | | | |

| | |
|---|---|
| فِيْهَا | كٰلِحُوْنَ |
| په هغې کښې | بدمخی وی |
| ددوئ مخونه وران شی | |

[1] ۴۵/الجاثیة:۱۰.
[2] ۱۴/ابراهیم:۱۷.
[3] ترمذی کتاب الجنائز باب ماجاء فی عذاب القبر:۱۰۷۱ وسنده حسن.

قوله تعالى:- فَإِذَا نُفِخَ فِي الصُّورِ

**د میدان حشر نقشه او د سختو حالاتو تذکره:-** -کله چه د راژوندی کیدو شپیلئی پوک وهلې شی اوخلق د خپلوقبرونونه راژوندی شی راپاسی نوپه هغه ورځ به نه رشتې اوخپلولئی باقی پاتې شی اونه به څوك دچانه تپوس کوی نه به د پلار په اولادباندې شفقت وی اونه به اولاد دپلار غم خوری.عجیبه ځان ځانی به وی. لکه چه ارشاد دې یودوست به دبل دوست نه سره دلیدونه هیڅ تپوس پوښتنه نه کوی(1) صحابه ګوری نیزدې سرې به وی په مصیبت کښې دې د ګناهونو په بوج کښې ورځبی دې خود هغه طرف ته به ګوری هم نه اونه به څه تپوس کوی بلکه سترګې به ترې واړوی. لکه څنګه چه پخپله په قرآن پاك کښې دی په هغه ورځ به سړې د خپل رورنه د خپلې مورنه دخپل پلارنه دخپلې ښځې نه اودخپلوبچونه لرې تختی(2)ابن مسعود فرمائی دقیامت په ورځ به الله ﷻ وراندینی روستنی ټول راجمع کوی بیابه یوآوازکونکې آواز کوی د چا چه څه حق د بل په ذمه وی رادې شی اود هغه نه دې خپل حق واخلی. نو که د چا حق د خپل پلار په ذمه وی یا د خپل اولاد په ذمه وی یاد خپلې ښځې به ذمه وی نوهغه به هم خوشحاله شی اوپه منډه به راځی اودخپل حق غوښتنه به شروع کوی(3)لکه چه په دې آیت کښې دی.

د مسنداحمدپه حدیث کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی فاطمه زما د زړه ټکړه ده کوم څیز چه هغه خفه کوی هغه ماهم خفه کوی اوچه کوم څیز هغه خوشحاله کړی هغه څیز ماهم خوشحالوی.دقیامت په ورځ به ټولې رشتې اوخپلولئی ماتې شی خوزما نسب اوزماحسب اوزما رشته دارئی به نه ماتیږی. (4) ددې حدیث اصل په بخاری اومسلم کښې هم شته چه حضور ﷺ فرمائیل فاطمه k زما د بدن ټکړه ده هغه خفه کونکې او تکلیف ورکونکې څیز ماخفه کونکې اوزماتکلیف کونکې دې. (5)

**د رسول کریم صلی الله علیه وسلم رشته به فائده ورکوی خو بدعتی ته نه:-** مسنداحمد کښې دی رسول الله ﷺ په منبرباندې اوفرمائیل د خلقو څه حال دې چه وائی د رسول الله ﷺ رشته به هم قوم ته هیڅ فائده نه رسوی.والله زما رشته په دنیاکښې او په آخرت کښې ملاوشوې ده.اې خلقوزه ستاسو د سامان مشر یم کله چه تاسو راځئی نو یوسړې به وائی یارسول الله ﷺ زه فلانکې یم زه به جواب ورکړم چه او نسب خودې ما اوپیژندلو خوتاسو خلقو زما نه پس بدعتونه راپیداکړی وو او په شابیرته مرتد شوی وئی(6)مسندامیرالمؤمنین عمربن خطاب کښې مونږ دا روایت په څو سندونوسره روایت کړې دې چه کله هغوی ام کلثوم بنت علی بن ابی طالب سره نکاح اوکړه نو فرمائیلې والله زما دې نکاح سره صرف داغرض وو چه ماد رسول الله ﷺ نه اوریدلی دی چه د قیامت په ورځ به هر یو حسب نسب کټ شی خوزما حسب اونسب. دا هم روایت دې چه هغوی د دې مهر د تعظیم او بزرګئی په وجه څلوېښت زره مقرر کړې وو. ابن عساکر کښې دی چه حضور ﷺ فرمائیل ټولې رشتې خپلولئی اودسخرګنئی تعلقات به بغیرزما د داسې تعلقاتونه د قیامت په ورځ پرې کیږی. په یوبل حدیث کښې دی ماد الله ﷻ نه دعااوکړه چه کوم ځائ زما نکاح شوې ده هغه ټول دې په جنت کښې هم ماسره وی نوالله ﷻ زما دعاقبوله کړه.دچاچه یوه نیکی هم دګناهونونه زیاته شوه هغه کامیاب شود دوزخ نه آزاد

---

(1) ۷۰/المعارج:۱۰.

(2) ۸۰/عبس:۳٤.

(3) الطبری:۷۲/۱۹.

(4) احمد:۳۲۳/٤وسنده حسن، مجمع الزوائد:۲۰۳/۹، حاکم:۱۵۸/۳.

(5) صحیح بخاری کتاب النکاح باب ذب الرجل عن ابنته فی الغیرة والانصاف:۵۲۳۰، صحیح مسلم:۲٤٤۹، ابوداؤد:۲۰۷۱، ترمذی:۳۸٦٦،ابن ماجة:۱۹۹۸، احمد:۳۲۸/٤.

(6) احمد:۱۸/۳.

اوجنت کښې داخل شو اوخپل مراد ته اورسیدو اود څه نه چه ویریدو د هغې نه بچ شو اود چا بدنی چه د نیکونه زیاتې شوې هغه هلاك شو او په نقصان کښې شو.حضورﷺ فرمائی د قیامت په ورځ به یوه فرښته به تله باندې مقرر وی چه هریوانسان به مینځ ته راولی اوتلې سره به نې اودروی بیابه نیکی او بدی تللې شی که نیکی زیاته شوه نو په اوچت آواز به اعلان کولې شی چه فلانکې خوئ د فلانکی خلاصې بیاموندلو اوس به دې نه پس هیڅ هلاکت ده له نه راځی اوکه بدی زیاته شوه نو آواز به کوی ټولوته به نې اوروی وائی به فلانکې د فلانکی خوئ هلاك شو.اوس هغه دبنیګړې نه محروم شو.ددې سندضعیف دې.داوٗد بن حجر راوی ضعیف اومتروك دې.داسې خلق به همیشه په دوزخ کښې وی د دوزخ اُوربه دهغوی مخ اوسیزی.مخونه به سیزی اوشاګانې سوزوی دوی به بې وسه وی اُوربه نه شی اخواکولې.حضورﷺ فرمائی هم رومبنی لمبه به دهغوی ټوله غوښه اوڅرمن دهغوی دهډوکونه جدا کړې د هغوی په قدمونو کښې به راپریوځی.هغوی به هلته بد شکله وی غاښونه به نې راوتلې وی شونډې به نې پورته ختلې وی اوښکته به راپریوتې وی. بره شونډه خو به نې تالو ته رسیدلې وی اود لاندې شونډه به نې نامه ته رسیدلې وی. (۱)

| | | | |
|---|---|---|---|
| اَلَمْ تَكُنْ | اٰيٰتِيْ | تُتْلٰى | عَلَيْكُمْ |
| آیا نه وو | آیتونو زما | چې لوستلې کیدل به | په تاسو باندې |
| آیا زمونږ آیاتونه به تاسو ته نشو لوستلې | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَكُنْتُمْ | بِهَا | تُكَذِّبُوْنَ ۝ | قَالُوْا | رَبَّنَا | غَلَبَتْ |
| نو وی تاسو | هغې لره | چې دروغ به مو ګڼړل | اوبه وائی کافران | اے ربه زمونږه | غالبه شوی وه |
| نو تاسو به هغه دروغژن ګڼړل . هغوی به وائی چې ائې زمونږ ربه ! مونږ خپلې بدبختې | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| عَلَيْنَا | شِقْوَتُنَا | وَكُنَّا | قَوْمًا | ضَآلِّيْنَ ۝ | رَبَّنَآ | اَخْرِجْنَا |
| په مونږ باندې | بدبختی زمونږه | اووو مونږه | یو قوم | بې لارې | اے ربه زمونږه | اوباسه مونږه |
| راګیر کړې ووا اومونږ دلارې نه بې لارې شوی خلق وو . ائې زمونږه ربه ! اوس مونږ ددې دوزخ نه | | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِنْهَا | فَاِنْ | عُدْنَا | فَاِنَّا | ظٰلِمُوْنَ ۝ |
| ددې دوزخ نه | نو که چرې | دوباره اوکړو مونږه (هغه قصور) | نو بیشکه مونږه | به ظالمان یو |
| اوباسه .........که مونږ دوباره داسې کارونه اوکړو نو بیشکه مونږ به ظالمان یو | | | | |

**قوله تعالی:-اَلَمْ تَكُنْ اٰيٰتِيْ تُتْلٰى عَلَيْكُمْ**

**قیامت کښې کافرانو ته سخته رټنه او د کافرانو پښیمانتیا:-** -کافران به د هغوی د کفر په وجه د ګناهونو په وجه اودهغوی دنه منلوپه وجه د قیامت په ورځ سخته رټنه وی ددې بیان کولې شی چه هغوی ته به الله ﷻ فرمائی چه زما ستاسوطرف ته رسولان درلیګلی وو په تاسوته مې کتابونه نازل کړې وو ستاسو شك شبه مې لرې کړې وه ستاسو هیڅ حجت مې باقې کړې نه وولکه چه ارشاد دې دې د پاره چه د خلقو عذرونه درسولانودراتلونه پس باقی پاتې نه شی(۲)اوفرمائی چه مونږترکومې رسول اونه لیګویه عذاب کوو نی نه(۳) یو بل آیت کښې دی کله چه دوزخ ته یوه ډله څی د هغه خاځ داروغه به تپوس کوی آیا

---

(۱) ترمذی کتاب تفسیر القرآن باب ومن سورة المؤمنین:۳۱۷۶، مسندابی یعلی:۱۳۶۷، احمد:۸۸/۳، حاکم:۲۴۶/۲،
(۲) ۴/النساء:۱۶۵.
(۳) ۱۷/الاسراء:۱۵.

تاسوله د الله ﷻ د طرف نه خبر ورکونکې نه وو راغلې؟(١) هغه وخت به دابدنصيب خلق اقرارکوی چه بې شکه ستا حجت پوره شوې وو خومونږ د خپلې بدقسمتئ او د زړه د سختوالي په وجه صحيح نه شو اوبه گمراهئ باندې کلك ولاړ وو اوبه نيغه لاره نه شو.اې الله اوس ته مونږ بيا دنيا ته واپس کړه که بيامو داسې اوکړه نوبې شکه مونږ ظالمان يواودسزا حقداريو.لکه چه ارشاد دې ﴿فَاعْتَرَفْنَا بِذُنُوبِنَا فَهَلْ إِلَىٰ خُرُوجٍ مِّن سَبِيلٍ﴾(٢)زمونږ دخپلو خطاگانو اقرار دې آيا اوس هم چرته د خلاصی لار ملاويدې شی؟الخ خوجواب به ورکولې شی چه اوس تولې لارې بندې د عمل دار اوکور فنا شواوس د بدلې کور او دار دې. د توحيدپه وخت کښې مو شرك کولو اوس د پښيمانتيانه څه مطلب؟

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | اخْسَئُوا | فِيهَا | وَلَا تُكَلِّمُونِ ۝ | إِنَّهُ | كَانَ | فَرِيقٌ |
| اوبه وائي الله | ذليله اوسې | په دې کښې | او مه کوئ خبرې زما سره | بيشکه | چې وه | يوه ډله |
| الله ﷻ به اوفرمائي چې لرې شئ اهم په دې کښې پراته اوسئ اوماسره خبرې مه کوئ نی احقيقت دادې | | | | | | |
| مِّنْ عِبَادِي | يَقُولُونَ | رَبَّنَا | آمَنَّا | فَاغْفِرْ لَنَا | | |
| دبندگانو زما نه | چې ونيل به هغوئ | اے ربه زمونږه | ايمان راوړو مونږه | نو ښښنه اوکړه مونږ ته | | |
| چې زما دبندگانو يوه ډله وه اچې دا دعا به ئي کوله ا ائي زمونږ ربه ا مونږ ا يمان راوړې دې انو ته راته | | | | | | |
| وَارْحَمْنَا | وَأَنتَ | خَيْرُ | الرَّاحِمِينَ ۝ | فَاتَّخَذْتُمُوهُمْ | سِخْرِيًّا | |
| او رحم اوکړه په مونږه | اوته | بهتره | درحم کونکونه ئې | نو اونيول تاسو هغوئ | په توقو سره | |
| ښښنه اوکړه او په مونږ رحم اوکړه او ته دهر چا نه زيات رحم کونکې ئې انو تاسوبه هغوئ پورې توقې | | | | | | |
| حَتَّىٰ | أَنسَوْكُمْ | ذِكْرِي | وَكُنتُم | مِّنْهُمْ | | |
| تر دې پورې | چې هير کړو هغوئ ستاسو نه | ياد زما | اووئ تاسو | چې په هغوئ پورې | | |
| کولې اتردې چې(دغې مشغوله) درنه زه هم هير کړې ووم او تاسو لگيا وئې په هغوئ پورې مو | | | | | | |
| تَضْحَكُونَ ۝ | إِنِّي | جَزَيْتُهُمُ | الْيَوْمَ | بِمَا | | |
| به مو خندل | بيشکه زه چې يم | بدله ورکړه ما هغوئ ته | نن ورځ | په سبب دهغې | | |
| خنداگانې کولې انونن ما هغوئ ته دصبر بدله دا ورکړه اچې صرف هغوئ | | | | | | |
| صَبَرُوا | أَنَّهُمْ | هُمُ | الْفَائِزُونَ ۝ | | | |
| چې صبر اوکړو هغوئ | بيشکه هغوئ | خاص هم هغوئ | کاميابی موندونکی دی | | | |
| پوره پوره کامياب شول | | | | | | |

قوله تعالى:- قَالَ اخْسَئُوا فِيهَا وَلَا تُكَلِّمُونِ ۝

په دوزخيانو باندې د الله ﷻ غصه:- -کافران چه کله ددوزخ نه د وتلو خواهش کوی نوهغوی ته به جواب ملاويږی چه اوس خوبه تاسو په دې کښې په ذلت سره پراته ئی خبرداربيادا سوال زمانه اونه کړئی. افسوس دا به د رحمن کلام وی چه دوزخيان به د هرقسم خيرنه محروم کړی.(الله ﷻ دې مونږ بچ کړی. اې درحمتونو والاپروردگاره مونږ دخپل رحمت په لمن کښې راپټ کړه. اود خپلې رټنې او غصې نه مو

---

(١) ٦٧/الملك:٨.

(٢) ٤٠/غافر:١١.

بچ کړه امين)ابن عمر ﷺ فرماني چه دوزخيان به اول د دوزخ داروغه ګان راغواړي څلويښت کاله پورې به هغوی ته چغې وهي خوهيڅ جواب به ورته نه ملاويږي څلويښت کاله پس به ورته جواب ملاويږي چه تاسو هم دلته پراته اوسئ.دهغوی د چغوصورو خو به نه د دوزخ داروغه سره څه وقعت وی اونه الله ﷻ سره.بيا به نيغ په نيغه الله ﷻ ته فرياد کوی واني به اې الله مونږ دخپلې بدبختئ په وجه هلاك شو مونږ پخپله ګمراهئ کښې ډوب شو اې الله اوس خومونږ له ددې ځائ نه خلاصې راکړه. که بياهم مونږ هغه خراب کارونه اوکړل نوچه څه سزا دې خوښه وی راکړه.ددې جواب به دوی ته ددنيا ددوچند عمرد وخت پورې نه شي ورکولې.بيا به جواب ملاويږي چه درحمت نه لرې شئ خوار اوذليل شئ او هم په دوزخ کښې پراته اوسئ اوما سره خبرې مه کوئ. اوس به دوی نااميده شي اود خرو غوندې چغې صورې به وهي شور به کوی سوزيږي به اوريتيږي. هغه وخت به د هغوی مخونه بدل شي شکلونه به ئې وران شي تردې چه بعضې مؤمنان به دشفاعت اجازت واخلی رابه شي خودلته به هيڅ څوك هم اونه پيژنی دوزخيان به هغوی ته په کتو واني چه زه فلانکې يم خودوی به جواب ورکړي غلط دی مونږ خوتانه پيژنو.اوس به دوزخيان خلق الله ﷻ ته چغې وهي هغه جواب به ورته ملاوشي کوم چه پورته بيان شو. بيابه ددوزخ دروازې بندکړې شي اودوی به هم هلته پراته وی.ددوی د شرمنده کولو اوپښيمانه کولود پاره به دهغوی يوه زبردسته ګناه پيش کولې شي چه هغوی به دالله ﷻ دمحبوب خلقوپورې ټوقې مسخرې کولې اوددوی په دعاګانوپورې به مو خنداګانې کولې هغه مؤمنانو به دخپل رب نه رحمت او ښښنه غوښتله اواې ارحم الراحمين به ئې لوستلو اوونيلې خودوی به هغه په خنداګانو کښې الوزول او دهغوی په بغض کښې به مودرب ذکرېرېخودلواودهغوی په دعاګانواوعبادتونوپورې به موخندا ګانې کولې لکه چه ارشاد رباني دې ﴿ إِنَّ الَّذِينَ أَجْرَمُوا كَانُوا مِنَ الَّذِينَ آمَنُوا يَضْحَكُونَ ﴾[1] يعنی ګناهګارانو به ايماندارانوپورې خنداګانې کولې اوهغوی پورې به ئې ټوقې کولې.اوس به الله ﷻ هغوی ته فرماني ما خپلوايماندارووصبرکونکوبنديګانوته بدله ورکړې ده هغوی نيك بختئ سلامتيااو خلاصې بياموندلو او پوره کامياب شول.

| قٰلَ كَمۡ | لَبِثۡتُمۡ | فِى الۡاَرۡضِ | عَدَدَ سِنِيۡنَ ﴿۱۱۲﴾ | قَالُوۡا | لَبِثۡنَا |
|---|---|---|---|---|---|
| اوبه واني الله څومره | اوخت تير کړوتاسو | په زمکه کښې | په شمار دکلونو | اوبه واني هغوئ | وخت تير کړو مونږ |

ته ورته اووايه چې (ښه) تاسو دکلونو په حساب څومره موده په دنيا کښې تيره کړې ده ؟ هغوئ به اوواني چې

| يَوۡمًا | اَوۡ بَعۡضَ يَوۡمٍ | فَسۡئَلِ | الۡعَآدِّيۡنَ ﴿۱۱۳﴾ | قٰلَ | اِنۡ لَّبِثۡتُمۡ |
|---|---|---|---|---|---|
| يوه ورځ | ايا څه حصه دورځې | پس تپوس اوکړه | دشمارکونکونه | اوبه واني الله | چې وخت نۀ دې تير کړې تاسو |

يوه ورځ قدربه پاتې شوی وو يا د ورځې څه لږه حصه به وه | دشمير کونکونه تپوس او کړه | (الله ﷻ)

| اِلَّا | قَلِيۡلًا | لَّوۡ اَنَّكُمۡ | كُنۡتُمۡ | تَعۡلَمُوۡنَ ﴿۱۱۴﴾ | اَفَحَسِبۡتُمۡ |
|---|---|---|---|---|---|
| مګر | لږ | افسوس که چرې تاسواوئ تاسو | چې پوهيدلي وئ | په هغه وخت کښې | آيا نو ګمان کوئ تاسو |

به اوفرمائي چې تاسو (په دنيا کښې ، ډيره نه بلکه لږه موده پاتې وې اکه تاسو پوهيږئ آيا

| اَنَّمَا | خَلَقۡنٰكُمۡ | عَبَثًا | وَّاَنَّكُمۡ | اِلَيۡنَا | لَا تُرۡجَعُوۡنَ ﴿۱۱۵﴾ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې بيشکه پيدا کړی يئ مونږ تاسو | | فضول | او چې بيشکه تاسو | مونږ ته | نۀ به راوستلې کيږئ واپس |

ستاسو داخيال وو | اچې مونږ تاسو بې فائدې پيدا کړی يئ | او داچې تاسو به مونږ ته نه واپس کيږئ

[1] ۸۳/المطففين:۲۹.

| فَتَعٰلَى | اللّٰهُ | الْمَلِكُ | الْحَقُّ ۚ | لَآ اِلٰهَ | اِلَّا | هُوَ ۚ | رَبُّ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| پس ډير اوچت دي | الله | چې بادشاه | حقيقي دي | نشته بل خداني | مګر | هم هغه دي | چې مالك دي |
| هغه الله ﷻ چې بادشاه حقيقي دي | دهغه شان اوچت دي | د هغه نه سوا بل معبودنشته | | | | | |
| الْعَرْشِ | الْكَرِيْمِ ﴿۱۱۶﴾ | | | | | | |
| دعرش | عزتمند | | | | | | |
| هغه دعزت والا دعرش مالک دي | | | | | | | |

قوله تعالى:- قٰلَ كَمْ لَبِثْتُمْ فِى الْاَرْضِ عَدَدَ سِنِيْنَ ﴿﴾

**د كافرانو دالله ﷻ نه سوال** :- بيان كولې شی د دنياپه لړشان عمرکښې دوی بدکاروکښې اخته شوکه نيکان شوي وونودالله ﷻ دنيکانوخلقوسره به نی دخپلونيکوډيرلوئ اجر بيامونډلې وې.نن به د هغوی نه تپوس کولې شی چه تاسوپه دنياکښې څومره وخت پاتې وئی؟جواب به ورکولې شی چه ډير کم يوه ورځ يا ددې نه هم کم د حساب پيژندونکوخلقو نه معلومه کړنی جواب به ملاو شی چه دومره موده يا ددې نه زياته خويه واقع کښې هغه د آخرت د مودې په مقابله کښې ډيره زياته کمه ده كه تاسو په دې پوهيدلئی نودې فانی له به موپه دې هميشه والی والا ژوند له ترجيح نه ورکوله اويدی کولوسره په دې لړه شان موده کښې به مو الله ﷻ دومره نه خفه کولو.که دغه لړ شان وخت موپه صبربرداشت اود الله ﷻ په عبادت کښې تيرکړې وو نونن به مو راج کولو هم خوشحاله خوشحالی به وه.

**د مؤمنانو نه به هم دغه شان سوال کيږي**:-رسول الله ﷺ فرمائی کله چه جنتيان او دوزخ يان خپل خپل ځائ ته اورسی نوالله ﷻ به دمؤمنانونه تپوس کوی چه تاسوپه دنياکښې څومره موده پاتې شوئی؟ هغوی به وائی دغه يوه نيمه ورځ الله ﷻ به فرمائی چه بياخوتاسو ډير ښه پاتې شوئی چه د دومره لږو نيکومودومره بدله بيامونډله چه زمارحمت رضامندی اوجنت موحاصل کړو دهميشه والی.بيابه د دوزخيانونه داتپوس کولې شی هغوی به هم دومره موده اوښائی نوالله ﷻ به اوفرمائی ستاسودا سودا کړی خوډيره د نقصان ده چه په دومره موده کښې تاسو زما خفګان غصه او دوزخ واخستلو چرته به چه تاسو هميشه پراته نی.

**انسان بې کاره نه دې جوړ کړې شوې** :-آياتاسوخلقوداګنړنی چه تاسو بې کاره اوبې ارادې پيداکړې شوی نی؟ستاسو په پيداکولوکښې هيڅ حکمت نشته؟ صرف د لوبوټوقود پاره تاسو پيدکړې شوی نی چه د خناورو په شان ټوپونه وهنې ګرځئی؟ د ثواب اوعذاب مستحق نه نی؟ داګمان غلط دې تاسود الله ﷻ د عبادت اود حکمونوپه ځائ راوړلود پاره پيداکړې شوی نی. آيا تاسو داخيال کونی بې پرواه شوی نی چه ستاسو زمونږ طرف ته هډوواپس کيدل نشته؟داهم ستاسو غلط خيال دې﴿اَيَحْسَبُ الْاِنْسَانُ اَنْ يُّتْرَكَ سُدًى﴾[1] ولې داخلق داګمان کوی چه دوی به داسې بې کاره پريخودلې شی؟ د الله ﷻ ذات د دې نه اوچت اوبزرګ دې چه هغه څه عبث کار اوکړی يابيکاره جوړول ورانول اوکړی هغه ريښتونې بادشاه د دې نه پاك دې اود هغه نه بغيرڅوك معبودنشته. هغه دعرش عظيم مالك دې چه په ټول مخلوق باندې لکه د چت خوردې هغه ډير ښانسته اوډير ښکلې دې ښانسته شکل او نيکه نظاره نی ده لکه چه ارشاد دې په زمکه کښې مونږ هره ښکلې جوړه پيداکړې ده.[2]

---

[1] ۷۵/القيامة: ۳۶.
[2] ۳۱/لقمان: ۱۰.

**د عمر بن عبدالعزیز دلسوزه خطبه:-** خلیفة المسلمین امیرالمؤمنین عمر بن عبدالعزیز په خپله آخری خطبه کښې دالله ﷻ دحمد اوثنا بیانولونه پس اوفرمائیل چه تاسوعبث اوبیکاره نه ئی پیدا کړې شوی او تاسو بې کاره نه ئی پریخودلی شوی یادساتئی د وعدې یوه ورځ ده په کومه کښې چه به پخپله الله ﷻ د فیصلې کولود پاره نازلیږی. هغه په نقصان کښې پاتې شو هغه خساره اوچته کړه هغه بې نصیبه او بدبخته پاتې شو هغه محروم اوخالی لاس پاتې شوڅوك چه دالله ﷻ درحمت نه لرې شو اود جنت نه رامنع کړې شو.دکوم پلنوالې چه دټولوزمکواوآسمانونودې. آیا تاسو ته نه ده معلومه چه صبابه د قیامت په ورځ هغه درب د عذاب نه بچ شی د چا په زړه کښې چه د دغه ورځې ویره وی اوڅوك چه دا فانی دنیاپه هغه باقی آخرت باندې قربان کوی. دا لږه د هغه ډیرې د حاصلولود پاره بې پرواه خرچ کوی اوخپلې دې ویرې ته د امن په بدلولو کښې سامان راپیداکوی. آیا تاسو نه ګورئی چه تاسو نه وړاندې هلاك شو د چا په ځای چه اوس تاسو نی دغه شان به تاسو هم ختم کړې شئی اوستاسو په ځای به نور راتلونکی راځی تردې چه یووخت به راشی چه دا ټوله دنیا به راغونډه شی اود هغه خیرالوارثین په دربارکښې به حاضری ورکړی. خلقو خیال خو اوکړئی چه تاسو شپه ورځ خپل مرګ ته نیزدې کیږئی اوپخپلوقدمونوخپلوقبرونوته روان ئی.ستاسو میوې پخیږی اوستاسوامیدونه ختمیږی ستاسو عمرونه پوره کیږی ستاسو اجل نیزدې راغلې دې تاسو به د زمکې په کندوکښې خښولې شئی چرته چه به نه بستره وی اونه تکیه دوستان اوملګری به درنه پاتې شی حساب کتاب په شروع شی. هغه عملونه به مخې ته راشی کوم چه مو پریخی دی هغه به د نورو شی کوم چه مو وړاندې لیګلی دی هغه به مخې ته وینئی د نیکو به محتاج ئی دبدوسزاګانې به خورئی.اې دالله ﷻ بندیګانو دالله ﷻ نه اوویریږئی د هغه خبرې وړاندې کړئی دهغې نه وړاندې چه ستاسومرګ راشی دهغې نه وړاندې دابدی یعنی همیشه والی د پاره تیارشئی. هم دومره ئی وئیلې وو چه د ژړا غلبې ئی آواز اوچت کړو په مخ ئی د څادر ګوټ واچولو او په ژړاشو اود حاضرینوهم ژړا فریاد شروع شو.

**د پیری علاج دعا:-** ابن ابی حاتم کښې دی یوبیمار سړې کوم چه یوپیری تنګولو.حضرت عبدالله بن مسعود ؓ له راغلو نو هغه ﴿اَفَحَسِبْتُمْ اَنَّمَا خَلَقْنٰكُمْ عَبَثًا وَّاَنَّكُمْ اِلَيْنَا لَا تُرْجَعُوْنَ۝ فَتَعٰلَى اللّٰهُ الْمَلِكُ الْحَقُّ ۚ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ رَبُّ الْعَرْشِ الْكَرِيْمِ۝ وَمَنْ يَّدْعُ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ ۙ لَا بُرْهَانَ لَهٗ بِهٖ ۙ فَاِنَّمَا حِسَابُهٗ عِنْدَ رَبِّهٖ ۚ اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الْكٰفِرُوْنَ۝ وَقُلْ رَّبِّ اغْفِرْ وَارْحَمْ وَاَنْتَ خَيْرُ الرّٰحِمِيْنَ۝﴾ آیاتونه د هغه په غوږ کښې اولوستل هغه ښه شو.کله چه حضور ﷺ له د دې ذکر راغلونو وئی فرمائیل عبدالله تاد ده په غوږکښې څه لوستلې وو؟ هغه اوخودل نو حضور ﷺ اوفرمائیل تا دا آیاتونه د ده په غوږ کښې اولوستل هغه دې اوسوزولو والله که دا آیاتونه څوك په ایمان سره او په یقین سره په یوغرباندې اولولی نوهغه به هم د خپل ځای نه اخواشی([1]) ابونعیم m روایت نقل کړې دې چه ابراهیم بن حارث ؓ اوفرمائیل چه مونږ رسول الله ﷺ یولښکرسره اولیګلو اووئی فرمائیل چه مونږ سحر مابښام ﴿اَفَحَسِبْتُمْ اَنَّمَا خَلَقْنٰكُمْ عَبَثًا وَّاَنَّكُمْ اِلَيْنَا لَا تُرْجَعُوْنَ۝﴾ لولو.مونږ برابر د دې تلاوت دواړه وخته جاری اوساتلو الحمدلله مونږ په غنیمت او سلامتیاسره واپس شو. حضور ﷺ فرمائی زما د امت د ډوبیدو نه بچ کیدل په کشتوکښې دسوریدوپه وخت کښې داوئیل دی.﴿بسم الله الملك الحق وما قدروا الله حق قدره والارض جمیعا قبضته یوم القیامة والسموات مطویات بیمینه سبحانه وتعالی عما یشرکون بسم الله مجریها ومرسها ان ربی لغفور رحیم﴾

| وَمَنْ يَّدْعُ | مَعَ اللّٰهِ | اِلٰهًا اٰخَرَ | لَا بُرْهَانَ |
| --- | --- | --- | --- |
| او څوک چې رابلي | دالله سره | خدائي بل | چې نشته دلیل |
| او څوک چې دالله ﷻ سره بل معبود رابلي | | | د دې باوجود |

[1] مسندابی یعلی:۴۰۴۵.

| لَهٗ | بِهٖ | فَاِنَّمَا | حِسَابُهٗ | عِنْدَ رَبِّهٖ | اِنَّهٗ |
|---|---|---|---|---|---|
| هغه لره | په عبادت د بل چا | نو بیشکه | حساب دهغه | دهغه درب سره دي | بیشکه شان دادي |

چي هيڅ دليل ورسره نه وي | نو دهغه حساب به خامخا دخپل رب سره کیږي

| لَا يُفْلِحُ | الْكٰفِرُوْنَ | وَقُلْ | رَّبِّ | اغْفِرْ |
|---|---|---|---|---|
| چي خلاصي نه شي مونديٍ | دا کافران | اواووايه اے نبي | اے ربه زما | معافي اوکړه |

دايقيني ده چي کافران کاميابيدي نشي || او ته ورته اووايه چي اني زماربه !

| وَارْحَمْ | وَاَنْتَ | خَيْرُ الرّٰحِمِيْنَ |
|---|---|---|
| او رحم اوکړه | اوته | بهتره دټولو رحم کونکو نه ئي |

ما اوبخښه || او په ما رحم اوکړه || او ته دټولو نه ښه رحم کونکي ئي

**قوله تعالى:- وَمَنْ يَّدْعُ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ**

**په مصيبت کښې په کارراتلونکې ځوک دي** :- مشرکان الله واحدويروی اوبيان فرمائي چه هغوی سره د هغوی دشرك کولوهيڅ دليل نشته. داجمله معترضه ده او جواب شرط ﴿فانما﴾والا جملې په ضمن کښې دی يعنی دهغوی حساب الله ﷻ سره دي.کافران هغه سره کامياب کيدې نه شي هغوی د خلاصی نه محروم پاتې کيږی.

**يو سړی سره د رسول کريم صلی الله عليه وسلم سوال وجواب**:-يوسړی نه رسول الله ﷺ تپوس اوکړو ته د چا چا عبادت کوې؟ هغه ونيل د الله او فلانکی فلانکی. حضورﷺ اوفرمائيل چه په دوی کښې ته کوم يوداسې ګڼې چه ستا په مصيبت کښې به په کار راشی؟ هغه ونيل صرف الله جل وعلا. حضورﷺ اوفرمائيل چه کله په کارراتلونکې هم هغه يودې نو بيا هغه سره د دې نورو د عبادت کولوڅه ضرورت دی؟ آيا ستا خيال دې چه هغه به يوازې ستاد پاره کافی نه وی؟ هغه ونيل چه داخونه شم ونيلې البته اراده مې داده چه دنورو عبادت کولوسره به دهغه پوره شکر په ځائ راوړم.حضورﷺ اوفرمائيل سبحان الله علم سره دانې علمی؟بنه پوهيږی اوبياناپوهه جوړيږې.اوس ترې هيڅ جوړه نه شوه نود مسلمانيدو ندپس به نې ونيل زه حضورﷺ قائل کړم. داحديث مرسل دې ترمذی کښې هم مسنداً نقل دی[1]بيائی يوه دعا اوخودله د غفر معنی کله چه هغه مطلق وی نود ګناهونو ختمولو اوهغه د خلقو نه دپټولوراخی اودرحمت معنی په صحيح لار باندې قايم کيدل اود خواقوالو او افعالو توفيق ورکولو دی.

| آياتونه | | سورة النور مدنية وهي اربع وستون اٰية وتسع ركوعات | | ركوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ۳ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم کونکې دې | | ۹ |

| سُوْرَةٌ | اَنْزَلْنٰهَا | وَفَرَضْنٰهَا | وَاَنْزَلْنَا |
|---|---|---|---|
| دا يو سورت دې | چې نازل کړې دې مونږ دا | او فرض کړې دې مونږه دا | او نازل کړی دی مونږه |

دايو سورة دې چې مونږ نازل کړو || او ددې (حکمونه مو په تاسو) فرض کړل | او

[1]) سنن الترمذی:۳۴۸۳.

فِيهَآ اٰيٰتٍۢ بَيِّنٰتٍ لَّعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ ۝١ اَلزَّانِيَةُ

په دې کښې آيتونه | واضحه | دپاره ددې چې تاسو | نصيحت قبول کړئ | زناکاره ښځه |

په دې کښې مو واضحه حکمونه نازل کړل | چې تاسو ترې نصيحت حاصل کړئ | زناکاره

وَالزَّانِيْ فَاجْلِدُوْا كُلَّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ ۪

او زناکار سړې | پس اووهئ تاسو | هر يو | دهغوئ دواړو نه | سل | درې |

اوزنارکار سړې په دواړو کښې هريو سل سل کوړې اووهئ

وَّلَا تَاْخُذْكُمْ بِهِمَا رَاْفَةٌ فِيْ دِيْنِ اللّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ

اونه دې نيسی تاسو لره | په دغو دواړو باند | زړه سواندی | په معامله ددين دالله کښې | که يئ تاسو

اوتاسو ته دې په دې دواړو دالله ﷻ د حکم په نافذ کولو کښې هيڅ ترس رانشی | که چرې

تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ۚ وَلْيَشْهَدْ عَذَابَهُمَا طَآئِفَةٌ

چې ايمان لرئ | په الله باند | اوپه ورځ دآخرت | اوحاضر دشی | عذاب ددې دواړو ته | يوه ډله

تاسو په الله ﷻ او دقيامت په ورځ باور کوئی | اوپکاردی چې د دې دواړو کسانو سزا ته دې د

مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ۝٢

دمومنانونه |

مسلمانانو يوه ډله حاضره (ولاړه) وی |

**قوله تعالی:-** اَلزَّانِيَةُ وَالزَّانِيْ فَاجْلِدُوْا كُلَّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ ۪

**درجم حداودکوړو سزا:-** ددې بيان نه چه مونږ داسورت نازل کړېدې ددې سورت بزرګی اوضرورت ښکاره کول دی.ددې نه دامقصدنه دې چه نورسورتونه ضروری اودبزرګنی والاته دی.د **(فرضناها)** معنی مجاهد اوقتاده دابيان کړې ده چه په دې کښې دحلال حرام امر نهی اوحدودوغيره بيان دې.امام بخاری فرمائی دامونږ په تاسواوتاسونه پس راتلونکوياندې مقررکړېدې[1] پدې کښې صفاصفا کولاو کولاو ښکاره احکام بيان کړی دی دې دپاره چه تاسو نصيحت او عبرت حاصل کړئی اود الله ﷻ احکام يادداوساتئی او بيا په دې باندې عمل اوکړئی.بيائی دزناکارئی شرعی سزا بيان کړه.زناکار خو به يا ناواده کړې وی يعنی خلمې يا واده کړې به وی يعنی هغه چه د حريت بلوغت او عقل په حالت کښې په شرعی نکاح سره يوې ښځې سره ملاو شوې وی. خلمې چه د هغه نکاح نه وی شوې اوزنائی اوکړه نود هغه حدهم هغه دې چه په دې آيت کښې بيان شوې دې يعنی سل (۱۰۰)کوړې.دجمهوروعلماؤ په نيز به دې ديوکال د پاره د وطن نه بهر کول هم وی. اود امام ابوحنيفه قول دې چه دا د وطن نه ويستل د امام په رائې کښې دی که هغه غواړی نودې بهردې کړی اوکه غواړی نوپريږدې دی.

---

[1] صحيح بخاری کتاب التفسيرسورة النورقبل حديث:۴۷۴۵.

## د زانی دپاره د جلا وطنئ حکم

**مسلک حنفی:**- دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز په وادهٔ شوی عاقل بالغ زنا کارباندې صرف کوړې دې جلاوطنی نشه البته قاضی دسیاست په طورئې جلا وطن کولې شی خودحدزناپه طوربه نشی جلا وطن کولې (تفسیر مظهری (۳۱۶/۶)-

**دجمهورو دلیل:**-د جمهورو دلیل خود بخاری اومسلم هغه حدیث دې په کوم کښې چه دوه اعرابی رسول الله ﷺ له راغله یوونیل یا رسول الله ﷺ زما خوئ ده سره نوکروو اود ده ښځې سره ئې زناکړې ده ماد هغې په فدیه کښې سل چیلئې او یوه وینځه ورکړه بیا ما د علماؤنه معلومات اوکړو نومعلومه شوه چه زما په خوئ باندې شرعی سزا سل کوړې دی او د یوکال د پاره د وطن نه ویستل دی د ده په ښځه باندې رجم یعنی سنګسارکول. حضور ﷺ اوفرمائیل واورئ زه به تاسوکښې د الله ﷻ د کتاب صحیح فیصله کوم. وینځه او چیلئې خو به تاته واپس درکولې شی او ستا په خوئ باندې سل کوړې اود یوکال دپاره ویستل دی اواې انیس ته دده د ښځې بیان واخله (داحضرت انیس ؓ د قبیله اسلم یوسړې وو)که هغه دخپلې ګناه اقرار اوکړی نوهغه سنګسارکړه. هغه بی بی اقرار اوکړواوهغه سنګسار کړې شوه. (۱)
د دې حدیث نه ثابتیږی چه په ناواده کړی باندې سلوکوړوسره د پوره کال پورې د وطن نه ویستل هم دی اوکه واده کړې وی نوهغه به رجم کولې شی.

**د رجم متعلق درسول کریم صلی الله علیه وسلم خطبه:**-موطاء امام مالك کښې دی حضرت عمر ؓ په خپله خطبه کښې د حمد او ثنانه پس اوفرمائیل خلقو الله ﷻ حضرت محمد ﷺ په حقه سره رالیګلې اویه حضور ﷺ باندې خپل کتاب نازل کړې دې په دې کتاب الله کښې درجم کولو آیت هم وو کوم چه مونږ تلاوت کړو یادمو کړو اویه هغې باندې موعمل هم اوکړو.پخپله د حضور ﷺ په زمانه کښې هم رجم شوې اومونږ هم دحضور ﷺ نه پس رجم کړې دې زه ویریږم چه څه زمانه تیریدونه پس څوك دا اونه وائی چه مونږ رجم په کتاب الله کښې نه وینو اوداسې نه وی چه هغوی د الله ﷻ دافریضه کومه چه الله ﷻ پخپل کتاب کښې نازل کړې پریږدی اوګمراه شی. په کتاب الله کښې د رجم حکم مطلق حق دې په هغه باندې چه زنااوکړی او واده کړې وی که هغه سړې وی اوکه ښځه اود هغه په زنا باندې شرعی دلیل وی یاحمل وی یااقراروی.داحدیث په بخاری اومسلم کښې ددې نه هم اوږد دې(۲)مسند احمد کښې دی هغوی په خپله خطبه کښې اوفرمائیل خلق وائی چه د رجم یعنی سنګسارئی مسئله مونږ په قرآن کښې نه وینو په قرآن کښې صرف دکوړو وهلوحکم دې یادساتئی پخپله رسول الله ﷺ رجم کړې دې اومونږ هم دحضور ﷺ نه پس رجم کړې که ماته دا ویره نه وه چه خلق به وائی په قرآن کریم کښې څه نه وو عمر ؓ اولیکل نو ما به د رجم آیت داسې لیکلوڅنګه چه نازل شوې وو(۳)داحدیث په نسائی کښې هم شته.مسنداحمد کښې دی چه هغوی په خپله خطبه کښې درجم ذکر اوکړو اووئی فرمائیل رجم ضروری دې هغه دالله ﷻ دحدونونه یوحد دې. پخپله حضور ﷺ رجم کړې اود هغوی نه پس مونږ هم رجم کړې دې.که دخلقو دې خبرې ویره نه وه چه عمر ؓ په کتاب الله کښې زیاتې کړې کوم چه په کښې نه ووتومابه د رجم آیت په کتاب الله کښې یوطرف ته لیکلې وو.عمربن خطاب ؓ عبدالرحمن بن عوف ؓ اود فلانکی اود فلانکی شهادت دې چه حضور ﷺ رجم کړې اومونږ هم رجم کړې دې.یادساتئی تاسو نه

---

(۱) صحیح بخاری کتاب الصلح باب اذا اصطلحوا علی صلح جور فالصلح مردود:۲۶۹۵، صحیح مسلم:۱۶۹۷، ابوداؤد:۴۴۴۵، ترمذی:۱۴۳۳، ابن ماجة:۲۵۴۹، احمد:۱۱۵/۴، ابن ماجة:۴۴۳۷.
(۲) صحیح بخاری کتاب الحدود باب رجم الحبلی فی الزنااذا احصنت:۶۸۳۰، صحیح مسلم:۱۶۹۱
(۳) احمد:۲۹/۱، السنن الکبری للنسائی:۷۱۵۱وسنده صحیح.

پس داسې خلق راتلونکي دي چه رجم شفاعت او عذاب قبر به دروغ ګڼي اودا خبره هم چه څه خلق به د دوزخ نه واپس راويستلې شي چه هغه به سکاره شوي وي[۱]مسند احمد کښې دي چه حضرت عمر ﷺ اوفرمائيل رجم د حکم نه انکارکونکی د هلاکت نه بچ شه[۲]امام ترمذی هم دا راوړې دې اودې ته ئې صحيح ونيلې. [۳]

**درجم ايت منسوخ دې حکم ئې باقي دې:**-ابويعلى موصلي کښې دي چه خلق مروان سره ناست وو زيدبن ثابت ﷺ هم ووهغوی اوفرمائيل مونږ په قرآن کښې لوستل چه واده کړې سړې يابنځه کله زناکاری اوکړی نوهغه خامخا رجم کوئی.مروان ونيل بياتاسودا آيت په قرآن کښې اونه ليکلو؟ ونی فرمائيل چه په مونږکښې کله ددې ذکر اوشو نوعمر بن خطاب ﷺ اوفرمائيل زه ستاسو تشفي کوم. يو سړې نبی ﷺ له راغلو هغه حضور ﷺ ته داسې داسې ذکر اوکړواود رجم بيان نې اوکړو. چا ونيل يارسول الله ﷺ تاسو د رجم آيت اوليکئی حضور ﷺ اوفرمائيل چه اوس خوزه دا ليکلې نه شم. ياد دې په شان روايت نسائی کښې هم دې[۴]د دې ټولواحاديثونه ثابت شو چه درجم آيت اول ليکلې ووبياپه تلاوت کښې منسوخ شواوحکم نې باقي پاتې شو.والله اعلم.پخپله حضوراکرم ﷺ دهغه سړی دښځې د رجم کولوحکم ورکړو چاچه خپل نوکرسره بدکاری کړې وه. دغه شان حضور ﷺ ماعز ﷺ او يوه غامديه ښځه رجم کړه. په دې ټولورواياتوکښې دا نقل نه دی چه د رجم نه اول حضور ﷺ هغوی ته کوړې هم لګولې وی بلکه په دې ټولو صحيح اوصفا احاديثوکښې صرف د رجم ذکر دې په يوکښې هم د کوړوذکر نشته. د دې د پاره د جمهورو علماؤ د اسلام هم دا مذهب دې. امام ابوحنيفه اوامام شافعي n هم دې طرف ته تلی دی.

### د رجم سره کوړې نشی جمع کولې

**مسلک حنفی:**-اوپه محصن کښې به د سنګسارسره د کوړو دواړه سزاګانې نشی جمع کولې.ځکه چه رسول الله ﷺ دادواړه سزاګانې نه دی جمع کړې.اوددې وجې هم چه دسنګسارنه پس دکوړو وهلوڅه فائده نشته.ځکه چه نوروته دتنبيه ورکولوفائده په سنګسارکولوسره حاصليږی.ځکه چه سخته سزا خو سنګسارکول دی.اوخپله زناکارته هم دهغه دمرګ نه پس تنبيه نشی ملاويدې.تسهيل الهدايه (۱۲۶/۴)

امام احمد فرمائی چه اول هغه په کوړو وهل پکاردی بيارجم کولوپکاردی دې دپاره چه په قرآن اوحديث دواړو باندې عمل اوشی. لکه چه داميرالمؤمنين حضرت علی ﷺ نه نقل دی چه کله هغوی له سراجه راوستله چه واده کړې ښځه وه اوپه زناکارئی کښې راغلې وه نو هغوی د زيارت په ورځ هغه په کوړو اووهله اود جمعه په ورځ نی سنګسارکړه او ونی ونيل په کتاب الله باندې مې عمل اوکړو په کوړو مې اووهله اود رسول الله ﷺ په سنتومې عمل اوکړو سنګسار مې کړله. [۵]

مسنداحمدکښې سنن اربعه اومسلم شريف کښې دی رسول الله ﷺ اوفرمائيل زما خبره واخلئی زما خبره واخلئی الله ﷻ د هغوی د پاره لار اوويستله که ناواده کړې سړې ناواده کړې ښځې سره زنااوکړی نوسل کوړې او د کال د پاره د وطن نه ويستل دی اوکه واده کړې واده کړی سره زنااوکړی نورجم. [ ]

---

[۱] احمد:۲۳/۱.

[۲] احمد:۳۶/۱وسنده صحيح، بيهقي:۲۱۲/۸، مسندالشافعي:۱۶۳/۱،ترمذي:۱۴۳۱، بتصرف يسير.

[۳] ترمذي: كتاب الحدود باب ماجاء في تحقيق الرجم:۱۴۳۱وهوصحيح.

[۴] السنن الكبرى لليهقي:۷۱۴۸.

[۵] احمد:۹۳/۱ ح ۷۱۶وسنده صحيح.

[۶] صحيح مسلم كتاب الحدود باب حدالزاني: ۱۶۹۰، ابوداؤد:۴۴۱۵،ترمذي:۱۴۳۴، السنن الكبرى: 7142، احمد: ۳۱۳/۵، ابن حبان:۴۴۲۵ ، بيهقي:۲۲۲/۸.

قاضي له فيصله اورسيده بيا به ترس نه وي.-بيافرمائي دالله ﷻ په حکم پوره کولوکښې تاسوله په هغوی باندې ترس اورحم خوړل نه دی پکار.د زړه رحم يوبل څيزدې هغه خوبه ضرور وي خودحدپه قايمولو کښې کمې سستی کول خراب څيزدې. کله چه امام اوبادشاه له داسې واقعه راشی په کوم کښې چه حدوی نوهغه له پکاردی چه حد قايم کړی اونه نی پريږدی. په حديث کښې دی د خپل مينځ په حدودو کښې معافی کونی کومه خبره چه ماته راورسی او په هغې کښې حد وی نوهغه خو واجب او ضروری شی([1]) په يوبل حديث کښې دی په زمکه د يوحد قايمول د زمکې والا د پاره د څلويښتو ورځو د باران نه بهتردی([2])داهم قول دې چه په ترس کولوسره نرم ويشتل مه کونی بلکه په درميانه توگه نی په کوړو وهنی داسې هم نه وی چه هډوکی په مات کړنی. د تهمت لگونکی حدجاری کولو په وخت کښې د هغه په بدن باندې کپړې موجودکيدل پکار دی اود زناکاردحدپه وخت کښې دې نه وی.داقول د ابو حمادبن ابوسليمان دې د دې بيان فرمائيلوسره هغوی داجمله ﴿رَأْفَةٌ فِي دِينِ اللَّهِ إِن كُنتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ۖ وَلْيَشْهَدْ عَذَابَهُمَا طَائِفَةٌ مِّنَ الْمُؤْمِنِينَ﴾ اولوستله نوسعيد بن عروبه تپوس اوکړو چه داپه حکم کښې شته نو ونی وئيل اوحکم کښې شته. او په کوړو کښې يعنی د حد په قايمولوکښې اوپه سخت گذار کولو کښې. دابن عمر ﷛ وينځې چه کله زنااوکړه نوهغه دا په پښوباندې اوملاباندې په کوړو باندې اووهله نوعبيد ددې آيت هم داجمله تلاوت کړه چه درب حد قايمولوکښې تاسوله ترس نه دی راتلل پکار. نوهغه اوفرمائيل ولې ستا په نيز ما دې سره نرمی اوکړه؟ واوره الله ﷻ د دې د وژلوحکم نه دې کړې اونه نی دا فرمائيلی چه دا په سر په کوړو باندې اووهنی. ما په پوره طاقت سره دا په کوړو وهلې ده او دې له مې پوره سزا ورکړې ده.بيا نی اوفرمائيل که ستا په الله باندې او په قيامت باندې ايمان وی تاله د دې حکم پوره کول پکار دی او په زناکاروباندې د حد قايمولونه ډډه نه دی کول پکار. هغه په سخت گذار سره وهل هم پکاردی خوهډوکی ماتونکی نه. دې د پاره چه هغه د خپلې دې گناه نه منع شی اود هغوی دا سزا د نورو د پاره عبرت جوړشی رجم خراب څيز نه دې.

يوحديث کښې دی يوسړې راغلوونيل يارسول الله ﷺ چه زه کله چيلئی ذبح کوم نو زړه مې خوگيږی حضور ﷺ اوفرمائيل په دې رحم به هم تاته اجر ملاويږی([3]) بيافرمائی چه د دوی د سزا په وخت د خلقو راجمع کول پکاردی دې د پاره چه د ټولو په زړه کښې ويره کينی اود زناکار رسوائی هم وی دې د پاره چه نورخلق د دې نه منع شی.ده له ښکاره سزاورکول پکاردی په پټه وهلوسره نه دی پريخودل پکار. که يوسړې وی اوياد دې نه زيات وی نوډله شوه او په آيت باندې عمل اوشو.داد امام محمد مذهب دې چه يوسړې هم طائفه ده.د عطاء قول دې دوه کيدل پکاردی سعيدبن جبير وائی چه څلور دې وی. زهری وائی درې ياد دريونه زيات. امام مالك فرمائی څلور اود دې نه زيات څکه چه په زناکښې د څلورونه کم گواهان نه وی ياد دې نه هم زيات.دامام شافعی هم دامذهب دې. ربيعه فرمائی چه پنځه دې وی. دحسن بصری په نيز لس کسان. قتاده وائی چه يوه ډله دې وی چه نصيحت عبرت او سزا اوشی.نصربن علقمه د دې ډلې موجودگی کښې دا علت بيان کړې دې چه هغوی به د هغه خلقو دپاره چه په چا باندې حد جاری کولې شی دمغفرت او رحمت دعااوکړی.

---

[1]) ابوداؤدكتاب الحدود باب يعفى عن الحدودمالم تبلغ السلطان:٤٣٧٦نسائی ٤٨٩، حاكم:٣٨٣/٤.

[2]) نسائی كتاب قطع السارق باب الترغيب فی اقامة الحد:٤٩٠٩،ابن ماجة:٢٥٣٧-٢٥٣٨.

[3]) احمد:٣٦/٣ ٤وسنده صحيح وصححه الحاكم:٢٣١/٤ووافقه الذهبی، مجمع الزوائد:٣٢/٤-٣٣.

| اَلزَّانِیْ | لَا یَنْكِحُ | اِلَّا | زَانِیَةً | اَوْمُشْرِكَةً |
|---|---|---|---|---|
| زناكار سړي د | نكاح نه كوي | مګر | دزناكارې ښځې سره | يادمشركې ښځې سره |
| زناكار سړې زناكارې ښځې يا مشركې ښځې نه سوا بل چا سره | | | | |

| وَّالزَّانِیَةُ | لَا یَنْكِحُهَآ | اِلَّا | زَانٍ | اَوْمُشْرِكٌ |
|---|---|---|---|---|
| او زناكاره ښځه چې ده | نكاح دنهٔ كوي دهغې سره | مګر | زناكار سړي | يا مشرك سړې |
| نكاح نه كوي ا اوزناكارې ښځې سره هم بغير دزناكار سړي يا مشرک سړي نه بل څوک نكاح نه كوي | | | | |

| وَحُرِّمَ | ذٰلِكَ | عَلَى الْمُؤْمِنِیْنَ۝ |
|---|---|---|
| او حرام كړې شوى دى | دغه | په مومنانو باندې |
| اودا عمل (دزنا) په مومنانو حرام كړې شوې دې | | |

**قوله تعالى:- اَلزَّانِیْ لَا یَنْكِحُ اِلَّا زَانِیَةً**

**بدكاره ښځې اوبدكاره سړي:-** الله ﷻ خبرور كوي چه زناكار سره په زناباندې هغه ښځه رضامند كيږي چه بدكاره وي يامشركه وي اوداخراب كارځه عيب نه ګڼړي.داسې بدكاره ښځې سره هغه سړې ملاويږي چه هم د دې په شان بدچلن وي يامشرك وي اود دې د حرمت هډو قائل نه وي. هم دا قول د مجاهد، عكرمه، سعيدبن جبير،عروه بن ربير،ضحاك،مكحول،مقاتل بن حيان او ډيرو بزرګانو مفسرينو نه روايت دې چه په مؤمنانو باندې دا حرام دي يعنى زناكارى كول او زناكاروښخوسره نكاح كول يا عفيفه او پاك دامنه ښځې دداسې زنا كارانو په نكاح كښې وركول.دابن عباس ﷺ نه روايت دې چه دې آيت نه مراددادې چه زناپه مسلمانانوباندې حرامه ده.دقتاده وغيره نه روايت دې چه بدكارو ښځو سره نكاح كول په مسلمانانو باندې حرام دى.لكه چه بل آيت كښې دى﴿مُحْصَنٰتٍ غَیْرَ مُسٰفِحٰتٍ وَّلَا مُتَّخِذٰتِ اَخْدَانٍ ۚ فَاِذَاۤ اُحْصِنَّ فَاِنْ اَتَیْنَ بِفَاحِشَةٍ فَعَلَیْهِنَّ نِصْفُ مَا عَلَی الْمُحْصَنٰتِ مِنَ الْعَذَابِ ؕ ذٰلِكَ لِمَنْ خَشِیَ الْعَنَتَ مِنْكُمْ ؕ وَاَنْ تَصْبِرُوْا خَیْرٌ لَّكُمْ ؕ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ۝﴾ (¹)يعنى مسلمانانو له چه كومو ښخوسره نكاح كول پكاردى په هغوى كښې دا دريواړه صفتونه كيدل پكاردى چه هغه پاك دامنه وى هغه بدكاره نه وى او نه په پټه باندې خرابو خلقو سره تعلق لرونكې وى. هم دغه درې صفتونه په سړوكښې كيدل هم بيان شوى دى. د دې د پاره د امام احمد فرمان دې چه د نيك اوپاك دامن مسلمان نكاح بدكاره ښځې سره صحيح نه دى تر كومې چه هغه توبه اونه كړي اوپس د توبه نه نكاح كول صحيح دى دغه شان ساده باده پاكوښخونكاح زناكار او بدكاره سړوسره كول نه دى پكار تركومې چه هغوى په صدق زړه سره د دې بدكار نه توبه اونه كړي ځكه چه د الله ﷻ فرمان دې داپه مسلمانانوباندې حرام كړې شوى دى.

**د زنا كارې او مشركې سره دنكاح يوه عجيبه واقعه:-**يوسړي دام مبزول نومې بدكاره ښځې سره دنكاح كولواجازت د حضور ﷺ نه. اوغوښتو نو حضورﷺ هم دغه آيت تلاوت كړو(²)بل روايت كښې دى چه د هغه داجازت په غوښتلو باندې دا آيت نازل شو(³)ترمذى كښې دى يوصحابى چه د هغه نوم مرثد بن ابومرثدوو ده به دمكې نه مسلمانان قيديان راوچتول راوړل به نى اومدينې ته به نى رسول.عناق نومې

---

¹) ٤/النساء:٢٥.

²) احمد:١٥٩/٢وسنده حسن واخطأمن ضعفه.

³) احمد:٢٢٥/٢وسنده حسن، بيهقى:١٥٣/٧، حاكم:١٩٣/٢.

یوه بدکاره ښځه په مکه کښې اوسیده. د جاهلیت په زمانه کښې د ده دې ښځې سره تعلق وو. حضرت مرثد ﷺ فرمائی یوځل زه دیوقیدی دراوستلود پاره مکه ته لاړم دیوباغ دیوال دلاندې اورسیدم.د شپې وخت وو سپوږمئی راختلې وه. اتفاقی عناق هلته راورسیده زه نې اولیدم بلکه ونې پیژندلم آواز نې راکړه مرثدنه نې؟ ماونیل اومرثدیم هغې ډیره خوشحالی ښکاره کړه اوماته نې اوونیل راځه شپه ما سره تیره کړه.ماونیل عناق الله ﷻ زناکاری حرامه کړې ده.کله چه هغه نااميده شوه نوهغې زماد ګیرولو دپاره شور اوچغې شروع کړې چه اې د خیمې والابیدار شئ غل راغلې دې هم دادې چه ستاسو قیدیان ښتوی.خلق راپاسیدل اواته کسان زما د نیولو د پاره ما پسې په منډه شو ما موتې رابندکړل اود خندق په لاراوتختیدم او په یوغار کښې پټ شوم.داخلق ماپسې شاشاته راغله خو زه نې اونه لیدم. دوی هلته متیازو ته کیناستل والله ددوی متیازې زما په سر راتلې خوالله ﷻ هغوی ړانده کړل اود هغوی نظریه ماباندې پرینوتلو.اخوادیخوائی اوکتلم خوواپس لاړل.ما لږ ساعت تیرکړو اوچه دایقین مې اوکړوچه هغوی به بیا اوده شوې وی نود دې ځائ نه لاړم اودمکې لارمې واخسته هلته اورسیدم او هغه مسلمان قیدی مې راپه شاکړو اود هغه ځائ نه مې راوتختولو.هغه ډیردروندووکله چه اذخرته اورسیدم نوسترې شوم ماهغه دشانه راکوزکړواودهغه هتکړئی مې خلاصې کړې اوآزادمې کړو. را روان مې کړو اومدینې ته مې راورسولو. د عناق محبت زما په زړه کښې وو مادرسول الله ﷺ نه اجازت اوغوښتلوچه هغې سره نکاح اوکړم حضورﷺ خاموش شو مابیا هم دا سوال اوکړو بیا خاموش شونودا آیت نازل شو. حضورﷺ اوفرمائیل اې مرثد د زناکارې سره نکاح زناکار یامشرک کوی ته هغې سره د نکاح اراده پریږده.امام ابوداوٗد اوامام نسائی ؒ هم دادخپل سنن په کتاب النکاح کښې راوړې دی (۱) ابوداوٗدوغیره کښې دی زناکاره چه هغې ته کوړې لګولې شوی وی هغه د خپل ځان په شان سره نکاح کولې شی. (۲)

**درې قسمه خلق به جنت ته نه ځې اودریو قسمو خلقو ته به الله ﷻ په نظر د رحمت نه ګوری:**-مسند احمد کښې رسول الله ﷺ فرمائی درې قسم خلق دی چه جنت ته به نه ځی اود هغوی طرف ته به الله ﷻ د رحمت په نظرنه ګوری. د مور پلار نافرمانه، هغه ښځې چه ځان د سړو په شان کوی اودیوث. اودرې قسم خلق دی چه هغوی ته به الله ﷻ د رحمت په نظرنه ګوری د مورپلار نافرمانه د همیشه نشه کونکې اودالله ﷻ په لارکښې د ورکړې احسان کونکې(۳) مسنداحمدکښې دی حضورﷺ فرمائی درې قسم خلق دی په چاچه الله ﷻ جنت حرام کړې دې دهمیشه شرابی د مور پلار نافرمانه او د خپل کور والا په خلقو کښې خباثت قایمونکې(۴) ابوداوٗدطیالسی کښې دی چه جنت ته به یودیوث هم نه ځی(۵)ابن ماجه کښې دی کوم سړې چه الله ﷻ سره پاك صفا ملاویدل غواړی هغه له پکاردی چه پاکوښځوسره نکاح اوکړی چه وینځې نه وی(۶)د دې سندضعیف دې اودیوث وائی بې غیرته سړی ته. نسائی کښې دی یوسړې رسول الله ﷺ له راغلو ونې ونیل زما خپلې ښځې سره ډیره مینه ده خو په هغې کښې دا عادت دې چه د چا لاس هم نه واپس کوی. حضورﷺ اوفرمائیل طلاق ورکړه. هغه ونیل مانه خوصبر نه

---

(۱) ترمذی کتاب تفسیرالقرآن باب ومن سورة النور:۳۱۷۷وسنده حسن،ابوداوٗد:۲۰۵۱،نسائی:۳۲۲۳،بیهقی: ۱۵۳/۷، حاکم:۲/۱۶۶مختصرًا.

(۲) ابوداوٗد کتاب النکاح باب فی قوله تعالی(الزانی لاینکح الازانیة):۲۰۵۲وسنده حسن،احمد:۳۲۴/۲،مشکل الاثار:۴۵۴۸

(۳) نسائی کتاب الزکاة باب المنان بما اعطی:۲۵۶۳وسنده حسن، احمد:۱۳۴/۲.

(۴) احمد:۱۳۴/۲وسنده حسن وصححه الحاکم:۷۲/۱ووافقه الذهبی، مجمع الزوائد:۳۲۷/۴.

(۵) مسندالطیالسی:۶۴۲.

(۶) ابن ماجة کتاب النکاح باب تزویج الحرائروالولود:۱۸۶۲.

کیږی.بیاحضورﷺ اوفرمائیل بیالاړشه دهغې نه فائده واخله([1])خوداحدیث ثابت نه دې اوددې راوی عبدالکریم قوی نه دې دویم راوی د دې هارون دې چه د ده نه قوی دې خود هغه روایت مرسل دې اوهم دا ټیك هم دی. هم دا روایت مسنداً هم نقل دې خود امام نسائی فیصله دا ده چه مسندکول خطاده او صواب هم دا دې چه دامرسل دې. داحدیث په نورو کتابونوکښې په نورو روایتونوسره هم نقل دې. امام احمد خودې ته منکروانی اوامام ابن قتیبه د ده تاویل کوی چه کومه وینا نی کړې ده چه هغه د یولاس لګونکی لاس نه پرېږدی دې نه مراد ډیر زیات سخاوت دې چه هغه یوسوالګری ته هډو انکار نه کوی خوکه چرې هم دا مطلب وې نو په حدیث کښې د ﴿لامس﴾ په خایٔ د﴿ملتمس﴾ لفظ کیدل پکار وو.داهم ونیلې شوی دی چه د دې خصلت داسې معلومیدو دانه وه چه هغې بدی کوله خکه که په هغې کښې هم داعیب وونوبیابه حضورﷺ دې صحابی ته د هغې د ساتلواجازت نه ورکولو خکه چه مینه خوموجود وه دا صرف په یوه خطره د وهم ماتول ممکن دی چه څه بدی راپیداکړی. والله سبحانه وتعالی اعلم. غرض داچه د زناکاروښځوسره د پاکو سړو نکاح کول منع دی اوکه هغوی توبه اوکړی نو نکاح حلاله ده. د ابن عباس ﷛ نه یوسړی تپوس اوکړوچه هم یوداسې ښځې سره زما تعلق ووخواوس مونږ ته الله ﷻ د توبې توفیق راکړو نوزه غوارم چه هغې سره نکاح اوکړم خوبعضې خلق وانی چه هم زناکاریه زناکارې ښځې سره یا مشرکې سره نکاح کوی. هغوی اوفرمائیل چه نه د دې آیت دا مطلب نه دې ته هغې سره اوس نکاح کولې شې که څه ګناه وی نوزما په ذمه.یحیی له چه کله داذکر راغلو نوونې فرمائیل داآیت منسوخ دې ددې نه په پس آیت﴿وَأَنكِحُوا الْأَيَامَىٰ مِنكُمْ وَالصَّالِحِينَ مِنْ عِبَادِكُمْ وَإِمَائِكُمْ ۚ إِن يَكُونُوا فُقَرَاءَ يُغْنِهِمُ اللَّهُ مِن فَضْلِهِ ۗ وَاللَّهُ وَاسِعٌ عَلِيمٌ﴾([2])سره.امام ابوعبدالله محمدبن ادریس شافعی همدا فرمانی.

**د زنا کارې ښځې سره د پاکدامن سړی د نکاح جواز**

**مسلك حنفي:-** -د احنافو په نیز د زناکارې ښځې سره نکاح کول جائز دی د تفصیل دپاره اوګورئ (احکام القرآن للجصاص باب تزویج الزانية (۳۹۱۱۳) -

| يَرْمُونَ | وَالَّذِينَ |
|---|---|
| چې دزنا الزام لګوی | او هغه کسان |

اوهغه خلق چې په پاك دامنو

| فَاجْلِدُوهُمْ | شُهَدَاءَ | بِأَرْبَعَةِ | لَمْ يَأْتُوا | ثُمَّ | الْمُحْصَنَاتِ |
|---|---|---|---|---|---|
| نو اووهئ هغوی | ګواهان | څلور | رانه وړلی هغوی | بیا | په پاك لمنو ښځو باندې |

ښځو باندې تهمتونه اولګوی | بیا پرې څلور ګواهان پیش نکړې شي | نو هغوی

| هُمُ | وَأُولَٰئِكَ | أَبَدًا | شَهَادَةً | لَهُمْ | وَلَا تَقْبَلُوا | جَلْدَةً | ثَمَانِينَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| پخپله هغوی | او دغه کسان | همیشه | ګواهئ | دهغوی | اومهٔ قبلوئ تاسو | درې | اتیا |

اتیا درې اووهئ | ...............اوبیا دپاره هیڅ کله دهغوی ګواهئ مه قبلوئ | اوهم دغه خلق

| وَأَصْلَحُوا | مِن بَعْدِ ذَٰلِكَ | تَابُوا | إِلَّا الَّذِينَ | الْفَاسِقُونَ |
|---|---|---|---|---|
| او نیك ئې کړو عمل خپل | روستو ددې نه | چې توبه ئې اوویستله | سوا دهغه کسانونه | فاسقان دی |

بد کرداره دی | مګر څوک چې ددې کار نه پس توبه اوباسي | اودخپلو عملونو اصلاح اوکړي

[1]) نسائی کتاب النکاح باب تزویج الزانية:۳۲۳۱وهوصحیح، بیهقی:۷/۱۵٤.

[2]) ۲٤/النور:۳۲.

| فَإِنَّ اللَّهَ | غَفُورٌ | رَّحِيمٌ ۝ |
|---|---|---|
| پس بیشکه الله | بښونکي | مهربانه دي |
| نوبیشکه الله ﷻ ډیر بخښونکي مهربان دي | | |

قوله تعالی:- وَالَّذِينَ يَرْمُونَ الْمُحْصَنٰتِ

**په پاکو ښځو باندې دتهمت لګونکو سزا:-** کوم خلق چه په یوه ښځه یاسړي باندې دزناکارئی تهمت اولګوی او ثبوت ورنه کړې شي نو هغه ته به اتیاکوړې لګولې شي اوکه شهادت ئې پیش کړو نو د حد نه به بچ شي او په چاچه جرم ثابت شوې دې هغه ته به حدورکولې شي اوکه شهادت ئې پیش نه کړې شو نو اتیا کوړې به هم وهلې شي اود بیاد پاره به همیشه د هغه ګواهي نه شي منلې اوهغه به عادل نه بلکه فاسق ګنړلې شي. په دې آیت کښې چه کوم خلق مخصوص اوخلاص ګنړلې شوی دی نوبعضې وائي چه دا خلاصوالې صرف د فاسق کیدو سره ده یعني پس د توبې نه به هغه فاسق نه وی. بعضې وائي چه نه نه به فاسق وی اونه به مردودالشهادت وی بلکه بیابه دهغه ګواهي هم اخستې شي.اوحدچه کوم دې هغه یوشان هم په توبه سره نه شي اخواکیدې.دامام مالك احمد اوامام شافعیn مذهب خو دادې چه په توبه سره به د شهادت مردودکیدل اوفسق ختم شي. سیدالتابعین سعید بن مسیب او د سلفو د یوې ډلې هم دا مذهب دې[1]خوامام ابوحنیفه فرمائي چه صرف فسق به لرې شي ولې شهادت ئې نه شي قبلیدې.بعضې نورخلق هم داوائي.شعبي اوضحاك وائي که چرې هغه ددې خبرې اقرار اوکړوچه هغه بهتان تړلې وواوبیائې توبه هم پوره کړه نودهغه ګواهي د دې نه پس مقبول ده. والله اعلم.

### د قاذف ګواهي د توبې نه پس هم نه قبلیږي

**مسلك حنفي:-** دحنفیانو په نیز که محدود في القذف توبه اوباسی نو د توبې ویستلونه پس هم د هغه دعا نه قبلیږي (تفسیرمظهری (۱۲-۳۴۰).

| وَالَّذِينَ | يَرْمُونَ | أَزْوَاجَهُمْ |
|---|---|---|
| او هغه کسان | چې د زنا الزام لګوی | په خپلو ښځو باند |
| او کوم خلق چې پخپلو ښځو باندې د زنا الزام اولګوی | | |

| وَلَمْ يَكُن لَّهُمْ | شُهَدَاءُ | إِلَّا أَنفُسُهُمْ | فَشَهَادَةُ | أَحَدِهِمْ | أَرْبَعُ |
|---|---|---|---|---|---|
| اونه وی هغوئ لره | ګواهان | ماسوا دخانونو خپلو نه | (نو) ګواهي | دیو دهغوئ | خلور |
| اوهغوئ سره دخپل ځان نه سوا نور ګواهان نه وی\|نو دداسې سړي د ګواهئ صورت دا دې چې هغه به | | | | | |

| شَهٰدٰتٍ | بِاللَّهِ | إِنَّهُ | لَمِنَ الصّٰدِقِينَ ۝ | وَالْخَامِسَةُ |
|---|---|---|---|---|
| ګواهیاني دی | په الله باند | (په دې خبره) چې بیشکه دی | د رښتیاویونکونه دی | او پنځمه ګواهي داده |
| خلور ځله په الله ﷻ قسم خوری\| چې بیشکه هغه پخپله دعوی کښې رینښتوني دې\|او په پنځم ځل | | | | |

| أَنَّ | لَعْنَتَ اللَّهِ | عَلَيْهِ | إِن | كَانَ | مِنَ الْكٰذِبِينَ ۝ | وَيَدْرَؤُا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چې بیشکه | لعنت دالله دوی | په ده باند | که چرې | وی دې | ددروغ ویونکونه | او دفعه کوی |
| به داسې وائي\|چې که چرې هغه دروغژن وی نو په هغه دې دالله ﷻ لعنت وی\|اودښځې نه سزا | | | | | | |

[1] الطبري:۱۹/۱۰۵.

| عَنۡهَا | الۡعَذَابَ اَنۡ | تَشۡهَدَ | اَرۡبَعَ شَهٰدٰتٍۭ |
|---|---|---|---|
| دهغه ښځې نه \| عذاب لره \| دا خبره چې \| ګواهي اوکړي هغه ښځه \| څلور | | | ګواهیاني \| |
| په دې صورت کښې لرې کیدیشي \|چې هغه څلور خله په الله ﷻ باندې قسم اوخوري\| چې | | | |
| بِاللّٰهِ ۙ اِنَّهٗ | لَمِنَ الۡكٰذِبِيۡنَ ۙ﴿۸﴾ | وَالۡخَامِسَةَ | اَنَّ غَضَبَ اللّٰهِ |
| په الله باند\|چې بیشکه دا سړې \|ددروغ ویونکونه دې \|\|اوپینځمه ګواهي داده\|چې بیشکه غضب دالله دوې | | | |
| داسړې دروغژن دې \|\|اوپه پنځم ځل دې داسې اووائي چې په ما دې دالله ﷻ غضب نازل شي | | | |
| عَلَيۡهَاۤ اِنۡ كَانَ | مِنَ الصّٰدِقِيۡنَ ﴿۹﴾ | وَلَوۡلَا فَضۡلُ اللّٰهِ | عَلَيۡكُمۡ |
| په هغې باند\| که چرې وی داسړې \| درښتیاویونکونه \|\|او که چرې نۀ وې فضل دالله\| په تاسو باند | | | |
| که دا خاوند رینبتیا وائی \|\|اوکه په تاسو دالله فضل اومهرباني نه وې \| او دا خبره نه وې | | | |
| وَرَحۡمَتُهٗ | وَاَنَّ اللّٰهَ | تَوَّابٌ | حَكِيۡمٌ ﴿۱۰﴾ |
| او رحمت دهغه \| او بیشکه الله \| ډیر توبه قبلونکې دې \| او دحکمت خاوند دې \| | | | |
| چې الله ﷻ توبه قبلونکې اودحکمتونو خاوند دې \| | | | |

**قوله تعالی:-وَالَّذِیۡنَ یَرۡمُوۡنَ اَزۡوَاجَهُمۡ**

**لعان کله او څرنګه دې؟:-** په دې آیاتونوکښې الله ﷻ د هغه خاوندانود پاره چه د خپل بيبيانو په نسبت نی داسې خبره کړې ده د خلاصی صورت بیان فرمانی که هغوی دوه ګواهان پیش نه کړې شی نو لعان دې اوکړی.ددې صورت دادې چه دې به د امام په وړاندې راشی بیان به اوکړی کله چه ګواهی پیش نه کړې شی نو حاکم به دځلوروګواهانو په ځاې ده له څلور قسمه ورکړی اودې به قسم خوری اووائی به چه دې رښتونې دې اوکومه خبره چه کوی هغه رښتیاده. په پنځم ځل به وائی که چرې دې دروغژن وی نو په ده دې دالله ﷻ لعنت وی.په دومره ویناکولوسره د امام شافعی m په نیز به د ده ښځه د ده نه بائن شي اودهمیشه دپاره به حرامه شی.دې به مهر اداکړی اوپه دغه ښځه به حد قایم کړې شی.خوکه هغه ښځه هم مخامخ ملاعنه اوکړی نوحدبه دهغې نه اخواشی دابه هم څلورځل په قسم سره بیان ورکړی چه د دې خاونددروغژن دې اوپه پنځم ځل به وائی که چرې هغه رښتونې وی نوپدې دې دالله ﷻ غضب نازل شي.

**دسړی په حق کښې لعنت اود ښځې په حق کښې غضب ،وجه څه ده؟:-**دالطیفه هم په خیال کښې اوساتئ چه د ښځې دپاره دغضب لفظ ونیلې شوې دې ځکه چه په عام توګه یوسړې نه غواړی چه په خپله ښځه خامخا تهمت اولګوی اوخپل خان بلکه خپل خاندان هم بدنام کړی.په عام توګه هغه رښتونې وی او د خپل صدق په وجه هغه معذوره ګنړلې شی.ددې د پاره په پنځم ځل په هغه باندې اوونیلې شو که د هغې خاوند رښتونې وی نو په دې باندې دې دالله ﷻ غضب راشی. بیا د غضب والا هغه وی چه سره د حق پیژندلو بیا د دې نه مخ اړوی. بیا فرمانی که د الله ﷻ فضل اورحم په تاسو باندې نه وو نو په تاسو به داسې آسانتیې نه وې بلکه په تاسو به سختتی راتله.الله ﷻ دخپلو بندیګانوتوبه قبلوی که هرقسم ګناه وی اوکه په کوم وخت هم توبه وی. هغه حکیم دې په خپله شرع کښې په خپلوحکمونو کښې او په خپلو بندیزونوکښې.

**د ایت لعان متعلق روایات.-**د دې آیت باره کښې چه کوم روایتونه دی هغه هم واورئی مسنداحمدکښې

دی چه کله دا ایت (نمبر ۴) نازل شو نوسعدبن عباده ﷺ چه د انصاروسردار وو اوونیل یارسول الله ﷺ آیادا آیت هم دغه شان نازل شوې دې؟حضور ﷺ اوفرمائیل انصارو اورئی چه ستاسو داسردار څه وائی؟ هغوی ونیل یارسول الله ﷺ تاسو ورته معافی اوکړئی داصرف د ده د راوچت شوی غیرت په وجه داسې دی اونورهیڅ نشته د ده دغیرت دا حال دې چه دې صرف پیغلې سره نکاح کوی او په مونږ کښې څوك هم د ده د طلاق شوې ښځې سره د نکاح جراءت نه شي کولی. حضرت سعد ﷺ اوفرمائیل چه یارسول الله ﷺ داخوزما ایمان دې چه داحق دی خوماته حیرانتیاده چه که زه څوك د ښځې پښې نیونکې اووینم نوبیا هم زه د هغه څه نه شم کولې تردې چه زه څلور ګواهان راولم نوهغه خوبخپل کار پوره کړې وی.د دې خبرې به لږ شان ساعت شوې وی چه هلال بن امیه ﷺ راغلو دا د هغه دریوکسانونه وو چه د هغوی توبه قبوله شوې وه.دې دخپلو پټونه د ماسخوتن په وخت کښې خپل کورته راغلو نو وئی کتل چه په کورکښې یو پردې سړې دې کوم چه پخپله هغه پخپلو سترګو اولیدواو په خپلو غوږونوئی د هغه خبرې واوریدې. سحر چه راغلو رسول الله ﷺ ته ئی داذکر اوکړو.حضور ﷺ ته ډیر خراب معلوم شو او په طبیعت مبارك باندې ډیرسخت اولګیدل.ټول انصار راجمع شواو وئی ونیل چه دسعدبن عباده ﷺ د دې قول په وجه مونږ ټول په دې مصیبت کښې راګیرشو اوس خو به په دې صورت کښې رسول الله ﷺ هلال بن امیه ﷺ ته د تهمت حدلګوی اود هغه ګواهی به مردود ګرځوی.هلال ﷺ وئیل والله زه ربښتونې یم اوزماد الله ﷻ نه دا امیددې چه هغه به زما خلاصې کوی وئیل یارسول الله ﷺ زه ګورم چه زما خبرې په تاسو ډیرې درنې اولګیدې زماپه الله ﷻ قسم دې زه ربښتونې یم الله ﷻ ته ښه معلومه ده ګواه نی نه شو پیش کولې نونیزدې وه چه رسول الله ﷺ په هغه باندې حد قایم کړې وې په دې کښې وحی نازلیدل شروع شو.صحابه کرامو رضوان الله اجمعین د حضور ﷺ د مخ مبارك نه معلومه کړه او پوهه شوچه دې وخت کښې وحی نازلیږی.کله چه نازل شوه نوحضور ﷺ دهلال ﷺ طرف ته اوکتل وئی فرمائیل ای هلال خوشحاله شه الله ﷻ ستاد پاره آسانی اورخصت نازل کړو.هلال ﷺ وئیل الحمدلله زما د الله ﷻ نه چه رحیم ذات دې هم دغه امیدوو. بیا حضور ﷺ هلال اود هغه ښځه راوغوښتل اود دواړو په وړاندې ئی دملاعنه آیت تلاوت کړو وئی فرمائیل ګورئی ددنیادعذاب نه د اخرت عذاب ډیر سخت دې.هلال ﷺ وئیل یارسول الله ﷺ زه بالکل ربښتیاوایم. هغه ښځې وئیل حضور ﷺ دې دروغ وائی حضور ﷺ حکم اوکړوچه ښه ده لعان اوکړئی.نوهلال ﷺ ته اوونیلې شوچه دغه شان څلورخل قسم اوخوره اوبه پنځم خل باندې داسې اووایه.هلال ﷺ چه کله څلور خل اوونیل اود پنځم خل وئیلو نوبت راغلو نو هغه ته اوونیلې شو بلال د الله ﷻ نه اوویریږه اود دنیا سزا د آخرت د سزا نه ډیره سپکه ده دا پنځم خل چه ستاد خلې نه اوخی نو په تابه عذاب واجب شی.نوهغه وئیل یارسول الله ﷺ قسم دې په الله ﷻ چه څنګه هغه زه ددنیاد سزا نه زماپه صداقت باندې بچ کړم دغه شان به دآخرت عذاب نه هم زما په ربښتیاوینا سره زمارب ما محفوظ کړی. بیانی د پنځم خل الفاظ هم په ژبه سره اداکړل. اوس دې ښځې ته اوونیلې شو چه ته څلورخل قسم اوخوره چه دې دروغژن دې کله چه هغې څلور خل قسم اوخوړلو نو رسول الله ﷺ د پنځم خل د دې کلمه وئیلو نه هغه منع کړه اوچه څنګه نی حضرت بلال ﷺ پوهه کړې وو هغې ته نی هم اوفرمائیل نود هغې څه خیال راپیداشو منع شوه ژبه نی راقابوکړه او نیزدې وه چه د خپل قصور اقرار نی کړې وو خوبیانی اوونیل چه زه د همیشه د پاره خپل قوم نه رسواکوم. بیانی اوونیل که د هغې خاوند ربښتونې وی نو په دې دې دالله ﷻ غضب نازل شی.حضور ﷺ په دې دواړو کښې جدائی اوکړه اوحکم نی ورکړو چه ددې نه کوم بچی اوشی هغه بلال طرف ته مه منسوب کوئی او مه هغه ته حرامی اولاد وائی. څوك چه دې ماشوم ته حرامی وائی یا په دې ښځه تهمت لګوی په هغه به حدقایمولې شی داهم فیصله اوشوه چه ددې هیڅ خرچه به په خاوندباندې نه وی ځکه چه جداوالې

شوې دي نه طلاق شوې اونه ددې خاوندوفات شوېدې او ونې ونيل چه ګورنې که داماشوم سور سپين چاق پنډور پيداشو نودا د هلال اوګڼرنې اوکه هغه د نرو پنډووالا تور بخن پيدا شو نود هغه سړی نی اوګڼرنې د چاسره چه په دې باندې الزام لګولې شوې دې. کله چه ماشوم اوشو نو خلقو اوکتلوچه هغه هم په هغه بدصفت باندې وو چه د الزام د حق کيدو نښه وه. هغه وخت رسول الله ﷺ اوفرمائيل که دا مسئله په قسمونو باندې فيصله شوې نه وه نو مابه دې ښځه باندې خامخا حد لګولو. دا ماشوم چه کله لوئ شو نود مصر والی جوړشوې وو اود هغه نسبت د هغه د مور طرف ته وو. (ابوداؤد) [1]

**ددې حديث پاک شواهد:** ددې حديث نورهم ډير شواهددی په بخاری کښې هم داحديث دې په دې کښې دی چه شريك بن سحماء سره تهمت لګولې شوې وو اود حضور ﷺ په وړاندې چه کله حضرت هلال ﷺ ذکراوکړو نوحضور ﷺ فرمائيلې ووګواه پيش کړه ګنی ستاپه شاباندې به حد لګولې شی. هلال ﷺ وئيل يارسول الله ﷺ يوسړې به خپله ښځه په خراب کار وينی نو هغه به ګواه لټوی؟ خوحضور ﷺ به هم دا فرمائيل. په دې کښې داهم دی چه د دواړو په وړاندې حضور ﷺ داهم فرمائيلې ووچه الله ﷻ ته ښه معلومه ده په تاسو دواړوکښې يوکس دروغژن دې. آيا په تاسو کښې څوك د توبه کولو سره د خپلو دروغونه اوړی؟ بل روايت کښې دی چه په پنځم ځل سره حضور ﷺ چاته اوفرمائيل چه د ده خُله بنده کړه بيانی ورته نصيحت اوکړو چه د الله ﷻ د لعنت نه هريوڅيز سپك دې. دغه شان دې ښځې سره هم اوکړې شو[2] سعيدبن جبير فرمائی د لعان کونکی سړی اوښځې باره کښې زمانه تپوس اوکړې شوچه آيا په دوی کښې دې جدائی اوکړې شی؟ دا واقعه د ابن زبير ﷺ د امارت د زمانې ده. مانه خود دې هيڅ جواب جوړنه شو نوزه د خپل ځائ نه لاړم اود عبدالله بن عمر ﷺ کورته راغلم اود هغه نه مې د دغه مسئله تپوس اوکړو نوهغوی اوفرمائيل سبحان الله د ټولو نه اول داخبره فلانکی خوئ د فلانکی معلومه کړې وه چه يارسول الله ﷺ که يوسړې خپله ښځه په يوخراب کارباندې اووينی نوکه د خُلې نه نی اوباسی نوهم ډيره د بې شرمی خبره ده اوکه چپ پاتې کيږی نو بياهم د ډيرې بې غيرتنې خاموشی ده. حضور ﷺ چه واوريده نو خاموش پاتې شو هغه بياراغلوونی ونيل حضور ﷺ ماچه کوم سوال کړې وو افسوس هم هغه واقعه ماسره پيښه شوه. نو الله ﷻ د سورت نور دا آياتونه نازل کړل. حضور ﷺ دواړه راوغوښتل اوهريوته نی بيل بيل وعظ اوکړو ډيرنی پوهه کړل خوهريوخپل خان رښتونې ثابتولو بيا دواړو د آيت مطابق قسمونه اوخوړل اوحضور ﷺ په هغوی کښې جدائی اوکړه[3] يوبل روايت کښې دی د صحابه کرامو رضوان الله اجمعين يوه ډله د ماښام په وخت د جمعه په ورځ په جمات کښې ناسته وه چه يوانصاری اوونيل چه که يوسړې خپلې ښځې سره پردې سړې اووينی که هغه دې اووژنی نو تاسو به هغه وژنئی اوکه د خُلې نه نی اوباسی نوتاسو به د شهادت په نه موجودکيدو باندې هغه په کوړو وهئی اوکه دا معامله اوګوری اوچپ کينی نوداخوډيره بې غيرتی او بې حيائی ده. والله که زه دسحره پورې ژوندې پاتې شوم نود حضور ﷺ نه به د دې باره کښې تپوس کوم. هغه هم په دې الفاظوسره د حضور ﷺ نه تپوس اوکړو اودعائی اوکړه چه الله ﷻ دې د دې فيصله نازله کړی. نود لعان آيت نازل شو اود ټولو نه اول هم داسړې په دې کښې راګيرشو[4] يوبل روايت کښې دی چه عويمر ﷺ عاصم بن عدی ﷺ ته اوونيل چه لږ شان لاړشه د رسول الله ﷺ نه معلومه کړه که يوسړې خپلې ښځې سره څوك سړې اووينی نوڅه به کوی؟ داسې خو به نه وی چه که هغه قتل کړی نودې به هم قتل کولې شی؟ حضرت عاصم ﷺ

---

[1] ابوداؤد كتب الطلاق باب ى اللعان:٢٢٥٦احمد:١/٢٣٨، مسندابى يعلى:٢٧٤٠.

[2] صحيح بخارى كتاب التفسير سورة النور باب (ويدرؤاعنها العذاب):٤٧٤٧، ترمذى:٣١٧٦، ابن ماجة:٢٠٦٧، مشكل الاثار:٢٩٦٢.

[3] احمد:١٩/٢صحيح مسلم كتاب اللعان:١٤٩٣، ترمذى:١٢٠٢.

[4] صحيح مسلم كتاب اللعان:١٤٩٥، احمد:١/٤٢١، ابوداؤد:٢٢٥٣، بيهقى:٧/٤٠٥، ابن حبان:٤٢٨١.

د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو نو رسول الله ﷺ په دې سوال سره ډېر خفه شو. کله چه عویمر﷜ عاصم ﷜ سره ملاوشو نو تپوس ئې اوکړو چه وایه تا د رسول الله ﷺ نه معلومات اوکړو؟ او حضور ﷺ څه جواب درکړو؟ عاصم ﷜ وئیل تا مانه څه ښه خدمت وانه خستلو افسوس چه رسول الله ﷺ زما دا سوال عیب اوګڼړلو او بدنی اوګڼړل. عویمر﷜ وئیل چه ښه ده زه پخپله ورځم د رسول الله ﷺ نه تپوس کوم. د لته چه راغلو نو حکم نازل شوې وو. د لعان نه پس عویمر ﷜ اووئیل اوس که چرې زه دا ښځه کورته یوسم نو لکه ما چه په هغې د دروغو تهمت لګولې وو نو د حضور ﷺ د حکم نه وړاندې ئې ښځه جدا کړه او بیا خود لعان کونکو هم دغه طریقه مقرر شوه. ([1]) یو بل روایت کښې دی دا ښځه حامله وه او د دې خاوند دې نه انکار کړې وو چه دا حمل د هغه نه نه دې. دغه شان دا ماشوم د خپلې مور طرف ته منسوب کیدلو بیا سنت طریقه هم داسې روانه شوه چه دې به د خپلې مور وارث وی او مور به د ده وارثه وی.([2]) په یو مرسل او غریب حدیث کښې راغلی دی چه حضور ﷺ د حضرت صدیق اکبر﷜ او حضرت عمر فاروق ﷜ نه تپوس اوکړو که ستاسو په کور کښې داسې کاروی نو څه به کوئی دواړو وئیل سخت به ئې والوزو داسې وخت کښې سترګې هغه سړې پټوی چه دیوث وی. په دې باندې دا آیاتونه نازل شو([3]) یو روایت کښې دی چه د ټولونه اول لعان په مسلمانانو کښې هلال بن امیه ﷜ او د هغه د بی بی په مینځ کښې شوې وو. الخ.

**د لعان نه پس دغه ښځه په خاوند همیشه د پاره حرامه شوه**

**مسلک حنفی:-** د لعان نه پس د ښځې او خاوند په مینځ کښې جدائی راغله او ښځه په خاوند باندې همیشه د پاره حرامه شوه لعان د ظهار پشان نه دې چه د کفارې په ورکولو سره به دوباره جائز شی (تفسیر مظهری ۶/۳۵۲)-

<table dir="rtl">
<tr><td colspan="6">اِنَّ الَّذِيْنَ</td></tr>
<tr><td colspan="6">ابیشکه هغه کسان</td></tr>
<tr><td colspan="6">| (نو په دې لوئې مصیبت کښې به پراته وی)</td></tr>
<tr><td>جَآءُوْ</td><td>بِالْاِفْكِ</td><td>عُصْبَةٌ</td><td>مِّنْكُمْ</td><td>لَا تَحْسَبُوْهُ</td><td>شَرًّا</td></tr>
<tr><td colspan="6">چې راغلل اپه دروغو سره (هغه) یوه ډله ده | ستاسو نه اګمان مهٔ کوئ په دې دروغو (چې شر دې</td></tr>
<tr><td colspan="6">کومو خلقو چې (په حضرت عائشه) باندې تهمت لګولې وو) هغه په تاسو کښې یوه ډله وه</td></tr>
<tr><td>لَّكُمْ</td><td>بَلْ</td><td>هُوَ</td><td>خَيْرٌ</td><td>لَّكُمْ</td><td>لِكُلِّ امْرِئٍ</td><td>مِّنْهُمْ</td></tr>
<tr><td colspan="7">ستاسو د پاره | بلکه | دغه دروغ | خیر دې | ستاسو د پاره | د پاره د هر سړی | په هغوئ کښې</td></tr>
<tr><td colspan="7">تاسو د خان د پاره دا (قصی) بد مه ګڼړئی ابلکه ستاسو د پاره دا بهتره ده| په دې کښې چې</td></tr>
</table>

[1] صحیح بخاری کتاب الطلاق باب من جوز الطلاق الثلاث ... :۵۲۵۹، صحیح مسلم:۱۴۹۲، ابوداؤد:۲۲۴۷، ابن ماجة:۲۰۶۶، ابن حبان:۴۲۸۵.الخ

[2] صحیح بخاری کتاب التفسیر باب (الخامسة أن لعنت الله علیه إن کان من الکاذبین):۴۷۴۶، صحیح مسلم:۱۴۹۲، ابوداؤد:۲۲۴۵، ابن ماجة:۲۰۶۶، احمد:۵/۳۳۶، ابن حبان:۴۲۸۵.

[3] مسند البزار:۲۲۳۷.

| كِبْرَهٗ | تَوَلّٰى | وَالَّذِىْ | مِنَ الْإِثْمِ | اكْتَسَبَ | مَّا |
|---|---|---|---|---|---|

هغه حصه ده | چې دد کړې ده | دگناه نه | اوهغه څوك | چې ذمه واري ئې واغستله | دلوئې حصې دهغې

هرچا څومره حصه اخستې ده | هغه هومره گناهگار دې | او چاچې په کښې د ټولو نه زياته

| | عَظِيْمٌ۝ | عَذَابٌ | لَهٗ | مِنْهُمْ |
|---|---|---|---|---|

دهغوئ نه | هغه لره دې | عذاب | لوئ |

حصه اخسته ده | دهغه سزا هم (دنورو نه زياته) ده |

**قوله تعالى:- اِنَّ الَّذِيْنَ جَآءُوْ بِالْاِفْكِ عُصْبَةٌ مِّنْكُمْ**

**د عائشه صديقه پاكوالې اوفضيلت اوواقعه دافك:-** -ددې آيت نه واخله ترلسوآياتونوپورې دام المؤمنين عائشه بارۂ کښې نازل شوى دى كله چه په هغې باندې منافقانو بهتان لگولې وو. په دې باندې الله ﷻ ته درسول الله ﷺ د رشته په وجه غيرت راغلواودا آياتونه ئې نازل كړل دې د پاره چه د رسول الله ﷺ په عزت باندې څه داغ اونه لگى.ددې بهتان ترونكو يوه پارټى وه.په دې لعنتى كاركښې د ټولونه وړاندې وړاندې عبدالله بن ابى بن سلول ووچه د ټولومنافقانوسردار وو.دې بې ايمانه يويوته په غوږ كښې خبروسره ښه مصالحه لگولوسره دځان نه جوړې شوې ښه خبرې اورسولې.تردې چه دبعضې مسلمانانوهم خُلې كولاو شوې اوبټ پټ پس پس تقريباً تريوې مياشتې پورې روانې وې تردې چه د قرآن كريم آياتونه نازل شو.ددې واقعه پوره بيان په احاديثوكښې موجوددې. عائشه k فرمائى چه د رسول الله ﷺ عادت مبارك وو چه په سفرد تلوپه وخت كښې دبيبيانوپه نوم څځڼې اچولو اوچه د چانوم به راوتلو هغه بى بى به ئې ځان سره بوتله. دغه شان په يوه غزوه كښې زما نوم راووتلو. زه حضورﷺ سره لاړم اوداواقعه دپردې د آياتونود نازليدونه پس ده. زه په خپله كجاوه كښې ناسته ووم اوچه كله به قافله كوزيدله نوزما كجاوه به راكوزولې شوه زه به په هغې كښې ناسته ووم. كله چه به قافله روانيده نوهم هغه شان به كجاوه كيخودلې شوه.مونږ لاړو حضورﷺ د غزوې نه فارغ شوواپس شو مدينې ته رانيزدې شودشپې د تلوآواز اوشو.زه د قضائى حاجت د پاره اووتلم اود لښكردځائ نه لرې زه لاړم او د ضرورت نه فارغه شوم بياواپس شوم.كله چه دلښكرځائ ته راورسيدم نومادخپل غاړې اميل اولټولو نو اومى نه ليدلو زه واپس د هغې د لټون د پاره واپس لاړم اومې كتلو. دلته دااوشو چه لښكر روان شو كومو خلقو چه به زما كجاوه اوچتوله هغوى دا گنړل چه زه په دې كښې ناسته يم كجاوه ئې اوچته كړه پاس ئې كيخوده اولاړل. داهم يادساتئى چه هغه وخت به ښخوداسې خوراك څښاك نه كولو نه د هغې غټ بدن وو نو په دې وجه د كجاوې اوچتونكوته زما د موجودگئى او نه موجودگئى بالكل پته اونه لگيده اوهغه وخت زه د شروع په عمركښې هم ووم. غرض دا چه د ډير وخت نه پس ماته هار ملاوشو زه چه دلته راورسيدم نو د يوسړى نوم اونښه هم نه وه نه څوك آواز كونكې اونه جواب وركونكې. زه د خپلې ښې مطابق هلته اورسيدم كوم ځائ چه زمونږ اوښ كينولې شوې وو اوهم هلته په انتظاركښې كيناستم. كله چه په وړاندې تلوسره زما د نه كيدو پته ورته اولگى نو زما په لټون پسې به هم دلته راځى ماله په ناسته ناسته خوب راغلو. اتفاقى صفوان بن معطل سلمى ذكوانى ؓ چه د لښكر نه شاته پاتې وو اوروستنئى شپه تلې وو دسحر په رڼاكښې راورسيدو.ديواوده سړى په كتوباندې داخيال راتلل وو چه په غورسره ئې اوكتل نود پردې د حكم نه وړاندې هغه زه ليدلې ووم په كتوسره ئې اوپيژندلم نو په اوچت آواز ئې په خپله ژبه ﴿اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّآ اِلَيْهِ رٰجِعُوْنَ﴾ اووئيل. د هغه آواز اوريدو سره زما سترگې كولاو شوې اوما خپل څادرسره مخ پټ كړواوسيدا كيناستم. هغه زرخپل اوښ كينولو د هغه په پښه مې خپله

پنه کیخوده زه پاسیدم او په اوښ کیناستم هغه اوښ پاسولواو په منډه ئې اوزغلولو. په الله ﷻ باندې قسم دې نه هغه ماسره څه خبره اوکړه اونه ماهغه سره خبره اوکړه اونه د﴿ اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّآ اِلَیْهِ رٰجِعُوْنَ ﴾ نه بله کلمه ما دهغه د خُلې نه اوریدلې. د غرمې پورې مونږ خپلې قافلې سره یوځائ شو بس هم د دومره خبرې نه هلاك کیدونکودومرې نورې خبرې جوړې کړې.ددوی د ټولونه لوئ اوپه بړ بړسره خبرې کونکې عبدالله بن ابی بن سلول وو. مدینې ته په راتلوسره زه بیماره شوم اوتریوې میاشتې پورې په کور کښې بیماره پرته ووم. نه ما څه اوریدلی اونه ماته چاڅه اووئیل کوم شور غوغا چه د خلقو په مینځ کښې وه زه د هغې نه بې خبره ووم دومره خبره وه چه زما په زړه کښې به داخیال راتلو چه د رسول الله ﷺ په مینه او محبت کښې د کمې څه وجه ده؟ په بیمارئی کښې په عام توګه چه به کوم شفقت درسول الله ﷺ ماسره وویدې بیمارئی کښې نه ووپه دې وجه زما خفګان خو ډیر وولې څه وجه راته معلومه نه وه. حضور ﷺ به تشریف راوړو سلام به ئې کولواو د حال تپوس به ئې کولوفرمائیل به ئې طبیعت دې څنګه دې؟ نور څه خبره به ئې نه کوله په دې به زما ډیر خفګان ووخود بهتان تړونکو نه زه بالکل غافله ووم.

اوس دا واورئی په کورونوکښې لیټرینونه جوړشوی نه وو اود عربود پخوانی عادت مطابق به مونږ خلق میدان ته د قضائی حاجت دپاره تلو. ښځې به عام توګه باندې د شپې تلې په کورونوکښې د عامو لیټرینونوجوړولونه به نفرت وو.زه د عادت مطابق ام مسطح kبنت ابی رهم بن عبدالمطلب بن عبد مناف سره دقضائی حاجت دپاره لاړم. هغه وخت زه ډیره کمزورې شوې ووم.داام مسطح k زماد پلار ترور وه دهغې موردصخربن عامر لوروه د هغې د ځوئ نوم مسطح بن اثاثه بن عباد بن عبدالمطلب وو. کله چه مونږ واپس راغلو نودام مسطح پنه دڅادریه پلاؤکښې اونختله اوناڅاپه دهغې دخُلې نه اووتل مسطح دې غرق شی.ماته بدښکاره شو ماوئیل تاخوډیره خرابه خبره اوکړه توبه اوکړه ته هغه ته کنځلې کوې چه جنګ بدرکښې شرکت کړې دې. هغه وخت ام مسطح اووئیل اې ساده بی بی تاته څه معلومه دد؟ ماوئیل څه خبره ده؟ هغې وئیل هغه هم د هغه خلقو نه دې چه تابدنام کوی ګرځی. زه ډیره حیرانه شوم او هغې پورې اونختم چه ماته پوره واقعه خو اووایه. هغې د بهتان تړونکو خلقو ټوله قصه ماته واوروله زماخو وار خطاشو د غم او خفګان غر په ما راپریوتلو د غم د وجه زه نوره هم بیماره شوم. بیماره خود اول نه ووم دې خبرخو زه کمزورې کړم په څه خوارو کورته راورسیدم. اوس خو مې صرف دا خیال وو چه خپل پلارکره لاړه شم چه په ښه شان سره خو معلومه کړم چه واقعی زما متعلق داسې خبرې خورې دی اوڅه څه مشهورولې شی؟ په دې کښې رسول الله ﷺ ماله خوالهٔ راغلو سلام ئې اوکړو اوتپوس ئې اوکړو څه حال دې؟ ماوئیل که تاسو اجازت راکړئی نوخپل پلار کره لاړه شم. حضور ﷺ اجازت راکړو.زه دلته راغلم اودخپلې مور نه مې تپوس اوکړو چه مورې په خلقو کښې څه خبرې خورې دی؟ هغې اوفرمائیل لورې داخو وړه خبره ده ته خپل خان دومره مه خفه کوه. د یوسړی ښه بی بی چه د هغه خوښه وی اودهغې بنې هم وی هلته د داسې خبرو راتلل خو لازمی خبره ده. ما وئیل سبحان الله آیا واقعی خلق زما متعلق داسې خبرې خوروی؟ اوس خوزه غم اومصیبت داسې راګیره کړم چه د بیانولو نه بهر دې.دهغه وخت نه مې چه کومه ژړا شروع کړه والله دیووخت د پاره مې اوښکې نه دی ولاړې. ما به سرایخودې ووژړل به مې، د څه خوراك څښاك، د څه اوده کیدل اوکیناستل د کوم ځائ خبرې اترې غم اومصیبت ژړاګانې اوزه.ټوله شپه په دې حال کښې تیره شوه چه د اوښکولړئی بندنه شوې. د ورځې هم داحال پاتې شو.

**د رسول کریم ﷺ د صحابه کرامو سره مشوره:** حضور ﷺ علی ؓ او اسامه بن زید ؓ راوغوښتل په وحی کښې وخت تیرشو. د الله ﷻ د طرف نه حضور ﷺ ته څه خبره اونه خودلې شوه د دې دپاره ئې دې دواړو بزرګانوسره مشوره اوکړه چه حضور ﷺ مانه جداشی که څه اوکړی؟اسامه ؓ خوصفااووئیل یارسول الله

ﷺ مونږ ستاسو په اهل کښې هیڅ بدی نه وینو زمونږ زړه د هغوی د محبت عزت او شرافت د ګواهئ ورکولو د پاره حاضر دی. علی ؓ جواب ورکړو چه یارسول الله ﷺ د الله ﷻ د طرف نه په تاسو باندې د ښځو دطرف نه څه تنګی نشته دې نه علاوه هم ډیرې دی که تاسو د کور دخادمه نه تپوس اوکړئ نو هغه به تاسو ته صحیح واقعه درمعلومه کړی شی.حضور ﷺ هم هغه وخت د کور خادمه حضرت بریره k راوغوښتله اوتپوس نی اوکړو که دعائشه بی بی دې کله هم څه دشك شبه خبرې اوریدلې وی نو اوښایه.بریره k اوونیل په هغه الله ﷻ مې دې قسم وی چاچه ته په حقه سره پیغمبر رالیګلې نی ماد هغې نه هیڅ کله هم څه داسې خبره نه ده لیدلې. اوصرف داخبره ده چه د کم عمرنی د وجه نه داسې کیږی چه کله کله به نی اخلې شوې اوړه هم داسې پریخودل او اوده به شوه نو چیلئ به راغله هغه اوړه به ئې اوخوړل د دې نه علاوه ما د هغې بل هیڅ قصور نه دې لیدلې.

**د هیڅ ثبوت نه ملاویدو نه پس د رسول ﷺ خطبه:**-د دې خبرې هیڅ ثبوت ملاونه شونوهم په هغه ورځ رسول الله ﷺ په منبرباندې اودریدو او ګنړې ته مخاطب شو ونې فرمائیل څوك دې هغه سړې چه ماد دغه سړی نه بچ کړی چاچه ماته د تکلیفو نورسولوسره اوس زما د کور والا د خلقو په ذریعه هم ماته تکلیفونه رارسول شروع کړی دی.والله ترکومې چه ماته پته ده ما په خپل کور والا کښې سوا د ښیګړې نه بل څه خبره نه ده لیدلې.دکوم سړی نوم چه داخلق اخلی زما په خیال کښې هم د هغه متعلق بغیرد ښیګړې نه بل هیڅ هم نشته هغه به زما سره کورته راتلو.دې اوریدو سره سعدبن معاذ ؓ اودریدو ونې فرمائیل یارسول الله ﷺ زه موجود یم که هغه د اوس قبیلې سړې وی نوهم اوس مونږ د هغه سټ دتې نه جداکوو اوکه هغه زمونږ دخزرج رونړونه دې نوبیاهم چه تاسوکوم حکم اوکړئ زمونږ به د هغې په پوره کولوکښې هیڅ عذر نه وی. دې اوریدوسره حضرت سعدبن عباده ؓ اودریدو دې د قبیله خزرج سردار وو.دې خو وو ډیر نیك بخت خود سعدبن معاذ ؓ د دې وخت خبرو اتروسره د خپلې قبیلې ملګر تیا ورته مخې ته شوه اود هغوی طرفداری کولوسره سعدبن معاذ ؓ ته اوونیل نه ته هغه قتل کولې شې اونه ته د هغه په قتل کولوقادر نې که هغه ستاد قبیلې وو نوتابه د هغه قتل کول هډو خوښ کړې نه وو. دې اوریدو سره اسیدبن حضیر ؓ اودریدو چه دسعدبن معاذ ؓ وراره وو ونې ونیل اې سعدبن عباده ؓ ته دروغ وائې مونږ به هغه خامخا وژنوته منافق سړې نې چه د منافقانو طرفداری کوې. اوس د هغوی د طرف نه د هغوی قبیله اود دوی د طرف نه د دوی قبیله د یوبل په مقابله کښې راپاسیدل او نیزدې وه چه د اوس او خزرج دا قبیلې په خپل مینځ کښې په جنګ شوې وې. حضور ﷺ هم د منبرنه د هغوی پوهه کول او چپ کول شروع کړل ترڅو چه دواړو طرفوته خاموشی شوه. حضور ﷺ هم چپ شو. داخووه د هغه ځائ واقعه اوزما حال دا وو چه توله ورځ مې هم په ژړاکښې تیره شوه. زما دې ژړا زما د مور پلار هم آواز بندکړی وو او په دې غم کښې وو چه دا ژړا به دا واخلی دواړه حیران او خفه ناست وو اوزما خو د ژړانه بل څه کار نه وو.

**د رسول کریم ﷺ عائشه رضی الله عنها پوهه کول اود هغې جواب:**-دانصارو یوه ښځه راغله او هغه هم ماسره په ژړاشوه مونږ داسې ناستې وو چه ناڅاپی رسول الله ﷺ تشریف راوړوسلام نې اوکړوماسره کیناستو.په الله ﷻ قسم چه دکوم وخت نه دا بهتان ترلې شوې وو ترننه پورې ماسره رسول الله ﷺ داسې ناست نه وو پوره میاشت تیره شوې وه چه د رسول الله ﷺ هم داحال وو څه وحی نه وه راغلې چه فیصله شوې وه. حضور ﷺ کیناستو سره تشهد اولوستلو اوامابعدفرمائیلو سره اوفرمائیل اې عائشه رضی الله عنها ستا متعلق ماته داخبر راورسیدو که ته واقعی پاك دامنه نې نو الله ﷻ به ستا پاکوالې ښکاره کړی اوکه په حقیقت کښې ته په څه ګناه باندې ککړه ئې نود الله ﷻ نه استغفاراوتوبه اوکړه. بنده چه کله ګناه کوی اود هغې په اقرار سره د الله ﷻ طرف ته تیټ شی اود هغه نه معافی غواړی نو الله ﷻ

هغه بنبی حضورﷺ چه دومره اوفرمائیل نو خاموش شو د دې اوریدو سره زما ژړا ژر اوبنکې مې اوچې شوې تردې چه ما د اوبنکو یو څاڅکې هم اونه لیدو. ما خو اول خپل پلار ته درخواست اوکړو چه زما د طرف نه رسول الله ﷺ ته جواب ورکړی خو هغوی ونیل والله زما خو په پوهه کښې هیڅ هم نه راځی چه زه حضورﷺ ته څه جواب ورکړم؟ بیا مې خپلې مور ته اوکتل اوورته مې اوونیل چه ته رسول الله ﷺ ته جواب ورکړه خوهغې هم دا اوونیل چه زه نه پوهیږم چه څه جواب ورکړم؟ آخر ما پخپله جواب ورکول شروع کړو زما عمر څه دومره لوئ هم نه وو اونه ماته دومره قرآن پاك یاد وو ماوئیل چه تاسو ټولویو خبره واوریده اوهغه مو په زړه کښې کینوله اولګه چه ربنتیامو اومنله زه دا وایم چه د دې خبرې نه زه بالکل بری یم او الله ﷻ ته بنه معلومه ده چه واقعی زه بالکل د دې نه بری یم خوتاسو خلق نی نه منئی اوکه زه د یوکار اقرار اوکړم نو الله ﷻ ته بنه معلومه ده چه زه بې ګناه یم نوتاسو به نی اوس اومنئی. زما اوستاسو مثال خو د یوسف ﷺ د پلار دا قول دې ﴿فَصَبْرٌ جَمِيلٌ ۖ وَاللَّهُ الْمُسْتَعَانُ عَلَىٰ مَا تَصِفُونَ﴾
([1]پس هم صبر بنه دې چه په کښې د شکایت هډو نوم نه وی اوتاسو چه کومې خبرې جوړونې په هغې کښې به الله ﷻ زما ملګرتیا اوکړی دومره خبره کولو سره ما اړخ بدل کړو او په خپله بستره سملاستم. په الله ﷻ قسم زما په پوره یقین وو چه زه پاکه یم او الله ﷻ به زما خلاصې خپل رسول ﷺ ته خامخا ورمعلوم کړی خو دا زما په وهم اوګمان کښې هم نه وه چه زما باره کښې به د قرآن آیاتونه نازلیږی ما خوخپل ځان د دې نه ډیرکم ګنړلو چه زما باره کښې دکلام الله آیاتونه نازل شی. اوزما به زیات نه زیات دا خیال کیدلو چه ممکن ده په خوب کښې الله ﷻ زما برا ت رسول الله ﷺ ته اوبنائی.

**د عائشه رضی الله عنها په حق کښې وحی راتلل**:- والله تردې وخت پورې نه رسول الله ﷺ د خپل ځائ نه خوزیدلې وو اونه دکور نور بنیادمان دکور نه بهر وتلې وو چه په حضورﷺ باندې وحی نازلیدل شروع شو او په مخ مبارك باندې هم هغه نښې وې کومې چه به د وحی په وخت کښې وې اود تندی مبارك نه نی د پاکې خولې څاڅکی راوڅڅیدل. په سخته یخنئی کښې به هم د وحی د نازلیدلو په وخت هم دا حال وو. کله چه وحی نازله شوه نو مونږ اوکتل چه دحضورﷺ مخ مبارك دخوشحالئی نه پرقیدو د ټولونه اول حضورﷺ زما طرف ته اوکتل ونی فرمائیل عائشه k خوشحاله شه الله ﷻ ستا برا ت راولیګلو هم هغه وخت زما مور اوونیل بچې دحضور ﷺ مخې ته اودریږه ما جواب ورکړو والله نه خویه زه د حضورﷺ مخې ته اودریږم اونه به د الله ﷻ نه بغیر د چا تعریف اوکړم هم هغه زما پاکوالې او برا ت نازل کړونو ﴿إِنَّ الَّذِينَ جَاءُوا بِالْإِفْكِ عُصْبَةٌ مِّنكُمْ ۚ لَا تَحْسَبُوهُ شَرًّا لَّكُم ۖ بَلْ هُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ۚ لِكُلِّ امْرِئٍ مِّنْهُم مَّا اكْتَسَبَ مِنَ الْإِثْمِ ۚ وَالَّذِي تَوَلَّىٰ كِبْرَهُ مِنْهُمْ لَهُ عَذَابٌ عَظِيمٌ﴾([2]) نه واخله تر لسو آیاتونو پورې نازل کړل.

د دې آیاتونو او زما د پاکوالې نازلیدونه پس په دې شر کښې حضرت مسطح بن اثاثه هم شریك وو او هغه ته به زما پلار د خپلولئی او د محتاجنی په وجه همیشه څه نه څه ورکول اوس هغوی اوفرمائیل چه ده زما په لور د تهمت لګولو کښې حصه واخسته نوزه به ده سره هیڅ بنه سلوك نه کوم. پدې باندې آیت (۶۰۰)([3]) الخ نازل شو یعنی په تاسو کښې چه کوم خلق د بزرګئی او مالدارئی والا دی هغوی له نه دی پکار چه خپلوانو مسکینانو اود الله ﷻ د لارې مجاهدینو سره د بنه سلوك نه کولو قسم اوخوری آیا تاسو نه غواړئی چه هغه بښونکې اومهربان الله ﷻ تاسو اوبښی؟ هم هغه وخت د دې په جواب کښې صدیق اکبرﷺ اوفرمائیل په الله ﷻ قسم زه خو ښنه غواړم. نو د هغه وخت نه نی د مسطحﷺ وظیفه مقرر کړه

---

[1] ۱۲/یوسف:۱۸.
[2] ۲٤/النور:۱۱.
[3] ۲٤/النور:۲۲.

اوونی فرمائیل والله اوس به ټول عمر پدې کښې څه کمې یاکوتاهی اونه کړم.زماددې واقعه باره کښې رسول الله ﷺ دزینب بنت جحش نه چه د حضورﷺ بی بی وه معلومات کړې وو هم دغه یوه بی بی وه د حضورﷺپه بیبیانوکښې چه زما د مقابلې وه خودا د خپلې پرهیزګارئی اودینداری په وجه صفابچ شوه او جواب ئی ورکړو حضورﷺ زه خو په عائشه کښې د بغیرد نیکئی نه بل هیڅ نه وینم زه خپل غوږونه او خپلې سترګې محفوظ ساتم. سره د دې چه دې ته د دې خور حمنه بنت جحش ډیر څه ونیلې وو اوبلکه جنګ ئی ورسره کړې وو ولې هغې د خپلې ژبې نه زما د بدئی یوه خبره هم اونه ویستله. اود هغې خور خُله کولاوکړې وه او زما باره کښې په هلاك کیدونکوکښې شامله شوې وه. دا روایت بخاری اومسلم د حدیث ډیروکتابونوکښې شته. (۱)

**په بل سند سره ددې خطبې واقعه او واقعه د افک** -په یوسندسره داهم روایت دې چه حضورﷺ په خپله دې خطبه کښې داهم فرمائیلې وو چه د کوم سړی طرف ته نسبت کوی هغه په سفراوحضرکښې ماسره پاتې دې زما په غیرموجودګئی کښې کله هم زما کورته نه دې راغلې. په دې کښې دی چه د حضرت سعدبن معاذ رضي الله عنه په مقابله کښې کوم صاحب ولاړوو هم د دې قبیلې نه ام حسان وه. په دې کښې داهم دی چه هم د دې خطبه د ورځ نه پس د شپې زه ام مسطح سره وتلې ووم. په دې کښې داهم دی چه یو خل هغه اوخونیده هغې خپل خوئ مسطح ته بداووئیل ما منع کړه بیااوخونیده بیاتی هغه ته بداووئیل ما بیا منع کړه. بیائی هغه ته بدرد اووئیل نوزه هغې ته غصه شوم. په دې کښې دی چه هم د هغه وخت نه زماتبه شوه. په دې کښې دی چه زما د مور کورته د رسولود پاره ماسره حضورﷺ یوغلام کړې وو. زه چه کله هلته اورسیدم نو زما پلار پاس کورکښې وو او د قرآن پاك په تلاوت کښې مشغول وو اومورمې په لاندې کور کښې وه.زما په لیدو سره زمامورمعلومات اوکړو دا نن څنګه راتلل اوشو؟ نوما ورته ټوله قصه واوروله. خو ما اوکتل چه داخبره خو نه هغوی ته څه حیرانونکې معلومه شوه نه ورته دومره غم اوفکر اوشو د کوم چه زما توقع وه. په دې کښې دی چه ما د مور نه تپوس اوکړو چه آیازما پلار ته هم د دې علم دې؟ زمامور ونیل چه هغه ته د دې علم دی چه په تاباندې تهمت لګولې شوې دې. دې کتلو او اوریدو سره زما د پلار په سترګوکښې هم اوښکې راغلې اوماته ئی اوونیل لورې زه تاته قسم درکوم چه هم اوس خپل کورته واپس شه نوزه واپس لاړم. دلته زما نه پس رسول الله ﷺ د کور د نوکرې نه هم زماباره کښې د نوروخلقو په موجودګئی کښې تپوس شوې وو په کوم چه هغې جواب ورکړې وو چه زه په عائشه کښې هیڅ بدی نه وینم بغیرد دې نه چه هغې به اخلې شوی اوړه داسې پریخودل پاسیده به او په ناخبرئی کښې به اوده شوه اوډیر خلې به اوړه چیلو خوړل. بلکه بعضې خلقو هغه ښه اورټله هم چه د رسول الله ﷺ په وړاندې رښتیارښتیا خبره کومه چه معلومه وی اوکړه. په هغې باندې ډیره سختی اوکړه خو هغې ونیل والله چه څنګه یوزرګر په خالص سرو زرو کښې څومره هم په ګرمولو څه عیب نه شی خودلې دغه شان زه په صدیقه باندې ګوته نه شم اوچتولې. کله چه هغه سړی ته داخبره اورسیده څوك چه بدنام کولې شو نوهغه اوونیل په الله ﷻ قسم ماخوترننه پورې د یوې ښځې لاس هم نه دې کولاوکړې. آخر هغه د الله ﷻ په لارکښې شهیدشو. په دې کښې دی چه رسول الله ﷺ د مازیګرد مانځه نه پس ماله تشریف راوړې ووهغه وخت زما مور پلار ښی اوګس طرف ته ناست وواوهغه انصاریه ښځه چه کومه راغلې وه هغه په دروازه کښې ناسته وه. په دې کښې دی چه کله حضورﷺ ماته نصیحت شروع کړو اومانه ئی د حال تپوس اوکړونوماوئیل چه هانې دا څومره د بې شرمئی خبره ده چه د پردئی ښځې هم خیال نه ساتې؟ په دې کښې داهم دی چه ماهم د الله ﷻ دحمداوثنانه پس جواب ورکړې وو. په دې کښې داهم دی چه ما څو خل یعقوب عليه السلام نوم یادکړو والله

۱) صحيح بخارى كتاب المغازى باب حديث الافك: ٤١٤١، صحيح مسلم: ٢٧٧، احمد: ٢/١٩٤.

هغه مې په ژبه رانغلو په دې وجه ماابویوسف اوونیل. په دې کښې دی چه کله حضورﷺ د وحی نه پس ماته زیرې واورولو والله هغه وخت زما د غم نه ډکه غصه نوره هم زیاته شوې وه ماخپل مور پلار ته ونیلي ووچه زه په دې معامله کښې ستاسوهم شکر گذاری نه کوم تاسوټولو یوه خبره واوریده خو تاسو نه انکاراوکړو اونه تاسوته څه غیرت راغلو. په دې کښې دی چه د دې قصه په ژبه راوستلوکښې حمنه مسطح حسان بن ثابت او عبدالله بن ابی منافق وو دا د ټولومشر ووا و ډیر به هم ده بیانونه کول. (۱)

**یو بل حدیث پاک**:-یوبل حدیث کښې دی زما د عذرداآیاتونه نازلیدلونه پس رسول اللهﷺدوو سړو او یوې ښځې ته دتهمت حداولګولو یعنی حسان بن ثابت مسطح بن اثاثه اوحمنه بنت حجش(۲) یو روایت کښې دی چه کله مور بی بی عائشه ته په خپل خان د تهمت لګیدو اود دې علم د هغوی پلار ته او د حضورﷺ ته د کیدو واقعه معلومه شوه نوهغه بې هوشه پریوتله.کله چه لږه شان په هوش کښې راغله نو ټول بدن ئې ګرځیدلو اوډیر زور تبه ئې وه او رچیدله.دهغې مور پرې هم هغه وخت برستن واچوله او رسول اللهﷺ هم هغه وخت راغلوتپوس ئې اوکړو دا څه حال دې؟ ماوئیل د یخنئی تبه ئې ده. حضور ﷺ اوفرمائیل چه کیدې شی دې خبر اوریدوسره ئې داحال شوې وی؟کله چه زما د عذرآیاتونه نازل شو نو ما واوریدل اومې ونیل دا د الله ﷻ په فضل سره دی نه چه دحضورﷺ.صدیق اکبرؓ اوونیل ته رسول اللهﷺ ته داسې وانې؟ صدیقه اوونیل او. (۳)

**د ایتونو مطلب او تشریح**:-اوس دآیاتونومطلب واورئی کوموخلقو چه دروغ اود خان نه خبرې جوړې کړې هغه ووهم یوڅوکسان. هغه تاسو اې آل ابی بکر دخپل خان د پاره خراب مه ګنړئی بلکه د انجام په لحاظ هغوی ستاسو د پاره په دین او دنیا کښې ښیګړه ده. په دنیاکښې به ستاسو صداقت ثابتیږی په آخرت کښې به اوچتې مرتبې ملاویږی. دعائشه براءت به په قرآن پاك کښې نازلیږی کوم له چه خواوشاهم باطل نه شی راتلې. هم په دغه وجه چه کله ابن عباسؓ موربی بی k له د هغې په آخری وخت کښې راغلو نوونی فرمائیل ام المؤمنین تاسو خوشحاله شئی چه ته د رسول اللهﷺ بی بی پاتې شوې او حضورﷺ به درسره په مینه ملاویدلو او حضورﷺ تاسو نه بغیربلې پیغلې سره واده نه وو کړې اوستاسو براءت د آسمان نه نازل شو(۴)یوه ورخ عائشه اوزینبؓ دخپلوپاکو صفتونوذکرکولو نو زینب k اوفرمائیل زما نکاح د آسمان نه نازل شوې.عائشه k اوفرمائیل زما د پاکوالی ګواهی په قرآن کریم کښې د آسمان نه نازل شوې کله چه صفوان بن معطلؓ زه په خپله سورلئی راوستې ووم. زینب k تپوس اوکړوکله چه ته په اوښ کیناستې نوتاکومه کلمه ونیلې وه؟ هغې ونیل ﴿حسبی الله ونعم الوکیل﴾ په دې باندې هغې اوونیل تاد مؤمنانو کلمه ونیلې وه.

**دتهمت شروع رئیس المنافقین کړې ده**:-بیا ئې اوفرمائیل چه چا په پاك دامنه صدیقهk باندې تهمت لګولې ووهریوته به لویٔ عذاب کیږی اوچاچه د دې شروع کړې وه اودائې اخوادیخوا خورولو د هغوی دپاره سخت عذاب دې.دې نه مراد عبدالله بن ابی بن سلول ملعون دې ټیك قول هم دادې. بعضې اوونیل دې نه مراد حسان دې خوداقول ټیك نه دې.داقول هم دې نوځکه مونږ بیان کړوګنې د دې په بیانولوکښې څه فائده هم نشته ځکه چه حسانؓ په ډیروبزرګانوصحابه کرامورضوان الله اجمعین کښې وو.دهغه ډیرفضیلتونه اوبزرګئی په احادیثوکښې موجوددی.همداووچه دکافرانو شاعرانو د

---

(۱) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة النور باب ﴿إن الذین یحبون أن تشیع الفاحشة فی الذین امنوا....﴾:۴۷۵۷.
(۲) ابوداؤدکتاب الحدود باب فی حدالقاذف:۴۴۷۴وهوحسن، ترمذی:۳۱۸۱، ابن ماجة:۲۵۶۷، السنن الکبری للنسائی:۷۳۵۱
(۳) صحیح بخاری کتاب المغازی باب حدیث الافك:۴۱۴۳، احمد:۲/۳۶۷-۳۶۸، مسندالطیالسی:۱۶۶۵، ابن حبان:۷۱۰۳.
(۴) صحیح بخاری کتاب التفسیرسورة النور باب﴿ولولاإذ سمعتموه قلتم مایکون لناأن نتکلم بهذا....﴾:۴۷۵۳.

سپکاوی د شعرونو به نی د الله ﷻ د نبی ﷺ د طرف نه جواب ورکولو. هم ده ته حضورﷺ فرمائیلي وو ته د کافرانو بدبیانوه حضرت جبرائیل ﷺ تاسره دي[1] د مسروق بیان دي زه عائشه صدیقه سره ووم چه حسان بن ثابت ﷺ راغلوعائشه هغه په عزت سره کینولو حکم نی اوکړو دده دپاره کدنی خوره کړنی.کله چه هغه واپس لاړو نو ما ورته اووئیل چه ته دي ولې راتلوته پریږدې؟ د ده د راتلونه څه فائده؟ الله ﷻ خو فرمائی چه په دوی کښې څوك د تهمت والا دی د هغوی د پاره لوئ عذاب دي. نومور بی بی اوفرمائیل چه د ړوندتوب نه به بل کوم عذاب لوئ وی. دي نابیناشوې وو نو وئې فرمائیل کیدي شی هم دا عذاب عظیم وی. بیافرمائی چه تاته معلومه نه ده چه د رسول الله ﷺ د طرف نه د کافرانود سپکاوی والا د شعرونو په جواب ورکولودي مقررووو[2] یوروایت کښې دی چه حسان ﷺ هغه وخت دعائشه صدیقه k په تعریف کښې شعر لوستلي وو چه پاکه ساده د ټولو خرابو کارونونه غیبت او بدئی نه پرهیز کونکي ده نو هغوی اوفرمائیل چه ته خوداسې نه وې[3] حضرت عائشه فرمائی ماته دحسان ﷺ د شعرونونه ښه شعرونه نه ښکاری اوچه زه کله هم دا شعرونه لولم نوزماپه زړه کښې داخیال راځی چه حسان ﷺ جنتی دي.هغه ابوسفیان بن حارث بن عبدالمطلب ته خطاب کولوسره خپلو شعرونوکښې فرمائی تاد محمدﷺ سپکاوې کړې دې زه چه تاسو ټول فناکړم نو بیاهم ستاسویدو ژبود مقابلي نه اخواکیدي نه شم ستاغوندي سړې چه زما دنبی ﷺ د پیڅي مبارکي هم برابروالي نه شی کولي دحضورﷺ سپکاوې به کوې؟یادساته چه ستاپه شان بد دحضورﷺ په شان نیك باندې قربان دې کله چه تاد حضورﷺ سپکاوې کړې دې نو اوس په زما د خُلې د تیرې تورې په شان د بې عیبه تورې نه ته څنګه بچ کیږې اوچرته به څې؟ د ام المؤمنین نه تپوس اوکړې شوچه آیا دا فضول کلام نه دې؟هغې اوفرمائیل هیڅ کله نه لغواو فضول کلام خود شاعرانو هغه بکواس دې کوم چه دښځو وغیره باره کښې وی.د هغې نه تپوس اوشو چه آیا په قرآن پاك کښې داسې نه دی چه په هغه تهمت کښې د چالویه حصه وه د هغوی د پاره لوئ عذاب دې؟ وئې فرمائیل چه اوخوولې داکوم عذاب چه هغه ته شوې هغه لوئ نه دې؟ سترګې د هغه نه لاړې توره په هغه اوچلیدله هغه خوبنه ده چه صفوان ﷺ منع شوګنی نوعجیبه نه وه چه د خپل خان متعلق نی داخبره اوریدوسره دې قتل کړې وو.

| لَوْلَآ | إِذْ | سَمِعْتُمُوهُ |
| --- | --- | --- |
| ولې نه | کله چې | واوریدو تاسو دا خبر |
| اهرکله چې تاسو دا (د تهمت) خبره واوریده | | |

| ظَنَّ | الْمُؤْمِنُونَ | وَالْمُؤْمِنٰتُ | بِأَنْفُسِهِمْ | خَيْرًا | وَّقَالُوا |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| ګمان اوکړو | مومنانو سړو | او مومنانو ښځو | په ځانونو خپلو باندې | د خیر | او وئیلي ئې وې |
| نو ولې داسې نه وه اچې مسلمانانو سړو اوښځو دخپلو خپلوانو په حقله نیک ګمان کړې وې او | | | | | |

| هٰذَآ إِفْكٌ | مُّبِينٌ | لَوْلَا جَآءُو | عَلَيْهِ | بِأَرْبَعَةِ | شُهَدَآءَ |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| چې دا دروغ دی | ښکاره | ولې رانه وستل هغوی | په دې خبره باندې | څلور | ګواهان |
| دا ئې وئیلي وې اچې دا خوښکاره بهتان دې ادوئ پخپله خبره باندې ولې څلور ګواهان پیدانه کړل | | | | | |

[1] صحیح بخاری کتاب الادب باب هجاء المشرکین:۶۱۵۳، صحیح مسلم:۲۴۸۶.
[2] صحیح بخاری کتاب المغازی باب حدیث الافك :۴۱۴۶، صحیح مسلم:۲۴۸۸.
[3] صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة النور باب (ویبین الله لکم الآیات والله علیم حکیم):۴۷۵۶.

| فَإِذْ لَمْ يَأْتُوا | بِالشُّهَدَآءِ | فَأُولَٰٓئِكَ | عِندَ اللَّهِ | هُمُ |
|---|---|---|---|---|
| پس هر کله چي رانهٔ وستل هغوئ | گواهان | نو دغه کسان چي دي | په نز دالله | هم هغوئ |

نوهر كله چي دوئ گواهان رانه وستي شول| نو بس دالله ﷻ په نزد خو هم دوئ دروغژن شول

| الْكَٰذِبُونَ ۝ |
|---|
| دروغژن دي |

اوكه په تاسو باندي په دنيا

قوله تعالى:- لَوْلَا إِذْ سَمِعْتُمُوهُ ظَنَّ الْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَاتُ بِأَنفُسِهِمْ خَيْرًا

**دَ صديقه كائنات دپاكوالي آسماني اعلان:-** پدې آياتونوكښې الله ﷻ مؤمنانوته ادب ښائي چه هغوی دحضرت عائشه صديقه k باره كښې كومې خبرې د خلې نه ويستلي وې بلكه هغوی له پكار ووچه د دې كلام په اوريدوسره ئې د خپلي شرعي مور سره كم نه كم هغه خيال كړې وې چه خپل خان سره كوی بلكه هغوی خپل خان هم د دې قابل نه گنړلونو د ام المؤمنين شان به ئې د دې نه هم زيات لوئ او اوچت گنړلو.بوه واقعه بالكل هم داسې شوې وه.حضرت ابوايوب خالدبن زيدانصاری ﷺ ته د هغه بي بي ام ايوب اونيل چه آيا تا هغه هم واوريده كوم چه د حضرت عائشه باره كښې ونيلې شوی دی؟هغه اوفرمائيل اواودا يقيناً دروغ دی ام ايوب ته اوښايه چه ته چرته داسې كاركولی شې؟ هغې ونيل نعوذ بالله نامكن دی. هغه اوونيل چه حضرت عائشه خوتانه ډيره غوره اوبهتره ده. كله چه آياتونه نازل شو نواول دبهتان تړونكو ذكر اوشو يعني د حضرت حسان ﷺ اود هغه د ملگرو بيا په دې آياتونوكښې ذكر اوشو دحضرت ابوايوب ﷺ اودهغه د بي بيk ددې خبرواتروچه كومې پورته اوشوې. داهم يوقول دې چه دا مقوله د حضرت ابي بن كعب ﷺ وه.

**مؤمنانو لره څه كول پكار دي؟:-** غرض دا چه مومنانوله صفا باطن ساتل پكاردی اوښه خيالونه كول پكار دي. بلكه په ژبه سره هم د داسې واقعه ترديد اوتكذيب كول پكار دی خكه چه داڅومره واقعه تيره شوه په دې كښې د شك شبه هيڅ گنجائش هم نه وو.ام المؤمنين ښه په ښكاره په سورلئی باندې ناسته د ورځې اود غرمې په ډك لښكر كښې رسی پخپله پيغمبرموجود دې الله ﷻ دې نه كړی كه داسې څه خبره شوې هم وه نو داسې په ښكاره به دې عام دلې ته نه راتله بلكه پټه اوغلې به په دې كښې شامله شوې وه چه چاته به هيڅ خبر هم نه وو شوې. نوصفاښكاره خبره ده چه د بهتان تړونكوخلې نه كومه خبره جوړه شوه هغه صرف دروغ بهتان اود خان نه خبره ده په كوم سره چه هغوی خپل عزت او ايمان غرق كړو.بيا فرمائي چه دې بهتان تړونكو كوم څه ونيلي پخپل صداقت باندې څلورگواهان ولې نه پيش كوې؟اوچه كله دوی گواه پيش نه كړې شونوشرعاًهغوی دالله ﷻ په نيزدروغژن دی فاسق دی فاجر دی

| فِي الدُّنْيَا | وَرَحْمَتُهُ | عَلَيْكُمْ | وَلَوْلَا فَضْلُ اللَّهِ |
|---|---|---|---|
| په دنيا | اورحمت دهغه | په تاسو باندي | اوكه چرې نهٔ وې فضل دالله |

اوكه په تاسو باندې په دنيا او اخرت كښې دالله ﷻ فضل او مهربانئی نه وې ..........

| وَالْآخِرَةِ | لَمَسَّكُمْ | فِيمَا | أَفَضْتُمْ |
|---|---|---|---|
| او په اخرت كښې | نو رسيدلې به ووٌ تاسو ته | په هغه خبره كښې | چې اخته شوی وئ تاسو |

انوتاسو چې په كومه گناه كښې اخته شوې وئ د هغې په وجه به

فِيْهِ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ۞ إِذْ تَلَقَّوْنَهٗ بِأَلْسِنَتِكُمْ

په هغې کښې | عذاب | لوئ | کله چې | اغستل تاسو دا دروغ | په ژبو خپلو سره

دربانديِ لوئي عذاب نازل شوي وو | څه وخت چې تاسو دا خبره په خپلو خولو يو بل ته کوله

وَتَقُوْلُوْنَ بِأَفْوَاهِكُمْ مَّا لَيْسَ لَكُمْ بِهٖ عِلْمٌ

اووئيل تاسو | په خلو خپلو باند | هغه څه | چې نه وو تاسو لره | په هغې باند | څه علم

| اوتاسو به خولو باندي هغه څه وئيل چې تاسوترې نه خپله خبر نه وئ

وَّتَحْسَبُوْنَهٗ هَيِّنًا ۖ وَّهُوَ عِنْدَ اللّٰهِ عَظِيْمٌ ۞

او تاسو سرګنړله دا خبره | اسانه (معمولی) | حالانکه هغه | په نز دالله | لويه خبره وه |

| اودا مومعمولي خبره ګنړله | حال دا چې دالله ﷻ په نزد ډيرلوئي جرم وو |

**قوله تعالى:** وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ

**د صديقه کائنات د عظمت بيان:** ارشاددي چه اې هغه خلقوچاچه دحضرت صديقه باره کښې خپلو ژبوته خراب حرکت ورکړو که د الله ﷻ فضل اوکرم په تاسو باندي نه وو چه هغه په دنياکښې ستاسوتوبه قبوله کړی اوپه آخرت کښې تاسوستاسو دايمان په وجه معاف کړی نوچه په کوم بهتان کښې تاسو خپلې ژبې اوخوزولې په هغې کښې به تاسو باندې ډير دروندعذاب وو.دا آيت دهغه خلقو متعلق دې دچا په زړه کښې چه ايمان ووخو په ناپوهنی کښې نی څه وئيلي وو لکه حضرت مسطح ؓ حضرت حسان ؓ اوحمنه رضی الله عنهم. اوچه د چا زړه د ايمان نه خالی وواود دې طوفان اوچتونکی وولکه عبدالله بن ابی بن سلول وغيره منافقان دا خلق په دې حکم کښې نه ووځکه چه نه دوی سره ايمان وواونه نيك عمل. کله چه تاسوداخبره خورروله ديونه اوريدله بل ته به نی کوله د حضرت عائشه k په قراءت کښې ﴿اذتلقونه﴾ دې[1] عنی کله چه تاسو ددې دروغو خورونه کوله.اولنی قراءت د جمهوردې اوداقراءت د هغوی دې چاته چه ددې آيت ډير علم وو اوتاسو به هغه خبره د ژبې نه ويستله دکوم چه تاسوته علم نه وو.تاسو خوداکلام آسان ګنړلو خو په اصل کښې دالله ﷻ په نيزدا ډير دروند او سخت کلام وو.ديوې مسلمانې ښځې متعلق داسې تهمت لګول عظيم جرم دې. بياد الله ﷻ د رسول ﷺ د بی بی متعلق داسې کلمه وئيل خيال اوکړنې چه څومره لويه ګناه به وی؟ د دې د پاره د رب غيرت دخپل نبی ﷺ دوجه نه په جوش کښې راغلوا والله ﷻ وحی نازله کړه اودخاتم الانبياء سيد المرسلين ﷺ دپاکې بی بی k پاکوالې ثابت کړه. دهريونبی بی بی الله ﷻ ددې بې حيائی نه لرې ساتلې ده نوداځنګه ممکن ده چه د ټولوانبياؤکرامو بيبيانوند غوره او د هغوی سردار د ټولو انبياؤ کرامو نه غوره اود ټول اولاد آدم سردار محمد ﷺ بی بی به په دې کښې ککړه وی حاشاوکلا. که تاسو داکلام بې توجوګنړنی خو حقيقت ددې مخالف دې. بخاری اومسلم کښې دی انسان بعضې وخت د الله ﷻ دخفګان يوه خبره اوکړی د کومې چه د هغه په خيال کښې هيڅ ځای نه وی خود هغې په وجه هغه ددوزخ په دومره لاندې طبقه کښې وررسی څومره چه زمکه اوآسمان دي بلکه د دې نه هم ډير ښکته وی[2]

---

[1] صحيح بخاری کتاب المغازی باب حديث الافك:٤١٤٤.

[2] صحيح بخاری کتاب الرقاق باب حفظ اللسان:٦٤٧٧-٦٤٧٨، صحيح مسلم:٢٩٨٨.

وَلَوْلَآ اِذْ سَمِعْتُمُوْهُ قُلْتُمْ مَّا يَكُوْنُ لَنَآ اَنْ نَّتَكَلَّمَ بِهٰذَا ق

او ولې نه کله چې واوريدوتاسو دا خبر اووئيل تاسواچې نه ښائي | مونږ لره | چې خله اوخوزوو | په دې دروغو

او څه وخت چې تاسو اوريدلي وه انو داسې موولې نه وئيل چې مونږ له داسې خبره دخولې نه ايستل نه دي پکار

سُبْحٰنَكَ هٰذَا بُهْتَانٌ عَظِيْمٌ ﴿۱۶﴾ يَعِظُكُمُ اللّٰهُ اَنْ تَعُوْدُوْا

پاکي ده تالره | دا بهتان دې | لوئ | نصيحت کوي تاسو ته | الله | چې بيا اونه کړئ

سبحان الله ! دا خو ډير لوئې بهتان (دروغ) دې | (واورئ) الله ﷻ تاسو ته نصيحت کوي

لِمِثْلِهٖٓ اَبَدًا اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۱۷﴾ ج وَيُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ

کارېشان ددې دروغو | هيڅکله | که يئ تاسو | مومنان | او بيانوي الله | تاسو ته |

که چرې تاسو مومنان يئ نو بيا هيچرې داسې کار اونه کړئ | او الله ﷻ تاسو ته په وضاحت سره

الْاٰيٰتِ ط وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ﴿۱۸﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ يُحِبُّوْنَ

ايتونه | او الله | ښه پوهه دې | دحکمت خاوند دې | بيشکه هغه کسان | چې خوښوي

حکمونو بيانوي | او الله ﷻ په هرڅه پوهه او صاحب د حکمت دې | بيشکه کوم خلق چې دا غواړي

اَنْ تَشِيْعَ الْفَاحِشَةُ فِي الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَهُمْ

داخبره | چې خوره شي | بې حيائي | په هغه کسانو کښې | چې ايمان ئې راوړې دې | ددې دهغوئ دپاره

چې په مومنانو کښې بې حيائي خوره شي | هغوئ دپاره په دنيا او اخرت کښې دردناک

عَذَابٌ اَلِيْمٌ لا فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ط وَاللّٰهُ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۱۹﴾

عذاب | دردناک | په دنيا کښې | او په اخرت کښې | او الله | پوهيږي | او تاسو نه پوهيږئ

عذاب مقرر دې | او الله ﷻ په هره خبره پوهيږي | او تاسو نه پوهيږئ

**قوله تعالٰى:- وَلَوْلَآ اِذْ سَمِعْتُمُوْهُ**

**ديومسلمان پحقله بې تحقيقه خبره نه ده پکار**:- اول خوئې دنيک گمان کولوحکم ورکړودلته بل حکم ورکولې شي دخوخلقودشان متعلق بغيرتحقيق نه خرابه خبره نه دی ويستل پکار. دخرابوالزامونو خرابوخيالونو اوشيطاني وسوسونه خان لرې ساتل پکاردی هيڅ کله هم داسې خبرې دخلې نه نه دی ويستل پکار. که په زړه کښې دې داسې څه شيطاني وسوسه پيداهم شي نوژيه قابوکښې ساتل پکار دی؟ دحضور ﷺ ارشاددې الله ﷻ زما د امت په زړونوکښې پيداکيدونکې وسوسې معاف کړې دی ترکومې چه هغه په ژبه باندې اونه وائي يائي په عمل کښې رانولې(۱)(بخاري ومسلم) تاسوله پکار وو چه داسې فضول خبره اوريدو سره مو وئيلې وې مونږ په داسې گنده خبره خپله ژبه نه خرابوو. مونږ نه دابې ادبي نه شي کيدلې چه دالله ﷻ دخليل او د هغه د رسول ﷺ د بي بي مبارکې په شان کښې داسې فضول خبره اوکړو. د الله ﷻ ذات پاک دې گورئ بيا داسې حرکت اونه کړئ گني د ايمان د اخستلواندېښنه ده. اوکه يوسړې دايمان نه خالي وی نوهغه بې ادبه گستاخ اودخوخلقوسپکاوې کونکې وی. دشريعت احکام الله ﷻ ستاسو په وړاندې کولاو کولاو بيانوي. هغه د خپلو بنديگانو د مصلحتونونه خبردار دې د هغه هيڅ يو حکم د حکمت نه خالي نه وی.

(۱) صحيح بخاري كتاب الايمان والنذور باب اذاحنث ناسيا في الايمان: ۶۶۶۴، صحيح مسلم: ۱۲۷.

**د بدئ خورونه حرام ده:-** دادريمه تنبيه ده چه كوم يوسړي داسې خبره واوري هغه له د هغې خورول حرام دي.څوك چه داسې خرابې خبرې خوروي اوګرځي هغوی له به دنياوي سزا يعنى حد هم لګولې شي او أخروي سزايعنى د دوزخ عذاب به هم وي.الله ﷻ عالم دې تاسو بې علم نى نوتاسو له خپل ټول امور هم دالله ﷻ طرف ته واپس كول پكاردى.په حديث كښې دى د الله ﷻ بنديګانوته تكليف مه وركوه او هغوی ته شرم مه وركوه د هغوی پټې خبرې مه لټوه. كوم سړې چه دخپل مسلمان روړعيب لټوي الله ﷻ به د هغه عيبونوپسې شى اوهغه به دومره رسواكړي چه د هغه دكوروالابه هم هغه ته په خراب نظرسره ګوري. (١)

وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ وَاَنَّ اللّٰهَ رَءُوْفٌ
او كه چرې نۀ وې فضل دالله | په تاسو باندې | او رحمت دهغه | او بيشكه الله | مهربانه دې
اوكه چرې تاسو باندې دالله ﷻ فضل او رحمت نه وې إنو (تاسوته به سخته سزادركړې شوې وه ، اودا
رَّحِيْمٌ ۝ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّبِعُوْا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ ؕ
رحيم دې | اے هغه كسانو | چې ايمان مو راوړې دې | پيروى مۀ كوئ | دقدمونو دشيطان
چې الله ﷻ ډير نرمى كونكې مهربان دې إاې مومنانو تاسو د شيطان په لاره باندې مه ځئ
وَمَنْ يَّتَّبِعْ خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ فَاِنَّهٗ يَاْمُرُ بِالْفَحْشَآءِ
او چاچې پيروى اوكړه | دقدمونو | دشيطان | نو بيشكه چې هغه | حكم كوي | دبې حيايئ
اوڅوك چې په شيطان پسې روان شى إنو هغه خو هميشه د بې شرمئ او دبدو كارونو
وَالْمُنْكَرِ ؕ وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ مَا زَكٰى
او دبدئ | او كه چرې نۀ وې فضل دالله | په تاسو باندې | او رحمت دهغه | نۀ شو پاكيدې |
حكم كوي |.... او كه په تاسوباندې دالله ﷻ فضل او مهرباني نه وې إنو په تاسو كښې به
مِنْكُمْ مِّنْ اَحَدٍ اَبَدًا ۙ وَّلٰكِنَّ اللّٰهَ يُزَكِّيْ مَنْ يَّشَآءُ ؕ
ستاسو نه | هيڅوك | هيڅكله | ليكن | الله | پاكوى | هغه څوك | چې غواړي نې هغه
هيڅوك پاك شوې نه وواخو الله ﷻ چې څوك پاكول اوغواړي نو هغه پاك كړي
وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ۝
او الله | ښۀ اوريدونكې دې إښه پوهه دې |
اوالله ﷻ هر څه اوري إپه هر څه پوهه دې|

**قوله تعالى:-** يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّبِعُوْا

**شيطاني لارې :-** كه دالله ﷻ فضل اوكرم اولطف اورحم نه وونوهغه وخت به څه بله خبره كيدله خو هغه د توبه كونكو توبه قبوله كړه.پاكيدونكى نى په شرعى حدسره پاك كړل.په شيطاني طريقواوشيطانى لارد باندې مه ځئ.دهغه خبرې مه منئ. هغه خودبدئ بدكارئ بې حيايئ حكم وركوي نوتاسو له دهغه دخبرې منلونه پرهيزكول پكاردى دهغه د عمل نه بچ كيدل پكاردى.دهغه دوسوسو نه لرې كيدل پكار

---

(١) احمد:٥/٢٧٩ح ٢٢٤٠٢وسنده حسن، مجمع الزوائد:٨/٨٦.

دي.دالله ﷻ په هره يوه نافرمانۍ کښې د شيطان قدم وی(¹)يوسړی حضرت ابن مسعودؓ ته اوونيل ماد فلانکی څيزدنه خوړلوقسم کړې دې. هغوی اوفرمائيل دا دشيطان دهوکه ده دخپل قسم کفاره ورکړه او دااوخوره.يوسړي حضرت شعبی ته اوونيل ماد خپل ماشوم دذبح کولونذرمنلې دې. هغوی اوفرمائيل دا شيطانی حرکت دې داسې مه کوه د دې په بدل کښې يوګډ ذبح کړه. ابورافع m فرمائي چه يوخل زمااود ښځې په مينځ جنګ اوشو هغه ورانه شوه اوونې ونيل چه يوه ورځ هغه يهوديه وی او يوه ورځ هغه نصرانيه وی اود هغې ټول غلامان آزاد دی که ته خپلې ښځې له طلاق ورنه کړې.زه راغلم اوحضرت عبدالله بن عمر ؓ ته مې دامسئله بيان کړه نوهغوی اوفرمائيل داشيطانی حرکت دې. زينب بنت ام سلمه ؓ چه هغه وخت کښې د ټولونه زياته ديني پوهه لرونکې بی بی وه هغې هم دغه فتوی ورکړه. اوعاصم ابن عمر هم دا اوونيل بيا فرمائي که د الله ﷻ فضل اوکرم نه وونو په تاسو کښې به يوهم پخپله د شرك نه كفر نه خراب کار اوبدنی نه نه شو بچ کيدې. داد رب العالمين احسان دې چه هغه تاسو ته د توبه توفيق درکوی بيا په تاسو باندې په مهربانۍ سره رجوع کوی او تاسو پاك اوصفاجوړوی(الله ﷻ چه څوك غواړی پاك اوصفا کوی اوڅوك چه غواړی د هلاکت په کنده کښې ورديکه کوی الله ﷻدخپل بنديګانوخبرې اوريدونکې اودهغوی دااحوالونه خبرداردې.دهدايت مستحق او ضلالت ټول دهغه په نظر کښې دی اوپدې کښې هم دهغه حکيم ډيرې حسابه حکمت دې)

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَلَا يَأْتَلِ | أُولُوا الْفَضْلِ | مِنْكُمْ | |
| اونه دخوری قسم | خاوندان دفضل | ستاسو نه | |
| او تاسوکښې چې څوک د بزرګئ والا دي | | | |
| وَالسَّعَةِ | أَنْ يُؤْتُوا | أُولِي الْقُرْبَىٰ | وَالْمَسٰكِيْنَ |
| او خاوندان دفراخئ | دې خبرې ته چې ورکړي هغوئ | خاوند درشتې ته | او مسکينانوته |
| مالداران دی ............نو هغوئ دې خپلوانو مسکينانو | | | |
| وَالْمُهٰجِرِيْنَ | فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ | وَلْيَعْفُوْا | وَلْيَصْفَحُوْا |
| او هجرت کونکوته | په لار دالله کښې | او پکار دی چې معافي اوکړي | او مخ واړوي |
| اودالله ﷻ په لار کښې هجرت کونکو ته د څه نه ورکولو قسمونه نه خوري | اوپکار دی چې معافي | | |
| أَلَا تُحِبُّوْنَ | أَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ | لَكُمْ وَاللّٰهُ | غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۲۲﴾ |
| آيا نه خوښوئ تاسو | چې ښښنه اوکړي الله | تاسو ته \| اوالله | ښخښونکي \| مهربانه دي |
| ورته کوی \|او د عفو نه دې کار اخلي \|آيادامو خوښه نه ده چې الله ﷻ درته ښښنه اوکړي \|اوالله ﷻ ډير | | | |
| إِنَّ الَّذِيْنَ | يَرْمُوْنَ | الْمُحْصَنٰتِ الْغٰفِلٰتِ | الْمُؤْمِنٰتِ |
| بيشکه هغه کسان | چې ولي په الزام دزنا | پاکي \| ناخبره | مومنانې ښځې |
| ښښونکي مهربان دي \| هغه خلق چې په پاکدامنو بې خبره اوايماندارو ښځو باندې | | | |

¹) الطبری: ۳/۲۱۰.

لُعِنُوْا فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ وَلَهُمْ عَذَابٌ

لعنت اوکړې شو په هغوئ باندې | په دنيا کښې | اوپه آخرت کښې | اودې دهغوئ دپاره | عذاب

تهمتونه لګوی انو په هغوئ باندې په دنيا اوپه آخرت دواړو کښې لعنتونه وريږی ||اوهغوئ دپاره

عَظِيْمٌ ﴿۲۳﴾ يَّوْمَ تَشْهَدُ عَلَيْهِمْ اَلْسِنَتُهُمْ وَاَيْدِيْهِمْ

لوئ | په هغه ورځ | چې ګواهي به کوی | په هغوئ باند | ژبې دهغوئ | او لاسونه دهغوئ

دردناک عذاب مقرر دې |په کومه ورځ چې به دوی په هغه عملونو کوم چې دوی کړی وی د دوی

وَاَرْجُلُهُمْ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۲۴﴾ يَوْمَئِذٍ

او ښپې دهغوئ | په هغه کارونو | چې وو هغوئ | چې کول به ئې | په دغه ورځ به

ژبې او لاسونه او ښپې ګواهي ورکوی |............... په دغه ورځ

يُّوَفِّيْهِمُ اللّٰهُ دِيْنَهُمُ الْحَقَّ وَيَعْلَمُوْنَ

پوره پوره ورکړې هغوئ له | الله | بدله دهغوئ | چې لاتيقه وی | او معلوم به شی هغوئ ته

په الله ﷻ درئ ته ددې پوره پوره سزا ورکړی || اودوئ ته به معلومه شی

اَنَّ اللّٰهَ هُوَالْحَقُّ الْمُبِيْنُ ﴿۲۵﴾

چې بيشکه الله|هم هغه حق دې|رښتياؤ لره رښتيا کونکې دې |

چې يقينی ده چې الله رېښتونې اودهرې خبرې ښکاره کونکې دې|

قوله تعالی:- وَلَا يَاْتَلِ اُولُوا الْفَضْلِ مِنْكُمْ

**دصديق اکبر عظمت اوسخاوت:**-په تاسوکښې چه کوم خلق دکولاورزق قدرت لرونکی دی صدقه او احسان کونکی دی هغوی له ددې خبرې قسم نه دی خوړل پکارچه هغوی به خپلوخپلوانوله مسکينانو له او مهاجرونه هيڅ هم نه ورکوی. دغه شان ئې هغوی متوجه کولود پاره اوبياد نورو نرم کولود پاره ئې اوفرمائيل که د هغوی د لاس نه څه خطا هم شوی وی نوهغوی معاف کول پکاردی. که د هغوی نه څه بدی ياتکليف رسيدلې وی نودهغې نه تيريدل پکاردی. داهم د الله ﷻ حلم کرم لطف اورحم دې چه هغه خپلو نيکانو بنديګانو ته هم د نيکوحکم کوی. داآيت د حضرت ضديق اکبر؄ په باره کښې نازل شوی دې کوم وخت چه هغوی دحضرت مسطح بن اثاثه ؄ باره کښې دخه ښيګړې نه کولو قسم خوړلې ووځکه چه د صديقه k په بهتان کښې دې هم شامل وو لکه چه په اولنوآياتونوکښې داواقعه تيره شوه.نوچه کله اصل خبره الله ﷻ ښکاره کړه حضرت ام المؤمنين برى شوه دمسلمانانو زړونه روښانه شودمؤمنانوتوبه قبوله شوه په تهمت لګونکوکښې بعضو باندې شرعی حد اولګيدو نو الله ﷻ حضرت صديق اکبر؄ حضرت مسطح ؄ ته متوجه کولوسره اوفرمائيل چه هغه د هغه د ترور خوئ او مسکين سړې وو.هم حضرت صديق اکبر؄ د هغه پالنه کوله اوهغه مهاجر وو خوپه دې باره کښې اتفاقی ژبه کولاوشوې وه هغه ته د تهمت حدهم لګولې شوې وو.دحضرت صديق اکبر ؄ سخاوت مشهور ووځه په کښې خپل اوڅه پره دی د هغوی ښه سلوك د ټولود پاره عام وو. د آيت خاص کر چه دا الفاظ د صديق اکبر ؄ په غوږ کښې پريوتل تاسود الله ﷻ د ښښې طلبګار نه ئې؟ نود هغوی د ژبه نه بې واره اوتل او په الله قسم زمونږ خو هم دغه طلب دې چه الله ﷻ مونږ اوبښی اود هغه وخت نه چه به ئې مسطح ؄ ته

څه ورکول هغه ئې ورته جاری کړل. لکه چه په دې ایاتونوکښې مونږ ته تلقین شوې دې چه څنګه مونږ غواړو چه زمونږ خطاګانې دې معاف شي مونږ له پکاردې چه د نورو دخطاګانونه هم تیرشو. دادې هم په خیال کښې وی لکه څنګه چه هغوی اول فرمائیلې ووالله زه به ده سره هیڅ کله هم ښه سلوك اونه کړم اوس ئې وعده اوکړه والله زه به د ده نه کله هم د ده مقررشوې خرچه منع نه کړم رښتیادی چه صدیق خو هم صدیق وو.

پاکوښځوباندې دتهمت لګولوسزا:-کله چه په عامومسلمانانوښځوباندې دطوفان اوچتونکودپاره دا سزا ده نودانبیاؤکرامو بیبیانې چه دمسلمانانو مېنندې دی په هغوی دبهتان تړونکوبه څه سزاوی؟ اوخاص کړیه هغه بی بی چه دصدیق اکبر ﷺ لوروه.دعلماؤکرامو پدې باندې اجماع ده چه ددې آیاتونود نازلیدلو نه پس هم چه څوك په مور بی بی k باندې دا الزام رایادوی هغه کافردې ځکه چه هغه د قرآن پاك نه خلاف اوکړل.دحضور ﷺ د نورو بیبیانو متعلق صحیح قول هم دا دې چه هغوی هم دعائشه k په مثال دی.والله اعلم. فرمائی چه داسې خراب الزام لګونکی په دنیااوآخرت دواړو کښې د الله ﷻ د لعنت مستحق دی. لکه چه بل آیت کښې ارشاد دې ﴿إِنَّ الَّذِينَ يُؤْذُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ لَعَنَهُمُ اللَّهُ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَأَعَدَّ لَهُمْ عَذَابًا مُّهِينًا﴾[1]یعنی کوم خلق چه الله ﷻ ته اودهغه رسول ﷺ ته تکلیف ورکوی په هغوی باندې په دنیا او آخرت کښې دالله ﷻ غضب دې اودهغوی د پاره رسوا کونکی عذابونه تیاردی.د عضې خلقو دا خیال دې چه دا صرف خاص دی د ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه k باره کښې. ابن عباس ﷺ هم دا فرمائی د سعیدبن جبیر اود مقاتل بن حبان هم دا بیان دې ابن جریر هم دحضرت عائشه k نه دانقل کړی دی خوچه بیائی په تفصیل سره کوم روایت راوړی دی په هغې کښې په دوی باندې د تهمت لګیدو په حضور ﷺ باندې د وحی نازلیدو اوددې آیت د نازلیدلو ذکر دې.خوددې حکم د هغوی سره دخاص کیدوذکر نشته نوکه دنازلیدلوسبب خاص وی ولې حکم عام دې. ممکن دی چه د حضرت ابن عباس ﷺ وغیره دقول هم دامطلب وی.والله اعلم. بعضې بزرګان فرمائی چه د ټولو بیبیانو مطهراتو هم داحکم خودې ولې د نورو مؤمنانو ښځوداحکم نه دې. دابن عباس ﷺ نه روایت دې چه د دې آیت نه مرادخودرسول الله ﷺ بیبیانې دی چه کوم منافقان پدې تهمت کښې وو ټول د الله ﷻ د دربارنه اوړتلې شولعنتی اوګرځیدل اودالله ﷻ د غضب مستحق شو. د دې نه پس د نورو مؤمنانوښځو د تهمت لګولو حکم کښې آیت ﴿وَالَّذِينَ يَرْمُونَ أَزْوَاجَهُمْ وَلَمْ يَكُن لَّهُمْ شُهَدَاءُ إِلَّا أَنفُسُهُمْ فَشَهَادَةُ أَحَدِهِمْ أَرْبَعُ شَهَادَاتٍ بِاللَّهِ إِنَّهُ لَمِنَ الصَّادِقِينَ﴾ ([2]) نازل شو.نودوی به په کوړووهلې شی.که هغوی توبه اوکړه نوتوبه ئې قبوله ده ولې د دوی ګواهی به دپیاره همیشه غیرمعتبروی.

حضرت ابن عباس ﷺ یوځل دسورت نور تفسیربیانولوسره فرمائیل چه دا آیت د حضور ﷺ د بیبیانوپاره کښې نازل شوې دې.دهغه بهتان کونکوتوبه هم قبوله نه ده. په دې آیت کښې ابهام دې اوځلور ګواهان نه راوړلو په صورت کښې آیت په عامو ایماندارانوښځوباندې تهمت لګونکوبه حق کښې دې د هغوی توبه مقبول ده.دې اوریدوسره په مجمع کښې ناستوخلقو اراده اوشوه چه دهغوی تندې ښکل کړی ځکه چه هغوی ډیر ښکلې تفسیر کړې وو.دابهام نه مراد دادې چه دتهمت حرمت عام دې اود هرې یوې پاك دامنې ښځې په شان کښې اوداسې خلق ټول ملعون دی.حضرت عبدالرحمن فرمائی هریوبهتان تړونکې به دې حکم کښې دې خوحضرت عائشه k په طریقه اولی ده[3] امام ابن جریرهم عموم خوښوی اودا صحیح هم دی اودعموم په تائیدکښې داحدیث هم دې حضور ﷺ فرمائی د اووه ګناهونونه بچ شئ

---

[1]) ۳۳/الاحزاب:۵۷.
[2]) ۲٤/النور:٤.
[3]) الطبری:۱۹/۱۳۹.

کومې چه هلاك کونکې دی. تپوس اوشو هغه کومې کومې دی؟ وئی فرمائیل د الله ﷻ سره شرك کول، جادو، خوك بې وجه وژل، سود خوړل، د یتیم مال خوړل، دجهادنه تختیدل اوپاك دامن ساده مؤمنه باندې تهمت لګول(١)(بخاري ومسلم) یوبل حدیث کښې دی په پاکوښځو باندې د زناتهمت لګونکې د سلوکالو نیکئې غرقې دی(٢)دحضرت ابن عباس ؓ فرمان دې کله چه مشرکان اوګوری چه په جنت کښې بغیردمونځ ګذارو نه نور څوك نه شی تلې نو هغوی به وائی راځئې چه مونږ هم انکاراوکړو. د خپل شرك نه به دوی انکاراوکړی هم هغه وخت به ددوی په خُله مهراولګی اوپښې لاسونه به ئې ګواهی ورکړی اودالله ﷻ نه به هیڅ خبره پټه نه کړې شی(٣)حضورﷺ فرمائی چه کافرانوته چه کله د هغوی بدعملئې پیش کړې شی نوهغوی به انکار اوکړی اوخپله بې ګناهی به ثابتوی نوورته به وئیلې شی چه دادی ستاسو هغه ګاونډیان چه ستاسو خلاف ګواهی ورکوی دوی به وائی دا ټول دروغژن دی نوورته به وئیلې شی چه ښه ده ستاسودخپلې قبیلې اوټبرخلق موجود دی.دوی به وائی داهم دروغژن دی نو وائی به ښه ده تاسوقسم اوخورئې بیابه الله ﷻ هغوی ګونګیان کړی اوپخپله په د هغوی پښې لاسونه د هغوی د بدعملو ګواهی ورکوی بیا به هغوی دوزخ ته لیګلې شی. (٤)

**په قیامت کښې په کافر د خپلو اندامونو ګواه:** -حضرت انس ؓ فرمائی مونږ دحضورﷺ په خدمت کښې حاضر وو چه وئې خندل او وئی فرمائیل تاسوته معلومه ده ولې مې اوخندل؟ مونږ وئیل الله ﷻ ته معلومه ده وئی فرمائیل بنده چه د قیامت په ورځ الله ﷻ سره کومه حجت بازی کوی په هغې مې اوخندل. دې به وائی اې الله تازه د ظلم نه منع کړې نه ووم؟ الله ﷻ به فرمائی اونودې به وائی چه نن ورځ زه کوم ګواه رښتونې اومنم هم د هغې ګواهی به زما په حق معتبره ګڼرلې شی اوهغه ګواه بغیرزما نه بل څه نه دی. الله ﷻ به وائی چه ښه ده هم داسې صحیح هم ته خپل ګواه اوسه.اوس به ئی په خُله مهراولګی او اندامونه به ئی سوال جواب کوی نوهغوی به ټول پټ رازونه کولاوکړی. هغه وخت به بنده وائی تاسو غرق شئی تاسو بربادشئی هم ستاسو د طرف نه خو زه جنګیدلم.(٥) د جمهورو په قراءت کښې په (حَقَّ)باندې زبردې خکه چه داد دین صفت دې. مجاهد (حَقُّ)لوستلې دې په دې وجه سره چه دا لغت دې د لفظ الله.د ابی بن کعب ؓ په مصحف کښې(يَوْمَئِذٍ يُوَفِّيهِمُ اللَّهُ دِينَهُمُ الْحَقَّ وَيَعْلَمُونَ أَنَّ اللَّهَ هُوَ الْحَقُّ الْمُبِينُ) (٦)دبعضې سلفونه لوستل روایت دی.هغه وخت به پوهه شئی چه دالله ﷻ وعده وعید حق دی. د هغه حساب د عدل والا دې د ظلم نه لرې دې.

| | |
|---|---|
| لِلْخَبِيثِينَ | اَلْخَبِيثَتُ |
| اناپاکې ښځې ادپاره دناپاکو سړو دی | |
| اپیلیتې ښځې د پلیتو سړو لائقې دی | |

(١) صحیح بخاری کتاب الوصایاباب قول الله تعالی (إن الذین یأکلون اموال الیتامی ظلما....):٢٧٦٦، صحیح مسلم:٨٩، ابوداؤد:٢٨٧٤، ابن حبان:٥٥٦١، بیهقی:٨/٢٤٩.

(٢) المعجم الکبیر:٣٠٢٣، مسندالبزار:٢٩٢٩.

(٣) الطبری:٨/٣٧٣.

(٤) حاکم:٤/٦٠٥.

(٥) صحیح مسلم کتاب الزکاة باب الدنیاسجن للمؤمن وجنة للکافر:٢٩٦٩، السنن الکبری للنسائی:١١٦٥٣، مسندابی یعلی: ٣٩٧٧،

(٦) ٢٤/النور:٢٥.

| وَالْخَبِيثُونَ | لِلْخَبِيثَاتِ | وَالطَّيِّبَاتُ | لِلطَّيِّبِينَ | وَالطَّيِّبُونَ |
|---|---|---|---|---|
| او ناپاك سړي | دپاره دناپاكو ښځو دي | او پاكې ښځې | دپاره پاكو سړو دي | او پاك سړي |
| اوپليت سړي د پليتو ښځو لائق دي\| اوپاكې ښځې د پاكو سړو اوپاك سړي | | | | |

| لِلطَّيِّبَاتِ | أُولَٰئِكَ | مُبَرَّءُونَ | مِمَّا | يَقُولُونَ | لَهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| دپاره دپاكو ښځو دي | دا كسان | پاك دي | دهغه خبرونه | چې دوئ ئې وائي | ده ددوئ دپاره |
| دپاكو ښځو لائق دي \|داخلق دهغه خبرونه بيخي پاك دي كومې چه هغوى كوي \| او دوئ | | | | | |

| مَغْفِرَةٌ | وَرِزْقٌ كَرِيمٌ |
|---|---|
| ښنانه | او رزق عزتمند |
| دپاره ښښنه او دعزت روزي ده | |

**قوله تعالى:- الْخَبِيثَاتُ لِلْخَبِيثِينَ**

**بدكاره ښځې دبدكاره سړو دپاره اونيكې ښځې دَ نيكانوسړو دَ پاره دي:-** ابن عباس رضي الله عنه فرمائي چه داسې خرابه خبره د خرابوخلقو دپاره ده اود ښې خبرې حقدار هم ښه خلق وي. يعني منافقانوچه كوم تهمت په صديقه k باندې لګولې وو اودهغوى په شان كښې چه كوم خراب الفاظ استعمال كړل د هغې لائق هم هغوى دي خكه چه هم هغوى بداوخبيث دي.عائشه صديقه پاكه وه خكه هغه د پاكو كلمولائق ده او هغه د ناپاكه بهتانونونه برى ده.دا آيت هم دعائشه باره كښې نازل شوې دې (١) د آيت صفامطلب دادې چه دالله ﷻ رسول ﷺ چه د هرقسم نه طيب دې. ناممكن دى چه د هغه په نكاح كښې الله ﷻ يوه داسې ښځه وركړې چه هغه خبيثه وي.خبيثه ښځې خود خبيثو سړو د پاره وي. د دې دپاره اوفرمائيلې شوچه داخلق ددې ټولوقسمه تهمتونونه پاك دي كوم چه د الله ﷻ دښمنان تړي. دوى ته چه دهغوى دخرابوخبرودكولونه كوم نكليف اوخفګان اورسيدوهغه به هم ددوى دپاره دګناه دبښښنې ذريعه جوړه شي.اوداخودحضورﷺ بى بى ده په جنت عدن كښې به هم حضورﷺ سره وي. يو خل اسير بن جابر عبدالله رضي الله عنه له راغلو وئې وئيل چه ماخونن دوليدبن عقبه نه يوه ډيره ښكلې خبره واوريده نوعبدالله رضي الله عنه اوفرمائيل ټيك ده دمؤمن په زړه كښې يوه خبره راكوزيږي اودهغه سينې ته راخي بياهغه په ژبه سره بيانوى هغه خبره ښه وى ښه اوريدونكى هغه پخپل زړه كښې كينوى.بياهغه ددې آيت تلاوت اوفرمائيلو.مسنداحمد كښې يوحديث دې چه كوم سړې ډيرې خبرې واورى بياپه هغې كښې چه د ټولو نه خرابه وى هغه بيان كړى د ده مثال داسې دې لكه چه يوسړې د چيلووالا نه يوه چيلئى اوغواړى او هغه ده ته اووائى چه لاړشه اوپه دې رمه كښې چه دې كومه يوه خوښه وى هغه واخله(٢) اوهغه د رمې د سپى غوږ اونيسى لاړشي.يوبل حديث كښې دى د حكمت خبره د مؤمن نه اورك شوې دولت دې كوم خائى چه اوموموي واديخلي. (٣)

| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ | آمَنُوا | لَا تَدْخُلُوا |
|---|---|---|
| اے هغه كسانو | چې ايمان موراوړې دي | مه ننوزئ |
| اائې دايمان خاوندانو ! دخپلو كورونو نه سوا | | |

(١) الطبرى:١٤٢/١٩.
(٢) ابن ماجة كتاب الزكاة باب الحكمة:١٧٢ ٤احمد:٤٠٥/٢،مسندالطيالسى:٩٠،مسندابى يعلى:٦٣٨٨.
(٣) ترمذى كتاب العلم باب ماجاء فى فضل الفقه على العبادة:٢٦٨٧ابن ماجة:٤١٦٩.

بُيُوتًا غَيْرَ بُيُوتِكُمْ حَتّٰى تَسْتَاْنِسُوْا وَتُسَلِّمُوْا

کورونو ته | غیر د کورونو ستاسو نه | تر هغې پورې | چې تاسو رضا حاصله کړئ | او سلام اووایئ

د بل چا کورونو ته مه داخلیږئ | ......... تر څو چې موا جازت نه وی غوښتې | اوتر څو چې په هغې

عَلٰۤی اَهْلِهَا ؕ ذٰلِکُمْ خَیْرٌ لَّکُمْ لَعَلَّکُمْ تَذَکَّرُوْنَ ۝

په اهل دهغه کور باند | دا طریقه | بهتره ده | ستاسو دپاره | دپاره ددې چې تاسو | نصیحت واخلئ

خلقو سلام وانچوئی کوم چه په کښې اوسیږی | دا کار ستاسو دپاره ډیر غوره دې چې تاسو نصیحت قبول کړئ

فَاِنْ لَّمْ تَجِدُوْا فِیْهَاۤ اَحَدًا فَلَا تَدْخُلُوْهَا حَتّٰی

پس که چرې | بیانهٔ موندل تاسو | په هغه کور کښې | هیڅوک | نو مهٔ ننوزئ هغې ته | تر هغې پورې

نو که په هغه کور کښې درته څوک ښکاره نشی | نو تر هغې مه ورننوځئ چې تر

یُؤْذَنَ لَکُمْ ۚ وَاِنْ قِیْلَ لَکُمُ ارْجِعُوْا

چې اجازت اوکړې شي | تاسو ته | او که اوویلې شي | تاسو ته | چې واپس لاړشئ

څو درته اجازت اونشي | او که دا درته اووئیلې شی چې واپس لاړشئ

فَارْجِعُوْا هُوَ اَزْکٰی لَکُمْ ؕ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ

نو واپس شئ | دا طریقه | ډیره پاکه ده | ستاسو دپاره | او الله | په هغه کارونو باند | چې تاسو ئې کوئ

نو واپس لاړشئ | هم دا خبره ستاسو دپاره غوره ده ....... | او الله ﷻ ستاسو په عملونو ښه

عَلِیْمٌ ۝ لَیْسَ عَلَیْکُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَدْخُلُوْا بُیُوْتًا

ښه عالم دې | نشته | په تاسو باندې | څه گناه | چې تاسو ننوځئ | داسې کورونو ته

پوهه دې | په دې خبره کښې په تاسو څهٔ گناه نشته | چې کومو کورونو کښې څوک

غَیْرَ مَسْکُوْنَةٍ فِیْهَا مَتَاعٌ لَّکُمْ ؕ وَاللّٰهُ یَعْلَمُ

چې دهیچا داوسیدو ځاې نهٔ وی | او په هغې کښې | څه فائیده وی | ستاسو دپاره | او الله | پوهیږی

نه اوسیږی | او ستاسو سامان په هغې کښې دننه پروت وی | چې هغې ته ورننوځئ او الله ستاسو

مَا تُبْدُوْنَ وَمَا تَکْتُمُوْنَ ۝

په هغې | چې ښکاره کوئ ئې تاسو | او په هغې | چې پټوئ ئې تاسو |

په څرگنده او پټو کارونو باندې ښه پوهیږی |

**قوله تعالی:- یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا لَا تَدْخُلُوْا**

**په کورونو کښې د داخلیدو آداب:-** شرعی ادب بیانولې شی چه د چا په کور کښې داخلیدلو نه اول اجازت غواړه کله چه اجازت ملاوشی نو اول سلام اوکړه. که دا اول ځل په اجازت غوښتو سره جواب ملاونه شی نو دریو ځلو پورې اجازت غواړه او که بیا هم اجازت ملاونه شي نو واپس شه. صحیح حدیث کښې دی چه حضرت ابوموسی رضی الله عنه حضرت عمر فاروق رضی الله عنه له لاړو دری ځل ئې اجازت اوغوښتلو چه کله چا خبره اونه کړه نو هغه واپس شو. لږ ساعت پس حضرت عمر رضی الله عنه خلقو ته اووئیل او گورئ عبدالله بن قیس راتلل

غواړي هغه راوغواړئي. خلق لاړل چه ونی کتل نو هغه تلې وو واپس راغله اوحضرت عمر ﷺ ته ئې خبر ورکړو.کله چه دحضرت ابوموسی ﷺ اوحضرت عمر ﷺ ملاقات اوشونوحضرت عمر ﷺ تپوس اوکړو واپس ولې لاړې؟ جواب ئې ورکړو چه دحضور ﷺ حکم دې چه د دريوځلواجازت غوښتونه پس هم اجازت مِلاونه شی نو واپس لاړشه.مادرې ځل اجازت اوغوښتلو کله چه جواب رانغلو نوما په دې حديث باندې عمل اوکړو واپس لاړم. حضرت عمر ﷺ جواب ورکړو چه په دې باندې څه گواه پيش کړه گنی زه به تاله سزا درکړم. هغه د دې ځائ نه پاسيدو اود انصارو يوې ډلې له لاړو او ټوله واقعه ئې ورته بيان کړه او ونې فرمائيل چه که په تاسوکښې چاد حضور ﷺ داحکم اوريدلې وی نوماسره لاړ شئی اوحضرت عمر ﷺ ته اووائې. انصاروونيل چه داځوعام مسئله ده بيشکه حضور ﷺ فرمائيلی دی مونږ ټولواوريدلی دی مونږ د ټولونه کم عمر هلك تاسره کووهم دې به گواهی ورکړی.حضرت ابو سعيد خدري ﷺ لاړواوحضرت عمر ﷺ ته ئې اوونيل ماهم د رسول الله ﷺ نه اوريدلی دی. حضرت عمر ﷺ هغه وخت افسوس اوکړو او وې فرمائيل چه د بازارونو لين دين زه د دې مسئلې نه غافل اوساتلم. ([1])

**د رسول کريم ﷺ سره د سعد د سلام قصه**:-يوځل حضور ﷺ دحضرت سعدبن عباده ﷺ نه اجازت اوغوښتوونې فرمائيل السلام عليکم ورحمة الله.حضرت سعد ﷺ په جواب کښې وعليکم السلام ورحمة الله اوونيل خوپه داسې آواز کښې چه حضور ﷺ واونه ريدو. درې ځل هم داسې اوشو حضور ﷺ به سلام کولواوهغه به جواب ورکولوخوداسې چه حضور ﷺ به نه اوريدو. دې نه پس حضور ﷺ د هغه ځائ نه واپس تشريف يوړو.حضرت سعد ﷺ حضور ﷺ پسې شاته راودانگل راغلوونې ونيل يارسول الله ﷺ ستاسو ټول آوازونه زماغوږونو ته رسيدل ماد هرسلام جواب هم درکړې خوصرف په دې خيال چه ستاسوډيرې دعاگانې واخلم اوډير برکت حاصل کړم اوس تاسو لاړشئ اوتشريف کيږدئی. نوحضور ﷺ لاړو. هغه د حضور ﷺ په وړاندې کشمش (اوسکي) کيخودې حضور ﷺ اوخوړلې اوچه فارغ شو نوارشاد ئې اوفرمائيلوستا خوراك نيکانوخلقو اوخوړلوفرښتې په تاباندې رحمت رالېگی. ستاسو سره روژه دارو روژه کولاوکړه([2])يوبل روايت کښې دی چه کوم وخت حضور ﷺ سلام اوکړواوحضرت سعد ﷺ په مزه جواب ورکړو نودهغه ځوئ حضرت قيس ﷺ عرض اوکړوچه ته حضور ﷺ ته ولې اجازت نه ورکوې؟ هغه ونيل چپ شه گوره حضور ﷺ به بياسلام وائی مونږ ته به په دويم ځل دحضور ﷺ دعاملاويږی. په دې کښې داهم دی چه دلته راغلو حضور ﷺ غسل اوکړو. حضرت سعد ﷺ د زعفران ياورس سره رنگ شوې يوڅادر پيش کړوچه حضور ﷺ د خپل بدن مبارك نه راتاوکړو بيانی لاس مبارك اوچت کړو اود حضرت سعد ﷺ دپاره ئې دعااوکړه اې الله ﷺ دحضرت سعدبن عباده ﷺ په آل باندې خپل درود او رحمت نازل کړه.بیاحضور ﷺ هم هلته خوراك اوکړوکله ئې چه د واپس تلواراده اوکړه نوحضرت سعد ﷺ يوخپل خرباندې کته واچوله رانې وستلو دحضور ﷺ د سورلئی دپاره ئې پيش کړو اوخپل ځوئ قيس ﷺ ته اوونيل چه ته حضور ﷺ سره سره ځه نوهغه ورسره لاړو خوحضور ﷺ حضرت قيس ﷺ ته اوونيل چه قيس ته هم سورشه. هغه ونيل حضور ﷺ مانه خو به دا اونه شی. حضور ﷺ اوفرمائيل چه په دوو خبرو کښې خو به ته يوه خامخا کوې ياخو به ماسره په دې خاروی سوريږې يابه واپس ځې. حضرت قيس ﷺ واپس تلل منظورکړل. ([3])

---

[1]) صحيح بخاری کتاب البيوع باب الخروج فی التجارة:۲۰٦۲، صحيح مسلم:۲۱۵۳، ابوداؤد:۵۱۸۱، ابن حبان: ۵۸۰۷.

[2]) احمد:۱۳۸/۳، ابوداؤد: ۳۸۵٤وهوحديث حسن، مشكل الاثار للطحاوی:۲۹۸/۱-۲۹۹وسنده حسن، مسندالبزار:۱۹٦۰، مجمع الزوائد:۳٤/۸.

[3]) ابوداؤد کتاب الادب باب کم مرة يسلم الرجل فی الاستئذان:۵۱۸۵.

**راتلونکی لره دروازې ته مخامخ اودریدل نه دي پکار:**-دایادساتئی چه اجازت غوښتونکې دې د دروازې مخې ته نه اودریږی بلکه ښي یاگس طرف ته دې لږ شان په اړخ اودریږی بلکه اخوادیخودې لږې اودریږی اوپه زوره دې سلام وانی. هغه وخت به په دروازه کښې پردې هم زوړندې نه وې[1] د حضورﷺ دروازې ته مخامخ یوسړې اودریدو اجازت ئې اوغوښتلونو حضورﷺ هغه ته تعلیم ورکړو چه نظر دې پرینوځی ددې دپاره خواجازت مقررشو بیاد دروازې مخامخ اودریدوسره د آوازکولو څه معني؟یاخو لږ شان اخواشه یادیخوا شه[2])یوبل حدیث کښې دی چه که څوك ستاد اجازت نه بغیرستاپه کورکښې اوگوری اوته هغه په کاڼړی اولې او دهغه سترگه اوځی نو په تا باندې څه گناه نشته.([3]) حضرت جابرؓ یو خل دخپل پلارد قرضې د ادائیگئی په فکر کښې د حضورﷺ په خدمت کښې حاضرشو دروازه ئې اوټکوله نوحضورﷺ تپوس اوکه څوك صاحب ئې؟حضرت جابرؓ اوونیل زه یم. حضورﷺ اوفرمائیل زه زه لکه چه حضورﷺ د هغه دا وینا ناخوښه کړه. ([4])

**راتلونکی له خپل نوم خودل پکار دی :**-څکه چه زه ونیلو سره خودانه معلومیږی چه څوك دې ترکومې چه نوم یامشهورکنیت نه وی خودلې شوې. زه خوهریوسړې د ځان د پاره ونیلې شی نود اجازت غوښتلو اصل مقصدنه شی حاصلیدې.

(استئذان،استئناس)یوه خبره ده([5])حضرت ابن عباسؓ فرمائیل(تستأنسوا) د کاتبانو غلطی ده. (تستأذنوا) لیکل پکاردی. د ابن عباسؓ هم دا قراءت وواود ابی بن کعبؓ هم خوداډیر غریب قول دې. د ابن مسعودؓ په خپل مصحف کښې (حتیٰ تسلموا علی اهلها وتستأذنوا)دی.

**راتلونکی لره اول سلام بیا اجات غوښتل پکار دی:**-صفوان بن امیهؓ چه کله مسلمان شو نویوخل کلده بن حنبلؓ هغه رسول اللهﷺ له راولیگلو هغه وخت حضورﷺ د وادئی په اوچته حصه کښې وو. دې بغیر دسلام نه اوبغیرداجازت نه رسول اللهﷺ له اورسیدو.حضورﷺ اوفرمائیل واپس شه او اووایه اسلام علیکم آیا زه راشم؟([6]) یوبل حدیث کښې دی چه د قبیله بنوعامر یوسړې د حضورﷺ کورته راغلواوونی ونیل زه دننه راشم؟ حضورﷺ خپل غلام ته اوفرمائیل لاړشه اوده ته د اجازت غوښتو طریقه اوښایه چه اول سلام اوکړه بیا اجازت اوغواړه.دې سړی دا واوریده اودغه شان ئې سلام اوکړو او اجازت ئې اوغوښتلو حضورﷺاجازت ورکړواوهغه دننه لاړو([7]) یوبل حدیث کښې دی چه حضورﷺ خپلې خادمه ته فرمائیلی وو([8])بل حدیث کښې دی دکلام نه اول سلام کول پکاردی([9])داحدیث ضعیف دې. ترمذی شریف کښې دی چه حضرت ابن عمرؓ د حاجت نه فارغ شو راروان ووخود نمر طاقت ئې نه لرلونود یوې قریشی ښځې جونگړې ته اورسیدو ونی فرمائیل السلام علیکم آیا زه دننه راشم؟هغې

---

[1]) ابوداؤد حواله سابق:٥١٨٦وسنده حسن.

[2]) ابوداؤد کتاب الادب باب فی الاستئذان:٥١٧٤.

[3]) صحیح بخاری کتاب الدیات باب من اطلع فی بیت قوم ففقؤواعینه فلادیة لـه....:٦٩٠٢،صحیح مسلم:٢١٥٨، احمد:٢/٢٤٣، ابن حبان:٦٠٠٢.

[4]) صحیح بخاری کتاب الاستئذان باب اذاقال من ذا فقال انا:٦٢٥٠، صحیح مسلم:٢١٥٥، ابوداؤد:٥١٨٧، ترمذی:٢٧١١، ابن ماجة:٣٧٠٩، احمد:٣/٣٢٠، ابن حبان:٥٨٠٨.

[5]) الطبری:١٤٦/١٩.

[6]) ابوداؤد کتاب الادب باب کیف الاستئذان:٥١٧٦وسنده حسن، ترمذی: ٢٧١٠، السنن الکبری للنسائی:٦٧٣٥، احمد: ٣/٤١٤.

[7]) ابوداؤد کتاب الادب باب کیف الاستئذان:٥١٧٧وسنده صحیح.

[8]) الطبری:١٤٦/١٩.(ترمذی)

[9]) ترمذی کتاب الاستئذان باب ماجاء فی السلام قبل الکلام:٢٦٩٩.

ونیل په سلامتیاسره راشه. هغوی بیا هم دا اوونیل نوهغې هم دغه جواب ورکړو د هغه پښې سوزیدې کله به په یوه پښه او کله به بله پښه اودریدو.وئی فرمائیل چه راشم هغې ونیل راشه نوبیا هغوی دننه تشریف یورو.حضرت عائشه k له څلور ښځې راغلې اجازت نی اوغوښتو چه مونږ دننه راشو؟ هغې ونیل نه په تاسو کښې چه کومه یوه داجازت په طریقه باندې پوهیږی هغې ته اووایه چه هغه اجازت واخلې نویوې ښځې اول سلام اوکړو او بیائی اجازت واخستلو. حضرت عائشه k اجازت ورکړو بیائی دغه آیت تلاوت کړو.ابن مسعودﷺ فرمائی چه که خپلې موراو خوئیندوکره هم تلل وی نوخامخا اجازت اخلئی. د انصارو یوې ښځې حضورﷺ ته اوونیل چه زه بعضې وخت کښې په خپل کور کښې په داسې حالت کښې یم که زما پلار هم راشی اویازما خپل څوئ هغه وخت راشی نوماته بدلګی څکه چه هغه حالت داسې نه وی چه که د چا نظر هم په ماباندې پریوځی نو زه خفه یم اودکور والا کښې خو څوك راځی. هغه وخت دا آیت نازل شو. ابن عباس ﷺ فرمائی درې آیاتونه دی چه خلقو په دې باندې عمل کول پریخې دی یوخوداچه الله ﷻ فرمائی په تاسو کښې دټولونه زیات بزرګ هغه دې چه د ټولونه زیات دالله ﷻ ویره لری اودخلقو خیال دادې چه د ټولونه لوئ هغه دې چه د ټولونه زیات مالدار وی اود آدب ایاتونه هم خلقویریخی دی.حضرت عطاء د هغوی نه تپوس اوکړو زما په کورکښې زمایتیمانې خوئیندې دی چه هم په یوکور کښې اوسیږی اوهم زه ئی پالم. آیاهغوی سره تلوکښې هم ماله داجازت ضرورت شته؟ هغوی اوفرمائیل چه اوخامخا اجازت غواړه.ما بیادا سوال اوکړو چه کیدې شی څه رخصت په کښې ملاوشی خو هغوی اوفرمائیل چه آیا ته هغوی بربندې لیدل خوښوې؟ ماوئیل نه. وئی فرمائیل بیا خامخا اجازت اخله. ما بیا دغه سوال اوکړو نوهغوی اوفرمائیل چه آیاته د الله ﷻ حکم منې که نه؟ ماوئیل چه اومنم. هغوی اوفرمائیل چه بیا خوبې خبره هغوی له هډو څه مه. حضرت طاؤس فرمائی چه په محرمات ابدیه باندې په بربنډحالت کښې نظر پریوځی دې نه زیاته بدی زما په نیز بله نشته.د ابن مسعودﷺ قول دې چه د خپلې مور کورته هم بغیرخبر مه ورځه. د عطاء نه تپوس اوشو چه خپلې ښځې له هم بغیراجازت ورتلل نشته؟وئی فرمائیل دلته داجازت ضرورت نشته.داقول هم محمول دې په دې باندې چه دې نه د اجازت غوښتلو ضرورت نشته خوخبرداری ضرور کول پکاردی ممکن دی چه هغه دغه وخت کښې په داسې حالت کښې وی چه هغه نه غواړی چه د هغې خاوندې هم په دې حالت کښې اوګوری.

حضرت زینب فرمائی چه زما خاوندحضرت عبدالله بن مسعود ﷺ به کله زما کورته راتلو کرنګ کرونګ به نی کولوکله به نی په اوچت آوازکښې د دروازې نه بهرچاسره خبرې کولې دې د پاره چه د کورخلقوته د هغوی د راتلوخبر اوشی[1]حضرت مجاهد د ﴿تستانسوا﴾معنی هم داکړې ده.کرنګ کرونګ یاغاړه تازه کولوغیره.امام احمد فرمائی مستحب دی چه انسان خپل کورته هم څی نو هم د بهر نه دې کرنګ کرونګ اوکړی یاد خپلو کشار دې واوروی.

**دشپې هم بې خبر کور ته مه راځی**:-یوحدیث کښې دی چه په سفرکښې د شپې په وخت کښې بې خبره کورته راتلونه حضورﷺمنع فرمائیلې ده څکه چه په دې سره دکوروالادخیانت په پته توګه لټون دې. ([2]) حضورﷺ یوځل د سفرنه د سحر په وخت کښې راغلونوحکم نی ورکړوچه کلې سره خلق راکوزشی چه مدینه کښې خبرخورشی مابنام خپلوکورونوته لاړشی دې دپاره چه پدې وخت کښې خپلې صفایانې وغیره اوکړی([3]) یوبل حدیث کښې دی حضورﷺ نه چا تپوس اوکړو چه سلام خومونږ پیژنو د استیناس

---

[1]) ابن ماجة کتاب الطب باب تعلیق التمائم: ۳۵۳۰.

[2]) صحیح بخاری کتاب النکاح باب لایطرق اهله لیلا اذا اطال الغیبة....:۵۲۴۳، صحیح مسلم:۷۱۵،ابوداؤد:۲۷۷۶، احمد:۲۹۹/۳

[3]) صحیح بخاری کتاب النکاح باب طلب الولد۵۲۴۵-۵۲۴۶، صحیح مسلم:۷۱۵، احمد:۳۰۳/۳، مسندابی‌یعلی:۱۸۵

یادروازه ته ورنیږي او په اوچت اواز سره ووایې الله اکبر یا الحمدلله یا سبحان الله اوفرمائيل حضورﷺ: څه طریقه ده؟ ټنګول چه څه سره د کور والا معلوم کړي چه فلانکې راغلو. حضرت قتاده وائي چه دا دري ځل اجازت غوښتل په دې چه په اول ځل کښې خوبه د کور والا معلوم کړي چه فلانکې دې په دویم ځل به نې خکه مقرر کړې دي چه په اول ځل کښې خوبه د کور والا معلوم کړي چه فلانکې دې په دویم ځل به هغوی خان ساز کړي اوهوښیار شي اوپه دریم ځل باندې که هغه غواړي اجازت به ورکړي که نه غواړي نومنع به ني کړي. کله چه اجازت ملاونه شي نوبیاپه دروازه کښې اودریدل بد دي. د خلقو خپل کارونه اومشغولتیاګانې داسې ضروري وي چه هغوی دغه وخت کښې اجازت نه شي ورکولې. مقاتل بن حبان وائي د جاهلیت په زمانه کښې د سلام دستور نه وو یوبل سره به ملاویدل خو سلام به نې نه کولو د چاکورته چه به تلل وو اجازت به ني نه اخستلو هسې به ورغلل او روستوبه ني وئیل زه راغلم نواکثر به داپه کوروالا به سخت اولګیدل. داسې به هم اوشوچه خپل کورته به په داسې حال کښې وو چه هغوی ته به د دوی دا راتلل ښه نه لګیدل. الله ﷻ داټول خراب دستورونه په خو آدابوسره خودلوسره وربدل کړل.ددې دپاره اوفرمائيلې شوچه داطریقه ستاسودپاره بهتر ده پدې کښې دکوروالاته او راتلونکی دواړوته راحت دي.دا ځیزونه ستاسو د نصیحت او خیرخواهئی دی.که هلته څوك اونه وینې نو بغیراجازت مه ورداخلیږه خکه چه داد نورو په ملك کښې تصرف کول دی او دا ناجائزدی. د کور د مالك داحق شته چه که هغه غواړي نو اجازت به درکړي اوکه غواړي نومنع به دې کړي. که تاته اووئیلې شي چه لاړشه نوتاله واپس تلل پکاردی په دې کښې د بدګنړلوڅه خبره ده بلکه دا خو ډیره ښکلې طریقه ده. بعضې مهاجرینوبه افسوس کولوچه مونږ ته په خپل ټول عمر کښې په دې آیت باندې د عمل کولو موقعه ملاونه شوه چه څوك مونږ ته اووائي چه واپس شه اومونږ د دې آیت لاندې د هغه ځائ نه واپس لاړشو([1])داجازت نه ملاویدوپه صورت کښې په دروازه کښې اودریدلونه نې هم منع اوفرمائيله. الله ﷻ ستاسودعملونو نه خبردې. دا آیت په وړاندینې آیت سره مخصوص دې په دې کښې هغه کورونوته د بغیر اجازت نه ورتلوکښې رخصت دې چرته چه څوك نه وي اوهلته د ده څه سامان وغیره وي لکه سرائې وغیره. دلته چه کله په اول ځل اجازت ملاوشو بیا هرځل اجازت اخستل ضروري نه دي. نولکه دا آیت په اولنی آیت سره استثنا ده دغه شان د داسې سوداګرو ګودامونه مسافرخانې وغیره دي او اول خبره ډیره واضحه ده. والله اعلم. زید وائي چه دې نه مراد بیت الشعردې.

| | |
|---|---|
| قُلْ | لِّلْمُؤْمِنِيْنَ |
| (اے نبی اووایه) | مومنانوته |

(اې پیغمبره) مومنانوته اووایه (

| يَغُضُّوْا | مِنْ اَبْصَارِهِمْ | وَيَحْفَظُوْا | فُرُوْجَهُمْ | ذٰلِكَ |
|---|---|---|---|---|
| چې ښکته دلري | سترګې خپلې | او حفاظت دکوي | دپردې دخایونو خپلو | دا طریقه |

چې خپلې سترګې ټیټې ساتي اوډخپلو شرمګاهونو حفاظت کوي | دا خبره ددوئ

| اَزْکٰى | لَهُمْ | اِنَّ اللّٰهَ | خَبِيْرٌ | بِمَا | يَصْنَعُوْنَ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| ډیره پاکه ده | دپاره دهغوئ | بیشکه الله | خبردار دي | په هغې کارونو | چې کوي نې هغوئ |

دپاره ډیره بهتره ده | الله ﷻ دخلقو په ټولو کارونو خبر دې

[1] الطبري:۱۹/۱۵۰.

**قوله تعالى:- قُلْ لِلْمُؤْمِنِيْنَ يَغُضُّوْا مِنْ اَبْصَارِهِمْ**

**نظر ښکته کولو سره تګ کوه:-** حکم کولې شي چه دکوموځیزونوکتل ماحرام کړی دی هغې ته مه ګورئ. دحراموځیزونونه سترګې ښکته کړئ اوکه ناڅاپی نظر پریوځی نوبیاپه دویم ځل په پوره نظرسره مه ګورئ.

**ناڅاپی نظرمعاف دې ، قصداً معاف نه دی:-** صحیح مسلم کښې دی حضرت جریر بن عبدالله بجلی ﷺ د حضورﷺ نه دناڅاپی نظر پریوتلوباره کښې تپوس اوکړونوحضورﷺ اوفرمائیل چه خپل نظر زراخوا کړه.(۱) نظرښکته کول اخوادیخواکتلوکښې اخته کیدل اود الله ﷻ حرام کړې شوی ځیزونوته نه کتل د آیت مقصددې. حضرت علی ﷺته حضورﷺ اوفرمائیل علی ﷺ دنظر د پاسه نظر مه ورکلکه وه ناڅاپی چه پریوځی هغه معاف دې اوقصداً معاف نه دې(۲) حضورﷺ یوځل اوفرمائیل په لاروکښې د کیناستو نه بچ شئ خلقو ونیل حضورﷺ دکار روزګار د پاره هغه خو ضروری وی نو حضورﷺ اوفرمائیل چه ښه ده نود لاروحق ادا کوئ. هغوی وئیل داڅه دی؟ حضورﷺ اوفرمائیل نظر ښکته ساتل چاته تکلیف نه ورکول د سلام جواب ورکول دخوخبروتعلیم ورکول اود بدوکارونونه منع کول(۳)حضورﷺ فرمائی د شپږوځیزونوتاسو ضامن شئ زه ستاسو دپاره دجنت ضامن کیږم. خبره کولو سره دروغ مه وائې، په امانت کښې خیانت مه کوئ، وعده خلافی مه کوئ، نظرښکته ساتئ، لاسونه دظلم نه بچ کړئ، د خپل شرمګاهونوحفاظت کوئ. صحیح بخاری کښې دی کوم سړې چه ژبه او شرمګاه د الله ﷻ د حکم ماتحت اوساتی دهغوی دپاره د جنت ضامن یم(۴)دعبیده قول دې دکوم یوځیز نتیجه چه د الله ﷻ نافرمانی وی هغه کبیره ګناه ده. دنظر پریوتلونه پس په زړه کښې فسادراوچتیږی ددې دپاره ئې د شرمګاه دبچ کولود پاره د نظر ښکته کولو ارشاد اوشو. نظر هم د ابلیس د غشونه یوغشې دې نود زنا نه بچ کیدل هم ضروری دی او نظر ښکته ساتل هم ضروری دی. حضور ﷺ فرمائی دخپل شرمګاه حفاظت کوئ مګر خپلې ښځې او وینځې.(۵)

**دنظر ساتلو فائدې:-** محرماتو ته نه کتلوسره زړه صفاکیږی اودین صفاکیږی اوکوم خلق چه خپل نظر په حراموځیزونوباندې نه اچوی د هغوی په سترګوکښې نور اچولې شی اودهغوی زړه هم نورانی کولې شي. دحضورﷺ ارشاد دې چه د چا نظر د یوې ښځې په حسن اوجمال باندې پریوځی بیا هغه خپل نظر اخواکړې ددې په بدله کښې ده ته یوداسې عبادت ورکولې شی د کوم خوندچه هغه په خپل زړه کښې محسوس کوی(۶) ددې حدیث سندونه خو ضعیف دی ولې دې دادرغبت ورکولوپه باره کښې اوپه داسې احادیثوکښې دسندودمره خیال نه شی ساتلې. طبرانی کښې دی چه یاخویه ته خپل نظرښکته کوې اود خپل شرمګاه حفاظت به کوې او خپل مخ به نیغ ساتې یابه الله ﷻ ستاسو صورتونه بدل کړی اعاذناالله من کل عذابه.

**نظر دشیطان د غشو نه یو غشې دې:-** نظر د ابلیسی غشونه یو غشې دې کوم سړې چه د الله ﷻ د ویرې خپل نظر رامنع کړی الله ﷻ د هغه په زړه کښې د ایمان داسې نور پیداکوی چه هغه له خوندور کوی. د

---

(۱) صحیح مسلم کتاب الادب باب نظر الفجاءة :۲۱۵۹، ابوداؤد:۲۱٤۸، ترمذی:۲۷۷٦، احمد:٤/۳۵۸، ابن حبان:۵۵۷۱.

(۲) ابوداؤد کتاب النکاح باب فی مایؤمربه من غض البصر:۲۱۳۹. ترمذی:۲۷۷۷، احمد:۵/۳۵۱، حاکم:۲/۱۹٤.

(۳) صحیح بخاری کتاب الاستئذان باب قول الله تعالی(یاایها الذین امنوا لاتدخلوابیوتا....):٦٦٦۹، صحیح مسلم:۲۱۲۱، احمد:۳/۳٦ابن حبان:۵۹۵.

(۴) صحیح بخاری کتاب الرقاق باب حفظ اللسان:٦٤۷٤، ترمذی:۲٤۰۸.

(۵) ابوداؤد کتاب الحمام باب فی اشعری:٤۰۱۷وسنده حسن، ترمذی:۲۷٦۹، ابن ماجة:۱۹۲، احمد:۵/۳، مشکل الاثار:۱۳۸۱.

(٦) احمد: ۵/۲٦٤ مجمع الزوائد:۸/٦۳، طبرانی:۷۸٤۲.

خلقو هيڅ يوعمل د الله ﷻ نه پټ نه دې هغه د سترګو خيانت او د زړه راز پيژني. حضور ﷺ فرمائي چه د بنيادم په ذمه د هغه دزناحصه ليکلې شوې ده چه هغه به دې لامحاله مومي. د سترګو زناکتل دی د ژبې زناويناکول دی دغوږونوزنا اوريدل دی دلاسونوزنا رانيول دی دپښوزنا تلل دی. زړه خواهش تمنا اوآرزوکوی بياشرمګاه خويادا ټول رښتياکوی ياټول دروغژن کوی[1] رواه البخاری تعليقا. اکثر سلفو به دهلکانودا کتل راکتل هم منع کول. آيمه صوفيه پدې کښې بعضودې باره کښې ډيره سختي کړې ده. داهل علم ډلې خودا بالکل حرام ګرځولې دی او بعضودې ته کبيره ګناه ونيلې ده. رسول الله ﷺ فرمائي هره يوه سترګه به دقيامت په ورځ ژاړی خوهغه سترګه چه دالله ﷻ حرام کړې شوی ځيزونودکتلونه بنده پاتې وی اوهغه سترګه چه د الله ﷻ په لار کښې ويښه وی اوهغه سترګه چه د الله ﷻ د ويرې اوژاړی که د هغې د مچ د سر برابر هم اوښکه راوتلې وی.

| وَقُلْ | لِّلْمُؤْمِنٰتِ | يَغْضُضْنَ | مِنْ اَبْصَارِهِنَّ | وَيَحْفَظْنَ |
|---|---|---|---|---|
| اووايه | مومنانو ښځو ته | چې ښکته دساتی | نظرونه خپل | او حفاظت دکوی |

اومومنانو ښځوته اووايه اچې خپلې سترګې دې ټيټې ساتی ااودخپلو شرمګاهونو

| فُرُوْجَهُنَّ | وَلَا يُبْدِيْنَ | زِيْنَتَهُنَّ | اِلَّا | مَا | ظَهَرَ |
|---|---|---|---|---|---|
| دپردې دخايونو خپلو | اونۀ دښکاره کوی | ښائست خپل | مګر | هغه | چې ښکاره شي په خپله |

حفاظت دې کوی ااوخپل ډول سنګار دې نه ښکاره کوی اا لبته چې کوم نه شي پټيدې

| مِنْهَا | وَلْيَضْرِبْنَ | بِخُمُرِهِنَّ | عَلٰى جُيُوْبِهِنَّ ص | وَلَا يُبْدِيْنَ | زِيْنَتَهُنَّ |
|---|---|---|---|---|---|

اوخپلې لوپټې دې په سينو باندې غوړيدلې لرې ااوخپل ډول سنګار دې نه ښکاره کوی

دهغې نه | او واچوی | لوپټې خپلې | په ګريوانو خپلو باندې ااونۀ دښکاره کوی اښائست خپل

| اِلَّا | لِبُعُوْلَتِهِنَّ | اَوْ اٰبَآئِهِنَّ | اَوْ اٰبَآءِ بُعُوْلَتِهِنَّ | اَوْ اَبْنَآئِهِنَّ |
|---|---|---|---|---|
| مګر | خاوندانو خپلو ته | يا پلارانو خپلو ته | يا پلارانو دخاوندانو خپلو ته | يا ځامنو خپلو ته |

خو خپلو خاوندانو ته ا......يا خپلو پلارانو ته ايا د خاوندانو پلارنو (سخرانو) ته ايا خپلو ځامنو ته

| اَوْ اَبْنَآءِ بُعُوْلَتِهِنَّ | اَوْ اِخْوَانِهِنَّ | اَوْ بَنِيْٓ اِخْوَانِهِنَّ |
|---|---|---|
| يا ځامنو دخاوندانو خپلو ته | يا رونړو خپلو ته | يا ځامنو درونړو خپلو ته |

يا د خاوندانو ځامنو (پرکټو) ته | يا خپلو رونړو ته | ..........يا دخپلورونړو ځامنو( وريرونو) ته

| اَوْ بَنِيْٓ اَخَوٰتِهِنَّ | اَوْ نِسَآئِهِنَّ | اَوْ مَا مَلَكَتْ |
|---|---|---|
| يا ځامنو دخويندو خپلو ته | يادميل ملاپ ښځو خپلو ته | ياهغه چاته چې مالك شوی وی دهغې |

يا دخپلو خويندو ځامنو(خوريونو) ته ايا(مسلمانانو) ښځو ته ايا خپلو وينځو ته

| اَيْمَانُهُنَّ | اَوِ التّٰبِعِيْنَ | غَيْرِ اُولِي الْاِرْبَةِ | مِنَ الرِّجَالِ |
|---|---|---|---|
| ښي لاسونه دهغوئ | يا هغه ماتحتانوته | چې نۀ وی خاوندان دحاجت ښځو ته | دسړونه |

يا په سړو کښې هغه خادمانو ته چې نفساني خواهشات نه لرې |

[1] صحيح بخاری کتاب الاستئذان باب زنا الجوارح دون الفرج:٦٢٤٣، صحيح مسلم:٢٦٥٧، احمد:٢٧٦/٢،ابن حبان:٤٤٢.

| اَوِ الطِّفۡلِ | الَّذِیۡنَ | لَمۡ یَظۡهَرُوۡا | عَلٰی عَوۡرٰتِ النِّسَآءِ ۪ |
|---|---|---|---|
| یا (ورو) هلکانو ته | هغه هلکان | چې نۀ وي خبر هغوی | په پټو خبرو دښځو باندې |
| یا هغه ماشومان ته چې لا دښځو دپردو دخبرو نه خبر نه وي | | | |

| وَلَا یَضۡرِبۡنَ | بِاَرۡجُلِهِنَّ | لِیُعۡلَمَ | مَا | یُخۡفِیۡنَ |
|---|---|---|---|---|
| او نۀ دوهي ښځې | پښې خپلې | دپاره ددې چې پته اولږي خلقو ته | دهغه څیز | چې پټوي نې دوئ |
| او ښځې دې (په تک کښې) خپلې خپې (زمکې نه) په زوره نه راپریږدی چې په دې سره ددوئ | | | | |

| مِنۡ زِیۡنَتِهِنَّ ؕ | وَتُوۡبُوۡۤا | اِلَی اللّٰهِ | جَمِیۡعًا | اَیُّهَ الۡمُؤۡمِنُوۡنَ | لَعَلَّکُمۡ |
|---|---|---|---|---|---|
| دزینت خپل نه | او توبه اوباسئ | الله ته | ټول | اے مؤمنانو | دپاره ددې |
| دپټو کالو اواز واوریدې شی او تاسو ټول الله ﷻ ته توبې اوباسئ ائې مومنانو ! | | | | | |

| تُفۡلِحُوۡنَ ۝ |
|---|
| چې تاسو خلاصې بیا مومئ |
| ددې دپاره چې کامیاب شئ |

قوله تعالی:- وَقُلۡ لِّلۡمُؤۡمِنٰتِ یَغۡضُضۡنَ مِنۡ اَبۡصَارِهِنَّ

**د پردې شرعی احکام:-** دلته الله ﷻ مؤمنې ښځې ته حکم ورکوی دې د پاره چه د هغوی غیرتی سړو ته آرام وی اودجاهلیت خراب رسمونه ترې اوخی. روایت دې چه داسماء بنت مرثدk کوردبنوحارثه په محله کښې ووهغې له به ښځې راتلې اودستور مطابق به نی دخپلو پښوکالې سینې اووینته کولاو ساتلې راتلې.حضرت اسماء وئیل داځومره خرابه خبره ده؟په دې باندې داآیاتونه نازل شو.نوحکم ورکولې شی چه مسلمانانوښځوله هم خپل نظر ښکته ساتل پکاردی. بغیرد خپل خاوند نه بل چاته د شهوت په نظرسره نه دی کتل پکار. پردوسړو ته خو کتل هم حرام دی که د شهوت په نظر سره وی که بغیر شهوته.

**د نابینا هم پرده شته :-** ابوداوٗد اوترمذی کښې دی رسول الله ﷺ سره حضرت ام سلمه اوحضرت میمونه ﵄ ناستې وې چه ابن مکتوم تشریف راوړو.داواقعه دپردې دآیاتونونازلیدلونه پس ده.حضور ﷺ اوفرمائیل پرده اوکړئی نوهغوی وئیل یارسول الله ﷺ هغه خونابینادې نه مونږته کتلې شی نه مو پیژندلې شی.حضور ﷺ اوفرمائیل چه تاسو خونابینا نه ئی تاسوورته نه ګورئی؟[1] اوبعضې علماوٗ بغیر شهوت نظر حرام کړې نه دې د دوی دلیل هغه حدیث دې په کوم کښې چه دی د اختر په ورځ حبشی خلقوپه جمات کښې د وسلوکرتبونه شروع کړل اوام المؤمنین حضرت عائشه حضور ﷺ خپلې شاته اودروله هغې کتل تردې چه زړه نی موړشواوستړې شوه نولاړه[2] ښځو له هم د خپل عزت بچ کول پکار دی د بدکارئی نه دې لرې وی خپل خان دې چاته نه ښائی.پره دی غیرسړو ته دې د خپل زینت څه څیز

---

[1] ابوداوٗد کتاب اللباس باب فی قول الله تعالی (وقل للمؤمنات یغضضن من أبصارهن):۴۱۱۲ وسنده حسن، ترمذی:۲۷۷۸، احمد:۲۹۶/۶، بیهقی:۹۱/۷، ابن ماجة:۵۵۷۵.

[2] صحیح بخاری کتاب العیدین باب الحراب والدرق یوم العید:۹۰۵، صحیح مسلم:۸۹۲.

نه ښکاره کوی اود کوم ځیز پټول چه ممکن نه وی هغه یوه بله خبره ده لکه څادر اود پاسه کپړا وغیره.
([1]) د کوم پټول چه د ښځود پاره ناممکن دی.
**مَاظَهَرَمِنْهَا نه څه مراد دی؟:** داهم روایت دې چه دې نه مراد مخ د مړوندونوپورې لاسونه او غټه ګوته ده خوکیدې شی چه دې نه مراد دا وی چه هم دا د زینت هغه محل دې د کوم د ښکاره کولونه چه شریعت بندیزاوکړو.لکه چه دحضرت عبدالله ﷺ نه روایت دې هغوی دې خپل زینت نه ښکاره کوی لکه والئ هاریاپانزیب وغیره([2])فرمائی زینت په دوه قسمه دې یوخوهغه کوم چه هم خاوندګوری لکه ګوته بنګړی وغیره اوبل هغه زینت چه پردی خلق نی ګوری لکه د پاسه کپړا. زهری فرمائی په دې آیت کښې چه دکوم رشته دارانو ذکر دې نوکه د هغوی په مخې بنګړی لوپټه کولاوشی نوڅه حرج نشته او که د خلقو په وړاندې صرف ګوتې ښکاره شی نو ګناه نشته. بل روایت کښې د ګوتوسره د پښو پانزیبو هم ذکر دې کیدې شی چه د ﴿ماظهرمنها﴾په تفسیرکښې ابن عباس ﷺ وغیره مخ اومړوندونه کړی وی لکه څنګه چه په ابوداؤد کښې دی چه اسماء بنت ابی بکر k رسول الله ﷺ له راغله نرئی کپړې ئې اغوستې وې نوحضورﷺ مخ واړولواو وئې فرمائیل چه کله ښځې بلوغت ته اورسی نوبغیرد دې نه اود دې نه یعنی د مخ اومړوندونونه علاوه بل اندام نه ښکاره کوی([3]) خودا مرسل دې خالدبن دریك دا دحضرت عائشه k نه روایت کوی اود هغه مور بی بی سره ملاقات ثابت نه دې.والله اعلم.
**لوپټه څنګه اچول پکاردی:** ښځوله پکاردی چه لوپټه یاکپړاداسې واچوی چه دسینې غاړې کالی او شانی پټه وی.په جاهلیت کښې ددې هم رواج نه وو. ښځو به په خپلوسینوباندې هیڅ هم نه اچول هر وخت به نی ستې کمسئی،والئی وغیره صفا ښکاریدل.بل آیت کښې دی اې نبی ﷺ خپلو بیبیانوته خپلو لونړو ته او مسلمانانوښځوته اووایه چه خپل څادرونه په خپل ځان باندې رازورندکړی دې د پاره چه د هغوی پیژندګلوکیږی اونه شی تنګولې([4])خمردخمار جمع ده خمار وائی هر هغه ځیزته چه پټوی. لوپټې سر پټوی په دې وجه دې ته هم خماروائی. نوښځوله پکاردی چه یاخو په خپل پړونی اویاپه څه کپړا باندې خپله غاړه او سینه پټه کړی. حضرت عائشه k فرمائی چه الله ﷻ دې په هغه ښځوباندې رحم اوکړی کومو چه په شروع شروع کښې هجرت کړې وواودا آیت نازل شونو هغوی خپل څادرونه اوشلول او خپلې لوپټې ترې جوړې کړې. بعضودخپل ته بند غاړه پرې کړه او خپل سرنئی پرې پټ کړو. ([5])
**د انصارو ښځو فضیلت:** یوځل حضرت عائشه ته ښځود قریشو د ښځوفضیلت بیانول شروع کړو نو هغې اوفرمائیل چه دهغوی دفضیلت زه هم قائل یمه خووالله دانصارود ښځو نه غوره ښځې ما نه دی لیدلی د هغوی په زړونوکښې د کتاب الله تصدیق اوپه هغې باندې کامل ایمان دې هغوی بې شکه د قدر قابلې دی.
د سورت نور آیت ﴿وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَىٰ جُيُوبِهِنَّ ۖ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا لِبُعُولَتِهِنَّ أَوْ آبَائِهِنَّ أَوْ آبَاءِ بُعُولَتِهِنَّ أَوْ أَبْنَائِهِنَّ أَوْ أَبْنَاءِ بُعُولَتِهِنَّ أَوْ إِخْوَانِهِنَّ أَوْ بَنِي إِخْوَانِهِنَّ أَوْ بَنِي أَخَوَاتِهِنَّ أَوْ نِسَائِهِنَّ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُنَّ أَوِ التَّابِعِينَ غَيْرِ أُولِي الْإِرْبَةِ مِنَ الرِّجَالِ أَوِ الطِّفْلِ الَّذِينَ لَمْ يَظْهَرُوا عَلَىٰ عَوْرَاتِ النِّسَاءِ ۖ وَلَا يَضْرِبْنَ بِأَرْجُلِهِنَّ لِيُعْلَمَ مَا يُخْفِينَ مِن زِينَتِهِنَّ ۚ وَتُوبُوا إِلَى اللَّهِ جَمِيعًا أَيُّهَ الْمُؤْمِنُونَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾([6])کله

[1]) الطبری:۱۹/۱۵٦.
[2]) الطبری:۱۹/۱۵٦.
[3]) ابوداؤد کتاب اللباس باب فیما تبدی المرأة من زینتها:٤۱۰٤.
[4]) ۳۳/الاحزاب:۵۹.
[5]) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة النورباب ﴿ولیضربن بخمرهن علی جیوبهن﴾:٤۷۵۸.
[6]) ۲٤/النور:۳۱.

نازل شواود هغوی سروچه کله کورونوکښې دا آیت هغوی ته واورولو هم هغه وخت دې ښځویه دې ایت باندې عمل اوکړواودسحر مانځه ته کله هغوی راغلې نود تولو په سرونوباندې لویتې وې لکه چه ډولچې نی برې ایخودې وې(۱)دې نه پس نی د هغه سرو بیان اوفرمانیلود چا په وړاندې چه ښځه وی اوبغیردبناوسنګاردهغوی مخې ته په شرم اوحیاسره تلې راتلې شی.که دزینت په بعضې ظاهری څیزونوباندې هم نظرپریوځی بغیرد خاوندنه دهغوی مخې ته ښځه وی خپل پوره بناوسنګار او شوشا اوکړی لکه چه تره اوماما هم ذی محرم دی خودهغوی نومونه دلته ددې دپاره وانخستې شو ممکن دی چه هغوی د خپلو خامنوپه وړاندې د هغوی محاسن بیان کړی د دې د پاره د هغوی مخې ته بغیرلویتې نه دی راتلل پکار.

**مسلمانه به خپل زینت کافرې ښځې ته هم نه ښکاره کوی:** -بیافرمانی ستاسو ښځې یعنی مسلمانانو ښځو په وړاندې هم د دې زینت د ښکندونوکښې څه حرج نشته.داهل ذمه ښځو په وړاندې ددې د پاره رخصت ورنه کړې شو چه ډیرممکن دی هغوی د خپلو سړو په وړاندې د هغوی د ښائست اوزینت ذکر اوکړی.دمؤمنانوښځونه هم لکه چه ویره ده خوشریعت هغه حرام ګرځولې دی ددې دپاره مسلمانانې ښځې به داسې نه کوی خود ذمی کافرانوښځې د دې نه کوم یوڅیز منع کولې شی. بخاری او مسلم کښې دی یوې ښځې له دا جائزنه دی چه بلې ښځې سره ملاو شی اود هغې صفتونه دخپل خاوند په وړاندې داسې بیانوی لکه چه داوینی(۲) امیرالمؤمنین حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه حضرت ابو عبیده رضی الله عنه ته اولیکل چه ماته معلومه شوې ده بعضې مسلمانانې ښځې هم عاموحمامونوته ځی اوهغوی سره مشرکانې ښځې هم وی. واوره یوې مسلمانې ښځې له جائز نه دی چه هغه دې خپل بدن یوغیرمسلم ښځې ته اوښائی. حضرت مجاهد هم د ﴿اونسآءهن﴾ په تفسیرکښې فرمائی دې نه مراد مسلمانانې ښځې دی د هغوی په وړاندې دوی خپل زینت ښکاره کولې شی چه د خپل ذی محرم رشته دارانو په وړاندې نی ښکاره کولې شی یعنی غاړه والښی یا هار. نومسلمانې ښځې له بربنډ سرد یوې مشرکې ښځې په وړاندې راتلل نه دی جائز. په یوروایت کښې دی کله چه صحابه کرام رضوان الله اجمعین بیت المقدس ته اورسیدل نود هغوی د دایه توب د پاره هم یهودنړې نصرانیانې ښځې وې. که دا خبره ثابته شی نومحمول به وی‌په ضرورت یاد هغه ښځویه ذلت باندې. بیا په دې کښې د غیرضروری بدن کولاو یدل هم نه دی. والله اعلم. و په مشرکانوښځو کښې کومې وینځې نوکرانې وی هغه د دې حکم نه خارج دی(۳) بعضې وائی چه د غلامانوهم داحکم دې. ابوداؤدکښې رسول الله ﷺ حضرت بی بی فاطمه k له دورکولود پاره یوغلام راوستلو.حضرت فاطمه k چه کله دې اولیدونوخپل خان نی په لویتبه کښې پټ کړو. ولې کپړا دومره وړه وه چه سربه نی پټولونو پښې به نی ښکاره کیدلې او پښې به نی پټولې نو سربه نی ښکاره کیدلو. حضورﷺ چه دا اوکتل نوونی فرمائیل لورې ولې دومره تکلیف کوې زه ستاپلاریم اوداستا غلام دې.(۴) ابن عساکرکښې دی د دې غلام نوم عبدالله بن مسعده وو. دا فزاری وو سخت تور.حضرت فاطمة الزهری k د ده پالنه کړې وه اوآزاد کړې وو.دصفین په جنګ کښې دې معاویه رضی الله عنه سره وواود حضرت علی ډیرمخالف وو.مسند احمدکښې رسول الله ﷺ ښځو ته اوفرمائیل په تاسوکښې چه چاسره مکاتب غلام وی اوهغه سره داسې شرط شوې وې چه دومره دومره روپۍ

---

(۱) ابوداؤد کتاب اللباس باب فی قول الله تعالی ﴿یدنین علیهن من جلابیبهن...﴾: ۴۱۰۰ مختصراً وسنده حسن.

(۲) صحیح بخاری‌کتاب النکاح باب لاتباشر المرأة لتنعتهالزوجها: ۵۲۴۰،ابوداؤد: ۲۱۵۰،ترمذی: ۲۷۷۲، احمد: ۴۴۰/۱، مسندابی‌یعلی: ۵۰۸۳، ابن حبان: ۴۱۶۰.

(۳) الطبری: ۱۶۰/۱۹.

(۴) ابوداؤد کتاب اللباس باب فی العبدینظرالی شعرمولاته: ۴۱۰۶ وسنده حسن، بیهقی: ۹۵/۷.

راوړه نوته ازادنی بیا هغه سره دومره پیسې هم راجمع شوې نو پکاردي چه د ده نه پرده اوکړی[1] بیا بیان فرمانی چه نوکران خادمان کارکونکی د هغه سړو په وړاندې چه خوانی نه لری اود ښځو خواهش هغوی ته نه وی اوهم د دې مطلب نه وی نود هغوی حکم هم د ذی محرم سړو دې خو هغه مخنث او هجړاګان چه بدزبانه او بدی خورونکي وی د هغوی داحکم نه دې لکه چه بخاری اومسلم وغیره کښې دی چه هم داسې یوسړې د حضورﷺ کورته راغلې وواوهغه د حضورﷺ بیبیانوهم د دې آیت ماتحت ګنړلې ووهغه نی منع کړې نه وو اتفاقی هغه وخت رسول الله ﷺ راغلو.دغه وخت هغه دحضرت ام سلمه رورعبدالله ﷺ ته وئیل الله ﷺ چه کله طائف فتح کوی نو زه به تاته دغیلان لوربنایم چه راتلوسره د هغې په خیټه باندې څلورقطونه راځی اوبه واپس تلوکښې اته ښکاری.دې اوریدوسره حضورﷺ حکم اوفرمائیلوچه خبرداردا سې خلق هیڅ کله دکور راتلوته مه پریږدئی(۲)ده نه پرده اوکړئی. هغه د مدینې نه اوویستلې شو.بیداء کښې دې اوسیدلو دهغه خائ نه به دجمعه په ورځ راتلو اوده خلقونه به نی د خوراك څښاك څه څیزونه اوړل.د وړو ماشومانو په وړاندې راتلواجازت دې چه لاتراوسه پورې دښځو د مخصوص صفتونونه خبردار نه وی. په ښځوباندې دهغوی دکاسیرتوب نظر نه پریوځی.اوچه هغوی دې عمرته اورسی چه په هغوی کښې تمیزراشی اودښځوخوبیانې دهغوی په نظرکښې ښه ښکاری د ښائسته اوبدرنګ فرق معلوم کړی نوبیا د هغوی نه هم پرده شته سره د دې که هغوی پوره خوانان شوی نه وی. بخاری اومسلم کښې دی حضورﷺاوفرمائیل خلقو د ښځوخواته د تلونه بچ شئ تپوس اوشو یارسول الله ﷺ لیور او ورندار؟ هغوی اوفرمائیل هغه خومرګ دې.(۳)

**د پازیبونو ګړنګولو اوخوشبو سره د وتلو ممانعت:**-بیافرمانی چه ښځې دې خپلې پښې په زوره په تلو کښې په زمکه نه ایږدی.په جاهلیت کښې به همداسې کیدل چه ښځو به په زوره په زمکه پښه کیخودله اوتګ به نی کولو دې د پاره چه د پښې کالی (پانزیب) اوشړنګیږی اسلام داهم منع کړل. ښځې له هر یو هغه حرکت منع دې کوم سره چه د هغې څه پټ شوې سنګار ښکاره شی.ددې عطر اوخوشبو لګولوسره دکورنه وتل هم منع دی. ترمذی کښې دی چه هره یوه سترګه زناکاره ده. ښځه چه کله عطر اولګوی اودګل په شان خوشبونی خورونکې دسړو خوا سره تیریږی نوهغه داسې داسې ده یعنی زناکاره ده(۴)ابوداؤدکښې دی چه ابوهریره ﷺ ته یوه ښځه داسې ملاوشوه چه خوشبونی لګولې وه.هغوی دې نه تپوس اوکړو ته د جمات نه راروانه نې؟ هغې وئیل او. دوی اوفرمائیل تاخوشبولګولې ده؟ هغې وئیل او هغه وئیل ما د خپل حبیب ابوالقاسم ﷺ نه اوریدلی دی کومه ښځه چه دې جمات ته خوشبولګولې راځی دهغې مونځ قبول نه دې ترکومې چه هغه واپس نه شی اود جنابت په شان غسل او نه کړی(۵) ترمذی کښې دی چه خپل زینت په غیر خائ کښې ښکاره کونکې ښځې مثال د قیامت د هغه تیارې په شان دې په کوم کښې چه رڼا نه وی(۶)ابوداؤدکښې دی رسول الله ﷺ سړی اوښځې په لاره ګډوډتلوکښې اولیدل نوونی فرمائیل ښځوتاسودیخواشئ تاسوله دلارې په مینځ کښې تګ نه دې

[1]) ابوداؤد كتاب العتق باب المكاتب يؤدى بعض كتابة ليعجز اويموت:۳۹۲۸، وسنده حسن، ترمذى:۱۲۶۱، ابن ماجة:۲۵۲۰، احمد:۲۸۹/۶، مسندابى يعلى:۲۹۵۶،بيهقى:۳۲۷/۱۰.

[2]) صحيح بخارى كتاب المغازى باب غزوة الطائف فى شوال سنة ثمان:۴۳۲۴، صحيح مسلم:۲۱۸۰-۲۱۸۱، ابوداؤد:۴۹۲۹،

[3]) صحيح بخارى كتاب النكاح باب لايخلون رجل بامراة الاذومحرم:۵۲۳۲، صحيح مسلم:۲۱۷۲، ترمذى:۲۱۷۱، احمد:۱۴۹/۴، ابن حبان:۵۵۸۸، بيهقى:۹۰/۷.

[4]) ترمذى كتاب الادب باب ماجاء فى كراهية خروج المراة متعطرة:۲۷۸۶وسنده حسن، احمد:۱۴۱/۴، ابن ماجة:۴۴۲۴، حاكم:۳۹۶/۲.

[5]) ابوداؤد كتاب الترجل باب فى طيب المراة للخروج:۴۱۷۴وهو حسن، ابن ماجة:۴۰۰۲، نسائى:۵۱۳۰، مختصراً، احمد:۲۴۶/۲.

[6]) ترمذى كتاب الرضاع باب ماجاء فى كراهية خروج النساء فى الزينة:۱۱۶۷.

پکار دي اوريدوسره ښځې ديوالونوسره لګيدلې رواني شوې ترديي چه دهغوي کپړې به ديوالونو سره لګيدلې[۱] بيافرمائي مؤمنانوزماوينا واخلئي اودانياك صفتونه واخلئي اودجاهليت دبدو خصلتونونه منع شئي. پوره کاميابي پوره خلاصي هم د هغوی دپاره دي چه د الله ﷻ حکم منونکې وی د هغه د منع کړي شوو کارونونه منع کيږي اوهم د الله ﷻ نه مونږ امداد غواړو.

| |
|---|
| وَاَنْكِحُوا الْاَيَامٰى مِنْكُمْ وَالصّٰلِحِيْنَ |
| او نکاح اوکړئ \| دبې نکاحو \| ستاسو نه \| او دصالحانو نه |
| او په تاسو کښې چې کومې ښځې کونډې دی دهغوئ |
| مِنْ عِبَادِكُمْ وَاِمَآئِكُمْ ۭ اِنْ يَّكُوْنُوْا فُقَرَآءَ يُغْنِهِمُ اللّٰهُ |
| دغلامانوستاسونه \| او دوينځو ستاسو نه \| که چرې وی هغوئ \| فقيران \| غنيان به کړی هغوئ لره الله |
| نکاح کوئی \| اودخپلو نيکانو غلامانو هم \| اود وينځو هم (نکاح کوئ) \| که دوئ غريبانان وی |
| مِنْ فَضْلِهٖ ۭ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ ۝ وَلْيَسْتَعْفِفِ |
| دفضل خپل نه \| او الله \| دفراښۍ مالك دي \| او ښه پوهه دي \| او پکار دی چې خان دي پاك ساتي |
| نو الله ﷻ به ئې په خپل فضل سره غنيان کړي \| او الله ﷻ د ډيری فراخئ خاوند دي \| په هرڅه پوهه دي |
| الَّذِيْنَ لَا يَجِدُوْنَ نِكَاحًا حَتّٰى يُغْنِيَهُمُ اللّٰهُ |
| هغه کسان \| چې نۀ مومی هغوئ \| اسباب دنکاح \| تر هغې پورې \| چې غنيان کړی هغوئ لره الله |
| اوکوم خلق چې د نکاح طاقت نه لری \| پکار دی چې هغوئ خان پاکدامن ساتی \| ترديې چې الله ﷻ |
| مِنْ فَضْلِهٖ ۭ وَالَّذِيْنَ يَبْتَغُوْنَ الْكِتٰبَ مِمَّا |
| دفضل خپل نه \| او هغه (مريان) \| چې طلب کوی هغوئ \| دمکاتب والی \| دهغه وينځو مريـونه \| |
| ئې په خپل فضل سره غنيان کړی \| اوکوم غلامان چې تاسوسره مکاتبت(د ازادئ معاهده کول) |
| مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ فَكَاتِبُوْهُمْ اِنْ عَلِمْتُمْ |
| چې مالکان وی دهغوئ \| ښی لاسونه ستاسو \| نو مکاتبان کړی هغوئ \| که معلوم وی تاسو ته \| |
| غواړی \| که چرې تاسوته به هغوئ کښې نيکی او صلاحيت معلوم وی \| نو هغوئ سره مکاتبت |
| فِيْهِمْ خَيْرًا ڰ وَّاٰتُوْهُمْ مِّنْ مَّالِ اللّٰهِ الَّذِيْٓ اٰتٰىكُمْ ۭ |
| په هغوئ کښې \| څه خير \| او ورکړئ هغوئ ته \| دمال دالله نه \| اهغه مال \| چې الله درکړی دی تاسو ته |
| اوکړئی \| اوکوم مال چې تاسوته الله ﷻ درکړي دی هغې نه دوئ ته هم لږ ورکړئ |
| وَلَا تُكْرِهُوْا فَتَيٰتِكُمْ عَلَى الْبِغَاۗءِ اِنْ اَرَدْنَ تَحَصُّنًا |
| اومۀ مجبوروئ \| وينځې خپلې \| په زنا باندې \| که غواړی هغوئ \| پاك ساتنه دخان خپل |
| اوخپلې وينځې ددنيا دژوند دفائدې حاصلولو دپاره په زناکارئی مه مجبوره کوئ |

[۱] ابوداؤد کتاب الادب باب فی مشی النساء مع الرجال فی الطريق: ۵۲۷۲.

لِتَبْتَغُوْا عَرَضَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ؕ وَمَنْ يُّكْرِهْهُّنَّ

دپاره ددې چې طلب کوئ تاسو | مال (فانده) | دژوند ددنيا | اوهغه څوك چې مجبوره کوئ هغوئ

کله چې هغوئ پاکدامنې اوسيدل غواړي | اوڅوك چې هغوئ په زناکولو مجبوره کړي

فَاِنَّ اللّٰهَ مِنْۢ بَعْدِ اِكْرَاهِهِنَّ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝ وَلَقَدْ اَنْزَلْنَاۤ

نو بيشکه چې الله | روستو دمجبورتيا دهغوئ نه | ابښونکې مهربانه دې | او نازل کړي دي مونږه

نو الله ﷻ دهغوئ دمجبورتيا نه پس ښښونکې اومهربان دې | اومونږ ستا طرفته

اِلَيْكُمْ اٰيٰتٍ مُّبَيِّنٰتٍ وَّمَثَلًا مِّنَ الَّذِيْنَ خَلَوْا

تاسو ته | ايتونه | واضحه | او مثالونه | دهغې کسانو نه | چې تير شوي دي |

ښکاره حکمونه نازل کړي دي | اوهغه خلقو مثالونه (بيان کړي دي) چې ستاسو نه

مِنْ قَبْلِكُمْ وَمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِيْنَ ۝

مخکښې ستاسو نه | او نصيحت | دپاره دپرهيزګارانو |

وړاندې تير شوي دي | اود ويريدونکو دپاره دنصيحت (ذريعه)

قوله تعالى:- وَاَنْكِحُوا الْاَيَامٰى مِنْكُمْ

**د نکاح احکام:-** په دې کښې الله ﷻ ډيرزيات احکام بيان فرمائيلي دي. اولاً نکاح دعلماء کرامو ديوې ډلې داخيال دې چه کوم سړې دنکاح قدرت لرى په هغه باندې نکاح کول واجب دى. دحضورﷺ ارشاد دې اې خوانانوپه تاسوکښې چه څوك د نکاح قدرت لرى هغه له نکاح کول پکاردي. نکاح نظر ښکته کونکې اودشرمګاه بچ کونکې ده. اودچا چه طاقت نه وى هغه دې خامخاروژې ساتى. هم دادهغه د پاره خصى کيدل دي[1] (بخاري اومسلم) په سنن کښې دي رسول الله ﷺ فرمائي د کومې نه چه د زيات اولاد اميدوى هغې سره نکاح اوکړئ چه نسل زيات شي. زه تاسو سره په نورو امتونوفخر کوم[2] په يوروايت کښې دى تر دې چې په سقط يعنى بې مودې ماشوم بانې هم فخر کوم ﴿ايامى﴾ جمع ده د ﴿ايم﴾. جوهري فرمائي د اهل لغت په نيزېې ښځې سړې او بې خاونده ښځې ته ﴿ايم﴾ وائي که هغه واده کړې وى او که ناواده کړې. بيانور رغبت ورکولوسره فرمائي که هغه مسکين هم وى نو الله ﷻ به په خپل فضل اوکرم سره هغه مالدارکړى که هغه آزادوى اوکه غلام[3]

**نکاح کول باعث دبرکت دى:-** دصديق اکبرﷺ قول دې تاسودنکاح باره کښې د الله ﷻ حکم اومنئ هغه به تاسوسره خپله وعده پوره کوى. ابن مسعودﷺ فرمائي په نکاح کښې مالدارى غواړئ[4] رسول الله ﷺ فرمائي ددريوقسم خلقوامداد د الله ﷻ په ذمه حق دې نکاح کونکې چه د حرام کارئ نه د بچ کيدو په نيت نکاح کوى هغه مکاتب غلام د چاراده چه د ورکولووى اوهغه غازى چه د الله ﷻ په لار کښې

---

[1]) صحيح بخارى کتاب النکاح باب من لم يستطع الباءة فليصم:۵۰۶۶، صحيح مسلم:۱۴۰۰، ابوداؤد:۲۰۴۶، ترمذى:۱۰۸۱، ابن ماجة:۱۸۴۵، احمد:۳۷۸/۱، ابن حبان:۴۰۲۶.

[2]) ابوداؤد کتاب النکاح باب النهى عن تزويج من لم يلدالنساء:۲۰۵۰وهو حسن، نسائى:۳۲۲۹، احمد:۱۵۸/۳، ابن حبان:۴۰۲۸، بيهقى:۸۱/۷.

[3]) الطبرى:۱۶۶/۱۹.

[4]) الطبرى:۱۶۶/۱۹.



وتلې وي([1]) هم ددې په تائيد کښې هغه روايت دې کوم کښې چه دې رسول الله ﷺ يوداسې سړی نکاح يوې ښځې سره اوکړه چاسره چه د ته بندنه علاوه هيڅ نه وو اوتردې چه د اوسپنې گوته هم هغه سره نه وه. سره د دې غريبنې اونادارنې حضورﷺ د هغه نکاح اوکړه او دامهرئې مقررکړو چه کوم قرآن ده ته يادې دابه خپلې ښځې ته ورياد وي([2])ا په دې وجه چه نظر نې د الله ﷻ په فضل اوکرم باندې وو چه هغه مالك به دوی له مالداری ورکړي اودومره رزق به ورته ورسوي چه ده ته اود ده ښځې ته به کافي وي. يوحديث اکثرخلق نقل کوی په فقيرئې کښې هم نکاح کوئی الله ﷻ به تاسو غنيان کړي. زما نظر کښې خوداحديث تيرشوې نه دې نه په يوقوی سندسره اونه په ضعيف اونه مونږ ته د داسې يو ناپيژندگلو روايت دلته په دې مضمون کښې ضرورت شته ځکه چه د قرآن په دې آيت اودې احاديثو کښې داځيز موجوددې فالحمدلله. بيائې حکم ورکړو چه د چاد نکاح طاقت نه وی هغه دې د حرام کار نې نه بچ شي. حضورﷺ فرمائي اې دځوان عمر خلقو تاسو کښې چه څوك د نکاح وس لری هغه دې نکاح اوکړي دانظر ښکته کوی اوشرمگاه بچ کونکې ده اودچا چه ددې طاقت نه وی هغه دې په ځان باندې د روژوساتل ضروری کړی هم داد ده د پاره خصي کيدل دی. داآيت مطلق دې اود سورت نساء نه خاص دې يعني دافرمان ﴿وَمَن لَّمْ يَسْتَطِعْ مِنكُمْ طَوْلًا أَن يَنكِحَ الْمُحْصَنَاتِ الْمُؤْمِنَاتِ فَمِن مَّا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُم مِّن فَتَيَاتِكُمُ الْمُؤْمِنَاتِ ۚ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِإِيمَانِكُم ۚ بَعْضُكُم مِّن بَعْضٍ ۚ فَانكِحُوهُنَّ بِإِذْنِ أَهْلِهِنَّ وَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ مُحْصَنَاتٍ غَيْرَ مُسَافِحَاتٍ وَلَا مُتَّخِذَاتِ أَخْدَانٍ ۚ فَإِذَا أُحْصِنَّ فَإِنْ أَتَيْنَ بِفَاحِشَةٍ فَعَلَيْهِنَّ نِصْفُ مَا عَلَى الْمُحْصَنَاتِ مِنَ الْعَذَابِ ۚ ذَٰلِكَ لِمَنْ خَشِيَ الْعَنَتَ مِنكُمْ ۚ وَأَن تَصْبِرُوا خَيْرٌ لَّكُمْ ۗ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾([3])دوينځو سره نکاح کولونه صبر ښه دې ځکه چه پدې صورت کښې په اولادباندې د غلامئ نوم راځي. عکرمه فرمائي چه کوم سړې يوه ښځه اووينی اودده په زړه کښې خواهش پيداشي نوهغه له پکاردی که دهغه ښځه وی نوهغې له دې لاړشي گني دالله ﷻ په خدائي کښې دې نظر اوزغلوی اوصبر دې اوکړي تردې چه الله ﷻ هغه غني کړي. دې نه پس الله ﷻ هغه خلقو ته فرمائي کوم چه د غلامانو مالکان دی که د هغوی غلامان د خپلې آزادئ هغوی سره څه ليك کول غواړي نوهغوی دې انکار نه کوی. غلام به په خپله گټه باندې هغه مال جمع کړي خپل آقاته به ئې ورکړي اوآزادبه شي. اکثر علماء کرام فرمائي چه داحکم ضروری نه دې فرض اوواجب نه دې بلکه د استحباب او خيرخواهئ په توگه دې. آقاته اختياردې چه غلام کله يوهنر زده کول غواړي اوهغه اووائي چه مانه دومره روپئ واخله اوماآزادکړه نوهغه ته اختياردې چه داقسم معاهده اوکړي يا اونه کړي. د علماؤيوه ډله د آيت ظاهری الفاظ اخلي او وائي چه په آقاباندې واجب دی کله چه د ده غلام د خپلې آزادئ بار کښې څه ليکل غواړي نوهغه دې د ده خبره قبوله کړي. د حضرت عمر ؓ په زمانه کښې د حضرت انس ؓ غلام سيرين چه مالدار وو هغه ته ئې درخواست اوکړو چه ماسره زماد آزادئ ليکل اوکړه. حضرت انس ؓ انکار اوکړو د حضرت عمر فارو ؓ دربار ته دامقدمه لاړه هغوی حضرت انس ؓ ته حکم اوکړو اود هغوی په نه منلوباندې هغوی ته کوړې ورکړې اوهم داآيت ئې ورته تلاوت کړو تردې چه هغه ليکل اوکړه([4]) (بخاری) د عطاء ) نه دواړه اقوال نقل دی د امام شافعي اولنې قول هم دا ووخونوې قول نې دا دې چه واجب نه دی. ځکه چه په حديث کښې دی د مسلمان مال بغير د هغه د زړه د خواهش نه حلال نه دې. ([5]) امام مالك فرمائي داواجب نه دی. ما خونه دی اوريدلی چه يوامام يوآقا مجبور کړی وی چه

---

[1]) ترمذی کتاب فضائل الجهاد باب ماجاء فی المجاهد والناکح المکاتب وعون الله ایاهم:۱۶۵۵ وسنده حسن، نسائی:۳۲۲۰، ابن ماجة:۲۵۱۸، احمد:۲۵۱/۲، ابن حبان:۴۰۳۰، حاکم:۷۶۰/۲. (ترمذی وغیره).

[2]) صحیح بخاری کتاب النکاح باب تزویج المعسر:۵۰۸۷، صحیح مسلم:۱۴۲۵.

[3]) ۴/النساء:۲۵.

[4]) صحیح بخاری کتاب المکاتب باب المکاتب ونجومه فی کل سنة نجم قبل وحدیث:۲۵۶۰.

[5]) احمد:۷۲/۵ مسندابی یعلی:۱۵۷۰، دارقطنی:۲۶/۳، بیهقی:۱۰۰/۶.

هغه دي د خپل غلام د ازادنی لیك اوكړي داحكم د اجازت په توګه دي نه چه د وجوب په توګه ارهم داقول د امام ابوحنیفه هم دي.

**غلام د كتابت دپاره خپل مالك نشي مجبوره كولي**

**مسلک حنفي**:-دحنفیانو په نیز پدي آیت كښي چه مالكانو ته غلام سره دكتابت كولو حكم شوي دي دا حكم استحبابي دي وجوب نه دي دغلام دخپل مالک نه سره دكتابت كولو حكم (تفسير مظهري ۲۹۲/۶). د امام ابن جریر په نیزمختارقول د وجوب دي. د خیرنه مراد امانت داري ربنتینولي په مال اود مال په حصول باندي قدرت دي. حضورﷺ فرماني چه كه تاسو داغلامان كوم چه تاسو سره د خپلې آزادني لیكل كول غواړي د مال دكتلو صلاحیت نی اوګورئي نوددوي داخواهش پوره كړني ګني نو نه خكه چه پدي صورت كښي هغوي په خلقوخپل بوج اچوي([1]) یعني د دوي نه به سوال كولي شی اورقم به پوره كول غواړي. دي نه پس نی فرمانیلی دی چه دوي ته دخپل مال نه څه وركړني.یعني كوم رقم چه مقررشوي دي دهغي نه ورته څه پریږده څلورمه دریمه نیمه یاڅه حصه. دامطلب هم بیان كړي شوي دي چه دزكوة په مال سره ددوي امداداوكړه. آقاهم اونور مسلمانان دي هم ده ته زكوة وركړي دي د پاره چه هغه مقرررقم وركړي خپل خان آزاد كړي.اول حدیث تیرشو چه كوم دري قسم خلقوامدادپه الله ﷻ باندي حق دي هغوي كښي یوداهم دي. خو اولني قول ډیر زیات مشهوردي.دحضرت عمر ﷺ غلام ابو امیه لیكل كړي وو. كله چه هغه د خپل رقم رومبي قسط راوړراغلو نو هغوي ورته اوفرمانیل چه لاړ شه اوبدي پیسوكښي دنورو نه هم امداداوغواړه. هغه ونیل امیرالمؤمنین تاسومادآخري قسط پوري محنت ته خو پریږدني.ونی فرمانیل نه ماته ویره ده چه چرته د الله ﷻ دافرمان مونږ پرینږدو چه هغوي ته دالله ﷻ هغه مال وركړه كوم چه هغه تاسو ته دركړي دي. نودا رومبي قسط وو چه په اسلام كښي ادا كړي شو.د ابن عمرﷺ عادت وو چه په شروع شروع كښي به نی نه څه وركول اونه به نی څه معاف كول خكه چه داخیال به نی ووچه داسي نه وي آخره كښي دا رقم پوره نه كړي شي.نوزماوركړي شوي به ماله واپس راشي.اوكه آخري قسطونه وو اوڅه به نی غوښتل نود خپل طرف نه به نی مي معاف كول. په یو غریب مرفوع حدیث كښي دی چه څلورمه حصه ورته پریږدني([2])خوصحیح هم دا دی چه هغه د حضرت علي ﷺ قول دي.

**وینځي په بدكارئي مه مجبوروئ**:-بیافرماني پخپلو وینځو په زور باندي بدكارئي مه كوئي. د جاهلیت په خرابو طریقوكښي یوه داهم وه چه هغوي به خپلي وینځي مجبورولي چه هغوي زناكاري اوكړي او هغه رقم دي خپلو مالكانو ته وركړي.اسلام دابدرسم مات كړو.روایت دي چه دا آیت د عبدالله بن ابی بن سلول منافق باره كښي نازل شوي اوهغه به هم داسي كول دي دپاره چه روپئي هم ملاوشي اود وینځویه اولادسره دریاست شان هم زیات شي دهغه د وینځي نوم معاذه وه.بل روایت كښي دی د هغي نوم مسیكه وه اودا وه مسلمانه. دي به د بدكارئي نه انكاركولو. په جاهلیت كښي خو داكاركیدلواود دي نه نی ناجائزاولاد هم اوشوخود اسلام راوړلونه پس هغي انكاراوكړو. په دي باندي هغه منافق وهله نودا آیت نازل شو([3]) روایت دي چه دبدر یوقریشي قیدی د عبدالله بي ابی سره وو هغه غوښتل چه د هغي وینځي سره ملاوشي. وینځي دخپل اسلام راوړلوپه وجه د حرام كارئي بچ كیدل غوښتل د عبدالله خواهش وو چه دي دغه قریشي سره ملاوشي نودا نی مجبوره كوله او وهله ټكوله نی. نودا آیت نازل شو. یوبل روایت كښي دی چه دي د منافقانوسردار به دا وینځه د خپلو میلمنود خاطر اوتواضع د پاره

[1] ابوداؤد ل (المراسيل):۱۴۳.
[2] حاكم:۳۹۷/۲.
[3] البزار.

ورلیګله.د اسلام نه پس چه کله دې ښځې نه دا اراده اوکړې شوه نوهغې انکاراوکړو اوصدیق اکبر ﷛ ته نې خپل دامصیبت بیان کړو.حضرت صدیق اکبر ﷛ دا خبره دربار محمدی ﷺ ته اورسوله. حضور ﷺ داحکم اوکړو چه داوینځه د هغوی کورته اورسونی هغه په خلقوکښې شورجورکړو چه ګورنې محمد ﷺ زمونږ نه وینځې په زور اخلی په دې باندې دا آسمانی حکم نازل شو. یوبل روایت کښې دی چه مسیکه اومعاذه دوه وینځې وې دووسروسره وې چه په هغوی باندې به نې بدکاری کوله.داسلام نه پس مسیکه اود هغې مور راغلې اورسول الله ﷺ ته نې شکایت اوکړوبه دې باندې دا آیت نازل شو. داکوم چه فرمائیلی شوی دی چه که وینځې د پاکوالی اراده اوکړی د دې نه دا مطلب هیڅ کله مه اخلئی که د هغوی اراده نه وی نوخیردې. ځکه چه هغه وخت واقعه هم داسې وه د دې دپاره داسې او فرمائیلې شو.نود اکثریت اوغلبه په وجه داسې اوفرمائیلې شو هیڅ قیداوشرط نشته. ددې نه د هغوی غرض دا وو چه مال حاصل شی اولادئې وی چه وینځې غلامان وی.په حدیث کښې دی رسول الله د ښکرلګولوپه اجرت د بدکارئی اجرت او کاهن په اجرت باندې بندیز فرمائیلې دې[1] بل روایت کښې دی د زناپیسې اودښکرلګولو پیسې اودسپی قیمت خبیث دې[2] بیافرمائی چه کوم خلق په دې وینځوظلم کوی نو هغوی خو به الله ﷻ دهغوی د مجبورئی نه اوبښی اود دوی مالکان چاچه په هغوی باندې زور دباؤ او ظلم کړې دې هغوی به راګیرکړې. په دې صورت کښې به هم دوی ګناهګاران وی. بلکه دحضرت عبدالله بن مسعود ﷛ په قراءت کښې درحیم نه پس﴿واثمهن علی من اکرههن﴾[3] دې.یعنی په دې حال کښې جبر اوزورکونونکو باندې ګناه ده. په یومرفوع حدیث کښې دی چه الله ﷻ زما د امت په هیرې سره په خطا سره اوپه کومو کارونوباندې چه مجبورکړې شی اوپه هغوی باندې زبردستی اوکړې شی هغه معاف کړی دی[4] دااحکام په تفصیل سره بیانولونه پس فرمائی چه مونږدخپل پاک کلام قرآن کریم روښانه اوواضح آیاتونه ستاسو په وړاندې بیان کړل. د وړاندې زمانې د خلقو واقعات هم تاسو ته بیان کړې شوچه متقیان دې نه عبرت حاصل کړی اودالله ﷻ دنافرمانونه بچ شی.علی ﷛ به فرمائیل په قرآن کښې ستاسوداختلاف فیصلې موجوددی تاسونه دوړاندې خلقوخبرې موجوددی روستو راتلونکو کارونو احوال بیان دی.دااټل فیصلې دې بکواس نه دې.داچه څوك هم په بې پرواهئی سره پریږدی هغه به الله ﷻ بربادکړی اوچه څوك نې د دې نه بغیربل کتاب کښې لټوی هغه به الله ﷻ ګمراه کړی[5]

| | | |
|---|---|---|
| اَللّٰهُ | نُوْرُ السَّمٰوٰتِ | |
| \| الله \| | نور داسمانونو \| | |
| \|الله ﷻ داسمانونو | | |

| وَالْاَرْضِ ؕ | مَثَلُ | نُوْرِهٖ | كَمِشْكٰوةٍ | فِيْهَا | مِصْبَاحٌ ؕ |
|---|---|---|---|---|---|
| اودزمکې دې \| | مثال \| | دنور دهغه \| | پشان دتاخ دې \| | چې په کښې \| | ډیوه وی |
| اود زمکې رڼرا ده \|ددهٔ د رڼرا مثال داسې دې لکه چې یو تاخ وی\| په هغې کښې یوه ډیوه وی | | | | | |

[1] صحیح بخاری کتاب البیوع باب ثمن الکلب:۲۲۳۷، صحیح مسلم:۱۵۶۷، بدون ذکرالحجام خودَ دې ذکر په صحیح مسلم:۱۵۶۷ کښې دې.

[2] صحیح مسلم کتاب المساقاة باب تحریم ثمن الکلب وحلوان الکاهن ومهرالبغی:۱۵۶۷.

[3] الطبری:۱۷۵/۱۹.

[4] ابن ماجة کتاب الطلاق باب طلاق المکره والناسی:۲۰۴۳.

[5] ترمذی کتاب فضائل القرآن باب ماجاء فی فضل القرآن :۲۹۰۶

اَلْمِصْبَاحُ فِىْ زُجَاجَةٍؕ اَلزُّجَاجَةُ كَاَنَّهَا كَوْكَبٌ

دغه ډیوه | دشیشي په فانوس کښي وی | دغه فانوس | داسي وی لکه چي هغه | یو ستوري وی

اوهغه ډیوه په یوه شیشه کښي وی | (اوهغه) شیشه لکه یو ځلنده ستوري وی

دُرِّيٌّ يُّوْقَدُ مِنْ شَجَرَةٍ مُّبٰرَكَةٍ زَيْتُوْنَةٍ

دملغلري پشان ځلیدونکي | چي بلولي شی | دوني | برکتناکي | دزیتون نه |

دغه ډیوه دیوي فائده مندي برکتی وني نه بلیږی | (یعني) دزیتون نه چي نه

لَّا شَرْقِيَّةٍ وَّلَا غَرْبِيَّةٍۙ يَّكَادُ زَيْتُهَا يُضِيْٓءُ

چي نه مشرق طرفته وی | او نه مغرب طرفته وی | قریبه وی | چي تیل دهغي | رنړا اوکړی |

دنمر ختلو طرف ته ولاړه وی | او نه دقبلي طرف ته................ | د هغي تیل داسي ښکاری

وَلَوْ لَمْ تَمْسَسْهُ نَارٌؕ نُوْرٌ عَلٰى نُوْرٍؕ يَهْدِى اللّٰهُ

او اګر که | نه وی رسیدلي هغي ته | وور | دغه شان نور وی | دپاسه دنور | لار ښائي الله

لکه چي په خپله به اوس بله شي | اګر که اور ورته نزدي هم نشي | هغه تو له رنړا رنړا ده | الله ﷻ

لِنُوْرِهٖ مَنْ يَّشَآءُؕ وَيَضْرِبُ اللّٰهُ الْاَمْثَالَ لِلنَّاسِؕ

طرف دنور خپل ته | هغه چاته | چي خوښه ئي شی | او بیانوی الله | مثالونه | دپاره دخلقو

چي د چا په حقله اوغواړی نو دخپل نور هدایت ورته اوکړی | او الله ﷻ خلقوته مثالونه بیانوی

وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيْمٌ ۙ

او الله | په هر څیز باندي | ښه خبر دي |

او الله ﷻ په هر څیز ښه پوهه دي |

قوله تعالى:- اَللّٰهُ نُوْرُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِؕ

**د الله ﷻ دنور ښائسته مثال او نور نه مراد څوک دی (اول قول):-** ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه الله ﷻ هادی دي د آسمان والااو دزمکي والا[1] هم هغه په دي دواړوکښي دنمر سپوږمئی اوستورو تدبیر کوی[2] حضرت انس رضی الله عنه فرمائی دالله ﷻ نور هدایت دي. ابن جریر هم دااختیارکړي دي. حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه فرمائی د هغه د نور مثال یعنی د هغه نورلرونکی مؤمن مثال د چا په سینه کښي چه ایمان او قرآن دي دهغه مثال الله ﷻ بیان فرمائیلي دي. اول ئی د خپل نور ذکر اوکړو بیا د مؤمن د نورانیت چه په الله ﷻ باندي ایمان لرونکی د نورمثال. بلکه حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه داداسي لوستلو ﴿مثل نورمن امن به﴾ دابن عباس رضی الله عنه نه داسي لوستل هم نقل دی. ﴿كذلك نورمن امن بالله﴾ دبعضو په قراءت کښي ﴿الله نوّر﴾ دي یعنی هغه آسمان او زمکه نورانی جوړکړی دی. سدیm فرمائی هم د هغه په نورسره آسمان اوزمکه روښانه دی. په سیرت محمدبن اسحاق کښي دی په کومه ورځ چه اهل طائف رسول الله ﷺ ته ډیر تکلیفونه رسولي وو. حضور ﷺ په خپله دعاکښي فرمائیلي وو ﴿اعوذبنوروجهك الذي اشرقت له الظلمت وصلح عليه امرالدنيا والاخرة ان يحل بي غضبك اوينزل بي سخطك لك العتبى حتى ترضى ولاحول ولاقوة الابالله﴾ په دي دعاکښي دی

---

[1] الطبری:۱۹/۱۷۷.

[2] الطبری:۱۹/۱۷۷.

چه زه ستادمخ د نور په پناه کښې راځم چه تیارې روښانه کوی او په کوم چه د دنیااو اخرت صلاحیت موقوف دی. الخ. دصحیحین په حدیث کښې دی چه کله به حضور ﷺ دشپې د تهجدو دپاره پاسیدو نو دا به نی ونیل اې الله هم ستاد پاره ټول تعریفونه واجب دی ته د آسمانونواوزمکو اوڅه چه پدې کښې دی د هغه ټولونورنی([1]) الخ ابن مسعود رضی الله عنه فرمانی چه ستاسود رب په نیز شپه اوورځ نه ده د هغه د مخ په نورسره د هغه د عرش نور دې. ([2])

**دویم قول**:-اودبعضو په نیز مؤمن دې په کوم چه د سیاق کلام دلالت دې. یعنی د مؤمن د زړه د نور مثال دطاخ په مثال دې لکه چه فرمان دې یو سړې دې چه دخپل رب دلیل اوورسره گواهي اخستې ده. ([3])نودمؤمن دزړه صفائی دشیشې دفانوس په شان تشبیه ورکړه بیاچه دقرآن اوشریعت نه کوم امداد هغې ته ملاویږی دهغې تشبیه نی ورکړه د زیتون تیلوسره چه پخپله صفاسترا پړقیدلې اوروښانه دی. نوطاخ او په طاخ کښې چراغ او هغه هم روښانه چراغ. یهودیانو په اعتراض سره ونیلې وو چه د الله ﷻ نوردآسمانونونه اخوا څنګه منور دې؟ نومثال ورکړې شو او پوهه کړې شو لکه د فانوس دشیشې رڼا. ونی فرمائیل چه الله ﷻنوردې دآسمانونو او نوردې د زمکې. دمشکوة معنی دکوردطاخ ده. دامثال الله ﷻ دخپلې فرمانبردارنی ورکړې دې اوخپلې تابعدارنی ته نی نوراوفرمانیلو.بیادهغه نورهم ډیر نومونه دی. مجاهد فرمانی دحبشو په لغت کښې دې ته طاق (طاخ) وانی([4]) بعضې وانی چه داسې طاخ چه په هغې کښې نور څه سورې وغیره نه وی. فرمانی چه هم په دې کښې فانوس کیخودې شی. اولنې قول ډیرقوی دې یعنی د فانوس کیخودلوځائ. په قرآن کښې هم دی چه په دې کښې چراغ دې. نود مصباح نه مراد نوردې یعنی قرآن او ایمان چه د مسلمان په زړه کښې وی. سدی وانی چراغ مراد دې بیافرمانی چه دا رڼا په کوم کښې چه ډیر پرق دې دامثال دې د مؤمن د زړه. بیا هغه قندیل (فانوس)داسې دې لکه مرغلره اوپړقیدلې روښانه ستورې. د دې دویم قراءت (دری) هم دې دا ماخوذ دې د(درء)د کوم معنی چه دلرې کولوده. کله چه یوستورې ماتیږی نوهغه وخت هغه ډیرروښانه وی او چه کوم ستوری غیرمعروف وی هغې ته هم عرب دراری وانی. مطلب پړقیدونکې او روښانه ستورې چه ښه ښکاره او لوئ وی.بیادې چراغ کښې تیل هم د مبارکې ونې زیتون وی(زیتونة)لفظ بدل دې یاعطف بیان دې. بیاد زیتونوونه نه مشرقی ده چه هم د ورځې د شروع نه په دې نمر راشی اونه مغربی ده چه د نمر د ډوبیدو د وخت نه وړاندې په دې سورې راشی بلکه په مینځ ځائ کښې ده چه د سحرنه واخله ترماښامه پورې د نمر صفارڼاکښې وی.نود دې تیل هم ډیر صفاستره معتدل اوپړقیدونکې وی. ابن عباس رضی الله عنه فرمانی چه مطلب دا دې چه هغه ونه په میدان کښې ده هیڅ بلې ونې غر یاغار یاڅه بل څه خیزهغه پټه کړې نه ده. په دې وجه د دغه ونې تیل ډیر صفا وی.عکرمه فرمانی د سحرنه ترماښامه پورې تازه کولاوهوا اوصفانمر هغې ته رسی څکه چه هغه د کولاو میدان په مینځ کښې ده هم په دې وجه دهغې تیل صفاسترا روښانه پړقیدونکی وی نه هغې ته مشرقی ونیلې شی نه مغربی.داسې ونه ډیره کولاواوشنه وی نوچه څنګه داونه د آفتونونه بچ شوی وی دغه شان مؤمن د فتنونه بچ اوسیږی. که دیوې فتنې په ازمیښت کښې پریوځی هم نوالله ﷻ هغه ثابت قدم ساتی. هغه ته څلورصفتونه الله ﷻ ورکوی. په خبره کښې رښتونې په حکم کښې عدل په تکلیف باندې صبر نعمت باندې شکر بیا هغه په

---

[1] صحیح بخاری،کتاب التهجدباب التهجد باللیل: ۱۱۲۰، صحیح مسلم: ۷۶۹، احمد: ۳۵۸/۱، ابن حبان: ۲۵۹۷.
[2] الطبری: ۱۷۹/۱۹.
[3] ۱۱/هود: ۱۷. الخ.
[4] حاکم: ۳۹۷/۲.

نورو تولو انسانانو کښې داسې وی لکه چه څوك ژوندې په مړو کښې وی.حسن بصری ؒ فرمائی چه که داونه په دنیاکښې وه نو ضرور به مشرقی یامغربی کیدله ولې داخودالله ﷻ دنورمثال دی.ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه دامثال دې دنیك سړی چه نه یهودی وی نه نصرانی.پدې تولواقوالوکښې بهترین قول اولنې دې چه هغه په مینځ زمکه کښې ده د سحرنه ترماښامه پورې بې د بندیزنه نمراوهواهغې ته رسی څکه چه د څلورو واړو طرفونوته څه بندیز نشته نولامحاله به د داسې ونې تیل ډیر زیات صفاوی او مزیداراوپرقیدونکی به وی.ددې دپاره اوفرمانیلې شو چه پخپله هغه تیل دومره صفا اومزیداردی لکه چه بغیرد لګولوهم رڼرا ورکوی نودرڼراد پاسه رڼرا ده.یعنی دایمان نوربیادهغې دپاسه دنیکو اعمالونور(١) پخپله د زیتونوتیل روښانه بیا هغه سوزیږی اورڼرا ورکوی نودې ته پنځه نوره حاصلیږی هم ددې کلام نوردې د دې عمل نوردې د دې راتلل نوردې د دې تلل نور دې اود دې آخری ځائ نوردې یعنی جنت. دکعب رضی الله عنه نه روایت دې دامثال دې د رسول الله ﷺ چه د هغوی نبوت دومره ښکاره دې چه حضور ﷺ په ژبه مبارك اونه هم فرمائی خوبیابه هم په خلقو ظاهریږی لکه دا زیتون چه بغیرد روښانه کولونه روښانه دی نوهغه نور دلته جمع دې یود زیتون اویود اور.ددې دیوځائ کیدونه رڼرا حاصلیږی دغه شان نور قرآن او نور ایمان راجمع کیږی اودمؤمن زړه روښانه کیږی. الله ﷻ چه څوك خوښ کړی د خپل هدایت په لارنې اولګوی. حضور ﷺ فرمائی الله ﷻ مخلوقات په یوه تیاره کښې پیداکړل بیائی په هغه ورځ په هغوی باندې خپل نورواچولو چاچه هغه نورواخستو هغه هدایت بیاموندلواوچه څوك محروم پاتې شوهغه ګمراه شو.ددې د پاره زه وایم چه قلم د الله ﷻ دعلم مطابق روان وو اوچ شو(٢)

**دا مثال د زړهٔ د مؤمن دې او زړونه په څلور قسمه دی:-** الله ﷻ دمؤمن دزړه مثال په نورسره ورکړو بیا نی اوفرمانیل چه الله ﷻ دامثالونه د خلقو دپوهې د پاره بیان فرمائی.دهغه په علم کښې هم څوك د هغه په شان نشته. هغه دهدایت اوګمراهئ والا مستحق هریوپیژنی. د مسندپه یوحدیث کښې دی د زړونو څلورقسمونه دی یوخوصفا اوروښانه یوغلاف والابندشوې یواولټه اوپرمخې یوګرخیدلې شوې اولټه نیغ.رومبې زړه خود مؤمن زړه دې چه نورانی وی دویم زړه د کافردې دریم زړه د منافق دې چه هغه پوهه شو بیائی خان ناپوهه کړاوبیا منکر شو.څلورم زړه هغه زړه دې کوم کښې چه ایمان هم دې او نفاق هم دی.دایمان مثال خو په هغې کښې دترکارئی دونې په شان دې چه ښه اوبه هغه لویوی اود نفاق مثال پدې کښې په شان د پولې دې چه وینې زوې هغه راپرسوی اوس چه کوم یوغالب راغلو هغه په دې زړه باندې راخوریږی. (٣)

<table>
<tr><td colspan="3">فِیْ بُیُوْتٍ    اَذِنَ    اللّٰهُ</td></tr>
<tr><td colspan="3">| په هغه کورونو کښې وی | چې حکم کړی دی | الله</td></tr>
<tr><td colspan="3">| په داسې کورونو(یعنی جماتونو)کښې چې الله ﷻ دهغې باره کښې</td></tr>
<tr><td colspan="3">اَنْ تُرْفَعَ    وَيُذْكَرَ    فِيْهَا    اسْمُهٗ    يُسَبِّحُ    لَهٗ</td></tr>
<tr><td colspan="3">چې پورته دکړې شی | او یاد د کړې شی | په هغې کښې | نوم دهغه | تسبیح وائی | هغه لره |</td></tr>
<tr><td colspan="3">حکم کړې دی | چې دهغې د ادب لحاظ دې ساتلې شی | اودهغه نوم دې په کښې اخستلې شی | په هغې</td></tr>
</table>

(١) الطبری:١٨٢/١٩.

(٢) احمد:١٧٦/٢ ح٦٦٤٤وسنده صحیح، ابن حبان:٦١٦٩.(مسنداحمدوغیره).

(٣) احمد:١٧/٣.

| فِيهَا | بِالْغُدُوِّ | وَالْاٰصَالِ | رِجَالٌ | لَّا تُلْهِيهِمْ | تِجَارَةٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| په هغې کښې | صبا | او بېګاه | (داسې) سړي | چې نه غافله کوي هغوئ لره | تجارت |

کښې سحر ماښام خلق دالله ﷻ پاکي بيانوي اداسې خلق چې نه يې تجارت غافله کولې

| وَّلَا بَيْعٌ | عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ | وَاِقَامِ الصَّلٰوةِ | وَاِيْتَآءِ الزَّكٰوةِ | يَخَافُوْنَ |
|---|---|---|---|---|
| او نه خرخول | د ذکر دالله نه | او د قائمولو د مانځه نه | او د ورکولو د زکات نه | بېرېږي هغوئ |

شي او نه اخستل خرخول د الله د ذکر نه او نه مونځ قائمولو نه او نه زکوة ورکولو نه ........... هغوئ

| يَوْمًا | تَتَقَلَّبُ | فِيهِ | الْقُلُوْبُ | وَالْاَبْصَارُ |
|---|---|---|---|---|
| دهغه ورځې نه | چې اوړې راوړې به | په هغې کښې | زړونه | او سترګې |

دهغه ورځې نه وېرېږي اچې زړونه او سترګې به په کښې (په بل مخ) واوړي .............. ....

| لِيَجْزِيَهُمُ | اللّٰهُ | اَحْسَنَ | مَا | عَمِلُوْا |
|---|---|---|---|---|
| دپاره ددې چې بدله ورکړي هغوئ لره | الله | دنيکو کارونو | هغو | چې کړي وي هغوئ |

انجام به ئې داوي چې الله ﷻ به ورته دخپلو نيکو عملونو ډېره ښه بدله ورکړي

| وَيَزِيْدَهُمْ | مِّنْ فَضْلِهٖ | وَاللّٰهُ | يَرْزُقُ | مَنْ | يَّشَآءُ |
|---|---|---|---|---|---|
| او زيات ورکړي هغوئ ته | دفضل خپل نه | او الله | رزق ورکوي | هغه چاته | چې خوښه ئې شي |

او دخپل فضل نه به زيات هم ورکړي او الله چې دچا په حق کښې اوغواړي انو بې حسابه

| بِغَيْرِ حِسَابٍ |
|---|
| بې حسابه |

رزق ورکوي

**قوله تعالى:- فِيْ بُيُوْتٍ اَذِنَ اللّٰهُ اَنْ تُرْفَعَ**

**د جمات آداب:-** دمؤمن د زړه اوپه هغې کښې چه کوم علم اوهدايت دې د دې مثال ئې پورتنی آيت کښې دهغه روښانه چراغ په شان ورکړې ووکوم چه دشيشې په کتهوئی کښې وی اودصفاروښانه زيتونو روښانه تيلوسره سوزيږي. ددې دپاره ئې دهغې د ایٔ باره کښې اوفرمائيل چه وی هم په داسې مکانونو کښې يعنی په جماتونوکښې چه د ټولونه زيات بهترين اودالله ﷻ خوښ خايونه دی چرته چه دهغه عبادت کولې شی اود هغه توحيد بيانولې شی دکوم دساتلودپاك صفاايږدلواود فضول اقوال اوافعال نه دساتلو چه دکوموباره کښې دالله ﷻ حکم دې. ابن عباس ﷺ وغيره فرمائی د(ان ترفع)معنی په دې کښې فضول کارنه کول دی[1] قتاده فرمائی چه دې نه مرادهم دغه جماتونه دی د کومو د جوړولو اوآبادولواوپاکوالی حکم چه الله ﷻ ورکړې دې. حضرت کعب ﷺ به فرمائيل چه په تورات کښې ليکلې دی چه په زمکه کښې زما کورونه جماتونه دی خوك هم چه زماکور ته په اودس کښې زما ملاقات ته راشی زه به د هغه عزت کوم. د هريوهغه کس دپاره چه څوك د هغه کورته راشي داحق دې چه هغه د ده تکريم اوعزت اوکړي(تفسيرابن ابی حاتم) جماتونه جوړول دهغې ادب اواحترام کولواود هغې خوشبويه -

[1] الطبری:۱۹/۱۹۱.

او صفاستره ساتلو باره کښې ډیر زیات احادیث راغلی دی. چه الحمدلله ما په یومستقل کتاب کښې لیکلي دی او دلته هم د هغې نه څه لږ ډیر نقل کوم. الله ﷻ دې امداداوکړی هم په هغه باندې زمونږ توکل اویقین دې.

**د مسجدونودادابو اوفضیلتونو متعلق احادیث:**-رسول الله ﷺ فرمائی چه کوم سړی د الله ﷻ د رضامندئ د پاره جمات جوړکړی الله ﷻ دهغه دپاره د دې په شان کور په جنت کښې جوړوی[1] فرمائی د الله ﷻ د نوم دذکرکولودپاره کوم سړې جمات جوړکړی الله ﷻ دهغه دپاره په جنت کښې کور جوړوي.[2] حضور ﷺ حکم اوکړو چه محلوکښې جماتونه جوړکړنی اوپاك صفا اوخوشبودار ئې اوساتئ. [3] د حضرت عمرفاروق ﷺ بیان دې چه دخلقو د پاره جماتونه جوړ کړنی چرته چه هم خائ ملاوشو خود سور یا زیړرنګ نه بچ شئ چه خلق فتنه کښې پرینوځی.[4] په یوضعیف سندسره مرفوعاً روایت دې ترکومې چه یوقوم خپل جماتونه د ټیپ ټاپ نقش اونګار اود رنګ روغن والا جوړنه کړه د هغوی عملونه خراب نه شو[5] ددې سندضعیف دې.حضور ﷺ فرمائی چه ماته دجماتونو داوچتولواوپخولوحکم نه دې راکړې شوې. ابن عباس ﷺ راوی حدیث فرمائی چه تاسوبه یقیناً جماتونه بنائسته نقش اونګار والا کوئی لکه څنګه چه یهودیانواونصاری اوکړل. [6] فرمائی چه قیامت به نه قایمیږی ترکومې چه خلق د جماتونو باره کښې خپل مینځ کښې په یوبل فخر اوغرور اونه کړی[7] یوسړې د خپل اوبښ لټولود پاره جمات ته راغلوونی وئیل څوك شته چه ماته دخپل سوراوبښ پته راکړی؟ حضور ﷺ بددعااوکړه الله ﷻ دې اوکړی چه تاته ملاونه شي.جماتونه خوچه دکوم مطلب دپاره جوړکړې شوی هم ددغه کاردپاره دی[8] حضور ﷺ په جماتونوکښې خرڅول اخستل دتجارت خرڅول اخستل اوهلته شعرونه وئیلونه منع فرمائیلي دہ[9] ارشاددې څوك چه په جمات کښې په خرڅولواخستلواووینې نووایه چه الله ﷻ دې ستا په تجارت کښې ګټه درنه کړی او کله چه څوك ورك شوې ځناور اعلان کولو والا په جمات کښې اووینې نووایه الله ﷻ دې اوکړی چه ملاونه شي[10] ارشاد دې چه ډیرې خبرې دجمات لائق نه وی.جمات لاره مه جوړونی په جمات کښې وسلې مه راوباسئ. په جمات کښې غشي په لنده کښې مه لګوئی، مه غشی خوروئی. مه کچه غوښه راوړنی مه دلته حد جاری کوئی. مه دلته خبرې او قصې کوئی اومه دا بازار جوړوئی.[11] فرمائی چه زمونږ د جماتونونه ماشومان لیونی اخستونکی خرڅونکی جنګ جګړو والا په اوچت

---

[1] صحیح بخاری کتاب الصلاة باب من بنی مسجدًا: ٤٥٠، صحیح مسلم:٥٣٣، ترمذی:٣١٨،احمد:٦١/١، ابن حبان:١٦٠٩، بیهقی:٤٣٧/٢.(بخاری اومسلم)

[2] ابن ماجة کتاب المساجدباب من بنی لله مسجدًا:٧٣٥

[3] ابوداوٗد کتاب الصلاة باب اتخاذ المساجد فی الدور:٤٥٥وهوصحیح، ترمذی:٥٩٤، ابن ماجة:٧٥٩، احمد:٢٧٩/٦،ابن حبان:١٦٣٤، بیهقی:٤٤٠/٢.(ترمذی وغیره)

[4] صحیح بخاری کتاب الصلاة باب بنیان المسجدقبل حدیث:٤٤٦. (بخاری)

[5] ابن ماجة کتاب المساجد باب تشیدالمساجد:٧٤١

[6] ابوداوٗد کتاب الصلاة باب فی بناء المساجد:٤٤٨

[7] ابوداوٗد کتاب الصلاة باب فی بناء المساجد:٤٤٩وسنده صحیح، نسائی:٦٩٠، ابن ماجة:٧٣٩، احمد:١٤٥/٣، ابن حبان:٦١٣،

[8] صحیح مسلم کتاب المساجد باب النهی عن نشد الضالة فی المسجد...:٥٦٩، ابن ماجة:٧٦٥، ابن حبان:٤٣٩/٢. (مسلم)

[9] ابوداوٗد کتاب الصلاة باب التحلق یوم الجمعة قبل الصلاة:١٠٧٩وسنده حسن، ترمذی:٣٢٢، نسائی:٧١٥، ابن ماجة:٧٣٩

[10] ترمذی کتاب البیوع باب النهی عن البیع فی المسجد:١٣٢١وسنده صحیح، ابن حبان:١٦٥٠، حاکم:٥٢/٢ذ دبگ اصل صحیح مسلم:٥٦٨وغیره (ترمذی).

[11] ابن ماجة کتاب المساجد باب مایکره فی المساجد:٧٤٨

اوازکښې خبرې کونکې اود حدجاری کول اود تورو بربنډول منع کړنی ددې دروازوکښې د اودس وغیره ځایونه جوړکړنی اودجمعه په ورځ داپه خوشبوئې سره معطره کړی(۱)ددې سندضعیف دې. بعضې علماؤ بغیردضرورت شدید نه جماتونه لارې جوړول مکروه ګنړلې دی.په یو اثرکښې دی چه کوم سړې بغیرد مانځه په جمات کښې تیرشی فرښتې په هغه باندې تعجب کوی. د وسلواوغشو نه چه نی منع کړې ده دا ددې دپاره چه هلته مسلمانان ډیر راجمع وی هسې نه چه څوك اولګی خکه چه د حضورﷺ حکم دې چه غشی یانیزې سره تیریږې نوتیره طرف نی په خپل لاس کښې ساته چه چاته تکلیف اونه رسی(۲)کچه غوښه راوړل خکه منع دی چه داویره وی چرته وینه ترې اونه څاخی لکه څنګه چه دحائضه ښځې جمات ته راتلل منع دی. په جمات کښې حد لګول اوقصاص اخستل خکه منع دی چه هسې نه هغه سړې جمات پلیت کړی. بازار ترې جوړول خکه منع کړې شوی دی چه هغه د اخستلو اوخرخولو ځایځ دې او په جمات کښې دا دواړه خبرې منع دی خکه چه جماتونه د الله ﷻ د ذکر او مونځ ځایونه دی لکه څنګه چه حضورﷺ هغه اعرابی ته فرمائیلی ووکوم چه دجمات په یوګوټ کښې متیازې کړې وې چه جماتونه ددې دپاره نه دی جوړکړې شوی بلکه داد الله ﷻ د مانځه ځایځ دې بیاتی د ده په متیازو باندې یوه لویه ډولچه اوبه اوبهیولې(۳) په دویم حدیث کښې دی خپل ماشومان د خپلو جماتونونه منع کړنی خکه چه لوبې اوټوپونه دهغوی کاردې اوپه جماتونوکښې دامناسب نه دی. فاروق اعظم ﷺچه به کوم ماشوم په جمات کښې په لوبولیدلوهغه به نی په کوړه سره وهلواود ماسخوتن د مانخه نه پس به نې څوك په جمات کښې نه پریخودل. لیونی هم د جماتونونه منع کړې شو خکه چه هغوی بې عقل وی اود خلقو د مذاق ذریعه جوړیږی اوجماتونه د دې تماشولاتی نه دی. اوبله دا هم ده چه د هغوی د نجاست اوپلیتنې ویره هم ده. بیع اوشرا نه منع کړې شو خکه چه دا خبرې د الله ﷻ د ذکرنه منع کونکې دی.جګړې اودجګړو لانجې نی پدې وجه منع کړې چه په دې کښې آوازونه اوچتیږی او داسې الفاظ د خلې نه اوځی چه د جمات د ادب نه خلاف وی.د اکثرو علماؤ قول دې چه په جمات کښې فیصله مه کوئی خکه چه د دې جمله نه پس آواز اوچتول منع دی. سائب بن یزید کندی m فرمائی زه جمات کښې ولاړ ووم ناڅاپې په ما یوکاڼړې راګذار شو چه ما اوکتل نوهغه حضرت عمر بن خطابﷺ وو ماته نی اوفرمائیل څه لاړشه دادواړه سړی ماله راوله. کله چه ما هغوی راوستل نو هغوی ترې نه تپوس اوکړوتاسو څوك نی؟ یاتپوس نی اوکړو چه تاسو د کوم ځایځ نی؟ هغوی ونیل مونږ د طائف اوسیدونکی یو هغوی اوفرمائیل چه که تاسو د دې ځایځ اوسیدونکی وئی نو مابه تاسو له سزا درکوله. تاسو په مسجدنبوی کښې په اوچت اوچت آوازونوسره خبرې کوئی؟(۴) د یوسړی اوچت آواز اوریدو سره حضرت فاروق اعظمﷺ فرمائیلی ووچه ښه پوهیږئی هم چه چرته ئی؟(نسائی)اود جمات په دروازه کښې د اودس اوپاکوالی ځایځ جوړولوحکم نی ورکړو. مسجد نبوی سره نیزدې کوهیان وو چه دهغې نه به نی اوبه راښکلې او څکلې به نی اودغه شان اودس او پاکوالې به نی حاصلولو. د جمعه په ورځ دا خوشبویه کولوحکم اوشوځکه چه پدغه ورځ خلق ډیر راجمع کیږی.ابویعلی موصلی کښې دی حضرت ابن عمر ﷺ به هره جمعه مسجدنبوی معطر کولو.

---

(۱) ابن ماجة حواله سابق: ۷۵۰

(۲) صحیح بخاری کتاب الصلاة باب یاخذ بنصول النبل اذا مرفی المسجد: ۴۵۱-۴۵۲، صحیح مسلم: ۲٦۱۴-۲٦۱۵، ابوداؤد: ۲۵۸۷، ابن ماجة: ۳۷۷۸، احمد: ۴/۴۱۰، ابن حبان: ۱٦۴۹، بیهقی: ۸/۲۳.

(۳) صحیح بخاری کتاب الوضوء باب ترك النبی ﷺ والناس الاعرابی...: ۲۱۹، صحیح مسلم: ۲۷۵، ابن ماجة: ۵۲۸، احمد: ۳/۲۲٦، ابن حبان: ۱۴۰۱.

(۴) صحیح بخاری کتاب الصلاة باب رفع الصوت فی المسجد: ۴۷۰.(بخاری)

**په جماعت کښې د يومونځ په جمع کولو درجه** .بخاري اومسلم کښې دی حضورﷺ فرماني دجمع مونځ د انسان د خان له مونځ چه په کور يادکان کښې اوکړې شی ۲۵ درجې يازيات ثواب لري. دا په دې وجه چه کله هغه په ښه شان سره اودس اوکړی اوصرف دمانځه په اراده روان شی نود هريوقدم په اوچتولو باندې دهغه يوه درجه اوچتيږی اويوه يوه ګناه معاف کيږی اوچه کله مونځ اوکړی نو بيا چه دې ترکومې دخپل مانځه په ځای ناست وی فرښتې په هغه باندې درود رالیګی. وائی ای الله ﷻ په ده باندې خپل رحمت نازل کړه اويه ده باندې رحم اوکړه اوترکومې چه په د مانځه په انتظارکښې وی د مونځ ثواب به ورته ملاويږی.(۱) دارقطنی کښې دی چه د جمات د ګاونډی مونځ بغيرد جمات نه نه کيږی(۲)سنن کښې دی چه په تياروکښې جماتونه له تلونکوته خوشخبری واوروه چه دوی ته به د قيامت په ورځ پوره پوره نور ملاويږی(۳)داهم مستحب دی چه جمات ته تلونکې دې اول ښې پښه دننه کړی اودادعادې اوائی کومه چه بخاری شريف کښې ده.حضورﷺ چه به کله هم جمات ته راتلو ﴿اعوذبالله العظيم وبوجهه الكريم وسلطانه القديم من الشيطان الرجيم﴾ارشاددې کله چه يوسړې دالولی نوشيطان وائی داسړې زما د شر نه ټوله ورځ د پاره محفوظ شو(۴) په مسلم شريف کښې د حضورﷺ ارشاد نقل دې په تاسوکښې چه څوک کله جمات ته تلل غواړی نودا دعا دې لولی﴿اللهم افتح لي ابواب رحمتك﴾اې الله ﷻ زمادپاره درحمت دروازې کولاوکړه.اوکله چه جمات نه بهر اوځې نوداوايه ﴿اللهم انى اسئلك من فضلك﴾ اې الله ﷻ زه تانه ستافضل غوارم. (۵) ابن ماجه وغيره کښې دی کله چه په تاسوکښې څوک جمات ته لاړشی نودالله ﷻ په نبی ﷺدې سلام اوليګی بيا دې﴿اللهم افتح لي ابواب رحمتك﴾ اولولی اوچه کله د جمات نه راوځی نو ﴿اللهم اعصمني من الشيطن الرجيم﴾دې لولی(۶) ترمذی وغيره کښې دی کله چه به هغوی جمات ته راتلل نودرودبه ئې لوستلو او﴿اللهم اغفرلي ذنوبي وافتح لي ابواب رحمتك﴾به ئې وئيل اوچه کله به د جمات نه وتلونودرودنه پس به ئې ﴿اللهم اغفرلي ذنوبي وافتح لي ابواب فضلك﴾ لوستلو(۷)ددې حديث سندمتصل نه دی.غرض دا اود دې په شان نورډير احاديث ددې آيت متعلق دی کوم چه جمات اود جمات سره متعلق احکام سره تعلق لري. يوبل آيت کښې دی تاسو په هرجمات کښې خپل مخ سيداساتئی او په خلوص سره صرف هم الله ﷻ رابلئی(۸) يوبل آيت کښې دی چه جماتونه هم د الله ﷻ دی اوهم د هغه نوم په دې کښې اخلئی(۹)يعنی دکتاب الله تلاوت په کښې کوئی(۱۰) سحر مابنام هلته د الله ﷻ تسبيح بيانوی. آصال جمع د اصيل ده د مابنام وخت ته اصيل وائی.ابن عباس رضي الله عنه فرمائی چه کوم ځای کښې په قرآن پاك کښې د تسبيح لفظ دې هلته مرادمونځ دې نودلته مراد د سحر اومازيګردې وړاندې وړاندې هم دا دوه مونځونه فرض شوې وو نو هم هغه ورياد کړې شو. په يوقراءت کښې ﴿يسبح﴾ دې او په دې قراءت کښې په آصال باندې پوره وقف دې اود ﴿رجال﴾ نه بل خبره شروع کيږی لکه چه هغه مفسردې د فاعل

---

۱) صحيح بخاری کتاب الاذان باب فضل صلاة الجماعة:۶۴۷، صحيح مسلم:۶۶۱، ابوداوٗد:۵۵۹، ترمذی:۶۰۳، ابن ماجة:۳۸۱
۲) حاکم:۲۴۶/۱
۳) ابوداوٗد کتاب الصلاة ماجاء في المشي الى الصلاة في الظلم:۵۶۱ وهوصحيح، ترمذی: ۲۲۳، ابن ماجة:۷۸۱.
۴) ابوداوٗد کتاب الصلاة باب مايقول الرجل عند دخول المسجد:۴۶۶وسنده صحيح.
۵) صحيح مسلم کتاب صلاة المسافرين باب مايقول اذادخل المسجد:۷۱۳.
۶) ابن ماجة کتاب المساجد باب الدعاء عنددخول المسجد:۷۷۳وهوصحيح، حاکم:۲۰۷/۱، ابن حبان:۲۰۴۷.
۷) ترمذی کتاب الصلاة باب ماجاء مايقول عند دخول المسجد:۳۱۴.
۸) ۷/الاعراف:۲۹.
۹) ۷۲/الجن:۱۸.
۱۰) الطبری:۱۹۱/۱۹.

محذوف د پاره. نونکه چه اوونیلي شو هلته څوك تسبيح كوي؟ نوجواب وركړي شو چه داسي خلق وريسبح، په قراءت باندې ﴿رجال﴾ فاعل دې نووقف د فاعل د بيان نه پس پكاردې. ﴿رجال﴾ ونيلوكښي اشاره ده د هغوی بهترين مقاصدو ته د هغوی پاكوكارونواود هغوی اوچتوكارونوته چه دوی د الله ﷻ كورونه آبادونكي دی دهغه دعبادت خايونه ددوی په عبادت باندې ښانسته ښكاری دتوحيد او شكر گذارنی والا هم دا دی. لكه چه ارشاد دې ﴿مِنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللَّهَ عَلَيْهِ ۖ فَمِنْهُم مَّن قَضَىٰ نَحْبَهُ وَمِنْهُم مَّن يَنتَظِرُ ۖ وَمَا بَدَّلُوا تَبْدِيلًا﴾[1] يعنى په مومنانوكښې داسي هم سړی شته چه هغوی كومه وعده الله ﷻ سره كړې وه هغه ئې پوره كړه وئې خودله الخ.

**د ښځو دپاره كور كښې مونځ كول افضل دی:-** اود ښځود پاره دجمات د مونځ نه دكورمونځ بهتردې. رسول الله ﷺ فرمائى دښځې مونځ په كور كښې بهتردې اود هغې دحجرې د مونځ نه دتنه د كمرې مونځ غوره دې[2] مسند كښې دی چه دښځو بهترين جمات دكوردننه كوټ دې[3] مسنداحدكښې دی حضرت ابو حميدساعدی ﷺ بی بی درسول الله ﷺ په خدمت كښې حاضره شوه وئې وئيل چه حضورﷺ زه تاسو سره مونځ اداكول ډير زيات خوښوم. حضورﷺاوفرمائيل ماته هم معلومه ده خومسئله داده چه ستاد خپل كورمونځ د انگڼ د مانځه نه اود حجرې مونځ د د كور د مانځه نه اودكورد كوټنې مونځ دحجرې د مانځه نه غوره دې اودمحلې دجمات نه غوره دكور مونځ دې اود محلې د جمات مونځ زماد جمات نه غوره دې.دې اوريدوسره هغې دخپل كورپه مينځ حصه كښې يوځاى دجمات په توگه مقرر كړو اود آخروخت پورې ئې هم هلته مونځونه كول. ([4]) اود ښځود پاره هم په جمات كښې سروسره مونځ كول جائزدی په دې شرط چه سروته خپل زينت ښكاره نه كړي‌اونه خوشبوئي لگولو سره بهراوځي. په صحيح حديث كښې د رسول الله ﷺ فرمان دې د الله ﷻ بنديكانې د الله ﷻ جماتونونه مه منع كوئي. ([5]) ابوداؤدكښې دی دښځود پاره د هغوی كور غوره دې([6]) بل حديث كښې دی چه هغوی دې خوشبو استعمالولو سره نه اوځي([7]) صحيح مسلم شريف كښې دی چه حضورﷺ ښځوته اوفرمائيل كله چه په تاسوكښې څوك جمات ته راتلل غواړي نو خوشبوته لاس هم مه لگوئي([8]) بخاری اومسلم شريف كښې دی مسلمانانې ښځې به دسحر مانځه له راتلې بيا به هغوی پخپلو څادرونوكښې اينغښتلې روانې وې ([9]) اوپه وجه د شپې د تيارې به هغوی پيژندلې نه شوې. حضرت صديقه k فرمائى چه دې ښځو كومې دا نوې نوې خبرې جوړې كړې‌دی كه رسول الله ﷺ ددې خبرو نه خبروونودونی به ئې د جماتونود راتلونه منع كړې وې لكه څنگه چه د بنی اسرائيلو ښځې منع كړې شوې وې. ([10])

**درجال اوصاف:-** داسې خلق چه هغوی خرڅول اواخستل د الله ﷻ دياد نه نه منع كوی. لكه چه ارشاددې د ايمان والا مال اولاد تاسو د الله ﷻ د ذكر نه غافل نه كړی. په سورت جمعه كښې دی چه د جمعه په

---

[1]) ٣٣/الاحزاب:٢٣.
[2]) ابوداؤد كتاب الصلاة باب التشديد فی ذلك: ٥٧٠.
[3]) احمد:١/٢٩٧ ابن خزيمة :١٦٨٣،حاكم:١/٢٠٩، مسندابی يعلى:٧٠٢٥.
[4]) احمد:١/٣٧١وسنده حسن، ابن خزيمة:١٦٨٩، ابن حبان:٢٢١٧، مجمع الزوائد:٢/٣٣.
[5]) صحيح بخاری كتاب الجمعة باب ١٣ حديث : ٩٠٠، صحيح مسلم:٤٤٢. (بخاری اومسلم وغيره)
[6]) ابوداؤد كتاب الصلاة باب ماجاء فی خروج النساء الی المسجد:٥٦٧وهوصحيح.
[7]) ابوداؤدحواله سابق٥٦٥وسنده حسن، احمد:٢/٥٢٨،ابن حبان:٢٢١٤.
[8]) صحيح مسلم كتاب الصلاة باب خروج النساءالی المساجداذالم يترتب...:٤٤٣، احمد:٦/٣٦٣، ابن حبان:٢٢١٥.
[9]) صحيح بخاری كتاب مواقيت الصلاة باب وقت الفجر:٥٧٨، صحيح مسلم:٦٤٥، ابوداؤد٤٢٣، ترمذی:١٥٣ ،احمد:٦ /١٧٩، مسندابی يعلى:٤٤١٥.
[10]) صحيح بخاری كتاب الاذان باب انتظارالناس قيام الامام العالم:٨٦٩، صحيح مسلم:٤٤٥. (بخاری‌اومسلم)

ورځ اذان اوريدوسره د الله ﷻ د ياد طرف ته ځني اوتجارت پريږدني.(١) مطلب دا دې چه دې خلقو ته دنيا اوددنيا سامان دنيااوآخرت د الله ﷻ ديادنه غافل كولې نه شي د دوى په آخرت باندې اود هغه ځاى په نعمتونوباندې پوره يقين دې اوهغه باقي ګنړي اود دې ځاى څيزونه فاني ګنړي په دې وجه دا پريږدي اودهغې طرف ته توجه كوي.دالله ﷻ تابعداري اودهغه محبت دهغه احكام مقدم ګنړي. حضرت ابن مسعود ﷺ يوځل تجارت پيشه خلق چه خپل كار روزګارپريخودو د جمات طرف ته په تلوكښې اوليدل نوهم داآيت ئې تلاوت كړو وئې فرمائيل داخلق هم د هغوى نه دى.د ابن عمر ﷺ نه هم دا روايت دې. ابودرداء ﷺ فرمائي چه تجارت اوكړم سره د دې چه ماته په هغې كښې هره ورځ درې سوه اشرفئ ملاويږي خوزه به د مانځه په وخت كښې هرڅه پريږدم اوخم به.زمامطلب هيڅ كله هم دانه دې چه تجارت حرام دې بلكه په مونږ كښې داصفت كيدل پكاردى كوم چه په دې آيت كښې بيان شوې دې. سالم بن عبدالله د مانځه د پاره روان وونى چه كتل چه دمدينې طيبه سوداګرو په خپلوخپلو دوكانونو باندې كپړې اچولې دى مانځه له تلې دى. هيڅ څوك هم په دكان كښې موجودنشته نوهغوى دا آيت تلاوت كړو اوونى فرمائيل چه هم د دوى نه دى د چاتعريف چه الله رب العزت كړې دې. د دې خبرې په سلفوكښې د دې ځاى پورې خيال وو چه تله ئې اوچته كړې تلى او اذان ئې په غوږ كښې پريوتلونوتله ئې كيخوده اودجمات طرف ته روان شو.دفرض مونځ په جمع سره په جمات كښې د ادا كولود هغوى شوق وو. هغوى به د وختونود اركانود آدابوحفاظت سره د مونځونو پابند وو.دا ځكه چه په زړونوكښې د الله ﷻ ويره وه د قيامت راتلل ئې په حقه سره ګنړل.دهغه ورځ د ويرې نه خبروو چه ډير سختې ويرې اوپوره پريشانئ اودبې حد ګړيږه وجه سترګې به ئې بقې شي اوزړه به ئې والوزي اينه به ئې اوخوزي. لكه چه ارشاددې زما نيكان بنديګان زما دنيكو په وجه مسكينانو باندې خوراك كوي اوبه يتيمانو اوقيديانوباندې هم اوواتې چه مونږخوبه تاسو صرف د الله ﷻ د رضا په خاطر خوراك كوو زمونږ مقصدتاسونه شكريه اخستل نه دى اونه د بدلې اخستل دى.زمونږ خود خپل پروردګار نه د هغه ورځې ويره ده چه خلقو دغم اوخفګان نه مخونه پرسولي وى اوتندى ئې بدل شوي وى.نوالله ﷻ به هغوى ته ددغه ورځ دمصيبتونونه خلاصي وركړي اوهغوى ته به تازه والى خندا خوشحالئ راحت اوآرام ملاويږي.اود هغوى د صبر په بدله كښې به جنت او ريښمين لباس وركوي. (٢)

**ددې رجالو هر عمل مقبول دې:**-دلته هم فرمائي چه د هغوى نيكئ قبولې دې دهغوى بدئ معاف دى د هغوى ديويوعمل بهترينه بدله به سره د زياتى بدله اود الله ﷻ د فضل سره هغوى ته ضرور ملاويږي. لكه چه ارشاد دې الله ﷻ په اندازه د يوې ذرې هم ظلم نه كوي.(٣) بل آيت كښې دې نيكي لس چنده كولې شي.(٤).بل آيت كښې دى چه څوك الله ﷻ ته ښه قرض وركړي هغه به الله ﷻ ډير زيات كړي او د ډيرنه ډيربه وركړي.(٥)ارشاددې ﴿يُضَٰعِفُ لِمَن يَشَآءُۗ وَٱللَّهُ وَٰسِعٌ عَلِيمٌ﴾ (٦) هغه زياتوى دچاد پاره چه اوغواړي. دلته فرمان دې چه هغه چاله غواړي بې حسابه وركوي. حضرت ابن مسعود ﷺ له يوځل پئى راوړلې شوهغوى په دې مجلس كښې په هريو باندې څكول غوښتل خود ټولوروژه وه په دې وجه هم هغوى له

---

(١) ٦٢/الجمعة:٩.
(٢) ٧٦/الدهر:٨-١٢.
(٣) ٤/النساء:٤٠.
(٤) ٦/الانعام:١٦٠
(٥) ٢/البقرة:٢٤٥.
(٦) ٢/البقرة:٢٦١.

واپس لوښي راغلو هغوی هم دا آیت ﴿يَخَافُونَ يَوْمًا تَتَقَلَّبُ فِيهِ الْقُلُوبُ وَالْأَبْصَارُ﴾ اولوستلو او ونې څکل.([1])
رسول الله ﷺ فرمائي د قیامت په ورځ به اول او آخر ټول راجمع کولې شي الله ﷻ به یوآواز کونکی ته حکم ورکړي چه په اوچت آواز سره به چغه وهي کومه چه به ټول اهل محشر اوري نن به ټولوته معلومه شي چه د الله ﷻ په نیز د ټولونه ډیر بزرګ څوك دې؟ بیا به فرمائي هغه خلق اودرېږي څوك چه تجارت د الله ﷻ د ذکر نه نه وو منع کړي. هغوی به اودرېږي اوهغوی به ډیر کم وی. د ټولونه اول به هم دوی دحساب نه فارغ کولې شي([2]) حضور ﷺ فرمائي چه د دوی د نیکو اجر یعنی جنت به هم دوی ته ملاویږي اود الله ﷻ زیاتی فضل به دا وی چه کوموخلقو هغوی سره احسان کړې وی او وی هم هغوی د شفاعت حقدار نود دوی ټولو د شفاعت منصب به دوی ته حاصل شي. ([3])

| وَالَّذِينَ | كَفَرُوا | أَعْمَالُهُمْ | كَسَرَابٍ |
|---|---|---|---|
| او هغه کسان | چې کفر ئې اوکړو | عملونه دهغوی | پشان دسراب دی |
| اوڅوک چې کافران دی دهغوی عملونه د سراب په شان دی | | | |

| بِقِيعَةٍ | يَحْسَبُهُ | الظَّمْآنُ | مَاءً | حَتَّىٰ | إِذَا جَاءَهُ |
|---|---|---|---|---|---|
| په بیابان کښې | چې ګمان کوی په هغې | اترې (سرې) | داوبو | ترهغې پورې | کله چې راغې هغه خانې ته |
| چې په یو هموار میدان کښې پرې ترې ئاوبوګمان کوی خوهر کله چې ورته نزدې ورشي نو | | | | | |

| لَمْ يَجِدْهُ | شَيْئًا | وَوَجَدَ اللَّهَ | عِنْدَهُ | فَوَفَّاهُ |
|---|---|---|---|---|
| نو وی نۀ موندو هغه | هیڅ څیز | او وې موندو الله | په نز دخان خپل (هلته) | پس پوره پوره ئې ورکړو هغه ته |
| هیڅ بیا نه مومی او هلته دالله ﷻ (تقدیر) بیامومی نوهغه ورسره خپل حساب | | | | |

| حِسَابَهُ | وَاللَّهُ | سَرِيعُ الْحِسَابِ | أَوْ كَظُلُمَاتٍ |
|---|---|---|---|
| حساب دهغه | او الله | زراغوستونکې دې دحساب | یا مثال دهغې پشان دتیارو دې |
| پوره کړی (اودې مرکړی) او الله ﷻ ډیر زر حساب خلاصوی یا (دهغه عملونه) داسې دی لکه چې | | | |

| فِي بَحْرٍ لُجِّيٍّ | يَغْشَاهُ | مَوْجٌ | مِنْ فَوْقِهِ | مَوْجٌ |
|---|---|---|---|---|
| په درياب چپو وهونکی کښې | چې پټ کړې وی هغه | یوې چپې | دپاسه دهغې | بله چپه وی |
| دلوئې ژورسمندر دلاندې نه تورې تیارې وی چې لوئې لوئې چپې پرې راخی ادیوې چپې | | | | |

| مِنْ فَوْقِهِ | سَحَابٌ | ظُلُمَاتٌ | بَعْضُهَا | فَوْقَ بَعْضٍ | إِذَا | أَخْرَجَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دپاسه دهغې | وریځ وی | تیارې وی | خینې دهغې | دپاسه دخینو وی | کله چې | راوباسې سړې |
| دپاسه بله چپه وی اوبیادهغې چپو دپاسه وریځ وی غرض داچې لاندې باندې تیارې وی کله چه | | | | | | |

---

[1] حاكم: ٢/٣٩٩.
[2] ابن ابي حاتم.
[3] المعجم الكبير: ١٠٤٦٢.

| يَدَهُ | لَمْ يَكَدْ يَرٰىهَا | وَمَنْ | لَّمْ يَجْعَلِ اللّٰهُ | لَهٗ | نُوْرًا |
|---|---|---|---|---|---|
| لاس خپل | قريبه نه ده چې اووينې هغه | او هغه څوك | چې ورنهٔ كړي الله | هغه له | نور |
| څوک خپل لاس راوباسي \| نو داسې (تياره) وي الكه قريبه وي چې هغه هم اونشي ليدې \| او چاته چې الله | | | | | |
| فَمَا | لَهٗ | مِنْ نُّوْرٍ | | | |
| پس نشته | هغه لره | هيڅ نور | | | |
| (د هدايت) نور ورنکړي إنو هغه د پاره چرته هم رڼا نشته | | | | | |

قوله تعالى:-وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اَعْمَالُهُمْ

**دَ كافرانو او مشركانو دَ نيكو اعمالو مثال:-** دا دوه مثالونه دي اود دوو قسم كافرانو دي لكه چه د سورت بقره په شروع كښې دوه مثالونه ددوه قسم منافقانو بيان شوي دي يو د اُور او يو د اوبو. اولكه څنګه چه په سورت رعد كښې د هدايت اوعلم چه د انسان په زړه كښې ځائ اونيسي هم داسې دوه مثالونه د اُور او اوبو بيان شوي دي. په دواړو سورتونو كښې ددې اَياتونو پوره تفسير تيرشوېدې فالحمدلله. دلته رومبې مثال خو د هغه كافرانو دې چه د كفرطرف ته نورهم رابلي او خپل خان په هدايت ګڼړي. سره ددې چه هغوي بالكل بې لارې دي ددې مثال خو داسې دې لكه چه تګى ته په ځنګل كښې د لړې نه د شګوړ قيدونكى ډيرنى ښكاري او هغه داد اُوبو يو چپه او درياب ګڼړي (قيعة) جمع د (قاع) ده لكه د جار جمع جيره ده او قاع واحد هم وي او جمع ئې قيعان وي. لكه د جار جمع جيران د دې معنى ارت خور شوې ميدان. هم په داسې ميدانونو كښې دغه سراب (دهوكه) په نظر راځي. د غرمې په وخت كښې بالكل هم دغه شان معلوميږي چه داوبو يو كولاو درياب ياچپې دي په ځنګل كښې چه د تګى د اوبو په لټون كښې وينكى كولاوشى اودا اوبه ګڼړي اود خان وژلو كوشش كوي خو هلته رسي خو په حسرت اوارمان سره خپل مخ سروهى كله چه ګوري هلته د اُوبو خاځكې خو څه چه نوم اونښنه ئې هم نه وي. دغه شان دا كافران دي چه په خپل زړه كښې داخيال كوي چه مونږ ډيرزيات اعمال كړي دي ډيرې ښيګړې خو راجمع كړي دي خو قيامت په ورځ به ګوري چه هغوي سره يوه نيكى هم نشته ياخود هغوي په بدنيتنى سره هغه غرقې شوي دي ياد شريعت مطابق نه كيدو په وجه هغه بربادشوي دي. غرض د هغوي دلته درسيدو نه وړاندې د هغوي كارونه دوزخ ته رسيدلي وي دلته هغوي بالكل خالي لاس پاتې شي. دحساب كتاب په موقع الله ﷻ پخپله موجود دې اود يو يو عمل حساب اخلى اود هغوي يو عمل هم د ثواب قابل نه راوځي.[1]

**دغه شان عذاب به قيامت كښې يهوديانو ته هم ښكاره شي:-** دغه شان په بخاري اومسلم كښې دي د يهوديانو نه به دقيامت په ورځ سوال كولې شي چه تاسو په دنيا كښې د چا عبادت كولو؟ هغوي به جواب وركړي د الله ﷻ د خوئ عزير ﷺ. ونيلې به شي دروغژن ئې د الله ﷻ څوك خوئ نشته ښه ده اوس اوبنائې څه غواړئ؟ هغوي به وائي چه ياالله مونږ ډير تګې يو اوبه راباندې اوڅكوه. نو هغوي ته به وائي چه ګورئ څه ښكاري؟ تاسو هلته ولې نه ځئ؟ اوس به هغوي ته دوزخ د لړې نه داسې ښكاري لكه چه په دنيا كښې سراب وي په كوموچه د روانو اوبو ګمان كيږي. دوي به هلته ځي او په دوزخ كښې به اچولې شي[2] دا مثال خوو د جهل مركب والا.

[1] الطبرى:۱۹/۱۹۲.

[2] صحيح بخارى كتاب التوحيد باب قول الله تعالى ﴿وجوه يومئذ ناضرة إلى ربها ناظرة....﴾: ۷۴۳۹، صحيح مسلم:۱۸۳.

**د مقلدينو مشركانو مثال**۔اوس دجهل بسيط والامثال واورني چه خالي مقلد وود خپل عقل غوټه به نې مطلق نه ساتله.د وراندينې مثال والادانمه كفربه پټوسترګو تقليدكولواوپه پټوسترګودهغوى آواز پسې لګيدلي رو دهغوي مثال د ژور سمندر د تياروديې كوم چه د بره نه د اوبوموجونوقط په قط پټ كړې وى اوبيادپورته نه أوريځوراپټ كړي وى.يعنى د تيارو د پاسه تيارې وى ترديې چه لاس په لاس نه وينى هم دغه حال دديې سفلي جاهلانوكافرانو ديې چه په ړندومقلد دى اوترديې چه دچاتقليدكولې شى هغه هم په صحيح توګه نه پيژنى د هغوى په حق يا په ناحق بانديې كيدو نه خبرنه دى. څوك ديې چه ورپسې شى خومعلومه نه ده چه هغوى به دوى كوم خوا اورې؟ په مثال سره ونيلې شى چه د يوجاهل نه تپوس اوشو چرته روان ئې؟هغه ونيل ده سره خم.تپوس كونكى بياتپوس اوكړوديې چرته روان ديې؟هغوى ونيل ماته خو پته نشته. نو چه څنګه په ديې سمندركښې موجونه روان دى دغه شان دكافربه زړه بانديې د هغه په غوړونوبانديې اودهغه په سترګوبانديې پرديې پرتې دى.لكه چه ارشاديې الله ﷻ دهغوى په دواړو غوړونوبانديې مهرلګولې ديې.(۱)يوبل آيت كښې ارشاد ديې ﴿أَفَرَءَيْتَ مَنِ اتَّخَذَ إِلَٰهَهُۥ هَوَىٰهُ وَأَضَلَّهُ اللَّهُ عَلَىٰ عِلْمٍ وَخَتَمَ عَلَىٰ سَمْعِهِۦ وَقَلْبِهِۦ وَجَعَلَ عَلَىٰ بَصَرِهِۦ غِشَٰوَةً فَمَن يَهْدِيهِ مِنۢ بَعْدِ اللَّهِ ۚ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ﴾(۲)تاسوهغه اوكتل چه خواهش پرستى نې شروع كړيده.او الله ﷻ هغوى په علم بانديې دهوكه كړى دىاودهغوى په زړونواو غوړونوبانديې نې مهر لګولې دې.اود هغوى په سترګو نې پرده اچولې ده الخ. ابى بن كعبؓ فرمانى داسې خلق په پنځو تياروكښې وى كلام عمل تګ راتګ اوانجام ټول په تياروكښې دى(۳)چاته چه الله ﷻ د خپل نور طرف ته هدايت اونه كړى هغه د نورانيت نه خالي پاتې كيږى په جهالت كښې اخته شى اوهلاكت كښې پريوځى.لكه چه ارشاد ديې ﴿مَن يُضْلِلِ اللَّهُ فَلَا هَادِيَ لَهُۥ ۚ وَيَذَرُهُمْ فِي طُغْيَٰنِهِمْ يَعْمَهُونَ﴾(۴) څوك چه الله ﷻ ګمراه كړى دهغه څوك هدايت كونكې نشته.ديې په مقابله د هغې ديې كوم چه دمؤمنانو په مثال كښې بيان فرمانيلې شوې ووچه الله ﷻ دخپل نورهدايت كوى خوچه چاته اوغواړى.الله ﷻ عظيم اوكريم ديې زمونږدعاده چه هغه ديې زمونږ په زړونوكښې نور پيداكړى اوزمونږ نې اوګس طرف ته ديې هم مونږ له نور راكړى اوزمونږ نورديې زيات كړى اودا ديې ډير لوئ او زيات كړى. آمين.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يُسَبِّحُ | أَنَّ اللَّهَ | أَلَمْ تَرَ | | |
| تسبيح وائى | چى بيشكه الله | ايا نه وينى ته | | |
| ايا تاسو ته معلومه نه ده چې ټول(مخلوقات) د | | | | |

| صَٰٓفَّٰتٍ | وَالطَّيْرُ | وَالْأَرْضِ | فِي السَّمَٰوَٰتِ | مَن | لَهُۥ |
|---|---|---|---|---|---|
| هغه لره هغه ټول | چى په اسمانونو | او زمكه كښى دى | او مارغان هم | چى خورونكي وى وزرو خپلو لره | |
| الله تسبيح وائى | كه په اسمانونو كښې دى او كه په زمكه كښې دى | او الوتونكې مارغان هم چې وزرې | | | |

| بِمَا | عَلِيمٌ | وَاللَّهُ | وَتَسْبِيحَهُۥ | صَلَاتَهُۥ | قَدْ عَلِمَ | كُلٌّ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| هر يو ته | معلومه ده | طريقه دمونځ خپل | او دتسبيح خپل | او الله | ښه خبر دى | په هغه عملونو |
| ئې غوړولې وى | هر يو ته خپله خپله دعا او خپل خپل تسبح معلوم ده | او الله ﷻ ته ددوئ ټول عملونه | | | | |

---

(۱) ۲/البقرة:۷ الخ.
(۲) ۴۵/الجاثية:۲۳.
(۳) الطبرى:۱۹/۱۹۸، حاكم:۲/۳۹۹-۴۰۰.
(۴) ۷/الاعراف:۱۸۶.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَفْعَلُوْنَ۝ | وَلِلّٰهِ | مُلْكُ | السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ ۚ | وَاِلَى اللّٰهِ |
| چي كوي ئې دوئ | او الله لره ده | بادشاهي | داسمانونو | او دزمكې | او خاص الله ته |
| معلوم دى | او داسمانونو او دزمكې بادشاهي د الله ﷻ دې | | | | اوهم الله ﷻ ته |
| الْمَصِيْرُ۝ | | | | | |
| ورتلل دي (دټولو) | | | | | |
| واپس تگ دې | | | | | |

**قوله تعالى:- اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ يُسَبِّحُ لَهٗ**

**هريوځيز د الله ﷻ تسبيح بيانوي:-** ټول په ټول انسانان اوپيريان فرښتې او ځناور ترديږ چه كانړى بوټي هم دالله ﷻ تسبيح بيانولوكښې مشغول دى. يوبل مقام كښې دى چه اووه واړه آسمانونه اوټولې زمكې او په دې كښې چه څه دى ټول د الله ﷻ د پاكئ په بيان كښې مشغول دى په خپلو وزرو باندې الوتونكې مرغئ هم دخپل رب دپاكوالي اوعبادت په بيان كښې دى.(۱)

دې ټولودپاره چه كوم كوم تسبيحات لائق ووالله ﷻ دوى ته ښودلې دى اوټولوته ئې دخپل عبادت جداجدا طريقې ښودلې دى د الله ﷻ نه هيڅ يو كاربېټ نه دې هغه په هرڅه عالم دې حاكم دې متصرف دې مالك دې مختار كل دې حقيقي معبود دې د زمكې او آسمان بادشاه صرف هم هغه دې. د هغه نه بغيرڅوك هم دعبادت لائق نشته. دهغه دحكمونوڅوك هم روستوكونكې نشته.دقيامت په ورځ به ټول دهغه په وړاندې حاضريږي. هغه چه څه غواړي په خپل مخلوق به حكم كوي. خراب خلق به بدې بدلې اخلي او نيكان به د نيكئ ميوه حاصلوي. خالق اومالك هم هغه دې د دنيااو آخرت حاكم هم هغه دې. اوهم د هغه ذات د حمداوثنالائق دې.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَلَمْ تَرَ | اَنَّ اللّٰهَ | يُزْجِيْ | سَحَابًا | ثُمَّ | يُؤَلِّفُ |
| ايا نه گورې ته | چې بيشكه الله | بوزي | وريځى | بيا | يو ځائې كوي |
| ايا تا نه دى ليدلى چې الله وريځې روانوي \| بيا ئې په خپل مينځ كښې | | | | | |
| بَيْنَهٗ | ثُمَّ يَجْعَلُهٗ | رُكَامًا | فَتَرَى الْوَدْقَ | يَخْرُجُ | مِنْ خِلٰلِهٖ ۚ |
| ټوټې دهغې | بيا جوړوى هغه | لاندى باندى | پس ته وينې باران | چې را اوځى | دمنځ دهغې نه |
| لاندې باندې كوي \| نو ته ئې وينې چې دهغې د مينځ نه باران راوځى | | | | | |
| وَيُنَزِّلُ | مِنَ السَّمَآءِ | مِنْ جِبَالٍ | فِيْهَا | مِنْ بَرَدٍ | فَيُصِيْبُ |
| او نازلوى | دآسمان نه | دغرونونه | چې په هغې كښى وى | گلئ | پس رسوى (الله) |
| او دوريځو لويولويو ټيټانو نه ږلئ راوروى \| نو په چاچې ئې | | | | | |
| بِهٖ | مَنْ يَّشَآءُ | وَيَصْرِفُهٗ | عَنْ مَّنْ يَّشَآءُ ؕ | يَكَادُ | |
| دا گلئ | هغه چاته چې غواړي | او بچ كوي دا گلئ | دهغه چانه چې غواړي | نزدې وى | |
| اوغواړي نو په هغې ئې وروي \| اودچانه چې ئې اوغواړي د هغه نه ئې لرې ساتى \| دهغې | | | | | |

(۱) ۱۷/الاسراء:٤٤.

سَنَا بَرۡقِهٖ يَذۡهَبُ بِالۡاَبۡصَارِؕ يُقَلِّبُ اللّٰهُ الَّيۡلَ وَالنَّهَارَؕ اِنَّ

بريښنا دبجلئ دهغې | چې بوزي | نظرونه دسترګو | ګرځوي الله | شپه | او ورځ | بيشکه

دبجلئ پړق داسې ښکاري | لکه چې اوس به دسترګو نظر اوسوزوي | هم الله شپې او ورځې اړوي راړوي

فِيۡ ذٰلِكَ لَعِبۡرَةً لِّاُولِي الۡاَبۡصَارِ ۝ وَاللّٰهُ خَلَقَ كُلَّ دَآبَّةٍ

په دې کښې | خامخا عبرت دې | دپاره دخاوندانو | دسترګو | او الله | پيدا کړو | هر جاندار څيز |

بيشکه په دې کښې دسترګو دخاوندانو دپاره لوئې عبرت دې | او الله ﷻ هريو ساه لرونکې

مِّنۡ مَّآءٍۚ فَمِنۡهُمۡ مَّنۡ يَّمۡشِيۡ عَلٰى بَطۡنِهٖۚ وَمِنۡهُمۡ

داوبو نه | نو څينې دهغوئ نه | هغه دې | چې ګرزي | په خيټه خپله باند | او څينې دهغوئ نه |

داوبو نه پيدا کړې دې | نو بعضې په کښې داسې دې چې په خيټه باندې خوئيږي | او څه په کښې

مَّنۡ يَّمۡشِيۡ عَلٰى رِجۡلَيۡنِۚ وَمِنۡهُمۡ مَّنۡ يَّمۡشِيۡ

هغه دې | چې ګرزي | په دوؤ خپو باندې | او څينې دهغوئ نه | هغه دې | چې ګرزي |

داسې دې چې په دوؤ پښو ګرځي | او څه په کښې داسې دې چې په څلورو پښو

عَلٰۤى اَرۡبَعٍؕ يَخۡلُقُ اللّٰهُ مَا يَشَآءُؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ قَدِيۡرٌ ۝

په څلورو خپو باندې | پيدا کوي الله | هغه چې غواړي هغه | بيشکه الله | په هر څيز باند | قادر دې

ګرځي | الله ﷻ چې څه غواړي هغه پيدا کوي | بيشکه الله ﷻ په هر څيز باندې قدرت لري

لَقَدۡ اَنۡزَلۡنَاۤ اٰيٰتٍ مُّبَيِّنٰتٍؕ وَاللّٰهُ يَهۡدِيۡ مَنۡ يَّشَآءُ

نازل کړي دي مونږه | ايتونه حقيقت ښودونکي | او الله | هدايت کوي | هغه چاته چې غواړي |

بيشکه مونږ ښکاره حکمونه نازل کړي دي | او الله ﷻ چې دچا باره کښې غواړي

اِلٰى صِرَاطٍ مُّسۡتَقِيۡمٍ ۝

لارې نيغې ته |

نو په سمه لار ئې روان کړي

**قوله تعالى:- اَلَمۡ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ**

**د الله ﷻ دقدرت نخښې** :- نرى لوګى پشان أوريځې چه اول اول دالله ﷻ په قدرت سره راوچتيږى بيا يوځاى شى او درنې شى اود يوبل دپاسه اونخلى بيا د دې نه باران راوريږى هواګانې روانې وى زمکه قابله جوړه کړى بيا أوريځې اوچتوى اودايوځاى کوى بيا هغه د اوبونه ډکې شى او راوريږى[1] بياد آسمان نه د ګلې (واورې) د ورولو ذکر دې. پدې جمله کښې ړومبې (مِن) دغايت دشروع دې دويم د تبعيض او دريم بيان جنس دې. دادې تفسير په وجه دې چه دآيت دا معنى اوکړې شى چه دګلې غريه آسمان باندې دې اود چاپه نيزچه دلته دغرلفظ دأوريځ د پاره دکنايه په توګه دې دهغوى په نيز دويم (مِن) دغايت د شروع دپاره دې. خوهغه داول نه بدل دې. والله اعلم. ددې نه پس دجملې دا مطلب دې

[1] الطبرى: ۲۰۱/۱۹

چه باران او ګلې کوم ځایٔ الله ﷻ کول غواړي هلته د هغه په رحمت سره وریږي او کوم ځایٔ چه نه غواړي نو هلته نه خی.یادامطلب دې چه په ګلې سره کله غواړي پټی او باغونه خرابوی او چه په چاباندې مهربانی اوکړي هغه بچ کوی.بیا دبجلی د پړق طاقت بیانولې شی چه نیزدې ده چه هغه د سترګو نظر واخلی اود شپې تصرف هم دهغه په قبضه کښې دې کله چه غواړي ورځ وړه اوشپه لویه کړي اوکله چه غواړي نوشپه وړه اوورځ لویه کړي داټولې نښې دی چه دالله ﷻ قدرت ښکاره کوی اودالله ﷻ عظمت رابرسیره کوی لکه چه ارشاددې دزمکې اوآسمان پیدائش دشپې ورځې په اختلاف کښې دعقل مندودپاره ډیرې نښې دی.

**دَ مختلفو ځناورو دَتخلیق تذکره:-** الله ﷻ د خپل کامل قدرت او زبردست سلطنت بیان فرمائی چه هغه هم دیو اوبونه قسم قسم مخلوق پیداکړې دې.مارته اوګوره چه هغه پخپله خیټه باندې روان دې انسان او مرغوته اوګوره دهغوی دوه دوه پښې دی په کومو باندې چه ګرځی ځناورواوځاروو ته ګوره چه په ځلوروپښوباندې روان دی. هغه ډیر لوئ د قدرت مالك دې چه څه غواړي هغه کیږی. څه چه نه غواړي هغه هیڅ کله هم نه کیږی هغه قادر کل دې.دادحکمت نه ډك احکام او مثالونه په دې قرآن کریم کښې هم الله ﷻ بیان کړی دی د عقل خاوندانو له نی د دې پوهنې توفیق ورکړې دې. الله ﷻ چه څوك غواړي په نیغه لارنی لګوی.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَيَقُوْلُوْنَ | اٰمَنَّا | بِاللّٰهِ | وَبِالرَّسُوْلِ | |
| او وائی دا خلق | چې ایمان راوړو مونږه | په الله | او په رسول باندې | |

او داخلق وائی چې مونږ په الله ﷻ او ددهٔ په رسول باندې ایمان راوړی دې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَاَطَعْنَا | ثُمَّ | يَتَوَلّٰى | فَرِيْقٌ | مِّنْهُمْ | مِّنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ |
| او اطاعت قبول کړو مونږه | بیا | اړوی مخ | یوه ډله | دهغوئ نه | روستو ددې (اقرار) نه |

او دهغه حکمونه مومنلی دی اخو ددې نه پس هم ددوئ یوه ډله مخ اړوی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمَآ اُولٰٓئِكَ | بِالْمُؤْمِنِيْنَ۝ | وَاِذَا | دُعُوْٓا | اِلَى اللّٰهِ | وَرَسُوْلِهٖ |
| اونه دی دا خلق | مومنان | او هر کله چې | راوبللې شی هغوئ | الله ته | او رسول دهغه ته |

او دا خلق ایمان نه راوړی او کله چې دوئ الله ﷻ او ددهٔ رسول طرفته راوبللې شی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لِيَحْكُمَ | بَيْنَهُمْ | اِذَا | فَرِيْقٌ | مِّنْهُمْ |
| دپاره ددې چې فیصله اوکړی رسول | په منځ دهغوئ کښې | نو هغه ساعت | یوه ډله | دهغوئ نه |

چې ددوئ ترمینځه فیصله اوکړی نو په دغه وخت کښې دوئ کښې یوه ډله مخ اړوی

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مُّعْرِضُوْنَ۝ | وَاِنْ يَّكُنْ | لَّهُمُ | الْحَقُّ | يَاْتُوْٓا | اِلَيْهِ | مُذْعِنِيْنَ۝ |
| مخ اړونکی وی | او که چرې وی | دپاره دهغوئ | حق | نو راځی هغوئ | رسول ته | فرمان منونکی |

او که چرې ددوئ په چاځه حق وی نو بیا (رسول ﷺ ته) فرمان منونکی راروان وی

| | | | |
|---|---|---|---|
| اَفِيْ قُلُوْبِهِمْ | مَّرَضٌ | اَمِ ارْتَابُوْٓا | اَمْ يَخَافُوْنَ |
| ایا په زړونو دهغوئ کښې | امرض دې منافقت | یا په شك کښې پریوتی دی | یا یریږی هغوئ |

ایا ددوئ په زړونو کښې مرض دې ایا په شک کښې اخته دی ایا دا ویره ورسره

أَنْ يَحِيفَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ وَرَسُولُهُ ۚ بَلْ أُولَٰئِكَ هُمُ

چي ظلم به اوکړي الله | په هغوئ باند | او رسول دهغه | بلکه دا خلق | په اصل کښي هم دوئ |

ده چي الله ﷺ اورسول به پري زياتي اوکړي |.....داسي نه ده بلکه دوئ

الظَّالِمُونَ ۝ إِنَّمَا كَانَ قَوْلَ الْمُؤْمِنِينَ إِذَا دُعُوا إِلَى اللَّهِ

ظالمان دی | بيشکه | ده خبره | دمومنانو | کله چي | راواوبللي شي | الله ته

پخپله ظالمان دی |هرکله چي مومنان الله ﷻ اودهغه رسول ته اوبللي شي | چي ددوئ

وَرَسُولِهِ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ أَنْ يَقُولُوا سَمِعْنَا

اورسول دهغه ته |چي فيصله اوکړي رسول|په منځ دهغوئ کښي | دا چي اووائي | چي واوريده مونږه

ترمينځه فيصله اوکړي | نو ددوئ وينا بس صرف دا وي چي مونږ واوريدل او حکم

وَأَطَعْنَا ۚ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ۝ وَمَنْ يُطِعِ

اواومنو مونږه حکم | او دا خلق چي دی | هم دوئ | خلاصي موندونکي دی | او څوک چي حکم مني

مواومنلو | او هم دا خلق کامياب دی | اوڅوک چي دالله ﷻ

اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَيَخْشَ اللَّهَ وَيَتَّقْهِ فَأُولَٰئِكَ

دالله |او درسول دهغه | او يريږي دالله نه | او خان ساتي دنافرمانئ دهغه نه |نو دا خلق چي دی |

اودهغه درسول ﷺ تابعداری کوی| اودالله ﷻ نه ويريږي | اودهغه دنافرمانئ نه خان بچ ساتي| نو هم

هُمُ الْفَائِزُونَ ۝

هم دوئ کامياب دی |

دغه خلق بهٔ کامياب وی |

**قوله تعالى:- وَيَقُولُونَ آمَنَّا بِاللَّهِ وَبِالرَّسُولِ وَأَطَعْنَا ثُمَّ يَتَوَلَّىٰ فَرِيقٌ مِنْهُمْ مِنْ بَعْدِ ذَٰلِكَ ۚ**

**کامياب اوناکام خلق:-** -دمنافقانوحال بيانولي شی چه په ژبه باندي د ايمان اوتابعدارئی اقرارکوی ولي په زړه کښي دهغي خلاف دی عمل نی بل څه دي او وينائی څه بل څه ده ځکه په حقيقت کښي ايماندار نه دی.په حديث کښي دی چه کوم سړي بادشاه له راوغوښتلي شی اوهغه لاړنه شی هغه ظالم دي اوپه ناحقه باندي دي اوکله چه هغه د هدايت طرف ته راغوښتلي شی د قرآن اوحديث د منلووينا ورته کولي شی نومخ اړوی اوکبر کوی لکه چه ارشاددي ﴿أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ آمَنُوا بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ يُرِيدُونَ أَنْ يَتَحَاكَمُوا إِلَى الطَّاغُوتِ وَقَدْ أُمِرُوا أَنْ يَكْفُرُوا بِهِ ۖ وَيُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَنْ يُضِلَّهُمْ ضَلَالًا بَعِيدًا ۝ وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا إِلَىٰ مَا أَنْزَلَ اللَّهُ وَإِلَى الرَّسُولِ رَأَيْتَ الْمُنَافِقِينَ يَصُدُّونَ عَنْكَ صُدُودًا ۝﴾(١) کښي بيان تيرشوي دي.اوکه هغه ته په شرعی فيصله کښي خپله ګټه ښکاری نواورېدي اورېدي کلمي لوستلوسره به سټ خوزوی اوپه خنداخوشحالئ‌به راځي او چه کله ورته معلومه شی چه شرعی فيصله د هغه د طبعی خواهش خلاف ده د دنياوی مفادو خلاف ده نوواپس کيږی به د حق طرف ته به ګوری هم نه.داسي خلق پاخه کافران دی.ځکه چه ددريوحالونه خالی نه دی ياخودا چه هم ددوی په زړونوکښي بي ايمانئی کور کړي دي ياد دوی د الله

---

(١) ٤/النساء: ٦٠-٦١.

ﷻ په دين کښې شك دې ياويرېږي چه چرته الله ﷻ اود هغه رسول ﷺ د دوی حق اونه وهي په دوی باندې ظلم او ستم او نه کړی اودادریواړه صورتونه دکفردی. الله ﷻ په هغوی کښې هريوپېژنی څوك چه په څنګه باطن کښې دی هغه په هغه ظاهر دی. په اصل کښې هم دا خلق فاجران دی ظالمان دی الله اود هغه رسول ﷺ د دې نه پاك دې.

**دا ايت مبارك د منافقانو باره کښې دې:**-دحضورﷺ په زمانه کښې داسې کافران چه په ظاهره باندې مسلمانان ووډير وو هغوی ته به چه کله خپل مطلب په قرآن اوحديث کښې وتونکې ښکاريدو نود نبی ﷺپه خدمت کښې به نی خپلې جګړې پيش کولې اوچه کله به هغوی ته د نورونه مطلب ولاړيدو نو د محمد ﷺ ددربار ته دراتلونه به ئې بالکل انکارکولو.نو دا آيت نازل شو او حضور ﷺ اوفرمائيل د کومو دوکسانو په مينځ کښې چه څه جګړه وی او هغه د اسلامی حکم د فيصلې طرف ته راوغوښتلې شی او هغه دې نه انکار اوکړی نوهغه ظالم دې او هغه په ناحقه دې. (١) دا حديث غريب دې.

**د مختلفو مؤمنانو بيان:**-بياد رښتونی مؤمنانو حال بيانولې شی چه هغوی دالله ﷻ کتاب اودهغه د رسول ﷺ دسنتونه علاوه بل دريم څيز په دين کښې داخل نه ګنړی. دهغوی خود قرآن اوحديث اواز په غوږ کښې پريوتوسره صفاوائی چه مونږ واوريدواومونږ اومنه.داکامياب بامراداوخلاصې بيا موندونکی خلق دی. حضرت عباده بن صامت ﷛ چه بدری صحابی دې انصاری دې د انصارو يو سردار دې هغه خپل وراره جناده بن ابی اميه ﷛ ته د وفات کيدو په وخت اوفرمائيل راشه مانه واوره چه ستا په ذمه څه دی؟ واوره اواومنه په سختئی کښې هم په آسانئی کښې هم خوشحالئی کښې هم په غم کښې هم په هغه وخت کښې هم چه ستا حق بل ته ورکولې شی خپله ژبه په عدل اوصداقت سره نيغه اوساته اود کاراهل خلقو نه کار مه اخله. اوکه د څه ښکاره نافرمانئی هغوی حکم اوکړی نو مه ئې منه. که د الله ﷻ د کتاب خلاف څوك هم اووائی اونه منې. د الله ﷻ د کتاب په منلو کښې لګيااوسه. ابودرداء ﷛ فرمائی چه اسلام بغيرد الله ﷻ د تابعدارئی نه دې کومه ښيګړه چه ده هغه په ګنړه کښې ده اود الله ﷻ اود هغه د رسول ﷺ خليفة المسلمين اود عامو مسلمانانو په خير خواهئی کښې ده.

حضرت عمر ﷛ خطاب فرمائيلو د اسلام مضبوطه کړئی د الله ﷻ د وحدانيت ګواهی د مونځ پابندی د زکوة ورکول اودمسلمانانو دبادشاپه حکم منلوکښې ده.کوم احاديث اوآثارچه دکتاب الله اوسنت رسول الله ﷺد تابعدارئی باره کښې اود مسلمانانود بادشاه حکم منلوباره کښې نقل دی هغه دومره زيات دی چه ټول چرته بيانيدې هم نه شی. کوم سړې چه د الله ﷻ اورسول الله ﷺ تابعدار جوړشی کوم حکم چه ملاوشی په خائ راوړی د کوموڅيزونونه چه منع کړې شی رابندشی کومه ګناه چه ترې اوشی هغې نه ويره خوری اوبيا د هغې نه بچ کيږی داسې خلق د هرقسم ښيګړې راغوندونکی اود ټولو بدو نه بچ کيدونکی دی. په دنيا اوآخرت کښې هغوی خلاصې بياموندونکی دی.

| جَهْدَ اَيْمَانِهِمْ | بِاللّٰهِ | وَاَقْسَمُوْا |
|---|---|---|
| په سختو قسمونو خپلو سره | په الله باندې | او قسمونه خوری (منافقان) |
| اوداخلق په الله ﷻ باندې سخت قسمونه خوری (اوتاته وائی) که ته دوئ ته څه | | |

| لَاتُقْسِمُوْا | قُلْ | لَيَخْرُجُنَّ | لَئِنْ اَمَرْتَهُمْ |
|---|---|---|---|
| چې مهٔ خورئ قسمونه | ورته اووايه | نو خامخا به اوزی دوی (جهادته) | که تهٔ حکم اوکړې دوئ ته |
| حکم اوکړې نو دوئ بهٔ ضرور (جهاد دپاره دکورونونه) اووځی | | ادوئ ته اووايه چې قسمونه مه خورئ | |

(١) دا روايت مرسل.

طَاعَةٌ مَّعْرُوفَةٌ ط إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ ۝

فرمانبرداری معلومه (مطلوب ده) | بیشکه الله | خبر دی | په هغه کارونو | چې تاسو ئې کوئ |

ستاسو تابعداری معلومه ده | الله ﷻ ستاسو په ټولو کارونو ښه پوهیږي

قُلْ أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ ۚ فَإِن تَوَلَّوْا

ورته اووايه | اطاعت کوئ دالله | او اطاعت کوئ درسول | نو که تاسو مخ اوګرځوئ |

(اې پیغمبره) ورته اووایه چې تاسو دالله ﷻ او د رسول تابعداری کوئ | نوکه تاسو

فَإِنَّمَا عَلَيْهِ مَا حُمِّلَ وَعَلَيْكُم مَّا

نو بیشکه دې په رسول باندې| هغه بار | چې پرکینبودې شوې دې | او دې په تاسو باند| هغه بار

تري بیا هم مخ واړولوانو (پوهه شئ) چې د رسول ذمه صرف خپلې ذمه داری

حُمِّلْتُمْ ۖ وَإِن تُطِيعُوهُ تَهْتَدُوا ۚ

چې په تاسو کینبودې شوې دې | او که اطاعت اوکړو تاسو دهغه | نو پخپله به سمه لار بیا مومئ |

دی | اوستاسو په ذمه ستاسو ذمه داری دی| اوکه تاسو دهغه تابعداری اوکړه| نو سمه لار به بیامومئ

وَمَا عَلَى الرَّسُولِ إِلَّا الْبَلَاغُ الْمُبِينُ ۝

او نشته په رسول ﷺ باندې| مګر | رسونه | ښکاره |

اودرسول په ذمه خوصرف په وضاحت سره (حکمونه) رسول دی |

**قوله تعالی:- وَأَقْسَمُوا بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ**

**دمنافق ژبه :-** دمنافقانوحال بیانولې شی چه هغوی به رسول الله ﷺ له راغله نودخپلې ایماندارئی او خیر خواهئی خودنه به ئې کولوسره قسمونه خوړلوباندې یقین ورکولو چه مونږ دجهاد دپاره تیارناست یو بلکه بې قراره یوصرف ستاسره حکم کولوانتظاردې ارشاد کیدو سره به کور مال حال بال بچ پریږدو او میدان جنګ ته به اورسو.الله ﷻ فرمائی دوی ته اووایه چه قسمونه مه خورئی ستاسودتابعدارئی حقیقت خوښکاره دې زبانی جمع خرچ خبرې خو ډیرې دی اوعملی کارصفردې.ستاسودقسمونو حقیقت هم معلوم دې په زړه کښې مو څه دی او په ژبه مو څه دی. چه څومره مو ژبه مؤمنه ده هم دومره مو زړه کافردې.داقسمونه خوصرف دمسلمانانو د همدردئی حاصلولودپاره دی.داقسمونه خودې خلقو ډال جوړکړې دې یوازې تاسوسره نه بلکه د کافرانو په وړاندې هم د هغوی موافقت کوی اود هغوی د امدادهم قسمونه خوری.ولې دی دومره بزدلان چه دهغوی ملګرتیاهم خاورې نه شی کولې. د دې جملې یو معنی داهم کیدې شی چه تاسوله خودمعقول اوخوښ کړې شوی اطاعت طریقه پکارده نه چه قسمونه خوړل اوخان خودل.ستا په وړاندې مسلمانان موجوددی ګورد نه هغوی قسمونه خوری اونه هغوی غټې غټې خبرې جوړوی اودکار په وخت کښې دټولونه وړاندې راوخی فعلی حصه دټولونه زیاته اخلی. د الله ﷻ نه د چایوعمل هم پټ نه دې هغه د خپلو بندیګانود یو یو عمل نه خبردې. هر یو ګناهګار او تابعدار هغه ته ښکاره دې د هریوپه باطن باندې هم د هغه نظر دې هم داسې هغوی دی چه څنګه په ظاهره دی که تاسو په ظاهره هرڅه هم اوکړئی ولې هغه په باطن باندې هم خبردې.

**د الله ﷻ اودرسول اطاعت ته ترغیب:-** دالله ﷻ اودهغه درسول ﷺ یعنی دقرآن پاك او احادیثو تابعداری

کونی که تاسو دې نه مخ واړونی اودا پریږدنی نوستاسو د دې نقصان گناه زما په نبیﷺ باندې نه ده د هغه په ذمه خود الله ﷻ د پیغام صرف رسول دی اود امانت اداکول دی. په تاسو باندې هغه دی د کوم چه تاسوذمه وارنی یعنی قبلول اوعمل کول وغیره.هدایت صرف د رسول الله ﷺ په تابعدارنی کښې دې ځکه چه د نیغې لارې دعوت ورکونکې هم هغه دې کومه نیغه لارچه د هغه رب تعالی ته رسوی د چا د حکم لاندې چه ټوله زمکه او آسمان دې. د رسول الله ﷺ په ذمه صرف رسول دی د ټولوحساب زمونږ په ذمه دې. لکه چه ارشاد دې﴿فَذَكِّرْ ۗ إِنَّمَآ أَنتَ مُذَكِّرٌ﴾(۱)ته صرف نصیحت کونکې اووعظ کونکې نی دوی ته صرف نصیحت کوه ته څه په دوی باندې وکیل یا داروغه نه نی.

وهب بن منبه فرمانی شعیاء ؑ طرفته د الله ﷻ وحی راغله چه ته دبنی اسرائیلو په ګنړه کښې اودریږه زه چه ستاد ژبې نه ویستل غواړم اوبه باسم. هغه اودریدو نود هغوی د خلې نه دا خطبه الله ﷻ بیانول شروع کړو ای آسمانه واوره ای زمکې چپ اوسیږه الله ﷻ یوشان پوره کول او د یوامر تدبیر کول غواړی کوم چه هغه پوره کونکې دې چه ځنګلونه آباد کړی بیابانونه آبادکړی. صحراګان تك شنه کړی فقیران غنی کړی ګډبانه بادشاهان جوړکړی دجتو نه یوامی نبی جوړولوسره راولیګی چه نه بدې خبرې کوی اونه بداخلاق وی او نه په بازارونوکښې شور اوغوغاکونکې وی دومره مسکین صفت او عاجز به وی چه دهغه د لمن په هواباندې به هغه ډیوه هم مړه نه شی کومې سره خواکې چه هغه تیرشی. که هغه په اوچوپانړسوباندې پښې مبارکې کیږدی نوبیابه هم دچاغوږونوته چغاراونه رسی زه به هغه بشیر او نذیرجوړوم لیکم به نی هغه به دژبې نه پاك وی ړندې سترګې به د هغه د وجه نه بینا شی کانړه غوږونه به د هغه په وجه اوری په غلاف کښې پټ زړونه به د هغه په وجه کولاوشی په هريوښه کار سره به زه هغه ښائسته کړم په هريوخلق کریم باندې به زه هغه پوره کړم سکنیت به د هغه لباس وی نیکی به د هغه طریقه وی تقوی به د هغه ضمیروی حکمت به د هغه خبرې وی صدق اووفابه دهغه طبیعت وی معافی کول او ښکلې والې اونیکی غوښتل به د هغه خصلت وی حق به د هغه شریعت وی عدل به د هغه سیرت وی هدایت به دهغه امام وی اسلام به د هغه ملت وی احمدﷺ به د هغه نوم وی. د ګمراهئی نه پس به زه دهغه په ذریعه هدایت خوروم. دجهالت نه پس به علم پرق وهی ښکته والی نه پس به د هغه په وجه ترقی وی ناپیژندګلوخلق به دهغه په وجه پیژندګلووالا جوړشی کمې به په زیاتوالی بدل شی فقیری به زه دهغه په وجه په مالدارنی بدله کړم. دهغه دذات په وجه به زه جداجداخلق رایوځایٔ کړم.دجداوالی نه پس به مینه وی دتفرقه نه پس به یوموټې والې وی داختلاف نه پس به اتفاق وی مختلف زړونه اوخان له خواهشات به یو شی دالله ﷻ بې شمیره بندیګان به د هلاکت نه بچ شی. د هغه امت به زه د ټولوامتونونه بهترکړم کوم چه به د خلقودګټې د پاره وی د نیکو حکم کونکی او د بدو نه منع کونکی به وی موحد اومخلص مؤمنان به وی د الله ﷻ رسولانو چه څومره څه د الله ﷻ د طرف نه راوړی هغه ټول به منونکی وی د چابه هم انکاری نه وی.

| وَعَدَ اللهُ | الَّذِيْنَ |
|---|---|
| وعده کړی ده الله | دهغه خلقو سره |
| | او په تاسو کښې |

(۱) ۸۸/الغاشية: ۲۱. اع.

| لَيَسْتَخْلِفَنَّهُمْ | الصّٰلِحٰتِ | وَعَمِلُوا | مِنْكُمْ | اٰمَنُوْا |
|---|---|---|---|---|
| چي خامخا به خليفگان جوړوي هغوئ لره | نيك | او عملونه اوكړي | ستاسو نه | چي ايمان راوړي |

چي چا ايمان راوړي دي او دنيكئ كارونه كوي انو الله ﷻ ورسره وعده كړي ده چي د

| مِنْ قَبْلِهِمْ | الَّذِيْنَ | اسْتَخْلَفَ | كَمَا | فِي الْاَرْضِ |
|---|---|---|---|---|
| چي مخكښي دهغوئ نه وو | هغه خلق | خليفگان جوړ كړي وو | لكه څنگه چي ئې | به زمكه كښي |

زمكي سلطنت بهٔ ورته وركړي لكه چي د دوئ نه وړاندي خلقو ته ئي وركړي وو

| ارْتَضٰى | الَّذِي | دِيْنَهُمُ | لَهُمْ | وَلَيُمَكِّنَنَّ |
|---|---|---|---|---|
| چي خوښ كړي دي الله | هغه دين | دين دهغوئ | دپاره دهغوئ | او خامخا به مضبوط كړي |

اود دوی دپاره به هغه دين مضبوط كړي كوم چي ئې دوئ ته خوښ كړي دي

| اَمْنًا | خَوْفِهِمْ | مِنْ بَعْدِ | وَلَيُبَدِّلَنَّهُمْ | لَهُمْ |
|---|---|---|---|---|
| په امن سره | دحالت دهغوئ نه | روستو ديري | او خامخا به بدل كړي حالت دهغوئ | دپاره دهغوئ |

اود يري په بدل كښي به ورته امن وركړي ( په دي شرط) چي

| وَمَنْ كَفَرَ | شَيْئًا | بِيْ | لَا يُشْرِكُوْنَ | يَعْبُدُوْنَنِيْ |
|---|---|---|---|---|
| او چاچي كفر اوكړو | هيڅ څيز | زما سره | نهٔ دجوړوي شريك | پس هغوئ دبندگي كوي زما |

زما عبادت كوي اهيڅوك را رسره نه شريكوي او چا چي

| هُمُ الْفٰسِقُوْنَ﴿۵۵﴾ | فَاُولٰٓئِكَ | بَعْدَ ذٰلِكَ |
|---|---|---|
| هم دوئ فاسقان دي | نو دا خلق چي دي | روستو ددي نه |

ددي نه پس هم كفر او كړو انو هم دغه خلق نافرمان دي

**قوله تعالٰي:- وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ**

**درسول كريم ﷺ دور، اهل ايمان سره دَ حكومت او خلافت وعده:-** الله ﷻ خپل رسول ﷺ سره وعده فرمائي چه ستاامت به هغه د زمكې مالك جوړكړي دخلقو سرداران به ئې كړي ملك به د هغوی د وجه نه آباد وی دالله ﷻ بنديگان به دهغوی نه خوشحاله وی.نن دوی دخلقو نه تنگ دی صبابه په امن اوتسلئ سره وی.حكومت به هم د دوی وی دسلطنت واگې به ددوی په لاس كښې وی اوالحمدلله هم داسې اوشو.مكه خيبر بحرين جزيره عرب او يمن خوپخپله د حضرت محمد مصطفى ﷺ په موجودگئ كښې فتح شو دهجرمجوسيانو جزيه وركړه اوماتحتی قبوله كړه اود شام د بعضې حصو هم داحال شو. شاه روم هرقل تحفې اوتحائف راروان كړل. د مصر بادشاه هم په خدمت اقدس كښې تحفې راوليگلې. د اسكندريه بادشاه مقوقس اود عمان بادشاهانو هم دا اوكړه اودغه شان د خپلې تابعدارئ ثبوت ئې وركړو.دحبشه بادشاه اصحمه ﷺ خو مسلمان شوې وو اودهغه نه پس چه د حبشه كوم والی شو هغه هم په سركار نبوت كښې د عقيدت پيرخوئې او تحفې راوليگلې.

**دابو بكرصديق دور خلافت:-** بيا چه كله الله ﷻ خپل محترم اوعزتمند رسول ﷺ په خپله ميلمستيا كښې راوغوښتلونودهغوی خلافت صديق اكبر ﷺ سنبال كړو. د جزيره عرب حكومت ئې مضبوط او مستقل

کړودي سره ئې يوتيز لښکر سيف الله خالدبن وليد ﷺ په مشرئې کښې د فارس ښاروئوته اوليګلو چا چه هلته دفتوحاتو سلسله شروع کړه د کفر ونې ئې پرې کړې او اسلامي بوزغلي ئې هرطرف ته اوکرلو. دحضرت ابوعبيده بن جراح ﷺ وغيره امرا ماتحت د شام ملکونوطرف ته د اسلامي لښکر خوانان روان کړل نوهغوى هم دلته محمدي ﷺ جهنډا اوچته کړه اوصليبي نښې ئې پرمخې راګذار کړې.د مصر طرف ته ئې اسلامي لښکردحضرت عمرو بن عاص ﷺ په مشرئې کښې روان کړو.بصرى دمشق حران غبره فتح کولونه پس هغوى هم د دنيانه رحلت اوکړو.

**د عمر فاروق دور خلافت:**-دالله ﷻ په الهام باندې حضرت عمر ﷺ په شان فاروق غوندې زبردست طاقتور په لاسونوکښې داسلامي سلطنت واګې راغلې.رښتياخوهم دادى چه دآسمان نه لاندې ديو نبي نه پس هم د داسې خليفه ګانو دور نه دې راغلې.دهغوى طاقت طبيعت د هغوى نيك سيرت دهغوى د انصاف کمال دهغوى دالله ﷻ نه ويره د دې مثال په دنياکښې د هغوى نه پس لټول صرف يو بې فائدې اوبالکل لاحاصل کوشش دې.د شام ټول ملك د مصر پوره علاقه دفارس اکثر حصه دهغوى دخلافت په زمانه کښې فتح شوه. دکسرى د سلطنت ټکرې والوتې پخپله کسرى ته د مخ پټولو ځاى ملاو نه شو په پوره ذلت اوسپکاوى سره ئې منډې وهلې قيصر ئې فناکړو نوم ئې ورله ختم کړو د شام د سلطنت نه ئې لاس اووينځلواوقسطنطنيه ته لاړو مخ ئې پټ کړو.ددې حکومتونو په صدو جمع کړې شوې دولت بې شميره خزانې دې دالله ﷻ بنديګانودالله ﷻ نيکو بنديګانو مسکين خصلته خلقو باندې خرچ کړې اودالله ﷻ هغه وعدې پوره شوې کومې چه هغه دخپل حبيب اکرم ﷺ په ژبه مبارکه کړې وې. صلوات الله وسلامه عليه.

**د عثمان غنى رضى الله عنه دور خلافت:**-بيادحضرت عثمان بن عفان ﷺ د خلافت دور راغلو اود مشرق اومغرب ترآخره پورې دالله ﷻ دين خورېږى. دالله ﷻ لښکر يوطرف ته د اقصى مشرق پورې اوبل طرف ته د مغرب ترآخره پورې رسى نو ساه اخلى.دمجاهدينو اوبه خوړلې شوې تورې دالله ﷻتوحيدد دنيا ګوټ ګوټ اوحصې ته رسوى. اندلس قبرص قيروان اوسبته پورې ترچين پورې د هغوى په زمانه کښې فتح شوې کسرى قتل شو د هغه ملك پرېخودل اود هغه نوم اونښه پورې اوکنستلې شو او لړه کړې شو. اودزرګونوکالوپورې لګيدلې آتش کدې مړې کړې شوې.دهرې يوې اوچت غونډئى نه د الله اکبر آوازونه راغله.بل طرف ته مدائن عراق خراسان اهواز ټول فتح شوترکوسره جنګ عظيم اوشو آخر د هغوى لوئ بادشاه خاقان خاورې شو اوذليل اوخوارشو اود زمکې مشرقى اومغربي ګوټونونه خپل اخراج په سلطنت عثمانى کښې راورسولې شو. حق خودادې چه دمجاهدينوپېدې جذبوکښې روح اچونکې څيز دحضرت عثمان ﷺ د قرآن پاك د تلاوت برکت وو. د هغوى قرآن پاك سره څه داسې شغل شو کوم چه د بيان نه بهردې. د قرآن پاك راجمع کول د دې حفظ کول د دې خورول اود دې په حفاظت کښې چه کوم اوچت خدمت خليفه ثالث خودلې دې د هغې يقينًا چه مثال نشته. د هغوى زمانې ته اوګوره اود الله ﷻ د رسول پاك ﷺ هغه پيشن ګويوته اوګوره چه حضور ﷺ فرمائيلې وو زماد پاره زمکه راغونډه کړې شوه ترڅې چه ما مشرق اومغرب اوليدلو. ډيرزر به زما د امت بادشاهي هلته اورسى د کوم ځاى پورې چه اوس ما اوليدله. [1]مسلمانانود الله ﷻ دې وعدې اود پيغمبردې پيشن ګوئې ته اوګورئى بياد تاريخ پاڼې واړونى او خپل تيرشوى عظمت اوشان ته اوګورئى نظرواچوئى چه ترننه پورې د اسلام جهنډا د الله ﷻ په برکت سره اوچته ده اودمسلمانانو مجاهدينو عزت مندو فتح شوې زمکوکښې دبادشاهانويه شان سره ګرځئى الله ﷻ او د هغه رسول ﷺ رښتونې دي. مسلمانانو افسوس اوصدافسوس په هغوى باندې چه د قرآن اوحديث د دائرې نه بهردى ارمان او سل خل ارمان چه خپله د

[1] صحيح مسلم کتاب الفتن باب هلاك هذه الامة بعضهم ببعض:۲۸۸۹.

پلارنیکه ذخیره عیرو ته حواله کړي.دخپل پلار نیکه په وینوباندې اخستې شوې خیرپخپلو نالائق تورو او بې دینوسره نوروله ورکړي او په آرام سره کیني سملي. الله ﷻ دې مونږ له کامل ایمان رانصیب کړی الله ﷻ دې مونږ له رښتوني خواهش راکړی الله ﷻ دې مونږ اسلامی سپاهیان جوړکړی الله ﷻ دې مونږ ته د خپل لښکر توفیق راکړی او الله ﷻ دې مونږ خپل لښکرجوړکړی آمین ثم آمین)

**دولس حق خلفاء:** -حضورﷺ فرمائی دخلقوکاربه په ښیګړه سره روان وي ترڅو چې په هغوی کښې به دولس خلیفه ګان وی.بیاحضورﷺ یوه جمله په مزه شان اوفرمائیله کوم چه دحدیث راوی حضرت جابربن سمره رضی الله عنه واونه ریدې شوه نوهغه دخپل پلارنه تپوس اوکړو چه حضورﷺ څه اوفرمائیل؟ هغه بیان کړوچه دائي اوفرمائیل دا ټول په ټول به قریشي وي[1] حضورﷺ داخبره په هغه مابنام باندې بیان فرمائیلې وه په کوم ورځ چه ماعزبن مالك رضی الله عنه رجم کړې شوې وو[2]نومعلومه شوه چه ددې دولسو خلیفه ګانو کیدل ضروری دی خوایادساتئی چه دا هغه خلیفه ګان نه دی کوم چه شیعه ګانو منلی دی خکه چه دشیعه ګانو په امامانوکښې خوډیر هغه هم دی چاته چه په ټول عمرکښې هم دخلافت هیڅ حصه هم نه وه ملاوشوې اودا به دولس خلیفه ګان وی ټول په ټول به قریش وی په حکم کښې به انصاف کونکي وی دهغوی بشارت په وړاندینوکتابونوکښې هم دې اودا هم شرط نه دې چه دا ټول په ټول به یو بل پسې وی خود دوی کیدل یقیني دی که یوبل پسې څه وی که په جدا جدا زمانوکښې څه وی. خکه چه څلورخلیفه ګان خو یوبل پسې شو اول ابوبکر رضی الله عنه بیا عمر رضی الله عنه بیا عثمان رضی الله عنه اوبیا علی رضی الله عنه.

**امام مهدی:** -ددې نه پس بیا سلسله ماته شوه اوممکن دی چه وړاندې تلوسره هم وی د هغوی د صحیح زمانوعلم هم الله ﷻ ته دې اودومره خبره یقیني ده چه حضرت امام مهدی به هم د دې دولسو نه وی د هغه نوم د حضورﷺ په نوم سره د هغه کنیت به دحضورﷺ په کنیت باندې وی ټوله زمکه به د عدل اوانصاف نه ډکه کړی لکه څنګه چه به هغه د ظلم اوبې انصافئی نه ډکه شوې وی. د حضورﷺ ارشاد دې زمانه پس به خلافت دیرش کاله وی بیابه چیچونکې حکومت شی.[3]

**درسول کریم صلی الله علیه وسلم او صحابه کرامو ترقی یافته دور:** -ابوالعالیه د دې آیت په تفسیر کښې فرمائی حضورﷺ اوصحابه کرام رضوان الله اجمعین ترلسو کالو پورې په مکه کښې پاتې شود الله ﷻ د توحید اودهغه د عبادت طرف ته ئی دنیاله دعوت ورکولو خودا زمانه پټه په ویره او په بې اطمینانئ سره وه د جهاد حکم نه وو راغلی مسلمانان ډیر زیات کمزوري وو دې نه پس د هجرت حکم اوشو. مدینې ته اورسیدل نو د جهاد حکم اوشو دښمنانود څلورو واړو طرف نه راګیرکړل او مسلمانان ډیر ویریدلي وو. یووخت به هم د خطرې نه خالی نه وو سحر اومابنام به صحابه کرام رضوان الله اجمعین په وسله پوره وو.یوصحابی رضی الله عنه یوځل حضورﷺ ته عرض اوکړو یارسول الله ﷺ آیا مونږ به هم داسې ویریدونکې اوسیږو؟ یارسول الله ﷺ زمونږ د ژوندیوه ګهړئی به هم په آرام سره نه تیریږی؟ یارسول الله ﷺ بغیرد وسلې نه به هم مونږ ته چرته د آرام د ساه اخستلو موقع ملاوشي؟ حضورﷺ په پوره تسلئی سره اوفرمائیل لږې ورځې نور هم صبراوکړئی بیابه دومره امن شی چه په پوره مجلس کښې په ډك دربارکښې به ډډه لګولي شوې په آرام سره ناست ئی یوسره څه چه هیڅ چا سره به هم وسله نه وی خکه چه پوره امن امان اوتسلی به وی. هم دغه وخت کښې دا آیت نازل شو. بیا د الله ﷻ نبی ﷺ په جزیره

---

[1] صحیح بخاری کتاب الاحکام باب الاستخلاف:۷۲۲۲، صحیح مسلم:۱۸۲۱،ابوداؤد:۴۲۷۹، ترمذی: ۲۲۲۳، احمد:۵ /۸۶، ابن حبان:۶۶۶۶، دلائل النبوة:۶/۵۱۹.(مسلم).

[2] صحیح مسلم حواله سابق:۱۸۲۲.

[3] ابوداؤد کتاب السنة باب فی الخلفاء:۴۶۴۶وسنده حسن، ترمذی:۲۲۲۶، احمد:۵/۲۲۰،

عرب باندې غالب راغلو. په ټولو عربو کښې څوک هم کافر پاتې نه شو د مسلمانانو زړونه د ويرې نه خالي شو او هر وخت وسلې ګرځول ضرور نه وو. بيا هم دغه شان امن او راحت زمانه د حضور ﷺ د زمانې نه پس هم د دريو خلافتونو پورې يعنې ابوبکر رضی الله عنه عمر رضی الله عنه او عثمان رضی الله عنه د زمانې پورې وو. بيا مسلمانان په دې جګړو کښې اخته شو کومې چه اوشوې بيا ويريدونکی شو او څوکيدار پهره دار ئې مقرر کړل. خپل حالت ئې بدل کړو نو بدل شو. دبعضې سلفونه نقل دی هغوی دحضرت ابوبکر رضی الله عنه او عمر رضی الله عنه د خلافت د حقانيت باره کښې دا آيت پيش کړې دې. براء بن عازب رضی الله عنه فرمائی چه کوم وخت دا آيت نازل شو هغه وخت مونږ ښه په ويره او اضطراب په حالت کښې وو. لکه چه ارشاد دې ﴿وَاذْكُرُوٓا۟ إِذْ أَنتُمْ قَلِيلٌ مُّسْتَضْعَفُونَ فِى ٱلْأَرْضِ تَخَافُونَ أَن يَتَخَطَّفَكُمُ ٱلنَّاسُ فَـَٔاوَىٰكُمْ وَأَيَّدَكُم بِنَصْرِهِۦ وَرَزَقَكُم مِّنَ ٱلطَّيِّبَٰتِ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ﴾ ([1]) يعنې هغه وخت هم وو چه تاسو بې حده کمزورې او ډيرکم وئې په قدم قدم په وخت په وخت به په ويره کښې وئې. الله ﷻ ستاسو تعدادزيات کړو تاسو ته ئې طاقت درنصيب کړو او امن ئې درکړو. بيابيان دې چه څنګه دوی نه وارانديني خلق الله ﷻ د زمکې مالکان کړې وو لکه کليم الله حضرت موسی عليه السلام چه خپل قوم ته فرمائيلې وو ﴿عَسَىٰ رَبُّكُمْ أَن يُهْلِكَ عَدُوَّكُمْ وَيَسْتَخْلِفَكُمْ فِى ٱلْأَرْضِ فَيَنظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُونَ﴾ ([2]) ډير ممکن دی بلکه ډير نيزدې دې چه الله ﷻ به ستاسو دښمنان هلاک کړی او تاسو به د هغوی په ځای کينوی. بل آيت کښې دی ﴿وَنُرِيدُ أَن نَّمُنَّ عَلَى ٱلَّذِينَ ٱسْتُضْعِفُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ وَنَجْعَلَهُمْ أَئِمَّةً وَنَجْعَلَهُمُ ٱلْوَٰرِثِينَ﴾ ([3]) يعنې مونږ په هغوی باندې احسان کول غوښتل چه په ټوله زمکه کښې د ټولونه ضعيف او بې طاقته وو. بيا فرمائی چه ددوی دين کوم چه دالله ﷻ خوښ دين دې کلک کړی او هغوی ته به قوت او طاقت ورکړی. حضرت عدی بن حاتم رضی الله عنه چه کله د وفدپه توګه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو نو حضور ﷺ د هغوی ته اوفرمائيل تاسو حيره ليدلې ده هغه وئيل زه خو حيره نه پيژنم نوم مې اوريدلې دې. حضور ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه دهغه ذات قسم د چا په قبضه کښې چه زما ځان دې الله ﷻ به زما دا دين کامل خور کړی تر دې چه امن او امان به شی چه د حيرې نه به يوه ښځه په سانډه سوره شوې يوازې راوځی او هغه به بيت الله ﷻ ته راورسی طواف به اوکړی او واپس به شی نه به ويريږی اونه به هغه د چا په امان کښې وی. يقين اوکړئی چه د کسری بن هرمز بادشاه خزانې به فتح شی. حضرت عدی رضی الله عنه په حيرانتيا سره تپوس اوکړو چه د ايران دبادشاه هرمز خزانې به دمسلمانانو په فتوحاتو کښې راځی؟ حضور ﷺ اوفرمائيل او هم دهغه کسری بن هرمز. واورئی دومره مال به زيات شی چه څوک قبلونکې به نه ملاويږی. حضرت عدی رضی الله عنه فرمائی چه اوس تاسو اوګورئی چه هم د حيرې نه ښځې بغير د چا د پناه نه ځی راځی. دا پيشن ګوئی پوره کيدونکې هم مونږ ليدلې ده. بله پيشن ګوئی خو زما د سترګو په وړاندې پوره شوه. د کسری خزانې فتح کولو کښې زه پخپله موجود ووم او دريمه پيشن ګوئی به هم يقيناً پوره کيږی ځکه چه هغه هم د رسول الله ﷺ ارشاد دې. ([4]) مسند احمد کښې د حضور ﷺ ارشاد دې چه د دې امت د ترقئ او زياتوالی په امداد او دين د خوروني زيرې ورکړه. اوچه کوم سړې د آخرت عمل د دنياد فائدې د پاره اوکړی هغه دې پوهه شی چه په آخرت کښې به هغه ته هيڅ حصه نه ملاويږی. ([5])

---

[1]) ۸/الانفال:۲٦.

[2]) ۷/الاعراف:۱۲۹.

[3]) ۲۸/القصص:۵.

[4]) احمد:۲۵۷/٤ دلائل النبوة:۳٤۳/۵ د دې اصل صحيح بخاری کتاب المناقب باب علامات النبوة فی الاسلام ۳۵۹۵، ابن حبان:٤۰۵.

[5]) احمد:۱۳٤/۵ ح۲۱۲۲۳ وسنده حسن، حاکم:۳۱۱/٤، ابن حبان:٤۰۵.

**حقوق الله او حقوق العباد**:-بیافرمائی چه هغوی به هم زماعبادت کوی اوماسره په څوك شریك کوی نه. مسنداحمدکښې دی چه حضرت معاذ بن جبل ﷺ فرمائی چه زه په یوخربانديې رسول الله ﷺ سره شاته ناست ووم زما اود حضورﷺ په مینځ کښې د کتې هغه لرګې وو حضورﷺ ماته زما په نوم سره آواز راکړو ما لبیك او سعدیك اووئیل بیا لږ شان تګ نه پس نی بیا هغه شان اوفرمائیل ما هم هغه شان جواب ورکړو حضورﷺ اوفرمائیل معلومه ده چه د الله ﷻ حق په بنديګانو بانديې څه دې؟ ماوئیل الله ﷻ اود هغه رسولﷺ ته ښه معلومه ده.حضورﷺ اوفرمائیل په بنديګانو بانديې دالله ﷻ حق داديې چه هم د هغه عبادت اوکړی اوهغه سره څوك شریك نه کړی. بیالږ شان تلونه پس نی ماته آواز اوکړو او ما جواب ورکړو ونی فرمائیل مغلومه ده چه کله بنديګان د الله ﷻ حق اداکړی نو په الله ﷻ بانديې د بنديګانو څه حق دې. ماجواب ورکړو چه هم الله ﷻ اودهغه رسولﷺ ته ښه علم دې. ونی فرمائیل دا چه هغوی په عذاب نه کړی([1]) بیائی اوفرمائیل دې نه پس چه څوك منکر شی هغه فاسق دې. یعنی دې نه پس هم چه څوك زما تابعداری پریږدی هغه زما حکم اونه منلونودا ګناه ډیره سخته او ډیره لویه ده.

**په قدر د ایمان د الله ﷻ مدد راځی**:-د الله ﷻ شان ته ګوره چه په کومه زمانه کښې څومره زور د اسلام وو هم ذومره دالله ﷻ امدادکیدو.صحابه کرام رضوان الله اجمعین په خپل ایمان کښې وړانديې وو نو فتوحات هم دېولونه وړانديې اووتل.څنګه څنګه چه ایمان کمزوريې کیدو د دنیا شان اوشوکت بادشاهی هم هغه شان پریوتله. بخاری اومسلم کښې دی زما په امت کښې به یوه ډله همیشه په حق سره وی او هغه به غالب وی.د هغوی مخالف به د هغوی هیڅ نه شی کولې اوترقیامته پوريې به وی. یل روایت کښې دی تردې چه د الله ﷻ وعده راشی([2])یویل روایت کښې دی‌تردې چه هم دغه ډله به په آخره کښې دجال سره جهاد کوی. یل حدیث کښې دی دحضرت عیسیﷺ دراکوزیدوپوريې به دا خلق په کافرانوبانديې غالب وی([3]) دا ټول روایتوه صحیح دی اود ټولو هم یومطلب دې.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ | | | | |
| او قائموی مونځ | | | | |
| او(ای مسلمانانو) دمونځ پابندی کوئ | | | | |
| وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ | وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ | لَعَلَّكُمْ | تُرْحَمُوْنَ ۝ | |
| او ورکوی زکات | او حکم منئ درسول | دپاره ددې | چې په تاسو رحم اوکړې شی | |
| اوزکوة ورکوئ | اودرسول ﷺ حکم منئ | اچې مهربانی دربانديې اوکړې شی | | |
| لَاتَحْسَبَنَّ | الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | مُعْجِزِيْنَ | فِي الْاَرْضِ ۚ |
| مه کوه ته ګمان | په هغه خلقو | چې کفرکوی | چې هغوئ ګنی عاجزه کونکی دی الله لره | په زمکه کښې |
| دا خیال مه کوئ چې کافران به مونږ په زمکه کښې عاجزه کړي او | | | | |
| وَمَاْوٰىهُمُ | النَّارُ ۖ | وَلَبِئْسَ | الْمَصِيْرُ ۝ | |
| او ځائې داستوګنې دهغوئ | اور دې | او خامخا بد ځائې دې | دروتلو (دغه دوزخ) | |
| ددوئ د استوګنې ځائې دوزخ دې | اودا ډير خراب ځائې دې | | | |

---

[1] صحیح بخاری کتاب اللباس باب ارداف الرجل خلفه الرجل:۵۹۶۷، صحیح مسلم:۳۰، احمد:۲۴۲/۵، ابن حبان:۳۶۲.

[2] صحیح بخاری کتاب التوحید باب قول الله تعالی (انما قولنالشی إذااردناه):۷۴۵۹، صحیح مسلم:۱۹۲۰، ابوداؤد:۲۴۸۴، ترمذی:۲۱۷۷.

[3] مسندابی یعلی:۲۰۷۸.

**قوله تعالی:- وَأَقِيمُوا الصَّلٰوةَ**

**د خیرۀ اعمالو ترغیب:-** الله ﷻ خپلو ایماندارو بندیګانو ته صرف د خپل عبادت حکم ورکوی چه هم د هغه د پاره مونځونه کوئی او د هغه بندیګانو سره احسان او ښه سلوك کوئی. د ضعیفانو مسکینانو فقیرانو خیال ساتنه کوئی. د مال نه د الله ﷻ حق یعنی زکوة اوباسئی. په هر کار کښې د الله ﷻ د رسول ﷺ تابعداری کوئی. د کوم امر چه تاسو ته حکم کوی هغه په ځای راوړئی او د کوم نه چه مو منع کوی هغې نه منع شئی. یقین اوکړئی چه د الله ﷻ د رحمت حاصلولو هم دغه طریقه ده. یوبل آیت کښې دی ﴿أُولَٰٓئِكَ سَيَرْحَمُهُمُ اللَّهُ ۗ إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ﴾ (١) هم دغه خلق دی په چا چه د الله ﷻ رحمت خامخا نازلیږی ای نبی! دا ګمان مه کوه چه ستا تکذیب کونکی او ستا نه منونکی به په مونږ باندې غالب راشی یا به اخوا دیخوا اوتختی او زمونږ د بې حسابه عذابونو نه به اوتختی. مونږ خود هغوی اصلی ځای په دوزخ کښې مقرر کړې دې چه ډیر خراب ځای دې د اوسیدو په اعتبار سره هم او د واپسئی په اعتبار سره هم.

يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا | لِيَسْتَـْٔذِنكُمُ | الَّذِينَ

اے هغه کسانو چې ایمان موراوړی دې | خامخا د اجازت غواړی ستاسو نه | هغه کسان |

ائې مسلمانانو! ستاسو (خادمان) مریانو له او هغې ماشومانو له چې د عقل حد ته رسیدلی نه دی

مَلَكَتْ | أَيْمَٰنُكُمْ | وَالَّذِينَ | لَمْ يَبْلُغُوا | الْحُلُمَ

چې مالکان شوی دی د هغوی | ښی لاسونه ستاسو | او هغه کسان | چې نۀ دی رسیدلی | حد د عقل ته

پکار دی | چې په دې درې وختونو کښې ستاسو نه (کورونو ته د ورتلو) اجازت اوغواړی (یو)

مِنكُمْ | ثَلَٰثَ مَرَّٰتٍ ۚ | مِّن قَبْلِ صَلَوٰةِ | الْفَجْرِ | وَحِينَ

ستاسو نه | درې ځله | مخکښې د مانځه | د صبا نه | او په هغه وخت کښې |

د سحر د مونځ نه وړاندې | او (بل) څه وخت چې تاسو د غرمې خپلې جامې اوباسئ

تَضَعُونَ | ثِيَابَكُم | مِّنَ الظَّهِيرَةِ | وَمِنۢ بَعْدِ | صَلَوٰةِ الْعِشَآءِ ۚ

چې ږدئ تاسو | جامې خپلې | د غرمې | او روستو | د مانځه د ماسختن نه |

او (بل) د ماسخوتن د مونځ نه روستو | دا د درې وختونه ستاسو د پردې وختونه دی

ثَلَٰثُ عَوْرَٰتٍ | لَّكُمْ ۚ | لَيْسَ عَلَيْكُمْ | وَلَا عَلَيْهِمْ | جُنَاحٌۢ

درې د پردې وختونه دی | ستاسو د پاره | نشته په تاسو باندې | او نۀ په هغوئ باندې | څه ګناه |

د دې در یو وختونو نه سوا (د دوئ د اجازت نه بغیر تګ راتګ کښې) نه په تاسو څه ګناه شته

بَعْدَهُنَّ ۚ | طَوَّٰفُونَ | عَلَيْكُم | بَعْضُكُمْ

روستو د دې وختونو نه | بار بار تلونکی راتلونکی دی | په تاسو باندې | خینی له تاسو نه |

اونه په دوئ چې (کار د پاره تاسو) یو بل له ځئ راځئ ..........................

---

(١) ٩/التوبة: ٧١.

عَلٰى بَعْضٍ ؕ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الْاٰيٰتِ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ

په خينو باندي| دارنگې | بيانوي الله | دپاره ستاسو | ايتونه (داحکامو) | او الله | ښه عالم دې |

دغه شان الله ﷻ تاسو ته خپل حکمونه ښکاره اوروی | او الله ﷻ ډير ښهٔ پوهه

حَكِيْمٌ ۝ وَاِذَا بَلَغَ الْاَطْفَالُ مِنْكُمُ الْحُلُمَ

او دحکمت خاوند دې | او کله چې | اورسی هلکان | ستاسرنه | حد دعقل ته |

اود صاحب دحکمت دې |اوهر کله چې ستاسو هلکان بالغان شی انو پکار دی چې هغوئ هم

فَلْيَسْتَاْذِنُوْا كَمَا اسْتَاْذَنَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ؕ

نو په کاردی اجازت غواړی دراتلو |لکه څنګه چې |اجازت غواړی |هغه بالغان|چې مخکښی ددوئ نه وؤ

اجازت اوغواړی |لکه چې وړاندې (ذکر شوو) خلقو ته داجازت غوښتلو حکم شوې دې

كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰيٰتِهٖ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ۝

درانګې | بيانوی الله | تاسو ته ايتونه خپل | او الله | ښه پوهه دې | دحکمت خاوند دې |

دغه شان الله تاسو دپاره خپل حکمونه په وضاحت سره بيانوی |او الله په هرڅه پوهه صاحب د حکمت

وَالْقَوَاعِدُ مِنَ النِّسَآءِ الّٰتِيْ لَا يَرْجُوْنَ نِكَاحًا فَلَيْسَ عَلَيْهِنَّ

او ناستې | دښځو نه | هغه | چې اميد نهٔ لري | دنکاح کولو | پس نشته | په هغوئ باندې

دې |او زړې بوډئ ګانې ښځې چې د نکاح اميد ئې پاتې نه وی په هغوئ هيڅ ګناه نشته که

جُنَاحٌ اَنْ يَّضَعْنَ ثِيَابَهُنَّ غَيْرَ مُتَبَرِّجٰتٍ

څه ګناه | چې کيږدی | جامې خپلې (يعنی څادرې لوپټې) |په دې حال کښې چې ښکاره کونکی نهٔ وی

خپلې زياتې جامې (لکه پړونئ او لوپټهٔ) کوزه کړی |خوداسې نه چې خپل ډول سنګار ښائی

بِزِيْنَةٍ ؕ وَاَنْ يَّسْتَعْفِفْنَ خَيْرٌ لَّهُنَّ ؕ وَاللّٰهُ

دښائيست خپل | او چې خان اوساتی (دڅادر کيښودلونه هم) | دا بهتره ده | دپاره دهغوئ | او الله |

اوکه ( ددې نه هم) احتياط اوکړی |نو دا د هغوی دپاره غوره ده| او الله هر څه اوری په هرڅه

سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ۝

اوريدونکې | او ښه پوهه دې |

باندې پوهه دې |

**قوله تعالى:-** يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لِيَسْتَاْذِنْكُمُ الَّذِيْنَ مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ

**بغيراجازت کورونوته تلل منع دی:-** پدې آيت کښې نيزدې خپلوانوته هم حکم کولې شی چه هغوی دې هم اجازت اخلی نوراخی دې.ددې نه وړاندې چه ددې سورت په شروع کښې کوم حکم ووهغه دپردوخلقو د پاره وو.نوفرمانی چه په دريووختونوکښې غلامان بلکه نابالغ هلکانوله هم اجازت اخستل پکار دی. د سحردمانځه نه وړاندې خکه چه دغه د اوده کيدووخت وی اودغرمې کله چه انسان دڅه وخت دپاره د آرام حاصلولود پاره په عام توګه په کورکښې پورته کېږې اوباسی سملی اودماسخوتن دمانځه نه پس خکه چه دغه هم دبال بچ سره داوده کيدووخت وی.نوپه دې دريو وختونو کښې نه ده معلومه چه انسان

پخپل کورکښې په کوم حالت کښې وی؟ددې دپاره دکوروینځې غلامان واړه هلکان دې هم بغیر خبر کولوېدې وختونوکښې چپ چاپ نه ننوځی. اوددې خاص وختونونه علاوه دهغوی له دراتلواجازت غوښتلوضرورت نشته ځکه چه ددوی تګ راتګ خو ضروری دی اوباربارتلونکی راتلونکی دی دهروخت اجازت غوښتل به ستاسودپاره اونورد هغوی د پاره هم د زحمت ځیز شی. یوحدیث کښې دی پشوېلیته نه ده هغه خوستاسوپه کورونوکښې تاسوسره ګرځی راګرځی([1])حکم خوهم دغه دې ولې عمل په دې ډیرکم دې.

**دا درې ایتونه منسوخ نه دی خوخلقو پرې عمل پریخود ې دې:**-ابن عباس ﷺ فرمائی په دریوآیاتونو باندې په عام توګه خلقو عمل پریخې دې. یوخوهم دغه آیت اوبل دسورت نساء آیت﴿وَاِذَا حَضَرَ الْقِسْمَةَ اُولُوا الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنُ فَارْزُقُوْهُمْ مِّنْهُ وَقُوْلُوْا لَهُمْ قَوْلًا مَّعْرُوْفًا﴾ ([2]) اویودسورت حجرات آیت ﴿اِنَّ اَكْرَمَكُمْ عِنْدَ اللّٰهِ اَتْقٰىكُمْ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌ خَبِيْرٌ﴾([3])شیطان په خلقوراخورشواوهغوی په دې آیاتونو باندې دعمل کولونه غافل کړل لکه چه پدې هډوایمان نه وی.ماخوخپلې دې وینځې ته هم وئیلی دی چه پدې دریووختونوکښې بې اجازته هیڅ کله مه راځه([4]) په اولنی آیت کښې خوېدې دریواړووختونوکښې دوینځې غلامانو اونابالغ ماشومانودپاره هم د اجازت اخستو حکم دې. په دویم آیت کښې د وراثت دتقسیم په وخت کښې چه کوم خپلوان یتیمان اومسکینان راشی هغوی ته دالله ﷻ په نوم څه ورکول اوهغوی سره په نرمئی سره د خبروکولوحکم دې. او په دریم آیت کښې په حسب نسب باندې فخر نه کولوبلکه د عزت قابل د الله ﷻ نه د ویریدلوذکر دې.

د حضرت شعبی نه چا تپوس اوکړوچه آیادا آیت منسوخ شوې دې؟ هغوی اوفرمائیل هیڅ کله نه. هغه وئیل نوبیا خلقو په دې باندې عمل ولې پریخې دې؟ وئی فرمائیل دالله ﷻ نه توفیق غوښتل پکاردی ([5]) ابن عباس ﷺ فرمائی په دې آیت د عمل پریخودولوپه وجه مالداری اوفراخی ده. اول خو به خلقو سره دومره هم نه ووچه په خپلو دروازوباندې پردې زوړند کړې وې یاچرته کولاوکوردجداجدا کمرو وې نو اکثر به وینځې غلامان په بې خبرې کښې راتلل اوښځه خاوندبه مشغول وو نوراتلونکی به هم شرمیدلواوپه کوروالا باندې به هم سخت لګیدل.اوس چه الله ﷻ مسلمانانوته وسعت ورکړو جدا کمرې جوړې شوې باقاعده دروازې اولګیدلې اوپه دروازو کښې پردې اولګیدلې نومحفوظ شو اود الله ﷻ د حکم مصلحت پوره شو په دې وجه د اجازت پابندی اوچته شوه اوخلقو په دې کښې سستی اوغفلت شروع کړو. ([6])

**دې درې و وختونو کښې د اجازت غوښتلو حکمت:**-سدی فرمائی چه هم دادرې وختونه داسې دی چه انسان لره شان اوزګاروی په کور کښې وی الله ﷻ ته معلومه ده چه په کوم حالت کښې دې د دې د پاره نی وینځې غلامان هم د اجازت اخستلو پابندکړل ځکه چه په دغه وخت کښې عموماً خلق خپلو کور ودانو سره ملاویږی دې دپاره چه غسل وغیره اوکړی اوپه آرام دکورنه راوځی اوپه مونځونو کښې شامل شی.دا هم یوروایت دې چه یوانصاری ﷺ د حضور ﷺ د پاره څه خوراك پوخ کړو خلق بغیر د

---

[1] ابوداؤد كتاب الطهارة باب سؤر المرة:۷۵-۷۶وسنده صحيح، ترمذى:۹۲، نسائى:۶۸،ابن ماجة:۳۶۷،احمد:۵/۳۰۳، ابن حبان:۱۲۹۹، حاكم:۱/۱۶۰.

[2] ۴/النساء:۸.

[3] ۴۹/الحجرات:۱۳.الخ.

[4] ابوداؤد كتاب الادب باب فى الاستئذان فى العورات الثلاث:۵۱۹۱.

[5] الطبرى:۱۹/۲۱۳.

[6] ابوداؤد كتاب الادب باب فى الاستئذان فى العورات الثلاث:۵۱۹۲وهو حسن.

اجازت نه دهغه کورته لاړل.حضرت اسماء اوفرمائيل يارسول الله ﷺ داخوډيره خرابه خبره ده چه غلام بې اجازته کورته راشي ممکن دی چه ښځه خاوند هم په يوه کپړا کښې وی نودا آيت نازل شو (۱) د دې آيت په نه منسوخ کيدو باندې د دې آيت آخرى الفاظ هم دلالت کوى چه دغه شان الله ﷻ خپل آياتونه بيانوی او الله ﷻ عليم اوحکيم دې.

**نابالغ په دريو وختونو کښې او بالغ به هر وخت اجازت غواړي:-** اوچه کله بچی بالغ کيدو ته اورسی نوبيا دوی له ددې دريواړو وختونونه علاوه هم په نورووختونوکښې اجازت اخستل پکاردی.دوړوهلکانو کور کښې مور پلارله د راتلوپه وخت کښې دې دريواړو وختونوکښې چه پورته تيرشو اجازت غوښتل ضروری دی.ولې دبالغ کيدونه پس خو هروخت خبرداری کولوسره راتلل پکاردی لکه چه څنګه نور لوئ خلق اجازت اخلی راځی که خپل وی که پره دی.

**دبوډئی ګانو دپاره حکم:-** کومې بوډۍ ګانې ښځې چه کله دې عمرته اورسی.چه نه دهغوی دسړی خواهش وی نه د نکاح طمع حيض ئی بندشی عمرئی تير شي نو په هغوی باندې دپردې هغه پابندی نشته کومه چه په عامو ښځو باندې وی.ابن عباس رضی الله عنه فرمائی آيت ﴿وَقُلْ لِّلْمُؤْمِنٰتِ يَغْضُضْنَ مِنْ اَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوْجَهُنَّ وَلَا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ اِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلٰى جُيُوْبِهِنَّ وَلَا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ اِلَّا لِبُعُوْلَتِهِنَّ اَوْ اٰبَآئِهِنَّ اَوْ اٰبَآءِ بُعُوْلَتِهِنَّ اَوْ اَبْنَآئِهِنَّ اَوْ اَبْنَآءِ بُعُوْلَتِهِنَّ اَوْ اِخْوَانِهِنَّ اَوْ بَنِيْۤ اِخْوَانِهِنَّ اَوْ بَنِيْۤ اَخَوٰتِهِنَّ اَوْ نِسَآئِهِنَّ اَوْ مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُنَّ اَوِ التّٰبِعِيْنَ غَيْرِ اُولِي الْاِرْبَةِ مِنَ الرِّجَالِ اَوِ الطِّفْلِ الَّذِيْنَ لَمْ يَظْهَرُوْا عَلٰى عَوْرٰتِ النِّسَآءِ وَلَا يَضْرِبْنَ بِاَرْجُلِهِنَّ لِيُعْلَمَ مَا يُخْفِيْنَ مِنْ زِيْنَتِهِنَّ وَتُوْبُوْۤا اِلَى اللّٰهِ جَمِيْعًا اَيُّهَ الْمُؤْمِنُوْنَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ﴾ (۲) نه دا آيت مستثنی دې (۳) دابن مسعود رضی الله عنه نه روايت دې چه داسې ښځوته اجازت دې چه هغوی برقه او څادرکوزکړی صرف په لوپټه اوقميص پرتوګ کښې اوسی (۴) دهغوی قراءت هم (ان يضعن من ثيابهن) دې دې نه مراد د لوپټې د پاسه بل څادردې. نوچه کله بوډې ګانوښځو پيړ څادريالوپټه اچولې وی نوهغوی له ددې د پاسه بل څادر اچول ضروری نه دی. خودې نه هم مقصدد زينت ښکاره کول نه دی. حضرت عائشه صديقه رضی الله عنها نه چه کله ښځوددې قسم سوالونه کول نوهغوی ونيل چه بيشکه ستاسودپاره ښائسته سنګارکول حلال اوطيب دی خودپردوسړو د سترګو يخولودپاره نه. د حضرت حذيفه بن يمان رضی الله عنه بی بی چه کله بالکل بوډئی او زړه شوه نوهغې د خپل غلام د لاسه په خپل سر باندې نکريزې اولګولې کله چه د هغې نه د دې پاره کښې سوال اوکړې شو نووئی فرمائيل چه د هغه بوډې ګانوښځو نه يم د چاچه خواهش پاتې نه شو. آخرکښې اوفرمائيل چه څادر اخستل د داسې بوډې ګانوښځود پاره جائزدې خوغوره هم دادی چه په څادر اوبرقوکښې وی الله تعالی اوريدونکې او پيژندونکې دې.

| لَيْسَ | عَلَى الْأَعْمٰى | حَرَجٌ | وَّلَا عَلَى الْأَعْرَجِ |
|---|---|---|---|
| نشته | په ړوند باندې | څه ګناه | اونه په ګوډ باندې |
| نه په ړوند سړی څه ملامتيا شته | | | اونه په ګډ سړی څه ملامته شته |
| حَرَجٌ | وَّلَا عَلَى الْمَرِيْضِ | حَرَجٌ | وَّلَا عَلٰى اَنْفُسِكُمْ |
| څه ګناه | اونه په مريض باندې | څه ګناه | اونه په خانونو ستاسو باند |
| او نه په ناروغه څه ګناه شته | | | اونه پخپله په تاسو څه ګناه شته |

(۱) دا روايت مرسل دې.
(۲) ۲۴/النور:۳۱.
(۳) ابوداؤد کتاب اللباس باب فی قوله تعالی ﴿وقل للمؤمنات يغضضن من ابصارهن﴾:۴۱۱۱ وسنده حسن.
(۴) الطبری:۲۱۷/۱۹.

أَنْ تَأْكُلُوا مِنْۢ بُيُوتِكُمْ أَوْ بُيُوتِ اٰبَآئِكُمْ أَوْ بُيُوتِ أُمَّهٰتِكُمْ

چي اوخورئ تاسو | دکورونو ستاسو نه | يا د كورونو دپلارانو ستاسو نه | يا دكورونو دميندو ستاسو نه

که تاسو دخپلو کورونو نه خوراک خورئ | يا دپلارانودکورونو نه | يا د ميندودکورونو نه

أَوْ بُيُوتِ إِخْوَانِكُمْ أَوْ بُيُوتِ أَخَوٰتِكُمْ أَوْ بُيُوتِ أَعْمَامِكُمْ

يا د كوررونو رونړو ستاسو نه | يا دكورونو دخويندو ستاسو نه | يا دكورونو دترونو ستاسو نه |

يا د رونړو دكورونو | ياد خويندو دكورونو نه | يا د ترونودكورونونه | يا د پلار د خويندو (ترورياني)

أَوْ بُيُوتِ عَمّٰتِكُمْ أَوْ بُيُوتِ أَخْوَالِكُمْ أَوْ بُيُوتِ خٰلٰتِكُمْ

يا دكورونو دپلاردخويندو ستاسو نه | يا دكورونو دماماگانو ستاسو نه | يادكورونو دمور دخويندو ستاسو نه

دكورونو نه |.............. يادماماگانودكورونونه | يا دمور د خويندو (ترورياني) د كورونونه

أَوْ مَا مَلَكْتُمْ مَّفَاتِحَهٗٓ أَوْ صَدِيقِكُمْ ط لَيْسَ

يا دغه كوررونو | چي مالكان يئ تاسو | دكنجيانو دهغې | يا ددوستانو ستاسو نه | نشته

يا (دهغه كوررونونه) چي دهغې كنجياني ستاسوپه اختيار كښې وي | ياد خپلو دوستانو دكورونو نه

عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَأْكُلُوا جَمِيعًا أَوْ أَشْتَاتًا ط فَإِذَا

په تاسو باندې | گناه | چي خوراك كوئ تاسو | يو ځائي شريك | جدا جدا | نو هركله

په دې کښې هيڅ گناه نشته | که په شريکه خوراک کوئ | او که جدا جدا کوئ

دَخَلْتُمْ بُيُوتًا فَسَلِّمُوا عَلٰٓى أَنْفُسِكُمْ تَحِيَّةً

چي ننوزئ تاسو | كورونو ته | نو سلام اچوئ | په خلقو خپلو باندې | يعني دخيردعاپرې وايئ

خوچي كله دغې كورونو ته داخليږئ |............نو اول خپلو خلقوته سلام كوئ

مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ مُبٰرَكَةً طَيِّبَةً ط كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الْاٰيٰتِ

دطرفه دالله نه | بركتناكه | پاكه | دارنگې | بيانوي الله | تاسو ته | ايتونه |

چي ددعا په شان دالله ﷻ دطرفه مقرر دې | بركتې اوپاكيزه | د غه شان الله ﷻ تاسوته خپل حكمونه

لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ۝

دپاره ددې | چي تاسو دعقل نه كار واخلئ |

ښكاره اوروى | چي تاسو پرې ښه پوهه شئ |

**قوله تعالى:- لَيْسَ عَلَى الْأَعْمٰى حَرَجٌ**

**د خپلوانو كورونه اود هغې متعلق آداب:-** په دې آيت كښې چه دكوم حرج نه كيدو ذكردې د هغې بابت كښې حضرت عطاء فرمائى چه دې نه مرادگوډشل ړوند په جهادكښې راتلل دى.لكه چه په سورت فتح كښې چه دى نوكه داخلق په جهادكښې شامل نه وي نو په دوى باندې د خپلې شرعى معقول وجه څه نقصان نشته. سورت براءت كښې دى ﴿لَيْسَ عَلَى الضُّعَفَآءِ وَلَا عَلَى الْمَرْضٰى وَلَا عَلَى الَّذِيْنَ لَا يَجِدُوْنَ مَا يُنْفِقُوْنَ حَرَجٌ إِذَا نَصَحُوْا لِلّٰهِ

وَرَسُولِهٖ ۚ مَا عَلَى الْمُحْسِنِيْنَ مِنْ سَبِيْلٍ ۚ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۙ (۱)بوډاګانو باندې لړيو اوبيمارانو مفلسانو باندې چه هغوی دزړه د ژوروالی نه دالله ﷻ اود هغه درسول ﷺ خيرخواه وی هيڅ نقصان نشته دنيکانوخلقو هيڅ رټنه نشته الله ﷻ بښونکې اومهربان دې.په هغوی باندې هم دغه شان څه حرج نشته چاسره چه سورلی نه وی اوتاله راخی اوتاسره هم د هغوی د پاره سورلی نه شی ملاويدلې الخ.

**د ايت شان نزول:**-سعيدفرمائی چه خلق ړندوګوډو شلواوبيمارانوسره خوراك كولوكښې حرج ګڼړلو ووچه داسې نه وی هغوی‌اونه خوړلې شی اومونږ ډيره اوخورو يا ښه ښه اوخورو نوپه دې آيت كښې هغوی ته اجازت ملاوشوچه په دې كښې په تاسو باندې هيڅ نقصان نشته(۲)بعضې خلق كركه كوی اوهغوی سره خوراك ته نه كيناستل.شريعت دا جاهلانه عادت اوچت كړو.دمجاهد نه روايت دې چه خلقو به داسې خلق د خپل پلار رورخور وغيره رشته درانوكره رسول چه دوی هلته اوخوری دې خلقوبه شرم كولو چه مونږ نورو خلقو كره بوځی په دې باندې داآيت نازل شو.دسدی قول دې انسان چه كله دخپل رورخوركورته ځی هغوی به نه وواو ښځو به هغوی ته څه خوراك پيش كولونو دوی به نه خوړلو چه سړی خونی شته نه اونه د هغوی اجازت دې نو الله ﷻ د دې د خوراك رخصت وركړو. داچه اوفرمائيلې شوپخپله په تاسوباندې هم څه نقصان نشته داخوښكاره وو خود دې بيان نی خكه اوكړوچه دنورځيز په دې باندې عطف اوكړی اود دې نه پس بيان په دې حكم كښې برابروی. دخامنود كورونوهم داحكم دې سره د دې چه په الفاظوكښې بيان رانغلوخوضمنًا دې بلكه د دې آيت نه استدلال كولوسره بعضوڅيلی دی چه د ځوئ مال په شان د پلار د مال دې. په مسنداوسنن كښې څو سندونو سره حديث دې حضور ﷺ اوفرمائيل ته اوستامال ستاد پلاردې(۳)اونورچه دكوموخلقونومونه راغلی دی دې نه استدلال كولوسره بعضوڅيلی دی چه د خپلوانو خوراك څښاك د بعضې په بعضوواجب دې لكه چه دامام ابوحنيفه اوامام مالك رحهم الله دمذهب مشهور قول دې دچاكنجيانې چه ستاسوپه ملكيت كښې وی دې نه مراد غلام اوداروغه دې چه هغوی دخپل آقا د مال نه دضرورت اودستور مطابق خوړلې شكلې شی.

## غلام د خپل مالك د مال نه د ضرورت مطابق خوراك كولې شی

**مسلك حنفی:**-كه په رواج او عرف كښې د كومو رشته دارانو د كورونو نه په خوراك كولو سره هغوی خفه كيږی نه بلكه خوشحاليږی نو د داسې رشته دارو د كورونو نه د هغوی د اجازت نه بغير خوراك كول جائز دې اوكه په عرف كښې داسې كول بد ګڼړلې شی نو بيا خوراك حرام دې جائز او مباح نه دې (معارف القرآن تاليف مفتی محمد شفيع (۴۵۱\۲)-

د حضرت عائشه بيان دې كله چه به رسول الله ﷺ جنګ ته تلونود هريوبه داخوښه وه چه مونږ هم هغوی سره لاړشو. د تلوپه وخت كښې به ئې خپلې كنجيانې خپلو خاص دوستانوته وركولې اوهغوی‌ته به ئې ونيل د كوم ځيز چه د خوراك تاسو ته ضرورت وی تاسو ته اجازت دې. خودې خلقو به خپل خان امين ګڼړلو اوپه دې خيال چه هسې نه دې خلقو د زړه په نه غوښتلو سره اجازت كړې وی د خوراك څښاك څه ځيز له د لاس نه اوړلو. په دې باندې داحكم نازل شو.

بيافرمائی چه ستاسود دوستانو په كورونوكښې په خوراك باندې څه نيول نشته چه تاسو ته پته وی چه هغوی په دې بد نه ګڼړی اوپه دوی باندې دا ګران نه پريوځی. قتاده فرمائی چه ته كله خپل دوست له

---

(۱) ۹/التوبة:۹۱.

(۲) الطبری:۲۲۱/۱۹.

(۳) ابوداؤد كتاب البيوع باب الرجل ياكل من مال ولده: ۳۵۳۰وسنده حسن، ابن ماجة: ۲۲۹۲، احمد:۱۷۹/۲.

لاړشي نود هغه د اجازت نه بغیرتاته د خوراك رخصت دې. بیافرماني چه تاسو باندې په یوځائ ناسته او په جدا جدا ناسته په خوراك کولوکښې هم څه ګناه نشته. ابن عباس ﷺ فرمانې چه کله آیت ﴿يَآيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَاْكُلُوْٓا اَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ اِلَّآ اَنْ تَكُوْنَ تِجَارَةً عَنْ تَرَاضٍ مِّنْكُمْ ۣ وَلَا تَقْتُلُوْٓا اَنْفُسَكُمْ ۭ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيْمًا﴾([1]) نازل شویعنی ایماندارو د یوبل مال ناحقه مه خورئې نوصحابه کرامو رضوان الله اجمعین په خپل مینځ کښې اوونیل چه د خوراك څیناك څیزونه هم مال دې نومونږ له داهم حلال نه دی چه د یوبل سره خوراك اوکړو. نوهغوی د دې نه هم منع شو په دې باندې دا آیت نازل شو.([2])

**ځان له خوراک کول:**-دغه شان د ځان له خوراك کولونه به نی کرکه کوله ترکومې چه به ورسره څوك نه وو خوراك به نی نه کولو. د دې د پاره الله ﷻ په دې خبره کښې د دوارو خبرواجازت ورکړویعنی نورو خلقو سره دخوراك اود ځان له خوراك.دقبیله بنوکنانه خلقو په خاص توګه دې مرض کښې اخته وو د ولږې به مړه کیده خوچه څوك به ورسره نه ووخوراك به نی نه کولو. په سورلئی به سوریدل خود خوراك ملګرې به نی ځان له لټولو. نوپه دې آیت کښې الله ﷻ د ځان له خوراك کولو رخصت ورکولوسره د جاهلیت دغه سخت رسم ختم کړو([3])په دې آیت کښې خود ځان له خوړلو رخصت دې خو دا یاد ساتئی چه خلقوسره خوراك کول افضل دی اوډیر برکت هم پدې کښې دې.مسنداحمد کښې دی یوسړې راغلو ونې ونیل یارسول الله ﷺ مونږ خوراك خو کووولې مړیږونه.حضورﷺ اوفرمائیل چه کیدې شی تاسو جداجداخوراك کونی که یوځائ راجمع کیدل کیناستل اود الله ﷻ نوم اخستلوسره خوراك کولونو تاسو ته به برکت درکولې شی([4])ابن ماجه وغیره کښې دی حضورﷺ اوفرمائیل په یوځائ راجمع کیږنی خوراك کونی ځان له خوراك مه کونی برکت په یوځائ کیناستوکښې دې. ([5])

**چې کور ته ځئ نو سلام کوئی:**-بیاتعلیم اوشوچه کورونوته چه ورځئی نوسلام کونی. د حضرت جابرﷺ فرمان دې کله چه تاسوکورونوته ځئی نو د الله ﷻ خودلې د برکت نه ډك ښه سلام وائې ما خو ازمینت کړې داسراسر برکت دې. ابن طاؤس فرمانې چه په تاسو کښې څوك کورته داخل شی نو په کور والاباندې دې سلام وانی([6]) دحضرت عطاء نه تپوس اوشوداواجب دی؟ونې فرمائیل چه ماته خویادنه دی چه څوك د دې د وجوب قائل وی خوزما دا ډیر خوښ دی چه کله هم کورته لاړشم نوسلام ونیلو سره ورځم. زه خوداً کله هم نه پریږدم اودایوه بله خبره ده چه هیرشی.

**جماعت کښې د سلام حکم:**-مجاهد فرمانې چه کله جمات ته لاړشئی نو وائې (السلام علی رسول الله) او چه کله خپل کورته لاړشئی نوخپل بال بچ ته سلام وانې اوچه کله یوداسې کورته لاړشئی چه هلته څوك هم نه وی نوداسې سلام وانې.(السلام علینا وعلی عباد الله الصالحین)قتاده ؒ فرمانی چه خپل کوروالا ته سلام کوه نوځه اوغیرآبادکورته په تلوکښې داسې سلام وایه(السلام علینا وعلی عباد الله الصالحین) هم داحکم ورکولې شی.په داسې وخت کښې ستاسو دسلام جواب د الله ﷻ فرښتې درکوی.

**دپنځو خبرو نصیحت:**-انس ﷺ فرمانی چه ماته نبی ﷺ د پنځوخبرووصیت کړې دې. فرمائیلې اې انس کامل اودس کوه نوستا عمربه زیاتیږی.زماچه څوك امتی ملاوشی سلام ورته کوه ستانیکئی به

---

[1]) ٤/النساء:٢٩.
[2]) الطبری:١٩/٢٢٤.
[3]) الطبری:١٩/٢٢٤.
[4]) ابوداؤد كتاب الاطعمة باب فی الاجماع علی الطعام:٣٧٦٣، ابن ماجة:٢٣٨٦، احمد:٣/١٠٥٠، ابن حبان:٥٢٢٤.
[5]) ابن ماجة كتاب الاطعمة باب الاجتماع علی الطعام:٣٢٨٧وهوحسن.
[6]) الطبری:١٩/٢٢٥.

زیاتیږي. کورته چه لاړشې سلام کوه په کورکښې خیرت زیاتیږي. دضحی مونځ کوه تاسونه وړاندې خلق چه دالله والاجوړشوی وو دهغوی هم دغه طریقه وه. اې انس په ماشومانوباندې رحم کوه اود لویوعزت کوه نو د قیامت په ورځ به زما ملګرې ئې. بیافرمائي دا د خیردعاده چه د الله ﷻ د طرف نه تاسو ته درکړې شوې ده. د برکت والا ده ښکلې ده. ابن عباس رضي الله عنه فرمائي ماخوالتحیات هم د قرآن نه زده کړې ده داسې ده. (التحیات المبارکات الصلوات الطیبت لله اشهدان لا اله الا الله واشهدان محمداً عبده ورسوله السلام علیك ایها النبي ورحمة الله وبرکاته السلام علینا وعلی عبادالله الصالحین) ددې لوستلوسره مونځ ګذارله دخان د پاره دعاګول پکاردی بیادې سلام اوګرځوی. هم د دې ابن عباس رضي الله عنه نه مرفوعا په صحیح مسلم کښې د دې نه علاوه نور هم نقل دی[1] د دې سورت د احکامو ذکر کولوسره بیافرمائي چه الله ﷻ دخپلو بندیګانو په وړاندې خپل واضحه احکام او فائده مند ارشادات کولاو کولاو داسې بیان فرمائي دې د پاره چه هغوی غوراوفکر اوکړي سوچ اوکړي خان پوهه کړي اوعقل مندی حاصله کړي.

إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ
بیشکه مومنان | په اصل کښې هغه کسان دی |
مومنان خو بس هغه خلق دی چې الله ﷻ اوددهٔ په رسول

آمَنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَإِذَا كَانُوا مَعَهُ عَلَىٰ أَمْرٍ جَامِعٍ
چې ایمان راوړي| په الله | او په رسول دهغه | او کله چې | وی هغوئ | دهغه سره |په یو کار راجمع کونکي باند
باندې ایمان راوړي | او کله چې درسول ملګرتیا ته په یوداسې کار پسې راټول شوي وي

لَّمْ يَذْهَبُوا حَتَّىٰ يَسْتَأْذِنُوهُ ۚ إِنَّ الَّذِينَ يَسْتَأْذِنُونَكَ
نونهٔ ځي هغوئ | تر هغې پورې | چې اجازت اوغواړي دهغه نه | بیشکه هغه کسان | چې اجازت غواړي ستا نه
چې دهغې دپاره ټولنه شوي وي | نوترڅو چې اجازت وانخلي ترهغې واپس نه ځي | (اې پیغمبره)څوک

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ ۚ فَإِذَا اسْتَأْذَنُوكَ
هم دغه کسان | هغه کسان دی | چې ایمان راوړي | په الله او په رسول دهغه| نوکله چې اجازت اوغواړي ستانه
چې ستانه اجازت اخلي نوهم دا هغه خلق چې په الله ﷻ او دهغه په رسول ایمان ساتي| هرکله چې دوئ

لِبَعْضِ شَأْنِهِمْ فَأْذَن لِّمَن شِئْتَ مِنْهُمْ
دپاره دځینو کارونو خپلو | نو اجازت ورکړه | هغه چاته | چې غواړې تهٔ | دهغوئ نه |
دخپل څه کار دپاره ستانه اجازت غواړي انو په دوئ کښې چې ته چاته غواړې اجازت ورکړه

وَاسْتَغْفِرْ لَهُمُ اللَّهَ ۚ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ۝ لَّا تَجْعَلُوا
او بښنانه اوغواړه دپاره دهغوئ | دالله نه | بیشکه الله | بښونکي | مهربانه دې | مهٔ ګنړئ |
اوددوئ دپاره دالله ﷻ نه بښنه غواړه | بیشکه الله ﷻ بښونکي مهربان دې | (مومنانو) امه ګرځوئ

---

[1]) صحیح مسلم کتاب الصلاة باب التشهدفی الصلاة: ۴۰۲. والله اعلم.

| بَعۡضًا | بَعۡضِكُمۡ | كَدُعَآءِ | بَيۡنَكُمۡ | دُعَآءَ الرَّسُولِ |
|---|---|---|---|---|
| خينو لره ا | دخيني ستاسو ا | پشان دبلني ا | په منځ ستاسو كښي ا | بلنه درسول ا |
| تاسو درسول بلنه داسې معمولي مه ګڼئ ا څنګه چې تاسو خپل مينځ كښې يو بل رابلئ ا يقيني ده چه | | | | |

| فَلۡيَحۡذَرِ | لِوَاذًا | مِنكُمۡ | يَتَسَلَّلُونَ | الَّذِينَ | قَدۡ يَعۡلَمُ اللّٰهُ |
|---|---|---|---|---|---|
| پس اويريږي ا | ديوبل نه پناه پناه ا | ستاسو نه ا | چې غلي غلي اوځئ ا | هغه خلق ا | ښه پيژني الله ا |
| الله ﷻ هغه خلق ښه پيژني اچې كوم يو اړخ ته شي اَنو (غلي غوندي) اوكشيري اَنو څوک چې دالله ﷻ | | | | | |

| فِتۡنَةٌ | أَن تُصِيبَهُمۡ | عَنۡ أَمۡرِهِ | يُخَالِفُونَ | الَّذِينَ |
|---|---|---|---|---|
| فتنه په دنيا كښې ا | چې اورسيږي هغوئ ته ا | دحكم دهغه ا | چې مخالفت كوي ا | هغه كسان ا |
| دحكم نه مخالفت كوي اهغوى دې د دې نه اويريږي چې (دنيا كښې) پرې څه افت راشي ايا دردناک | | | | |

| عَذَابٌ أَلِيمٌ ۝ | أَوۡ يُصِيبَهُمۡ |
|---|---|
| دردناک ا عذاب ا | يا اورسيږي هغوئ ته ا |
| عذاب ئې (په اخرت) كښې راونيسي ا | |

**قوله تعالى:-** وَإِذَا كَانُواْ مَعَهُۥ عَلَىٰٓ أَمۡرٖ جَامِعٖ لَّمۡ يَذۡهَبُواْ حَتَّىٰ يَسۡتَـٔۡذِنُوهُۗ

**دَ مجلس آداب:-** الله ﷻ خپلو مؤمنانو بندګانو ته يو آدب بل هم ښائي لكه چه څنګه د راتلو په وخت كښې اجازت غوښتلو سره راځي دغه شان دتلو په وخت كښې هم زما دنبي ﷺ نه اجازت اخلئ نوځئ. خاص كر په داسې وخت كښې چه كله ګنړه وي او په څه ضروري خبره باندې مجلس شوې وي مثلاً د جمعه مونځ يا داختر مونځ يا څه ډله ده يا څه مجلس شوري ده وغيره وغيره نو په داسې موقعو باندې تركومې چه د حضور ﷺ نه اجازت نه وي اخستې اخوا ديخوا مه ځئ د كامل مؤمن يوه نښه دا هم ده. بيائي خپل نبي ﷺ ته اوفرمائيل كله چه دوى تانه د څه ضروري كار د پاره اجازت اوغواړي نو تاسو چه په دوى كښې چاته غواړې اجازت وركوه اود هغوى د پاره د ښښنې دعاګانې هم غواړه. ابوداؤد وغيره كښې دى كله چه په تاسو كښې څوک يومجلس ته لاړشي نو اهل مجلس ته سلام كوني اوچه كله د هغه ځائ نه تلل غواړئ نو بيا هم سلام كوئ. د آخرى خل سلام د اول خل سلام نه څه كم نه دې. دا حديث په ترمذى [1] كښې هم دې او امام صاحب دا حسن ګرځولې دې.

**دَرسول الله ﷺ احترام:-** خلقو چه به حضور ﷺ كله راغوښتلونو د حضور ﷺ نوم ياكنيت به ئې په معمولي توګه باندې لكه څنګه چه خپل مينځ كښې يوبل راغواړي آواز به ئې كولو نو الله ﷻ د دې بې ادبئ نه منع اوفرمائيله چه نوم مه اخلئ بلكه يانبي ﷺ يارسول الله ﷺ وائې چه دهغوى د بزرګئ عزت او ادب خيال اوساتلې شي ([2]) هم ددې په شان آيت ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَقُولُواْ رَٰعِنَا وَقُولُواْ ٱنظُرۡنَا وَٱسۡمَعُواْۗ وَلِلۡكَٰفِرِينَ عَذَابٌ أَلِيمٞ ۝﴾ ([3]) اوهم ددې په شان آيت ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تُقَدِّمُواْ بَيۡنَ يَدَيِ ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦۖ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَۚ إِنَّ ٱللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٞ ۝ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا

---

[1] ابوداؤد كتاب الادب باب ف السلام اذاقام من المجلس:٥٢٠٨ وسنده حسن، ترمذى:٢٧٠٦، احمد:٢٨٧/٢، الادب المفرد: ١٠٠٨، ابن حبان:٤٩٤.

[2] الطبرى:٢٣٠/١٩.

[3] ٢/البقرة:١٠٤.

تَرْفَعُوْا اَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ وَلَا تَجْهَرُوْا لَهٗ بِالْقَوْلِ كَجَهْرِ بَعْضِكُمْ لِبَعْضٍ اَنْ تَحْبَطَ اَعْمَالُكُمْ وَاَنْتُمْ لَا تَشْعُرُوْنَ ﴿۲﴾ (۱) دې يعنی د ايمان والاخپل آوازونه دنبی ﷺ په آواز باندې مه اوچتونی دحضور ﷺ په وړاندې په اوچتواوچتو آوازونو سره خبرې مه کونی لکه چه څنګه په آزادنی سره خپل مينځ کښې يوبل سره کونی که داسې مو اوکړه نو ټول عملونه به مو غرق شی اوپته به هم درته اونه لګی الخ. تردې پورې اوفرمانيل چه کوم خلق تاته د حجرې نه شاته چغې وهی نو په هغوی کښې اکثربې عقل دی که چرې هغوی صبر کولې ترهغه وخت پورې چه تاسو پخپله هغوی له راشئی نودا د هغوی د پاره بهتر وه. نودا ټول آداب ورته اوخودلې شو چه حضور ﷺ ته څنګه خطاب کوې.حضور ﷺ سره به خبرې اترې څنګه کوې. دهغوی په وړاندې به څنګه خبرې کوې. بلکه اول خو حضور ﷺ سره په غوږکښې دخبرې کولودپاره صدقه ورکول وو. يومطلب خود دې آيت دا شو دويم داچه درسول الله ﷺ دعا تاسو دخپلې دعا په شان مه ګنړنی دحضور ﷺ دعاخو مقبوله اومستجابه ده.خبردار کله هم زمونږ نبی ﷺ ته تکليف ورنه کړنی هسې نه چه دهغوی دخُلې مبارکې نه کلمه اونه خی ګنی تباه برباد به شئی(۲) ددې نه د وړاندې جملې په تفسيرکښې مقاتل بن حيان ؒ فرمائی د جمعه په ورځ په خطبه کښې کيناستل په منافقانو باندې ډير سخت تيريدل جمات ته په راتلواو خطبه شروع کيدو نه پس هيڅ څوک به د نبی کريم ﷺ د اجازت نه بغير نه تلوځچه کله به داسې څه ضرورت وو نو په اشاره باندې به نی دحضور ﷺ نه اجازت اخستلواوحضور ﷺ به اجازت ورکولوځکه چه د خطبه دوران کښې خبرې کولوسره جمعه باطل کيږی نودامنافقان به په ترخ ترخ کښې سترګې بچ کولې اوخوئيدل به.(۳) سدی ؒ فرمائی چه کله به دامنافقان په جمع کښې وو نود يوبل نه به ئی ځان پناه کولو اوتختيدل به.دالله ﷻ دپيغمبراودهغه دکتاب نه به اخواکيدل.دصف نه به وتل اوپه خلاف باندې به تياريدل. کوم خلق چه د رسول الله ﷺ دامردسنتودرسول ﷺ د حکم اود هغوی د طريقې اود رسول الله ﷺ د شرع خلاف اوکړی هغوی به سزا کولې شی. انسانانوله خپل اقوال افعال د رسول الله ﷺ سنتواو احاديثوسره ملاوول پکاردی‌چه څوک موافق وی ښه دی چه برابر نه وی نو مردود دی.(۴) په ظاهره ياباطنه څوك هم دشريعت محمدی ﷺ نه خلاف اوکړيد هغه په زړه کښې کفر اونفاق د بدعت اوبدنی تخم کرلې شی ياهغه ته سخت عذاب ورکړې کيدې شی ياځوپه دنياکښې دقتل حد قيد وغيره سره يا په آخرت کښې عذاب.مسنداحمدکښې حديث دې چه حضور ﷺ فرمائی زمااوستاسومثال داسې دې لکه چه يوسړی اور بل کړې وی کله چه هغه ښه بل شو نودپتنګانو يوه ګڼړه جوړه شوه اوهغه په دې بې واره راپريوځی اوس که دې هغوی هرڅومره منع کوی ولې هغوی دی چه په شوق سره په دې کښې راپريوځی. اود دې سړی په منع کولوسره نه منع کيږی. هم دغه حالت زمااوستاسو دې تاسو په اور کښې ورداخليږنی او زه تاسو نه غيږې ډکوم دې نه مو منع کوم چه په اورکښې مه ننوځنی د اور نه بچ شئی خوتاسو زما نه منئی اوپه دې اور کښې ورننوځنی. داحديث په بخاری اومسلم کښې هم دې.(۵)

---

(۱) ۴۹/الحجرات:۲.

(۲) الطبری:۱۹۲۳۰.

(۳) الدرالمنثور:۶/۲۳۱.

(۴) صحيح مسلم کتاب الاقضية باب نقض الاحکام الباطلة وردمحدثات الامور:۱۷۱۸، صحيح بخاری:۲۶۹۷، ابوداؤد:۴۶۰۶، ابن ماجة:۱۴، احمد:۶/۲۴۰، ابن حبان:۲۶ بلفظ مختلف.

(۵) صحيح بخاری کتاب الرقاق باب الانتهاء عن المعاصی:۶۴۸۳، صحيح مسلم: ۲۲۸۴، احمد:۲/۳۱۲، ترمذی:۲۸۷۴

أَلَآ إِنَّ لِلّٰهِ مَا

| خبردار شه | چې الله لره دي | هغه ټول |

| یاد ساتئ چې په اسمانونو او په زمکه کښې

فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ ۖ قَدْ يَعْلَمُ مَآ أَنتُمْ

چې په اسمانونو کښې دي | او په زمکه کښې دي | معلوم دي الله ته | هغه حالت | چې تاسو

چې هرڅه دي هغه ټول د الله ﷻ دي هغه ته ستاسو دا موجوده حالت

عَلَيْهِ ۖ وَيَوْمَ يُرْجَعُونَ إِلَيْهِ فَيُنَبِّئُهُم

په هغې باندې يئ | او په کومه ورځ | چې واپس روان شي خلق | هغه ته | نو خبر به ورکړي هغوئ ته

هم ښه معلوم دي او په کومه ورځ چې خلق هغه ته واپس کړې شي انو هغه به ورته هغه ټول

بِمَا عَمِلُوا ۗ وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ۝٦٤

دهغه هرڅه | چې کړي دي هغوئ | او الله | په هرڅه باند | ښه علم لرونکې دې

عملونه په ګوته کړي کوم چه هغوی کړي وي او الله ﷻ په هرڅه پوهه دې

**قوله تعالى:- قَدْ يَعْلَمُ اللّٰهُ الَّذِينَ يَتَسَلَّلُونَ مِنكُمْ لِوَاذًا ۚ**

**د هريو هر حرکت هغه پيژني:-** دزمکې او آسمان مالك دغيب او حاضر عالم دبنديګانو پټ او ښکاره عملونه پيژندونکې هم هغه الله ﷻ دې. ﴿قَدْ يَعْلَمُ﴾ کښې ﴿قَدْ﴾ د تحقيق دپاره دې لکه دې نه وارندې آيت ﴿قَدْ يَعْلَمُ اللّٰهُ الَّذِينَ يَتَسَلَّلُونَ مِنكُمْ لِوَاذًا ۚ فَلْيَحْذَرِ الَّذِينَ يُخَالِفُونَ عَنْ أَمْرِهِ أَن تُصِيبَهُمْ فِتْنَةٌ أَوْ يُصِيبَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ (1) کښې او آيت ﴿قَدْ يَعْلَمُ اللّٰهُ الْمُعَوِّقِينَ مِنكُمْ وَالْقَائِلِينَ لِإِخْوَانِهِمْ هَلُمَّ إِلَيْنَا ۖ وَلَا يَأْتُونَ الْبَأْسَ إِلَّا قَلِيلًا ۝﴾ (2) کښې اولکه آيت ﴿قَدْ سَمِعَ اللّٰهُ قَوْلَ الَّتِي تُجَادِلُكَ فِي زَوْجِهَا وَتَشْتَكِي إِلَى اللّٰهِ وَاللّٰهُ يَسْمَعُ تَحَاوُرَكُمَا ۚ إِنَّ اللّٰهَ سَمِيعٌ بَصِيرٌ ۝﴾ (3) کښې اولکه چه ﴿قَدْ نَعْلَمُ إِنَّهُ لَيَحْزُنُكَ الَّذِي يَقُولُونَ ۖ فَإِنَّهُمْ لَا يُكَذِّبُونَكَ وَلَٰكِنَّ الظَّالِمِينَ بِآيَاتِ اللّٰهِ يَجْحَدُونَ ۝﴾ (4) اولکه چه ﴿قَدْ نَرَىٰ تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَاءِ ۖ فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضَاهَا ۚ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۚ وَحَيْثُ مَا كُنتُمْ فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ ۗ وَإِنَّ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ لَيَعْلَمُونَ أَنَّهُ الْحَقُّ مِن رَّبِّهِمْ ۗ وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا يَعْمَلُونَ ۝﴾ (5) کښې او څنګه چه آذان کونکې وائي (قد قامت الصلوة) نو فرمائي چه په کوم حال باندې تاسوئي دکومو اعمالو او عقيدو سره ئې تاسو ئې الله ﷻ ته ښه معلوم ئې. دآسمان او زمکې يوه ذره هم دالله ﷻ نه پټه نه ده. کوم عمل چه تاسو کوئي په کوم عمل چه تاسو ئې الله ﷻ ته ښکاره دې. هيڅ يوه ذره د الله ﷻ نه پټه نه ده او هرلوئ وړوکې په کتاب مبين کښې محفوظ دې. دبنديګانو د ټول خير او شر هغه عالم دې. کېږو کښې پټ شه که هرڅومره پټ څه او کړې هريو پټ څيز او ښکاره څيز هغه ته يوشان ښکاره دې. که په غوږ کښې خبرې کوې که په اوچت آواز سره دهغه په غوږونو کښې دی. د ټولو ساه لرونکې رزق رسونکې هم هغه دې. د هريو ساه لرونکی د

---

(1) ۲٤/النور:٦٣.
(2) ۳۳/الاحزاب:۱۸.
(3) ٥٨/المجادلة:۱.
(4) ٦/الانعام:۳۳.
(5) ۲/البقرة:۱٤٤.

هر يو حال نه هم هغه خبر دي. هرڅه د اول نه په لوح محفوظ کښې درج دی. دغيبو کنجانې هم هغه سره دی کومې چه دهغه نه بغير څوك هم نه پيژنی. داوچې او لمدې هر يو څيز هم هغه پيژنی. د يوې پاڼړې رژيدل دهغه دعلم نه بهرنه دی. د زمکې دننه په تيارو کښې پرته دانه اوهيڅ اوچ اولوند څيزداسې نه دې چه په کتاب مبين کښې نه وی. ددې مضمون نورهم ډير آياتونه او احاديث دی. کله چه مخلوق د الله ﷻ طرف نه واپس راوګرځولې شی هغه وخت به د هغوی په وړاندې د هغوی د وړې نه وړه نيکی اوبدی پيش کولې شی.ټول وړاندې روستو اعمال به اوګوری. عمل نامه به په ويره سره ګوری او خپل د عمر ټول حالات چه په دې کښې اووينی په حيرانتياسره به وائی چه دا څنګه کتاب دې چه ده خود لوئ نه لوئ څيز څۀ چه د وړوکی نه وړوکې څيز هم نه دې پريخې. چاچه څه کړې وی هم هلته به ئې موجود مومی. ستاد رب ذات د ظلم نه پاك دې. په آخر کښې اوفرمائيل الله ﷻ ډير هوښياردې هر يو څيز د هغه په علم کښې دې.

(الحمدلله) د سورت نور تفسير هم خيراوعافيت سره ختم شو.

.........................

| ركوع ګانې | | سورة الفرقان مكية وهي سبع وسبعون اٰية وست ركوعات | | اياتونه |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | | |
| ⑥ | | شروع كوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم كونكې دې | | ٧٧ |

| تَبٰرَكَ | الَّذِىۡ | نَزَّلَ | الۡفُرۡقَانَ | عَلٰى عَبۡدِهٖ | لِيَكُوۡنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| ډير بركت والا دې | هغه ذات | چې نازل ئې كړو | دا فرقان | په بنده خپل باند | دپاره ددې چې شی |

هغه الله ﷻ ډير د بركت خاوند دې اچاچې خپل بنده (محمد ﷺ) باندې قران نازل كړې دې اچې دټولو

| لِلۡعٰلَمِيۡنَ | نَذِيۡرَا ۙ① | الَّذِىۡ | لَهٗ | مُلۡكُ السَّمٰوٰتِ | وَالۡاَرۡضِ |
|---|---|---|---|---|---|
| دپاره دټول جهان والو | يرونكې | هغه ذات | چې هغه لره ده | بادشاهی داسمانونو | او دزمكې |

جهانونو دپاره (دعذاب) نه ويرونكې دې اصرف هغه ذات دې چې په اسمانونو اوپه زمكه كښې

| وَلَمۡ يَتَّخِذۡ | وَلَدًا | وَّلَمۡ يَكُنۡ لَّهٗ | شَرِيۡكٌ | فِى الۡمُلۡكِ | وَخَلَقَ |
|---|---|---|---|---|---|
| اونۀ ئې دې نيولې | ځوئې | او نشته هغه لره | شريك | په بادشاهئ كښې | او پيدا ئې كړو |

دهغه بادشاهی ده |اوهغه هيڅوك په ځويتوب سره نيولې نه دی | نه ورسره په بادشاهئ كښې څوك شريك شته دې

| كُلَّ شَىۡءٍ | فَقَدَّرَهٗ | تَقۡدِيۡرًا ② |
|---|---|---|
| هر څيز | پس په اندازه ئې كړو هغه | په اندازه كولو سره |

اوهغه هر څيز پيدا كړې دی | بيائې دهر څيز دپاره جدا جدا اندازه مقرر كړې ده

قوله تعالى:- تَبٰرَكَ الَّذِىۡ نَزَّلَ الۡفُرۡقَانَ عَلٰى عَبۡدِهٖ
**د الله ﷻ ذات اقدس بابركت دې** :-الله ﷻ دخپل رحمت بيان فرمائی چه په خلقو باندې دهغه بزرګی ښكاره شی چه هغه دپاك كلام په خپل بنده محمد ﷺ باندې نازل كړې دې.دسورت كهف په شروع كښې ئې هم خپل حمد په دې صفت سره بيان كړې دې. دلته خپل خان دبركت خاوند كېدل بيانوی،اوهم

دا صفت نی بیان کړو دلته نی لفظ﴿نزل﴾اوفرمائیلودکوم نه چه باربارپه کثرت سره نازلیدل ثابتیږی لکه چه ارشاد دي﴿وَالْكِتٰبِ الَّذِيْ نَزَّلَ عَلٰى رَسُوْلِهٖ وَالْكِتٰبِ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ مِنْ قَبْلُ ؕ وَمَنْ يَّكْفُرْ بِاللّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَكُتُبِهٖ وَرُسُلِهٖ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًا بَعِيْدًا﴾(۱)رومبنی کتابونه نی په لفظ﴿ اَنْزَلَ ﴾سره اوداآخری کتاب نی په لفظ﴿ نَزَّلَ ﴾ اوفرمائیلوځکه چه اولنی کتابونه په یوځل نازل شوی اوقرآن کریم لږ لږ د ضرورت مطابق نازلیدلو. کله څه آیاتونه کله څه سورت اوکله څه احکام په دې کښې یولوئ حکمت داهم وو چه خلقو ته په دې باندې عمل ګران نه وی اوښه یادشی اود منلود پاره نی زړه کولاوشی لکه څنګه نی چه په دې سورت کښې فرمائیلی دی چه د کافرانوپواعتراض داهم دې چه دا قرآن کریم په دې نبی ﷺ باندې په یوځل ولې نازل نه شو؟ جواب ورکړې شو چه داسې ځکه نازل کړې شو چه دې سره ستا زړه لګېدلې وی او په آرام آرام نازل کړو دوی چه کومه خبره هم جوړوی مونږ به د هغې پوره او صحیح جواب ورکووچه ښه د تفصیل والا دې.(۲) هم داوجه ده چه دلته د دې نوم فرقان کیخودلې شوځکه چه دا په حق اوباطل کښې هدایت اوګمراهئ کښې فرق کونکې دې. په دې سره په نیکئ او بدئ حلال اوحرام کښې فرق کیږی.

د قرآن کریم داپاك صفت بیانولوسره په چاچه قرآن نازل شود هغه یوپاك صفت بیان کړې شوچه هغه خاص هم د هغه په عبادت کښې اوسیدونکې دې. د هغه مخلص بنده دې داصفت د ټولونه اوچت صفت دې. د دې د پاره د لویولویونعمتونود بیان په موقعه باندې د نبی‌کریم ﷺ هم دا صفت بیان کړې شوې دې لکه دمعراج په موقعه باندې ﴿سُبْحٰنَ الَّذِيْٓ اَسْرٰى بِعَبْدِهٖ لَيْلًا مِّنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ اِلَى الْمَسْجِدِ الْاَقْصَا الَّذِيْ بٰرَكْنَا حَوْلَهٗ لِنُرِيَهٗ مِنْ اٰيٰتِنَا ؕ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ الْبَصِيْرُ﴾(۳)اولکه چه دخپل خاص عبادت جمعه دمانځه په موقعه اوفرمائیلې شو ﴿وَّاَنَّهٗ لَمَّا قَامَ عَبْدُ اللّٰهِ يَدْعُوْهُ كَادُوْا يَكُوْنُوْنَ عَلَيْهِ لِبَدًا﴾(۴) اوچه کله دالله ﷻ بنده یعنی حضرت محمد ﷺ د الله ﷻ د عبادت دپاره اودریږی الخ. هم داصفت د قرآن کریم د نازلیدلو اوحضور ﷺ له د مقربې فرښتې د راتللود اکرام د بیان په موقعه بیان کړې شو. بیاارشاد اوشو چه د دې پاك کتاب د حضور ﷺ طرف ته نازلیدل ددې د پاره دی چه حضور ﷺ د ټول جهان د پاره خبرورکونکې جوړ شی داسې کتاب چه ټول حکمت اوهدایت والا دې کوم چه پوره تفصیل اوچت ښکاره اومحکم دې کوم له چه خوالد هم باطل نه شی راتلې کوم چه د حکیم اوحمید الله ﷻ د طرف نه نازل شوې دې. چه نبی کریم ﷺ دې تبلیغ په ټوله دنیاکښې اوکړی. هریوسور سپین لرې اونیزدې د الله ﷻ د عذابونونه اوویروی. کوم هم چه د آسمان لاندې اود زمکې د پاسه دې د هغه طرف ته د حضور ﷺ رسالت دې لکه څنګه چه پخپله د رسول الله ﷺ ارشاد دې زه د ټولو سرو اوسپینو انسانانوطرف ته رالیګلې شوې یم(۵)بل ارشاددې ماته پنځه خبرې داسې راکړې شوی دی چه مانه وړاندې یونبی ته هم نه دی ورکړې شوی په دې کښې یوه دا ده چه هر یو نبی به خپل خپل قوم ته لیګلې شو خوزه د ټولې دنیاطرف ته لیګلې شوې یم (۶) پخپله قرآن پاك فرمائی ﴿قُلْ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اِنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَيْكُمْ جَمِيْعَا الَّذِيْ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ يُحْيٖ وَيُمِيْتُ ۠ فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهِ النَّبِيِّ الْاُمِّيِّ الَّذِيْ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَكَلِمٰتِهٖ وَاتَّبِعُوْهُ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ﴾(۷)اې نبی اعلان اوکړه چه اې ددنیاخلقوزه ستاسو ټول طرف ته د الله ﷻ پیغمبریم بیافرمائی چه زه رسول جوړونکې اوراليګونکې اوپه ماباندې داکتاب نازلونکې هم هغه الله ﷻ دې چه دآسمان اوزمکې یوازې مالك

۱) ٤/النساء:۱۳۶.
۲) ۲۵/الفرقان:۳۲-۳۳.
۳) ۱۷/الاسراء:۱.
۴) ۷۲/الجن:۱۹.
۵) صحیح مسلم کتاب المساجد باب المساجد ومواضع الصلاة:۵۲۱، احمد:۴/۴۱۶، مجمع الزوائد۸/۲۵۸.
۶) صحیح بخاری کتاب التیمم باب نمبر۱، حدیث:۳۳۵، احمد:۳/۳۰۴، ابن حبان:۶۳۹۸.
۷) ۷/الاعراف:۱۵۸.



نازلونکي هم هغه الله ﷻ دي چه داسمان اوزمکي يوازي مالك دي.کوم کارچه کول غواړي هغي ته وانی چه اوشه نوهغه هم هغه وخت کیږی هم هغه وژل کوی اوهم هغه ژوندی کول کوی نه د هغه څوك اولادشته اونه د هغه څوك شریك. هریوڅیز د هغه مخلوق اود هغه د پالنې لاندې دې د ټولوخالق مالك رازق اومعبود هم هغه رب دې چه د هریوڅیز اندازه مقررونکې اوتدبیرکونکې هم هغه دې.

| |
|---|
| وَاتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اٰلِهَةً |
| اواونیول خلقو \| بې دهغه نه \| نور خدایان |
| او دې مشرکانو د الله ﷻ |
| لَّا يَخْلُقُوْنَ شَيْـًٔا وَّهُمْ يُخْلَقُوْنَ وَلَا يَمْلِكُوْنَ |
| چې نهٔ پیدا کوی \| هیڅ څیز \| بلکه هغوئ \| پیدا کړې کیږی \| اونهٔ لری اختیارهغوئ \| |
| نه علاوه نور داسې خدایان جوړ کړی دی \| چې هیڅ څیز پیدا کولې نشی \|بلکه دوئ په خپله جوړ کړې |
| لِاَنْفُسِهِمْ ضَرًّا وَّلَا نَفْعًا وَّلَا يَمْلِكُوْنَ مَوْتًا وَّلَا حَيٰوةً |
| دپاره دخانونو خپلو \| دنقصان \| اونهٔ دنفعې \| اونهٔ لری اختیار \| دمرګ \| اونهٔ دژوند \| |
| شوی دی \|اودوئ دخپل ځان دپاره د نفعې او د نقصان څه اختیار نه لری \|اونه د چا دمرګ او نه |
| وَّلَا نُشُوْرًا۝ |
| اونهٔ دپورته کولو دقبرنه |
| دژوند اختیار لری\| |

قوله تعالى:- وَاتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اٰلِهَةً لَّا يَخْلُقُوْنَ شَيْـًٔا

بې اختیاره معبود څنګه؟:-دمشرکانوجهالت بیانولې شی چه هغه خالق مالك قادر مختار بادشاه پریږدی اودهغوی عبادتونه کوی چه څوك دمچ یووزر هم نه شی جوړولې بلکه هغوی پخپله د الله ﷻ جوړ شوی دی اوهم دهغه پیداکړې شوی دی هغوی خپل ځان ته هم څه نفع نقصان رسولومالکان نه دی چه لاتورو سره به څه ښیګړه اوکړی یابه نوروته څه نقصان اورسوی یادویمه څه خبره به اوکړې شی هغوی یا خو د خپل مرګ او ژوندیاد بیا راژوندی کیدوهم اختیارنه لری بیادخپل ځان عبادت کونکی اوددې څیزونو مالکان به څنګه شی؟ خبره هم داده چه ددې ټولوکارونومالك هم الله ﷻ دې هم هغه کوی اوهم هغه وژل کوی هم هغه به ټول مخلوق د قیامت په ورځ د نوی سر نه راژوندی کوی په هغه باندې دا کارګران نه دې دیوپیداکول اود ټولوپیداکول یود مرګ نه پس ژوندې کول او ټول راژوندی کول هغه ته یوشان او برابردی. د سترګې په رپ کښې د هغه حکم پوره کیږی صرف په یوآواز سره به ټول مړ شوې مخلوق به راژوندې شی اود هغه په وړاندې به په یوارت کولاومیدان کښې ولاړوی. بل آیت کښې فرمائیلی دی صرف دیوځل به هم یوآواز وی چه ټول مخلوق به زمونږ په وړاندې حاضر شی[1] هم هغه معبود برحق دې دهغه نه بغیربل څوك رب نشته نه د عبادت لائق څوك شته د هغه غوښتلې شوې کیږی د هغه دخوښې نه بغیرهیڅ هم نه کیږی هغه د هلکانوجینکونه عدیل اوبدیل نه وزیراونظیرنه شریك او سهیم نه پاك دې هغه واحد دې صمددې هغه لم یلد دې هغه لم یولد دې د هغه برابر هیڅ څوك نشته.

---

[1] ) ۳۶/یس:۵۳.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَقَالَ | الَّذِيْنَ | كَفَرُوْٓا | اِنْ هٰذَآ | اِلَّآ | |
| او وائي \| هغه كسان \| چي انكار ئي كړى دى \| چي نه دى دا فرقان \| مگر | | | | | |
| او كافران وائي چي دا (قرآن) خو بس تش | | | | | |
| اِفْكُ | اِفْتَرٰىهُ | وَاَعَانَهٗ | عَلَيْهِ | قَوْمٌ اٰخَرُوْنَ | |
| دروغ دى \| چي دخانه ئي جوړ كړي دى \| او امداد كړي دى دده سره \| په دى كار باندي \| خلقو نورو | | | | | |
| دروغ دى اچي دى سړي دخان نه راجوړ كړي دى او نورو خلقو ورسره ددى جوړولو كښي مدد كړي دى | | | | | |
| فَقَدْ جَآءُوْ | ظُلْمًا | وَّزُوْرًا | وَقَالُوْٓا | اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ | |
| پس راتلل كړي دى دى خلقو \| په ظلم \| او په دروغ سره \| او وائي دوئ \| چي دا قيصي دى پخوانو خلقو | | | | | |
| خلقو ډير زياتي او كړو او غټ دروغ ئي اووئيل او دوئ وائي چي دا د پخوانو خلقو | | | | | |
| اِكْتَتَبَهَا | فَهِيَ | تُمْلٰى | عَلَيْهِ | بُكْرَةً | وَّاَصِيْلًا |
| چي ليكي ئي دى په بل چا \| او هم دغه ليكل \| اوروليِ كيږي \| په ده باندي \| صبا \| او بيگاه | | | | | |
| قيصي دى اچي دى سړي په چا ليكلي دى انو هم دغه ليك ورته صبا بيگاه اوروليِ شي | | | | | |
| قُلْ | اَنْزَلَهُ | الَّذِيْ | يَعْلَمُ | السِّرَّ | فِي السَّمٰوٰتِ |
| ورته اووايه \| چي نازل كړي دى دا فرقان \| هغه چا \| چي پوهيږي \| په هر پټ راز \| چي په آسمانونو | | | | | |
| نه ورته اووايه چي دا (قرآن) هغه ذات نازل كړي دى اچي هغه ته دزمكي او اسمانونو | | | | | |
| وَالْاَرْضِ | اِنَّهٗ | كَانَ | غَفُوْرًا | رَّحِيْمًا | |
| او زمكه كښي دى \| بيشكه چي الله \| دى \| بښونكي \| مهربانه \| | | | | | |
| هر يو راز معلوم دى ابيشكه هغه بښونكي مهربان دى \| | | | | | |

**قوله تعالى:- وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اِنْ هٰذَآ**

**د كافرانو په رسول الله ﷺ باندي دروغ او دهغه جواب:-** د مشركانو يو جهالت پورته آياتونو كښي بيان كړي شو كوم چه د الله ﷻ د ذات باره كښي وو دلته دويم جهالت بيانولي شي چه د رسول الله ﷺ ذات مبارك سره دي هغوى وائي چه داقرآن پاك خو هغه د نورو په امداد سره هم پخپله د خان نه جوړ كړي دي الله ﷻ فرمائي چه دادي د هغوى ظلم اودروغ د كوم دباطل كيدوچه هغوى ته پخپله هم علم دى وائي خو پخپله دخپلو معلوماتو هم خلاف وائي كله بكواسونه كوى چه دوراندي كتابونو قصي ده ليكلي دى هم هغه سحراومابنام په خپل مجلس كښي لولي.دا دروغ هم هغه دى په كوموكښي چه د چاهم څه شك نشته څكه چه صرف اهل مكه نه بلكه دنياپيژنى چه زمونږ نبى ﷺ امي وونه ئي ليكل پيژندل اونه لوستل.

**د څلويښتوكالو پوري درسول عليه السلام حالت:-** دڅلويښتوكالويه اولني ژوند كښي يوساعت هم داسي نه ووپه كوم باندي چه څوك گوته اوچته كړي شي.دحضور ﷺ يو يوصفت داسي وو په كوم چه زمانه گواه وه په كوم چه اهل مكه فخركولو دحضور ﷺ عام مقبوليت اومحبوبيت اوچت اخلاق دمعاملي په ښه

طريقه کول دومره زيات شوې وو چه په هرپوزره کښې د حضورﷺ مقام وو عامو ژبوبه هغوی ته محمدآمين په ښکلې خطاب سره يادولو. دنيا به د حضورﷺ په قدمونوکښې خپلې سترگې غوړولې کوم يوزړه وو چه د حضرت محمدﷺ کورنه وو؟ کومه يوه سترگه به وی چه په هغې کښې د احمد عزت نه وی؟ کومه يوه گنړه وه چه په هغې کښې به دحضور ﷺ د خيرذکر نه وی؟ کوم يوهغه سړې وو چه د حضورﷺ دبزرگئی صداقت امانت نيکئی اوښيگړې قائل نه وو؟

**د نبوت نه پس حالت:**-بيا چه کله د الله ﷻ د ټولونه په اوچت عزت سره حضورﷺ عزت دارکړې شو د آسمانی وحی حضورﷺ امين جوړکړې شو نوصرف دپلار نيکه طريقې ختميدوسره ليدو باندې نودا بې وقوفان دبې کونې باډولی په شان راگرگړې شودتالی دبيگن په شان اخواديخواشو.خودخبرو جوړولو او عيبونه لټولوخود دروغو پټبې چرته وی؟ کله به ئې حضورﷺ ته شاعر ونيل کله ساحر کله مجنون او کله کاذب. حيران وو چه څه ورته اووايو؟ اوځنگه دا خپل جاهلانه طريقه ژوندې پاتې کړو اود خپلو باطلومعبودانو جهنډا څنگه پرينوځی؟ اوځنگه دتيارودکه دنيا د الله ﷻ په نورسره روښانه نه کړې شی هغوی ته جواب ملاويږی چه د قرآن رښتونې مطابق واقع حق خبرې د الله ﷻ ورکړې شوی دی کوم چه دغيبوعالم دې د چانه چه يوه ذره پټه نه ده چه دتيروشوو بيان په دې کښې دې حق دې دراتلونکی وخت بيان په دې کښې دې رښتيادې د الله ﷻ په وړاندې شوې دې اوکيدونکې خبرې يوشان دی هغه غيب هم داسې پيژنی لکه چه ښکاره.دې نه پس خپل د غفاريت شان اود رحم اوکرم شان بيان فرمانی دې د پاره چه خراب خلق هم د هغه نه نااميده نه شی که هرڅه ئې کړی وی خوچه اوس خو هغه ته تيټ شی توبه اوکړی او په خپلو کړو باندې پښيمانه شی اود رب رضا اوغواړی د رحيم د رحمت نه قربان شم چه داسې سرکشه اود الله ﷻ دښمنان اود رسول الله ﷺ داسې بهتان تړونکی دومره سزاگانې ورکونکی خلقو ته هم د خپل عام رحمت دعوت ورکوی اود خپل کرم طرف ته هغوی راغواړی. که هغوی الله ﷻ ته بدوانی که رسول الله ﷺ ته بدوانی په کلام الله پورې خبرې کوی او الله ﷻ د هغوی د خپل رحمت طرف ته لارخودنه کوی دخپل فضل اوکرم طرف ته دعوت ورکړی اسلام اوهدايت په هغوی باندې پيش کړی خپلې ښکلې خبرې هغوی‌ته ښې کړی اوپوهه ئې کړی. په يوبل آيت کښې د عيسايانود تثليث پرستئی (ددريوخدايانو) ذکرکولوسره دهغوی دسزاگانوبيان کولوسره فرمانی﴿أَفَلَا يَتُوبُونَ إِلَى اللَّهِ وَيَسْتَغْفِرُونَهُ ۚ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ (۱)داخلق ولې الله ﷻ ته توبه نه کوی؟ ولې دهغه طرف ته نه تيټيږی اود هغه نه د خپلو گناهونو معافی ولې نه غواړی؟ هغه خوډير زيات ښونکې اومهربان دې. مؤمنان تنگونکی هغوی په فتنه کښې اچونکوذکر کولوسره په سورت بروج کښې فرمانی چه که داسې خلق هم توبه اوکړی د خپلو خرابوکارونونه اخواشی نوزه به هم د هغوی نه خپل عذاب اخواکړم او رحمتونوکښې به ئې داخل کړم. امام حسن بصری خومره ښکلې اومزيداره خبره بيان کړې ده هغوی فرمائی چه د الله ﷻ رحم اوکرم ته اوگوره چه دا خلق د هغه گران اوقدردان بنديگان تنگوی وهی ټکوی قتل کوی اوهغه دوی د توبه طرف ته اود خپل رحم اوکرم طرف ته راغواړی. فسبحانه اعظم شانه.

| وَقَالُوٓا |
| --- |
| ا او واني دوئ ا |
| ا اودوئ واني |

---

(۱) المائدة/۵: ۷۴.

مَالِ هٰذَا الرَّسُوْلِ يَأْكُلُ الطَّعَامَ وَيَمْشِيْ فِي الْاَسْوَاقِ ۭ لَوْلَآ اُنْزِلَ

څه دی دې رسول لره | چې خوري | طعام | او ګرزي | په بازارونو کښې اولې رااونه لیږلی شوه

دا لا څنګه رسول دی چې خوراکونه کوي| او په بازارونو کښې ګرځي ادهٔ ته څوک فرښته

اِلَيْهِ مَلَكٌ فَيَكُوْنَ مَعَهٗ نَذِيْرًا ۙ اَوْ يُلْقٰٓى اِلَيْهِ

دهٔ ته | یوه فرښته | چې وي | دهغه سره | یرونکی | یا چې راغورزولې شوې وې | دهٔ ته |

ولې راونه لیږلې شوه اچې هغه ورسره د ویرولو دپاره ملګرې وې ایا ورته د غیبو

كَنْزٌ اَوْ تَكُوْنُ لَهٗ جَنَّةٌ يَّاْكُلُ مِنْهَا ۭ وَقَالَ الظّٰلِمُوْنَ

یوه خزانه | یا چې وي | دهٔ لره | یو باغ | چې خوراك ئې كولې | دهغې نه | اووائي ظالمان

خزانه ورکړې شوې وې ایا ورسره باغ وې اچې دهغې نه ئې خوړلې ااودا ظالمان وائي

اِنْ تَتَّبِعُوْنَ اِلَّا رَجُلًا مَّسْحُوْرًا ۝ اُنْظُرْ كَيْفَ ضَرَبُوْا

نهٔ یئ روان تاسو| مګر | په یو سړي پسې | چې جادوپرشوېدې |او ګوره اے نبی| څرنګې بیانوی دوئ

چې تاسو خلق خو په داسې سړي پسې روان یئ اچې جادو پرې شوې دې |ائې نبی ﷺ ! اوګوره کنه

لَكَ الْاَمْثَالَ فَضَلُّوْا فَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ سَبِيْلًا ۝ؑ

تالره | مثالونه | پس دوئ بې لارې شوی دی | پس دوئ طاقت نهٔ لري | دلارې موندلو

دوئ ستا په حقله څنګه عجیبه عجیبه خبرې کوي |دوئ ګمراه شول نو څکه دوئ سمه لار موندلې نشي

تَبٰرَكَ الَّذِيْٓ اِنْ شَاۗءَ جَعَلَ لَكَ خَيْرًا

ډیر برکت والا دې | هغه ذات | که اوغواړي | نو اوبه ګرځوی (دربه کړي) | تالره | بهتره

هغه ذات ډیر د برکت خاوند دې |که اوغواړي نو تاته بهٔ ددې نه هم بهتر څیز درکړي

مِّنْ ذٰلِكَ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ۙ

ددې څیزونو نه | ډیر باغونه (به وی) | چې بهیږي به | لاندې (دونو) دهغې نه | نهرونه

(یعنی) باغونه چې دهغې (دونو) لاندې به ولې بهیږي |اوستا دپاره به

وَيَجْعَلْ لَّكَ قُصُوْرًا ۝ بَلْ كَذَّبُوْا بِالسَّاعَةِ ۣ وَاَعْتَدْنَا

او جوړ به کړي تالره | محلونه | بلکه دروغ ګڼړلي دوئ | قیامت | او تیار کړي دي مونږه

محلونه جوړ کړي| خبره داده چې دا خلق د قیامت نه منکر دی |اوڅوک چې د قیامت نه

لِمَنْ كَذَّبَ بِالسَّاعَةِ سَعِيْرًا ۝ؑ اِذَا رَاَتْهُمْ

دپاره دهغه چا | چې دروغ ګنړي | قیامت | دلمبوور | کله چې | اووینې دوئ هغه وور

منکر وی انو مونږ هغوئ دپاره دوزخ تیار کړې دې |څه وخت چې هغه (خلق)

مِّنْ مَّكَانٍۭ بَعِيْدٍ سَمِعُوْا لَهَا تَغَيُّظًا وَّزَفِيْرًا ۝ وَاِذَآ

دځائې | لرې | نه | وابه وري دوئ | دغه اور لره | غصه | او اوازونه | او کله چې

دوزخ د لرې نه اووینی |.........نو دوئ به دهغه غصه او اوازونه واوري |اوهر کله چې

| لِكَ | دَعَوْا هُنَا | مُّقَرَّنِيْنَ | ضَيِّقًا | مَكَانًا | مِنْهَا | أُلْقُوْا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| هلته | اوازونه به اوکړي | ترلي شوي | تنګ ته | خاني | ددوزخ نه | اوغورزولي شي دوئ |

دوئ ددزخ په يو تنګ ځائي زنځيرونو کښې تړلي شوېا وغورزولي شي انوهلته به دمرګ دعاګاني

| ثُبُوْرًا كَثِيْرًا | ثُبُوْرًا | وَّادْعُوْا | وَّاحِدًا | ثُبُوْرًا | الْيَوْمَ | لَا تَدْعُوا | ثُبُوْرًا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| دير | مرګ | اوراوبلئ | يو | مرګ(هلاکت) | نن ورځ | مهٔ رابلئ تاسو | هلاکت ته |

اوغواړي | (ورته بهٔ اووئيلي شي) چې نن مرګ مه غواړئ ابلکه ډيرډير مرګونه غواړئ

**قوله تعالى:- وَقَالُوْا مَالِ هٰذَا الرَّسُوْلِ يَأْكُلُ الطَّعَامَ**

**دنبوت مقام اودجاهلانواعتراضونه:-** دې بې وقوفتوب ته ګوره درسول الله ﷺ درسالت نه د انکارو چه بيانوى چه دې دخوراك څښاك ولې محتاج دې اوبازارونوته دتجارت اولين دين د پاره ولې خى راځى؟ ده سره يوفرښته ولې نازله نه کړې شو؟چه هغې دده د دعوې تصديق کړې وواوخلق ئى دده ددين طرف ته رابللي او دالله ﷻ دعذاب نه ئى خبرولې. فرعون هم دا وئيلي ووچه ﴿فَلَوْلَآ أُلْقِيَ عَلَيْهِ أَسْوِرَةٌ مِّنْ ذَهَبٍ أَوْجَآءَ مَعَهُ الْمَلٰٓئِكَةُ مُقْتَرِنِيْنَ﴾[1] ده ته د سرو زرو بنګړې ولې نه دى اچولي شوى ياد ده د امداد دپاره دآسمان نه فرښتې ولې نه نازليږي؟ ددې کافرانوزړونه يو شان دى دحضورﷺ دزمانې کافرانوهم داسې وئيلې ووچه ښه ده که داسې نه وى نوده ته يوه خزانه ولې نه شى ورکولې چه ته پخپله په آرام باندې خپل ژوندتيرکړې وې اونورخلقو ته ئى هم ورکولې يادهٔ سره چرته يوګرځيدونکې باغ وې چه د خپل خوراك څښاك نه خو بې فکره وو بيشکه دا هرڅه په الله ﷻ باندې آسان دى. خو زردا څيزونه نه ورکولوکښې هم حکمت دې دا ظالمان مسلمانان هم دهوکه وى اووانى چه تاسو يو داسې سړى پسې لګيدلې ئى په کوم چه چاجادوکړې دې.ګوره خوځنګه بې بنياده خبرې کوى؟چرته په يوه خبره هډواودريږى نه اخوا ديخوا اوړى راوړى. کله ئى ورته جادوګراووئيل نو کله ئى په ده باندې دجادوکيدلواووئيل لکه ئى ورته شاعر اووئيل اوکله ئى ورته دچاخودلې اووئيل کله ئې‌ورته کذاب اوکله مجنون اووئيل سره د دې چه دا ټولوخبرې فضول بکواس دې اود دې غلط کيدل ددې نه هم ثابت دى چه پخپله په دوى کښې اختلاف اوتضاددې. په يوه خبره پخپله ددې کافرانو اعتماد نه پيداکيږي.کله ئى پريږدى اوکله ئى بيا کوى.کله ئى بدلوى په يوه صحيح خبره هډواودريږى نه. کوم طرف ته چه متوجه کيږى لارهيروى تکړې خورى حق خو يوه خبره ده په دې کښې مخالفت اواعتراض نه شى کيدلې.ناممکن دى چه داخلق د دې ګډوډو خبرونه اووتلې شي بې شکه که رب اوغواړى نوداکافران چه څه وانى د دې نه ډير بهتر خپل نبى ﷺ ته په دنياکښې ورکړى هغه د ډيروبرکتونو والا دې د کانړو نه جوړشوى کورته عرب قصروانى که هغه لوئ وى اوکه وړوکې([2])حضورﷺ ته خود الله ﷻ د طرف نه وئيلې شوى وو که تاسو غواړئ نود زمکې خزانې اود هغې کنجيانې تاته درکړې شى اودنيابه دومره مالك کړې شې چه بل چاته به دومره نه وى ملاوشوې.دې سره به ستاد آخرت انعامونه ځنګه چه دى هم هغه شان به باقى وى خورسول الله ﷺ دا خوښ نه کړل اوجواب ئى ورکړو چه زمادپاره داټول هم په آخرت کښې جمع کړه.

**دکافرانو د جوابونوجه او دوئ ته جوابونه:-** بيافرمائى داڅه چه دوى وائى داصرف په تکبر دبښمنئى ضد د وجه نه وائى.دا نه دى چه ددوى وئيلې شوې وينابه اوشى نودوى به مسلمانان شى.هغه وخت به بيا څه بل څه بهانه جوړه کړى ددوى په زړه کښې خودا خيال دې چه قيامت نه کيدونکې دې خوداسې

---

[1] ) ٤٣/الزخرف:٥٣.
[2] ) الطبرى:٢٤٣/١٩.

خلقو د پاره مونږ هم دردناک عذاب تیار کړې دې کوم چه دهغوی د برداشت نه بهر دې چه لمبې وهونکې سورکیدونکې اوسوزونکې تیزاوردې. اوس به لادوزخ د دوی نه د سلوکالو په فاصله وی چه کله د هغوی نظر په دوزخ اود دوزخ نظر په دوی باندې پریوځی نو هغه دوزخ به تاویږی راتاویږی او په جوش اوتیزئی سره به آوازونه راوباسی کوم چه به دابدنصیب اوری اودهغوی واربه خطاکیږی هوش به ترې خی واربه ئی خطاکیږی دوزخ به په دې بدکارانو باندې غابنونه چیچی او په غصه کښې به تاویږی او شوربه کوی چه کله به ددې کافرانو یوه نواله جوړه کړی ارکله به د دې ظالمانونه بدله واخلم؟

**ددوزخ دپاره سترګې هم شته خطرناک اوازونه به کوی:**-سورت تبارک کښې دی کله چه داخلق په دې کښې واچولې شی نود لرې نه به د دې ویرونکی آوازونه اوری اوهغه به داسې لمبې وهی چه هم اوس به د جوش د وجه نه اوشلیږی.(۱)ابن ابی حاتم کښې دی رسول الله ﷺ اوفرمائیل کوم سړې چه زمانوم واخلی اوزما په ذمه هغه خبره اوکړی کومه چه مانه وی کړې اوکوم سړې چه دخپل مورپلارنه بغیربل چاته مورپلار اوښائی اوکوم غلام چه دخپل آقانه بغیر بل طرف ته د خپلې غلامئ نسبت اوکړی هغه دې د دوزخ د دواړو سترګوپه مینځ کښې خپل ځائ جوړ کړی. خلقو ونیل یارسول الله ﷺ د دوزخ هم سترګې دی؟حضور ﷺ اوفرمائیل او ولې تاسود الله ﷻ د کلام داآیت نه دې اوریدلې ﴿إِذَا رَأَتْهُم مِّن مَّكَانٍ بَعِيدٍ سَمِعُوا لَهَا تَغَيُّظًا وَزَفِيرًا﴾(۲)یوځل حضرت عبدالله بن مسعود ﷜ حضرت ربیع ﷫ وغیره خان سره اخستې وو چرته روان وو په لارکښې دلوهاردکان راغلوهغوی هلته اودریدل اوکومه اوسپنه چه په اور کښې ګرمیدله هغه ئی اوکتله. د حضرت ربیع خو ډیر خراب حال شو د الله ﷻ د عذاب نقشه ئی د سترګو په وړاندې راتیره شوه نیزدې وه چه بې هوشه شوې راپریوتلې وو.دې نه پس هغه د فرات غاړې له لاړو هلته ئی تندور اولیدلوچه دهغې په بیخ کښې اورشغلې وهلې ناڅاپې دهغوی د ژبې نه دا آیت اووتلوددې اوریدوسره حضرت ربیع بې هوشه شو راپریوتلو په کټ ئی واچولو کورته ئی راورسولو. د سحرنه واخله ترغرمې پورې حضرت عبدالله بن مسعود﷜ هغه سره ناست وو او خیال ئی کولو خو حضرت ربیع ته هوش رانغلو. د حضرت ابن عباس ﷜ نه روایت دې کله چه دوزخیان د دوزخ طرف ته رابنکلې شی دوزخ به چغې کړی اوداسې غوراړې به شروع کړی چه ټول اهل محشر به اوویریږی. بل روایت کښې دی بعضې خلق چه کله دوزخ ته بوتلې شی دوزخ به راغونډشی الله ﷻ چه مالك رحمن دې دده نه تپوس اوکړی داڅه خبره ده؟ هغه به جواب ورکړی یاالله ده خو به په خپلو دعاګانوکښې د دوزخ نه پناه غوښتله نن هم پناه غواړی. الله ﷻ ته به رحم راشی حکم به اوشی چه دې پریږده. څه نور خلق به بوځی هغوی به وائی اې پروردګار زمونږ خو ستانه داګمان نه وو الله ﷻ به فرمائی تاسو څه ګنړل؟ هغوی به وائی هم دا چه ستا رحمت به مونږ پټ کړی ستاکرم به زمونږ سره شامل حال شی ستا خور رحمت به مونږ په خپله لمن کښې واخلی. الله ﷻ به د هغوی خواهش هم پوره کړی او حکم به اوکړی چه زما داپندیګان هم پریږده. څه نور خلق به رابنکونکې راولی د دوی په کتلو سره به دوزخ شور جوړکړی اود هغوی طرف ته به وراوړاندې شی اوداسې غرمبارې به شروع کړی چه ټول اهل محشر به اوویریږی. حضرت عبیدبن عمیرفرمائی کله چه دوزخ د غصې په وجه رچیږی اوشور چغې صورې جوش اوخروش شروع کړی هغه وخت به ټولې مقربې فرښتې اوعزت داره اود درجو پیغمبران به رچیږی تردې چه حضرت ابراهیم خلیل الله ﷺ به هم په زنګونونوباندې راپریوځی اووائی به چه اې الله زه نن تانه صرف د خپل خان بچاوغواړم نور هیڅ نه غواړم. داخلق به داسې په تنګو اوتیارو مکانونوکښې وراوټومبلې شی لکه چه نیزه په یوه سوره کښې وی.په بل روایت کښې دحضور ﷺ ددې

(۱) ۶۷/الملك:۷-۸.

(۲) ۲۵/الفرقان:۱۲.الطبری:۱۹/۲۴۴.

شی لکه چه نیزه په یوه سوره کښې وی.په بل روایت کښې دحضورﷺ دديٍ ایت متعلق سوال کیدلوسره د حضورﷺ دا فرمائیل نقل دی لکه چه میخ په دیوال کښې په سختنئی سره ټکوهلې شی دغه شان به دا دوزخیان ورخښولې شی دوی به هغه وخت ښه راګیر کړې شوی وی،وینښته وینښته به نی تړلې وی. هلته به هغوی مرګ ته مرګ اوهلاکت ته به حسرت وانی هغوی ته به ونیلې شی چه یومرګ ولې راغوارئي؟ ولې په سوونوزرګونومرګ نه راوغوارئی؟ مسند احمد کښې دی د ټولونونه اول به ابلیس ته د دوزخ لباس واغوستلې شی دی به دا په خپل تندی باندې کیږدی د روستونه به نی راکاږی اوخپل اولاد به روستولګولوسره به مرګ او هلاکت ته چغې وهی او منډې به وهی. ده سره به د ده اولاد هم ټول ارمان اوافسوس مرګ او غرقیدل راغواړی هغه وخت به هغوی ته دا ونیلې شی (۱) د ثبور نه مراد مرګ هلاکت ویل حسرت خساره بربادی وغیره دی. لکه چه موسی علیه السلام فرعون ته ونیلې وو ﴿وَاِنِّیْ لَاَظُنُّكَ يٰفِرْعَوْنُ مَثْبُوْرًا﴾(۲)فرعون زه دا ګنړم چه ته به ختمیږی بربادیږې به.شاعر هم لفظ ثبور د هلاکت او بربادئی په معنی کښې راوړی.

| قُلْ | اَذٰلِكَ | خَيْرٌ | اَمْ جَنَّةُ الْخُلْدِ الَّتِيْ | وُعِدَ |
|---|---|---|---|---|
| ورته اووایه | آیا دا انجام | بهتر دی | یا جنت دهمیشوالی | هغه \| چې وعده شوی ده (دهغې) |
| تپوس تري نه اوکړه چې دا (دوزخ) غوره دې اِیا همیشه جنت کوم چې د نیکانو خلقو | | | | |
| اَلْمُتَّقُوْنَ | كَانَتْ | لَهُمْ | جَزَآءً وَّمَصِيْرًا | لَهُمْ |
| دپرهیزګارانو سره | وی به (دا) | دپاره دهغوی | بدله \| او ځائي دورتلو | وی به دپاره دهغوی |
| سره وعده شوې ده \| هغه ددوئ دپاره بدله او د واپس راتلو ځائي دې \| هلته چه دوئ څه | | | | |
| فِيْهَا | مَا | يَشَآءُوْنَ | خٰلِدِيْنَ | كَانَ \| عَلٰى رَبِّكَ |
| په هغې کښې | هغه څه | چې غواړی هغوئ | همیشه به وی په هغې کښې | داده \| په رب ستا باند |
| غواړی هغه به موجود وی \| همیشه به په کښې اوسیږی \| دایوه وعده ده \| ستاسو درب | | | | |
| وَعْدًا | مَّسْئُوْلًا | | | |
| وعده | غوښتلي شوی (خامخا پوره کونکی) | | | |
| په ذمه دغوښتلو قابله | | | | |

**قوله تعالی:- قُلْ اَذٰلِكَ خَيْرٌ اَمْ جَنَّةُ الْخُلْدِ الَّتِيْ وُعِدَ الْمُتَّقُوْنَ**

**جنت او جنتیان:-** پورته بیان اوفرمائیلې شو چه دابدکاران به پړمخې په ذلت اوخواریدوسره د دوزخ طرف ته رابښکلې شی او سرښکته به هلته غورزولې شی. بنداوتړلې شوی به وی او تنګ تیاره ځایٔ به وی نه خلاصیدې شی نه حرکت کولې شی نه تختیدې اونه وتې شی. بیافرمائی چه اوښایه دا ښه دی که هغه کوم چه په دنیاکښې دګناهونونه بچ کیدل د الله ﷻ ویره نی په زړه کښې وه اونن د هغې په بدله کښې خپل اصلی ځایٔ ته اورسیدل یعنی جنت ته کوم ځایٔ چه د خپلې خوښې نعمتونه دی د همیشه خوندونه دې دهمیشه خوشحالئی دی چه د هغوی د پاره موجود دی، ښکلې خوراکونه ښکلې اسبابونه بسترې مزیدارې سورلئی ښائسته لباسونه ډیر ښکلی کورونه جوړشوی ښائسته کړې شوی پاکې صفا

---

(۱) احمد:۳/۱۵۲ مصنف ابن ابی شیبة :۷/۵۵

(۲) ۱۷/الاسراء:۱۰۲

حورې خوندورکونکې نظارې د هغوی د پاره موجود دی چرته چه د چا نظر خوځه چه خیال نې هم نه شي رسیدلې اونه ددې مزو بیان د چا غوږ اورېدلې. بیا د دې د کمیدو یا خرابیدو ماتیدو ختمیدو هم څه خطره نشته نه به د هغه ځایٔ نه ویستې شي اونه به دغه نعمتونه کم شي. نه ختمیدونکې بهترین ژوندد مدام رحمت اودهمیشه دولت به دوی ته ملاوشو اوهم د دوی شو.دا درب احسان او انعام دې چه په هغوی باندې اوشو اودکوم چه دوی حقدار وو.درب تعالی عزوجل وعده ده چه هغه په خپله ذمه کړې ده.کوم چه به کیرې دکومې نه کیدل چه ناممکن دی اودکوم چه غلط کیدل محال دی.دهغه نه دهغه د وعدې دپوره کولو سوال کوئی دهغه نه جنت غوارئی هغه ته خپله وعده وریاده کړئی داهم د هغه فضل دې چه د هغه فرښتې د هغه نه دعا کوی چه اې رب العالمین ستا بندیګانوسره چه ستا کومه وعده ده هغه پوره کړه دوی جنت عدن ته بوځه. د قیامت په ورځ به مؤمن وائی چه اې زمونږ پروردګار! ستا وعده مونږ وراندې کیخودې وه اوعمل مو کولو نن ته خپله وعده پوره کړه. دلته اول د دوزخیانو ذکر اوشوبیاد سوال کولونه پس د جنتیانوذکر اوشو. په سورت صافات کښې اول د جنتیانو ذکر اوشو اود سوال نه پس بیا د دوزخیانوذکر اوشو چه آیا دغه بهتر دی که د زقوم ونه؟ کوم چه مونږ د ظالمانو پاره فتنه اوازمیښت جوړکړې دې. کومه چه د دوزخ د بیخ نه راوخی د کومې میوې چه دومره بدرنګه دی لکه د مار چجه. دوزخیان به دا خوری اوپه دې به خیټه ډکوی بیابه خوټکیدلې اوبه وینې نوونه وغیره ګډودې کړې شوې اوبه دوی‌ته ځکلوله ورکوی اوبیا به دوی په دوزخ کښې وی. هغوی خپل پلاران نیکونه ګمراه اولیدل اوډیر زیات نې هغوی پسې تړپونه شروع کړه. (۱)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| | وَيَوْمَ | يَحْشُرُهُمْ | | |
| | \| او هغه ورځ \| چې راجمع کړی الله دویٔ لره \| | | | |
| | \|او په کومه ورځ چې الله ﷻ دویٔ راجمع کړی \| او ورسره | | | |
| وَمَا | يَعْبُدُونَ | مِنْ دُونِ اللّٰهِ | فَيَقُولُ | ءَاَنْتُمْ |
| او هغه معبودان \| چې عبادت ئې کوی دویٔ \| بې دالله نه \| نو اوبه وانی الله دویٔ ته \| ایا تاسو \| | | | | |
| هغه معبودان هم چې دویٔ به ئې دالله ﷻ نه بغیر عبادت کولو انو بیا به ورته اووائی چې | | | | |
| اَضْلَلْتُمْ | عِبَادِيْ هٰٓؤُلَآءِ | اَمْ هُمْ ضَلُّوا | السَّبِيْلَ۞ | قَالُوْا |
| بې لارې کړی وؤ \| بندګان زما \| دا کسان \| یابې لارې شوی وؤ پخپله \| دنیغې لارې نه \| اوبه وانی هغویٔ | | | | |
| ایا تاسو زما دا بندګان ګمراه کړی وو؟ ایا دویٔ پخپله دلارې نه بې لارې شوی وو؟ | | | | |
| سُبْحٰنَكَ | مَا كَانَ يَنْۢبَغِيْ لَنَآ | اَنْ نَّتَّخِذَ | مِنْ دُوْنِكَ | مِنْ اَوْلِيَآءَ |
| پاکي ده تالره \| نه ښائي مونږ لره \| چې اونیسو مونږ \| بې ستا نه \| څوك دوستان \| | | | | |
| هغویٔ به اووائی ستا دپاره پاکی ده \|مونږ دپاره دا خبره مناسب نه وه \|چې ستا نه بغیر مو بل مددګار نیولې | | | | |
| وَلٰكِنْ مَّتَّعْتَهُمْ | وَاٰبَآءَهُمْ | حَتّٰى | نَسُوا الذِّكْرَ | |
| ولیکن نفع ورکړه تادویٔ ته \| او پلارانو ددویٔ ته \| تر دې پورې \| چې هیر کړو دویٔ نصیحت \| | | | | |
| لیکن (حقیقت دادې) چې هم تا هغویٔ او دهغویٔ پلارانوته خوشحالي ورکړې ده \| تردې چې ستایادول | | | | |

(۱) ۳۷/الصافات: ٦٢-٧٠.

وَكَانُوا قَوْمًا بُورًا ﴿١٨﴾ فَقَدْ كَذَّبُوكُم

او وو دوی | یو قوم | هلاك شوي | پس دغه شان به دروغژن کړي هغه معبودان تاسو لره |

ئي هیر کړل | او هلاک شول | نو (دغه فرضي معبودانو) ستاسو خبري پخپله دروغژني کړي | نو او س نه

بِمَا تَقُولُونَ ۙ فَمَا تَسْتَطِيعُونَ صَرْفًا

په هغه خبره کښې | چې وایئ تاسو | نو نۀ به لرئ طاقت تاسو | دا ړولو دعذاب (دخان نه) |

خو تاسو په خپله دا (عذاب) بندولي شئ | او نه دچا نه مدد

وَلَا نَصْرًا ۚ وَمَن يَظْلِم مِّنكُمْ نُذِقْهُ

او نۀ دمدد کولو دیو بل سره | او هغه څوك | چې ظلم ئي اوکړو | ستاسو نه | او به څکوؤ هغه ته |

اخستلي شئ | او چاچې په تاسو کښې (په ځان ظلم) اوکړو | نو مونږ بۀ پرې دغټ عذاب

عَذَابًا كَبِيرًا ﴿١٩﴾

عذاب لوئ |

مزه څکوو |

**قوله‌تعالى:- وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ وَمَا يَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ**

**مشرکان اود هغوی معبودان د الله ﷻ په عدالت کښې** :- بیان کولې شی چه مشرکانو د الله ﷻ نه بغیر د چاچا عبادتونه کول دقیامت په ورځ به هغه په دوی باندې سره دعذابه زبانی رټنې دپاره هم راوستلې شی دې دپاره چه هغوی پښیمانه شی. حضرت عیسی ﷺ حضرت عزیر ﷺ اوفرښتې د کومو کومو چه دوی عبادتونه کړې وو[1] ټول به موجود وی اوعبادت کونکی هم اوټول به په دې ګنړه کښې حاضر وی. هغه وخت به الله ﷻ ددې معبودانو نه تپوس اوکړی چه آیاتاسو زمادې بندیګانوته دخپل عبادت کولو وئیلې وو یادوی پخپله داسې کول؟په بل آیت کښې دی چه دحضرت عیسی ﷺ نه به هم داسې سوال کولې شی؟دکومې چه به هغوی داجواب ورکړی ما هیڅ کله دوی ته داسې تعلیم نه دې ورکړې لکه څنګه چه تاته بنه معلومه ده. ماخودوی ته هم هغه وئیلې وو کوم چه تاماته خودلې وو چه د عبادت لائق صرف هم یو الله ﷻ دې[2]دا ټول معبودان چه د الله ﷻ نه علاوه وو اودالله ﷻ ربنتونې بندیګان وو دشرك نه ویزاره وو جواب به ورکړی چه یومخلوق ته مونږ ته یا دوی ته دا لائق نه وو چه تانه بغیرد بل چا عبادت اوکړو. مونږ چرې هم دوی ته د شرك تعلیم نه وو ورکړې.هم پخپله دوی د خپلې خوشحالنی نه دنورو عبادت کول شروع کړی وو.مونږ د دوی نه او ددوی دعبادتونونه ویزاره وو.مونږ د دوی ددې شرك نه خلاص یومونږ خو پخپله ستا عبادت کونکی یو بیاداڅنګه ممکن وه چه د معبودیت په منصب باندې راشو؟ داخو مونږ له هډو جائز نه وه. ستا ذات د دې نه پاك اوډیراوچت دې چه ستا دې څوك شریك وی.یوبل آیت کښې صرف دفرښتو نه ددې سوال کیدل بیان شوی دی.(نَتَّخِذَ)دویم قراءت (نُتَّخَذَ) هم دې یعنی دا هیڅ شان سره نه شو کیدې نه زمونږ دپاره دالائق ووچه خلق دې زمونږ عبادت اوکړی اوستاعبادت دې پرېږدی.څکه چه مونږ خوپخپله ستا بندیګان یو اوستاد درسوالګریو. په دواړو صورتونوکښې مطلب نیزدې نیزدې هم یو دې. د هغوی د دهوکه کیدو وجه خو زمونږ په عقل

[1] الطبری:۲٤۷/۱۹.
[2] الطبری:۲٤۷/۱۹.

صرف داراخې چه دوی ته عمرونه ملاو شوخوراك څښاك ورته ملاو شوبدمستئ كښې ورانډې شو ترډې چه دمعرفت كوم نصيحت درسولانو په ذريعه رسيدلې وو هغه نې هيركړوستا د عبادت نه او ربښتونې توحيد نه اخوا شو.داخلق وو هم بې خبرد هلاكت په كنده كښې پريوتل اوتباه برباد شول.(بورا) نه مطلب هلاكت والا دی(۱) لكه څنګه چه ابن زبعری ااا په خپل شعركښې دالفظ هم په دې معنی كښې ترلې دې.اوس به الله ﷻ دې مشركانو ته اوفرمائې كورنې اوس خوستاسو دمعبودان پخپله تاسو دروغژن ګڼړې تاسو خودوی خپل ګڼړلې وو اوداخيال مو كولو چه دوی به تاسو الله ﷻ ته ورنيزدې كړی د هغوی عبادتونه موكول نن دوی تاسو نه په ميلونوتختې تاسو نه خان له كيږې اوويزاري درنه ښكاره كوی.لكه چه ارشاد دې ﴿وَمَنْ أَضَلُّ مِمَّنْ يَدْعُوا مِنْ دُونِ اللَّهِ مَنْ لَا يَسْتَجِيبُ لَهُ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ وَهُمْ عَنْ دُعَائِهِمْ غَافِلُونَ ۝ وَإِذَا حُشِرَ النَّاسُ كَانُوا لَهُمْ أَعْدَاءً وَكَانُوا بِعِبَادَتِهِمْ كَافِرِينَ ۝﴾(۲)يعنې ددې نه به زيات ګمراه څوك وی چه دالله ﷻنه بغيرداسې نورو ته آواز كوی چه د قيامت پورې د هغوی خوښه نه شی پوره كولې بلكه هغوی خود دوی د دعا نه غافل دی اودمحشر په ورځ به دا ټول د دغه ټولو دښمنان وی اودهغوی دعبادتونو به صفا منكران شی. نو دقيامت په ورځ به دا مشركان نه د خپلو خانونونه د الله ﷻ عذاب اخواكړې شی اونه به خپل امداد اوكړې شی اونه به څوك خپل امداديان اوموسی.په تاسو كښې چه څوك هم الله ﷻ چه واحد ذات دې سره شرك اوكړې مونږ به هغوی ته زبردست اوسخت عذاب وركوو.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمَآ | أَرْسَلْنَا | قَبْلَكَ | مِنَ الْمُرْسَلِينَ | إِلَّآ إِنَّهُمْ |
| او اې نبی | نۀ ووه ليږلې مونږ | مخكښې ستانه | درسولانونه | مګر وۀ هغوئ |
| او مونږ چې ستانه ورانډې هر څومره پيغبران ليږلې دی انو ټولو به | | | | |
| لَيَأْكُلُونَ الطَّعَامَ | وَيَمْشُونَ | فِي الْأَسْوَاقِ ط | وَجَعَلْنَا | بَعْضَكُمْ |
| چې خوړولو به نې طعام | او ګرزيدل به | په بازارونو كښې | او ګرزولې دی مونږ | خينې دتاسو |
| خوراكونه هم كول او په بازارونو كښې به هم ګرځيدل او مونږ تاسو ديوبل دپاره د | | | | |
| لِبَعْضٍ | فِتْنَةً ط | أَتَصْبِرُونَ ج | وَكَانَ رَبُّكَ | بَصِيرًا ۝ ع |
| دپاره دخينو نورو | ازميښت | ايا تاسو صبر كوئ | او دې رب ستا | ښۀ ليدونكې |
| د امتحان ذريعه هم ګرخولې يئ انو اوس هم صبر كونی(كه نه) اوستارب ډير ښه وينې ګوری | | | | |

**قوله تعالى:- وَمَآ أَرْسَلْنَا قَبْلَكَ مِنَ الْمُرْسَلِينَ**

**داهريو څه هم دنبوت منافې نه دی:-**كافرانوچه به داكوم اعتراض كولوچه دنبی خوراك څښاك او تجارت اوبيوپارسره څه كاردې؟ددې جواب وركولې شی چه وړانډينوټولوپيغمبرانو انسانی ضرورتونه لرل خوراك څښاك هغوی سره هم لګيدلې وو.تجارت سوداګری كاركسب هغوی هم كول.دا څيزونه د نبوت خلاف نه دی.او الله ﷻ هغوی ته د خپل خاص پيرزونې نه هغه پاك اوصاف نيك خصلتونه ښكلې اقوال اختيارمنداقوال ښكاره دليلونه اوچتې معجزې وركړې وې چه دكامل عقل خاوند هوښياراوبينا په دې مجبوركيدل چه دهغوی نبوت اومنی اودهغوی صداقت اومنی هم ددې آيت په شان بل آيت ﴿أَلَمْ يَأْتِهِمْ

(۱) الطبری:۱۹/۲۴۸.
(۲) ۴۶/الاحقاف:۵-۶.

فِي الْأَرْضِ فَيَنظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ۗ وَلَدَارُ الْآخِرَةِ خَيْرٌ لِّلَّذِينَ اتَّقَوْا ۗ أَفَلَا تَعْقِلُونَ﴾[1] يعنى تانه وړاندې چه هم څومره انبياء عليهم السلام راغلي ټول په ښاريوكښې اوسيدونكى انسانان وو. بل آيت كښې دى﴿وَمَا جَعَلْنَاهُمْ جَسَدًا لَّا يَأْكُلُونَ الطَّعَامَ وَمَا كَانُوا خَالِدِينَ﴾[2] مونږ دهغې داسې بدنونه نه ووجوړ كړى چه د خوراك څښاك نه آزاد وى. مونږ خو په تاسو كښې د يويو ازميښت په بل بل سره كوو دې د پاره چه حكم منونكى او حكم نه منونكى ښكاره شى. صبر كونكې اونه صبركونكې معلوم شى. ستا رب چه الله ﷻ دې بينا او هوښياردې. ښه پيژندونكې دې چه د نبوت حقدار څوك دې؟ لكه چه فرمائى﴿اللَّهُ أَعْلَمُ حَيْثُ يَجْعَلُ رِسَالَتَهُ ۗ سَيُصِيبُ الَّذِينَ أَجْرَمُوا صَغَارٌ عِندَ اللَّهِ وَعَذَابٌ شَدِيدٌ بِمَا كَانُوا يَمْكُرُونَ﴾[3] د رسالت د منصب اهليت په چا كښې دې؟ هغه هم الله ﷻ پيژنى اوهم هغه ته د دې هم علم دې چه د هدايت مستحق څوك دې اوڅوك نه دې. د الله ﷻ اراده دبنديگانود امتحان داخستلو ده ددې دپاره انبياء كرام عليهم السلام په معمولى حالت كښې ساتى گنى كه هغوى ته په كثرت سره دنياوركړې شوې وه نود هغوى د مال په لالچ كښې به ډير زيات خلق هغوى سره ملگرى شوى وو نوبيا به دروغژن اوربښتونى يوځائ شوې وو. په صحيح مسلم شريف كښې رسول الله ﷺ فرمائى چه الله ﷻ فرمائيلى دى چه زه پخپله تا اوستا په ذريعه باندې نورخلق ازميښت كونكې يم[4] مسندكښې دى رسول الله ﷺ فرمائى كه ما غوښتل نوماسره به د سرو زرو او سپينوزرو غرونه گرځيدل[5] اويه صحيح حديث شريف كښې دى چه حضورﷺته په نبى اوبادشاه جوړيدوكښې اونبى اوبنده جوړيدوكښې اختياروركړې شونو حضورﷺ بنده اونبى جوړيدل خوښ كړل.[6] ﴿فصلوات الله وسلامه عليه وعلى اله واصحابه اجمعين﴾

﴿الحمدلله﴾ اتلسمې سپارې تفسير مكمل شو.

---

[1] ۱۲/يوسف:۱۰۹. الخ
[2] ۲۱/الانبياء:۸.
[3] ۶/الانعام:۱۲۴.
[4] صحيح مسلم كتاب الجنة باب الصفات التى يعرف بها فى الدنيا اهل الجنة واهل النار:۲۸۶۵.
[5] مسندابى يعلى:۴۹۲۰.
[6] احمد:۲/۲۳۱،ابن ابى حبان:۶۳۳۱وسنده صحيح.

وَقَالَ الَّذِيْنَ لَا يَرْجُوْنَ لِقَآءَنَا لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْنَا

او وائی | هغه کسان | چې اميد نهٔ لري | دملاقات زمونږ | ولې نهٔ راليږلې کيږي | مونږ ته

اوکوم خلق چې مونږ سره دملاقات اميد نه ساتي |هغوئ اووئيل چې په مونږ باندې

الْمَلٰٓئِكَةُ اَوْ نَرٰى رَبَّنَا ؕ لَقَدِ اسْتَكْبَرُوْا فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ

فربنتې | يا ولې نهٔ وينو مونږ |رب زمونږ | په تحقيق سره ډير تکبر اوکړو دوئ | په زړونو خپلو کښې

فرشتې ولې نه نازليږي|يا مونږ خپل رب ليدلې وې | دوئ خپل ځان ډير لوئې ګنړلې دې

وَعَتَوْ عُتُوًّا كَبِيْرًا ۞ يَوْمَ يَرَوْنَ الْمَلٰٓئِكَةَ

او دحد نه واوړيدل | په اوړيدو | لويو سره | په کومه ورځ | چې اووينې دوئ | فربنتې |

اود حدنه ډير لرې تلې دی | په کومه ورځ چې دوئ فرشتې اووينې| نو هغه ورځ به

لَا بُشْرٰى يَوْمَئِذٍ لِّلْمُجْرِمِيْنَ وَيَقُوْلُوْنَ حِجْرًا

نهٔ به وی خوشحالی | په دغه ورځ | دپاره دمجرمانو | اووائی به هغوئ | پناه غواړو |

دمجرمانو دپاره دخوشحالئ ورځ نه وی | او دابه وائی چې پناه غواړو پناه |

مَّحْجُوْرًا ۞ وَقَدِمْنَآ اِلٰى مَا عَمِلُوْا مِنْ عَمَلٍ

پناه ټينګه په الله پورې | او راواړاند به شو مونږه | هغې ته چې کړې دی هغوئ | دعمل نه |

اومونږ به ددوئ دعملونو طرفته توجه اوکړو| نوهغه به ورله داسې کړو

فَجَعَلْنٰهُ هَبَآءً مَّنْثُوْرًا ۞ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ يَوْمَئِذٍ خَيْرٌ

پس اوبه ګرزوو مونږ هغه | دوړه | الوزولې شوی | ملګری د جنت به | په دغه ورځ | بهتره وی

چې هغه به الوتونکی خاورې اوګرځوو(چه هيڅ حيثيت به يې نه وی)دجنت خاوندان به په دغه ورځ

مُّسْتَقَرًّا وَّاَحْسَنُ مَقِيْلًا ۞

په لحاظ دځائې دقرار سره | او ډير ښه به وی | په لحاظ دارام دغرمې |

په ښو ځايونو اوښائسته خواب ګاهونو کښې په آرام وی|

قوله تعالى:- وَقَالَ الَّذِيْنَ لَا يَرْجُوْنَ لِقَآءَنَا

**دکافرانويوه عجيبه مطالبه** کافرانوبه دنبوت دانکاريوه بهانه داهم جوړوله چه کهٔ الله ﷻ څوک رسول راليږلې نويوه فرشته نې ولې نه راليږله.لکه چه په بل آيت کښې دی چه هغوی به يوه بهانه داهم کوله چه ﴿لَنْ نُّؤْمِنَ حَتّٰى نُؤْتٰى مِثْلَ مَآ اُوْتِيَ رُسُلُ اللّٰهِ﴾ يعنی چه ترڅو پورې پخپله مونږته هغه رانکړې شی کوم چه رسولانوته ورکړې شوې دې مونږبه بالکل ايمان رانهٔ وړو،،مطلب دادې چه لکه څنګه پيغمبرانوته د الله ﷻ دطرفه فرشته وحی راوړی.مونږته دې هم راځی،اوداهم کيدې شی چه دهغوی مطالبه داوی چه فرشتې اووينی،په خپله فرشتې راشې مونږ پوهه کړی اودنبی کريم ﷺ د نبوت تصديق اوکړی نومونږبه تاسولره نبی اومنو.لکه څنګه چه بل آيت کښې دی چه کافرانواووئيل.﴿اَوْ تَأْتِيَ بِاللّٰهِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ قَبِيْلًا﴾ يعنی ته الله پاک راوله، فرشتې په ښکاره مونږته راوله،،ددې پوره تفسيرپه سورة سبحان الذي اسري يابني اسرائيل کښې

تیرشوي دي.دلته هم دهغوی دامطلب بیان شوي دي چه یاخومونږته فرښتې راکوزې شی یامونږ خپل رب اووینو.داخبره ځکه دهغوی دخلې نه اووتله چه دوی به خپل ځانونه ډیراوچت ګنړل.اودهغوی غرور دحدنه زیات شوی وو.ددوی دایمان راوړلو نیت نه وو.لکه چه فرمان دي ﴿وَلَوْ أَنَّنَا نَزَّلْنَآ إِلَيْهِمُ ٱلْمَلَٰٓئِكَةَ﴾ یعنی که مونږ په دوی باندې فرښتې هم نازل کړې وې اودوی سره مړو خبرې کړې وې نورهم ټول څیزونه مونږ دوی ته مخامخ کړې وې بیابه هم دوی ته ایمان راوړل نه وو نصیب شوې.الله ﷻ فرمائی فرښتې به دوی اووینی لیکن هغه وخت به دوی دپاره دهغوی لیدل څه ښه نه وی.ددې نه مراد مرګ دزنکدن وخت دي.چه کله فرښتې کافرانوته راځی اود الله ﷻ دغضب اودجهنم هغوی ته خبرورکوی.او وائی چه اې پلیت نفسه چه په پلیت اوناپاك بدن کښې وې ګرم هواګانو او ګرموابو طرف ته او ګرم سوزوطرف ته روان شه.هغه د راوتلونه ځان بندوی اوپه بدن کښې پټیږی.

په دې باندې فرښتې هغوی لره په مخونواوپه شاګانوباندې وهی.لکه چه فرمان دي ﴿وَلَوْ تَرَىٰٓ إِذِ ٱلظَّٰلِمُونَ فِى غَمَرَٰتِ ٱلْمَوْتِ﴾یعنی اِرمان چه تاظالمانولره دهغوی دزنکدن په وخت لیدلې چه کله فرښتې دهغوی د وهلودپاره لاسونه وړاندې کوی.اووائی به،چه خپل روحونه راوباسئ نن به تاسودذلت عذاب ځکئ ځکه چه تاسوبه په الله ﷻ پورې ناحق الزامونه لګول.اودهغهٔ دآیاتونونه به تاسو تکبرکولو.د مؤمنانوحال به دهغوی نه بالکل په عکس وی.هغوی دخپل مرګ په وخت خوشخبرئ (زیری) ورکوی.اود همیشه خوشحالو زیری ورکوی.لکه چه فرمان دي.﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ قَالُوا۟ رَبُّنَا ٱللَّهُ﴾ چاچه الله ﷻ ته خپل رب اووئیل اووې منلو،بیاپه دې باندې کلك پاتې شول.هغوی ته زمونږ فرښتې راځی.اووائی چه تاسومه ویریږئ بلکه هغه جنتونوته دتلو خوشحالی کوئ.دکومې چه به تاسوته وعده درکولې شوه.مونږستاسو مددګاروپه دنیاوی ژوندکښې هم اوپه آخرت کښې هم،تاسوچه څه غواړئ هغه به بیامومئ اودکوم څیزچه خواهش کوئ هغه به راموجود شی.دابه ستاسوملمستیاوی دبخښونکی مهربان الله ﷻ دطرفه،په صحیح حدیث کښې دی چه فرښتې دمؤمن روح ته وائی اې پاك روح چه په بدن کښې وې ته دالله ﷻ رحم او رحمت طرف ته روان شه.چه هغه ستانه ناراضه نه دي.[1]د سورة ابراهیم آیت﴿يُثَبِّتُ ٱللَّهُ﴾په تفسیرکښې داټول حدیثونه په تفصیل سره بیان شوی دی.بعضو وئیلی دی چه مراد ددې نه دقیامت په ورځ فرښتې لیدل دی.کیدې شی چه په دواړوموقعو باندې دفرښتو لیدل مرادوی په دې کښې دیوقول دبل سره منافات نشته.ځکه چه په دواړوموقعوباندې به هرنیك اوبدفرښتولره وینی.دمؤمنانوبه درحمت او رضامندئ زیری سره دفرښتو دیدارکیږی اودکافرانوبه دلعنت اوغصې اودعذاب آوازونوسره، فرښتې به هغه وخت دې کافرانوته صفا اووائی چه اوس کامیابی اوخوشحالی په تاسوباندې حرام ده.د﴿ حِجْرًا﴾ لفظی معنی بندول دی.لکه چه قاضی کله څوك د غریبئ یا کم عقل توب یاد ماشوموالی په وجه دمال دتصرف نه بندکړی نو وائی((حَجَرَ الْقَاضِى عَلَى فُلَانٍ))حطیم ته هم حجروائی ځکه چه هغه طواف کونکی خپل دننه دطواف کولونه بندوی.بلکه ددې نه بهر طواف کولې شی.عقل ته هم په عربئ کښې حجر وائی. ځکه چه داهم انسان دغلطو کارونونه بندوی.

﴿وَيَقُولُونَ﴾دامقوله دچا ده؟:-پس فرښتې هغوی ته وائی چه کوم زیری چه مؤمنانوته دې وخت ملاویږی ددې نه تاسومحروم یئ.دامعنی خویه دې وجه ده چه داجمله دفرښتوقول اومنلې شی.دویم قول دادې چه دا مقوله به هغه وخت دکافرانووی[2].هغوی چه فرښتې اووینی نووائی به،چه الله دې اوکړی تاسوزمونږنه په پرده کښې اوسئ تاسوته زمونږخواته راتګ ملاو نه شی.اګرچه دامعنی هم کیدې شی خود لرې والی

---

[1]) نسائی كتاب الجنائز باب ما يلقى به المومن من الكرامة عند خروج نفسه :١٨٣٤، وهو صحيح ابن ماجه: ٤٢٦٢.

[2]) الطبری : ٢٥٤/١٩.

معنی ده خاصکر هغه وخت کله چه ددې خلاف هغه تفسیر کوم چه مونږ پورته بیان کړو، دسلفونه نقل دې.البته دحضرت مجاهدنه یوقول داسې نقل دې لیکن ددوی نه صراحت سره داهم نقل دی.چه دا قول به د فرشتووی.والله اعلم.

**قیامت کښې د کفاروټول اعمال برباد**:-بیابه دقیامت په ورځ داعمالودحساب په وخت ددوی عملونه عبث اوبې کاره شي. دوی چه به څه دخپل نجات ذریعه ګڼړله هغه به بې کاره شي.څکه چه یاخوهغه خلوص والانه وو،یادسنت مطابق نه وو.اوکوم عمل چه ددې دواړونه یاپه دې کښې دیوځیزنه خالی وی هغه دالله ﷻ په نزد دقبلیدوقابل نه دې.په دې وجه دکافرانونیك عملونه هم مردود دی.مونږدهغوی عملونه اوکتل اوهغه مود خوروشوو ذرو پشان کړل.چه دنمرهغه شعاګانې کومې چه په یو سری کښې دننه راځی اوپه هغې کښې په نظر راځی.لیکن که څوك هغه رانیول اوغواړی نوپه لاس نه راځي( ).لکه څنګه چه اوبۀ په زمکه اوبهیولې شی هغه بیاپه لاس نه راځي.یا کومې دوړې چه په لاس نه راځي یاد ونو دپانړو چړی شوی بسری کوم چه په هواکښې والوځي یا ایره یا دوړه کوم چه الوځی دغه شان ددوی عملونه دی.چه دا بالکل بیکاره دی ددې هیڅ ثواب به هغوی ته نه ملاویږی.څکه چه یاخوپه دوی کښې خلوص نه وو،یادشریعت مطابق نه وو،یا دواړه صفتونه پکښې نه وو.پس کله چه داد عالم او عادل حقیقی حاکم په مخکښې پیش شول نوبالکل بیکاره ثابت شول.په دې وجه نې هغې د ردی اوپه لاس نه راتلوځیزسره تشبیه ورکړې شوه.لکه څنګه چه بل ځانې کښې دی. ﴿مَثَلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ اَعْمَالُهُمْ﴾ دکافرانودعملونومثال د ایرې پشان دې چه هغې لره تیزه هوا والوځوی.د انسان نیکئ بعضې ګناهونو سره هم ضائع کیږی.لکه صدقه اوخیرات چه داپه احسان کولواوتکلیف رسولوسره ضائع کیږی.لکه چه فرمان دې ﴿يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُبْطِلُوْا صَدَقٰتِكُمْ بِالْمَنِّ وَالْاَذٰى﴾ پس ددوی د عملونو نه نن دوی په هیڅ عمل باندې قادرنه دی.اوپه آیت کښې ددوی دعملونومثال دشګې هغه ډهیری سره ورکړې شو کوم چه د لرې نه د دریاب دڅپوپه شان ښکاری چه دهغې په لیدلو تږې سړې هغې لره اوبه ګڼړی.لیکن چه نزدې ورشی نو اُمید نې مات شی ددې تفصیل هم دالله په فضل تیرشوې دې.

**دمؤمنانو حالت**:-بیانې اوفرمائیل چه ددوی په مقابله کښې دجنتیانوهم واورئ څکه چه دادواړه دلې برابرنه دی.جنتیان خوبه په اوچتو درجوکښې په اوچتوبالاخانوکښې په امن اوامان،راحت اوآرام سره په عیش اوعشرت کښې وی.ښۀ مقام،زړۀ خوشحالونکې منظر،هرراحت به موجودوی،زړۀ خوشحالونکې هر ځیزبه مخې ته وی،ښۀ ځائې، ښائسته مکان، مبارك منزل،داودۀ کیدوپاسیدو اود اوسیدلوآرام به وی.ددې په خلاف جهنمی دې چه ددوزخ لاندې طبقوکښې به په زنځیرونوکښې بند وی، لاندې باندې ښې اوګس طرف ته به اور وی. غم، افسوس،تکلیف، سوزیدل،بې آرامی،زړۀ سوزیدل، بدمقام، لوټې منزل،ویرونکې منظر،سخت عذاب به وی،دنیکانوخلقو دکوموچه په زړۀ کښې ایمان وودهغوی عملونه به قبول کړې شی، ثوابونه به ورکړې شی، بدلې به ملاوشی،دجهنم نه به بچ شی،دجنت وارث اومالك به جوړشی.پس دوی چه تولې ښیګړې نې حاصلې کړې اوهغه کوم چه دهر خیرنه محروم شول آیابرابر کیدې شی؟پس دنیکانونیك بختی نې بیان کړله اود بدانو بدبختئ باندې نې تنبیه اوفرمائیله. دابن عباسؓ نه نقل دی چه څه ساعت به داسې هم وی چه جنتیان به خپلو حورو سره د ورځې دغرمې آرام کوی اوجهنمیان به شیطانانوسره تړلی شوی دغرمې ویریږی.

سعیدبن جبیرؒ فرمائی چه الله ﷻ به نیمه ورځ کښې دبندګانو دحساب نه فارغ شي.پس د جنتیانود غرمې د اودۀ کیدو وخت به جنت کښې وی.اودجهنمیانوبه په جهنم کښې.حضرت عکرمهؒ فرمائی

---

[1]) الطبری : ۱۹/۲۵٤.

مانه معلومه شوې ده چه کوم وخت به جنتیان جنت ته خې او جهنمیان به جهنم ته،دا به هغه وخت وی کوم چه دلته به دنیاکښې د غرمې په وخت وی چه خلق خپلوکوروتوته د دوږکهنتو دآرام حاصلولوپه غرض سره واپس کیږی.دجنتیانودا قیلوله به جنت کښې وی.دکب د زړه خوراك به پرې خوړلې شی.

دحضرت ابن مسعود بیان دې چه دنیمې ورځې نه به مخکښې مخکښې جنتیان په جنت کښې او جهنمیان په جهنم کښې قیلوله کوی.بیاهغوی هم دا آیت اولوستلو.او آیت﴿ ثُمَّ اِنَّ مَرْجِعَهُمْ لَاِلَى الْجَحِيْمِ﴾ ئې هم اولوستلو.جنت ته تلونکی به صرف یوخل دالله په وړاندې پیش کیږی هم داآسانتیا سره حساب اخستل دی.بیابه دوی جنت لاړشې دغرمې آرام به کوی.لکه چه دالله فرمان دې ﴿فَاَمَّا مَنْ اُوْتِيَ كِتٰبَهٗ بِيَمِيْنِهٖ فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَّسِيْرًا وَّيَنْقَلِبُ اِلٰى اَهْلِهٖ مَسْرُوْرًا﴾ یعنی کوم کس ته چه عملنامه په ښی لاس کښې ورکړې شی دهغه نه به ډیرآسان حساب اخستلې شی اوهغه به خپل خپلوانو طرف ته په خوشحالئ راواپس کیږی.دهغه داوسیدو ځائې اومنزل ښه دې.

**دیوبادشاه اودیو غریب حساب**:-صفوان بن محرز فرمائی.چه دقیامت په ورځ به دوه سړی راوستلې شی.یوخوهغه چه دټولې دنیا بادشاه وو.دهغه نه به حساب اخستلې شی.نودهغه په ټول عمرکښې به یوه نیکی هم نه وی.پس هغه ته به جهنم ته د داخلیدوحکم ملاوشی.بیابه دویم سړې راشی چه هغه به یوکمبل کښې ژوندتیرکړې وو .کله چه دهغه نه حساب اخستلې شی الله به اوفرمائی دا ربنتونې دې،دې پریږدئ اوجنت ته به د تللو اجازت ورکړې شی.بیابه څه وخت پس دواړه راوبللې شی نوجهنمی بادشاه خوبه د سوزیدلې سکاروپشان شوې وی.دهغه نه به تپوس اوشی چه په څه حال کښې یې؟ دې به اووائی ډیربه بدحال کښې یم، اوډیربه خراب ځائې کښې یم.بیابه جنتی راوبللې شی دهغه مخ به د خوارلسمې شپې د سپوږمئ په شان پرقیږی.دهغه نه به تپوس اوشی چه وخت څنګه تیریږی؟ هغه به او وائی.الحمدلله ډیر ښه،او ډیربه ښه ځائې کښې، الله به اوفرمائی.ځئ خپل ځائې ته واپس لاړشئ.د صعید صواف بیان دې.چه په مؤمن خوبه دقیامت ورځ داسې وړه شی.لکه د مازیګرنه ترمانبام پورې وخت،دې به دجنت ګلونوته اورسولې شی تردې چه دنورمخلوق حساب اوشی پس جنتی به د ښه رهائش والا اوښه ځائې والاوی.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَيَوْمَ | تَشَقَّقُ | | | | | |
| او په دغه ورځ | به اوچوی | | | | | |
| او په ورځو کښې به یوه ورځ | | | | | | |
| السَّمَآءُ | بِالْغَمَامِ | وَنُزِّلَ | الْمَلٰٓئِكَةُ | تَنْزِيْلًا | اَلْمُلْكُ | يَوْمَئِذِ |
| آسمان | په وریځ سره | او نازلې به کړې شی | فرښتې | په نازلولو سره | بادشاهی به | په دغه ورځ |
| آسمان اوچوی | اوډیرې فرښتې به قطارونو کښې، راکوزیږی | | | | په دغه ورځ به | |
| الْحَقُّ | لِلرَّحْمٰنِ | وَكَانَ | يَوْمًا | عَلَى الْكٰفِرِيْنَ | عَسِيْرًا | وَيَوْمَ |
| حقه | رحمن لره وی | او وی به | دغه ورځ | به کافرانو باندې | ډیره سخته | او په دغه ورځ به |
| ربنتینې بادشاهی درحمان وی | او دغه به په کافرانو ډیره سخته ورځ وی | | | | او په دغه ورځ | |
| يَعَضُّ | الظَّالِمُ | عَلٰى يَدَيْهِ | يَقُوْلُ | يٰلَيْتَنِيْ | | |
| چکونه لګوی | ظالم سړې | په دواړو لاسونو خپلو باندې | اووائی به | اے کاش چې وې زه | | |
| به ظالم خپل لاسونه ژګوتې، چیچی اوبه وائی چې ائې کاش زه د پیغمبر په نیغه لار | | | | | | |

| اتَّخَذْتُ | مَعَ الرَّسُوْلِ سَبِيْلًا ۝ | يٰوَيْلَتٰى | لَيْتَنِيْ | لَمْ اَتَّخِذْ |
|---|---|---|---|---|
| چې نيولې وې ما | درسول سره | لاره | اے افسوس | افسوس دې مالره | چې نه وې نيولې ما |

روان شوې وې | هاني زما بده نصيبۀ افسوس چې فلاني بنده مې ملګرې کړې نه وې

| فُلَانًا | خَلِيْلًا ۝ | لَقَدْ اَضَلَّنِيْ | عَنِ الذِّكْرِ | بَعْدَ اِذْ | جَآءَنِيْ |
|---|---|---|---|---|---|
| فلانې سړې | دوست | خامخا هغه بې لارې کړم زه | د ذکر نه | روستو دهغې نه کله | چې راغې ماته |

دغه ملګرې خو زه د هغې نه پس ګمراه کړم | چې نصيحت راته (کور ته) راغلې وو | او

| وَكَانَ الشَّيْطٰنُ | لِلْاِنْسَانِ | خَذُوْلًا ۝ |
|---|---|---|
| اودې شيطان | دپاره دانسان | (ډير بې وفا) يوازې پريښودونکې |

شيطان (دهميشه نه) دانسان رسوا کونکې دې |

**قوله تعالى:- وَيَوْمَ تَشَقَّقُ السَّمَآءُ بِالْغَمَامِ**

**قيامت کښې د اسمان چودلو کيفيت اود فرشتو راکوزيدل**: دقيامت په ورځ چه به کوم ويرونکې کارونه وى دهغې نه يوآسمان چودل او نوراني وريځ ښکاره کيدل هم دى.چه دهغې درنړانه به سترګې اوبريښيږى، بيا به فرشتې راکوزيږى اوپه ميدان حشرکښې به ټول انسانان راګيرکړى.بيابه الله ﷻ په خپلو بندګانو کښې فيصلې دپاره لګه چه فرمان دې ﴿هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّآ اَنْ يَّاْتِيَهُمُ اللّٰهُ فِيْ ظُلَلٍ مِّنَ الْغَمَامِ﴾ يعنى آيا دوى ددې خبرې په انتظارکښې دى چه الله ﷻ اودهغه فرشتې په وريځوکښې راشى.ابن عباس رضی الله عنه فرمانى چه الله ﷻ به خپل ټول مخلوق، ټول انسانان اوټول جنات (پيريان) په يوميدان کښې راجمع کړى.ټول څناور، مارغان وغيره اوټول مخلوق به هلته وى.بيابه ړومبې آسمان اوچوى اودهغې فرشتې به راکوزشى.چه هغوى به ټول مخلوق دځلورو طرفونه راګيرکړى اودهغوى دشميرنه به ډيرزيات وى.بيابه دويم آسمان اوچوى دهغې فرشتې به راشى چه هغوى د زمکې اود ړومبى آسمان دټول مخلوق نه هم زيات وى. بيابه دريم آسمان اوچوى.دهغې فرشتې به د دواړوآسمانونو دفرشتو اود زمکې دمخلوق نه هم زيات وى.داټول به راګيرکړى اوبه دريږى.بيابه دغه شان څلورم،بيا پنځم، بيا شپږم، بيا اووم، بيابه زمونږ الله ﷻ د وريځې په سورى کښې ددې نه ګيرچاپيره به بزرګې اوپاکې فرشتې وى.چه دا به د اووه آسمانونواواووه زمکو دټول مخلوق نه زيات وى.په هغوى به د ښکرو په شان نخښې وى.هغوى به دالله دعرش لاندې دالله تسبيح او تهليل اوپاکى بيانوى.دهغوى دتلې نه واخله ترګيټې پورې فاصله به پنځه سوه کاله لاره وى.اود ګيټې نه تر کونډۍ پورې به هم دغه هومره وى،اود کونډۍ نه تر نامه پورې به هم دومره فاصله وى اود نامه نه ترمرۍ پورې به هم دومره فاصله وى.اود مرۍ نه ترد غوږ نرمۍ پورې به هم دومره فاصله وى.اوددې نه پورته سرپورې به هم دومره فاصله وى.دابن عباس رضی الله عنه فرمان دې چه د قيامت نوم ﴿يوم التلاق﴾ځکه دې چه په دې کښې به زمکې اوآسمانونووالا ملاويږى.ددې په ليدلو به مخکښې خوحشر والا پوهه شى چه زمونږ الله ﷻ راغې.

**قيامت کښې د الله ﷻ راتلل**:- خودابه اونيلې شى چه هغه راتلونکې تراوسه پورې نه دې نازل شوې.بيا کله چه آسمانونووالا فرشتې راشى الله ﷻ به په خپل عرش باندې چه دابه اته فرشتو اوچت کړې وى. چه ددې دګيټې نه ترکونډۍ پورې داوياکالو لارده.اودپتون او پنډۍ په مينځ کښې هم داوياکالولاره ده.هره فرشته دبلې نه بيله اوجداده.دهريو خنه سينې سره لګيدلې ده اوپه ژبه ني﴿سُبْحَانَ الْمَلِكِ الْقُدُّوْسِ﴾ وظيفه ده.دهغوى په سرونوباندې يوخورشهې شان ښيزدې.لکه چه تمبو(ترپال) په هغوى باندې عرش



وي.په دې کښې راوي علي بن زيدبن جدعان دې چه داضعيف دې اوپه دې حديث کښې ډير نکات دي.د صورپه مشهورحديث کښې دې ته نزدې نزدې نقل دی والله اعلم.(۱)
او په آيت کښې دی چه هم په دغه ورځ به او آسمان به ټکړې ټکړې شي.او ددې په غاړوبه فرښتې وي.اوهم په دغه ورځ به چې څه کيږی هغه به داسې اوشي. ستادرب عرش اته فرښتو راوچت کړې وي.
شهر بن حوشب رحمه الله فرمانی چه په هغوی کښې دځلوروتسبيح به داوی﴿سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ لَكَ الْحَمْدُ عَلٰى حِلْمِكَ بَعْدَ عِلْمِكَ﴾ اې الله ﷻ ته پاك يې ته قابل دثنااوتعريف يې.سره دعلم بياهم صبر كول ستا صفت دې.
چه پدې باندې مونږستا تعريف بيانوو.اود څلورو تسبيح به داوی﴿سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ لَكَ الْحَمْدُ عَلٰى عَفْوِكَ بَعْدَ قُدْرَتِكَ﴾ اې الله ته پاك يې اوخپلوتعريفونو سره يې هم ستادپاره اوس هم تعريف دې چه ته باوجود د قدرت معاف کوې.ابوبكربن عبدالله رحمه الله فرمانی چه عرش راكوزيدونكې ليدلوسره به دمحشروالو سترګې اوشليږی.بدن به په رپيدوشی زړونه به اوخوږيږی.عبدالله بن عمرو رضي الله عنه فرمانی چه كوم وخت به الله ﷻ مخلوق طرف ته راكوزيږی نوپه مينځ كښې به اوبا زره پردې وی.بعضې به د نوراو بعضې به د تيارووی.ددې تيارونه به يوداسې آواز راوځی چه هغې سره به زړونه ټکړې ټکړې شی کيدې شی چه دا روايت ددوی ددوو تهيلونه اخستې شوې وی.والله اعلم.

**قيامت كښې د الله ﷻ اعلان**:-په دغه ورځ به صرف دالله ﷻ بادشاهت وی لكه چه فرمان دې﴿لِمَنِ الْمُلْكُ الْيَوْمَ﴾ نن بادشاهي دچا دپاره ده؟ صرف الله غالب اوقهار دپاره، په صحيح حديث كښې دی چه الله ﷻ به آسمانونه په خپل ښى لاس كښې راتول كړی او زمكې به په خپل دويم لاس كښې واخلی بيابه اوفرمائی چه زهٔ مالك يم، زهٔ ديان يم دزمكې بادشاهان چرته دی؟ تكبركونكی چرته دی؟(۲) دغه ورځ به كافرانو باندې ډيره سخته وی.ددې بيان بل ځائې هم دې.چه په كافرانوبه داورځ ډيره سخته تيريږی البته مؤمنانوته به په دغه ورځ هسې ويره يا پريشانی وی.نبی كريم ﷺ ته اوونيلې شوچه اې دالله رسوله ﷺ پنځوس زره كاله ورځ خوبه ډيره ګرانه وی. نبی ﷺ اوفرمائيل په هغه ذات قسم دچاپه قبضه كښې چه زما ساه ده چه په مؤمن خوبه دغه ورځ د يووخت دفرض مونځ نه هم سپكه او آسانه وی(۳).

**دقيامت په ورځ دقرآن د پريښودونكی حشر** :-دپيغمبر ﷺ د طريقې نه اودنبی ﷺ دراوړلی شوی ښكاره حق نه اود رسول الله ﷺ دلارې نه بغير په نورو لاروباندې تلونكی به په هغه ورځ ډير پښيمانه وی او حسرت اوافسوس سره به خپل لاسونه خوری اګرچه ددې نزول دعقبه ابن ابی معيط باره كښې وی يا د بل چا باره كښې وی ليكن دحكم په اعتبارسره داهر داسې ظالم ته شامل دې لكه چه فرمان دې﴿يَوْمَ تُقَلَّبُ وُجُوهُهُمْ فِي النَّارِ﴾ پوره دوو آياتونو پورې،پس هرظالم به دقيامت په ورځ افسوس كوی خپل لاسونه به خوری او ژړا اوفرياد به كوی چه ارمان دې ما دنبی ﷺ لاره خپله كړې وې، ارمان چه مادفلانی سره مينه نه وې كړې چه هغهٔ زه دحق لارې نه بې لارې كړم.داميه بن خلف اودهغهٔ د ورور به هم داحال وی.او ددوی نه سوا دداسې خلقوبه هم داحال وی.وائی به چه دهٔ زهٔ د ذكرنه يعنی دقرآن نه بې لارې كړم. حالاتكه دا ماته رارسيدلی وو. الله ﷻ فرمانی شيطان انسان لره رسواكونكې دې هغه دهٔ لره ناحق طرف ته رابلی اودحق نه ئې لرې كوی.

---

(۱) سنن ابن ماجه : ۴۰۷۷
(۲) صحيح مسلم كتاب صفات المنافقين باب صفة القيامة والجنة والنار: ۲۷۸۷ ابوداود : ۴۷۳۲.
(۳) احمد: ۷۵/۳.

وَقَالَ الرَّسُوْلُ

| اواوبه وائي رسول |

| او پيغمبر ﷺ به اووائي

يٰرَبِّ اِنَّ قَوْمِي اتَّخَذُوْا هٰذَا الْقُرْاٰنَ مَهْجُوْرًا ۝

اے ربه زما | بې شکه چې | قوم زما | نيولې وو | دا قران | (بوه توته) پرېښودې شوې |

چې ائې زما ربه ! زما قوم دا قران پاک پرېښودې وو (اوعمل ئې پرې نه وو کړې)

وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَا لِكُلِّ نَبِيٍّ عَدُوًّا مِّنَ الْمُجْرِمِيْنَ ؕ وَكَفٰى

او دارنګې | جوړ کړې دې مونږ | دپاره دهر نبي | دشمنان | دمجرمانونه | او کافي دې

او دغه شان مونږ دهر پيغمبر دپاره د ګناهګارانو نه دښمنان جوړ کړې دې | او ستا رب

بِرَبِّكَ هَادِيًا وَّنَصِيْرًا ۝

رب ستا | دپاره دلار ښودلو | او دپاره دامداد کولو |

لاره خودونکې او مددګار کافي دې |

قوله تعالیٰ:- وَقَالَ الرَّسُوْلُ يٰرَبِّ

**د الله په عدالت کښې د آقا ﷺ شکايت د قران پرېښودونکو خلاف** "دقيامت په ورځ به دالله رښتونې رسول ﷺ دخپل امت شکايت د الله ﷻ په دربار کښې کوی. چه نه به دې خلقو قرآن طرف ته توجه کوله اونه به ئې په شوق سره قبوليت سره اورېدلو. بلکه نورخلق به ئې هم ددې داورېدلو نه منع کول. لکه څنګه چه د کافرانو وينا په خپله قرآن کښې ده چه هغوی به ونيل ﴿لَا تَسْمَعُوْا لِهٰذَا الْقُرْاٰنِ وَالْغَوْا فِيْهِ﴾ دا قرآن مه اورئ او ددې د لوستلو په وخت شورشغب کوئ. هم دا ددوی پرېښودل وو. نه به ئې په دې باندې ايمان راوړلو. نه به ئې په دې باندې دپوهېدلو کوشش کولو. نه به ئې په دې باندې عمل کولو نه به ئې ددې احکام پوره کول. نه به ددې دمنع کړې شووکارونو نه منع کېدل. بلکه ددې نه سوا په نورو کارونو کښې به مشغول اوسېدل. لکه شعرونه، غزلې، باجې، ګانې، ټنګ ټکور دغه شان به ئې دنوروخلقو خبروسره شوق لرلو. او په هغې به ئې عمل کولو. هم دا ددې پرېښودل وو. زمونږ دعا ده چه الله ﷻ کريم اومنان چه هغه په هر څيز باندې قادر دې. چه مونږ ته توفيق راکړی چه مونږ دهغه د ناراضئ دکارونو نه منع شو. اودهغه خوښ کارونو طرف ته متوجه شو. هغه مونږ ته دخپل کلام پوهه راکړی. اوشپه ورځ دې په دې باندې دعمل کولو هدايت راکړی. چه په هغې سره هغه خوشحاله وی هغه کريم او وهاب دې.

بياني اوفرمائيل. لکه څنګه چه اې نبي ﷺ! ستاسو په قوم کښې قرآن پرېښودونکی خلق دی. دغه شان په تېروشوو امتونو کښې همداسې خلق وو. چه هغوی به په خپله کفرکولو نورخلق به ئې خپل کفر کښې شريکول. اودخپلې ګمراهئ دخورولو په فکر کښې به مشغول اوسېدل. لکه چه فرمان دې ﴿وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَا لِكُلِّ نَبِيٍّ عَدُوًّا﴾ يعنې دغه شان مونږ دهر نبي ﷺ دشمنان شيطانان اوانسانان جوړ کړې دی. بياني اوفرمائيل څوک چه درسول الله ﷺ تابعداری اوکړی په کتاب الله باندې ايمان راوړی، دالله په وحی باندې يقين اوکړی، دهغه هادی اوناصر (مددګار) په خپله الله ﷻ دې. دمشرکانو کوم ناکاره صفت چه پورته بيان شو. دهغې نه دهغوی غرض داوو. چه خلق په هدايت باندې رانه شي. اوهغوی په مسلمانانو باندې غالب وی. په دې وجه قرآن فيصله اوکړله چه هم دوی به نامراده وی. الله ﷻ به خپلو نېکانو بندګانو ته په خپله هدايت کوی. اودمسلمانانو به په خپله مددکوی. دا معامله او دداسې خلقو مقابله صرف تاسو سره نه

ده، تولو تیرو شوو نبیانو سره هم دغه شان کیدل.

وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

| اوواني هغه کسان | چي دحق نه ني انکار اوکړو

| ...................او دا کافران واني چي

لَوْلَا نُزِّلَ عَلَيْهِ الْقُرْاٰنُ جُمْلَةً وَّاحِدَةً ۚ كَذٰلِكَ ۚ

ولي نازل نه کړي شو | په ده باند | دا قران | په يو خل | درانګي لپي لپي نازل شو |

په دي سري باندي (تول) قران پاک په يو خل ولي نازل نشو | ...... ...... داځکه

لِنُثَبِّتَ بِهٖ فُؤَادَكَ وَرَتَّلْنٰهُ

دپاره ددي چي مونږه محکم کړواپه دي سره | زړه ستا | او لړلړ په ارام سره لوستلي دي مونږه دا قران

(لړلړ راغلو) چي ددي په ذريعه مونږ ستا زړه مضبوط کړو | اومونږ دا کتاب

تَرْتِيْلًا ۝ وَلَا يَاْتُوْنَكَ بِمَثَلٍ اِلَّا جِئْنٰكَ بِالْحَقِّ

په ارام ارام لوستلو سره | اونه راوړي دوئ تاته | يوه نوي خبره | مګر | درکوو مونږ تاته | حق جواب

په ارام سره لولو | اودا خلق چي ستانه څنګه عجيبه سوال کوي | ...................نو مونږ به

وَاَحْسَنَ تَفْسِيْرًا ۝ اَلَّذِيْنَ يُحْشَرُوْنَ عَلٰى وُجُوْهِهِمْ

اوښه بيان | هغه خلق | چي جمع کولي کيږي به | په مخونو خپلو باند |

به تاته د هغي سم ښه او تفصيلي جواب ښايو | داهغه خلق دي چي پر مخ به دوزخ ته جمع کړي شي

اِلٰى جَهَنَّمَ ۙ اُولٰٓئِكَ شَرٌّ مَّكَانًا وَّاَضَلُّ سَبِيْلًا ۝

دوزخ ته | دغه کسان چي دي | بددي | په لحاظ دځاني سره | او ډير بي لاري دي | په لحاظ دلاري سره

ددوئ ځاني ډير خراب دي | اود لاري نه ډير بي لاري روان دي |

وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ وَجَعَلْنَا مَعَهٗٓ اَخَاهُ

او خامخا ورکړو مونږ | موسي ته | کتاب | او مقرر کړو مونږ | دهغه سره | رور دهغه |

اومونږ حضرت موسی ؑ ته کتاب (تورات) ورکړي ووا اودهغه سره مو دهغه رور

هٰرُوْنَ وَزِيْرًا ۝ فَقُلْنَا اذْهَبَآ اِلَى الْقَوْمِ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا

هارون | يو مددګار (وزير) | نو اووئيل مونږه | چي لاړ شئ دواړه | اهغه قوم ته | چي دروغ ني ګڼړلي دي

هارون مددګار جوړ کړي ووا نو مونږ ورته اووئيل چي تاسو دواړه هغه خلقو ته ورشئ

بِاٰيٰتِنَا ؕ فَدَمَّرْنٰهُمْ تَدْمِيْرًا ۝ وَقَوْمَ نُوْحٍ لَّمَّا

ايتونه زمونږ | نو هلاک کړل مونږ هغوئ | په هلاکولو سره | او دغسي قوم دنوح ؑ | کله چي |

چي زمونږ خبري ئي دروغژني ګڼړلي دي | بيا مونږ داکافران هلاک کړل | اومونږ د نوح ؑ قوم هم هلاک کړو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| كَذَّبُوا | الرُّسُلَ | اَغْرَقْنٰهُمْ | وَجَعَلْنٰهُمْ | لِلنَّاسِ |

دروغ اوګڼړل هغوئ | رسولان | نو ډوب كړل مونږ هغوئ | او جوړ كړل مونږه هغوئ | دپاره دخلقو |

څه وخت چې هغوئ پیغمبران درغږن اوګڼړل | نومونږ ډوب كړل| او دخلقو دپاره مود(عبرت)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اٰيَةً ط | وَاَعْتَدْنَا | لِلظّٰلِمِيْنَ | عَذَابًا اَلِيْمًا ﴿۳۷﴾ | وَّعَادًا |

يوه نښه دعبرت |اوتيار كړي دي مونږه|دپاره دظالمانو|عذاب دردناك |(او هلاك كړل مونږه) عاديان

نښه اوګرځوله| اومونږ ظالمانودپاره دردناک عذاب تيار كړي دي |اودغه شان مو عاد

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَّثَمُوْدَا | وَاَصْحٰبَ الرَّسِّ | وَقُرُوْنًا | بَيْنَ ذٰلِكَ | كَثِيْرًا ﴿۳۸﴾ | وَكُلًّا |

او ثموديان |او كوهي والا |او (نور) قومونه | په منځ ددي كښې | ډير |او هر يو چې وو

اوثمود او د كوهي خلق او ددوئ ترمينځه نور ډير قومونه(تباه كړل) |اومونږ هر يو ته

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ضَرَبْنَا | لَهُ | الْاَمْثَالَ ز | وَكُلًّا | تَبَّرْنَا | تَتْبِيْرًا ﴿۳۹﴾ |

بيان كړل مونږه | هغه ته | مثالونه (دتباه شوؤ خلقو ) | او هريو | تباه كړو مونږه | په تباه كولو سره

عجيبه مثالونه بيان كړل |او(بيا) هريو مو (دانكار په وجه) بالكل برباد كړل

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَلَقَدْ اَتَوْا | عَلَى الْقَرْيَةِ الَّتِيْٓ | اُمْطِرَتْ | مَطَرَ السَّوْءِ ط |

او په تحقيق سره تير شوي دي هغوئ | په هغه كلي باندي | چې ورولي شوي وؤ پر | باران بد

اوداخلق د هغې كلي په زمكه تګ راتګ كوي چې (د كاڼو) خراب باران پري شوي وو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَفَلَمْ يَكُوْنُوْا | يَرَوْنَهَا ج | بَلْ كَانُوْا | لَا يَرْجُوْنَ | نُشُوْرًا ﴿۴۰﴾ |

ايا نه وؤ هغوئ | چې ليدلي ني وي دغه كلي | بلكه دي هغوئ | چې اميد نه لري | ددوباره ژوند

نوايا داخلق دغې كلي ته نه ګوري | (نا) بلكه داخلق د دوباره ژوندي كيدو اميد نه ساتي

**قوله تعالى:- وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا**

**په قران باندې دكافرانو يواعتراض** "دكافرانو يواعتراض داهم وو.چه لكه څنګه تورات.انجيل او زبور وغيره په يوځل پيغمبرانو باندې نازل شوي وو.دا قرآن په يوځل نبي كريم ﷺ باندې ولې نازل نه شو. الله ﷻ ددې په جواب كښې اوفرمائيل.چه آو واقعي داپه لږه لږه نازل شوې دې.په دريويشت كاله كښې نازل شوې دې.چه څومره به ضرورت راتلو،چه كوم واقعات به كيدل احكام به نازليدل چه دمؤمنانو زړه كلك وي.په وقفه وقفه احكام نازل شول چه په يوځل عمل مشكل نه شي.وضاحت سره بيان كړې شي اوپه پوهه كښې راشي.تفسيرهم ورسره ورسره اوشي. مونږبه ددوي د ټولو اعتراضونو صحيح او رښتياجواب وركوو.چه دابه ددوي دبيان نه هم زيات واضح وي.كومه كمي چه دوي بيان كړي.مونږبه ددوي تسلي كوو.سحرماښام، شپه ورځ،په سفراوحضركښې به باربارددې نبي ﷺ عزت اودخپلوخاصو بندګانودهدايت دپاره زمونږ كلام زمونږ دنبي ﷺ پوره ژوند پورې نازليږي.چه ددې نه دنبي ﷺ بزرګي او فضيلت هم ښكاره شي.په نورو پيغمبرانو باندې په يوځل ټول كلام نازل شو.اودې غوره نبي ﷺ ته باربار الله ﷻ خطاب كولو.اوددې قرآن عظمت هم ښكاره شي.چه داپه دومره اوږده موده كښې نازل شو.پس نبي ﷺ په نبيانوكښې اعلى او قرآن هم په ټولوكلامونوكښې لوئې شان والا،اود عظمت خبره داده چه قرآن ته دواړه بزرګئ ملاؤ شوې.داپه يوځل د لوح محفوظ نه ملاء اعلى ته نازل شو.دلوح محفوظ نه ټول په ټوله آسمان ددنيا ته نازل شو.بيا دضرورت مناسب په لږه لږه نازليدلو.



**د قرآن پاک مجموعه نزول په ليلة القدر شوې ده:**-ابن عباس رضی الله عنه فرمائي چه ټول قرآن په يوځل په ليلة القدر کښې آسمان ددُنياته نازل شو.بيا شلوکالو پورې زمکې ته نازليدلو.بيا ددې په ثبوت کښې هغوی ﴿لَايَأْتُونَكَ﴾او آيت ﴿وَقُرْاٰنًا فَرَقْنٰهُ﴾ تلاوت اوفرمائيلو[1]ددې نه پس چه دکافرانو کوم حالت دقيامت په ورځ کيدونکې دې.دهغې بيان ئې اوفرمائيلو.چه په ډيربدحالت اوډيرناکاره ذلت کښې به ددوی حشر جهنم طرف ته وی دوی به پړمخې رابنکلې شی هم داخراب ځائې والا اوډټولو نه زيات بې لارې دی. يو سړی دنبی کريم ﷺ نه تپوس اوکړو چه دکافرانو حشربه پړمخې څنګه وی.نبی ﷺ اوفرمائيل.کوم ذات چه هغوی لره په خپو باندې چلولی دی هغه به په سرباندې چلولوباندې هم قادردې.([2])

**د انبياودشمن قومونه تباه اوبرباد شول**"الله ﷻمشرکان اودنبی کريم ﷺ مخالفين دخپلوعذابونونه ويروی چه ستاسونه مخکښې چه کوموخلقوزمادنبيانوخبره اونه منله.دهغوی سره ئې دشمنی اوکړله، د هغوی مخالفت ئې اوکړو.ماتباه اوبرباد کړل.د فرعونيانوحال تاسو اوريدلې دې چه موسی عليه السلام اوهارون عليه السلام هغوی طرف ته پيغمبران اوليږلی شول.ليکن هغوی اونه منل.چه ددې په وجه دالله عذاب راغې.اوټول هلاک کړې شول.د نوح عليه السلام قوم ته اوګورئ هغوی هم زمونږ رسول دروغژن اوګنړلو .

**د يو رسول تکذيب د ټولو رسولان تکذيب دې:**-او چونکه د يورسول دروغژن ګنړل دټولو نبيانو دروغژن ګنړل دی.په دې وجه دلته رُسُل جمع اووئيلې شو. اودابه دې معنی سره هم چه کۀ بالفرض هغوی طرف ته ټول رسولان هم ليږلې شوې وې.نوبيابه هم هغوی دټولوسره هغه سلوك کولو.کوم ئې چه نوح عليه السلام سره اوکړلو.دامطلب نه دې چه دوی طرف ته ډير رسولان ليږلی شوی وو.هغوی ته صرف حضرت نوح عليه السلام راغلې وو.چه دهغه نهنيم سوه کاله په هغوی کښې وو.به هره طريقه ئې هغوی پوهه کړل،ليکن د يو څوکسانونه سواچاهم ايمان رانۀ وړلو.په دې وجه الله ﷻ ټول غرق کړل.سوادهغه کسانونه کوم چه حضرت نوح عليه السلام سره په کشتئ کښې سوارۀ وُو.يوبنيادم په زمکه باندې بچ پاتې نه شو.خلقودپاره د هغوی هلاکت عبرت جوړکړې شو.لکه چه فرمان دې.چه داوبو دتيزو چپوپه وخت مونږ تاسوپه کشتئ کښې سوارۀ کړئ.تردې چه تاسودې لره خپل خان دپاره عبرت جوړکړئ.اوکشتئ مونږتاسو دپاره ددې طوفان نه دنجات درکولو اود اوږد اوږد سفرکولو ذريعه جوړه کړله.چه تاسودالله نعمت يادکړئ.چه هغۀ دډير لوئې طوفان نه تاسو بچ کړئ.او ايماندار اود ايماندارو په اولادکښې ئې اوساتلې:د عاديانو اوثموديانو قصه خوډيرځل بيان شوې ده.لکه چه په سورۀ اعراف وغيره کښې ﴿وَأَصْحٰبَ الرَّسِّ﴾ باره کښې دابن عباس رضی الله عنه قول دې چه دا دثموديانو ديوکلی والاوو.([3])

عکرمه رحمه الله فرمائي.چه داد فلج (يمامه) والاوو چه ددوی ذکرپه سورۀ يسين کښې دې.دابن عباس رضی الله عنه نه داهم نقل دی چه دآزربائيجان يوکوهی سره ددوی کلې وو.عکرمه رحمه الله فرمائي هغوی ته کوهی والاځکه وائی چه هغوی خپل پيغمبرپه کوهی کښې غورزولې وو.ابن اسحاق دمحمدبن کعب رحمه الله نه نقل کوی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل.چه يوتورغلام به دټولونه رومبې جنت ته ځی الله ﷻ يوکلی والوته خپل نبی ليږلې وو.ليکن هغه کلی والوکښې سوادهغۀ نه چاهم ايمان رانۀ وړلو.بلکه هغوی دالله نبی په يو غير آباد کوهی کښې په وران ميدان کښې اوغورزولو.اودهغۀ په خُله باندې ئې يوغټ ګټ کيخوده. چه دې هم هلته مړشی.داغلام به ځنګل ته تلو.لرګی به ئې پريکول او راوړل.اوهغه به ئې په بازارکښې خرڅول. او روټئ وغيره به ئې اخستله اوکوهی ته به رانلو.اوهغه کانړې به ئې لرې کول چه هغه به ډيرو سړوهم نه شو لرې کولې.ليکن الله ﷻ به دهغۀ په لاسونوهغه لرې کول.دۀ به يوه رسئ زوړندوله، روټئ او اوبۀ

---

[1]) حاکم : ۳۶۸/۲. وسنده حسن.

[2]) صحيح بخاری کتاب التفسير سورة الفرقان باب قوله تعالی ﴿ الذين يحشرون علی وجوههم الی جهنم...﴾: ۴۷۶۰.

[3]) الطبری : ۲۶۹/۱۹.

به نې هغه پيغمبر ته رسول.چه هغه به داخوراك څكاك كولو.ترمودو پورې هم داسې كيدل.يوځل دې لاړه لرګى نې كټ كړل جمع نې كړل.پنډنې اوتړلو.چه په دې كښې پرې دخوب غلبه اوشوه او اوده شو. الله ﷺ په هغه داسې خوب راوستلوچه اووه كالوپورې هغه اوده وو.اووه كاله پس نې بيا سترګې كهلاو شوې.نوهغه د خپلو لرګو پنډ اوچت كړو.اوښار طرف ته روان شو.دهغه هم داخيال وو.چه لږ وخت دپاره اوده شوې ووم.ښارته راغې لرګى نې خرڅ كړل.دعادت مطابق نې خوراك . اخستلو.اوهلته اورسيدلو. څه ګورى چه كوهې هلته نشته، ډيرنې تلاش كړوخوملاو نه شو.دلته دا شوى ووچه دقوم زړونه ايمان طرف ته مائل شو.هغوى لاړل خپل نبى نې دكوهى نه راويستلو.ټول په ټوله ايمان راوړلو.بيا نبى په خپل مرګ مړشو.نبى هم پخپل ژوند كښې داحبشى غلام تلاش كولو.ليكن دهغه پته اونه لګيده.بيا د هغه نبى دمرګ نه پس دا سړې دخپل خوب نه راپاسولې شو.نبى كريمﷺ فرمانى.پس داحبشى غلام دې چه دابه دټولونه مخكښې جنت ته خى(١).دا روايت مرسل دې اوپه دې كښې غرابت اونكارت دې او شايد ادراج هم دې والله اعلم.

دا روايت په هغه اصحاب رس باندې هم نه شولګولې.څكه چه دلته خوذكردى چه هغوى هلاك كړې شو.البته دايوه توجيه كيدې شى چه داخلق خوتباه كړې شول.بيا ددوى نسلونه صحيح شول.اوهغوى ته دايمان توفيق ملاوشو.دامام بن جريرؒ فرمان دې.چه اصحاب رس هم هغه دى دكوموذكرچه په سورة بروج كښې دې چاچه خندقونه كنستلى وو.والله اعلم.بيائې اوفرمائيل چه نورهم ددوى په مينځ كښې ډيرامتونه راغلل چه هغوى هلاك كړې شول.مونږدهغوى ټولومخكښې خپل كلام بيان كړې وو.دليلونه مونږه كړى وو.معجزې مو ورته خودلې وې.عذرونه مو ورله ختم كړى وو.بيامو ټول تباه اوبربادكړل. لكه چه فرمان دې.چه دنوحﷺ نه پس هم ډيركلى مونږتباه كړل.

**قرن څومره مودې ته وائى؟**:-قرن وائى اُمت ته، لكه چه فرمان دې چه ددوى نه پس مونږډير قرن يعنى اُمتونه پيداكړل.دقرن موده دبعضوپه نزد يوسل شل كاله ده.څوك وائى سل كاله،څوك وائى اتيا كاله ، څوك وائى څلويښت كاله،نورهم ډيراقوال شته.زياته واضحه خبره داده چه ديوې زمانې والايوقرن دى. كله چه هغوى ټول مړه شى. نو دويم قرن شروع كيږى.لكه چه دبخارى اومسلم په حديث كښې دى چه د ټولونه غوره زمانه زما زمانه ده.(٢)

**د سدوم كلى تذكره**:-بيا فرمائى چه سدوم نومې كلې سره خودا عرب مُسلسل تيريږى.هم دلته لوطى آباد وو.چه په هغوى باندې زمكه اُلټه كړې شوه.اودآسمان نه پرې كاڼرى اُورولې شو.او ډير باران پرې اوشوچه هغه دسختوكاڼړو وو.دوى شپه ورځ په دغه ځائې تګ راتګ كوى.بيا هم دعقلمندئ نه كارنه اخلى.داكلى خوستاسو دتيريدو ځايونه دى.ددوى واقعات مشهور دى.آيا تاسودوى نه ګورئ؟يقيناً چه ګورئ ليكن ستاسودعبرت سترګې نشته،چه پوهه شئ اوغور اوكړئ.چه دهغوى دخپل نالائق توب په وجه هغوى دالله په عذابونوكښې راګير شول.د بوسيه شان والوزولې شول.بيا نشانه كړې شو.د جرړې نه ختم كړې شول لكه چې په پوكى والوزولې شو چه په دې سوچ اوكړې نوهغه څوك چه قيامت منى. څه به عبرت حاصل كړى چه دسره دقيامت منكردى دوباره ژوند ناممكن ګڼړى.

| وَإِذَا | رَاَوْكَ | إِنْ يَّتَّخِذُوْنَكَ | إِلَّا | هُزُوًا ط | أَهٰذَا الَّذِىْ |
|---|---|---|---|---|---|
| او هر كله چې | اووينى دا خلق تا | نو نه نيسى دوئ تا | مګر | په ټوقو سره | ايا دا هغه سړې دې |
| اوهر كله چې دا خلق تاته اوګورى | | نو تا پورې ټوقې كوى | | اچې ايا دا هغه سړې دې چې | |

---

(١) الطبرى :١٩/٢٧١،

(٢) صحيح بخارى كتاب فضائل اصحاب النبى صلى الله عليه وسلم : ٣٦٥١. صحيح مسلم: ٢٥٣٥.



بَعَثَ اللّٰهُ رَسُوْلًا ۝ اِنْ كَادَ لَيُضِلُّنَا عَنْ اٰلِهَتِنَا

چه رالیږلی دی الله | په حیثیت د رسول | قریبه وه چی ده | گمراهه کړی وی مونږ | د خدایانو زمونږ نه

الله ﷺ پیغمبر رالیږلی دی | دی سړی خو به مونږ د خپلو معبودانو نه اړولی وو

لَوْلَآ اَنْ صَبَرْنَا عَلَيْهَا ؕ وَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ حِيْنَ يَرَوْنَ

که چری صبر نهٔ وی کړی مونږ | په هغی باندی | او زر به معلوم شی دوئ ته | کله چی اووینی

که مونږ پری کلک ولاړ نه وی | او هرکله چی دوئ عذاب اووینی | نو دوئ ته به معلومه

الْعَذَابَ مَنْ اَضَلُّ سَبِيْلًا ۝ اَرَءَيْتَ مَنِ

عذاب | چی څوک ډیر ورک کونکی دی | لاری لره | آیا تا غور کړی دی | په حال د هغه چا

شی | چی څوک دلاری نه بی لاری وو | ......................آیا تا هغه سړی لیدلی دی | اکوم چی

اتَّخَذَ اِلٰهَهٗ هَوٰىهُ ؕ اَفَاَنْتَ تَكُوْنُ عَلَيْهِ

چی نیولی ئی دی | خدائی خپل | خواهشاتو خپلو لره | آیا پس تهٔ به شی | په هغه باندی

د خپل خواهش نه خپل معبود ﷻ جوړ کړی دی | نو آیا ته د هغه ذمه واری اخستی شی ؟

وَكِيْلًا ۝ اَمْ تَحْسَبُ اَنَّ اَكْثَرَهُمْ

ساتونکی | چی منع ئی کړی د خواهشاتو نه) | یا گمان کوی تهٔ | چی بیشکه ډیر خلق د دوئ

آیا ستا دا خیال دی چی په دوئ کښی زیات کسان (سمه خبره) اوری

يَسْمَعُوْنَ اَوْ يَعْقِلُوْنَ ؕ اِنْ هُمْ اِلَّا كَالْاَنْعَامِ بَلْ هُمْ

(گنی) اوری خبره | یا د عقل نه کار اخلی | نهٔ دی دوئ | مگر دی | پشان د څناور | بلکه دوئ

یا پوهیږی | دوئ خو د څاروو په شان دی | بلکه د څاروو نه هم

اَضَلُّ سَبِيْلًا ۝ اَلَمْ تَرَ اِلٰى رَبِّكَ كَيْفَ مَدَّ

زیات ورک کونکی دی | نیغی لاری لره | آیا نهٔ گوری تهٔ | رب خپل ته | چی څرنگې ئی | خور کړی دی

زیات بی لاری دی | آیا ته د خپل رب (کارونو) ته نه گوری | چی هغه څنګه سیوری

الظِّلَّ ۚ وَلَوْ شَآءَ لَجَعَلَهٗ سَاكِنًا ۚ ثُمَّ

سوری | او که غوښتلی هغه | نو گرزولی به ئی وو دغه سوری | ولاړ په یو ځائی | بیا |

راخور کړی دی | که هغه غوښتلی نو دغه سیوری به ئی په ځائی ایسار کړی وی | بیا

جَعَلْنَا الشَّمْسَ عَلَيْهِ دَلِيْلًا ۝ ثُمَّ قَبَضْنٰهُ

جوړ کړو مونږه نمر | په هغی باند | دلیل (چی معلومیږی) | بیا راغونډوؤ مونږ دا سوری |

مونږ نمر په دغه سیوری باندی یوه نښه مقرر کړه | بیا دا سیوری

| إِلَيْنَا | قَبْضًا | يَسِيرًا ○ | وَهُوَ الَّذِي | جَعَلَ | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| خان خپل ته | په راغونډولو | آسانو سره | او هغه (الله) هغه ذات دې | چې جوړه نې کړه | | |
| مونږ خپل طرفته راټولوو ...... اوالله ﷻ هغه ذات دې چې ستاسو دپاره نې شپه د پردې | | | | | | |
| لَكُمُ | الَّيْلَ | لِبَاسًا | وَالنَّوْمَ | سُبَاتًا | وَّجَعَلَ النَّهَارَ | نُشُورًا ○ |
| ستاسو دپاره | شپه | جامه | او خوب | ذریعه دارام | او جوړه نې کړه ورځ | وخت دپاسیدو |
| ځیز اوخوب دارام ذریعه او ورځ د ګرځیدو دپاره جوړه کړې ده | | | | | | |

قوله تعالي:- وَإِذَا رَأَوْكَ إِن يَتَّخِذُونَكَ إِلَّا هُزُوًا

**د ناعاقبت اندیشو آقاپورې ټوقې**"کافرانوبه دالله ﷻغوره اوافضل پیغمبراحمد مُجتبی محمدﷺ په لیدلو خندااوټوقې کولې.عیبونه به نې پکښې لټول.اوپه نبیﷺکښې به نې نقصانونه ښودل.هم دا حالت دهریوې زمانې دکافرانوخپلو نبیانوسره شوې دې.لکه چه فرمان دې.﴿وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّن قَبْلِكَ ﴾ ستانه مخکښې رسولانو پورې هم ټوقې کړې شوې، اوونیلې شوچه مونږکلك شوګنی دې رسولﷺ خو زمونږپه دهوکه کولوکښې هیڅ کمی پرې نخودله.بنه ده دوې ته به ډیرزرمعلومه شي چه په هدایت باندې دوی ځومره پورې وو؟دعذاب په کتلوبه ددوی سترګې کهلاو شی.اصل دادې چه دې خلقو خواهش پرستي شروع کړې ده.نفس او شیطان چه کوم ځیزبنه ښکاره کوی.دوی هم دابنه ګڼی.نو ددې ذمه دارته ځنګه ګرځیدلې شي؟

**په عربو کښې د کاڼړو عبادت**:-دحضرت ابن عباسﷺ بیان دې چه په جاهلیت کښې دعربو داحالت وو. چه چرته به نې ځه سپین ګول غونډې کاڼړې اولیدلودهغې عبادت به نې شروع کړو.چه دهغې نه به بل یوښه په نظرراغې هغې ته به نې سجدې کولې اوړومبې به نې پرېښودلو([1]).بیاقرمانې داخو د ځناورونه هم بدتردي.نه ددوی غوږونه شته، نه نې زړه شته،ځناررخو خیر قدرتاً آزاددی لیکن دوی چه دعبادت دپاره پیداکړې شوی وو.دوی دهغوی نه هم زیات بې لارې شول.بلکه دالله نه سوائې دنوروعبادت شروع کړلو.اود حُجت قانمیدونه پس د رسولانو رسیدلو نه پس هم الله ته سجده نه کوی.دهغهٔ توحید او د رسولﷺ رسالت نه مني.

**دالله د وجود او قدرت دلیلونه**"د الله ﷻ په وجود اودهغه په قدرت باندې دلیلونه بیانیږی چه مختلف او متضادځیزونه هغه پیداکوی.سورې هغه اوږدهٔ وی.وانی چه دا وخت دصباصادق نه واخله ترنمر راختلو پورې دې.که چرې هغهٔ غوښتلې نودابه نې په یو حالت باندې ساتلې وې.لکه چه فرمان دې.چه کهٔ هغه صرف شپه اوساتی نوځوك ورځ کولې نه شي،اوکه هغه صرف ورځ اوساتی نوځوك شپه نه شی راوستلې.که نمرنه راوتلې نودسورې حال به هم نه معلومیدلې.هرځیز په خپل ضدسره پیژندلې شي.د سورې نه شاته نمر،د نمرنه شاته سورې داهم دقدرت انتظام دې.بیاپه مزه مزه مونږداسورې یا نمرخپل طرف ته راټولوو.یو راټولیږی اوبل اوږدیږی.اودا انقلاب په تیزئ سره کیږی.هیڅ یوځائې سورې والا باقي نه پاتې کیږی.صرف دکورونو دچهتونو اود ونولاندې سورې پاتې کیږی.اوپه هغې هم دپاسه نمر ښکاره وی.په مزه مزه په لړه لړه مونږداخپل طرف ته راټولوو.هم هغهٔ شپه ستاسودپاره جامه جوړه کړې ده.چه داستاسوپه وجودباندې راخوریږی.اوداپټوی.لکه چه فرمان دې،قسم دې دشپې کله چه پټ کړی،هم هغهٔ خوب لره سبب دراحت اوآرام جورکړې دې.چه دغه وخت حرکت اودریږی.اودټولې ورځې کاروبارسره چه کوم ستړې والې سورشوې وو.هغه دې آرام سره ښکته کیږی.اوبدن او روح ته راحت

[1]) الدرالمنثور:۶/۲۶۰.

حاصلیږي.بیادورځې پاسیدوسره خوارهٔ شي.اود روزۍ په تلاش کښې لګیاکیږي.لکه چه فرمان دې چه هغهٔ خپل قدرت سره شپه او ورځ مقررکړې ده.چه تاسو سکون اوآرام هم حاصل کړئ.اوخپلې روزۍ هم تلاش کړئ.

وَهُوَ الَّذِيٓ | اَرْسَلَ الرِّيٰحَ | بُشْرًاۢ | بَيْنَ يَدَيْ | رَحْمَتِهٖ | وَاَنْزَلْنَا

او الله هغه ذات دې | چې رالیږي هواګانې | زیرې | وړاندې | درحمت خپل نه | او نازلوؤ مونږه

او الله هغه ذات دې چې هواګانې دخپل رحمت (یعني باران) نه وړاندې دزیرې په طور رالیږي

مِنَ السَّمَآءِ | مَآءً طَهُوْرًا | لِّنُحْيِۦَ | بِهٖ | بَلْدَةً

داسمان نه | اوبه | پاکې | دپاره ددې چې ژوندې کړو مونږه | په دې اوبو سره | ښار

اومونږد اسمان نه پاکیزه اوبهٔ راؤروو| چې ددې په ذریعه یو مړه شوې (اوچ بنجر) زمکه

مَّيْتًا | وَّنُسْقِيَهٗ | مِمَّا | خَلَقْنَآ | اَنْعَامًا | وَّاَنَاسِيَّ

مړ | او چې اوڅکوؤ مونږ دااوبهٔ | په هغوئ باندې | چې پیدا کړي دي مونږه | ځناور | او انسانان

بیا راژوندئ کړو | او دخپل پیدا کړی مخلوق نه ډیر ځاروی او بنیادم پرې خړوب

كَثِيْرًا | وَلَقَدْ صَرَّفْنٰهُ | بَيْنَهُمْ | لِيَذَّكَّرُوْا

ډیر | او باربار کوؤ مونږ دا کار | په منځ ددوئ کښې | دپاره ددې چې سبق حاصل کړي |

کړو| اومونږدا (اوبه) په دوئ کښې په مختلفو طریقو سره تقسیموودې دپاره چه دوئ غور اوکړي

فَاَبٰٓى | اَكْثَرُ النَّاسِ | اِلَّا كُفُوْرًا

نو انکار اوکړو(دصحیح لارې اختیارولونه) | زیاتو خلقو | مګر وې نهٔ کړو انکار دکفر او ناشکرۍ نه

خوبیا هم زیات خلق د ناشکرۍ کولو نه بغیر نه پاتې کیږي|

قوله تعالى:- وَهُوَ الَّذِيٓ اَرْسَلَ الرِّيٰحَ بُشْرًاۢ بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهٖ

**هواګانې د باران زیرې دی اود هواګانو مختلف خاصیتونه** الله ﷻ خپل یوبل قدرت بیانوی.چه هغه د باران نه مخکښې دباران زیرې ورکونکې هواګانې چلوی.په دې هواګانو کښې رب ډیر خاصیتونه اینښودې دی.بعض هواګانې وریځو لره جداکوی.بعضې دې لره اوچتوی، بعضې دې لره روانوی. بعضې ډکې اوخې اولوندې روانیږي خلق درحمت باران طرف ته متوجه کوی.بعضې ددې نه مخکښې زمکه تیاروی.بعضې وریځولره د اوبونه ډکوی.اودا درنوی.دآسمان نه په مونږپاك صفا باران راوروی.چه دا دپاکوالي آله جوړه شي.دلته طهورداسې دې.لکه سحور او جور وغیره.بعضو وئیلي دی چه دافعول په معنی دفاعل دې یادا دمبالغې، دپاره مبنی دې یاد متعدی دپاره دې.داټول اقوال دلغت اوحکم په اعتبارسره مشکل دی.دامقام دپوره تفصیل مناسب نه دې.والله اعلم

دحضرت ثابت بنانیؒ بیان دې.چه زهٔ دحضرت ابوالعالیهؒ سره دباران په زمانه کښې اووتلم.د بصرې لارې دغه وخت ډیرې ګنده وې.هغوی په داسې لاره باندې مونځ اداکړو.ماهغوی متوجه کړل.نوهغوی اوفرمائیل.دې لره دآسمان پاکو اوبو پاك کړې دی.الله فرمائی چه مونږدآسمان نه پاکې اوبه راوروؤ.حضرت سعیدبن مسیبؒ فرمائی.چه الله دې لره پاکې نازلې کړې دی، دې لره هیڅ نه ناپاکه کوی.

حضرت ابوسعيدخدري رضي الله عنه فرمائي.چه درسول الله ﷺ نه تپوس اوکړې شو.چه د بئربضاعه نه اودس اوکړو؟ دا يوکوهې دې چه په دې کښې به ګندګی اود سپو غوښې غورزولې شوې.نبي ﷺ اوفرمائيل اوبه پاکې دی دې لره څه څيزنه ناپاکه کوی.(١)امام شافعي رحمه الله اوامام احمد رحمه الله دا روايت کړې دې. ابوداؤد رحمه الله اوامام ترمذي رحمه الله دې ته صحيح وئيلې دی.په نسائي کښې هم داروايت شته. د عبدالملك بن مروان په دربارکښې يوخل داوبو ذکرشروع شو.نوخالدبن بريد رحمه الله اووئيل.بعضې اوبه دآسمان وی. بعضې اوبه هغه وی.چه هغې لره وريځې دسمندرنه څکی.اوهغې لره ګرزارې، او برېښنا خوږې کوی. ليکن هغې سره په زمکه کښې پيداوارنه کيږی.او آسمانی اوبوسره پيداوار راخيژی.
عکرمه رحمه الله فرمائي.چه د آسمان هريو څاڅکی سره واښه، ګيا وغيره پيداکيږی يا په سمندرکښې سيپئ اوملغلرې پيداکيږی.يعنی﴿فِى الْبَرِّ وَفِى الْبَحْرِ دُرٌّ﴾په زمکه کښې غنم اوپه سمندرکښې ملغلرې،بيائې اوفرمائيل چه هم په دې سره مونږ به غيرآباده، بنجر اوچه زمکه ژوندئ کوو.دا را زرغونه شی او شنه تازه شی.لکه چه فرمان دی.﴿فَإِذَآ أَنزَلْنَا عَلَيْهَا ٱلْمَآءَ ٱهْتَزَّتْ وَرَبَتْ﴾ علاوه د مړې زمکې د ژوندی کيدونه دا اوبه دځناوروا وانسانانوڅکلودپاره استعماليږی ددوی فصلونو اوباغونوته ورکولې شی.لکه چه فرمان دې چه داالله هغه دې چه دخلقو دپوره نااُميدئ نه پس په دوی باندې باران راوروی.اوپه آيت کښې دی چه دالله درحمت آثاروته اوګورئ.چه څنګه مړه زمکه ژوندئ کوی.بيا فرمائی دې سره زما دقدرت يونظاره داهم اوګورئ چه وريځ راوچتيږی، ګرزيږی ليکن چرته چه زه غواړم وريږی په دې کښې حکمت اوحُجت دې.ابن عباس رضي الله عنه قول دې چه هيڅ يوکال دبل کال نه کم اوزيات دباران نه دې ليکن الله تعالی چه چرته اوغواړی ورروی.دکوم ځائې نه چه اوغواړی لرې کوی نې.(٢)پس پکاروه چه ددې نشاناتوپه ليدلوسره، د الله ددې زبردست حکمتونو او دقدرتونومخې ته ايخودو سره نې داهم خبره منلې،چه بيشکه مونږبه دوباره ژوندی کيږو.اوپه دې هم پوهه شوی وو چه بارانونه زمونږ دګناهونو دسپيرۀ توب نه بندولې شی. نومونږ ګناه پريږدو.ليکن دې خلقو داسې اونه کړل.بلکه زمونږپه نعمتونو باندې نې نوره هم ناشکری اوکړله.
يومرسل حديث په ابن ابی حاتم کښې دې.چه رسول الله ﷺ حضرت جبرئيل عليه السلام ته اووئيل چه زۀ د وريځ باره کښې څه تپوس کول غواړم.حضرت جبرئيل عليه السلام اوفرمائيل په وريځوچه کومه فرشته مقررده هغه داده.تاسوددې نه چه څه غواړئ معلوم کړئ.هغه اووئيل اې دالله رسوله ﷺ! مونږته خودالله حکم راځی چه په فلانی فلانی ښارکښې دومره دومره څاڅکی او ورروه.مونږ ارشاد تابعداری کوودباران دنعمت په وخت د اکثروخلقو د کُفر يوه طريقه داهم ده.چه هغوی وائی چه په مونږباندې دفلانی فلانی ستوری په وجه دا باران او ورولې شو.لکه چه په صحيح حديث کښې دی چه يوخل دباران وريدلونه پس رسول الله ﷺ اوفرمائيل.اې خلقوا پوهه شوئ ستاسورب څه اوفرمائيل؟ هغوی اووئيل الله او دهغۀ رسول ښه پوهيږی. نبي ﷺ اوفرمائيل.واورئ! الله فرمائيلی دی.زما دبندګانونه ډير په ما مؤمنان شول. او ډير کافران شول.چاچه اووئيل چه صرف دالله په فضل اوکرم سره دا باران په مونږ باندې وريدلې دې. هغوی خوپه ما ايمان لرونکی اوپه ستورو کفر کونکی شول.او چاچه اووئيل چه په مونږ دفلانی فلانی ستوری په اثرسره باران اوورولې شو.هغوی په ماکافران اوپه ستورو مؤمنان شول.(٣)

---

(١) احمد: ١٥/٣، ابوداود: کتاب الطهارة باب ماجاء فی بئر بضاعة:٦٦. وسنده حسن.

(٢)الطبری: ٢٨٠/١٩. وسنده صحيح.

(٣) صحيح بخاری کتاب الاذان باب يستقبل الامام الناس اذا سلم: ٨٤٦، صحيح مسلم: ٧١.

وَلَوْشِئْنَا لَبَعَثْنَا فِیْ كُلِّ قَرْیَةٍ نَّذِیْرًا ۝ فَلَا تُطِعِ

او كه غوښتلې مونږ | نو لیږلې به وې مونږ | په هر كلي كښې | یو یرونكې | نومهٔ منه خبره |

او كه مونږ غوښتلې نو په هر یو كلي كښې به مو یو یرونكې لیږلې وو| نو ته دكافرانو

الْكٰفِرِیْنَ وَجَاهِدْهُمْ بِهٖ جِهَادًا كَبِیْرًا ۝ وَهُوَ

دكافرانو | او جهاد كوه ددوئ سره | په ذریعه ددې قرآن | جهاد | لوئ | او هغه

خلقو خبرې هیڅرې مه منه | اوددې قرآن پاک په ذریعه هغوئ سره ښه كلكه مقابله اوكړه

الَّذِیْ مَرَجَ الْبَحْرَیْنِ هٰذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ وَّهٰذَا

هغه ذات دې | چې روان كړي ئې دی | دوه دریابونه | دایو خوږ مزیدار دې | او دا بل

او الله هغه ذات دې | چې دوه دریابونه ئې یوځائې روان كړي دی | چې یو خوږ دې تنده وژني

مِلْحٌ اُجَاجٌ ۚ وَّجَعَلَ بَیْنَهُمَا بَرْزَخًا وَّحِجْرًا

تریو او تریخ دې | او جوړه كړي ئې ده | په منځ ددواړو كښې | پرده | او بندا |

او یو مالګین دې | چې د دواړو ترمینځه ئې یوه پرده او یو مضبوط بند پیدا كړې دې

مَّحْجُوْرًا ۝ وَهُوَ الَّذِیْ خَلَقَ مِنَ الْمَآءِ بَشَرًا

منع كونكې یو بل لره دګډوډیدونه | او هغه هغه ذات دې | چې پیدا ئې كړو د اوبو نه | انسان |

او الله ﷻ هغه ذات دې | چې د اوبو (دڅاڅكي) نه ئې انسان پیدا كړو | بیا ئې

فَجَعَلَهٗ نَسَبًا وَّصِهْرًا ۭ وَكَانَ رَبُّكَ قَدِیْرًا ۝

پس جوړ ئې كړو هغه | نسب والا | او سخر ګنئ والا | او دې رب ستا | قدرت والا |

هغه دخپلې كورنئ او سخرګنئ خاوند كړو | او ستا رب (په هره خبره) قادر دې

قوله تعالی:- وَلَوْشِئْنَا لَبَعَثْنَا

**د رسول كریم ﷺ نبوت ټولې دنیا دپاره دې** "كه رب غوښتلې نو هرهر كلی ته به ئې یو یو نبی لیږلې. لیكن هغهٔ ټولې دنیاطرف ته یونبی لیږلې دې. او بیائې هغهٔ ته حكم وركړې دې. چه ددې قرآن وعظ ټولو ته واوروه. لكه چه فرمان دې. چه زه په دې قرآن سره تاسو او چاچاته چه دا اورسیږی هوښیاروم. او په دې ټولو دلو كښې چه څوك هم ددې نه كفر اوكړی. دهغهٔ دوعدې ځائې جهنم دې. او فرمان دې. چه ته مكې والا او دڅلور واړه طرفو خلق خبر كړه. په بل آیت كښې دی چه اې نبی ﷺ! تاسو اووایئ چه اې ټولو خلقو! زهٔ تاسو ټولو طرف ته رسول الله جوړ شوې راغلې یم. ([1]) دبخاری او مسلم په حدیث كښې دی. چه زه سور او تور ټولو طرف ته رالیږلې شوې یم. ([2]) دبخاری او مسلم په بل حدیث كښې دی. چه ټول نبیان خپل خپل قوم طرف ته لیږلې شول. او زهٔ عامو خلقو طرف ته لیږلې شوې یم. بیائې او فرمائیل دكافرانو خبره مه منئ. او ددې قرآن په ملګرتیا كښې هغوی سره ډیر لوئې جهاد اوكړئ. لكه چه ارشاد دې ﴿ یٰۤاَیُّهَا النَّبِیُّ جَاهِدِ الْكُفَّارَ ﴾ یعنی اې نبی! كافرانو او منافقانو سره جهاد كوه. هم دې رب او به دوه قسمه كړی دی خوږې او.

---

[1]) صحیح مسلم: كتاب المساجد باب المساجد ومواضع الصلاة: ۵۲۱.

[2]) صحیح بخاری كتاب التیمم باب :۱ حدیث : ۳۳۵. صحیح مسلم: ۵۲۱.

ترخې، د نهرونو، چينو اوکوهيانو اوبه عـام طوربانـدې خوږې صـفا اوښـهٔ خونـد والا وى.د بعضې ولاړ سمندرونواوبه ترخې او بې مزې وى.د الله ﷻ په دې نعمت باندې هم شکر کول پکاردى.چه هغه خوږې اوبه څلور طرفوته خورې کړې دى.چه خلقوته په لامبلو وينځلو اوخپلو پټو اوباغونوته اوبه ورکولوکښې آسانى وى.مشرقونو اومغربونو لره راګيرونکى سمندرونه ئې د ترخو اوبه جارى کړى دى.چه هغه ولاړ دى. يوخوا بل خوانه بهيږى.ليکن چپې وهې.حرکت کوى بعضې ښکته پورته کيږى.دهر مياشتې په شروع تاريخونوکښې خوپه دې کښې زياتوالې او تيزوالې راځى.بيا دسپوږمۍ کميدوسره داهم کميږى .تردې چه په آخرکښې خپل حالت ته راځى.بياکله چه سپوږمۍ غټيږى داهم زياتيږى.څوارلسم تاريخه پورې برابر سپوږمۍ سره زياتيږى.بيا کميدل شروع کيږى.داټول سمندرونه هم دې الله پيداکړى دى. هغه پوره اوزبردست قدرت والادې.ترخې اوګرمې اوبـه اګرچه دڅکلوپـه کارنـه راځى.ليکن هواګانې صفا کوى.چه په دې سره انسانى ژوندپه هلاکت کښې نـه پريوځى.په دې کښې چه کوم څناور مړهٔ کيږى. دهغې بدبوئى دنياوالوته تکليف نه رسوى.اود ترخو اوبوپه وجه دهغې هوا صحت ورکونکې او مزه ئې پاکه اوښه وى.

دنبى کريمﷺ نه چه کله دسمندر داوبوباره کښې تپوس اوشو.چه آيا مونږددې نه اودس کوو؟ نونبىﷺ اوفرمائيل ددې اوبه پاکې دى.اوددې مړشوې حلال دې[1].مالکؒ، شافعىؒ اواهل سنن دا روايت کړې دې.او اسنادئې هم صحيح دې.بيادهغهٔ دې قدرت ته اوګورئ چه خاص په خپل طاقت سره اوبه خپل حکم سره ئې يودبل نه جداساتلې دې.چه نه ترخې په خوږوکښې ملاويږى اونه خوږې په ترخوکښې ملاويږى.لکه چه فرمان دې.﴿مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ يَلْتَقِيٰنِ۞ بَيْنَهُمَا بَرْزَخٌ لَّا يَبْغِيٰنِ۞﴾هغه دواړه سمندرونه جارى کړى دى چه دواړه يوځائې دى اوددې دواړوپه مينځ کښې يوه پرده قائم کړې ده.چه دحدنه وانهٔ وړى. بيا تاسو د خپل رب دکوم نعمت نه انکار کوئ؟په بل آيت کښې دى څوک دې هغه چه زمکه ئې ځائې د اوسيدو جوړه کړې ده اوپه دې کښې ئې ځائې په ځائې دريابونه جارى کړى دى.په دې ئې غرونه قايم کړى دى. اود دوؤ سمندرونوپه مينځ کښې ئې پرده جوړه کړې ده.آيادالله سره بل څوک معبود هم شته؟ خبره داده چه ددې مشرکانواکثرخلق بې علمه دى.هغه انسان دکمزورې نطفې نه پيداکړې دې.بيادې ټهيک ټهاک اوبرابرجوړکړې دې.اوبه ښهٔ پيدائش کښې ئې پيداکړې دې بيائې دې سړې يابڅه جوړ کړې دې.بيائې دده دپاره دنسب رشته دارجوړکړى دى.بيائې څه موده پس د سخرګنئ رشتې قائم کړى دى.ددومرهٔ لوئې قدرت والا الله قدرتونه ستاسوپه وړاندې دى.

| وَيَعْبُدُونَ | مِنْ دُونِ اللهِ | | مَا | لَا يَنفَعُهُمْ |
|---|---|---|---|---|
| او عبادت کوى دا خلق | بې | دالله نه | دهغه څيزونو | چې نفع نهٔ شي رسولې هغوئ ته |
| اودوئ دالله ﷻ نه سوا د هغه څه عبادت کوى | | | | چې نه ورته نفع رسولې شي |
| وَلَا يَضُرُّهُمْ | وَكَانَ الْكَافِرُ | | عَلَىٰ | رَبِّهِ |
| اونهٔ ضرر رسولې شي هغوئ ته | او دې | کافر | په مقابله | درب خپل کښې |
| اونه زيان | او کافرانو هسې هم د خپل رب قدرتونو ته شاکړې ده | | | |

[1] ابوداود کتاب الطهارة باب الوضوء بماء البحر: ۸۳.

ظَهِيرًا ۝ وَمَا أَرْسَلْنٰكَ إِلَّا مُبَشِّرًا وَّنَذِيرًا ۝ قُلْ

مدد گار (دهر باغی) | اونه نی لیږلی مونږ ته | مګر | زیری ورکونکی | او یرونکی | ورته اووایه

او مونږ خو ته خوشخبری رسوونکی اوویرونکی لیږلی ئی | ته ورته اووایه

مَا أَسْئَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ إِلَّا مَنْ شَآءَ أَنْ يَّتَّخِذَ

نه غواړم زه ستاسو نه | په دی کار باندی | څه اجر | مګر دا | چی څوك غواړی | چی اونیسی |

زه تاسو نه په دی تبلیغ څه اجر نه غواړم | مګر صرف هغه څوک غواړی | هغه دی خپل

إِلٰى رَبِّهٖ سَبِيلًا ۝ وَتَوَكَّلْ عَلَى الْحَيِّ الَّذِي لَا يَمُوتُ

طرف درب خپل نه | لاره | او توکل اوکړه | په هغه ژوندی الله باندی | چی نه مری |

رب ته تیغه لارا اونیسی | او ته په هغې ژوندی (الله ﷻ) باندی باور کوه | چی هیچری نه مری

وَسَبِّحْ بِحَمْدِهٖ ؕ وَكَفٰى بِهٖ بِذُنُوبِ عِبَادِهٖ خَبِيرًا ۝

او تسبیح وایه | دحمد دهغه سره | او کافی دی هغه | په ګناهونو دبندګانو خپلو باند | بنهٔ خبردار |

دهغه په تعریف کنبی تسبیح لوله | او هغه دخپلو بندګانو دګناه نه بنه خبر دی

الَّذِي خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا

هغه الله | چی پیدا ئی کړل | اسمانونه | او زمکه | او هغه چی په منځ ددی دواړو کنبی دی

(الله) هغه ذات دی چی اسمانونه اوزمکه او د دی په مینځ کنبی چه څه دی هغه ئی په

فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ ۚ اَلرَّحْمٰنُ فَسْئَلْ بِهٖ

په شپږو ورځو کنبی | بیا برابرشو په عرش باندی | رحمان | پس تپوس اوکړه | ددهٔ دشان |

په شپږو ورځو کنبی پیدا کړل | بیا هغه په عرش باندی قائم شو | او هم هغه رحمان دی | نو دهغه په حق

خَبِيرًا ۝ وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اسْجُدُوا لِلرَّحْمٰنِ قَالُوا

دپوهه سړی نه | او کله چی | اووئیلی شی | دوئ ته | چی سجده اوکړئ | دی رحمان ته | نو وائی |

دچا پوهه نه پوښتنه اوکړه | او هر کله چی دوئ ته اووئیلی شی چی تاسو رحمان ته سجده اوکړئ | نو دوئ وائی

وَمَا الرَّحْمٰنُ ۚ أَنَسْجُدُ لِمَا تَأْمُرُنَا وَزَادَهُمْ

اوڅه دی رحمان | ایا مونږ به سجده کوو | هغه ته | چی ته حکم کوی مونږ ته | او زیات کړل دی حکم دوئ لره

چی رحمان څوک دی ؟! آیا مونږ هغه چاته سجده اوکړو | چاد پاره چه ته مونږ ته د سجدی حکم راکوی

نُفُورًا ۝

په لحاظ دنفرت سره |

اودوئ په نفرت کنبی زیاتوی |

قوله تعالی:- وَيَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللّٰهِ مَا لَا يَنْفَعُهُمْ وَلَا يَضُرُّهُمْ دمشر کانو جهالت بیانیږی چه هغوی بُت پرستی کوی او بې دلیل او بې دمشر کانو جهالت اوضد بیان د مشر کانو جهالت بیانیږی چه هغوی بُت پرستی کوی اوبې دلیل اوبې حُجته هغې ته سجدې لګوی. چه هغه نه دنفع مالك دی اونه دنقصان، صرف دپلانیکونو په لیدلو.

نفساني خواهشاتوسره ني دهغي محبت اوعظمت په زړه کښي کينولي دي.او الله ﷻ ارسولﷺ سره دشمني اومخالفت کوي.په شيطاني لښکرکښي شامل شوي دي.اودالله دلښکرمخالف شوي دي. ليکن ياد ساتئ چه آخرانجام غلبه به دالله والووي.دوي په دي اميد کښي دي.چه دا باطل معبودان به د دوي مددکوي.حالانکه دابالکل غلطه ده دوي هسي بيسه دهغوي دطرفه زورلګوي.آخرانجام به خاص د مؤمنانوپه لاس کښي وي.په دنيا او آخرت کښي به دهغوي پروردګار دهغوي امداکوي.دي کافرانو لره خوشيطان صرف دالله په مخالفت باندي راپورته کوي نورهيڅ نشته.د ربښتوني الله دشمني ددوي په زړونوکښي اچوي.دشرك محبت پکښي کينوي.دوي دالله دحکمونونه مخ اړوي.بيا الله ﷻ رسولﷺ ته خطاب دوي فرماني چه مونږ تاالره مؤمنانوته خوشخبري اورونکي اوکافرانو لره ويرونکي جوړ کړي ليږلي يي.چه تابعداري کونکوته دجنت زيري ورکړئ اونافرمان دجهنم د عذابونونه خبر کړئ . په خلقوکښي عام طورباندي اعلان اوکړئ.چه زه دخپل تبليغ بدله دخپل وعظ مزدوري ستاسونه نه غوارم.زما اراده په دي سره سوا د الله ﷻ درضامندئ دلټولونه هيڅ نه ده.زه صرف دا غوارم چه په تاسو کښي څوك په صحيح لاره راتلل غواړي. هغه ته صحيح لاره اوښايم.اې پيغمبره! په خپلو ټولو کارونو کښي په هغه الله باندي أميد ساته.چه هغه هميشه او دوام والادي.چه هغه دمرګ او وفات کيدونه پاك دي.چه هغه داول او آخر، ښکاره اوپټ اوپه هرڅيزعالم دي.چه هغه دائم، باقي سرمدي، ابدي حي قيوم دي. چه هغه دهرڅيزمالك او رب دي.هغه لره خپل ماوي او ملجا اوګرځوئ.هم دهغه ذات داسي دي چه په هغه باندي توکل اوکړي شي.په هره ويره کښي هغه طرف ته متوجه شئ.هم هغه کافي دي هغه ناصر دي. هم هغه مؤيد اومظفردي.لکه چه فرمان دي﴿يَا أَيُّهَا الرَّسُولُ بَلِّغْ مَا أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ﴾اي نبي! کوم څه چه ستا طرف ته ستادرب دطرفه نازل شوي دي هغه اورسوه کـه تا دا اونـه منل نوتا درسالت حق ادانکړو.تاسو بي فکره اوسئ الله به تاسولره دخلقو دبدي ارادي نه اوساتي.

په يومرسل حديث کښي دي چه دمديني طيبي په يوه کوڅه کښي حضرت سلمانﷺ رسول اللهﷺ ته سجده اوکړله نوهغويﷺ اوفرمائيل.اي سلمانا سجده مه کوه دسجدي لائق هغه دي چه هغه هميشه ژوندوالادي.چه په هغه کله هم مرګ نه راځي (ابن ابي حاتم) اودهغه تسبيح اوحمد بيانوه.پس نبي کريمﷺ به ددي په تعميل کښي فرمائيل.«سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ رَبَّنَا وَبِحَمْدِكَ» ([1])مراد ددي نه دادي چه عبادت خاص دالله کوه،توکل صرف دهغه په ذات کوه، لکه چه فرمان دي چه دمشرق اومغرب رب خاص هغه دي دهغه نه سواڅوك معبود نشته. ته خاص هغه لره خپل کارساز اوګڼره.بل ځاي دي.﴿فَاعْبُدْهُ وَتَوَكَّلْ عَلَيْهِ﴾ خاص دهغه عبادت کوه،هم په هغه أميد ساته.په بل آيت کښي دي.چه اعلان اوکړه چه هم ددي رحمن مونږ بندګان يو،اوهم په ده باندي زمونږ کامل اعتماد دي.په هغه باندي دبندګانو چلونه ښکاره دي.هيڅ يوه ذره دهغه نه پټه نه ده.هيڅ د رازخبره هم دهغه نه پټه نه ده.خاص هغه دټولوڅيزونوخالق، مالك او قابض دي.هم هغه دهرساه لرونکي روزي رسان دي.هغه په خپل قدرت اوعظمت سره آسمانونه او زمکي اوددي پشان زبردست مخلوق په شپږو ورځوکښي پيداکړي دي.بياپه عرش باندي قايم شو. د کارونودتدبيرونوانجام همدهغه دطرفه دي اوخاص دهغه په حکم اوتدبيرسره دي.دهغه فيصله ربښتوني اوښه وي.څوك چه دالله په ذات عالم وي څوك چه دالله په صفاتو خبروي .نو دداسي نه دهغه شان معلوم کړئ.دابکاره ده چه دالله دذات پوره خبرداري لرونکي،دهغه د ذات نه پوره خبردار نبي کريمﷺ وو.چه هغه د آدمﷺ دټول اولاد علي الاطلاق سرداروو.چه هغه به يوه خبره هم دخپل طرفه نه کوله.بلکه چه څه به ني فرمائيل هغه فرمان به د الله ﷻ وو.هغه چه کوم صفتونه د الله ﷻ بيان کړي

[1]) صحيح بخاري کتاب الاذان باب الدعاء في الركوع: ۷۹۴، صحيح مسلم: ۴۸۴.

دی تول حق دی.نبی کریمﷺ چه کوم خبرونه ورکړی دی تول رښتیادی.رښتوني امام خاص رسول اللهﷺ دي.دتولوجهګړو فیصله خاص درسول اللهﷺ په حکم سره کولې شي.څوك چه د رسول اللهﷺ خبره بیان کړي هغه رښتوني دي.څوك چه د رسول اللهﷺ خلاف خبره اوكړي هغه مردود دي كه هغه څوك هم وی. د الله فرمان واجب الاعلان عام طوربانديٍ صادرشوي دي:-

﴿فَإِنْ تَنَازَعْتُمْ فِيْ شَيْءٍ﴾كه تاسوپه څه څیزکښې جهګړه اوکړئ نوهغه الله او دهغهٔ رسولﷺ طرف ته یوسئ. او فرمان دي﴿وَمَا اخْتَلَفْتُمْ فِيْهِ مِنْ شَيْءٍ فَحُكْمُهٗٓ إِلَى اللّٰهِ﴾ تاسوچه په کوم څیزکښې هم اختلاف اوکړئ دهغې فیصله دالله دطرفه ده.اوفرمان دي.﴿وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ صِدْقًا وَّعَدْلًا﴾ستادرب خبرې پوره شوې هغه په خبرو کښې رښتیا اوپه حکم اوممانعت کښې دعدل دی داهم نقل دی.چه مراد ددې نه قرآن دې.مشرکانون به دالله نه سوا نوروته سجده کوله.هغوی ته چه به کله رحمن ته دسجدې کولو اوونیلي شو.نوهغوی به ونیل چه مونږ رحمن نه پیژنو.هغوی دهغهٔ نه منکروو.دالله نوم رحمن دې.لکه چه دحدیبیه په کال رسول اللهﷺ دصلح نامې لیکونکی ته اوفرمائیل:-

﴿ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ﴾ اولیکه.نومشرکانو اوونیل نه مونږ رحمن پیژنو نه رحیم.زمونږ د رواج مطابق ،،بِاسْمِكَ اللّٰهُمَّ،، اولیکه.ددې په جواب کښې داآیت نازل شو.﴿ قُلِ ادْعُوا اللّٰهَ أَوِ ادْعُوا الرَّحْمٰنَ ﴾ اووایه چه الله رابلئ یا رحمن! په کوم نوم سره چه غواړئ هغه رابلئ دهغهٔ ډیر ښائسته نومونه دی.هم هغه الله دې هغه رحمن دې.پس مشرکانوبه ونیل.چه آیا صرف ستاپه وینا باندې مونږداسې اوکړو.غرض داچه هغوی نور هم په نفرت کښې زیات شول.په خلاف د مؤمنانو،چه دوی دالله عبادت کوی.کوم چه رحمن اورحیم دې هم هغه دعبادت لائق ګڼړی.اوهم هغهٔ ته سجدې کوی.دعالمانو ﷺ اتفاق دې.چه د سورهٔ فرقان ددې آیت په لوستونکی او اوریدونکی باندې سجده واجب ده.لکه چه ددې په ځائې کښې ددې تفصیل موجود دې.وَاللهُ سُبحانَهٗ وَتعالیٰ اَعلَم.

| تَبٰرَكَ | الَّذِيْ | جَعَلَ | فِي السَّمَآءِ | بُرُوْجًا |
|---|---|---|---|---|
| ډیر برکت والا دی | هغه ذات | چې جوړ نې کړل | په اسمان کښې | برجونه |
| نود برکت خاونددې هغه ذات چې اسمانونو کښې ئې ستوری جوړ کړل | | | | |

| وَّجَعَلَ | فِيْهَا سِرٰجًا | وَّقَمَرًا | مُّنِيْرًا۞ | وَهُوَ | الَّذِيْ |
|---|---|---|---|---|---|
| او پیدا ئې کړه | په هغې کښې ډیوه (نمر) | او سپوږمۍ | روښانه | او هغه | هغه ذات دې |
| او په هغې کښې ئې یوه ډیوه (نمر) اوروښانه سپوږمۍ جوړه کړه اوهم هغه ذات دي | | | | | |

| جَعَلَ | الَّيْلَ | وَالنَّهَارَ | خِلْفَةً | لِّمَنْ | اَرَادَ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې وې ګرزول | شپه | او ورځ | يو بل پسې راتلونکي | دپاره دهغه چا | چې اراده لري |
| چې شپه او ورځ ئې په یوبل پسې نائبان ګرځولې دی (دانخښې) دهغه چا دپاره دی | | | | | |

| اَنْ يَّذَّكَّرَ | اَوْاَرَادَ | شُكُوْرًا۞ |
|---|---|---|
| چې نصیحت واخلي | يا اراده لري | دشکر ایستلو |
| چې نصیحت حاصلول غواړی | | |

قوله تعالٰی:-تَبٰرَكَ الَّذِيْ جَعَلَ فِي السَّمَآءِ بُرُوْجًا
**د نمر اوسپوږمۍ شپه ورځ ګردش** دالله لوئی،عظمت،قدرت اولوئې شان ته اوګورئ چه هغه په آسمان کښې برجونه جوړکړل. ددې نه مراد یاخو لوئې لوئې ستوری دی یاد څوکیدارئ برجونه دی.رومبې

قول زيات واضح دي.اوكيدې شي چه د لويولويو ستورونه مراد هم دا برجونه وي.په بل ايت كښې دي چه آسمان ددُنيا مونږ ستوروسره ښائسته جوړكړې دې.د سراج نه مراد نمردې.چه دا پرقيږي.اوپه شان د ډيوې دې.لكه چه فرمان دې.﴿ وَجَعَلْنَا سِرَاجًا وَهَّاجًا ﴾ اومونږ روښانه ډيوه يعني نمر جوړكړو.او سپوږمئ موجوړه كړله چه دا روښانه او رڼا وركونكې ده.د نورو رڼا وركونكونه كوم چه دنمرنه علاوه دى.لكه چه فرمان دې.چه هغه نمرلره روښانه جوړكړو او سپوږمئ ئې نورجوړه كړله.حضرت نوح عليه السلام خپل قوم ته اوفرمائيل.﴿ أَلَمْ تَرَوْا كَيْفَ خَلَقَ اللَّهُ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ طِبَاقًا ﴾ آيا تاسونه گورئ چه الله ﷻ لاندې باندې اووه آسمانونه پيدا كړل اوپه دې كښې ئې سپوږمئ نورجوړه كړله او نمرئې ډيوه جوړه كړله.شپه ورځ يوبل پسې تلونكې راتلونكې دى.داهغهٔ دقدرت نظام دې.چه يولاړشي بل راځي، ديو تلل دبل راتلل دى.لكه چه فرمان دې.هغه تاسو دپاره نمرسپوږمئ پرله پسې تلونكې راتلونكې جوړكړى دى.بل ځائې كښې دى. شپه ورځ لره پټوې،اوپه جلتئ جلتئ دې لره طلب كونكې راځي.نه نمر دسپوږمئ نه مخكښې كيږي نه شپه د ورځې نه وړاندې كيږي. ددې نه دهغهٔ دعبادتونو وختونه دهغهٔ بندگانوته معلوميږي.چه دشپې پاتې شوې عمل په ورځ كښې پوره كړى اود ورځې پاتې شوې عمل دشپې اداكړي.په صحيح حديث كښې دى. الله ﷻ دشپې خپل لاس خوره وي.چه د ورځې گناهگارتوبه اوكړي.اود ورځې لاس خورهٔ وي چه دشپې گنهگار توبه اوكړي.(١)

حضرت عمرفاروق رضي الله عنه يوه ورځ دساخت په مونځ كښې ډيروخت اولگولو.په تپوس ئې اوفرمائيل چه دشپې زماڅه وظيفه پاتې شوې وه.نوما اوغوښتل چه هغه پوره يا قضا اوكړم.بياهغوى دا آيت تلاوت كړو.د﴿خلفة﴾يومطلب داهم دې چه مختلف،يعني ورځ رڼا شپه تيارهٔ،پدې رڼا په هغې كښې تيارهٔ دا نوراني هغه ظلماتي.(٢)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَعِبَادُ الرَّحْمَٰنِ | | الَّذِينَ | | |
| او بندگان درحمان | | هغه دى | | |
| او د الله ﷻ (ريښتونى)بندگان هغه دى \| چې په | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَمْشُونَ | عَلَى الْأَرْضِ | هَوْنًا | وَإِذَا | خَاطَبَهُمُ | الْجَاهِلُونَ |
| چې گرځي | په زمكه باندې | په نرمئ سره | او كله چې | خبرې كوي دهغوئ سره | جاهلان خلق |
| عاجزئ سره په زمكه گرځي \| اوچې كله جاهلان ورسره خبرې كوي \| نو ورته وائى | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَالُوا | سَلَامًا | وَالَّذِينَ | يَبِيتُونَ | لِرَبِّهِمْ | سُجَّدًا |
| نو وائي(په جواب كښې) | سلام | او هغه كسان دى | چې شپې تيروى | رب خپل ته | سجده كونكى |
| چې زمونږ سلام دې \| اوهغه كسان چې شپه خپل رب ته په سجده او قيام كښې تيروى | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَقِيَامًا | وَالَّذِينَ | يَقُولُونَ | رَبَّنَا | اصْرِفْ عَنَّا | عَذَابَ |
| او قيام كونكى | او هغه كسان دى | چې وائي | اے ربه زمونږه | اوگرزوه \| زمونږ نه | عذاب |
| اوهغه كسان چې دا دعا غواړى \| چې ائې زمونږه ربه ' ددوزخ | | | | | |

---

(١) صحيح مسلم كتاب التوبة باب قبول التوبة من الذنوب وان تكررت الذنوب والتوبة: ٢٧٥٨. ابن ماجه: ١٩٥.

(٢) الطبرى : ١٩/٢٩٠.

| جَهَنَّمَ | إِنَّ عَذَابَهَا | كَانَ | غَرَامًا | إِنَّهَا | سَاءَتْ |
|---|---|---|---|---|---|
| ددوزخ | بیشکه عذاب ددوزخ | دي | لازم همیشه | بیشکه دا دوزخ | ډیر خراب دي |
| دعذاب نه مونږ بچ کړه | بیشکه چي دغه عذاب ډیره سمه تباهي ده | | | یعني ده چي هغه | |

| مُسْتَقَرًّا | وَمُقَامًا | وَالَّذِينَ | إِذَا أَنْفَقُوا |
|---|---|---|---|
| په لحاظ دځاني دقرار | او داستوګنې | او هغه کسان دي | کله چي خرچ کوي هغوئ |
| خرابه ټکانه او خراب ځائي دي | ........... | او هغه کسان چي څه وخت خرچ کوي | |

| لَمْ يُسْرِفُوا | وَلَمْ يَقْتُرُوا | وَكَانَ بَيْنَ ذَٰلِكَ | قَوَامًا |
|---|---|---|---|
| نونهٔ اسراف کوي | او نهٔ کموالي کوي | او وي په منځ ددې کښې | قائم په اعتدال |
| نو نه خو مال بې ځایه خرچ کوي | او نه شومتیا کوي | او د ده خرچ درمیانه وي | |

قوله تعالی:- وَعِبَادُ الرَّحْمَٰنِ الَّذِينَ يَمْشُونَ عَلَى الْأَرْضِ هَوْنًا

**د مؤمنانو صفات**"د الله ﷻ دمؤمنانو بندګانو صفات بیانیږي.چه هغوی په زمکه باندې په قلاره او آرام سره تواضع اوعاجزئ، مسکینئ او عاجزئ سره ګرځي.تکبر،زبردستي، فساد اوظلم ستم نه کوي.لکه حضرت لقمانؑ چه خپل خوی ته فرمائیلي وو.چه تکبرسره مه ګرځه.دا مطلب بالکل نه دې.چه عاجزئ او ریاکارئ سره ملا ټیټه کړه دبیمارانو په شان قدم په قدم ګرځه.داخود ریاکارو کاردې.چه هغوی خپل ځان خلقوته دخودلو دپاره اود دنیا نظرونه ځان طرف ته اوچتولو دپاره داسې کوي.دنبي کریمﷺ عادت مبارك ددې نه بالکل خلاف وو.

دنبيﷺ چالداسې ووچه نبيﷺ ګویا داوچت ځائي نه راکوزیږي[1] اوګویاچه زمکه نبيﷺدپاره راټولیږي[2]سلف صالحینو دبیمارانو په شان تکلیف والاچال مکروه فرمائیلي دې.عمر فاروق ؓ یو ځوان اولیدلوچه هغه ډیرپه مزه مزه روان وو.هغوی دهغهٔ نه تپوس اوکړوچه آیا ته څه بیمارې؟ هغه اووئیل نه،هغوی اوفرمائیل بیا داڅه چال دې؟ خبردارځوك چه اوس داسې خې کوږې به خورې.طاقت سره زرزرځه.پس دلته مراد آرام او سکون سره شریفانه اندازباندې تلل دی دکمزورئ او بیمار په شان نه.لکه چه یوحدیث کښې دی چه کله مانځهٔ دپاره راځئ نوپه منډه مه راځئ بلکه په آرام راځئ څه چه جماعت سره ملاوشي اداکړئ اوکوم چه فوت شي هغه پوره کړئ.[3]حسن بصريؒ ددې آیت په تفسیرکښې ډیره ښائسته خبره ارشاد فرمائیلي ده.چه دمؤمنانو سترګې او ددوی غوږونه او ددوی اندامونه ټیټ او بندوی.تردې چه کم عقل اوبیوقوف خلق دوی لره بیمارګڼري. حالانکه هغوی بیماران نه وی.بلکه دالله د ویرې نه ټیټ وی.هسې پوره تندرست وی.لیکن زړهٔ ئې دالله د ویرې نه ډك وی. د آخرت علم ددنیا طلب کولونه او ددې دښائست نه هغوی لره منع کړی دی.دوی به دقیامت په ورځ وائي چه دالله شکردې چه هغه زمونږنه غم لرې کړو.ددې نه دې ځوك دا اونه ګڼري چه دوی ته په دنیاکښې دخوراك څکاك وغیره غم لګیدلي وو.نه نه په الله قسم! ددنیا هیڅ غم ډوی ته نزدې هم نه راتلو.البته دوی ته به دآخرت ویره هروخت لګیدلې وه.دجنت هیڅ یوکاربه دوی دروند نه ګڼرلو.البته دجهنم ویرې به دوی لره ژړول.ځوك چه دالله ویرې ورکولوسره هم نه ویریږي.دهغهٔ نفس د حسرتونو مالك دې.ځوك چه صرف خوراك څکاك دالله نعمت اوګڼري هغه کم علم دې.اوپه عذابونوکښې ګیر

---

[1] ترمذی کتاب المناقب باب وصف علی النبی صلی الله علیه وسلم: ۳۶۳۷، وهو حسن احمد: ۱۴۴/۲.
[2] ترمذی کتاب المناقب قول ابی هریرةرضی الله عنه ما رایت شیئا احسن......:۳۶۴۸ وهو صحیح.
[3] صحیح بخاری کتاب الاذان باب لا یسعی الی الصلاة ولیاتها بالسکینة والوقار: ۶۳۶.

شوې دي.بيانې دخپلونيکانوبندګانو صفت بيان کړلو.چه کله چه جاهل خلق دوی سره دجهالت خبرې کوی نودوی هم دهغوی په شان جهالت باندې نه راځی بلکه صبر کوی اومعاف کوی.او سوا دېنه خبرې نه په ګنده خبروسره خپله ژبه نه خرابوی.لکه څنګه چه د رسول اللهﷺ عادت مبارك وو.چه کله به څوك په نبیﷺ باندې تيزشول.هغوی به هغومره نرميدل.هم دا صفت دقرآن کريم په دې آيت کښې بيان شوېدې.﴿وَإِذَا سَمِعُوا اللَّغْوَ أَعْرَضُوا عَنْهُ﴾مومنان خلق ګنده خبرو اوريدوسره مخ اړوی.په يوحسن سندسره مسند احمدکښې روايت دې چه درسول اللهﷺ په مخکښې يوسړی بل کس ته بدرد اووئيل. ليکن هغه مخامخ جواب ورکړوچه په تادې سلام وی.نبی کريمﷺ اوفرمائيل.ستاسو دواړو په مينځ کښې فرشته موجود وه.کوم کس چه به کنځل کول فرشتې به وئيل دې نه بلکه ته، اوکله چه به تاوئيل چه په تادې سلام وی نو فرشتې به وئيل په ده باندې نه،بلکه په تا باندې، ته دسلامتيا پوره حقداريې[1].پس فرمان دې چه دوی خپله ژبه نه ګنده کوی.بد ويونکوته بدنه وائی.د ژبې نه دېنه کلمې نه بغيربل څه لفظ نه اوباسی.

حسن بصری رحمه الله فرمائی.چه بل څوك په دوی باندې ظلم اوکړی.دې صلح اوبرداشت کوی.ورځې دالله بندګانوسره داسې تيروی چه دهغوی ترخې سپورې اوری.اوشپې چه په کوم حالت کښې تيروی دهغې بيان په راتلونکی آيت کښې دې فرمائی چه شپه دالله په عبادت اودهغه په اطاعت کښې تيريږی.ډيرکم اوده کيږی دسحر استغفارکوی، اړخونه د بسترونه جدا ساتی.په زړه کښې ئې دالله ويره وی.د رحمت اميدساتی اود شپې وختونه دالله په عبادت کښې تيروی دعاګانې غواړی چه اې الله! دجهنم عذاب زمونږنه لرې کړې هغه خوهميشه او لازمی عذاب دې.لکه چه يوشاعرد الله ﷻ شان بيان کړې دې.﴿إِنْ يُعَذِّبْ يَكُنْ غَرَامًا وَإِنْ يُعْطِ جَزِيلًا فَإِنَّهُ لَا يُبَالِي﴾يعنی دهغه عذاب هم سخت او لازمی او ابدی، او د هغه عطاء اوانعام هم ډيره زياته بې شميره اوبې حسابه ده.کوم څيزچه راشی اوختم شی داغرام نه دې.غرام هغه دې چه هغه دراتلونه پس دختميدو اولرې کيدونوم نه اخلی[2].دامعنی هم شوې ده چه دجهنم عذاب تاوان دې چه دابه کفران دنعمت سره اخستلې شی.چه دوی د الله ﷻ ورکړې شوې نعمت دهغه په لاره کښې اونه لګولو.لهذانن به دهغې تاوان دا ورکولې شی.چه جهنم ډك کړی.هغه ډير فراخه ځائې دې بدمنظردې،تکليف ورکونکې دې، مصيبت ناك دې.

**د دوزخ خطرناك کيفيت:**-دمالك بن حارث رحمه الله بيان دې.چه کله دوزخی په دوزخ کښې اوغورزولې شی الله ته علم دې چه څومره مودې پورې به هغه لاندې ښکته روان وی.ددې نه پس به دجهنم په يو دروازه باندې هغه لره اودرولې شی ورته به اووئيلې شی.چه ته به ډير ترږې شوې يې.واخله يوجام خو اوڅکه.په دې وئيلوسره به په هغه د تورمارانو اود زهريله لړمانو د زهرو يوه پياله اوڅکولې شی.چه دهغې په څکلو به دهغه څرمن جداشی،وينښته به ئې جداشی،رګونه به ئې جداجداشی.عبيدابن عميررحمه الله فرمائی چه په جهنم کښې دکوهيانوپه شان کندې دی.په هغې کښې ماران داسې دی لکه بختی اوښان.او لړمان داسې دی لکه خچر،کله چه يو جهنمی په جهنم کښې اوغورزولې شی.نودا راوځی او هغه لره راګيروی په شونډو باندې، په سرباندې،اود بدن په اندامونو ورته ټکونه ورکوی اوچيچی.چه پدې سره دهغه په ټول بدن کښې زهرخوارهٔ شی.او خوټکيږی دټول سرڅرمن ئې اوسوزی او اوغورزيږی. بيا هغه ماران لاړشی.

**د يو ګناهګار جهنمی تذکره:**-رسول اللهﷺ فرمائی چه جهنمی به زرکاله پورې په جهنم کښې چغې وهی چه ﴿يَاحَنَّانُ يَامَنَّانُ﴾ بيابه الله ﷻ حضرت جبرئيل عليه السلام ته اوفرمائی لاړشه اوګوره چه دې څه وائی.چه هغه

[1] احمد: ۵/۴۴۵..

[2] الطبری: ۱۹/۲۹۷.

راشي اوبه ګوري چه ټول جهنميان په بدحال کښې سرښکته کړې ژړا اوفريادکوي.هغه به لاړشي د الله ﷻ په دربارکښې به خبرورکړي. الله ﷻ به اوفرماني بيا لاړشه په فلاني فلاني ځاني کښې دا سړې دي لاړشه اوهغه راوله.هغه به دالله په حکم لاړشي اوهغه به راولي دالله په مخکښې به ئې اودروي. الله ﷻ به دهغه نه تپوس کوي چه ته په څنګه ځاني کښې وې؟ هغه به جواب ورکړي چه اې الله! د اوسيدوهم خراب ځاني اود اودهٔ کيدو پاسيدوهم بدترين ځاني دې. الله ﷻ به اوفرماني ښه اوس دې خپل ځاني ته واپس کړه.نو هغه به په چغو ژاړي عرض به اوکړي چه اې زما ارحم الراحمين ربه! اې الله! چه تازهٔ ددې نه بهر راويستلم نوستا ذات داسې نه دې چه بيا ما هغې ته داخل کړې.زماخوستا درحم اوکرم اميد دې.اې الله! بس اوس په ماباندې کرم اوکړه کله چه تازهٔ دجهنم نه راويستلم نوزهٔ خوشحاله شوم.چه اوس به مې ته ورته نه اچوې.دې مالک اورحمان رحيم رب ته به هم رحم ورشي اوبه فرماني چه زما بندهٔ پريږده.([1])بيا دهغهٔ يوبل صفت بيانيږي چه نه خوهغه اسراف کونکې دې نه بخيل دې نه بې ځايه خرچ کونکې دې،نه په ضروري اخراجاتوکښې کمی کوي.بلکه د ميانه روئ نه کار اخلي.نه داسې کوي چه خپل خلق اواهل وعيال هم تنګ کړي.اونه داسې کوي چه څه ورسره وي لوټ ئې کړي هم ددې حکم الله ﷻ فرمانيلې دې﴿وَلَا تَجْعَلْ يَدَكَ مَغْلُولَةً﴾يعني نه خوته خپل لاس خپل سټ پورې تړه،اونه دا بالکل پريږده. په مسند احمد کښې د رسول الله ﷺ فمان دې چه په خپلو خرچوکښې ميانه روي کول دانسان د هوښيار توب دليل دې.([2]) اوپه حديث کښې دی چه څوك د افراط تفريط نه ځان ساتي هغه کله هم فقير او محتاج کيږي نه ([3])،د بزاربه حديث کښې دی چه په مالدارئ کښې، غريبئ کښې، عبادت کښې ميانه روي ډير غوره اوافضل څيزدې([4]).حسن بصري رحمه الله فرماني.چه دالله په لارهٔ کښې چه څومره غواړې ورکړه ددې نوم اسراف نه دې.حضرت اياس بن معاويه رحمه الله فرماني.چرته چه ته د الله ﷻ دحکم نه زياتې اوکړې هغه اسراف دې.اود بزرګانوقول دې.چه د الله ﷻ په نافرمانئ کښې خرچ کول اسراف دې.

وَالَّذِينَ لَا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ وَلَا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ

اوهغه کسان دی چې نهٔ رابلي | دالله سره | معبود بل | اونهٔ وژني | نفس هغه | چې حرام کړې وی الله

اودا هغه خلق دی چې دالله ﷻ سره بل معبود نه رابلي|اودکوم نفس وژل چې الله ﷻ حرام کړي دی

إِلَّا بِالْحَقِّ وَلَا يَزْنُونَ ۚ وَمَن يَفْعَلْ ذَٰلِكَ يَلْقَ أَثَامًا ﴿٦٨﴾

مګر | په حقه سره | اونهٔ زنا کوی | او هغه څوك چې کوی | دا کار | بدله به مومی | دګناه خپلې

هغه نه وژني | مګر په حق |اوهغوئ زنا نه کوی | اوچا چې داسې اوکړل انو دګناه سزا به بيامومی

يُضَاعَفْ لَهُ الْعَذَابُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَيَخْلُدْ فِيهِ

دوچندبه کړې شي | هغه لره | عذاب | په ورځ دقيامت | او هميشه به وی | په هغې کښې |

دقيامت په ورځ به دهغه عذاب زياتولې شی|اوهغه به په کښې هميشه خوارذليله پروت وی

[1]) احمد: ۲۳۰/۳ ، مسندابي يعلى : ۴۲۱۰. مجمع الزوائد: ۳۸٤/۱۰. شعب الايمان: ۳۲۰.

[2]) احمد : ۱۹٤/۵،.

[3]) احمد :٤٤۷/۱. .

[4]) مسند البزار: ۲۹٤٦، مجمع الزوائد: ۲۵۲/۱۰.

مُهَانًا ۝ إِلَّا مَنْ تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ عَمَلًا صَالِحًا
خوار ذلیله | مګر | هغه څوك | چې توبه ئې اوویستله | او ایمان ئې راوړو | او وې کړو عمل نیك |
مګر څوک چې توبه اوباسي | او ایمان راوړي | اودنیکئ کارونه کوی | نو
فَأُولَٰئِكَ يُبَدِّلُ اللَّهُ سَيِّئَاتِهِمْ حَسَنَاتٍ ۗ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا
نو هغوئ چې دی | بدل به کړي الله | ګناهونه دهغوئ | په نیکو سره | او دې الله | بښونکې |
د دوی ګناهونه به الله ﷻ په نیکو بدل کړي | او الله ﷻ بښونکې مهربان دې
رَّحِيمًا ۝ وَمَن تَابَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَإِنَّهُ يَتُوبُ
مهربانه | اوهغه چاچې | توبه اوویستله | او عمل ئې شروع کړو نیك | نو بیشکه هغه | رجوع کوی
اوڅوک چې توبه اوباسي | اودنیکئ کارونه کوی | نوهغه خاص الله ﷻ ته رجوع
إِلَى اللَّهِ مَتَابًا ۝
الله ته | په رجوع کولو سره |
اوکړه |

قوله تعالی:- وَالَّذِينَ لَا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ
عباد الرحمان درسول الله ﷺ نه حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه تپوس اوکړوچه دټولونه لویه ګناه کومه ده؟ نبی ﷺ اوفرمائیل ستا رب سره شرك کول، حالانکه هغه یواځې ته پیدا کړې یې. تپوس ئې اوکړو. ددې نه کمه؟ وې فرمائیل خپل اولاد په دې و یره وژل چه ته به هغهٔ ته خوراك دکوم ځائې نه ورکوې؟ تپوس ئې اوکړوددې نه پس؟ وې فرمائیل ستا د یوګاونډی ښځې سره بدکاری کول. پس ددې په تصدیق کښې الله ﷻ دا آیاتونه نازل کړو.(1) داحدیث په بخاری اومسلم وغیره کښې موجود دې. په بل روایت کښې دی چه نبی ﷺ بهرته لاړلو، یواځې وو. زهٔ هم ورسره شوم. نبی ﷺ په یواوچت ځائې باندې کیناستلو. زهٔ دنبی ﷺ نه ښکته کیناستم. ما د یواځې والی دا موقعه غنیمت اوګڼړله اودنبی ﷺ نه مې هغه تپوسونه اوکړل کوم چه پورته ذکرشول. په حجة الوداع کښې نبی ﷺ اوفرمائیل. دڅلوروګناهونونه ځان ساتئ! ❶ الله سره شرك ❷ دیوحرمت والا نفس قتلول ❸ زناکاری ❹ غلا.(2)
په مسنداحمد کښې دی چه نبی کریم ﷺ دخپلو اصحابو رضی الله عنهم نه تپوس اوکړوچه د زنا باره کښې تاسوڅه وایئ؟ هغوی جواب ورکړوچه داحرام ده. اوقیامته پورې حرام ده. نبی ﷺ اوفرمائیل ښه واورئ! دانسان د خپل ګاونډ ښځې سره زنا کول دنورو لسو ښځوسره د زنانه هم بدتردی. بیا نبی ﷺ اوفرمائیل. دغلا باره کښې څه وایئ؟ هغوی هم دغه جواب ورکړوچه دا حرام ده الله او رسول دې لره حرام ګرځولې ده. نبی ﷺ اوفرمائیل واورئ! لس ځائې غلا کول هم دومره لوئې نه دی لکه دګاونډ د یوځائې غلا(3). د نبی کریم ﷺ فرمان دې چه دشرك نه پس ددې نه لویه ګناه هیڅ یوه نشته چه انسان خپله نطفه په هغه رحم کښې واچوی چه هغه ددهٔ دپاره حلال نه ده. داهم نقل دی چه بعضې مشرکان نبی ﷺ ته راغلل. او وې وئیل حضرت! ستاسودعوت ښهٔ دې رښتیا دې. لیکن مونږ شرك هم کړې دې. قتل موهم کړې دې زناکارئ موهم کړې دی. اوداټول کارونه موډیرزیات کړې دی. تاسو اوفرمایئ چه مونږ دپاره څهٔ حکم

(1) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الفرقان باب قوله تعالی ( والذین یدعون مع الله الها اخر........): ۴۷۶۱.
(2) احمد: ۳۳۹/۴.
(3) احمد: ۸/۶ وسنده حسن.

دي؟ په دې باندې دا آيت نازل شو.او آيت ﴿قُلْ يٰعِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلَىٰ أَنفُسِهِمْ﴾ هم نازل شو.[1]
رسول الله ﷺ فرمائيلي دي چه الله ﷻ تاسوددې نه منع كوى چه تاسوخالق پريږدئ دمخلوق عبادت اوكړئ.اووددې نه هم منع كوى چه خپل بچي قتل كړئ.اووددې نه هم منع كوى چه خپلې ګاونډئ سره بدكارى اوكړئ.[2]اثام دجهنم د يوې كندې نوم دې[3].هم داهغه كندې دى.چه په هغې كښې به زناكونكوته عذاب وركولې شى[4].ددې معنى دعذاب اوسزاهم راځې.دحضرت لقمان حكيم عليه السلام په نصيحتونوكښې دى.چه اې بچيه! د زناكارئ نه ځان ساته.ددې په شروع كښې ويره ده او ددې انجام پښيمانتيا اوافسوس دې.داهم نقل دى چه غى اواثام د دوزخ دوه كوهيان دى.الله دې مونږ محفوظ اوساتى.داثام معنى د بدلې هم نقل شوې ده.اوهم دظاهر آيت مشابه هم ده.اوګويا ددې نه پس آيت ددې بدلې او سزاتفسيردې.چه هغهٔ ته به باربار عذاب وركولې شى.او سختى به ورسره كولې شى. اوذلت به هميشه عذابونوكښې به راګيرولې شى.((اَللّٰهُمَّ احْفَظْنَا))ددې كارونو دكونكى سزاخوبيان شوه. خوددې سزانه به هغه څوك بچ شى څوك چه په دنياكښې ددې نه توبه كړى.الله به دهغوى توبه قبول كړى.ددې نه معلوميږى چه دقاتل توبه هم قبول ده.كوم چه دسورهٔ نساء په آيت كښې دى.﴿وَمَن يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُّتَعَمِّدًا﴾هغه ددې خلاف نه دې اګرچه هغه مدنى آيت دې ليكن هغه مطلق دې نوهغه به محمول كولې شى په هغه قاتلانو باندې چه هغوى دخپل دې فعل نه توبه نه كړى.اودا آيت دهغه قاتلانو باره كښې دى.چه توبه اوباسى.
بيانې دمشركانو دبخښنې نه كيدوبيان فرمائيلې دې.اودصحيح احاديثونه هم دقاتل د توبې مقبوليت ثابت دى.لكه دهغه سړى قصه چه هغه سل قتلونه كړى وو.بيانې توبه ويستله اودهغهٔ توبه قبوله شوه وغيره[5].داهغه خلق دى.چه دهغوى ګناهونه الله ﷻ په نيكوسره بدلوى.دابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې چه داهغه خلق دى چه هغوى داسلام قبلولونه مخكښې دګناه كارونه كړى وو.په اسلام كښې د راتلونه پس ئې نيكئ اوكړلې.نو الله ﷻ دهغه ګناهونوپه بدله كښې دنيكوتوفيق وركړو.ددې آيت تلاوت په وخت هغوى يوعربى شعر وئيلو.چه په هغې كښې داحوالو د بدليدوبيان دې.لكه د ګرمئ نه يخنى، عطاء بن ابى رباح رحمه الله فرمائى دا ددنيا ذكردې.چه د انسان خراب صفت الله ﷻ په خپلې مهربانئ سره په نيك عادت بدلوى.دسعيد بن جُبير رحمه الله بيان دې.چه د بُتانودعبادت په بدله كښې د الله ﷻ دعبادت توفيق هغوى ته ملاؤشو.مؤمنانوسره دجنګ كولوپه ځائې ئې كافرانوسره جهاد اوكړو.د مشركوښځو سره دنكاح په ځائې ئې مؤمنانوښځو سره نكاح اوكړله. حسن بصرى رحمه الله فرمائى.چه د ګناه په بدله كښې ئې دثواب عمل اوكړو.دشرك په بدله كښې توحيد اواخلاص ملاوشو.د بدكارئ په بدله كښې پاكدامنى حاصله شوه.دكفر بدله كښې اسلام ملاوشو.يوه معنى خوددې آيت دا شوه.
دويمه معنى داده چه اخلاص سره هغوى كومه توبه اوكړله.دهغې نه الله ﷻ خوشحاله شو.اودهغوى ګناهونه ئې په نيكوسره بدل كړل.داځكه چه دتوبې نه پس چه به كله هم هغوى ته خپل تيرشوى ګناهونه ياديدل.نوهغوى به پښيمانه كيدل.خفه كيدل او شرميدل به.او استغفاربه ئې كولو.په دې وجه دهغوى ګناهونه اطاعت سره بدل كړې شول.اګرچه دادهغوى په اعمال ناموكښې دګناه په طورليكلې شوى وو.ليكن دقيامت په ورځ به هغه ټولې نيكئ جوړې شى.لكه څنګه چه په احاديثو اواثاروكښې ثابته ده

[1] صحيح بخارى كتاب التفسير سورة الزمر باب قوله تعالى﴿ ياعبادى الذين اسرفوا........﴾: ۴۸۱۰.
[2] داروايت مرسل دې .
[3] الطبرى : ۲۰۸/۱۹.
[4] الطبرى : ۳۰۸/۱۹.
[5] صحيح بخارى كتاب احاديث الانبياء باب نمبر ۵۴ حديث : ۳۴۷۰.

**دجهنم د ټولو نه اخر کښې راوتونکی خلق:** نبی کریمﷺ فرمائی چه زه هغه سړی پیژنم چه هغه به دټولونه آخر کښې دجهنم نه راوځی.او دټولونه آخرکښې به جنت ته ځی.دابه هغه سړی وی.چه هغه به الله ﷻ ته مخامخ راوستلې شی. الله ﷻ به اوفرمائی.دده لونې لونې ګناهونه پریږدئ دده د وړو وړوګناهونو باره کښې دده نه تپوسونه اوکړئ. نو د هغه نه به تپوس اوشی.چه په فلانئ ورځ تا فلانې کارکړی وو؟ په فلانئ ورځ دې فلانئ ګناه کړې وه؟ دې به د یوې نه هم انکار نه شی کولې.اقراربه کوی.په آخرکښې به ونیلې شی.چه تاته مونږ دهر یوې ګناه په بدله کښې نیکی درکړله.اوس خوبه هغه ډیرزیات خوشحاله شی.اوابه وائی چه اې زماپروردګاره!ماخو نورهم ډیرزیات عملونه کړی وو.چه هغه دلته نه بیاموم.په دې فرمانیلوسره نبیﷺ دومره اوخندل چه دنبی کریمﷺ وړئ ښکاره شوې.([1])(مسلم) نبیﷺ فرمائی چه کله انسان اوده وی.نو فرشته شیطان ته وائی ماته خپله صحیفه چه په هغې کښې دده ګناهونه لیکلی شوی دی راکړه.هغه ئې ورکړی نود یوې یوې نیکئ په بدله کښې لس لس نیکئ هغه دهغه د صحیفې نه ورانوی.اوپه هغې نیکئ لیکی.پس په تاسوکښې چه څوك هم د اودۀ کیدو اراده اوکړی.هغه دې دری دیرش خله الله اکبر اوڅلوردیرش خله الحمدلله وائی.او دری دیرش خله سبحان الله وائی.چه دایوخانې کړې نوسل خله شول([2]).(ابن ابی الدنیا)

حضرت سلمانﷺ فرمائی.چه انسان ته به دقیامت په ورځ اعمال نامه ورکولې شی. هغه به ئې لوستل شروع کړی.نو پورته به دهغۀ ګناهونه لیکلی شوی وی.دهغې په ونیلوبه هغه څه نااُمیده شان شی.هم دغه وخت به دهغۀ نظرښکته طرف ته پریوځی.نوخپلې نیکئ به لیکلې شوې بیاموم.چه په هغې سره به نې څه اُمید جوړشی.اوس به دوباره پورته طرف ته اوګوری.نوهغه ګناهونه به هم په نیکوسره بدل شوی بیاموم.حضرت ابوهریرهﷺ فرمائی.چه ډیرخلق به الله ﷻ ته مخکښې راشی.چه هغوی سره به ډیرزیات ګناهونه وی. تپوس اوشوچه هغوی به کوم خلق وی.نبیﷺ اوفرمائیل.چه هغه خلق به وی چه دهغوی ګناهونه به الله ﷻ په نیکوسره بدل کړی.

**جنت ته څلور قسمه تلونکی خلق:**-حضرت معاذبن جبلﷺ فرمائی.چه جنتیان به جنت ته څلورقسمه ځی. (متقین) یعنی پرهیزګاری کونکی،بیا (شاکرین) یعنی دالله شکر کونکی، بیا (خائفین) یعنی دالله نه ویره لرونکی.بیا(اصحاب یمین) چه هغوی ته به په ښی لاس کښې اعمال نامه ملاویږی.تپوس اوشوچه هغوی ته اصحاب یمین ولې ونیلې شی؟ جواب ئې ورکړوځکه چه هغوی نیکئ اوبدئ هرڅه کړی وو.هغوی ته اعمال نامې په ښی لاس کښې ملاوشوې.دخپلوګناهونو یو یو حرف ونیلوسره هغوی اوونیل.چه اې الله زمونږ نیکئ چرته دی؟ دلته خوټول ګناهونه لیکلی شوی دی. دغه وخت به الله ﷻ هغه ګناهونه وران کړی.اودهغې بدله کښې به نیکئ اولیکی.دهغې په لوستلو به خوشحاله شی اونوروخلقوته به وائی چه راشئ زمونږاعمال نامې اوګورئ.دجنتیانواکثرخلق به دغه وی.امام علی بن حسین زین العابدینﷺ فرمائی.چه ګناهونه په نیکوسره بدلیدل به په آخرت کښې وی.مکحولﷺ فرمائی.چه الله ﷻ به دهغوی ګناهونه اوبخښی.اوهغوی ته به نیکئ ورکړی.

**د یو ګناهګار بوډها تذکره**.-حضرت مکحولﷺ یوځل حدیث بیان کړو.چه یو ډیر زیات بوډها کمزوری سړی چه دهغۀ وروځې په سترګو راپریوتې وې.درسول اللهﷺ په خدمت کښې حاضرشو.او عرض ئې اوکړو چه اې دالله رسولهﷺ! زۀ یوداسې سړی یم.چه ماهیڅ یوه غداری، څه ګناه، څه بدکاری باقی نه ده پریښودې .زما ګناهونه دومره زیات شوی دی.چه که په ټولوانسانانو باندې تقسیم کړې شی.نوټول

[1]) صحیح مسلم کتاب الایمان باب ادنی اهل الجنة منزلة فیها: ۱۹۰. ترمذی : ۲۵۹۶.

[2]) مجمع الزوائد: ۱۲۴/۱۰. المعجم الکبیر: ۳۴۵۱.

په ټوله به دالله په غضب کښې گرفتارشی.ایا زما دبخښنې هم څه صورت شته؟ ایا زما توبه هم قبلیدلې شي؟ نبی کریمﷺ اوفرمائیل.چه ته مسلمان شه.هغهٔ کلمه اووئیله چه «اشهدان لااله الاالله وحده لا شریك له واشهد ان محمداعبده ورسوله» نونبیﷺ اوفرمائیل.چه الله ﷻ به ستا ټول گناهونه اوبدکارئ هرڅه معاف کړی.بلکه چه ترڅو پورې ته په دې قائم اوسې. الله ﷻ به ستاگناهونه نیکوسره بدلوی.هغهٔ بیا تپوس اوکړو.اې دالله رسولهﷺ! آیا زما واړه اوغټ گناهونه ټول به صفاشي؟ نبیﷺ اوفرمائیل آو ټول په ټوله،بیاخوهغه سړې خوشحاله خوشحاله واپس لاړهٔ.اوتکبیر او تهلیل ویونکې واپس شو[1].ابن جریرحضرت ابوطویل ﷺدنبیﷺ په خدمت کښې حاضرشو.عرض ئې اوکړوچه که یوسړی ټول گناهونه کړی وی څه چه په زړهٔ کښې راغلی وی پوره کړې ئې وی.آیا دداسې سړی توبه هم قبلیدلې شي؟ نبی ﷺ اوفرمائیل.ته مسلمان شوې یې؟ هغهٔ اووئیل آوجی.نبیﷺ اوفرمائیل.اوس نیکئ کوه دگناهونونه ځان ساته.نو الله ﷻ به ستاگناهونه هم نیکئ جوړې کړی.هغهٔ اووئیل زما غدارئ او بدکارئ هم؟ نبیﷺ اوفرمائیل آو،اوس هغه الله اکبر ویونکې واپس لاړهٔ.[2](طبرانی)

**د بدکارۍ توبه:**-وه ښځه حضرت ابوهریرهﷺ ته راغله اوتپوس ئې اوکړوچه زما نه بدکاری اوشوه د هغې نه ماشوم پیداشو.ماهغه مړکړو.آیا زما توبه قبلیدلې شي؟ هغویﷺ اوفرمائیل چه اوس نه ستا سترگې یخیدې شي،نه الله ﷻ سره ستا بزرگی کیدې شي.ستا دپاره توبه بالکل نشته.هغه په ژړا انگولا واپس شوه.ماد سحرمونځ نبی کریمﷺ سره اوکړو.اودا واقعه مې بیان کړله.نونبیﷺ اوفرمائیل چه تاهغې ته ډیره لویه خبره کړې ده.ته دا آیاتونه په قرآن کښې نه لولې.﴿ وَالَّذِيْنَ لَايَدْعُوْنَ﴾ نه ترد ﴿اِلَّامَنْ تَابَ وَاٰمَنَ﴾ پورې.زهٔ ډیرزیات خفه شوم.اوزهٔ واپس شوم هغه ښځې ته ورغلم.اوهغې ته مې دا آیاتونه واورول.هغه خوشحاله شوه.اوهم په هغه وخت سجده کښې پریوتله.اووې وئیل چه د الله ﷻ شکردې.چه هغهٔ زما دخلاصي صورت پیداکړو[3].(طبرانی) په بل روایت کښې دی.چه دحضرت ابوهریرهﷺ رومبئ فتوې اوریدوسره هغه ناأمیدئ او افسوس سره په دې وینا واپس لاړله،چه هائې هائې دابنه صورت څه دجهنم دپاره جوړکړې شوې وو؟ په هغې کښې داهم دی چه کله حضرت ابوهریرهﷺ ته دخپلې غلطئ علم اوشو.نو دهغه ښځې په تلاش کښې اووتلو.ټوله مدینه او یوه یوه کوڅه ئې اولټوله.لیکن چرته ئې پته اونه لگیده.اتفاق سره دشپې هغه ښځه واپس راغله.نو بیا ورته حضرت ابوهریرهﷺ صحیح مسئله اوښودله.په هغې کښې داهم دی.چه هغې دالله تعریف اوکړو.اووې وئیل چه هغهٔ زما دخلاصی صورت جوړکړو.اوزما توبه ئې قبوله کړله. په دې وئیلوسره چه هغې سره کومه وینځه وه هغه ئې آزاده کړله.دهغه وینځې یوه لورهم وه.اوپه رښتونی زړهٔ سره ئې توبه کړله.

بیا فرمانی اودخپل عامې مهربانئ اود کرم وفضل او رحم خبر ورکوی.چه څوك هم الله ﷻ طرف ته متوجه شي.اوپه خپلوگناهونوباندې پښیمانه شی توبه اوباسی. الله ﷻ دهغهٔ اوری او قبلوی.اوهغهٔ لره بخښی.لکه چه ارشاد دې ﴿ وَمَنْ يَّعْمَلْ سُوْٓءًا اَوْ يَظْلِمْ نَفْسَهٗ﴾ څوك چه بدعمل اوکړی یاپه خپل ځان باندې ظلم اوکړی بیا د الله ﷻ نه بخښنه اوغواړی.هغه به الله ﷻ بخښونکې اومهربان بیاموسی.بل ځائې ارشاد دې ﴿ اَلَمْ يَعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ هُوَيَقْبَلُ التَّوْبَةَ﴾ آیا دوی ته داهم معلومه نه ده چه الله ﷻ توبه قبلونکې دې.په بل آیت کښې دی ﴿ قُلْ يٰعِبَادِيَ الَّذِيْنَ اَسْرَفُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ﴾ زماهغه بندگانوته چه گناهگاران دی اووایه چه هغوی دې زما درحمت نه نه ناأمیده کیږی.یعنی توبه کونکې محروم نه دې.

[1] الدرالمنثور: ۲۸۱/۶.
[2] طبرانی : ۷۲۳۵ مجمع الزوائد: ۲۰۲/۱۰.
[3] الطبری : ۲۰۷/۱۹.

| | | |
|---|---|---|
| وَالَّذِيْنَ | لَا يَشْهَدُوْنَ | الزُّوْرَ |
| او درحمان بندګان هغه دي | چې ګواهي نه کوي | ددروغو |
| او هغه خلق چې د دروغو ګواهي نه ورکوي \| او کله چې په بیهوده | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَاِذَا | مَرُّوْا | بِاللَّغْوِ | مَرُّوْا | كِرَامًا | وَالَّذِيْنَ |
| او کله چې | تیریږي | په فضول کارونو باندې | نو تیریږي | په شرافت سره | او هغه کسان دي |
| فضول مجلس باندې تیریږي \| نو په عزت سره تیریږي \| او هغوئ داسې خلق دي | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اِذَا | ذُكِّرُوْا | بِاٰيٰتِ | رَبِّهِمْ | لَمْ يَخِرُّوْا | عَلَيْهَا |
| کله چې | نصیحت او کړې شي هغوئ ته | په آیتونو | درب خپل سره | نو نه پاتې کیږي | په هغې باندې |
| چې څه وخت ورته دخپل رب د آیتونو په ذریعه نصیحت اوشي \| نو هغوئ ړانده کانړه | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| صُمًّا | وَّعُمْيَانًا | وَالَّذِيْنَ | يَقُوْلُوْنَ | رَبَّنَا | هَبْ | لَنَا |
| کانړه | او ړانده | او هغه کسان دي | چې وائي | اے ربه زمونږه | راکړه | مونږ ته |
| نه غورزیږي \| او هغه داسې کسان دي چې دا دعا کوي \| ائي زمونږه ربه! زمونږ دپاره زمونږ | | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ اَزْوَاجِنَا | وَذُرِّيّٰتِنَا | قُرَّةَ | اَعْيُنٍ | وَّاجْعَلْنَا | لِلْمُتَّقِيْنَ |
| دښځو زمونږ نه | او داولاد زمونږ نه | یخوالي | دسترګو | او جوړ کړه مونږه | دپاره دمتقیانو |
| ښځې او بال بچ د سترګو د یخوالي ذریعه اوګرځوه \| او مونږ د پرهیزګارانو | | | | | |

| |
|---|
| اِمَامًا |
| امامان |
| مشران کړه |

**قوله تعالی:- وَالَّذِيْنَ لَا يَشْهَدُوْنَ الزُّوْرَ**

**د نیک صفته خلقو نور علامات** "دعبادالرحمن نیك صفتونه بیانیږي. چه هغوی ددروغو ګواهي نه ورکوي. یعنی شرك نه کوي، د بُت پرستئ نه خان ساتي، دروغ نه وائي، فسق وفجورنه کوي، دکُفرنه جدا اوسی، د فضول اوباطل کارونونه پرهیزکوي، ګانې نه اوري، دمشرکانوخوشحالئ نه کوي، خیانت نه کوي، د ګناه په مجلسونوکښې نه کینی، شرابونه نه څکی، شراب خانوته نه ځي، ددې شوق نه ساتي.

په حدیث کښې هم دی چه رښتونی مؤمن له پکاردی چه په هغه دسترخوان باندې نه کینی چه په هغې کښې شراب څکلې شي. اودامطلب هم دې چه دروغ ګواهي نه ورکوي[1] په صحیحین کښې دی نبی ﷺ

[1] ترمذی کتاب الادب باب ماجاء فی دخول الحمام: ۲۸۰۱. وسنده ضعیف.

اوفرمائیل.آیا زۀ تاسوته دټولونه لویه ګناه اونبایم.درې خل ئې دا اوفرمائیل.صحابوﷺ اوونیل آواې د الله رسوله! نبیﷺ اوفرمائیل الله ﷻ سره شرك کول، دمورپلار نافرمانی کول،دې وخته پورې نبیﷺ ډډه وهلې ناست وو.اوس دهغې نه جدا شو.وې فرمائیل واورئ! او دروغ خبره کول، واورئ! او دروغ ګواهی ورکول.دابه ئې باربار فرمائیل.تردې چه مونږ په خپل زړۀ کښې اوونیل چه ارمان رسول اللهﷺ اوس چپ شی(۱).په زیات واضحه الفاظوکښې خوداده چه هغوی دروغ ته نزدې نه ورځی.ځکه ئې وړاندې بیان اوکړوچه که اتفاقًاتیرشی نودې دهغې سره څه شوق نه ساتی.مخ اړوی اوځی.یوځل عبدالله بن مسعودﷺ دیوې لوبې سره تیرشو.نومخ ئې واړولو،اوبغیر اودریدلو لاړلو.د الله ﷻ په نزد عزت مندشو(۲).

د الله ﷻ ددې بزرګو بندګانو یوصفت داهم دې چه دقرآن آیاتونو اوریدوسره دهغوی زړه رپیږی.دهغوی ایمان او توکل زیاتیږی.په خلاف دکافرانوچه په هغوی باندې د الله ﷻ دکلام اثرنه کیږی.هغوی دخپلو بدوعملونونه نۀ منع کیږی.نه خپل کفر پریږدی نه د سرکشئ،ظلم،اوجهالت اوګمراهئ نه منع کیږی.د ایمان والوایمان زیاتیږی اود بیمارو زړونو والو ګندګی زیاتیږی.پس کافران د الله ﷻ دآیاتونونه کاڼړه او ړانده کیږی.ددې مؤمنانو حالت دهغوی نه خلاف دې.نه دوی دحق نه کاڼړه دی نه دحق نه ړاندۀ دی. آوری، پوهیږی،نفع حاصلوی،خپله اصلاح کوی.داسې ډیرزیات خلق دی چه هغوی لولی خو ړوند توب اوکونړتوب نه پریږدی.دشعبیؒ نه تپوس اوشوچه یوسړې راځی اوهغه نورولره په سجده کښې بیا مومی.لیکن هغۀ ته معلومه نه وی چه دکوم آیت په لوستلو‌ئې سجده کړې ده؟ نوآیا هغه هم دهغوی سره سجده اوکړی؟نونبی کریمﷺ هم داآیت اولوستلو.یعنی سجده دې نه کوی ځکه چه هغه نه دسجدې آیت لوستلې دې، نه ئې اوریدلې دې،نه ئې سوچ کړې دې.نو مؤمن له هیڅ یوکارپه ړوندتوب کښې نه دی کول پکار.چه ترڅو پورې دهغۀ مخې ته دڅه څیزحقیقت نه وی هغه له شاملیدل پکارنه دی.بیا ددې بزرګانو بندګانو یوه دعابیانیږی چه هغوی د الله ﷻ نه طلب کوی چه ددوی اولادهم ددوی په شان درب فرمانبردار،عبادت ګزار،مؤحد وی اومشرکان نه وی.چه په دنیاکښې هم دې نیك اولادسره د دوی زړونه یخ وی اوپه آخرت کښې هم دوی هغوی لره په ښه حالت کښې اووینی او خوشحاله شی. په دې دعاسره ددوی غرض ښائست اوجمال نه دې.بلکه نیکی اوښه اخلاق دی.دمسلمان ربنتونې خوشحالی په دې کښې ده.چه هغه خپل اهل وعیال، دوستان رشته داران د الله ﷻ فرمانبردار اووینی. چه هغوی ظالمان نه وی، بدکاره نه وی،رښتونې مسلمانان وی.

**د قدرت نه باهر د څه ارزو نه ده پکار:**-دحضرت مقدادﷺ په لیدوباندې یوصاحب اوفرمائیل.دا سترګې دې مبارکې وی. چه دې داالله د پیغمبرﷺ زیارت کړې دې.ارمان چه مونږه هم رسول اللهﷺ لیدلې وې.او ستاسو په شان مودصُحبت فیض حاصل کړې وې.په دې باندې حضرت مقدادﷺ خفه شو.نو نفیروانی

---

(۱) صحیح بخاری کتاب الشهادات باب ما قیل ل شهادة الزور : ۲۶۵٤. صحیح مسلم: ۸۷.

(۲) الدرالمنثور: ۱٤۸/۵..

زه حیران شوم چه په دې خبره کښې خوښه بدی نشته.بیادې خفه ولې شو؟پدې کښې حضرت مقداد ﷺ اوفرمائیل.په خلقوښه شوی دی چه دهغه څیز آرزوکوی.کوم چه قدرت هغوی ته نه دې ورکړې. الله ﷻ ته علم دې چه که دوی هغه وخت وې نوددوی به څه حال وو؟ والله هغه خلق هم درسول الله ﷺ په زمانه کښې وو.چه هغوی نه درسول الله ﷺ تصدیق اوکړو،نه ئې تابعداری اوکړله،او پړمخې جهنم ته لاړل.تاسود الله ﷻ دا احسان نه منئ چه الله ﷻ تاسویه اسلام کښې او د مسلمانانو په کورنوکښې پیدا کړئ.پیداکیدو سره ستاسوپه غوږونوکښې د الله ﷻ توحید او د حضرت محمد ﷺ رسالت پریوتلو. او د هغه مصیبتونونه تاسو اوساتلې شوئ.کوم چه ستاسونه مخکښې خلقو باندې راغلی وو.نبی ﷺ خوپه داسې زمانه کښې رالیږلې شوې وو.چه هغه وخت ددنیاګمراهی خپلې انتهاته رسیدلې وه.هغه وخت ددنیا والوپه نزد دبُت پرستئ نه غوره څه مذهب نه وو.هغوی قرآن راوړلو،په حق اوباطل کښې ئې فرق اوښودلو.پلار اوخوې جداشول.مسلمان به خپل پلار نیکونه، خامن، نوسی، دوستان رشته داران په کفر باندې لیدل.دهغه به هغوی سره هیڅ محبت او مینه نه وه.بلکه پوهیدل چه داجهنمیان دی.ځکه به هغوی دعاګانې کولې.چه موږ ته زموږ داولاد اوښځونه دسترګو یخوالې رانصیب کړې.ځکه چه د کافرانو په لیدلو دهغوی سترګې نه یخیدلې[1].ددې دعاآخر دادې چه موږ دخلقو رهبرجوړکړې.چه موږ هغوی ته دنیکئ تعلیم ورکړو.خلق په نیکوکښې زموږ اقتدا اوکړی[2].زموږاولاد زموږپه لاره روان شی.چه ثواب موږیات شی.او ددوی دنیکوسبب هم موږه جوړشو.رسول الله ﷺ فرمائی.چه د انسان مرکیدوسره دهغه عملونه ختمیږی.خو درې څیزونه یو نیک اولادچه دهغه دپاره دعا اوکړی،یا علم چه په دې سره ددې نه پس نفع حاصله کړی،یا صدقه جاریه[3]

| أُولَٰئِكَ | يُجْزَوْنَ | الْغُرْفَةَ | بِمَا | |
|---|---|---|---|---|
| دا کسان چې دي | بدله ورکړې کیږي دوئ ته | دنګه مانړئ | په سبب دهغې | |
| هم دي کسانو ته به( جنت کښې )بالاخانې ورکولې شي | | | دا هرڅه د دوی | |
| صَبَرُوا | وَيُلَقَّوْنَ | فِيهَا | تَحِيَّةً | وَسَلَامًا |
| چې صبر اوکړو دوئ | او استقبال به کیږي ددوئ | په هغې کښې | په دعا سره | او په سلام سره |
| د صبر په وجه ورکولې شي | او هلته به ورته دعا او سلام کولې شي | | | |

| خَالِدِينَ | فِيهَا | حَسُنَتْ | مُسْتَقَرًّا | وَمُقَامًا | قُلْ |
|---|---|---|---|---|---|
| همیشه به وسي | په هغې کښې | ښه دي | ځائي دقرار | او ځائي داستوګنې | ورته اووایه |
| همیشه به په هغې کښې وي | ځنګه ښه ځائي داوسیدودي | | اوځومره ښه مقام دي | | ته اووایه |

---

[1] احمد: ۳/۶ ، وسنده صحیح.

[2] الطبری : ۳۱۹/۱۹.

[3] صحیح مسلم کتاب الوصیة باب ما یلحق الانسان من الثواب بعد وفاته: ۱۶۳۱، ابوداود: ۲۸۸۰. ترمذی: ۱۳۷۶.

| مَا يَعْبَؤُا | بِكُمْ | رَبِّيْ | لَوْلَا | دُعَآؤُكُمْ | فَقَدْ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې نۀ کوی هيڅ پروا | ستاسو | رب زما | که چرې | نۀ وی آواز ستاسو هغه ته | پس په تحقيق سره |
| (ائې پيغمبره) ...............چې زما رب ستاسو يوه ذره بر پرواه هم نه کوی | که تاسو عبادت نه کوئی | | | | |

| كَذَّبْتُمْ | فَسَوْفَ | يَكُوْنُ | لِزَامًا |
|---|---|---|---|
| دروغ گڼرلي دي تاسو (قرآن) | پس زر دي | چې وی به | (دا عذاب) لازم (ستاسو سره) |
| يقينا تاسو دهغه حکمونه درغ اوګڼړل ااوس به ددې سزا ضروری وی | | | |

دا پاکبازه ډله جنتيان دی"دمؤمنانو پاك صفتونه ددوی بنۀ خبرې اوښه کارونه ئې بيان کړل اوس دهغې بدله بيانيږی.چه هغوی ته به جنت ملاويږی چه دا ډيراوچت خانې دې.خکه چه دوی په دې صفتونو باندې کلك پاتی شول.هلته به ددوی عزت وی،اکرام به وی،ادب اوتعظيم به وی،احترام اوعزت به وی. هغوی دپاره سلامتی ده،په دوی باندې سلامتی ده،دجنت هريوې دروازې نه به فرشتې په خدمت کښې حاضريږی اوسلام کوی اووائی چه ستا انجام به ښه وی.خکه چه ته صبرکونکې وې.دوی به هلته هميشه اوسيږی نه به راوځی اونه به راويستلې شی.نه به نعمتونه کميږی نه به راحتونه فناکيږی،دا نيك بخت دی په جنتونو کښې به هميشه اوسيږی.ددوی داوسيدو اود راحت اوآرام خانې ډيرښانسته صفا ستُهره اوپاکيزه دې.په کتلوکښې ښانسته منظروالا،په اوسيدوکښې آرام دې،الله ﷻ خپل مخلوق دخپل عبادت اوتسبيح اوتهليل دپاره پيداکړې دې.که مخلوق دا اونکړی نودوی د الله ﷻ په نزد ډيرزيات سپك دی.دايمان نه بغير انسان بالکل ناکاره دې.که الله ﷻ غوښتلې.نوهغه به کافران هم عبادت طرف ته مائل کړې وې.ليکن د الله ﷻ په نزد دوی په هيڅ شميرکښې نه دی.کافرانو! تاسو دروغژن اوګرځولو.اوس تاسومه پوهيږئ بس معامله ختم شوه.ددې وبال تاسو سره دې.په دنيا اوآخرت کښې تاسو برباد شوئ.د الله ﷻ عذاب تاسوسره لګيدلې دې.هم ددې سلسلې يوه کړئ دبدرېه ورخ دکافرانو ذلت او شکست وو.لکه چه دحضرت ابن مسعودؓ وغيره نه نقل دی[1].دقيامت د ورځې سزاهم باقی ده.

(الحمدلله) د سورۀ فرقان تفسيرپوره شو.

[1]) الطبری: ۳۲٤/۱۹.